لَقَدْ كَانَ فِي قَصَصِهِمْ عِبْرَةٌ لِأُولِي الْأَلْبَابِ ۝

# حياة الصحابة

رضي الله عنهم

پښتو

د كتاب خصوصيات

- د هرې موضوع په آسانۍ سره د پیدا کولو لپاره مفصل فهرست
- د بابونو لپاره واضح او ښکاره عنوانات
- د هر موضوع د وضاحت لپاره جدا جدا او واضح عنوانات
- د احادیثوعربي متن او پښتو روانه ترجمه
- د احادیثو د کتابونو مکمل حواله
- د اشخاصواو ځایونو د نومونو وضاحت په حاشیه کې


تصنیف

حضرت مولانا محمد یوسف

کاندهلوی رحمة الله علیه

پښتوترجمه

ابو مسعود هدایت الله صافي



مکتبه عمر فاروق

لَقَدْ كَانَ فِي قَصَصِهِمْ عِبْرَةٌ لِّأُولِي الْأَلْبَابِ ۗ

# حياة الصحابة رضي الله عنهم

پښتو

2

تصنيف
حضرت مولانا محمد يوسف
كاندهلوي رحمة الله عليه

پښتو ترجمه
أبومسعود
هدايت الله صافي

**د كتاب خصوصيات**

- د هري موضوع په آساني سره د پيداكولو لپاره مفصل فهرست
- د بابونو لپاره واضح او بنكلي عنوانات
- د هر موضوع د وضاحت لپاره جدا جدا او واضح عنوانات
- د احاديثو عربي متن او پښتو روانه ترجمه
- د احاديثو د كتابونو مكمل حواله
- د اشخاصواو ځايونو د نومونو وضاحت په حاشيه كي

مكتبة عمر فاروق رضي الله عنه
بالمقابل اسلامیہ کتب خانہ اردو بازار محلہ جنگی قصہ خوانی پشاور
091-2580103 | 0311-8845717

محترمو اهل علمو، ګرالو طالبالو او معززو لوستونکو! السلام عليکم ورحمه الله وبرکاته!

ګرانو محترمو ذکر شوی کتاب

حياة الصحابة رضي الله عنهم

د کتاب په تصحيح کې حتی الوسع کوشش شوی دی، د دې باوجود که کومه غلطي په نظر درشي او يا کوم مفيد تجويز لرئ نو مهرباني وکړئ ضرور مونږ ته اطلاع راکړئ ترڅو راتلونکی چاپ بهتر او له غلطيو نه پاک شي.

مکتبه عمر فاروق


د کتاب نوم

حياة الصحابة رضي الله عنهم

تصنيف

حضرت مولانا محمد يوسف کاندهلوي رحمه الله

پښتو ترجمه

حضرت مولانا محمد احسان الحق

د چاپ کال

2021ء

شمير

1100

ناشر

مکتبه عمر فاروق

پرنټنګ




# دکتاب فهرست

## نهم باب ........................ ۴۵۶

# اووم باب

## د کلمه وحدت، اتفاق او یووالي ته د صحابه کرامو توجه او اهتمام

*صحابه کرامو رضي الله عنهم څنګه د کلمې وحدت، د احکامو اتحاد، د خپل مینځي اختلاف نه احتراز، د الله تعالی او د هغه د رسول په طرف د دعوت ته توجه او اهتمام کولو.*

## د اختلاف د بدۍ په باره کې د صحابه رضي الله عنهم کرامو اقوال او بیانات

**د اختلاف په باره کې دحضرت ابوبکر رضي الله عنه قول:**

دابن اسحاق نه روایت دی چې حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د سقیفه بني ساعده دیوې ورځې په بیان کې د وفرمایل چې دا خبره جائز نه ده چې د مسلمانانو دې دوه امیران وي ځکه چې هر کله دا سې اوشي نو د مسلمانانو په ټولو کارونو او حکمونو کې به اختلاف مینځ ته راځي او د دوي اتحاد به ختم کړای شي او دوي به خپل مینځ کې جنګونه کوي او یا به د رسول ﷺ طریقې پریښودلی شي، بدعت به غالبه شي، فتنه به ښکاره شي او هیڅوک به یې اصلاح نشي کولې.(۱)

**د اختلاف په باره کې دحضرت عمر رضي الله عنه قول:**

حضرت سالم بن عبید د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د بیعت په باره کې یو روایت رانقل کوي او فرمايي: چې په دغه وخت کې د انصارو نه یو کس وویل چې یو امیر به په مونږ انصارو کې وي او یو امیر به په تاسو مهاجرینو کې وي نو حضرت عمر رضي الله عنه وفرمایل چې په یو قاش کې دوه تورې نه ځائیږي.(۲)

**د اختلاف نه د ځان ساتلو په باره کې د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه خطبه:**

حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه یو وخت په خپل بیان کې وفرمایل: اې خلکو! د خپل امیر خبره منئ او خپلو کې یو ځای اوسیدل ځان لپاره ضروري وګڼئ ځکه چې هم دا شی د الله

---

۱: اخرجه البیهقی ج ۸ ص ۱۴۵

۲: اخرجه ایضا البیهقی ج ۸ ص ۱۴۵

تعالی رسئ ده چې دهغې په قوت سره دنیولو الله جَلَّجَلَالُهُ حکم کړیدي او په خپل مینځ کې په اتحاد سره چلیدلو کې چې کومې ناخوښه خبرې تاسو ته مخې ته راشي داستاسو دهغه خوښو خبرونه غوره دي په کومو خبرو چې تاسو جدا جدا چلیدلو کې حاصلیږي الله جَلَّجَلَالُهُ چې کوم شي پیدا کړیدي دهغې لپاره الله جَلَّجَلَالُهُ یو اخري اندازه هم ګرځولې ده چېرته چې دغه شي رسیږي دا په اسلام باندې د قوت او ترقي زمانه ده او ډیرزر به دا هم اخري انتها ته اورسیږي بیا به ترقیامته پورې په دې کې کمې زیاتې کیږي او ددې نښه داده چې خلک به ډیرزیات غریبان شي او غریب ته به داسې سړی نه ملاویږي چې هغه دده سره احسان کړي ځکه چې مالدار به هم ځان غریب بولي او مالدار به داسې فکر کوي چې هغه څه چې دده سره دي هغه دده لپاره کافي نه دي تردې پورې چې سړی به خپل سکه ورور او د تره ځوي ته د خپلې غریبې شکایت وکړي خو هغه به هم څه ورنه کړي او تردې پورې چه ضرورتمند سوال کونکی به دیوې جمعې نه دبلې جمعې پورې پوره یوه هفته سوال کوي ، ګرځي به لیکن د هغه لاس له به هیڅ نه وراچوي کله چې خبره داسې حد ته ورسیږي نو د ځمکې نه به هیڅ یو تیز اواز را اووځي چې د هرمیدان خلک به دا وګڼي چې دا اواز دوي دمیدان نه راوتلې دي او بیا ترڅو چې الله جَلَّجَلَالُهُ اوغواړي په زمکه کې به خاموشي وي بیا به زمکه دزړه حصې بهر راوغورځوي دهغه پوښتنه وکړای شوه چې اي ابوعبدالرحمن دزمکې دزړه ټوټې څه شیان دي؟ هغوئ وفرمایل :چې دسرو او سپینو زرو ستنې او بیا دې ورځې نه پس به دقیامت ورځې پورې دا سره زر او سپین زر څه فائده نه رسوي.(۱)

او د مجالد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه سوا دنورو صحابه وو په روایت کې دا مضمون دی چې خپلولي به ختمه شي تر دې چې مالدار به صرف د فقیري نه ویریږي او فقیر ته به داسې سړی نه ملاویږي چې دهغه سره احسان وکړي او د سړی د تره ځوي به مالداروي او هغه به ده ته دخپل حاجت شکایت وکړي لیکن هغه د تره ځوي به ده ته څه ورنه کړي ددینه روستې مضمون ئې ذکر نه کړو.(۲)

---

۱: اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ج ۷ ص ۳۲۸- رواه الطبرانی باسانیدوفیه مجالدوقد وثق وفیه خلاف وبقیه جال احدالطرق ثقات.

۲: اخرجه ابونعیم فی الحلیه ج ۹ ص ۲۴۹.

## د اختلاف په باره کې دحضرت ابوذر رضي الله عنه بيان

يو صحابي فرمايي: مونږ حضرت ابوذر رضي الله عنه ته دوركولو لپاره يو شى واخيست او لاړو د هغه ځاى (ربذه) ته ورسېدو مونږ دهغه باره کې پوښتنه وکړه نو هغه مونږ سره يې ونه ليدل او مونږ ته معلومه شوه چې هغه دامير المؤمنين نه دحج تلو اجازت غوښتى وه هغه ته اجازت ورکړى شوى وو هغه حج د اداء كولو لپاره تللى مونږ دهغه سره ناست وو چې چاهغه ته وويل: حضرت عثمان رضي الله عنه په منى کې څلور رکعتونه مونځ کړي دى نو هغه ډير خفه شو او په دې باره کې هغه ډيره سخته خبره وکړه او ويې فرمايل: مارسول الله ﷺ سره دلته په منى کې مونځ کړى وو نو دوه رکعتونه مونځ يې کړى ؤو او په ما د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه سره دلته د مونځ کولو وخت راغى نو حضرت ابوذر رضي الله عنه ودرېده څلور رکعتونه يې وکړل حضرت عثمان رضي الله عنه په مكه مكرمه کې واده کړى وو او په مكه مكرمه کې ئي څو ورځې داوسيدلو اراده کړې وه له دې وجې نه هغه مقيم شوي وو او څلور رکعتونه مونځ ئي كولو په دې خبره هغوى ده ته وويل چې د امير المؤمنين په كوم كاربانـدې تاسـو اعتراض كولـو اوس تاسو په خپله هغه كاركوئ؟ وې فرمايل: چې دامير مخالفت ددينه زيات سخت دى، يوځل رسول الله ﷺ مونږ ته بيان كولو نو ويې فرمايل: زمانه روستو به بادشاه وي تاسو هغه مه رسوا كوئ ځكه چا چې د هغه د رسوا كولو كوشش وكړو نو هغه د اسلام رسى دخپلې غاړې نه لرې کړه او ددې سړى توبه تر هغه نه قبليږي چې هغه سورى بند نه کړي چې هغه جوړ کړي دى يعنې دبادشاه درسوا كولو سره چې هغه اسلام ته كوم تاوان رسولى دى دهغې پوره والي اُونه كړو او هغه به داسې ونه کړى شي اودخپل مخكينې فكرنه واپس شي اوددې بادشاه عزت كولو والا جوړ نه شي رسول الله ﷺ مونږ ته ددې خبرې حكم وكړو چې په درې خبرو کې بادشاهان مونږ په خپل ځان باندې او چت نه كړو يعنې مونږ به دهغوئ عزت كوو ليكن دهغوئ له دې وجې نه به مونږ دادرې كارونه نه پريږدو يو دا چې مونږ به د نيكى حكم كوو اودبدو نه به يې منع كوو او خلكو ته به د رسول الله ﷺ طريقې وښايو.(۱)

## حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې اختلاف شر دي

حضرت قتادة رضي الله عنه فرمايي: چې رسول الله ﷺ حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه

---

۱- اخرجه احمد قال الهيثمي ج ۵ ص ۲۱٦ وفيه راولم يسم وبقيه رجاله ثقات انتهى.

او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به په مکه او منی کې دوه رکعتونه قصر مونځ کولو او دغه شان حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به د خپل خلافت په شروع کې هم دوه رکعته مونځ کولو.

حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته کله چې دا خبره معلومه شوه نو وې فرمايل: انا لله وانا اليه راجعون ليکن کله چې د مونځ کولو وخت راغی نو هغه اودريدو او څلور رکعتونه مونځ يې وکړو نو هغه ته وويل ې شو چې د څلور رکعتونه په خبريدو خو تاسو (انا لله) ويلي وو او په خپله څلور رکعتونه مونځ کوئ؟ نو هغه وفرمايل: چې د امير مخالفت کول د دينه زيات ناکاره شي دي. (۱)

## د اختلاف، بدعت، ډلو او بې اتفاقۍ په باره کې دحضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بيان:

حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يو وخت وفرمايل: چې تاسو داسې فيصلي کوئ لکه څنګه چې مخکې کيدلې ځکه چې زه اختلاف ډېر خراب شی ګڼم يا خو به د مسلمانانو هم يوه ډله وي يا به زه مړ شم څنګه چې زما ملګري حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بغير د اختلاف نه وفات شول نو حضرت ابن سيرين رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ رايه داوه چې (زياتی خوبنونکي) خلک چې د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه عموماً کوم روايت نقلوي هغه غلط دي. (۲)

حضرت سليم بن قيس عامري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يو بيان کوي چې ابن کوّاء د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه د سنت او بدعت او د اتحاد سره د اوسيدلو او ديو دبل نه جدا، جدا اوسيدلو باره کې پوښتنه وکړه نو حضر علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل: اي ابن کوّا تاسوال ياد او ساتلو او س د هغې په جواب باندې بنه پوهه شه په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم سنت خو د رسول الله ﷺ طريقه ده او بدعت هغه کار دي چې د دې طريقې نه خلاف وي او په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم چې د حق پرستو يو ځاي کيدل په اصل کې يو ځاي کيدل دي خواه که هغوی په شمار کې کم هم وي او د باطل پرستو يو ځاي کيدل په حقيقت کې جدا، جدا کيدل دي خواه که هغوی په شمار کې ډېر زيات وي. (۳)

## د رسول الله ﷺ د وفات نه بعد د خلافت په باره کې د صحابه موقف

## د حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خلافت باندې د صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ اتفاق:

حضرت عروه بن زبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي، چې د رسول الله ﷺ د وفات خبر اوريدلو سره

---

۱- اخرجه عبدالرزاق كذافى الكنز ج ۴ صحفه ۲۴۲.

۲- اخرجه البخارى و ابو عبيد فى كتب الاموال والاصبهانى فى الحجة كذافى المنتخب ج۵ ص ۵۰.

۳- اخرجه العسكرى كذافى الكنزج ۱ ص ۹۶.

حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دسخ محلې نه په خپله سورلۍ باندې راغی او د جماعت دروازې ته چې رارسیده نو د سورلۍ نه ښکته شو هغه بې ارامه او غمژن ښکاره کیده او هغه دخپلې لور حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا نه کورته دورتلو اجازت وغوښتلو حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا ورته اجازت ورکړو حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دننه لاړو چې رسول الله ﷺ وفات شوي وو او په خپله بستره کې پروت وو او بیبیانې یې ترې ګیرچاپیره ناستې وې د حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا نه سوا باقي ټولو بیبیانو خپل مخونه په څادرونو پټ کړل او د حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه یې شرعي ستر وکړو حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ رسول الله ﷺ دمخ مبارک نه څادر لرکړو او زنګونونه یې ولګولو او ښکل یې کړو او په ژړا کې یې وفرمایل : چې حضرت عمر ابن خطاب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ چې څه وایي هغه صحیح نه ده چې رسول الله ﷺ نه دی وفات شوي بلکه بې هوشې ورباندې راغلې ده یاد هغوی روح معراج ته تلې دي چې واپس به راځي، رسول الله ﷺ وفات شوېدي په هغه ذات مې دې قسم وي چې د چا په قبضه کې ځما ساه ده اې د الله رسوله ﷺ! په تاسو دې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رحمت وي تاسو په ژوند کې او پس د وفات نه هم څومره پاکیزه ئي حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په مخ مبارک باندې څادر واچولو او بیا په جلتۍ سره جماعت ته روان شو او د خلکو په اوګو باندې اوختلو او منبرته اورسیده حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ چې حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ رار وان اولیده نو کیناستلو حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د منبر یوې خواته ودریده او خلکو ته ئي اواز وکړو او از اوریده سره ټول کیناستل او چې شول بیا حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ کلمه شهادت وویله او وې فرمایل : کله چې د الله تعالی رسول ﷺ ستاسو په مینځ کې ژوندی وو هغه وخت الله جَلَّ جَلَالُهُ هغه ته د مرګ خبرورکړی وو او تاسو ته یې هم د مرګ خبر ورکړو او د امرګ یو یقیني شي دې د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه علاوه تاسو کې هیڅوک هم دې دنیا کې باقي نه پاتې کیږي الله جَلَّ جَلَالُهُ په قرآن کریم فرمایلي دي: وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ ۚ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ۚ (۱)

ترجمه: او نه دی حضرت محمد ﷺ مګر یو رسول دی او د هغه نه مخکښ هم نور پیغمبران تیر شویدي نو که هغه وفات شي یا هغه شهید کړای شي نو ایا تاسو به اوړئ.

---

۱- سورة العمران ایت نمبر ۱۴۴

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل: څما دذهن نه دا يت بيخي هيرشوي وو او د حضرت ابوبكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په لوستلو ماته دا راياد شو او ماته دا سې معلومه شوه لکه د قرآن دا ايت هم نن نازل شوی دی او د نن نه مخکې نه وي نازل شوي او الله جَلَّ جَلَالُهُ حضرت محمد ﷺ ته فرمايلي دي: إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُم مَّيِّتُونَ (١).

ترجمه: ته به هم وفات کيږي او دوئ به هم مري، او الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمايلي دي:

كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُ لَهُ الْحُكْمُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ (٢)

ترجمه: ټول شيان پناه کيدونکي دي سوا دمخ د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه هم د هغه بادشاهي ده چې دهغې مکمل ښکاره کيدل به په قيامت کې وي او هم هغه ته ستاسو د ټولو ورګرځيدل دي پس ټولو ته به د هغوئ د عملونو بدله ورکړي او د الله جَلَّ جَلَالُهُ ارشاد مبارک دي:

كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ ۝ وَيَبْقَىٰ وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ (٣)

ترجمه: څو مره روح لرونکي چې دي په دې دنيا کې هغه ټول به فنا شي او ستا د پروردګار ذات چې عظمت او احسان لرونکي دي هغه به باقي پاتې شي، او د الله جَلَّ جَلَالُهُ ارشاد مبارک دي: د سورت آل عمران ايت ١٨٥ نمبر کې دي:

ترجمه: هريو کس به د مرګ لذت څکي او تاسو ته به پوره بدله د قيامت په ورځ درکول کيږي

او بيا حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل: چې الله تعالى حضرت محمد ﷺ ته دومره عمرورکړو او هغه ئي په دنيا کې دومره اوساته چې په دغه وخت کې هغه د الله جَلَّ جَلَالُهُ دين قائم کړو د الله جَلَّ جَلَالُهُ حکم يې غالب کړو د الله جَلَّ جَلَالُهُ پيغام يې اورسولو ۰ او د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې يې جهاد وکړو بيا الله جَلَّ جَلَالُهُ هغه په دغه حالت باندې وفات کړو او رسول الله ﷺ تاسو په يو وصفا لاره باندې پرېښودئ او تلې دې اوس چې څوک هم تباه کيږي هغه به د اسلام واضح دليلونه او د کفر او شرک نه شفا ورکوونکي قرآن ته ګوري او تباه کيږي به د کوم انسان رب چې الله جَلَّ جَلَالُهُ دې نو هغه الله جَلَّ جَلَالُهُ هميشه ژوندی دی چې په هغه باندې مرګ نه راځي او چا چې د محمد ﷺ عبادت کولو هغه ته يې د خدای توب درجه ورکوله نو هغه دې واوري چې

---

١- سورة الزمر ايت نمبر ٣٠

٢- سورة القصص ايت ٨٨.

٣: سورة الرحمن ايت نمبر ٢٦ - ٢٧.

دهغه رب مړشو اې خلکو ! دالله جَلَّ جَلَالُهُ نه ویره وکړئ او خپل دین محکم اونیسئ او پخپل رب باندې توکل وکړئ ځکه چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ دین موجود دی او د الله جَلَّ جَلَالُهُ خبره پوره ده، او څوک چې دالله جَلَّ جَلَالُهُ د دین مدد کوي الله جَلَّ جَلَالُهُ به د هغوی سره مدد کوي او خپل دین ته به عزت ورکوي او دالله جَلَّ جَلَالُهُ کتاب قرآن مونږ سره موجود دی چې رڼا او شفاده . هم د دې کتاب په وجه الله جَلَّ جَلَالُهُ حضرت محمد ﷺ ته لاښودنه ورکړه او هم په دې کتاب کې دالله جَلَّ جَلَالُهُ حلال او حرام کړای شوي شیان بیان شوی دی او په الله تعالی قسم ! دالله جَلَّ جَلَالُهُ په مخلوق کې چې څوک هم په مونږ باندې لښکر راولي مونږ به د هغه هیڅ پرواه ونکړو بیشکه دالله تعالی توري د قاشونو نه ویستلې شوی دی مونږ تراوسه پورې هغه نه دی ایښې او څوک چې زمونږ مخالفت وکړي مونږ به د هغه سره جهاد کوو څنګه چې به مونږ د رسول الله ﷺ په ملګرتیا کې جهاد کولو او څوک چې په مونږ زیاتی کوي هغه په حقیقت کې په خپل ځان باندې زیاتی کوونکی دی بیا دی هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره مهاجرین رسول الله ﷺ طرف ته د کفن لپاره روان شول. (۱)

**د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خطبه او له ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره عمومي بیعت:**

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي : چې ما د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه اخري خطبه واوریده چې هغه په منبر باندې بیان کړې وه او د رسول الله ﷺ د وفات نه د اخرني ورځې خبره ده او هغه وخت حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بالکل چپ وو او هیڅ خبره ئي نه کوله حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل : زما امید وو چې رسول الله ﷺ به دومره ډیره موده ژوندی وي چې مونږ به د دنیا نه مخکې لاړشو او رسول الله ﷺ به زمونږ نه روسته تشریف وړي لیکن الله تعالی ته داسې خوښه نه وه او س که چیرې د حضرت محمد ﷺ وفات شوی دی نو دویرې هیڅ خبره نه ده الله تعالی ستاسو په مینځ کې یو ه رڼا (قرآن) باقي پریښې دی چې له هغې وجې تاسو هدایت موندلی شئ او هم د دې په وجه الله جَلَّ جَلَالُهُ مونږ ته هدایت نصیب کړو دویمه خبره داده چې د حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ خاص صحابي دي او د هغه امتیازي صفت او لوي فضیلت دادی کله چې رسول الله ﷺ د هجرت په شپه د مکې نه روان شو او غار ثور کې یې پناه واخیسته نو هغه وخت صرف

---

۱: اخرجه البیهقي کذافي البدایه ج۵ ص ۲۴۲.

ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ سره وو، چې دهغې له وجې نه د قرآن کریم دالفاظو مطابق داثاني اثنین یعنې په دووکې دویم دي او دي ستاسو دکارونو لپاره په تولو مسلمانانوکې دټولو نه زيات مناسب دي له دې وجې نه اودریږي او ده سره بیعت وکړئ او دې نه مخکې په سقیفه بني ساعده کې یوې ډلې دحضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره بیعت کړی وو اودعامو مسلمانانو بیعت مسجدکې په منبر باندې وشو.

حضرت زهري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دحضرت انس بن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روایت نقلوي چې ما په دغه ورځ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه واوریدل چې حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ئې وویل: چې تاسو ورشئ په منبرباندې کینئ اوهغه ته یې باربارداویل: تردې پورې چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لره پخپله په منبرباندې اوخیژولو بیاعامومسلمانانو دحضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره بیعت وکړو.

**په سقیفه کې له حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره بیعت:**

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: کله چې سقیفه بني ساعده کې حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره بیعت وکړې شو، اوحضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ د وفات په بله ورځ په منبر کیناستلو، اوحضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اودریدلو اود حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه ئې مخکې بیان وکړو، اود الله جَلَّ جَلَالُهُ دشان لائق حمدوثناء یې بیان کړه، بیا یې وفرمایل اې خلکو! پرون ماستاسو په مخکې داسې خبره کړې وه چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په کتاب قرآن کې نشته دی اونه ماته په دې کې پیداشوي ده اونه زمانه رسول الله ﷺ ددې وعده اخیستي وه، بس دازما خپل فکروو، چې رسول الله ﷺ به زمونږ دټولو نه روستو ددنیانه تشریف اوړي، څکه ماپرون ویلي وو چې حضرت محمد ﷺ وفات شوی نه دی چې غلطه وه او س الله تعالی په تاسو کې خپل کتاب قرآن باقي ساتلی دی چې ددې په ذریعه الله تعالی رسول الله ﷺ ته هدایت نصیب کړې وو که چېرې تاسو داپه قوت سره اونیسی نوالله تعالی به تاسو ته هم دهغه خبروهدایت وکړي چې دکوموئي هغوی ﷺ ته کړې وو، اوالله جَلَّ جَلَالُهُ ستاسو دخلافت کارپه تاسو کې دټولو نه افضل سړی باندې د خلکوپه خوښه سپارلې دي چې د رسول الله ﷺ صحابي اوغارثور ملگری دی لهذا

تاسو ټول ودرېږئ او د هغه سره بيعت وکړئ نو د سقيفه د بيعت کولو نه روستو اوس په جماعت کې عامو مسلمانانو د حضرت ابوبکرصديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره بيعت وکړو بيا حضرت ابوبکرصديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان وکړو ، اول يې د الله جَلَّ جَلَالُهُ د شان مناسب حمد او ثنا بيان کړه او بيا يې وويل:

(اما بعد. ايها الناس فاني قد وليت عليكم و لست بخيركم. فان احسنت فاعينوني. و ان أسأت فقوموني. الصدق امانة. و الكذب خيانة. و الضعيف فيكم قوي عندي حتى ازيح (۱) علته ان شاء الله. (۲) و القوي فيكم ضعيف (عندي) حتى آخذ منه الحق ان شاء الله. لا يدع قوم الجهاد في سبيل الله الّا ضربهم الله بالذل. و لا يشيع قوم قط الفاحشة الا عمهم الله بالبلاء. اطيعوني ما اطعت الله و رسوله. فاذا عصيت الله و رسوله فلا طاعة لي عليكم. قوموا الى صلاتكم يرحمكم الله).

اې خلکو ! زه ستاسو والي جوړ کړې شوم، حالانکه زه په ستاسو کې غوره نه يم. حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا خبره د عاجزۍ د وجې نه وکړه کنه دا مت د ټولو علماؤ په دې خبره باندې اتفاق دی چې ابوبکرصديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ټولو صحابو کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ نه غوره دی، که چېرې زه صحيح کار وکړم نو تاسو زما مرسته وکړئ او که چېرې زه صحيح کار ونه کړم نو تاسو ما صحيح کړی. رښتيا ويل، امانتداري ده، او دروغ ويل خيانت دی او په تاسو کې کمزوری کس زما په نزد ډير قوي دی او په تاسو کې ډير قوي زما په نزد کمزوري دې. کوم شکايت چې ماته راشي زه به ان شاء الله هغه ضرور پوره کوم، په تاسو کې ډير قوي زما په نزد ډير کمزوری دي ، زه به د هغه نه د کمزوری حق اخلم کمزوری ته به يې ورکوم ان شاء الله، څوک چې د الله تعالی په لاره کې جهاد کول پرېږدي الله تعالی به په هغوی ذلت مسلط کړي، او چې څوک هم د بې حيايۍ د کارونو خپرول پيل کړي الله تعالی به په دنيا کې عامه سزا ورکړي، ترڅو پورې چې زه د الله تعالی او د هغه رسول ﷺ خبره منم تاسو هم زما خبره ومنئ او کله چې زه د الله او د هغه د رسول ﷺ نافرماني کوم نو بيا زما خبره منل په تاسو باندې لازمي نه ده . اوس د مانځه لپاره ودرېږئ الله دې په تاسو باندې رحم وکړي .

---

۱- اي أزيل.

۲ و در ابن هشام آمده: «حتى اريح عليه حق ان شاءالله». يعني «حقش را به وی برگردانم».

## د ابوبکر صدیق رضی الله عنه د خلافت په باره کې د عمر رضی الله عنه بیان :

حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمايي : چې ما به حضرت عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنه ته قران ويلو په هغه زمانه کې به لويو خلکو د کشرانو نه هم علم حاصلولو. يوه ورځ حضرت عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنه خپل ځای ته بېرته راغی، نو هغوئ زه په انتظار کې او موندلم. او د حضرت عمربن خطاب رضی الله عنه د اخري حج او د منی واقعه ده. حضرت عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنه ماته وويل: چې يو سړی حضرت عمر رضی الله عنه ته راغی او ويې ويل چې فلانی سړی ويل چې که چېرې حضرت عمر رضی الله عنه وفات شو نو زه به د فلاني سړی يعنې طلحه بن عبيد الله سره د خلافت بيعت کوم، په الله قسم ! د حضرت ابوبکرصديق رضی الله عنه بيعت هم داسې سمدستي شوې وو، او پوره شوې وو. زه به هم هغسې د هغه سره بيعت کوم نو د هغه بيعت به هم پوره شي او ټول به د هغه نه بيعت وکړو ، په دې باندې حضرت عمر رضی الله عنه وويل: نن مابنام به ان شاء الله زه خلکو ته وينا کوم، او خلک به د هغې دلې نه ووېروم چې د مسلمانانو نه د هغوی د خلافت امر هم داسې سمدستي اخيستل غواړي بغير د مشورې او فکر نه پخپله خوښه په سړی کې د قابليت کتلو نه بغير خليفه ټاکل غواړي، حضرت عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنه فرمايي : چې ما حضرت عمر رضی الله عنه ته وويل: چې اې امير المؤمنين ! تاسو داسې مه کوئ ځکه چې د حج په موسم کې به بې رائې او کم فکره او عام خلک جمع کيږي، کله چې ته خلکو ته بيان کوي نو هم دوي به ستاسو په مجلس کې غالب وي او هوښيارو خلکو ته به ځای ملاؤ نشي، له دې وجې نه ماته وېره ده چې تاسو به کوم خبره کوئ هغه به دا خلک والوزوي، نه به پرې پخپله پوره پوه شي او نه به هغه د موقعې او محل مطابق نورو خلکو ته بيان کړې شي. لهذا تاسو او س صبر وکړئ کله چې تاسو مدينې ته ورسيږئ نو هلته تاسو دا بيان وکړئ عالمان او سرداران جدا کړه، او تاسو چې څه ويل غواړئ اطمينان سره ئې او وايئ، هغه خلک به ستاسو په خبره باندې پوه هم شي او د موقعې او محل مطابق به هغه نورو خلکو ته هم بيان کړې شي. حضرت عمر رضی الله عنه زما خبره قبوله کړه ويې فرمايل : که چېرې زه صحيح او سالم مدينې ته اورسيدم نو ان شاء الله زه به خپل د ټولونه اول بيان کې خلکو ته دا خبره خامخا کوم. حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمايي کله چې مونږ د ذي الحجې په اخري

ورځوکې دجمعې په ورځ مدینې ته اورسیدونوما دسختې ګرمۍ پروا ونه کړه . خاص دماسپخین په وخت چالاکۍ سره مسجد نبوي ﷺ ته لاړم. نوما ولیدل چې حضرت سعیدبن زید رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ زمانه مخکې راغلی دې اودمنبرښي غاړې ته ناست دې، ماد هغه په برابرئ کې دزنګنونوسره زنګنونه برابرکړل اوکیناستم، لږوخت چې تیرشوی، نوحضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ تشریف راوړو، ماحضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته اوکتل ومې ویل چې نن به حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په دې منبرباندې داسې خبره کوي، چې دنن نه مخکې به دې منبرباندې چانه وې کړي، حضرت سعیدبن زید رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ زماددې خبرې نه انکار وکړو . او وېویل چې زماخوداخیال نه دی چې حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ به داسې څه خبره وکړي، چې دده نه مخکې به چانه وي کړې، ځکه چې دین خودرسول الله ﷺ په زمانه کې پوره شوې دې اوس خوڅوک نوې خبره نه شي کولې، نوحضرت عمرپه منبرباندې کیناستلوبیامؤذن اذان وکړو کله چې اذان ختم شو نوحضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اودریدلو اودالله دشان مناسب دالله حمداوثنایې بیان کړه، بیائې وفرمایل : اما بعد ! اې خلکو ! زه یوه خبره کوم، دهغې خبرې ویناچې دمخکې نه زماپه تقدیرکې لیکلې شوې ده، اوکیدی شي چې داخبره زمادمرګ باعث جوړه شي، په دې وجه څوک چې زماخبره یاده ساتي اوپه هغې باندې ښه پوه شي، نوکوم ځائ پورې چې دهغه سورلي هغه لره دنیاته اورسوي دهغه ځائ خلکو ته دې زماداخبره بیان کړي اوڅوک چې زماپه خبره ښه پوه نه شي نوزه هغه ته اجازت نه ورکوم چې هغه زماپه باره کې د غلط بیان نه کارواخلي، دټولودتیارولو لپاره حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ داخبره مخکې وکړه الله تَبَارَكَ وَتَعَالَىٰ حضرت محمد ﷺ ته حق ورکړو اوموږته یې را ولیږلو اوپه هغه باندې یې کتاب نازل کړو، اوکوم کتاب چې په رسول الله ﷺ باندې نازل شو په هغې کې درجم ایت داؤ (والشیخ والشیخة اذا زنیافارجموهما) ددې ایت الفاظ خومنسوخ شوی دی لیکن ددې حکم باقي دې، موږ داآیت ولوستلو اوهغه مویادکړو .اوپه هغې پوه شو اورسول الله ﷺ رجم وکړو اودهغه نه روستوموږ هم رجم وکړو .لیکن ددې خبرې نه ویریږم چې ډیره زمانه تیریدلو باندې به څوک دا اووایي چې موږ خودرجم ایت په کتاب الله کې بیانه مونده اودغه شان الله تَبَارَكَ وَتَعَالَىٰ نازل کړې شوې فرض به پریږدي . دغه خلک به بې لارې شي، دزناکاردرجم حکم دالله تعالی په کتاب کې

وو، کوم محصن (واده شوي) سړی او یا ښځه چې زنا وکړي او دزنا ګوهان او موندلی شي، یا دزنا حامله ښځه دزنا اقرار وکړي یا څوک سړی یا ښځه هم داسې دزنا اقرار وکړي نو دهغه رجم کول شرعاً په لازم وي، او واورئ مونږ به قرآن کې دا یت هم لوستلو:

لا ترغبوا عن آبائکم فان کفرا بکم ان ترغبوا عن آبائکم

ترجمه: خپل پلار نیکه مه پرېږدئ او بل طرفته د نسب نسبت مه کوئ ځکه چې د خپل پلار نیکه پرېښودل کفر دی، یعنې دنعمت ناشکري ده، او س ددې آیت الفاظ هم منسوخ شوی دی لیکن ددې حکم باقي دی او واورئ! رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې زما په صفت کې داسې زیاتې مه کوئ ځنګه چې حضرت عیسی بن مریم عَلَیْهِ السَّلَام په صفت کې زیاتې او شو، بس زه خو هم یو بنده یم، لهذا رسول الله ﷺ دا وایئ چې دا دالله تعالی یو بنده او دهغه رسول الله ﷺ دی او ماته دا خبره را رسیدلې ده چې په تاسو کې یو کس دا وایي چې کله چېرې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفات شو نوزه به دفلاني سره بیعت کوم هغه لپاره غولېدل نه دي پکار، چې د حضرت ابو بکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیعت ناڅاپي شوې وو، لیکن ددغه بیعت له وجې په جلتئ سره کیدلو د شر نه الله تَبَارَكَ وَتَعَالَى ټول امت بچ کړو، او نن په تاسو کې د حضرت ابو بکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په شان څوک نشته دې چې دهغه دفضیلت ټول قائل وي او لرې نزدې ټول دهغه سره موافقت وکړي، کله چې رسول الله ﷺ وفات شو دهغه وخت زمونږ قصه داده چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دهغوی سره نور خلک د رسول الله ﷺ دلور حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په کور کې روستو پاتې شول، او هلته ټول انصار په سقیفه بني ساعده کې جمع شول، او مهاجرین د حضرت ابو بکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره جمع شول، ما هغوی ته وویل: چې اې ابو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ! راځه چې مونږ خپل انصارو وروڼو ته ورشو نو مونږ د دغه انصارو په اراده روان شو، په لاره کې مونږ ته دوه نیکان سړی یو حضرت عویم انصاري او بل کس حضرت معن رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ملاؤ شول، او انصارو چې څه کول هغه مونږ ته دې دواړو بیان کړل، او زمونږ نه ئې پوښتنه وکړه چې اې دمهاجرینو ټولګیه! ستاسو چېرته د تلو اراده ده؟ ما وویل: چې مونږ خپل انصارو وروڼو ته ورځو. دواړو وویل: انصارو ته ورتلل ستاسو لپاره ضروري نه دي اې دمهاجرینو ټولګیه! تاسو دخپلې معاملې فیصله پخپله وکړئ ما وویل: په الله قسم! نه

مونږ خو به هغوی ته خامخا ورځو، نو مونږ لاړو. او هغوی ته ورسېدو هغوی ټول په سقيفه بني ساعده کې جمع وو، او د هغوی په مينځ کې يو سړي څادر اغوستی وو ما پوښتنه وکړه چې دا څوک دی؟ هغوی وويل: چې دا سعد ابن عباده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دی ما وويل په ده څه شوی دی هغوي وويل: چې دی بيمار دی، کله مونږ کيناستو، نو په هغوی کې يو ملګري بيان وکړو او هغه د الله تَبَارَكَ وَتَعَالَىٰ حمد او ثناء ويلو نه پس وويل امابعد! چې مونږ د الله تَبَارَكَ وَتَعَالَىٰ د دين مددګار او د اسلام لښکر يو، او اې د مهاجرينو ټوليه! تاسو زمونږ د رسول الله ﷺ جماعت يئ او په تاسو کې ځيني خلک داسې خبرې کوي چې د هغې نه دا معلوميږي چې تاسو زمونږ خيال نه ساتئ او د خلافت په باره کې مونږ جدا ساتل غواړئ کله چې هغه ملګری چپ شو نو ما خبره وکړه او ما پخپل ذهن کې يو مضمون تيار کړو، چې زما ډير خوښ وو او د حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د مخکې ما هغه ته وويل او ما په هغې کې ډيره نرمه خبرې راټولې کړې وې، حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل اې عمره! په ارام سره کينه، ما د حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خفه کول نه غوښتل، ځکه د خپلې خبرې لپاره او نه دريدم، نو هغه خبرې وکړې او هغه زما نه زيات پوهه او باوقاره وه، او په الله قسم! کله چې هغه خاموش شو نو ما چې په خپل مضمون کې څومره خبرې ځائ او فکر کړې وې، هغه ټولې خبرې مې پخپل جذباتي بيان کې وويل: نو يا خو مې هغه خبرې وکړې يا مې د هغې نه بهتره وکړې. نو هغوی وويل: امابعد! تاسو چې د خپل ځان په باره کې کوم د خير ذکر وکړو تاسو خلک واقعې د دې اهل يئ، ليکن د ټولو عربو خلک د خلافت د امر حقدار صرف د قريشو قبيله ګڼي، او د قريشو قبيله په ټولو عربو کې د نسب او د ښار په اعتبار سره د ټولو نه افضله ده او په تاسو کې ما ته خليفه کېدو لپاره په دې دواړو سړو کې يو خوښ دې په دواړو کې چې د چا سره غواړئ بيعت وکړئ، او دائي وويل او حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زما په لاس او نيولو، او د حضرت ابوعبيده بن جراح او د دې يو خبرې نه علاوه د حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هيڅ خبره په ما بده او نه لګيده، او په الله تعالى قسم! زه دې مخکې کړې شم او بغير د څه ګناه نه دی زما سټ والوزولي شي، دا خبره ما ته د دې نه زياته خوښه ده چې د حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په موجودګي کې دې زه امير کړې شم په هغه وخت کې خو زما د زړه هم داسې حال وو ليکن که د مرګ په وخت کې

زماداحال بدل شي نوبله خبره ده بیاد انصارو نه یو کس وویل: ددې مسئلې ماسره یو غوره اوافضله لاره شته ده، او ددې مرض یوه بنه دوایي ده او هغه داده چې اې د قریشو ټولګیه! یو امیر به په مونږ کې وي او بل امیر دې ستاسو نه وي ددې نه پس ټولو خبرې پیل کړې، او اوازونه ئي اوچت شول، او مونږ ته په خپلو کې د اختلاف ویره شوه نوما وویل: اې ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ! ته خپل لاس را مخکې کړه نو هغه خپل لاس را مخکې کړو، او ل ما د هغه سره بیعت وکړو، بیا مهاجرینو، بیعت وکړو، بیا دې نه پس انصارو بیعت وکړو، او دغه شان مونږ په حضرت سعد بن عباده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ باندې غالب شو، چې هغه امیر نشو، په دې باندې هغوی کې چا وویل: هله تاسو خو سعد مړ کړو ما وویل: الله تعالی دې ئي مړ کړي یعنې څنګه چې ده په دې موقع د حق نصرت نه دی کړې داسې دې الله تَبَارَكَ وَتَعَالَىٰ د ده په امیر تیا کلو کې نصرت و نکړي حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: په الله تعالی قسم! چې په دې موقع مونږ په ځو مره خبرو کې شریک شو په هغې کې هیڅ خبره مونږ د حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د بیعت نه زیاته په کار را تللو نکې او مناسب او نه موندله او ما د حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه د بیعت سلسله سمدستي ځکه شروع کړه چې مونږ ته ویره وه چې که د بیعت نه بغیر مونږ دا انصار دلته پریږدو او لاړشو نو دوي به زمونږ نه پس د چا سره بیعت وکړي بیا زمونږ د هغه ملګرتیا لپاره یا خو به د ناخوښۍ باوجود د هغه بیعت کول وي یا به زمونږ د دوي سره مخالفت کول وي نو فساد به پیدا شي د له دې وجې نه دا قاعده واورئ څوک چې د مسلمانانو سره د مشورې نه بغیر د یو امیر سره بیعت وکړي نو د هغه دا بیعت به شرعاً معتبر نه وي او نه به د هغه امیر د بیعت څه حیثیت وي بلکې ددې خبرې خطره ده چې ددې دواړو باره کې به شرعي حکم داوې که چېرې دوي حق خبره نه مني نو دا دواړه به قتل کولی شي حضرت زهري د حضرت عروه نه نقل کوي چې هغه دوه سړی چې د حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره په لاره کې ملاؤ شوي وو، هغه حضرت عویم بن ساعده او حضرت معن بن عدي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وو. او د حضرت سعید بن المسیب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روایت دې چې کوم ملګري داویلي وو چې ددې مسئلې ماسره غوره او افضل حل دی هغه حضرت خباب بن منذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وو. (١)

---

(١) ... احمد ورواه مالک ومن طریقه اخرج هذا الحدیث الجماعة کذافي البدایة ج٥/ ص ٢٤٥، واخرجه

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: صحابه كرامو رضي الله عنهم قصه په دې شان اوشوه كله چې درسول الله ﷺ انتقال اوشو نو په مونږ كې يو سړي وويل: انصار په سقيفه بني ساعده كې دحضرت سعد بن عباده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره جمع شوى دى او هغوى بيعت كول غواړي دا چې مونږ وا وريدل نوزه او حضرت ابوبكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت ابوعبيده بن جراح وويريدلو، او د هغوى طرفته روان شو، چې چېرته دا انصار په اسلام كې نوې خبره پيدا نكړي په لاركې مونږ ته دوه انصار ملاؤ شو، چې ډير ښتوني سړى وو، يو حضرت عويم بن ساعده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دويم حضرت معن بن عدي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دې دواړو وويل: تاسو واپس لاړ شئ، ځكه چې ستاسو مخالفت هيڅ كله نشي كيدلي، او داسې يو كار نه شي كيدلي چې ستاسو خوښ نه وي، ليكن مونږ وويل: مونږ به هغوى ته خامخا ورځو، او ما دهغه ځائ بيان لپاره مضمون تيار ولو تردې چې مونږ انصاروته ورسېدلو، هغوى دحضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه شا او خوا جمع وو، او حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خپل تخت باندې بيمار پروت وو، كله چې مونږ د هغوى مجلس ته ورسېدلو نو هغوى وويل: اې دقريشو ټوليه! يو اميربه په مونږ كې وي او يو اميربه په تاسو كې وي، او حضرت حباب بن منذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: ددې مرض بنه علاج ماسره دادى او د دې مسئلې ماسره ډيربنه حل دى او په الله قسم! كه چېرې تاسو او غواړي نو مونږ به ددې مسئلې فيصله ځوان او ښ پشان خوښه شوې جوړه كړو، په دې خبره سيدنا ابوبكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: تاسو ټول په خپل ځائ په ارام سره اوسئ، سيدنا عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: چې ما اراده وكړه چې څه اووايم ليكن سيدنا ابوبكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: اې عمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ! ته چپ اوسه، او بيا هغه دحمد او ثنا نه پس وويل: اې دانصارو ټوليه! په الله قسم ستاسو دفضيلت او په اسلام كې تاسو كومې درجې ته رسيدلى ئي دهغه درجې او ستاسو دواجب حق نه زمونږ انكار نشته ليكن تاسو ته معلومه ده چې دې دقريشو قبيلې ته په عربو كې يو خاص مقام حاصل دې چې د هغوى نه علاوه بل چا ته حاصل نه دى او صرف ددې په وجه تاسو د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه او ويريږي، او په اسلام كې جدا والي مه . اولئ او تاسو په اسلام كې

---

ايضاً البخاري وابوعبيد في الغريب والبيهقي وابن ابي شيبة بنحوه لاكما في الكنز ج٣/ ص ١٣٨، ١٣٩.

نوې خبره مه جوړوئ، اولږ په سوچ او فکر سره واورئ، ماستاسو لپاره په دې دوو کسانو کې يو کس خوښ کړې دی، د حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دوو کسانو نه زه او حضرت عبيده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مقصد وو، بيا يې وويل: په دې دوو کې چې د هر يو سره تاسو بيعت وکړئ هغه قابل اعتماد شخصيت دی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: ماکومه خبره ويل خوښول هغه حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وکړه سيوا د دې اخري خبرې نه چې دا زمانه وه خوښه، ځکه چې په الله قسم! زه که چېرې بغير د څه ګناه نه قتل کړای شم او بيا ژوندی کړې شم او بيا قتل کړی شم بيا ژوندی کړی شم او بيا قتل کړی شم، ماته د دې نه زياته خوښه ده چې زه د داسې خلکو امير شم چې په هغوی کې حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم وي. بيا ما وويل: اې د انصارو ټوليه! او د مسلمانانو ټوليه! د رسول الله ﷺ نه پس د هغه د خلافت د خبرې په خلکو کې د ټولو نه زيات حقدار هغه صاحب دی چې د هغه په باره کې (ثَانِيَ اثْنَيْنِ إِذْ هُمَا فِي الْغَارِ) الفاظ راغلی دی او هغه حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دې بيا ما د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لاس د بيعت کولو لپاره ونيوه، ليکن يو انصاري سړی زمانه مخکې شو. او هغه زما د لاس نه مخکې د حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په لاس کې کېښودلو. او بيعت يې وکړو. بيا خلکو پرله پسې بيعت کول شروع کړل او د حضرت سعد بن عباده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د ټولو توجه واوړيدله.(۱)

حضرت ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ فرمايي: د قبيله زريق يو سړي بيان وکړو چې په هغه ورځ (د رسول الله ﷺ د وفات په ورځ) حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل اې د انصارو ټوليه! زمونږ ستاسو د حق نه انکار نشته. او نه څوک مسلمان ستاسو د حق نه انکار کولی شي. په الله تعالی قسم! مونږ چه هر خير حاصل کړی دی تاسو په هغې کې مونږ سره برابر شريک نې. ليکن د عربو خلکو هم په قريشو کې د يو سړي په خليفه کېدو سره خوشحاله کيدلې شي ځکه چې د دوي ژبې د ټولو خلکو نه زياتې فصيحې دي، او د دوي مخونه د ټولو نه زيات ښانسته دي. او د دوي ښار (مکه معظمه) د ټولو عربو نه افضل دی، دوئ د ټولو عربو نه زيات خلکو ته طعام ورکونکي دي لهذا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ طرفته

۱: عندابي شيبة في حديث ابن عباس كذافي كنزالعمال ج ۳ ص۱۲۹.

راشئ، او ده سره بیعت وکړئ، انصارو وویل: نه، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: ولې؟ داخبره حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دزړه دخبرې کولو لپاره پوښتنه کړې وه ګنې دهغه په خپله دخليفه کېدو اراده نه وه، انصارو وویل: مونږ ته ویره ده چې په مونږ باندې به نورو ته ترجیح او غوره والې ورکړای شي، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل: ترڅو پورې چې زه ژوندی يم تر هغې پورې به تاسو باندې چا ته ترجیح نشي ورکولی تاسو خلک دحضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره بیعت وکړئ، حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل: ته زما نه زیات قوي ئې، حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: ته زما نه زیات افضل ئې، هم داخبره ددواړو حضراتو په مینځ کې دوباره اوشوه کله چې په دریم ځل حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: نو حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: زما ټول طاقت به تاسره وي او بيا ستا فضيلت په ما باندې هم حاصل دی، نو خلکو دحضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره بیعت وکړو، دحضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دبیعت په وخت کې څه خلک حضرت ابوعبیده بن جراح ته دبیعت کولو د پاره راغلل. حضرت ابوعبیده بن جراح وویل: تاسو ما ته راځئ حالانکه په تاسو کې هغه سړی هم شته دي چې دهغه په باره کې قران کریم کې د (ثَانِيَ اثْنَيْنِ) الفاظ راغلی دی یعنې حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ.(۱)

## دابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خلافت راضي کېدل

حضرت مسلم رَحِمَهُ اللهُ فرمايي: چې حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ابوعبیده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته پیغام ولېږلو چې ته راشه چې زه تا د محمد ﷺ خليفه وټاکم. ځکه چې ما د رسول الله ﷺ دا فرمان اوریدلی دی چې د هر امتي یو امین وي او تاسو ددې امت امین يي، حضرت ابوعبیده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: چې زه دهغه سړی نه نشم مخکې کیدلی چې رسول الله ﷺ په لمانځه کې زمونږ امام وټاکل او هغه تاسو پخپله ئي.(۲)

---

۱- عندابی شیبة کذافی الکنز ج ۳ ص ۱۴۰

۲- اخرجه ابن عساکرکذافی الکنز ( ج ۳ ص ۱۳٦) واخرجه الحاکم (ج:۳ ص:۲٦۷) عن مسلم البطین عن ابی البختری بنحوه قال صحیح اسناد ولم یخرجاه وقال الذهبی منقطع اه واخرجه ابن عساکر وابن شاهین وغیرهما عن علی بن کثیر بنحوه کمافی کنز العمال (ج:۳ ص: ۱۲٦).

**د ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د خلافت په باره کې د عثمان اوابوعبیده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا بیان:**

حضرت ابو البختري فرمايي: حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت ابو عبيده بن جراح رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وفرمايل: چې ته خپل لاس رامخکې کړه چې زه ستا سره بیعت وکړم ځکه چې ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي دي چې ته د دې امت امین یې حضرت ابو عبیده ابن الجراح رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وفرمایل: زه د داسې سړی نه نشم مخکې کیدلی چې رسو الله ﷺ په مانځه کې زمونږ دامام تاکلو حکم ورکړی وي، او هغه د رسول الله ﷺ د وفات کیدلو پورې زمونږ امامت کړې وي، او هغه حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دې ځکه زه خلیفه کېدی نشم.(۱)

ابن سعد او ابن جرير د حضرت ابراهیم تیمي نه هم داسې روایت کوي او په دې کې دا مضمون هم دې چې حضرت ابو عبیده بن جراح رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) ته وویل: له کله نه چې تاسو اسلام راوړی دی ما دهغې نه مخکې تا نه دعاجزئ او غفلت خبره نه ده لیدلي، ایا ته زمانه بیعت کول غواړئ؟ حال دا دی چې په تاسو خلکو کې هغه صاحب موجود دی چې هغه حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دی او چې په غار ثور کې په دوو کې دویم وو، یعني د رسول الله ﷺ د غار ملګری او خیثمه طرابلسي د حضرت حمران رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه نقل کوي چې حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل: چې حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د ټولو خلکو نه زیات د امر خلافت حقدار دی ځکه چې صدیق هم دې او د هجرت په موقعه باندې د غار ثور، د رسول الله ﷺ ملګري هم دې او د رسول الله ﷺ صحابي هم دې. (۲)

**د خلافت دقبلو نه د ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ معذرت او د علي اوزبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قول:**

حضرت سعد بن ابراهیم بن عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وایي: چې حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره وو، او حضرت محمد بن مسلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت زبیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ توره ماته کړه، بیا حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خلکو کې اودریدو او بیان ئي وکړو، او هغوی ته یې خپل عذر پیش کړو، او وې فرمایل:

---

۱: و اخرجه احمد قال الهيثمي (ج: ٥ ص: ١٨٣) رجاله رجال الصحيح الا ان ابا البختري لم يسمع من عمر اه، واخرجه ابن عساكر ايضاً بنحوه كما في الكنز (ج: ٣ ص: ١٤٠).

٢: كذافي كنز العمال (ج ٣ ص ١٤٠.

چې په الله قسم په هیڅ یوه ورځ او هیڅ یوه شپه زما په زړه کې د امارت جوړېدو ارزو نه ده پیدا شوې، او نه مې د دې خواهش پیدا شوی، او نه مې چېرې د الله تعالی نه امارت پټه یا په ښکاره غوښتلی دی، لیکن زه په مسلمانانو کې د فتنې پیدا کولو نه اووېرېدم، که چېرې ما امارت نه وی قبول کړی نو په مسلمانانو کې به اتفاق باقي نه پاتې کېدلو بلکې په دوی کې به اختلاف پیدا شوی وو او زما لپاره په امارت کې د ارام هیڅ سامان نشته دی، او دیو ډیرلوی کار یعنې د خلافت امیر ذمه داري په ما باندې اچولې شوې ده، چې زما د قوت نه او د طاقت نه بهر ده، البته که چېرې الله تعالی طاقت راکړي نو بیا د غه ذمه داري په صحیح طریقې ادا کولی شم، او زه د زړه نه دا غواړم چې په خلکو کې څوک د ټولو نه زیات قوي سړی وي هغه دې زما په ځای نن امارت ته راشي، مهاجرینو د حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا خبره او د هغه عذر قبول کړو، البته حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل: چې مونږ ته صرف په دې خبره غصه راغلې وه چې مونږ په مشوره کې شریک نکړای شو، کنې مونږ ښه پوهېږو چې د رسول الله ﷺ نه روستو په خلکو کې د خلافت د ټولو نه زیات حقدار ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی، دا د رسول الله ﷺ د غار ثور ملګری دی، او د اقرآن کریم د الفاظو مطابق دی " ثَانِيَ اثْنَيْنِ" په دوو کې دویم دی، مونږ د هغه په شرافت او برزګۍ باندې ښه پوهېږو، او رسول الله ﷺ په خپل ژوند کې هغه ته خلکو ته د مونځ کولو حکم کړی وو.(۱)

### د ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خلافت په باره کې د علي او ابوسفیان رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قصه:

حضرت سوید بن غفله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي ؛ چې حضرت ابوسیفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له د هغوی کورته لاړو او داسې ووېل ؛ چې اې علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ! او اې عباسه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا او ښائي چې دا د خلافت کار څنګه د قریشو د ټولو نه د کم عزت او د ټولو نه زیات وړوکي خاندان ته لاړو؟ په الله تعالی قسم ! زه خو نه غواړم چې ته حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلاف سور او پیاده لښکر نه ټول مدینه ډکه کړې او اې ابوسفیان ! که چېرې مونږ حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې خلافت اهل نه

---

۱: اخرجه الحاکم (ج ۳ ص ٦٦) والبیهقی ( ج

ګنړلی نو مونږ به هرګز هغه ته خلافت نه پرېښودلو ، بيشکه مؤمنان داسې خلک دي، چې ټول ديوبل خيرخواهي غوښتونکی دي، او خپلو کې يوبل سره محبت کونکی وي ، اګرچې د هغوی وطن اوبدن لرې وي، اومنافقان داسې خلک دي چې کوم يوبل ته دهوکه ورکوونکي دي.(۱)

حضرت ابواحمد دهقان د دې هم معني ذکرکړی دی چې [illegible] کې دا مضمون هم زيات دی چې د منافقانو بدن او وطن اګرچې نيزدې دی [illegible] يوبل ته دهوکه ورکوونکی دی او مونږ خو دحضرت ابوبکرصديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره بيعت کړی دی او هغه ددې اهل او مستحق دي.(۲)

حضرت ابن ابجر رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي : کله چې دحضرت ابوبکرصديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بيعت اوشو نو حضرت ابوسفيان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته راغی او ورته يې وويل: چې آيا په تاسو باندې ددې خلافت باره کې دقريشو ديوې کمې درجې لرونکی کورنۍ غالبه راغله؟ په الله تعالی قسم! که چېرې تاسو غواړې نو زه به دابوبکرصديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خلاف دسورو او پياده لښکر نه ټوله مدينه ډکه کړم، حضرت علي وفرمايل : تاټول عمر داسلام او داسلام والو سره دښمني کوله، ليکن په دې سره د اسلام او مسلمانانو هيڅ نقصان ونه شو، مونږ حضرت ابوبکرصديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دخلافت اهل او مستحق ګڼړو.(۳)

حضرت مره ابن طيب رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي : چې حضرت ابوسفيان بن حرب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته راغی ورته ئي وويل: : چې دا څه وشول چې خلافت د قريشو د ټولونه د کمې درجې والا او د ټولونه دکم عزت لرونکي سړی يعنې حضرت ابوبکرصديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ورکړای شو ؟ په الله تعالی قسم! که چېرې ته غواړې نو زه به ټوله مدينه منوره دابوبکرصديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خلاف دسورو او پياده لښکر نه ډکه کړم حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل : اې ابوسفيانه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تا داسلام او مسلمانانو سره ډيره دشمني کړې ده ليکن ستا په دښمنې کولو سره داسلام او سلام والو ته هيڅ نقصان هم ونه رسېده مونږ حضرت ابوبکرصديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د امرخلافت اهل بيا موندلو نو مونږ د هغه سره بيعت وکړو.(۴)

---

۱: اخرجه ابن عساکر کذافی الکنز ۱۴۱/ ۳.

۲: کذافی الکنز ۱۴۰/ ۳

۳: اخرجه ابن المبارک عن مالک بن مغول کذافی الاستيعاب ۸۷/ ۴.

۴: اخرجه الحاکم ۷۸/ ۳.

**هغه څه چې د عمر او خالد بن سعيد رضي الله عنهما په منځ کې پېښ شول:**

درسول الله ﷺ څوکيدار حضرت صخر رضي الله عنه فرمايي: چې درسول الله ﷺ په زمانه کې حضرت خالد بن سعيد بن العاص رضي الله عنه په يمن کې وو، او کله چې درسول الله ﷺ د دې دنيا نه انتقال اوشو نو هغه وخت کې هم حضرت خالد رضي الله عنه يمن کې وو، درسول الله ﷺ دوفات نه يوه مياشت پس حضرت خالد رضي الله عنه (مديني منورې) ته راغی، هغه د ديباج ريښمي جُبه اغوستې وه د هغه ملاقات حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه او حضرت علي بن ابي طالب رضي الله عنه سره اوشو، حضرت عمر رضي الله عنه ګيرچاپيره خلکو ته په اوچت اواز سره ووېل: : دده جُبه وشلوئ آيا دی وريښم اغوندي؟ حال دا دی چې دامن زمانه کې زمونږ لپاره د دې استعمال جائز نه دی، نو خلکو د هغه جبه اوشلوله، په دې خبره باندې حضرت خالد رضي الله عنه ووېل: : چې اې ابو الحسن! اې بنو عبد مناف! تاسو نه زيات حقدار سړی دی خلافت په باره کې غالب نشي راتلې، حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه خو د بنو عبد مناف نه نه دی په دې وجه هغه څنګه خليفه شو؟ چونکه د حضرت خالد رضي الله عنه دا خبره په مسلمانانو کې د اختلاف سبب کېدی شوه، په دې وجه د پوهولو لپاره حضرت عمر رضي الله عنه حضرت خالد رضي الله عنه ته ووېل: الله دې ستا غابښونه مات کړي، په الله تعالی قسم! تا چې کومه خبره کړې ده، دروغژن خلک به د دې باره کې سوچ فکر کوي او بيا به هم صرف خپل نقصان وکړي. (۱)

**هغه څه چې د ابوبکر رضي الله عنه او حضرت خالد بن سعيد ترمنځ پېښ شول:**

د حضرت خالد بن سعيد بن العاص رضي الله عنه لور حضرت ام خالد وايي: د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د بيعت کولو نه پس زما پلار يمن نه مديني ته راغی نو هغه حضرت علي رضي الله عنه او حضرت عثمان رضي الله عنه ته ووېل: اې بنو عبد مناف! آيا تاسو په دې خبره خوښ ئې چې نور خلک دې امر خلافت کې ستاسو واليان وي او تاکل شي؟ دا خبره حضرت عمر رضي الله عنه حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ته ورسوله، ليکن هغه باندې هيڅ اثر اونشو البته حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت خالد رضي الله عنه د دې خبرې نه اثر اوشو. دا رنګې

---

(۱) اخرجه الطبري ٣٨/٤، واخرجه سيف وابن عساكر عن صخر مختصراً كما في الكنز ٥٩/٨.

حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره تر دري میاشتو پورې بیعت ونکړو، دې نه پس یوه ورځ دماسپخین په وخت کې د حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې تیر شو حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه وخت په کور کې وو، حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته سلام وکړو، حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل: ایا ته غواړې چې زه تاسره بیعت وکړم؟ حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل طرفته متوجه نکړو بلکې عامو مسلمانانو طرفته ئې متوجه کړو، ورته یې وویل: : چې په کومه صلح کې ټول مسلمانان داخل شوی دی زه غواړم چې ته هم په هغې کې داخل شې، حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل: چې نن مابنام تاسره وعده ده چې زه به مابنام تاسره بیعت کوم نو مابنام حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی هغه وخت حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په منبر ناست ؤو حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه سره بیعت وکړو د هغه په باره کې د حضرت ابوبکر ﷺ رائې ښه وه او حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شام طرفته لښکر لیږلو نو حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یې د مسلمانانو امیر مقرر کړو او د امارت جنډه یې ورکړه، حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه جنډه واخیسته او خپل کورته لاړو، کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ددې پته اولګیده نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې باره کې حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره خبرې اترې وکړې او وې ویل چې تاسو حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ امیر تاکئ حال دا چې هم هغه ستاسو د خلیفه کېدو خلاف هغه خبرې کړې وې، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به بیا بیا حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته خپله خبره ویله تر دې چې حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه رایه قبوله کړه، خضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ئې د امریت نه د لرې کولو فیصله وکړه او د هغې لپاره ئې حضرت ابو اروی دوسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت خالد ته ولیږلو او دا پیغام ئې ورکړو چې د رسول الله ﷺ خلیفه تاته وایي چې زمونږ د امارت والا جنډه مونږ ته بېرته ورکړه نو هغه، هغه جنډه را اوویستله او حضرت ابو اروای رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یې ورکړه او وې وویل، نه اوس ستاسو زما امیر جوړولو سره ماته څه خوشحالي حاصله شوې وه او نه اوس ستاسو په معزوله کولو سره څه غم او خفګان دې او د ملامتیا قابل خو تاسو نه علاوه بل څوک دي، دا د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ طرفته اشاره ده، حضرت ام خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وایي چې اوس څه وخت نه وو تیر شوي چې حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زما پلار ته راغی او هغه ته

شي معذرت پيش کړو، او حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنهُ زما پلار ته قسم ورکړو او ورته شي وويل: ته هيڅکله د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ تذکره په بدي سره مه کوه نو زما پلار تر وفاته پورې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ لپاره د خير دعاګانې کولې.(۱)

**ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ په يواځې سر جهاد ته وتل:**

ام المؤمنين حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمايي: چې زما پلار په سورلۍ باندې سور شو او توره يې راويستې ذي القصه مقام طرفته او وتلو، حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنهُ راغی د هغه د سورلی. واګې يې اونيولې او وې ويل: اې د رسول الله ﷺ خليفه! تاسو چېرته ځې؟ زه نن تاسو سره هغه خبره کوم چې رسول الله ﷺ د غزوه احد په ورځ تاسو ته فرمايلي وه، چې تاسو خپله توره په تېکي کې کېږدئ او تاسو زخمي کيدلو يا شهيد کيدلو سره، مونږ خپل ځان باره کې مه پريشانه کوئ، ځکه چې په الله تعالی قسم! که چېرې مونږ ته ستاد مرګ غم ورسېدلو نو بيا به ستاسو نه روستو چېرې هم د اسلام نظام باقي پاتې نه شي نو زما پلار واپس راغی او لښکرې يې ولېږلو.(۲)

## خلافت خلکوته بېرته سپارل (واپس کول)

**د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ قول چې زه هېڅ کله د خلافت حريص نه وم**

حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمايل: چې اې خلکو! که چېرې ستاسو دا خيال وي چې ما ستاسو خلافت دې لپاره اخيستي دی چې زما ددې د اخيستلو شوق وو يا ما په تاسو باندې او مسلمانانو باندې او چتوالي غوښتلو، نو دا سې خبره بالکل نده په هغه ذات مې دې قسم دی د چا په قبضه کې چې زما روح دی چې ما نه دا خلافت په خپل شوق اخستی او نه په تاسو باندې او نه په کوم مسلمان باندې د ځان او چتولو لپاره اخيستې دی او ټول عمر کې نه په کومه شپه يا ورځ کې زما په زړه کې د دې طلب پيدا شوی دی او نه چېرته په پټه او نه په ښکاره ما د الله تعالی نه دا غوښتی دی او ما ډيره لويه ذمه واري اخيستې ده چه په ماکې د هغه طاقت نشته البته که چېرې الله زما مدده وکړي نو دا بله خبره ده زه خو دا غواړم چې د رسول الله ﷺ يو بل صحابي دا خلافت سنبال کړي خو په دې شرط چې هغه په دې کې

---

(۱): اخرجه ابن سعد ۹۴/ ۴.

(۲): اخرجه الساجي كذافي الكنز ۱۴۳/ ۳ واخرجه الدارقطني ايضاً بنحوه كمافي البداية ۳۱۵/ ٦.

دانصاف نه کار واخلي، په دې وجه داخلافت زه تاسو ته بېرته در سپارم او ستاسو بيعت زماه سره ختم شو، تاسو چې چاته غواړم هغه ته خلافت ورکړئ زه به تاسو کې ديو سړي پشان اوسيږم. (۱)

**ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دصحابه کرامو جواب: په خدای قسم ته زمونږ بهترين يې:**

حضرت عيسى بن عطيه وايي: چې حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دخپل بيعت نه مخکې ورځ باندې اودريدلو او خلکو ته يې بيان وکړو چې وې فرمايل: اې خلکو! زما خليفه کېدو باره کې چې ستاسو کومه رايه ده هغه ماتاسو ته بېرته درکړې ده ځکه چې زه په تاسو کې غوره سړی نه يم. تاسو خپل يو بل غوره او افضل سړی سره بيعت وکړئ، ټول خلک ودريدل وې ويل: اې درسول الله ﷺ خليفه! خلک په اسلام کې په خوښه او په ناخوښه دواړو طريقو سره داخل شوی دی ليکن هغوی ټول اوس دالله په پناه او په ګواندکې دي دې لپاره تاسو ددې پوره کوشش وکړئ. چې الله تعالی تاسو نه دخپلې ذمه دارئ هيڅ مطالبه ونکړي يعني هيڅ يو مسلمان ته هيڅ قسمه تکليف مه رسوئ ماسره هم يو شيطان اوسيږي کله چې تاسو ماغصه اووينئ نو بيا تاسو زمانه لرې کيږي چې چېرته زه ستاسو ويختو اوڅرمنو ته تکليف اونه رسوم اې خلکو! دخپلو غلامانو دامدني تحقق کوئ چې حلاله ده که حرامه ځکه چې دکوم بدن پالنه په حرام مال سره وي هغه جنت ته دداخليدو لائق نه دی نه په غور سره واورئ په خپلو نظرونو سره زمانګراني کوئ، که چېرې زه په نيغه لاره باندې ځم نو زما مدد کوئ او که چېرې زه په غلطه لاره باندې ځم نو زما اصلاح کوئ که چېرې زه دالله تعالی اطاعت کوم نو تاسو زما خبره منئ او که چېرې زه دالله تعالی نافرماني کوم نو بيا تاسو زما خبره مه منئ. (۲)

**د علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جواب: نه دې استعفا منو اونه غواړو چې استعفا وکړې:**

حضرت ابو الجحاف رحمه الله وايي: کله چې خلکو دحضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره بيعت وکړو نو هغه دريو ورځو پورې خپله دروازه بنده کړې وه، او روزانه به بهرته راتلو او خلکو ته به يې ويل: اې خلکو! ماتاسو ته ستاسو بيعت واپس کړي دې لهذا تاسو چې

(۱) ... الفضائل للصحابة كذا في الكنز ۳/۱۳۱.
(۲) عند الطبراني ... كذا في الكنز ۳/۱۳۵ وقال الهيثمي ۵/۱۸۴ وفيه عيسى بن سليمان وهو ضعيف وعيسى بن عطية لم اعرفه الخ.

اوس د چاسره غواړئ بیعت وکړئ، او هرو خت به حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اودریدلو او وویل: به یې چې نه مونږ تاسره بیعت نه واپس کوو، او نه ستا نه د بیعت واپس کولو غوښتنه کوو، رسول الله ﷺ پخپل ژوندکې د مسلمانانو د امامت لپاره مخکې کړي وې اوس تا څوک روستو کولې شي. (۱)

حضرت زید بن علي د خپلو مشرانو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ نه روایت کوي چې حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په منبرباندې اودریدلو اودرې کرته یې وفرمایل: چې ایا څوک زما بیعت لره بد ګڼلو والاشته چې زه د هغه بیعت واپس کړم؟ او هرکرت به حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اودریدلو او وویل به یې چې نه مونږ تاسره بیعت نه واپس کوو او نه ستاسو نه د بیعت واپس کولو مطالبه کوو کله چې رسول الله ﷺ ته مخکې کړې یې، نو اوس تاسو څوک روستو کولې شي.(۲)

## د دیني مصلحت لپاره خلافت قبلول

**هغه خه چې په دې باره کې د ابورافع او ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا ترمنځ پېښ شول**

حضرت رافع بن ابورافع رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وایي کله چې خلکو حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خلیفه جوړ کړو نو ما وویل: چې دا خو زما هغه ملګري دې چې ماته یې حکم را کړی وو چې زه به د دوو کسانو هم امیر نه جوړیږم او پخپله د ټولو مسلمانانو امیر جوړشوي دې نو زه د خپل کورنه مدینې ته اورسیدوم او زه حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته راغلم او ومې ویل: چې آیا تاسو ماپیژنئ؟ حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل: او ماورته وویل: ایا تاسو ته هغه خبره یاده ده چې تاسو ماته کړې وه؟ چې زه به د دوو کسانو هم امیر نه جوړیږم او تاسو پخپله د ټول امت امیر جوړشوي یې یعنې تاسو چې ماته کوم نصحیت کړی وو پخپله د هغې خلاف عمل کوئ حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل: چې رسول الله ﷺ د دنیا نه تشریف اوړلې وو او خلک د کفر زمانې ته نیزدې وو. څه لږه زمانه مخکې هغوی کفرپریښې وو ماته د دې خبرې ویره شوه چې که زه خلیفه جوړ نه شوم نو خلک به

---

۱: عندالمنذری کذافی الکنز ۱۴۱/ ۳.

۲: اخرجه ابن البخار کذافی الکنز ۱۴۰/ ۳.

مرتدشي او هغوی کې به اختلاف راشي زما خلافت خوښ نه وو ليکن ما دامت فايدې له وجې نه قبول کړو اوزما ملګرو زه غوښتلم چې خليفه شم حضرت ابوبکرصديق رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ خپل عذرونه بيانول تردې پورې چې زما زړه اومنله چې واقعې دي په خلافت قبلولو کې معذوردي. (۱)

## دخلافت په قبلولو خفه کېدل

**حضرت ابوبکر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ ته وويل: تاسو زه په دې کار مکلف کړم**

د آل ربيعه قبيلې يوسړی وايي چې زه خبرشوم کله چې حضرت ابوبکرصديق رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ خليفه شو نو هغه غمژن په کورکې کيناستلو حضرت عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ هغه له کورته ورغې نوحضرت ابوبکرصديق رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ هغه ملامته کولو او ورته يې وويل: تاسو زه په خلافت قبلولو باندې مجبور کړی ووم، اوحضرت عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ ته يې شکايت وکړو چې زه به د خلکو په مينځ کې فيصله څنګه کوم؟ نوحضرت عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ ورته وويل: ولې تاته معلومه نه ده چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې والي اوحاکم کله چې په صحيح طريقه کوشش وکړي ليکن حق ته ونه رسېږي نو هغه ته يواجر ملاوېږي داحديث يې چې واورولو ګويا حضرت عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ د حضرت ابوبکرصديق رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ د غم سپکوالی وکړو. (۲)

**د مرګ په وخت عبدالرحمن بن عوف رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ ته حضرت ابوبکر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ خبره:**

حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ فرمايي: چې حضرت ابوبکرصديق رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ خپل مرض الوفات کې ماته وويل: چې ماته صرف په دې خبره افسوس دې چې مادرې کارونه وکړل ارمان چې هغه مانه وې کړي اودرې کارونه مې اونه کړل ارمان چې ماهغه کړي واي، اومادرې خبرې درسول الله ﷺ نه معلومې کړې وي، مخکې يې حديث بيان کړو، بيادا مضمون دې زه غوارم چې مادخلافت بوج دسقيفه بني ساعده په ورځ حضرت ابوعبيده بن جراح رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ او حضرت عمرفاروق رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ کې ديو په اوګو اچولې وي، هغه به اميرواي اوزه به دهغه وزيراومشيروي، اوزه غوارم کله چې ماحضرت خالد رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ ملک شام ته ليږلې و نو هغه وخت چې ماحضرت عمرفاروق رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ عراق

---

۱: اخرجه ابن راهويه والمدني والبغوي وابن خزيمه كذافي الكنز ۱۲۵/ ۳.

۲: اخرجه ابن راهويه وخيثمه في فضائل الصحابة وغيرهما كذافي الكنز۱۳۵/ ۳.

ته لیږلي وي دغسې به ماخپل نبي اوچپ دواړه لاسونه دالله تعالی په لاره کې خواره کړي وو ، اوهغه دريې خبرې چې دهغوپوښتنه درسول اللهﷺ نه زما په زړه کې ارزو پاتې شوه په هغې کې يوه داده چې مادرسول اللهﷺ نه پوښتنه کړې وي چې داد خلافت اميريت به دچا لپاره وي؟ دې لپاره چې چاد خلافت والوسره جګړه نه کولې اوزه غوارم چې درسول اللهﷺ نه ماپوښتنه کړې وي، چې آيا په دې خلافت کې دانصارو هم څه حصه شته ده؟ (۱)

**د وفات په وخت د صحابه وو وسره د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مشوره:**

حضرت ابوسلمه بن عبدالرحمن اونورصحابه کرام رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وايي : کله چې د حضرت ابوبکرصديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بيماري زياته شوه اود هغه د وفات وخت را نيزدې شو نو حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يې را وغوښتلو او ورته وېې فرمايل : چې ماته دحضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په باره کې اوښايه چې هغه څنګه دی؟ حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عرض وکړو ، دکوم کس په باره کې چې تاسوزمانه سوال کوئ هغه تاسوزمانه ښه پيژنئ، حضرت ابوبکرصديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل : اګرچې زه يې تانه ښه پيژنم ليکن بياهم ته اووايه حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عرض وکړو چې څومره خلک ته د خلافت اهل او مستحق ګڼې د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په باره کې ووايه چې هغه څنګه دی؟ حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يې را وغوښتلو اوهغه وفرمايل چې حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په هغه ټولو کې افضل دي ، بياحضرت ابوبکرصديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وويل: تاسو هغه زمانه ښه پيژنئ حضرت ابوبکرصديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل : چې اې عبدالله ( دا دحضرت عثمان کنيت دی ) بيا هم نو بياحضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عرض وکړو چې په الله تعالی قسم! څومره چې زه پوهيږم نود هغه باطن دظاهرنه غوره دی اوپه مونږ کې دهغه پشان څوک نشته، حضرت ابوبکرصديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل الله جَلَّ جَلَالُهُ دې په تارحم وکړي په الله تعالی قسم! که چېرې ماهغه پرېښودلی يعني ته به مې خليفه جوړولې بل څوک به مې نه جوړولو حضرت

---

۱: اخرجه ابوعبيد والعقيلى والطبرانى وابن عساكر وسعيدبن منصوروغيرهم كذافى الكنز ۱۳۵/ ۳ قال الهيثمى ۲۰۳/ ۵، وفيه علوان بن داؤد البجلى وهو ضعيف وهذا الاثر مما انكرعليه.

ابوبکرصديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ددې دواوو حضراتو نه سوا حضرت سعيد بن زيد ابو الاعور او حضرت اسيد بن حضير او نورو مهاجرينو او انصارو حضراتو سره مشوره وکړه حضرت اسيد وويل: په الله تعالى قسم! زه هغه لره تا سو نه روستو د ټولو نه زيات غوره او افضل ګنم، په کومو کارونو سره چې الله تعالى خوشحاليږم هم په هغو کارونو سره هغه حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هم خوشحاليږي، او په کومو کارونو سره چې الله تَبَارَكَ وَتَعَالَىٰ ناراضه کيږي هم په هغو کارونو سره هغه هم ناراضه کيږي د هغه باطن د هغه د ظاهر نه ډير ښه دې خلافت لپاره د هغه نه زيات قوي بل څوک والي نشي جوړيدلې.

**د عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خليفه ټاکلو کې د ابوبکر، عبدالرحمن او عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ قصه:**

د رسول الله ﷺ بعض صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ دا خبره واوريدله چې حضرت عبد الرحمن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شول او په يواځي توب کې يې ورسره څه خبره کړې ده، نو دا حضرات د حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شول، او په دوي کې يو صاحب ورته عرض وکړو چې ته خود حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د سختئ کولو نه خبردار يې او ته هغه زمونږ خليفه جوړوې په دې باره کې کله چې ستا رب تا نه پوښتنه وکړي نو ته به د هغې څه جواب ورکوې؟ په دې باندې حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل: مالره کينوئ، ايا تاسو ما د الله تعالى نه ويروئ، څوک چې ستاسو په باره کې د ظلم تو ښه جوړه کړي او لاړشي هغه دې نامراده وي زه به خپل رب ته وايم اې الله! چې ستا په مخلوق کې د ټولو نه غوره او افضل شخصيت وو ما هغه د مسلمانانو خليفه جوړ کړی وو، ما چې کومه خبره کړې وه، هغه زما د طرف نه ځان نه روستو ټولو خلکو ته اورسوي دې نه پس حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ څملاستلو او حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يې را وغوښتلو او وې فرمايل چې وليکه.

**د عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د خليفه ټاکلو او د نصيحت په باره کې د ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خط:**

(بسم الله الرحمن الرحيم. هذا ما عهد ابو بكر بن ابي قحافة في آخر عهده من الدنيا خارجاً منها. و عند أول عهده بالآخرة داخلاً فيها. حيث يؤمن الكافر. و يوقن الفاجر. و يصدق الكاذب: اني استخلفت عليكم بعدي عمر بن الخطاب. فاسمعوا له وأطيعوا. و اني لم آل الله و

رسوله و دينه و نفسي و اياكم خيراً. فان عدل فذلك ظني به. و علمي فيه. و ان بدل فلكل امرئ ما اكتسب (من الاثم)(١) والخير اردت. و لا أعلم الغيب [وسيعلم الذين ظلموا أي منقلب ينقلبون]. (٢) والسلام عليكم و رحمة الله)

ترجمه: بسم الله الرحمن الرحيم دا هغه معاهده ده چې ابوبكر صديق بن ابي قحافه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دنيا په ژوند كې د دنيانه د رخصتيدو او اخرت ته د داخليدو په وخت كړې ده چې په دې حالت كې كافر مؤمن ګرځي او د فاجر هم يقين راشي، او د روغږن رښتيا ويل شروع كړي، ما عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل ځان نه روستو ستاسو خليفه وټاكلو دي، تاسو د هغه خبره اورئ او منئ ما الله تعالى او د هغه رسول الله ﷺ د هغه دين او د خپل ځان او تاسو سره په احسان كولو كې هيڅ كمې نه دى. پربنودلى كه چېرې عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خليفه وټاكل شو او د عدل نه يې كار واخيستلو نو زما هم د هغه باره كې دا ګمان دې او هم د دې ماته د هغه باره كې علم دې او كه هغه بدل شو نو هر سړي چې كومه ګناه كوي د هغې بدله به مومي، ما خو صرف دا د خير اراده كړې ده او ماته د غيبو علم نشته. ﴿وَسَيَعْلَمُ الَّذِينَ ظَلَمُوٓا أَيَّ مُنقَلَبٍ يَنقَلِبُونَ﴾ زر به هغه خلكو ته معلومه چې هغوى په حقوق الله وغيره كې يې ظلم كړى دى چې څنګه ځائ ته د دوي واپس راتلل دي. والسلام عليكم ورحمة الله.

بيا حضرت ابوبكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حكم وكړو نو حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې خط باندې مهر ولګولو بيا بعض راويان دا هم وايي كله چې حضرت ابوبكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پرې د دې خط ابتدا يې برخه وليكله نو د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ذكر لا نه وو شوي د چانوم ليكلو نه مخكې حضرت ابوبكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيهوشه شوي وو. نو حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل طرفنه اوليكل چې ما په تاسو باندې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خليفه مقرر كړى دى، دې نه پس كله چې حضرت ابوبكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په هوش كې راغى نو ئې ويل چې تاڅه ليكلي دى هغه ماته اووايه هغه د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نوم ورته واخيست. حضرت ابوبكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ الله اكبر وويل: او وې فرمايل: چې

١ - د الطبقات نه په نقلولو سره.
٢ - الشعراء: (٢٢٧).

زما خيال دادي چې تا د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نوم پخپله ځکه او ليکلو چې دده نوم ليکلو نه بغير که چيرې په دې بيهوشي کې زما ساه وتلې واي نو تا ته خطره وه چې په خلکو کې به د خليفه باره کې اختلاف راغلې وي الله تعالى دې تا ته د اسلام او د اسلام والو له طرفه غوره بدله درکړي په الله تعالى قسم! ته هم ددې خلافت اهل او مستحق يې بيا د حضرت ابو بکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په حکم باندې حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په دې معاهده نامه باندې مهر ولګولو او بېرون راووتلو او حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت اسيد بن سعيد قرضي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دهغه سره وو حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خلکو ته وويل: دکوم سړي نوم چه په دې کې دی ايا تاسو به دې سړي سره بيعت وکړئ؟ خلکو وويل: هو! او بعض خلکو وويل: چې مونږ ته ددې سړي نوم معلوم دی چې هغه حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دی ابن سعد وايي چې دا خبره حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کړې وه نو ټولو خلکو د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د بيعت کولو اقرار وکړو او هغوئ ټولو په دې خوشحاله وو او ټولو بيعت وکړو بيا حضرت ابو بکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يو اخې را وغوښتلو او ډير وصيتونه يې ورته وکړل بيا حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه نه لاړو بيا حضرت ابو بکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپل دواړه لاسونه اوچت کړل او دا دعا يې او غوښتله اې الله تعالى! ما په دې خپل عمل سره د مسلمانانو د فايدې او د ښيګړې اراده کړې ده ما ته ويره وه چې که چيرې ما عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خليفه نه جوړولې نو مسلمانان به زما نه پس په فتنه او فساد کې اخته شي د مسلمانانو د فايدې لپاره ما دا کار کړي دي چې په دې ته ښه عالم يې او ښه فيصله کولو لپاره ما خپل پوره کوشش کړی دی او چې په دوي کې غوره سړی وو او په ټولو کې قوي وو، او د مسلمانانو د فايدې د ټولو نه زيات غوښتونکې وو هغه ما ددوي والي جوړ کړيدي او زما لپاره ستا مقرر شوي وخت راغلی دی اې الله ته په دوي کې زما خليفه شي دا ټول ستا بنده ګان دي ددوئ اختيار ستا په لاس کې دی د دوئ لپاره ددوي والي نيک جوړ کړی او دی د خپلو هغو خلفاؤ راشدينو څخه او ګرځوې چې د رحمت رسول الله ﷺ د طريقې او د هغه نه پس د صالحينو

د طريقې اتباع وکړي او دهغه لپاره دهغه ماتحت خلک نيکان جوړ کړي. (۱)

حضرت حسن رضي الله عنه فرمايي: کله چې حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ډير بيمار شو او دهغه دخپل ځان په باره کې دمرګ يقين راغی نو هغه خلک ځان ته راجمع کړل او ورته يې وفرمايل: چې زما کوم حال دی هغه تاسو وينئ زما ګمان دادی چې زما دمرګ وخت رانيژدې شوی دی او الله تعالی ستاسو وعده زما دبيعت نه پورته کړيده او زما غاړه يې تاسو ته آزاده کړيده، او ستاسو دخلافت امير يې تاسو ته واپس کړی دی اوس چې تاسو چا لره غواړي نو خپل امير يې جوړ کړئ، ځکه چې که چېرې تاسو زما په ژوند کې خپل امير جوړ کړئ نو زما نه پس به ستاسو پخپلو کې اختلاف نه راځي نو خلک ددې مقصد لپاره اودريدل او حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه يې ځان له پرېښودل و ليکن په دې باره کې څه فيصله اونشوه، او خلک واپس راغلل او حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ته يې وويل: اې دالله درسول ﷺ خليفه! هم تاسو زمونږ لپاره په خپله رايې سره دچا امير جوړولو فيصله وکړئ، حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه وويل: کيداې شي چې تاسو زما په فيصله باندې اختلاف وکړئ خلکو وويل: بالکل به نه کوو، حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه وويل: چې زه تاسو ته دالله قسم درکولو سره وايم چې زه کومه فيصله وکړم تاسو به په هغې باندې راضي يې، ټولو خلکو وويل: بالکل به راضي يو، حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه وويل: ماته لږ مهلت راکړئ، چې زه سوچ وکړم چې دالله تعالی او دهغه ددين دبنده ګانو فائده په چا کې ده، نو حضرت عثمان رضي الله عنه ته يې پيغام ولېږلو او راوې غوښتلو او کله چې هغه راغی نو هغه ته يې وفرمايل چې ماته مشوره راکړه چې څوک امير جوړ کړاې شي؟ هسې خو په الله تعالی قسم! زما په نزد ته هم ددې امارت اهل او مستحق يې حضرت عثمان رضي الله عنه وويل: حضرت عمر رضي الله عنه امير کړئ، حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه وويل: بنه ده او ليکه، حضرت عثمان رضي الله عنه ليکل شروع کړل نو کله چې د حضرت عمر رضي الله عنه نوم ليکلو ته ورسېدلو نو حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه بېهوشه شو بيا هغه په هوش کې شو، نو وې فرمايل چې او ليکه حضرت عمر رضي الله عنه. (۲)

---

۱: اخرجه ابن سعد ۱۹۹/ ۳، وكذافى الكنز ۱۴۵/ ۳.

۲: عند ابن عساكر وسيف.

**طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جواب چې د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خلیفه تاکل باره کې دهغه سره مخالفت و:**

حضرت عثمان بن عبید الله بن عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وائي: کله چې د حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د وفات وخت را نزدې شوی دی نو هغه حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ر وغوښتلو او په هغه باندې یې خپله وصیت نامه ولیکله لیکن امارت لپاره د چانوم لیکلو نه مخکې حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بې هوشه شو حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هلته د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نوم ولیکلو بیا حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په هوش کې راغی نو د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه یې پوښتنه وکړه چې تا د چانوم لیکلې دی؟ هغه وویل: چې ماته ویره شوه چې تاسو به په بې هوشی کې وفات شئ او روستو به مسلمانانو کې اختلاف پیدا شي د دې لپاره ما د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نوم ولیکلو حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل الله دې په تا رحم وکړي که چېرې تا خپل نوم لیکلې نو ته هم د دې امارت اهل او مستحق وې، بیا حضرت طلحه بن عبید الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خدمت کې حاضر شو او ویې ویل: کوم خلک چې ما پسې دي زه د هغوی قاصد راغلی یم هغوئ وایې چې تاسو پوهیږي چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ستاسو په ژوند کې مونږ باندې څومره سختي کوي اوس چې تاسو زمونږ کارونه هغه ته حواله کوئ نو تاسو نه روستو پته نه لګیږي چې دا به په مونږ څومره سختي کوي او الله تعالی به تاسو نه دهغه په باره کې پوښتنه کوي تاسو چې څه وائي دهغې باره کې تاسو سوچ او فکر وکړئ حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل ما کینوئ ایا تاسو ما د الله تعالی نه ویروئ؟ کوم سړی چې ستاسو د معاملې په باره کې د وهم نه کار اخیستې وي هغه دې نامراده وي یعني ما د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نوم په دې یقین باندې مقرر کړي دی چې هغه ستاسو لپاره په هر طریقه غوره او افضل دی کله چې الله تعالی زمانه پوښتنه وکړي نو زه به ورته وایم چې ما ستا په مخلوق باندې په هغوی کې د ټولو نه غوره او افضل انسان خپل خلیفه جوړ کړی وو دا خبره زما د طرفه خپل ځان نه روستو خلکو ته اورسوئ. (۱)

۱- عند الالکائي.

**په دې باره کې د ام المؤمنین حضرت عائشې رضي الله عنها حدیث:**

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي : کله چې د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د وفات وخت نیزدې شو نو هغه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه خپل خلیفه مقرر کړو یا حضرت علي رضي الله عنه او حضرت طلحه رضي الله عنه حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ته راغلل او ورته یې وویل: تاسو څوک خلیفه جوړ کړیدي؟ هغوئ وفرمایل حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دې دواړو وویل: تاسو به خپل رب ته څه جواب ورکوئ؟ حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه وفرمایل ایا تاسو دواړه ما د الله تعالی نه ویروئ؟ زه الله تعالی او حضرت عمر فاروق رضي الله عنه تاسو دواړو نه ښه پیژنم زه به خپل رب ته وایم چې ما ستا په مخلوق کې د ټولو نه افضل شخصیت د هغوئ خلیفه جوړ کړی وو .(۱)

**په دې باره کې د حضرت زید بن حارثه رضي الله عنه حدیث:**

حضرت زید بن حارثه رضي الله عنه فرمايي : کله چې د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د وفات وخت نیزدې شو نو هغه د خلیفه مقررولو لپاره پیغام ولیږلو حضرت عمر فاروق رضي الله عنه یې روغوښتلو په دې باندې خلکو حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ته وویل: چې ته حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په مونږ باندې خلیفه جوړوې چې د تیز طبیعت والا او د سخت زړه والا دی هغه که چیرې زمونږ خلیفه شو نو نور زیات به د تیز طبیعت والا او د سخت زړه به الا به شي حضرت عمر فاروق رضي الله عنه چې په مونږ خلیفه جوړ کړې آو بیا کله چې ته د خپل رب سره ملاؤ شي نو څه جواب به ورکوې ؟ حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه وفرمایل : ایا تاسو خلک ما د خپل رب نه وېروئ؟ زه به وایم چې اې الله! ما ستا په مخلوق کې د ټولو نه غوره او افضل شخصیت د هغوئ خلیفه جوړ کړی وو .

# د شوري کار خپل اهل ته سپارل

## د حضرت عمر رضي الله عنه شهادت او د خلافت امر شپږو صحابه وو رضي الله عنهم ته سپارل

ابن عمر رضي الله عنه فرمايي : کله چې ابولؤلؤ په حضرت عمر فاروق رضي الله عنه باندې د نیزې حمله وکړله نو د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دا خیال شو چې شاید زمانه د خلکو په حقونو کې

---

۱- عند ابن سعد ۱۹۶/ ۳، کذافی الکنز ۱۴۶/ ۳، واخرجه البیهقی ۱۴۹/ ۸، بنحوه عن عائشة رضي الله عنها وابن جریر ۴/ ۵۴، بمعناه عن اسماء بنت عمیس رضي الله عنها.

داسې کمې شوې وي چې دهغې ماته معلومات نه وي، نو هغه حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ر وغوښتلو دحضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دهغه سره ډیر محبت وو ده به هغه ځان سره نیزدې ساتلو او دهغه خبره به یې اوریدله او هغه ته یې وفرمایل زه داغواړم چې ته داپته اولګوه چې ایازما دا اقدام دقتل د خلکو مشورې سره شویدي؟ نو حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا بهرته لاړلو هغه به چې دمسلمانانو په کومه ډله تیریده نو هغوی به په ژړا په نظر راتلل حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې واپس راغی او عرض یې وکړو اې امیرالمؤمنین! زه چې په کومه ډله هم تیرشوم ما هغوی په ژړا او موندل داسې معلومیده لکه نن چې د هغوی اول بچی ورک شوی وي حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې زه چا قتل کړم؟ حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا وویل: د حضرت مغیره بن شعبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مجوسي غلام (ابو لؤلؤ) حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا وایي کله چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته معلومات وشو چې د هغه قاتل مسلمان نه بلکې مجوسي دی نو د هغه په مخ مې د خوشحالي نښې ولیدلې او هغه وویل: ټول ثناء او صفت هغه الله تعالی لپاره دي چې هغه زما قاتل داسې سړی جوړ نه کړو چې (لااله الاالله) وائي او ماسره حجت بازي کوي بنه غور سره واوري! ماتاسو یو عجمي کافر غلام لره دلته راوستلو نه منع کړي وئ تاسو زما خبره ونه منله بیا یې وفرمایل: چې زما ورونه راوغواړئ! خلکو پوښتنه وکړه چې ستاورونه څوک دی؟ ویې فرمایل: حضرت عثمان، حضرت علي، حضرت طلحه، حضرت زبیر، حضرت عبدالرحمن بن عوف او حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ دي، د دې خلکو پسې یې سړی ولیږلو او بیا یې خپل سر زما په غېږ کې کېښودو. کله چې صحابه کرام راغلل ما ورته وویل: دوی ټول راغلي دي، ویې فرمایل: ما د مسلمانانو معامله کې سوچ کړی دی او تاسو شپږ حضرات د مسلمانانو، سرداران او مشران وموندلئ. او د خلافت کار به صرف تاسو کې وي، ترڅو چې تاسو صحیح یئ نو دهغه وخته پورې به دخلکو معامله هم صحیح وي، که چیرې په مسلمانانو کې اختلاف راغی نو اول به په تاسو کې وي. کله چې ما واوریدل چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په څپلو کې د اختلاف ذکر کړی دی نو ماسوچ وکړو چې اګر چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: که اختلاف راغی او دا اختلاف به ضرور راځي. ځکه چې ډیر کم داسې کار شوی چې د حضرت

عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يوه خبرې کړې وي او هغه ما واقع کېدونکې نه وي ليدلې، بيا د هغه له زخمونو نه ډيره وينه وبهېده چې په هغې سره حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کمزوری شو نو هغه شپږ د صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ سره پټې خبرې وکړې تر دې چې ماته ويره را پيدا شوه چې دا خلک به په خلکو کې د يو کس سره بيعت وکړي، ما ووېل: تر اوسه امير المؤمنين ژوندی دی او په يو وخت کې دوه خليفه ګان نه وي په کار چې دواړه يو بل ته ګوري، نو اوس خليفه مه ټاکئ، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل: ما اوچت کړئ! مونږ هغه راپورته کړو هغه وفرمايل: تاسو درې ورځې مشوره وکړئ او په دې وخت کې به حضرت صهيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلکو ته مونځ ورکوي، دې صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ پوښتنه وکړه: مونږ د چا سره مشوره وکړو؟ نو ويې فرمايل: د مهاجرو او انصارو سره، او دلته چې څومره څومره لښکرې دي، د دينه پس يې لږ غوندې پې را وغوښتې او ويې څښل، د دواړو زخمونو نه پې را ووتې، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوهه شو چې مرګ راتلونکی دی، بيا يې وفرمايل: که اوس زما سره ټوله دنيا وی نو د مرګ نه پس د منظر راتلو د وېرې د هغه ټول ورکولو ته تيار يم، ليکن زما د الله تعالى د فضل او کرم نه دا اميد چې زه به هم خير وينم، حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وفرمايل: تاسو چې څه فرمايلي دي، الله تعالى دې د هغې غوره بدله درکړي، ايا خبره داسې نه ده چې کله مسلمانان په مکه کې د وېرې په حالت کې ژوند تيرولو نو رسول الله ﷺ هغه وخت دا دعا فرمايلې وه: چې الله تعالى دې ستاسو د هدايت په ذريعه دين او مسلمانانو ته عزت ورکړي، کله چې تاسو مسلمان شوئ نو ستاسو اسلام د عزت ذريعه شوه او ستاسو په ذريعه اسلام او رسول الله ﷺ او د هغه صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ په ښکاره را مخکې شول او تاسو مدينې منورې ته هجرت وکړو، او ستاسو هجرت د مکې د فتحې ذريعه جوړه شوه، او رسول الله ﷺ چې له مشرکانو سره څومره جنګونه کړي تاسو په هر جنګ کې حاضر وئ، بيا د رسول الله ﷺ په داسې حال کې وشو چې ستاسو نه راضي او خوښ ؤو، بيا د پيغمبر ﷺ د طريقې مطابق د رسول الله ﷺ نه پس د هغه ﷺ خليفه قوي مدد وکړو او د هغه منونکي دې د ځان سره کړل او د نه منونکو مقابله مو وکړه تر دې چې خلک په زور او خپله خوښه په اسلام کې داخل شول، ډير په خوښه او څه خلک خو د حالاتو او ماحول نه مجبور هم شول، بيا خليفه په داسې حال کې وفات شو چې ستاسو نه راضي ؤو، د

هغه نه پس ته خليفه وټاکل شوې او دغه ذمه واري په ښه طريقه ترسره کړه، او الله تعالى ستاسو په ذريعه نوي ښارونه آباد کړل، لکه: کوفه او بصره او د مسلمانانو لپاره دې د روم او فارس ټول مالونه راجمع کړل او ستاسو په واسطه يې دښمن تباه کړو، او د الله تعالى په هر کور کې ستاسو واسطه دين ته هم طريقه ورکړه، او د مسلمانانو په رزق کې يې فراخي راوستله، او په آخر کې الله تعالى تاسو ته د شهادت مرتبه در نصيب کړه، او د شهادت مرتبه دې تاسو ته مبارک وي، بيا د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل: په الله قسم ته داسې خبرې کوې چې په هغې سره د هو که ورکوې، که چيرې هغه دا خبرې د ځان لپاره ريښتيا وګڼي نو هغه يقيني د هو که کېدونکى انسان دى، بيا يې وفرمايل: اې عبد الله! ايا ته د قيامت په ورځ د الله تعالى په مخکې هم زما په حق کې د دې خبرو ګواهي ورکولى شې؟ حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا وويل: چې هو! نو وې وفرمايل چې اې الله جَلَّ جَلَالُهُ ستا شکر دى چې زما ګواهي ورکولو لپاره د رسول الله ﷺ د تره ځوى تيار شو، بيا يې وفرمايل: اې عبد الله بن عمره! زما مخ په ځمکه باندې کېږده حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د هغه سر د خپل ورون او چت کړو او په پونډې مې کېخوده نو وفرمايل چې نه زما مخ په ځمکه باندې کېږده نو هغه خپله ږيره او مخ او چت کړل او په ځمکه باندې يې کيخودل وفرمايل چې اې عمره! که چيرې الله تعالى ستا بخښنه اونه کړه نو بيا اې عمره! ستا هم هلاکت دي او ستا د مور هم هلاکت دى د دينه پس د هغه روح اووتلو، کله چې د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ انتقال اوشو نو دغه حضراتو حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته پيغام وليږلو هغه وويل: چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تاسو ته حکم کړى دى چې تاسو د مهاجرينو او انصارو نه او ځو مره لښکر چې دلته موجود دې د هغوى د اميرانو سره مشوره وکړي که چيرې تاسو داسې اونه کړي نو زه به تاسو ته رانه شم کله چې د حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د انتقال وخت کې د عمل او د هغه د خپل رب نه د ويرې تذکره اوشوه نو هغوى وويل: مؤمن هم داسې کوي چې عمل هم په ښه طريقه باندې کوي او د الله تعالى نه هم ويريږي او منافق اعمال هم بد کوي او د خپل ځان په باره کې د هو که کې لګيا وي په الله قسم! چې په تيره شوې زمانه کې ما هم دا خبره موندلې وه چې کوم بنده په ښه عمل کې ترقي کوي نو هغه د الله تعالى نه په ويريدلو کې هم ترقي کوي او ځوک چې په بدو

عملونو کې ترقي کوي نو دهغه د خپل ځان په باره کې دهو که کيدل هم زياتيږي.(۱)

**د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ دَين (قرض) او د خپلو دوه رفقيانو سره دفن کېدل:**

عمرو بن ميمون د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ د شهادت قصه ذکر کوي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته وويل: ګوره چې په ما څو مره قرض دي دهغې حساب ولګوه هغوی وويل: شپږاتيا زره حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ وويل: که چيرې د عمر دخاندان په مال سره دا قرضه اداشي نو د هغوی نه مال واخله او زما قرض اداکړه کني زما دقوم بنو عدي بن کعب نه يې اوغواړه که چيرې د هغوی په مال سره زما ټوله قرضه ختمه شوه نو صحيح ده کني زما د قبيلي قريشو نه يې وغواړه د هغوی نه پس يې د چانه مه غواړه او زما قرض ادا راکړه او دام المؤمنين حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنهَا په خدمت کې حاضر شه! اوسلام ورته وکړه او ورته وکړه، چې عمر بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنهُ خپلو دواړو ملګرو رسول الله ﷺ او حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنهُ سره په حجره مبارکه کې د خښولو اجازت غواړي، عمر بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنهُ او وايه او دې سره امير المؤمنين مه وايه ځکه چې نن زه امير المؤمنين نه يم نو حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا د حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنهَا په خدمت کې حاضر شو چې وې کتل هغه ناسته ده ژاړي سلام يې ورته وکړو او عرض يې وکړو چې عمر بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنهُ خپلو دواړو ملګرو سره د دفن کيدو اجازت غواړي، حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنهَا وفرمايل: هغه ځای ما د خپل ځان لپاره انتخاب کړی وو ليکن نن به زه خپل ځان باندې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته ترجيح ورکوم يعني هغه ته اجازت دی کله چې حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا واپس راغی نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وويل: څه جواب دې راوړی دی؟ هغه وويل: تاسو ته يې اجازت درکړی دی حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمايل: په دې وخت کې زما په نزد د دې کار نه زيات ضروري هيڅ شي نه دي بيا يې وفرمايل کله چې زه وفات شم نو زما جنازه اوچته کړئ د حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنهَا د دروازې مخې ته يوسي بيا دهغې نه دوباره اجازت اوغواړي او داسې ورته اووايي چې عمر بن خطاب په حجره کې د دفن کيدلو اجازت غواړي او که چيرې هغه اجازت درنکړي نو ما واپس کړي د مسلمانانو په عامه مقبره کې مې دفن کړي کله چې د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ جنازه اوچته کړی شوه نو ټولو چغې وهلې او داسې

---

۱- اخرجه الطبراني قال الهيثمي ٩/٧٦، واسناده حسن.

معلو میدله لکه چې نن په خلکو باندې د مصیبت غر را پرېوتې دې نو حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سلام وکړو او عرض يې وکړو چې عمر بن الخطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د ننه دفن کيدلو اجازت غواړي حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا اجازت ورکړو او دا شان الله تعالى حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته رسول الله ﷺ او حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره د دفن کولو شرف ورنصيب کړو، کله چې د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د وفات وخت نيزدې شو نو خلکو ووېل: تاسو به خپل خليفه څوک مقرر کړئ؟ نو وې فرمايل چې زه د دې شپږو کسانو د دلې نه زيات هيڅوک د خلافت بنه نه مومم، چې د رسول الله ﷺ په دې کې إنتقال شوى وو چې هغه د دې شپږو نه راضي وو، دا چې څوک خليفه جوړ کړي هغه به زمانه پس خليفه وي بيا يې د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت زبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نومونه يې واخيستل، که چېرې خلافت حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته سپارلې شي نو هغه د دې مستحق دې کنې چې په دوي کې هر څوک خليفه جوړ کړاى شي نو هغه دې د دوي نه مدد حاصلوي، ځکه چې ما دوي د کوفې د خلافت نه د څه کمزورئ له وجې نه دې معزول کړي او حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپل ځوى عبد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لپاره دا فيصله وکړه چې دا شپږ کسان د ده نه مشوره اخيستلې شي ليکن د ده به په خلافت کې څه حصه نه وي کله چې دا شپږ کسان جمع شول نو حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ووېل: خپله رائې د دريو کسانو په حواله کړئ، نو حضرت زبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپل اختيار حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته او حضرت طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپل اختيار حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته او حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپل اختيار حضرت عبد الرحمن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ورکړو، کله چې دې درې واړو ته اختيار ملاؤ شو نو دا درې واړه يو ځاى شول او مشوره يې وکړه او حضرت عبد الرحمن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ووېل: تاسو په دې خبره باندې راضي ئې چې فيصله ما ته او سپارئ؟ او زه د دې خبرې وعده چې په تاسو کې به د ټولو نه د افضل او مسلمانانو لپاره د ټولو نه غوره سړى په لټون کې کوتاهي نه کوم، دواړو ووېل: مونږ دواړه دې خبرې ته تيار يو، بيا حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره ځانته خبره وکړه او ويې ويل چې تا ته د رسول الله ﷺ د خپلولۍ شرف هم حاصل دى او په اسلام کې مخکې والى هم، زه تا ته د الله تعالى قسم درکوم او پوښتنه کوم که چېرې ته خليفه شې آيا ته به انصاف وکړې؟ او که چېرې زه

حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خليفه جوړ کړم نو ايا ته به د هغه خبره او مني؟ حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل: او و، بيا حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره ځانته خبره وکړه او د هغه نه هم دا پوښتنه وکړه هغه ورته په جواب کې وويل: هو! بيائې حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وويل: اې عثمانه! ته خپل لاس مخکې کړه نو هغه لاس را مخکې کړو او حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغه سره بيعت وکړو، بيا حضرعلي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او باقي خلکو وکړو .(١)

حضرت عمرو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی کله چې د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د مرګ وخت رانږدې شو نو هغه وويل: حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت زبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، او حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ماته را اوغواړئ، نو هغوی مبارکان ورته راغلل د دوي نه يې صرف د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره خبرې وکړې نو حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته يې وفرمايل چې اې علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ! دا حضرات ستا د رسول الله ﷺ سره رشته لري او د هغه زوم کيدو باندې هم پوه دی او الله تعالى چې تاته کوم علم درکړی دی په هغې هم پوه دي په دې وجه که ته خليفه جوړ کړای شې نو د الله تعالى نه ويريږه او بنو فلان يعنې بنو هاشم د خلکو په سټونو باندې مه کينوه بيا يې حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وويل: اې عثمانه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ! دا حضرات بنه پوه دي چې ته د رسول الله ﷺ زوم يې او ستا عمر زيات دې او ته دير شرافت والا يې، نو که ته خليفه جوړ کړای شې نو د الله تعالى نه ويره کوه او بنو فلان يعنې خپلوان د خلکو په سټونو باندې مه کينوه بيا يې وفرمايل حضرت صهيب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ماته را وغواړه هغه راغی نو هغه ته يې وفرمايل چې ته خلکو ته درې ورځې امامت کوه دا شپږ واړه حضرات دې په يو کور کې راجمع شي که چېرې دا حضرات د يو کس په خليفه کيدو باندې متفق شي نو چې څوک د دوي مخالفت وکړي نو د هغه څټ والوزوي. (٢)

حضرت ابو جعفر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د شوري حضراتو ته وفرمايل چې تاسو خپل خلافت باره کې مشوره وکړئ، که چېرې په رايې کې اختلاف وي او شپږ حضرات که چېرې يعنې د دريو کسانو خليفه جوړولو رايې جوړه شي نو دوباره

---

(١) - اخرجه ابن سعد ٢٤٤/ ٣، وابوعبيدابن ابى شيبة والبخارى والنسائى وغيرهم.

(٢): عندابن ابى شيبة وابن سعد.

مشوره وکړئ او که څېرې څلور اودوه شوئ نو د زیاتو یعنې د څلورو رایې اختیار کړئ،
حضرت اسلم د حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روایت کوي چې حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې که څېرې درایې دا ختلاف په وجه دا حضرات درې اودرې شي نو کوم طرفته چې حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وي د هغه طرف والو رایې قبوله کړئ او د دغه حضراتو فیصله واورئ اوویې منئ! (ابن سعد).

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي : چې حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د خپل مرګ نه لږ مخکې حضرت ابو طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ر وغوښتلو او وې فرمایل چې اې طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د خپل قوم انصارو نه پنځوس سړي واخله او دې شوري والو سره اوسئ زما خیال دا دی چې دوی پخپلو کې د یو کس په کور کې یو ځای شوی دی ته د دوی په دروازه باندې خپل ملګري ځان سره ودروه! او څوک د ننه مه را پرېږده او مه هغوئ تر درې ورځو پورې پیرون پرېږده، تر دې چې دوی یو امیر مقرر کړي، اې الله تعالی! ته په دوی کې زما خلیفه شه. (۱)

# د خلافت ذمه واري به څوک اخلي؟

## کوم صفات په خلیفه کې لازمي دي

### د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خطبه:

حضرت عاصم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وایي : چې حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پخپله بیماری کې خلک راجمع کړل بیا یې یو کس ته حکم وکړو چې هغه ده لره او چت کړو او منبر ته یې بوتلو، او دا د هغه اخري بیان و، د الله تعالی حمد او ثنانه پس یې وفرمایل :

اې خلکو! د دنیانه ځان وساتئ او په دې دنیا یقین مه کوئ دا ډیره دهوکه بازه ده او اخرت ته په دنیا ترجیح ورکړئ او اخرت سره محبت ساتئ. ځکه چې په دې باندې د دواړو کې یو سره محبت کولو باندې بل سره بغض پیدا کیږي، او زمونږ ټول کارونه د خلافت تابع دي، د دې امر خلافت د اخرې حصې اصلاح به په هغه طریقه سره کیږي چې په کومه طریقه د ابتدائي حصې اصلاح شوې وه. د دې ایر خلافت بوج هغه سړی او چتولی شي . چې تاسو کې د زیات طاقت والا وي او په خپل نفس باندې د ټولو نه زیات قابو لرونکې وي. چې د سختئ په موقعه بنه سخت

---

۱: کذافي الکنز ۱۵۷/ ۳.

اودنرمئ په موقعه بنه نرم وي اودشوري والا اهل رايې دکسانو رايې بنه پېژندونکي وي، په بې فايدې کارونو کې مصروف نه وي کومه خبره چې لاپېښه شوې نه وي دهغې له وجې نه دی غمژن اوپرېشانه نه وي، دعلم په زده کولو دې نه شرمېږي، ناګهانه واقع کېدونکي کار څخه دې نه وېرېږي، دمال په سنبهالولو کې بنه مضبوط وي اوپه غصې راتلو سره په مال کې زياتې کمې کولو کې خيانت بالکل نه کوي، اوآئنده واقع کېدونکي کارونو لپاره تياري ساتي، او محتاط اوبيدارئ او اطاعت خداوندي سره هروخت بنائسته وي اوددې ټولو صفتونو والا حضرت عمربن الخطاب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دي، دې بيان کولو نه پس حضرت ابوبکرصديق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دمنبرنه بنکته راکوز شو.(۱)

**د خليفه صفات دحضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ له نظره:**

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فرمايي: چې ما د حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ داسې خدمت وکړو چې د هغوی په کورني کې هيڅوک داسې ونکړي شو، اوما دهغه سره دشفقت داسې معامله وکړه چې د هغوی په کورنۍ کې هيڅوا داسې ونکړي شو، يوه ورځ زه دهغه په کورکې دهغه سره ځانله ناست ووم او هغه به زه دځان سره کېنولم، اوزمابه يې ډېر عزت کولو په دې کې هغه دومره په زوره ها يې وکړو چې زما خيال راغی چې په دې سره به دده ساه اوځي ما ورېل: اې اميرالمؤمنين! آيا تاسو دا د څه شی دويرې له وجې وکړو هغه وويل: هو د وېرې له وجهې مې وکړو، ماپوښتنه وکړه چې هغه څه شی دې؟ وې فرمايل چې لږ ليزدې راشه، نوزه بنه ورنژدې شوم، نووې فرمايل چې زه څوک د خلافت اهل اومستحق نه وينم، ما وويل: دفلانکي اوفلانکي، دفلانکي اوفلانکي، دفلانکي متعلق ستاسو څه خيال دی؟ او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا دهغه په مخکې د شپږو اهل شوري نومونه شمار کړل، په جواب کې حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دغه شپږو نه دهريوپه باره کې څه ناڅه خبره وکړه بيا يې وفرمايل چې د خلافت صلاحيت صرف هغه سری لري چې مضبوط وي ليکن سخت او تيز نه وي، نرم وي ليکن کمزوري نه وي سخي وي ليکن فضول خرچې نه وي، احتياط سره خرچ کونکي وي ليکن بخيل نه وي.(۲)

---

۱: اخرجه ابن عساکر كذافي كنز العمال ۱۴۷/ ۳.

۲- اخرجه ابن سعد.

حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي : چې يوه ورځ زه د حضرت عمربن الخطاب رضي الله عنه سره ناست ووم چې په دې کې هغه دومره په زوره ساه واخيسته چې زه پوه شوم چې د هغه پښتۍ ماتې شوې دي ، ما ورته وويل: اې اميرالمؤمنين! تاسو دڅه ډيرې لوې پريشانۍ له وجې نه دومره لويه ساه واخيستله؟ هغه وويل: او، دڅه لوې پريشانۍ په وجه مې واخيستله او هغه داده چې زه نه پوهيږم چې ځان نه روستو داد خلافت اميريت چاته اوسپارم؟ بيا زما طرفته متوجه شو، او وې فرمايل چې شايد ته به خپل ملګرى حضرت علي رضي الله عنه د خلافت اهل او مستحق ګڼې ، ما وويل: او ، بيشکه هغه ددې اميريت خلافت اهل او مستحق دې، ځکه چې هغه په شروع کې مسلمان شوي وو ، او ډير افضل دي هغوى وفرمايل چې بيشکه هغه هم داسې دې ځنګه چې تاسو وويل: ليکن داسې سړى دى چې په هغه کې دټوقو عادت دې بيا يې د هغه تذکره کوله او وې فرمايل چې د اميريت خلافت صلاحيت صرف هغه سړى لري چې مضبوط وي ليکن سخت نه وي او نرم وي ليکن کمزورى نه وي او سخي وي ليکن فضول خرچې نه وي او احتياط سره خرچ کونکې وي ليکن بخيل نه وي حضرت عباس رضي الله عنه به فرمايل چې دا ټول صفتونه خو هم صرف په حضرت عمر فاروق رضي الله عنه کې موندلې شول.(۱)

حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي : چې ما به د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه خدمت کولو او د هغه نه به ويريدم هم ډير او د هغه عزت به مې هم ډير کولو يوه ورځ زه د هغه په خدمت کې د هغوى کورته حاضر شوم هغه يواځې ناست وو، هغه دومره په زوره ساه واخيستله چې ما دا اوګڼله چې د هغه ساه وتلې ده، بيا يې اسمان طرفته سر اوچت کړو او ډيره لويې ساه يې واخيستله ما د همت نه کار واخيستلو او ما وويل: زه به دده نه ددې په باره کې ضرور پوښتنه کوم، نو ما وويل: اې اميرالمؤمنين! تاسو دڅه ډيرې لوې پريشانۍ له وجې نه دومره لويه ساه واخيستله هغوئ وويل: او په الله تعالى قسم! ماته سخته پريشاني ده او هغه داده چې ماته څوک ددې امر خلافت اهل او مستحق نه ملاويږي، بيا يې وفرمايل چې ته به شايد دا وايې چې ستا ملګري يعنې حضرت علي رضي الله عنه ددې اميريت خلافت اهل او مستحق دي، ما وويل: اې اميرالمؤمنين! هغه د هجرت کولو سعادت هم حاصل کړى دى او هغه د رسول

---

۱- عنده ابى عبيده فى الغريب والخطيب فى رواة مالک.

الله ﷺ صحبت یافته هم دی او رشته دار یې هم دی آیا هغه دديِ ته لو خبرو سره د خلافت اهل او مستحق نه دی؟ حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې ته څنګه وا یې هغه هم داسې دی لیکن د هغه په طبیعت کې توقې دي بیا هغه د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تذکره کوله بیا یې دا وفرمایل چې د خلافت ذمه واري صرف هغه سړی اخیستي شي چې نرم وي لیکن کمزروی نه وي او مضبوط وي لیکن سخت نه وي او سخي وي لیکن فضول خرچي نه وي او احتیاط سره خرچ کوونکی وي لیکن بخیل نه وي او بیا یې وفرمایل چې دديِ خلافت د سنبهالولو طاقت صرف هغه سړی لري چې د بدلې اخیستلو لپاره د نورو سره بنه سلوک نه کوي او د ریا کارو مشابهت اختیار نکړي او په لالچ کې رانشي او د الله تعالی د طرفه د سپارلې شوي خلافت ذمه واري طاقت صرف هغه سړی لري چې په خپله ژبه داسې خبره نه کوي چې د هغې له وجې نه هغه د خپل استقامت ماتول وکړي او د خپلې دلې خلاف هم د حق فیصله وکړی شي.(۱)

حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: چې دديِ امیریت خلافت ذمه وار هغه سړی پکار دي چې په هغه کې څلور خویانې وي نرم وي لیکن کمزوری نه وي، مضبوط وي لیکن سختي نه وي، په احتیاط سره خرچ کوي، لیکن بخیل نه وي او سخاوت کوونکی وي او فضول خرچی نه وي، که چیرې په ده کې د دې نه یوه هم نه وي نو باقي درې نیکیانې او ښېګنې به بیکاره وي.(۲)

حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: چې د الله تعالی دا کار په صحیح طریقه هغه کس کولی شي څوک چې د بدلې اخیستلو لپاره د نورو سره ښه سلوک ونکړي او د ریاکارو مشابهت اختیار نکړي او په لالچ کې پرې نه اوځي، په هغه کې د خپل عزت جوړولو جذبه نه وي او د تیزئ او غصې باوجود حق پټ نه کړي.(۳)

حضرت سفیان بن ابي العوجاء رَحِمَهُ اللَّهُ فرمایي: حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بو ځل وفرمایل: په الله تعالی قسم! ما ته دا معلومه نه ده چې زه خلیفه یم، یا بادشاه یم؟ که چیرې زه بادشاه یم نو دا ډیره د خطرې خبره ده په حاضرو خلکو کې یو کس وویل: په دې دواړو کې خو ډیر فرق دی خلیفه خو هر شی د حق له وجې نه اخلي او بیا هغه هم په حق کې لګوي او د الله

---

۱- عند ابن عساكر كذافي الكنز ۱۵۹/ ۳.

۲- عند عبدالرزاق.

۳: عند ايضا وابن عساكروغيرهما كذافي كنز العمال ۱٦۵/ ۳.

تعالى په فضل سره تاسو هم داسې يې، او بادشاه په خلکو کې ظلم کوي ديو نه يې په زورسره اخلي او بل ته يې ناحقه ورکوي دا يې چې واوريدل حضرت عمرفارق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خاموش شو.(۱)

حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: حضر عمرفاورق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زمانه پوښتنه وکړه چې زه بادشاه يم يا خليفه؟ حضرت سلمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه ته وويل: که چېرې تاد مسلمانانو د زمکې نه يو درهم يا د هغه هم کم او زيات په ظلم اخيستي وي او يا دې هغه ناحقه خرچ کړي وي نو ته بادشاه يې خليفه نه يې په دې حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په ژړا شو.(۲)

د بنواسد قبيلې يو سړى وايي چې زه د حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مجلس کې حاضر وم حضرت طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت سلمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت زبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، او حضرت ابي بن کعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هم وو، وفرمايل چې زه تاسو نه ديو شي په باره کې پوښتنه کوم، غلط جواب به نه راکوي کنې ما او خپل ځان به تباه کړئ، زه تاسو ته د الله تعالى قسم درکوم چې ايا زه خليفه يم او يا بادشاه يم؟ حضرت طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت زبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل: ته زمونږ نه د داسې خبرې پوښتنه کوي چې هغه مونږ نه پيژنو مونږ ته معلومه نه ده چې خليفه او بادشاه کې څه فرق دي؟ حضرت سلمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل: زه پوره انشراح صدر سره ګواهي ورکوم چې ته خليفه يې او بادشاه نه يې، حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې کېچرې ته دا خبره وکړي نو تاته داسې فيصله شوى انداز کې د دې خبرې کولو حق دى ځکه چې تا د رسول الله ﷺ په مجلس کې ناسته کړې ده، بيا حضرت سلمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل: ما دا خبره د لې دې وجې نه کړې ده چې ته په ماتحتو کې انصاف کوي او په دوي کې هر شي برابر تقسيموي، او د دوي سره داسې شفقت او محبت معامله کوي څنګه چې يو سړى د خپل کورو الو سره کوي او ته هره فيصله د الله تعالى د کتاب قران کريم مطابق کوي په دې حضرت کعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل زما خيال نه وو چې په دې مجلس کې به زمانه علاوه هم څوک سړى داسې وي چې د خليفه او بادشاه فرق پيژني. ليکن الله تعالى حضرت سلمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لره

---

۱: اخرجه ابن سعد ۲۲۱/ ۲.

۲: عند ابن عساكر كذا كافى الكنز ۳۸۳/ ۴.

دحکمت او علم نه ډک کړی دی بیا حضرت کعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې زه د دې خبرې گواهي ورکوم چې ته خلیفه یې او بادشاه نه یې ، حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې داشاهدي په کوم بنیاد ورکوي؟ حضرت کعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل: زه ستاذکر دالله په کتاب تورات کې پیدا کوم، حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې ایا په هغې کې زما ذکر زما نوم اخیستلو سره دي؟ حضرت کعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل: نه بلکې ستاذکر ستا د صفتونو سره دي نو په تورات کې داسې دي چې اول به نبوت وي بیا د نبوت په طریقه به خلافت او رحمت وي بیا به د نبوت په طریقه به خلافت او رحمت وي د ې نه پس به داسې بادشاهت وي چې په هغې کې به څه ظلم هم نه وي.(۱)

**د خلیفه سختي او نرمي:**

حضرت سعید بن مسیب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي : کله چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خلیفه شو نو هغه د رسول الله ﷺ په منبر باندې او دریدلو بیان یې وکړو اول یې د الله تعالی حمد او ثنا بیان کړه بیا یې وفرمایل : اې خلکو ! ماته معلومه ده چې تاسو په ماکې سختي وینې د دې وجه داده چې زه به د رسول الله ﷺ سره ووم زه د هغه غلام اووم او د هغه په باره کې څنګه چې الله تعالی فرمایلي دي:بالمؤمنین رؤف الرحیم (په مؤمنانو باندې ډیر شفیق او مهربانه دي).

هغه یقینی ډیر شفیق او مهربانه وو، له دې وجې نه زه د هغه په مخکې د ویستلې شوې تورې په څیر اوسیدم که چیرې زه هغه په قاش کې اچولم یا زه به یې د څه کار نه منع کولم نو زه به منع کیدم، کني مابه د هغه نرمۍ په وجه خلکو سره سختي کوله، د رسول الله ﷺ په ژوند کې زما هم دا طریقه وه، تر دې پورې چې الله جَلَّ جَلَالُهُ رسول الله ﷺ خپل ځان ته را اوبللو او د دنیا نه د تلو په وخت رسول الله ﷺ زما نه راضي وو ، زه په دې باندې د الله جَلَّ جَلَالُهُ ډیر شکر گذاریم او دا خپل لوي سعادت بولم، بیا د رسول الله ﷺ نه پس د هغه خلیفه امیر المؤمنین حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره زما هم دا طریقه وه. تاسو د هغه مهرباني، عاجزي او نرم طبیعتي ښه پیژنئ، زه د هغه خادم ووم، او د هغه لپاره دراوتلي تورې پشان وم، مابه خپله سختي د هغه د نرمۍ سره یو ځاي کوله، که چیرې هغه به په څه

۱: عندنعیم بن حماد فی الفتن کذافی منتخب الکنز ۳۸۹/ ۴.

مسئله کې پخپله مخکې والې کولو زه به بندیدم، کني مابه مخکې والي کولو، اودهغه سره به زماهم دا طریقه وه، تردې چې الله جَلَّ جَلَالُهُ هغه ددینانه پورته کړو، اوددنیانه د رحلت په وخت کې هغه زمانه راضي وو، زه په دې باندې دالله جَلَّ جَلَالُهُ شکراداکوم اوزه داخپل لوي سعادت بولم، اوس ستاسو مسئله ماطرفته منتقل شوې ده، ځکه چې زه خلیفه جوړ شوی یم، ماته معلومه ده چې بعضې خلک به دا او وایي کله چې خلیفه بل څوک وو حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه وو نوده په مونږ سختي کوله اوس کله چې دي پخپله خلیفه شو نواوس به دهغه دسختې څه حال وي تاسوته ښکاره ده چې تاسوته زماپه باره کې دچانه دپوښتنې ضرورت نشته دی تاسو ماپیژنئ هم اوتاسو زماتجربه هم کړې ده اودخپل رسول الله ﷺ سنت چې څومره پیژنئ اودرسول الله ﷺ نه ما د هرې خبرې پوښتنه کړې ده، اوس ماته دضرورت دڅه خبرې پوښتنه نه کوله باندې پیښماتتیا نشته دې، تاسو په ښه طریقه باندې پوه شئ چې اوس کله زه خلیفه جوړ شوی یم نواوس زماسختي چې تاسو لیدله هغه څوچنده زیاته شوې ده لیکن داسختي دهغه انسان خلاف به وي څوک چې ظلم کوي اوداسختي به د قوي مسلمان نه د کمزوری مسلمان دحق اخیستلو لپاره وي، اوزه ددې خپلې سختئ سره سره دخپل مخ ستاسو دهغه خلکو لپاره ټیټوم چې پاک لمنې وي اودغلطو کارونو نه بندیږي اوخبره مني، اوزما ددې خبرې نه هم انکار نشته دی چې که چیرې زمااوستادیو کس په مینځ کې دڅه فیصلې په باره کې اختلاف راشي نوتاسو چې څوک خوښوئ زه دهغه سره هغه ته زم، اوهغه منځګړي چې زما اودهغه په مینځ کې دڅه فیصله وکړي هغه به ماته منظوره وي، اې دالله جَلَّ جَلَالُهُ بنده ګانو !دالله جَلَّ جَلَالُهُ نه اوویریږي، اودخپل ځان په باره کې داشان زما مدد وکړي چا ماته ایخوادیخوا تېولې خبرې مه راوړئ، او زمادنفس خلاف زمامدد داشان ته اوګړئ کله چې ضرورت شي نوماته دنیکئ حکم کوئ اومادبدي نه منع کړي اوستاسو دکوموکارونو چې الله جَلَّ جَلَالُهُ زه ذمه وارجوړ کړي یم په هغې کې تاسو ماسره پوره خیرخواهي کوئ بیاهغه دمنبرنه ښکته شو.(١)

حضرت محمد بن زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي : چې یو ځل حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عبد الرحمن بن

---

١: اخرجه الحکام واللکائي وغیرهما کذافي کنزالعمال ١٤٧/ ٢.

عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ را جمع شول او په هغوی کې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مخکې په خبرو کولو کې د ټولو نه زيات زړور حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وو نو دې حضراتو هغه ته وويل: اې عبد الرحمن! څو مره به ښه وي چې ته د خلکو په باره کې د امير المؤمنين سره خبرې وکړې او هغه ته دا او وايې چې ډير ضرورتمند خلک راځي ليکن ستاسو د هيبت له وجې نه تاسو سره خبرې نشي کولې. او د خپل ضرورت د پوره کولو نه بغير واپس شي، نو حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شو او عرض ئې وکړو چې اې امير المؤمنين! تاسو د خلکو سره نرمي اختيار کړئ ځکه چې ډير ضرورتمند تاسو ته راځي، ستاسو د هيبت له وجې نه تاسو سره خبرې نشي کولی او تاسو ته خپل ضرورت ويلو نه بغير واپس ځي، حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې زه تاسو ته د الله تعالى قسم درکوم او پوښتنه کوم چې آيا تا ته حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. او حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې خبرې کولو لپاره ويلي دي؟ حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: او، حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: اې عبد الرحمن! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم ما خلکو سره دومره نرمي اختيار کړه چې په دغه نرمئ زه د الله تعالى نه ووېريدم چې هغه چېرته په دې نرمې ما او نه نيسي، بيا ما خلکو سره دومره سختي اختيار کړه چې په دې سختئ باندې د الله تعالى نه او ويريدم چې هغه په دې سختئ باندې ما او نه نيسي، او س ته او وايه چې د خلاصې څه صورت دې؟ حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه ځای نه په ژړا څادر ئې را بنکلو او پاڅيدلو او په لاس سره يې اشاره کوله او وويل يې هائې افسوس تاسو نه روسته به ذدوي څه کيږي هايې افسوس تاسو نه پس به ددوي څه کيږي.(١)

ابو نعيم په خپل کتاب (حليه) کې د حضرت شعبي رَحِمَهُ اللهُ نه را نقل کوي چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې په الله تعالى قسم! چې زما زړه د الله تعالى لپاره دومره نرم شو، چې د کوچونه هم زيات نرم شو او د اشان زما زړه د الله تعالى لپاره دومره سخت شو چې

---

١: اخرجه ابن سعد ٣/٢٠٦، وابن عساکر.

دکانړي نه هم زيات سخت شو ابن عساکر د حضرت ابن عباس نه نقلوي کله چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خليفه شو نو هغه ته يو ملګري وويل: بعضې خلکو د دې خبرې کوشش وکړو چې د اخلافت تاسو ته ملاؤ نشي حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل: دا د څه وجې نه ؟ هغه وويل: د هغوی دا خيال وو چې تاسو ډير سخت يې، حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې ټول تعريفونه هغه الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره دي چې هغه زما زړه د خلکو سره د شفقت نه ډک کړو، او زما هيبت يې د خلکو په زړونو کې واچولو.(۱)

## په امت کې د انتشار پيدا کېدو مخنيوی کول

**د هغه چا ساتنه چې په امت کې د پراګندګۍ سبب ګرځي:**

حضرت شعبي رَحِمَهُ اللَّهُ وايي کله چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفات شو نو هغه وخت د قريشو بعضې خاص حضرات د ده نه تنګ شوي وو، ځکه چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغوی په مدينه منوره کې ايسار کړي وو او د هغوی په بهرتلو يې بنديز لګولې وه، او په هغوی باندې يې څه خرچ کولو او فرمايل به يې چې ماته د دې امت په باره کې د ټولو نه زياته ويره د دې نه معلوميږي چې تاسو مختلف ښارونو کې خواره شئ، حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا پابندي په مهاجرو کې بعضې خاص حضراتو باندې لګولې وه، او مهاجرينو د دې خاص حضراتو نه علاوه په نورو اهل مکه باندې يې دا پابندي نه وه لګولې نو چې کوم مهاجرين حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په مدينه منوره کې د اوسيدو پابند ساتلي وو په هغوی کې به چې چا په جهاد کې د تلو اجازت غوښتلو نو هغه ته به يې وفرمايل چې تا د رسول الله ﷺ سره په کومو غزاګانو کې سفرونه کړي دی هغه منزل مقصود ته يعنې د جنت اعلي درجو ته رسولو لپاره کافي دی نن خو غزا ته تلو نه ستاسو لپاره دا غوره دی چې دلته په مدينه منوره کې اوسيږي نه دی تاسو دنيا اووينئ او نه دی دنيا تاسو اووينې، د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا مقصد وو چې دا يو څو حضرات که چېرې مختلفو علاقو ته لاړشي نو د هغه ځای مسلمانان به هم د دوی په صحبت کافي والې وکړي او مدينې منورې ته به نه راځي او د اشان به د هغوی دا مير المؤمنين سره او د اسلام مرکز سره تعلق کمزوری شي، که چېرې

---

۱: کذافي منتخب کنزالعمال ۳۸۲/ ۴.

دوی مدینه منوره کې اوسیږي نو دټولې دنیا مسلمانان به مدینې منورې ته راځي او همداسې به د هغوی دامیرالمؤمنین سره او داسلام مرکز سره تعلق محکم کیږي او دغسې به په مسلمانانو کې فکر او محنت او ټولو ترتیب کې یو شان والې وي، کله چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلیفه جوړ شو نو هغه د دغه حضراتو نه پابندي پورته کړه او هغوی ته یې د تللو اجازت ورکړو، دا حضرات مختلفو علاقو کې خواره شول او د هغه ځائ مسلمانانو د دغو حضراتو په صحبت باندې اکتفا وکړه، د دې حدیث راویان حضرت محمد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې د ټولو نه اول کمزوری وه چې په اسلام کې داخله شوه او همدا د ټولو نه اول فتنه وه چې عوامو کې پیدا شوه چې مقامي حضراتو سره یې تعلق زیات شوی دی، او امیرالمؤمنین او داسلام مرکز سره یې تعلق کم شو.(۱)

حضرت قیس بن ابي حازم وایي چې حضرت زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شو چې د هغه نه جهاد ته د تللو اجازت واخلي حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل ته په خپل کور کې ناست اوسه، تا د رسول الله ﷺ سره ډیرې غزاګانې کړې دی، حضرت زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بار بار اصرار کولو په دریم یا څلورم اصرار باندې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل خپل کور کې کینه ځکه چې په الله تعالی قسم! زه وینم چې که چیرې ته او ستا ملګري د مدینې منورې اطرافو ته لاړئ او وتلئ نو تاسو به د رسول الله ﷺ د صحابو خلاف فتنه پیدا کړئ.(۲)

# له اهل رأی خلکو سره مشوره کول

**رسول الله ﷺ او د ابوسفیان قافلې او أهل بدر د بندیانو باره کې د صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ سره مشوره کول:**

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: کله چې رسول الله ﷺ ته د ابوسفیان د لښکر د راتللو خبر ملاؤ شو نو رسول الله ﷺ د خپلو صحابو سره مشوره وکړه حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څه خبره وکړه رسول الله ﷺ د هغه نه مخ واړولو بیا حضرت

---

۱: اخرجه سیف وابن عساکر کذافي الکنز ۱۳۹/ ۷، واخرجه الطبراني ۱۳۴/ ۵ من طریق سیف ونحوه.

۲: عندالحاکم ۱۲۰/ ۳، وقال الذهبي صحیح.

عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څه خبره وکړه رسول الله ﷺ دهغه نه هم مخ واړولو مخکې دحدیث مضمون نورهم شته دي چې دجهاددباب په شروع کې داولې حصې باندې تیر شوی دی .(۱)

امام احمد رَحِمَهُ اللهُ او امام مسلم رَحِمَهُ اللهُ دبدرپه واقعه کې دحضرت عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت کوي په دې کې دامضمون هم دې چې رسول الله ﷺ دحضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه مشوره واخیستله چې دبدرد بندیانو سره څه کول پکار دي؟ نو حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړو اې د الله رسول! داخلک زمونږ د تره ځامن، د خاندان خلک او وروڼه دي زما رایې داد چې ددوي نه فدیه واخلئ او دوي پریږدي نو مونږ چې ددوي نه څه فدیه واخلو نو هغه به دکافرانو سره دمقابلې لپاره زمونږ دقوت ذریعه جوړه شي او کیداي شي چې الله تعالی دوي ته هدایت وکړي نو بیا به دوي زمونږ لاسونه جوړشي بیا رسول الله ﷺ وفرمایل اې ابن الخطابه! ستا څه رایه ده؟ ما عرض وکړو چې په الله تعالی قسم! چې دحضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رایه ده هغه زما رایه نه ده بلکې زما رایه خو داده چې فلانی سړی چې زما نیژدې رشته دار دی هغه ماته حواله کړي چې زه دهغه سره والوزم او عقیل حضرت علي ته حواله کړئ چې هغه دعقیل سر والوزاوه او فلاني سړی چې دحضرت حمزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورور دی یعنې حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه حضرت حمزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته حواله کړئ حضرت حمزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د هغه سر والوزوي د دې لپاره چې الله تعالی ته پته اولګي چې زمونږ په زړونو کې دمشرکانو باره کې څه قسم نرمي نشته دی داخلک د قریشو سرداران او مشران دي رسول الله ﷺ دحضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رایه خوښه کړه او زما رایه د هغوی ﷺ خوښه نه شوه او دهغه بندیانو نه یې فدیه واخیستله بیا په بله ورځ زه رسول الله ﷺ او حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورغلم نو هغوی دواړو ژړل، ما عرض وکړو چې اې دالله تعالی رسوله ﷺ! تاسو ماته اووایئ چې تاسو او ستاسو ملګري ولې ژاړي؟ که چیرې ژړا وجه معلومیدو باندې ماته هم ژړا راغله نو زه به هم اوژړام او که چیرې ژړا رانغله نو ستاسو دژړا له وجې نه به زه هم په تکلف سره دژړا صورت جوړم کړم رسول الله ﷺ

---

۱: اخرجه احمد.

وفرمایل دله دې وچې نه ژاړم چې ستا ملګرو ددې بندیانو نه کومه فدیه اخیستلې ده،
دهغې له وجې نه دالله تعالی عذاب ددې ونې نه هم زیات نیزدې را غلی وو، اوالله تعالی
داآیت نازل کړو، مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَكُونَ لَهُ أَسْرَىٰ(۱)

ترجمه: درسول الله ﷺ دشان لائق نه ده چې دهغه قیدیان دې باقې پاتې بلکې قتل دې کړی شي
ترڅو چې هغه په زمکه کې ښه خونریزې ونکړي تاسو خود دنیا مال او اسباب غواړي او دالله
تعالی داخرت مصلحت غواړي اوالله تعالی ډیر زورور اولوي حکمت څښتن دي.

امام احمد د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت کوي چې رسول الله ﷺ دصحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُم
سره د جنګ بدر په موقعې باندې د بندیانو په باره کې مشوره وکړه نو هغوی ته یې
وفرمایل چې الله تعالی تاسو ته په دې خلکو باندې قدرت درکړی دی، او وایې چې اوس
دوي سره څه کول پکار دي؟ حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړو چې اې دالله رسوله
ﷺ ددې خلکو دې ستونه والوزولې شي، حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایې چې رسول
الله ﷺ دوباره متوجه شو او وې فرمایل اې خلکو! الله تعالی تاسو ته په دې خلکو باندې
قدرت درکړی دی اوپرون داخلک ستاسو ورونه وو، لهذا دوي سره نرمې کول پکاردي
حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دوباره هغه مشوره ورکړه، رسول الله ﷺ بیا متوجه شو او هغه
خبره یې وکړه په دې څل حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړو چې اې دالله
رسوله ﷺ! زما رایه داده چې بخښنه به ورته وکړو او فدیه به ترې واخلو چې دا ئې
واورېدل د رسول الله ﷺ دمخ مبارک نه دپریشانې اثرلرې شو، بیا یې هغوی معاف کړل
اود هغوی نه یې فدیه قبوله کړه الله تعالی دا ایت نازل کړو، لَوْلَا كِتَابٌ مِّنَ اللَّهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمْ
فِيمَا أَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ(۲)

ترجمه: که چېرې دالله تعالی لیکلې شوي مقدرنه وي نوکوم کارچې تاسو اختیارکړي دې
دهغې باره کې به په تاسو باندې څه لویه سزا واقع شوې وه.(۳)

---

۱- سورة الانفال ٦٧.

۲: سورة الانفال ٦٨

۳: عنداحمد کذافی نصب الرایة ۳/۴۰۳، قال الهیثمی ٦/ ۸۷، رواه احمد عن شیخه علی بن عاصم بن صهیب وهو کثیر الغلط والخطاء لایرجع اذا قیل له الصواب وبقیة رجال احمد رجال الصحیح انتهی.

د رسول الله ﷺ رایه د فدیې اخیستلو طرفته مائله کیدل صرف د صله رحمي په وجه وو، البته بعضې صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ صرف مالي فایدې په نظرکې ساتلې وې او دا رایه یې ورکړې وه، او زیات تر صحابوو نور دیني مصلحتونه او دښو اخلاقو سره مالي ضروریاتو هم خیال ساتلو، رایه یې ورکړې وه، او فدیه اخیستل او پرېښودل د هغه وخت د حالاتو په اعتبار سره د الله تعالی په نزد غلطي او ګرځیدله او دا غلطي وه خو داسې غلطي چې هغه خلکو ته به سخته سزا ورکولې شوه چاچې د دنیا د سامان خیال ساتلو او داسې مشوره یې ورکړې وه لیکن د سزا ورکولو نه هغه شی منع کونکی شو چې الله تعالی د مخکې نه لیکلي وو او فیصله یې کړې وه او هغه ځو خبرې کیدلې شوې. (۱) مجتهد ته به دې قسمه اجتهادي غلطي باندې عذاب نه وي، (۲) داهل دبدر خطاګانې الله تعالی معاف کړې دي، (۳) په دې بندیانو کې د دیرو په قسمت کې اسلام راوړل لیکلي شوي وو.

حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: د جنګ بدر په ورځ رسول الله ﷺ صحابوو ته وفرمایل تاسو د دې بندیانو په باره کې څه وائې؟ حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړو اې د الله رسوله ﷺ! دا خلک ستاسو د قوم او ستاسو د خاندان دي، دوي معاف کړه دنیاکې یې باقې او ساتې او دوي سره د نرمي معامله وکړئ کیدای شي چې الله تعالی دوي ته د شرک او کفر نه د توبې توفیق ورکړي او بیا حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړو اې د الله رسوله ﷺ! دوي تاسو مکې نه راویستلئ او تاسو یې دروغژن اوګڼلې تاسو دوي ځان ته رااوغواړي او د دې ټولو ستونه والوزوئ او حضرت عبد الله بن رواحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا رایه پیش کړه چې اې د الله رسوله ﷺ! تاسو د ګڼو ونو والا ځنګل وګورئ بیا د غه ټول ځنګل ته ورداخل کړئ او د پورته نه پرې اور اولګوئ، رسول الله ﷺ د ټولو رایه واوریدلې او څه فیصله یې ونکړه، او خپلې خیمې ته یې تشریف یوړلو. خلکو په خپلو کې خبرې شروع کړې بعضو وویل: هغوی ﷺ به د حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په رایه باندې عمل کوي. او بعضو وویل: د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په رایه به عمل کوي او بعضو وویل: د عبد الله بن رواحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په رایه به عمل کوي بیا رسول الله خلکو ته بهر تشریف راوړو، او وې فرمایل چې الله تعالی د بعضې خلکو زړونه د خپل ځان باره کې د ومره نرم

کوي چې هغه د پیو نه هم زیات نرمیږي او د بعضو خلکو زړونه د خپل ځان باره کې د ومره سختوي چې هغه د کانړي نه هم زیات سختیږي او اې ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ستا مثال د حضرت ابراهیم علیه السلام په شان دې ځکه چې هغه فرمایلي وو : فَمَنْ تَبِعَنِي فَإِنَّهُ مِنِّي ۖ وَمَنْ عَصَانِي فَإِنَّكَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ (۱)

ترجمه : بیا چې څوک زما تابعداري وکړي هغه هم زما دې او څوک چې پدې باره کې زما خبره نه مني نو ته ډیر بخښونکي او زیات رحمت والا یې ، او اې ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ! ستا مثال د حضرت عیسی علیه اسلام په شان دې ځکه چې هغه فرمایلي وو :

إِن تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ ۖ وَإِن تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ (۲)

ترجمه : او که چیرې ته دوي ته سزا ورکړې نو دا ستا بنده ګان دي او که چیرې ته دوي ته معافي وکړې نو ته زورور او حکمت څښتن یې ، او اې عمره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ستا مثال د حضرت نوح علیه السلام په شان دی ځکه چې هغه فرمایلي وو : وَقَالَ نُوحٌ رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكَافِرِينَ دَيَّارًا (۳)

ترجمه : اې ربه ! مه پریږدې په ځمکه باندې د منکرینو یو کور هم لپاره د اوسیدلو ، او اې عمره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ! ستا مثال د حضرت موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ په شان دی ځکه چې هغوی فرمایلي وو :

رَبَّنَا اطْمِسْ عَلَىٰ أَمْوَالِهِمْ وَاشْدُدْ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُوا حَتَّىٰ يَرَوُا الْعَذَابَ الْأَلِيمَ (۴)

ترجمه : اې زمونږ ربه! د دوي مالونه برباد کړې او د دوي زړونه نور هم سخت کړې چې په هغې سره د هلاکت مستحق شي نو دوي به ایمان را نوړونکي بیانه مومي تردې چې عذاب دردناک دوي اووینې . بیا رسول الله ﷺ وفرمایل چونکه تاسو ضرورتمند یې د له دې وجې نه په دې بندیانو کې هربندي یا خو به فدیه ورکړي یا به د هغه سټ والوزولې شي ، حضرت عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي : ما عرض وکړو اې د الله رسوله ﷺ ! د دې حکم نه د سهیل بن بیضاء او ویستلي شي ځکه چې ما د هغه نه د اسلام د احسان تذکره

---

۱: سورة ابراهیم ۳٦.

۲: سورة المائدة ۱۱۸.

۳: سورة النوح ۲٦

۴: سورة یونس ۸۸.

اوریدلي ده دا یې چې واوریدل رسول الله ﷺ خاموش شو، حضرت عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې په هغه ورځ دي اسمان نه د کاڼو وریدو ماته څومره ویره پیداشوې وه هغه هومره ماته چیرې هم نه ده پیداشوې، ویره د له دې وجې نه چې چیرته رسول الله ﷺ ته دنامناسبه خبرې فرمائش نه وي شوی، اخرهم رسو الله ﷺ وفرمایل چې سهیل بن بیضاء ترې مستثناء کولې شي فرمایي چې الله تعالی بیا دا دوه ایتونه نازل کړل: مَاكَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَكُوْنَ لَهٗ أَسْرٰى.(۱)

**رسول الله ﷺ او له سعدبن عباده او سعدبن معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا نه مشوره غوښتل.**

حضرت زهري رَحِمَهُ اللَّهُ فرمایي کله چې مسلمانانو باندې دغزوه خندق په موقع مصیبت سخت شو نو رسول الله ﷺ دعطفان قبیلې دوه سردارانو عیینه بن حصن او حارث بن عوف مري پسې سړی ولیږلو او راوې غوښتلو او هغوی ته یې دمدینې منورې دمیوو ددریمې حصې دورکولو اراده په دې شرط وفرمایله چې هغوی خپل ملګري زما اوزما دصحابو دمقابلې نه واپس بوځي نود رسول الله ﷺ او د هغوی په مینځ کې دصلح خبره شروع شوه تردې چې هغوی صلح نامه اولیکله لیکن تراوسه ګواهګانې نه وې لیدلې شوې اودصلح مکمله فیصله نه وه شوې صرف دیوبل دامادہ کولو خبرې شروع وې کله چې هغوی ﷺ داشان دصلح کولو پخه اراده وکړه نو حضرت سعدبن معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت سعدبن عباده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یې را اوغوښتل اوددې صلح یې دوي ته یادونه وکړه اوددې دواړو نه یې ددې په باره کې رایه واخیستله نودې دواړو عرض وکړو چې اې دالله رسوله ﷺ! دصلح داکار ستاسو خوښ دې څکه چې تاسو داکوئ یاالله تعالی تاسو ته ددې صلح کولو حکم کړی دې چې په هغې باندې عمل کول زمونږ لپاره ضروري دي یاداصلح زمونږ د فایدې لپاره کوئ؟ هغوی ﷺ وفرمایل چې زه دا صلح ستاسو د فایدې لپاره کوم په الله تعالی قسم! زه داصلح د له دې وجې نه چې زه وینم چې ټول عربو والا په تاسو باندې دیو کمان نه غشي چلوي یعنې ټول ستاسو خلاف شوی دی، اود هرطرف نه په ښکاره ستاسو دشمنې

---

۱: عنده احمد وهكذا رواه الترمذي والحاكم وقال الحاكم صحيح الاسناد ولم يخرجاه و رواه ابن مردويه من طريق عبدالله بن عمر وابوهريرة بنحوه ذالک وقدروى عن ابى ايوب الانصارى بنحوه كذافى البداية ۲۹۷/ ۳.

کوي نو ما د اسوچ وکړو چې د اسې صلح کولو سره د هغوی څه زور خو مات کړم په دې باندې حضرت سعد بن معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړو یا رسول الله ﷺ مونږ او دا خلک اول د الله تعالی سره په شرک کولو او دبتانو په عبادت کې یو ځاي وو، مونږ د الله تعالی عبادت نه کولو او دبتانو په عبادت کې یو ځاي وو، مونږ د الله تعالی عبادت نه کولو بلکې مونږ الله تعالی پیژندلو هم نه، نو په هغه زمانه کې زمونږ دیوې کجورې هم په زور سره په هغوی کې دخوړلو حوصله نه وه صرف دا چې زمونږ میلمانه به شول یا به یې زمونږ نه په بیعه اخیستلې نو بیا دوي زمونږ کجورې خوړلې شوې، نو اوس چې کله الله تعالی مونږ ته د اسلام عزت راکړی دی او مونږ ته یې د اسلام هدایت وکړو او ستاسو په ذریعه یې راته په اسلام سره عزت راکړو نو اوس مونږ پخپله خپلې میوې هغوی ته ورکړو؟ دا هیڅکله نشي کیداي په الله تعالی قسم! مونږ ته ددې صلح هیڅ ضرورت نشته په الله قسم مونږ هغوی ته سیوا د توري نه بل څه نه ورکوو تر دې چې الله تعالی به زمونږ او د هغوی په مینځ کې فیصله وکړي په دې باندې رسول الله ﷺ وفرمایل چې تاسو پوه شئ او ستاسو کار ستاسو را یې دصلح کولو نه ده نو بیا یې مونږ نه کوو نو حضرت سعد بن معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه صلحې هغه معاهده واخیستله او په هغې کې چې یې څه لیکلي وو هغه یې وران کړل او وئې ویل: چې هغوی دې زمونږ خلاف خپل زور اولګوي او دې ګوري.(۱)

حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې حارث د رسول الله ﷺ په خدمت کې د غزوه خندق په موقعه باندې راغی او عرض یې وکړ چې مونږ ته نیمې کجورې د مدینې منورې راکړه، کنې زه به ستا خلاف مدینه منوره د سورو او د پیاد لښکر نه ډکه کړم. رسول الله ﷺ وفرمایل زه د حضرت سعد بن عباده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت سعد بن معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره مشوره کوم بیا به درته ووایم، رسول الله ﷺ لاړو او دې دواړو صحابوو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا سره یې مشوره وکړه دې دواړو وویل: داسې نشي کیدلی په الله تعالی قسم! مونږ خو د جاهلیت په زمانه کې هم چېرې د اسې ذلت والا خبره باندې راضي شوي نه یو، نو اوس کله چې الله تعالی مونږ ته اسلام را نصیب کړی دی نو دې ذلت والا خبرې باندې څنګه راضي کیدلی شو.

---

(۱): اخرجه ابن اسحاق كذافي البداية ۴/۱۰۴.

رسول الله ﷺ واپس راغی او حارث ته یې دا جواب ورکړو هغه وویل: اې محمد ﷺ! تا (نعوذبالله) وعده خلافي وکړه.(۱)

طبراني د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت کوي چې حارث غطفاني د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او وئې ویل چې مونږ ته د مدینې منورې نیمې خرما راکړه، رسول الله ﷺ وفرمایل چې سعد نومي خلکو سره مشوره کوم بیا درته وایم، نو هغوی ﷺ حضرت سعد بن معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت سعد بن عباده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت سعد بن ربیع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت سعد بن خیثمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت سعد بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ را اوغوښتل او وې فرمایل چې ما ته معلومه ده چې ټول عرب په تاسو باندې دیولیندې نه غشې ولي یعنې هغوی ټول ستاسو خلاف یو شول او حارث ستاسو نه د مدینې منورې نیمې کجورې غواړي نو که چیرې ستاسو خوښه وي نو سږکال ده ته نیمې کجورې ورکړئ آینده تاسو ګرځوئ، دوی عرض وکړو چې اې د الله رسوله ﷺ آیا دا د اسمان نه وحي راغلې ده؟ نو بیا دې په مخکې زمونږ سرونه ښکته دي، منو یې دا ستاسو خپله رایه ده، نو مونږ به ستاسو په رایه عمل کوو، لیکن که چیرې تاسو په مونږ باندې د شفقت له وجې نه فرمایې نو په الله تعالی قسم! تاسو لیدلی دي چې مونږ د دوی برابر یو. دوي زمونږ نه یوه کجوره هم په زور سره نشي اخیستلی صرف دا په بیع یا یې په میلمستیا واخلي. دې حضراتو ته رسول الله ﷺ وفرمایل او، ما د شفقت په وجه وویل: او بیا یې حارث ته وویل: ته اورې چې دا حضرات څه وایي حارث وویل: اې محمده ﷺ تا معاذالله وعده خلافي وکړه. (۲)

حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: رسول الله ﷺ به د اشان کارونو باره کې د شپې په وخت کې د حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره مشورې لپاره خبرې کولې او زه به هم د هغه سره وومه.(۳)

---

۱: اخرجه البزار

۲. قال الهیثمی ۱۳۲/٦، رجال البزار والطبراني فیهما محمد بن عمرو وحدیثه، حسن وبقیة رجاله ثقات.

۳: اخرجه مسدد وهو صحیح کذافی کنز العمال ٤٥/٦.

# د اهل رأي خلکوسره د حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مشوره

## دحضرت ابوبکر اوحضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا د شوری اعضاء څوک وو؟

حضرت قاسم رَحِمَهُ اللَّهُ فرمایي: کله چې به حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته څه داسې مسئله پیښه شوه چې په هغې کې به هغه د مشورې اهل خلکوسره او اهل فقه سره مشوره کوله، نو د مهاجرینو او انصارو نه به یې څه حضرات راغوښتل او حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ. حضرت علي ابن ابي طالب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت معاذ جبل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت ابي بن کعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت زید بن ثابت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به یې هم راغوښتل. دې ټولو به د حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په زمانه خلافت کې فتوی ورکوله . او خلکو به هم ددوي نه د مسائلو پوښتنه کوله، حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په زمانه کې هم دا ترتیب وو د هغه نه پس حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خلیفه جوړ شو، نو هغه به هم ذغه حضرات مشورې لپاره رابلل او د هغه په زمانه کې حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ. حضرت ابي بن کعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، او حضرت زید بن ثابت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د فتوې کار کولو. (۱)

**د زمکې ورکولو په باره کې د حضرت عمر اوحضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قصه:**

حضرت عبیده رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې عیینه بن حصن او اقرع بن حابس حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته راغلل او ویې ویل اې د الله د رسول خلیفه! زمونږ په علاقه کې بنوره ځمکه ده چې په هغې کې نه واښه کیږي او نه د هغې نه څه بله فائده اخیستل کیږي، که چیرې تاسو مناسب بولې نو هغه مونږ ته د جاګیر په طور راکړئ چې هغې کې مونږ یوه وکړو او هغه اوکرو، امید دې چې هغه آباده شي، نو هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته هغه ځمکه د جاګیر په طور دورکولو اراده وکړه او د هغوی لپاره یې یو خط اولیکو او دا فیصله یې وکړه چې حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به په دې فیصله شاهد وي په دغه وخت کې هغه دغلته موجود نه وو. هغوی دواړو لیکل واخیستل حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته یې یوړل چې هغه په دې شاهد جوړ کړي کله چې هغه ددې خط مضمون واوریدلو نو د هغوی دواړو د لاس نه یې لیکل واخیستل او په هغې یې اوتوکل هغه یې

---

۱: اخرجه ابن سعد کذافی کنز ۱۳۴/ ۳.

وران کړل، په دې باندې دې دواړو ته غصه ورغله او حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته ردې بدې وويل حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل: رسو الله ﷺ ستاسو دواړو د دزړه ساتنه کوله او د له دې وجې نه يې تاسو دواړو ته څمکه درکړې وه کله چې په هغه وخت کې اسلام کمزورې او مسلمانان لږ وو، او ننن الله تعالى اسلام ته غلبه ورکړې ده په دې وجه اوس ستاسو دزړونو ساتلو ته څه ضرورت نشته تاسو دواړه لاړشئ او زما خلاف چې څومره زور لګولې شئ اولګوئ او که چېرې تاسو د الله تعالى نه حفاظت او غواړئ نو الله تعالى دې ستاسو حفاظت ونه کړي دا دواړه دغصې نه ډک حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته راغلل او هغه ته يې ووېل: په الله تعالى قسم! مونږ نه پوهېږو چې ته خليفه يې يا عمر؟ هغوی وفرمايل که چېرې هغه غوښتلې نو خليفه جوړېدې شو په دې کې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دغصې نه ډک راغی او دحضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سره اودرېدو او ويې ويل چې تاسو ماته او وايي چې تاسو کومه څمکه دې دوو سړو ته دجاګير په طور ورکړې ده دا ستاسو ده يا دټولو مسلمانانو ده؟ حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې نه دټولو مسلمانانو ده حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل: نو يا تاسو ټول مسلمانان پرېښودل صرف دې دوو ته مو ولې ورکړې ده؟ حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل: ما سره کوم مسلمانان وو ما دهغوی سره مشوره کړې وه هغوی ټولو ماته د داسې کولو مشوره راکړې وه حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل، تاسو خو هغه کسانو سره مشوره کړې ده کوم چې ستاسو سره وو ليکن آيا تاسو دټولو مسلمانانو سره مشوره کړې وه؟ او د هغوی رضامندي مو اخيستې وه؟ چونکه دا خبره ښکاره وه چې په هر کار کې دټولو مسلمانانو نه مشوره نشي اخيستل کيدلی ځکه حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د دې سوال هيڅ جواب ورنکړو بلکې حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې ما خو تا ته مخکې ويلې وو چې ته د خلافت دسنبالولو زمانه زيات طاقت لرې ليکن ته په ما باندې غالب شوې او په زور دې خليفه جوړ کړم.(۱)

---

(۱) اخرجه ابن ابی شيبة والبخاری فی تاريخه وابن عساکر والبيهقی ويعقوب بن سفيان کذافی الکنز ۲/۱۸۹، وعزاه فی الاصابة ۵۵/ ۳،۵۹/۱ الی البخاری فی تاريخه الصغير ويعقوب بن سفيان وقال باسناد صحيح وذکر عن علی بن المدينی هذا منقطع لان عبيدة لم يدرک علی القصة ولا روی عن عمرانه سمع منه وقال ولا يروی عن عمر باحسن من هذا الاسناد انتهی واخرجه عبدالرزاق عن طاوس مختصرا کمافی الکنز ۱/۸۰.

# د بحرین د خراج مسئله

حضرت عطیه بن بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت سهل بن منجاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې اقرع او زبرقان دواړه د حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شول عرض یې وکړو چې دبحرین خراج مونږ لپاره مقرر کړه مونږ تاته ددې خبرې ضمانت درکوو چې زمونږ دقوم یو سړی به هم دین اسلام نه نه اوړي، نو حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ داسې کولو ته تیارشو، او د هغوی لپاره یې یو خط ولیکلو او دا معامله د حضرت طلحه بن عبید الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په ذریعه فیصله کړه، دې حضراتو څو شاهدان هم مقرر کړل چې په هغوی کې حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هم وو کله چې دا لیکل حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته راغلل او وې کتل نو هغه په دې باندې د شاهد کیدلو نه انکار وکړو او وې فرمایل چې نه اوس د چادا کرام او دزړه د ساتلو ضرورت نشته دی بیا یې دغه لیکل وران کړل او وئې شلول په دې باندې حضرت طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ډیر غصه شو او حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته راغی او ویې ویل چې تاسو امیر یې یا عمر؟ هغه وفرمایل چې امیر خو حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دی لیکن خبره زما منل ضروري دي حضرت طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خو داسې سوال کړی وو چې په هغې سره د حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په مینځ کې اختلاف وو لیکن حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ جواب د جوړوالا ورکړو د لهٔ دې وجې نه چې دا یې واوریدل حضرت طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چپ شو.(۱)

**په غزواتو کې د صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ سره د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مشوره:**

حضرت عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت عمروبن العاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته دا اولیکل چې رسول الله ﷺ به جنګي کارونو کې مشورې کولې لهٔ دې وجې نه ته هم مشوره کول خپل ځان لپاره لازم وګڼه.(۲)

د دې نه مخکې د حضرت عبدالله بن ابي اوفی په روایت کې دا خبره معلومه شوه چې حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د غزوه روم په باره کې د مشورې اهل خلکو سره مشوره وکړه.

---

۱: اخرجه سیف وابن عساکر عن الصعب بن عطیة بن بلال کذافی منتخب الکنز ۳۹۰/ ۴.

۲: اخرجه الطبراني قال الهیثمي ۲۱۹/ ۵، رواه الطبراني ورجاله قد وثقو انتهی واخرجه ایضاالبزار والعقیل وسنده حسن کمافی الکنز ۱٦۲/ ۲.

# د اهل رأي سره د حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ مشوره

## حضرت عمراو د علي رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا د لور سره د نکاح خبره مشاورينو ته کول

حضرت ابو جعفر رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي: حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته د هغه د لور حضرت ام کلثوم سره د نکاح پيغام ورکړو نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ ووېل: ما دا فيصله کړې ده چې د خپلو لوڼو واده به صرف د جعفر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د بچو سره کوم حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمايل اې علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ! ته د هغې سره زما نکاح وکړه ځکه چې په مخ د ځمکې څوک داسې نشته دې چې ستاسو د لور سره د ښه ژوند تيرولو او هغه اعلي فضيلت حاصلول غواړي چې زه حاصلول غواړم او دا فضيلت مخکې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ بيان کړي دې په دې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمايل ښه ده ما د دې لور نکاح تا سره وکړه نو مهاجرينو نه حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ، حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنهُ حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنهُ، حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنهُ، او حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنهُ د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ د مشورې کسان وو او دا کسان به هر وخت مسجد نبوي ﷺ کې د رسول الله ﷺ د قبر او منبر ترمينځه ناست وو، کله به چې د دنيا د اطرافو نه څه خبره حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته راتلله نو هغه به راغې دوئ ته به يې ووېله: او د هغې په باره کې به يې دوي سره مشوره کوله، نو حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ دوي ته راغې او وې فرمايل ما ته د نکاح مبارکي راکړئ، دوي ورته مبارکي ورکړه او پوښتنه يې ترې وکړه اې اميرالمؤمنين! چا سره دې نکاح وکړه؟ حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمايل چې د حضرت علي ابن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنهُ د لور سره، بيا يې هغوی ته ټوله واقعه بيان کړه او وې فرمايل چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې زما د تعلق او خپلولۍ نه علاوه به هر تعلق او خپلولي به د قيامت په ورځ ختم شي، د رسول الله ﷺ صحبت خو راته حاصل دې او س ما وغوښتل چې د دې نکاح په ذريعه د رسول الله ﷺ سره زما د رشتې تعلق هم قائم شي.(۱)

---

۱: اخرجه ابن سعد وسعيدبن منصور ورواه ابن راهويه مختصرا كذافي الكنز ۹۸/ ۷. واخرجه الحاكم ۱۴۲/ ۳. ايضاً مختصرا وقال هذا الحديث صحيح الاسناد ولم يخرجاه وقال الذهبي منقطع.

**له عبدالله بن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا سره دحضرت عثمان او عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مشوره كول:**

حضرت عطاء بن يسار رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا راغوښتلو او داهل بدر والا وو سره به يې دهغه نه مشوره اخيستله او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا به دحضرت عمرفاروق او حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا دزمانې نه ترمرګه پورې دفتوې وركولو كاركولو حضرت يعقوب بن زيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته به كله اهمه مسئله مخې ته راتله نو هغه به دحضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا نه مشوره اخيستله، او فرمايل به يې چې اې غوپه وهونيكه! يعني دهرې معاملې ژوروالي ته رسيدونيكه! غوپه او وهه او په دې اهمه مسئله كې ښه سوچ وكړه او خپله رايه قائم كړه حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: ماڅوك داسې سړى او نه ليدو چې دحضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا نه زيات حاضر دماغه، زيات علقمند، زيات پوه، او زيات صبرناك وي ما حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ليدلى دې چې هغه به په مشكلو مسئلو كې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا راغوښت او فرمايل به يې چې دايوه سخته مسئله ستا مخكې ده بيا به يې هم دهغه په مشوره باندې عمل كولو حالانكه دهغه څلورو واړو طرفته به دانصارو او مهاجرينو بدري صحابو ګېرد وګېره وه.(۱)

حضرت ابن شهاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي كله چې به هم حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته څه مشكله مسئله پيدا شوه نو هغه به ځوانان راغوښتل او د هغوى دعقل او پوهې تيزي به يې اختياروله او د هغوى نه به يې مشوره اخيستله. (۲)

امام بيهقي رَحِمَهُ اللَّهُ دحضرت ابن سيرين رَحِمَهُ اللَّهُ نه نقلوي چې دحضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ طبيعت په مشورې سره دچليدو والاوو، نو ځينې ځل به يې دښځو نه هم مشوره اخيستله او د هغوى په مشوروكې به چې څه خبره ورته ښه ښكاره شوه په هغې به يې عمل كولو.(۳)

**د مشورې په باره كې دحضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بليغه خطبه:**

حضرت محمد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت زياد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې په اول

---

[۱]: اخرجه ابن سعد.

[۲]: اخرجه البيقهى والسنمانى.

[۳]: كذافى الكنز ۲/۱٦۳.

دمحرم په ۱۴ هجري کې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لښکر ځان سره کړو مدينې منورې نه اووتلو او په داسې ځائ کې ديره شو، چې اوبه وې چې دهغه نوم صرار وو، دا اوبه د مدينې منورې نه درې ميله لرې وې، او لښکر يې هم هلته ايسار کړو خلکو ته پته نه لګيده چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به مخکې ځي يا به هم مدينه کې پاتې کيږي او خلکو به کله چې دڅه خبرې پوښتنه د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه غوښتله نو د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يا د حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په ذريعه به يې پوښتنه کوله او هم د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په زمانه کې د حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لقب رديف مقرر شوي وو او د عربو په ژبه کې رديف هغه ته وايي چې دېو سړي د هغه قائمقام وي او د موجوده امير نه پس د هغه امير جوړيدو اميد وي او کله به چې دې دواړو حضراتو د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه د خلکو د هغه خبرې د پوښتنې کولو همت نه موندلو نو بيا به خلکو حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ واسطه جوړولو نه حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت [عمر] فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه چې تا ته څه خبر د رسيدلی دی؟ او ستا څه اراده ده؟

[نو] حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په چا اعلان وکړو الصلوة جامعه (اې خلکو د مونځ په موضوع جمع شئ) نو خلک د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خواته جمع شو او هغه خلکو ته د [دې] خبر ورکړو، بيا يې کتل چې اوس خلک څه وايي؟ نو ديرو خلکو وويل: تاسو هم لاړ شئ او مونږ هم د ځان سره بوځي، نو حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د خلکو دې رايه سره اتفاق وکړو او د هغوی رايه هم د غسې پريښودل مناسب او نه ګڼړل بلکې دا يې او غوښتل چې دوي به د دې رايه نه په نرمئ او حکمت سره اړوم، که چيرې ضرورت راغی نو او وې فرمايل خپله هم تيار شئ او نور هم تيار کړئ زه به هم تاسو سره ځم ليکن که چيرې ستاسو د [...] رياته نه رايه بله راغله نو بيا به نه ځم بيا يې سړی ولېږلو او د مشورې اهل حضرات يې [را] وغوښتل نو د رسول الله ﷺ خاص صحابه او د عربو مشران يې جمع کړل، حضرت عمر فاروق [رَضِيَ] اللَّهُ عَنْهُ ورته وفرمايل زما خيال دی چې زه هم له دې لښکر سره لاړ شم تاسو په دې باره کې ما ته خپله مشوره راکړئ هغوی ټول را جمع شو او دا مشوره يې ورکړه چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دې د رسول الله ﷺ په صحابو و رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ کې څوک د خپل

ځان په ځائ او ليږي او د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ دي پخپله هم دلته مدينه منوره کښ وي او دهغه سره د کومک لپاره دي لښکر ليږي، بيا کچري فتح اوشي نو بيا به د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ به بل سړی ليږي او هغه سره به بل لښکر ليږي. د غسي کولو سره به دشمن ته غصه راځي او مسلمانان به د غلطئ کولو نه بچ شي او بيا به د الله تعالى وعده پوره شي او د الله تعالى امداد به راشي بيا حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ په چا اعلان وکړو چې الصلوة الجامعة نو مسلمانان حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته راجمع شو، حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ په مدينه منوره کښ پخپل ځائ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ خليفه مقرر کړی وو، دهغه دراغوښتو لپاره حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ سړی اوليږو هغه هم راغی حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنهُ، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ، مقدمة الجيش باندې مقرر کړی او مخکښ يې ليږلې وو، هغه پسې به يې هم سړی ولېږلو او راوې غوښتلو هغه هم راغی ددغې په ميمنه او ميسره باندې يې حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنهُ او حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنهُ مقرر کړی وو، حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ په خلکو کښ اودريدو او دا بيان يې وکړو چې:

بيشکه الله جَلَّ جَلَالُهُ مسلمانان په اسلام باندې راجمع کړل او د هغوی په زړونو کښ يې ديو بل محبت پيدا کړو، او د اسلام په وجه يې خپلو کښ ورونه رونړه جوړ کړل او مسلمانان په خپلو کښ ديو بدن په شان دي يو اندام ته چې څه تکليف رسي نو د هغه باقي ټول اندامو ته هم رسيږي ددې لپاره مسلمانانو له ديو بدن داندامونو پشان کيدل پکار دي، چې ديو مسلمان په تکليف سره ټولو ته تکليف وي او د مسلمانانو هر کار د مشورې والا حضراتو په مشورې سره فيصله کول په کار دي عام مسلمانان د خپل امير تابعدار دي او د شورې والا چې په کوم شي باندې اتفاق وکړي او هغه خوښ کړي نو ټولو مسلمانانو لپاره په هغې عمل کول ضروري دي او څوک چې د مسلمانانو امير جوړشي هغه ددې شورې والو تابع دی دغسې که جنګي تدبيرونو کښ چې کومه شورې والو رايه وي او په دی چې شوری والا راضي وي هغې کښ ټول مسلمانان د هغوی تابع دي اې خلکو! زه هم په تاسو کښ يو سړې يم او زما هم تاسو سره دتلو اراده وه ليکن ستاسو شورې والو زه دتلو نه بند کړم او س زما هم دا رايه ده چې زه په مدينه منوره کښ ايسار شم او په خپل ځائ بل يو کس امير جوړ کړم او ويې ليږم،

اوماچې څوک مخکې لیږلې وو یا روستو مدینه منوره کې مې پرېښودلي وو او راغلي ووم، او چې دلته موجود وو نوما دې ټولو سره دې باره کې مشوره کړې ده حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ځان نه روستو په مدینه منوره کې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خلیفه جوړ کړی وو او راغلی وو او په مقدمة الجیش باندې یې حضرت طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ امیر جوړ کړی وو اواعوص مقام ته یې لیږلې وو نو حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا دواړه هم راغوښتلي وو او په مشوره کې یې شریک کړی وو .(۱)

ابن جریر د حضرت عمر بن عبد العزیز رَحِمَهُ اللَّهُ نه نقلوي کله چې حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د حضرت عبید بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د شهید کیدو خبر ورسیده او داپته او لګیده چې فارس والا د کسري خاندان دیو سړي په امیر جوړولو باندې جمع کیږي نو حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اعلان وکړو . حضرات مهاجرین او انصار یې جمع کړل او هغوی یې ځان سره کړل د مدینې منورې نه بهر اووتل تردې چې صرار مقام ته اورسیدل لاندې یې مختصر حدیث بیان کړو څنګه چې مخکې تیرشوي دې.

**حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته دجنګ په حال کې دحضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خط:**

امام طبراني رحمهُ اللَّهُ د حضرت محمد بن سلام بیکندي رَحِمَهُ اللَّهُ نه روایت کوي چې حضرت عمرو بن معدیکرب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په زمانه جاهلیت کې ډیر کارونه کړی وو ، او هغه د اسلام زمانه هم موندلې وه د رسول الله ﷺ په خدمت کې دیو وفد سره راغلی وو، او حضرت عمر بن الخطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له قادسیه ته لیږلي وو، او هلته هغه د خپلې بهادرئ ډیرې کارنامې خودلې وي، حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته په خط کې دا لیکلي وو چې زه ستا د امداد لپاره دوه سوه کسان درلیږم. یو حضرت عمرو بن معدیکرب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، دویم حضرت طلحه بن خویلد اسدي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دي یعنې دا دواړه دومره بهادر دي چې په دوي کې هر یو دزرو کسانو برابر دی، دې دواړو سره په جنګي کارونو کې مشوره کوه لیکن دوي د چاذمه دارمه جوړوه.(۲)

---

۱: اخرجه ابن جریر ۴/۸۲ من طریق سیف.

۲: قال الهیثمی ۳/۳۱۹ رواه الطبرانی هکذا منقطع الاسناد.

# د امیرانو مقررول

## په اسلام کې لومړي تاکل شوي امیر

حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي کله چې رسول الله ﷺ مديني منورې ته راغی نو جهينه قبيلي خلک د هغوی ﷺ په خدمت کې حاضر شول او عرض يې وکړو چې تاسو مونږ ته راغلی يې لهذا تاسو مونږ سره معاهده نامه وليکئ دې د رسول الله ﷺ هغوی لپاره صلح نامه اوليکله ور يې کړه او بيا هغه جهينه قبيلې والا مسلمانان شول.

حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي: چې رسول الله ﷺ مونږ د رجب په مياشتو کې ولېږلو. او زمونږ شمار سل هم نه وو، او رسول الله ﷺ مونږ ته حکم وکړو چې مونږ په قبيله بنو کنانه باندې حمله وکړو دوي د جهينه قبيلې سره خوا کې آباد وو، نو مونږ په هغوی باندې حمله وکړه د هغوی شمار زيات وو په دې وجه پناهي اخيستلو لپاره جهنيه قبيلې ته لاړو هغوی مونږ ته پناه راکړه ليکن هغوی وويل: تاسو په شهر حرام يعني د احترام قابلې مياشت کې ولې جنګ کوئ؟ عربو به شوال، ذی القعده، ذی الحجة او رجب اشهُر حُرُم يعني د احترام قابلې مياشتې ګڼلې او په دې مياشتو کې به يې پخپلو کې جنګ نه کولو مونږ هغوی ته وويل: مونږ خو صرف هغه خلکو سره جنګ کوو چې هغوی د بلد حرام يعني د احترام قابل ښار مکې نه په شهر حرام يعني د عزت قابلې مياشت کې راويستلي وو. زمونږ ملګرو ديو بل نه پوښتنه وکړه څه رايه موده؟ اوس مونږ ته څه کول پکار دي؟ په دې زمونږ اختلاف راغی بعضې ملګرو وويل: مونږ رسول الله ﷺ ته ورځو او ټوله خبره ورته کوو، څه ملګرو وويل: نه مونږ به دلته يو، ما او زما ملګرو وويل: نه مونږ خو د قريشو قافلې طرفته ځو، او د هغوی د تجارت په سامان قبضه کوو، او د هغه زمانې رواج دا وو چې د کافرانو نه کوم مال بغير د جنګ نه ملاؤشي نو هغه به ټول په ټوله د هغه مسلمانانو وي چا چې د غه مال د کافرانو نه اخيستی وي، نو مونږ خو هغه قافلې طرفته روان شو، او زمونږ باقي ملګري د رسول الله ﷺ په خدمت کې واپس شول او ټوله قصه يې ورته تېره کړه نو رسول الله ﷺ په غصه کې اودريدو او مخ يې سور شو. او وې فرمايل تاسو زما د خوا نه يو ځاي تلي وئ او اوس جدا جدا واپس راځئ، هم دې جدا کيدو تاسو نه مخکې خلک تباه کړي دي اوس به زه په تاسو باندې داسې امير جوړوم چې تاسو نه غوره خو نه وي ليکن تاسو نه زيات لوږه

اوتنده برداشت کونکی وي بیا رسول الله ﷺ حضرت عبد الله بن جحش رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زمونږ امیر کړو، نو دا دټولو نه اولنۍ صحابي دي چې په اسلام کې امیر جوړ کړی شو .(۱)

**د لسوکسانو لپاره امیر ټاکل:**

د حضرت حبیب رَحِمَهُ اللهُ پلار حضرت شهاب عنبري رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د تستر ښار دروازې ته دټولو نه اول ما اورلګولې وو، او په دې جنګ کې حضرت اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په غشي لګیدلې وو، چې په هغې سره هغه زخمي شو او په ځمکه غورزیدلي وو، کله چې مسلمانانو تستر فتح کړو، نو حضرت اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زه د خپل قوم دلسو کسانو امیر جوړ کړم. (۲)

**د سفر لپاره دامیر ټاکل:**

حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي کله چې په سفر کې درې کسان وي نو هغو ته پکار دي چې په خپلو کې یو کس امیر جوړ کړي دغسې دامیر جوړولو رسول الله ﷺ حکم فرمایلي دي.(۳)

## د امارت او خلافت ذمه واري کوم سړی اخیستی شي؟

### په جماعت کې چې څوک ډیر په قرآن پوهیږي د امیرټاکل کیدو مستحق دي

حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: رسول الله ﷺ یوه ډله ولیږله چې د هغوی شمار زیات وو په هغوی کې چې هر یو کس ته څومره قرآن یاد وو هغه رسول الله ﷺ د دوي نه واوریدو نو اوریدو اوریدو سره یو داسې سړی ته راغی چې په دوي کې دټولو نه کم عمر ځښتن وو، رسول الله ﷺ وفرمایل چې اې فلانکیه! تاته څومره قران پاک یاد دی هغه وویل: فلانې فلانې سورت او سورت بقره مې یاده ده، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه، چې آیا تا سورة البقره یاده ده؟ هغه وویل: او، هغوی ﷺ وفرمایل چې ځه ته ددې جماعت امیر شوې، ددې جماعت په سردارانو کې یو کس وویل: ما سورة البقره صرف په دې یاد نکړو چې زه به شاید په تهجد وکې دا اونه ویلی شم، رسول الله ﷺ وفرمایل تاسو قرآن پاک زده کوئ اولولی یې . ځکه چې څوک قرآن زده کړي او هغه وایي د هغه مثال د هغه کڅوړې پشان دی چې

---

۱: اخرجه احمدواخرجه ایضا ابن ابی شیبة کمافی الکنز ٦۰/ ۷، والبغوی کمافی الاصابة ۲۸۷/ ۲، واخرجه ایضاً البیهقی فی الدلائل وزاد بعدلم تقاتلون الشهرالحرام فقالوا نقاتل فی الشهر الحرام من اخرجنا من البلد الحرام کمافی البدایة ۲۴۸/ ۳، قال الهیثمی ٦٦/ ٦، وفیه المجالدبن سعید وهوضعیف عند الجمهور وثقه النسائی فی روایة وبقیة رجال احمد رجال الصحیح انتهی.

۲: اخرجه ابن ابی شیبة واسناده صحیح کذافی الاصابة ۱۵۹/ ۲.

۳: اخرجه البزار وابن خزیمة والدارقطنی والحاکم کذافی الکنز ۳۲۴/ ۲.

د مشکو نه ډکه وي چې د هغې خوشبوئي په ټول کور کې خوريږي. او چاچې قرآن پاک زده کړو او بيا اوده شو د هغه مثال د هغه کڅوړي په شان دی چې د هغې خوله تړلې شوې وي.(۱)

حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله ﷺ يو جماعت يمن ته ولېږلو او په هغوی کې يو صحابي يې د هغوی امير مقرر کړو چې د هغه عمر په ټولو کې کم وو، هغه خلک څو ورځې هلته ايسار وو او ولاړ نه شول، د دغې ډلې يو سړي سره د رسول الله ﷺ ملاقات وشو وې فرمايل چې اې فلانکيه! په تاسو څه اوشو؟ تاسو تراوسه پورې ولې نه ئې تلې؟ هغه عرض وکړو چې اې د الله رسوله ﷺ! زمونږ د امير په پښه کې تکليف دی نو رسول الله ﷺ هغه امير ته ورغی او اووه ځله يې بسم الله وبالله اعوذبالله وقدرته من شرمافيها، وويل: او په هغه باندې يې دم کړه هغه سړی هم هغه وخت ښه شو، يو بوډا سړي د رسول الله ﷺ په خدمت کې عرض وکړو اې د الله رسوله ﷺ! آيا تاسو دې زمونږ امير جوړوئ حالانکه دې مونږ ټولو کې د کم عمر څښتن دی؟ رسول الله ﷺ د هغه زيات قرآن پاک ويلو ذکر وکړو هغه بوډا سړي عرض وکړو اې د الله رسوله! که چېرې ماته د دې خبرې خطره نه وي چې زه به د ستي له وجې اوده پاتې شم او قرآن به په تهجد وکې او نه ويلی شم نو ما به دا خامخا ياد کړی وی، رسول الله ﷺ وفرمايل چې د قرآن پاک مثال د هغې کڅوړې په شان دی چې هغه تاسو د ښه خوشبويه مشکو نه ډکه کړې وي د غسې چې قرآن پاک ستا په سينه کې وي او ته يې لولې.(۲)

## د اصحاب بدر نه د امير په ټاکلو د ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نارضايتي او د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول:

حضرت ابوبکر بن محمد انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل شول چې اې د الله د رسول ﷺ خليفه! ته د بدر والا اميران ولې نه جوړوې؟ هغه وفرمايل چې زه د هغوی مرتبه پيژنم، ليکن زه دا نه بولم، چې زه هغوی د دنيا په گندگئ کې گنده کړم.(۳)

حضرت عمران بن عبد الله وايي چې حضرت ابي ابن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمر بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمايل چې څه اوشو چې ته ما امير نه جوړوې؟ حضرت

---

۱: اخرجه الترمذی وحسنه وابن ماجة وابن حبان واللفظ للترمذی كذافی الترغيب ۱۲/ ۳.

۲: اخرجه الطبرانی قال الهيثمی ۱٦۱/ ۷، وفيه يحيی بن سلمه بن كهيل ضعفه الجمهور وثقه ابن حبان وقال فی احاديث ابنه عنه مناكير قلت ليس هذا من رواية ابنه عنه انتهی.

۳: اخرجه ابونعيم فی الحلية وابن عساكر كذافی الكنز ۱۴٦/ ۱.

عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې دا زما خوښه نه د چې ستا دین خراب شي.(۱)

**د امیرانو په تاکلو کې د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خط او د هغوئ په صفات**

حارثه بن مضرب رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې حضرت عمربن الخطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مونږ له کوفې ته داخط ولیکلو :(اما بعد: فاني قدبعثت الیکم عماربن یاسر امیرا، و عبدالله بن مسعود معلما و وزیرا، و هما من النجباء من اصحاب محمّد ﷺ من اهل بدر، فتعلموا منهما، و اقتدوا بهما، و انی آثرتکم بعبدالله علی نفسی. و بعثت عثمان بن حنیف علی السواد و رزقتهم کل یوم شاة، فاجعل شطرها و بطنها لعماربن یاسر و الشطر الثانی بین هؤلاء الثلاثة).

ترجمه: امابعد ! زه ستاسو لپاره حضرت عماربن یاسر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ امیر او حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ معلم او وزیر جوړوم، او درلیږم یې، دا دواړه حضرات د حضرت محمد ﷺ په صحابو کې دا وچتې مرتبې څښتنان وو، او په غزوه بدر کې شریک شوي دي لهذا تاسو د دې دواړو نه دین زده کړئ، او د دې دواړو اتباع کوئ ماته په مدینه منوره کې د حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دیر ضرورت وو لیکن ما خپل ضرورت ستاسو نهخ قربان کړو. حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تاسو ته درلیږم او زه حضرت عثمان بن حنیف د عراق د کلو د ځمکو د پیمایش کولو لپاره لیږم ما د دې حضراتو لپاره روزانه وظیفه یو د چیلئ مقرر کړې ده د چیلئ نیمه حیصه او اینه او ګردې وغیره حضرت عماربن یاسر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته به ورکولی شي ځکه چې هغه امیر دی هغه سره به میلمانه زیات وي او باقي نیمه حیصه به د دې دریو حضراتو ته ورکولی شي، دوه خو حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت عثمان بن حنیف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دي، او دریم غالباً حضرت حذیفه بن یمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د ې چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت عثمان بن حنیف سره د ځمکې پیمایش لپاره لیږلي وو.(۲)

حضرت شعبي رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل نن صبا زه د مسلمانانو دیو کار په وجه ډیر فکرمند یم. او ښایئ چې زه د دې کار امیر څوک مقرر کړم؟ خلکو وویل: عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مقرر کړئ هغه وفرمایل چې هغه کمزوری دی.

---

۱: اخرجه ابن سعد ۶۰/ ۳.

۲: اخرجه ابن سعد والحاکم وسعیدبن منصور کذافي الکنز ۳۱۴/ ۲. واخرجه الطبراني مثله الاانه لم یذکر وبعثت عثمان الی اخره قال الهیثمي ۲۹۱/ ۹، رجاله رجال الصحیح غیرحارثه وهوثقة انتهی. اخرجه البیهقي ۱۳۶/ ۹. ایضا بسیاق اخر.

خلکو وویل: فلانی صاحب مقرر کړئ هغه وفرمایل چې هغه کمزوری دی خلکو وویل: فلانی صاحب مقرر کړئ هغه وفرمایل چې هغه ته ضرورت نشته، خلکو پوښتنه وکړه چې تاسو څنګه سړی غواړئ؟ حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل کله چې امیروي نو داسې عاجزئ سره اوسي لکه چې هغه په خلکو کې یو عام سړی دی او کله چې هغه امیر نه وي نو هغه داسې فکر او ذمه وارئ سره څي ګویا هم هغه امیر دی خلکو وویل: زمونږ د علم مطابق خو د غسې سړی د ربیع بن زیاد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه علاوه بل څوک نه دی، حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل تاسو صحیح وویل: .(١)

## په امارت کې څوک کامیابه کېدای شي

حضرت ابو وائل شقیق بن سلمة رَحِمَهُ اللَّهُ چې حضرت عمربن الخطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت بشربن عاصم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دهوازن په صدقاتو اخیستو باندې عامل مقرر کړی وو لیکن حضرت بشر رَحِمَهُ اللَّهُ دهوازن نه صدقې اخیستو لپاره لانه ړو هغه سره دحضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ملاقات اوشو، پوښتنه یې ترې وکړه ته هوازن ته ولې لانه ړې؟ آیا زمونږ خبره اوریدل اومنل ضروري نه دي؟ حضرت بشر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل: ولې نه لیکن مادرسول الله ﷺ نه اوریدلي دي چې څوک دمسلمانانو دیوکارذمه دارجوړ شو هغه به دقیامت په ورځ راویستلی شي اودجهنم په پل باندې به اودرولې شوی که چېرې هغه خپله ذمه واري په ښه طریقه اداکړي وي نو هغه به نجات ومومي او که چېرې هغه خپله ذمه واري په ښه طریقه باندې نه وي اداکړي نوپل به په هغه باندې مات شي، او اویاکالو پورې به په دوزخ کې روان وي په دې باندې ابوذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل: آیاتا د رسول الله ﷺ نه دا حدیث نه دی اورېدلی؟ حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې نه، حضرت ابوذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل: زه دې خبرې ګواهي ورکوم چې ما د رسول الله ﷺ نه دا اوریدلي دي چې څوک یو مسلمان ذمه دار جوړ کړي هغه به دقیامت په ورځ ددوزخ په پل ودرولی شي، که چېرې هغه دې ذمه وارئ کې صحیح وو نو ددوزخ نه به نجات بیامومي، او که چېرې هغه په دې کې صحیح نه وو نوپل به په ده باندې مات شي او هغه به اویاکالو پورې دوزخ کې روان وي او هغه دوزخ تور

---

(١): اخرجه ابواحمد الحاكم في الكنى كذافي الكنز ١٦٤/ ٣.

اوتياره ده ته اووايه چې دې دوو حديثونو كې كوم يو حديث اوريدوسره ستاړه ته زيات تكليف رسيدلى دى ؟ هغه وفرمايل چې دواړو حديثونو اوريدوسره زما زړه ته تكليف رسيدلى دى ، ليكن كله چې په خلافت كې دومره زياته خطره ده نودابه څوک قبلوئ؟ حضرت ابوذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل: دابه هغه څوک قبلوي چې دهغه دپوزې پريكولو اودمخ په ځمكه لګولو يعنې دهغه دذليله كولو الله تعالى اراده كړي وي بهرحال زمونږ دعلم مطابق ستاسو په خلافت كې خير اوبركت دې اوداكيداي شي چې تاسو ددې خلافت ذمه دار داسې سړى جوړ كړئ چې دعدل اوانصاف نه كار وانه خلي نوتاسوبه هم ددې ګناه نه بچ نشئ.(۱)

# د امارت له قبلولو نه انكار كول

## د امارت نه دحضرت مقدادبن اسودرَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د انكار قصه:

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: يو ځل رسول الله ﷺ حضرت مقداد بن اسود داسو سورو ديوټولګې اميرجوړ كړو، كله چې دې واپس راغى نورسول الله ﷺ ترې پوښتنه وكړه چې تا امارت څنګه اوموندلو ؟ هغه وويل: دې خلكو به زه اوچتولم اوكينولم يعنې زما يې ښه احترام كولو چې له هغې وجې اوس ماته داسې معلوميږي چې هغه مخكينې مقدار نه يم پاتې شوى، زما دعاجزې والاكيفيت كې كمى راغلى دى ، رسول الله ﷺ وفرمايل واقعي چې امارت هم داسې شى دى حضرت مقداد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل: په هغه ذات مې دې قسم وي چا چې تاسوته حق دركړى دى او راليږلى يې ،آئنده زه هيڅكله دڅه كار ذمه دارنه يم، نودې نه پس به خلكو هغه ته وويل: تاسو مخكې راشئ مونږته مونځ راكړئ نوده به صفا انكار كولو، ځكه چې په مانځه كې امام جوړيدل امامت صغري ده.(۲)

اوپه روايت كې دي چې حضرت مقداد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل: زه به په سورلى سورولى شوم اودسورلى نه به كوزولې شوم چې په دې سره ماته داسې معلومه شوه چې ماته په دې خلكو باندې فضيلت حاصل دې رسول الله ﷺ وفرمايل چې امارت خوهم داسې شى دى

---

۱: اخرجه الطبراني كذافي الترغيب ۴۴۱/ ۳، قال الهيثمي ۲۰۵/ ۵، رواه الطبراني وفيه سويد بن عبدالعزيز وهومتروک انتهى واخرجه ايضاعبدالرزاق وابونعيم وابوسعيد النقاش والبغوي والدارقطني في المتفق من طريق سويدكمافي الكنز ۱۶۳/ ۳، واخرجه ابن ابي شيبة وابن مندة من غير طريق سويد كمافي الاصابة ۱۵۲/ ۱.

۲: اخرجه البزار قال الهيثمي ۲۰۱/ ۵، وفيه سوار بن داؤد ابوحمزه وثقه وابن حبان و ابن نعيم وفيه ضعف وبقية رجاله رجال الصحيح واخرجه ابونعيم في الحلية ۱۸۴/ ۱، عن انس رضي الله عنه بنحو.

اوس تاته اختيار دی که غواړې دا آئنده لپاره قبول کړه يا يې پرېږده، حضرت مقداد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل: په هغه ذات مې دې قسم وي چاچې ته په حقه سره راليږلی يې چې آئنده به زه د دوو کسانو امير هم نشم.(۱)

حضرت مقداد بن اسود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله ﷺ يو ځلې زه يو ځاي امير جوړ کړم اووې ليږلم کله چې زه واپس راغلم نوماته يې وفرمايل چې ته خپل ځان څنګه مومې؟ ما وويل: زما کيفيت ورو ورو داسې شو چې ماته خپل ټول ملګري خپل خادمان ښکاره شو، او په الله تعالی قسم! دينه پس به زه هيڅکله د دوو کسانو امير هم نشم.(۲)

يو صاحب بيان کوي چې يو سړی رسول الله ﷺ ديو ټولګې امير جوړ کړو. کله چې هغه کار وکړو او واپس راغی نو رسول الله ﷺ ترې پوښتنه وکړه چې تا امارت څنګه بيامونده لو؟ هغه وويل: زه خو د جماعت د بعضې کسانو پشان ووم، کله چې به زه سوريدم نو ملګري به هم سوريدل او کله به چې زه د سورلې نه کوزيدم نو هغوی به هم کوزيدل. رسول الله ﷺ وفرمايل چې عام طور باندې هر بادشاه داسې ظالمانه کار کوي چې په هغې سره هغه د الله تعالی د ناراضګۍ دروازې ته رسيږي ليکن چې کوم بادشاه الله پخپل حفاظت کې واخلي هغه د دې نه بچ کيږي بلکې هغه خو د الله تعالی د عرش سورې ومومي هغه سړی وويل: په الله تعالی قسم! اوس به نه زه ستاسو له طرفه او نه د بل چا له طرف امير جوړيږمه په دې باندې رسول الله ﷺ دومره اوخاندل چې غاښونه مبارک يې ښکاره کيدل.(۳)

**د امارت په باره کې حضرت رافع طائی ته دحضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وصيت:**

حضرت رافع طائي رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې زه په يو غزا کې د حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره ووم کله چې مونږ واپس شو، نوما وويل: اې ابوبکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ! ماته څه وصيت وکړئ هغوی وفرمايل چې فرض مونځ پخپل وخت باندې کوه، دخپل مال زکات په خوشحالئ سره اداکوه، د رمضان المبارک روژې نيسه، د بيت الله حج کوه، او ددې خبرې يقين ساته چې په اسلام کې هجرت کول ډير ښه عمل دی، او په هجرت کې جهاد ډير ښه

---

۱: اخرجه ايضاً عن المقداد مختصراً.

۲: اخرجه الطبراني ۲۰۱/ ۵، رجاله رجال الصحيح خلاعمير بن اسحاق وثقة ابن حبان وغيره وضعفه ابن معين وغيره وعبدالله ابن احمد ثقة مامون.

۳: عند الطبراني قال الهيثمي ۲۰۱/ ۵، وفيه عطاء بن السائب وقد اختلط وبقية رجاله ثقات انتهى.

عمل دی، او امیر مه جوړیږه، بیا یې وفرمایل چې دا امارت چې تاته نن مزیدار ښکاري، ډیرزر به دا خوږ شي او دومره به زیات شي چې تااهله خلک به هم دا حاصلوي او دا یاد اوساته چې څوک هم امیر جوړشي د هغه حساب به د ټولو خلکو نه لوی وي، او په ده باندې به عذاب زیات سخت وي، او څوک چې امیرنه جوړیږي د هغه حساب به د ټولو خلکو نه اسان وي او د هغه عذاب به د ټولو نه کم وي، ځکه چې امیرانو ته په مسلمانانو باندې د ظلم کولو د ټولو نه زیاتی موقع ملاویږي، او څوک چې په مسلمانانو باندې ظلم کوي هغه د الله تعالی وعده ماتوي ځکه چې دا مسلمانان د الله تعالی ګاونډیان او بندګان دي په الله تعالی قسم! په تاسو کې چې دیو ګاونډي په چیلۍ یا اوښ څه مصیبت راشي یعني د هغې چیلی یا اوښ پټولی شي یا څوک هغه وهي یا یې تنګوي نو د دې ګاونډې په همدردۍ تاسو حمایت کې د غصې له وجې نه ټوله شپه د هغه رګونه پړسیدلی وي او وایې چې زما د ګاونډې چیلۍ یا اوښ باندې فلانی مصیبت راغلی دی کله چې انسان د خپل ګاونډي په وجه دومره غصه کیږي نو الله تعالی د خپلو ګاونډیانو د خاطره د غصه کیدو زیات حقدار دی.(۱)

## د حضرت ابوبکر او حضرت رافع رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قصه:

حضرت رافع رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: رسول الله ﷺ حضرت عمرو بن العاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د ذات السلاسل غزا دیو لښکر امیر جوړ کړو او وې لیږلو، او هغه سره یې په دې لښکر کې حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، او لوی لوی جلیل القدر صحابه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ هم لیږلي وو، نو دا حضرات مدینې منورې نه روان شول او تلل تلل د طي قبیلې په دوو غرونو باندې یې دیره واچوله، حضرت عمرو بن العاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې څوک لاره ښودونکي او لټوۍ خلکو وویل: زمونږ د علم مطابق خو د رافع بن عمرو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه علاوه بل څوک داسې سړی نشته دې ځکه چې هغه ربیل وو، راوي وایي چې ما د خپل استاذ حضرت طارق نه پوښتنه وکړه چې ربیل څه ته وایي؟ هغوی وویل: ربیل هغه دا کوته ویل چې په یواځې حمله وکړي او ټول قوم لوټ کړي. رافع وویل: کله چې مونږ د خپل غزا نه فارغ شو او د کوم ځای نه چې مونږ تلې وو هغه ځای ته واپس ورسیدلو نو ماته په حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کې ډیر ښه صفتونه ښکاره شول چې له هغې وجې هغه ما د ځان لپاره خوښ

---

(۱): اخرجه ابن المبارک فی الزهد کذافی الکنز ۱٦۲/ ۳.

کړو، اوزه هغه ته ورغلم او عرض مې وکړو چې اې حلاله روزي خوړونکيه! ما د ښه صفتونو په وجه ستا په ملګرو کې ته د خپل ځان لپاره خوښ کړې يې، ځکه ته ما ته داسې شي او ښايه چې د هغې پابندي کولو سره زه په تاسو خلکو کې شمار شم، او ستاسو پشان شم، حضرت ابوبکرصديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل: آيا ته خپلې پنځه ګوتې يادساتلې شې؟ ما وويل: او، هغه وفرمايل چې د دې خبرې ګواهي وکړه چې د الله تعالی نه سيوا څوک معبود نشته هغه يو اځې دی، د هغه څوک شريک نشته دی، رسول الله ﷺ د هغه بنده او رسول دی، مونځ قائموه، او که چېرې مال درسره وي نو زکات ورکوه، د بيت الله حج وکړه، او د رمضان المبارک روژې نيسه، ايا ته دا خبرې يادې شوې؟ ما وويل: او، هغه وفرمايل يوه خبره بله هم ده. او هغه داده چې د دوو کسانو هم چېرې امير مه جوړيږه، ما عرض وکړو چې ايا دا امارت او س د اهل بدر نه علاوه بل چا ته هم ورکول کيداى شي الله تعالی کله چې خپل رسول الله ﷺ را وليږلو نو د هغه په محنت سره خلک په اسلام کې داخل شو، ډير خلک خوښه خپله خوښه په اسلام کې داخل شو هغوی ته الله تعالی هدايت ورنصيب کړی وو ليکن بعض خلک داسې دې چې هغوئ توري په اسلام راوړلو باندې مجبور کړل بهر حال اوس مسلمانان د الله تعالی په پناه کې راغلی دی دوي الله تعالی ګاونډيان او د هغه په ذمه وارې کې دي کله چې څوک امير جوړيږي او خلک په يو بل باندې ظلم کوي او د امير د ظالم نه د مظلوم بدله نه اخلئ نو بيا د داسې امير نه الله تعالی بدله اخلئ لکه څنګه چې په تاسو کې ديو ګاونډي چيلئ په ظلم سره نيولی شي نو تول ورځ د دغه ګاونډي په حمايت کې د غصې له وجې نه د هغه رګونه پرسيدلي وي هم د غسې الله تعالی هم د خپل ګاونډي پوره مرسته کوي حضرت رافع رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې زه يو کال په خپل کور کې پاتې شوم بيا حضرت ابوبکرصديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خليفه شو زه په سورلئ سور شوم او د هغه په خدمت کې حاضر شوم او ما هغه ته وويل: زه رافع يم، زه په فلانکي ځائ کې ستا رهبر ووم هغه وفرمايل چې او! ته ما او پيژندلې ما وويل: تا خو زه د دوو سړو هم امير جوړيدو نه منع کړې ووم او اوس په خپله تاسو د محمد ﷺ د ټول امت امير جوړ شوي يې؟ هغوئ وفرمايل چې او! ليکن يادساته کوم سړی چې د دې مسلمانانو کې د الله تعالی د کتاب والاحکم نه چلوي په هغه به د الله تعالی لعنت وي.(۱)

---

(۱) اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ۲۰۲/ ۵ رجاله ثقات ... 

**صحابه كرامو رَضِيَ اللهُ عَنهُم به جهاد ته په امارت ترجيح وركوله:**

حضرت سعيد بن عمر بن سعيد بن العاص رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زما تره حضرت خالد بن سعيد بن العاص او حضرت عمرو بن سعيد بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنهُم ته كله چې د رسول الله ﷺ د وفات خبر اورسيده نو دا حضرات په مختلفو علاقو كې اميران وو د خبر ملاويدو سره دې حضراتو خپلې، خپلې وظيفې پرېښودلې مدينې منورې ته واپس راغلل دوئ ته حضرت ابوبكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمايل چې څوک د رسول الله ﷺ داجوړ شوو اميرانو نه زيات د امير جوړيدو حقدار نه دی لهذا تاسو په خپلو علاقو كې خپلو وظيفو ته واپس لاړ شئ دغه حضراتو وويل: اوس مونږ د رسول الله ﷺ نه پس د چا د طرفه هم امير جوړيدو لپاره تيار نه يونو دا حضرات د الله تعالى په لاره كې شام ملک ته لاړل او هلته ټول شهيدان شو د دې حضراتو په طبعيتونو كې د امارت نه ځنګ كول وو او د الله تعالى په لاره كې د ځان د قربانئ وركولو شوق وو.(۱)

**د عمر او ابان بن سعيد رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا قصه او علاء بن حضرمي رَضِيَ اللهُ عَنهُ بحرين ته لېږل:**

حضرت عبد الرحمن بن سعيد يربوع وايي كله چې حضرت ابان بن سعيد رَضِيَ اللهُ عَنهُ د خپلې علاقې امارت پرېښودل و مدينې منورې ته راغلى نو هغه ته حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمايل تا ته دا حق نه دى حاصل چې ته د خپل وخت د امام د اجازت نه بغير خپل كار پرېږدې او راشې او بيا خصوصاً په دې حالاتو كې چې څلورو واړه طرفو ته ارتداد خوريږي او د دشمنانو په مدينه منوره باندې حملې كولو خبرونه راځي ليكن دا سې معلوميږي چې تاسو سره د خپل وخت د امام ويره نشته ځكه تاسو زړه ور شوي يې حضرت ابان وويل: په الله تعالى قسم د رسول الله ﷺ نه پس اوس زه د چا طرفه هم امارت قبلولو لپاره تيار نه يم كه چېرې ما د رسول الله ﷺ نه پس د چا طرفه امارت قبلولى نو د حضرت ابوبكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنهُ د طرفه به ما ضرور قبول كړى وو، ځكه چې هغه ته ډېر زيات فضائل حاصل دى او هغه د ټولو نه مخكې ايمان راوړى دى اوزړو مسلمان دى ليكن ما دا فيصله كړيده چې د رسول الله ﷺ نه پس به د چا طرفه نه هم امارت نه قبلوم نو حضرت ابوبكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنهُ د خپلو ملګرو سره مشوره وكړه چې اوس څوک بحرين ته اوليږو نو حضرت عثمان بن

---

(۱) اخرجه الحاكم وابونعيم وابن عساكر كذافي الكنز ۱۲٦/ ۳.

عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وویل: ته هغه سړی اولیږه چې رسول الله ﷺ بحرین ته لیږلی وو او هغه د بحرین خلک مسلمانان او تابعدار جوړ کړل رسول الله ﷺ ته یې راوستلي وو بحرین والا هغه بنه پیژني او هغه بحرین والا او د هغوی علاقه ورته بنه معلومه ده او هغه حضرت علاء بن حضرمي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دې رایې سره اتحاد وکړو او حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته یې عرض وکړو چې تاسو بحرین ته واپس لیږلو باندې حضرت ابان بن سعید بن عاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مجبور کړئ ځکه چې دې بحرین ته څو کرته تلی دی لیکن دهغه مجبورولو او لیږلو نه حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ انکار وکړو او وې فرمایل زه به داسې هیڅ کله او نه کړم چې کوم سړی وایې چې زه به د رسول الله ﷺ نه پس د چا طرفه امیر نه جوړیږم زه هغه په امارت قبلولو باندې نه شم مجبورولی او حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت علاء بن حضرمي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د لیږلو فیصله وکړه.(۱)

**له امارت نه د حضرت ابوهریرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ انکار:**

حضرت ابوهریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایې چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زه د امیر جوړولو لپاره راوغوښتلم ما د امارت قبلولو نه حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته انکار وکړو حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل ایا ته امیر جوړیدل بد ګڼې حالانکه دا هغه سړي غوښتلی وو چې تا نه غوره وو حضرت ابوهریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل: چا؟ حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې حضرت یوسف بن یعقوب عَلَيْهِ السَّلَامُ حضرت ابوهریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل: حضرت یوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ خو په خپله د الله تعالی نبي وو او د الله تعالی د نبي ځوی وو هغه ته د داسې کولو حق حاصل وو زه خو د امیمه نومې ښځې زوی ابوهریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یم او امیر جوړیدو کې ماته د دریو او د دوو یعنې د پنځو خبرو ویره ده حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې پنځه دې ولې نه ویلې؟ هغه وویل: دوه خبرې خو دا دی چې زه د علم نه بغیر څه خبره وکړم او څه غلطه فیصله وکړم چې امیر جوړ شم نو زمانه دا دوه غلطیانې کیدای شي چې د هغې په نتیجه کې ماته دا درې سزاګانې د امیر المؤمنین د طرفه راکیدای شي چې زما په ملا باندې کوړې (درې) او وهلې شي او زمانه مال واخیستلې شي او زما بې عزتي وکړی شي.(۲)

---

۱: عندابن سعد کذافی الکنز ۱۳۲/ ۳.

۲: اخرجه ابونعیم فی حلیة ۳۸۰/ ۱، واخرجه ایضاً ابوموسی فی الذیل قال فی الاصابة ۲۴۱/ ۴، وسنده ضعیف جدا ولکن اخرجه عبدالرزاق عن معمر عن ایوب فقوی انتهی و اخرجه ابن سعد ۵۹/ ۴، عن ابن سیرین عن ابی هریرة بمعناه مع زیادة فی اوله.

**د خلکو ترمنځ دقضاوت نه د ابن عمر رضي الله عنهما انکار:**

حضرت عبد الله بن موهب رحمه الله وايي چې حضرت عثمان رضي الله عنه حضرت ابن عمر رضي الله عنه ته وفرمايل اې اميرالمؤمنين! ايا تاسو به ماد دينه معاف اوساتې؟ هغوئ وفرمايل چې نه... زه تاته قسم درکوم چې ته لاړشه او د خلکو قاضي شه، حضرت ابن عمر رضي الله عنه وويل: تاسو چالاکي مه کوئ ايا تاسو د رسول الله ﷺ نه دا اوريدلي دي چې چا د الله تعالى نه پناه او غوښتله هغه په ډيره لويه پناه کې راغى؟ حضرت عثمان رضي الله عنه وفرمايل چې او، حضرت ابن عمر رضي الله عنه وويل: زه دې قاضي ولې نه جوړيږم حالانکه ستا پلار خو قاضي وو، حضرت ابن عمر رضي الله عنه وويل: ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي چې څوک قاضي شو او بيا يې د نه پوهيدو په وجه غلطه فيصله وکړه نو هغه دوزخي دې، او کوم قاضي چې عالم وي او د حق او انصاف فيصله وکړي هغه به هم دا غواړي چې هغه الله تعالى ته ورشي برابر په برابر خلاص شي، چې نه ورته انعام ورکړي او نه څه سزا، او س ددې حديث اوريدو نه پس هم زه د قاضي کېدو فکر نشم کولى.(۱)

د امام احمد رحمه الله په روايت کې ددې نه پس دا دي چې حضرت عثمان رضي الله عنه د هغه عذر قبول کړو او ورته يې وفرمايل چې ته خو مې معاف کړې ليکن ته بل چا ته دا خبره مکوه نو که چېرې ټولو انکار وکړو نو بيا به په مسلمانانو کې څوک قاضي جوړيږي او دا اجتماعي ضرورت به څنګه پوره کيږي؟

حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمايي: حضرت عثمان رضي الله عنه زه قاضي جوړول غوښتل نو ما معذرت وکړو او ومې ويل چې ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي چې قاضيان په درې قسمه دي، يو يا يې د خپل خواهش مطابق فيصله وکړه د حق مطابق فيصله وکړه هغه به نجات بيامومي.(۲)

**د دومة الجندل په باره کې د حضرت ابن عمر او حضرت حفصې رضي الله عنهم قصه:**

حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما فرمايي: په کومه ورځ چې حضرت علي رضي الله عنه

---

۱: اخرجه الطبراني في الكبير الاوسط قال الهيثمي ۱۹۳/۴، رواه الطبراني في الكبير الاوسط والبزار واحمد كلاهما باختصار ورجاله ثقات.

۲: عندالطبراني قال الهيثمي ۱۹۳/ ۴ رواه الطبراني في الاوسط والكبير ورجال الكبير ثقات ورواه ابويعلى بنحوه انتهى، واخرجه ابن سعد ۱۰۸/ ۴. عن عبدالله بن موهب بمعناه مطولاً.

او حضرت معاويه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دومة الجندل كې جمع شول (دا واقعه د حضرت حسن بن علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او د حضرت معاويه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ده، راوي غلط شوى دى) نو په هغه ورځ ماته زما خور ام المؤمنين حضرت حفصه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وويل: ستا لپاره د امناسب نه دي چې ته د داسې صلح نه روستو پاتې شي چې په ذريعه يې الله تعالى د رسول الله ﷺ د امت په مينځ كې صلح راولي، تاسو د رسول الله ﷺ د سخرګنۍ سره تعلق ساتئ او د امير المؤمنين حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ځوى يې، دې نه روسته حضرت معاويه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په يو ديرلوئ بختي اوښ باندې يعنې خراسانې اوښ باندې راغى او وې ويل چې څوك د خلافت طمعه او اميد كوي؟ او څوك د دې لپاره خپل سرا وچتوي؟ حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فرمايي دې نه مخكې چېرې زما په زړه كې د دنيا خيال نه و راغلى، ما فكر وكړو چې هغه ته ورشم او دا ورته او وايم چې د دې خلافت طمع هغه سړى كوي چې ځا ستا پلار د اسلام په وجه وهلى وو او په وهلو وهلو يې تاسو د واړه په اسلام كې داخل كړي وئ په دې سره حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا خپل ځان مراد اخلي ليكن بيا ماته جنت او د هغې نعمتونه رايادشو نو ما هغه ته د دې خبرو كولو اراده پرېښودله.(١)

حضرت ابو حصين وايي چې حضرت معاويه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې د دې امر خلافت زمونږ نه زيات حقدار او مستحق دى؟ حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فرمايي زما په زړه كې راغلل چې زه ووايم چې د خلافت ستا نه زيات حقدار هغه څوك دى چاچې ته او ستا پلار د اسلام په وجه وهلي وئ، يعنې پخپله حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا ليكن ماته د جنت نعمتونه رايادوي، او د دې خبرې ويره شوه چې چېرته د داسې ويلو سره فتنه جوړه نشي.(٢)

حضرت زهري رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايي كله چې حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او حضرت معاويه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ جمع شول نو حضرت معاويه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اودريدو وې فرمايل چې د دې امر خلافت زمانه زيات حقدار او مستحق څوك دى؟ حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فرمايي ما اراده وكړه چې زه ودريږم او ووايم چې د دې خلافت ستا نه زيات حقدار او مستحق هغه څوك دى چاچې ته

---

١: اخرجه الطبراني فى الكبيرقال الهيثمى ٢٠٨/ ٤، رجاله ثقات والظاهرانه اراد صلح الحسن بن على رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ووهم الراوى انتهى واخرجه ابن سعد ١٣٤/ ٤، عن ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا نحوه.

٢: اخرجه ابن سعد ايضاً.

اوستاپلار دکفر په وجه وهلی وو یعنې پخپله حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا لیکن ماته داویره شوه چې زما ددې وینا سره به زما باره کې به دهغه شی گمان و کړی شي چې ماکې نشته دی، یعنې دابه وګڼي چې زما د خلیفه کېدو شوق دی حالانکه داسې څه خبره نشته ده.

**حضرت عمران بن حصین رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د امارت له قبلولو انکار:**

حضرت عبدالله بن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: زياد حضرت عمران بن حصين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دخراسان حاکم جوړول غوښتل هغه ورته عذر پیش کړو، دهغه ملګرو هغه ته وویل: ایاتاد خراسان امیري پرېښودله؟ هغه وویل: په الله تعالی قسم! زه په دې خبره هیڅ خوشحاله نه یم چې ماته دې دخراسان ګرمې اورسې اوزیاد اودهغه ملګروته یخوالي یعنې زه دهغه ځائ امیر جوړ شم او مشقتونه به او چتوم او دغه خلک دې دهغه ځائ په امدنئ مزې کوي، ماته ددې خبرې ویره ده چې زه به ددشمن په مقابله کې ولاړ یم او ماته به د زیاد داسې خط راشي که زه په هغه خط عمل کوم نو هلاکېږم به او که عمل نه په کوم نو (دزیاد د طرف نه) زما د سر وهلو خطر دی، بیا زیاد حضرت حکم بن عمرو غفاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د خراسان امیر مقرریدو لپاره وویل: چې هغه قبول هم کړو، راوي وايي د دې په اوریدو سره حضرت عمران رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل: څوک شته چې ماته حَکَم را وغواړي؟ نو دهغه قاصد لاړو او حضرت حَکَم هغه ته راغی، نو حضرت عمران رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل: آیا تا له رسول الله ﷺ نه اورېدلی دی چې فرمایلي یې دچا هغه خبره منل نه دي جایز چې په هغه خبره کې دالله تعالی نافرماني کېږي؟ حضرت حَکَم وویل: هو اورېدلي مې دي، نو حضرت عمران رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې الحمد لله وویل او د الله تعالی شکر یې وکړو، یایې الله اکبر ووي او دخوشحالی اظهار یې وکړو، دحضرت حسن په یو روایت کې راغلی دی چې حضرت زیاد حضرت حکم غفاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د یو لښکر امیر مقرر کړو، حضرت عمران بن حصین رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته راغی او دخلکو په مخکې یې دهغه سره ملاقات وکړو او ورته ویې فرمایل: آیا تاته علم شته چې زه ولې تاته راغلی یم؟ حضرت حکم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل: (تاسو راته ووایئ) چې تاسو د څه لپاره راغلی یئ؟ حضرت عمران رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل: ایا تاته یاد دي چې یو سړی ته خپل امیر ددې خبرې امر کړي و چې ځان په اور کې واچوه( هغه سړی د اور په طرف ور روان شو لیکن) نورو خلکو هغه په چالاکۍ سره هغه سړی را

منع کړو، دا قیصه رسول الله ﷺ ته بیان کړای شوې وه، آنحضرت ﷺ وفرمایل: که چېرې دې سړي اورته دانګلي وو نو امیر او دې دواړه به جهنم ته تللي وو، دالله تعالی د نافرمانۍ په صورت کې دهېڅا خبره منل نه دي جائز. حضرت حکم وویل: چې هو (ماته یاد دي) حضرت عمران رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل: ما تاته صرف د دې حدیث دریادول غوښتل.(۱)

## د خلفاوو او امیرانو احترام او د هغوی د اوامرو منل

### هغه څه چې په یوه سریه کې د خالد او عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په مینځ کې واقع شول.

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمایي: رسول الله ﷺ حضرت خالد بن ولید بن مغیرة المخزومي دیو لښکر امیر مقرر کړو، په دې لښکر کې حضرت عمار بن یاسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم ده سره ؤ، لښکر د مدینې منورې نه روان شو او دشپې په آخري حصه کې یې هغو خلکو ته نیژدې پړاو واچولو چې صبایې په هغوی حمله کوله، یو جاسوس لاړو او هغه خلک یې دصحابه وو د راتلو نه خبر کړل، چې په دې سره هغه خلک وتښتېدل او ځانونه یې محفوظ ځائ ته ورسول، د همدې قوم یو سړی چې خپله او کور والا یې مسلمانان شوي وو. په هغه ځائ کې ایسار شوي وو، هغه خپل کور والا ته وویل چې د سفر سامان وتړئ. او کور والا ته یې وویل: زما د راتلو پورې په همدې ځائ کې ایسار شئ. هغه حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راغی او ورته ویې ویل: اې ابو الیقظان! یعنې اې د بیدارو دماغو صاحبه! زه او زما کور والا مسلمانان شوي یو، که زه دلته ایسار شم زما اسلام به زما په کار راشي؟ ځکه زما قوم چې ستاسو د راتلو نه خبر شو تېول وتښتېدل، حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته وویل: ته ایسار شه تاته امن دی، نو دغه سړی او کور والایې خپل ځائ ته واپس شول، سهار حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې قوم حمله وکړه نو معلومه شوه چې دا قوم کومې خواته تښتیدلي دي، البته دغه سړی او کور والایې په دې ځائ کې پاتې شوي وو، چې د حضرت خالد بن ولید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ملګرو ونیول، حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل: دا سړی ته نشې نیولی ځکه دوي مسلمانان شوي دي. حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل: ستاد دېنه څه مطلب دی، د لښکر امیر زه یم، او آیا ته زما د اجازت نه بغیر پناه ورکول

---

۱- اخرجه احمد قال الهیثمي ج۲۲٦/۵، رواه احمد بالفاظ والطبراني باختصار(وفي بعض طرقه لاطاعة لمخلوق في معصیة الخالق) ورجال احمد رجال الصحیح انتهی.

کېږي؟ حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: هو ته امير يې او زه ستا سو د اجازت نه بغير هم پناه ورکولې شم، ځکه چې د دې سړي ايمان راوړی دی. که چېرې ده غوښتلی نو د دې ځای نه تللي شو، لکه څنگه چې د ده نور ملگري تللي دي، خو دي مسلمان و نو ما ځکه ده ته دلته د ايسارېدو خبره کړې وه، د دواړو ترمنځ خبره زياته شوه او يو بل ته يې نامناسبه الفاظ دخولې نه ووتل، کله چې مدينې منورې ته لاړل دواړه د آنحضرت ﷺ حضور ته حاضر شول او حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه سړی ټول حال بيان کړو، خو رسول الله ﷺ د حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پناه ورکولو ته صحيح وويل، ليکن په آينده کې يې د امير د حکم نه بغير پناه ورکول منع کړل، د دواړو حضراتو ترمينځ په دې باره کې تيزې خبرې وشو چې حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: اې د الله رسوله! آيا ستاسو په مخکې دا غلام ماته داسې الفاظ وايي؟ په الله قسم! که چېرې تاسو نه وئ نو ده به ماته چېرته هم داسې الفاظ نه ويلي، رسول الله ﷺ وفرمايل: اې خالده! عمار ته هيڅ مه وايه! ځکه چې څوک د عمار سره بغض کوي هغه سره الله تعالی بغض کوي، او چې څوک په عمار لعنت کوي په هغه الله تعالی لعنت کوي، بيا حضرت عمار د هغه ځای نه پاڅېدو او لاړو، (د رسول الله ﷺ د دې ارشاداتو دا اثر شو چې) حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پسې روان شو او هغه يې د جامو نه ونيولو، عذر او منت يې ورته وکړو تر دې چې حضرت عمار د هغه نه راضي شو، په دې باره کې دا آيت نازل شو: أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ ۖ

ترجمه: تاسو د الله حکم منئ او د رسول د حکم اطاعت کوئ او په تاسو کې چې کوم خلک حاکمان دي د هغوی د حکم اطاعت هم کوئ. حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايي: د حاکمانو نه مراد د لښکرو اميران دي. فَإِن تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ.

ترجمه: بيا که ستاسو ترمينځ په څه خبره کې اختلاف راشي نو دا خبره الله او د هغه رسول ته حواله کړئ (حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايي: کله چې تاسو خپل جنگونه او لانجې الله او د هغه رسول ته پېش کړئ) نو هغوی به يې فيصله درته کوي.

ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا (۱)

دا ټول امور غوره دی او د دې انجام ډېر ښه دي(۱).

۱- (سورة النساء ايت ۵۹)

**هغه څه چې د عوف بن مالک او خالد بن ولید رضي الله عنهما ترمینځ پېښ شول:**

حضرت عوف بن مالک اشجعي رضي الله عنه فرمايي: زه د مسلمانانو سره په غزوه موته کې د حضرت زید بن حارثه رضي الله عنه سره وم، په دې سفر کې دیمن نه د لښکر د مدد لپاره راغلی خلکو نه یو سړی زما سره ملګري شو، چې دیوې تورې نه بغیر نور څه وسله یې نه لرله، یو مسلمان یو اوښ حلال کړو دې سړي د هغه نه د اوښ د څرمنې یوه ټوټه وغوښته هغه ورکړه چې بیا یې د څرمنې د هغې حصې نه یو ډهال(سپر) جوړ کړو، مونږ د هغه ځای نه مخکې لاړو او د رومیانو د لښکر سره مو مقابله وکړه، د رومیانو په لښکر کې یو سړی په خپل سُور آس باندې سپور وو چې په زین او وسله باندې یې د سرو زرو او به لګول شوي وې، په ډېر زور او شور سره یې د مسلمانانو قتلول شروع کړل، د مدد دپار راغلی یعني ملګري یې د هغه په ساؤ کې د غټې ګټې شاته ناست وو، رومي کله چې د هغه په خوا کې تېرېدلو نو حمله یې پرې وکړه او د هغه د آس پښې یې پرېکړې، رومي په ځمکه وغورزېدو، یعني د هغه په سینه کیناستلو او هغه یې قتل کړو، د هغه آس او وسله یې واخیستل، کله چې الله تعالی مسلمانانو ته فتح ورنصیب کړه نو حضرت خالد بن ولید (چې په آخر کې د مسلمانانو امیر ؤ) هغه یمني سړی را وغوښتلو او د هغه نه یې د قتل شوي یم نې سړی سامان واخیستلو.

حضرت عوف رضي الله عنه فرمايي: زه حضرت خالد رضي الله عنه ته ورغلم او ورته ومې ویل: آیا تاته نده معلومه چې رسول الله ﷺ د مقتول ټول مال او سامان د قاتل لپاره فیصله کړې دی؟ حضرت خالد رضي الله عنه ووېل: ماته معلومه ده خو دا سامان ماته ډېر زیات معلوم شو، ما ورته ووېل: یا خو دا سامان یمني مجاهد ته بېرته ورکړه او یا به زه رسو الله ﷺ ته ستاسو شکایت وکړم، بیا به تاته خپله معلوم شي، خو حضرت خالد رضي الله عنه د دې باوجود یمني ته د سامان د واپس کولو نه انکار کولو، (د همدې سفر نه د بېرته راتلو نه پس) کله چې مونږ د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوو او ما هغه څه چې د یمني او حضرت خالد رضي الله عنه ترمینځ تیر شول بیان کړل، رسول الله ﷺ وفرمایل: اې خالده! ولې دې داسې وکړل؟ هغه عرض وکړو: یا رسول الله! هغه سامان ماته ډېر زیات ښکاره شو،

---

۱- اخرجه ابن جرير وابن عساكر كذافى الكنزج۱/ ص ۲۴۲، واخرجه ايضا ابويعلى وابن عساكر والنسائى والطبرانى والحاكم من حديث خالد رضى الله عنه بمعناه مطولا وابن ابى شيبة واحمد والنسائى مختصرا كما فى الكنز(ج۷/ ص۷۳، قال الحاكم ج۲ص ۳۹۰، صحيح الاسناد ولم يخرجاه وقال الذهبى صحيح وقال الهيثمى ج۹ص۲۹۴ ، رواه الطبرانى مطولا ومختصرا منها ما وافق احمد ورجاله ثقات.

آنحضرت ﷺ او فرمایل: اې خالده! تاچې څه د دې یمني نه اخیستی دی هغه واپس ورکړه، په دې خبره ما حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل: اې خالده! وګوره ما چې تاته څه ویلي وو هغه مې پوره کړو، چې رسول الله ﷺ ته شکایت کوم اتا ته به پرې سزا درکوم، رسول الله ﷺ او فرمایل: دا څه خبره ده؟ ما ورته ټول تفصیل بیان کړو، رسول الله ﷺ په دې خبره خفه شو او ویې وفرمایل: اې خالده! هغه سامان واپس نکړې، (صحابه کرامو ته متوجه شو او ویې فرمایل: آیا تاسو زما د وجې زما امیران نه پرېږدئ؟ (د دوي بې عزتي مه کوئ بلکه د دوي عزت کوئ) د دوي ښه کارونه ستاسو لپاره فائده لري، او د دوي د بدو کارونو وبال (ګناه) هم په دوي باندې ده، یعنې که چېرته دوي ښه عملونه کوي نو فائده به یې تاسو ته رسیږي، او که چېرته دوي غلط عملونه کوي نو سزا به یې هم دوي ته رسیږي، تاسو ته په کار ده چې په هر حال کې د دوي عزت وکړئ! (۱)

**د والي (ګورنر) د احترام په باره کې د عمر او سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قصه**

حضرت راشد بن سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یو څه مال راغی، نو هغوی په خلکو باندې د دې مال تقسیمول شروع کړل، د هر خلک ورته راجمع شوي وو، حضرت سعد بن وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خلکو کې ننوت او د خلکو نه مخکې شو، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کوړا واخیسته ودرېدو او ورته ویې فرمایل: ته خو داسې مخکې راغې لکه چې په زمکه د الله تعالی د سلطان نه نه وېرېږې. زه هم تاسو ته ښایم چې د الله تعالی سلطان ستاسو نه نه وېرېږي (۲)

**په یوه سریه کې د عمرو بن العاص او عمر بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قصه:**

حضرت عبدالله بن یزید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: رسول الله ﷺ حضرت عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د یو لښکر امیر مقرر کړو، او ویې لیږلو، حضرت ابوبکر صدیق او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا هم په دې لښکر کې شامل وو، کله چې د جنګ ځای ته ورسیدل، حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لښکر ته حکم وکړو چې اور به نه بلوئ، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په غصه شو او اراده یې وکړه چې په دې خبره د حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره خبرې وکړي. نو حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه د دې کار نه منع کړو او ورته ویې فرمایل: رسول الله ﷺ هغه د دې وجې ستاسو لپاره امیر مقرر کړی دی چې هغه په جنګي ضروریاتو د هر ښه پوهېږي، د دې خبرې په اورېدو د حضرت

---

۱- اخرجه احمد ورواه مسلم وابوداود نحوه کذا فی البدایه ج/۳ ص ۲۴۹ واخرجه البیهقی ج/۶/ ص ۲۱۰ بنحوه.
۲- اخرجه ابن سعد ج/۳ ص/ ۲۰۶.

عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ غصه سره شوه او حضرت عمرو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته لاړ نشو . (۱)

**د امیر د عزت کولو په باره کې د حضرت عیاض بن غُنم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حدیث :**

حضرت جُبیر بن نُفیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: حضرت عیاض بن غنم اشعري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د دار بنار فتح کولو نه پس د همدې بنار حاکم ته (په کوړو وهلو) سزا ورکړه، حضرت هشام بن حکیم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راغی او حاکم ته په سزا ورکولو یې هغه ته سختې خبرې وکړې، څو څو ورځې وروسته حضرت هشام بن حکیم حضرت عیاض رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د عذر خواهي لپاره ورغی، (حضرت عیاض ته یې د خپلې سختۍ کولو وجه بیانوله) ویې ویل: آیا تاته معلومه نه ده چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي: د قیامت په ورځ به ترټولو سخت عذاب هغه چا ته وي چې په دنیا کې یې د ټولو نه سخت عذاب ورکولو . حضرت عیاض رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه ته وفرمایل: اې هشام! مونږ دا ټول هرڅه (د رسول الله ﷺ نه) اوریدلي دي، چې تا اوریدلي دي، او مونږ هم هغه ټول څه لیدلي دي چې تا لیدلي دي . او مونږ ته هم د هغه ذات اقدس صحبت (مجلس) نصیب شوي چې تاسو ته نصیب شوی دی ، اې هشام! آیا تا د رسول الله ﷺ نه دا نه دي اوریدلي چې څوک یو بادشاه ته نصیحت کولو اراده لري نو هغه ته دې د خلکو په مخکې نصحیت نه کوي، بلکه د هغه لاس دې ونیسي او جدا دې کړي، (او یواځې دې نصیحت ورته وکړي) که چېرې بادشاهانو د هغه نصیحت قبول کړو نو ښه ده، کنه نو هغه د بادشاه حق ادا کړو ، او اې هشام! ته ډېر بې باکه یې، او د الله د بادشاه خلاف زور ورتیا کوې، آیا ته د دې نه نه وېرېږې چې د الله بادشاه به ته قتل کړي وې، او خلکو به تا ته د الله د بادشاه قتل کړی شوي ویلې.(۲)

**د امیر خلاف اسلحه را ویستلو باره کې د حضرت حذیفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حدیث:**

حضرت زید بن وهب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: د حضرت حذیفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په زمانه کې خلکو د څه

---

۱- اخرجه البیهقی ج/۹ ص/ ۴۱، واخرجه الحاکم ج/۳ص۴۲، عن عبدالله بن بریدة عن ابیه قال بعث رسول الله ﷺ عمرو بن العاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فی غزوة ذات السلاسل فذکره بنحوه وقال هذا حدیث صحیح ولم یخرجاه وقال الذهبی صحیح.

۲- اخرجه الحاکم ج/۳ ص/ ۲۹۰، قال الحاکم هذا حدیث صحیح الاسناد ولم یخرجاه وقال الذهبی فیه ابن زریق وأهـ واخرجه البیهقی ج/۸ص۱۶۴، بهذا الاسناد مثله وذکره فی مجمع الزوائد ج/۵ ص/۲۲۹ بدون ذکر مخرجه ثم قال رجاله ثقات واسناده متصل واخرجه احمد وعن شریح بن عبید وغیره قال جلد عیاض بن غنم صاحب دار احین فتحت فاغلظ هشام فذکر الحدیث بنحوه قال الهیثمی ج/۵/ص۲۹ رجال ثقات الا انی لم اجد لشریح من عیاض وهشام سماعا وان کان تابعیا.

خبرې په وجه په امير باندې اعتراض وکړو، يو سړى چې د ټولونه لوى جماعت ته لاړو او په خلکو تيريدلو او حضرت حذيفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ورسيدو چې د خلکو په حلقه کې ناست ؤ، هغه سړي يې د سر سره نيږدې ودريدو او ويې ويل اې د رسول الله ﷺ صحابي! آيا ته امر بالمعروف او نهي عن المنكر نه کوې؟ حضرت حذيفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپل سر پورته کړو او هغه سړي چې څه غوښتل په مقصد يې پوهه شو، هغه ته يې وفرمايل، واقعا امر المعروف او نهي عن المنکر ښه کار دې، خو دا خبره د سنتو نه نده چې ته په خپل امير سلاح اوچته کړې. (۱)

**د امير داحترام په باره کې دحضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حديث:**

حضرت زياد بن کسيب عدوي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي، عبدالله بن عمر به نرى جامې اغوستلې او ويښتان به يې ګومنځ کړل او خلکو ته به يې خبرې کولې، يوه ورځ هغه خلکوته مونځ ورکړو او بيا دننه لاړو اوحضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ منبر سره ناست وو، عامر ابوبلال وويل، آيا ته نه وينې چې دخلکو امير نرى جامې اغستې دې، او دفاسقانو سره مشابهت اختياروي؟ حضرت ابوبکرصديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا خبره واوريده او خپل ځوى اصلح ته يې وويل، ابوبلال ماته را وله، هغه يې را وغوښتو او هغه خاضر شو، حضرت ابوبکرصديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وفرمايل ښه په غور داخبره واوره کومه خبره چې اوس تا دامير په حق کې وکړه ما واوريدله، خو ما درسول الله ﷺ نه اوريدلي دي چې څوک د الله د بادشاه اکرام کوي الله تعالى به دهغه اکرام وکړي او څوک چې د الله دبادشاه توهين کوي الله به هغه سپک کړي. (۲)

**فقط په روا او ښو کارو کې به دامير اطاعت کيږي:**

حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ يو انصاري د يوې ډلې امير مقرر کړو وې ليږلو او ډلې ته يې وفرمايل چې د خپل امير خبره اورئ! او منئ يې! نو په دې سفر کې امير ته د هغوى په څه خبره باندې غصه ورغله، هغه وويل، چې زما لپاره لرګي راټول کړئ! دوي لرګي جمع کړل بيا هغه امير وويل چې اور بل کړئ! په دې خبره باندې خلکو اور هم بل کړو، بيا هغه امير وويل، چې تاسو ته رسول الله ﷺ امر نه دی کړی چې د خپل امير خبره اورئ! او منئ يې؟ خلکو ورته وويل، چې هو امر يې کړی دی! نو امير ورته وويل، چې اوس نو تاسو دې اور ته ننوځئ! په دې سره خلکو يوه او بل ته وکتل او

---

۱- اخرجه البزار قال الهيثمي: ج/۵ ص۲۲۴، وفيه: حبيب بن خالد وثقه ابن حبان وقال ابوحاتم ليس بقوى انتهى.
۲- اخرجه البيهقي ج/۸ص ۱۶۲.

ورته وې ويل چې مونږ خو له اور نه راتښتېدلي يو او رسول الله ﷺ ته مو پناه راوړې ده، په دې وخت کې د امير غصه هم سړه شوه او اور هم مړ شو، کله چې دا د له خلک رسول الله ﷺ ته واپس ورسېدل نو هغوی ﷺ ته يې دا پېښه واوروله، په دې باندې رسول الله ﷺ وفرمايل: که چېرې دا خلک اور ته داخل شوي واى نو هيڅ کله به له هغه نه بهرته نه وو راوتلي، يعنې دا خبره نه وه چې د امير د خبرې او امر د منلو په وجه به دوي اور نه سوځول او له اوره به ژوندي راوتل، بلکې سوځېدلي به واى، د امير خبره او امر منل يوازې د نېکۍ په کارونو کې ضروري ده، د ګناه په کارونو کې د هغه خبره نه منل کېږي.(۱)

## د امير د عزت او اکرام په باره کې دحضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا حديث:

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ يوه ورځ له خپلو صحابه وو سره ناست وو او بيا د هغوی خوا ته متوجه شو، وې فرمايل: آيا تاسو ته دا خبره معلومه نه ده چې زه تاسو ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ له لوري رالېږل شوى يم؟ صحابه وو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وويل: چې هو! معلومه ده! مونږ د دې خبرې شاهدي ورکوو چې ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسول يې! رسول الله ﷺ وفرمايل: چې تاسو ته معلومه نه ده چې چا زما اطاعت وکړ نو هغه د الله جَلَّ جَلَالُهُ اطاعت وکړو؟ زما اطاعت په اصل کې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په اطاعت کې داخل دى؟ صحابه وو په يوه اواز ورته وويل: چې هو! معلومه ده، مونږ په دې خبره ګواهي ورکوو: چا چې ستا اطاعت وکړو هغه د الله جَلَّ جَلَالُهُ اطاعت وکړ او ستاسو اطاعت د الله جَلَّ جَلَالُهُ په اطاعت کې داخل دى، رسول الله ﷺ وفرمايل: چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په اطاعت کې دا داخل دي چې تاسو زما اطاعت وکړئ! او زما په اطاعت کې بيا دا داخل دى چې تاسو زما د اميرانو اطاعت وکړئ! که چېرې هغوی تاسو ته په ناسته مونځ کوي نو تاسو يې هم په ناسته وکړئ!(۲)

## حضرت ابوذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د امير د عزت په باره کې د رسول الله ﷺ وصيت:

حضرت اسماء بنت يزيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت ابوذر غفاري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به د رسول

---

۱: اخرجه الشيخان وهذاه القصة ثابتة ايضا في الصحيحين عن ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ كذا في البداية ۴/۲۲٦ واخرجه ابن جرير عن ابن عباس و ابن ابي شيبة عن ابي سعيد بمعناه وسمى ابوسعيد الرجل الانصارى عبدالله بن حذافة السهمي كما في الكنز ۳/۱۷۰ وهكذا سماه في البخاري عن ابن عباس كما في الاصابة ۲/۲۹٦

۲: اخرجه ابويعلى وابن عساكر ورجاله ثقات كذا في الكنز ۳/۱٦۸

الله ﷺ خدمت کولو کله چې د هغوی ﷺ له خدمت نه وزګار شو نو جماعت ته به راته او جماعت هم د هغه به کور کې وو، په هغه کې به هغه ویده کېده، یوه شپه رسول الله ﷺ جماعت ته تشریف راوړلو نو وې کتل چې حضرت ابوذر غفاري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په جماعت کې په ځمکه باندې ویده دي، رسول الله ﷺ مبارک هغه په خپله پښه مبارکه باندې د پاڅولو لپاره ورو وواهه، چې په دې سره هغه نېغ کېناسته، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: چې ایا تا زه په جماعت کې ویده نه وینم؟ هغه ورته وویل: چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه بل کوم ځائ کې ویده شم؟ دې جومات نه پرته زما بل کور نشته، بیا رسول الله ﷺ هغه سره کېناسته او ورته وې فرمایل: کله چې خلک ته اجتماعي ضرورت په وجه له دې جومات نه وباسې نو ته به څه کوې؟ هغه وویل: چې زه به د شام سیمې ته ولاړ شم! ځکه چې شام د مخکینو پیغمبرانو د هجرت ځائ دی او هم هلته به د حشر میدان وي او هغه د پیغمبرانو ځمکه ده، یعنې هلته ډېر پیغمبران تېر شوی دی، او زه به د هغه ځائ والاو کې وشمارل شم! یعنې هلته به اوسېږم! رسول الله ﷺ وفرمایل: کله چې خلک تا له شام نه هم وباسي تو بیا به ته چېرته ځې؟ هغه وویل: چې زه به هم دې جومات ته بېرته راځم! دا به زما کور وي، رسول الله جَلَّ جَلَالُهُ بیا ورته وفرمایل: چې که چېرته خلک تا له دې جومات یعنې مدینې منورې نه دوباره وباسي نو بیا به ته څه کوې؟ به دې سره ابوذر وویل: چې بیا به زه توره راواخلم او تر مرګه به له هغوی سره وجنګېږم! رسول الله ﷺ ورته وکتل او مسکی شو، بیا یې په خپل مبارک لاس باندې هغه وټپاوه او ورته وې فرمایل: چې ایا زه تا ته تر دې غوره خبره ونه ښایم؟ هغه وویل: اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ضرور یې وښایه! زما مور او پلار دې په تاسو قربان وي، رسول الله ﷺ وفرمایل: تا کله چې هم څوک له مخکې خوانه ونیسي نو هماغسې ځه! او که دې څوک له شا خوانه ونیسي نو بیا هم ورسره هماغسې ځه! یعنې څوک چې درته څه وایي هماغسې کوه! او تر هغه پورې چې ته ما سره ملاو شې! (۱)

ابن جریر د دې په شان حدیث پخپله له حضرت ابوذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه نقل کړی دی په هغه کې داسې راغلی دی، چې رسول الله ﷺ وفرمایل: کله چې ته له مدینې منورې نه دویم ځلي

---

(۱): اخرجه ابن جریر کذا فی الکنز ۳/۱٦۸ واخرجه ایضا احمد عن اسماء نحوه قال الهیثمی ۵/۲۲۳ وفیه شهر بن حوشب وهو ضعیف وقد وثق انتهی

وویستل شې ته به څه کوې؟ حضرت ابوذر رضي الله عنه وایې چې ما ورته وویل: چې زه به توره راواخلم او ویستونکي به مړه کړم! رسول الله ﷺ زه په اوګه باندې په خپل مبارک لاس باندې ووهلم او وې فرمایل: چې اې ابوذره! ته دا ویستونکي معاف کړه او هغوی چې تا له مخکې نه ونیسي او چې چېرته دې هم بوځي نو هلته څه! او وروسته دې هم چې چېرته بوځي نو ورسره څه! یعني ته د دوي خبره منه! خو که تا ته دا معامله د یوه تور غلام سره ولي رانشي، حضرت ابوذر رضي الله عنه وایي کله چې د امیرالمؤمنین حضرت عثمان رضي الله عنه په فرمان باندې زه په ربذه کې اوسېدم! نو یو ځل د مانځه اقامت وشو او یو تور سړی د لمانځه لپاره مخکې شو کله چې هغه تور سړی زه ولیدم! نو شاته شو او زه یې مخکې کولم خو ما ورته وویل: چې پخپل ځای اوسه! زه به د رسول الله ﷺ خبره منم!(۱)

عبدالرزاق له حضرت طاوس رضي الله عنه نه هم دا حدیث داسې نقل کړی دی او په دې کې دا مضمون دی، کله چې حضرت ابوذر رضي الله عنه ربذه ته لاړ نو هلته هغه ته د حضرت عثمان رضي الله عنه یو تور غلام ملاو شو، هغه اذان او اقامت وکړو، بیا یې حضرت ابوذر رضي الله عنه ته وویل: چې اې ابوذره! د لمانځه د کولو لپاره مخکې شه! حضرت ابوذر رضي الله عنه ورته وویل: چې نه! ما ته خو رسول الله ﷺ حکم کړی دی چې زه به د امیر خبره اورم! او منم به یې! که څه هم چې هغه تور غلام وي، په دې سره هغه غلام مخکې شو او حضرت ابوذر رضي الله عنه په هغه پسې لمونځ وکړ.(۲)

ابن ابي شیبه، ابن جریر، بیهقي، نعیم بن حماد او نورو حضراتو له حضرت عمر رضي الله عنه نه روایت کړی دی چې هغوی وفرمایل: چې د خپل امیر خبره اورئ! په داسې حال کې که چېرته ستاسو په سر باندې غوړ پرې کړی امیر هم مقرر شوي وي، که چېرې هغه تاسو ته تکلیف ورسوي نو هغه برداشت کوئ! که چېرته هغه تاسو ته د څه کار حکم درکړی نو هغه منئ! که چېرې هغه تاسو ته څه درنه کړي نو صبر کوئ! که چېرې هغه په تاسو څه ظلم وکړي نو هم صبر ورکوئ! او که چېرې هغه ستاسو د دین نه کمي کول غواړي نو هغه ته ووایئ! چې ځان مو حاضر دی او دین نه! یعني زه ځان ورکولی شم خو په دین کې کمي نه

---

۱: اخرجه ابن جریر ایضا

۲: اخرجه ایضا عبدالرزاق کذا فی الکنز ۳/۱۶۸

شم برداشت کولی ، که هر څه کېږي، تاسو د جُماعت نه مه جدا کېږئ! (۱)

## د امير داحترام او عزت په باره کې دحضرت عمر او علقمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قصه:

حضرت حسن رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت علقمه بن علاثه د شپې په وخت کې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ملاقات وکړو، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په شکل، صورت او قد کې له حضرت خالد بن وليد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره مشابه وو، يعنې حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورته وو. حضرت علقمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وګاڼه او ورته وې فرمايل: چې اې خالده! ته هغه سړی (حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) معزول کړې يې! هغه د تنګ نظرۍ له وجې نه داسې کړې دی، ما او زما د تره ځوی غوښتل چې هغه ته ورشو او څه تړې وغواړو، خو اوس کله چې هغه ته د امارت نه لرې کړی يې نو اوس زه له هغه نه هيڅ هم نه غواړم! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې لپاره چې د حضرت علقمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د اثينده رايې نه ځان خبر کړي خپل اواز يې د خالد بن وليد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په رنګ جوړ کړ او ورته وې ويل: چې نور څه خبره شته؟ اوس ستا څه اراده ده؟ حضرت علقمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: چې زمونږ د اميرانو په مونږ باندې حق دی چې په هر حال کې د هغوی فرمانبردار او وفادار اوسو، مونږ د هغه حق اداء کوو او خپل اجر او ثواب له الله جَلَّ جَلَالُهُ نه اخلو! صحابه کرامو يو له بل سره د ناخوښۍ په حالت کې هم جوړ جاړي کولو، کله چې سبا شو او حضرت علقمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له يو بل سره يو ځای شول نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل: نن شپه علقمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تا ته څه ويلي وو؟ حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل، په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! چې هغه ما ته هيڅ هم نه دي ويلي، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: ښه ته قسم هم خورې! د ابو نضره په روايت کې دا هم دی چې حضرت علقمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل: اې خالده! پرېږده! قسم مه خوره! او انکار مه کوه! د سيف بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روايت کې دا مضمون هم ديض چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل، دا دواړه ربښتوني دي دواړو صحيح خبره کړې ده. د ابن حائذ په روايت کې دا مضمون هم دی چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت علقمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرياد واورېده او د هغه ضرورت يې پوره کړ، د زبير بن بکار په روايت کې دا هم دی چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د شپې کله چې دا پوښتنه کړې وه چې اوس

۱: كذا في كنز العمال ۲/۱٦۷

ستا څه اراده ده؟ نو حضرت علقمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ويلي وو چې د خبرې اورېدو او منلو نه پرته بل څه نشته، په دې روايت کې داسې هم دی چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل: چې زما نه وروسته چې څومره سرې دی هغه دې تول ستا په دې بنو جذباتو باندې وي نو ما ته دا د دومره مال نه يعنې د ټولې دنيا د مال نه زيات خوښ دي.(۱)

**د امير د عزت په باره کې د يوې جذام بيمارې ښځې قصه:**

حضرت ابن ابي مُليکه رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د يوې جُذامي مرض والا ښځې باندې تېر شو چې د بيت الله طواف يې کاوه، هغې ته يې وفرمايل: اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ بندې! خلکو ته تکليف مه ورکوه! که چېرې ته خپل کور کې ناسته يې نو دا زياته ښه ده نو هغې د بيت الله طواف لپاره حرم شريف ته راتلل پرېښودل او خپل کور کې کېناستله، څه موده وروسته د يو سړی له هغې ښځې سره تېرېدل وشو او هغې ته يې وويل: چې کوم امير المؤمنين ته د طواف له کولو نه منع کړې وې هغه وفات شو اوس ته لاړه شه! او طواف وکړه! هغې ښځې وويل: چې زه داسې نه يم چې د هغه په ژوند کې دې د هغه خبره ومنم! او د هغه د مرګ نه وروسته د هغه نافرماني وکړم! (۲)

**د امير د نافرمانۍ کولو خطرونه:**

يو صاحب وايي چې زه د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په زمانه کې د يوې سيمې مشر ووم! حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ما ته د يو کار حکم وکړو څه موده وروسته حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل: ما چې تا ته د کوم کار حکم کړی وو ايا تا هغه کار کړی دی؟ ما ورته وويل: چې نه! حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل: په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم تا ته چې کوم حکم درکړل شوی دی نو هغه خامخا پوره کوه! کنه نو ستاسو په څټونو به يهود او نصارا سواره شي.(۳)

## د اميرانو د يوبل اطاعت کول

**په دې باره کې د عمرو بن العاص، ابوعبيده او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُم قصه:**

چې څو زاره ملګري يو ځای شي نو هغوی دې په خپلو کې اختلاف نه کوي بلکې د يوه او بل

---

۱: اخرجه يعقوب بن سفيان باسناد صحيح ورواه الزبير بن بكار عن محمد بن سلمة عن مالک فذكر نحوه مختصرا كذا في الاصابة ۲/۵۰۲

۲: اخرجه مالک كذا في كنز العمال ۵/۱۹۲

۳: اخرجه ابن ابی شيبة عن شمر كذا في الكنز ۳/۱٦۷

خبره دې مني. حضرت عروه بن زبير رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنهُ د يوه لښکر امير مقرر کړ او د شام سيمه کې د قُضاعه قبيلې قبايلو بنو بلي، بنو عبد الله او نورو ته يې ولېږه، بنو بلي د حضرت عمرو د پلار عاص بن وائل د مور له طرفه خپلوان وو کله چې حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنهُ هلته ورسېده نو دښمنانو ډېر تعداد يې چې وليده نو ووېرېده، هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کې د مرستې لپاره سړی ولېږه، رسول الله ﷺ مهاجرينو ته د عمرو د مرستې لپاره ترغيب ورکړ چې په دې باندې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ او نور مهاجرين تيار شول، رسول الله ﷺ حضرت عبيده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنهُ د دې مهاجرينو امير مقرر کړ، کله چې دوي حضرت عمرو ته ورسېدل نو دوي ته يې وويل: چې زه هم ستاسو امير يم! ځکه چې ما د رسول الله ﷺ په خدمت کې سړی د دې لپاره لېږلی وو چې تاسو ما ته د مرستې لپاره راولېږي، نو ما تاسو له رسول الله ﷺ څخه د خپلې مرستې لپاره راغوښتي يئ! مهاجرينو حضراتو وويل: چې نه ته د خپلو ملګرو امير يې! او حضرت ابو عبيده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنهُ زمونږ د مهاجرينو امير دي، حضرت عمرو وويل: چې تاسو خو زما د مرستې او مدد لپاره رالېږل شوي يئ! نو په دې خاطر اصل خو زه امير يم! تاسو خو زما مرسته کونکي يئ! حضرت ابو عبيده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنهُ د ښو اخلاقو والا او د نرم طبيعت والا سړی وو، کله چې هغه دا وليدل نو وې ويل: اې عمرو! تا ته دا پته لګول پکار وو چې رسول الله ﷺ ما ته اخري کوم هدايت کړی دی، هغه دا و کله چې هم ته خپل ملګ[illegible] ته ورسېږې نو تاسو دواړه د يوه او بل اطاعت کوئ! که چېرې ته زما خبره ونه منې [illegible] (د[illegible] خامخا [illegible]منم! چې په دې ترتيب حضرت ابو عبيده رَضِيَ اللهُ عَنهُ حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته امارت حواله کړ.(۱)

حضرت زهري بيان کوي چې رسول الله ﷺ بنو کلب، بنو غسان او د عربو هغو کافرانو ته چې د شام په کليو او باندو کې اوسېدل، دوه لښکرې ولېږلې، د يوه لښکر امير يې ابو عبيده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنهُ وټاکه او د بل لښکر امير يې حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنهُ وټاکه او د ابو عبيده رَضِيَ اللهُ عَنهُ په لښکر کې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ هم شامل وو. کله چې د لښکر تلو وخت راغی نو رسول الله ﷺ حضرت ابو عبيده رَضِيَ اللهُ عَنهُ او حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنهُ راوغوښتل او هغوی ته يې وفرمايل: د يوه او بل نافرماني مه کوئ! کله چې

(۱) اخرجه البيهقي كذا في البداية ٤/٢٧٣ وهكذا اخرجه ابن عساكر عن عروة كما في الكنز ٥/٣١٠ وفيه مشارق بدل مشارف

دا دواړه حضرات خپل لښکر سره له مدينې منورې نه روان شول نو حضرت ابوعبيده حضرت عمرو يو ې خواته بېل کړ او ورته وې ويل چې رسول الله ﷺ ما او تا ته په خاصه توګه هدايت کړی دی چې تاسو دواړه ديوه او بل نافرماني مه کوئ! د دې لپاره اوس په دې هدايت باندې د عمل کولو صورت دا دی چې يا خو ته زما تابعداري وکړه! او يا به زه ستا تابعداري وکړم! حضرت عمرو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وويل: چې نه! ته به زما تابعدار جوړ شې! حضرت ابوعبيده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل: چې صحيح ده زه ستا تابعدار جوړېږم! چې په دې ترتيب حضرت عمرو د دواړو لښکرو امير جوړ شو، په دې باندې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په غصه شو او هغه حضرت ابوعبيده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وويل: چې ته د نابغه نومې ښځې د ځوی تابعداري غوره کول غواړې؟ او هغه د خپل ځان، ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او زمونږ امير تاکې؟ دا څنګه رأيه ده؟ يعنې دا صحيح نه ده، حضرت ابوعبيده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وويل: چې اې زما ورور! رسول الله ﷺ ما او هغه ته خاص هدايت فرمايلي وو چې تاسو به د يو بل نافرماني نه کوئ! نو ما ته دا خطره شوه چې که چېرې ما د هغه خبره ونه منله نو د رسول الله ﷺ نافرماني به راځخه وشي، او زما او د رسول الله ﷺ په تعلق کې به فرق راشي او په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! چې مدينې ته تر بېرته تګ پورې به زه د هغه خبره ضرور منم! کله چې دا دواړه لښکرې مدينې منورې ته واپس راغلې نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له رسول الله ﷺ سره خبره شريکه کړه او د ابوعبيده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ شکايت يې ورته وکړ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: چې ائينده به زه ستا د مهاجرينو امير يوازې په تاسو کې جوړوم! بل څوک به نه جوړوم! (۱)

## په رعيت د امير حقوق

### په دې باره کې د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قول:

حضرت سلمه بن شهاب عبدي رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې اې د قوم خلکو! زمونږ په تاسو باندې څه حقوق دي؟ زمونږ په نه موجودګۍ کې هم تاسو مونږ سره د خير خواهۍ معامله کوئ! او زمونږ په موجودګۍ کې خو يې کول خامخا دي. او د خير په کارونو کې زمونږ مرسته کوئ! د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد د امام له صبر او نرمۍ نه زيات خوښ او د خلکو لپاره زيات د فايدې هيڅ شي نشته. او د امام د جهالت والا رويې

۱: أخرجه ابن عساکر ايضا کذا في الکنز ۵/۳۱۹

نه زيات ناخوښه د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد هيڅ شي نشته.(١)

حضرت عبدالله بن عُكيم رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل، د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد هيڅ برداشت کول د امام د برداشت کولو او نرمۍ نه زيات محبوب نه دي او د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد هيڅ جهالت د امام له جهالت نه زيات خوښ نه دي او د خپل ځان سره پېښېدونکو معاملاتو کې چې څوک د معافۍ نه کار واخلي نو هغه ته به عافيت ملاوېږي او څوک چې د خپل ذات په باره کې له خلکو سره انصاف کوي هغه به پخپلو کارونو کې کاميابېږي او په اطاعت کې ذلت برداشت کول په ګناهونو کې ظاهري عزت ملاوېدو نه نېکۍ ته زيات نږدې دي.(٢)

### اميرانو ته له کنځلو کولو نه ممانعت:

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د رسول الله ﷺ په صحابه وو کې چې کوم زمونږ مشران وو هغوی مونږ د اميرانو په باره کې له څو خبرو نه منع کړی وو چې هغه خبر دا دی چې: تاسو خپلو اميرانو ته بد رد مه وايئ! هغوی ته دوکه مه ورکوئ! د هغوی نافرماني مه کوئ!، له الله جَلَّ جَلَالُهُ نه وېره کوئ! او صبر کوئ! ځکه چې مرګ يا قيامت نيږدې راتلونکی دی. (٣)

## د امير په مخکې له حق خبرې ساکت پاتې کېدل

### دا خصلت د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په نزد منافقت دی:

حضرت عُروه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زه د حضرت عبدالله بن عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شوم او ما ورته وويل، چې اې ابو عبدالرحمن! چې مونږ خپلو دې اميرانو سره کښېنو او هغوی څه خبره کوي او مونږ ته معلومه وي دا خبره غلطه ده او صحيح څه نوره ده خو مونږ د هغوی د خبرې تصديق کوو او دغه خلک د ظلم فيصله کوي او مونږ ورته تقويت ورکوو او د هغوی دغې فيصلې ته ښه وايو، ستاسو په دې باره کې څه سوچ دي؟ هغه ورته وفرمايل: چې اې زما وراره! مونږ خو به د رسول اله ﷺ په زمانه کې دا منافقت شماره

---

١: اخرجه هناد كذا في الكنز ٢/١٦٥

٢: اخرجه هناد كذا في الكنز ٢/١٦٥

٣: اخرجه ابن جرير كذا في الكنز ٢/١٦٨

یعنې دې کار ته به مونږ منافقت ویلو، چې په زړه کې نور څه دي او په ژبه باندې بل څه وایي خو ما ته پته نشته چې تاسو دې ته څه وایئ؟ یعنې که چیرې د امیر په مخکې حق خبره نشئ کولئ نو د هغه غلطي ته هم صحیح مه وایئ! (۱)

د حضرت عاصم پلار حضرت محمد رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي چې یو سړی حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته وویل: چې مونږ خپل بادشاه ته ورځو او مونږ ته د هغه په مخکې د هغه له خوانه څه داسې خبرو کول ضرورت راځي چې د هغه له خوا نه بهر ته راشو نو د هغه خلاف خبرې کوو! حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ورته وویل: چې مونږ خو دې ته نفاق وایو! (۲)

امام بخاري رَحِمَهُ اللّٰهُ د حضرت محمد بن زید رَحِمَهُ اللّٰهُ نه د همدې په شان حدیث روایت کړی دی چې په هغه کې دا مضمون هم دی چې مونږ خو به د رسول الله ﷺ په زمانه کې دا نفاق شماره.(۳)

حضرت مجاهد رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي چې یو سړی حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته راغی نو هغه ته حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمایل چې ستا د حضرت ابو انیس (ضحاک بن قیس رَحِمَهُ اللّٰهُ) سره څه دول رویه او سلوک دی؟ هغه ورته وویل: کله چې مونږ هغه سره مخ کېږو نو مونږ د هغه په مخکې هغه خبره کوو چې د هغه خوښه وي او کله چې له هغه نه لاړ شو نو بیا بل څه وایو! حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمایل: چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې خو به مونږ دا کار منافقت شمارلو.(۴)

حضرت شعبي رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي چې مونږ د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شولو او عرض مو وکړو چې مونږ کله دغو امیرانو ته ورځو نو هغه خبره کوو! چې هغوی غواړي او کله چې له هغوی نه بهر ته لاړ شو نو د هغوی خلاف وایو! حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمایل: چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې خو به مونږ دا منافقت شمارلو.(۵)

## د امیر په مخکې لهو او خندل ممنوع دي

### په دې باره کې د حضرت علقمه بن وقاص رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حدیث:

حضرت عقلمه بن وقاص رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي چې یو بېکاره او وزګار سړی وو چې امیرانو ته به

---

۱: اخرجه البیهقی ۸/۱٦٥
۲: اخرجه البیهقی ایضا ۸/۱٦۸
۳: کذا فی الترغیب ٤/۳۸۲
٤: اخرجه ابن عساکر کذا فی کنز العمال ۱/۹۳
٥: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ٤/۳۳۲

ورتلو او هغوی به یې خندول، هغه ته زما نیکه وویل: اې فلانکیه! تباه شې ته ولې ځې او امیران خندوې؟ دا کار پرېږده! ځکه چې ما له رسول الله ﷺ څخه اورېدلی دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل چې کله بنده د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رضا والا یوه داسې خبره کوي چې د هغه په انسانانو باندې ډېر زیات اثر وي او د دومره اثر کولو هغه ته ګمان هم نه وي او په هغه یوه خبره الله جَلَّ جَلَالُهُ له هغه څخه راضي کېږي او له هغه نه د ملاقات د ورځې پورې یعنې د قیامت تر ورځې پورې د هغه نه راضي وي او کله بنده د الله جَلَّ جَلَالُهُ د خفګان والا یوه داسې خبره کوي چې د هغې په انسانانو باندې ډېر زیات اثر وي او هغه ته د دومره اثر کولو ګمان هم نه وي د دې یوې خبرې په وجه باندې الله جَلَّ جَلَالُهُ له ده نه ناراضه کېږي او د هغه نه د ملاقات تر ورځې پورې یعنې د قیامت تر ورځې پورې ناراضه اوسېږي.(۱)

حضرت علقمه رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت بلال بن حارث مُزني رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ما ته وفرمایل: چې ما لیدلي چې ته دې امیرانو ته ډېرې ورځې ورځې او ګوره! چې دوي ته ته څه خبرې کوې؟ ځکه چې ما د رسول الله ﷺ نه اورېدلی دی چې بنده د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رضا څه خبره داسې کوي او بیا یې مخکې حدیث پشان مضمون ذکر کړ.(۲)

**د حضرت حذیفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قول چې: د امراؤ دروازې د فتنې مرکزونه دي:**

حضرت حُذیفه رَحِمَهُ اللَّهُ فرمایي چې خپل ځان د فتنو له ځایونو څخه وساتئ! چا له هغه نه پوښتنه وکړه چې اې ابو عبدالله! چې په تاسو کې یو کس د امیر دروازې ته ځي او د هغه د غلطې خبرې تصدیق کوي او د هغه د تعریف لپاره داسې خوبیانې بیانوي چې په هغه کې نه وي.(۳)

## په دې باره کې خپل ځوی ته د حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا نصیحت:

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې ما ته زما پلار حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل: اې زما ځویه! زه وینم چې امیر المؤمنین حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تا غواړي او ځان سره دې نږدې کېنوي او د رسول الله ﷺ نورو صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ سره ستا نه هم مشوره اخلي، نو ته زما درې خبرې یادې ساته! له الله جَلَّ جَلَالُهُ نه وېرېږه! چې چېرته در باندې پوهه شي چې تا دروغ ویلي دي یعنې د هغه په مخکې چېرې دروغ مه وایه! او د هغه هیڅ راز ښکاره

---

۱: اخرجه البیقهی ۸/۱٦٥

۲: اخرجه البیهقی ایضا ۸/۱٦٥

۳: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۲۲۷

نه کړي او چېرې د هغه په مخکې د چا غیبت ونه کړې، حضرت عامر وايي ما حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وویل چې په دې درې واړو خبرو کې هره خبره د یوه زر درهمو نه غوره ده، هغه وفرمایل: چې نه! په دې کې هره خبره د لسو زرو درهمو نه غوره ده.(١)

حضرت شعبي رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپل ځوی حضرت عبد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وفرمایل چې زه وینم چې دا سړی یعنې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ستا ډېر عزت کوي او تا ځان سره نیزدې کېنوي او ته یې په هغو خلکو کې یعنې لویو صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ کې شامل کړی یې! چې ته د هغوی په شان نه یې! زما درې خبرې یاد لره! چېرې هم د هغه په تجربه کې رانشي چې تا دروغ ویلي دي او هیڅکله هم د هغه راز مه ښکاره کوه! او هغه سره بلکل د هیچا غیبت مه کوه! (٢)

## دامیر په مخکې حق ویل او د هغه نامشروع امر ردول

**په دې باره کې د حضرت عمر او حضرت ابيّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قصه :**

حضرت حسن رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یو ځل حضرت ابي بن کعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د لوستل شوي یوه ایت نه انکار وکړو چې دا په قرآن کریم کې نشته یا قرآن کې دا شان نه دي راغلی ، حضرت أبي وویل: چې ما دا ایت شریف له رسول الله ﷺ څخه اورېدلی دی او ته خو به د بقیع په بازار کې اخیستلو او خرڅولو کې مشغول وې په دې وجه د رسول الله ﷺ نه د دې ایت د اورېدو تا ته موقعه نه ده ملاو شوې، حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل: چې تا صحیح خبره وکړه ما ستا د ایت نه انکار قصدا ستاسو خلکو د امتحان لپاره وکړو چې ما ته معلوم شي چې په تاسو کې څوک داسې سړی شته چې د امیر په مخکې حقه خبره کولی شي په هغه امیر کې څه خیر نشته چې د هغه په مخکې حقه خبره څوک نشي کولی او نه هغه پخپله حقه خبره کولی شي .(٣)

حضرت ابو مجلز رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت ابي بن کعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا ایت شریف ولوست: مِنَ الَّذِينَ اسْتَحَقَّ عَلَيْهِمُ الْأَوْلَيَانِ نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه ته وفرمایل چې تا غلط ولوست،

---

١: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ١/٣١٨ ورواه الطبرانی نحوه قال الهیثمی ٤/٢٢١ وفیه مجالد بن سعید وثقه النسائی وغیره وهو ضعفه جماعة

٢: اخرجه البیهقی ٨/١٩٧

٣: اخرجه ابن راهویه کذا فی کنز العمال ٢/٧

حضرت ابي وويل چې ما دا صحيح ويلي دي ستا غلطي زياته ده يوه سړی حضرت ابي ته وويل چې ته د امير المؤمنين خبرې ته غلطه وايې! حضرت ابي وويل چې زه ستا نه زيات د امير المؤمنين تعظيم كونكى يم خو د دوي خبره د قرآن خلاف وه، ځكه ما د قرآن په مقابله كې د ده خبرې ته غلط ويلي دي او داسې كېدي نشي چې زه د قران آيت ته غلط ووايم او د امير المؤمنين غلطې خبرې ته دې صحيح ووايم، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې حضرت ابي صحيح وايي.(١)

**عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د بشيربن سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وينا: لكه غشي داسې به دې سيده كړم:**

حضرت نعمان بن بشير فرمايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په يوه مجلس كې وو او د هغه نه گير چاپېره مهاجرين او انصار ناست وو چې په دې وخت كې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې لږ دا راته ووايئ! چې كه چېرې زه په يوه كار كې سُستي وكړم نو تاسو به څه كوئ؟ ټول حضرات د ادب له وجې نه خاموش وو، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا خپله خبره دوه درې ځله وكړه نو حضرت بشير بن سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل :كه چېرې ته داسې كوې نو مونږ به تا داسې نېغ كړو څنگه چې غشي نېغېدلي شي، په دې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوشحاله شو وې فرمايل بيا خو هم تاسو خلک د امير په مجلس كې د ناستې قابل او لايق ياستئ! بيا خو هم تاسو خلک د امير د مجلس قابل او لايق ياستئ! (٢)

**په دې باره كې د حضرت محمّدبن مسلمه او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قصه :**

حضرت موسى بن ابي عيسى رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بنو حارثه قبيلې د اوبو سبيل خوا ته راغى ، هلته هغه سره حضرت محمد بن مسلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مخ شو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل اې محمده! ما څنگه مومې؟ هغه ورته وويل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه هغسې مومم! څنگه چې زه غوارم او څنگه چې هر هغه سړی غواړي چې ستاسو خير غواړي زه وينم چې ته په مال جمع كولو كې ښه زورداره يې خو ته پخپله د مال نه ځان ساتې او هغه په انصاف سره تقسيموې كه چېرې ته كوږ شوې نو مونږ به تا داسې نېغ كړو لكه څنگه چې اوزار سره غشي نېغېږي، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوشحاله شو وې فرمايل چې ښه ده تاسو ما ته وايئ چې كه چېرې ته كوږ شوې نو مونږ به تا داسې نېغ كړو څنگه چې اوزار سره غشي

---

١: عن عبد بن حميد وابن جرير وابن عدى كذا فى الكنز ١/٢٨٥

٢: اخرجه ابن عساكر وابوذر الهروى فى الجامع كذا فى الكنز ٣/١٤٨

نبغېږي، بيا يې وفرمايل چې د الله جَلَّجَلَالُهُ شکر دی چې هغه زه په داسې خلکو کې امير جوړ کړی يم چې که چېرې زه کوږ شم نو هغوی به ما نېغوي.(۱)

## هغه چاته د معاويه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قول چې په ده يې رد وکړو:

حضرت ابو قبيل وايي چې حضرت معاويه بن ابي سفيان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د جُمعې په ورځ منبر ته وخوت او په خپله خطبه کې يې وفرمايل چې دا اجتماعي مال زمونږ دی او د خراج مال او د جنګېدو نه بغير حاصليدو والا مال غنيمت هم زمونږ دی چا ته چې وغواړو ورکوو به يې او چا ته چې وغواړو نو نه به يې ورکوو! په دې چا څه ونه ويل بله جمعه هغوئ په خطبه کې هم دا خبره وکړه بيا چا څه ونه ويل کله چې دريمه جمعه راغله نو هغه بيا په خطبه کې هم هغه خبره وکړه نو جماعت کې حاضر خلکو نه يو کس ودرېده او وې ويل چې هر ګز نه! دا اجتماعي مال زمونږ دي او دا د خراج مال او د غنيمت مال زمونږ نه دي نو څکه څوک چې زمونږ او د دې په مينځ کې پرده جوړېږي مونږ به هغه په خپلو تورو سره د الله جَلَّجَلَالُهُ طرفته راولو، حضرت معاويه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له منبر نه لاندې راکوز شو او د هغه سړی د راغوښتلو لپاره يې يو سړی ولېږه او کله چې هغه راغی نو دننه يې را وغوښت، خلکو وويل چې دا سړی خو تباه شو بيا خلک داخل ته لاړل نو هغوی وويل چې هغه سړی خو له حضرت معاويه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره په تخت باندې ناست دی، حضرت معاويه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خلکو ته وويل چې دې سړی زه ژوندی کړم! نو الله جَلَّجَلَالُهُ دې دی ژوندی وساتي، ما د رسول الله ﷺ نه دا اورېدلی دی چې زما نه وروسته به داسې اميران وي چې که چېرې هغوی څه غلطه خبره وکړي نو څوک به د هغه د دغې غلطې خبرې ترديد نه کوي هغوی به په اور کې يو د بل له پاسه سرچپه وغورځول شي، څنګه چې له يوې ونې نه بيزوګان يو په بل باندې ټوپونه وهي، نو ما په مخکې جمعه باندې دا غلطه خبره قصدا کړې وه چا زما خبره رد نه کړه په دې باندې ما ته وېره پيدا شوه چې چېرته زه په اور کې د پرېوتونکو هغو اميرانو څخه نه يم بيا ما په دويمه جمعه هم هغه خبره وکړه نو بيا هم چا زما خبره رد نه کړه، ما په خپل زړه کې وويل چې زه خو ضرور هم د دغو اميرانو له جملې يم بيا ما په دريمه جمعه هم هغه خبره ياده کړه نو دا سړی ودرېده او زما د خبرې ترديد يې وکړو دغه ده ژوندی کړم

---

۱: عن ابن المبارک کذا في منتخب کنز العمال ۴/۳۸۱

الله رب العزت دې هغه ژوندی ولري.(۱)

**په دې باره کې د حضرت ابوعبیده او حضرت خالد رضي الله عنهما قصه:**

حضرت خالد بن حکیم بن حزام رحمه الله وايي چې حضرت ابو عبیده رضي الله عنه د شام د ملک گورنر (والي) وو، هغه يو مقامي ذمي کافر ته په ټيکس نه ورکولو باندې سزا ورکړه، حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه ودرېده، حضرت ابو عبيده رضي الله عنه سره يې د سزا ورکولو په باره کې خبره وکړه، خلکو حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه ته وويل چې تا امير خفه کړ، هغه وويل چې زما اراده خو د امير د خفه کولو نه ده، بلکې ما له رسول الله ﷺ نه په دې باره کې يو حديث اورېدلی دی هغه حديث مې هغه ته بنودل غوښتل او هغه دا دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل چې د قيامت په ورځ به د ټولو نه زيات عذاب د هغه چا وي چې په دنيا کې خلکو ته د ټولو نه زيات سزا ورکوونکي وي.(۲)

حضرت حسن رحمه الله وايي چې زياد حضرت حکم بن عمرو غفاري رضي الله عنه د يوه لښکر امير جوړ کړو، خراسان ته يې ولېږه هغه ته هلته ډېر مال ملاو شو نو زياد هغه ته داسې خط ولېږه:

اما بعد! امير المؤمنين حضرت معاويه رضي الله عنه ما ته دا ليکلي دي چې د غنيمت په مال کې ټول سره او سپين زر د هغه لپاره جدا کړئ! نو په دې ترتيب تاسو سره او سپين زر په مسلمانانو باندې مه تقسيموئ! حضرت حکم په جواب کې زياد ته داسې خط وليکه او ورته ويې لېږه:

اما بعد! تاسو ما ته خط ليکلي دي چې په هغه کې تاسو اميرالمؤمنين د خط ذکر کړی دی خو ما ته د الله جل جلاله کتاب د اميرالمؤمنين له خط نه مخکې ملاو شوی دی او د امير المؤمنين خط د الله جل جلاله د حکم خلاف دي په دې وجه زه هغه نشم منلی او په الله جل جلاله قسم خورم! او وايم چې که چېرې ټول اسمان او ځمکه په يوه بنده باندې بند کړی شي او هغه سړی د الله جل جلاله نه وېرېږي نو الله جل جلاله به د هغه لپاره د هغې په منځ کې د وتلو لاره ضرور جوړه کړي. والسلام

---

۱: اخرجه الطبرانی وابویعلی قال الهیثمی ۵/۲۲۶ رواه الطبرانی فی الکبیر والاوسط وابویعلی ورجاله ثقات انتهی

۲: اخرجه ابن ابی عاصم والبغوی واخرجه ایضا احمد والبخاری فی تاریخه والطبرانی واخرجه الباوردی وزاد فیه وهو یعذب الناس فی الجزیة کذا فی الاصابة ۱/۴۰۳ قال الهیثمی ۵/۲۳۴ ورواه احمد والطبرانی وقال فقیل له اغضبت الامیر وزاد اذهب فخل سبیلهم ورجاله رجال الصحیح خلا خالد بن حکیم وهو ثقه انتهی.

او حضرت حکم یوه سړی ته حکم وکړو هغه په مسلمانانو کښ دا اعلان وکړو چې سهار د خپل غنیمت د مال لپاره راشئ! نو خلک سهار راغلل او هغوی په مسلمانانو کښ هغه ټول د غنیمت مال له سرو او سپینو زرو سره تقسیم کړو، کله چې حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته پته ولګېده چې حضرت حکم ټول د غنیمت مال په مسلمانانو باندې تقسیم کړی دی نو هغوی سړی ولېږل چې هغوی د حضرت حکم په پښو کښ بېړی واچولې او قید یې کړو په دغه قید کښ هغه وفات هم شو، او هغه هم په خراسان کښ خښ کړای شو، هغه دا هم فرمایلي وو چې زه به په دې باره کښ د حضرت معاویه سره د الله جَلَّ جَلَالُهُ په دربار کښ جنګ کووم!(۱)

ابن عبدالبر هم داسې حدیث ذکر کړی دی خو په دې کښ داسې هم دی چې حضرت حکم په مسلمانانو کښ د غنیمت مال تقسیم کړو او له الله جَلَّ جَلَالُهُ نه یې دا دعا وغوښتله چې اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! که چېرې تا سره زما لپاره خیر وي نو ته ما خپل ځان طرفته وبوله! بالاخره د خراسان په مرد نومي ښار کښ وفات شو.(۲)

او په اصابه کښ دا دی چې صحیح خبره دا ده کله چې هغه ته د زیاد د ناراضګۍ خط راغی نو هغه د خپل ځان لپاره د مرګ دعا وغوښتله، او هم هلته وفات شو.(۳)

**د مال په باره کښ دحضرت عِمران بن حُصَين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عمل:**

حضرت ابراهیم بن عطاء د خپل پلار حضرت عطاء څخه نقلوي او وایي چې زیاد یا ابن زیاد حضرت عمران بن حُصین رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د صدقاتو اخیستو لپاره ولېږه کله چې هغه واپس راغی نو یو درهم یې هم را نه وړ، نو هغه ته زیاد یا ابن زیاد وویل چې مال چېرته دي؟ هغه وویل چې تاسو زه د مال لپاره لېږلی ووم؟ د رسول الله ﷺ په زمانه کښ چې څنګه مونږ صدقات اخیستل هم هغسې مو صدقات واخیستل او د رسول الله ﷺ په زمانه کښ به چې مونږ څنګه مصرفول هغسې مونږ مصرف هم کړل یعنې د هغه ځائ په مستحقو خلکو باندې مې تقسیم کړل.(٤)

---

۱: اخرجه الحاکم ۳/۴۴۲

۲: اخرجه ابن عبدالبر في الاستیعاب ۱/۳۱٦ فذکر نحوه

۳: قال في الاصابة ۱/۳۴۷

٤: اخرجه الحاکم ۳/۴۷۱ قال الحاکم هذا حدیث صحیح الاسناد وقال الذهبي صحیح.

# په امیر باندې د رعیت حقوق

**د امیر دخصلتونو په باره کې د وفدونو نه دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوښتنه کول:**

حضرت اسود بن زید رَحِمَهُ اللهُ وایي کله چې به حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته څه وفد راتللو نو له هغوی نه به یې د هغوی د امیر په باره کې پوښتنه کوله چې ایا د بیمار پوښتنه کوي؟ آیا د غلام خبره اوري؟ کوم حاجتمند چې د هغه په دروازه کې ودرېږي هغه سره د هغه رویه او سلوک څنګه وي؟ که چېرې وفد والاوو به د دې خبرو جواب نه ویلو نو هغه امیر به یې معزول کړ.(۱)

حضرت ابراهیم رَحِمَهُ اللهُ وایي کله چې به حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څوک د یوې سیمې ګورنر(والي) تاکه او د هغې سیمې نه به هغه ته وفد راغی نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د هغوی نه د هغه ګورنر(والي) په باره کې پوښتنې کولې چې ستاسو امیر څنګه دی؟ آیا هغه د غلامانو د مریضې پوښتنه کوي؟ آیا هغه جنازې سره ځي؟ د هغه دروازه څنګه ده؟ آیا هغه نرمي کوي؟ که چېرې هغوی به ویل چې د هغه دروازه نرمه ده یعنې هر چاته د ننه د راتللو اجازت ورکوي او د غلامانو پوښتنه کوي نو هغه به یې همداسې په خپله وظیفه پرېښودلو او که چېرې به وفد راوړنکو کسانو د پورتنیو پوښتنو جوابونه ونه ویل نو سم دم به یې سړی ورولېږه او له ګورنر(والي) ی نه به یې لرې کړو.(۲)

**په والیانو( ګورنرانو) دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شرایط:**

حضرت عاصم بن ابي نَجُود وایي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به کله چې هم خپل ګورنر(والي) ان مختلفو سیمو لپاره مقررول او لېږل به یې نو په هغوی باندې به یې دا شرطونه لګول چې تاسو به په ترکي اسونو باندې نه سورېږئ! د چڼ کړو ورو دودی به نه خورئ! نرۍ جامې به نه اغوندئ! او ضرورتمند او محتاج خلکو ته به خپلې دروازې نه بندوئ! که چېرې مو په دې کې یو کار هم وکړو نو تاسو به د سزا حقدار جوړېږئ! بیا به رخصت کولو لپاره هغوی سره لږ شان تلو او کله چې به بېرته ورځنه راته نو هغوی ته به یې وفرمایل چې ما تاسو د مسلمانانو په وینو تویولو باندې، د هغوی په څرمنو ایستلو باندې، د هغوی په بې عزته کولو باندې او له هغوی نه په مال اخیستلو باندې نه یئ مقرر

---

۱: اخرجه البیهقی کذا فی الکنز ۲/۱٦٦ واخرجه الطبری ۵/۲۳ عن الاسود بمعناه
۲: عند هناد کذافی کنز العمال ۲/۱٦٦

کړي بلکې زه تاسو دغې سیمې ته د دې لپاره لېږم چې تاسو د هغه ځای په مسلمانانو کې لمونځ قایم کړئ! په هغوی باندې د هغوی د غنیمت مال تقسیم کړئ! په هغوی کې د انصاف او عدل فیصلې وکړئ! او کله چې تاسو ته یوه داسې خبره پېښه شي چې د هغې حکم تاسو ته معلوم نه وي نو هغه ما ته رامخکې کوئ! او په غور سره واورئ! عرب به نه وهئ! ځکه چې داسې کولو سره به تاسو هغوی ذلیله کړئ! هغوی په اسلامي سرحد باندې له جمع کولو او د وطن واپسۍ نه یې مه ایساروئ! ځکې چې په داسې کولو سره به تاسو په هغوی کې فتنه واچوئ! د هغوی خلاف د داسې کوم جرم دعواې مه کوئ! چې هغوی نه وي کړي، ځکه چې په داسې کولو سره به هغوی محروم کړئ! او قرآن کریم له احادیثو او نورو څخه جدا او غوره ساتئ! یعني قرآن کریم له احادیثو سره مه یو ځای کوئ! (۱)

د حضرت ابو حُصین نه د دې حدیث هم معني مختصر حدیث نقل دی او په دې کې زیاتې دا خبره هم ده چې قرآن جدا او غوره وساتئ! او له حضرت محمد ﷺ نه روایت کم کوئ! او په دې کار کې زه له تاسو سره شریک یم! او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د خپلو گورنر(والي) انو نه د نورو لپاره بدله اخیستله کله چې به هغه ته د هغه د یوه گورنر(والي) شکایت کېده نو هغه گورنر(والي) او شکایت کولو به یې یو ځای کول او د گورنر(والي) په مخکې به یې شکایت ورځخه اورېده که چېرې د هغه گورنر(والي) خلاف به داسې څه خبره ثابتېدله چې په هغې به د هغه نیول لازمي وو نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به هغه گورنر(والي) نیوه.(۲)

حضرت ابو خزیمه بن ثابت رَحِمَهُ اللهُ وايي کله چې به حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څوک هم گورنر(والي) مقررولو او نورو حضراتو یوه ډله به یې په هغه باندې گواه جوړوله او هغه ته به یې ویل چې ما ته د خلکو د وینو تویولو لپاره گورنر(والي) نه یې جوړ کړي مخکې د تېر شوی حدیث پشان مضمون دي.(۳)

**د امیرانو د فرایضو او وظایفو په باره کې دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول:**

حضرت عبد الرحمن بن سابط رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سری ولېږه او حضرت سعید بن عامر جمحي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یې را وغوښته او ورته وې ویل چې مونږ تا د دې

---

۱: اخرجه البیهقی کذا فی الکنز ۳/۱۴۸

۲: اخرجه الطبری ۵/۱۹

۳: اخرجه ایضا ابن ابی شیبة وابن عساکر کما فی الکنز ۳/۱۴۸

خلکو امیر تاکو! دوي ځان سره کړه او د ښمنانو سیمې ته لاړ شه! دوي له ځان سره کړه او له دښمنانو سره جهاد وکړه! هغه ورته وویل اې عمره! تاسو ما په امتحان کې مه اچوئ! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل زه تا نه پرېږدم! تاسو د خلافت ذمه واري زما په اوږو باندې اچولې ده ما یوازې پرېږدئ! او ځان جدا ساتل غواړئ! زه تا د داسې خلکو امیر جوړول غواړم! چې ته د هغوی نه غوره او افضل نه یې او زه تا د دې لپاره هلته لېږم چې ته په وهلو وهلو د دوي څرمن وباسې! او د دې لپاره دې هم لېږم! چې د دوي بې عزتي وکړې بلکه دې د دې لپاره لېږم چې ته دوي ځان سره کړې او د دوي له دښمنانو سره جهاد وکړې او دوي د غنیمت مال په دوي بېرته تقسیم کړې.(۱)

## په دې باره کې دحضرت ابوموسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول:

حضرت ابو موسی وفرمایل چې اې خلکو! امیر المؤمنین حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زه تاسو ته د دې لپاره را لېږلی یم چې زه تاسو ته ستاسو د رب کتاب قران او ستاسو د رسول الله ﷺ سنت وښایم! او ستاسو لپاره لارې صفا کړم! (۲)

# د خلکونه د لوړ ژوند او د څوکیدار په ټاکولو له خلکو د امیر په پټېدلو انکار

## په دې باره کې د حضرت عمر بن الخطاب او عمروبن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قصه:

حضرت ابو صالح غفاري رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مصر نه حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته داسې لیک ولیکه او وروې لېږه، چې مونږ دلته د جامع جومات سره ستاسو لپاره یو کور خاص کړی دی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه په جواب کې ولیکل چې په حجاز کې او سېدونکي سړی لپاره په مصر کې کور څنګه کېدی شي؟ او حضرت عمرو ته یې حکم وکړو چې په دغه ځای کې د مسلمانانو لپاره بازار جوړ کړه! (۳)

## عمروبن العاص ته دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د طرفه د منبر ماتولو حکم:

حضرت ابو تمیم جیشاني رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته داسې خط ولیکه، (اما بعد: فانه بلغني انك اتخذت منبراً ترقى به على رقاب الناس، او ما يحسبك ان تقوم قائماً و المسلمون تحت عقبيك. فعزمت عليك لما كسرته).

---

۱: اخرجه ابن سعد وابن عساكر كذا في الكنز ۲/۱۴۹

۲: اخرجه ابن عساكر وابونعيم في الحلية كذا في الكنز ۳/۱۴۹ اخرجه الطبراني بنحوه قال الهيثمي ۵/۲۱۳ ورجاله رجال الصحيح انتهى.

۳: اخرجه ابن عبدالحكيم كذا في الكنز ۲/۱۴۸

ترجمه: اما بعد! ما ته دا خبره رارسېدلې ده چې تا يو منبر جوړ کړی دی کله چې ته په دې باندې بيان کوې نو ته د خلکو د څټونو نه اوچتېږې! آيا ستا لپاره دا کافي نه دي چې ته په ځمکه باندې ودرېږې او بيان وکړې؟ دا شان به مسلمانان ستا د پوندو لاندې وي زه تا ته قسم درکوم! او وايم چې ته دا منبر مات کړه! (۱)

**حضرت عتبه بن فرقدته د عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خط چې په خلکو تکبر او فخر ونکړې:**

حضرت ابو عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې مونږ په اذربايجان کې وو هلته حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مونږ ته دا خط وليکه: (يا عتبه بن فرقد، انه ليس من كدك و لا من كدابيك و لا كدامك، فاشبع المسلمين فى رحالهم مماتشبع منه فى رحلك، و اياكم و التنعم و زى أهل الشرك و لبوس الحرير).

اې عتبه بن فرقد! دا ملک او مال تا ته ستا په محنت سره نه دي ملاو شوي او نه ستا د مور او پلار په محنت سره ملاو شوی دی له دې وجې نه تاسو چې په خپل کور کې کوم څه په مړه خېټه خورئ! هغه شي تولو مسلمانانو ته د هغوی په کورونو کې په مړه خېټه ورکوئ! او د عيش او عشرت د ژوند نه او د مشرکينو په شان طرز او طريقې له اختيارولو نه او د ورېښمو له اغوستلو نه ځان ساته! (۲)

**حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د حمص امير مؤاخذه:**

حضرت عروه بن رويم رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به د خلکو د حالاتو خبر اخيسته، د هغه په خواکې د حمص لوخې ځای خلک تېر شول، هغه ترې پوښتنه وکړه چې ستاسو امير حضرت عبد الله بن قرط رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ څنګه دی؟ هغوی وويل چې غوره امير دې بس يوه خبره ده چې هغه يوه بالاخانه جوړه کړې ده او په هغې کې اوسېږي، په دې خبره باندې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه امير ته خط وليکه او د خپل قاصد په لاس يې ولېږه، قاصد ته يې حکم وکړو چې هلته لاړ شه! او هغه بالاخانه وسوځوه! کله چې هغه قاصد هلته ورسېده نو هغه لرګي جمع کړل د هغه بالاخانې دروازې ته يې اور واچاوه، کله چې دا خبره هغه امير ته وکړل شوه نو هغه وويل چې ده ته څه مه وايئ! دا د امير المؤمنين لېږل شوی استازی دی بيا قاصد هغه ته د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خط ورکړو، خط يې لوستلو سره په سورلۍ باندې سپور شو او د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خواته مدينې منورې ته روان

---

۱: اخرجه ابن عبدالحکم كذا فى الكنز ٢/١٦٦

٢: اخرجه مسلم كذا فى الترغيب ٣/٤٥٨

تو، کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ولیده نو ورته وې فرمایل چې د مدینې منورې نه بهر کاني لرونکي میدان حره نومې ځای ته ماته راشه! په حره کې د صدقې اوښان وو، کله چې هغه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته حره ته ورسېده نو هغه ته حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو د اوښانو د وړیو څادر د اغوستلو لپاره ورکړو کله چې هغه دغه څادر واغوسته نو بیا یې ورته وفرمایل چې دې کوهي نه اوبه راوباسه! او دې اوښانو باندې یې وڅښه! هغه هم دغسې اوبه له کوهي نه راووېستلې او په اوښانو باندې یې وڅښلې، تر دې چې ستړې شو، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ترې پوښتنه وکړه چې په دنیا کې به نور څو مره پاتې کېږې؟ هغه ورته وویل چې لږه موده به نور پاتې کېږم! عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمایل چې بس د همدې لږ شاته عمر او ژوند لپاره دې هغه بالاخانه جوړه کړې وه چې له هغې وجې ته د مسکینانو، کونډو او یتیمانو، ته د رسېدلو نه اوچت شوې وې، څه خپل کار ته بېرته لاړ شه! او د بیا لپاره داسې کار مه کوه! (١)

**حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مؤاخذه :**

حضرت عتاب بن رفاعه رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دا خبر ملاو شو چې حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو محل یا ځای جوړ کړی دی او په هغه کې یې دروازه هم لګولې ده او دا یې هم ویلي دي چې اوس د بازار شور راتلل ختم شوی دی، دا ځای هغه د دې له وجې نه جوړ کړی وو چې د بازار اوازونه به ده ته راتلل چې د هغو په وجه به ده دا کار صحیح نشو کولی، نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت محمد بن مسلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ولېږه او کله به چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څه کار د خپلې خوښې مطابق کولو نو هم دی به یې لېږه او هغه ته یې وفرمایل چې سعد ته ورشه! او د هغه د ځای دروازه وسوځوه! نو حضرت محمد کوفې ته ورسېده او د حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دروازې ته رسېدو سره سم یې خپل د اوربلوونکي کاني راووېسته او په هغې دروازې یې اوربل کړ، بیا یې دروازې ته اور ولګولو، خلک راغلل او حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یې د دې خبر ورکړ او د اور لګوونکي شکل او صورت یې ورته وښوده نو حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه وپېژنده او بهر ته راغی، حضرت محمد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته وویل چې امیر المؤمنین ته ستا له طرفه دا خبره رسېدلې ده چې تا ویلي دي چې اوس شور راتلل کم شوی دی، مګر ... سعد په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم

---

(١) اخرجه ابن عساكر كذا في كنز العمال ٢/١٦٦.

وخوړ! او وې ویل چې ما دا خبره نه ده کړې، حضرت محمد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې مونږ ته کوم حکم راکړل شوی دی هغه کوو! او اوس چې تاسو څه وایئ! هغه به ستاسو له طرفه امیر المؤمنین ته ورسوو! حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت محمد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د لارې لپاره څه توښه ورانديې کړه خو هغه دې توښې له اخیستلو نه انکار وکړ او پخپله سورلۍ سپور شو. لاړ. مدینې منورې ته ورسیده کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ولیده نو وې فرمایل چې ته خو ډېر زر بېرته راغلې، که چېرې زمونږ په تا باندې ښه ګمان نه واې نو مونږ به هم دا ګڼلې واې چې تا کار پوره نه کړو، حضرت محمد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې ما سفر په ډېرې تېزۍ سره ترسره کړی دی او تاسو چې د کوم کار لپاره لېږلی ووم هغه مې پوره کړی دی او حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ معذرت غوښتلو او قسم یې هم خوړلو، ویل یې چې ما دا خبره نه ده کړې، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل آیا حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تا ته د سفر لپاره توښه درکړې وه؟ حضرت محمد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل نه! خو تاسو ما ته توښه ولې رانکړه؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل: ما دا خبره بده ګڼله چې ستا لپاره د توښې حکم وکړم! چې دا شان تا ته خو به د دنیا توښه ملاو شي خو زه به پرې په اخرت کې نیول کېږم! ځکه چې زما نه چاپېره مدینې والا دي چې غریبانان دي او له لوږې مره کېږي، آیا تا د رسول الله ﷺ نه اورېدلي نه دي چې دا نشي کېدې چې مؤمن دې خپله خېټه ډکه کړي او د هغه ګاوندي دې نهر وي.(١)

حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا حدیث په مختصره او لنډه توګه باندې نقلوي او په هغې کې دا مضمون هم دی چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دا خبر ورسېده چې حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ځان لپاره دربانچي یا دروازچي مقرر کړی دی او له خلکو نه جدا اوسېږي او خپله دروازه بنده ساتي په دې باندې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمار بن یاسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ولېږه او هغه ته یې وفرمایل کله چې ته هلته ورسېږې او تا ته د حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دروازه بنده ملاو شي نو هغې ته اور واچوه! (٢)

---

١: اخرجه ابن المبارک وابن راهويه ومسدد كذا في الكنز ٣/١٦٥ وقد ذكره في الاصابة ٢/٢٨٤ بتمامه الا انه قال عن عباية بن رفاعة وهكذا ذكره الهيثمي ٨/١٦٧ عن عباية بطوله ثم قال رواه احمد وابويعلي ببعضه ورجاله رجاله الصحيح الا ان عباية بن رفاعة لم يسمع من عمر انتهى.

٢: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ٨/١٦٨ وفيه عطاء بن السائب وقد اختلط

**هغه څه چې په شام کې دعمر او بعض صحابه وو رضي الله عنهم تر مینځ پېښ شول:**

حضرت ابو الدرداء د حضرت عمر رضي الله عنه نه شام ملک ته د تلو اجازه وغوښتله هغه ورته وفرمایل چې یوازې په دې شرط اجازه درکولی شم ا چې ته هلته د یوه ښار ګورنر (والي) جوړ شه! حضرت ابو الدرداء رضي الله عنه وفرمایل چې زه ګورنر (والي) جوړېدو لپاره تیار نه یم! حضرت عمر رضي الله عنه وفرمایل چې بیا زه اجازه نه درکوم! حضرت ابو الدرداء رضي الله عنه وویل چې زه به هلته لاړ شم! او خلکو ته به د رسول الله ﷺ سنت وښایم! او هغوی ته به مونځ ورکوم! په دې حضرت عمر رضي الله عنه هغه ته اجازه ورکړه! او هغه د شام سیمې ته لاړ، د هغې نه څه موده وروسته حضرت عمر رضي الله عنه د شام ملک ته لاړ کله چې صحابه حضراتو ته نږدې ورسېده نو حضرت عمر رضي الله عنه ایسار شو تر دې چې مابنام شو، کله چې د شپې تیاره خوره شوه نو خپل دربانچي ته یې وفرمایل اې یرفا! حضرت یزید بن ابي سفیان رضي الله عنه ته ورشه! وې ګوره هغه سره به خلک ناست وي او ډېوه به بلېږي او د مسلمانانو د غنیمت له مال نه اخیستل شوي ورېښم او دیباج به خور کړی شوي وي (د دغو حضراتو د ورېښمو خورولو وجه دا وه چې اول خو د دې حضراتو د شام په ملک کې اوسېدل عارضي وو، دغلته د ایسارېدو لپاره چې د مخکې نه کوم انتظام وو هم په دغه کې خور ورکې د دوي ایسارېدل وو یعنې دغه انتظام دوي نه وو برابر کړي. دلته له ایسارېدو وروسته بیا مخکې تلل و، دویم دا چې کېدی شي چې د هغو اوږده تارونه د ورېښمو وو او په پلنوالي کې د دیسي حلالو تارونه وو، دریم دا چې کېدی شي چې هغه د مکمل ورېښم، وو نو ځینې صحابه وو د ورېښمو خورول جائز ګڼل. البته د ورېښمو اغوستلو حرام ګڼلو کې څه اختلاف نه وو). تاسو به هغوی ته سلام کوئ! هغوی به ستاسو د سلام جواب درکوي، تاسو به د هغوی نه د دننه تلو اجازت غواړئ! هغوی به اول دا پوښتنه کوي چې ته څوک یې؟ بیا به تاسو ته اجازه درکوي، نو مونږ له هغه ځای نه لاړو او د حضرت یزید دروازې ته ورسېدلو، حضرت عمر رضي الله عنه وویل السلام علیکم! حضرت یزید رضي الله عنه وویل وعلیکم السلام! حضرت عمر رضي الله عنه وویل چې زه د ننه درتلی شم؟ هغوی وویل چې ته څوک یې؟ حضرت یرفا وویل، چې دا هغه هستي ده چې تاسو سره به اوس د ناخوښي سلوک کوي، دا امیر المؤمنین دې! حضرت یزید دروازه خلاصه کړه، حضرت

عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت یرفا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دننه داخل شول دې حضراتو ولیدل چې مجلس جوړ شوی دی ډېره بلېږي، ورېښم او دیباج خواره شوی دی، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل اې یرفا! دروازه بنده کړه! دروازه یې بنده کړه او یوه کوړه یې حضرت یزید له غوږ سره نیزدې وواهه! او ټول سامان یې راغونډ کړ، د کور په منځ کې یې کېښوده او دغه خلکو ته یې وویل چې زما تر ېېرته راتلو پورې به تاسو کې هیڅوک هم له دې ځائ نه نه خوزېږئ! ټول دلته اوسئ! بیا دا دواړه حضرات د حضرت یزید نه بهر ته راغلل، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل اې یرفا! راځه حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ورځو او هغه ګورو چې هغه سره به هم خلک ناست وي او ډېوه به بلېږي او د مسلمانانو د غنیمت له مال نه به دیباج خور شوي وي ته به هغوی ته سلام وکړې، هغه به ستا د سلام جواب درکړي بیا به ته د هغوی نه د دننه تلو اجازت وغواړې! هغوی به اجازت درکولو نه مخکې پوښتنه درځخه کوي چې څوک یې؟ نو د حضرت عمرو دروازې ته ورسېدو، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې السلام علیکم! حضرت عمرو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل وعلیکم السلام! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل: آیا زه دننه درتلی شم ؟ حضرت عمرو پوښتنه وکړه چې ته څوک یې؟ حضرت یرفا وویل چې دا هغه هستي ده چې به اوس تاسو سره ستاسو د ناخوښې سلوک کوي، حضرت عمرو دروازه خلاصه کړه دا دواړه حضرات د ننه لاړل نو دې حضراتو ولیدل چې خلک ناست دی او ډېوه بلېږي، ورېښم او دیباج خواره کړل شوی دی حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په دې وخت کې وفرمایل: چې اې یرفا دروازه بنده کړه! دروازه بنده کړل شوه بیا یې یوه کوړه حضرت عمرو له غوږ سره نیزدې وواهه، بیا یې ټول سامان راغونډ کړ او د کور په مینځ کې یې کېښوده، بیا یې دغو ټولو ناستو خلکو ته وویل چې زما تر ېېرته راتلو پورې به تاسو کې هیڅوک هم له خپل ځان نه نه خوزېږي ټول دلته اوسئ! بیا دا دواړه حضرات د حضرت عمرو له ځائ نه بهر راووتل، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې اې یرفا! راځه چې حضرت ابو موسی ته ورشو او هغه وګورو! هغه سره به خلک ناست وي او ډېوه به بلېږي، د مسلمانانو د غنیمت له مال نه به یې د وړې جامه خوره کړې وي ته به د هغه نه دننه د تلو اجازه وغواړې! هغه به د اجازې له درکولو نه مخکې درځخه وپوښتي چې ته څوک یې؟ نو مونږ هغه ته لاړو. ګورو چې هلته هم خلک راجمع شوي وو، ډېوه بلېدله او د وړیو جامه

غوښېدلې وه، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یوه کوړه حضرت ابو موسی هم له غوږ سره نیژدې وواهه او وې فرمایل: اې ابو موسی! ته هم دلته چې راغلې نو بدل شوې او هغه څه کوې چې نور خلک کوي، حضرت ابو موسی وویل چې ما خو کم کړی دی زما ملګرو چې څه کړی دی هغه خو تاسو ولیدل! هغه زما نه زیات دي په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ما ته هم هغه هومره ملاو شوی دی څومره چې زما ملګرو ته ملاو شوی دی، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل بیا دا څه دي؟ هغه وویل: چې د دې ځائ خلک وایي چې دومره قدرې کولو سره به د امارت کار صحیح چلېږي.

بیا حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ټول سامان راغونډ کړ او د کوړه په مینځ کې یې کېښوده او دې خلکو ته یې هم وویل چې زما تر بېرته راتګ پورې به چېرته هم نه ځئ! یعنې له خپل ځایه به نه خوزېږئ! کله چې مونږ له دوي نه هم بهر ته راغلو نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل: اې یرفا! راځه چې مونږ خپل ورور حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ورشو! چې هغه وګورو! نه به هغه سره خلک جمع شوي وي او نه به ډېوه بلېږي، نه به د هغه د دروازې بندولو لپاره څه کونډه او نور شیان وي، بلکې په هغه به نرې څادر وي چې په هغې کې به د هغه یخنې کېږي ته به هغه ته سلام کوې، هغه به ستا د سلام جواب درکوي، بیا به ته د هغه نه د دننه تللو اجازت غواړې! هغه به پرته له دې معلومولو تا ته اجازت درکوي چې ته څوک یې، نو مونږ دواړه لاړو تر دې چې د ابو الدرداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دروازې ته ورسېدو، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې السلام علیکم! حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل وعلیکم السلام! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وویل چې آیا زه دننه در تلی شم؟ هغه وویل راځئ! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دروازې ته دیکه ورکړه چې هغه ته نه کونډه لګېدلې وه او نه هم بل څه! مونږ کله چې دننه لاړو نو په کوټه کې تیاره وه، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغه د تیارې له وجې نه لټون شروع کړو تر دې چې د هغه لاس په حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ باندې ولګېده بیا یې د هغه بالښت وکوت نو هغه د څناورو لد وو، بیا د هغه د ناستې ځائ یې وکوت نو هغه شګې وو بیا یې د هغې له پاسه جامه وکتله نو هغه یو نرې څادر وو، حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل دا څوک دی؟ آیا امیر المؤمنین دی؟ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل: هو! حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل قسم په الله جَلَّ جَلَالُهُ! تاسو ډېره موده پس راغلئ! ما خو پوره کال ستاسو انتظار کاوه، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل

الله جَلَّ جَلَالُهُ دې په تا رحم وکړي، آیا ما په تا باندې فراخي او وسعت نه دی کړی او آیا ما تا سره فلاني فلاني احسان نه دی کړی؟ حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل: اې عمره! آیا تاسو ته هغه حدیث یاد نه دي چې رسول الله ﷺ مونږ ته بیان کړی وو ؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې کوم حدیث؟ هغه وویل: چې رسول الله ﷺ فرمایلي وو چې په تاسو کې له یوه سړی سره د ژوند تېرولو لپاره دومره سامان په کار دی څومره چې په سورلۍ د سوریدو لپاره توښه وي. حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل: چې هو! را ته یاد دي! حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې اې عمره! د رسول الله ﷺ نه وروسته مونږ څه وکړل؟ بیا دواړو یو بل ته د رسول الله ﷺ خبرې یادولې، تر سهاره پورې یې ژړل. (۱)

## د خپل رعیت له حالاتو ځان خبرول

### په دې باره کې د حضرت عمر او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قصه:

ابو صالح غفاري رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خدمت کولو لپاره د مدینې منورې په غاړه کې او سیدونکي یوه ړنده ډېر عمر والا بوډۍ تلاش کړه، چې د شپې به یې د هغې اوبه ډکې کړې او د هغې نور کارېې وکړي خو کله چې به حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغې ته ورغی نو وې لیدل چې څوک د هغه نه مخکې راغلی دی او د خدمت ټول کاريې د بوډۍ د خوښې مطابق کړی دی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څو ځله کوشش وکړو خو هغه سړی نه مخکې رانغی هم هغه به مخکې راته او د هغې بوډۍ د کور ټول خدمت به یې کاوه، اخر د هغه د معلومولو لپاره حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په لاره کې پټ کېناسته، لږ وخت وروسته یې ولیدل چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغې بوډۍ د خدمت لپاره را روان دی او دا هغه سړی دی چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه به مخکې د بوډۍ کور ته راته او خدمت به یې کاوه، په داسې حال کې چې د وخت خلیفه هم وو، کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا حالت ولیده نو وې ویل چې زما دعمر قسم! هم ته یې چې له ما نه مخکې راتلې او د دې بوډۍ خدمت دې کاوه.(۲)

حضرت اوزاعي رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د شپې په تیاره کې ووت، نو د

---

۱: اخرجه ابن عساکر والبشکری عن جویریة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قال بعضه عن نافع وبعضه عن رجل من ولد ابی الدرداء کذا فی کنز العمال ۷/۷۷

۲: اخرجه الخطیب کذا فی منتخب الکنز ۴/۲۴۷

حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نظر په هغه باندې پرېووت هغه وليدل چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اول يوه کور ته ننوت او بيا بل کور ته، سهار حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه کور ته لاړ نو وې ليدل چې په کور کې يوه ړنده او معذوره بوډۍ ده، حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ور څخه پوښتنه وکړه چې څه خبره ده؟ دغه سړی تا ته د څه لپاره راغلی وو؟ دغې بوډۍ ورته وويل: دا د دومره موده نه يعنې د کور نه زما خدمت کوي. زما د ضرورت کارونه کوي او زما د کوټې او نور د ټولو شيانو صفايي کوي، په دې باندې حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: اې طلحه ستا مور دې تا ورک کړي آيا ته د عمر لغزشونه لټوې؟ (۱)

## د ظاهرو اعمالو مطابق مؤاخذه او فيصله کول

حضرت عبدالله بن عتبه بن مسعود رَحِمَهُ اللهُ وايي چې ما د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه داسې اورېدلي دي چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې به خلکو سره د وحې مطابقه معامله کېدله، چې په هغې کې به ځينې وخت د هغوی د پټو کارونو مطابق الله جَلَّ جَلَالُهُ فيصله کوله او اوس د وحې سلسله بنده شوې ده اوس به مونږ ستاسو د ښکاره عملونو مطابق معامله کوو! څوک چې زمونږ د مخکې ښه کارونه کوي نو مونږ به هغه امانتدار ګڼو او ځانته به يې نيژدې کوو! زمونږ به له پټو اعمالو سره څه واسطه نه وي، د هغه د پټو عملونو حساب کتاب به الله جَلَّ جَلَالُهُ کوي. او څوک چې زمونږ په مخکې بد کارونه کوي نه به هغه مونږ امانتدار ګڼو او نه به هغه رښتونی ګڼو که څه هم د هغه دا اوازوي چې زما باطن ډېر ښه دی! (۲)

حضرت حسن رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د خليفه جوړېدو نه وروسته حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تر ټولو مخکې کوم بيان فرمايلي وو هغه دا وو چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ حمد او ثناء يې بيان کړه او بيا يې وفرمايل: اما بعد!

اوس زما تاسو سره واسطه راغلې ده زما امتحان به ستاسو په ذريعه اخيستل کېږي او ستاسو به زما په ذريعه، او زما د دواړو ملګرو يعنې رسول الله ﷺ او ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه وروسته زه ستاسو خليفه ټاکل شوی يم! چې مونږ سره موجود وي، نو د هغوی سره به مونږ په خپله معامله کوو! او چې له مونږ نه غائب وي نو هغوی باندې به مونږ قوي او امانتدار

۱: اخرجه ابونعيم فی الحلية ۱/۴۸

۲: اخرجه عبدالرزاق كذا فی الكنز ۲/۱۴۷ واخرجه البيهقی ۸/۲۰۱ عن عبدالله مثله وقال رواه البخاری فی الصحيح

امیر ته‌اکو، نو دارنګه چې کوم سړی اوس صحیح چلېږي نو هغه سره به مونږ ښه سلوک کوو! او څوک چې غلط چلېږي هغه ته به مونږ سزا ورکوو! الله جَلَّ جَلَالُهُ دې مونږ او تاسو ته بښنه وکړي!(۱)

## امیر ټاکل او د هغه د اعمالو نظارت کول

حضرت طاوس رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل: دا ووایئ! چې که چېرې زه ستاسو امیر یو داسې کس وټاکم چې په دغو سړیو کې تر ټولو ښه وي، کوم سړی چې زه پېژنم! او بیا زه هغه ته عدل او انصاف سره د چلېدلو حکم هم ورکړم! نو آیا داسې کولو سره به زه د خپلې ذمه وارۍ نه خلاص شم؟ خلکو ورته وویل چې هو! هغه وفرمایل: چې نه! تر څو چې زه دا ونه ګورم چې هغه زما د وینا مطابق کار کوي کنه!(۲)

## د لښکریانو تغییر او تبدیل

### په دې باره کې د عبدالله بن کعب بن مالک انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث:

حضرت عبدالله بن کعب بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: د انصارو یو لښکر د خپل امیر سره د فارس ملک کې وو هر کال به حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وار په وار لښکر لېږه، دویم لښکر چې به یې ولېږه نو اولني لښکر به یې راوغوښته، خو په دې کال کې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په نورو کارونو کې مصروف وو چې له هغې وجې یې وروسته دویم لښکر ونه لېږه، کله چې مقرر شوی وخت پوره شو نو هغه د سرحد والا د انصارو لښکر بېرته راغی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغوی په ځای کار کولو والا لښکر نه وو لېږلی ځکه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له هغوی نه خفه شو او هغوی یې ښه ورټل او دا ټول د رسول الله ﷺ صحابه وو نو هغوی وویل ای عمره! تا خو مونږ هېر کړی وو او رسول الله ﷺ زمونږ په باره کې تا ته حکم کړی دی چې وار په وار لښکر لېږه! تا په هغه باندې عمل ونه کړو.(۳)

---

۱: اخرجه ابن سعد ۳/۱۹٦ والبیهقی کذا فی الکنز ۳/۱۴۷

۲: اخرجه البیهقی وابن عساکر کذا فی الکنز ۲/۱٦۵

۳: اخرجه ابوداود والبیهقی کذا فی کنز العمال ۲/۱۴۸

# د تکلیفونو په وخت کې د امیر لخوا د هغوی رعایت

## حضرت عمر او حضرت ابو عبیده رضي الله عنهما قصه د طاعون عمواس په باره کې

حضرت ابو موسی رضي الله عنه فرمایي کله چې امیر المؤمنین حضرت عمر رضي الله عنه دا واوریدل چې په شام کې خلک طاعون مرض کې اخته شوي دي نو هغوی حضرت ابو عبیده بن جراح رضي الله عنه ته داسې خط ولیکه چې په یوه کار کې زما تا ته ضرورت پیښ شوی دي زه ستا نه پرته هغه کار نه شم کولی، نو په دې وجه زه تا ته قسم درکووم! او وایم! که چیرې زما دا خط تا ته ملاو شو نو د سهار له کېدو نه مخکې او که چیرې د ورځې درته ملاو شي نو ماښام له کېدو نه مخکې ته په سورلۍ باندې سپور شه! او زما طرفته راروان شه! حضرت ابو عبیده رضي الله عنه د خط له لوستلو سره ویل امیر المؤمنین ته چې کوم ضرورت پیښ شوی دی زه په هغه باندې پوه شوم! چې کوم سړی اوس دنیا کې اوسېدو والا نه دی، هغه دی باقي ساتل غواړي، یعنې حضرت عمر رضي الله عنه غواړي چې زه د طاعون د وبا والا علاقه پرېږدم! او مدینې منورې ته لاړ شم! او دغسې به د مرګ نه بچ شم خو زه د مرګ نه د بچ کېدو والا نه یم! حضرت ابو عبیده بن جراح رضي الله عنه حضرت عمر رضي الله عنه ته په جواب کې داسې ولیکل چې زه د مسلمانانو په یوه لښکر کې یم! د ځان بچ کولو لپاره زه دې خبرې ته تیار نه یم چې دوي پرېږدم او زه دې لاړ شم! او کوم ضرورت چې تا ته پیښ شوی دی زه په هغه باندې پوه شوی یم! هغه کس باقي پاتې کول غواړې چې اوس دنیا کې پاتې کېدونکی نه دی، په دې وجه کله چې زما دا خط تاسو ته دررسېږي نو ته ما د خپل قسم پوره کولو نه معاف کړه! او ما ته هم دلته د اوسېدو اجازه راکړه! کله چې حضرت عمر رضي الله عنه د هغه خط ولوسته نو د هغه سترګې له اوښکې راډکې شوې او په ژړا شو نو په مجلس کې حاضرو خلکو وویل: ولې حضرت ابو عبیده رضي الله عنه وفات شو؟ هغه وویل نه! خو داسې وګڼل شو، بیا یې حضرت ابو عبیده رضي الله عنه ته خط ولیکه چې د اردن ټوله سیمه وبا سره متاثره شوې ده او جابیه ښار د وبا نه محفوظ دې په دې وجه ته مسلمانان ځان سره هلته بوځه! هغه چې دا خط ولوسته نو وې فرمایل: چې د امیر المؤمنین دا خبره به ضرور منو! حضرت ابو موسی وایي چې حضرت ابو عبیده رضي الله عنه ما ته حکم وکړو چې زه په سورلۍ سور شم! او خلک د هغوی په ځایونو کې ایسار کړم! په دې کې زما ښځې ته هم

طاعون ولګېده زه حضرت ابو عبیده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د ویلو لپاره د هغه په خدمت کې حاضر شوم حضرت ابو عبیده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپله لاړ او خلک یې په خپلو ځایونو کې ایسار کړل بیا پخپله هغه ته طاعون ولګېده چې په هغې کې یې وفات هم وشو، او بیا د طاعون وبا ختمه شوه، حضرت ابو الموجه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وایي چې حضرت ابو عبیده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره شپږ دېرش زره لښکر وو چې له هغوی څخه یوازې شپږ زره لښکر ژوندي پاتې شو او پاتې نور ټول دېرش زره لښکر په دې طاعون مرض باندې وفات شول، حضرت سفیان بن عیینه نه دی نه مختصر روایت نقل کړی دی.(۱)

حاکم هم دا روایت د حضرت سفیان په واسطه نقل کړی دی په دې کې دا دی چې حضرت ابو عبیده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خط لوستلو سره وویل الله جَلَّ جَلَالُهُ دې پر امیر المؤمنین رحم وکړي! دی هغه خلک بېچ کول غواړي چې اوس د بېچ کېدو والا نه دي، بیا هغه حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته دا خط ولیکه چې له ما سره د مسلمانانو لښکر دی چې په هغوی کې طاعون مرض خور شوی دی زه د ځان بېچ کولو لپاره دوي نشم پرېښودلی.(۲)

ابن اسحاق د ابن طارق په واسطه هم دا روایت نقل کړی دی په هغه کې دا خبره ده چې اې امیر المؤمنین! تا ته چې د کومې وجې نه زما ضرورت دی زه په هغه پوه شوی یم! ما سره د مسلمانانو لښکر دی زه د ځان بېچ کولو په خاطر دوي نشم پرېښودلی! نو دا رنګه الله جَلَّ جَلَالُهُ چې تر څو زما او د دوي په باره کې فیصله ونه کړي نو زه د دوئ نه نشم جدا کېدی، له دې وجې نه اې امیر المؤمنین! تاسو د خپل قسم پوره کولو نه ما معاف کړئ! او ما له خپل لښکر سره پرېږدئ! (۳)

## امیر به مهربانه او رحم کونکی وي

### په دې باره کې د حضرت ابو اسید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حدیث:

حضرت ابو جعفر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وایي چې ابو اُسید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په خدمت کې د بحرین نه څه قیدیان راوستل هغه په دغو بندیانو کې یوه ښځه ولیدله چې هغې ژړل، رسول

۱: اخرجه ابن عساکر عن طارق بن شهاب کذا في الکنز ۲/۳۳۴

۲: اخرجه الحاکم ۳/۲۶۳ قال الحاکم رواۃ هذا الحدیث کلهم ثقات وهو عجیب بمرۃ وقال الذهبي علی شرط البخاري ومسلم.

۳: اخرجه ابن اسحاق من طریق طارق طوله کما في البدایة ۷/۷۸ واخرجه الطبری ۴/۲۰۱ ایضا بطوله عن طارق

اللهﷺ ترې پوښتنه وکړه چې ولې ژاړې؟ هغې ورته وویل چې هغه یعنې حضرت ابو اُسید رَضِيَ اللهُ عَنهُ زما څوی خرڅ کړی دی زه د څوی په جدایۍ کې ژاړم! رسول اللهﷺ د حضرت ابو اُسید رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه پوښتنه وکړه چې آیا تا د دې ښځې څوی خرڅ کړی دی؟ هغه وویل: هو! خرڅ کړي مې دي! رسول اللهﷺ ترې بیا پوښتنه وکړه چې په کومو خلکو دې خرڅ کړی دی؟ هغه وویل چې د بنو عبس د قبیلې په خلکو باندې مې خرڅ کړی دی. رسول اللهﷺ وفرمایل: چې ته په خپله سورلۍ سور شه! او هغې قبیلې والاوو ته ورشه! او هغه ماشوم ترې واخله! رایې وله!(۱)

**د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ خطبه:**

حضرت بُرید رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایي چې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ سره ناست ووم! چې ناڅاپه هغه د یوې ښځې چیغې واورېدلې، نو هغه خپل دربانچي ته وویل چې اې یرفا! وګوره! چې دا اواز څنګه دی؟ هغه وکتل او راغی نو عرض یې وکړ چې د یوې قریشې نجیلۍ مور خرڅولې شي له دې وجې نه هغه نجیلۍ ژاړي! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل چې لاړ شه! او حضرات مهاجرین او انصار ما ته را وغواړه! لږ وخت نه وو تېر شوی چې کور او حجره له دې حضراتو نه ډک شول، د الله جَلَّ جَلَالُهُ له حمد او ثنا نه وروسته حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل: اما بعد! آیا تاسو پوهېږئ! چې حضرت محمد ﷺ کوم دین راوړی وو په هغه کې قطع رحمي هم داخله ده؟ دې حضراتو وویل چې نه! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل: چې نن دا قطع رحمي په تاسو کې ډېره خوره شوې ده بیا یې دا آیت شریف ولوستو:

فَهَلْ عَسَيْتُمْ إِنْ تَوَلَّيْتُمْ أَنْ تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ وَتُقَطِّعُوا أَرْحَامَكُمْ(۲)

ترجمه: نو که چېرې تاسو مخ وګرځاوه نو آیا تاسو ته دا احتمال هم شته چې تاسو به په دنیا کې فتنه او فساد خوروئ! او پخپلو کې به خپلولي قطع کوئ!

بیا یې وفرمایل چې د دې نه زیاته سخته کومه قطع رحمي کېدلی شي چې د یوې ازادې نجلۍ مور خرڅېږي په داسې حال کې چې الله جَلَّ جَلَالُهُ تاسو باندې ډېره پراخي راوستلې ده، دې حضراتو وویل چې په دې باره کې تاسو څنګه مناسب ګڼئ! ضرور یې وکړئ! په

---

۱: اخرجه ابن ابی شیبة کذا فی الکنز ۲/۲۳۹

۲: سورة محمد آیت نمبر ۲۲

دې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تهولو سيمو ته خطونه وليكل چې د دې خرڅول قطع رحمي هم ده او حلال هم نه ده.(١)

**د حضرت ابوعثمان نهدي رَحِمَهُ اللَّهُ حديث:**

حضرت ابو عثمان نهدي رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د بنو اسد قبيلې يو سړی د يوه كار امير مقرر كړو هغه حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د تقرر نامې اخيستلو لپاره راغی، په دې كې د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يو ماشوم هغه ته راوړل شو، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه ښكل كړو دې اسدي سړي وويل اې امير المؤمنين! ماشوم ښكلوې؟ په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ما تر ننه پورې يو ماشوم هم نه دی ښكل كړی، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل: كله چې ستا په زړه كې د ماشومانو په باره كې شفقت نشته نو بيا خو په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! د نورو خلكو په باره كې به شفقت نور هم كم وي، راوړه! زما تقرر نامه واپس راكړه! آينده به ته زما له طرفه امير نه جوړېږې! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه سړی له اميرۍ او مشرۍ نه لرې كړ.(٢)

او هم دا واقعه دينوري د محمد بن سلام په واسطه سره نقل كړې ده او په هغې كې دا مضمون هم دی چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل: چې ستا د زړه نه شفقت وېستل شوی دی نو په دې كې زما څه گناه ده؟ او الله جَلَّ جَلَالُهُ خو خپلو بنده گانو كې هغو بنده گانو باندې رحم فرمايي چې په نورو باندې شفقت كونكی وي او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه معزول كړ او وې فرمايل كله چې ته په خپل بچي باندې شفقت نه كوې نو په نورو باندې به يې څه وكړې؟ (٣)

## د رسول الله ﷺ او صحابه كرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ عدل او انصاف

### د يوې مخزومي ښځې قصه او د رسول الله ﷺ خطبه:

حضرت عُروه رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې د رسول الله ﷺ په زمانه كې د مكې د فتحې پر وخت باندې يوې ښځې غلا وكړه د دغې ښځې قوم والا ووېرېدل، حضرت اسامه بن زيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ورغلل چې هغه رسول الله ﷺ ته د دغې ښځې سفارش وكړي او دغسې د هغوی ښځه به د غلا له سزا

---

١: اخرجه ابن المنذر والحاكم والبيهقي كذا في كنز العمال ٢/٢٢٦

٢: اخرجه البيهقي وهناد ٩/٤١ كذا في الكنز ٢/١٦٥

٣: كذا في الكنز ٨/٣١٠

نه بچ شي، کله چې حضرت اسامه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په دې باره کې رسول الله ﷺ سره خبره وکړه نو د هغوی ﷺ مخ مبارک د غصې له وجې نه بدل شو او وې فرمایل: اې اسامه! ته ما ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ د حدودو په باره کې د سفارش خبرې کوې! حضرت اسامه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ پوه شو چې سفارش کولو سره مې غلطي وکړه ځکه سمدستي حضرت اسامه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وویل چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو زما لپاره استغفار او بښنه وغواړئ! مابښام رسول الله ﷺ د بیان کولو لپاره ودرېده اول یې د الله جَلَّ جَلَالُهُ د شان مناسب ثناء بیان کړه او بیا یې وفرمایل:

اما بعد! ستاسو نه مخکې خلک یوازې په دې وجه تباه او هلاک شول کله چې به په هغوی کې قوي او معزز سړی غلا وکړه نو هغه به یې پرېښوده او کله به چې کمزوری سړی غلا وکړه نو په هغه باندې به یې شرعي حد جاري کړو، په هغه ذات مې دې قسم وي! چې د هغه په قبضه کې د محمد ﷺ ساه ده که چېرې د محمد ﷺ لور فاطمې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا هم غلا وکړه نو زه به د هغې لاس ضرور پرې کوم! (اعاذها الله منها) بیا رسول الله ﷺ حکم ورکړ چې په هغې باندې د دغې ښځې لاس پرې کړل شو او هغې د پره ښه توبه ووېستله او هغې واده هم وکړ، حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وايي چې دې نه پس به هغه ښځه ما ته راتله او ما به د هغې د ضرورت خبره رسول الله ﷺ ته کوله.(۱)

## په دې باره کې د حضرت قتاده رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حدیث:

حضرت ابو قتاده رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې مونږ د حُنین د غزا پر وخت رسول الله ﷺ سره ووتلو کله چې مونږ له دښمنانو سره مخامخ شولو نو زیاتر مسلمانان ګډوډ شول البته رسول الله ﷺ او ځینې صحابه کرام رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ د جنګ په میدان کې کلک ولاړ وو. ما ولیدل چې یو مشرک سړی په یو مسلمان باندې له پاسه ناست دی، نو ما له وروسته نه په دغه مشرک باندې پر اوګه ګذار وکړو زما له ګذار سره د هغه زغره غوځه شوه او دې سره یې د اوګې رګ هم پرې شو خو مشرک په ما باندې هم حمله وکړه او زه یې دومره په زوره ووهلم چې زه مرګ ته نیزدې شوم! لیکن بیا وروسته د وینې د بهېدو له امله کمزوری شو او همداسې مړ شو، چې دې سره یې زه هم پرېښودم! او بیا هغه مړ شو زه حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سره ملاو شوم! نو

---

۱: اخرجه البخاری وقدرواه البخاری فی موضع آخر ومسلم من حدیث عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا کذا فی البدایة ۴/۳۱۸ واخرجه ایضا الاربعة عن عائشه کما فی الترغیب ۴/۲٦

ما ورته وویل چې په خلکو کې څه شوي وو؟ چې دې مسلمانانو ته شکست وشو؟ هغه وویل چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ حکم هم داسې وو روستو بیا کافران له مکملې ماتې سره مخامخ شول او مسلمانان کامیاب شول، بیا مسلمانان د جنګ له میدان نه بېرته راغلل، رسول الله ﷺ ناست وو، وې فرمایل: چا چې کافر وژلی وي او هغه سره شاهد هم وي نو د هغه قتل شوي سامان به هم ده ته ورکول کېږي، زه ودرېدم! او ومې ویل: چې څوک به زما لپاره شاهدي ورکړي؟ چا جواب رانکړو نو کېناستم! بیا هغوی ﷺ دا شان ارشاد وفرمایلو ما بیا وویل چې څوک به زما لپاره شاهدي ورکړي؟ بیا زه کېناستم! رسول الله ﷺ بیا همدا شان ارشاد وفرمایلو زه بیا ودرېدم! رسول الله ﷺ وفرمایل: چې اې ابوقتاده! په تا څه شوي دي؟ ما ورته ټوله کیسه وکړه نو یوه سړي وویل چې دې ریښتیا وایي د هغه قتل شوي کافر سامان ما سره دی اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو یې په څه طریقه زما سره راضي کړئ! چې دی د هغه قتل شوي کافر سامان ما ته پرېږدي، حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل: چې نه! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! داسې نشي کېدي، کله چې ده غه خبره صحیح ده نو بیا دا سامان هم هغه ته ملاوېدل پکار دي، تا ته د دې سامان د ورکولو مطلب خو به دا شي چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه د رسول جَلَّ جَلَالُهُ له طرفه جنګېدونکي د الله جَلَّ جَلَالُهُ زمري ته ملاوېدلو والا سامان دې رسول الله ﷺ تا ته درکړي؟ رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل: چې ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صحیح وایي ته هغه ته دغه سامان ورکړه! نو هغه ما ته سامان راکړو چې په هغې باندې ما د بنو سلمه په سیمه کې یو باغ واخیسته، دا هغه اولني مال وو چې ما په اسلام کې جمع کړو.(۱)

## د حضرت عبدالله بن ابی حَدْرَد اسلمی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او یهودي قصه:

حضرت عبدالله بن ابي حدرد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې زما په ذمه د یوه یهودي څلور درهمه قرض وو هغه یهودي د دغه قرض د اخیستو لپاره د رسول الله نه امداد حاصولول غوښتل او دا یې وویل: اې محمده ﷺ! زما په دې سړي څلور درهمه قرض دي او هغه د دې درهمو په باره کې په ما باندې غالب شوی دی یعنې ماله ده نه څو ځله وغوښتل خو هغه یې ما ته نه راکوي. رسول الله ﷺ ما ته وفرمایل چې د ده حق ده ته ورکړه! ما وویل چې په هغه ذات مې دې قسم وي چا چې تاسو ته حق درکړی دی او رالېږلی یې یئ! د ورکولو زما سره

۱: اخرجه البخاري واخرجه ایضا مسلم ۲/۸٦ ابوداود ۲/۱٦ والترمذی ۱/۲۰۲ وابن ماجه ۲۰۹ والبیهقی ۹/۵۰

بلکل کنجائش نشته! رسول الله ﷺ وفرمايل: د ده حق ده ته ورکړه! ما وويل چې په هغه ذات مې دې قسم وي! چې د هغه په قبضه کې زما ساه ده د ورکولو لپاره ما سره هيڅ ګنجايش نشته! او ما ده ته ويلي وو چې تاسو به ما خيبر ته ولېږئ! او اميد دى چې تاسو به ما ته څه د غنيمت مال راکړئ! نو د هغه ځاى نه چې واپس شوم، د ده قرض به اداء کړم! رسول الله ﷺ وفرمايل: د ده حق اداء کړه! د هغوى ﷺ دا عادت مبارک وو چې هغه به يوه خبره د درېو کرتو نه زياته نه کوله، يعنې درې ځل وينا کول د پوره اهتمام او تاکيد کولو نښه وه نو حضرت ابن ابي حدرد بازار ته لاړو د هغه په سر پټکي وو او يو څادر يې اغوستي وو هغه د سر نه پټکي کوز کړو د هغې نه يې لنګ وواهه! او څادر يې پرانيستلو هغه يهودي ته يې وويل چې ته زما نه دا څادر واخله! نو هغه څادر يې په يهودي په څلور درهمه خرڅ کړ په دې د هلته نه يوه بوډۍ تېرېدله هغې چې دا حال وليده نو وې ويل چې اې د رسول الله ﷺ صحابي! په تا څه وشول؟ هغه ورته ټوله قصه واوروله نو هغې بوډۍ خپل څادر واخيستلو او په هغه باندې يې واچولو او وې ويل چې دا زما څادر واخله!(۱)

## په دې باره کې د وه انصارو سړيو قصه:

حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې د انصارو دوو سړيو د يوه داسې ميراث جنګ د رسول الله ﷺ په خدمت کې راوړو چې د هغه نښې ختمې شوې وې او څوک ګواه هم د هغوى سره نه وو رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو ما ته خپل جنګ راوړى او د کومو په باره کې چې ما ته وحي نه وي راغلې په هغې کې زه پخپله رايې فيصله وکړم! چې د هغه له وجې نه د کوم سړي د دليل په وجه چې زه د هغه په حق کې فيصله وکړم! چې له هغې وجې هغه د خپل ورور حق اخلي نو هغه ته په کار دى چې هغه د خپل ورور حق هيڅکله هم وانه خلي. ځکه چې زه خو هغه ته د اور ټوټه ورکوم او هغه به د قيامت په ورځ په داسې حال کې راشي چې دا ټوټه به د هغه په غاړه کې هار جوړ شوي وي په دې خبره هغه دواړه په ژړا شول او دواړو وويل چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه خپل حق ده ته ورکوم! رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چې تاسو دا اراده وکړه نو ځئ! او په حق باندې چلېږئ! او دا ميراث پخپلو کې تقسيم کړئ! او د تقسيمولو لپاره قرعه اندازي وکړئ! او د دې هر څه کولو نه وروسته

---

(۱) اخرجه ابن عساكر كذا في الكنز ٣/١٨١ واخرجه احمد ايضا كما في الاصابة ٢/١٩٥

په تاسو دوارو دې هر يو خپل ملګري ته خپل حق معاف کړئ! (۱)

**د يو اعرابي (بانډيچي) قصه:**

حضرت ابو سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د يوه بانډيچي په رسول الله ﷺ باندې قرض وو هغه راغی او د رسول الله ﷺ نه يې خپله قرضه وغوښتله او د رسول الله ﷺ سره يې ډېره سختي وکړه تر دې چې دا يې ورته وويل چې تر څو دې زما قرض نه وي اداء کړي زه به تا تنګوم! د رسول الله ﷺ صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ هغه ورټه او ورته وې ويل چې تباه شې تا ته پته ده چې ته چا سره خبرې کوې؟ هغه وويل چې زه خو خپل حق غوارم! رسول الله ﷺ وفرمايل: چې تاسو د حق والا سره ملګرتيا ولې ونه کړه؟ او بيا يې حضرت خوله بنت قيس رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته پيغام ولېږه، چې که چېرې تا سره کجورې وي نو ما ته يې قرض راکړه! کله چې مونږ ته کجورې راشي نو مونږ به ستا قرضه تا ته درکړو! هغې وويل چې ضرور اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما مور او پلار دې په تاسو قربان وي، رسول الله ﷺ له هغې نه قرض واخيستلې او د هغه بانډيچي قرض يې اداء کړو او څومره چې د هغه قرض وه د هغې نه يې ورته زيات ورکړه؛ هغه بانډيچي وويل تاسو قرضه پوره اداء کړه! الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تا ته بدله درکړي بيا رسول الله ﷺ وفرمايل چې د حق ملګرتيا کونکي په خلکو کې غوره او افضل خلک دي او هغه امت پاک نشي کېدې چې په هغه کې کمزوری سړی بغير د څه تکليف او پرېشانۍ نه خپل حق وصول نه کړی شي .(۲)

**په دې باره کې د حضرت خوله بنت قيس رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث:**

د حضرت حمزه بن عبد المطلب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بي بي حضرت خوله بنت قيس رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې د بنو ساعده د يوه سړي يو وسق يعنې پنځه منه او لس سېره کجورې د رسول الله ﷺ په ذمه قرض وې، هغه سړی راغی او د رسول الله ﷺ نه يې هغه قرض وغوښته، رسول الله ﷺ يوه انصاري صحابي ته وفرمايل چې د ده قرض اداء کړه! هغه د خپلو کجورو نه کمزور قسم کجورې ورکولو اراده وکړه، هغه سړي د دغه قسم کجورو له اخيستلو نه انکار وکړ،

---

۱: اخرجه ابن ابی شيبة وابوسعيد النقاش كذا فی الكنز ۲/۱۸۲

۲: اخرجه ابن ماجه ورواه البزار من حديث عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا مختصرا والطبرانی من حديث ابن مسعود باسناد جيد كذا فی الترغيب ۲/۲۷۱

هغه انصاري وويل آیا ته رسول الله ﷺ ته د هغه کجورې واپس کوې؟ هغه سړي وويل هو!
او د رسول الله ﷺ نه زيات د عدل او انصاف کولو والا څوک حقدار او مستحق دی؟ دې
اوریدو سره د رسول الله ﷺ سترګې مبارکې له اوښکو نه ډکې شوې او وې فرمايل: چې
هغه صحيح وايي زما نه زیاد عدل او انصاف کونکی څوک حقدار او مستحق کېدی شي؟
او الله جَلَّ جَلَالُهُ هغه امت نه پاکوي چې د هغوی کمزوری سړی د قوي نه خپل حق وصول نه
کړی شي او نه په هغه زور وکړی شي بيا يې وفرمايل اې خوله! دا وشماره! او اداء يې
کړه! ځکه چې د کوم قرضداري نه چې قرض غوښتونکی خوشحاله لاړ شي د هغه لپاره د
ځمکې ځناور او د سمندر ماهيان دعاء کوي او کوم قرضداري سره چې د قرض اداء کولو
لپاره مال وي او هغه په قرض اداء کولو کې وروسته کول کوي نو الله جَلَّ جَلَالُهُ د هرې ورځې
او شپې په بدله کې د هغه لپاره يوه ګناه ليکي.(۱)

## د حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عدل

### په دې باره کې دحضرت عبدالله بن عمرو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا حديث:

حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د
جمعې په ورځ ودرېده او وې فرمايل کله چې سهار شي نو د صدقې اوښان ما ته راولئ! مونږ
به يې تقسيموو! او مونږ ته به زمونږ له اجازې نه بغير څوک نه راځي، يوې ښځې خپل خاوند
ته وويل چې دا پړې واخله! کېدی شي چې الله جَلَّ جَلَالُهُ مونږ ته هم اوښ راکړي، نو هغه سړی
لاړو وې کتل چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په اوښانو کې ګرځي،
دغه سړی هم دې دواړو حضراتو سره ننوتو، چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دې وليده نو ورته
وې فرمايل چې ته مونږ ته ولې راغلې؟ بيا يې د هغه لاس نه هغه پړې واخيسته او هغه يې
پړې وواهه! کله چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د اوښانو له تقسيم نه فارغ شو نو هغه سړی يې
راوغوښته او پړې يې هغه ته ورکړو دې سره يې ورته وفرمايل چې ته خپله بدله له ما نه
واخله! نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وويل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! هغه به ستا نه بدله
بلکل نه اخلي، ته دا مستقل عادت مه جوړوه! چې امير چا ته د هغه د پوهې لپاره سزا ورکړي
نو د هغه نه دی بدله اخيستی شي؟ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې ما به د قيامت په

---

۱: اخرجه الطبراني ورواه احمد بنحوه عن عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا باسناد جيد قوى كذا في الترغيب ۳/۲۷۰

ورځ د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه څوک بچ کوي؟ په دې حضراتو کې د الله جَلَّ جَلَالُهُ ویره زیاته وه، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل چې ته ده ته څه ورکړه! او دې راضي کړه! حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپل غلام ته وویل چې ته ما ته یو اوښ د هغې کجاوه او یوه کمبله او پنځه دیناره راوړه نو دا ټول هر څه یې هغه سړي ته ورکړل او هغه یې راضي کړو.(۱)

## د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عدل او انصاف

### د حضرت عمر او ابي بن کعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قصه:

حضرت شعبي رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د حضرت ابي بن کعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په مینځ کې د کجورې د یوې ونې په باره کې جنګ وشو، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایله راځه مونږ د خپلې فیصلې لپاره دریم ګړی ټاکو، نو دواړو حضرت زید بن ثابت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپل دریم ګړی وټاکلو، دا دواړه حضرات حضرت زید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته راغلل او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې مونږ تا ته د دې لپاره راغلی یو چې زمونږ په مینځ کې فیصله وکړې او امیرالمؤمنین کېدو باوجود زه پخپله تاسو ته ځکه راغلی یم! چې قانون داسې دی چې څوک په چا فیصله کوي نو د هغه کور ته راځي کله چې دا دواړو حضرت زید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته دننه لاړل نو حضرت زید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خپله بستره باندې سر ته کېنول غوښتل او دا یې وویل چې اې امیرالمؤمنین! دلته کېنئ! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وفرمایل چې دا اول ظلم دی چې تا په خپله فیصله کې وکړو زه خو به د خپل فریق مخالف سره کېنم! حضرت ابي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپله دعوه وړاندې کړه، چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له هغې دعوې نه انکار وکړو، حضرت ابي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته حضرت زید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل چې د قانون مطابق انکار کولو باندې په چا چې دعوه وي قسم به خوري خو زه تا ته عذر کوم چې تاسو امیرالمؤمنین ته د قسم ورکولو تکلیف مه ورکوئ! او زه د امیرالمؤمنین نه پرته د بل چا لپاره دا درخواست نشم کولی حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا رعایت قبول نه کړو بلکې قسم یې وخوړ او وې ویل چې حضرت زید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د صحیح فیصلې والا هلته جوړېدې شي کله چې

---

۱: اخرجه البیهقی کذا فی کنز العمال ۲/۱۲۷

حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او يو عام مسلمان د هغه په نزد برابر وي.(۱)

ابن عساكر دا قصه د شعبي نه نقل كړې ده او په دې كې دا دي چې د كجورې يوې ونې پربكولو باندې د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د حضرت أبي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تر منځ جنګ وشو په دې حضرت أبي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په ژړا شو او وې فرمايل: چې اې عمره! ستا په خلافت كې داسې كيږي؟ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل: راځه! پخپلو كې د فيصلې لپاره دريم ګړى تاكو، حضرت أبي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې حضرت زيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به دريم ګړى وټاكو! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل: چې هو! زما هم خوښه ده، نو دا دواړه حضرات لاړل او حضرت زيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د ننه ورغلل مخكې يې د تېر شوى حديث پشان ذكر كړو.(۲)

## حضرت عباس او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا او د مسجد نبوي د توسيع قصه:

حضرت زيد بن اسلم رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عباس بن عبد المطلب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يو كور د مدينې منورې مسجد نبوي ﷺ سره بلكل نيزدې وو، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه په جوماتِ كې داخلول غوښتل نو حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته يې وفرمايل چې دا كور په ما باندې خرڅ كړه! خو حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته انكار وكړو، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وفرمايل چې دا كور بيا ما ته په هديه كې راكړه! حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يې دا خبره هم ونه منله، بيا حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وويل چې ته دې دا خپل كور د جوماتِ سره داخل كړه! حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا هم ونه منله نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وفرمايل چې ته به په دې دريو كارونو كې يو كوې! حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورسره ونه منله، نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته بيا وويل چې راځه چې دريم ګړى مقرر كړو! حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت أبي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دريم ګړى مقرر كړو دې دواړو حضراتو خپله فيصله حضرت أبي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وړاندې كړه، حضرت أبي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وويل چې زما دا فيصله ده چې ته د دهٔ د خوښې نه پرته له ده نه دا كور نه شې اخيستى، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ترې پوښتنه وكړه چې تا ته دا فيصله د الله جَلَّ جَلَالُهُ په كتاب كې معلومه

---

۱: اخرجه ابن عساكر وسعيد بن منصور والبيهقى

۲: كما فى كنز العمال ۳/۱۷۴ و ۳/۱۸۱

شوي ده او که د رسول الله ﷺ مبارک په حدیثو کې؟ حضرت أبي رَضِيَ اللهُ عَنهُ ورته وفرمایل چې ما ته دا فیصله د رسول الله ﷺ په حدیثو کې په لاس درغلې ده! نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ورته وویل: چې هغه کوم حدیث دی؟ حضرت أبي رَضِيَ اللهُ عَنهُ ورته وفرمایل چې ما له رسول الله ﷺ نه اورېدلی دی چې حضرت سُلیمن بن داود عَلَیهِ السَّلَامُ کله د بیت المقدس ابادي شروع کړه نو هغه به چې کوم دېوال جوړولو نو هغه به بیا سهار پرېوتي وو، اخر الله جَلَّ جَلَالُهُ هغه ته وحې نازله کړه، چې که چېرې ته د بل چا په ځمکه کې یې جوړول غواړې نو اول هغه راضي کړه! دا یې چې واورېدل نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ پرېښوده بیا حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ پخپله خوښه باندې هغه کور به جومات کې داخل کړ.(۱)

**په دې باره کې دحضرت سعید بن مسیب رَضِيَ اللهُ عَنهُ حدیث:**

حضرت سعید بن مُسیب رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ اراده وکړه چې د حضرت عباس بن عبد المطلب رَضِيَ اللهُ عَنهُ کور واخلي او په مسجد نبوي ﷺ کې یې داخل کړي حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ ورته د کور ورکولو نه انکار وکړو، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ورته وویل چې زه به دا کور ضرور اخلم! حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ وویل چې په حضرت أبي رَضِيَ اللهُ عَنهُ به فیصله وکړو، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ورته وویل چې صحیح ده، نو دواړه حضرات حضرت أبي بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته ورغلل او هغه ته یې ټوله قیصه بیان کړه، حضرت أبي بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل چې الله جَلَّ جَلَالُهُ حضرت سلیمان بن داود عَلَیهِ السَّلَامُ ته وحې ولېږله چې هغه بیت المقدس اباد کړي، هغه ځمکه د یوه سړي وه حضرت سلیمان عَلَیهِ السَّلَامُ د هغه نه هغه ځمکه واخیستله کله چې یې هغه ته قیمت ورکولو نو هغه سړي وویل چې کوم قیمت ته ما ته راکوې هغه زیات او غوره دی یا کومه ځمکه چې ته له ما نه اخلې هغه غوره ده؟ حضرت سلیمان عَلَیهِ السَّلَامُ وفرمایل چې کومه ځمکه چې زه له تا نه اخلم! هغه زیاته غوره ده! هغه سړي وویل: نو بیا زه په دې قیمت خوشحاله نه یم! بیا حضرت سلیمان عَلَیهِ السَّلَامُ ورته قیمت له مخکې نه زیات کړ، او وایې خیستله، دې سړی حضرت سلیمان عَلَیهِ السَّلَامُ سره

---

۱: اخرجه عبدالرزاق

دوه درې حُله داسې وکړل يو قيمت به يې مقرر کړو بيا يې د هغې نه د زيات قيمت غوښتنه کوله، اخر حضرت سليمان عَلَيْهِ السَّلَامُ په دې باندې دا شرط ولګاوه چې ته څو مره قيمت غواړې زه يې په هغه قيمت در څخه اخلم! خو ته به دا پوښتنه نه کوې چې په څمکه او د هغې په قيمت کې کوم شي غوره دی؟ نو د هغه د خوښې په قيمت باندې يې واخيستله نو د هغې يې د ولس زره قنطار سره زر قيمت مقرر کړل يو قنطار څلور زره دينارو ته وايي حضرت سليمان عَلَيْهِ السَّلَامُ ته دا قيمت ډېر زيات معلوم شو نو الله جَلَّ جَلَالُهُ هغه ته وحې ولېږله چې که چېرې ته ده ته دا قيمت له خپل طرفه ورکوې نو بيا پوه شه! او کار دې پوه شه! او که چېرې يې ته زما له ورکړل شوي مال نه ورکوې نو بيا هغه ته دومره ورکړه! چې هغه پرې راضي شي نو حضرت سليمان عَلَيْهِ السَّلَامُ هم دغسې وکړل او بيا حضرت أبي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې زما فيصله دا ده چې حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د خپل کور زيات مستحق دی که چېرې د ده کور په جومات کې داخلول وي نو بيا چې هغه په کومه طريقه راضي کېږي، هغه دې راضي کړل شي، په دې باندې حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل کله چې تا زما په حق کې فيصله وکړه نو اوس زه دا کور د مسلمانانو لپاره صدقه کووم! (۱)

**د حضرت عبدالرحمن بن عمر بن الخطاب او ابو سِرْوَعَه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ قصه:**

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د خلافت په زمانه کې په مصر کې زما ورور عبدالرحمن او هغه سره ابو سِروعه عُقبه بن حارث نبيذ وڅښل، يعنې کجورې به يې په اوبو کې اچولې او لږ څه وخت به خوړې کېدې چې دې ته به يې نبيذ ويل ډېر وخته پورې ساتلو سره به په هغې کې نشه پيدا کېدله، چې په دې سره هغوی نشه شول، سهار دا دواړه د مصر امير حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ورغلل او هغه ته يې وويل سزا راکړه! او مونږ پاک کړه! څکه چې مونږ يو دول شراب څښلي وو چې مونږ په هغې سره نشه شو، حضرت عبدالله فرمايي ما ته زما ورور وويل زه نشه شوي ووم! ما هغه ته وويل

---

۱: اخرجه عبدالرزاق ايضا كذا فى كنز العمال ۴/۲٦۰ واخرجه ابن سعد ۴/۱۳ وابن عساكر عن سالم ابى النضر- مطولا جدا وسنده صحيح الا ان سالما لم يدرک عمرو اخرجاه ايضا والبيهقى ويعقوب بن سفيان عن ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مختصرا و سنده حسن كما فى الكنز ۷/٦٦ واخرجه الحاكم وابن عساكر من طريق اسلم من وجه آخر مطولا كما فى الكنز ۷/٦۵ وفى حديثه حذيفة بدل ابى بن كعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ

چې کور ته لاړ شه! زه به تا د سزا په درکولو سره پاک کړم! ما ته دا معلومه نه وه چې دا دواړه حضرات حضرت عمرو ته ورغلي دي، بیا زما وررور ما ته وویل چې دوي د مصر امیر ته دا خبره کړې ده نو ما وویل چې کور ته لاړ شه! زه به ستا سر وخروم! چې د ټولو په مخکې ستا سر ونه خرول شي، د هغه وخت دستور او رواج دا وو چې سزا ورکولو سره به یې ورته سر هم خرییلو بیا حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغوی ته د شرابو سزا ورکړه، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د دې قصې پته ولګېده نو هغه حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته خط ولیکه چې حضرت عبدالرحمن ما ته بغیر د کجاوې نه په اوښ باندې سپور راولېږه! نو هغه هم د غسې وکړل، کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورسېدلو نو هغه ده ته کوړې ورکړې او د خپل ځوی کېدو په وجه یې ده ته سزا ورکړه، بیا یې پرېښوده، دې نه وروسته دې یوه میاشت خو صحیح نه وو، بیا د الله جَلَّ جَلَالُهُ تقدیر پرې غالب شو او وفات شو، عام خلک دا ګڼي چې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د کوړو ورکولو سره وفات شو، په داسې حال کې چې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له کوړو سره نه دی وفات شوی بلکې په خپل مرګ وفات شوی دی.(۱)

**د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او هغې ښځې قصه چې خاوند نادرکه شوی و:**

حضرت حسن رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د یوې ښځې خاوند غائب شوي وو او هغې ته به یو کس تلو راتلو، په حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا خبره بده ولګېده، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغې د راغوښتلو لپاره یو سړی ولېږه، هغه سړی ورغی او ورته وې ویل چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورشه! هغه دې غواړي، هغې وویل هاي زما تباهي! د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له ما سره څه کار دی؟ هغه له کور نه راووتله حامله هم وه، لا تر اوسه په لاره کې وه چې هغه ووېرېدله چې په دې سره هغې ته د بچي د پیدا کېدو درد پیدا شو، هغه یوه کور ته ننوتله چې هلته د هغې بچي پیدا شو، بچی دوه کرته په ژړا شو او مړ شو، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ له صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ سره مشوره وکړه، چې زما له وجې نه هغه ښځه ووېرېدله او ماشوم له وخت نه مخکې پیدا شو، په دې وجه هغه ماشوم مړ شو نو آیا د دغه ماشوم داسې مړ کېدو سره ما باندې څه شی شرعاً لازمېږي؟ ځینې صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ورته وویل چې په تا باندې هیڅ هم نه لازمېږي، ځکه چې ته د مسلمانانو خلیفه یې! او له دې وجې نه

---

۱: اخرجه عبدالرزاق والبیهقی قال فی منتخب کنز العمال ۴/۴۲۲ وسنده صحیح واخرجه ابن سعد عن اسلم عن عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بطوله کما فی منتخب الکنز ۴/۴۲۰

ستاسو په ذمه دي چې ته دوي ته ادب وښايې! که څه کمې پکې ووینې نو دوي ته راوغواړه! او زورنه ورکوه! حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چپ وو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغه طرفته متوجه شو او وې ویل چې دې باره کې ته څه وایې؟ حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل چې که چېرې دې خلکو دا خبره د څه دلیل نه بغیر یوازې له خپلې رایې نه ویلې وي نو د دوي رایې غلطه ده او که چېرې دوي دا خبره ستا د خوشحالولو لپاره کړې وي نو دوي تا سره خیرخواهي ونه کړه، زما رایې دا ده چې د دې ماشوم دیت یعنې د مرګ تاوان به ته ورکوې! ځکه چې ستا په راغوښتلو سره هغه ښځه وېرېدلې ده، په دې وجه د وخت نه مخکې د ماشوم پیدا کېدو سبب هم ته یې! په دې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته حکم وکړو چې د دې ماشوم دیت د ټولو قریشو نه واخله! ځکه چې دا قتل د هغه نه په خطایي سره شوی دی.(۱)

**د حج په موسم کې دحضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دعدل او انصاف موقع برابرول:**

حضرت عطاء رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به خپلو ګورنر(والي) انو ته حکم کولو چې د حج پر وخت هغوی ده ته راځي کله به چې ټول ګورنر(والي) ان راټلل نو عام مسلمانان به یې جمع کول او فرمایل به یې: اې خلکو! ما خپل ګورنر(والي) ان تاسو ته د دې لپاره نه دي را لېږلي چې هغوی ستاسو څرمنې وباسي یا ستاسو په مالونو باندې قبضه وکړي، یا ستاسو بې عزتي وکړي، بلکې ما خو هغوی یوازې د دې لپاره را لېږلي دي چې تاسو په یوه بل باندې ظلم کولو ته سره پرېنه ږدي، او په تاسو به د غنیمت مال تقسیموي، نو چا سره چې د دې خلاف څه شوي وي هغه دې ودرېږي او خپله خبره دې وکړي!

نو هغه یو ځل ګورنر(والي) ان راټول کړل او په خلکو کې یې دا اعلان وکړو نو یوازې یو سړی ودرېده او هغه وویل چې اې امیرالمؤمنین! چې ستا فلانی ګورنر(والي) زه په ظلم سره سل دُرې وهلی یم! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه ګورنر(والي) ته وویل چې تا ولې هغه وهلی دی؟ او دې سړی ته یې وویل چې پاڅه! او له دې ګورنر(والي) نه خپله بدله واخله! په دې خبره باندې حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ودرېده او وې ویل چې که چېرې تا داسې د ګورنر (والي) انو نه بدله اخیستل شروع کړل نو بیا به تا ته ډېر زیات شکایتونه راځي او دا د ګورنر(والي) انو نه بدله اخیستل به داسې دستور جوړ شي چې څوک به هم ستاسو نه

---

۱: اخرجه عبدالرزاق والبیهقی کذا فی کنز العمال ۷/۳۰۰

وروسته راځي نو هغه به هم دغسې کوي په داسې حال کې چې خپلو ګورنر(والي) انو نه بدله اخیستل د هر امیر په وس کې نه دي، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل: کله چې ما رسول الله ﷺ د خپل ذات مبارک نه د بدلې اخیستو لپاره تیار لیدلی دی نو زه به د خپل ګورنر(والي) نه بدله ولې نه اخلم؟ حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل تاسو مونږته د دې سړی د راضي کولو موقعه راکړئ! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل: ښه ده! دي تاسو راضي کړئ! نو هغه ګورنر(والي) د هرې کوړې په بدله کې د دوو دینارو په حساب سره دوه سوه دینار هغه سړی ته په بدله کې ورکړل. (۱)

**د یو مصری او عمروبن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دځوی قصه:**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې د مصر نه یو سړی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې راغی او عرض یې وکړو چې اې امیرالمؤمنین! په ما باندې ظلم شوی دی زه ستاسو پناه اخیستل غواړم! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل هو! ته زما په مضبوطه پناه کې یې! نو دغه سړي وویل چې ما د حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځوی محمد سره په منډه کې مقابله وکړه نو زه له هغه نه مخکې شوم! نو بیا په دې سره زه هغه په کوړو ووهلم! او وې ویل چې زه د عزتمندو او لویو خلکو اولاد یم! په دې باندې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته خط ولیږه او ورته وې لیکل چې ته هم راشه! او ځوی دې هم راوله! نو حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مدینې منورې ته راغی، په دې وخت کې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې هغه مصري شکایت کونکی چېرته دی؟ کوړا واخله! او دې ووهه! هغه مصري په کوړو وهلو او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به ویل چې د کمینو ځوی ووهه! حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې هغه مصري د حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځوی ښه وواهه او هلته یې وهل پرېښودل کله چې مونږ هم دا غوښتل چې نور دې وهل نه کوي، یعنې هغه په وهلو کې هیڅ کمی ونه کړو. بیا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه مصري ته وویل چې اوس حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم څوک کوړې ووهه! د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې خبره کې تیه غرض وو چې حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د خپل ځوی داسې تربیت کول پکار وو چې په هغه سره په ده کې په چا باندې د ظلم کولو زړورتیا نه وای پیدا شوی، هغه مصري وویل اې

۱: اخرجه ابن سعد ۳/۲۱۱ واخرجه ایضا ابن راهویه کما فی منتخب الکنز ۴/۴۱۹

امیر المؤمنین! زه خو د ده ځوی وهلي ووم! او ما له هغه نه بدله واخیستله ځکه زه حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه وهم! په دې باندې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمایل چې له کله نه تاسو خلک خپل غلامان جوړ کړي دي؟ په داسې حال کې چې هغوی د خپلو میندو نه ازاد پیدا شوي دي، حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې د دې واقعې ما ته بالکل پته نه وه. او نه دی مصري ما ته شکایت راوړی وو کنه ما به خپل ځوی ته پخپله سزا ورکړې وه.(۱)

**حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او بحرین دوالي مؤاخذه:**

حضرت یزید بن ابي منصور رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دا پته ولګېده چې په بحرین کې د هغه ټاکل شوی ګورنر (والي) حضرت ابن جارود یا ابن ابي جارود ته یو سړی راوستل شو چې د هغه نوم ادریاس وو هغه د مسلمانانو له دښمنانو سره پټ خط و کتابت کولو او دغو دښمنانو سره د ملاوېدو اراده هم د هغه وه او د ده په دې جرم باندې شاهدان هم موجود وو په دې باندې دغه ګورنر (والي) هغه وواژه! هغه سړی د مرګ په وخت کې ویلي و چې اې عمره! زه مظلوم یم! زما د امداد لپاره راشه! اې عمره! زه مظلوم یم! زما د امداد لپاره راشه! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دغه خپل ګورنر (والي) ته خط ولیږه چې ما ته راشه! نو هغه راغی، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه په وړه نېزه په ژامه وهل غوښتل خو وې نه واهه! چې حضرت جارود اجتهادي خطایي سره هغه سړی قتل کړی دی، ځکه یې پرېښوده، او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې اې ادریاس! زه ستا د مرستې لپاره حاضر یم! اې ادریاس! زه ستا مرستې ته حاضر یم! او حضرت جارود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې اې امیر المؤمنین! هغه د مسلمانانو د راز خبرې دښمنانو ته لیکلې وې او له دښمنانو سره یې د یو ځای کېدو اراده هم کړې وه، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل چې یوازې د بدې په اراده باندې تا هغه قتل کړ؟ په مونږ کې داسې څوک دی چې د هغه په زړه کې خرابې ارادې نه راځي؟ که چېرې د ګورنر (والي) انو د قتلولو رواج د جوړېدو خطره نه وای نو ما به د هغه په بدله کې خامخا ته قتل کړی وې.(۲)

---

۱: اخرجه ابن عبدالحکم کذا فی منتخب کنز العمال ۴/۴۰۲

۲: اخرجه ابن جریر کذا فی الکنز ۷/۲۹۸

**په دې باره کې د حضرت زید بن وهب رَضِيَ اللهُ عَنهُ حدیث:**

حضرت زید بن وهب رَحِمَهُ اللهُ وایي چې یو ځل حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ په دواړو غوږونو کې ګوتې ورکړې وې او بهر ته راووت او وې ویل چې لبیک! زه امداد لپاره حاضریم! زه امداد او مرستې ته حاضریم! خلکو ترې پوښتنه وکړه چې تا ته څه خبره پېښه شوې ده؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وویل چې زما د مقرر شوي امیر له طرفه یو قاصد دا خبر راوړی دی چې د هغوی په سیمه کې د مسلمانانو په لاره کې یو نهر راغي چې هغه نه اوښتلو لپاره مسلمانانو ته څه کشتۍ ونه موندل شوه، نو د هغوی امیر وویل چې یو داسې سړی وګورئ! چې د نهر ژوروالی معلوم ولی شي، نو هغوی ته یو بوډا راوستل شو، هغه بوډا وویل چې زه له یخنۍ نه وېرېږم! هغه موسم د یخنۍ وو خو امیر هغه بوډا مجبور کړ او نهر ته یې ورکوز کړ، په لږ وخت کې په هغه باندې د یخنۍ ډېر زیات اثر وشو او زوره یې چغې کړې اې عمره! زما د مرستې لپاره راشه! او هغه بوډا ډوب شو د هغه بوډا د فریاد په جواب کې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ په غوږونو کې ګوتې ورکړې وې او یا لبیک یې ویل او بهر ته راوتلي وو، نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ هغه امیر ته خط ولیږه چې په هغه سره هغه مدینې منورې ته راغی، د هغه د راتلو ډېرې ورځې وشوې خو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د هغه ته هیڅ توجه ونه کړه او دا د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ عادت مبارک وو چې کله به هم چا ته غصه شو نو له هغه نه به یې اعراض کولو او هغه ته به یې هیڅ توجه نه کوله، بیا یې دغه امیر ته وویل چې کوم سړی تا وژلی وو د هغه څه وشو؟ هغه وویل: چې اې امیر المؤمنین! زما اراده د هغه د قتلولو نه وه مونږ ته له نهر نه اوړېدو لپاره څه شی ملاو نه شو نو مونږ یوازې دا غوښتل چې د اوبو ژوروالي معلوم کړو، بیا مونږ د الله جَلَّ جَلَالُهُ په فضل سره فلانۍ فلانۍ سیمې فتح کړې، په دې باندې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل: کوم د فتوحاتو خبرونه چې دې راوړی دی له دې څخه ما ته یو مسلمان ډېر محبوب دی، که چېرې ائینده کې د امیرانو وژل د مستقل رواج د جوړېدو خطره نه وای نو ما به د هغه په بدل کې ستا څټ الوزولي وو. زما له خوا نه څه! چې بیا دې ونه وینم! خو د هغه رشته دارو ته د قتل تاوان یا دیت ورکړه! (۱)

---

۱: اخرجه البیهقی کذا فی الکنز ۷/۲۹۹

**د حضرت ابوموسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او يو سړي قصه او د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خط:**

حضرت جرير رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت ابو موسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره په جهاد کې يو سړی وو په دغه جنګ کې مسلمانانو ته ډېر د غنيمت مال په لاس ورغي، حضرت ابو موسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته د غنيمت مال نه خو د هغه برخه ورکړه خو پوره يې ورنه کړه، هغه وويل: چې اخلم! نو پوره برخه به اخلم! کنه نو نه يې اخلم! حضرت ابو موسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه شل کوړې وواهه! او سر يې پرې وخريلو، هغه خپل وېښته راټول کړل او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راغی، کله چې هغه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راورسېده نو له خپل جېب نه يې ورته وېښته راوويستل او د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په سينه باندې يې وروغورځول، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورڅخه وپوښتل چې په تا باندې څه شوی دی؟ هغه ورته خپله ټوله قصه وکړه، په دې سره حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ابو موسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته داسې خط وليکه:

(سلام عليك. اما بعد: فأن فلان بن فلان اخبرنی بكذا و كذا و انی اقسم عليك ان كنت فعلت ما فعلت فی ملأٍ من الناس (الا) جلست له فی ملأٍ من الناس فاقتص منك. و ان كنت فعلت ما فعلت فی خلأٍ فاقعد له فی خلأٍ فليقتص منك).

سلام عليک! اما بعد: فلاني د فلاني ځوی ما ته خپله ټوله قصه داسې داسې واوروله زه تا ته قسم درکوم! او وايم! که چېرې دا کار د هغه سره تا د خلکو په ګڼه ګوڼه کې کړی وي نو ته ده ته د خلکو په مخکې کېنه! او بيا به دی له تا نه خپله بدله واخلي او که چېرې دا کار ده سره تا په يوازې والي کې کړی وي نو ته ده په يوازې والي کې کېنه! او بيا به دی له تا نه خپله بدله واخلي. نو کله چې حضرت ابو موسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته خط ورسېده نو هغه د بدلې ورکولو لپاره هغه سړي ته کېناسته په دې سره هغه سړی وويل: ما د الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره دي معاف کړی دی.(۱)

**دحضرت فيروز ديلمي او يو قريشي ځوان قصه:**

حضرت حِرمازي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت فيروز ديلمي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته داسې خط ليږلی وو:

---

۱: اخرجه البیهقی کذا فی کنز العمال ۷/۲۹۹

(اما بعد: فقد بلغنی انه قد شغلك اكل اللباب بالعسل. فاذا اتاك كتابی هذا فاقدم علی بركة الله. فاغز فی سبیل الله).

اما بعد! ما ته دا خبر را رسېدلی دی چې ته د مېده شویو اورو دودی له شاتو سره خوړلو کې مصروف شوی یې! نو دا رنګه کله چې زما دا خط درورسېږي نو ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ نوم واخله! او ما ته راشه! او د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې جهاد وکړه! په دې سره حضرت فیروز رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له خط ملاو پېد و سره سم مدینې منورې ته راغی ، هغه له حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه د دننه تلو اجازه وغوښتله، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه ته اجازه وکړه! هغه دننه روان شو نو یو قُریشي ځوان هم دننه ور روان شو، چې دې سره هغه ته لاره تنګه شوه، هغه د دغه قریشي پوزه په دومره په زور سره په څپېړه ووهله چې وینه ترې راووتله، هغه قریشي ځوان هم په همدغه حال کې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته راغی ، چې د هغه له پوزې نه وینه بهېدله، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له دغه ځوان نه پوښتنه وکړه چې تا سره داسې چا وکړل؟ هغه وویل: چې حضرت فیروز! او هغه دا وخت په دروازه باندې دي، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فیروز ته د دننه راتلو اجازه وکړه هغه دننه راغی ، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل چې اې فیروزه! دا څه دي؟ هغه وویل: اې امیر المؤمنین! مونږ له مودہ پادشاهي پرېښې ده چې د هغې اثر تراوسه پورې زمونږ په طبیعتونو کې پاتې دی ، خبره داسې وه چې تا ما ته خط لیکلی وو او زه دې راغوښتی وم! او ده ته تا څه نه وو لیکلي او د اجازې په غوښتلو باندې تا ما ته د دننه راتلو اجازه راکړه او ده نه اجازه وغوښتله او نه ورته تاسو اجازه ورکړه! ده له قانون نه خلاف بغیر له اجازې زما نه مخکې زما له اجازې نه فائده اخیستله او دننه راتلو په دې باندې ما ته غصه راغله ځکه له ما نه هغه حرکت وشو، چې هغه تاسو ته ښایي، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل چې ته به ده ته د دې بدله ورکوې! حضرت فیروز پوښتنه وکړه چې آیا بدله ورکول به خامخا وي؟ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل: هو! خامخا به وي، حضرت فیروز رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زنګنونه ولګول او د بدلې ورکولو لپاره کېناسته، هغه ځوان هم د بدلې اخیستلو لپاره ودرېده، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل: اې ځوانه! لږ صبر وکړه! زه تا ته هغه خبر اوروم! چې له رسول الله ﷺ نه مې اورېدلې ده، یوه ورځ د سهار په وخت کې رسول الله نه مې دا واورېدل چې دروغجن نبي اسود عنسي نن شپه قتل

کړل شوی دی او هغه د الله جَلَّ جَلَالُهُ نیک بنده فیروز دیلمي وژلی دی، کله چې تا د ده باره کې د رسول الله دا حدیث واورېده نو آیا ته به بیا هم له ده نه خپله بدله واخلې؟ هغه ځوان وویل: کله چې تا ما ته د ده په باره کې د رسول الله ﷺ حدیث واوراوه! نو ما هم دی معاف کړی دی، حضرت فیروز وویل: ما د خپلې خطایي اقرار وکړو او ده زه په خوشحالۍ خوشحالۍ معاف کړم! نو آیا له دې نه پس به زه په دې خطایي کولو باندې د الله جَلَّ جَلَالُهُ له نیولو نه بچ شم؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل هو! په دې باندې حضرت فیروز وویل: چې تاسو به دې خبره باندې شاهد جوړوم! چې زما توره، زما اس او زما د مال نه دی رش زره دې ځوان ته هدیه دي، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل، اې قریشي! تا معافي وکړه، ثواب دې هم حاصل کړ او تا ته دومره مال هم ملاو شو.(۱)

**د یوې وینځې قصه او دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عدل او انصاف:**

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یوه وینځه د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې راغله او وې ویل چې زما اقا اول په ما باندې تهمت ولګاوه او بیا یې زه په اور باندې کېنولم! چې په هغې سره زما شرمګاه وسوځېده، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له هغې نه پوښتنه وکړه چې آیا ستا اقا ته په هغه بد کار کولو باندې لیدلې وې؟ هغې وویل: نه! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ترې پوښتنه وکړه چې آیا تا د څه بد کار د هغه په مخکې اقرار کړی وو ؟ وینځې وویل، نه! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل، چې هغه ما ته راوله! نو هغه سړی راغی کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه سړی ولیده نو وې فرمایل، چې ته انسانانو ته هغه عذاب ورکوې؟ چې الله جَلَّ جَلَالُهُ پورې خاص دی؟ هغه سړی وویل، چې اې امیرالمؤمنین! زما په دې باندې شک راغلی وو، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورځخه وپوښتل چې آیا تا دا په هغه بد کار باندې لیدلې وه؟ سړی وویل، نه! بیا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورځخه وپوښتل، چې آیا ستا په مخکې هغې د څه جرم اقرار کړی وو ؟ سړی وویل، نه! نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل، چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! که چېرې ما له رسول الله ﷺ نه دا حدیث نه وای اورېدلې چې د مالک نه به د هغه د غلام او له پلار نه به د هغه د ځوی بدله نه اخیستل کېږي نو ما به د دې وینځې بدله له تا نه اخیستې وای! بیا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د غه سړی سل کوړې وواهه! او

(۱) اخرجه ابن عساکر کذافي الکنز ۷/۸۳

دغې وینځې ته یې وویل: چې ځه! ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه د رسول ﷺ لپاره ازاده کړی شوې یې! زه شاهدي ورکوم! چې ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلی دی چې څوک په اور کې وسوځول شي یایې په اور کې سوځېدو شکل وران شوی وي او وسوځول شو نو هغه د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د رسول الله ﷺ ازاد کړی شوی دی.(۱)

**د نبطي او عباده بن صامت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قصه او د عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عدالت:**

حضرت مکحول وایي چې حضرت عُباده بن صامت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یو باندیچي را وغوښته چې هغه بیت المقدس سره د هغه سورلی ونیسي او ولاړ وي. هغه ورته انکار وکړ، نو حضرت عُباده بن صامت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه وواهه! چې په دې سره د هغه سر زخمي شو، هغه د ده په خلاف حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه مدد وغوښته حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تري پوښتنه وکړه چې تا ده سره داسې ولې وکړل؟ هغه وویل اې امیر المؤمنین! ما ده ته وویل چې زما سورلی ونیسه! او ده ډیره خو ده انکار وکړ، او په ما کې لږه تیزي موجود ده، ځکه ما هغه وواهه! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل: چې ته د ده بدلې ورکولو لپاره کښېنه! حضرت زید بن ثابت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل چې آیا ته خپل غلام لپاره د خپل ورور نه بدله اخلې؟ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د بدلې اراده پریښوده او دا فیصله یې وکړه چې حضرت عُباده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به ده ته د دې زخم په بدله کې مقرر شوې تاوان ورکوي.(۲)

**د عوف بن مالك اشجعي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او یهودي داستان او عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عدل:**

حضرت سوید بن غفله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وایي کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د شام سیمې ته لاړ نو د اهل کتابو نه یو سړی پاڅېدو، چې سر یې زخمي وو، هغه وویل اې امیر المؤمنین! ته چې ما په کوم حال کې وینې! دا ما سره یوه مسلمان کړی دی، په دې باندې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ډېر زیات غصه شو او حضرت صهیب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته یې وویل چې لاړ شه! او وګوره! چې ده سره چا داسې کړی دی؟ هغه ما ته راوله! حضرت صُهیب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لاړو او معلومات یې وکړل نو پته ولګېده چې دا هر څه حضرت عوف بن مالک اشجعي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کړی دی حضرت صُهیب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه ته وویل چې امیر المؤمنین تاته ډېر غصه دې، ته

۱: اخرجه الطبراني في الاوسط والحاكم والبيهقي كذا في الكنز ۷/۲۹۹
۲: اخرجه البيهقي كذا في الكنز ۷/۳۰۲

حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ووايه! چې هغه د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره ستا په باره کې خبره وکړي او هغه ستا لپاره هغه ته سفارش وکړي، ځکه چې ما ته وېره ده چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به ستا په ليدو سره تا ته سزا درکړي نو کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له لمانځه نه فارغ شو نو هغه پوښتنه وکړه چې حضرت صهيب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چېرته دی؟ آيا تا هغه سړی راوستلی دي؟ حضرت صهيب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ووېل چې هو! حضرت عوف تللي وو او حضرت معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته يې خپله ټوله قصه بيان کړې وه او حضرت معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په دغه وخت کې دلته راغلی وو، نو حضرت معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ودرېده او وې ويل اې امير المؤمنين! هغه وهونکي عوف بن مالک دا سې د اعتماد او باور قابل انسان دی تاسو د ده خبره واورئ! او ده ته په سزا ورکولو کې عجله مه کوئ! په دې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت عوف ته ووېل چې له دې سړي سره ستا څه خبره راغلې وه؟ هغه ووېل، اې امير المؤمنين! ما وکتل چې يوه مسلمانه ښځه په خره سوره ده، د له وروسته نه هغه خر شړلو په دې کې ده د هغې ښځې د غورځولو لپاره هغه خر په لرګي وواهه! خو هغه ونه غورځېده، بيا ده هغې ته په لاس سره ديکه ورکړه چې په دې سره هغه ښځه وغورځېده او بيا دا يهودي په هغې ښځې باندې ورروخوت او د هغې بې عزتي يې وکړه، نو ما دا حالت برداشت نه کړای شو او ما هغه په سر باندې وواهه! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ووېل، چې ته ورشه! هغه ښځه راوله چې هغه ستا د خبرې تصديق وکړي، حضرت عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغې ښځې ته ورغی نو د هغې پلار او خاوند ورته ووېل چې ستا زمونږ له زنانه سره څه کار دی؟ تا خو ټوله قصه خلکو ته وکړه مونږ دې رسوا کړو خو هغه ښځې ووېل، چې نه! زه خو به له ده سره حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته خامخا ځم! نو د هغې پلار او خاوند ووېل چې نه! ته پاتې شه! او مونږ به لاړ شو، ستا له طرفه به ټوله خبره ورسوو! او بيا به راشو، نو هغوی دواړه حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته لاړل او بلکل هم هغسې بيان يې د دې واقعې وکړو څنګه چې حضرت عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کړی وو، نو د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په حکم سره هغه يهودي په دار وځړول شو، او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل، چې اې يهودو! مونږ تاسو سره په دې صلحه نه ده کړې چې تاسو به زمونږ ښځو سره زنا کوئ! او مونږ به درته څه نه وايو! بيا يې ووېل، چې اې خلکو! د حضرت محمد ﷺ د امان په باره کې له الله جَلَّ جَلَالُهُ نه ووېرېږئ! خو په دوي

يعنې يهودو کې څوک د يوې مسلمانې ښځې چې زنا وکړي د هغه لپاره هيڅ امان نشته،
حضرت سُويد وايي چې دا اولنی يهودي دی چې په اسلام کې په دار باندې وځړول شو.(۱)

**ه بكر بن شدّاخ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او يهودي قصه او د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عدل او انصاف:**

حضرت عبدالمالک بن يعلي ليثي وايي چې حضرت بُکير بن شداخ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په هغو صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ کې دي کومو چې د ماشوموالي نه د رسول الله ﷺ خدمت کاوه، چې دي بالغ شو نو دي د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او وې ويل چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه ستاسو کور ته تلم راتلم خو اوس زه بالغ شوی يم! رسول الله ﷺ خوشحاله شو او دا دعا يې وکړه چې اې الله جَلَّ جَلَالُهُ د ده خبره رښتيا کړې!او ده ته کاميابي ورکړې! کله چې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خلافت زمانه راغله نو يو يهودي قتل شوي وموندل شو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا ډېره لويه پېښه وبلله او وويرېده، منبر ته وخوت او وې فرمايل: چې الله جَلَّ جَلَالُهُ زه خليفه جوړ کړي يم! نو آيا زما د خلافت په زمانه کې به دغسې ناڅاپه خلک وژل کېږي؟ چا ته دچې د دې قتل په باره کې څه معلومات وي ما ته دې ضرور ووايي په دې حضرت بُکير بن شداخ ودرېده او وې ويل چې دا قتل ما کړی دی، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل: الله اکبر! تا چې د ده د قتل اقرار وکړ نو اوس داسې وجه وښايه چې په هغې ته له سزا نه بچ شې، هغه وويل هو! زه ښايم! هغه دا چې فلانی مسلمان د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې جهاد لپاره لاړ نو او د خپل کور والاو و حفاظت يې زما په ذمه کړل زه چې د هغوی کور ته لاړم نو ما دغه يهودي هلته وليده چې دا شعر يې ويلو:

واشعث غره الاسلام منی
خلوت بعرسه ليل التمام

يعنې اشعث چې د دغې ښځې خاوند دی خو اسلام په دوکه کې اچولی دی هغه په اسلامي جذبې سره کور پرېښی دی او د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې تللی دی او ما د دې دوکې څخه دا فائده واخيستله چې ما ټوله شپه د هغه له ښځې سره په يوازې والي کې تېره کړه.

ابيت علی ترائبها و يمسی
علی جرداء لاحقة الحزام

---

۱: اخرجه ابوعبيد والبيهقي وابن عساکر كذا في الكنز ۲/۲۹۹ واخرجه الطبراني عن عوف بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مختصرا قال الهيثمي ۶/۱۳ ورجاله رجال الصحيح انتهى.

زه خو تو له شپه د هغه د ښځې د سينې لپاسه تېروم او هغه پخپله د ورو وېښتو والا او ښې په شا باندې تېروي چې د هغې پتې ترل شوې ده.

كـان مجـامع الـربلات منهـا
فئـــام ينهضـــون الى فئـــام

يعنې د عربو ښځه غټه او سرى مانده خوښ وو ځكه وايي چې د هغه ښځه دومره غټه ده چې د هغې كناتي لاندې باندې دي او هلته د غوښې غټې بوټي دي.

دې او رېدو سره حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت بُكير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خبره رښتيا وګڼله او د هغه يهودي قتل يې ورته معاف كړو او د هغه نه يې د يهودي بدله يا د قتل تاوان وانه خيسته او حضرت بُكير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره دا هرڅه د رسول الله ﷺ د دعا له بركته وشو چې بغير له شاهد نه د هغه خبره صحيح او ومنل شوه.(١)

**ابوعبيده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ديو يهودي دقتل په باره كې دحضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خط:**

حضرت قاسم بن ابي برده وايي چې په شام كې يو مسلمان يو ذمي كافر قتل كړ، حضرت ابوعبيده بن جراح رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته دا پېښه واورول شوه، نو هغه دا واقعه وليكله او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته يې ولېږله، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په جواب كې داسې وليكل چې كه چېرې داسې د ذميانو قتلول د دې مسلمان مستقل عادت جوړ شوې وي نو بيا خودى مخكې كړه او څټ يې ووهه! او كه چېرې هغه په غصه كې راغلى وي او ناڅاپه يې داسې كړي وي نو بيا په ده باندې څلور زره د ديت جرمانه كېږده!(٢)

**د لښكر اميرانو ته د مشركينو له وژلو په باره كې دحضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خط:**

د كوفې يو صاحب بيان كوي چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يو لښكر لېږلى وو، د هغه امير ته يې دا خط وليكه چې ما ته پته لګېدلې ده چې ستا ملګري كله كله غټ څورب كافر پسې كېږي هغه كافر منډه كړي او غره ته وخېږي او د ځان حفاظت وكړي نو بيا ده ته ستا ملګري په فارسي كې وايي مترس! يعنې مه وېرېږه! دې ويلو سره هغه ته امن وركوي، هغه كافر ځان مسلمانانو ته حواله كړي بيا دا مسلمان هغه كافر ونيسي او قتل يې كړي، دا قتل يې

١: اخرجه ابن منده وابونعيم كذا في الكنز ٧/١٣
٢: اخرجه عبدالرزاق والبيهقي كذا في كنز العمال ٧/٢٩٨

په دوکه ورکولو سره کړی دی په هغه ذات مې دې قسم وي چې د هغه په قبضه کې زما ساه ده آئنده که چېرې ما ته د چا په باره کې پته ولګېده چې هغه داسې کړی دی نو زه به د هغه څټ و وهم! (۱)

حضرت ابو سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې په هغه ذات مې دې قسم وي چې د هغه په قبضه کې زما ساه ده چې په تاسو کې چا په ګوته سره اسمان طرفته اشاره وکړه او يو مشرک ته يې امن ورکړ، او هغه مشرک د لـه دې وجې نه مسلمان ته راغی، بيا هغه مسلمان هغه قتل کړ نو په داسې دوکه قتل کولو باندې به زه د غه مسلمان خامخا قتل کوم! (۲)

**د هرمزان او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قصه:**

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې مونږ د تُستر محاصره وکړه اخر د محاصرې او جنګ نه تنګ شولو د تُستر حاکم هُرمُزان د خپل ځان باره کې د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په فيصله باندې راکوزېدل قبول کړل، ما دې ځان سره کړ او د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شوم! کله چې مونږ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ورسېدو نو هغه ده ته وويل: وايه! څه وايې؟ ده وويل چې د ژوندې پاتې کېدونکي پشان خبره وکړم! يا د مړ کېدونکي پشان؟ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل، چې ته د خپل ځان په باره کې مه وېرېږه! خبره کوه! هرمزان وويل، اې د عربو قومه! تر څو چې الله تاسو سره نه وو بلکې الله معامله زمونږ او ستاسو په منځ کې پرېښې وه تر هغه پورې خو مونږ تاسو خپل غلامان جوړولئ! مونږ به تاسو وژلئ! او تاسو نه به مونږ تول سامان اخيسته خو له کوم وخته چې الله جَلَّ جَلَالُهُ تاسو سره شوی دی د هغه وخت نه تاسو سره زمونږ د مقابلې طاقت هم نه دی پاتې شوي، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له ما نه پوښتنه وکړه چې اې انس! دې څه وايي؟ ما وويل اې اميرالمؤمنين! ما ځان وروسته ډېر زيات دښمنان او د هغوی لويه دبدبه پرېښې ده او راغلی يم! که چېرې ته هغه قتل کړې نو بيا به د ده قوم له خپل ژونده نااميده شي او مسلمانانو سره به په جنګېدو کې ډېر زيات نور زيات زور ووهي، په دې وجه تاسو دې مه وژنئ! حضرت

---

۱: اخرجه مالک

۲: عند ابن صاعد واللالکائی کذافی کنز العمال ۲/۲۹۸

عمر رضي الله عنه وویل، چې د حضرت براء بن مالک او د حضرت اجزاء بن ثور رضي الله عنهم قاتل څنګه ژوندی پرېږدم؟ ده هغه دواړه قتل کړي دي، حضرت انس رضي الله عنه وایي کله چې ما ته خطره شوه چې حضرت عمر رضي الله عنه به دي ضرور وژني نو ما ورته وویل چې ته دا نشې وژلی! ځکه چې تاسو ده ته لابلس یعنې ته مه وېرېږه! خبره کوه! ویلي دي، او لابلس سره د ځان امن ملاوېږي، نو دارنګه تاسو ده ته امن ورکړی دی، حضرت عمر رضي الله عنه وویل، معلومېږي چې تا د ده نه څه رشوت اخیستی دی او له ده نه دې څه فائده اخیستې ده؟ حضرت انس رضي الله عنه وویل: په الله جل جلاله قسم! ما له ده څخه نه رشوت اخیستی دی او نه مې هم څه فائده ورنه اخیستې ده! زه خو یوه حقه خبره کوم! حضرت عمر رضي الله عنه وویل، ته په دې خپله دعوه کې بل څوک تصدیق کونکی ګواه ځان سره راوله! کنه نو زه به د سزا شروع هم له تا نه کوم! نو زه لاړم! او ما سره حضرت زبیر بن عوام رضي الله عنه ملاو شو، ما هغه له ځان سره راووست! هغه زما د خبرې تصدیق وکړ چې په دې سره حضرت عمر رضي الله عنه د هرمزان له قتل نه بند شو او هرمزان مسلمان شو، بیا حضرت عمر رضي الله عنه د هغه لپاره له بیت المال نه وظیفه هم مقرره کړه.(۱)

**حضرت عمر رضي الله عنه او یو بوډا اهل ذمي ته د تنخوا مقررول:**

حضرت عبد الله بن ابي حدرد اسلمي رضي الله عنه فرمایي کله چې مونږ د حضرت عمر رضي الله عنه سره د دمشق یوه کلي ته چې جابیه نومېږي ورسېدو نو هغه یو بوډا ذمي ولیده چې له خلکو نه خوراک غواړي، حضرت عمر رضي الله عنه د ده په باره کې له خلکو نه پوښتنه وکړه چې دي ولې سوال کوي؟ چا ورته وویل، دا ذمي سړی دی چې کمزوری او بوډا شوی دی نو د هغه په ذمه چې کومه جزیه وه هغه ورته حضرت عمر رضي الله عنه معاف کړه، او وې فرمایل تاسو په ده باندې جزیه مقرره کړې وه، چې هغه ده ورکوله اوس کله چې دي کمزوری شوی دی نو تاسو هغه طعام غوښتلو ته پرېښی دی بیا یې د ده لپاره له بیت المال نه لس درهمه وظیفه مقرره کړه، دغه بوډا اولاد او بچیان هم درلودل.(۲)

یو ځل د حضرت عمر رضي الله عنه په یوه بوډا ذمي باندې تېرېدل وشو چې به د جوماتونو په

---

۱: اخرجه البیهقي ۹/۱۹۶ واخرجه ایضا الشافعي بمعناه مختصرا کما في الکنز ۲/۲۹۸ واخرجه البیهقي ۹/۹۶ ایضا من طریق جبیر بن حیة بسیاق آخر بطوله وذکره في البدایة ۷/۸۷ مطولا جدا.

۲: اخرجه ابن عساکر والواقدي

دروازو باندې له خلکو نه سوال کاوه، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل: چې اې ذمي! مونږ تا سره انصاف نه دی کړی په ځوانۍ کې مونږ له تا نه جزیه اخیستله او په بوډا والي کې مونږ ستا څه خیال نه دی ساتلی بیا یې له بیت المال نه هغه ته د ګذارې په اندازه وظیفه مقرره کړه.(۱)

**د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او یو اهل ذمه سره قصه:**

حضرت یزید بن ابي مالک رَحِمَهُ اللهُ وایي چې مسلمانان جابیه نومي ځای کې ایسار وو، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم هغوی سره وو یو ذمي راغی او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یې وویل: چې خلک زما په باغ کې لګیا دي نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بهر ته ووت، نو د هغه خپل یوه ملګري سره ملاقات وشو چې هغه پخپل ډال باندې انګور اېښي وو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ بنده! ته هم؟ هغه وویل: چې اې عمره! مونږ ډېر وږي شوي یو، او د خوراک لپاره نور څه نشته. دا یې چې واورېدل نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بېرته راغی او حکم یې وکړ چې دې ذمي ته دې د دې انګورو قیمت ورکول شي.(۲)

**حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د مسلمان په خلاف د یو یهودي په حق کې فیصله کول:**

حضرت سعید بن مسیب رَحِمَهُ اللهُ وایي چې یو مسلمان او یو یهودي د خپل جنګ فیصلې لپاره حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راغلل، په دې باندې یهودي وویل: په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! تا سو حقه فیصله کړې ده، په دې خبره باندې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه یهودي ورو شا ته په کوړو د خوشحالۍ په حالت کې وواهه او وې فرمایل: چې تا ته څنګه پته ولګېده چې حق څه شی دی؟ هغه وویل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! مونږ ته په تورات کې لیکل شوی دي چې کوم قاضي د حق فیصله کوي د هغه ښي او ګس طرفته یوه یوه فرښته وي چې دې په صحیح لاره باندې چلوي او هغه ته د حق خبرې الهام کوي تر څو چې هغه قاضي د حق فیصلې کولو کلکه اراده لري کله چې هغه دا اراده پرېږدي نو دواړه فرښتې هغه پرېږدي او اسمان طرفته وخېږي.(۳)

---

۱: عند ابی عبیدو ابن زنجویه والعقیلی کذا فی الکنز ۲/۳۰۱، ۳۰۲
۲: اخرجه ابوعبید کذا فی کنز العمال ۲/۳۶۹
۳: اخرجه مالک کذا فی الترغیب ۳/۴۵۵

**د حضرت عمر او حضرت اياس بن سلمه رضي الله عنهما قصه:**

حضرت اياس بن سلمه د خپل پلار حضرت سلمه نه نقلوي چې هغه وويل چې يو ځل د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه په بازار تېرېدل وو، د هغه په لاس کې کوړه وه، زه يې په ورو شاته په کوړه ووهلم! چې هغه کوړه زما د جامو په يوه طرف باندې ولګېده او وې فرمايل: چې له لارې نه لرې شه ~~کله~~ چې بل راغی نو د هغه له ما سره ملاقات وشو ما ته يې وفرمايل: اې سلمه! ستا د حج اراده شته؟ ما ورته وويل: چې هو! بيا يې زما لاس ونيو او کور ته يې بوتلم! او شپږ سوه درهم يې هم راته راکړل، چې دا د خپل حج په سفر کې په کار راوله! او دا د هغه معمولي کوړې په بدله کې دي چې ما ته وهلي وې ما ورته وويل چې اې اميرالمؤمنين! ما ته خو هغه کوړه ياده هم نه ده وې فرمايل: چې زه هغه نه هېروم! يعنې ما خو ووهلی خو تېول کال مې په زړه کې خطره وه.(۱)

## د حضرت عثمان ذي النورين رضي الله عنه عدل او انصاف

### په دې باره کې د حضرت عثمان رضي الله عنه او دهغه د غلام قصه:

حضرت ابو الفرات رحمه الله وايي چې د حضرت عثمان رضي الله عنه يو غلام و، هغه ده ته وويل ما يو ځل ستا غوږ تاو کړی ؤ نو ته له ما نه خپله بدله واخله! يعنې زما غوږ هم تاو کړه! په دې سره هغه غلام د ده غوږ ونيوه، بيا حضرت عثمان رضي الله عنه ورته وويل چې ښه په زوره يې تاو کړه! په دنيا کې بدله ورکول څومره ښه دي اوس به په اخرت کې بدله ورکول نه وي.(۲)

**د حضرت عثمان رضي الله عنه عدالت له يو مارغه سره:**

حضرت نافع بن عبد الحارث رحمه الله وايي چې حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه مکې مکرمې ته راغی نو د جمعې په ورځ يې دار الندوه ته تشريف يوړو، يعنې چېرته چې به قريشو مشورې کولې او بيا دا هغه په مسجد حرام کې شامل کړل شو، د هغه اراده دا وه چې دلته نه مسجد حرام ته تلل نږدې وي هغه هلته يو په يوه لرګي باندې خپل څادر ځوړند کړو و په دې باندې د حرم شريف يوه کوتره راغله او کېناستله، بيا حضرت عمر رضي الله عنه هغه کوتره والوزوله، چې وروسته يوه مار ورتوپ کړ او کوتره يې ونيوله، مړه يې کړه، کله چې هغه د

---

۱: اخرجه الطبری ۵/۳۲

۲: اخرجه السمان فی الموافقه كذا في الرياض النضرة في مناقب العشرة للمحب الطبری ۲/۱۱۱

جمعې له لمانځه نه فارغ شو نو زه او حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته ورغلو، نو مونږ ته یې وویل: چې نن له ما نه یو کار شوی دی تاسو دواړه د دې کار په باره کې زما اړوند فیصله وکړئ! نن زه دې کور ته راتلم! نو خپل څادر مې د یوه لرګي لپاسه واچولو، چې په دې وخت کې یوه کوتره راغله او زما په څادر باندې کېناسته، په دې سره ما ته دا فکر پیدا شو چې هسې نه دا کوتره زما په څادر باندې ګنده ګي وکړي او څادر خراب کړي، په دې وجه مې والوزوله، په دې بل لرګي باندې کېناسته، هلته پرې یوه مار ورټوپ کړ او وې نیوله، مړه یې کړه، اوس زما په زړه کې دا خیال راځي چې هغه په اول لرګي باندې محفوظه وه ما له هغه ځایٔ نه والوزوله، چې دې سره دویم لرګي ته لاړه، کله چې هلته کېناسته نو مرګ ورته راغی یعنې زه د هغې د مرګ سبب شوم! دا چې مونږ واورېدل نو ما حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل چې ستا څه خیال دی؟ که چېرې تاسو په امیر المؤمنین باندې د دوه غاښونو والا سپینې چېلۍ ورکولو فیصله وکړئ! هغه وویل: چې زما هم دا رائیه ده، نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په همدې شان د چېلیو حکم ورکړ.(۱)

# د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عدل او انصاف

## حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د اصفهان مال تقسیمول

حضرت کلیب رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د اصفهان نه مال راغی، هغه دغه مال په اوو برخو تقسیم کړ، په دې کې ورته یوه ډوډۍ هم وموندل شوه، هغه یې هم اووه برخې کړه او په هره برخه باندې یې یوه ټوټه کېښوده، بیا یې د لښکر د اوو برخو امیران راوغوښتل او په هغې کې یې قرعه اندازي وکړه، د دې لپاره چې معلومه شي چې په دوي کې یې اول چا ته ورکړي.(۲)

### د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او یوې عربې ښځې قصه:

حضرت عبد الله هاشمي له خپل پلار نه نقلوي، چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دوه ښځې د څه غوښتلو لپاره راغلې په دوي کې یوه عربه وه او بله د هغه ازاده کړی شوې وینځه وه، هغه حکم

---

۱: اخرجه الامام الشافعي في مسند ۴۷

۲: اخرجه البيهقي ۶/۳۴۸ كذا في الكنز ۲/۱۱۶ واخرجه ابن عبدالبر في الاستيعاب ۳/۴۹

وکړ چې په دوي کې هر يوې ته يو کر (يعنې ۶۳ منه) غله او شلو پښت درهمه ورکړئ! هغه ازاده کړی شوې وينځې ته خو چې څه ملاو شو نو هغه يې واخيستل او لاړه، خو عربې ښځې وويل چې په داسې حال کې زه عربې يم! او هغه ازاده کړی شوې وينځه ده حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل: ما د الله جَلَّ جَلَالُهُ په کتاب کې په ډېر سوچ سره وکتل نو ما ته د اسماعيل عَلَيْهِ السَّلَامُ د اولادونو څه فضيلت د اسحق عَلَيْهِ السَّلَامُ په اولادونو باندې رانغی.(۱)

**څه چې د حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او حضرت جَعْده بن هُبَيره ترمينځ پېښ شول**

حضرت علي بن ربيعه رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايي چې حضرت جعده بن هبيره حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته راغی او وې ويل اې اميرالمؤمنين! تاسو ته به دوه سړي راځي په هغوی کې يو ته خو د خپل ځان نه هم زيات تاسو سره محبت دی يا يې داسې وويل چې د خپل اولاد او مال دولت نه هم تاسو سره زيات محبت کوي، او بل که چېرې وس يې بر شي نو تا به حلال کړي، له دې وجې نه تاسو د دويم خلاف د اولني په حق کې فيصله وکړئ! په دې خبره باندې حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په سينه کې يو سوک وواهه، او وې فرمايل چې که چېرې دا فيصلې د ځان د خوشحالولو لپاره کېدلی نو ما به ضرور داسې کړی وای خو دا فيصلې د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رضا کولو لپاره کېږي په دې وجه زه به د حق مطابق فيصله وکړم! اوس هغه فيصله چې د چا په حق کې کېږي نو وبه شي.(۲)

**په دې باره کې د حضرت اصبغ بن نباته رَحِمَهُ اللّٰهُ بيان:**

حضرت اصبغ بن نباته رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې د حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سره بازار ته لاړم هغه وليدل چې بازار والا د خپل ځای نه مخکې شوی دی هغه پوښتنه وکړه چې دا څه شی دي؟ خلکو ورته وويل چې بازار والا له خپل ځای نه مخکې شوی دی هغه ورته وفرمايل: چې دوي ته له خپل ځای نه د مخکې کېدو حق نشته، د مسلمانانو بازار د مونځ گذار د لمونځ کولو ځایٔ يعنې د جماعت پشان وي نو د کوم ځایٔ چې څوک مالک نه وي او هلته چې څوک مخکې راشي او قبضه وکړي د غه ځایٔ به په دغه ورځ هم د هغه وي، هو! که هغه يې پخپله پرېږدي او بل چېرته لاړ شي نو د هغه خوښه. (۳)

---

۱: اخرجه البيهقي ۶/۳۴۹ عن عيسى بن عبدالله الهاشمي

۲: اخرجه ابن عساكر كذا في الكنز ۳/۱۶۶

۳: اخرجه ابوعبيد في الاموال كذا في الكنز ۳/۱۷۶

له یوه یهودي سره د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قصه په اول جلد باندې د صحابه کرامو په اخلاقو او اعمالو په قصو کې تېره شوې ده چې له هغې وجې به خلکو ته هدایت ملاوېده.

## د حضرت عبدالله بن رواحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عدل او انصاف

### د خیبر داستان او د ابن رواحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خبره چې زمکه او اسمان په عدل ولاړ دي:

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د خیبر اړوند اوږد حدیث بیانوي په هغه کې دا مضمون هم دی چې حضرت عبدالله بن رواحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به هر کال خیبر والاوو ته ورته او په ونو کې د کجورو او څېلیو کې به یې د انګورو اندازه اخیستله، چې دا څومره دي؟ بیا چې د څومره مېوو به هغه ته اندازه لګېدله نو د هغو د نیمو مېوې ذمه واري به یې په هغه اچوله، چې د دومره نیمه مېوه به تا ته درکول وي، خیبروالاوو رسول الله ﷺ ته د هغه په اندازه لګولو کې د سختۍ کولو شکایت وکړ او دغو خلکو هغه ته رشوت ورکاوه، نو هغه وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ دښمنانو! په ما باندې حرام خورئ! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه تاسو ته د هغه سړي له خوا راغلی یم! چې ما ته د ټولو نه زیات محبوب دی او تاسو ما ته د شادوګانو او د خنزیرانو نه هم زیات بد معلومېږئ! خو ستاسو نفرت او د رسول الله ﷺ محبت ما تاسو سره په بې انصافي کولو باندې نشي اماده کولی! خلکو وویل: چې د همدې انصاف په وجه سره دا ځمکه او اسمان ولاړ دي.(۱)

## د حضرت مقداد بن اسود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عدل او انصاف

### د حضرت ابن سوید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قول چې زه به مړ شم او اسلام به غالب وي:

حضرت حارث بن سوید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې حضرت مقداد بن اسود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په یو لښکر کې تللی وو، دښمنانو هغوی نه ګیره واچوله. د لښکر امیر او مشر حکم وکړ چې څوک به هم د خپلې سورلۍ د څرولو لپاره نه ځي. یو سړی ته د امیر د دې حکم په اړه معلومات نه وو، نو هغه خپله سورلۍ واخیستله او لاړ. چې په دې باندې امیر هغه وواهه، هغه هم چې د امیر لخوا نه راغی وې ویل چې نن ما سره داسې سلوک وشو چې ما کله هم نه دی لیدلی، حضرت مقداد د هغه سړي په څنګ کې واپس تېر شو نو له هغه نه یې پوښتنه وکړه چې په تا

---

۱: اخرجه البیهقی کذا فی البدایة ۴/۱۹۹

باندې څه شوی دی ؟ هغه سړی ورته خپله واقعه بیان کړه، په دې باندې حضرت مقداد خپله توره په غاړه کې واچوله او هغه سړی یې امیر ته بوتلو، حضرت مقداد امیر ته ووېل: چې تا دا سړی بغیر د وجې نه وهلی دی نو ځکه ته له خپل طرفه ده ته بدله ورکړه! امیر هم بدلې ورکولو لپاره تیار شو چې بیا وروسته هغه سړی امیر معاف کړ، نو حضرت مقداد کله چې بېرته واپس شو وې ویل: چې زه به ان شاء الله په داسې حال کې مړ کېږم چې اسلام به غالب او بریمن وي چې کمزورو ته به له قوي و نه بدله اخیستل کېږي.(۱)

## د الله تعالی نه د خلفا وو رضي الله عنهم وېره او خوف

### د حضرت ابوبکر رضي الله عنه دخوف په باره کې دحضرت ضحاک رحمه الله بیان:

حضرت ضحاک رحمه الله وایي چې حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه یو ځل په یوه ونه کې یوه مرغۍ ولیدله چې ناسته وه نودې مبارک ورته متوجه شو، وې ویل: اې مرغۍ! تا ته دې زېری وي! ته څومره په مزو کې یې! په الله جل جلاله قسم! زه غواړم! چې هم ستا پشان وای! ته په ونو کې مېوې خورې! بیا الوزې! او د قیامت په ورځ نه به تا سره حساب وي او نه به په تا باندې څه عذاب وي، په الله جل جلاله قسم! غواړم! چې زه د لارې د غاړې یوه ونه وای چې زما په خوا کې اوښ تېرېدلی او زه یې په خوله کې نیولی، بیا یې شخوند را باندې وهلی، او زر یې تېرولی او بیا له ما نه پچی جوړېدو نه پس یې وېستلی او زه انسان نه وای!(۲)

حضرت ضحاک بن مزاحم رحمه الله وایي چې حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه یوه مرغۍ ولیده نو وې ویل: اې مرغۍ! تا ته دې زېری وي چې ته مېوې خورې او په ونو کې الوزې را الوزې! او نه به تا سره څه حساب وي، نه به په تا باندې عذاب وي، په الله جل جلاله قسم! زه غواړم! چې یو ګډ وای چې زما کور والاوو په ما باندې خوراک او څښاک کولی او بیا یې څورب او چاغ کړی وای! او تر بیا غټېدو وروسته یې زه ذبح کولی او زما څه برخه یې وریته کړې وای او له څه نه یې بوټی جوړه کړې وای! او خوړلی یې وای! او بیا یې زه د اودسماتي په شکل بیت الخلاء کې غورځولي وای! او زه به

---

۱: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۱۷٦
۲: اخرجه ابن ابی شیبة وهناد والبیهقی

انسان نه واي جوړ کړی!(۱)

امام احمد په زهد نومي کتاب کې روایت کړی دی چې حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یو ځل وفرمایل: ارمان زه د یوه مومن بنده د یوه اړخ وېښته وای!(۲)

**د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دخوف په باره کې د ابن عساکر او ابونعیم بیان:**

حضرت ضحاک رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې یو ځل حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل: ارمان! چې زه د خپلو کوروالاوو یو ګډ وای! هغوی په ماباندې څه وخته پورې خوراک څښاک کړی وای! کله چې زه ښه غټ شوي وای او د هغوی یو خوږ دوست د هغوی لیدنې ته راغلی وای نو هغوی د هغه د مېلمستیا لپاره زه حلال کړی وای! او زما څه برخه یې وریته کړې وای! او څه یې بوټی کړې وای! او خوړلې یې وای! او بیا یې د اودس ماتي شکل وېستلي وای! او زه انسان نه وای!(۳)

حضرت عامر بن ربیعه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې ما یو ځل حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ولیده هغه له ځمکې نه یو ډله کې اوچت کړ او وې فرمایل: ارمان! چې زه دا ډله کې وای! ارمان چې زه پیدا شوی نه وای! ارمان زه هیڅ نه واي! ارمان زما مور زه نه وای زېږولی! او ارمان زه بیخي هېر شوی شی وای!(٤)

حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یو ځل وفرمایل، که چېرې د اسمان نه یو اواز کونکی اواز وکړي چې اې خلکو! چې یو کس نه پرته به تاسو ټول جنت ته ځئ! نو ما ته د خپلو اعمالو له وجې نه وېره ده چې هغه سړی به زه یم! او که چېرې یو اواز کونکی اواز وکړي چې اې خلکو! تاسو به له یوه سړی پرته نور ټول دوزخ ته ځئ! نو زما د الله جَلَّ جَلَالُهُ له فضل نه دا امېد دی چې دغه سړی به هم زه یم! ایمان هم د دې وېرې او امید په مینځ کې د حالت نوم دی.(٥)

**هغه څه چې د عمر او ابوموسی اشعري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا ترمینځ واقع شول:**

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې یو ځل د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت ابوموسی اشعري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره ملاقات وشو . نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وفرمایل: چې اې

---

۱: عند ابن فتحویه في الوجل.

۲: کذا في منتخب الکنز ۴/۳۶۱

۳: اخرجه هناد وابونعیم في الحلیة ۱/۵۲

٤: عند ابن المبارک وابن سعد وابن ابی شیبة وابن عساکر

٥: عند ابی نعیم في الحلیة ۱/۵۳

ابو موسی ! آیا ستا دا خبره خوښه ده چې تا د رسول الله ﷺ سره اوسېدو کې کوم عملونه کړی دی نو دغه عملونه خو ستا لپاره صحیح او سالم پاتې شي؟ چې د هغو ښو بدله تا ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ له خوا نه ملاو شي؟ او تا چې د رسول الله ﷺ نه وروسته خاص د امارت په زمانه کې کوم عملونه کړی دی هغه کې ته برابر خلاص شې؟ داسې چې د دغې زمانې خیر دې د شر په بدله کې او شر دې د خیر په بدله کې شي نه په څه نېکۍ تا ته ثواب درکړل شي او نه په څه ګناه باندې ته ونیول شې؟ حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل: اې امیر المؤمنین! نه! د وروسته زمانې عملونو باندې برابر په برابر پرېښودو ته زه تیار نه یم! بلکې ما ته خو د دې زمانې د ښو عملونو د لوي ثواب امید دی ځکه چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! کله چې زه بصرې ته راغلی ووم! نو په بصرې والاوو کې بدسلوکي او بدخویي عامه وه بیا ما هغوی ته قرآن او سنت وښودل او هغوی مې ځان سره کړل او د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې مې جهاد وکړو، د دې ټولو عملونو په وجه ما ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ د فضل امید دی، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل: خو زه غواړم! چې د رسول الله ﷺ نه د وروسته زمانې په خاصه توګه د خلافت د زمانې د اعمالو په باره کې چې برابر په برابر پرېښودل شم! او د دې زمانې خیر د شر په عوض کې او شر د خیر په عوض کې شي نه په څه عمل ما ته ثواب راکړل شي او نه په څه ګناه باندې سزا. او رسول الله ﷺ اوسېدو په زمانه کې مې چې کوم عملونه کړی دی هغه زما لپاره صحیح سالم پاتې شي د هغې ښه بدله راکړل شي.(۱)

**د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مرګ په وخت کې دخوف په باره کې د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قول:**

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي کله چې په حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې په نېزې سره حمله وشوه او زخمي شو نو زه هغه ته ورغلم! او ورته مې ویل: چې اې امیر المؤمنین! تا ته دې زیری وي! ځکه چې الله جَلَّ جَلَالُهُ ستاسو په ذریعه دېر ښارونه بدل کړل، نفاق یې ختم کړ او ستاسو په ذریعه الله جَلَّ جَلَالُهُ عامو انسانانو ته د رزق پراخي راوسته، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل: اې ابن عباس! آیا د امارت په باره کې ته زما تعریف کوې؟ ما وویل چې زه ستا په نورو کارونو کې هم صفت کوم! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل: چې

---

۱: عند ابن عساکر کذا فی منتخب الکنز ۴/۴۰۱

په هغه ذات مې دې قسم وي! چې د هغه په قبضه کې زما ساه ده، زه خو دا غواړم! چې په امارت کې څنګه داخل شوي ووم! هم هغسې ترې ووځم! چې نه په څه بنه عمل باندې ما ته ثواب راکړل شي او نه په بد عمل باندې سزا.(۱)

ابن سعد د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه هم دا حدیث په یوه بل سند سره نقل کړی دی: په هغه کې دا مضمون دی چې ما حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل: چې تا ته دې د جنت زېری وي! ته د رسول الله ﷺ په ملګرتیا کې پاتې شوي یې! او ډېره زیاته موده له هغه سره پاتې شوی یې! او بیا ته د مسلمانانو امیر ټاکل شوي یې! نو تا مسلمانانو ته بنه قوت ورسولو او امانت دې په سمه توګه باندې اداء کړ، هغه وفرمایل: تاسو ما ته د جنت زېری راکړ، نو په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! چې د هغه نه پرته څوک معبود نشته دی که چېرې ټوله دنیا او څه چې په دنیا کې دي، ما ته راکړل شي، نو په دې وخت کې چې زما په مخکې د اخرت کوم هیبت ناک منظر دی د دې نه نه د بچ کېدو لپاره زه هغه ټول هر څه په دې خبره پوهېدو نه مخکې په بدله کې ورکړم! چې ما سره څه کېدونکي دي؟ تا د مسلمانانو د امیر جوړېدو هم ذکر وکړ نو په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! چې زه دا غواړم! چې امارت برابر پاتې شي نه پرې ما ته ثواب ملاو شي او نه سزا. او تا د رسول الله ﷺ د ملګرتیا ذکر وکړو نو هم دا د رسول الله ﷺ ملګرتیا د امېد شی دی.(۲)

**د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مرګ په وخت کې د خوف په باره کې د ابن عباس او مسور رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ قول:**

او د ابن سعد په یوه روایت کې دا دی چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل: ما کېنوه! کله چې کېناسته، نو حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یې وفرمایل: چې خپله خبره دوباره وکړه! نو وې فرمایل: الله جَلَّ جَلَالُهُ سره د ملاقات په ورځ یعنې د قیامت په ورځ آیا ته به د الله جَلَّ جَلَالُهُ په حضور کې د دې ټولو خبرو شاهدي وکړې؟ حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړو چې هو! په دې خبره باندې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوشحاله شو، او دا خبره یې ډېره زیات خوښه شوه.(۳)

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې د وفات په مرض کې د هغوی سر زما په پنډۍ پروت

---

۱: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۵۲ واخرجه الطبرانی من حدیث ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فی حدیث طویل وابویعلی کذلک عن ابی رافع کما فی المجمع ۹/۷۶ واخرجه ابن سعد ۳/۲۵۴ عن ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بنحوه.

۲: اخرجه ابن سعد ایضا ۳/۲۵٦ من طریق آخر عنه

۳: اخرجه ابن سعد ایضا ۳/۲۵۷ من حدیث عبدالله بن عبید بن عمیر مطولا.

وو نو ما ته هغوی وويل: چې زما سر په څمکه باندې کېږده! نو ما ورته وويل: چې ستا سر که زما په پنډۍ باندې وي يا په څمکه باندې وي نو تا ته څه تکليف شته؟ وې فرمايل نه! په څمکه باندې يې کېږده! نو ما په څمکه باندې کېښودلو، نو وې فرمايل: چې که چېرې زما رب په ما باندې رحم ونکړي نو زما هم هلاکت دي او زما د مور هم! او حضرت مسور وايي کله چې هم حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په نېزه باندې ولګېده نو وې فرمايل: چې که چېرې ما ته دومره سره زر ملاو شي چې له هغو نه ټوله څمکه ډکه شي نو زه به يې د الله جَلَّ جَلَالُهُ د عذاب ليدو نه مخکې له هغه نه د بچ کېدو لپاره هغه ټول سره زر په بدله کې ورکړم!(۱)

## آيا امير به د چا له ملامتيا نه وېرېږي؟

### په دې باره کې دحضرت سائب بن يزيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث:

حضرت سائب بن يزيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يوه سړي له حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه چې زما لپاره د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې د چا د ملامتيا نه وېرېدل غوره دي يا د خپل نفس اصلاح کول او د خپل نفس د اصلاح طرفته متوجه کېدل غوره دي؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمايل: چې څوک د مسلمانانو کار ذمه دار وټاکل شو نو د هغه لپاره د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې د چا د ملامتيا نه وېرېدل نه دي پکار بلکې او څوک چې د اجتماعي ذمه دارۍ نه فارغ وی نو هغه ته په کار دی چې د خپل نفس اصلاح طرفته متوجه شي البته د خپل امير سره دې د خير خواهۍ معامله کوي.(۲)

## د خلفاء کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ نورو خلفاو او اميرانو ته وصيت کول

### د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وصيتونه

**حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دخليفه کولو په وخت د ابوبکرصديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وصيت:**

اغرّبن مالک رَحِمَهُ اللهُ وايي کله چې حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خليفه مقررول وغوښتل نو هغه سړی ولېږه او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يې را وغوښته، کله چې هغه راغی نو ورته وې فرمايل، زه تا د يوه داسې کار خوا ته رابولم چې څوک هم د دې ذمه واري واخلي نو دا کار به هغه سړی کوي نو دا رنګه اې عمره! د الله جَلَّ جَلَالُهُ د تابعدارۍ په ذريعه ته له هغه نه وېره کوه! او له هغه نه له وېرېدلو سره د هغه تابعداري هم کوه! ځکه د

---

۱: عند ابی نعيم فی الحلية ۱/۵۲
۲: اخرجه البيهقی کذا فی الکنز ۳/۱٦۴

الله جَلَّ جَلَالُهُ نه وېرېدونکي د هرې وېرې نه په امن کې وي او د هر شر او مصيبت نه محفوظ وي بيا به د دې خلافت د کار حساب د الله جَلَّ جَلَالُهُ په مخکې وړاندې کوي، د دې کار مستحق يوازې هغه څوک دی چې د دې حق اداء کولی شي. او څوک چې نورو خلکو ته د حق حکم کوي او پخپله په باطل باندې عمل کوي او د نېکۍ حکم کوي او پخپله بد عمل کوي د هغه به هيڅ اميد پوره نکړل شي، د هغه به ټول نېک عملونه ضايع شي يعنې د غه عملونه به په اخرت کې د ده پکار رانشي، نو دا رنګه که چېرې په تا باندې د مسلمانانو د خلافت ذمه داري واچول شي نو بيا ته خپل لاسونه د هغوی د وينو نه لرې وساته! او د هغوی د بې عزتۍ نه خپله ژبه بچ وساته! ته ضرور داسې وکړه! او د نېکۍ کولو توفيق يوازې هم د الله جَلَّ جَلَالُهُ له خوا څخه ملاوېږي.(۱)

حضرت سالم بن عبدالله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي کله چې د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د وفات وخت نږدې شو نو هغه دا وصيت نامه په چا باندې وليکله:

بسم الله الرّحمن الرّحيم. هذا عهد من ابی بکر الصديق، عند اخر عهده بالدنيا، خارجا منها، و اول عهده بالاخرة داخلا فيها، حيث يؤمن الكافر، و يتقى الفاجر، و يصدق الكاذب: انى استخلفت من بعدى عمربن الخطاب. فان عدل فذلك ظنى فيه، و ان جار و بدل فالخير اردت، و لا اعلم الغيب، [وسيعلم الذين ظلموا اى منقلب ينقلبون].(۲)

بسم الله الرحمن الرحيم، دا د ابوبکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لخوا وصيت دی او هغه دا وصيت نامه په داسې وخت کې کوي کله چې د هغه په دې دنيا کې اخري وخت راغلی دی او هغه د دې دنيا نه تلونکی دی او د هغه اخرت شروع کېدونکی دی چې په هغه کې هغه دا شاملېدونکی دی او دا د مرګ وخت داسې دی چې په دغه وخت کې کافر هم په غيبو باندې ايمان راوړي، او فاسق او فاجر هم متقي جوړېږي او دورغجن سړی هم رېښتيا وايي، ما د ځان نه وروسته حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خليفه ټاکلی دی که چېرې هغه له عدل او انصاف نه کار واخلي نو د هغه په باره کې زما هم دا ګومان دی او که چېرې هغه ظلم وکړي

---

۱: اخرجه الطبرانی قال الهيثمی ۵/۱۹۸ والا غر لم يدرک ابابکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وبقية رجاله ثقات انتهی وقال فی الترغيب ۴/۱۵ ورواته ثقات الا ان فيه انقطاعا انتهی.

۲- (شعراء:۲۲۷)

او بدل شي نو د دې گناه به په هم ده باندې وي، د ده خليفه مقررولو سره زما اراده يوازې د خير ده او ما ته د غيبو علم نشته، ظالمانو ته دې راز معلوم شي چې د دوی د ظلم انجام به څنګه وي؟ او دوی څومره بد ځای ته بېرته واپس کېدنکي دي؟ بيا هغه سرې ولېږه، حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يې راوغوښته او هغه ته يې په ژبه هم دا وصيت وفرمايه: اې عمره! څه خلک تا سره بغض او کينه ساتي او څه تا سره محبت ساتي، د پخوا زمانې نه دا دستور دی چې خير بد ګڼل کېږي او شر خوښول کېږي، حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل: بيا خو ما ته د خلافت ضرورت نشته، حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل: خو د خلافت تاسو ته ضرورت دي، ځکه چې تا رسول الله ﷺ ليدلی دی او د هغه سره اوسېدلی يې! او تا دا هم ليدلی دی چې رسول الله ﷺ به مونږ ته پخپل ځان باندې ترجيح راکوله، ځينې وخت به چې د رسول الله ﷺ له طرفه مونږ ته څه راکول کېدل مونږ به استعمالول او بيا به چې ترينه څه پاتې کېدل هغه به مونږ د رسول الله ﷺ کورو الاوو ته لېږل، يعنې هغوی ﷺ به اول خپل کورو الاوو ته نه ورکول بلکې په هغوی به يې مونږ ته ترجيح راکوله او مونږ ته به يې اول راکول، بيا تا زه هم ليدلی يم! ما سره هم ته پاتې شوی يې! او ما د خپل ځان نه د مخکې سړی يعنې د رسول الله ﷺ اطاعت کړی دی په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! دا خبره نه ده چې زه ويده يم! او د رسره په خوب کې خبرې کوم! يا د څه وهم په توګه ستا په مخکې دا شاهدياني ورکوم! او ما چې په سوچ او فکر سره کومه لاره غوره کړې ده د هغې نه اخوا د بخوا نه يم خوځېدلي، اې عمره! په دې خبره ښه پوه شه! چې په شپه کې د الله جَلَّ جَلَالُهُ څه حقوق داسې دي چې هغه د ورځې الله جَلَّ جَلَالُهُ نه قبلوي او په ورځ کې د الله جَلَّ جَلَالُهُ څه حقوق داسې دي چې هغه د شپې الله جَلَّ جَلَالُهُ نه قبلوي، يعنې انسان په ورځ کې انسانانو باندې محنت وکړي او د مسلمانانو په اجتماعي کار کې مشغول اوسي د ورځې او د شپې دا ترتيب الله جَلَّ جَلَالُهُ مقرر کړی دی او د قيامت په ورځ به يوازې د حق اطاعت کولو د وجې نه د اعمالو تله درنېږي، په کومه تله کې چې يوازې حق وي د هغې درنېدل ضروري دي او د قيامت په ورځ به يوازې د باطل د اطاعت کولو د وجې نه تله سپکېږي او په کومه تله کې چې يوازې باطل وي د هغې سپکېدل ضروري دي د ټولو نه اول زه تا ستا د خپل نفس څخه

وېروم! بيا دې له خلکو نه وېروم! ځکه چې د خلکو نظرونه د لالچ په وچې وړې شوې دي او د هغوی نفساني خواهشات را اوچت شوې دي، يعنې زور يې کړی دی خو کله چې د دې خرابو په وجه هغوی د ذلت سره مخامخ شي نو په هغه وخت کې به هغوی حيران او پرېشان شي، ځکه چې تر څو تاسو د الله جَلَّجَلَالُهُ نه وېرېږئ! تر هغو به د غه خلک تاسو نه وېرېږي، دا زما وصيت دي زما له خوا نه دی په تا باندې سلام وي.(١)

**د ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د وصيت په باره کې د عبدالرحمن بن سابط بيان:**

حضرت عبدالرحمن بن سابط، حضرت زيد بن زبيد بن حارث او مجاهد رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ وايي کله چې د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د وفات وخت نيږدې شو نو هغه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ را وغوښته او ورته وې فرمايل: اې عمره! د الله جَلَّجَلَالُهُ نه ووېرېږه! او تا ته دا معلومول په کار دي چې د الله جَلَّجَلَالُهُ له طرفه د انسانانو په ذمه په ورځ کې څه عملونه داسې دي چې هغه الله جَلَّجَلَالُهُ د شپې نه قبولي او دغسې د الله جَلَّجَلَالُهُ له طرفه د شپې څه داسې عملونه دي چې هغه الله جَلَّجَلَالُهُ د ورځې نه قبولي او تر څو چې فرض ادا نکړل شي تر هغو پورې الله جَلَّجَلَالُهُ نفل نه قبلوي، دنيا کې د حق اطاعت کولو او د حق لوي ګڼلو د وجې نه د قيامت په ورځ به د عملونو تله درنېږي، سبا چې کومه تله کې حق کېښودل کېږي نو هغه درنول په کار دي او په دنيا کې د باطل اطاعت کولو په وجه او د باطل په معمولي ګڼلو سره د قيامت په ورځ به تله سپکېږي او سبا چې کومه تله کې باطل ايښودل کېږي هغه سپکول په کار دي او الله جَلَّجَلَالُهُ د هغوی لپاره د هغوی په اعمالو کې د ټولو نه ښه اعمال هم ورسره ذکر کړي دي او د هغوی د بدو اعمالو يې هغوی ته عفوه کړې ده، زه کله چې هم د جنت والاوو ذکر کوم نو وايم! چې ما ته دا وېره ده چې کېدی شي چې زه په دوي کې داخل نه کړل شم! او الله جَلَّجَلَالُهُ چې چېرته د دوزخيانو ذکر کړی دی نو هلته يې هغوی په بدو اعمالو سره ذکر کړي دي زه کله چې هم د دوزخ والاوو ذکر کوم! نو وايم! چې کېدی شي زه د دوي سره شم! او الله جَلَّجَلَالُهُ د رحمت ايتونه هم ذکر کړي دي او د عذابونو ايتونه هم! نو دا رنګه بنده ته په کار دي چې د رحمت شوق او د عذاب نه ووېرېږي او د الله جَلَّجَلَالُهُ نه غلط اميدونه ونه ساتي، چې نېک اعمال نه کوي او د جنت ارزو لري او د هغه د رحمت نه نا اميده هم نه وي او په خپلو لاسونو ځان تباهي ته ونه غورځوي، که چېرې تاسو زما وصيت ضائع کړو او

---

١: اخرجه ابن عساكر كذا فى الكنز ٣/١٤٦

په دې عمل ونه کړنو هيڅ يو غائب شى به تاسو ته د مرګ نه زيات بد ونه لګيږي او دغه مرګ به په تاسو ته په داسې حال کې راځي چې تاسو به له هغه نه نشئ! خلاصبدلى. (۱)

## عمرو بن عاص او نورو صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ته د ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وصيت

### شام ته دليږلو په خت کې عمروبن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وصيت:

حضرت عبدالله بن ابي بکر بن عمرو بن حزم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شام ته د ليږلو لپاره د لښکرو د جمع کولو اراده وکړه نو لښکرې جمع شوې او د هغوى د مقررو شويو اميرانو نه تر ټولو مخکې حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روان شو، حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته حکم وکړ چې فلسطين ته د تللو په اراده دې هغه په ايله ښار باندې تېر شي او د حضرت عمرو لښکر چې د مدينې نه روان شوي وو د هغوى تعداد درې زره تنه وو، په دې کې د حضراتو مهاجرينو او انصارو شمېره ډېره وه کله چې دا لښکر روان شو نو د هغوى د رخصتولو لپاره حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سورلى سره سره تلو او هغه ته يې هدايات ورکول او فرمايلي يې:

اې عمرو! په خپل هر کار کې د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه وېرېږه! که هغه کار په پټه وي او يا په ښکاره وي. او د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه شرم کوه! ځکه چې هغه تا ته او ستا ټولو کارونو ته ګوري، او ته وينې چې ما ته امير مقرر کړې او د هغو خلکو نه مې مخکې کړى يې چې له تا نه زيات پخواني دي او تا نه فائده مند دي ته د اخرت لپاره کارکوونکي جوړ شه! او ته هر يو کار چې کوې نو د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رضا کولو په نيت يې کوه! او کوم مسلمان چې تا سره ځي ته د دوي سره د پلار پشان د ترحم او شفقت معامله کوه! يعنې په دوي باندې شفقت کوه! او د خلکو د ننه خبره مه ښکاره کوه! بلکې د دوي په ظاهري اعمالو باندې بسوالى کوه! او پخپل کار کې پوره محنت او کوشش کوه! د دښمن سره د مقابلې په وخت کې ښه ثابت قدمى سره جنګېږه! او بزدله کېږه مه! او که چېرې د غنيمت په مال کې خيانت وشي نو دې خيانت ته ورمخکې کېږه او بندوه يې! او په هغه باندې سزا ورکوه! کله چې ته خپلو ملګرو ته بيان کوې نو مختصر او لنډ بيان کوه! ته خپل ځان صحيح ساته نو ستا ټول ماتحت او لاس لاندې خلک به تا سره صحيح او سم چلېږي.(۲)

---

۱: عند ابن المبارک وابن ابی شیبة وهناد وابن جریر وابی نعیم فی الحلیة کذا فی منتخب الکنز ۴/۳۶۲

۲: اخرجه ابن سعد کذا فی کنز العمال ۳/۱۳۳ واخرجه ایضا ابن عساکر ۱/۱۲۹ بنحوه.

**حضرت عمرو او وليد بن عقبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ته خط:**

حضرت قاسم بن محمد رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمرو او حضرت وليد بن عُقبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ته خط وليكه: په دې دواړو كې هر يو د قُضاعه قبيلې د نيمې صدقو اخيستلو باندې مقرر وو كله چې حضرت ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د صدقو اخيستلو لپاره دا دواړه حضرات لېږلي وو نو د دوي د رخصتولو لپاره د هغوى سره بهر وتلي وو او دې دواړو ته يې هم يو وصيت فرمايلي وو:

چې په پټه او په ښكاره د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه وېرېږه! ځكه څوک چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه ووېرېږي د هغه لپاره له هر مشكل او پرېشانۍ او سختۍ نه د وتلو لاره ضرور جوړوي او هغه ته د هغه ځاۍ نه روزي وركوي چې كوم ځاۍ نه د رزق د ملاوېدو گمان هم نه وي او څوک چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه وېرېږي الله جَلَّ جَلَالُهُ به د هغه گناهونه لرې كړي او هغه ته به ډېر اجر وركړي د الله جَلَّ جَلَالُهُ بنده گان چې د كومو اعمالو يو بل ته وصيت كوي په هغه كې د ټولو نه غوره د الله جَلَّ جَلَالُهُ وېره ده ته په دې وخت كې د الله جَلَّ جَلَالُهُ د لارو نه په يوه لاره كې يې! ستا په دې كار كې د حق په څه خبره باندې د سترگو پټولو او په څه كار كې د كوتاهۍ كولو هيڅ گنجائش نشته او په كوم كار كې چې ستا د دين او وروسته والي وي او ستا د كار هر قسمه حفاظت وي نو په دغه كار كې د غفلت كولو هم گنجائش نشته نو دا رنگه سستي او كوتاهي مه كوه!(۱)

**عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دحضرت خالد بن وليد رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په باره كې خط:**

حضرت مطلب بن سائب بن ابي وداعه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دا خط وليكه: ما حضرت خالد بن وليد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته خط ليكلي دى چې هغه تا ته د مرستې لپاره درشي كله چې هغه تا ته راشي نو ته هغه سره په ښه طريقه اوسېږه! او په هغه باندې د لوي جوړېدلو كوشش مه كوه! يعنې ته په هغه باندې ځان اوچت مه بوله! ځرنگه چې ما ته امير مقرر كړي يې او د حضرت خالد بن وليد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او نورو حضراتو نه مې مخكې كړي يې! له دې وجې نه ته د هغه د مشورې نه بغير د هيڅ كار فيصله مه كوه! او په هر كار كې له دوي نه مشوره اخله! او د دوي مخالفت مه كوه!(۲)

---

۱: اخرجه ابن جرير الطبرى ۴/۲۹ واخرجه ابضا ابن عساكر ۱/۱۲۲ عن القاسم بنحوه.

۲: اخرجه ابن سعد كذا فى كنز العمال ۳/۱۳۲

عبدالحمید بن جعفر د خپل پلار نه نقلوي چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت عمرو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وفرمایل: د بلي قبیلې، عُذره قبیلې او قُضاعه قبیلې د نورو ښارونو په خلکو باندې چې تاسو تېرېږئ! او هلته چې کوم عرب اباد دي ما ته د دغو ټولو امیر جوړ کړي یې! هغوی ټولو ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې کې د جهاد کولو دعوت ورکوه! او د دې بنه ترغیب ورکړه! نو دارنګه په دوي کې چې څوک تا سره روان شي هغوی ته سورلۍ او توښه ورکوه! او پخپلو کې یې جوړ ساته! هره قبیله جدا او پخپله درجه باندې ساته!(۱)

**شرحُبیل بن حسنه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وصیت :**

حضرت محمد بن ابراهیم بن حارث تیمي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي کله چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت خالد بن سعید بن عاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د امارت نه معزول کړو نو هغه حضرت شرحبیل بن حسنه ته د حضرت خالد بن سعید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په باره کې دا وصیت وکړو او شُرحبیل هم د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یو امیر وو نو هغه وفرمایل: د حضرت خالد بن سعید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ همېشه خیال ساته! د هغه په خپل ځان داسې حق ګڼه! لکه د هغه د امیرۍ په صورت کې ته په هغه باندې خپل حق پېژندل خوښوې، او تا د هغه مرتبه په اسلام کې پېژندلې ده او کله چې د رسول الله ﷺ وفات وشو په هغه وخت کې هغه د رسول الله ﷺ له خوا نه د فلانۍ سیمې یا قبیلې ګورنر (والي) او مشر وو او ما هم هغه امیر مقرر کړی وو بیا مې د هغه د دې ذمه وارۍ نه لرې کول مناسب وبلل او غالباً دا به په دیني اعتبار سره د هغه لپاره زیاته غوره وي زه د چا په امارت باندې حسد نه کوم! ما هغه ته د لښکرو د امیرانو په باره کې اختیار او واک ورکړی دی چې هغه کوم امیر غواړي چې د ځان لپاره یې خوښوي، هغه نور امیران او خپل د تره ځوی پرېښودل او ته یې خوښ کړې کله چې تا ته څه داسې کار پېښ شي چې په هغې کې د یوه متقي او خیر خواه سړی د مشورې ضرورت وي نو ته د ټولو نه اول د حضرت ابوعبیده بن جراح رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت مُعاذ بن جبل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره مشوره کوه! او د دې دواړو نه پس دریم کس به حضرت خالد بن سعید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وي خه چې تا ته به دې درې واړو نه خیرخواهي او خیر ملاوېږي او دې حضراتو سره د مشورې کولو نه بغیر یوازې په خپله رائیه باندې عمل مه کوه! او د دوي نه

---

۱: اخرجه ابن سعد کذا في الکنز ۳/۱۳۳ واخرجه ابن عساکر ۱/۱۲۹

هيڅ خبره هم مه پټوه!(۱)

**يزيد بن ابي سفيان رضي الله عنه ته د ابوبکر صديق رضي الله عنه وصيت:**

حضرت حارث بن فضيل رحمه الله وايي کله چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه حضرت يزيد بن ابي سفيان رضي الله عنه ته د لښکر جنډه ورکړه يعنې هغه يې د لښکر امير مقرر کړو نو هغه ته يې وفرمايل: اې يزيده! ته ځوان يې! د يوه نېک عمل له وجې نه ستا د خير ذکر کېږي کومو خلکو چې ته په کولو ليدلي يې! او دا يو انفرادي عمل دی چې تا يه يوازې والي کې کړی وو او ما د دې خبرې اراده کړې ده چې زه ستا په امير مقرر کېدلو باندې امتحان وکړم! او تا د کوروالاوو نه وباسم! او بهر ته دې ولېږم! تر څو وګورم! چې ته څنګه يې؟ او ستا اميري څنګه ده؟ په هر حال ستا ازمايښت کووم! که چېرې تا امارت ښه سنبال کړ نو تا ته به ترقي درکړم! او که چېرې تا په سمه توګه باندې سنبال نکړل شو نو زه به تا معزول کړم! د حضرت خالد بن سعيد رضي الله عنه والا د کار مې ته ذمه دار مقرر کړی يې!

بيا چې په دې سفر کې حضرت يزيد ته څه کول پکار ؤ د هغه په باره کې حضرت ابوبکر رضي الله عنه ورته هدايات ورکړل او داسې يې ورته وفرمايل:

زه تا ته د حضرت ابو عُبيده بن جراح رضي الله عنه سره د ښېګڼې کولو تاکيد کووم! ځکه چې تا ته معلومه ده چې په اسلام کې د هغه لوي مقام دی او رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې په هر امت کې يو امين وي او د دې امت امين حضرت ابو عُبيده بن جراح رضي الله عنه دی د هغه د فضائلو او دين کې د مخکې والي خيال ساته! او دغسې د حضرت مُعاذ بن جبل هم خيال ساته! تا ته پته ده چې هغه د رسول الله ﷺ سره په غزاګانو کې شريک شوی دی او رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې د قيامت په ورځ به حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه د علماوو نه مخکې يو اوچت ځای باندې روان شي يعنې په هغه ورځ به د علمي فضيلت د وجې نه د هغه يو جدا شان وي د دې دواړو د مشورې نه بغير د څه کار فيصله مه کوه! او دا دواړه به هم له تا سره په نېکه رويه او سلوک کې هيڅ کمی نه کوي.

حضرت يزيد رضي الله عنه ويل اې د رسول الله ﷺ خليفه! څنګه چې تاسو ما ته د دوي دواړو په باره کې تاکيد وکړو دغسې دوي دواړو ته زما په باره کې هم تاکيد وفرمايه! حضرت

---

۱: اخرجه ابن سعد ۴/۱۷۰ كذا في الكنز ۳/۱۳۴

ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل: زه به ضرور دوي دواړو ته ستا باره کې تاکید وکړم! حضرت یزید رَضِيَ اللهُ عَنهُ وویل: الله جَلَّ جَلَالُهُ دې په تاسو رحم وکړي او د اسلام د طرف نه دې تاسو ته غوره عوض درکړي.(۱)

حضرت یزید بن ابي سفیان رَحِمَهُ اللهُ وایي کله چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ زه د شام سیمې ته ولیږلم! نو داسې یې راته وفرمایل: اې یزیده! ستا د پر رشته داران دي کیدی شي چې ته امیر مقرریږدو کې رشته دارانو ته په نورو باندې اوچتوالی او لوړوالی ورکړې ما ته ستا د دې خبرې زیاته ویره ده، خو غور سره واوره! رسول الله ﷺ وفرمایل: چې څوک د مسلمانانو ذمه دار مقرر شي او بیا هغه د ذاتي میلان په وجه سره څوک غیر حقدار د مسلمانانو امیر مقرر کړو نو په ده باندې به د الله جَلَّ جَلَالُهُ لعنت وي او الله جَلَّ جَلَالُهُ به د ده نه نفل عبادت قبولي او نه فرض! بلکې دی به په دوزخ کې واچوي او چا چې د ذاتي تعلق په وجه چا غیر حقدار ته د خپل وررور مال ورکړو نو په ده به د الله جَلَّ جَلَالُهُ لعنت وي یا یې وفرمایل: چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ ذمه به د ده نه بري وي الله جَلَّ جَلَالُهُ خلکو ته د دې دعوت ور کړی دی چې هغوی په الله جَلَّ جَلَالُهُ باندې ایمان راوړي د دې لپاره چې هغوی د الله جَلَّ جَلَالُهُ په مرسته او حفاظت کې راشي، اوس چې څوک د الله جَلَّ جَلَالُهُ په امداد او حفاظت کې راغلي دي هغه که څوک ناحقه بې عزته کړي هغه باندې به د الله جَلَّ جَلَالُهُ لعنت وي یا یې وفرمایل: چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ ذمه به له هغه نه بري شي.(۲)

## د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وصیتونه

**له ځان نه وروسته خلیفه ولي الامر ته د عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنهُ وصیت:**

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل: زه له ځان نه وروسته خلیفه کیدونکي ته د مهاجرینو اولینو په باره کې وصیت کوم! چې هغه د دوي حق وپیژني او د دوي د عزت او احترام خیال وساتي او کوم انصار چې د دار هجرت او دار ایمان یعنې مدینه منوره کې د مهاجرینو نه

۱: اخرجه ابن سعد كذا فى الكنز ٣/١٣٢

٢: اخرجه احمد والحاكم ومنصور بن شعبة البغدادى فى الاربعين وقال حسن المتن غريب الاسناد قال ابن كثير ليس هذا الحديث فى شئى من الكتب الستة وكانهم اعرضوا عنه لجهالة شيخ بقية والذى يقع فى القلب صحة هذا الحديث فان الصديق رَضِيَ اللهُ عَنهُ كذلك فعل ولى على المسلمين خيرهم بعده كذا فى كنز العمال ٣/١٤٣ وقال الهيثمى ٥/٢٢٢ رواه احمد وفيه رجل لم يسم انتهى.

مخکې اوسېدل د هغوی په اړه هم هغه ته وصیت کووم! چې هغه دې د هغوی نېک سرو طرف به قبلوي او هغوی به معاف کوي! زه هغه ته د ښار اوسېدونکو په اړه هم د نېکې کولو وصیت کووم! ځکه چې دا خلک د اسلام مددګار خلکو نه فرض زکات او د صدقاتو مال جمع کولو والا او امیر ته د راوړلو او ورکولو والا او د غصې سبب ګرځېدونکي دي داسې د ښار اوسېدونکو نه یوازې د حاجت نه زیات مال د دوي په رضا واخیستل شي، او زه خلیفه ته دا وصیت هم کووم! چې د کلیو اوسېدونکو سره نېکي کوي! ځکه چې دا خلک د عربو اصل او د اسلام بنیاد دي او د هغه خلیفه دې د کلیو اوسېدونکو په مالونو یعنې حیواناتو کې کم عمر لرونکي اخلي او هم د دوي په غریبانانو کې دې تقسیموي، او د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه د رسول ﷺ د طرف نه دی کلیو اوسېدونکو لپاره چې کومه وعده او ذمه واري په خلیفه باندې لازمېږي هغه دې پوره اداء کړي او دې کلو اوسېدونکو نه وروسته علاقه کې چې کوم کافر دښمن اوسېږي هغوی سره دې دا خلیفه جنګ وکړي او د دې کلیو اوسېدونکو د طاقت نه زیات دې په هغوی څه نه تاکي.

حضرت قاسم بن محمد رَحِمَهُ اللهُ فرمایي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل: چې ما نه وروسته چې څوک د خلافت والي مقرر شي هغه ته دا معلوم ول په کار دی چې له ما نه وروسته د پرد لرې او نږدې خلک به ده نه خلاف اخیستل غواړي له ما نه وروسته والا وخت کې به په خلکو کې د امیر تاکل کېدو خواهش پیدا شي، او زما په وخت کې خلکو کې د امیر جوړېدو خواهش بلکل نشته، ځکه چې زه خلکو سره خو په دې خبره جنګ کووم! چې هغوی به څوک خلیفه مقرر کړي او ما د دې نه خلاص کړي او زه خو یوازې په دې وجه خلیفه مقرر شوی یم! چې ما ته د ځان نه زیات بل څوک په محکمتیا او طاقت سره د خلافت کار سنبالولو والا په نظر نه راځي که زما په علم کې داسې څوک وی چې د خلافت کار له ما نه زیات په ښه توګه او طاقت سره سنبالولی شوی نو زه به یو ساعت هم خلیفه جوړ نشم! بلکې هغه به خلیفه مقرر کړم! ځکه چې د داسې سړي په وجود کې د خلیفه مقررېدو نه ما ته دا زیاته خوښه ده چې زه دې مخکې کړي شم! او زما څټ دې والوزول شي.(۱)

۱: اخرجه ابن ابی شیبة وابوعبید فی الاموال وابو یعلی والنسائی و ابن حبان والبیهقی کذا فی المنتخب ۴/۴۲۹

**حضرت ابوعُبیده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وصیت:**

حضرت صالح بن کیسان رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د خلیفه مقرریدو نه پس حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کوم اولني خط چې حضرت ابوعبیده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته لیکلي وو چې هغه خط کې هغوی حضرت ابوعبیده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د حضرت خالد د لښکر د امیر مقرریدو په باره کې لیکلي وو په هغه کې داسې مضمون وو:

زه تاسو ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه د ویرې وصیت کووم! چې پاتې به وي او د هغه نه پرته ټول شیان به فنا شي او هم الله جَلَّ جَلَالُهُ د ګمراهۍ نه مونږ ووېستلو او هدایت یې رانصیب کړو او هم یې له تیارو څخه ووېستلو او د رڼایي خواته یې راوستلو، ما ته د خالد بن ولید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د لښکر امیر مقرر کړی یې! نو د مسلمانانو کوم کارونه چې ستا په ذمه دي، هغه ته پوره کړه او د غنیمت د مال په هیله کې مسلمانان د تباهۍ ځای ته مه بوځه! په یوا ځای کې د پړاو کولو نه مخکې سرې ولیږه! او د مسلمانانو لپاره مناسب ځای وګوره! او دا هم معلوم کړه چې دې ځای ته د رسېدو لاره څنګه ده؟ او کله چې هم جماعت لیږې نو مکمل پوره جماعت لیږه! یعنې لږ کسان مه لیږه! او د مسلمانانو په تباهۍ کې اچولو نه ځان وساته! الله جَلَّ جَلَالُهُ ما ستاسو په ذریعه او تاسو زما په واسطه امتحان کې اچوي خپلې سترګې د دنیا نه بندې ساته! او خپل زړه د دنیا نه واړوه! د دې خبرې خیال وساتئ! چې چیرته د دنیا صحبت تاسو تباه نه کړي، څنګه یې چې تاسو نه مخکې خلک تباه کړی وو او تاسو د هغه خلکو د تباه کېدو ځایونه لیدلی دی.(۱)

**سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وصیت:**

حضرت محمد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پیغام ولیږه او حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یې راوغوښته کله چې هغه راغی نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه د عراق د جنګ امیر مقرر کړ او هغه ته یې دا وصیت وفرمایلو؛

اې سعده! اې د بنو وهیق د قبیلې سعده! ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ له خوا نه په دې خبره په دوکه کې پرې نه وځې چې خلک تا ته د رسول الله ﷺ ماما او صحابي وايي ځکه چې الله جَلَّ جَلَالُهُ بدي په بدۍ نه ختموي د الله جَلَّ جَلَالُهُ د تابعدارۍ نه بغیر د الله جَلَّ جَلَالُهُ چا سره څه رشته او

۱: اخرجه ابن جریر ۳/۹۲

اړیکه نشته، د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد د غټ خاندان او د وړوکي خاندان خلک ټول برابر دي، الله جَلَّ جَلَالُهُ د دوي ټولو رب دی! او ټول د الله جَلَّ جَلَالُهُ بنده ګان دي چې په عافیت کې د یوه بل نه مخکې ښکاري، خو دا بنده ګان د الله جَلَّ جَلَالُهُ انعامات په تابعدارۍ حاصلولی شي تاسو چې رسول الله ﷺ د پیغمبرۍ ملاوېدو نه تر مونږ نه جدا کېدو پورې په کوم کار کولو باندې لیدلی دي هغه کار ته په غور سره کتل او د هغه کار په پابندۍ سره کول. ځکه چې هم دغه اصل کار دی دا زما تاسو ته خاص نصیحت دی که چېرې تاسو دا پرېښودلو او دې طرفته مو توجه ونکړه نو ستا عمل به ضائع شي او تاسو به د دې نقصان والاوو ځخه شئ!

کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ده د روانېدو اراده وکړه نو هغه یې راوغوښت او وې فرمایل: ما ته د عراق د جنګ امیر مقرر کړی یې! نو بیا ته زما وصیت یاد ساته! ته د داسې کار لپاره روان یې! چې ډېر ګران او سخت کار دی او د طبیعت په خلاف هم دی، په حق باندې تلو سره ته د دې نه خلاصون موندلی شې! د خپل ځان او ملګرو د نېکۍ عادت جوړ کړه! او د نېکۍ په ذریعه مدد غواړه! تا ته دې دا خبره هم معلومه وي چې هر نېک عادت د حاصلولو لپاره څه شي ذریعه وي او د نېکۍ حاصلولو لپاره لویه ذریعه صبر دی هر مصیبت او هر مشکل کې ضرور صبر کوه! دا شان به تا ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ وېره حاصله شي، تا ته دا هم معلوم ول په کار دی چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ وېره په دوو خبرو سره حاصلېږي یو د الله جَلَّ جَلَالُهُ اطاعت سره او دویم د الله جَلَّ جَلَالُهُ نافرمانۍ نه بچ کېدو سره. د چا چې دنیا نه نفرت وي او د اخرت سره یې محبت او مینه وي هغه سړی د الله جَلَّ جَلَالُهُ اتباع کوي او څوک چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ نافرماني کوي او په زړونو کې الله جَلَّ جَلَالُهُ څه حقیقتونه پیدا کوي په دې کې ځینې پټ وي او ځینې ښکاره، یو ښکاره حقیقت دا دی چې د حق خبرې په باره کې د ده تعریف کونکو او ده ته بد ویلو والا دواړه د ده په نزد برابر وي چې په حقه خبره باندې د چلېدلو مقصد د الله جَلَّ جَلَالُهُ راضي کول وي که خلک یې بد وایي یا یې تعریف کوي په دې یې څه پروا نه وي او پټ حقیقتونه په دوو نښو سره پېژندل کېږي. یو دا چې د حکمت او دا چې د حکمت معرفت خبرې د ده د زړه نه د ده په خوله جاري شي او دومه دا چې خلک د ده سره مینه کول شروع کړي نو دا رنګه د خلکو د محبت کولو نه بې پروایي مه کوه! بلکې دا خپل ځان لپاره ښه شي وګڼه! ځکه چې انبیاء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه د خلکو محبت

غوښتي دي او الله جَلَّجَلَالُهُ کله چې بنده سره محبت کوي نو د خلکو په زړه کې د ده محبت واچوي او کله چې يو بنده نه نفرت کوي نو د خلکو په زړونو کې د ده نفرت پيدا کړي نو دارنګه کوم خلک چې تا سره ورځ او شپه کېني د هغوی په زړونو کې ستا په باره کې د مينې يا نفرت جذبه ده نو ته د الله جَلَّجَلَالُهُ په نزد د ځان لپاره هم هغه ګڼه!(۱)

**حضرت عتبه بن غزوان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وصيت :**

حضرت عمير بن عبد المالک رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي: کله چې عمر عتبه بن غزوان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بصرې ته د ګورنر(والي) په صفت ولېږه نو ورته ويې فرمايل: اې عتبه! ما ته د هند(۲) د سيمې ګورنر(والي) (والي) تاکلي يې! څرنګه چې بصره د خليج په ساحل کې پرته ده او دا خليج د هند تر ځمکې پورې رسېږي، خلاصه دا چې د بصرې حالات يې ټول ورته وويل همدارنګه يې ورته وويل چې بصره د دښمن له سختو ځايونو نه ده او زما اميد دا دی چې الله جَلَّجَلَالُهُ په هغه ځای کې د دښمن په خلاف ستا مدد او کومک وکړي، ما حضرت حضرمي ته ليک لېکلی دی چې هغه ستا د کومک کولو لپاره حضرت عرفجه بن هرثمه راولېږي، ځکه چې هغه له دښمن سره په جنګ کې ډېر ماهر او پوه دی، نو کله چې تا ته راشي ته ورسره مشوره کوه! او ځان ته يې نيزدې کړه! بيا له دې وروسته د کوفې خلکو ته د اسلام د مبارک دين دعوت ورکړه! څوک چې ستا دعوت قبول کړي نو ته هم د هغه اسلام او دعوت قبول کړه! او څوک چې اسلام نه قبلوي نو هغه خوار او ذليل وګڼه او جزيه پرې مقرره کړه! او که بيا څوک جزيه هم نه مني نو بيا توره پرې راوباسه او جنګ ورسره وکړه خو په جنګ کې ورسره نرمي مه کوه! او د قوم د کوم ذمه واري چې تا ته درکړل شوي ده په هغې کې د الله جَلَّجَلَالُهُ نه وېره او دار وکړه! او له دې خبرې نه ځان ساته! چې ستا نفس تا تکبر او لويې ته اماده نه کړي، ځکه چې په تکبر کولو سره به ستا اخرت خراب شي، ته د رسول الله ﷺ په صحبت باندې پاتې شوی يې، ته ذليل وې، خو د رسول الله ﷺ په وجه باندې ته د عزت څښتن وګرځېدلې، همدارنګه ته کمزوری وې خو تا ته د رسول الله ﷺ په وجه زور او طاقت حاصل شوی دی او اوس د خلکو امير شوې، ته چې څه وايې هغه اورېدل کېږي، او ته چې څه حکم کوې هغه به پوره کېږي، دا امارت ډېر لوی نعمت دی خو

۱: اخرجه ابن جرير ۳/۹۲ من طريق سيف

۲- هغوی بصره د هند حصه ګڼله ځکه چې دا ځای دخليج په ساحل کې پروت او هند سره متصل دی.

په دې شرط چې ته که د امیرۍ له وجې ځان له خپلې درجې او مرتبې نه لوړ ونه ګڼې، او په ګناه کې د امیرۍ د نعمت د نقصان زیاته خطره ده، چې دا به ورو ورو تا ته دو که درکوي او تا به په کبر او د مسلمان په سپک او خوار ګڼلو کې اخته کوي، او بیا به ته داسې وکړې چې نیغ به دوزخ ته ځې، زه تا او خپل ځان د امیرۍ له دې نقصاناتو څخه د الله جَلَّجَلَالُهُ په پناه کې ورکوم، یعنې الله جَلَّجَلَالُهُ دې ما او تا د امیرۍ له شر او ضرر نه محفوظ وساتي، خلک د الله جَلَّجَلَالُهُ خوا ته په تېزۍ سره لاړل یعنې د دین کارېې ښه وکړ، کله چې د دین کار کولو په نتیجه کې دنیا د دوي مخې ته راغله نو هغوی دا خپل مقصد وګرځاوه، نو په دې ترتیب تاسو الله جَلَّجَلَالُهُ خپل مقصد وګڼئ! دنیا خپل مقصد مه ګرځوئ! او د ظالمانو د پرېوتو او غورځېدو ځائ دوزخ دي، یعنې له دوزخ نه ووېرېږه![1]

**حضرت علاء بن حضرمي ته د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وصیت :**

شعبي رَحِمَهُ اللَّهُ وايي: حضرت علاء بن حضرمي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په بحرین کې وو، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه ته دا لیک ولیکه :ته حضرت عتبه بن غزوان ته لاړ شه! ما ته د هغه د کار ذمه وار مقرر کړی یې! خو ته داسې سړی ته ورځې چې په اولینو مهاجرینو کې دي، د چا لپاره چې د الله جَلَّجَلَالُهُ له طرفه مخکې نه خیر مقرر شوی دی ما هغه د امیرۍ مقام نه په دې وجه نه دی لرې کړی چې پاکدامن، قوي او سخت جنګ کونکي نه و، بلکې دا ټولې ښېګڼې په هغه کې موجود وې، خو ما هغه ځکه لرې کړ او ته مې مقرر کړې چې ته به د مسلمانانو لپاره ښه او فایده من امیر شې! نو ته د هغوی حق وپېژنه! له تا نه مخکې ما یو سړی امیر کړیؤ خو هلته له رسېدو نه مخکې وفات شو، او که د الله جَلَّجَلَالُهُ خوښه وه نو ته به د هغه په ځائ امیر شې! او که الله جَلَّجَلَالُهُ ته خوښه وه نو عتبه دې امیر شي، او که تا ته مرګ راشي نو همداشان به وشي، ځکه چې پیدا کول او حکم ورکول د الله جَلَّجَلَالُهُ په واک کې دي. الله جَلَّجَلَالُهُ کله چې له اسمانه یوه فیصله نازلوي نو د هغې فیصلې حفاظت او ساتنه هم پخپله کوي، هغه مه ضایع کوه! بلکې هغه فیصله پوره کولی شي، او ته خو یوازې هغه کار ته ګوره! د کوم لپاره چې پیدا شوي یې! نو د هغه لپاره ته پوره کوشش کوه! او له دې بغیر ټول کارونه پرېږده! ځکه چې د دنیا د ختمېدو او فاني کېدو وخت مقرر شوی دی، او اخرت همېشه پاتې کېدونکی دی او باقي دی، ته د دنیا په نعمتونو کې د مشغولېدو سره د

---

[1] اخرجه ابن جریر ۴/۱۵۰ ورواه علی بن محمد المدائنی ایضا مثله کما فی البدایة ۷/۴۸

الله جَلَّ جَلَالُهُ له غصې او قهر نه وتښتـه! او د الله جَلَّ جَلَالُهُ خواته راشه! او الله جَلَّ جَلَالُهُ چې د چا لپاره وغواړي د هغه په حکم او په علم کې پوره فضیلت او غوره والي جمع کړي، مونږ د الله جَلَّ جَلَالُهُ نـه د خپـل ځـان او ستا لپـاره د الله جَلَّ جَلَالُهُ تابعداري کولـو بانـدې امداد او کومک او د هغه له عذاب او قهر نه پناه غواړو!(۱)

**ابوموسی اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وصیت :**

ضبه بن محصن رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ابو موسی اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته داسې لیک ولیکه او ورويې لېږه: اما بعد! کله نا کله د خلکو له خپل بادشاه څخه نفرت او کرکه پیدا کېږي، خو زه له دې خبرې نه د الله جَلَّ جَلَالُهُ پناه غواړم! چې زما او ستا په باره کې دې د خلکو په زړونو کې د نفرت او کینې جذبه پیدا شي، که تړوله ورځ شرعي حدود قایم نه کړل شي نو په ورځ کې یو ساعت هم شرعي حدود قايموه! او کله چې تا ته دوه داسې کارونه مخې ته راشي چې په هغوی کې یو د الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره وي او بل د دنیا لپاره وي، نو د الله جَلَّ جَلَالُهُ کار ته د دنیا په کار باندې ترجیح او غوره والي ورکوه! ځکه چې دنیا ختمېدونکې ده، او اخرت باقي او پاتې کېدونکي دي، همدارنګه بدکاران ووېروه! یو ځای کې یې مه پرېږده! ځکه چې که چېرته بدکاران یو ځای شي نو د بدو کارونو منصوبې به جوړې شي نو په دې وجه یې یو ځای کې مه پرېږده! د مریض مسلمان پوښتنه کوه! د مسلمانانو په جنازو کې ګډون کوه! او خپله دروازه خلاصه او پرانیستې ساته! د مسلمانانو کار پخپله کوه! ځکه چې ته هم له دوي نه یو کس یې، یعنې په دوي باندې کوم غوره والي نه لرې! او ستا او د دوي تر منځ فرق یوازې دومره دی چې په تا باندې الله جَلَّ جَلَالُهُ له دوي نه زیاته ذمه واري اچولې ده، ما ته دا خبر رارسېدلی دی چې تا او ستا کورولاوو په جامو، خوراک او سورلیو کې څه خاص فرق اختیار کړی دی، چې کوم په عامو مسلمانانو کې نشته، اې عبدالله! ته له دې نه ځان وساته! ځکه چې ته د هغه څناور په شان نه شې! چې په شنه علاقه تېرېږي، بنه ډېر وابنه وخوري او فکر یې یوازې دا وي چې زه دې غټ شم! هغه څناور ډېر خوراک وکړو نو ځکه غټ شي، خو هم په هغه فکر کې مر شي. او تا ته دې معلومه وي کله چې امیر کوږ شي نو ماموران یې هم کاږه شي، او په خلکو کې تر ټولو زیات بدبخت شخص هغه څوک دی چې د هغه په وجه ماتحت او لاس

---

۱: اخرجه ابن سعد ۴/۷۸

لاندې خلک بدبخت شي.(۱)

بل ځائ کې حضرت ضحاک رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ابوموسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته داسې لیک ولیکه: اما بعد! عمل کې به طاقت او پوخوالي هغه وخت پیدا کېږي، چې ته د نن کار سبا ورځې ته پرې نهږدې، ځکه کله چې ته داسې وکړې نو تا ته به ډېر کارونه تول شي او بیا به تا ته دا پته هم نه لګېږي چې کوم وکړم او کوم پرېږدم! او په دغه ترتیب به ډېر کارونه پاتې شي، که تا ته په دوو کارونو کې واک درکړل شي په داسې حال کې چې له دغو دوو کارونو څخه یو کار د دنیا وي او بل د اخرت لپاره وي نو ته د اخرت والا کار ته د دنیا په کار ترجیح او غوره والی ورکړه! ځکه چې دنیا فاني او پناه کېدونکې ده او اخرت باقي او پاتې کېدونکی دی. همدارنګه له الله جَلَّ جَلَالُهُ څخه تل وېره کوه! او د الله جَلَّ جَلَالُهُ کتاب یعنې قرآن کریم سره زده کوه! ځکه چې په دې کې د علمونو چینې دي او دا کتاب د زړونو سپرلی دی، یعنې قرآن کریم سره زړونو ته راحت حاصلېږي.(۲)

## د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ذي النورین وصیت

د حضرت علاء بن فضل مور وايي چې د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تر شهادت وروسته خلکو د هغه د خزانې تلاشي شروع کړه، نو په هغه کې یو صندوق وموندل شو چې هغه ته تاله لګېدلې وه، کله چې خلکو هغه تالا پرانیسته او وې کتل چې په هغه کې یو کاغذ پیدا شو او دا وصیت پکې لیکل شوی ؤ:

بسم الله الرحمن الرحیم

عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې خبرې شاهدي ورکوي چې له الله جَلَّ جَلَالُهُ څخه پرته هیڅوک معبود نشته، هغه یو دی، له هغه سره څوک شریک نشته، او حضرت محمد ﷺ د هغه بنده او رسول دی، جنت حق دی او دوزخ حق دی او الله جَلَّ جَلَالُهُ به په هغه ورځ خلک له قبرونو نه راوباسي، د کومې ورځې په راتلو کې چې هیڅ شک نشته، یقیناً الله جَلَّ جَلَالُهُ د خپلې وعدې خلاف نه کوي، هم په دې شاهدي به عثمان ژوندی وي او هم په دې به مري او هم په

---

۱: اخرجه الدینوری کذا فی الکنز ۳/۱۴۹ واخرجه ابن ابی شیبة وابونعیم فی الحلیة عن سعید بن ابی بردة مختصرا کما فی الکنز ۸/۲۰۹

۲: اخرجه ابن ابی شیبة کذا فی الکنز ۸/۲۰۸

دې به ان شاء الله د قيامت په ورځ هم را اوچتېږي.(۱)

همدارنګه نظام الملک هم دا حديث بيان کړی دی او په دې کې دا مضمون هم دی چې خلکو د دې کاغذ په شا دا شان ليکل وليدل؛

غنى النفس يُغنى النفس حتى يجلّها
و ان غضّها حتى يضر بها الفقر

يعنې د زړه غِنا سړی غني کوي تر دې چې هغه د لويې مرتبې او درجې والا جوړ شي، که څه هم چې دا مالداري ده ته دومره نقصان ورسوي چې فقريې تنګوي.

و ما عسرة فاصبر لها ان لقيتها
بكائنة الا سيتبعها يسر

که تا ته چېرته مخې ته څه مشکل راشي نو ته پرې صبر وکړه ځکه چې هر مشکل نه وروسته اساني ضرور راځي.

و من لم يقاس الدهر لم يعرف الاسى
و فى غير الايام ما وعد الدهر

څوک چې د زمانې تکليفونه او سختيانې برداشت نه کړي هغه ته به چېرته هم د غم خوارۍ د خوند او مزې پته ونه لګېږي، د زمانې په حادثاتو باندې الله جَلَّ جَلَالُهُ د هر څه ورکولو وعده کړې ده.(۲)

حضرت شداد بن اوس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي؛ کله چې د حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د کور محاصره سخته شوه نو هغه طرفته رابنکاره شو او وې فرمايل چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ بندګانو! راوي وايي؛ ما وليدل چې حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له کور نه بهر را روان دی ، د رسول الله ﷺ پټکی يې تړلی دی او توره يې په لاس کې نيولې ده، له هغه نه مخکې د مهاجرينو او انصارو يوې ډلې په داسې حال کې په باغيانو حمله وکړه چې په دې ډله کې حضرت حسن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او عبدالله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هم وو، دوی په باغيانو حمله وکړه او هغوی يې وتښتول بيا دوی ټول د معلوماتو کولو لپاره د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کور ته

---

۱: اخرجه الفضائلي الرازى عن العلاء بن الفضل
۲: كذا فى الرياض النضرة فى مناقب العشرة للمحب الطبرى ۲/۱۳۲

لاړل، کله چې يې کور ته ورسېدل نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ عرض وکړ چې السلام عليکم يا اميرالمؤمنين! رسول الله ﷺ ته د دين د اوچتوالی او مضبوطوالي هغه وخت حاصل شو کله چې هغوی خپل تابعدار خپل ځان سره کړل او د نه منونکو وژل يې شروع کړل او په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ما ته خو هم دا په نظر راځي چې دا خلک به تا قتل کړي، نو په دې وجه ته مونږ ته حکم وکړه چې مونږ دوي سره جنګ وکړو، د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ د دې خبرې په اورېدو سره حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمايل: څوک چې په ځان باندې د الله جَلَّ جَلَالُهُ حق مني او د دې خبرې اقرار کوي چې زما په ده باندې حق دی هغه ته زه قسم ورکوم او دا ورته وايم چې هغه زما له وجې نه د وينې يو څاڅکي هم توي نه کړي او نه خپله وينه توبې کړي.

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ خپله خبره دوباره حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته ويله، حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ هم هغه ځواب ورکړو، راوی وايي چې ما حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ په داسې حال کې وليده چې د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ له دروازې نه راووت او دايې وفرمايل: اې الله جَلَّ جَلَالُهُ تا ته پته ده چې مونږ خپل ټول زور ولګاوه، بيا حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ مسجد ته لاړ، د لمانځه وخت شو خلکو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته ويل چې مخکې شه! او جمع راکړه! حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ ورته وفرمايل چې د امام صاحب کور ګير کړل شوی دی يعنې د امام صاحب په کور باندې حمله شوې ده نو زه تاسو ته جمع نشم درکولی، زه خو به يوازې لمونځ کوم، بيا هغوی لمونځ وکړ او کورته لاړ، وروسته د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ ځوی راغی او ورته يې ويل چې اې پلاره! هغه باغيان په زور سره د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ کورته داخل شول، حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ د دې خبرې په اورېدو سره انا لله وانا اليه راجعون وويل، او بيا يې وويل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! هغه خلک به دې قتل کړي، خلکو پوښتنه وکړه، اې ابو الحسن! که حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنهُ شهيد شو نو چېرته به ځي؟ هغه وويل چې جنت کې به د الله جَلَّ جَلَالُهُ خاص نزديکت حاصل کړي، بيا يې پوښتنه وکړه، اې ابو الحسن! قاتلان به چېرته ځي؟ هغوی ورته درې ځله وفرمايل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم دوزخ ته به ځي.(۱)

**په دې باره کې د حضرت ابوسلمه بن عبدالرحمن رَضِيَ اللهُ عَنهُ حديث :**

حضرت ابو سلمه بن عبد الرحمن رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ باغيانو ګير کړی

(۱) اخرجه ابواحمد كذا فى الرياض النضرة فى مناقب العشر ۲/۱۲۸

وو چې په دې وخت کې حضرت ابو قتاده او یو بل کس د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کور ته لاړل دواړو حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د حج اجازه وغوښتله، عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته د حج اجازه ورکړله، دې دواړو له حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه چې که چیرې دا باغیان غالب شول نو مونږ دواړه د چا ملاتړ وکړو؟ حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل چې تاسو د عامو مسلمانانو ملاتړ وکړئ! کله چې دې دواړو بیا ځل ورځخه وپوښتل چې که چیرې دا باغیان د مسلمانانو یو جماعت جوړ کړي نو بیا په دې صورت کې مونږ چا سره ملګري شو؟ نو حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمایل: چې تاسو د مسلمانانو له عام جماعت سره شئ! که هغه د هر چا وي، راوي وایي کله چې مونږ بهر وتلو نو د کور په دروازه کې له حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره په داسې حالت کې ملاو شولو چې دي عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ور روان ؤ، نو له هغه سره مونږ هم د دې لپاره واپس لاړو چې د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته څه وایي نو هغه واورو، کله چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورسېدو نو هغه ورته سلام وکړ، او ورته وې ویل چې اې امیرالمؤمنین! تاسو چې څه غواړئ! ما ته حکم وکړئ! د دې خبرې په اورېد سره حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمایل: چې اې زما وراره! واپس لاړ شه! او خپل کور کې کېنه! او تر هغه وخته پورې چې الله جَلَّ جَلَالُهُ څه غواړي هغه په وجود کې راولي یعنې هغه وکړي، نو بیا حضرت حسن او مونږ ټول حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه بهر ووتلو، په دې سره مونږ سره حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په داسې حال کې مخ شو چې دي هم د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ طرفته ورروان و، مونږ له ده سره هم واپس شولو چې وګورو چې له حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره دی څه وایي! نو هغه له رسېدو سره سم حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته سلام وکړ او عرض یې ورته وکړ چې اې امیرالمؤمنین! زه د رسول الله ﷺ په صحبت کې د هر پاتې شوی یم او د هغوی هره خبره مې منله بیا زه حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره هم پاتې شوی یم او د هغه پوره تابعداري مې کوله او بیا زه له حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره هم پاتې شوی یم او د هغه مې هم پوره تابعداري کوله، بل دا چې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مې په ځان دوه حکمونه منل، چې یو د پلار کېدو په وجه او بل د خلیفه کېدو په وجه. او اوس زه ستاسو پوره فرمانبردار یم! تاسو چې څه غواړئ! ما ته حکم وکړئ! ان شاء الله زه به یې خامخا پوره کوم! په دې خبره حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل: اې آل عمره! الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تا ته دوه چنده د جزای خیر درکړي، ما ته د چا د وینې بهېدلو ضرورت نشته،

ما ته د چا د وینې د بهېدلو ضرورت نشته.(۱)

**په دې باره کې دحضرت ابوهريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث:**

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي زه هم حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره کور کې ووم، زمونږ يو سړی د باغيانو له لوري په غشي وويشتل شو، په دې باندې ما وويل اې اميرالمؤمنين! څرنګه چې هغوی زمونږ يو سړی ووژلو نو په دې وجه باغيانو سره جنګ زمونږ لپاره جايز دی، حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل: اې ابوهريره! زه تا ته قسم درکوم! چې خپله توره وغورځوه! دا خلک زما وژل غواړي په دې وجه زه ځان ورکوم، او د نورو مسلمانانو بچ کول غواړم، حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي ما د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې فرمان خپله توره وغورځوله او تر اوسه پورې ما ته دا خبر نشته چې هغه کوم ځای ده؟(۲)

# اميرانو ته د حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وصيت

## يو ګورنر(والي) ته دحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ليک

حضرت مهاجر عامر رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل يو ملګري د يوه ښار ګورنر(والي) مقرر کړی وو هغه ته يې داسې ليک وليکه:

اما بعد! ته د خپلو عوامو نه ډېر وخت غائب مه اوسه! کله چې د څه ضرورت په وجه دوي نه د جدا کېدلو ضرورت شي نو ډېر زر دوي ته بېرته واپس راځه! ځکه کله چې امير له خپلو عوامو نه جدا وي نو عوام تنګېږي او امير ته به د خلکو حالات کم معلومېږي بلکې که امير له چا نه هم جدا وي نو د خپلو عوامو له حالاتو نه به بيخي ناخبره وي، کله چې امير خپلو عوامو سره اړيکې نه ساتي بلکې جدا اوسېږي نو دي به يوازې په اورېدلو خبرو خپل کار چلوي نو داسې به ټول دارومدار اورېدونکو خلکو باندې راشي او کوم خلک چې دا خبرې کوي هغوی کې غلط خلک هم کېدی شي نو د دې نتيجه به دا شي چې بيا به امير ته لوي شي وړوکي او وړوکي شي به ورته لوي وي، همدارنګه به ورته ښه شی بد او بد شی به ورته ښه ورانديي کوي او همداشان به ورته حق باطل او باطل به ورته د حق په څېر وړاندې کوي او ورته به هر څه ګډوډ شي. او امير هم انسان دی خلک چې له امير نه پټ کوم کارونه

---

۱: اخرجه ابو احمد فی الریاض النضرة فی مناقب العشره ۲۵/۱۶۹

۲: اخرجه ابوعمر كذا فی الرياض النضرة فی مناقب العشرة ۲/۱۲۹

کوي او امير ته د هغو کارونو پته نه لګېږي، همدا شان د انسان په هره خبره داسې نښه نه وي چې د هغې نه دا معلومه شي چې د هغه دا خبره رښتيا ده او که دروغ! نو دارنګه او س د دې حال هم دا دی چې امير له خپل طرفه د خلکو تګ راتګ اسانه او عام وګرځوي او کله چې خلک د وي ته د ېر راځي نو ده ته به حالات زيات معلومېږي او بيا به امير صحيح او حق فيصله کوي او د غه شان به امير هر چا ته خپل حق ورکوي او د يوه حق بل ته ورکولو به محفوظ پاتې شي، نو دارنګه ته به په دې دوه دوله سړيو کې يو د ول يې! يا به ته سخي سړی يې او په حق باندې خرچ کولو کې به ستا لاس د ېر پراخ وي او که چېرې ته داسې وې او خلکو ته ورکولو والا يې! او هغوی سره په ښو اخلاقو چلېدلو والا يې نو بيا تا ته له خلکو نه د جدايۍ څه ضرورت نشته. او خلک خو تا ته خپل ضرورتونه راوړي يا به د چا ظالم شکايت کوي او يا به له تا نه عدل او انصاف غواړي. په داسې حال کې چې د دې ضرورتونو په پوره کولو کې په تا باندې بوج هم نه راځي، نو دارنګه له خلکو نه د جدايۍ غوره کولو ضرورت نشته په دې وجه ما چې تا ته څه هم ليکي دي په دې باندې عمل وکړه! او ګټه ترې واخله! او زه تا ته يوازې هغه خبرې ليکم په کومو کې چې ستا فايده ده، او ان شاء الله د دې خبرو سره به تا ته هدايت ملاوېږي، يعنې ته به هدايت مومې!(۱)

حضرت مدايني رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خپل يوه امير ته داسې ليک وليکه او ورويې ليږه: صبر وکړه! او داسې وګڼه! چې ته د ژوند اخري حد ته رسېدلی يې! ستا د مرګ وخت راغلی دی او ستا عملونه ستا په مخکې په هغه ځای کې وړاندې کېږي چېرته چې د دنيا په دوکه کې پرېوتي او غوړېدلي خلک به د افسوس چغې وهي او د ژوند د ضايع کولو والا به ارزو کوي چې افسوس چې ما توبه کړې واي! او ظالم به ارمان کوي چې ما يو ځل بيا دنيا ته بېرته ولېږي، چې د نېکو اعمالو سره راشم او دا ځای خو د حشر ميدان دی.(۲)

**د حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ليک د عکبرا والي (ګورنر) ته:**

ابن زنجويه روايت کوي چې د بنو ثقيف د قبيلې يو صاحب بيان کوي او داسې وايي چې

---

۱: اخرجه الدينوري وابن عساکر کذا في منتخب الکنز ۵/۵۸

۲: اخرجه الدينوری وابن عساکر کذا في منتخب الکنز ۵/۵۸

حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زه د عُکبرا ښار گورنر (والي) مقرر کړم او د هغه ځایٔ اوسېدونکي خلک چې ذِمیان وو هغوی ما سره ناست وو نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ما ته داسې وفرمایل: د عراق د کليو اوسېدونکي خلک دوکه باز وي د هر پام کوه! چې تا ته کله دوکه درنکړي، نو دا رنګه د دوي په ذمه چې کوم حق وي هغه ترې پوره پوره وصول کړه!
بيا يې ما ته وفرمایل چې مابښام ما سره ملاو شه! نو کله چې زه مابښام د هغه په خدمت کې حاضر شوم راته وې فرمایل: ما چې سهار تا ته څه ويلي وو هغه مې د غو خلکو ته د اورولو لپاره ويلي وو د پيسو اخيستو لپاره دوي کې څوک په کوړه مه وهه! او مه يې لمر ته ودروه! او له دوي نه له شرعي حق نه پرته د ځان لپاره غوا او چېلۍ مه اخله! مونږ ته خو دا حکم را کړل شوی دی چې مونږ له دوي نه عفوه واخلو او تا ته پته شته چې عفوه څه ته وايي؟ چې دوي په اسانۍ سره ورکولی شيئ او هغه د دوي د ضرورت نه زيات وي.(۱)
همدا رنګه د بيهقي په روايت کې هم دا مضمون دی، چې د دوي غله، د ګرمۍ او يخنۍ جامې او د دوي د زمينداری او د سامان ورلو او راوړلو په کار راتلونکي څناور مه خرڅوئ! او د پيسو د اخيستلو لپاره څوک هم لمر ته مه ودروه! دې امير وويل هيڅ خبره نه ده که ته څنګه لاړ شې او هم دغسې بېرته خالي لاس راشې! ته هلاک شې! مونږ ته دا حکم دی چې له دوي نه به يوازې هغه مال اخلو چې د دوي له ضرورت نه زيات وي.(۲)

## امير يا امام ته د رعيت نصيحت

**امير المؤمنين عمربن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د سعيدبن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نصحيت**

حضرت مکحول رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت سعيد بن عامر بن حِذيم جُمحي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې د رسول الله ﷺ صحابي وو؛ حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل: اې عمره! زه تا سو ته وصيت کول غواړم! حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمایل چې هو ضرور وصيت وکړه! څکه چې امير په خپلو خطايانو باندې نه خبرول ګناه ده خو د خلکو په مخکې خبرول يې بيا بې ادبي ده او په ځانته والي کې يې متوجه کول او خبرول نصيحت کول دي.
حضرت سعيد بن عامر بن حِيذم جُمحي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته داسې وصيت

---

۱: اخرجه ابن زنجويه کذا في الکنز ۳/۱۶۶
۲: اخرجه البيهقي ۹/۲۰۵

کوي: زه تا ته دا رنګه وصیت کوم چې ته د خلکو په باره کې له الله جَلَّ جَلَالُهُ نه وویرېږه! او د الله جَلَّ جَلَالُهُ په باره کې له خلکو نه مه وېرېږه! ستا وینا او عمل کولو کې فرق نه دی پکار یعنې څنګه چې وینا کوې هماغسې عمل هم کوه! ځکه چې غوره خبره هغه ده چې د هغې رښتینوالي په عمل سره وشي، په یوه معامله کې دوه مختلفې فیصلې مه کوه! کنه ستا په کار کې به مخالفت پیدا شي او تا ته به د حق نه لرې کېدل راشي یعنې ته به له حق نه لرې شې! نو په دې ترتیب هغه طرف غوره کړه چې دلیل لري دغسې به تا ته کامیابي ملاو شي او الله جَلَّ جَلَالُهُ به ستا مدد وکړي او ستا په لاس به ستا د لاس لاندو خلکو اصلاح وکړي.

همدا رنګه هغو لرې او نیزدې مسلمانانو ته پوره او مکمله توجه کوه! د کومو چې الله جَلَّ جَلَالُهُ ته ذمه وار جوړ کړي یې! او د هغوی فیصلې په خپله کوه! څه چې ته خپل ځان او د خپلو کور والاوو لپاره خوښوې هماغه د نورو مسلمانانو لپاره هم خوښوه! او حق ته د رسېدو لپاره په مشکلاتو کې ننوځه! او وېره مه کوه! د الله جَلَّ جَلَالُهُ په باره کې د چا له ملامتیا نه مه وېرېږه!

د دې ټولو خبرو په اورېدو سره حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې دا کار څوک کولی شي؟ حضرت سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمایل: دا کار ستاسو په شان شخص کولی شي چې الله جَلَّ جَلَالُهُ د حضرت محمد ﷺ د امت ذمه وار مقرر کړی دی او هغه داسې بهادر دی چې د هغه او الله جَلَّ جَلَالُهُ تر منځ هېڅوک خنډ و نه ګرځېده.(۱)

**په دې باره کې د حضرت عبدالله بن بُریدة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث:**

حضرت عبدالله بن بُریده رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د یو وفد په راتلو سره خلک راټول کول غوښتل نو خپل اجازت ورکوونکي حضرت ابن ارقم رَحِمَهُ اللهُ ته یې وفرمایل: چې د حضرت محمد ﷺ صحابه وو ته په خاصه توګه باندې وګوره! او هغوی ته له نورو خلکو نه مخکې دننه د راتلو اجازه ورکړه! او بیا له هغوی وروسته نورو خلکو (تابعینو) ته دننه د راتلو اجازه ورکړه! کله چې دا حضرات دننه راغلل نو د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مخکې یې صفونه جوړ کړل، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دې خلکو ته وکتل نو هغه ته یو غټ سړی په نظر راغی چې هغه نقش لرونکي څادرونه اغوستي وو. حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته اشاره

---

(۱) اخرجه ابن سعد وابن عساکر کذا في منتخب الکنز ۴/۳۹۰

وکړه نو هغه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راغی، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته درې ځله وفرمایل چې ما ته څه خبره وکړه! هغه هم درې ځله ورته وویل چې نه! تاسو راته څه وفرمایئ! نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خفګان په ښکاره کولو سره ورته وفرمایل: چې اوهو! ځه ته ودرېږه! په دې سره هغه لاړ او په خپل ځای ودرېدو، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو ځل بیا په خلکو باندې نظر واچاوه چې په دې کې ورته یو اشعري په نظر ورغی، چې د هغه رنګ سپین، قد یې وړوکی او حال یې کمزوری و، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته اشاره وکړه چې په هغې سره هغه راغی، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمایل چې ته ما ته څه خبره وکړه! حضرت اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل: چې نه! تاسو راته څه ووایئ! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته یو ځل بیا وویل چې تاسو څه ووایئ! خو اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل: چې اې امیر المؤمنین! تاسو مخکې خبره شروع کړې نو ځکه اول تاسو څه ووایئ! نو بیا به زه هم یو څه درته ووایم! په دې سره حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل چې اوهو! ته هم ودرېږه! زه خو د چېلو څروونکی یم! د چېلو د څروونکي خبره به تاسو ته څه فایده درکړي شي؟ په دې خبرې سره اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم لاړ او په خپل ځای ودرېده.

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو ځل بیا په ولاړو خلکو باندې نظر واچاوه، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته په دې نظر کې یو سپین او سپک بدن والا سړی په نظر ورغی نو په اشارې سره یې هغه سړی راوغوښته، هغه سړی د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په اشارې سره راغی نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمایل: چې ته ما ته څه ووایه! د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې خبرې سره سړی ودرېده او شروع یې وکړه، اول یې د الله جَلَّ جَلَالُهُ حمد او ثناء بیان کړه او عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یې ښه سم له الله جَلَّ جَلَالُهُ نه ووېراوه او بیا یې وویل: ته د دې امت ذمه دار ټاکل شوی یې! نو دارنګه ته چې د دې امت د کومو کارونو ذمه دار ټاکل شوی یې! او د خپلو لاس لاندو خلکو په باره کې خصوصاً د خپل ځان په باره کې له الله جَلَّ جَلَالُهُ نه ووېرېږه! ځکه چې د قیامت په ورځ به له تا نه د دې ټولو حساب اخیستل کېږي او له تا نه به پوښتنه کېږي، ته امین ټاکل شوی یې! نو په تا باندې دا لازمه ده چې د امانت دا زمه داري په پوره اهتمام سره اداء کړل شي او تا ته به ستا د عملونو مطابق د الله جَلَّ جَلَالُهُ لخوا اجر درکړل شي.

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل: له کوم وخته چې زه خلیفه مقرر شوی یم نو له تا پرته هیچا هم ما ته داسې صفا او صحیح خبرې نه دي کړې، ته څوک یې؟ هغه ورته وویل چې زه ربیع بن زیاد

یم! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل چې د مهاجر زیاد ورور یې؟ هغه ورته وویل چې هو! بیا حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یو لښکر تیار کړ او حضرت ابو موسی اشعري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یې د هغه لښکر امیر مقرر کړ او هغه ته یې وفرمایل چې ربیع بن زیاد ته په ښه نظر ګوره! که چېرې دي په خپله خبره کې رښتوني شو په دې باندې یې په خپله هم عمل وکړ نو هغه به د دې امارت په ذمه داریانو کې ستا ښه کومک کوي ځکه دی د ضرورت په وخت کې د یوې ډلې امیر مقرر کړه! بیا هر لس ورځې پس ورروسته د ده د کار اندازه اخله! او د ده د کار کولو طریقې ما ته داسې په تفصیل سره لیکه! تر څو ما ته دا معلومه شي چې دي لکه ما خپله امیر مقرر کړی وي بیا حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې رسول الله ﷺ مونږ ته نصیحت کړی ؤ او فرمایلي یې ؤو چې ما ته خپل ځان نه ورروسته تاسو باندې تر ټولو زیاته خطره د هغه منافق ده چې په خبرو کولو کې ښه ماهر وي یعنې ژړه یې کوته وي خو په ژبه باندې ښې خبرې جوړوي.(۱)

**عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د ابوعبیده او معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا لیک او هغوی ته د عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لیک:**

حضرت محمد بن سوقه رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې زه حضرت نعیم بن ابي هند رَحِمَهُ اللَّهُ ته راغلم نو هغه یوه پرچه راوویستله او ما ته یې په داسې حال کې راکړه چې په هغې پرچه کې دا لیکل شوي وو: د ابو عبیده ابن جراح رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د معاذ ابن جبل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له طرفه د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په نوم سلام علیک! اما بعد! مونږ خوله شروع نه تاسو وینو چې د خپل نفس د اصلاح تاسو ته ډېر اهتمام دی او اوس خو په تاسو باندې د تورو او سپینو یعنې د عربو او عجمو د ټول امت د خلکو ذمه واري اچول شوې ده، ستا په مجلس کې د لویو مرتبو والا او کمو مرتبو والا دوست او دښمن هر دول خلک راځي په دوي کې هر یوه ته په عدل او انصاف سره د هغه برخه رسېدل پکار دي، اې عمره! تاسو وګورئ! چې تاسو دوي سره څنګه چلېږئ؟ مونږ تا له هغې ورځې وېرو و! په کومه ورځ چې به ټول مخونه ټیټ وي او زړونه به د وېرې له وجې نه وچ شي او د هغه بادشاه د دلیل په وړاندې به د ټولو انسانانو دلیلونه ناکام شي، چې د خپلې لویې له وجې نه به په هغوی باندې غالب او زورور وي او ټول مخلوق به د هغه په مخکې ذلیل وي ټول به د هغه د رحمت امید لري. او د هغه له سزا نه به وېرېږي مونږ به په خپلو کې دا حدیث بیانولو چې د دې امت به اخره زمانه کې دومره بد حال شي چې خلک به په ښکاره دوستان وي او په پټه به دښمنان. مونږ له دې خبرې نه په الله جَلَّ جَلَالُهُ سره پناه غواړو چې مونږ تا ته دا خط د

۱: اخرجه ابن راهویه والحارث و مسدد وابویعلی وصحیح كذا في كنز العمال ۷/۳٦

زړه په همدردی سره ولیکه! چې تاسو له دې نه علاوه نور څه وګڼئ! ځکه چې مونږ دا خط یوازې ستاد خیرغوښتنې په جذبې سره لیکلی دی. په جواب کې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دې دواړو ته داسې خط ولیکه او ورویې لیږه: د عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له طرفه د ابو عبیده ابن جراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او معاذ ابن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په نوم سلام علیکم! اما بعد! ما ته ستاسو دواړو خط ورسېده چې په هغه کې تاسو لیکلي وو چې تاسو ماله شروع نه وینئ چې زه د خپل نفس د اصلاح د پاره اهتمام کوم او اوس په ما باندې د تورو او سپینو یعنې د عربو او عجمو د امت د خلکو ذمه واري اچول شوې ده، زما په مجلس کې د لوې مرتبې والا او کمې مرتبې لرونکی دوست او دښمن هر دول خلک وي په هغوی کې هر یوه ته په انصاف سره د هغوی برخه رسېدل په کار دي تاسو دواړو دا هم لیکلی دی چې اې عمره! تاسو وګورئ! چې تاسو دوي سره څنګه چلېږئ؟ او حقیقت دا دی چې هم د الله جَلَّ جَلَالُهُ په مدد او کومک سره عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صحیح چلېدلی شي او له خطایې نه بچ کېدی شي او تاسو دواړو لیکلی دی چې تاسو دواړه ما له هغې ورځې نه وېروئ! له کومې ورځې زمونږ نه مخکښې امتونه هم وېرول شوی دی او له ډېره وخته دا خبره راروانه ده، چې د شپو ورځو بدلېدو او شپه او ورځ کې مقرر وخت راتلو باندې د خلکو له دنیا نه تلل هر لرې شی نزدې کوي، هر نوی شی زړوي، هره وعده راولي او همدغه سلسله به روانه وي تر دې چې ټول خلک به جنت او دوزخ کې خپلو ځایونو ته ورسېږي تاسې دواړه په لیکلو کې ما له دې خبرې نه وېروئ! چې د دې امت به په اخره زمانه کې دومره بد حال شي چې خلک به په ښکاره دوستان وي او په پټه به دښمنان وي. خو نه تاسو له بدو خلکو څخه یئ! او نه به په خلکو کې شوق او وېره ښه وي خو د یو بل سره د مخ کېدو شوق به یوازې د دنیاوي غرضونو په وجه وي همدارنګه تاسو دواړو ما ته دا هم لیکلی دی چې مونږ تا د الله جَلَّ جَلَالُهُ په پناه کې ورکوو! بل دا چې ستاسو دا خط چې ما ته مو د زړه د همدردی په وجه لیکلی دی نو زه یې هم د زړه له همدردی پرته بل څه نه بولم او تاسو دواړو چې ما ته دا لیک یوازې زما د خیرخواهی په جذبې سره لیکلی دی تاسو دواړو دا خبره صحیح لیکلې ده، نو په دې وجه ما ته خط لیکل مه پرېږدئ! ځکه زه ستاسو د دواړو نصیحتونو ته محتاج یم تاسو نه بې پرواه کېدی نه شم! والسلام علیکم! (۱)

---

(۱: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۲۳۸ واخرجه ایضا ابن ابی شیبة وهناد بمثله کما فی الکنز ۸/۲۰۹ والطبرانی کما فی المجمع ۵/۲۱۴ وقال ورجاله ثقات الی هذا الصحیفة

# د حضرت ابوعبیده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وصیت

## په اردن کې دوفات په وخت کې مسلمانانو ته وصیت:

حضرت سعید بن مُسیب رَحِمَهُ اللهُ وایي: کله چې ابو عبیده ابن جراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په اردن سیمه کې د طاعون په مرض اخته شو نو هلته چې څومره مسلمانان وو هغوی یې را وغوښتل او ورته وې فرمایل: زه تاسو ته یو وصیت کوم که چېرې تاسو هغه وصیت ومانه نو همېشه به په خیر او سلامتیا کې پاتې شئ! او هغه دا دی چې مونځ قائموئ! د رمضان میاشتې روژې نیسئ! زکات ورکوئ! حج او عمره کوئ! په خپلو کې یو بل ته د نېکۍ تاکید کوئ! او نه خپلو امیرانو سره د خیرخواهۍ معامله کوئ! هغوی ته دوکه مه ورکوئ! همدارنګه په دې اره هم پام کوئ! چې دنیا تاسو له اخرت څخه غافل نه کړي ځکه که چېرې د انسان عمر زر کاله هم شي نو بیا به هم دې یوه ورځ خپل ځائ یعنې مرګ خواته ځي، څنګه چې وینئ! الله جَلَّ جَلَالُهُ د ټولو انسانانو لپاره د مرګ فیصله کړې ده نو دارنګه به ټول مري او انسانانو کې تر ټولو زیات پوه کس هغه څوک دی چې د خپل رب تر ټولو زیاته تابعداري وکړي او د خپل اخرت لپاره تر ټولو ټه زیات عمل وکړي والسلام علیکم ورحمت الله وبرکاته! اې معاذ ابن جبل! خلکو ته زما په ځائ مونځ ورکړه! کله چې حضرت ابو عبیده ابن جراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفات شو نو بیا حضرت معاذ ابن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلکو ته ودرېده او دا شان بیان یې وکړ: اې خلکو! تاسو د خپلو ګناهونو نه د الله جَلَّ جَلَالُهُ په مخکې توبه وباسئ! ځکه چې کوم بنده د خپلو ګناهونو نه توبه وباسي او د قیامت په ورځ له الله جَلَّ جَلَالُهُ سره مخ شي نو د الله جَلَّ جَلَالُهُ په ذمه به د هغه حق وي، چې الله جَلَّ جَلَالُهُ د هغه بښنه وکړي او د چا په ذمه چې قرض وي هغه ته په کار دي چې خپله قرضه اداء کړي ځکه چې بنده به د خپل قرض په وجه بند وي تر څو پورې چې هغه اداء نه کړي د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد به د هغه خلاصی نه وي او چا چې د خپل مسلمان وروړ سره اړیکې او تعلقات تم کړي وي هغه ته هم په کار دی چې هغه دې له هغه وروړ سره مِلاو شي او ورسره دې بېرته خپل تعلقات سم کړي او صلح دې ورسره وکړي. اې مسلمانانو! تاسو ته د یوه داسې سړي د مرګ غم در رسېدلی دی چې د هغه په باره کې زما یقین دی چې د هغه نه زیات د نېک زړه لرونکی، له هغه نه زیات د شر او فساد نه لرې او سېډونکی له هغه نه زیات له عوامو سره

محبت کوونکی او هغوی سره زیات خیرخواهي کوونکی ما څوک نه دی لیدلی نو دا رنګه
و هغه لپاره د نزول رحمت دعا وکړئ! او د هغه د جنازې په لمونځ کې شریک شئ!(۱)

# د خلفاؤ او امیرانو سیرت

## د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سیرت

### له خلافت مخکې او وروسته د ابوبکرصدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سیرت:

له حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، حضرت ابن مسیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او نورو حضراتو څخه روایت دی خو د دوی احادیث په خپلو کې سره ګډ شوی دی په هر حال دا حضرات فرمایي چې د هجرت په یوولسم کال د ربیع الاول په دولسمه او د دوشنبې په ورځ د رسول الله ﷺ وفات وشو نو په همدغه ورځ خلکو د حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره په داسې حال کې بیعت وکړ چې دي مبارک له خپلې بي بي حضرت حبیبه بنت خارجه بن زید بن ابي زُهیر سره په سخ نومي ځائ کې وو، چې د بنو حارث بن خزرج قبیلې وه ځان لپاره یې له وینبتو څخه جوړه شوې خېمه ساتلې وه په دې کې هغه څه زیاتوالي ونه کړ تر دې چې هغه خپل مدینې والا کور ته منتقل شو، بیعت نه وروسته تر شپږو میاشتو پورې په سُخ نومي ځائ کې اوسېده، اکثره به سهار پیاده مدینې منورې ته تـه او کله کله به په خپل اس باندې سپرېده او د هغه په بدن یو لنګ او یو رنګ شوي څادر وو نو مدینې ته به راتـه او خلکو ته به یې مونځ ورکولو کله به یې چې د ماسخوتن لمونځ کولو نو سخ نومي ځائ ته خپل کوروالاو ته به بېرته تـه، چې کله به حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خپله مدینه منوره کې و نو په خپله به یې خلکو ته مونځ ورکولو خو کله به چې خپله نه و نو بیا حضرت عمر ابن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مونځ ورکاوه، د جمعې په ورځ به د ورځې په اول کې په سخ نومي ځائ کې وُ په خپل سر او ږیره به یې نکریزې لګولې بیا به یې د جمعې په ورځ تشریف وړلو او خلکو ته به یې د جمعې لمونځ ورکاوه، حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سوداګر سړی و. هره ورځ به بازار ته تلو ، اخیستل او خرڅول به یې کول. هغه د چېلو یوه رمه یې هم لرله. چې د مابنام په خت کې به بېرته راتله او کله به یې د څرولو لپاره په خپله بوتله او کله به بل چا بوتله، د خپلو سیمې والا د چېلیو نه به یې شیدې هم لوشلې، کله چې هغه خلیفه شو نو د خپلې محلې

(۱) کذا فی الریاض النضرة فی مناقب العشره للمحب الطبری ۱/۲۱۷

يو ي نجلۍ وويل چې اوس خو حضرت ابو بکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خليفه شو نو اوس به زمونږ د کور له چېلو نه څوک شيدې لوشي؟ حضرت ابو بکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ چې دا واوريدل نو وې فرمايل چې نه! زما دې په عمر قسم وي چې زه به ستاسو لپاره شيدې ضرور لوشم او زما ارزو ده چې د خلافت کومه ذمه واري ما اخيستې ده دا به ماله هغو کريمانه اخلاقو څخه وانه روي، چې په ما کې دي نو د خلافت نه پس به يې د خپلې علاقې خلکو ته د هغوی له چېلو نه پۍ لوشلې، او څينې وخت به يې د تېوکو په توګه د سيمې نجلۍ ته ويل اې نجيلۍ! ته څنګه پۍ لوشل غواړې؟ زګ والا ولوشم؟ او که له زګ نه بغير؟ کله به هغې ويل چې زګ والا راته ولوشه! او کله به يې ورته ويل چې بغير له زګه! په هر حال څنګه چې به هغې نجلۍ ويل هغه شان به دوی کول، نو په سخ نومي ځائ کې شپږ مياشتې هم دغه شان پاتې شو، بيا مدينې منورې ته راغی او هلته ځاته اوسيده بيا د خلافت په باره کې يې فکر وکړ نو وې فرمايل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! په تجارت کې د مصروفېدو سره خو د خلکو کار صحيح نه شي چلېدې د دوي کار خو به هلته صحيح شي کله چې زه له تجارت نه فارغ شم او د مسلمانانو په کارونو کې ټول مشغول او مصروف شم، د هغوی خيال وساتم! خو زما د بچيانو او اولاد لپاره د ګذارې مطابق مصرف کېدل هم ضروري دی، دا سوچ يې وکړ او تجارت يې پرېښوده او د مسلمانانو د بيت المال نه به يې هره ورځ دومره څه اخيستل چې په هغو سره به د هغه او د بچيو او والد د يوې ورځې ګذاره کېدله او په دغې وظيفې سره حج او عمره هم وشي نو شوزې والاوو د هغه د ټولو ضرورتونو لپاره په کال کې شپږ زره درهم وټاکل.

کله چې د هغه د وفات وخت نږدې شو نو وې فرمايل له مونږ سره د مسلمانانو د بيت المال نه چې څه هم پاتې شوی دی هغه واپس کړئ! ځکه چې زه د دې مال نه ګټه اخيستل نه غواړم او ما چې د مسلمانانو څومره مال استعمال کړی دی د هغه په بدله کې ما خپله دفلانې د شيدو والا اوښه او د تورو تيزولو والا غلام او يو څادر چې د هغه قيمت پنځه درهمه و. حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته ورکړل شول کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته ورکړل شول نو وې فرمايل: هغه له ځان نه وروسته خلک په مشکلاتو کې واچول، چې د ده پشان به څوک وکړي چې د خپل ژوند ټول سامان او خپل ټول ځان يې په اسلام باندې قربان کړل او کله چې يې د مجبورۍ په حالت کې اخيستي وو نو کم نه ام يې واخيسته او د دنيانه د تلو په وخت کې يې هغه هم بېرته بيت المال ته ورکړل. حضرت ابو بکر صديق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په [11]

یو ولسم هجري کال کې پخپله د عمرې لپاره تشریف یوړلو، د حضرت ابوبکر رضي الله عنه پلار حضرت ابو قحافه رضي الله عنه د خپل کور په دروازه کې ناست وو او هغه سره څه ځوانان همناست وو چې هغوی سره یې خبرې اترې کولې چا هغه ته وویل چې هغه دي، ځوی دې راغی، نو هغه ودرېده خو حضرت ابوبکر رضي الله عنه د اوښې له کېنولو او چو کولو نه پرته زر له اوښې نه راکوز شو او وې ویل اې پلاره! تاسو مه درېږئ! بیا ورسره ملاو شو او ورترغاړې ووت، د هغه تندي یې ښکل کړ، حضرت ابو قحافه رضي الله عنه د حضرت ابوبکر رضي الله عنه په راتلو باندې له ډېرې خوشحالۍ نه په ژړا شو، د مکې مشران او سرداران حضرت عتاب بن اسید، حضرت سهیل بن عمرو، حضرت عکرمه بن ابي جهل، حضرت حارث بن هشام رضي الله عنهم د ملاقات لپاره راغلل، حضرت ابوبکر رضي الله عنه ته یې سلام وکړ او وې ویل: سلام علیک! اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رسول ﷺ خلیفه! په دې سره ټولو ورسره لاس ملاو کړ، بیا کله چې هغوی د رسول الله ﷺ تذکره او یادونه شروع کړه نو حضرت ابوبکر رضي الله عنه په ژړا شو بیا هغوی ټولو حضرت ابو قحافه رضي الله عنه ته سلام وکړ، حضرت ابو قحافه رضي الله عنه د حضرت ابوبکر رضي الله عنه نوم واخیسته او وې فرمایل اې عتیق! دا خلک د مکې سرداران دي دوي سره ښه سلوک کوه! حضرت ابوبکر رضي الله عنه ورته وفرمایل: اې پلاره! یوازې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په مدد سره انسان نیکي کولی شي او له بدۍ نه بچ کېدی شي او په ما باندې د ډېر لوي کار ذمه واري اچول شوې ده چې د هغه اداء کولو طاقت په ما کې بلکل نشته، یوازې د الله جَلَّ جَلَالُهُ کومک چې وي نو بیا دا ذمه واري اداء کېدی شي بیا حضرت ابوبکر رضي الله عنه کور ته لاړ، غسل یې وکړ او وې فرمایل: په ارام سره ځئ! په ما پسې د ګڼې جوړولو ضرورت نشته، په لاره کې به ورسره خلک مخ کېدل او هغه سره به تلل او هغه ته به یې د رسول الله ﷺ غمرازي کوله، په دې سره به حضرت ابوبکر رضي الله عنه ژړل، تر دې چې بیت الله شریف ته ورسېدل بیا هغه د طواف لپاره اضطباع وکړه یعنې په ښي ترخ کې یې د احرام څادر یو طرف راووېسته او د هغه دواړه طرفونه یې په ګسه اوګه باندې واچول بیا یې حجر اسود ښکل کړو او اووه چکرې یې ووهلې، تر دې وروسته یې دوه رکعتونه مونځ وکړ بیا خپل کور ته راغی، کله چې د ماسپښین وخت شو نو له کور نه بهر راغی او د بیت الله طواف یې وکړ بیا د دارُالندوه سره نیزدې کېناسته او وې فرمایل: داسې څوک شته چې د څه ظلم شکایت یې راوړی وي؟ یا د

څه حق غوښتنه کوي؟ په دې خبره هيڅوک رانغلل نو خلکو د خپل امير (حضرت عتاب بن اسيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) تعريف وکړ، بيا يې خلکو ته د ماز ديګر لمونځ ورکړ او کېناسته، تر دې وروسته خلکو هغه رخصت کړ او مديني منورې ته واپس روان شو او لاړ، په ۱۲ هجري کال کې خلکو سره حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له خلکو سره پخپله حج وکړ او يو ازې د حج احرام يې وتاړه، چې هغه ته حج اِفراد وايي او په مدينه منوره کې يې حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپل نائب وټاکه.(۱)

**د حضرت عُمير بن سعد انصاري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حکايت:**

عنتره رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عمير بن سعد انصاري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حمص د سيمې ګورنر (والي) مقرر کړ او وې لېږه، دې هلته يو کال پاتې شو خو دې موده کې د هغه هيڅ خبر رانغی، څکه نو حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپل کاتب ته وويل چې عمير ته خط وليکه! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زما خو هم دا خيال دی چې عمير مونږ سره خيانت کړی دی، د خط مضمون داسې وو: څنګه چې زما ليک درته ورسېده نو ما ته راشه! او زما خط لوستلو سره ته هغه ټول سامان له ځان سره راوړه چې تا د مسلمانانو د غنيمت په مال کې جمع کړی دی. کله چې حضرت عمير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته دا ليک ورسېده او وې لوسته، نو په داسې حال کې راروان شو چې خپله د څرمنې تيلۍ يې واخيستله او په هغې کې يې خپله د سفر توښه او پياله کېښودله او خپله د څرمنې لوټه يې له تيلۍ سره وتړله، ځورنده يې کړه او خپله امسا يې واخيستله، له دې سره سم له حمص څخه د مديني منورې په لوري روان پياده روان شو او کله چې مديني منورې ته ورسېده نو په داسې حال کې د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په مخکې حاضر شو چې رنګ يې بدل وو، مخ يې خړ پړ او وېښتنه يې لوي شوي و، د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په مخکې يې سلام او وې ويل: السلام عليک ورحمة الله وبرکاته يا امير المؤمنين! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وويل څه حال دې دي؟ هغه ورته وويل: ته زما څه حال معلومول غواړې؟ ايا ته نه ګورې چې صحت مند او صفا وينې والا يم! او ما سره دنيا ده چې د هغې واګې مې نيولې دي او په رابنکلو مې راوړې ده يعنې په زور سره مې راوړې ده، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ داسې پوه شو چې

---

۱. اخرجه ابن سعد ۱/۱۲۱ قال ابن کثير هذا سياق حسن وله شواهد من وجوه اخر ومثل هذا تقبله النفوس و تلقاه بالقبول

ګواکي ده به ډېر مال له ځان سره راوړی وي ځکه يې ورڅخه وپوښتل چې تاسره څه دي؟ حضرت عمير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل: چې ما سره يوه تيلۍ ده! چې په هغې کې خپله توښه او پياله ړدم! په پياله کې خوراک کوم او پکې خپلې جامې او خپل سر هم وينځم! او يوه راسره لوټه ده چې په په هغې کې د اوداسه او د څښلو لپاره اوبه ړدم! همدارنګه يوه مې امسا ده چې په هغې باندې زه ډډه وهم! او که چېرې دښمن مخې ته راشي نو په دې باندې هغه سره مقابله هم کوم! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! دنيا زما دې سامان پسې ده يعنې زما ټول ضرورتونه هم دې سامان سره پوره کېږي. بيا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورڅخه پوښتنه وکړه چې تمله هغه ځای نه پياده راغلې؟ هغه وويل چې هو! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيا پوښتنه ورڅخه وکړه چې ستا هلته څوک سړی داسې تعلق والا نه و؟ چې هغه تا ته سورلۍ درکړې وای! هغه وويل چې د هغه ځای خلکو ما ته سورلۍ رانه کړه او نه هم ما ورڅخه وغوښتله، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمايل: له کوم ځای نه چې ته راغلی يې هغوی بد مسلمانان دي، ځکه چې د خپل ګورنر (والي) لږ خيال يې هم نه دی ساتلی، حضرت عمير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل: اې عمره! له الله جَلَّ جَلَالُهُ نه ووېرېږه! الله جَلَّ جَلَالُهُ ته له غيبت نه منع کړی يې او ما هغوی په داسې حال کې ليدلی دی چې د سهار لمونځ يې کولو او څوک چې د سهار لمونځ کوي هغه د الله جَلَّ جَلَالُهُ په ذمه واری کې راشي، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: ما ته چېرته لېږلی وې؟ او د طبراني په روايت کې داسې دي: ما چې ته د کوم شي د وصولۍ لپاره لېږلی وې هغه چېرته دی؟ او هلته تا څه او څه وکړل؟ هغه وويل اې اميرالمؤمنين! تاسو څنګه پوښتنه کوئ؟ يعنې زه پوه نشوم! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حيرانتيا سره وويل: سبحان الله! سوال خو بلکل واضح دی، حضرت عمير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل، که چېرې دا وېره نه وای چې نه ښودلو سره به ته غمجن شې! نو ما به نه وای ښودلي، تا زه هلته ولېږلم، هلته چې ورسېدم نو ما د هغه ځای نېکان خلک راټول کړل او د مسلمانانو نه د غنيمت مال جمع کول مې د هغوی په غاړه کړل، کله چې هغوی مالونه راټول کړل او راپې وړل نو ما هغه ټول مال په صحيحو ځايونو کې خرچ کړو، که چېرې په دې کې شرعاً ستا برخه هم وای نو ما به ضرور هغه تاسو ته راوړې وای، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل، تا مونږ ته څه نه دي راوړي؟ حضرت عمير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل چې نه! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل، دا خو ډېر ښه ګورنر (والي) دې هيڅ يې له ځان سره نه دي راوړي. بيا يې خپل کاتب ته وويل، چې د ده

(عمير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) لپاره د حمص د مشرۍ او ګورنر(والي) ی اقرار نامه ولیکه! حضرت عمیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د دې خبرې په اورېدو سره وویل: چې اوس نه زه ستا له طرفه د ګورنر(والي) تاکل کېدو لپاره تیاریم او نه له تا نه وروسته د بل چا له طرفه د تاکل کېدو لپاره تیاریم ا ځکه په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه په دې ګورنر(والي) ی کې له خرابۍ نه بچ نه شوم، ما یو نصراني ته په امارت کې ویلي و اې فلانکیه! الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تا رسوا کړي او ذمي ته تکلیف رسول بد کار دی، اې عمره! تا زه ګورنر(والي) وټاکلم! او د داسې خرابیو په اخته کېدو کې دې واچولم! اې عمره! زما په ژوند کې تر ټولو بدې ورځې هغه دي چې په هغو کې زه تا سره وروسته پاتې شوم او د دنیا نه رخصت نه شوم! بیا هغه د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه اجازه وغوښته نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هم ورته اجازت ورکړو، په دې سره کور ته راغی، د هغه کور له مدینې منورې نه څو میله فاصله لرې وو کله چې عمیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لاړ نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې زما خو دا خیال دی چې عمیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مونږ سره خیانت کړی دی یعنې ده له حمص نه مال راوړی دی خو دلته یې مدینې منورې ته نه دي راوړی بلکې خپل کور ته یې لېږلی دی، نو په دې وجه یې حارث نومي سړي ته سل دیناره ورکړل او ورته وې ویل چې دا دی ناریوسه! او له حضرت عمیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره د نا اشنا په توګه مېلمه شه! او که چېرته دې د ده په کور کې ساز وسامان ولیده نو بیا بېرته ما ته راشه! او که چېرته د ده حالت خراب ووینې یعنې که چېرې دې د ده د غریبۍ پته ولګوله نو بیا دا سل دیناره ورکړه! حضرت حارث رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کله چې هلته ورسېده نو ګوري چې حضرت عمیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د یوال سره یوې خوا ته ناست دی، له خپل کمیس نه سپږې باسي، ده له ورتګ سره سلام ورته وکړ، په دې سره حضرت عمیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د سلام جواب ورکړ او وې ویل الله جَلَّ جَلَالُهُ دې پر تا رحم وکړي راشه! زما مېلمه شه! د عمیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په دې ویلو سره حارث له خپلې سورلۍ نه راکوز شو او له هغه سره ایسار شو، بیا حضرت عمیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې تاسو امیر المؤمنین په څه حال کې پرېښی دی؟ هغه ورته وویل چې په ښه حال کې مې پرېښی دي! بیا حضرت عمیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورڅخه وپوښتل چې مسلمانان دې په څه حال کې پرېښودل؟ هغه وویل چې هغوی هم په ښه حال کې وو. حضرت عمیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بیا پوښتنه وکړه چې آیا امیر المؤمنین شرعي حدود نه قائموي؟ هغه وویل، چې هو! قائموي یې! د هغه له څوی نه یوه کبیره ګناه

شوي وه نو په دې باندې په خپل ځوی باندې هم حد جاري کړ او په کوړو يې وواهه! چې په همدې وجه هغه وفات شوي و (خو صحيح روايت دا دی چې له کوړو نه يوه مياشت وروسته په خپل مرګ باندې وفات شوی دی) حضرت حارث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: اې الله جَلَّ جَلَالُهُ د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نصرت او مرسته وکړې! څو مره چې ما ته معلومه ده هغه تا سره ډېر زيات محبت کونکی دي، په دې ترتيب حارث له حضرت عمير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره درې ورځې تېرې کړې، په دې درې ورځو کې به حضرت عمير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حارث باندې يوازې د اوربشو ډوډی په داسې حال کې خوړله چې دي به خپله وږې ناست وو، نو په دې وجه يې په اخره ورځ حارث ته وويل چې ستا په وجه په مونږ باندې درې ورځې په لوږه تېرې شوې نو که ته دا مناسب ګڼې، بيا بل چېرته لاړ شه! په دې خبره باندې حارث له خپل جېب نه سل ديناره را ووېستل او حضرت عمير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يې ورکړل او ورته وې ويل: چې امير المؤمنين دا دی نارستا لپاره را لېږلي دي، دا ته پخپل کار راوله! په دې باندې د حضرت عمير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له خولې نه چيغه ووته! او وې ويل چې ما ته د دې دينارو ضرورت نشته بېرته يې يوسه! په دې کې د حضرت عمير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بي بي ورته وويل چې مه يې واپس کوه! وايې خله! که حاجت دې شو نو له دې نه يې خرچ کړه او که نه بيا يې په مناسب ځای کې ولګوه! حضرت عمير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپلې بي بي ته وويل: په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم زما سره خو د دې دينارو د ايښودلو ځای نشته، په دې باندې د هغه بي بي د خپل کميس لاندې لمن وشکوله او يوه ټوټه يې ورته ورکړه ورته وې ويل چې په دې کې يې کېږده! کله چې حضرت عمير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپلې بي بي د کميس په يوه ټوټه کې دينار کېښودل نو زر تر زره له خپل کور نه بهر ووت او دينار يې په فقيرانو، غريبانو او د شهيدانو په يتيمانو ووېشل او بېرته کور ته راغی، د حارث دا خيال وو چې ګڼې ما ته به هم يو څو ديناره راکړي خو حضرت عمير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته ورنکړل. بلکې ورته وې ويل چې اميرالمؤمنين ته زما سلام وايه! کله چې حارث حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راغی نو ورته وې ويل چې حضرت عمير رضي الله عنه مې په سخت حالت کې وليده، دې سره حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورځخه وپوښتل چې هغه سل ديناره چې تا ورکړل په هغو يې څه وکړل؟ حارث ورته وويل چې ما ته معلومات ونشو. په دې باندې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يو ليک ولېږه! او پکې يې ورته وليکل: تا ته چې څنګه دا ليک ورسېده نو د ليک له کېښودلو نه

مخکې راروان شه! نو هغه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راغی، کله چې راغی نو عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورڅخه وپوښتل چې تا په هغو دینارو باندې څه وکړل؟ هغه وویل زما چې څنګه خوښه وه هغسې مې کړل ته د هغو دینارو په باره کې ولې پوښتنه کوې؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل: زه تا ته قسم درکوم چې ته ما ته ضرور ووایه! چې تا په هغوی دینارو باندې څه وکړل؟ حضرت عمیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې ما هغه د ځان لپاره مخکې جهان ته لېږلی دی یعنې په ضرورتمندو مې تقسیم کړی دی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل: الله جَلَّ جَلَالُهُ دې پر تا رحم وکړي او بیا یې حکم وکړ چې حضرت عمیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یو وسق یعنې پنځه منه او لس سیره؛ او دوه جامې ورکړئ! حضرت عمیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل چې غلې ته زما ضرورت نشته ځکه چې زه په کور کې دوه صباع یعنې اووه سیره اوربشې لرم او د دغو تر خوړلو مخکې به الله جَلَّ جَلَالُهُ نور رزق رارسوي نو غله یې وانه خیستله، البته دواړه جامې یې واخیستلې او دا یې وویل چې د فلانۍ ام فلان سره جامې نشته هغې ته به یې ورکړم او خپل کور ته بېرته راغی، لږه موده وروسته هغه وفات شو، الله جَلَّ جَلَالُهُ دې په هغه باندې رحمت نازل کړي کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د هغه د وفات خبر ورسېد نو هغه ډېر زیات خفه شو او د هغه لپاره یې ښه د رحمت او مغفرت دعاګانې وکړې، بیا د هغه دفن کولو لپاره حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پیاده د مدینې منورې هدیرې (جنت البقیع) ته لاړ، نو یو سړي وویل اې امیرالمؤمنین! زما زړه دا غواړي چې ما سره ډېر زیات مال وي او زه په هغه سره دومره دومره غلامان د الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره ازاد کړم! دویم وویل: زما زړه غواړي چې ما سره ډېر مال وي چې هغه زه د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې خرچ کړم! دریم وویل: چې زما زړه دا غواړي چې ما ته دومره بدني طاقت راکړل شي چې زه پخپله له زمزم نه اوبه راوباسم! او د بیت الله شریف په حاجیانو باندې یې څښم! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې زما زړه غواړي چې ما سره عمیر بن سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په شان سړی وی چې هغه زه د مسلمانانو په مختلفو کارونو کې په داد سره ولګوم!(۱)

---

۱: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۲۴۷ عن عبدالمالک بن هارون بن عنترة عن ابیه عن جده واخرجه الطبرانی ایضا مثله عن عمیر بن سعد قال الهیثمی ۹/۳۸۴ وفیه عبدالمالک بن ابراهیم بن عنترة وهو متروک انتهی هکذا وقع عند الهیثمی والذی یظهر ان الصواب عبدالمالک بن هارون بن عنترة کما فی کتب اسماء الرجال وقداخرجه ابن عساکر من طریق محمد بن مزاحم بطوله بمعناه مع زیادات کما فی الکنز ۷/۷۹

**د سعید بن عامر بن حذیم جُمحي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حکایت کله چې د حمص والي وُ**

حضرت خالد بن معدان رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت سعید بن عامر بن حذیم جمحي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حمص باندې زمونږ ګورنر (والي) وټاکه، کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حمص ته لاړ نو وې فرمایل: اې د حمص والاوو! تاسو خپل ګورنر (والي) څنګه مونده؟ هغوی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته له خپل ګورنر (والي) څخه شکایتونه شروع کړل، ځکه چې حمص والا به هم همېشه له خپل ګورنر (والي) شکایتونه کاوه، په دې وجه به حمص ته وړه کوفه ویل کېده، هغوی ویل: مونږ په دوي باندې څلور شکایتونه لرو! اول دا چې دي تر هغو پورې له کور نه نه راوځي تر څو چې ورځ ښه روښانه شوې نه وي، په دې سره حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل: چې هو! یقیناً دا ډېر لوی شکایت دی، له دې پرته نور څه دي؟ هغوی وویل: چې دی د شپې لخوا د چا خبره نه اوري، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل: چې دا هم لوی شکایت دی، له دې پرته نور څه دي؟ هغوی وویل: چې دي په میاشت کې یوه ورځ په کور کې وي او مونږ ته له کوره د باندې نه راوځي، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل: چې دا هم لوي شکایت دی، نور څه دي؟ هغوی وویل: کله چې کله په دې باندې د مرګ په شان د بې هوشۍ حالت راځي. د دې ټولو شکایتونو په اورېدو سره حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حمص خلک او د هغوی ګورنر (والي) ټول یو ځایَ کړل او دا دعا یې وکړه اې الله جَلَّ جَلَالُهُ د سعید بن عامر په باره کې د ښه کېدو چې زما کومه اندازه وه نن هغه مه خطا کوې! له دې وروسته د حمص خلکو ته یې وفرمایل: تاسو په ده باندې څه شکایتونه لرئ؟ هغوی وویل: یو شکایت مو دا دی چې دی تر هغو پورې مونږ ته له کوره نه راوځي تر څو پورې چې ورځ ښه روښانه شوې نه وي، حضرت سعید بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل: په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! د دې خبرې ښودل زما خوښ نه وو، خو اوس یې زه د مجبورۍ له امله وایم! خبره دا ده چې زما د کور والاوو څه خادم نشته نو ځکه زه پخپله وړه اغږم! بیا د اوړو په انتظار یم چې تر څو خمیره شي نو بیا تړې زه دوډۍ پخوم! بیا اودس وکړم او خلکو ته بهر راوځم! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلکو ته وفرمایل: تاسو له ده نه بل څه شکایت دی؟ هغوی وویل: چې دي د شپې لخوا د چا خبره نه اوري! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل: اې

سعیده! ته په دې باره کې څه وایې؟ حضرت سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل: چې د دې وجه ښودل هم زه نه خوښوم، خو مجبور یم چې وې ښایم! خبره دا ده چې ما ورځ او شپه تقسیم کړې دي، ورځ مې د خلکو خدمت ته وقف کړې ده او شپه مې د الله جَلَّ جَلَالُهُ عبادت ته وقف کړې ده، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلکو ته وفرمایل: چې تاسو په ده باندې بل څه شکایت لرئ؟ هغوی وویل: په میاشت کې یوه ورځ دې له مونږ څخه نادرکه وي یعنې له کور نه مونږ ته بهر نه راوځي، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سعید بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل چې ته په دې باره کې څه وایې؟ حضرت سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې نه ما سره څوک خادم شته چې هغه زما جامې ووینځي او نه ما سره نورې جامې شته چې هغه واغوندم او بهر ته راشم! نو په دې وجه باندې زه خپلې جامې وینځم بیا د هغو د وچیدو انتظار کوم کله چې هغه وچې شي نو د غټوالي په وجه سختې شي بیا زه هغه په مګلو مګلو سره نرموم نو تو له ورځ په همدې کې تېرېږي بیا هغه مابنام زه واغوندم او مابنام خلکو ته بهر راوځم! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له خلکو نه پوښتنه وکړه چې تاسو پر ده باندې بال څه شکایت لرئ؟ هغوی وویل: چې په دې باندې کله کله دبې هوښۍ حالت راځي، عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سعید بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل: چې په دې باره کې ته څه وایې؟ حضرت سعید بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل، چې د حضرت خبیب انصاري د شهادت په وخت زه په مکه کې ووم اول قریشو د هغه له بدن نه غوښه ځای په ځای پرېکړه بیا یې په دار وځړاوه، بیا یې ورته وویل، چې ستا دا خوښه ده چې ستا په ځای محمد ﷺ په داسې حال کې وي؟ یعنې ستا په ځای محمد ﷺ په دار وځړوو؟ حضرت خبیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل: په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زما دا هم خوښه نه ده چې زه دې خپل بل بچ سره یم او د دې په عوض کې دې د حضرت محمد ﷺ په بدن کې یو ازغي هم لاړ شي او بیا د رسول الله ﷺ د محبت په شوق کې راغی او په لوړ غږ یې وویل چې یا محمد ﷺ نو ما ته چې هغه ورځ کله هم رایاده شي د دا خیال راځي چې ما په هغه حالت کې د هغه کومک ونه کړ او زه هغه وخت مشرک ووم په الله جَلَّ جَلَالُهُ مې ایمان نه وو راوړی نو زما په زړه کې په زور سره دا فکر او سوچ پیدا کېږي چې الله جَلَّ جَلَالُهُ به زما هغه ګناه چېرې معاف نه کړي نو په دې فکر سره په ما باندې د بې هوښۍ دوره راځي. حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې دا جوابونه واورېدل نو وې فرمایل: چې تول

تعریفونه هغه الله جَلَّ جَلَالُهُ لره دي چې هغه زما فراست غلط نه کړ، بیا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته زر دیناره ولېږل او وې فرمایل: چې دا په خپلو کارونو کې ولګوه، دې باندې د هغه بې بې وویل: ټول تعریفونه هغه الله جَلَّ جَلَالُهُ لره دي چې هغه مونږ ستا له خدمت نه بې پرواه کړو، حضرت سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل: ایا ته له دې نه غوره خبره غواړې؟ چې دا دی نار به مونږ هغه ته ورکړو چې د سخت ضرورت په وخت کې یې راکړي هغې وویل: صحیح ده نو هغه د خپل کوروالاو نه یو سړی راوغوښت، چې په هغه باندې د ده اعتماد وو، دا دی نار یې په ډېرو بوریو کې تاو کړل او بیا یې هغه سړي ته ورکړل او ورته وې ویل: چې لاړ شه! دا دی نار د فلاني خاندان مصیبت وهلو خلکو ته ورکړه! له دینارو چې کوم لږ شان دینار پاتې شول نو خپلې بې بې ته یې وویل چې واخله! او دا پخپله خرچ کړه بیا د خپلې ګورنر (والي) ی په کار کې مشغول شو څو ورځې وروسته یې بې بې وویل: آیا ته زمونږ لپاره خادم نه اخلې؟ هغه مال څه شو؟ حضرت سعید بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمایل: چې هغه مال به تا ته په سخت وخت کې رسېږي او ته به یې بیا اخلې!(۱)

## د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حکایت:

حضرت ثعلبه ابن ابي مالک قُرظي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مروان په ځای د مدینې منورې ګورنر (والي) ؤ، یوه ورځ یې د لرګیو پنډ را اخیستي وو او بازار ته راغی او د خوش طبعي په توګه یې وویل: چې ای ابن ابي مالک! د امیر لپاره لاره پراخه کړئ! ما هغه ته وویل: چې دا لاره خو د امیر لپاره کافي او پوره ده! هغه وویل: چې د امیر په سر د لرګیو پنډ دی نو ځکه ورته دا لاره کافي نه ده، ځکه امیر لپاره لاره خلاصه او پراخه کړئ!(۲)

---

۱: اخرجه ابونعیم في الحلیة ۱/۲۴۵

۲: اخرجه ابونعیم في الحلیة ۱/۳۸۵

# اتم باب

## د الله تعالی په لاره کې دصحابه کرامو رضی الله عنهم انفاق او خرچ کول

*رسول الله ﷺ او د هغه مبارکو صحابه کرامو رضی الله عنهم څنګه هغه مالونه او نعمتونه د الله جل جلاله په لاره او د الله جل جلاله د رضا لپاره څار کړل چې الله جل جلاله ورکړي وو؟ او د مال او نعمتونو دا رنګه خرچ کول هغوی ته په خپل ځان باندې له خرچ کولو زيات ګران وو، د دوی د لوږې باوجود نورو ته په خپل ځان باندې يې ترجيح ورکوله!!*

**د انفاق په باره کې دحضرت جرير رضی الله عنه حديث:**

حضرت جرير رضی الله عنه فرمايي چې مونږ يو وخت د ورځې په اوله برخه کې د رسول الله ﷺ په خدمت کې ناست وو نو په دې کې څه خلک په داسې حالت کې راغلل چې بربنډ بدن، پښې ابله، په دوړو خړپړ او د کرښو والا څادرونه او کوټونه يې اغوستي وو، توري په غاړو کې اچولې وې، په دوي کې زيات خلک د مضر له قبيلې څخه وو، بلکې ټول د مضر قبيلې والا وو او د دوي د لوږې حالت يې چې وليده نو د رسول الله ﷺ مخ مبارک بدل شو بيا يې کور ته تشريف يوړو چې کېدی شي هلته د دوي لپاره څه پيدا شي خو هلته هم د دوي لپاره څه پيدا نه شول يا به هغه د لمانځه تياري لپاره تللي وو بيا يې بهر ته تشريف راووړ او حضرت بلال رضی الله عنه ته يې حکم وکړ چې اذان وکړي، بلال رضی الله عنه اذان وکړو ماسپښين يا د جمعې لمونځ وو بيا اقامت وشو په دې پسې رسول الله ﷺ لمونځ ورکړ، بيا يې بيان وکړ او دا ايت شريف يې تلاوت کړ، **يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَنِسَاءً وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالْأَرْحَامَ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا**(۱)

ترجمه: اې خلکو! له خپل رب نه ووېرېږئ! چې هغه تاسو له يو نفس نه پيدا کړي يئ! او د هغه نفس نه يې د هغه جوړه پيدا کړه او دې دواړو نه يې ډېر سړي او ښځې پيدا کړل او تاسو د الله جل جلاله نه ووېرېږئ! چې د هغه په نوم باندې د يوه بل نه غوښتنه کوئ! او د خپلولۍ نه هم ووېرېږئ! يقيناً الله جل جلاله تاسو ټولو باندې خبرداری لري. او په سورت حشر کې داسې راغلي دي **اتَّقُوا اللَّهَ وَلْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَا قَدَّمَتْ لِغَدٍ**(۲)

---

۱: سورة النساء ۱ ايت

۲: سورة حشر ۱۸ ايت

ترجمه: او د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه ووېرېږئ! او هر سړی دی خیال او فکر وکړي چې سبا یعنې د قیامت لپاره ده څه ذخیره لېږلې ده؟

سړي ته په کار دی چې د خپلو دینارو، درهمو، جامو او یو صاع غنمو نه او یو صاع کجورو نه ضرور څه صدقه ورکوئ! تر دې چې رسول الله ﷺ وفرمایل: که څه هم چې د کجورې یوه ټوټه وي نو هغه هم صدقه کوئ! یعنې دا ضروري نه ده چې چا سره زیات وي نو یوازې دې هماغه صدقه کوي، بلکې چا سره چې لږ هم وي هغه دې هم له هغه نه خرچ کوي، راوي وايي: چې یوه انصاري یوه تیلۍ راوړه هغه دومره درنه وه چې د اوچتولو نه یې هغه عاجز شو، بیا د خلکو دېره کنه کونه جوړه شوه او خلکو ډېر سامان راوړ تر دې چې ما د غلې، جامو، درهمو او دینارو دوه لوی ډېري ولیدل تر دې چې ما وکتل چې د رسول الله ﷺ مخ مبارک له خوشحالۍ نه داسې ځلېږي چې ګواکې د هغه په مخ باندې د سرو زرو اوبه اچول شوی دی د دې کار فضیلت یې بیاناوه، بیا یې وفرمایل: کوم سړی چې په اسلام کې ښه طریقه جاري کوي نو هغه ته به خپل اجر او ثواب رسېږي او له هغه نه وروسته به چې څومره خلک په دې طریقه باندې عمل کوي نو د هغوی برابر ثواب به ده ته رسېږي او د هغوی له اجر نه به څه کمی نه کېږي او څوک چې په اسلام کې بده طریقه جاري کوي نو هغه ته به خپله ګناه رسېږي او له هغه نه وروسته به چې څومره خلک په دې طریقه باندې عمل کوي د هغوی ټولو د ګناه برابر به ده ته ګناه رسېږي. او د هغوی په ګناهونو کې به هیڅ کمي نه راځي.(۱) او د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې خرچ کونکی په باره کې د رسول الله ﷺ د ترغیب ورکولو حدیث تېر شوی دی.

## په دې باره کې دحضرت جریر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث:

حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ د چارشنبې په ورځ بني عمرو بن عوف قبیلې ته تشریف وړي وو، بیا هغه نور حدیث بیان کړ، تر دې وروسته دا مضمون دی چې هغوی ﷺ وفرمایل اې د انصارو ټولګیه! هغوی عرض وکړ لبیک یا رسول الله! رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: چې د جاهلیت په زمانه کې تاسو د الله جَلَّ جَلَالُهُ عبادت نه کاوه، خو په هغه زمانه کې به په تاسو کې دا صفتونه وو چې تاسو به د یتیمانو بوج اوچتاوه او خپل مال به مو په نورو خلکو باندې لګاوه، د مسافرو خدمت به مو په هماغې طریقې سره کولو

---

۱: اخرجه مسلم والنسائي وغيرهما كذا في الترغيب ۱/۵۲

خو کله چې الله جَلَّ جَلَالُهُ ستاسو اسلام قبول کړ او خپل نبي يې را ولېږه نو په دې سره يې په تاسو باندې ډېر لوي احسان وکړ، په داسې حال کې چې مسلمانېدو سره نور زيات خرچ کول پکار وو ځکه چې اسلام په نورو باندې د خرچ کولو ترغيب ورکوي نو انسان چې څه خوري په هغو کې ورته اجر رسېږي بلکې ځناور او مارغان چې په باغونو او پټيو کې څه خوري په هغوی هم دا اجر رسېږي بس د دې فضيلتونو په اورېدو سره انصار زر تر زره خپلو باغونو ته لاړل او هر يوه خپل خپل باغ ته د ېرش د ېرش دروازې پرانيستلې، چې هر يو دې راځي او خوراک دې ورڅخه کوي.(۱)

## د سخاوت په فضيلت او د بخل مذمت کې د رسول الله ﷺ بيان:

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ له ټولو نه مخکې کوم بيان وکړ د هغه صورت داسې شو چې هغه په منبر باندې تشريف کېښودلو او د الله جَلَّ جَلَالُهُ حمد او ثناء يې بيان کړه او وې فرمايل: اې خلکو! الله جَلَّ جَلَالُهُ ستاسو لپاره اسلام د دين په توګه خوښ کړی دی نو دا رنګه په اسلام کې سخاوت او ښو خلاقو سره ژوند تېروئ! په غور سره واورئ! چې سخاوت د جنت يوه ونه ده او د هغې ښاخونه په دنيا کې راښکته شوی دی نو په تاسو کې چې څوک سخي وي نو هغه د دغې ونې ښاخ په محکمتيا سره نيوونکی دی او هغه دغسې هغه نيولی وي تر دې چې الله جَلَّ جَلَالُهُ به هغه جنت ته داخل کړي په غور سره واورئ! چې شوم توب د دوزخ يوه ونه ده او د هغې ښاخونه په دنيا کې راښکته شوی دی نو په تاسو کې چې څوک شوم او کنجوس وي نو هغه د دغه ښاخ ښه قوت سره نيوونکی دی او هغه دغسې هغه نيولی وي تر دې چې الله جَلَّ جَلَالُهُ هغه دوزخ ته ورسوي بيا رسول الله ﷺ دوه ځله وفرمايل چې تاسو د الله جَلَّ جَلَالُهُ له وجې نه سخاوت غوره کړی دی د الله جَلَّ جَلَالُهُ له وجې نه سخاوت غوره کړئ!(۲)

# د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د انفاق سره مينه

## د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث:

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو وخت يو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او سوال يې وکړ په دې سره رسول الله ﷺ هغه ته څه ورکړه، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل:

---

۱: اخرجه الحاکم وصححه کذا في الترغيب ۲/۱۵۶

۲: اخرجه ابن عساکر کذا في کنز العمال ۳/۲۱۰

چې تا ته د ورکولو لپاره په دې وخت کې ما سره هیڅ نشته ته داسې وکړه چې زما له طرفه څه شی په قرض واخله! کله چې ما ته څه راشي نو هغه قرض به زه خلاص کړم! دې نه معلومه شوه چې د رسول الله ﷺ نورو ته د ورکړې شوق او مینه ډېره زیاته وه، په دې باندې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د شفقت له وجې نه وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو خو ده ته مخکې هم څه ورکړی دی، اوس د نورو ورکولو لپاره ولې د ده قرض پخپله ذمه اخلئ! چې ستاسو په وس کې نشته د هغه الله جَلَّ جَلَالُهُ تاسو باندې بوج نه دې اېښې، هغوی ﷺ ته د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا خبره خوښه نشوه، یوه انصاري عرض وکړو چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو خرچ کوئ! او د عرش والا نه د کمې وېره مه کوئ! په دې باندې رسول الله ﷺ مُسکي شو د انصاري په دې خبره باندې د خوشحالۍ او خندا اثار د رسول الله ﷺ په مخ مبارک باندې ښکاره شول او رسول الله ﷺ وفرمایل: چې هم د دې ما ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ له خوا حکم راکړل شوی دی.(۱)

## د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث:

حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: یو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او له رسول الله ﷺ نه یې څه وغوښتل، رسول الله ﷺ ورته څه ورکړل بیا یو بل سړی راغی او رسول الله ﷺ نه یې څه وغوښتل رسول الله ﷺ هغه سره وعده وکړه ځکه چې رسول الله ﷺ سره د ورکولو لپاره څه نه وو، په دې باندې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ و دریده د شفقت له وجې نه یې عرض وکړو چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو نه فلانکي وغوښتل تاسو هغه ته ورکړل بیا فلانکي وغوښتل تاسو هغه سره د ورکولو وعده وکړه بیا فلانکي وغوښتل تاسو هغه سره هم د ورکولو وعده وکړه، مطلب دا وو چې تاسو سره وي نو ورکوئ یې! او چې نه وي نو انکار کوئ! نو ده سره بیا د ورکولو وعده مه کوئ! داسې معلومه شوه چې رسول الله ﷺ ته د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا خبره خوښه نه شوه، بیا حضرت عبد الله بن حذافه سهمي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړو چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو خرچ کوئ! او د عرش والا نه د کمې وېره مه کوئ! رسول الله ﷺ وفرمایل چې ما ته هم د دې حکم راکړل شوی دی.(۲)

---

۱: اخرجه الترمذی کذا فی البدایة ٦/٥٦ واخرجه ایضا البزار وابن جریر والخرائطی فی مکارم الاخلاق وسعید بن منصور کما فی الکنز ۴/۴۲ قال الهیثمی ۱۰/۲۴۲ رواه البزار وفیه اسحاق بن ابراهیم الحنینی وقد ضعفه الجمهور وثقه ابن حبان وقال یخطی

۲: اخرجه ابن جریر کذا فی الکنز ۳۷/۲۱۱

## رسول الله ﷺ بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د انفاق امر وکړو:

حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورغی نو رسول الله ﷺ وليدل چې هغه سره د کجورو څو ډېري دي رسول الله ﷺ ور څخه وپوښتل اې بلاله! دا تا سره څه دي؟ هغه عرض وکړ چې ستاسو د مېلمنو لپاره مې دا انتظام کړی دی کله چې هم هغوی راځي نو د خوراک سامان به ورته مخکې له مخکې موجود وي رسول الله ﷺ وفرمايل چې تا سره د دې خبرې وېره نشته چې د دوزخ د اور لوږې تا ته راورسېږي يعني که ته د دې د خرچ کولو نه مخکې مړ شوې نو بيا به د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد دې باره کې پوښتنه کېږي اې بلاله! خرچ کوه! او د عرش والا نه د کمي وېره مه کوه!(۱)

## هغه څه چې د رسول الله ﷺ او خادم تر مينځ يې واقع شول:

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته درې مارغان په هديه کې راغلل هغوی يوه مرغۍ خپلې خادمې ته ورکړه بله ورځ هغې هغه مرغۍ ځان سره راوړه! او د رسول الله ﷺ خدمت کې حاضره شوه، رسول الله ﷺ وفرمايل چې آيا ته ما منع کړې نه وې؟ چې د بلې ورځې لپاره څه مه ساته! کله چې بله ورځ راشي نو د هغې ورځې رزق به هم الله جَلَّ جَلَالُهُ راورسوي، نو دارنګه نن چې درسره څه وي هم نن ټول خرچ کوه!(۲)

د راتلونکو ورځو لپاره ساتل جائز دي خو څه چې درسره وي هغه سمدستي خرچ کول او ائنده لپاره په الله جَلَّ جَلَالُهُ باندې توکل کول دا د کمال درجه ده.

## حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او زيات شوي مال:

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلکو ته وويل چې مونږ سره دغه مال نه څه پاتې شوی دی زه دا چېرته خرچ کړم؟ خلکو ورته وويل: اې اميرالمؤمنين! تاسو زمونږ په اجتماعي کارونو کې هر وخت مشغول او مصروف اوسئ! چې د هغه په وجه سره د خپل اولاد د ليدو او خپل کار د کاروبار لپاره وخت نشي موندلی، د له دې وجې نه دا مال تاسو واخلئ! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ما ته وويل: چې ته څه وايې؟ ما وويل چې خلکو خو تاسو ته مشوره درکړې ده، هغه وويل چې نه ته د خپل زړه خبره وکړه! په دې باندې ما وويل: تاسو خپل يقين په ګومان کې ولې بدلوئ! ستا دا يقين دی چې دا مال ستا نه دی نو

---

۱: اخرجه البزار باسناد حسن والطبراني واخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۱۴۹ عن عبدالله نحوه ورواه ابويعلى والطبراني عن ابی هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بنحوه باسناد حسن کما في الترغيب ۲/۱۷۴

۲: اخرجه ابويعلي قال الهيثمی ۱۰/۲۴

بیا ته ولې له خلکو نه مشوره اخلې؟ او د مسلمانانو دا مال په خپله اخلې! او خپل یقین په گومان بدلوې؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل: ته چې څه وایې ته د هغه لپاره دلیل بنایې! ما وویل: هو! زه به د دې لپاره ضرور دلیل بنایم! آیا تا ته یاد دي چې رسول الله ﷺ ته د خلکو نه د زکات اخیستو لپاره لیږلی وې، کله چې ته حضرت عباس بن عبد المطلب ته زکات اخیستو ته تللی وې نو هغه تا ته د زکات له ورکولو نه انکار کړی وو، په هغه باندې ستاسو دواړو په منځ کې څه خبره شوې وه بیا تا ما ته وویل: چې ما سره رسول الله ﷺ ته لاړ شه! چې هغه ته ووایو! چې حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ داسې او داسې کړي دي. نو مونږ دواړه رسول الله ﷺ ته په داسې حالت کې راغلو چې هغه مبارک ترو تازه وو، تاسو رسول الله ﷺ ته وویل چې حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ داسې او داسې کړي دي په دې باندې رسول الله ﷺ تا ته ویلي وو، چې آیا تا ته پته نشته چې د سړي تره د هغه د پلار په شان وي؟ او مونږ رسول الله ﷺ ته وویل: چې مونږ پرون ستاسو په خدمت کې حاضر شوي وو نو رسول الله ﷺ وویل تاسو چې په اوله ورځ ما ته راغلی وئ! نو ما سره د صدقې دوه دیناره پاتې وو، په دې وجه تاسو ته زما طبیعت خراب په نظر راغی او په بله ورځ کله چې تاسو ما ته راغلئ! نو ما هغه دینار خرچ کړي وو. ځکه زه تاسو ترو تازه ولیدم! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل: اې علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ! تا صحیح خبره وکړه په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! تا اول ما ته وویل چې خپل یقین په گومان ولې بدلوې؟ او بیا یې ما ته تهوله قصه وکړه زه په دې دواړو خبرو ستا شکریه اداء کوم![۱]

## د زیات شوي مال په باره کې دحضرت عمر او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا حکایت:

حضرت طلحه بن عبید الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته مال راغی هغه یې په مسلمانانو باندې تقسیم کړ خو په هغه کې څه مال پاتې شو هغه په دې باره کې خلکو سره مشوره وکړه خلکو وویل، که چیرې ته دا د راتلونکي ضرورت لپاره کیږدئ! نو ښه به وي، کله چې خلکو عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته مشوره ورکوله نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یېخي غلی ؤ هیڅ

---

۱: اخرجه احمد عن ابی البختری واخرجه ایضا ابویعلی والدورقی والبیهقی وابوداود وفیه ارسال بین ابی البختری وعلی کذا فی الکنز ۴/۳۹ واخرجه ابونعیم فی الحلیة ۴/۲۸۲ عن ابی البختری قال قال عمر فذکر بمعناه وقال الهیثمی ۱۰/۲۳۸ رواه احمد ورجاله رجال الصحیح وکذلک ابویعلی والبزار الا ان ابا البختری لم یسمع من علی ولا عمر فهو مرسل صحیح انتهی.

يې هم نه ويل، خو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل، چې خلکو خو خپله مشوره راکړې ده،
حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته يې وويل: چې ته به هم خپله مشوره ضرور راکوې! حضرت
علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل، چې الله جَلَّ جَلَالُهُ قرآن پاک کې د خرچ کولو ځايونه ښودلي دي او د دې
مال د تقسيم ښودلو نه فارغ شوی دی ته هم دا پاتې مال په هغو ځايونو کې خرچ کړه! بيا
حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا قصه وکړه، چې رسول الله ﷺ هغه تقسيمول شروع کړل خو اوس
هغه د تقسيم نه فارغ شوي نه وو چې شپه راغله نو هغوی دغه شپه په مسجد کې وکړه! او
ټول لمونځونه يې په مسجد کې وکړل يعني ټوله ورځ يې په مسجد کې ناسته وکړه او ټول
مال تقسيمول يې کول، کور ته لاړ نه! ما وليدل چې تر څو پورې يې هغه ټول مال تقسيم کړی
نه وو نو د هغوی په مخ باندې د پرېشانۍ او فکر اثرات وو، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل:
چې اوس به دا پاتې مال هم ته تقسيموې! نو حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه پاتې مال هم تقسيم
کړ، حضرت طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې ما ته له هغه مال څخه اته سوه درهم راکړي شول.(۱)

## د رسول الله ﷺ او پاتې شوي مال حکايت:

حضرت ام سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي چې يو ځل رسول الله ﷺ ما ته راغی نو د مخ مبارک رنګ
يې بدل شوي وو ما ته وېره پيدا شوه چې هسې نه دا د درد له وجې وي ما ورته وويل: چې اې د
الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! په تاسو باندې څه وشول؟ ستاسو د مخ مبارک رنګ بدل شوی دی،
رسول الله ﷺ راته وفرمايل: د هغو اوو دينارو په وجه چې پرون راغلي وو او نن ماښام شو او
هغه تر اوسه پورې د بسترې په غاړه پراته دي او په يوه روايت کې داسې راغلي دي چې هغه
اووه ديناره چې مونږ ته راغلي وو او هغه تر اوسه پورې مونږ خرچ نه کړی شو .(۲)

### د انفاق په باره کې د سهل بن سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حديث:

حضرت سهل بن سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ سره اووه دينار وو چې هغه له
حضرت عايشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا سره ايښودل شوي وو کله چې هغه زيات مريض شو نو ويې
فرمايل: اې عايشې! دا سره زر حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ولېږه! له دې وروسته هغه بې
هوشه شو، نو حضرت عايشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا د هغه په خدمت کولو کې دومره مشغوله شوه چې

---

۱: اخرجه البزار قال الهيثمي ۱۰/۲۳۹ وفيه الحجاج بن ارطاة وهو مدلس
۲: اخرجه احمد وابويعلى قال الهيثمي ۱۰/۲۳۸ رجالهما رجال الصحيح

دينار يې ونه لېږلی شول، دا خبره رسول الله ﷺ څو څو ځله وکړه، خو هر ځل به بې هوښه کېده او حضرت عايشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا به بيا هم د ده مبارک په خدمت کې مشغوله شوه او د دينارو د لېږلو وخت به ورته نه ملاوېده، اخر هغه دينار رسول الله ﷺ په خپله حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ولېږل او علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه دينار صدقه کړل، د دوشنبې په شپه د ماښام په وخت کې په رسول الله ﷺ باندې د زنکدن حالات راغلل نو حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا خپله ډيوه په خپل ګاونډ کې يوې ښځې ته ولېږله/ چې د رسول الله ﷺ بي بي وه او هغې ته يې وويل چې زمونږ ته دې ډيوه کې له خپلو تېلو نه لږ تېل واچوه! چې د رسول الله ﷺ مخ مبارک ته يې روښانه کړو ځکه چې په رسول الله ﷺ باندې د زنکدن حالت راغلی دی.(۱)

حضرت عايشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي چې رسول الله ﷺ ما ته د وفات په مرض کې حکم وکړ چې کوم سره زر چې له مونږ سره دي هغه ته صدقه کړه! خو زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې دومره مشغوله وم چې هغه ما صدقه نه کړی شول، بيا هغه لږ ښه شو نو وې فرمايل چې تا په هغو سروزرو باندې څه وکړل؟ ما ورته وويل: چې ما وکتل چې تاسو ډېر زيات مريض يئ! نو له دې وجې نه زه ستاسو په خدمت کې داسې مسروفه شوم چې رانه هېر شول، رسول الله ﷺ وفرمايل: چې هغه سره زر راوړه! نو حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا هغه اووه يا نهه دیناره سره زر رسول الله ﷺ ته راوړل، ابو حازم راوي ته شک شو چې دينار څومره وو؟ کله چې عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا راوړل نو رسول الله ﷺ وفرمايل که چېرې د محمد ﷺ ملاقات له الله جَلَّ جَلَالُهُ په داسې حال کې شوی وای چې سره زر ورسره وای نو محمد ﷺ به څه ګومان کاوه؟ يعنې هغه به ډېر پښېمانه وای که چېرې الله جَلَّ جَلَالُهُ سره د محمد ﷺ ملاقات په داسې حال کې شوی وای چې دا سره زر ورسره وای نو دې دينارو به د محمد ﷺ توکل په الله جَلَّ جَلَالُهُ باندې نه وای پرېښې. (۲)

**د مال خرچ کولو په باره کې د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا حديث:**

حضرت عبد الله بن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې ما ته حضرت ابو ذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل: اې زما

---

۱: اخرجه الطبرانی فی الکبير ورواته ثقات محتج بهم فی الصحيح ورواه ابن حبان فی صحيح من حديث عائشه بمعناه كذا فی الترغيب ٢/١٧٨

٢: اخرجه احمد قال الهيثمی ١٠/٢٤٠ رواه احمد باسانيد ورجال احدها رجال الصحيح و اخرجه البيهقی ٦/٢٥٦ من حديث عائشة بنحوه.

وراره! زه يوه ورځ له رسول الله ﷺ سره ووم او ما يې لاس مبارک نيولی ؤ چې په دې کې راته وفرمايل: اې ابوذره! ما ته دا خبره نه ده خوښه چې د احد د غره برابر سره زر او سپين زر ملاو شي او هغه زه د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې خرچ کړم او د مرګ په وخت کې ما سره په دې کې يو قيراط چې د دينار شلمه برخه ده؛ پاتې شي. يعنې زه غواړم! چې د مرګ په وخت له ما سره د دينارو او درهمو هيڅ هم نه وي، ما ورته وويل: چې تاسو قيراط وايئ! يا قنطار يعنې څلور زره ديناره؟ رسول الله ﷺ راته وفرمايل: زه کم اندازه ويل غواړم او ته زيات وايې! زه اخرت غواړم او ته دنيا. يو قيراط يعنې قنطار نه دې قيراط دی، دا خبره رسول الله ﷺ ما ته درې ځله وکړه.(۱)

**هغه څه چې د ابوذر او کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ترمينځ د عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حضور کې واقع شول:**

حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راغی او د دننه راتلو اجازه يې وغوښتله، هغه ورته اجازه ورکړه! کله چې د ننه راغی نو په لاس کې يې امسا وه، حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: چې اې کعب! حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفات شوی دی! او هغه ډېر سامان پرېښی دی ستاسو په دې باره کې څه خيال دی؟ حضرت کعب وويل: که چېرې هغه د دې مال په باره کې د الله جَلَّ جَلَالُهُ حق يعنې زکات اداء کولو نو د هغه مواخذه به نه وی دې او رېدو سره حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپله امسا اوچته که او حضرت کعب يې پرې وواهه! او وې ويل: چې ما د رسول الله ﷺ نه دا خبره اورېدلې ده چې زما دا خبره خوښه نه ده چې د دې غره هومره سره زر ما ته ملاو شي او زه هغه خرچ کړم! او د غه خرچ کول د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد قبول هم شي او زه له ځان نه وروسته شپږ اوقيې يعنې دوه سوه څلوېښت درهم پرېږدم! بيا هغه حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل: چې زه تا ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ واسطه درکووم او پوښتنه درځخه کووم! چې آيا تا دا حديث له رسول الله ﷺ نه! اورېدلی دی؟ هغوی وفرمايل: چې هو! اورېدلی مې دی.(۲)

د حضرت غزوان بن ابي حاتم نه هم دا واقعه ډېره اوږده نقل شوې ده او په هغه کې دا مضمون هم دی چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمايل: چې اې ابو اسحاق!

---

۱: اخرجه البزار واخرجه الطبراني بنحوه قال الهيثمي ۱۰/۲۳۹ واسناد البزار حسن

۲: اخرجه احمد قال الهيثمي ۱۰/۲۳۹

ته لږ دا راته ووايه! چې د کوم مال زکات اداء کړی شي او هغه مال له سړی سره وي او په نورو باندې يې خرچ کړی نه وي نو ايا په دې مال والا باندې د دې مال باره کې د جرمانې او د سزا خطره شته دی؟ حضرت کعب رَحِمَهُ اللَّهُ ووېل، نه! نشته! حضرت ابو ذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره يوه امسا وه هغه ودرېده او حضرت کعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يې د دواړو غوږونو په منځ کې په سر باندې ورواهه! او بيا يې وفرمايل، اې د يهودي ښځې خويه! ته دا ګڼې کله چې هغه زکات اداء کړ نو اوس د هغه په مال باندې د چا حق پاتې نشو؟ په داسې حال کې چې الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمايي؛

وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ (۱)

ترجمه: او خپل ځان باندې يې مخکې ګڼي! که څه هم په هغوی باندې لوږه وي. او همدارنګه بل ځای الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمايي، وَيُطْعِمُونَ الطَّعَامَ عَلَىٰ حُبِّهِ مِسْكِينًا وَيَتِيمًا وَأَسِيرًا (۲)

ترجمه: او دغه خلک يوازې دالله جَلَّ جَلَالُهُ د محبت په بنياد په غريبانو، يتيمانو او بنديانو باندې خوراک کوي. همداشان په بل ځای کې هم الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمايي: وَالَّذِينَ فِي أَمْوَالِهِمْ حَقٌّ مَّعْلُومٌ لِّلسَّائِلِ وَالْمَحْرُومِ (۳)

ترجمه: او چې د کومو په مالونو کې د سوالګرو او د نه سوال کوونکو حق دی.

دغسې نور آيتونه هم حضرت ابو ذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ذکر کړل.(٤)

**په خرچ او انفاق کې دحضرت ابوبکرصديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سبقت او مخکې کېدل:**

حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي؛ چې يوه ورځ رسول الله ﷺ مونږ ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې د صدقې کولو حکم وکړ په دغه ورځ ما سره ډېر مال وو، ما پخپل زړه کې ووېل که چېرې زه په نېکۍ کې له حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه مخکې کېدلی شم نو نن مخکې کېدی شم، يعنې ما له هغه نه د مخکې کېدو کوشش ډېر ځله کړی وو خو چېرې هم له هغه نه مخکې نشوم، نو ما فکر وکړ چې نن مخکې کېدی شم! ما خپل نيم مال راووړ او د رسول الله ﷺ په خدمت کې مې وړاندې کړ، رسول الله ﷺ پوښتنه راځخه وکړه چې تا خپل کوروالو ته څه پرېښودل؟ ما ورته ووېل چې د هغوی لپاره مې هم څه پرېښي دي. رسول الله ﷺ بيا راځخه

---

۱: سورة حشر ۹۱ ايت

۲: سورة دهر ۸ آيت

۳: سورة معارج ۲۵/۲٤ آيت

٤: اخرجه البيهقي عن غزوان بن ابی حاتم نحوه کمافی الکنز ۳۱۰/۳

پوښتنه وکړه چې د کور لپاره دې څو مره پرېښې دي ؟ ما ورته وویل، څومره مې چې دلته راوړي دي همدومره مې کور کې هم پرېښې دي. حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره چې په کور کې څه وو هغه یې ټول راوړل او د رسول الله ﷺ په وړاندې کېښودل، رسول الله ﷺ ورڅخه وپوښتل؛ چې د خپلو کوروالاوو لپاره دې څه پرېښې دي ؟ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل؛ چې د هغوی لپاره مې د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه د رسول ﷺ مینه پرېښې ده! کله چې ما د ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا جواب واورېده نو په زړه کې مې وویل چې هیچرې به هم په څه شي کې له حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ څخه مخکې نشم یعنې له ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ څخه زه په هیڅ شي کې هم نشم مخکې کېدلي.(۱)

**د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او یو بل سړي حکایت:**

حضرت حسن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې یوه سړي حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وویل، چې اې د مالوالاوو! نېکۍ خو تاسو وکړې! چې صدقه کوئ! غلامان ازادوئ! حج کوئ! او د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې مال خرچ کوئ! حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وفرمایل، او تاسو مونږ ته پسخېږئ! هغه سړي وویل، مونږ تاسو ته پسخېږو! حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل، په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! کوم سړی چې په سختۍ کې هم یو درهم خرچ کړي هغه زمونږ د مالدارو د لسو درهمو خرچ کولو نه غوره دی، ځکه چې مونږ په ډېر مال کې لږه برخه ورکوو!(۲)

**د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او ګدا حکایت:**

حضرت عبیدالله بن محمد بن عائشه رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې یو سوالګر راغی او امیرالمؤمنین حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته یې وویل، چې خپلې مور ته ورشه! او ورته ووایه! چې ما تاسره شپږ درهمه ایښي وو له هغوی نه یو درهم راکړه! هغه لاړ او بېرته راغی، وې ویل چې مور مې وایي چې هغه شپږ درهمه خو ستا د اوړو لپاره ایښي وو، حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل؛ چې د هیڅ یوه بنده ایمان تر هغې پورې ریښتینی نشي ثابتېدلای، چې تر څو پورې هغه شي چې له هغه سره دی له هغه نه زیات یقین په کوم شي باندې نشي چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په خزانو کې دي، خپلې مور ته ووایه! چې هغه شپږ درهمه راولېږي نو هغې

۱: اخرجه ابوداو والترمذی وقال حسن صحیح والدارمی والحاکم والبیهقی وابونعیم فی الحلیة وغیرهم کما فی منتخب الکنز ۴/۳۴۷

۲: اخرجه البیهقی فی شعب الایمان کذا فی الکنز ۳/۳۲۰

هغه شپږ درهمه حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته را ولېږل، چې هغه حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه سوالگر ته ورکړل، راوي وايي چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل مجلس نه وو بدل کړی چې په دې کې يو سړی په داسې حال کې تېر شو چې اوښ يې نيولی وو چې هغه يې خرڅولو، حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل؛ چې دا اوښ به په څو راکړې؟ هغه سړي وويل؛ چې په يو سل او څلوېښت درهمه! حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: دا دلته وتړه! البته د دې قيمت به څه موده پس درکړم هغه سړی اوښ وتاړه او لاړ، لږ وخت وروسته يو بل سړی راغی او وې ويل چې دا اوښ د چا دی؟ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل؛ چې زما دی، سړي ورته وويل؛ چې ته دا خرڅوې؟ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل؛ هو! سړي ورته وويل؛ چې په څو يې خرڅوې؟ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل، چې په دوه سوه درهمه! هغه سړي ورته وويل؛ چې په همدې قيمت زما شو، حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يې دوه سوه درهمه ورکړل او اوښ يې بوته، حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو سل او څلوېښت درهمه هغه د اوښ څښتن ته ورکړل او شپېته درهمه يې يوړل او حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته يې ورکړل، حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ورنه وپوښتل چې دا د څه پيسې دي؟ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمايل چې دا هغه څه دي چې الله جَلَّ جَلَالُهُ يې د خپل رسول ﷺ په ژبه له مونږ سره وعده کړې ده او فرمايلي يې دي؛

[مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا]. (الانعام: ۱٦۰)

ترجمه؛ څوک چې نېک کار وکړي هغه د هغې لس حصې ورکول کېږي.(۱)

**د هغه سړي حکايت چې خوږب اوښ يې صدقې ته ورالدې کړو:**

حضرت ابي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ زه د زکات د ټولولو لپاره ولېږلم! په يوه سړي باندې تېر شوم کله چې هغه خپل ټول څاروي راټول کړل نو ما وکتل چې په دې څارويو کې په هغه باندې يو کلنه اوښه واجب ده، ما ورته وويل؛ چې ته يو کلنه اوښه راکړه! ځکه چې په تا باندې همدومره زکات راځي، هغه سړي وويل؛ چې داد کم عمر والا اوښه نه پی کوي او نه هم د سورلۍ لپاره پکار راځي البته دا اوښه څربه او ځوانه ده ته دا واخله! ما وويل؛ چې د کوم څاروي د اخيستلو ما ته حکم نه وي شوی زه هغه څنګه واخلم؟ البته رسول الله ﷺ تاسو سره نږدې دی که ته مناسب ګڼې نو ته چې ما ته څه راکول غواړې

---

(۱) اخرجه العسکري کذا في الکنز ۳/۳۱۱

هغه پخپله د رسول الله ﷺ په خدمت کې پيش کړه! که چېرې هغه يې قبول کړي نو زه به يې هم قبول کړم! او که هغوی ﷺ قبوله نه کړه نو بيا يې زه هم نشم قبلولی، هغه ووېل: چې ښه ده! همداسې کوم! نو هغه له ما سره روان شو او ځان سره هغه اوښه هم روانه کړه کومه يې چې ما ته پېش کړې وه، بيا مونږ رسول الله ﷺ ته ورسېدو هغه ووېل: اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ستاسو قاصد له ما نه د څارويو زکات اخيستلو لپاره راغلی وو او په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! له دې نه مخکې خو نه رسول الله ﷺ له ما څخه د زکات اخيستلو لپاره راغلی دی او نه يې هم قاصد راغلی دی، نو ما ستاسو د قاصد په مخکې خپل ټول مال او څاروي راټول کړل او ستاسو قاصد ما ته ووېل: چې په تا باندې زکات کې يو ازې يو کلنه اوښه واجب ده چې نه پېيه کوي او نه هم د سورلۍ لپاره پکار راځي، له دې وجې نه ما ستاسو قاصد ته يوه څربه اوښه وړاندې کړه چې دا واخله! خو هغه د هغې له اخيستو نه انکار وکړ، اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! هغه اوښه دا ده ما راوستلې ده او ستاسو په خدمت کې حاضر شوی يم ! نو رسول الله ﷺ وفرمايل چې په تا باندې خو واجب هم هغه يو کلنه اوښه ده خو که ته پخپله خوښه له دې نه غوره څاروي ورکول غواړې نو الله جَلَّ جَلَالُهُ به تا ته له دې نه غوره بدله درکړي هغه په خوشحالۍ ووېل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! هغه اوښه دا ده ما تاسو ته راوستلې ده! تاسو دا واخلئ! په دې سره رسول الله ﷺ د هغې اوښې د اخيستلو حکم وکړ او هغه ته يې په مال او څارويو کې د برکت دعا وکړه.(۱)

**د ام المؤمنين عائشې او حضرت اسماء رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا سخاوت:**

حضرت عبد الله بن زُبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او حضرت اسماء رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه زيات سخاوت والا څوک ښځې نه دی ليدلی البته د هغوی د سخاوت طريقه جدا جدا وه حضرت عائشې به لږ لږ شي ټولولو چې که به کافي شيان جمع شول نو بيا به يې هغه تقسيمول او حضرت اسماء رَضِيَ اللهُ عَنْهَا به د راتلونکې ورځې لپاره شي نه کېښوده چې لږ د هر څه به ورته راغلل نو په هم هغه ورځ به يې تقسيمول.(۲)

**د حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د سخاوت او جوانمردۍ حکايت:**

حضرت عبد الرحمن بن کعب بن مالک رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

---

۱: اخرجه احمد وابوداود و ابويعلی وابن خزيمة وغيرهم کذا في الکنز ۳/۳۰۹

۲: اخرجه البخاری في الادب المفرد ۴۳

دېر سخي سړی وو، دېر ښايسته ځوان وو او د خپل قوم په ځوانانو کې تر ټولو زيات د فضيلت څښتن وو، هغه به هيڅ شي هم له ځان سره نه ساته، نو هغه به قرض اخيسته او په خلکو به يې خرچ کول، تر دې چې ټول مال يې په قرض کې ګير شو په دې وجه هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړ چې ته قرض غوښتونکو ته ووايه! چې هغوی زما قرض معاف کړي نو رسول الله ﷺ د هغه سفارش وکړ خو هغوی خلکو انکار وکړ که چېرې قرض غوښتونکو د چا په وينا سره چا ته قرض معاف کولو نو د رسول الله ﷺ په وجه به يې ضرور معاف کړي واي، اخر رسول الله ﷺ د هغه د قرض اداء کولو لپاره د هغه ټول مال خرڅ کړ تر دې چې هيڅ شي هم پاتې نشو کله چې د مکې د فتحې کال راغی نو رسول الله ﷺ هغه د يمن سيمې د يوې برخې ګورنر(والي) وټاکه، او وې لېږه، چې د هغه د نقصان پوره والي وشي. حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په يمن کې اوسېده او خپل تجارت يې هم شروع کړ تر دې چې دا لومړني سړی دی چې د زکات په مال يې تجارت کاوه، يو وخت بنه مالدار شو چې په دومره موده کې د رسول الله ﷺ وفات هم شوي وو کله چې مدينې منورې ته بېرته راغی نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل چې هغه سړی يعنې معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پسې سړی ولېږه او څومره مال بانډې چې د هغه ګذاره کېږي هغه مال ورته پرېږده نور ټول مال ترې واخله! په دې سره حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې هغه رسول الله ﷺ يمن ته د همدې لپاره لېږلی وو، چې د هغه د نقصان پوره شي نو زه خو پخپله له هغه نه هيڅ هم نه اخلم! کله چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خبره و نه منله نو عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پخپله حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورغی او خپله خبره يې ورته وکړه، حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل چې رسول الله ﷺ خو زه د خپل نقصان د پوره کولو لپاره لېږلی ووم! نو ځکه زه ستا د خبرې منلو ته تيار نه يم! د زکات په مال بانډې هغه تجارت کړی وو په هغه کې چې کومه ګټه وشوه هغه يې ايښې وه او د زکات اصل مال يې بېرته ورکړی وو، ځکه دا ګټه هم د هغه وه خو د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مقصد دا وو چې د معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ګټې ذريعه اجتماعي مال وو نو ځکه دې دی له ضرورت نه زيات مال له ځان سره نه ساتي بلکې د ضرورت په اندازه دې له خپل ځان سره وساتي او نور مال دې ټول بيت المال ته وسپاري. دا د فضيلت او غوره والي خبره وه، څو

ورځې وروسته د حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خپل منځ کې ملاقات وشو، نو هغه ته حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې ما ستا خبره ومنله ځنګه چې ته وایې هغسې به کوم ما به خوب کې ولیدل چې زه په ډېرو زیاتو اوبو کې یم! او له ډوبېدو څخه وېرېږم! او اې عمره! یبا تا زه له ډوبېدو نه بچ وساتلم! بیا حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راغی او هغه ته یې ټوله قصه وکړه او خپل ټول مال یې راوړ، هغه ته یې ورکړ، او قسم یې وکړ، وې ویل چې ما له دې نه هیڅ نه دي پټ کړي نو خپله کوړا یې راوړه او هغه یې هم مخامخ کېښوده. حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل، چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! چې زه له تا نه دا مال نه اخلم! ما تا ته دا هدیه کړی دی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل، چې اوس د حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا مال اخیستل صحیح دي ځکه چې هغه خو دا ټول مال بیت المال ته ورکړ، چې په دې سره دا مال د هغه لپاره حلال او پاکیزه شو، تر دې وروسته حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ده ته هدیه کړی دی، دې نه پس حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د شام سیمې ته لاړ.(۱)

حضرت ابن کعب بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي، چې حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو ډېر ښایسته ځوان او سخي سړی وو د خپل قوم په غوره ځوانانو کې و، چا به چې ترې څه شي غوښته نو هغه به فوراً ورکاوه، له دې وجې نه چې هغه به قرض اخیسته او خلکو ته به یې ورکولو په هغه باندې دومره قرض شو چې د هغه ټول مال په قرض کې ختم شو مخکې یې د تېر شوی حدیث په شان مضمون ذکر کړ.(۲)

حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خلکو کې تر ټولو زیات ښایسته مخ والا، تر ټولو زیات د ښو اخلاقو والا او تر ټولو زیات پراخ لاس والا وو، د دې سخاوت له وجې یې د قرض بوج پورته کاوه، ځکه چې ټول مال یې په خلکو باندې خرچ کاوه، په دې وجه د قرض اداء کولو لپاره به ورسره څه نه وو. اخر قرض غوښتونکی ورپسې شول نو دې له هغوی نه پټ شو، څو ورځې په کور کې وو چې صبر یې ختم شو نو د هغه قرض غوښتونکو د کومک لپاره د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو رسول الله ﷺ

---

۱: اخرجه عبدالرزاق وابن راهويه عن عبدالرحمن بن عبدالله بن كعب بن مالك عن ابيه كذا في الكنز ۲/۱۳۶

۲: اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۲۳۱ من طريق عبدالرزاق باسناده واخرجه الحاكم عن عبدالرحمن ابن كعب بن مالك عن ابيه فذكره مختصرا قال الحاكم هذا حديث صحيح على شرط الشيخين ولم يخرجاه ووافقه الذهبي

سري ولېږه او حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یې را وغوښته، هغه راغی نو د هغه قرض غوښتونکی هم هغه سره راغلل او وې ویل چې ای د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زمونږ لپاره ده نه زمونږ حق واخله! رسول الله ﷺ د قرض معاف کولو ترغیب هغوی ته ورکولو او وې فرمایل: چې څوک د معاذ قرض معاف کړي الله جَلَّ جَلَالُهُ دې په هغه رحم وکړي، دې دعا اورېدو سره څه قرض غوښتونکو قرض ورته معاف کړ خو پاتې قرض غوښتونکو د معاف کولو نه انکار وکړ، رسول الله ﷺ وفرمایل، اې معاذ! د دوي د قرض لپاره ته له صبر نه کار واخله! یعنې که د ټول مال ورکولو ضرورت هم راشي نو ته یې ورکړه! او له صبر نه کار واخله! اخر رسول الله ﷺ د حضرت معاذ ټول مال واخیسته او هغه قرض غوښتونکو ته یې ورکړ، هغوی په خپلو منځونو کې ووېشه، نو هر یوه ته د هغو اوو برخو نه پنځه برخې ملاو شوې په دې باندې دغه قرض غوښتونکو رسول الله ﷺ ته وویل چې زمونږ د پاتې قرض د اداء کولو لپاره دی غلام جوړ کړه او خرڅ یې کړه! رسول الله ﷺ وفرمایل: چې اوس دې پرېږدئ! اوس ده نه قرض اخیستلو لپاره څه لاره نشته له دې وروسته حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بنو سلمه ته لاړ هلته ورته یوه سړي وویل چې اې ابو عبدالرحمن! څرنګه چې ته بلکل فقیر شوي یې! نو ته لاړ شه! او د رسول الله ﷺ نه څه وغواړه! هغه ورته وویل: زه له رسول الله ﷺ نه هیڅ هم نه غواړم! حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څو ورځې هم دغسې وو بیا رسول الله ﷺ را وغوښته او یمن ته یې ولېږه، او ورته وې فرمایل چې کېدی شي ستا د نقصان پوره والي الله جَلَّ جَلَالُهُ وکړي، او ستا قرض په دې طریقه سره اداء کړي نو حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یمن ته لاړ او هلته اوسېده تر دې چې رسول الله ﷺ وفات شو په کوم کال چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حج امیر مقرر کړ او وې لېږه نو په هغه کال حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم حج ته لاړ، لنده دا چې دواړه د ذالحجې په اتمه ورځ باندې دواړه په حج کې سره مخ شول نو دواړو یو بل ته غاړې ورکړې او بیا دواړو د رسول الله ﷺ په باره کې تعزیت وکړ بیا دواړه په ځمکه باندې کېناستل او خپلو کې یې خبرې کولې او بیا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره څو غلامان ولیدل.(۱)

حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي، کله چې نبي کریم ﷺ وفات شو، خلکو هم

---

۱: اخرجه الحاكم ايضا فذكر نحو حديث ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وهكذا اخرجه ابن سعد ۳/۱۲۲ عن جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بنحوه

حضرت ابو بکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ امیر او خلیفه مقرر کړاو رسول الله ﷺ په خپل ژوند کې حضرت معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یمن ته لیږلی وو نو حضرت ابو بکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حج امیر مقرر کړ او وې لیږه، هلته په مکه کې د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تر منځ ملاقات وشو، حضرت معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره ډېر غلامان وو، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ترې پوښتنه وکړه چې دا خلک څوک دي؟ حضرت معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وویل: چې دا خو د یمن خلکو ما ته په هدیه کې را کړي دي، او دا د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لپاره دي، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وویل: چې ستا لپاره زما رائیه دا ده چې ته دا ټول غلامان حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته بوځه! راوي وایي چې د حضرت معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په دویمه ورځ بیا د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره ملاقات وشو نو حضرت معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وویل چې اې ابن الخطاب! نن شپه ما خوب ولیده چې زه په اور کې ځان غورځوم! او تا زه له ملا نه نیولي یم! له دې وجه نه اوس زه هم ستا خبره منم! نو هغه غلامان یې له ځان سره کړل او د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شو، هغه ته یې وویل چې دا غلامان خو ما ته په هدیه کې راکړل شوي دي او دا ستا لپاره دي، حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وویل: چې مونږ تا ته ستا د هدیې لپاره اجازت درکوو تر څو ته یې استعمال کړه! بیا حضرت معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له هغه ځایٔ نه لمانځه ته بهر ووت او خلکو ته یې مونځ ورکړ. نو هغه وکتل چې دوي ټول په ده پسې لمونځ کوي. په دې سره حضرت معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې تاسو د څه لپاره لمونځ کویٔ؟ هغوی وویل چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره! په دې باندې حضرت معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بیا وویل: اوس خو تاسو هم د الله جَلَّ جَلَالُهُ شویٔ! او دې ویلو سره یې هغوی ټول ازاد کړل.(۱)

## د محبوب شي صدقه او انفاق کول

**حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د خیبر زمکه صدقه کول:**

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته په خیبر کې یوه ځمکه ورکړل شوه، هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض یې وکړ چې ما ته یوه داسې ځمکه راکړل شوې ده چې له دې نه بنه مال ما ته چېرته هم نه دی حاصل شوی، نو

۱: اخرجه الحاکم من طریق ابی وائل قال الحاکم ۳/۲۷۲ ووافقه الذهبی صحیح علی شرط الصحیحین ولم یخرجاه.

ستاسو څه رائیه ده؟ چې زه د دې په باره کې څه وکړم؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: که ته غواړې نو ځمکه وقف کړه! او د هغې پیداوار صدقه کړه! نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې شرطونو باندې د هغې ځمکې پیداوار او حاصلات صدقه کړل چې نه به دا ځمکه خرڅول کېږي، نه به چا ته په هدیه کې ورکول کېږي او نه به هم چاته په میراث کې ورکول کېږي، د دې پیداوار به فقیرانو، رشته دارو، د غلامانو په ازادولو کې، په في سبیل الله جهاد کې او په مېلمنو باندې خرچ کول کېږي او څوک چې د دې ځمکې متولي جوړ شي نو هغه ته اجازه ده چې هغه دې د عام دستور مطابق د دې پیداوار نه په خپله وخوري او پخپلو دوستانو باندې دې هم وخوري، خو هغه ته لدېنه د خپل ځان لپاره د مال د جمع کولو اجازه نشته.(۱)

**حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دخپلې خوښې وینزه آزادول:**

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ابو موسی اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته لیک ولیکه چې زما لپاره د جلولا، چې د خراسان په لاره کې یو لوي ښار دي او په ۱۶ هجري کال کې دا ښار مسلمانانو فتح کړی وو؛ په بندیانو کې یوه وینځه واخله! نو هغه یوه وینځه واخیستله، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یې ولېږله، هغه وینځه د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ډېره خوښه شوه، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه وینځه راوغوښتله او ورته وې ویل: چې الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمایلي دي چې: لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ ۵ (۲)

ترجمه: تاسو پوره خیر نه شئ! حاصلولي تر څو پورې چې خپل د خوښې شی خرچ نه کړئ! نو هغه وینځه یې ازاده کړه.(۳)

**د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا او وینزې حکایت:**

حضرت نافع رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یوه وینځه وه کله چې هغه د خپلو اخلاقو او عاداتو او د خپل ښایست په وجه باندې د هغه ډېره خوښه شوه نو ازاده یې کړه او خپل یوه ازاد کړی شوي غلام سره یې د هغې واده وکړ، بیا د هغې یو ځوی پیدا شو نو حضرت نافع وایي چې ما حضرت عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ولیده چې هغه به د غه ماشوم اوچت کړ او ښکل به یې کړ او ویل به یې چې واه واه! چې د فلاني ځوی څومره ښایسته دی، څومره به خوشبویي ترېنه راځي، د ده مراد هم هغه ازاده کړل شوې وینځه وه.(٤)

---

۱: اخرجه الائمة الستة كذا فى نصب الراية ۳/۴۷۶

۲: سورة العمران ۹۲ آیت

۳: اخرجه عبد بن حمید وابن جریر وابن المنذر كذا فى الكنز ۲/۳۱۴

٤: لخرجه ابن سعد ۴/۱۲۲

**کله چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا ته دا آیت ور یاد شو:**

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې ما ته يو ځل د لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّىٰ تُنْفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ ۚ ايت شريف رایاد شو نو ما په هغو ټولو شیانو کې سوچ وکړ چې الله جَلَّ جَلَالُهُ ما ته راکړی وو چې په دې شیانو کې ما ته کوم شی زیات خوښ دی نو ما ته د خپلې رومی وینځې مرجانه نه زیات څه شي خوښ په نظر رانغلو او ما وویل چې دا مرجانه د الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره ازاده ده، د ازاودولو نه وروسته مې بیا هم له هغې سره تعلق پاتې وو چې له هغې وجې زه دا وایم چې الله جَلَّ جَلَالُهُ ته د ورکولو نه وروسته د شي واپس کېدل لازم نه راتلل نو ما به دې سره ضرور واده کړي و.(۱) د حاکم په روایت کې دوي نه پس دا مضمون دی چې بیا مې د هغې واده له نافع سره وکړ نو اوس هغه د نافع د اولاد مور ده.(۲)

**ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا د سخاوت په باره کې دحضرت نافع رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حدیث:**

ابونعیم په حلیه کې بیان کوي او وايي چې حضرت نافع رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا عادت وو کله چې به هم هغه ته په خپل مال کې څه شي زیات خوښ شو نو هغه به یې فوراً د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نوم خرچ کاوه، او همدارنګه به یې د الله جَلَّ جَلَالُهُ نزدېکت حاصلاوه او د هغه غلامان هم د هغه له دې عادت نه خبر شوي وو نو ځینې وخت به د هغه ځینو غلامانو په نېکو اعمالو کې ښه زور ښکاره کولو او هر وخت به په مسجد کې په اعمالو مشغول وو کله چې به حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغوی په دې ښه حالت کې ولیدل نو هغه به یې ازادول، په دې باندې به د هغه ملګرو هغه ته ویل چې اې ابوعبدالرحمن! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! چې دا خلک دا شان تا ته دوکه درکوي د دوي د جومات او د جومات والا اعمالو سره هیڅ مینه نشته یوازې تا ته د ښودنې لپاره داسې کوي چې ته خوشحاله شې او دوي ازاد کړې نو دا جواب به یې ورکاوه، چې مونږ ته څوک د الله جَلَّ جَلَالُهُ په اعمالو کې مشغولېدو سره دوکه راکوي مونږ به د الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره د هغوی نه دوکه خورو نو ما یوه ورځ مېښام ولیدل چې حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په یوه ښه اوښه باندې روان دی چې هغه ده په ډېر زیات قیمت اخیستی وه په تلو تلو کې د هغه مزل یې ډېر خوښ شو هم هلته یې اوښ کېناوه او لاندې ترې راکوز شو او وې فرمایل اې نافع! د دې مهار

---

۱: اخرجه البزار قال الهیثمی ٦/٣٢٦ رواه البزار وفیه من لم اعرفه

۲: اخرجه الحاکم ٣/٥٦١ واخرجه ابونعیم فی الحلیة ١/٩٥ من طریق مجاهد وغیره

وباسه! او کجاوه یې راکوزه کړه، زل پرې واچوه! او د قب یو طرف یې زخمي کړه! په هغه زمانه کې دا سې زخم د دې خبرې نښه وه چې دا څاروي به د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نوم قربانېږي شي او بیا به یې د قربانۍ په څارویو کې داخل کړو.

د ابو نعیم په بل روایت کې دي چې حضرت نافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې یو ځل حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خپله اوښه باندې سپور روان وو دغه اوښه د هغه ډېره خوښه شوه، نو زر تر زره یې اوښې ته د چو کولو لپاره د (اخ اخ) اواز وکړ چې به دې سره اوښه چو شوه، په هغه وخت کې به عربو اوښ ته د چو کولو لپاره د اخ اخ اواز کاوه، کله چې ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اوښه چو کړه نو حضرت نافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یې وویل: چې اې نافع! له دې اوښې نه کجاوه کوزه کړه! حضرت نافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې زما ته دا خیال راغی چې د کجاوې له کوزلو نه د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هدف یا د خپل ضرورت لپاره دي، یا یې هم په اوښه باندې څه شک راغلی دی چې چېرته خو ورته تکلیف نه دی رسېدلی نو ما له اوښې نه کجاوه کوزه کړه نو ما ته یې وفرمایل: چې وګوره! په دې باندې چې کوم سامان دی په دې باندې بله اوښه کېږي یعنې د ادې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نوم قرباني کړل شي ځکه چې دا زما خوښه شوې ده او خوښ شوي شي د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نوم قربانول پکار دي، او د دې سامان خرڅ کړه! او د دې سفر لپاره بله اوښه واخله! ما ورته وویل: چې زه تا ته قسم درکوم او وایم! چې که چېرې ته غواړې نو دا چې خرڅه شي د دې په قیمت بل اوښ اخیستی شي نو هغه خپله دې اوښه باندې زل واچاوه او د هغې په غاړه کې یې د څپلو غارکۍ واچوله، دا غارکۍ هم د دې خبرې نښه وه چې دا څاروی به حرم شریف ته بوول کېږي او هلته به قرباني کېږي او هغه یې خپله د قربانۍ په اوښانو کې داخله کړه، نو په دې ترتیب به چې چېرته هم د هغه کوم شي ... شو هغه به یې زر تر زره مخکې لېږه یعنې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نوم به یې خرچ کاوه، چې ... ته به په قیامت کې په کار راشي. همدارنګه د ابو نعیم په بل روایت کې دا دی چې ... نافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا وایي چې د حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مستقل عادت وو ... به هم هغه ته په خپل مال کې څه شی خوښ شو نو فوراً به یې هغه د الله جَلَّ جَلَالُهُ په ... کولو او د هغې ملکیت نه به یې لاس اخیست او کله به یې هم په یوه مجلس کې ... درهم د الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره ورکولې او دوه ځله هغه ته د ابن عامر د پرش زره درهم ... شوي چې به دې سره هغه ما ته وویل: چې اې نافع! زه وېرېږم چې چېرته د ابن عامر

درهم ما په فتنه کې اخته نه کړي څه! ته ازاد يې د سفر او رمضان نه پرته چېرې به يې پوره مياشت مسلسل هم غوښه نه خوړله، څينې وختونه به پوره مياشت تېره شوه او د غوښې يو ټوټه به يې هم نه وه څکلې. (۱)

**دحضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا حکايت کله چې څحلې نه را کوز شو:**

حضرت سعيد بن ابي هلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې يو څل حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په جحفه نومي ځائ کې مقيم وو او مريض هم وو، هغه وويل چې زما زړه غواړي چې کب يا ماهي وخورم، په دې سره د هغه ملګرو تر ډېر کوښښ وروسته يو کب پيدا کړ د هغه بي بي حضرت صفيه بنت ابي عبيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه کب واخيسته او هغه يې تيار کړ او د هغه مخکې يې کېښود، په دې کې يو فقير راغی او د هغه په خوا کې ودرېده، هغه دغه فقير ته وويل چې ته دا کب واخله! په دې خبره د هغه بي بي وويل: سبحان الله! مونږ ستا لپاره ډېر تکليف تېر کړ او دا کب مونږ خاص ستا لپاره تيار کړ، له دې وجې نه دا تاسو په خپله وخورئ! مونږ سره د سفر سامان دی له هغه نه به څه فقير ته هم ورکړو خو کب مه ورکوه! ته يې په خپله وخوره! خو هغه خپل نوم واخيسته او وې ويل چې کب د عبدالله ډېر خوښ دی او دا به فقير ته هم ورکوو! (۲)

ابن سعد هم دا روايت ذکر کړی دی په هغه کې دا دی چې د هغه بي بي وويل: چې مونږ دې فقير ته يو درهم ورکوو! دا درهم به له دې کب نه ورته زيات پکار راشي، ته دا کب وخوره! او خپل خواهش پوره کړه! هغه وويل چې زما خواهش هم هغه دی چې زه وايم!.(۳)

**حضرت ابوطلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دبيرحا صدقه:**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د مدينې منورې په انصارو کې د ټولو نه زيات د کجورو باغونه د حضرت ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وو، او هغه ته په خپلو باغونو کې تر ټولو زيات خوښ باغ د بَيرُحا باغ وو چې بلکل مسجد نبوي ته مخامخ وو د هغه اوبه ډېرې ښې وې رسول الله ﷺ به هم ډېر دې باغ ته تشريف وړ، او د دې اوبه به يې څښلې کله چې لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ آيت نازل شو!

---

۱: اخرجه ابونعيم فی الحلية ۱/۲۹۴ واخرجه الطبرانی مختصرا کما فی المجمع ۹/۳۴۷ واخرجه ابن سعد عن نافع مختصرا ۴/۱۲۲

۲: اخرجه ابونعيم فی الحلية ۱/۲۹۷

۳: اخرجه ايضا من طريق عمر ابن سعد بنحوه واخرجه ابن سعد ۴/۱۲۲ عن حبيب بن ابی مرزوق مع زيادة بمعناه

ترجمه، تاسو مکمل خیر چېرې هم نه شئ حاصلولي تر دې چې تاسو خپل خوښ شی خرچ کړی نه وي.

حضرت ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمايي چې تر څو تاسو خپل خوښ شی خرچ نه کړئ! تر هغو پورې تاسو پوره نېکی ته نشئ رسېدلي. او ما ته په خپل ټول مالکې د ټولو نه زيات خوښ بَيرُحا باغ دی زه دا د الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره صدقه کووم او زما ارزو او هيله دا ده چې په دې نېکۍ باندې ما ته جنت راکوي او د دې اجر به زما لپاره ذخيره کړل شي او وبه يې ساتي چې به ما ته د قيامت په ورځ پکار راشي، اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو يې چې چېرته هم مناسب ګڼئ! نو دا هم هغه ځای خرچ کړئ! په دې سره رسول الله ﷺ خوشحاله شو، او وې فرمايل چې واه واه! دا خو ډېر د فايدې مال دی د اډېر د فايدې مال دي.(۱)

په بخاري شريف کې له دې نه وروسته دا مضمون دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: ما ستا خبره واورېده نو زما رائيه دا ده چې ته دا په خپلو خپلوانو باندې تقسيم کړه! حضرت ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! همداسې به وکړم! نو حضرت ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه باغ په خپلو خپلوانو او د تره په زامنو باندې ووېشه.

**زيد بن حارثه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او خپل آس صدقه کول:**

حضرت محمد بن منکدر رَحِمَهُ اللهُ وايي کله چې دا ايت نازل شو چې **لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ ۚ** نو حضرت زيد بن حارثه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپله يوه اسپه واخيسته او د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو، د دې د اسپې نوم شِبله وو او هغه ته په خپل مال کې هيڅ شی له دغې اسپې نه زيات خوښ نه وو او عرض يې وکړ چې دا اسپه د الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره صدقه ده رسول الله ﷺ هغه قبوله کړه او د هغه ځوی اسام به زيد ته يې د سورلی لپاره ورکړه، د حضرت زيد بن حارثه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا خبره خوښه نه شوه چې د هغه صدقه شوې اسپه دې د هغوی ځوی ته ورکړل شي دا خو صدقه شوی شی بېرته خپل کور ته راغی رسول الله ﷺ د دې ناخوښی اثر د هغه به مخ باندې معلوم کړ نو ارشاد يې وفرمايه چې الله جَلَّ جَلَالُهُ ستا صدقه قبوله کړې ده نو دا رنګه اوس چې دا اسپه چا ته هم ورسپېږې ستا په

---

۱: اخرجه الشيخان كذا في الترغيب ۲/۱۴۰

اجر کې کم والی نشته.(۱)

**په هر مال کې درې شریکان وي:**

حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې په هر مال کې درې شريکان وي يو خو تقدير دی چې د مال هلاکولو او د ضاروپو د مرگ په صورت کې ستا مال وړی او له تا څخه پوښتنه هم نه کوي چې ستا ښه مال يو سي او که خراب! دويم شريک وارث دی، چې هغه د دې انتظار کوي چې ته په قبر کې سر کېږدې يعنې ته مړ شې او هغه ستا مال اخلي. هغه به ستا مال هم اخلي او ته به د هغه په نظر کې بد هم يې! او دريم شريک ته پخپله يې! نو دا رنگه ته د دې خبرې پوره کوشش وکړه! چې ته په ټولو شريکانو کې کمزوری شريک جوړ نشې! يعنې ته له دغو دواړو نه زيات مال د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې خرچ کړه! الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمايي: لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ ۚ غوږ سره واورئ! دا اوښ زما پخپل مال کې د ېر خوښ دی ځکه نو ما وغوښتل چې زه دا په خپل کار راوستلو لپاره مخکې اخرت ته ولېږم! يعنې چې په اخرت کې راته پکار راشي.(۲)

# د خپل حاجت په وخت کې په نورو باندې مال خرچ کول

**په دې باره کې د رسول الله ﷺ حکايت:**

حضرت سهل بن سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي يوې ښځې رسول الله ﷺ ته يو څادر راووړ، چې تيار کړی شوی وو او د هغه غاړه هم جوړه کړل شوې وه، يعنې د هغه څادر چېرته د بلې جامې نه پرېکړل شوی نه وو بلکې سره له غاړو د څادر په توگه جوړ شوی وو او هغې ښځې عرض وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ما دا څادر ځکه راوړی دی چې ته دا استعمال کړې نو رسول الله ﷺ له هغې ښځې نه څادر واخيسته او دې څادر ته د هغه يقيني ضرورت وو ځکه هغه په سر کړ، د هغه په صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ کې يو صحابي رسول الله ﷺ سره دغه څادر وليده نو عرض يې وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! دا خو د ېر ښه څادر دی، راېې کړئ! چې زه يې په سر کړم! رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: چې واخله! څادر يې ورکړ

---

۱: اخرجه سعيد بن منصور وعبد بن حميد وابن المنذر وابن ابی حاتم واخرجه ابن جرير عن عمرو بن دينار مثله وعبدالرزاق وابن جرير عن ايوب بمعناه كما فی الدر المنثور ۲/۵۰

۲: اخرجه ابونعيم فی الحلية ۱/۱۶۳

په داسې حال کې چې رسول الله ﷺ ته پخپله د دې څادر ډېر ضرورت وو، کله چې رسول الله ﷺ له دغه ځای نه پاڅېده او لاړ، تر دې وروسته صحابه کرامو رضي الله عنهم دغه صحابي چې له رسول الله ﷺ څخه یې څادر واخیسته، ډېر ملامت کړ، ورته وې ویل چې تا ښه ونه کړل ځکه چې د رسول الله ﷺ دې څادر ته خپله ضرورت وو او تا ور څخه واخیسته او تا ته پته ده چې د رسول الله ﷺ نه کله څه شی وغوښتل شي نو انکار نه ترې کوي بلکې ورکوي یې! هغه صحابي وویل، چې ما خو یوازې د دې لپاره غوښت، وو چې د رسول الله ﷺ په استعمالولو سره دا څادر برکت والا شوی دی دا مې د رسول الله ﷺ نه واخیسته چې دا به زه له ځان سره همېشه سنبال ساتم! د دې لپاره چې ما ته یې دې کفن را کړل شي.(۱)

حضرت سهل رضي الله عنه فرمایي چې د رسول الله ﷺ لپاره یوه د کرښو والا له وړیو نه جوړه شوې د تور رنګ والا جوړه تیاره کړل شوه او د هغې غاړه سپینه جوړه شوې وه، رسول الله ﷺ هغه وغوستله او خپلو صحابه وو ته بیرون ورووت هغه خپله پنډۍ له خوشحالۍ نه په لاس باندې ووهله او وې فرمایل: آیا تاسو نه ګورئ! دا جوړه څومره ښه ده په دې کې یوه باندیچي وویل: اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما مور او پلار دې په تاسو قربان وي! دا خو تاسو ما ته راکړئ! د رسول الله ﷺ مبارک دا عادت وو کله چې به ترې څه شی وغوښتل شو نو انکار به یې نه کاوه، یعنې هغه شي به یې ورکاوه، دې باندیچي ته یې وفرمایل: چې واخله! له دې ویلو وروسته یې جوړه هغه باندیچي ته ورکړه، او خپلې دوه جامې یې را وغوښتلې او وایې غوستلې، بیا هغه دغه شان د جوړې جوړلو حکم وکړ نو هغه جوړه تیارېدل شروع شو او په کډۍ کې جوړېدله تر دې چې رسول الله ﷺ مبارک وفات شو.(۲)

**د حضرت ابو عقیل رضي الله عنه حکایت**

حضرت ابو عقیل رضي الله عنه فرمایي چې ما به ټوله شپه د دوو صاعو یا اووه کجورو په مزدورۍ پخپله ملا پورې رسۍ تړله او له کوهي یا څاه نه به مې اوبه را وېستلې. بیا به مې یو صاع کجورې را وړلې، خپلو کورو الاوو ته به مې ورکړې، چې هغوی دا پخپل کار راولي او دویم صاع به مې د الله جَلَّ جَلَالُهُ قرب حاصلولو لپاره رسول الله ﷺ ته ورکړې او ورته وبه

---

۱: اخرجه ابن جریر

۲: عند ابن جریر کذا فی کنز العمال ۴/۴۲

مې ویل چې دا مې په کوشش کولو سره حاصلې کړې دی رسول الله ﷺ وفرمایل، دا د صدقې په مال کې کېږده! څرنګه چې دې پخپله غریب او محتاج وو او د غه یوه صاع کجورو د هغه پخپله ضرورت وو ځکه نو منافقانو په هغه پورې تو کې او مسخرې کولې، د هغه په باره کې یې وویل چې الله جَلَّ جَلَالُهُ ته د ده د صاع څه ضرورت وو، دې پخپله د دې صاع ضرورتمند وو په دې باندې الله جَلَّ جَلَالُهُ دا لاندې ایتونه نازل کړل،

**اَلَّذِیْنَ یَلْمِزُوْنَ الْمُطَّوِّعِیْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِیْنَ فِی الصَّدَقٰتِ وَالَّذِیْنَ لَا یَجِدُوْنَ اِلَّا جُهْدَهُمْ فَیَسْخَرُوْنَ مِنْهُمْ ۙ سَخِرَ اللّٰهُ مِنْهُمْ ۡ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِیْمٌ ۝**(۱)

ترجمه: دا منافقان داسې دي چې نفلي صدقه ورکوونکو مسلمانانو باندې د صدقاتو په باره کې اعتراض کوي او خاص په هغو خلکو باندې نور هم زیات چې هغوی ته د محنت او مزدورۍ له کټې نه پرته بل څه په لاس نه ورځي یعنې دوي پورې خندا کوي الله جَلَّ جَلَالُهُ به دوي ته د دوي د خندا خاصه بدله ورکوي او د مطلق اعتراض به دا بدله ملاوېږي چې د دوي لپاره به اخرت کې دردناک عذاب وي.(۲)

حضرت ابو سلمه او حضرت ابو هریره رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ اعلان وکړ چې صدقه کوئ! ځکه چې زه یو جماعت لښکر لېږل غواړم په دې خبره حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ د هغوی ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض یې وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ما سره څلور زره درهمه دي په دې کې دوه زره زه خپل رب ته قرض ورکوم! الله جَلَّ جَلَالُهُ ته د قرض ورکولو نه یې مطلب دا وو چې اوس زه دا په ضرورتمندو او حاجتمندو باندې وېشم او په اخرت کې به د دې بدله غواړم! او دوه زره زه خپل اولاد ته ورکوم! رسول الله ﷺ خوشحاله شو هغه ته یې دعا وکړه چې الله جَلَّ جَلَالُهُ دې هغه کې هم برکت واچوي چې ته ورکوې! او په هغه کې دې هم برکت واچوي چې ته خپل اولاد ته ورکوې! او یو انصاري تو له شپه مزدوري کړې وه دوه صاعه کجورې یې جمع کړې وې هغه هم د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض یې وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ما مزدوري کړې ده، او دوه صاعه کجورې مې جمع کړې دی یو صاع زه خپل رب ته ورکوم! او یو صاع زه خپل اولاد ته ورکوم! په دې باندې منافقانو زیات ورکوونکي او

۱: سورة توبه ۷۹ آیت

۲: اخرجه الطبراني قال الهیثمي ۷/۳۲ رجاله ثقات الا ان خالد بن یسار لم اجد من وثقه ولا جرحه انتهی

کم ورکوونکي دواړو کې عیب راوېستل شروع کړل او وې ویل چې د عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ غونډې زیات خرچ کونکی خو یوازې د ریا او ځان ښودنې لپاره کوي او دا غریب او ضرورتمند سړی چې یوه صاع کجورې ورکوي الله جَلَّ جَلَالُهُ او رسول ﷺ ته د دوه د صاع ضرورت نشته، په دې باندې الله جَلَّ جَلَالُهُ د اللذین یلمزون والا آیت شریف نازل کړ.(۱)

### د حضرت عبدالله بن زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حکایت

د حضرت عبدالله بن زید بن عبد ربه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خوب کې لیدلي وو چې فرشته اذان کوي، دې فرمایي چې زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم! او عرض مې وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما دا باغ صدقه دی زه الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه رسول ﷺ ته ورکوم! تاسو چېرته چې غواړئ! نو دا خرچ کړئ! کله چې د هغه مور او پلار ته پته ولګېده نو هغوی د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شول او عرض یې وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زمونږ ګذاره خو په هم دې باغ باندې روانه وه زمونږ ځوی دا صدقه کړ، رسول الله ﷺ هغه باغ هغوی دواړو ته بېرته ورکړ، بیا چې هغوی دواړه وفات شول نو هغه باغ یې ځوی حضرت عبدالله بن زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته په وراثت کې پاتې شو او دی یې وارث وګرځېده، یعنې د دغه باغ مالک شو.(۲)

### د یوه انصاري صحابي د انفاق حکایت

حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو سړی رسول الله ﷺ ته راغی او عرض یې وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه لوږې پرېشانه کړی یم! رسول الله ﷺ خپلو پاکو بیبیانو ته یوې ته سړی د دې لپاره ولېږه چې که د خوراک لپاره څه وي نو راوې لېږه! هغې ورته جواب ورکړ چې په کور کې د خوراک لپاره هیڅ هم نشته، بیا یې وار په وار نورو بیبیانو ته خبر ولېږه چې په کور د خوراک لپاره څه شته؟ خو ټولو بیبیانو ورته همدا جواب ورکړ چې نشته. بیا رسول الله ﷺ صحابه وو ته وفرمایل چې نن شپه دې چې هر څوک مېلمه کړي! نو په هغه دې الله جَلَّ جَلَالُهُ خپل رحمت نازل کړي، یو انصاري ودرېده او عرض یې وکړ چې زه تیاریم! نو هغه دغه سړی کور ته بوته او د خپلې بي بي نه یې پوښتنه وکړه چې تا سره څه

---

۱: عند البزار قال البزار لم نسمع احدا اسنده من حدیث عمر بن ابی سلمة الا طالوت ابن عباد وقال الهیثمی ۷/۳۲ وفیه عمر بن ابی سلمة وثقه العجلی وابوخیثمة وابن حبان وضعفه شعبة وغیره وبقیة رجالهما ثقات انتهی.

۲: اخرجه الحاکم ۳/۳۳٦ قال الذهبی فیه ارسال

شته؟ هغې ورته وویل چې نور څه خو نشته یوازې د ماشومانو د خوراک لپاره څه شته،
هغه انصاري وویل چې ماشومان په څه باندې مشغول کړه! او چې کله هغوی طعام
وغواړي نو هغوی ویده کړه! او کله چې زمونږ میلمه دننه راشي نو ډیوه مړه کړه او هغه ته
داسې معلومه کړه! لکه چې مونږ هم دوډی خورو! او په بل روایت کې داسې دي کله چې
میلمه په خوراک شروع وکړي نو ته پاڅه! د صحیح کولو په بهانه باندې ډیوه مړه کړه! نو
هغوی ټول د خوراک لپاره کېناستل خو یوازې میلمه خوراک وکړ او انصاري او د هغه بي
بي په لوږه شپه تېره کړه، کله چې هغه سبا ته د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو نو
رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: چې تاسو دواړو نن شپه له میلمه سره کوم سلوک کړی دی
هغه الله جَلَّ جَلَالُهُ ته ډېر خوښ دی. او په بل روایت کې داسې دي چې په دې باندې دا ایت
شریف نازل شو: (۱)

وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ (۲)

ترجمه: او بل په ځان باندې مقدم گڼي! که څه هم چې په هغوی خپله لوږه وي.

### د اوو «۷» کورونو حکایت:

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې د څېلی یو سر په اوو کورونو وګرځېده هر یوه به بل
ته په خپل ځان باندې ترجیح ورکوله، په داسې حال کې چې په دوي کې د هر یوه دې سر ته
ضرورت وو، تر دې چې په اوو کورونو وګرځول شو اخر هغه سر واپس اولني کور ته بیا
راوړل شو چې له کوم کور نه هغه وړل شوی وو. (۳)

## الله تعالی ته قرض حسنه ورکونکي

### حضرت ابو دحداح رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په جنت کې د کهجورې (خرما) ونه واخیسته:

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې یو سړی رسول الله ﷺ ته وویل: چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ
رسوله! چې د فلانی سړی د کجورې ونه ده او ما ته د خپل دېوال جوړولو لپاره د هغې

---

۱: اخرجه مسلم وغيره كذا فى الترغيب ۴/۱۴۷ واخرجه ايضا البخارى والنسائى وفى رواية لمسلم تسمية هذا الانصارى بابى طلحة كما فى التفسير لابن كثير ۴/۳۳۷ وفى رواية الطبرانى تسمية هذا الرجل الذى جاء بابى هريرة كما ذكره الحافظ فى الفتح ۸/۴۴۶

۲: سورة الحشر ۹ آيت

۳: اخرجه ابن جرير كذا فى الكنز ۳/۱۷۶

ضرورت دی تاسو هغه ته حکم وکړئ! دا ونه ما ته راکړي، چې د دې په ذریعه زه خپل دېوال صحیح کړم! رسول الله هغه سړی ته وفرمایل: چې ته د کجورې دا ونه ده ته ورکړه! تا ته به د دې په بدله کې په جنت کې د کجورې ونه درکړل شي. هغه سړی انکار وکړ، حضرت ابو الدحداح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته پته ولګېده چې رسول الله ﷺ د دغه سړی د کجورې ونه د جنت د کجورې د ونې په بدله کې اخلي او هغه بل سړی ته یې ورکول غواړي نو حضرت ابو الدحداح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دغه کجورې والا ته ورغی او هغه ته یې وویل: چې ته د دې باغ په بدله کې خپل د کجورې ونه په ما خرڅه کړه! هغه راضي شو بیا حضرت ابو الدحداح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض یې وکړ، چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ما خپل باغ ورکړ او د کجورې هغه ونه مې واخیسته او اوس یې تاسو ته درکوم! تاسو هغه سړی ته دغه ونه ورکړئ! رسول الله ﷺ خوشحاله شو څو ځله یې وفرمایل: چې ابو الدحداح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته به په جنت کې د کجورې مېوه دارې او لوېې لوېې ونې ډېرې زیاتې ورکول کېږي، بیا هغه خپلې بي بي ته راغی او ورته وې ویل چې ام دحداح! ته د دې باغ نه بېرته راشه! ما دا د جنت د کجورې د یوې ونې په بدله کې خرڅ کړی دی د هغه بي بي هم د هغه پشان د جنت غوښتونکې وه، له دې وجې نه هغې وویل: چې ډېره ګټې سودا دې وکړه! یا یې د همدې په شان بله جمله وویله.(۱)

**ابو دحداح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي باغ مې الله تعالی ته قرض ورکړو:**

حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي کله چې دا ایت شریف نازل شو:

**مَنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضٰعِفَهُ لَهُ أَضْعَافًا كَثِيرَةً**(۲)

ترجمه: داسې څوک دی چې الله جَلَّ جَلَالُهُ ته قرض ورکړي په ښه طریقه قرض ورکولو سره، بیا الله جَلَّ جَلَالُهُ د هغه ثواب زیات کړي ډېرې حصې یې ورکړي.

نو حضرت ابو الدحداح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! آیا یقیني الله جَلَّ جَلَالُهُ زمونږ نه قرض اخیستل غواړي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: هو! حضرت ابو الدحداح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل: تاسو خپل لاس لږ ما ته راکړئ! هغوی ﷺ لاس مبارک د هغه

۱: اخرجه احمد والبغوی والحاکم فی الاصابة ۴/۵۹ قال الهیثمی ۹/۳۲۴ رواه احمد والطبرانی ورجالهما رجال الصحیح انتهی.

۲: سورة بقره ۲۴۵ ایت

طرفته اوړد کړ، هغه د رسول الله ﷺ لاس مبارک ونیوه، عرض یې وکړ چې زما یو باغ دی چې په هغه کې د کجورو شپږ سوه ونې دي ما خپل هغه باغ الله جَلَّ جَلَالُهُ ته قرض ورکړ، بیا له هغه ځایه ځخه روان شو او خپل باغ ته ورسېده، بیا هغه خپلې بي بي ته اواز وکړ چې اې ام دحداح! هغې وویل، چې لبیک! هغه وویل، چې د باغ نه بهر ته راشه! ځکه چې دا باغ ما الله جَلَّ جَلَالُهُ ته قرض ور کړی دی.(۱)

مخکې بیان کړل شوی دی چې حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ما سره څلور زره درهمه دي چې په هغوی کې دوه زره خو زه خپل رب ته قرض ورکوم!

## د اسلام لپاره مال خرچ کول

### په دې باره کې د یو سړي حکایت:

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي کله چې به هم د رسول الله ﷺ نه په اسلام کې د داخلولو او په هغه باندې د مظبوطولو لپاره څه شی وغوښتل شو نو رسول الله ﷺ به هغه شی ضرور ورکاوه، نو د هغوی ﷺ په خدمت کې یو سړی راغی، حکم یې وکړ چې دې ته د صدقې له چېلیو نه دومره ډېرې ورکړئ! چې د دوو غرونو په منځ کې ټولې کندې پرې ډکې شي. هغه چېلۍ واخیستلې خپل قوم ته لاړ او هغوی ته یې وویل: چې اې زما قومه! تاسو اسلام راوړئ! ځکه چې رسول الله ﷺ دومره زیاته ورکړه کوي چې د هغه په خپل ځان باندې د لوږې هیڅ وېره هم نشته او په یو بل روایت کې داسې هم راغلي دي چې ځینې وخت به څوک رسول الله ﷺ ته یوازې د دنیا اخیستلو لپاره راته خو له ماښام کېدو نه مخکې به د هغه ایمان د رسول الله ﷺ د صحبت او بنایسته تربیت او د هغه د محنت له برکته دومره مضبوط کېده چې د رسول الله ﷺ دین به د هغه په نظر کې د دنیا او د دنیا له ټولو شیانو نه زیات محفوظ ګرځېده.(۲)

---

۱: عند ابی یعلی قال الهیثمی ۹/۳۲۴ رواه ابویعلی وارجالهما ثقات ورجال ابی یعلی رجال الصحیح انتهی واخرجه البزار عن ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نحوه باسناد ضعیف کما فی المجمع ۳/۱۱۳ واخرجه ایضا ابن منده کما فی الاصابة ۴/۵۹ وابن ابی حاتم کما فی التفسیر لابن کثیر ۱/۲۹۹ واخرجه الطبرانی عن عمر عن عمر بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بمعناه باسناد ضعیف کما فی المجمع ۳/۱۱۳

۲: اخرجه احمد کذا فی البدایة ۶/۴۶ واخرجه مسلم ایضا نحوه عن انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ۲/۲۵۳

**په دې باره کې دزيد بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حکايت:**

حضرت زيد بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو اعرابي سړی راغی او د رسول الله ﷺ نه يې د دوو غرونو په مينځ کې ځمکه وغوښتله، رسول الله ﷺ هغه ځمکه د هغه په نوم وليکله په دې باندې هغه مسلمان شو، بيا هغه خپل قوم ته لاړ او وې ويل چې تاسو اسلام راوړی دی! زه تاسو ته د داسې سړی له خوا نه راغلی يم چې د هغه سړی پشان د زړه له اخلاصه ورکړه کوي چې هغه ته د لوږې څه ويره او ډار نه وي.(۱)

**د صفوان بن اميه اسلام راوړل او د رسول الله ﷺ په باره کې د هغه بيان:**

د صفوان بن اميه د اسلام راوړلو په قصه کې تېر شوی دی چې رسول الله ﷺ گرځېده او راگرځېده او د غنيمت مال ته يې کتل، صفوان بن اميه هم له هغه سره وو. هغه هم کتل شروع کړل چې د جعرانه نومي ځائ ټول د څارويو، چېلو او شپونکيو نه ډکېده او ډېر وخته پورې يې ورته په غور کتل، رسول الله ﷺ هم غلي غلي کتل، وې فرمايل: اې ابو وهب! دا د صفوان کنيت دی، آيا ذا د غنيمت له مال نه ډک ځائ ستا خوښ دي؟ هغه وويل: هو! خوښ مې دی، رسول الله ﷺ وفرمايل: دا ټول ستا دي او په دې کې چې څومره د غنيمت مال دي هغه هم ستا دی دا يې چې واورېدل نو صفوان وويل: چې د دومره لوي سخاوت همت هم نبي کولی شي او د شهادت کلمه يې ولوسته او هلته مسلمان شو.(۲)

# په جهاد کې مال خرڅ کول

## د حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خرڅ کول

**د هغه انفاق او هغه څه چې د ابوقحافه او اسماء رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ترمينځ واقع شول:**

حضرت اسماء رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي کله چې رسول الله ﷺ له مکې نه د هجرت کولو لپاره روان شو او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل ټول مال پنځه يا شپږ زره درهمه څومره چې وو ټول يې واخيستل او له رسول الله ﷺ سره روان شو. چې زمونږ نيکه حضرت ابو قحافه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زمونږ کور ته راغی او د هغه نظر ختم شوی وو، هغه وويل: په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زما په خيال کې خو ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تاسو ته خفگان سره د مال تکليف هم دررسولی دی يعنې

---

۱: عند الطبراني قال الهيثمي ۹/۱۳ وفيه عبدالرحمن بن يحيى العذري وقيل فيه: مجهول وبقية رجاله وثقوا انتهى

۲: اخرجه الواقدي وابن عساكر عن عبدالله بن الزبير رضي الله عنهما كما في الكنز ۵/۲۹۴

هغه خو پخپله تللی دی زما خیال دا دی چې هغه مال هم تول وړی دي او ستاسو لپاره یې هیڅ هم نه دي پرېښي او ما واړه واړه کاڼي راواخیستل او د کور په هغه تاخ کې مې کېښودل په کوم کې چې به حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپل مال کېښوده، په هغه زمانه کې به درهم او دینار د وړو وړو کاڼو په شکل کې وو نو دارنگه د درهم او دینارو پشان کاڼي به یې ایښي وو. بیا ما په هغو کاڼو باندې یوه جامه واچوله بیا ما د خپل نیکه لاس ونیوه او ورته ومې ویل: چې باباجانه! خپل لاس په دې مال باندې کېږده! نو هغه خپل لاس په هغه باندې کېښود، هغه دا گڼل چې دا درهم او دینار دي نو هغه وویل: چې هیڅ خبره نه ده، که هغه ستاسو لپاره دومره مال پرېښي وي نو هغه ښه کړی دی په دې باندې به ستاسو گذاره وشي حضرت اسماء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وایي چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! هغه مونږ ته هیڅ نه وو پرېښي خو دا کار مې د نیکه د تسلی لپاره کړی وو .(۱)

او دا مخکې تېر شو چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د تبوک په غزا کې خپل ټول مال خرچ کړی وو چې د غه مال څلور درهمه وو.

## د حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مال خرچ کول

**په جیش العسرة کې د هغه انفاق او د هغه په باره کې د رسول الله ﷺ بیان:**

حضرت عبدالرحمن بن خُباب سلمي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ بیان وکړ او په جیش عُسرة(۲) یعنې د تبوک په غزا کې تلونکي لښکر، باندې د خرچ کولو ترغیب یې ورکړ، نو حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل: چې د کجاوې او د کټې سره سل اوښان زما په ذمه دي یعنې زه به یې ورکړم بیا رسول الله ﷺ د منبر نه یوه پوړۍ راکوز شو او بیا یې د خرچ کولو ترغیب ورکړ نو حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بیا وویل: چې د کجاوې او کټې سره سل اوښان نور زما په ذمه دي حضرت عبدالرحمن وایي چې ما رسول الله ﷺ په داسې حال کې ولیده چې د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په دومره زیات خرچ کولو باندې دېر زیات

---

۱: اخرجه ابن اسحاق كذا في البداية ٣/١٧٩ واخرجه احمد والطبراني بنحوه قال الهيثمي رجال احمد رجال الصحيح غير ابن اسحاق وقد صرح بالسماع انتهى.

۲- جیش العسره، د تبوک غزوه ته وایي، ځکه په دې غزا کې دېر مشکلات وو، له یوې خوا سفر دېر طولاني او دبلې خوا د گرمۍ موسم و، په داسې حال کې چې مسلمانان په فقر او فاقه کې وو (مترجم).

خوشحاله شو او د خوشحالۍ له وجې نه لاسونه يې داسې ښورول څنګه يې چې انسان د تعجب او حيرانتيا په وخت کې ښوروي په دې موقعه عبد الصمد راوي د پوهولو لپاره خپل لاسونه راووېستل او ښورولو سره يې وښودل او رسول الله ﷺ فرمايل که د دومره زيات خرچ کولو نه پس حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څه هم نفلي عمل ونه کړي نو هغه ته څه نقصان نشته، د بيهقي په روايت کې داسې دي چې رسول الله ﷺ درې ځله ترغيب ورکړ او حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له کجاوو او کتو سره درې سوه اوښان په خپله ذمه واخيستل حضرت عبد الرحمن وايي چې زه هغه وخت موجود ووم کله چې رسول الله ﷺ په منبر باندې دا فرمايل: چې دومره خرچ کولو نه وروسته يا يې وفرمايل: چې د نن نه وروسته به حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته هيڅ ګناه نقصان نه رسوي.(١)

حضرت عبد الرحمن بن سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي کله چې رسول الله ﷺ د جيش عُسره يعنې د تبوک د غزا لښکر تيار اوه، نو حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوره زر ديناره رسول الله ﷺ ته راوړل او د هغوی ﷺ په جولۍ کې يې واچول، رسول الله ﷺ هغه دينار راړول رااړول او دايې فرمايل: چې له نن نه وروسته کوم کار يعنې وړه ګناه يا خلاف اولي هم حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کوي نو ده ته به د هغې څه نقصان نه رسېږي دا خبره يې څو ځلي تکرار کړه.(٢)

حضرت حُذيفه بن يمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د جيش عُسره له مدد لپاره پيغام ولېږه، نو حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لس زره ديناره رسول الله ﷺ ته ولېږل، راوړنکي هغه دينار د رسول الله ﷺ په مخکې کېښودل هغوی ﷺ ځان ته مخامخ هغه دينار لاندې باندې اړول را اړول او حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يې دعا وکړه چې اې عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ! الله تعالى دې تا ته ښښنه وکړي! او کوم ګناهونه چې تا په پټه او په ښکاره کړی دی او کوم چې تا پټ ساتلي دي او کوم ګناهونه چې له تا نه تر قيامته پورې کېږي الله جَلَّ جَلَالُهُ دې هغه ټول درته معاف کړي له دې عمل نه وروسته عثمان چې هيڅ نېک عمل ونه کړي نو څه پرواه نشته.(٣)

---

١: اخرجه احمد كذا فى البداية ٥/٤ واخرجه ابونعيم فى الحلية ١/٥٩ بنحوه.

٢: اخرجه الحاكم ٣/١٠٢ قال الحاكم هذا حديث صحيح الاسناد ولم يخرجاه وقال الذهبى صحيح واخرجه ابونعيم فى الحلية ١/٥٩ نحوه عن عبدالرحمن وعن ابن عمر

٣: عند ابن عدى والدار قطنى وابى نعيم وابن عساكر كذا فى المنتخب ٥/١٢

انسان کله چې مري نو په هغه قيامت قائمېږي له ده دي وجې نه مطلب دا دی چې د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تر مرګه پورې چې څومره ګناهونه دي هغه دې الله جَلَّ جَلَالُهُ معاف کړي.

**حضرت عبدالرحمن بن عوف او اوه سوه اوښان د پړولو سره صدقه کول:**

حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي کله چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رسول الله ﷺ ته د جيش عسره د تيارۍ لپاره سامان ورکړ اووه سوه اوقې سره زر يې راوړل په دغه وخت کې زه هم دلته موجود ووم.(۱)

حضرت قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د تبوک په غزا کې يو زر سورلۍ ورکړې چې په هغه کې پنځوس اسونه وو.(۲)

حضرت حسن رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د تبوک په غزا کې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نهه سوه پنځوس(۹۵۰) اوښې او پنځوس اسونه ورکړي وو يا يې دا ويل نهه سوه اويا اوښې او دېرش اسونه يې ورکړی وو.

او دا مخکې تېر شوی دی چې د تبوک په غزا کې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د لښکر دريمې برخې ته د ضرورت سامان ورکړی وو تر دې چې ويلې شو چې د لښکر د دريمې برخې د لښکر د ضرورت هر شي هغه ورکړی وو.(۳)

**د حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مال خرچ کول**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په خپل کور کې وه چې هغې په مدينه منوره کې يو شور واورېده نو هغې پوښتنه وکړه چې دا څه دي؟ خلکو ويل چې د حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تجارتي قافلې د شام له ملک نه د ضرورت ټول شيان اخيستي را روانه ده. حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې په دې قافله کې اووه سوه اوښان وو. او ټوله مدينه منوره د دې شور له اواز نه کړنګېدله، په دې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمايل: چې ما د رسول الله ﷺ نه دا اورېدلی دی چې ما ليدلی دی چې عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په زنګنونو ښويېدونکي جنت ته داخلېږي. دا خبرې حضرت عبدالرحمن ته ورسېدله نو هغه وويل چې زه به پوره کوشش کووم چې زه جنت ته

---

۱: اخرجه ابويعلى والطبراني قال الهيثمي ۹/۸۵ وفيه ابراهيم بن عمر بن ابان وهو ضعيف انتهى.
۲: اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۵۹ ، عند ابن عساكر كذا في المنتخب ۵/۱۳.
۳: عند ابن عساكر كذا في المنتخب ۵/۱۳

قدمونو اخيستلو سره تلونکی داخل شم او دا يې وويل او خپله ټوله قافله يې د ټول تجارت له سامان او کجاوو سره د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لار کې صدقه کړل.(١)

حضرت زُهري رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په زمانه کې خپل نيم مال څلور زره درهمه د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې صدقه کړل بيا يې څلوېښت زره صدقه کړې بيا يې څلوېښت زره ديناره صدقه کړل بيا يې پنځه سوه اسونه د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لار کې ورکړل بيا يې يو نيم زر اوښان د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې ورکړل په داسې حال کې چې د هغه زياتر مال په تجارت کې ګټل شوي وو.(٢)

حضرت زهري رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په زمانه کې د خپل مال نيمه برخه صدقه کړه بيا يې وروسته څلوېښت زره دينار صدقه کړل بيا پنځه سوه اسونه او پنځه سوه اوښان صدقه کړل او هغه اکثر مال د تجارت له لارې ګټلی وو.(٣)

مخکې په اوله برخه کې دا تېر شوی دی چې حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د تبوک په غزا کې دوه سوه اوقيې صدقه کړې وې.

**د الله تعالى په لاره کې د حضرت حکيم بن حزام رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ انفاق**

حضرت ابو حازم رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې مونږ په مدينه منوره کې د چا په باره کې هم داسې نه دي اورېدلي چې هغه دې له حکيم بن حزام رَحِمَهُ اللَّهُ نه زياتې سورلۍ د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې ورکړې وي يو ځل دوه بانډيچيان مدينې منورې ته راغلل او دا سوال يې وکړ چې څوک به د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې سورلۍ راکړي؟ خلکو هغوی دواړو ته د حکيم بن حزام په اړه وويل چې هغه به تاسو ته د سورليو بندوبست وکړي چې په دې سره هغوی دواړه د حکيم بن حزام کور ته لاړل، بانډيچيانو چې څه غوښتل هغه يې حکيم بن حزام ته وويل: حکيم بن حزام وويل: تاسو تعدي مه کوئ! لږ ايسار شئ! زه اوس تاسو ته بهر ته راوځم! بانډيچيان د حزام بن حکيم له کوره د باندې په انتظار ولاړ وو، کله چې حکيم بن حزام راووت نو له مصر نه راوړل شوې جامې يې اغوستې وې، يو غلام او امسا ورسره وو. له بانډيچيانو

---

١: اخرجه احمد واخرجه ابونعيم فى الحلية ١/٩٨ عن انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بنحوه وابن سعد ٣/٩٣ عن حبيب بن ابى مرزوق بمعناه قال فى البداية ٧/١٦٤ فى مسند احمد تفرد به عمارة بن زاذان الصيد لانى وهو ضعيف

٢: اخرجه ابونعيم فى الحلية ١/٩٩ وهكذا ذكره فى البداية ٧/١٦٣ عن معمر عن الزهرى الا انه قال حمل على خمس مائة راحلة فى سبيل الله

٣: اخرجه ايضا ابن المبارک عن معمر كذا فى الاصابة ٢/٤١٩

سره يو ځایٔ د بازار پر خوا روان شو، کله به چې په لاره کې په کوم دېران باندې څه داسې جامه په نظر ورتله چې د اوښانو د سامان په مرمت کې پکار راتله نو په خپله امسا به یې هغه هم را اوچته کړه، وبه یې څنډله بیا به یې خپل غلام ته وویل: چې د اوښانو د سامان د مرمت په شیانو کې دا هم کېږده، حضرت حکیم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یوه جامه را اوچتوله چې په دې کې یوه باندیچي خپل بل ملګري ته وویل: چې له ده نه مو خلاص کړه! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! له ده سره خو یوازې د دېران جامې دي نو دي به مونږ ته د سورلیو لپاره څنګه څاروي واخلي؟ بل ملګري یې ورته وویل: چې عجله مه کوه! اوس لږ نور هم انتظار وکړه! لنډه دا چې دا دواړه باندیچیان حضرت حکیم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بازار ته بوتلل او هلته یې دوه ښې غټې، چاغې، چوبندې او بلاربې اوښې دغو دواړو باندیچیانو ته سره له خپل سامانه واخیستلې بیا یې خپل غلام ته وویل: چې د سامان د مرمت که څه ضرورت وي نو له هغو راټولو شویو ټوټو څخه یې وکړه! همدارنګه یې ورته د خوراک لپاره په دواړو اوښانو باندې خوراک، غنم او وازده هم کېښودل او باندې چیانو ته یې د لارې خرڅه هم ورکړه او رخصت یې کړل، په دې کې یوه باندیچي خپل بل ملګري ته وویل: چې ما نن له ده غوره سخي د جامو ټولوونکي څوک هم نه دی لیدلی.(۱)

**حضرت حکیم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او خپل کور د خدای په لاره کې صدقه کول:**

حضرت حکیم بن حزام رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپل کور په حضرت معاویه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ باندې په شپېته زره خرڅ کړ خلکو حضرت حکیم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وویل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! حضرت معاویه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ارزانه واخیسته او تاته یې په قیمت کې نقصان درکړ، حضرت حکیم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل: هیڅ خبره نه ده، په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ما هم دا کور د جاهلیت په زمانه کې یوازې په یوه مشک شرابو باندې ارزانه اخیستی دی، په دې حساب ما ته ډېر زیات قیمت ملاو شوی دی، زه تاسو شاهدان کووم! چې د دې ټول قیمت د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې د مسکینانو په امداد کې او د غلامانو په ازادولو کې خرڅ کووم! اوس ووایئ! چې په مونږ دواړو کې کوم یو په نقصان کې دی؟ او په بل روایت کې راځي چې هغه دغه کور په یو لک خرڅ کړی وو .(۲)

---

۱: اخرجه الطبرانی کذا فی مجمع الزوائد ۹/۳۸۴

۲: اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ۹/۳۴۸ رواه الطبرانی باسنادین احدهما حسین انتهی

# د ابن عمر او نورو صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ انفاق

**د الله تعالى په لاره کې د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا سل اوښان صدقه کول:**

حضرت نافع رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپله يوه ځمکه د دوو سوو اوښانو په بدله کې خرڅه کړه، بيا يې په هغه کې سل اوښې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې تلونکو ته ورکړې او هغوى يې د دې خبرې پابند کړل چې د غه خلک وادي قُرى نومي ځائ باندې د تېرېدلو نه مخکې به په دوي کې هيڅوک اوښه نه خرڅوي.(۱)

مخکې په اوله برخه کې د رسول الله ﷺ د جهاد او د مال لګولو د ترغيب ورکولو په باره کې تېر شوى دي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د تبوک د غزا په وخت کې سل اوقيې يعنې څلور زره درهم ورکړل او حضرت عاصم بن عدي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لس کم سل وسقه چې تقريباً پنځه سوه منه کجهورې خرما يې ورکړې او حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت سعد بن عُباده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت محمد بن مسلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رسول الله ﷺ ته ډېر زيات مال راوړ ورېې کړ او په اوله برخه کې بيان کړي شوي دي، چې يو صحابي يوه اوښه د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې ورکړې ده او حضرت قيس بن سلع انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په جهاد کې ډېر سامان خرچ کړى دى.

# د حضرت زينب بنت جحش او نورو صحابياتو رَضِيَ اللهُ عَنْهُنَّ انفاق

**د هغې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا صدقه او هغه څه چې نورو ښځو په غزوه تبوک کې را لېږلي وو:**

حضرت عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې رسول الله ﷺ خپلو بيبيانو ته وفرمايل: چې زما د دنيا نه د تلو نه وروسته په تاسو کې به تر ټولو لومړي ما سره هغه څوک ملاوېږي؟ چې د چا لاس تر ټولو نه زيات اوږد وي، حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې د دېنه پس ازواج مطهراتو به په خپل منځ کې د دې لپاره مقابله کوله تر څو يې يو له بلې نه لاس اوږد شي، مونږ هم د لاس اوږدوالي ګانه خو د لاس اوږدوالي نه د رسول الله ﷺ مراد سخاوت او د زيات مال خرچ کول وو، له دې وجې نه په مونږ کې تر ټولو زيات اوږد لاس لرونکې حضرت زينب وختله، ځکه چې هغې به پخپلو لاسونو کار کوه او هغه ګټه به يې صدقه کوله، په بل روايت کې داسې راغلي دي چې حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا چې د رسول الله ﷺ

۱: اخرجه ابونعيم فى الحلية ٣٦٦/١

له وفات نه وروسته مونږ به چې په خپلو کې د چا په کور کې راجمع کېدلو نو خپل لاسونه به مونږ دېوال ته اوچت کړل او ناپ کول به مو چې د چا لاسونه اوږده دي؟ مونږ به هم دا شان کول تر دې چې د ټولو نه اول حضرت زینب بنت حجش رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفات شوه، حضرت زینب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د وروکي قد والا ښځه وه او مونږ ټولو کې اوږد قد والا نه وه د حضرت زینب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ټولو نه مخکې وفات کېدو سره مونږ ته پته ولګېده چې د لاسونو اوږدوالي نه مراد د رسول الله ﷺ زیاته صدقه کول وو.(۱)

د طبراني په روایت کې داسې راغلي دي چې حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې حضرت زینب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به وړې وړېشلې او د رسول الله ﷺ لښکرو ته به يې په کار راوستل.(۲)

په اوله برخه کې دا مضمون تېر شوی دی چې د تبوک د غزا په تیارېدو کې د مسلمانانو د امداد لپاره ښګړي، کړي، د پښو کالي، والۍ او ګوتمۍ يې لېږلې وې.

## په فقیرانو، مسکینانو او حاجتمندو خلکو مال خرچ کول

**د یوې باندېچې ښځې او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا حکایت:**

حضرت عُمیر بن سلمه دُئلي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: یو ځل حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ماسپښین په وخت کې د یوې ونې په سیوري کې ویده وو چې په دې کې یوه باندیچې ښځه مدینې منورې ته راغله او خلکو ته يې د ېر په غور سره کتل چې په دوي کې کوم یو زما کار کولی شي او په کتلو کتلو سره هغه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورسېدله، هغه يې چې ولیده نو تسلي يې وشوه، چې دا سړی به زما په کار راشي، هغې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل چې زه یوه مسکینه ښځه یم! او زما ډېر بچي دي او امیرالمؤمنین حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زمونږ علاقې ته د صدقاتو د اخیستلو لپاره حضرت محمد بن مسلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ را لېږلی ؤ، هغه صدقات واخیستل او مونږ ته يې هیڅ هم رانه کړل، الله جَلَّ جَلَالُهُ دې پر تا رحم او کرم وکړي ته هغه ته زمونږ سفارش وکړه! کېدی شي چې هغه ستا خبره ومني. نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له خپل دربار نه یرفا ته اواز وکړ او وې ویل: چې حضرت محمد بن مسلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ را وغواړه! او ما ته يې راوله! هغې ښځې ورته وویل: چې زما د ضرورت د پوره کېدو لپاره که چېرې ته له

---

۱: اخرجه الشیخان واللفظ لمسلم کذا فی الاصابة ۴/۳۱۴

۲: اخرجه الطبرانی فی الاوسط قال الهیثمی ۸/۲۸۹ ورجاله وثقوا وفی بعضهم ضعف.

ما سره هغه ته لاړ شي نو کېدی شي ضرورت مې پوره شي، خو هغې ښځې ته دا نه وه معلومه چې همدا پخپله حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ امير المؤمنين دی، عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل: چې زما په رابللو به ان شاء الله ضرورت پوره شي، حضرت يرفا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لاړ او حضرت محمد بن مسلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يې وويل چې راشه! امير المؤمنين دې غواړي! حضرت محمد بن مسلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی او وې ويل: السلام عليک يا امير المؤمنين! د محمد بن مسلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له دې خبرې سره ښځه پوهه شوه چې همدا پخپله امير المؤمنين دې، نو هغه ډېره شرمنده شوه، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ محمد بن مسلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل: په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه خو په تاسو کې د غوره سړي په ټاکلو کې څه کم والی نه کووم! کله چې الله جَلَّ جَلَالُهُ له تا څخه د دې ښځې په باره کې پوښتنه وکړي نو ته به څه ځواب ورکوې؟ د حضرت محمد بن مسلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په سترګو کې اوښکې راغلې بيا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل: چې الله جَلَّ جَلَالُهُ خپل رسول ﷺ مونږ ته راولېږه مونږ د هغه تصديق وکړ او د هغه تابعداري مو وکړه، الله جَلَّ جَلَالُهُ چې رسول الله ﷺ ته کوم حکم ورکولو آنحضرت ﷺ به پرې عمل کاوه، رسول الله ﷺ به چې صدقات واخيستل نو مستحقو مسکينانو ته به يې ورکول او د هغوی عادت هم دغسې وو تر دې چې الله جَلَّ جَلَالُهُ خپل ځان ته وبللو ،بيا الله جَلَّ جَلَالُهُ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ خليفه جوړ کړ نو هغه هم د رسول الله ﷺ په طريقه باندې عمل کولو تر دې چې هغه هم الله جَلَّ جَلَالُهُ خپل ځان ته وباله، بيا الله جَلَّ جَلَالُهُ زه د غه خليفه جوړ کړم! او ما په تاسو کې د غوره سړی د مقررولو کې چېرې هم کمی نه دی کړی اوس که چېرې زه تا ولېږم! نو دې ښځې ته د دې کال او تېر شوی کال برخه له صدقاتو نه ورکړه! او ما ته معلومه نه ده شايد اوس زه تا د صدقاتو اخيستو لپاره ونه لېږم! بيا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغې ښځې لپاره يو اوښ را وغوښته، او هغې ته يې اوړه او غوړي ورکړل او ورته يې وفرمايل: چې دا واخله! بيا ما ته خيبر ته راشه! ځکه چې اوس ما خيبر ته د تلو اراده کړې ده، نو دغه ښځه بيا خيبر ته حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورغله، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دوه نور اوښان هم ورکړل او ورته وې ويل چې د محمد بن مسلمه تر درتګ پورې به دا ستا لپاره کافي وي او ما حضرت محمد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته حکم کړی دی چې هغه به تا ته ستا د دې کال او د تېر شوی کال برخه درکړي.(۱)

۱: اخرجه ابوعبيد في الاموال كذا في الكنز ۲/۳۱۹

**د بنت خفاف بن ايماء غفاري اوحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا واقعه:**

حضرت اسلم رَحِمَهُ اللهُ وايي چې يو ځل زه حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره بازار ته لاړم! هغه سره يوه ځوانه ښځه مخ شوه او هغې ورته وويل، چې اې اميرالمؤمنين! زما خاوند وفات شوی دی او هغه واړه واړه بچي پرېښې دي او هغوی په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! د ققيرۍ او لوږې له وجې نه د څاروو پښې هم نشي پخولي، د عربو ملک کې به خلکو پښې هسې ورکولې، يعنې خرڅولې به يې نه! نه د هغوی څه پټي شته او نه د شيدو لپاره څاروي لرو! او ما ته دا وېره ده چې چېرته د قحط سالۍ نه مړه نه شي، او د حضرت خُفاف بن ايماء غفاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لور يم! زما پلار رسول الله ﷺ سره حديبيه کې شريک شوي وو، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له هغې ښځې سره ولاړ وو، خبرې يې اورېدلې او مخکې لانه ړو، بيا يې وفرمايل: ښخير راغلې! نيزدې رشته داره را ووتلې يعنې د غفار قبيلې زمونږ د قريشو له قبيلې سره خپلولي ده، يا دا چې ته د يوه مشهور صحابي په خپلوانو کې يې! بيا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له هغه ځای نه بېرته کور ته راغی. د هغوی په کور کې د يوه ښه بار وړولو والا اوښ تړلی وو، دوه بوجې يې له غلې نه ډکې کړې او په هغه اوښ باندې يې بار کړې، د دواړو بوجيو په منځ کې يې د خرڅ لپاره پيسې او جامې کېښودې او د دغه اوښ مهار يې د هغې ښځې په لاس ورکړ او ورته يې ويل: دا اوښ بوځه! ان شاء الله د دې شيانو ختمېدو نه مخکې به الله جَلَّ جَلَالُهُ ستا لپاره غوره انتظام وکړي يو سړی وويل: اې اميرالمؤمنين! تاسو دې ښځې ته ډېر زيات شيان ورکړل، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل، ستا مور دې تا ورک کړي د دې ښځې پلار له رسول الله ﷺ سره په حديبيه کې شريک شوی وو او په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ما د دې ښځې ورور او پلار په داسې حال کې ليدلی دی چې تر څه موده پورې يې يوه کلا محاصره کړې وه بيا يې هغه کلا فتح کړه او مونږ له هغې کلا نه خپلې برخې په ښه شان سره وصول کړې نو ځکه چې دا ښځه د ډېرو ديني فضائلو والا د خاندان ښځه ده د هغې د وجه مې دې ته زيات شيان ورکړل.(۱)

**دشام والي سعيد بن عامر بن حِذيم جُمحي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اخلاق**

حضرت حسان بن عطيه رَحِمَهُ اللهُ وايي، کله چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت

---

۱: اخرجه ابوعبيده في الاموال والبخاری والبيهقی كذا في الكنز ۳/۱۴۷

معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د شام د ملک له گورنر(والي) ی. (والیتوب)نه لرې کړنو د هغه ځائ یې حضرت سعید بن عامر بن حذیم جمحي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته پرېښود او هغه یې د شام د گورنر(والي) ی لپاره ولېږه، هغه خپله ځوانه بي بي هم له ځان سره بوتله چې د هغې مخ ډېر زیات ښایسته وو او هغه د قریشو له قبیلې ځخه وه، لږې ورځې تېرې شوې وې چې د لوږې او تنگسیا زمانه شروع شوه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د دې خبر ورسېد نو هغه ورته زر دیناره راولېږل، هغه یې واخیستل او خپلې بي بي ته کور ته ورغی او ورته وې ویل: چې ته چې دا کوم دینار وینې! دا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ را لېږلی دی هغې وویل زما زړه دا غواړي چې زمونږ لپاره په دې باندې د ترکاري سامان او غله واخله! او پاتې دی نار سنبال کېږده! چې چېرته به بیا پکار راشي. حضرت سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل: چې زه تا ته د دې دینارو د مسرفولو له دې نه غوره صورت ونه ښایم! چې دا مال یوه سوداگر ته ورکړو چې هغه به په دې مال باندې تجارت کوي او مونږ به د هغه گټه خورو، او زمونږ د دې مال ذمه واري به هم په هغه باندې وي، بي بي یې ورته وویل: چې بیا خو دا خبره صحیح ده نو هغه د ترکاري لپاره سامان او غله واخیستله او دوه اوښان او دوه غلامان یې واخیستل، چې غلامانو په همدې دوه اوښانو باندې د ضرورت سامان راجمع کړ او دا ټول هر څه یې په مسکینانو او حاجتمندو باندې تقسیم کړ، څه موده پس یې بي بي ورته وویل: چې د طعام سامان ختم شوی دئ، ته هغه سوداگر ته ورشه! او کومه گټه چې شوې وي له هغې نه څه راواخله! او زمونږ لپاره د طعام سامان واخله! حضرت سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چُپ وو هغې دوباره بیا ورته وویل: دې بیا هم چپ وو اخر هغه په تنگ شوه او د ده تنگول یې شروع کړل، په دې خبره هغه د ورځې کور ته راتلل پرېښودل، یوازې د شپې به کور ته راته، د هغه کوروالاوو کې یو سړی وو کوم به چې هغه سره کور ته راته، هغه د ده بي بي ته وویل: دا ته څه کوې؟ تا خو ده ته ډېر تکلیف رسولی دی، ده خو ټول مال صدقه کړی دی، دې اورېدو سره د حضرت سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ښځه له ډېر خفگان ځخه په ژړا شوه، بیا څه موده پس یوه ورځ حضرت سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپلې بي بي ته کور ته راغی او ورته وې ویل: هم د غسې په ارام ناسته اوسه! زما چې څه ملگري وو هغه لږ موده مخکې له ما نه جدا شوي وو، له دې دنیا ځخه لاړل که چېرې ما ته ټوله دنیا هم ملاو شي نو ما ته هم د هغوی لاره پرېښودل خوښ نه دي ځکه چې که چېرې د جنت له هغو ښایسته حورو نه

یوه حوره د دنیا سامان ته راښکاره شي نو ټوله ځمکه به د هغې له رڼا نه روښانه شي او د هغې د مخ رڼا به د لمر او سپوږمۍ په رڼا باندې غالبه شي او کومه لوپټه چې د هغې په سر وي هغه د دنیا او په دنیا کې چې هر څه دي له هغو نه قیمتي ده اوس زما لپاره خو دا اسانه ده چې د هغو حورو لپاره تا پرېږدم! خو ستا لپاره زه هغوی نه شم پرېښودلی ! د دې په اورېدو سره هغه نرمه شوه او په دې باندې راضي شوه.(۱)

**په دې باره کې دحضرت عبدالرحمن بن سابط حدیث:**

ابونعیم هم دا واقعه له حضرت عبدالرحمن بن سابط جُمحي رَحِمَهُ اللَّهُ نه نقل کړې ده او په هغه کې دا مضمون هم دی کله چې به حضرت سعید بن عامر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته تنخوا رسېدله نو د کوروالاو لپاره به یې د ضرورت سامان اخیسته او پاتې به یې صدقه کوله نو د هغه بي بي به هغه ته ویل چې ستا پاتې تنخوا څه شوه؟ هغه به ورته ویل چې په قرض کې مې ورکړې ده! د هغه دا عمل یې چې لیده نو څه خلک راغلل او هغه ته یې وویل چې ستا د کوروالا په تا باندې حق دی او ستا د سخرګنی په تا باندې حق دی نو حضرت سعید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل: چې ما د هغوی حقونو کې چېرته هم چا ته په هغوی باندې ترجیح نه ده ورکړې، زه د غټو سترګو والا حورې حاصلول غواړم! نو زه چېرې هم یو انسان دا شان خوشحالول نه غواړم! چې په هغې سره د حورو په ملاوېدو سره کمي راشي یا هغه ملاو نه شي. ځکه چې که چېرته د جنت یوه حوره هم راښکاره شي نو د هغې په وجه به ټوله ځمکه داسې ځلېږي لکه څنګه چې لمر ځلېږي، زه جنت ته تر ټولو نه اول تلونکې ډلې نه وروسته پاتې کېدلو لپاره بلکل تیار نه یم! یعنې جنت له تلونکې اولې ډلې سره ځم! چې ما د رسول الله ﷺ نه دا اورېدلی دی چې الله جَلَّ جَلَالُهُ به د قیامت په ورځ ټول خلک جمع کړي نو فقیران مؤمنان به جنت طرفته داسې تېزۍ سره ځي څنګه چې کوتره خپلې جالې طرفته وزرونه خواره کړي او تېزۍ سره کوزېږي، ملایکې به ورته وایي چې ودرېږئ! حساب ورکړئ! بیا ځئ! هغوی به ورته وایي چې مونږ سره د حساب لپاره څه شته دي نو رایې کړئ! مونږ سره څه وو چې مونږ یې حساب ورکړو؟ په دې باندې به د هغوی رب جَلَّ جَلَالُهُ ووایي چې زما بنده ګان صحیح وایي بیا به د هغوی لپاره د جنت دروازه خلاصه شي او له نورو خلکو نه به دا خلک اویا کاله مخکې جنت ته ننوځي، د

---

۱: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۲۴۴

همدې په دويمه برخه کې د حضرت سعيد بن عامر رضي الله عنه دا قصه تېره شوې ده چې هغه خپلې بي بي ته وويل، ايا ته له دې نه غوره خبره غواړې؟ چې مونږ دا دى نار هغه چا ته ورکړو چې هغه به مونږ ته په سخت وخت کې په کار راکوي، د هغه بي بي وويل: چې صحيح ده، نو هغه له کور نه بهر يو سړې را وغوښت او هغه ديناريې په دړو بوجيو کې ونغښتل او ورته وې ويل: چې لاړ شه! دا دى نار دفلانکي او فلانکي خاندان کونډو، مسکينانو، فقيرانو او مصيبت وهلو خلکو ته ورکړه! دينارو نه لږ شان چې کوم پاتې شول نو هغه يې خپلې بي بي ته ورکړل او ورته وې ويل: دا چې خرچ کړه! او بيا د خپلې کورنۍ په کار کې مشغول شو، څو ورځې وروسته د هغه بي بي وويل، آيا ته زمونږ لپاره څه خدمتګار نه اخلې؟ هغه مال څه شو؟ حضرت سعيد رضي الله عنه ورته وويل هغه مال به تاسو ته د سخت ضرورت په وخت کې بېرته درکول کېږي.(۱)

### د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما انفاق

حضرت نافع رحمه الله وايي چې يو ځل حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه مريض شو نو د هغه لپاره يې په يو درهم باندې د انګورو يوه غنچه واخيستل شوه کله چې هغه غنچه د هغه په مخکې کېښودل شوه نو هغه وخت يو مسکين راغی او سوال يې وکړ هغه وويل، دا غنچه مسکين ته ورکړه! په دې سره کورو الاوو هغه د انګورو غنچه هغه مسکين ته ورکړه! او مسکين هغه واخيستله او روان شو. د کور يو سړی لاړ له مسکين نه يې هغه غنچه په يوه درهم واخيسته ځکه چې بازار کې دغه وخت انګور نه ملاوېدل، له له دې وجې نه يې له هغه نه واخيستله او د حضرت ابن عمر رضي الله عنه په خدمت کې يې مخکې کره! هغه مسکين راغی بيا يې سوال وکړ هغه وفرمايل، دا هغه مسکين ته ورکړئ! کورو الاوو بيا هغه غنچه مسکين ته ورکړه او مسکين لاړ، له کور نه يو سړی بيا لاړ او له هغه مسکين نه يې هغه غنچه بيا په يوه درهم واخيسته او رايې وړله، بيا يې د حضرت ابن عمر رضي الله عنه په مخکې کېښوده، هغه مسکين بيا راغی او سوال يې وکړو، هغه وفرمايل: دا مسکين ته ورکړئ! لنډه دا چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه بيا مسکين ته غنچه ورکړه، له کور نه يو سړی بيا لاړ او هغه يې په يوه درهم بېرته له مسکين نه واخيستله، د حضرت ابن عمر رضي الله عنه په

---

۱: اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۲۴۵

ورانديږيې پېش کړه خو دا ځل چې مسکين راغی نو د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کورو الاوو هغه منع کړو او پرې يې نه ښود چې له حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه بيا سوال وکړي. خو که چېرته حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته پته لګېدلې واې چې مسکين يې له سوال نه منع کړی دی او غنچه يې هم له مسکين نه په يوه درهم اخيستې ده نو هيڅ کله به حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دغه انګور څکلي نه واې.(۱)

ابونعيم هم دا واقعه په يوه بل سند سره نقل کړې ده چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يوه ځل مريض شو د هغه انګورو خوړلو ته زړه وشو، ما د هغه لپاره د انګورو يو وګی يا غنچه په يوه درهم واخيستله او راغلم! د هغه په لاس کې مې کېښود له مخکې د حديث مضمون د تېر شوی حديث په شان دی او د هغه په اخر کې داسې راغلي دي چې هغه سوالګري بيا بيا راتله او هغه به هر ځل د غونچې د ورکولو حکم کولو او مونږ به هغه ته ورکوله، بيا به مونږ له هغه نه اخيستله او راوړله به مو! تر دې چې ما سوالګري ته دريم يا څلورم ځل ورېل، چې هلاک شې! ته شرمېږې نه! چې هر ځل واپس راځې؟ او بيا بيا يې غواړې! نو ما له هغه نه په يوه درهم واخيستله او هغه ته مې ورکړه! او هغه سوالګري د منع کولو په وجه باندې دا ځل رانغی نو هغه اخر هغه د انګورو غنچه وخوړله.(۲)

**د حضرت عثمان بن ابي العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مال خرچ کول**

حضرت نضره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: يوه ورځ حضرت عثمان بن ابي العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورغلم، هغه يوه تشه کوټه لرله چې د خلکو سره به يې ملاقاتونه پکې کول، يو سری يو ښه او بښ د هغه په مخکې بوتلو، پوښتنه يې ترې وکړه، دا دې په څو واخيستو؟ هغه ورېل: په دولس درهمه حضرت عمر بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته ورېل، که دولس درهمه مې دلودل دا به مې اخيستې وې او قرباني کولو مې او پخپل اهل وعيال مې خوړلو، کله چې زه پاڅېدم (زه ډېر حاجتمند وم) نو يوه کيسه يې را وليږله چې پنځوس درهمه پکې وو، ما د هغو په شان برکتي درهمونه نه وو ليدلي، هغه دا درهمونه ماته را وليږل خو د هغه ثواب اميد هم درلودلو. (۳)

---

۱: اه ابونعيم فی الحلية ۱/۲۹

۲: واخرجه ايضا نحو السياق الاول مختصرا ابن المبارک کما فی الاصابة ۲/۳۴۸ والطبرانی کما فی المجمع ۹/۳۴۷ وابن سعد ۴/۱۱۷ قال الهيثمی رجال الطبرانی رجال الصحيح غير نعيم بن حماد وهو ثقة

۳- اخرجه الطبرانی قال الهيثمی ۹/۳۷۱ رجاله رجال الصحيح

# د حضرت عائشې رضي الله عنها انفاق او مال خرچ کول

**د حضرت عائشې رضي الله عنها او یوې مسکینې ښځې واقعه:**

حضرت امام مالک رحمه الله په موطا کې نقل داسې نقل کړې دی چې د رسول الله ﷺ د محترمې بي بي حضرت عائشې رضي الله عنها روژه وه، له هغې نه یوه مسکین سوال وکړ، د هغې په کور کې یوازې یوه ډوډۍ وه، هغې خپلې وینځې ته وویل: چې دا ډوډۍ هغه مسکین ته ورکړه! وینځې ورته وویل: چې له دې ډوډۍ نه پرته ستا د روژه ماتې لپاره بل هیڅ هم نشته، حضرت عائشې رضي الله عنها ورته وفرمایل: هیڅ خبره نه ده! ته یا هم هغه ته دا ډوډۍ ورکړه! نو وینځه وایي چې ما هغه ډوډۍ مسکین ته ورکړه، کله چې ماښام شو نو د یوه داسې کور والا یا یوه داسې سړي چې هیڅ‌ري به یې هم مونږ ته هدیه نه راکوله، مونږ ته یې یوه پخه شوې چېلۍ او ورسره د پرې ډوډۍ په هدیه کې راولیږلې، حضرت عائشې رضي الله عنها زه راوغوښتم! او وې فرمایل: له دې څخه یې وخوره! دا ستا تر ډوډۍ غوره ډوډۍ ده.(۱)

امام مالک رحمه الله وایي: ما ته دا خبره رارسېدلې ده چې یو مسکین د رسول الله ﷺ محترمې بي بي حضرت عائشې رضي الله عنها نه د خوراک لپاره څه وغوښتل، حضرت عائشې رضي الله عنها ته انګور مخې ته د خوراک لپاره پراته وو، هغې یوه کس ته وویل: چې د انګورو یوه دانه واخله! او هغه ته یې ورکړه! هغه د حضرت عائشې رضي الله عنها خوا ته یا هغې دانې طرفته په حیرانتیا سره وکتل نو حضرت عائشې رضي الله عنها وویل: تعجب کوې؟ په دې دانه کې تا ته څو مره ذرې په نظر درځي دې فرمایلو سره هغې د لاندې ایت طرفته اشاره وکړه چې: فَمَن يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ ۝(۲)

ترجمه: نو کوم سړی چې دنیا کې د ذرې په اندازه نیکي وکړي نو هغه به هلته یې وویني.

# مسکینانو ته په خپل لاس څه ورکول

**د حارثه بن نعمان رضي الله عنه واقعه:**

حضرت عثمان رضي الله عنه وایي چې د حضرت حارث بن نعمان رضي الله عنه د سترګو نظر ختم شوی

---

۱: اخرجه مالک فی الموطا ۳۹۰/ انه بلغه عن عائشة رضي الله عنها

۲- سورة زلزال آیت ۷.

وو هغه د خپل مونځ له ځای نه د خپلې کوټې تر دروازې پورې يو ه رسی، تړلې وه کله به دروازې ته څوک مسکين راتلو نو د خپلې تو کری نه به يې څه واخيستل او رسی به يې ونيوله دروازې پورې به ته او په خپل لاس به يې هغه مسکين ته څه ورکول، کور والاوو به ورېل چې ستا په ځای به مونږ لاړ شو مسکين ته به يې ورکړو هغه وفرمايل، چې ما له رسول الله ﷺ نه اورېدلی دی چې مسکين ته په خپل لاس باندې څه ورکول له خراب مرګ نه سړی ژغوري.(۱)

## په خپل لاس مسکين ته د څه ورکولو فضيلت

حضرت عمرو ليثي وايي چې مونږ د حضرت واثله بن اسقع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره وو هغه ته يو سوالگر راغی هغه د ډوډۍ يوه ټوټه واخيستله او په هغې له پاسه يې يوه پيسه کېښودله او په خپله لاړ د ډوډۍ هغه ټوټه يې د هغه په لاس کې کېښودله ما هغه ته وويل، چې اې ابوالاسقع! ستا په کور کې داسې څوک شته دي خو چې هغه ستا په ځای دا کار وکړي؟ هغه وويل، سړی خو شته دي خو کله چې مسکين ته د صدقې ورکولو لپاره روان شي نو د هغه د هر قدم په بدله کې يوه ګناه معاف کېږي، او کله چې لاړ شي او هغه شي د مسکين په لاس کې کېږدي نو د هر قدم په بدله کې لس ګناهونه معاف کېږي.(۲)

**دحضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا واقعه:**

حضرت نافع رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به روزانه د شپې خپل ټول کور والا راټولول او ټولو به د هغه لويې پيالې نه خوراک کولو د خوراک په وخت کې به چې څيني وخت هغه د مسکين اواز واورېده نو خپله برخه غوښه او ډوډۍ به يې يو رله او هغه ته به يې ورکړه، څو مره وخت کې به د کور والاوو پياله ختمه کړې وه که چېرې ما ته به په هغه پياله کې څه ملاوېدل نو هغه ته به هم ملاوېدل بيا به هم په دغه حالت کې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سهار ته روژه نيوله.(۳)

---

۱: اخرجه الطبرانی والحسن بن سفيان عن محمد بن عثمان کذا فی الاصابة ۱/۲۹۹ واخرجه ابونعيم فی الحلية ۱/۳۵۶ وابن سعد ۲/۵۲ عن محمد بن عثمان عن ابيه نحوه.
۲: اخرجه ابن عساکر کذا فی الکنز ۳/۳۱۵
۳: اخرجه ابن سعد ۴/۱۲۲

# په فوښتونکو باندې مال خرځ کول

**د رسول الله ﷺ او يو باندېچي واقعه:**

حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې يو ځل رسول الله ﷺ جومات تشريف راوړ، په هغه باندې د نجران د يمن د يو ښار جوړ شوې يو څادر وو چې د هغه غاړه پلنه وه د هغوی ﷺ نه وروسته يو باندېچي راغی، هغه د رسول الله ﷺ د څادر غاړه ونيوله، دومره په زوره يې راښکه چې د هغه په څټ مبارک باندې د هغه غټې غاړې راښکلو سره نښه جوړه شوه، او هغه ووېل: اې محمده ﷺ! کوم مال چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ له تا سره دی له هغه نه يې مونږ ته هم راکړه! رسول الله ﷺ د هغه خوا ته متوجه شو، او مسکی شو ويې فرمايل: ده ته ضرور څه ورکړئ!(۱)

حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمايي چې مونږ به له رسول الله ﷺ سره سهار په مسجد کې ناست وو کله به چې رسول الله ﷺ کور ته د تلو لپاره پاڅېده نو مونږ به د هغوی د کور ته داخلېدلو پورې ولاړ وو، نو يوه ورځ رسول الله ﷺ کور ته د تلو لپاره ودرېده، کله چې هغه د مسجد منځ ته ورسېده نو يو باندېچي هغوی ته راورسېده او هغه دومره په زوره د رسول الله ﷺ څادر راښکه چې څټ مبارک يې سور شو او هغه ووېل: اې محمده ﷺ! ما ته دوه اوښان راکړه! ځکه چې دا دوه اوښان به نه تاسو د خپل مال نه راکوئ! او نه د خپل پلار له مال نه، رسول الله ﷺ وفرمايل: چې نه! زه خو له الله جَلَّ جَلَالُهُ نه بښنه غواړم! تر څو پورې چې ته ما ته د دې بدله رانه کړې زه تا ته اوښ نه درکوم! دا خبره رسول الله ﷺ درې ځله وفرمايله يا رسول الله ﷺ هغه معاف کړ، بلکې هغه سره يې ښه رويه وکړه او بيا يې يو سړی راوغوښته او ورته وې ويل: چې ده ته دوه اوښان ورکړه! يو اوښ د اوربشو او بل د کجورو.(۲)

حضرت نعمان بن مُقرن رضي الله عنه فرمايي چې مونږ د مُزينه قبيلې څلور سوه کسان نبي اکرم ﷺ ته راغلل، هغوی مونږ ته د خپل دين احکام وښودل، چې که مونږ له رسول الله ﷺ نه فارغ شو او بېرته تلو نو يوه سړي ووېل: اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! د لارې لپاره مونږ سره د خوراک هيڅ نه

---

۱: اخرجه ابن جرير كذا فى الكنز ۲/۴۳ واخرجه ايضا الشيخان عن انس رضي الله عنه بنحوه كما فى البداية ۶/۳۸

۲: اخرجه ابن جرير ايضا كذا فى الكنز ۴/۴۷ واخرجه ايضا احمد والاربعة الا الترمذى عن ابى هريرة رضي الله عنه بنحوه كما فى البداية ۶/۳۸

شته، رسول الله ﷺ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمايل، دوي ته د لارې لپاره توښه ورکړه! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل، چې ما سره خو بس غوندې پاتې شوې خرما دي زما په خيال خو نه هغه کجورې د دوي څه ضرورت پوره نه کړي، رسول الله ﷺ وفرمايل، لاړ شه او دوي ته د لارې لپاره توښه ورکړه! نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مونږ يوې بالاخانې ته بوتلو، هلته د خرې څوان اوښ هومره خرما وې پرتې وې يعني د ناست اوښ هومره او چت د کجورو يو ډېرى وو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل، چې دا کجورې واخلئ! ازمونږ ټولې قافلې والاوو د خپل ضرورت مطابق کجورې واخيستلې، او زه په ټولو کې وروسته اخيستلو لپاره لاړم! ما چې وکتل نو زما په نظر راغلې چې کجورې په شروع کې څومره وې، اوس هم هغه هومره دي د هغې نه يوه کجوره هم نه کمه شوې، په داسې حال کې چې د دغه ډېرۍ نه څلور سوه سړيو کجورې اخيستې وې دا د رسول الله ﷺ د فرمان برکت وو.(۱)

**د حضرت دکين بن سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ واقعه:**

حضرت دکين بن سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې مونږ څلور سوه څلويښت کسان رسول الله ﷺ ته د سفر لپاره د طعام د غوښتلو لپاره لاړو، رسول الله ﷺ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمايل چې لاړ شه او دوي ته د سفر لپاره څه ورکړه! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل، چې ما سره خو يوازې دومره دي چې په هغې به د دوو کارونشي، رسول الله ﷺ وفرمايل چې نه! لاړ شه! څه چې وي هغه دوي ته ورکړه! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل، چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ډېره ښه ده! څنګه چې تاسو فرمايئ! زه خو به ستاسو هره خبره اورم او منم به يې! نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له هغه ځای نه پاڅېده او مونږ هم ورسره پاڅېدو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مونږ خپلې يوې بالاخانې ته بوته او د خپلې هميانۍ نه يې چابي راووېستله او د بالاخانې دروازه يې پرانيسته نو په بالاخانه کې د اوښ د بچي د ناستې برابر د کجورو يو ډېرى وو، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل، له دې نه مو چې څومره خوښه وي وايې خلئ! نو هر سړي د خپل ضرورت لپاره کجورې د خپلې خوښې مطابق واخيستلې، زه تر ټولو وروسته د کجورو د اخيستلو لپاره لاړم! نو ما چې وکتل داسې معلومېده لکه چې مونږ له دغه ډېرۍ نه يوه کجوره هم نه وې اخيستې.(۲)

---

۱: اخرجه احمد والطبرانی قال الهیثمی ۸/۳۰۴ رجال احمد رجال الصحیح

۲: اخرجه احمد والطبرانی قال الهیثمی ۸/۳۰۴ رجالهما رجال الصحیح وروی ابوداود منه طرفا انتهی.

**په الحلیه کې ابونعیم ته دحضرت دکین رضی الله عنهما واقعه بیانول:**

حضرت دُکین رضی الله عنه فرمایي چې مونږ څلور سوه سواره رسول الله ﷺ ته د خوراک لپاره څه غوښتلو ته لاړو، بیا یې د تېر شوی پښتان حدیث شریف ذکر کړو، او په دې حدیث کې داسې هم راغلی دی چې حضرت عمر رضی الله عنه عرض وکړ چې ما سره خو یوازې یو څو صاع کجورې دي! او هغه هم شاید دومره وې چې زما او زما د اولاد د ګرمۍ لپاره کافي نه وي، حضرت ابوبکر رضی الله عنه وویل؛ چې خبردار! د رسول الله ﷺ خبره واوره! او وې منه! حضرت عمر رضی الله عنه وویل؛ چې ښه ده! زه د رسول الله ﷺ خبره اورم! او منم یې! (۱)

**د سائلینو او خواست کوونکو سره دحضرت ابن عمر رضی الله عنهما معامله:**

حضرت افلح بن کثیر رحمه الله وایي کله به چې حضرت عمر رضی الله عنه ته څوک د څه شي د غوښتلو لپاره راغی نو هیڅکله به یې هم نه واپس کولو یعنې بېرته به یې داسې نه لېږه چې څه یې نه واي ورکړي، تر دې چې جُزام مرض والا سړی به هم له حضرت عمر رضی الله عنه سره د هغه په پیاله کې خوراک کولو او د هغه له ګوتو نه به د وینې څاڅکي پرېوتل.(۲)

## د صحابه کرامو رضی الله عنهم صدقه ورکول

**دحضرت ابوبکرصدیق او حضرت عمر رضی الله عنهما واقعه:**

حضرت حسن بصري رحمه الله وایي؛ حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه رسول الله ﷺ ته خپله صدقه یوړله او په پټه یې ورکړه، عرض یې ورته وکړ؛ چې اې د الله جل جلاله رسوله! دا زما له خوا صدقه ده! او په راتلونکی کې کله چې هم الله جل جلاله مطالبه فرمایي نو زه به ضرور او خامخا صدقه ورکوم! بیا حضرت عمر رضی الله عنه خپله صدقه راوړله او د خلکو په مخکې یې ښکاره کړه، رسول الله ﷺ ته یې عرض وکړ چې اې د الله جل جلاله رسوله! دا زما لخوا صدقه ده، او زه الله جل جلاله ته بېرته تلونکی یم! زه به هلته د دې بدله له الله جل جلاله نه اخلم! رسول الله ﷺ وفرمایل؛ تا په خپل کمان کې له تار نه پرته څه نور څه ولګول! یعنې ته له ابوبکر رضی الله عنه نه وروسته پاتې شوې! څکه چې د ابوبکر رضی الله عنه جذبه الله جل جلاله ته نوره هم د ورکړې ده او ستا جذبه الله جل جلاله څخه د بدلې د اخیستلو ده! نو د

---

۱: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۳۶۵ قال ابونعیم هذا حدیث صحیح وهو احد دلائل النبی صلی الله علیه وسلم

۲: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۳۰۰

ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جذبه اعلي او افضله ده، کوم فرق چې ستاسو د دواړو په وینا کې دی هم هغه فرق ستاسو دواړو په صدقه کې هم دی، دواړه قبولې دي خو د ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صدقه د اخلاص او قربانۍ ده چې د هغه توجه الله جَلَّ جَلَالُهُ ته د نورې ورکړې خواته ده.(۱)

**د رومه څاه اخیستو او مسلمانانو ته صدقه کولو واقعه:**

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ځل رسول الله ﷺ وفرمايل: چې څوک دی چې هغه بیر رومه چې د مدینې منورې دیوه کوهي نوم دی واخلي او مسلمانانو لپاره يې صدقه کړي؟ د قیامت په ورځ د سختې تندې په وخت کې به الله جَلَّ جَلَالُهُ په هغه باندې اوبه وڅښي نو چې دا فضیلت يې واورېده حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه کوهی واخیسته او مسلمانانو لپاره يې صدقه کړ.(۲)

حضرت بشير اسلمي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي کله چې مهاجرين مدينې ته راغلل نو په هغوی باندې د دې ځاۍ اوبه ونه لګېدې یعنې ورسره موافقې نه شوې، د بنوغفار يو کوهي وو چې د هغه نوم رومه وو، هغوی به د دې کوهي د اوبو يو مشک په يوه مُد چې تقریباً څوارلس چیټاکۍ کېږي؛ باندې خرڅولې، رسول الله ﷺ هغه کوهي والاته ووېل: چې ته په ما باندې دا کوهي خرڅ کړه! تا ته به د دې په بدله کې جنت کې يوه چینه ملاو شي. هغه ووېل: چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما او زما د اولاد لپاره له دې نه پرته بله څه د ګټې ذریعه نشته له له دې وجې نه يې نشم دړ کولی دا خبره حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورسېدله، نو هغه دغه کوهي په پنځه دېرش زره درهمه باندې واخیسته، بیا د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! څنګه چې تاسو هغه سړه د جنت د چینې وعده فرمایلې وه که چېرې دغه کوهي زه واخلم نو ما ته به هم جنت کې هغه چینه ورکول کیږي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: هو! بلکل به ملاوېږي، حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل: ما هغه کوهي واخیسته او د مسلمانانو لپاره مې صدقه کړ.(۳)

**حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او په يوه ورځ کې سل زره درهم صدقه کول**

د حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بي بي حضرت سُعدې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې يوه ورځ حضرت

---

۱: اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۳۲ قال ابن كثير اسناده جيد ويعد من المرسلات كذا في المنتخب ۴/۳۴۸

۲: اخرجه ابن عدى وابن عساكر

۳: عند الطبراني وابن عساكر كذا في المنتخب ۵/۱۱

طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يو لک درهمه صدقه كړل، بيا هم په دغه ورځ هغه مسجد ته په تللو كې يوازې په دې وجه وروسته والي راغی چې د هغه د جامو دواړه خواوې مې يو ځای كړل او ومې ګنډل، يو لک درهم يې ټول خلكو ته وركړل پخپل ځان يې څه ونه لګول.(۱)

**د رسول الله ﷺ په وخت كې د عبدالرحمن بن عوف صدقه كول:**

مخكې داسې بيان شوي دي چې حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په زمانه كې خپل نيم مال څلور زره درهمه صدقه كړل بيا يې څلوېښت زره صدقه كړل بيا يې څلوېښت زره ديناره صدقه كړل.

**د توبې قبلېدو وروسته د ابولبابه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ صدقه وركول:**

حضرت ابو لبابه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي كله چې الله جَلَّ جَلَالُهُ زما توبه قبوله كړه د هغه نه د بنو قريظه په غزا كې يا هم د تبوک د غزا په وخت كې حاضر شوم! عرض مې وكړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه د خپل قوم هغه كور پرېښودل غواړم! چې په هغه كې له ما نه دا ګناه شوې وه او زه خپل ټول مال د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه د رسول ﷺ لپاره صدقه كول غواړم! رسول الله ﷺ وفرمايل: اې ابو لبابه! د دريمې برخې مال صدقه ستا لپاره كافي ده تو ما دريمه برخه مال صدقه كړ.(۲)

**په دې باره كې د حضرت سلمان عمل:**

حضرت نعمان بن حميد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې زه له خپل ماما سره مدائن ښار ته حضرت سلمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته لاړم! هغه د كجورو پاڼو نه څه جوړول ما له هغه نه داسې واورېدل چې زه د يوه درهم د كجورو پاڼې اخلم! او بيا له هغو نه څه جوړ كړم! او په درې درهمه يې خرڅ كړم! او بيا په يوه درهم باندې دوباره بيا پاڼې اخلم! او يو درهم پخپل اولاد او كور باندې لګوم! او يو درهم صدقه كوم! كه چېرې امير المؤمنين! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هم ما له دې نه منع كړي نو زه به منع نه شم! حضرت سلمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له طرفه د مدائن ګورنر (والي) وو.(۳)

---

۱: اخرجه ابونعيم فى الحلية ۱/۸۸

۲: اخرجه الحاكم ۳/۶۳۲

۳: اخرجه ابن سعد ۶۴

# د صحابه کرامو رضي الله عنهم لخوا هدیه ورکول

**په یوه غزا کې رسول الله ﷺ ته د حضرت عثمان هدیه ورکول:**

حضرت ابو مسعود رضي الله عنه فرمایي چې مونږ په یوه غزا کې له رسول الله ﷺ سره وو خلکو ته د سختې لوږې تکلیف راغی، چې د دې په وجه ما د مسلمانانو په مخونو باندې د غم او پریشانی اثرات او د منافقانو په مخونو باندې د خوشحالی اثرات ولیدل کله چې رسول الله ﷺ هم دا خبره ولیدله نو وې فرمایل: چې په الله جل جلاله قسم! چې د لمر پرېوتو نه مخکې به الله جل جلاله ستاسو لپاره رزق راولیږي، کله چې حضرت عثمان رضي الله عنه دا واورېدل نو ډېر هغه یقین راغی چې د الله جل جلاله د رسول ﷺ خبره به ضرور پوره کیږي. نو حضرت عثمان رضي الله عنه څوارلس اوښې د خوراک له سامان نه بار شوې واخیستلې، او په هغو کې یې نهه اوښې د رسول الله ﷺ په خدمت کې ولیږلې، کله چې رسول الله ﷺ دا اوښې ولیدلې نو وې فرمایل: چې دا څه دي؟ عرض ورته وکړای شو چې دا حضرت عثمان رضي الله عنه تاسو ته په هدیه کې را لیږلې دی. په دې خبره باندې رسول الله ﷺ ډومره زیات خوشحاله شو چې د خوشحالی اثرات د هغه په مخ مبارک باندې ښکاره شول او د منافقانو په مخونو باندې د غم او پریښانی اثرات ښکاره شول. ما رسول الله ﷺ په داسې حال کې ولیده چې د دعا لپاره یې لاسونه دومره اوچت کړل چې د هغوی په تخرګونو مبارکو کې رڼا ښکاره شوه، او د حضرت عثمان رضي الله عنه لپاره یې داسې زبردسته دعا وغوښتله چې ما له رسول الله ﷺ نه چېرته هم تر دې مخکې او نه چېرته له دې نه پس داسې دعا واورېدله. اې الله جل جلاله عثمان رضي الله عنه ته دا او دا ... ورکړې. او عثمان رضي الله عنه سره داسې او داسې معامله وکړې!.

**د هدیې په فضیلت کې د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما قول:**

حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمایي چې زه یوه میاشت یا یوه هفته یا څومره چې الله جل جلاله وغواړي دومره وخته پورې د مسلمانانو د کور د ژوند ضروریات پوره کړم! دا ما ته له دې خبرې نه زیاته خوښه او غوره ده چې زه د حج له پاسه حج وکړم! او د درهم د شپږمې برخې قیمت والا رکیبی واخلم! د الله جل جلاله لپاره خپل تعلق لرونکي ورور ته یې په هدیه کې ورکړم! دا ما ته د الله جل جلاله په لاره کې د یوه دینار خرچ کولو نه زیات محبوب دی. په داسې حال کې

چې یو دینار یو داتي یعنې د درهم شپږ برخو نه دېر زیات وي.(۱)

# طعام ورکول

**د طعام ورکولو په فضیلت کې دحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول:**

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې زه خپلو ملګروته په یو صاع خوراک باندې راجمع کړم! دا ما ته تر دې زیات محبوب دي چې زه بازار ته لاړ شم! او یو غلام واخلم! ازاد یې کړم په داسې حال کې چې د یوه غلام قیمت د یوه صاع د خوراک نه ډېر زیات دی.(۲)

حضرت عبدالواحد بن ایمن د خپل پلار حضرت ایمن رَحِمَهُ اللهُ نه نقل کوي چې حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته څه مېلمانه راغلل حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغوی لپاره ډودۍ او سرکه راواخیستله راغی او وې فرمایل: چې خورئ! ځکه چې ما له رسول الله ﷺ نه اورېدلی دی چې سرکه غوره سالن او کتغ دی مېلمنو ته چې څه مخکې کړی شي او هغوی یې سپک وګڼي په دې سره دا مېلمانه هلاک او برباد شي او د کوربه په کور کې چې څه هم وي هغه مېلمنو ته ایښودل سپک وګڼي نو دې سره به دا کور هلاک شي.(۳)

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو وخت مریض شو، نو څه خلک د هغه د مریضۍ پوښتنې ته راغلل هغه خپلې وینځې ته وویل، اې وینځې! زما ملګرو لپاره څه راوړه! اګر که د ډوډۍ حصې وي، ځکه چې ما له رسول الله ﷺ نه اورېدلی دی چې ښه اخلاق د جنت له اعمالو نه دي. (۴)

حضرت شقیق بن سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې زه او زما یو دوست دواړه حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته لاړو هغه وفرمایل، که چېرې رسول الله ﷺ د مېلمه لپاره په خوراک برابرولو کې د تکلف له کولو نه منع نه وای فرمایلې نو ما به تاسو دواړو ته ضرور تیاری

---

۱: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ۹/۸۵ رواه الطبراني وفيه سعيد بن محمد الوراق وهو ضعيف واخرجه ابن عساكر عن ابى مسعود نحوه كما فى المنتخب ۵/۱۲

۲: اخرجه البخارى فى الادب وابن زنجويه كذا فى الكنز ۵/٦۵

۳: اخرجه البيهقى فى الشعب كذا فى الكنز ۵/٦٦ واخرجه احمد والطبرانى عن عبدالله بن عبيد بن عمير بنحوه قال الهيثمى ۸/۱۸۰ رواه احمد والطبرانى فى الاوسط وابويعلى الا انه قال وكفى بالمرء شرا ان يحتقر ما قرب اليه وفى اسناد ابى يعلى ابوطالب القاص ولم اعرفه وبقية رجال ابى يعلى وثقوا وهو فى الصحيح باختصار انتهى.

٤: اخرجه الطبرانى فى الاوسط باسناد جيد عن حميد الطويل كذا فى الترغيب ۴/۱۵۲ وقال الهيثمى ۸/۱۷۷ بعد ماذكره عن الطبرانى واسناده جيد واخرجه ابن عساكر ۷/۲۲۸ بنحوه

کاوه، او بیا یې دودی او مالګه راوړله په کور کې یې نور څه نه وو. زما ملګري وویل: که چېرې له مالګې سره پودینه یا بیلنې واي نو ډېره به ښه واي خو د حضرت سلمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره د پودینې د اخیستلو لپاره پیسې هم نه وې، څکه هغه خپله لوټه ولېږله، او ګانه یې کړه او د هغې په بدله کې یې پودینه راوړله، کله چې مونږ دودی وخوړله نو زما ملګري وویل: ټول تعریفونه هغه الله جَلَّ جَلَالُهُ لره خاص دي چې هغه مونږ ته راکړل شوي رزق باندې د صبر توفیق راکوي، دې اوریدو سره حضرت سلمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل: که چېرې په ورکړل شوي رزق باندې دې صبر کولی نو زما لوټه به نه ګانه کېدله. د طبراني په روایت کې داسې دي چې رسول الله ﷺ مونږ له دې خبرې نه منع کړي یو چې مونږ مېلمه لپاره د هغه شي تکلیف وکړو چې مونږ سره نه وي.(۱)

**په دې باره کې دحضرت عمر اوحضرت صهیب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا واقعه:**

حضرت حمزه بن صُهیب رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې حضرت صهیب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به په خلکو ډېر زیات خوراک کاوه، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه ته وفرمایل: چې اې صهیب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ډېر زیات خوراک ورکوې! په داسې حال کې چې دا په مال کې فضول خرچي ده، حضرت صُهیب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل: چې رسول الله ﷺ به فرمایل چې په تاسو کې غوره سړی هغه دی چې په خلکو باندې خوراک وخوري، او د سلام ځواب ورکوي د رسول الله ﷺ د دې فرمان له وجې نه زه په خلکو باندې خوراک کووم!

## د رسول الله ﷺ اطعام (طعام ورکول)

**دحضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ واقعه:**

حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: زه یو ځل کور کې ناست وم په دې وخت کې رسول الله ﷺ زما خوا ته تېر شو نو ما ته یې اشاره وکړه، د رسول الله ﷺ له اشارې سره سم زه پاڅېدم او هغه ته ورغله چې په دې سره هغوی ﷺ زما لاس ونیولو بیا مونږ دواړه له هغه ځایه روان شولو تر دې چې هغه د خپلې یوې محترمې بي بي حجرې ته ورسېدو، په خپله یې حجرې ته تشریف یوړو او بیا یې ما ته دننه تلو اجازت راکړو زه دننه د پردې والا حصې ته داخل شوم په ظاهر د رسول

(۱) اخرجه الطبراني قال الهیثمي ۸/۱۷۹ رواه الطبراني ورجاله الصحیح غیر محمد بن منصور الطوسي وهو ثقه.

الله ﷺ بي بي محترمه له ده نه په پرده کې وه او دې د حجرې پردې والا ځای ته تللې وو چېرته به چې عام خلک له اجازې سره د ننه تللی شو بیا یې خپلې له خپلې بي بي نه د غرمې د طعام پوښتنه وکړه او وې فرمایل چې د غرمې لپاره څه د خوراک څه شته؟ بي بي یې ورته وویل: هو شته انو د دوه دري ټیکلي یې ورته راوړل چې هغه یې یا په یوه اوچت ځای او یا یې هم د کجورو د پاڼو په دسترخوان باندې کېښودلې رسول الله ﷺ یو ټیکلی اوچت کړ، خپلې مخې ته یې کېښود او بل ټیکلی یې زما مخې ته کېښودلو بیا یې دریم ټیکلی دوه ټوټې کړو نیم یې ځان ته کېښودلو او نیم یې زما مخکې کېښودلو بیا یې خپلې بي بي ته وفرمایل چې څه کتغ شته؟ بي بي یې ورته وویل چې بل څه نشته، لږه سرکه ده، رسول الله ﷺ وفرمایل چې هغه سرکه راوړه ځکه چې سرکه غوره او ښه ترکاري (کتغ) ده.(۱)

**د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حکایت:**

حضرت عبدالله بن سلام رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: رسول الله ﷺ یوه ورځ حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په داسې حال کې ولیده چې حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یوه اوښه یې اخیستې، را روان دی په هغې اوښې باندې اوړه، غوړي او شات پراته دي، نو رسول الله ﷺ وفرمایل چې اوښه کېنوه! د رسول الله ﷺ په امر سره حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اوښه کېنوله، بیا یې د کاني یوه کټوی را وغوښتله او په هغې کې یې لږ غوړي، شات او اوړه واچول او د اور بلولو حکم یې وکړ نو هغې پسې اور بل کړی شو تر دې چې پخه شوه بیا یې صحابوو ته وفرمایل چې اوس یې خورئ! رسول الله ﷺ پخپله هم له هغې پخ شوې کټوی نه خوراک وکړو، بیا یې وفرمایل: چې دې ډول خوراک ته د فارس خلک خبیص وایي.(۲)

**په دې باره کې دحضرت عبدالله ابن بسر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حدیث:**

حضرت عبدالله بن بسر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: د رسول الله ﷺ د خوراک پیاله د و سره غټه وه چې څلورو کسانو به اوچتوله او هغې ته به یې غراء ویله، کله به چې د څاښت وخت کېده او صحابه وو به د څاښت مونځ کولو نو هغه پیاله به راوړل شوه او تیار ثرید به پکې جوړ شوی

۱: اخرجه مسلم ۲/۱۸۲ واخرجه ایضا اصحاب السنن کما فی جمع الفوائد ۱/۳۹۵

۲: اخرجه الطبراني کذا فی جمع الفوائد ۱/۲۹۷ قال الهیثمی ۵/۳۸ رواه الطبراني فی الثلاثة ورجال الصغیر والاوسط ثقات.

و، ټول به پرې راجمع شو او کله به چې خلک زيات شول نو رسول الله ﷺ به په ګوندو کېناستلو، همدا شان يو ځل رسول الله ﷺ په ګوندو ناست و چې په دې کې يوه بانډيچي وويل: دا څنګه ناسته ده؟ رسول الله ﷺ وفرمايل چې الله رب العزت زه عاجزې کوونکې، غلام او سخي سړی جوړ کړی يم او همدا شان ناسته عاجزۍ ته نږدې ده او زه يې متکبر او قصدا له حق سره ضد کوونکی نه يم ګرځولی، بيا يې وفرمايل: د پيالې له غاړو نه طعام وخورئ! مينځ پرېږدئ! ځکه چې په دې کې برکت نازلېږي.(۱)

## د حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اطعام (طعام ورکول)

**هغه څه چې د هغه او ميلمنو ترمنځ پېښ شول:**

حضرت عبدالرحمن بن ابي بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: زمونږ څه مېلمانه راغلل زما پلار به د شپې ناوخته پورې د رسول الله ﷺ سره خبرې اترې کولې نو هغه رسول الله ﷺ ته ورغی او د تلو په وخت يې وويل اې عبدالرحمن! خپلو مېلمنو باندې طعام وخورئ! ځان فارغ کړئ! او زما انتظار مه کوئ! کله چې ماښام شو نو مونږ مېلمنو ته خوراک راوړ خو هغوی له خوراک کولو نه انکار وکړو او وې ويل تر څو چې د کور خاوند يعني حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغلی نه وي او مونږ سره يې خوراک نه وي کړي، تر هغه وخته مونږ هم خوراک نه کوو، ما ورته وويل، چې هغه ډېر غصه ناک سړی دی که چېرې تاسو طعام ونه خورئ! نو زه وېرېږم چې را څخه خفه به شي خو هغوی بيا هم ونه منله کله چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی نو تر ټولو اول يې د مېلمنو په باره کې پوښتنه وکړه چې آيا تاسو د خپلو مېلمنو له خوراک نه فارغ شوي يئ؟ کوروالا يې وويل چې نه! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! مونږ تر اوسه د هغوی له خوراک څخه فارغ شوي نه يو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: چې اې عبدالرحمن! ما تا ته نه وو ويلي چې د مېلمنو له خوراک نه ځان فارغ کړئ؟ د دې خبرې په اورېدو سره زه پټ شوم هغه وويل: اې عبدالرحمن! زه نور هم پټ شوم! هغوی وويل اې غنتر! يعني اې بېوقوفه! زه تا ته قسم درکوم او وايم چې که ته زما اواز اورې نو ضرور ما ته راشه! نو زه راغلم او ومې ويل زما هيڅ غلطي نشته، تاسو له خپلو مېلمنو نه پوښتنه

---
۱: اخرجه داود كذافى المشكوة ٣٦١

وکړئ! ما دوي ته ډوډۍ راوړې وه خو دوي انکار وکړ او وې ویل چې تر څو هغه نه وي راغلی مونږ ډوډۍ نه خورو، حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغو مېلمنو ته وویل چې په تاسو څه شوی دئ؟ او ولې زمونږ مېلمستیا نه قبلوئ؟ په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! نن شپه به زه ډوډۍ ونه خورم! په غصه کې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قسم وکړ، په دې خبره مېلمنو وویل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! تر څو چې ته ډوډۍ ونه خورې مونږ یې هم نه خورو! مېلمنو هم قسم وکړ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې د نن شپې پشان د شر شپه ما کله هم نه ده لیدلې تاسو ته دې خیر وي تاسو باندې څه شوی دی چې تاسو زمونږ مېلمستیا نه قبلوئ؟ بیا یې کله چې غصه ختمه شوه نو وې ویل چې زما اول قسم خو د شیطان له طرفه و، راځئ! خپله مېلمستیا وخورئ! نو ډوډۍ راوړل شوه، بسم الله یې وویله او شروع یې وکړه، چې په دې سره مېلمنو هم شروع وکړه او وې خوړله کله چې سحر شو نو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رسول الله ﷺ ته لاړ او عرض یې وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما د مېلمنو قسم خو پوره شو خو زما قسم پوره نشو، او د شپې ټوله واقعه یې ورته بیان کړه رسول الله ﷺ اوفرمایل: چې ته له هغوی (مېلمنو) نه زیات قسم پوره کوونکی یې! او له هغوی نه ډېر بنه یې! راوي وایي: ما ته دا خبره نه ده رسېدلې چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د قسم نه پوره کولو کفاره ورکړه او یا یې ورنه کړه! حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به کفاره ضرور ورکړې وي، ځکه چې په دې صورت کې کفاره په اتفاق سره لازمېږي.(۱)

## د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اطعام (خوراک ورکول)

### په دې باره کې دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عمل:

حضرت اسلم رَحِمَهُ اللهُ وایي چې ما یوه ورځ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل: په کومو اوښانو باندې چې سورلی او مال راوړو په هغو کې یوه اوښه ړنده ده، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل، چې هغه اوښه چا ته ورکړه! هغه به ورڅخه فائده واخلي ما وویل: هغه خو ړنده ده حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل، هغه به د اوښانو په قطار کې تړې هغې سره به ګرځي ما وویل چې هغه به په زمکه وابنه څنګه خوري؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه

۱: اخرجه مسلم ۲/۱۸٦

چې هغه د جزيې په څارويو کې ده او که د صدقې؟ دا پوښتنه يې څکه وکړه چې د جزيې څاروي مالدار او فقير دواړه خوړلي شي او د صدقې څاروي صرف فقير خوړلي شي، ما ورېل چې نه! هغه خو د جزيې په څارويو کې ده حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! تا د دې د خوړلو اراده کړې ده ما وويل چې زه له څانه نه وايم بلکې هغې باندې د جزيې د څارويو نښه لګېدلې ده په دې باندې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغې د حلالولو حکم وکړ، نو هغه يې حلاله کړه د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ د نهو بيبيانو د شمېر مطابق نهه پيالې هم د دې لپاره جوړې کړې وې چې ټولو مبارکو بيبيانو ته به په يوه ځل يو قسم خوراک ورکول کېږي کله به چې هم حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته څه مېوه يا ناشنا او د خوښې شي راتلو نو هغه به يې په دغو پيالو کې واچول او د رسول الله ﷺ بيبيانو ته به يې لېږل او خپلې لور حضرت حفصه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته به يې تر ټولو وروسته د دې لپاره لېږل چې که چېرې کمي راځي نو د حضرت حفصه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په حصه کې به راځي نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغې او بنې غوښه په هغو نهو پيالو کې واچوله او د رسول الله ﷺ بيبيانو ته او لېږله او د اوبنې کومه غوښه چې پاتې شوه د هغې د پخولو حکم يې وکړ کله چې هغه پخه شوه نو مهاجرين او انصار صحابه يې را وغوښتل او په هغوی باندې يې وخوړله(۱)

## د حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بن عبيدالله اطعام

**د ده دعمل باره کې د رسول الله ﷺ قول:**

حضرت سلمه بن اکوع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: حضرت طلحه بن عبيد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د غره په خوا کې يو کوهي واخيستلو او د هغې په خوشحالۍ کې يې په خلکو باندې خوراک وخووړ نو رسول الله ﷺ وفرمايل اې طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ! ته ډېر فياض او ډېر سخي يې! (۲)

## د حضرت جعفر بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اطعام

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: حضرت جعفر بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د غريبانو او مسکينانو په باره کې تر ټولو ښه سړی و هغه به مونږ خپل کور ته بوتلو او څه به يې چې په

---

۱: اخرجه مالک کذافی جمع الفوائد ۱/۲۹٦

۲: اخرج الحسن بن سفيان وابونعيم فی المعرفة کذافی المنتخب ٥/٦٧

کور کې و هغه به یې په مونږ باندې خوړل تر دې چې څینې وخت به یې له غوړیو نه خالي دېې هم مونږ ته راوړ چې په هغې کې به هیڅ هم نه و هغه به یې مات کړ او څه به چې په هغې کې و هغه به مونږ وڅښل.(۱)

## د حضرت صُهیب رومي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اطعام (خوراک ورکول)

**دحضرت صیهب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او رسول الله ﷺ واقعه:**

حضرت صُهیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: يوه ورځ ما د رسول الله ﷺ لپاره څه طعام تيار کړ زه هغوی ﷺ ته راغلم هغوی له څه خلکو سره ناست ؤ زه لاړم او هغوی ته مخامخ ودرېدم ما ورته اشاره وکړه چې د خوراک لپاره راشي رسول الله ﷺ ما ته اشاره وکړه او پوښتنه يې وکړه چې دا خلک هم د طعام خوړلو لپاره راسره لاړ شي؟ ما وويل نه! رسول الله ﷺ چپ شو زه په خپل ځائ ولاړ ووم رسول الله ﷺ کله چې بيا ما ته وکتل نو ما هم ورته اشاره وکړه، وې فرمايل او دا خلک هم؟ ما وويل نه! رسول الله ﷺ دغه دوه يا درې ځل وفرمايل نو ما وويل چې ښه ده دا خلک دې هم راشي هغه لږ شان طعام وو چې ما د رسول الله ﷺ لپاره تيار کړې ؤ نو رسول الله ﷺ هم راغی او ورسره هغه خلک هم راغلل او هغوی ټولو طعام وخوړ. په دې طعام کې الله رب العزت دومره برکت واچولو چې رسول الله ﷺ او ورسره ټولو نورو صحابه وو هم وخوړ خو بيا هم پاتې شو.(۲)

## د حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوراک ورکول

حضرت محمد بن قیس رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صرف غريبانو سره ډوډۍ خوړله او د هغوی طعام به زيات غريبو خلکو خوړ او دې به وړی پاتې کېده له دې وجې نه يې بدن کمزوری شوی ؤ نو بي بي يې د هغه لپاره د خرما څه شربت تيار کړ کله چې به دې د طعام خوړلو نه فارغېدو نو هغې په هغه باندې هغه شربت څښلو او حضرت ابوبکر بن حفص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به ډوډۍ هله خوړله کله به چې له هغه سره د هغه په دسترخوان څوک يتيم و.(۳)

---

۱: اخرجه ابن سعد ۴/۴۱

۲: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۱۵۴

۳: اخرجه ابونعیم ۱/۲۹۸

**د ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا او يو يتيم قصه:**

حضرت حسين رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به کله هم د غرمې يا د شپې ډوډۍ خوړله نو د خپل خوا وشا يتيمان به يې رابلل يوه ورځ يې د غرمې ډوډۍ خوړله نو د يو يتيم رابللو لپاره يې سړی ولېږه خو هغه يتيم ورته ملاو نه شو له دې وجې نه يې پرته له يتيم طعام خوړل شروع کړل د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کورنۍ به د ده لپاره خواږه ستوان تيارول چې هغه به يې له خوراک نه پس څښل، نو هغه يتيم په داسې حال کې راغی چې دا حضرات له خوراک څخه فارغ شوي وو حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د څښلو لپاره د ستانو پياله خپل لاس کې نيولې وه نو هغه يې هغه يتيم ته ورکړه او وې فرمايل چې واخله! زما دا خيال دی چې ته په نقصان کې پاتې شوې. يعنې له خوراک نه پاتې شوې!

حضرت ميمون بن مهران وايي چې څه خلک د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په باره کې خفه شول او د هغه بي بي ته يې وويل چې تا ته په دې حضرت باندې رحم نه راځي؟ يعنې د خپل خاوند په کمزورۍ باندې خفه نه يې؟ چې دي کمزوری کېږي ده باندې څه خوراک او څښاک کوه! د ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بي بي دې خلکو ته وويل: چې زه په هغه باندې څه وکړم؟ هغه داسې خوي لري کله چې هم مونږ هغه لپاره طعام تيار وو نو هغه ضرور نور خلک راغواړي چې هغوی ترې ټول طعام وخوري دا شان په نورو خلکو خوراک کوي او په خپله يې نه خوري. حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به کله چې له مسجد نه وتلو نو څه غريبانان خلکو به د هغه په لاره کې کېناستل چې په دې سره به دغه غريبان حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ځان سره کور ته راوستل او هغوی به يې په خوراک کې له ځان سره شريکول د هغه بي بي به هغه غريبانانو ته مستقل طعام مخکې نه لېږلو او هغوی ته به يې وويل چې تاسو دا ډوډۍ وخورئ! او ځئ! او د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په لاره کې مه کېنئ! يوه ورځ حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له مسجد نه کور ته په داسې حال کې راغی چې په لاره کې ورته څوک غريب ملاو نه شو نو وې فرمايل چې فلانې فلانې پسې څوک ولېږه! چې هغوی طعام خوړلو لپاره راشي سړی د هغوی د راغوښتلو لپاره لاړ خو په هغوی کې څوک راتللو څکه چې د هغه بي بي دغه غريبانانو ته طعام سره دا پيغام لېږلی وو چې که چېرې تاسو ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ را وغواړي نو مه راځئ! کله چې څوک رانغلل نو حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ

وويل تاسو دا غوارئ! چې نن شپه دوډۍ ونه خورم! نو په دغه شپه يې دوډۍ ونه خوړه!(۱)

**په جحفه کې دابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا عمل:**

حضرت ابو جعفر قاري رَحِمَهُ اللهُ وايي چې ما ته يو وخت خپل مالک عبد الله بن عمرعياش بن ربيعه المخزومي وويل، چې له حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره په سفر کې لاړ شه! او د هغه خدمت وکړه! زه د خپل مالک په خبره له هغه سرې سره په سفر کې لاړم هغه به کله چې هم په يوه چينه ايساريده نو چينې والا به يې د دې لپاره ځان ته را وغوښتل چې له ده سره خوراک وکړي. او د هغه مشر ځوی به هم راتلو او له هغه سره به يې خوراک کولو خو د خوارک د کم والي او د سړو د ډېروالي په وجه به هر سړی ته دوه درې نوړۍ رسيدلې. له دې وروسته په جُحفه مقام کې هم کله چې هغه ايسار شو نو د هغه ځای خلک يې د خوراک لپاره راوبلل، خلک هم د ده په رابللو راغلل، په دې کې د تور رنګ والا يو بربنډ هلک هم راغی حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه هم راوبللو هغه وويل چې ما ته خو د ناستې ځای په نظر نه راځي دا خلک ډېر تنګ تنګ ناست دی حضرت ابو جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي ما وليدل چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له خپل ځای نه لږ شان لرې شو او هغه هلک يې خپلې سينې سره ولګولو او هغه يې کېنولو.(۲)

**په سفر کې دابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا عمل:**

حضرت ابو جعفر قاري رَحِمَهُ اللهُ وايي چې يو وخت زه له حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره مکې نه مدينې ته لاړم هغه سره ډېره لويه پياله وه چې په هغې کې به دوډۍ ما ته شوربيا د هغه ځوی، د هغه ملګري او څوک به هم چې هلته راتلو ټولو به په يو ځای له هغې پيالې نه خوراک کولو او ځينې وخت به دومره کسان جمع شول چې څه کسانو ته به په دريدلو د دوډۍ خوړلو ضرورت پېښ شو هغه سره د هغه يو اوښ و چې په هغې باندې به کجورو سره د خوږې کړې شو اوبو يعنې (نبيذ) او د ساده اوبو نه ډک دوه مشکيزې وې د خوراک نه پس به هر سړي ته د ستوانو او نبيذو ډکه پياله رسيدله چې د هغې په څښلو سره به خېټه ښه مړيدله.(۳)

حضرت معن رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به کله دوډۍ تياروله او له هغه

---

۱: اخرجه ابونعيم ۱/۲۹۸ ايضا واخرجه ابن سعد ۴/۱۲۲ بنحوه.

۲: اخرجه ابونعيم ۲/۱۹ في الحلية ۱/۲۰۲

۳: اخرجه ابن سعد ۴/۱۰۹

سره به څوک د ښه لباس والا سړی تېرېده نو حضرت ابن عمر رضي الله عنه هغه نه رابللو خو د هغه ځوی یا وراره به رابللو او کله چې به څوک غریب سړی تېرېده نو حضرت ابن عمر رضي الله عنه به هغه رابللو خو د هغه ځوی یا وراره به هغه نه رابللو نو حضرت ابن عمر رضي الله عنه به فرمایل څوک چې طعام خوړل نه غواړي هغه دوي را غواړي او څوک چې طعام خوړل غواړي هغه پرېږدي.(۱)

## د حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص رضي الله عنهما خوراک ورکول

**خپلو ورونو او دښار خلکو ته دهغه مېلمستیاګول:**

حضرت سلیمان بن ربیعه رحمه الله وایي چې ما د حضرت معاویه رضي الله عنه د خلافت په زمانه کې په داسې حال کې حج وکړ چې له ما سره د بصرې د علماو یوه ډله هم وه چې په هغې کې منتصر بن حارث ضبي هم ؤ هغو خلکو وویل چې په الله جل جلاله قسم! تر څو پورې چې مونږ د حضرت محمد ﷺ په صحابه وو کې یو داسې ممتاز او محبوب صحابي سره نه یو ملاو شوي چې هغه مونږ ته احادیث واوروي تر هغو پورې به مونږ له بصرې څخه ستانه نه شو نو مونږ له خلکو نه پوښتنې کولې چې د دې خلکو د غوښتنې سره سم سړی به څوک وي؟ مونږ ته وښودل شو چې په غوره صحابه وو کې حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه د مکې په ښکتنۍ برخه کې ایسار دي نو مونږ هغه ته لاړو او وموليده چې خلکو د ډېره زیاته اندازه سامان اخیستی دی او ځي، د درېو سوو اوښانو قافله ده چې په هغې کې سل اوښان د سورلۍ لپاره دي او په دوو سوو اوښانو باندې سامان بار دی مونږ پوښتنه وکړه چې دا سامان د چا دی؟ خلکو وویل چې دا د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه دی مونږ په حیرانتیا سره بیا پوښتنه وکړه چې دا ټول د هغه دی؟ مونږ ته خو دا ویل شوي وو چې په خلکو کې د ټولو نه زیات عاجزي کونکی انسان دی او دلته بل څه په نظر راځي خلکو وویل چې دا ټول سامان خو د هغه دي خو په خپل ځان باندې د خرچ کولو لپاره نه دي بلکې په خلکو باندې د خرچ کولو لپاره دي دا سل اوښان خو د هغه د مسلمانانو رونو لپاره دي چې دا به د سورلۍ لپاره ورکوي او د دې دوو سوو اوښانو

---

۱: اخرجه ابن سعد ۴/۱۰۹.

سامان هغه ته د مختلف ځايونو نه د راتلونکو مېلمنو لپاره دي، مونږ چې دا واورېدل نو د ېرزيات حيران شو خلکو ووېل چې تاسو تعجب مه کوئ! حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه مالدار سړی دی او هغه د خپل هر راتلونکی مېلمه مېلمستيا هم کوي او د تلو په وخت کې هغه ته د لارې توښه هم ورکوي مونږ ووېل مونږ ته ووايا ست! چې هغه چېرته دی ؟ خلکو ووېل چې په دې وخت کې هغه په مسجد حرام کې دی د دې خبرې په اورېدو سره مونږ د هغه لټون شروع کړنو مونږ وليد چې د کعبې شاته ناست دی د وړوکي قد والا دې په سترګو کې يې لوند والي دی دوه څادرونه يې اغوستی دی او په سر باندې يې پټکی تړلی دی په داسې حال کې چې قميص يې نشته او خپلې پنې يې ګس طرفته زوړندې کړي دي.(۱)

## د حضرت سعد بن عُباده رضي الله عنه خوراک ورکول

**د هغه او د رسول الله ﷺ واقعه:**

يو ځل حضرت سعد بن عُباده رضي الله عنه د مغزو نه ډکه يوه پياله رسول الله ﷺ ته راوړه رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه اې ابو ثابت! دا څه دي؟ هغه ووېل چې په هغه ذات مې دې قسم وي چا چې تاسو ته حق درکړی دی او رالېږلی يې يئ! ما څلوېښت اوښان حلال کړی وو نو زما زړه وغوښتل چې زه په تاسو باندې په مړه خېټه ماغزه وخورم نو رسول الله ﷺ هغه وخوړل او د حضرت سعد رضي الله عنه لپاره يې د خير دعا وکړه.(۲)

**حضرت سعد رضي الله عنه ته د رسول الله ﷺ دعا:**

حضرت انس رضي الله عنه فرمايي، حضرت سعد بن عُباده رضي الله عنه رسول الله ﷺ ته خپل کورته د راتلو دعوت ورکړ کله چې رسول الله ﷺ د هغوی کور ته تشريف راوړو نو هغه رسول الله ﷺ ته کجورې او د وردو ډوډۍ راوړې چې هغه رسول الله ﷺ وخوړلې نو بيا يې د پيو يوه پياله راوړه کله چې د پيو پياله رسول الله ﷺ وڅښله نو د هغه لپاره يې د خير دعا وغوښته او داسې دعا يې ورته وکړه چې ستا طعام دې نېکان خلک وخوري او روژه دار

۱: اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۲۹۱ واخرجه ابن سعد ۴/۱۲ عن سليمان بن الربيع بمعناه مع زيادة

۲: اخرجه ابن عساكر كذافي الكنز ۷/۴۰

دي تا سره روژه ماتي وكړي او فرښتې دې ستا لپاره د رحمت دعا وكړي اې الله جل جلاله! د سعد بن عُباده رضي الله عنه په اولاد باندې خپل رحمتونه نازل كړې! (۱)

په بل او رد حديث شريف كې حضرت انس رضي الله عنه فرمايي: حضرت سعد رضي الله عنه بن عباده رسول الله ﷺ ته څه كونژلې او كجورې مخكې كړې.(۲)

حضرت عُروه رحمه الله وايي چې ما حضرت سعد بن عُباده رضي الله عنه په داسې حال كې وليده چې هغه له خپلې قلعه سره ولاړ دى او دا اعلان كوي چې څوك وازګه يا غوښه خوړل غواړي هغه دې حضرت سعد بن عُباده رضي الله عنه ته راشي بيا ما د هغه د وفات نه پس د هغوى څوى هم داسې اعلان كولو باندې وليده بيا د اړو پلار او څوى د وفات نه پس يوه ورځ زه د مدينې منورې په لاره باندې تللم چې په هغه وخت كې زه ځوان ووم چې په دې كې حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه په عاليه محله كې خپلې زمكې ته تلو او زما په خوا كې تېر شو نو هغوى ما ته وفرمايل چې اې ځوانه! لاړ شه! او اوګوره! چې د حضرت سعد بن عباده رضي الله عنه قلعه سره څوك سړى طعام ته رابللو اعلان كوي؟ ما وكتل نو ورته مې وويل چې هيڅوك هم نشته نو هغوى وفرمايل چې تا رېښتيا وويل دومره زيات سخاوت خو د هغه پلار او څوى خصوصيت و او اوس د هغوى دواړو له وفات څخه وروسته هغه خبره هم هغسې پاتې نشوه.(۳)

## د حضرت ابوشعيب انصاري رضي الله عنه اطعام

**د رسول الله ﷺ سره د هغه قصه:**

امام بُخاري رحمه الله روايت كړى دى چې حضرت ابو مسعود انصاري رضي الله عنه فرمايي: په انصارو كې يو سړى وو چې ابو شعيب رضي الله عنه به ورته ويل كېده د هغه يو غلام د غوښې جوړولو ماهر و هغوى هغه غلام ته وويل چې ته زما لپاره خوارك تيار كړه! زه رسول الله ﷺ او نور څلور كسانو ته د دوى دعوت وركووم او غواړم چې په هغوى

۱: اخرجه ابن عساكر كذا في الكنز ٥/٦٦

۲: اخرجه ابن عساكر ايضا من وجه اخر عن انس مطولا بمعناه كما في الكنز ٥/٦٦

۳: اخرجه ابن سعد ۳/۱۴۲

خوراک وکرم! رسول الله ﷺ څلور کسان ځان سره روان کړل نو یو سړی پخپله خوښه دې کسانو پسې روان و رسول الله ﷺ حضرت ابو شعیب رضي الله عنه ته وفرمایل چې تا خو مونږ پنځو کسانو ته دعوت را کړی دی دا سړی پخپله مونږ پسې روان دی اوس که چیرې ستا خوښه وي نو ده ته هم اجازت ورکړه! که نه وي پریږده یې! حضرت ابو شعیب رضي الله عنه وویل: ده ته هم اجازت دی امام مسلم د حضرت ابو مسعود رضي الله عنه نه هم داسې روایت نقل کړی دی او په هغې کې دا دی چې حضرت ابو شعیب رضي الله عنه رسول الله ﷺ ته وکتل، د هغوی په مخ مبارک باندې یې د لوږې اثرات وکتل نو خپل غلام ته یې وویل الله جل جلاله دې ښه کړه ته زمونږ لپاره د پنځو کسانو طعام تیار کړه! مخکې یې د تېر شوی حدیث پشان مضمون ذکر کړی دی.(۱)

**د یو درزي (خیاط) اطعام: او رسو ل الله ﷺ ته د خوراک دعوت ورکول**

حضرت انس رضي الله عنه فرمایي: یو وخت یو درزي د خوراک لپاره څه شی تیار کړو او رسول الله ﷺ یې د خوراک لپاره را وغوښتلو زه هم رسول الله ﷺ سره په دغه دعوت کې لاړم نو هغه رسول الله ﷺ ته د اوربشو ډوډۍ او ښوروا مخکې کړله چې په هغې کې د کدو او غوښې ټیکې وې ما ولیدل چې رسول الله ﷺ د پیالۍ په غاړو کې کدو لټوي د هغې ورځې نه زما هم کدو ډېر خوښ شوی دی.(۲)

## د حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه اطعام

**د غزوه خندق په ورځ دهغه طعام ورکولو قصه:**

حضرت جابر رضي الله عنه فرمایي، مونږ ته د خندق د کیندلو په وخت کې یو سخت ګټ (کاڼی) راښکاره شو کوم صحابه وو ډېر وس پرې وکړو خو مات یې نه کړی شو صحابه رضي الله عنهم رسول الله ﷺ ته ورغلل عرض یې وکړ چې په خندق کې یو سخت ګټ ښکاره شوی دی رسول الله ﷺ وفرمایل، چې زه پخپله ورکوزېږم! بیا ودرېده له ودرېدو سره مونږ ولیدل چې د هغوی ﷺ په خېټه مبارکه باندې د لوږې د وجې نه کاڼي تړلي شوي وو ځکه چې د درېوو

---

۱: اخرجه مسلم ۲/۱۷۶

۲: اخرجه مسلم ۲/۱۸۰ واللفظ له والبخاری

ورځو نه مونږ خلکو څه شی څکلي نه وو بیا یې کډاله واخیستله دومره په زوره یې هغه گټ اووهلو چې هغه د شکو د ډېرې پشان ذره ذره شو بیا ما عرض وکړ اې د الله جَلّ جَلَالُهٗ رسوله! ما ته د کور تلو اجازت راکړئ! هغوی ﷺ ما ته اجازت راکړو زه کور ته لاړم خپلې بي بي ته مې وویل چې ما د رسول الله ﷺ د سختې لوږې داسې حالت لیدلی دی چې د هغې نه پس زه پاتې نه شوم اوس تا سره د طعام څه شته دي؟ چې رسول الله ﷺ مبارک یې وخوري او لوږه یې پرې ختمه شي، هغې وویل چې اوربشې او د چېلۍ یو بچې شته دی د خپلې بي بي په دې خبره ما د چېلۍ هغه بچی حلال کړو او د هغه غوښه مې تیاره کړله هغې اوربشې اوړه کړې او وړه یې واغکل بیا مونږ غوښه په کټوی کې واچوله او په نغرې مو کېښودله تر څو چې غوښه پخېدله نو په دومره وخت کې اوړه هم خمیره شوي وو او د ډوډی پخولو قابل شوي وو او کټوی هم په پخېدو شوه بیا زه لاړم رسول الله ﷺ ته مې عرض وکړ چې ما لږ شان طعام تیار کړی دی اې د الله جَلّ جَلَالُهٗ رسوله! تاسو راشئ! او یو کس دوه هم ځان سره کړئ! رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه چې طعام څومره دی؟ ما چې په کور کې کوم څه تیار کړي وو هغه حال مې رسول الله ﷺ ته ووایه، هغوی ﷺ وفرمایل ډېر ښه طعام دی او ډېر زیات دی او خپلې بي بي ته ووایه! چې تر څو پورې زه رانشم نه دی هغه کټوی د نغرې نه کوز ځوی او نه دی ډوډی د تنور نه راوکاږي بیا یې صحابو ته وفرمایل، پاځئ! طعام خوړلو لپاره راځئ! د رسول الله ﷺ په دې او از سره مهاجرین او انصار ودرېدل او له رسول الله ﷺ سره روان شول کله چې زه کور ته ورسېدم نو ما خپلې بي بي ته وویل خدای دې ښه کړه رسول الله ﷺ خپل ځان سره مهاجرین او انصار او نور حضرات راروان کړي دی زما بي بي وویل چې ایا تا نه رسول الله ﷺ پوښتنه کړې وه چې طعام څومره دی؟ ما وویل چې هو! بیا کله چې رسول الله ﷺ د هغوی کور ته ورسېدو نو صحابه وو ته رسول الله ﷺ وفرمایل چې دننه راځئ! او گڼه مه جوړوئ! او رسول الله ﷺ به ډوډی حصې حصې کولې او په هغې باندې یې غوښه کېښودله او صحابه وو ته به یې ورکوله. رسول الله ﷺ به کله چې د کټوی نه غوښه او د تنور نه ډوډی راخیستله نو هغه به یې بیا بند ساته دا شان هغوی ﷺ صحابه وو ته غوښه د کټوی نه راوېستله او ډوډی به یې حصې حصې کوله او ورکوله به یې تر دې چې ټول ماړه شول او طعام بیا هم پاتې شو او زما بي بي ته رسول الله ﷺ وفرمائیل چې اوس له دې طعام نه ته هم

وخوره! او د نورو کورونو ته يې هم ولېږئ! ځکه چې ټولو خلکو ته لوږه لګېدلې ده او دا طعام هم ټولو خلکو ته رسېدو والا دی.(۱)

امام بیهقي په دلائل کې د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا حدیث له دې نه زیات مکمله توګه نقل کړی دی په دې کې مضمون داسې دی کله چې رسول الله ﷺ ته طعام د اندازې پته ولګېدله نو ټولو مسلمانانو ته یې وویل پاڅئ! او جابر ته ورشئ! حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د رسول الله ﷺ دې اعلان اورېدو سره الله جَلَّ جَلَالُهُ بنه پوهېږي چې زه څومره وشرمېدم او په زړه کې مې وویل چې ما خو یوازې د یو صاع اوربشو او د چېلۍ د بچي سره مې یو څه اندازه خوراک برابر کړی دی او رسول الله ﷺ مونږ ته د ډېر خلک راولي، بیا زه کورته لاړم او خپلې بي بي ته مې وویل چې نن خو ته رسوا شوې یې ځکه چې رسول الله ﷺ ټول خندق والا د خوراک لپاره راولي بي بي مې وویل چې له تا نه یې پوښتنه کړې وه چې طعام څومره دی؟ ما وویل هو! زما بي بي وویل چې اوس خو الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه رسول الله ﷺ پوهـ شه! مونږ ته په دې اره د فکر کولو ضرورت نشته د بي بي په دې خبره زما ډېره پرېشاني لرې شوه بیا رسول الله ﷺ زمونږ کور ته راورلو او ویې فرمایل چې ته کار کوه! او غوښه ما ته حواله کړه! رسول الله ﷺ به کله چې هم دوډۍ ماته کړله او غوښه به یې پرې واچوله نو د غوښې دېګ او د دوډۍ د لوښي دوارو سرونه به یې پټول، هغوی ﷺ به هم دغه شان خلکو ته کېښودله تر دې پورې کله چې ټول خلک ماړه شول نو بیا هم تنور او کټوی پوره ډک وو بیا رسول الله ﷺ زما بي بي ته وفرمایل چې اوس یې له کټوی او تنور څخه تاسو هم وخورئ! او نورو کورونو ته یې هم ولېږئ! د رسول الله ﷺ له دې فرمایلو سره هغې (زما بي بي) پخپله هم وخوړله او ټوله ورځ یې کورنو ته ور څخه ولېږله ابن ابي شیبه دا روایت نور هم په تفصیل سره نقل کړی دی او د روایت په اخر کې یې داسې ویلي: راوي وايي چې حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ما ته وویل چې د هغو کسانو تعداد چې رسول الله ﷺ د دوډۍ د خوراک لپاره زما کورته راوستلي وو اته سوه تنه وو او یا هم درې سوه تنه وو.(۲)

امام بخاري په یو بل سند سره له حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه دا حدیث داسې نقل کړی دی

---

۱: اخرجه البخاری وتفردبه.

۲: کذافی البدایة ۴/۹۷

چې په هغې کې داسې راغلي دي، رسول الله ﷺ په اوچت اواز سره دا اعلان وکړ چې اې د خندق والاوو! جابر طعام تیار کړی دی او دعوت یې کړی دی نو تاسو ټول ژر لاړ شئ! په دې وخت کې رسول الله ﷺ ما ته وفرمایل: تر څو پورې زه نه یم درغلي تر هغه وخته پورې ته خپله کټوې له نغري نه مه لرې کوه! او ته د خپلو اوړو نه دوډۍ پخول شوروع کوه! د رسول الله ﷺ په دې خبرې سره زه له خندق نه کور ته راغلم او لږ ساعت وروسته رسول الله ﷺ هم زمونږ کور ته تشریف په داسې حال کې تشریف راوړ چې له ټولو خلکو نه مخکې مخکې راروان ؤ تر دې چې کور ته ورسېدلو ما بي بي ته وویل چې رسول الله ﷺ ټول خندق والا راولي هغې ما ته د پر څه وویل چې نن به ته رسوا شې! او ټول به په تا باندې بد وایي چې طعام لږ دی او خوړونکي یې ډېر زیات دي کله چې ټولو ته طعام ونه رسېږي نو رسوایي او شرمنده ګي به وي ما هغې ته وویل چې تا څه ویلي وو ما هم هغسې وکړل، رسول الله ﷺ چې راغی نو زما بي بي د هغوی ﷺ په مخکې اوړه کېښودل نبي ﷺ په هغې کې لاړې مبارکې واچولې او د برکت دعا یې وکړه بیا یې زمونږ د پخ کړې کټوې خوا ته تشریف راوړو او په هغې کې یې هم لاړې مبارکې واچولې او د برکت دعا یې وکړه بیا یې وفرمایل چې یوه بله دوډۍ پخولو والا څوک را وغواړه! تر څو هغه تا سره دوډۍ پخې کړي او له خپلې کټوې نه خلکو ته د کې د کې پیالې ورکوه! خو کټوې له نغري نه مه کوزوه! په تېر شوی حدیث کې بیان شوی دی چې رسول الله ﷺ د کټوې نه غوښه راوېستله څکه په ظاهره به دې هم رسول الله ﷺ سره راوېستلې وي د طعام لپاره راتلونکي زر کسان وو، زه په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم خورم! او وایم چې دې ټولو راغلي و خلکو دوډۍ وخوړله او بېرته لاړل او طعام لا هم باقي پاتې وو همدا رنګه زمونږ کټوې هم داسې جوش وهلو او له اوړو نه هم داسې دوډۍ پخېدلې.(۱)

حضرت جابر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي: زما مور یو څل طعام تیار کړو او ما ته یې وویل چې لاړ شه! رسول الله ﷺ را وغواړه! تر څو زمونږ کره دوډۍ وخوري نو زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم او ورو مې ورته وویل چې زما مور څه طعام تیار کړی دی! رسول الله ﷺ صحابه وو ته وفرمایل پاڅئ! د رسول الله ﷺ له دې خبرې سره له ناستو کسانو

---

(۱) واخرجه مسلم ۲/۱۷۸ عن جابر نحوه.

څخه پنځوس پاڅېدل او روان شول زمونږ کور ته يې تشريف راوړو، په دروازه کې کېناستل او ماته يې وفرمايل چې لس لس کسان دننه لېږه! نو ټولو ښه په مړه خېټه خوراک وکړو او. څومره خوراک چې مخکې وو هم هغومره پاتې هم شو، د يادونې ده چې د لسو کسانو د دننه تلو يې ځکه وفرمايل چې دننه له لسو کسانو نه زيات نه ځايېدل.(۱)

## د حضرت ابوطلحه انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اطعام

**د رسول الله ﷺ سره دهغه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حکايت:**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: حضرت ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ام سليم ته وويل چې ما د رسول الله ﷺ اواز په داسې حال کې واورېده چې د لوږې له وجې ډېر کمزورى شوى ؤ او صفا معلومېدله چې دا کمزورى د لوږې د وجې نه ده آيا تا سره د خوراک څه شته؟ هغې وويل چې هو شته دي! بيا هغې د اوربشو څو ډوډۍ راووېستلې او د خپل څادر په يوه برخه کې يې ونغښتلې او زما تر څادر لاندې يې پټې کړې او د څادر پاتې برخه يې په ما باندې واچوله او زه يې د رسول الله ﷺ په خدمت کې، ولېږلم ما دا واخيستلې او رسول الله ﷺ ته کله چې ورسېدم نو ما وليدل هغوى ﷺ په مسجد کې ناست و او نور خلک هم ورسره ناست وو، زه د دغو خلکو خوا ته ورغلم او ودرېدم، نو رسول الله ﷺ راته وفرمايل: آيا ته ابو طلحه را لېږلى يې؟ ما وويل هو! دا ټولې خبرې رسول الله ﷺ ته الله جَلَّ جَلَالُهُ ښودلې وې هغوى ځان سره ناستو کسانو ته وفرمايل چې ځئ! پورته شئ! بيا يې هغه ټول صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ له ځان سره کړل او روان شو، زه له ټولو نه مخکې مخکې روان ووم او کور ته مې تر ټولو مخکې ځان ورسولو، حضرت ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته مې وويل چې نبي ﷺ د صحابه وو سره د طعام لپاره تشريف راوړى حضرت ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل: اې ام سليم! رسول الله ﷺ د صحابه وو سره تشريف راوړى او مونږ سره د هغوى د طعام لپاره څه نشته دى هغې وويل کله چې هغوى ﷺ ته پته ده چې مونږ سره څومره طعام دي؟ او بيا دومره ډېر خلک ځان سره راولي نو اوس خو الله رب العزت او د هغه رسول الله ﷺ پوه شه! مونږ ته په دې اړه د فکر کولو ضرورت نشته نو حضرت ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول

---

۱: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ۸/۳۰۸ رجاله وثقوا

الله ﷺ د استقبال او هر کلي لپاره ورمخکې شو نو په لاره کې يې د مبارک استقبال وکړ بيا يې د ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره کور ته تشريف يوړلو او وې فرمايل: چې اې ام سليم! تا سره چې د طعام لپاره کوم څه دي هغه راوړه! نو هغې د اوربشو دودۍ راوړلې رسول الله ﷺ د هغو دوديو د حصې کولو حکم وکړ نو هغه يې وړې وړې حصې کړې بيا حضرت ام سليم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په هغې باندې له دبې نه غوړي واچول او کتغ يې جوړ کړو بيا پرې رسول الله ﷺ د لږ ساعت لپاره څه لوستل يعنې د برکت دعا يې وکړه بيا يې وفرمايل لسو کسانو ته د دننه راتلو اجازت ورکړئ! کله چې هغوی ښه په مړه خېټه وخوړله او بهر ته لاړل نو هغوی ﷺ وفرمايل چې اوس نورو لسو سرو ته اجازت ورکړه! هغه لسو کسانو ته اجازت ورکړو کله چې دې لس سرو هم ښه په مړه خېټه وخوړله او بهر ته لاړل نو هغوی ﷺ وفرمايل اوس نورو لسو کسانو ته اجازت ورکړه! دا شان ټولو راغلي و کسانو په مړه خېټه طعام وخوړلو په داسې حال کې چې د طعام لپاره د راغلي و کسانو شمېر اويا يا اتيا ته وو د طبراني په روايت کې دا دي چې راغلي کسان سلو ته نزدې وو.(۱)

## د حضرت اشعث بن قيس کندي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوراک ورکول

### دهغه د وليمې حکايت:

حضرت قيس بن ابي حازم رَحِمَهُ اللهُ وايي کله چې حضرت اشعث د رسول الله ﷺ د وفات نه پس مرتد شوی ؤ او وروسته بيا مسلمان شوی ؤ او هغه قيد شو نو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راوستل شو نو د هغه د پښو نه يې بېړۍ (زولنې) پرانيستلې، هغه يې د اسلام راوړلو په وجه ازاد کړو او له خپلې خور سره يې د هغه واده وکړ ده خپله توره راوويستله او د اوښانو بازار ته په داسې حال کې داخل شو چې په کوم اوښ يا اوښه باندې به يې نظر پرېوتو نو هغه به يې پرېکولو په دې وجه خلکو شور جوړ کړو چې اشعث خو کافر شو کله چې دی فارغ شو نو خپله توره يې اوغورزوله او وې فرمايل: په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ما کفر نه دی اختيار کړی

---

۱: اخرجه مسلم ۲/۱۷۸ واخرجه ايضا البخاری عن انس بنحوه كما فی البداية ٦/١٠٥ والامام احمد ابويعلي والبغوي كما بسط طرق احاديثهم والفاظهم فی البداية واخرجه الطبرانی ايضا كما فی المجمع ٨/٣٠٦ وقال رواه ابويعلى والطبرانی وزادوهم زهاد مائة ورجالهما رجال الصحيح.

خو هغه سړی یعنې ابوبکر رضي الله عنه له خپلې خور سره زما واده کړی دی که چېرې مونږ په خپله علاقه کې وای نو زمونږ ولیمه به څه بل شان وای یعنې ډېره به ښه وای ای مدینې والاوو! تاسو دا ټول اوښان حلال کړئ! او وې خورئ! او ای د اوښانو والا! راشئ! او د خپلو اوښانو قیمت واخلئ! (۱)

## د حضرت ابوبرزه رضي الله عنه اطعام

حضرت حسن بن حکیم رحمه الله له خپلې مور څخه نقل کوي چې د حضرت ابوبرزه رضي الله عنه کره به سحر او ماښام د ثرید یوه لویه پیاله د کونډو، یتیمانو او مسکینانو لپاره تیارېدله. (۲)

**مدینې منورې ته د نویو راتلونکو مېلمنو مېلمستیا کول**

حضرت طلحه بن عمرو رضي الله عنه فرمایي کله چې به هم څوک مدینې منورې ته د دې لپاره راتلل تر څو له رسول الله ﷺ سره ملاقات وکړي او په مدینه منوره کې به یې څوک پېژند ګلو والا نه وو نو هغه به له اهل صفه وو سره ایسارېده، داسې وخت وو چې زه هم اهل صفه سره ایسار ووم او هلته مې له یو سړي سره تعلق جوړ کړو د رسول الله ﷺ له طرف نه به روزانه د دوو کسانو نه یو مُد یعنې څوارلس چېټاکۍ کجورې ملاوېدلې دا شان به یو کس ته اووه چېټاکۍ کجورې رسېدلې یوه ورځ رسول الله ﷺ له مانځه نه سلام وګرځولو په دې کې مونږ اهل صفه والاوو څخه یو سړي په زوره وویل: ای د الله جل جلاله رسوله! دې کجورو زمونږ خېټې وسوزولې او زمونږ څادرونه وشلېدل، دې اورېدو سره رسول الله ﷺ د منبر خوا ته لاړو او ورو خوت، د الله رب العزت ثناء او صفت یې بیان کړو بیا هغوی ﷺ ته د خپل قوم (قریشو) له طرفه څو مره تکلیفونه رسېدلي وو د هغو تکلیفونو بیان یې وکړ بیا یې دا هم وفرمایل چې یو څل په ما او زما په ملګري باندې د لسو نه زیاتې شپې داسې تېرې شوې دی چې مونږ سره د پیلون مېوو نه علاوه د طعام لپاره هیڅ هم نه وو بیا مونږ هجرت وکړ. خپلو انصارو ورونو ته راغلو د دوي عام طعام کجورې دي او هم دا زیاتې خوړلی شي نو دوئ صرف کجورې طعام لپاره راکوي او مونږ سره د غمخوارۍ معامله کوي. په الله جل جلاله

---

۱: اخرجه الطبراني كذا في الاصابة ١/٥١ والمجمع ٩/٢١٥ قال الهيثمي رجاله رجال الصحيح غير عبدالمؤمن بن علي وهو ثقة.

۲: اخرجه ابن سعد ٤/٢٥

قسم! که چېرې ما سره دودۍ او غوښه وای نو ما به ضرور په تاسو باندې خوړلې وای! تر تاسو په تنګسیا سره ګذاره کوئ! خو یوه زمانه به داسې راشي چې تاسو به د کعبې د غلاف پشان قیمتي جامې اغوندئ! او سحر ماښام به ستاسو مخې ته د طعام غټې غټې پیالې راوړل کېږي.(۱)

حضرت فضاله لیثي فرمایي: مونږ یو ځل د رسول الله ﷺ په خدمت کې مدینې منورې ته لاړو، د هغه ځای رواج دا و چې د کوم راتلونکي کس به چې هلته څوک پېژندګلو نو هماغه به یې مېلمه ؤ او له هغه سره به ایسارېده او د چا به چې څوک پېژندلو نه ؤ نو هغه به په صفه کې د دې لپاره ایسارېده تر څو داسې څوک پیدا شي چې دی بوځي، زما خو څوک پېژندګلو نه ؤ ځکه نو زه صُفې والاوو سره ایسار شوم په صُفه کې نور مهاجرین هم وو، یو ځل د جمعې په ورځ یوه سړي په اوچت اواز سره وویل: اې د الله جَلَّجَلَالُهُ رسوله! کجورو زمونږ خېټې وسوزولې، رسول الله ﷺ وفرمایل ډېر زر به داسې زمانه راشي چې په تاسو کې که څوک ژوندی پاتې شو د هغه په مخکې به سحر او ماښام د طعام لویې لویې پیالې راوړل کېږي او کوم قسم پردې چې په کعبه باندې اچول کیږي داسې قیمتي جامې به تاسو اغوندی! (۲)

حضرت سلمه بن اکوع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: رسول الله ﷺ به صحابه وو ته مونځ ورکولو او کله به چې له لمانځه نه فارغ شو نو خپلو صحابه وو ته به یې فرمایل: هر چا سره چې د طعام څومره انتظام وي، هغه دې د هماغه طعام د انتظام په اندازه مېلمانه ځان سره بوځي، په دې وجه به چا یو مېلمه بوتلو چا به دوه او چا به درې او څومره مېلمانه به چې پاتې شو هغه به رسول الله ﷺ ځان سره بوتلل.(۳)

حضرت محمد بن سیرین رَحِمَهُ اللهُ وایي کله به چې ماښام کېده نو رسول الله ﷺ به اصحاب صفه په خپلو صحابه وو کې تقسیمول چا به یو سړی بوتلو، چا دوه او چا به درې تر دې چې څینو به لس مېلمانه بوتلل او حضرت سعد بن عُباده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به هره شپه اتیا مېلمانه بوتلل

---

۱: اخرجه ابونعيم فى الحلية ۱/۳۷۴ واخرجه ايضا الطبراني والبزار بنحوه قال الهيثمي ۱۰/۳۲۳ رجال البزار رجال الصحيح غير محمد بن عثمان العقيلي وهو ثقة انتهى واخرجه ابن جرير كما فى الكنز ۴/۴۱ واحمد والحاكم وابن حبان كما فى الاصابة ۲/۲۳۱

۲: اخرجه الطبراني وفيه المقدام بن داود وهو ضعيف وقد وثق وبقية رجاله ثقات كما قال الهيثمي ۱۰/۳۲۲

۳: اخرجه البيهقي كذافي الكنز ۵/۶۵

او په هغوی باندې به يې په خپل كور كې طعام خوړلو.(۱)

حضرت ابوهريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: يو ځل رسول الله ﷺ زما خوا ته تېر شو نو هغوی ﷺ وفرمايل: اې ابوهريره! ما عرض وكړ لبيك اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! وې فرمايل لاړ شه! اهل صفه را وغواړه! اهل صفه د اسلام مېلمانه وو، دلته د هغوی كورنۍ، بچيان، مور او پلار، كليوال او بلكې هيڅوک هم نه وو او نه له هغوی سره څه مال و، كله به چې رسول الله ﷺ ته صدقه راتله نو ټوله به يې هغوی (اصحاب صفه وو) ته لېږله او پخپله يې هيڅ شي هم نه ورڅخه استعمالول، خو كله به چې ورته هديه راتله نو هغه به يې پخپله هم استعمالوله او هغوی ته به يې هم پكې حصه وركوله يعني له هديې نه به يې هغوی ته هم څه لېږل.(۲)

**اهل صفه وو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ ته دعوت كول:**

حضرت ابوذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: زه په اهل صفه كې وم كله چې به ماښام شو نو مونږ به د رسول الله ﷺ دروازې ته ورتلو هغوی ﷺ به صحابه كرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ ته زمونږ په اړه فرمايل چې هر يو صحابي دې ځان سره د خپل وس په اندازه كسان بوځي نو هر كس به ځان سره په مونږ كې يو كس خپل كور ته بوتلو په اخر كې به په اهل صفه كې لس يا كم وزيات كسان پاتې شول نو مونږ پاتې كسانو به رسول الله ﷺ سره ډوډۍ خوړله كله چې به مونږ له ډوډۍ نه فارغېدو نو رسول الله ﷺ به فرمايل: ځئ! په مسجد نبوي كې ويده شئ! يو ځل رسول الله ﷺ زما په خوا كې تېرېدو زه پړمخې ويده ووم نو مبارک زه په پښې سره ووهلم وې فرمايل: اې جُندب! دا څنګه پروت يې؟ داسې خو شيطان څملي.(۳)

حضرت طخفه بن قيس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: يو ځل رسول الله ﷺ خپلو صحابه وو ته وفرمايل چې اهل صفه د ډوډۍ د خوړلو لپاره ځانونو سره خپلو كورونو ته بوځي او ډوډۍ پرې وخوري نو چا يو كس بوتلو او چا دوه په اخر كې مونږ پنځه كسان پاتې شو زما نه پرته څلور كسان نور هم وو، رسول الله ﷺ مونږ ته وفرمايل راځئ! نو مونږ رسول الله ﷺ سره د

---

۱: اخرجه ابونعيم في الحلية ۳۴ /۱ واخرجه ايضا ابن ابي الدنيا وابن عساكر نحوه مختصرا كما في منتخب الكنز ۵/۱۹۰

۲: اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۳۲۷ صحيح متفق عليه.

۳: اخرجه ايضاً ۱/۳۵۲

حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا کور ته لاړو رسول الله ﷺ وفرمايل: اې عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا! مونږ
باندې طعام او څښاک وکړه نو حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا د غنمو د غوښې والا دل راوړو
کله چې مونږ هغه وخوړو بيا يې د کجورو حلوه راوړه چې د هغې رنګ د کور کړې پشان و
مونږ هغه هم وخوړله نو هغوی ﷺ وفرمايل چې اې عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا! مونږ باندې څه
وڅښه! نو حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا له پيو نه ډکه يوه وړوکې پياله راوړله مونږ هغه پې هم
وڅښلې بيا رسول الله ﷺ وفرمايل چې که خوښه مو وي نو هم دلته شپه تېره کړئ! او که
خوښه مو وي نو مسجد ته لاړ شئ! مونږ وويل چې مونږ مسجد ته تلل غواړو له دې
وروسته مونږ مسجد ته لاړو او څملاستو زه په مسجد کې پرمخې پروت ووم چې يو سړی
زه له پښې نه وښورولم او وې ويل چې د غه شان ملاسته خو الله جَلَّ جَلَالُهُ ته ناخوښه ده، ما
چې وکتل نو هغه رسول الله ﷺ و.(۱)

**هغو کسانو ته میلمستيا کول چې غوښتل يې مسلمان شي:**

حضرت جهجاه غفاري رَضِيَ اللهُ عَنهُ وېلي دي: چې زه د خپل قوم له څه خلکو سره مدينې
منورې ته راغلم، زمونږ اراده د اسلام راوړلو وه، مونږ د ماښام لمونځ له رسول الله ﷺ سره
يو ځای وکړ، د اسلام راوړلو نه وروسته يې وفرمايل: هر سړی دې ځان سره د ناست سړی
لاس ونيسي او هغه دې له ځان سره خپل کور ته بوځي تر څو پرې طعام وخوري نو ټول
خلک صحابه وو بوتلل او په مسجد کې زما او د رسول الله ﷺ نه بغير بل هيڅوک هم پاتې
نه شول، ځرنګه چې زه اوچت قد والا ووم، ځکه چا بو نه تلم نو رسول الله ﷺ زه خپل کور ته
بوتلم بيا هغوی ﷺ زما لپاره د يوې چېلۍ پی ولوشلې، رايې وړلې او ما هغه ټولې
وڅښلې تر دې چې رسول الله ﷺ د اووه چېلو پی ولوشلې او رايې وړلې او ما هغه ټولې
وڅښلې بيا رسول الله ﷺ د کانې په کټوی کې کتغ راوړو، هغه مې هم ټول وخوړ، دې ليدو
سره حضرت ام ايمن رَضِيَ اللهُ عَنهَا وويل دې سړی خو هر څه وڅښل او وې وخوړل! رسول
الله ﷺ وږي پاتې شو. او څوک چې نن شپه د رسول الله ﷺ د وږي کېدو ذريعه جوړ شوی
دی هغه دې الله رب العزت وږي وساتي! رسول الله ﷺ وفرمايل: اې ام ايمن! چُپ شه!
هغه خپل رزق خوړلی دی يعنې خپله برخه يې خوړلې ده او زمونږ رزق د الله جَلَّ جَلَالُهُ په ذمه

۱: اخرجه ابونعیم ایضا ۱/۳۴

دي، سحر د رسول الله ﷺ صحابه او د غه له بهر نه راغلي مېلمانه ټول يو ځائ شول او هر مېلمه ته چې د شپې کوم خوراک راوړل شوي و د هغه بيان يې کولو نو ما وويل چې ما ته د اووه چېليو پۍ راوړل شوي او ټولې مې وڅښلې بيا په يوه کټوۍ کې کتغ راوړل شو هغه مې هم ټول وخوړ، کله چې بيا ماښام شو نو دې ټولو له رسول الله ﷺ د ماښام مونځ وکړ او وروسته بيا رسول الله ﷺ وفرمايل چې هر سړی دې ځان سره د ناست سړي لاس ونيسي او خپل کور ته دې بوځي تر څو طعام پرې وخوري، نن هم زما او د رسول الله ﷺ نه غير بل څوک پاتې نه شو، زه او چت قد والا سړی ووم له دې وجې نه زه چا بو نه تلم نو رسول الله ﷺ بيا زه بوتلم، ما ته يې د يوې چېلۍ پۍ راوړلې او رايې کړلې خو عجيبه وه نن زه د هماغې يوې چېلۍ په پيو باندې مړ شوم او خېټه مې پړې دکه شوه، کله چې ام ايمن رَضِيَ اللهُ عَنهَا دا حالت وليدلو نو وې پوښتل، اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! آيا دا سړی زمونږ پروني مېلمه نه دی؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې هو! هم هغه دی خو نن شپه ده د مؤمن په کولمه خوراک کړی دی او بېګاه شپه يې د کافر په کولمه خوراک کاوه، په داسې حال کې چې کافر په اووه کولمو کې طعام خوري او مؤمن په يوه کولمه کې طعام خوري يعنې مؤمن سره د زيات خوراک او څښاک فکر او شوق نه وي او له کافر سره بيا د زيات خوراک او څښاک فکر او شوق وي.(۱)

**په رمضان کې اهل صفونه مېلمستيا کول:**

حضرت واثله بن اسقع رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي: يو وخت مونږ په اهل صفه کې وو چې د روژې مياشت راغله، مونږ روژې نيول شروع کړل او کله به چې مونږ روژه ماتې کولو نو کومو خلکو چې له رسول الله ﷺ سره د اسلام راوړلو بيعت کړی ؤ هغه خلک به راتلل او په هغوی کې به هر چا مونږ له دلې نه يو کس ځان سره بوتلو او په هغه باندې به يې د شپې خوراک خوړلو، يوه شپه زمونږ د بوتللو لپاره څوک رانغلل تر دې چې سحر شو بيا دويمه شپه راغله خو زمونږ بوتلو لپاره بيا هم څوک رانغلل، بيا مونږ د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او خپل حالت مو ورته بيان کړو، رسول الله ﷺ خپلو بيبيانو کې هرې يوې ته سړی ولېږه تر څو پوښتنه ورڅخه وکړي چې د خوراک څه شی ورسره شته کنه؟ نو په هغوی

---

(۱) اخرجه الطبراني وابونعيم وكذافي الكنز ۱/۹۳ واخرجه ايضا ابن ابي شيبة نحوه كما في الاصابة ۱/۲۵۳

کې هرې يو ې قسم وخوړ او جواب يې راولېږه چې په کور کې هيڅ داسې شی نشته چې هغه شوک وخوري، رسول الله ﷺ د ې اصحاب صفه ته وفرمايل چې تاسو ټول جمع شئ! کله چې دغه خلک جمع شول نو رسول الله ﷺ د هغوی لپاره دعا وکړه اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! زه ستا نه ستا فضل او ستا رحمت غواړم ځکه چې ستا رحمت هم ستا په اختيار کې دی ستا نه علاوه بل څوک د دې مالک نشته کله چې رسول الله ﷺ دا دعا وکړله نو له دې سره سم يو سړی د ننه راتلو اجازه وغوښتله، رسول الله ﷺ ورته اجازت ورکړو نو هغه يوه وريته کړې چېلۍ او ډوډۍ راوړله، د رسول الله ﷺ په فرمايلو هغه چېلۍ مونږ ته کېښودل شوه مونږ له هغې نه طعام وخوړلو او بنه ماړه شولو نو رسول الله ﷺ مونږ ته وفرمايل چې مونږ له الله جَلَّ جَلَالُهُ نه د هغه فضل او رحمت وغوښتله نو دا طعام د الله جَلَّ جَلَالُهُ فضل دی او الله جَلَّ جَلَالُهُ خپل رحمت زمونږ لپاره ذخيره کړی او اخرت لپاره يې ساتلی دی.(۱)

حضرت عبد الرحمن بن ابي بکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي، اصحاب صفه غريبانان او فقيران خلک وو. رسول الله ﷺ يو ځل اعلان وکړ چې چا سره د دوو کسانو لپاره د خوراک انتظام وي نو هغه دې اصحاب صفه وو نه دريم کس هم له ځان سره بوځي او چا سره چې د څلورو کسانو د خوراک انتظام وي نو هغه دې پنځم يا شپږم کس هم له ځان سره بوځي نو رسول الله ﷺ پخپله لس کسان بوتلل او زما پلار حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ درې کسان کور ته راوستل او په کور کې پخپله زه، زما پلار مور وو، راوي وايي ما ته دا معلومه نه ده چې دا يې هم ويلي وو چې زما بيې هم وه او بل يو خادم و چې به زمونږ او د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دواړو په کورونو کې کار کولو، د کور ټول کسان څلور يا پنځه وو، رسول الله ﷺ خو فرمايلي وو چې څلور وي نو يو يا دوه دې بوځي خو ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په شوق کې درې کسان راوستل پخپله ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ رسول الله ﷺ سره د شپې ډوډۍ وخوړله او بيا د ماسخوتن مانځه نه روستو نور هم ايسار شو تر دې چې رسول الله ﷺ وخوړله د شپې له ډېرې برخې تېرېدو نه پس حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کور ته راغی هغه دا ګنل چې مېلمنو به ډوډۍ خوړلې وي د هغه بي بي هغه ته وويل چې ته خپلو مېلمنو ته ولې رانغلې؟ په دې سره ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې آيا تاسو په مېلمنو باندې ډوډۍ ونه خوړله؟ بي بي يې وويل، مونږ خو دوی ته

۱: اخرجه البيهقي كذافي البداية ۶/۱۲۰

ویلي وو چې ډوډۍ وخورئ! خو دوي انکار وکړ او وې ویل چې ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راشي نو بیا به یې وخورو، مونږ ډېر وس وکړ خو بلکل یې ونه منله او په مونږ باندې غالب شول، حضرت عبدالرحمن بن ابي بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي ما چې دا واوریدل نو د ننه لاړم، پټ شوم، حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زما نه خفه شو او وې ویل چې اې بېوقوفه! تا په دوی باندې ډوډۍ ولې نه ده خوړلې؟ او بنه بد رد یې ما ته وویل بیا حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په غصه کې قسم وخوړو چې زه به ډوډۍ نه خورم او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مېلمنو ته وویل تاسو ډوډۍ وخورئ! زه دا ډوډۍ بلکل نه خورم په دې باندې مېلمنو هم قسم وکړ چې ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یې نه خوري نو مونږ یې هم نه خورو اخر د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ غصه یخه شوه او خپل قسم یې مات کړو او مېلمنو سره یې د طعام په خوړلو کې شروع وکړه په دې باندې حضرت عبدالرحمن بن ابي بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې مونږ ډوډۍ خوړله په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! مونږ به چې کومه نوړۍ اوچتوله نو د هغې په ځای به طعام د هغې نه هم زیات شو او داسې احساس به راته نه کېده چې طعام زمونږ په خوړلو کمېږي، حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کله چې وکتل چې طعام د مخکې نه هم زیات شوی دی نو خپلې بي بي ته یې وویل، اې د بني فراس قبیلې زنانه! وګوره دا څه کیږي؟ بي بي یې وویل، هیڅ خبره نه ده زما دې د سترګو په یخوالي قسم وي چې دا طعام له مخکښې نه درې چنده زیات شوی دی بیا حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم هغه طعام وخوړلو او وې ویل چې زما د نه خوړلو قسم خو د شیطان له طرفه و بیا یې د دې نه یوه نوړۍ هم وخوړله بیا یې دا طعام رسول الله ﷺ ته یوړلو زمونږ د مسلمانانو یو قوم سره معاهده شوې وه چې د هغې موده پوره شوې وه په دې وجه مونږ مسلمانانو د هغوی طرفته لېږلو لپاره یو لښکر تیار کړي و چې په هغې کې دولس کسان ذمه دار جوړ شو او هر یو سره ډېر مسلمانان یو ځای شوي وو د ذمه دارو تعداد خو معلوم دي خو هر یو سره څومره مسلمان وو؟ په دې تعداد الله رب العزت پوهیږي په هر حال دې ټول لښکر د دې ډوډۍ نه طعام خوړلې وو بعضې راویانو د دولسو ذمه دارانو جوړولو پر ځای د دولسو ډلو جوړولو یادونه کړې ده.(۱)

---

۱: اخرجه البخاري وقد رواه في مواضع آخر من صحيحه ورواه مسلم كذافي البداية ٦/١١٢

**د حضرت قيس بن سعد رضي الله عنهما حكايت:**

حضرت يحي بن عبد العزيز رحمة الله وايي چې په نوبت سره به يو كال به حضرت سعد بن عُباده رضي الله عنه غزا ته تلو او بل كال به د هغه ځوى حضرت قيس رضي الله عنه تلو دا شان يو ځل حضرت سعد رضي الله عنه د مسلمانانو سره غزا ته تللى و د ده پسې مدينه منوره كې رسول الله ﷺ ته د ېر مسلمانان راغلل حضرت سعد رضي الله عنه ته هلته په لښكر كې دا خبره معلومه شوه او ويې ويل كه چېرې قيس زما ځوى وي نو هغه به زما غلام (نسطاس) ته ووايي چې چابيانې راوره تر څو زه د رسول الله ﷺ لپاره د هغوى د ضرورت شيان د خپل پلار له ګودام نه راوباسم، په دې به نسطاس ووايي چې د خپل پلار د طرف نه د اجازت څه ليكل راوړه انو زما ځوى به هغه ووهي او د هغه پوزه به ماته كړي، له هغه نه به په زور سره چابيانې واخلي او د رسول الله ﷺ د ضرورت ور سامان به راوباسي نو وروسته په مدينه منوره كې هم داسې وشول او حضرت قيس رضي الله عنه رسول الله ﷺ ته سل وسق (چې نږدې پنځه سوه ار پنځه ويشت منه كيږي) يې راوړلې او وريې كړې.(۱)

**د قحطۍ په كال كې باندېچيانو ته مېلمستيا كول:**

حضرت ميمونه بنتُ الحارث فرمايي! يو كال قحط راغى نو د باندو او كليو خلك مدينې منورې ته راغلل او د رسول الله ﷺ په فرمان باندې هر صحابي په هغوى كې د يو كس لاس ونيولو او د مېلستيا او طعام خوړلو لپاره يې خپل كور ته بوتلو نو يوه شپه يو باندېچي راغى او رسول الله ﷺ له ځان سره خپل كور ته راوستلو، رسول الله ﷺ سره د خوراك لږ طعام او لږ څه پيه وې چې هغه باندېچي دا ټول هر څه وخوړل او وڅښل او د رسول الله ﷺ لپاره يې هيڅ هم پرېنښودل، رسول الله ﷺ له دې وروسته هم يوه يا دوه شپې نور هغه له ځان سره خپل كور ته راوستلو او هره شپه به يې ټول هر څه خوړل، په دې باندې ما رسول الله ﷺ ته عرض وكړ چې اې د الله جل جلاله رسوله! په دې باندېچي بركت مه اچوئ! ځكه چې دى د رسول الله ﷺ برخه ټول طعام خوري او هيڅ هم ورته نه پرېږدي. دغه باندېچي كله چې مسلمان شو نو يا يوه شپه د خوراك لپاره رسول الله ﷺ ځان سره خپل كور مبارك ته راوستلو. خو د نورو شپو په خلاف په دغه شپه هغه لږ خوراك وكړو، نو د دې حالت په ليدلو سره ما هغوى ﷺ ته

(۱) اخرجه الدار قطنى فى كتاب الاسخياء كذافى الاصابة ۳/۵۵۲

عرض وکړ چې دا هغه سړی دی؟ چې مخکې به یې ټول خوراک ختمولو؟ رسول الله ﷺ وفرمایل چې دا هم هغه دې خو مخکې کافر و اوس مسلمان شوی دی او کافر په اوو کولمو خوراک کوي او مؤمن په یوه کولمه خوراک کوي.(۱)

**په عام الرماده کې د باندیچیانو په میلمستیا کې دحضرت عمر رضي الله عنه عمل:**

حضرت اسلم رحمه الله وايي چې د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په زمانه کې سخت قحط راغلی ؤ چې هغه ته عام الرماده ویلی شي، د رماده معنې تباهي ده یا ايره. یا هغه کال چې د خلکو رنګ پکې د قحط له وجې د ایرې غوندې شوی وي، په دغه کال باندې نو د هر طرف نه عرب مدینې منورې ته راغلل، حضرت عمر رضي الله عنه څه خلک د هغوی د انتظام او په هغوی کې دودۍ او خوراک تقسیمولو لپاره وټاکل، د دغو خلکو له جملې څخه حضرت یزید بن اُخت نمر رضي الله عنه، حضرت مسور بن محزمه رضي الله عنه، حضرت عبدالرحمن بن عبد قاري رضي الله عنه او حضرت عبدالله بن عُتبه بن مسعود رضي الله عنه ؤ، ماښام به دا حضرات به د ورځې په وروستۍ برخه کې حضرت عمر رضي الله عنه ته راجمع کېدل او د ټولې ورځې کارګذاري به یې ورته اوروله په دوي کې هر یو کس د مدینې منورې په یو اړخ باندې مقرر ؤ او دا باندیچیان خلک د ثنیة الوداع د شروع نه واخله د راتج قلعه، بنو حارثه، بنو عبدالاشهل، بقیع او بنو قُریظه پورې دېره ؤ او د هغوی نه څه خلک د بنو سلمه په علاقه کې هم پراته و، په هر حال دغه خلک د مدینې منورې نه بهر څلور واړه طرفونو کې دېره وو یوه شپه کله چې دې باندیچیانو د حضرت عمر رضي الله عنه سره دودۍ وخوړله نو ما د حضرت عمر رضي الله عنه نه داسې واورېدل وې ویل: مونږ سره چې څوک د شپې دودۍ خوري د هغوی شمار وکړئ! د حضرت عمر رضي الله عنه په دې امر سره راتلونکې شپه شمار وشو نو د هغوی تعداد اووه زره وو. بیا حضرت عمر رضي الله عنه وفرمایل چې هغه کورونه چې دلته راځي او د هغوی بیماران او بچو شمار هم وکړئ! هغوی وشمېرل شول چې د هغوی تعداد څلوېښت زره وو بیا څو شپې نورې تېرې شوې چې په دې سره خلک نور

(۱): اخرجه الطبراني قال الهيثمي ۵/۳۲ رواه الطبراني بتمامه وروي احمد آخره ورجال الطبراني رجال الصحيح انتهى.

هم زيات شول نو د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په وينا بيا وشمېرل شول نو كومو خلكو چې د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره د شپې ډوډۍ خوړلې وه هغه لس زره وو او نور خلک پنځوس زره وو، لنډه دا چې دا سلسله دغسې روانه وه تر دې چې الله رب العزت باران وكړ او قحط يې ختم كړو، كله چې به باران وشو نو ما وليدل چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دغه انتظامي خلكو كې هر قوم ته دا كار په ذمه كړو چې دې راتلونكو خلكو چې د دوي په علاقه كې پراته وو هغوی دې د هغوی كلو ته واپس وليږي او هغوی ته دې د لارې خرچ او كلو پورې د تلو سورلۍ هم وركول شي او ما دا هم وليدل چې پخپله حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هم د هغوی په لېږلو كې لګيا وو، په دغه قحط ټولو كې ډېر خلک مړه شوي هم وو، يعنې زما په ګومان دريمه حصه خلک به په كې مړه شوي وي او دريمه حصه به بچ شوي وي د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ډېر زيات دېګونه وو، پخوونكي خلک به سحر تهجد و وخت كې پاڅېدل هغه دېګونو كې به يې كركوړ (يو قسم دال) پخول بيا به يې سحر دا دال په بيمارانو خوړل بيا به يې اوړو كې غوړي واچول او يو قسم خوراک به يې تړې پخولو، د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په وينا به په لويو لويو دېګونو كې تېل واچول شول او په اور به دومره جوش وركړې شو چې د تېلو ګرمي او تېزي به ختمه شوه بيا به ډوډۍ ماته شوه او په هغې كې به يې دا تېل د سالن په توګه اچول، ځكه چې په عربو كې د تېلو استعمالولو عادت نه وو، په دې وجه د تېلو په استعمال سره د هغوی تبه كېدله د قحط په دې ټوله موده كې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه له خپل كوم ځوی سره ډوډۍ وخوړله او نه يې هم له خپلې بي بي سره، بلكې دې قحط ټولو خلكو سره به يې د شپې ډوډۍ خوړله تر دې چې الله جَلَّ جَلَالُهُ باران وكړ انسانانو ته يې ژوند ورنصيب كړو چې بالاخره د باران پواسطه قحط هم ختم شو.(١)

حضرت فِراس ديلمي رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چې كوم اوښان د مصر نه رالېږلي وو د هغو نه به حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روزانه شل اوښان حلالول او خپل دسترخوان باندې به يې په خلكو خوړل.(٢)

---

١: اخرجه ابن سعد ٣/٣١٦

٢: اخرجه ابن سعد كذافي منتخب الكنز ٤/٣٨٧

**د حاجتمندو اهل بیتو او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حکایت**

حضرت اسلم رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یوه شپه ګرځېده نو د یوې زنانه خوا کې په داسې حال کې تېر شو چې دغه زنانه د خپل کور په مېنځ کې ناسته وه، ګېر چاپېره ورځنه ماشومان ناست وو او ژړل يې، يو دېګ يې له اوبو نه ډک په اور اېښى و. حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دروازې ته نژدې ورغی او له زنانه څخه يې پوښتنه وکړه، چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ بندې! دا ماشومان ولې ژاړي؟ هغې ښځې ورته وويل چې د لوږې د وجې نه ژاړي، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې دا دېګچې په اور څنګه اېښى دی؟ هغې ښځې وويل چې د ماشومانو زړه ساتلو او د ژړا د غلي کولو لپاره مې اېښى دی تر څو غلي شي او ويده شي، خو ماشومانو ته مې ويلي چې په دېګ کې څه شته او دربانده خورم يې! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې دا واورېدل نو په ژړا شو، بيا يې چې کوم ګودام کې د صدقې مال اېښي وه هلته ورغی او يوه بوره يې را واخيستله او وړه، غوړي، کجورې او څه جامې او درهم يې پکې واچول تر دې چې هغه بوره ډکه شوه بيا يې وويل چې اې اسلم! دا بوره را اوچته کړه! او زما په اوږو باندې يې کېږده! ما وويل چې اې اميرالمؤمنين! ستاسو په ځاى به يې زه په خپلو اوږو اوچته کړم او وړ به يې سم، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راته وويل: اې اسلم! مور دې مړه شه! هم زه به يې اوچتوم! څکه چې په اخرت کې به د دوې په باره کې له ما نه پوښتنه کېږي نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بوره پخپله اوچته کړه او د هغې زنانه کور ته يې وړله او دېګچې يې را ورو اوړه، غوړي او کجورې يې پکې واچولې بيا يې په اور باندې کېښود په خپل لاس يې هغه لړله او د دېګچې لاندې يې اور ته پو کې ورکول، ما د ږېره څله وليده چې لوګي د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ږېرې د مېنځ نه وتلو تر دې چې د ماشومانو لپاره طعام پوخ شو بيا يې په خپل لاس له دېګ څخه پوخ شوې طعام واچولو او ماشومانو ته يې ورکولو تر دې چې هغوى ماړه شول بيا د ماشومانو له کور نه په داسې حال کې بهر راغی چې ما د وېرې د وجې نه ورسره خبره نه شوه کولى، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم د غسې ناست و تر دې چې ماشومان په لوبو بوکو کې په خندا شول نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راپاڅېد او وې ويل چې اې اسلمه! ته پوه شوې چې زه ماشومانو ته

مخامخ ولې کېناستم؟ ما ورېل نه! هغوی ورېل ما دوي په ژړا لیدلي وو ما ته دا خبره خوښه نه شوه چې زه دا ماشومان په خندا لیدو نه بغیر پرېږدم او لاړ شم کله چې هغوی په خندا شول نو زما زړه خوشحاله شو او راپاڅېدم.(۱)

په یو روایت کې داسې هم راغلي دي چې حضرت اسلم رَحِمَهُ اللَّهُ وایي یوه شپه زه له حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره حره واقم (چې د مدینې د یوې علاقې نوم دي) طرف ته ووتلم، کله چې مونږ صِرار مقام ته ورسېدو نو مونږ ته بل شوي اور په نظر راغی، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ووېل چې اې اسلمه! دا څه قافله ده چې د شپې د راتللو په وجه دلته ایساره شوې ده، څه! چې دوي ته ورشو، لنډه دا چې مونږ ورغلو نو وموليدل چې یوه زنانه ده او خپل بچي هم ورسره دي له دې مخکې یې د تېر شوی حدیث پشان مضمون ذکر کړی دی.(۲)

## د طعام «خوراک» تقسیمول

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: د دُومة الجندل نومي مقام بادشاه چې أکیدر نومېده، له حلوه ډک یو منګي د رسول الله ﷺ په خدمت کې هدیه ولېږه، کله چې له مانځه نه فارغ شو نو هغوی ﷺ خلکو سره تېرېدو او هر یوه ته به یې د حلوه یوه یوه ټوټه ورکوله، کله یې چې حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته یوه ټوټه ورکړه نو بیا ورته واپس راغی او بله ټوټه یې هم ورته ورکړه، په دې وجه حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عرض وکړ چې تاسو خو یو ځل ما ته راکړې ده! رسول الله ﷺ وفرمایل چې دا دویمه ټوټه مې د حضرت عبد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لونو ته یعنې ستا د خویندو لپاره درکړې ده تر څو یې په هغوی وخوري.(۳)

حضرت حسن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هم داسې فرمایي: د دومه الجندل بادشاه أکیدر د رسول الله ﷺ په خدمت کې د حلوه یو منګي په هدیه کې راولېږلو او په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! چې په دغه ورځ پخپله رسول الله ﷺ او کورروالا وو ته یې د دې منګي ضرورت ؤ خو کله چې له مانځه نه فارغ شو نو یو سړی ته یې وفرمایل: چې دا منګي واخله! په دې سره هغه سړی دا منګي

---

۱: اخرجه الدينوري وابن شاذان وابن عساكر كذافي منتخب الكنز ۴/۴۱۵

۲: ذكره البداية ۷/۱۳٦ واخرجه الطبري ۵/۲۰ بمعناه مع زيادات.

۳: اخرجه احمد كما في جمع الفوائد ۱/۲۹۷ قال الهيثمي ۵/۴۴ وفيه علي بن زيد وفيه ضعف ومع ذالك حديثه حسن.

واخیستلو او د رسول الله ﷺ صحابه وو ته ورغی، هغه به چې کوم سړی ته ورسېد و نو په منګي کې به یې لاس دننه کړو، حلوه به یې ورڅخه راووېستله او هغه به یې خوړله، دا شان هغه خالد بن ولید رَضِیَ اللهُ عَنْهُ ته ورسېد و نو هغه په منګي کې لاس ورکړو او د وه ځل یې حوله ورڅخه واخیستله، په دې سره خالد بن ولید رَضِیَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړو او وې ویل: اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! نورو خلکو خو یو ځل اخیستې ده او ما دوه ځل اخیستې ده، رسول الله ﷺ وفرمایل: هیڅ خبره نه ده، ته یې هم وخوره او پخپلو بچیانو باندې یې هم وخوره.(۱)

**په صحابه کرامو رَضِیَ اللهُ عَنْهُمْ د رسول الله ﷺ کجورې تقسیمول**

حضرت ابو هریره رَضِیَ اللهُ عَنْهُ فرمایي یوه ورځ رسول الله ﷺ پخپلو صحابه وو باندې کجورې تقسیمولې چې هر یو ته یې اووه اووه کجورې ورکړې او ما ته یې هم اووه کجورې راکړې چې په هغې کې یوه خرابه کجوره بغیر د هډوکي نه هم وه چې زما د هغه ټولو کجورو نه ډېره خوښه شوه ځکه چې هغه سخته وه په دې وجه د هغې په شخوند وهلو وخت زیات اولګېدو او ما په هغې باندې ډېر وخته پورې شخوند وهلو.(۲)

حضرت انس رَضِیَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: رسول الله ﷺ ته څه کجورې راوړل شوې، رسول الله ﷺ هغه په صحابه وو باندې تقسیمولې او هغوی ﷺ په داسې ناسته کجورې زر زر خوړلې لکه چې په کوم کار پسې اوس پاڅېدو والا وي او روانېږي، البته د څه ضروري کار لپاره به تلل وو ځکه مو په ارام او ناستې سره کجورې ونه خوړلې.(۳)

**په "عام الرماده "کې عمرو بن العاص رَضِیَ اللهُ عَنْهُ ته دحضرت عمر او دهغه جواب**

حضرت لیث بن سعد رَضِیَ اللهُ عَنْهُ وایي چې د حضرت عمر بن خطاب رَضِیَ اللهُ عَنْهُ د خلافت زمانه وه چې د رماده والا په کال په مدینه منوره کې خلک د ډېر قحط په وجه په سخت تکلیف کې وو نو هغوی مصر کې حضرت عمرو بن عاص رَضِیَ اللهُ عَنْهُ ته دا خط ولیکه:

(من عبدالله عمر امیرالمؤمنین الی العاصی بن العاص، سلام، اما بعد: فلعمری – یا عمرو ما تبالی اذا شبعت انت و من معك ان اهلك (انا) و من معی، فیاغوثاه، ثم یاغوثاه!).

---

۱: عند ابن جریر کذافی الکنز ۴/۴۷

۲: اخرجه البخاري

۳: عند مسلم ۲/۱۸۰

د الله جَلَّ جَلَالُهُ د بنده (امیر المؤمنین) له خوا نه دا فرمان دي چې د عاص ځوی ته دې سلام وي.
اما بعد ! اې عمرو زما د ځان قسم! کله چې ته او ستا ملګري به مړه خېټه خوراک کوئ انو بیا تاسو ته د دې څه پروا درځي چې زه او زما ملګري تباه کیږي، زمونږ مرسته وکړه! زمونږ مرسته وکړه! څرنګه چې د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لهجه د تنبیه او د ملامتیا وه ځکه یې حضرت عمرو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته په نافرمان سره خطاب وکړ او د خپل ځان د قسم کولو په عربو کې عام رواج و خو له دې قسم نه به قسم مراد نه و بلکې تاکید یې مقصد و حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپله اخري جمله بیا بیا وویله، حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په جواب کې واپس ورته دا مضمون ولیکه: (لعبدالله عمر امیرالمؤمنین من عمروبن العاص اما بعد: فیا لبیك، ثم یالبیك، و قد بعثت الیك بعیراولها عندك و آخرها عندی. والسلام علیك و رحمة الله و برکاته).

د الله د بنده امیر المؤمنین عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خدمت کې د عمرو بن عاص له طرفنه اما بعد !
زه له تاسو سره د مرستې لپاره حاضر یم، زه له تاسو سره د مرستې لپاره حاضر یم، زه ستاسو په خدمت کې د غلې دومره لویه قافله درلیږم چې د هغې اول اوښ تاسو سره مدینه منوره کې وي او اخري اوښ ما سره په مصر کې وي. والسلام علیکم ورحمت الله وبرکاته.

**د حضرت عمرو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د طرفه را لیږل شوي طعام دمدینې په خلکو تقسیمول**

نو حضرت عمرو مدینې منورې ته دومره لویه قافله ولیږله چې اولنی اوښ یې په مدینه کې او اخري اوښ یې په مصر کې و او اوښ پسې روان ؤ کله چې قافله مدینې منورې ته ورسېدله نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دغه سامان بنه په خلاص زړه سره په خلکو کې تقسیم کړ او دا فیصله یې وکړه چې مدینه منوره او د هغې خوا اوشا هر کور ته دې له ټولې بار شوې غلې سره یو اوښ ور کړی شي او حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت زبیر بن عوام رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یې په خلکو باندې د مال تقسیمولو لپاره ولیږل نو دې حضراتو هر کور ته یو اوښ سره د بار کړ شوې غلې ورکړل، دې لپاره چې هغوی غله هم استعمال کړي. اوښ حلال کړي. د هغه غوښه وخوري، له وازګې نه یې سالن جوړ کړي. د څرمنې نه یې خپلې څپلې جوړې کړي او په کومه بوری کې چې غله ده له هغې نه برستن جوړه کړي او پخپل ضرورت کې یې پکار راولي، همدارنګه الله رب العزت به

فراخي په خلکو باندې راوستله، تر دې وروسته راوي اوږد حديث بيان کړی دی چې په هغې کې دا مضمون دی چې مدينې منورې او مکې مکرمې ته د غلې رسولو لپاره د دريابې نيل نه بحر قُلزوم پورې يو نهر وکيندل شو.(۱)

حضرت اسلم رَحِمَهُ اللّٰهُ هم دا واقعه داسې بيانوي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د رماده والا د قحط په کال حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته خط وليکه بيا د دې قصې بيانولو نه پس حضرت اسلم وايي کله چې د دغې قافلې اوله حصه مدينې ته راورسېدله نو حضرت زبير رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يې ر وغوښتلو ورته يې وفرمايل ته دا اوښان ځان سره کړه او نجد طرف ته لاړ شه او د هغه ځائ په اوسېدونکو کې چې څومره خلک ته ما ته په سورلۍ راوستلی شې هغه ما ته راوله او کوم خلک چې نه شې راوستلی نو په هغوی کې هر کور ته يو اوښ سره د بار کړی شوي غلې ورکړه! او ورته ووايه چې دوه څادرونه خو واغوندئ! او اوښ حلال کړئ! او د هغې وازګه ويلې کړئ! او تېل ورځخه جوړ کړئ! غوښه پرېکړئ! او وچه يې کړئ! له څرمنې نه يې خپل ځان ته څپلۍ جوړې کړئ! او يا څه غوښه څه تېل او يو موټي اوړه واخلئ! هغه پخوئ! او خورئ يې! دا شان ګذاره کوئ! تر دې چې الله رب العزت د هغوی لپاره د نور رزق انتظام وکړي! خو حضرت زبير رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د دې کار لپاره تلو نه عذر وکړ حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! چې تا ته به تر مرګه پورې د دومره لوي ثواب موقع بيا ملاو نه شي بيا حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يو بل سړی غالباً حضرت طلحه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ر وغوښتلو خو هغه هم د تلو نه انکار وکړ بيا يې حضرت ابو عبيده بن جراح رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ر وغوښتلو چې هغه تلو لپاره تيار شو او لاړو، مخکې هغوی نور حديث داسې ذکر کړو چې په هغې کې دي چې حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حضرت ابو عبيده رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته زر ديناره ورکړل چې هغوی واپس کړل خو د حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په څه وينا باندې اخر حضرت ابو عبيده قبولې کړې د انصار حضراتو د اکرام او خدمت په باب کې دا تېر شوی دی چې رسول الله ﷺ په انصارو کې او بنو ظفر کې غله تقسيم کړه.(۲)

---

۱: اخرجه ابن عبدالحکم

۲: اخرجه ايضا ابن خزيمة وابوعبيدة والحاکم والبيهقی کذا فی المنتخب ۴/۳۹۶

# د جامو ورکړه او تقسیمول

حضرت حبان بن جزی سُلمي له خپل پلار حضرت جزي سُلمي څخه داسې نقل کوي چې مغه بندي صحابي ځان سره کړو چې خپل قوم بندي کړي و او بیا د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو، حضرت جزي هلته له رسول الله ﷺ سره مسلمان شو نو آنحضرت ﷺ ورته دوو څادرونو وراغوستلو اراده وکړه او ورته وې فرمایل چې ته حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته ورشه! کوم څادرونه چې هغې سره دي له هغو نه به دوه څادرونه درکړي، هغه د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په خدمت کې حاضر شو او عرض یې وکړ: الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تاسو تروتازه او خوشحاله لري تاسو سره چې کوم څادرونه دي له هغو نه دوه څادرونه خوښ کړئ! او ما ته یې راکړئ! ځکه چې رسول الله ﷺ ما ته دوو څادورنو د راکولو حکم کړی دی، حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د پلیون اوږد مسواک مخکې کړو او د مسواک په اشارې سره یې وفرمایل چې دا او دا واخله! او د عربو زنانه به په نظر نه راتلې ځکه چې هغوی به په پرده کې وي نو له هم له دې وجې نه حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په مسواک اشاره وکړه او څادرونه یې ورکړل.(۱)

**د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او درسول الله ﷺ دوه لمسیانو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا واقعه:**

حضرت جعفر بن محمد له خپل پلار محمد رَحِمَهُ اللهُ نه نقل کوي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته له یمن نه څه جوړې راغلې چې هغوی خلکو ته ورکړې، مابنام خلکو هغه جوړې واغوستلې او په داسې حالت کې راغلل چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د قبر مبارک او منبر شریف په منځ کې ناست و، خلک به ورته راتلل، سلام به یې کولو او دعاګانې به یې ورته کولې په دې کې حضرت حسن او حضرت حسین رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپلې مور حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د کور نه راووتل، مخکې را روان وو او د هغوی په بدن باندې له دې جامو نه څه جوړه نه وه چې له یمن نه راغلې وې، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کله چې دا حالت ولیده نو غمژن او پریشانه شو او به تندي یې ګونجې راغلې، وې فرمایل: په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! تاسو ته مې جوړې درکړې. واموغوستلې خو زه خوشحاله نه شوم ځکه چې د رسول

---

۱: اخرجه ابونعیم کذافی الکمنتخب ۵/۱۵۲

الله ﷺ لمسیانو ته مو وانه غوستلې، خلکو عرض وکړ چې اې امیر المؤمنین! تا خپل قوم ته جوړې واغوستلې ښه دې کړی دی. حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ووېل: زه ځکه پرېشانه یم چې دا دوه هلکان را روان وو او د دوي په بدن باندې له دغو جامو نه څه جوړه نشته. خو دا جوړې په دوي دواړو باندې لويې دي او دا دواړه د دې جوړو نه واړه دي ځکه مو دوي ته جوړې ورهم نکړې، بيا هغوی د یمن والي (گورنر) ته خط ولیکلو چې د حضرت حسن او حضرت حسین رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لپاره زر تر زره دوه جوړې را ولېږه! نو هغه دوه جوړې را ولېږلې او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه دواړه جوړې حضرت حسن او حسین رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورکړې چې هغوی هم واغوستلې.(۱)

او د انصارو د اکرام په باب کې په خلکو باندې د جوړو تقسیمولو په باره کې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره د حضرت اُسید بن حُضیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت محمد بن مسلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قصه تېره شوې ده او د ښځو د جنګ کولو په باب کې دا هم تېر شوی دی چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ام عماره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته دې لپاره یو لوي څادر ؤ رکړي و چې هغې د جنګ احد په ورځ جنګ ؤ.

**په دې باره کې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عمل:**

حضرت محمد بن سلام رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت شفاء بنت عبد الله عدويه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته پيغام ولېږلو چې د سحر په وخت کې ما ته راشه! هغه فرمايي: زه د سحر په وخت کې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورغلم نو ما سره د هغوی په دروازه کې حضرت عاتکه بنت اسید بن ابي العيص رَضِيَ اللهُ عَنْهَا مخ شوه بيا مونږ دواړه دننه لاړو هلته مو څه وخته پورې خبرې اترې وکړې بيا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو څادرر وغوښتلو، حضرت عاتکې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته يې ورکړو بيا يې يو بل څادرر وغوښتلو چې له اولنې نه د کمې درجې والا ؤ هغه يې ما ته راکړو، ما ووېل اې عمره! ما د هغې نه مخکې اسلام راوړی دی. زه ستا د ترور لور يم او دا نه ده، ما ته دې پيغام لېږلی ؤ، راغوښتې دې يم او دا پخپله راغلې ده! د دې تولو خبرو د وجې نه لوي څادر ما ته راکول پکار ؤ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې دا

---

۱: اخرجه ابن سعد كذافي الكنز العمال ۷/۱۰۶

څادر مې هم ستا لپاره ايبنې وو ځکه چې تاسو دواړه يو ځای شوئ! نو ما ته دا راياد شو
چې د هغې خپلولي رسول الله ﷺ سره ستا نه زياته نزدې ده او د رسول الله ﷺ رشته داري زما
د رشته دارۍ نه زياته درجه لري په دې وجه ما هغې ته لوې څادر ورکړو.(۱)

**په دې باره کې دحضرت علي رضي الله عنه عمل:**

حضرت اصبغ بن نُباته وايي چې يو سړی د حضرت علي رضي الله عنه په خدمت کې حاضر شو
او عرض يې وکړ اې اميرالمؤمنين! زما تاسو سره يو کار دی چې هغه تاسو ته د ويلو نه
مخکې ما الله جَلَّ جَلَالُهُ ته مخکې کړی دی که ته زما هغه کار وکړې نو زه به د الله رب
العزت هم تعريف وکړم او ستاسو به هم شکريه اداء کړم او که تاسو هغه کار ونه کړو نو بيا
به هم زه د الله رب العزت تعريف وکړم او تاسو به معذور وګڼم چې دا کار ستاسو په وس کې
نه دی، حضرت علي رضي الله عنه وفرمايل: ته خپل کار په زمکه باندې وليکه او ما ته يې
وښايه! ځکه چې په خوله سره د غوښتلو رسوايي زه ستا په مخ ليدل نه خوښوم نو هغه په
زمکه باندې وليکل چې زه حاجتمند يم حضرت علي رضي الله عنه وفرمايل: يوه جوړه ما ته
راوړه نو هغه جوړه حضرت علي رضي الله عنه هغه سړی ته ورکړه او هغه سړی هغه جوړه
واغوستله بيا هغه د حضرت علي رضي الله عنه په تعريف کې دا اشعار ويل شروع کړل:

کسوتنی حلة تبلی محاسنها
فسوف اکسوك من حسن الثناء حللا

تاخو ما ته يوه داسې جوړه راکړې ده چې د هغې خوبياني او ښه والي په زړېدلو سره ختم شي او زه
به تاسو ته د ښه تعريف داسې جوړې واغوندوم چې د هغې خوبياني به نه ختميږي:

ان نلت حسن ثنائی نلت مکرمة
و لست تبغی بما قدقلته بدلا

تاسو ته به زما په ښه تعريف سره لوې عزت ملاو شي او ما چې څه ويلي دي تاسو د دې
بدله کې هيڅ نه غواړئ!

ان الثناء ليحيی ذکر صاحبه
کالغيث يحيی نداه السهل والجبلا

---

۱: اخرجه زبير بن بكار كذافي الاصابة ۴/۳۵۶

تعریف د تعریف والا تذکره داسې ژوندی کوي څنګ چې د باران په اوبو سره میداني او غرنیزه علاقه ژوندی کیږي.

لا تزهد الدهر فی خیر توفقة
فکل عبد سیجزی بالذی عملا

د کوم خیر د کار چې الله رب العزت تا ته توفیق درکړي هغه ټول عمر کوه! او په بې رغبتۍ سره هغه مه پرېږده! ځکه چې هر بنده ته به د هغه د شوي عمل بدله ملاویږي.

دا اشعاریې چې واورېدل، حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې ما ته دینار راوړئ! نو هغوی ته سل اشرفۍ راوړل شوې هغوی دغه اشرفۍ هغه سړی ته ورکړې، حضرت اصبغ وایي چې ما وویل: اې امیرالمؤمنین! تاسو ده ته یوه جوړه او سل دیناره ورکوئ! حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې هو! ما د رسول الله ﷺ نه داسې اورېدلې دي چې خلکو سره د هغوی د مرتبې مطابق معامله کوئ! او د دې سړي زما په نزد همدا مرتبه ده.(۱)

## مسلمان ته د جامو اغوستلو اجر او ثواب

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یو سوالګر راغی او څه یې ورڅخه وغوښتل، حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته وویل چې آیا ته د دې خبرې شاهدي ورکوې چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه بغیر بل څوک مستحق د بندګۍ نشته او محمد ﷺ د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسول دی؟ هغه وویل هو! حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ترې پوښتنه وکړه چې د رمضان روژې نیسې؟ هغه وویل هو! حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې تا سوال کړی دی او د سوالګر حق وي او دا په مونږ باندې حق دی چې تا سره احسان وکړو بیا حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته یوه جامه ورکړه او وې فرمایل چې ما د رسول الله ﷺ نه دا اورېدلې دي چې یو مسلمان بل مسلمان ته جامه واغوندوي تر څو پورې چې د هغه په بدن باندې د هغې یوه ټوټه هم وي تر دغه وخته پورې هغه اغوستونکي د الله جَلَّ جَلَالُهُ په حفاظت کې اوسي.(۲)

۱: اخرجه ابن عساکر و ابو موسی المدیني فی کتاب استدعاء اللباس کذافی الکنز ۳/۳۲۴

۲: اخرجه الترمذی کذا فی جمع الفوائد ۱/۱۴۷

# مجاهدينو ته خوراک ورکول

**د حضرت قيس بن سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عمل او د رسول الله ﷺ قول:**

حضرت جابر بن عبد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله ﷺ يو لښکر روان کړو چې امير يې قيس بن سعد بن عُباده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ؤ په سفر کې په روان شوی لښکر باندې لوږه راغله، حضرت قيس د خپلو ملګرو لپاره نهه اوښان حلال کړل کله چې دا حضرات مدينې منورې ته واپس راغلل نو هغوی رسول الله ﷺ ته دا واقعه واوروله، رسول الله ﷺ وفرمايل چې سخاوت خو د دې کورنۍ خاص صفت دی.(۱)

حضرت رافع بن خديج رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي کله چې حضرت قيس بن سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نهه اوښان حلال کړل نو حضرت ابو عبيده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ځان سره کړو او حضرت قيس ته راغلل، ورته وې ويل: زه تا ته قسم درکوم او وايم چې ته اوښان مه حلالوه! په دې سره به اوښان کم شي او په سفر کې به تکليف وي. خو هغه بيا هم حلال کړل، رسول الله ﷺ ته دا ټوله قصه معلومه شوه نو وې فرمايل چې دا خو د سخي کورنۍ سړی دی او دا د غزوا خبط واقعه ده چې په هغې کې صحابه دومره وږي شوي وو چې خبط يعنې د ونو پاڼې به يې خوړلې.(۲)

**د مجاهدينو لپاره د درياب نه لوي کب(ماهي) راوتل:**

حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: د رسول الله ﷺ په زمانه کې يو ځل حضرت قيس بن سعد بن عُباده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تېر شو هغه وخت مونږ سخت وږي شوي وو، هغه زمونږ لپاره او وه اوښان حلال کړل بيا مونږ په سفر لاړو او د سمندر په غاړه مو ډېره واچوله، هلته مونږ ته يو ډېر لوي ماهي (کب) ملاو شو، مونږ درې ورځو پورې د هغه ماهي غوښه خوړله او له هغه نه مو د خپلې خوښې مطابق ډېره زياته چربي (وازګه) ووېستله، په خپلو مشکونو او تهيلو کې مو واچوله او له هغه ځايه روان شولو، رسول الله ﷺ ته واپس را ورسېدو او دا قصه مو ورته واوروله، ملګرو دا هم وويل که چېرې زمونږ دا يقين واي چې د کب غوښه به د رسول الله ﷺ خدمت کې رسول

۱: اخرجه ابوبکر في الغيلانيات وابن عساکر

۲: عند ابن ابی الدنيا وابن عساکر کذا فی منتخب الکنز ٥/٢٦٠

ي خرابه نشي نو مونږ به ځان سره ضرور راوړې واي.(۱)

**مدينو ته دطعام ورکولو په باره کې دحضرت عمر او حضرت بلال رضي الله عنهما واقعه:**

حضرت قيس بن ابي حازم رَحِمَهُ اللَّهُ وايي کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ شام ملک ته شريف يوړو نو دوي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته حضرت بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راغى، دغه وخت حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره د لښکرو اميران ناست وو نو حضرت بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل اې عمره! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل دا دی عمر حاضر دی وايه څه وايې؟ حضرت بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وويل چې ته د دې خلکو او د الله جَلَّ جَلَالُهُ په مينځ کې واسطه يې! خو تاسو او د الله جَلَّ جَلَالُهُ په مينځ کې هيڅوک نشته. تاسو په مخکې. ښي او ګس طرفته چې څومره خلک ناست دی تاسو دوي ته ښه وګورئ! څکه چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! دا خلک چې څومره تا ته راغلى دی دوي يوازې د مارغانو غوښې خوري. حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې تا صحيح وويل او تر څو پورې چې دا خلک ما ته د دې خبرې ضمانت رانکړي چې دوي به د خپل لښکر هر مسلمان ته دوه مُده (پاو کم دوه سيره) غنم او هغې په اندازه سرکه او تېل ورکوي، تر هغه وخته پورې به زه له دې ځائ څخه نه پاڅېږم، خلکو وويل چې اې اميرالمؤمنين! مونږ د دې ضمانت درکوو. دا زمونږ په ذمه دي، څکه چې الله رب العزت په مال کې ډېر زياتوالي او فراخي راکړې ده، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل ښه بيا صحيح ده او س زه د مجلس نه پورته کيږم او تاسو هم تللى شئ!(۲)

# رسول الله ﷺ به څنګه انفاق (خرچ) کولو؟

**په دې باره کې دحضرت بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او يو مشرک واقعه:**

حضرت عبدالله هوزني وايي چې يوه وخت د رسول الله ﷺ له مؤذن بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره په حلب کې زما ملاقات وشو ورته ومې ويل چې اې بلاله! دا راته ووايئ! چې د رسول الله ﷺ د خرچو څه صورت وو؟ هغوى وفرمايل چې رسول الله ﷺ سره خو څه نه وو. د هغوى ﷺ

۱: عند الطبراني قال الهيثمي ۲۷ ... فال عبدالملك بن شعيب بن الليث ثقة مامون وضعفه ... وغيره ... الثقات انتهى.

۲: اخرجه ابو عبيد ... قال الهيثمي ... ورجاله رجال الصحيح ...

خدمت د بعثت له وخته د مبارک تر وفات پورې زما په غاړه وو چې په دغه وخت کې د رسول الله ﷺ دا حال وو کله چې به څوک ورته راتلو او رسول الله ﷺ به هغه حاجتمند ګڼلو نو ارشاد به یې فرمایلو زه به لاړم چېرته نه به مې قرض واخیستلو او څادر به یې هغه ته واغوستلو او څادر او د خوراک څه شی به مې واخیستو او طعام به یې پرې وخوړلو یو ځل یو مشرک ما ته په مخه کې ملاو شو وې ویل ې بلاله! ما ته به فراخي حاصله ده ته د چا نه قرض مه اخله! کله چې ضرورت وي نو له ما نه پور اخله! ما هم له هغه مشرک نه قرض اخیستل شروع کړل یوه ورځ ما اودس وکړ او اذان کولو لپاره ودرېدم چې دغه مشرک د سوداګرو له یوې ډلې سره راغی او زه یې چې ولیدم وې ویل اې حبشي! ما وویل زه حاضر یم! څه وایې؟ هغه ډېر په بد اخلاقۍ سره وراندې راغی، ډېرې بدې ردې یې وویلې او وې ویل تا ته پته شته چې د میاشتې په ختمېدلو کې څومره ورځې پاتې دي؟ ما وویل چې نږدې ختمېدونکې ده هغه وویل چې څلور ورځې پکې پاتې دي، که چېرې تا په دې ورځو کې قرض ادا نه کړ نو زه به تا د دې په بدله کې غلام جوړوم، ما چې تا ته کوم قرض درکړی دی نو هغه ما ستا یا ستا د ملګري د بزرګۍ د وجې نه دي درکړي بلکې د دې لپاره مې درکړی دی چې ته زما غلام جوړ شې، بیا چې تا څنګه مخکې چیلۍ څرولې داسې به دې په چیلیو څرولو ولګوم، دا یې وویل او بیا لاړو او د داسې خبرو په اورېدو سره چې د خلکو په زړونو کې کوم خیالات پیدا کېږي هغه ټول زما په زړه کې هم پیدا شول بیا زه لاړم اذان مې وکړ، کله چې ما د ماسخوتن مونځ وکړ او رسول الله ﷺ هم کور ته تشریف راوړلو نو د دننه حاضرېدلو اجازت مې وغوښتلو، هغوی ﷺ اجازت راکړو، زه چې دننه لاړم نو عرض مې وکړ چې اې د الله جَلّ جَلَالُهُ رسوله! زما مور پلار دې له تاسو ځار وي چې د کوم مشرک په باره کې مې تاسو ته یادونه کړې وه یعنې ما چې له هغه نه قرض اخیسته، نن هغه راغی ما ته یې ډېرې بدې ردې وویلې چې په دې وخت کې نه تاسو سره د هغه د قرض د اداء کولو څه انتظام شته او نه ما سره او هغه به ضرور ما رُسوا کوي نو په دې وجه تاسو ما ته اجازت راکړئ! زه به د دې مسلمانانو قبیلو نه یوې قبیلې ته لاړ شم کله چې الله جَلّ جَلَالُهُ خپل رسول الله ﷺ ته دومره څه ورکړي چې هغې سره زما دا قرضه ادا کړی شي نو بیا به زه راشم، دا عرض مې وکړ او زه خپل

کورته راغلم او خپله توره، تهیلی، نېزه او پنې مې خپل سر ته کېښودل، څملاستم او مشرق طرف ته مې مخ کړو، د سحر په انتظار کې شوم، لږ ساعت به ویده شوم بیا به مې د فکر په وجه سترګې وغړېدلې خو کله چې به مې وکتل چې شپه اوس هم لا پاتې ده نو دوباره به ویده شوم کله چې صبح کاذب شو نو ما خو د تلو اراده کړې وه چې په دې وخت کې یو کس راغی او اوازیې وکړه اې بلاله! رسول الله ﷺ دې غواړي او په خدمت کې یې زر حاضر شه! زه سمدستي روان شوم هلته چې ورسېدم نو ومې لیدل چې څلور اوښان له سامان نه بار شوي ناست دی، ما د رسول الله ﷺ په خدمت کې د حاضرېدو اجازت وغوښتلو نو راته وې فرمایل چې خوشحاله شه! الله رب العزت ستا د قرض اداء کولو انتظام کړی دی، ما د الله رب العزت شکر اداء کړو بیا یې وفرمایل آیا ستا تېرېدل په څلورو اوښانو باندې نه دي شوي؟ یعنې تا څلور اوښان له سامان نه بار نه دی لیدلی؟ ما وویل هو! شوی دی هغوی ﷺ وفرمایل، هغه سره له سامانه ستا دي، وایې خله او خپله قرضه پرې اداء کړه ما ولیدل چې په اوښانو باندې جامه او غله بار وه او د فدک رئیس رسول الله ﷺ ته په هدیه کې رالېږلې وو نو ما هغه اوښې واخیستلې او ټول سامان مې ترې کوز کړو، بیا مې ورته واچوله بیا مې د سحر اذان وکړ کله چې رسول الله ﷺ د مانځه نه فارغ شو نو زه بقیع ته لاړم او هلته مې په دواړو غوږونو کې ګوتې ورکړې او په اوچت اواز سره مې دا اواز وکړ او ومې ویل، د چا چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په رسول باندې قرض دي، هغه دې راشي او خپل قرض دې واخلي نو هغه جامه او غله به مې اخیستونکو ته ورکول او هغه به مې خرڅولو او قرض به مې اداء کولو تر دې چې په رسول الله ﷺ باندې د زمکې په سر د هیچا څه قرض پاتې نه شو بلکې دوه یا یوه نیمه اوقیه سپین زر پاتې شول یعنې اتیا یا شپېته درهم. په دې کې د ورځې زیاته حصه تېره شوې وه بیا زه مسجد ته په داسې حال کې لاړم چې رسول الله ﷺ هلته یوازې ناست و سلام مې ورته وکړ، د سلام ځواب یې راکړ او بیا یې راځخه پوښتنه وکړه، کوم کار ستا په ذمه و هغه دې څنګه کړو؟ ما ورته عرض وکړ چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رسول په ذمه چې څومره قرض ؤو هغه ټول الله جَلَّ جَلَالُهُ خلاص کړو اوس څه پاتې نه دي هغوی ﷺ وفرمایل، چې له هغه مال نه څه پاتې دی؟ ما وویل هو! دوه دیناره باقي دي. د قرض اداء کولو نه وروسته اګر چې دوه یا

یو نیمه اوقیه سپین زر پاتې شوي و خو د هغه ځائ نه مسجد ته د راتلو په وخت کې حضرت بلال جَلَّ جَلَالُهٗ په لاره کې په خلکو وویشلې په دې وجه کله چې جماعت ته راورسېدو نو صرف دوه دیناره ورسره پاتې شول، رسول الله ﷺ وفرمایل چې دا هم تقسیم کړه اتر څو پورې ما ته راحت حاصل شي ترڅو چې ته د دې په خرچ کولو سره ما ته ارام را ونه رسوې تر هغه به خپل یو ه کور ته هم نه ځم! خو په دغه ورځ مونږ ته څوک رانغی او هغه پاتې دوه دیناره خرچ نه شول نو رسول الله ﷺ دغه شپه په مسجد کې تېره کړه او آئنده ورځ یې هم تول په مسجد کې تېره کړه. په دې کې ما ښام دوه سواره راغلل. دواړه مې بوتلل او په هغو پاتې پیسو مې دواړو ته جامې واخیستې او غله مې هم ورته ورکړه نو کله چې رسول الله ﷺ د ماسخوتن د مانځه نه فارغ شو. زه یې راوغوښتلم او وې فرمایل: څه چې تا سره پاتې وو هغه څنګه شو؟ ما عرض وکړ چې الله رب العزت د هغې خرچې کولو صورت پیدا کړو، زما د دې خبرې په اورېدو سره رسول الله ﷺ وفرمایل الله اکبر! او د الله رب العزت شکر یې اداء کړو له رسول ﷺ سره دا وېره وه چې چېرته دا سې نه وي چې هغوی ﷺ ته مرګ راشي او دا پاتې سامان ور سره وي. بیا له هغه ځای نه رسول الله ﷺ لاړو. زه هم ورپسې روان شوم. هغوی د خپلو پاکو بیبیانو له جملې څخه هرې یوې بي بي ته ورغلو او هرې یوې ته یې جدا جدا سلام وکړ او بیا یې چې په کوم کور کې شپه تېرولـه و هلته لاړو دا د رسول الله ﷺ د خرچ او اخراجاتو هغه صورت او حالت و چې تا یې په اړه پوښتنه کړې وه.(۱)

## د رسول الله ﷺ مال تقسیمول او د هغه د تقسیمولو طریقه

حضرت ام سلمه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فرمایي: ما ته نـه پته ده چې د رسول الله ﷺ تر وفات پورې مبارک ژوند کې یې کور ته تر ټولو زیات مال کله راغی؟ یو ځل د شپې په اوله حصه کې هغوی ﷺ ته یوه تهیلۍ راغله چې په هغې کې اته سوه درهمه او یوه پرچه وه، تهیلۍ هغوی ﷺ ما ته راولېږله څکه چې هغه شپه زما نمبر و. رسول الله ﷺ له ماسخوتن نه وروسته کور ته واپس راغی او په حجره شریفه کې د خپل مانځه په ځای کې یې مونځ شروع کړو. ما د هغوی ﷺ او د خپل ځان لپاره بستره خوره کړې وه. ما یې انتظار کولو خو

(۱) اخرجه البیهقي كذا في البداية ٦/٥٥ واخرجه الطبراني ايضا عن عبدالله نحوه كما في الكنز ٤/٣٩

هغوی ﷺ تر ډېر وخته پورې مونځ کولو. له لمانځه وروسته يې بهر ته تشريف راوړو. بيا د لمانځه ځای ته واپس لاړو او مونځ يې شروع کړو، دا شان بار بار يې فرمايل چې تر دې چې د سحر اذان وشو، مسجد ته يې تشريف راوړلو او وې فرمايل چې هغه تهيلۍ چېرته دە؟ کوم يې چې زه نن تولە شپه پرېشانه کړی ووم؟ نو هغه تهيلۍ يې راوغوښتله او په هغې کې چې څه ؤو هغه ټول يې تقسيم کړل. ما عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهٗ رسوله! نن شپه تاسو داسې کار وکړ چې تاسو کله هم نه کولو! هغوی ﷺ وفرمايل: کله به چې ما مونځ کولو نو ماته به د تهيلۍ خيال راتلو په دې وجه زه بار بار تلم او کتله به مې. بيا به واپس راتلم او مونځ به مې شروع کولو. ټوله شپه د دې د وجې نه ويده نه شوم او دا به مې خيال ته راتلل چې دومره ډېر مال له ما سره دی څنګه ويده شم؟ کله چې مال تقسيم شو نو بيا ماته آرام راغی.(۱)

**رسول الله ﷺ او د اتيازو تقسيمول:**

حضرت ابو موسی اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: حضرت علاء بن حضرمي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له بحرين نه رسول الله ﷺ ته اتيا زره ولېږل په داسې حال کې چې هغوی ﷺ ته تر دې زيات مال نه له دې مخکې کله راغلی ؤو او نه تر دې روستو کله راغی، د هغوی ﷺ له فرمايلو سره سم هغه اتيا زره په پوزکي باندې خورې کړی شوې دې نه پس مانځه لپاره اذان وشو. کله چې له لمانځه نه فارغ شو هغوی ﷺ دې مال ته نښکته شو او ودرېده، خلک راتلل او رسول الله ﷺ به هغوی ته خپله اندازه مال ورکاوه. په دغه ورځ يې نه په شمار ورکول او نه په تول. بلکې مُټی به يې ډک کړ او ورکول به يې. په دې کې حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی او عرض يې وکړ: اې د الله جَلَّ جَلَالُهٗ رسوله! ما په جنګ بدر کې خپله فِديه هم ورکړې وه او د عقيل مې هم ورکړې وه ځکه چې په هغه ورځ د عقيل سره څه مال نه ؤو نو په دې وجه تاسو دې مال نه ما ته څه راکړئ! رسول الله ﷺ وفرمايل واخله! نو د حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په بدن باندې د تور رنګ والا نقش دار څادر ؤو، هغه يې خور کړ او بنې لپې يې ډکې کړې او په هغه څادر کې يې مال وچاولو بيا يې چې اوچتولو نو اوچت يې نه کړی شو بيا يې سر اوچت کړ او عرض يې وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهٗ رسوله! دا راته اوچت کړه! په دې باندې رسول الله ﷺ مسکی شو

---

(۱) اخرجه الطبراني قال ۱۰/۳۲۵ رواه الطبراني با سانيد و بعضها جيد

تر دې چې غابنونه مبارک یې ښکاره شول هغوی ﷺ وفرمایل: تا چې څومره مال اخیستی دی د هغې نه څه بېرته ورکړه او څومره چې او چتولی شې هغومره واخله! د رسول الله ﷺ له دې امر سره حضرت عباس رضي الله عنه همداسې وکړل او څومره مال یې چې او چتولی شو هغومره یې یوړو او په تلو کې یې فرمایل چې الله رب العزت دوه وعدې فرمایلي په هغې کې یوه خو الله رب العزت پوره کړه او د دویمې وعدې ما ته پته نشته چې څه به کیږي او د الله رب العزت د وعدو ذکر د قرآن کریم په دې ایت کې دی،

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لِّمَن فِي أَيْدِيكُم مِّنَ الْأَسْرَىٰ إِن يَعْلَمِ اللَّهُ فِي قُلُوبِكُمْ خَيْرًا يُؤْتِكُمْ خَيْرًا مِّمَّا أُخِذَ مِنكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ (۱)

ترجمه: اې نبي (ﷺ) ستاسو په واک کې چې کوم قیدیان دي هغوی ته تاسو ووایئ! چې که چېرې الله رب العزت ته ستاسو په زړونو کې ایمان معلوم شو نو کوم څه چې فدیه کې تاسو نه اخیستل شوی دی دنیا کې به د دې نه غوره درکړی شي او اخرت کې به درته ښښنه وکړی شي.

او ربښتیا هم دا مال د هغه مال نه غوره دی چې د بدر په موقع زما نه په فدیه کې اخیستی شوی و خو ما ته دا نده معلومه چې الله رب العزت به زما د ښښنې څه کوی؟ (۲)

## د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه په تقسیم کې مساوات کول

### د حضرت ابوبکرصدیق په زمانه کې بیت المال:

حضرت سهل بن ابي حثمه رضي الله عنه او نور حضرات فرمایي، د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه بیت المال د مدینې په (سُنح) نومي ځائ کې ؤ چې په خلکو کې مشهور او معلوم و او هیچا هم د هغه څوکیداري نه کوله نو هغوی ته عرض وکړ چې اې د الله جل جلاله د رسول خلیفه! آیا تاسو د بیت المال د څوکۍ لپاره څوک مقرر کوئ؟ ابوبکر صدیق رضي الله عنه وفرمایل چې د بیت المال په باره کې هیڅ قسم خطره نشته په دې وجه د څوکیدار د مقررولو څه ضرورت نشته، ما ورته وویل چې ولې؟ وې فرمایل چې هغې ته

---

۱: سورة انفال ایت ۷۰

۲: اخرجه الحاكم ۲/۳۲۹ عن حميد بن هلال عن ابي بردة قال الحاكم هذا حديث صحيح على شرط مسلم ولم يخرجاه وقال [illegible] واخرجه ابن سعد ۴/۹ عن حميد بن هلال بمعناه ولم يذكر ابا بردة ولا ابا موسى.

تالا (قلف) لګېدلې ده د هغوی عادت دا ؤ چې کوم څه به بیت المال ته راتلل هغه به یې ټول خلکو ته ورکول تر دې چې په بیت المال کې به هیڅ هم نه پاتې کېدل بیا کله چې حضرت ابوبکر رضی الله عنه د سُنح نومې ځائ نه مدینې منورې ته لاړ نو هلته یې د هغه کور ته بیت المال هم انتقال کړو چې په کوم کې هغه او سېدلو هغوی ته د قبلیه وادو او جُهینه قبیلې له دوکانونو نه ډېر مال راتللو او د هغوی د خلافت په زمانه کې د بنوسُلیم قبیلې دوکانونه هم پرانیستل شوي وو له هغه ځائ نه هم د زکات مال راتللو، دا هر څه به په بیت المال کې کېښودل کېدل، حضرت ابوبکر رضی الله عنه به د سرو او سپینو زرو حصې جوړې کړې او په خلکو به یې تقسیمولې هرو سلو کسانو ته به یې یو مقدار ورکولو چې هغوی به په خپلو کې تقسیمول په ټولو خلکو باندې یې هغه مال برابر برابر تقسیمولو ازاد، غلام، سړي، ښځې، واړه او لوي ټولو ته به برابره برخه رسېدله او ځینې وخت به یې په دغه مال باندې اوښان، اسونه او وسله واخیستل او د الله جل جلاله په لار کې به یې تللونکو مجاهدینو ته ورکول.

یو کال یې د وړیو ګرم څادرونه اخیستي وو دا څادرونه چې له باندو او کلیو نه راوړل شوي وو نو ابوبکر صدیق رضی الله عنه واخیستل او د یخنۍ په موسم کې یې د مدینې منورې په کونډو ښځو باندې تقسیم کړل، کله چې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه وفات وشو او دفن کړی شو نو حضرت عمر رضی الله عنه د حضرت ابوبکر رضی الله عنه بیت المال لپاره مقرر شوي کسان راوغوښتل دغه کسان یې ځان سره کړل او د حضرت ابوبکر رضی الله عنه بیت المال ته لاړل چې له دغو کسانو سره حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه او حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه او نور حضرات هم وو، دا حضرات لاړل او بیت المال یې پرانیستلو، کله یې چې پرانیستلو نو ګوري چې هیڅ دینار، درهم یې په کې ونه موندل، یعنې نور څه یې په کې ونه موندل خو یوازې د مال اېښودلو لپاره یوه غټه زیګه جامه ملاو شوه هغه یې وڅنډله، په هغې کې یو درهم ملاو شو دا یې چې وکتل نو دې حضراتو حضرت ابوبکر رضی الله عنه لپاره دا دعا وکړه چې الله جل جلاله دې په هغه باندې رحمت نازل کړي او په مدینه منوره کې د درهمو او دینارو تللو والا یو سړی ؤ چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې به یې د تللو کار کولو او حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته به چې کوم مال راتلو، هغه مال به د دغه سړي تللو، د هغه سړي نه پوښتنه وکړې شوه چې حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته چې کوم مال راغلی و د هغې

تول تعداد او مقدار به څومره و؟ هغه سړي وویل: دوه لکه.(۱)

**د ابوبکرصدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مساوات باره کې د حضرت اسماعیل بن محمد گواهي:**

حضرت اسماعیل بن محمد رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو ځل څه مال په خلکو تقسیم کړو او ټولو ته يې برابره حصه ورکړه نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رسول خلیفه! تاسو د بدر والا او نور خلک برابر ساتئ؟ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل دنیا خو د گذارې شی دی او د گذارې غوره شی هغه دی چې درمیانه درجې وي، په دنیا کې خو ما ټول برابر ساتلي دي او د بدر والاوو چې په نورو خلکو کې کوم فضیلت حاصل دی نو د هغې اثر به په اجر او ثواب کې ښکاره کیږي چې په اخرت کې به د دوي اجر او ثواب برابر نه وي بلکې د بدروالاوو اجر او ثواب به له نورو ټولو صحابه وو نه زیات وي.(۲)

حضرت ابن ابي حبیب رَحِمَهُ اللهُ او نور حضرات وايي چې د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې يو چا عرض وکړو چې د بیت المال مال دې په ټولو خلکو باندې برابر نه تقسیموي بلکې د مال په تقسیمولو کې دې د خلکو درجې مقرر کړي یعنې د چا چې دیني فضائل زیات وي هغه ته دې هغومره زیات مال ورکوي، په دې باندې ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې د خلکو د دیني فضائلو بدله خو به الله جَلَّ جَلَالُهُ د قیامت په ورځ ورکوي. د دنیا په ضروریاتو کې ټول برابر ساتل غوره دي.(۳)

حضرت اسلم رَحِمَهُ اللهُ وايي کله چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلیفه شو نو په خلکو باندې يې مال برابر تقسیم کړ چې په دې سره څینې صحابه وو ویل، چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رسول خلیفه! که چیرې تاسو مهاجرینو او انصارو حضراتو ته په نورو باندې فضیلت ورکړئ! او هغوی ته له نورو نه زیات مال ورکړئ! نو دا به ډېره ښه وي، په دې سره ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل: تاسو دا غواړئ! چې مال ورته زیات ورکړم او د هغوی دیني فضایل له هغوی نه واخلم؟ دا هیڅکله مناسب نه ده. د مال په تقسیمولو کې هغوی ټول برابر ساتل په يو بل باندې د غوره والي ورکولو څخه غوره دي. د حضرت غفره رَحِمَهُ اللهُ ازاد شوی غلام حضرت عمر بن

---

۱: اخرجه ابن سعد كذافي الكنز ۳/۱۳۱

۱ اخرجه احمد في الزهد.

۲: عند ابي عبيد كذافي الكنز ۲/۳۰۶

عبيد الله رَحِمَهُ ٱللَّهُ وايي كله چې حضرت ابو بكر رضي الله عنه په اول ځل مال تقسيم كړو نو حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ورته وويل چې اولينو مهاجرينو حضراتو او په اسلام چې څوك مخكې مشرف شوي دي هغوي ته زيات وركړه نو حضرت ابو بكر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ وفرمايل: آيا زه له دوي نه د اسلام اول قبلولو نېكي د دنيا په بدله كې واخلم؟ نه داسې نه شي كېداى نو هغوى مال تقسيم كړو او ټولو ته يې برابر وركړ.(١)

**دبحرين دمال تقسيمولو قصه:**

حضرت عمر رَحِمَهُ ٱللَّهُ د حضرت غفره رَحِمَهُ ٱللَّهُ ازاد شوى غلام وايي: كله چې د رسول الله ﷺ وفات وشو نو له بحرين نه مال راغى ، كله چې مال راورسېده نو حضرت ابو بكر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ اعلان وكړ چې د چا په رسول الله ﷺ باندې قرض وي يا رسول الله ﷺ ورته د څه وركولو وعده كړې وي، هغه دې ودرېږي او خپل حق دې واخلي نو حضرت جابر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ودرېدو او وې ويل چې رسول الله ﷺ ما ته فرمايلي ؤو: كه چېرې ما ته د بحرين نه مال راغى نو زه به تا ته دومره دركړم او د دواړو لاسونو نه يې لپه ډكه كړه او اشاره يې فرمايلې وه، حضرت ابو بكر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ورته وفرمايل: چې پاڅه! او خپله يې په خپل لاس واخله! نو هغه يو ځل لپه ډكه كړه كله چې هغه وشمارل شوې، پنځه سوه درهمه وو، حضرت ابو بكر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ورته وفرمايل چې ده ته نورې زر وشمارئ! او ورېې كړئ! چې درې لپې پوره شي دې نه پس يې په خلكو باندې لس لس درهمه تقسيم كړل او وې فرمايل چې دا خو هغه وعدې پوره كېږي چې رسول الله ﷺ خلكو سره كړې وې، راتلونكي كال كې د دې نه هم زيات مال راغى نو په خلكو باندې يې شل شل درهمه تقسيم كړل او وې فرمايل چې دا ستاسو غلامان ستاسو خدمت كوي او ستاسو كارونه كوي، په دې وجه مونږ دوي ته هم څه وركړل، په دې وجه باندې خلكو عرض وكړ چې كه چېرې تاسو مهاجرينو او انصارو ته د نورو نه زيات وركړئ! نو دا به غوره وي ځكه چې دا زاړه مسلمانان دي او د رسول الله ﷺ په نزد به الله پاك دوي ته يو خاص مقام وركوي، نو ابو بكر صديق رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ورته وفرمايل چې دا مال او سامان خو بس د ګزارې شى دى، په دې وجه يې د خپل خلافت په زمانه كې په همدا شان اصولو باندې

١: عند البيهقي ٦/٣٤٨

عمل وکړ، مخکښې يې هغه حديث ذکر کړو څنګه چې به مخکښې راشي، د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عدل او انصاف او برابر تقسيمول تېر شوی دی په هغې کښې دا هم تېر شوی دی چې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يوې عربې ښځې او يوې ازادې شوې وينزې ته برابر ورکړو، په دې باندې هغې عربې ښځې ووېل چې اې اميرالمؤمنين! تاسو چې دې ته څومره ورکړو، ما ته دې هم دومره راکړو حالانکه زه عربه يم او دا ازاده شوې وينزه ده، حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې ما د الله جَلَّ جَلَالُهُ په کتاب کښې ډېر په سوچ سره وکتل نو په هغه کښې ما ته د حضرت اسماعيل عليه السلام د اولاد څه فضيلت د حضرت اسحاق عليه السلام په اولاد باندې په نظر رانغی .(١)

## د عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په تقسيم کښې د سبقت او نسب په امتياز ورکول

د حضرت غُفره ازاد کړی شوي غلام حضرت عمر رَحِمَهُ اللَّهُ د تېر شوی حديث پشان مضمون بيانوي او په دې کښې دا زياتوالي هم دی، کله چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفات شو نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خليفه شو او الله پاک د هغوی لپاره د فتوحاتو لويې دروازې پرانيستلې نو په دې وجه د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د خلافت په دور کښې د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د خلافت له دور نه هم زيات مال راغی نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې د مال په تقسيمولو کښې د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بېله رائيه وه او زما بېله رائيه ده او هغه دا ده چې چا د کفر په حالت کښې رسول الله ﷺ سره جنګ کړی دی او چا چې د رسول الله ﷺ په ملګرتيا کښې کافرانو سره جنګ کړی دی دا دواړه زه نشم برابرولی، په دې وجه حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مهاجرينو او انصارو حضراتو ته له نورو خلکو نه د زيات مال ورکولو فيصله وکړه او کوم صحابه چې د بدر په غزا کښې شريک شوي وو د هغوی لپاره يې پنځه پنځه زره مقرر کړل او کومو چې د بدر نه مخکښې اسلام راوړی ؤو خو په بدر غزا کښې نه وو شريک شوي د هغوی لپاره يې څلور څلور زره مقرر کړل او د حضرت صفيه او حضرت جويريه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا نه پرته يې د رسول الله ﷺ د ټولو بيبيانو لپاره دولس دولس زره، او د دې دواړو لپاره يې شپږ شپږ زره مقرر کړل ځکه چې باقي ټولې بيبيانې خو همېشه ازادې پاتې

١: اخرجه البيهقي ايضا وابن ابي شيبة والبزار والحسن بن سفيان كذافي كنز العمال ٢/١٢٧

شوی دی هیڅکله وینزې نه دي پاتې شوي او دا دواړه څه موده وینزې پاتې شوي وې، خو کله چې دې دواړو د شپږ شپږ زرو اخیستلو نه انکار وکړ نو حضرت عمر رضي الله عنه وفرمایل چې ما د نورو ازواج مطهراتو لپاره دولس دولس زره ځکه مقرر کړی دی چې دوي ټولو هجرت کړی دی او تاسو دواړو نه دی کړی، دوي دواړو وویل چې نه تاسو د هغوی د هجرت د وجې نه دي مقرر کړي بلکې د هغوی د رسول الله ﷺ سره د تعلق د وجې نه دی دومره مقرر کړی دی او زمونږ هم د رسول الله ﷺ سره د هغوی پشان تعلق دی، حضرت عمر رضي الله عنه د دې دواړو خبره منظوره کړه او د ټولو ازواج مطهراتو لپاره یې برابره حصه ورکړه یعنې دې دواړو لپاره یې هم دولس دولس زره مقرر کړې او د حضرت عباس بن عبد المطلب رضي الله عنه د رسول الله ﷺ خاص رشته داري وه نو په دې وجه یې د هغه لپاره دولس زره مقرر کړل، حضرت اسامه بن زید لپاره یې څلور زره او د حضرت حسن او حضرت حسین رضي الله عنه لپاره یې پنځه پنځه زره مقرر کړل، د رسول الله ﷺ د نوسو کېدو د رشته داری په وجه یې دوي دواړه د دوي له پلار حضرت علي رضي الله عنه سره برابر کړل او خپل ځوی حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه لپاره یې دري زره مقرر کړل هغه عرض وکړ چې اې پلاره! تاسو د حضرت اسامه بن زید رضي الله عنه لپاره څلور زره مقرر کړی دی او زما لپاره دري زره! په داسې حال کې چې د هغه پلار حضرت زید بن حارث رضي الله عنه ته داسې څه فضیلت نه دي حاصل چې تاسو ته حاصل دی او پخپله هغه ته هم داسې فضیلت حاصل نه دی چې ما ته حاصل نه وي نو ما ته هم له هغه سره برابره حصه راکړه! حضرت عمر رضي الله عنه وفرمایل چې نه! هغه ته او د هغه پلار ته داسې فضیلت حاصل دی چې تا ته او ستا پلار ته نه دي حاصل او هغه دا دی چې د هغه پلار ستا د پلار نه رسول الله ﷺ ته زیات محبوب و او هغه په خپله هم ستا نه رسول الله ﷺ ته زیات محبوب و او کوم مهاجرین چې په بدر کې شریک شوي وو د هغوی د زامنو لپاره یې دوه دوه زره مقرر کړل، د حضرت عمر رضي الله عنه په خوا کې حضرت عمر بن ابي سلمه رضي الله عنه تېر شو نو وې فرمایل چې ده ته زر نور هم ورکړه! نو حضرت محمد بن عبد الله بن جحش رضي الله عنه عرض وکړ چې تاسو ده ته زمونږ نه زیاتې ولې ورکوئ؟ کوم فضیلت چې زمونږ پلارانو ته حاصل دی هم هغه د ده پلار ته هم

حاصل دی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې ما د د ه لپاره دوه زره خو د ده د پلار حضرت ابو سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د وجې نه مقرر کړی دی او نورې زر ده ته د ده د مور حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د وجې نه ورکول غواړم ځکه چې هغه وروسته د رسول الله ﷺ بي بي محترمه ګرځېدلې وه، که د حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا پشان ستا مور هم وې نو تا ته به نورې زر هم درکړم، حضرت عثمان بن عبید الله بن عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لپاره يې اته سوه مقرر کړې دا د حضرت طلحه بن عبيد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رور دې او د حضرت نضر بن انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لپاره يې دوه زره مقررې کړل نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ته حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې تاسو ته د غسې کس حضرت عثمان بن عبيد الله بن عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی نو د هغه لپاره تاسو اته سوه مقرر کړل او تاسو ته د انصارو نه يو هلک يعنې حضرت نضر بن انس راغی هغه لپاره تاسو دوه زره مقرر کړل؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې د دې هلک يعنې د حضرت نضر پلار سره زما ملاقات د جنګ احد په ورځ وشو هغه زما نه د رسول الله ﷺ په باره کې پوښتنه وکړه ما وویل چې زما خیال خو دا دی چې رسول الله ﷺ (نعوذ بالله من ذلک) شهید کړی شوی دی دې اوربدو سره هغه خپل لستوني بډوهل (پورته يې کړل او متې يې لوڅې کړې). خپله توره يې را ووېستله او وې ویل: که چېرې رسول الله ﷺ شهید شوي وي نو څه خبره ده الله رب العزت خو ژوندی دی، په هغه خو مرګ نشي راتلی او مونږ چې څه کول هغه مو د الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره کول دا يې وويل او جنګ يې شروع کړو تر دې چې هغه شهید شو او دا یعنې د حضرت عثمان بن عبید الله پلار حضرت عبيد الله هغه وخت چېلی څرولې نو ته غواړې چې زه دواړه برابر کړم؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ټول عمر په دې اصولو باندې عمل وکړ، مخکې يې نور مضمون هم بیان کړو چې له هغه نه به څه مضمون نزدې راشي.(۱)

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت ابن مسیب رَحِمَهُ اللهُ دواړه فرمايي: حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مهاجرين د پنځو زرو والا په لست کې وليکل او انصار يې په څلورو زرو والا لست کې وليکل او د مهاجرينو چې کوم ځامن په جنګ بدر کې نه وو شريک

۱: اخرجه ابن ابي شيبة والبيهقي واللفظ للبزار كما في المجمع ٦/۴ وقال وفيه ابومعشر نجيح ضعيف يعتبر بحديثه.

شوي هغوی يې په څلورو زرو والا لست کې وليکل، په دوي کې حضرت عمر بن ابي سلمه بن عبد الاسد مخزومي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، حضرت اسامه بن زيد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، حضرت محمد بن عبدالله بن جحش اسدي او حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هم شامل وو، په دې باندې حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په دوي کې نه دی او د هغه فضائل ډېر دي ځکه چې ده دوئ ټولو نه مخکې اسلام راوړی دی او ورڅخه غوره دی نو ده ته دې له دوي نه زيات ورکړی شي، حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل چې که چېرې زما حق وي نو ما ته يې راکړئ! او که نه وي نو ما ته يې مه راکوئ! حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حضرت ابن عوف رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته وويل چې ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په پنځو زرو والا کې وليکه! او ما په څلورو زرو والا کې! په دې باندې حضرت عبدالله رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل چې زما مطلب دا نه و حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه او ته دواړه په پنځو زرو کې نه شو يو ځائ کېدي.(۱)

حضرت زيد بن اسلم رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي کله چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د خلکو لپاره وظيفه مقرره کړه نو حضرت عبدالله بن حنظله رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ لپاره يې دوه زره مقرره کړه بيا حضرت طلحه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خپل وراره حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته راوستلو خو حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د هغه لپاره له حضرت حنظله رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ څخه کمه مقرره کړه په دې وجه حضرت طلحه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل: اې امير المؤمنين! تاسو د هغه انصاري لپاره زما د وراره نه زياته وظيفه مقرره کړې ده او دغسې دې انصاري ته دې زما په وراره باندې فضيلت ورکړو؟ په داسې حال کې چې زما وراره خو د مهاجرينو له ډلې څخه دی، حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې هو! ځکه چې ما د دې انصاري پلار حضرت حنظله رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په داسې حال کې ليدلی دی چې د جنګ احد په ورځ يې هم پخپله توره د خپل ځان حفاظت کولو او خپله توره به يې بنې او ګس طرفته ته او بنکته او پورته خواته په تېزۍ سره ښوروله لکه څنګه اوښ خپله لکۍ خوځوي په داسې حال کې چې له هغه سره د حفاظت لپاره دال هم نه وُو له خپلې توري څخه يې د دال کار هم اخيسته.(۲)

---

۱: عند البيهقي ٦/٣٥٠ واخرجه ابن ابي شيبة نحوه كما في الكنز ٢/٣١٥

۲: عند ابن عساكر كذافي الكنز ٢/٣١٩

حضرت ناشره بن سُمي يزني رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې د جابيه په ورځ ما له حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه واوريدل چې خلکو ته يې بيان کولو چې الله جَلَّ جَلَالُهُ زه د دې مال خزانه چي او تقسيموونکي ګرځولی يم بلکې پخپله الله رب العزت تقسيموونکی او خزانه چي هغه اوس د مال په تقسيمولو کې زما په ذهن کې دا ترتيب دی چې زه د رسول الله ﷺ له بيبيانو نه د مال اول تقسيم شروع کړم او بيا له هغوی نه پس چې په خلکو کې څوک زيات بزرګان دي هغوی ته يې ورکوم کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د مال په تقسيم باندې شروع وکړه نو له حضرت جويريه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، حضرت صفيه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، او ميمونه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا نه پرته يې د رسول الله ﷺ د نورو ټولو بيبيانو مبارکو لپاره لس لس زره مقرري کړې په دې باندې عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وويل چې رسول الله ﷺ به په خپلو بيبيانو کې په څه کې برابري کوله يعنې هر شي به يې برابر ورويشل او د دوي تر منځ به يې هيڅ قسم فرق نه کولو نو حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ټولو بيبيانو لپاره وظيفه يو شان کړله، بيا يې وفرمايل دې نه پس به زه خپلو اولينو مهاجرينو ملګرو ته وظيفه او مال ورکوم ځکه چې مونږ خپلو کورونو نه په ظلم او زور سره وېستل شوي وو بيا چې د دوي نه پس څوک زيات بزرګ وي، هغوی ته به يې ورکوم نو مهاجرينو کې چې څوک د بدر په غزا کې شريک شوي وو، د هغوی لپاره يې پنځه زره مقرري کړې او په انصارو کې چې څوک د بدر په غزا کې شريک شوي وو د هغوی لپاره يې څلور زره مقرري کړې او د اُحد په غزا کې شريکېدونکو لپاره يې درې زره مقرري کړې او وې فرمايل: چا چې مخکې هجرت کړی دی هغوی ته به يې له هغو خلکو مخکې ورکوم چې روسته يې هجرت کړي وي نو چا ته چې روستو مال ورکول شوي وي هغه دې ورکوونکي نه ملامتوي بلکې خپل ځان دې په دې خبره ملامته کړې چې ما خپله سورلۍ ولې ناسته وساتله او زر يې هجرت ولې ونه کړو؟ او زه تاسو ته د حضرت خالد بن وليد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د عزل کولو يعنې له خپل منصب نه د لرې کولو اسباب بنودل غواړم! ما هغه ته ويلي وو چې هغه دې مال صرف کمزورو مجاهدينو ته ورکوي خو هغه قوي و، حيثيت والا او ډېرې خبرې کوونکو ته ټول مال ورکړو ځکه مې هغه لرې کړو او د هغه په ځاي مې حضرت ابو عبيده بن جراح رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ امير جوړ کړی دی، په دې باندې حضرت ابو عمرو بن حفص رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل: په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! اې عمر بن خطاب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ! تاسو چې د

معزول کولو سبب نبودلی دی هغه صحیح نه دي، تاسو هغه سړی معزول کړی دی چې رسول الله ﷺ امیر مقرر کړی ؤو نو تاسو هغه توره په تېکي کې کېښودله چې رسول الله ﷺ د اسلام د دفاع لپاره له تېکي نه وېستلې ده او تاسو هغه جنډه کوزه کړه چې رسول الله ﷺ درولې وه او ستاسو په زړه کې د تره ځوی سره حسد پیدا شوی دی، حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وفرمایل چې ستا له هغه یعنې خالد بن ولید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره نزدې خپلولي ده او اوس ته کم عمره یې! نو ځکه د خپل تره د عزل کېدو په وجه خفه کېږي.(۱)

## د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له طرفه د عطایاوو ورکولو کتاب جوړول

حضرت ابو هریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: ما د حضرت ابو موسی اشعري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه اته لکه درهم راوړل او د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شوم نو له ما نه حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې څه دې راوړی دي؟ ما ورته وویل: اته لکه درهم مې راوړی دي! بیا یې وفرمایل الله دې خیر درکړي ایا دا پاک مال دی؟ ما وویل هو! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا ټوله شپه په وینه تېره کړه او کله چې د سحر اذان وشو نو بي بي ورته وویل نن شپه ته ولې اوده نه شوې؟ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وویل چې عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به په داسې حال کې څنګه اوده شي کله چې هغه ته د خلکو لپاره دومره زیات مال راغلی وي، که چېرې عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته په داسې حال کې مرګ راشي چې دا مال ورسره پروت وي او هغه دا په صحیح ځای کې خرچ کړی نه وي نو هغه څنګه د الله رب العزت د نیولو نه بچ کېدلی شي؟ کله چې د سحر د مانځه نه فارغ شو نو هغوی سره د رسول الله ﷺ څو صحابه راټول شول، هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وفرمایل: چې نن شپه خلکو لپاره دومره زیات مال راغلی دی چې د اسلام له شروع نه تر نن پورې چېرته هم دومره مال نه دی راغلی، د دې مال د تقسیمولو په باره کې یوه خبره زما په ذهن کې راغلې ده تاسو هم ما ته په دې باره کې مشوره راکړئ! زما دا خیال دی چې زه یې په خلکو باندې په ناپ تقسیم کړم! دې سره دې حضراتو وویل: اې امیر المؤمنین! داسې مه کوئ! ځکه چې خلک به په اسلام کې داخلېږي او راتلونکي مال به په مزه مزه زیاتېږي، له دې وجې نه دا به یاد ساتل

---

۱: اخرجه احمد قال الهیثمی ۶/۳ رواه احمد ورجاله ثقات واخرجه البیهقی ۶/۳۴۹ عن ناشرة بن سمی الیزنی نحوه الا انه لم یذکره معذرة عزل خالد وما بعده.

مشکل وي چې چا ته ورکړی شوی دی او چا ته نه دي ورکړی شوی بلکې تاسو به یو رجسټر کې د خلکو نومونه ولیکئ! او د هغه رجسټر مطابق خلکو ته مال ورکوئ! بیا کله چې هم د خلکو تعداد زیات شو او د مال مقدار هم زیات و نو تاسو یې د دې رجسټر مطابق خلکو ته ورکوئ! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل بنه ده رجسټر جوړوو خودا مشوره راکړئ! چې مال ورکول اول له چا نه شروع کړم؟ دې حضراتو وویل: اې امیر المؤمنین! تاسو د خپل ځان نه شروع وکړئ! ځکه چې هم تاسو خلیفه او متولي یئ! او په دوي کې ځینو حضراتو وویل چې امیر المؤمنین! زمونږ نه ته بنه پوهېږې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل نه! داسې نه ده بلکې زه خو به د رسول الله ﷺ د کور نه شروع کوم بیا چې کوم د رسول الله ﷺ د ټولو نه زیات نزدې خپلوان دي، هغوی ته به یې ورکوم بیا چې د هغوی کوم رشته دار دي هغوی ته به یې ورکوم نو هغوی هم په دې ترتیب باندې رجسټر جوړ کړو اول یې د بنو هاشم او بنو مطلب نومونه ولیکل او هغه ټولو ته یې ورکړل، بیا یې بنو عبد شمس ته ورکړو بیا یې بنو نوفل بن عبد مناف ته ورکړو، بنو عبد شمس ته یې اول ځکه ورکړو چې عبد شمس د هاشم سکه ورور ؤ او نوفل نه ؤ په دې وجه عبد شمس زیات نزدې ؤ.(۱)

حضرت جبیر بن خویرث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له مسلمانانو سره د رجسټر جوړولو په باره کې مشوره وکړه نو حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل تاسو رجسټر مه جوړوئ! بلکې هر کال چې څومره مال جمع کیږي هغه ټول په مسلمانانو باندې تقسیموئ! او د هغه نه هیڅ مه پرېږدئ! حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل زما دا خیال دی چې ډېر زیات مال راځي چې ټولو خلکو ته ورکېدای شي که چېرې د اخیستونکو د تعداد پته ونه لګولی شي نو تا ته به معلومات ونه شي چې چا واخیسته او چا وانه خیسته او ما ته وېره ده چې دا شان به د تقسیم معامله بې کنټروله شي، حضرت ولید بن هشام بن مغیره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې زه شام ته تللی یم ما د هغه ځای بادشاهان لیدلی دی هغوی رجسټرې هم جوړې کړی دی او خپل فوج یې هم باقاعده مرتب او منظم جوړ کړی دی، تاسو هم رجسټرې جوړې کړئ دی او خپل فوج مو هم تیار

---

۱: اخرجه ابن سعد ۳/۲۱٦ والبیهقي ٦/۳۵۰ کذا في الکنز ۲/۳۱۵

کړئ! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د ولید رَضِيَ اللهُ عَنهُ دا رایې قبوله کړه او حضرت عقیل بن ابي طالب، حضرت مخرمه بن نوفل او حضرت جُبیر بن مطعم رَضِيَ اللهُ عَنهُ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ راوغوښتل او ورته یې وفرمایل چې په رجسټر کې د خلکو نومونه سره د هغوی د درجو ولیکئ! دې درې واړو حضراتو د قُریشو نسب ډېر ښه پېژانده نو هغوی په رجسټر کې نومونه لیکل شروع کړل، اول یې د بنوهاشم نوم ولیکه بیا د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ او د هغه د قوم ولیکل شول، هغوی د خلافت د ترتیب لحاظ وساته او داسې یې وکړل کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ رجسټر وکوت نو وې فرمایل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! چې زما زړه خو هم داسې غواړي چې ترتیب دې هم داسې وي خو تاسو خلک د رسول الله ﷺ د خپلوانو نه شروع وکړئ! او څوک چې رشته کې رسول الله ﷺ ته څومره زیات نزدې وي د هغه نوم هغومره مخکې ولیکئ! نو د همدې تعلقاتو او رشته دارۍ په اساس تاسو د خلکو نومونه ولیکئ! په دې کې کله چې د عمر نوم راشي هلته د هغه نوم هم ولیکئ!(۱)

حضرت اسلم رَحِمَهُ اللهُ وایي کله چې درې واړو حضراتو له بنوهاشم نه وروسته د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ او د هغه د قوم او بیا د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ او د هغه د قوم نومونه رجسټر کې ولیکل چې په دې باندې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ انکار وکړ نو د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ قوم بنوعدي حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته راغلل او ورته یې وویل چې تاسو د رسول الله ﷺ خلیفه یئ! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل نه! بلکې داسې ووایئ! چې تاسو د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ خلیفه یئ! او ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د رسول الله ﷺ خلیفه دي بنوعدي وویل چې دا صحیح ده خو تاسو خپل نوم په هغه ځای کې وساتئ! کوم ځای کې چې دې درې حضراتو لیکلی دی، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل واه واه! اې بنوعدي! تاسو غواړئ! چې زما په ملا سواره شئ؟ د نورو خلکو نه مخکې یې وخورئ؟ او داشان زه خپلې نېکۍ ستاسو د وجې نه برباد کړم؟ نه! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! داسې نشي کیدای بلکې د رسول الله ﷺ رشته دارۍ دې بنیاد وګرځول شي او مال دې تقسیم کړی شي که ستا د نوم لیکلو نمبر په رجسټر کې د ټولو نه په اخر کې راشي. زما دوه ملګري یعنې رسول الله ﷺ او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ په

۱: عند ابن سعد ۳/۲۱۲ والطبري ۲/۷۸ من طريقه كذا في الكنز الجديد ۲/۳٦۲

يوه لاره باندې تللي دي که چېرې زه د هغوی لار پرېږدم نو زه به د هغوی دواړو منزل ته ونه رسېږم اخرت کې به هغوی چېرته بل ځائ کې وي او زه به په بل ځائ کې یم او په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! مونږ ته چې په دنیا کې کوم عزت ملاو شوی دی او په اخرت کې چې زمونږ خپلو عملونو باندې د ثواب د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه د حاصلېدو امید دی، دا ټول د حضرت محمد ﷺ برکت سره دي هغه زمونږ لپاره د عزت سبب دی د هغوی ﷺ قوم په ټولو عربو کې تر ټولو د زیات عزت والا دي بیا د هغوی ﷺ نه پس چې په خپلولۍ کې هغوی ﷺ ته څومره نزدې وي، هغه هم هغومره د زیات عزت والا دي اوس که چېرې په مونږ کې د چا رشته د ډېرو پُشتونو نه پس د هغوی سره ملاو شي او په دې ملاوېدو کې د حضرت ادم علیه السلام څو پُشتونه باقي پاتې شي نو هم به د هغه خیال ساتلي کېږي خود دې خانداني عزت او د رسول الله ﷺ د رشتې له وجې نه د دې دنیوي عزت باوجود په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! که چېرې عجمي د قیامت په ورځ نېک اعمال راوړي او مونږ بغیر د نېکو اعمالو نه لاړ شو نو هغه عجمي خلک به زمونږ نه زیات رسول الله ﷺ ته نزدې وي نو په دې وجه دې هیڅوک هم صرف په رشته دارۍ باندې نظر نه ساتي بلکې د الله رب العزت په نزد چې کوم اجرونه او درجات دي د هغو د حاصلولو لپاره دې نېک عمل وکړي ځکه چې څوک په خپلو عملونو کې روستو پاتې شو هغه د خپل نسب په وجه نشي مخکې کېدي.(۱)

## حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا رایې ته رجوع کول

د حضرت غفره رَحِمَهُ اللَّهُ ازاد کړی شوی غلام حضرت عمر بن عبد الله وایي چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د بحرین نه مال راغی، په دې پسې یې پورته مخکې اوېد حدیث شریف بیان کړ څنګه چې مخکې تېر شوی دی په دې کې دا مضمون هم دی چې د جمعې په ورځ حضرت عمر بهر ته تشریف راوړو او د الله رب العزت د حمد وثناء نه پس یې وفرمایل چې ما ته پته لګېدلې ده چې په تاسو کې چا دا خبره کړې ده کله چې عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفات شي یا یې داسې ویلي دي کله چې امیر المؤمنین وفات شي نو مونږ به فلانکي ودروو یعنې امیر المؤمنین به یې مقرروو او سمدستي به ترې بیعت وکړو اخر د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بیعت خلافت هم سمدستي شوی ؤ او په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! دا صحیح ده

(۱): عند ابن سعد ایضا ۳/۲۱۲ والطبراني من طریقه ۳/۲۷۸

چې د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیعت خلافت سمدستي شوی ؤو خو اوس مونږ ته د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پشان سری چېرته ملاوېدی شي چې د هغه احترام او د هغه تابعداري مونږ داسې وکړو څنګه چې مونږ د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کولو او د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رایې دا وه چې مال دې د دیني فضائلو په لحاظ سره دې ائنده مسلمانانو ته کم یا زیات مال ورکړی شي او ما دخپل خلافت په زمانه کې هم په دې باندې عمل وکړ خو اوس که چېرې زه راتلونکي کال پورې ژوندی پاتې شم نو د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په رایې به عمل کوم او ټولو ته برابر مال ورکوم د هغه رایه زما له رایې نه غوره وه وړاندې یې نور حدیث هم ذکر کړو.(۱)

## باقي بیت المال حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورکول

حضرت حسن رَحِمَهُ اللهُ وایي چې یو ځل حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خلکو باندې مال تقسیم کړ نو په بیت المال کې لږ مال پاتې شو حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او نورو خلکو ته وویل لږ شان ما ته دا اوښایئ! چې که چېرې تاسو کې د حضرت موسی علیه السلام تره واي نو آیا تاسو به د هغه اکرام کولی ؟ ټولو وویل هو! مونږ به کولی حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې زه د هغه نه زیات د اکرام حقدار یم ځکه چې زه ستاسو د رسول الله ﷺ تره یم حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلکو سره حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته پاتې شوي مال په باره کې خبره وکړه ټول راضي شول هغه مال یې عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورکړ.(۲)

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي: یو بنځینه عطردان حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راغی د هغوی ملګري هغه کوت چې دا چا ته ورکړی شي ؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې زه دا عطردان حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته ولېږم ځکه چې د رسول الله ﷺ د هغې سره ډېر محبت وو ټولو وویل چې هو! ویې لېږه! زمونږ هم اجازت دی نو کله چې هغه عطردان حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته ورسېد و هغې هغه پرانیست او هغې ته یې وویل شو چې دا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ستاسو لپاره را لېږلی دی حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمایل چې د رسول الله ﷺ نه پس حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته څومره فتوحات حاصلېږي؟ اې الله! ما د

---

۱: اخرجه البزار قال الهیثمی ٦/٦ وفیه ابومعشر نجیح ضعیف یعتبر بحدیثه.
۲: اخرجه ابن سعد ۲۰/۴

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د ورکړو لپاره ائینده کاله پورې ژوندی مه ساتې!.(۱)

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایي: حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ زه د صدقاتو اخیستلو لپاره عامل جوړ کړم یو علاقې ته یې ولېږلم کله چې زه واپس راغلم نو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفات شوي وو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل اې انس! آیا تا مونږ ته د صدقاتو څاروي راوستلي دي؟ ما وویل هو! هغوی وفرمایل چې هغه څاروي خو مونږ ته راوله! او کوم مال چې تا راوړی دی هغه ستا دی ما وویل چې هغه مال خو د پر زیات دی هغوی وفرمایل چې که د پر هم وي هغه ستا دي او هغه څلور زره وې نو ما هغه مال واخیست او په دې ترتیب زه په مدینې منورې کې د ټولو نه زیات مالداره شوم.(۲)

**هغه سړی ته اعطا(ورکړه) کول چې د خدای په لاره کې په مخ زخمي شوي ؤ :**

حضرت عبید الله بن عبید بن عمر رَحِمَهُ اللهُ وایي چې یو ځل د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د مخکې عطیې اخیستل کېدې عطیې هغه مال دي چې نه یې د ورکولو اندازه معلومه وي او نه یې هم وخت معلوم وي چې په دې کې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ سر اوچت کړ نو د هغوی نظر په یو سړی باندې پرېوتلو چې د هغه په مخ د توري زخم نشان وو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د هغه نشان په باره کې د هغه نه پوښتنه وکړه نو هغه وویل چې زه یو جنګ له تللي ووم هلته ما ته د دشمن په توري سره دا زخم لګېدلی وو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل چې ده ته زر (۱۰۰۰) وشمارئ! او ورېې کړئ! نو هغه ته یو زر درهم ورکړل شول بیا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د غه مال لږ ساعت اړولو را اړولو د هغې نه پس یې وفرمایل ده ته یو زر درهمه نور هم ورکړئ! نو دغه سړی ته یو زر درهم نور هم ورکړل شول دا خبره حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ څلور ځله وفرمایله او هر ځل هغه ته یو زر درهم ورکړل شول چې د څلورو ځلو څلور زره کېږي د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ په دې زیات ورکړه باندې هغه سړی ته دومره شرم راغی چې هغه بهر ته لاړو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ پوښتنه وکړه چې هغه ولې لاړو؟ نو خلکو ورته وویل چې زمونږ خیال دا دی چې هغه د ډېرې ورکړې په وجه وشرمېده او لاړ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! که چېرې هغه ایسار شوي واې نو تر څو پورې چې یو درهم هم باقي نه واې

۱: اخرجه ابویعلي قال الهیثمي ٦/٦

۲: اخرجه ابویعلي قال الهیثمي ٦/٦

نو ما به هم ده ته ورکول څکه چې دا یو داسې سری دی چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې ورته داسې زخم جوړ شوی چې نښانه یې اوس هم په مخ باندې پاتې ده.(١)

## د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مال تقسیمولو طریقه

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو کال درې ځل په خلکو کې مال تقسیم کړ دې نه پس هغوی ته د اصفهان نه نور مال راغی نو هغوی اعلان وکړ اې خلکو! سحر سحر راشئ! او په څلورم ځل مال بیا واخلئ! زه ستاسو خزانه چي یم چې دا مال جمع کړي وساتم نو هغه ټول مال یې تقسیم کړو تر دې چې رسۍ یې هم تقسیم کړې څه خلکو رسۍ واخیستلې او څه خلک واپس لاړل.(٢)

## حضرت عمر او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د بیت المال مال

حضرت سعید رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بیت المال خزانه چي حضرت عبد الله بن ارقم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمایل چې هره میاشت یو ځل د بیت المال ټول مال په مسلمانانو باندې تقسیموه دې نه څه موده پس یې وفرمایل چې ته هره هفته د بیت المال ټول مال په مسلمانانو باندې تقسیموه! دې نه څه موده پس یې وفرمایل چې ته روزانه د بیت المال ټول مال تقسیموه! په دې باندې یو سړي وویل چې اې امیر المؤمنین! که چېرې تاسو په بیت المال کې څه پرېږدئ! نو بنه ده مسلمانانو ته ناڅاپه څه ضرورت پېښ شي هغې کې به په کار راشي یا بهر والا څه وخت مدد وغواړئ! نو هغوی ته ورکولی شي حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته وفرمایل ستا په ژبه باندې دا شیطان خبرې کوي او د دې جواب الله جَلَّ جَلَالُهُ ما ته ښایي او د هغه د شر نه ما ساتي او هغه دا چې ما د دغو ټولو ضرورتونو لپاره هغه څه تیار کړی دی چې رسول الله ﷺ تیار کړی وو او هغه د الله رب العزت او د هغه د رسول ﷺ اطاعت دی چې د هر مصیبت علاج او د هر ضرورت انتظام د الله رب العزت او د رسول الله ﷺ منل دي.(٣)

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د عراق نه مال راغی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تقسیمولو یو سړی ودرېدو ویې ویل، اې امیر المؤمنین! کېدی شي چې

---

١: اخرجه ابونعيم فى الحلية ٢/٣٥٥
٢: اخرجه ابوعبيد فى الاموال كذا فى الكنز ٢/٣٢٠
٣: اخرجه البيهقى ٦/٣٥٧ عن يحيى بن سعيد عن ابيه.

چېرته دشمن حمله وکړي يا په مسلمانانو باندې ناڅاپي څه مصيبت راشي نو د دې ضرورتونو لپاره که تاسو د دې مال نه څه وساتئ! نو بيا به وي دا يې چې واورېدل نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل په تا څه وشو؟ الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تا مړ کړي دا خبره ستا په ژبه شيطان وکړه او الله رب العزت ما ته د دې جواب ښودلی دی په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! د صبا راتلونکي ضرورت لپاره زه نن د الله رب العزت نافرماني نه شم کولی نه! زه مال جمع کړي نشم اېښودلي بلکې زه خو د مسلمانانو د ضرورتونو لپاره هغه څه تيار ساتم چې رسول الله ﷺ تيار کړی وو او هغه د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د رسول الله ﷺ تابعداري او تقوي ده او تقوي مال جمع کول نه دي بلکې مال په نورو خلکو باندې خرچ کول دي.(۱)

**د حضرت عمر او حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا واقعه:**

حضرت سلمه بن سعيد رَحِمَهُ اللهُ وايي چې يو ځل حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ډېر مال راوړل شو نو حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ودرېده او وې ويل اې اميرالمؤمنين! مسلمانانو باندې ناڅاپي مصيبت راتلی شي يا ناڅاپي څه ضرورت پېښېدلی شي له دې وجې نه د دې مال نه څه وساته! او په بيت المال کې يې کېږده! نو دېره ښه به وي نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې تا داسې خبره کړې ده چې صرف شيطان مخې ته راوستلی شي الله رب العزت زه د دې په جواب پوه کړی يم او د دې فتنې نه يې ساتلی يم د اينده کال د ضرورياتو د وېرې نه زه په دې کال کې د الله رب العزت نافرماني وکړم؟ ما د مسلمانانو د ضرورت لپاره د الله پاک تقوي تياره کړې ده. الله رب العزت فرمايلي دي، وَمَنْ يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا ۝ وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ (۲)

ترجمه، او څوک چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه وېرېږي الله پاک د هغه لپاره د ضرورتونو نه د خلاصي صورت راوباسي او هغه ته د داسې ځای نه رزق رسوي چې د هغه ځای نه د دا گمان هم نه وي البته د شيطان دا خبره له ما نه وروسته خلکو لپاره به فتنه جوړه شي.(۳)

**حضرت ابوموسى اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خط ليکل:**

حضرت حسن رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ابو موسى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دا خط

---

۱: عند ابي نعيم في الحلية ۱/۴۵

۲: سورة طلاق ۲، ۳.

۳: عند ابن عساكر كذا في منتخب الكنز ۴/۳۹۱

وليکه،(اما بعد: فاعلم يوما من السنة لايبقى فى بيت المال درهم، حتى يكتسح اكتساحا، حتى يعلم الله انى قد اديت الى كل ذى حق حقه).

اما بعد! زه غوارم چې په کال کې يوه ورځ داسې هم وي چې په بيت المال کې يو درهم هم پاتې نه شي او د دې ټول مال او وېستلی شي او تقسيم کړل شي چې د الله رب العزت په مخکې دا خبره واضحه شي چې ما هر مستحق ته د هغه حق ورکړی دی.(۱)

**حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خط ليکل:**

حضرت حسن رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وليکل چې خلکو ته د هغوی عطيې او د هغوی مقررې وظيفې ټولې ورکړه، حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته جواب کې وليکل، چې مونږ هغه ټول څه ورکړی دی خو بيا هم ډېر مال پاتې دی، بيا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وليکل، (انه فيئهم الذى افاءالله عليهم، ليس هو لعمر و لا لال عمر، اقسمه بينهم).

ترجمه، دا د مسلمانانو هغه مال دي چې الله رب العزت دوي ته ورکړی دی د د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يا د هغه د ال اولاد نه دي په دې وجه دا هم په مسلمانانو باندې تقسيم کړه!

## دحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مال تقسيمولو طريقه

حضرت علي بن ربيعه والبي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې ابن نباح د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شو او وې ويل اې اميرالمؤمنين! چې د مسلمانانو بيت المال د سرو او سپينو زرو نه ډک شوی دی دا يې چې واورېدل نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويل الله اکبر! او په ابن نباح يې ډډه ووهله، ودرېده او د مسلمانانو بيت المال ته کله چې ورسېده نو دا شعر يې ولوست،

هذا جناى و خياره فيه
و كل جان يده الى فيه

دا زما راټولې شوې مېوې دي او کومې مېوې چې ښې وې هغه هم په دې کې دي يعنې ما دا نه دی خوړلی او زما نه پرته د هر مېوه شوکوونکي لاس د هغه د خولې طرف ته تلو يعنې ما د دې بيت المال نه هيڅ نه دي اخيستي.

اې ابن نباح! کوفي والا ما ته راوله! نو خلکو ته يې اعلان وکړ راوې غوښتل کله چې

(۱) اخرجه ابن سعد ۳/۲۱۸ وابن عساكر كما فى الكنز ۲/۲۱۷

خلک راغلل نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بیت المال ټول مال په خلکو باندې تقسیم کړ او تقسیم یې کولو دا یې فرمایل چې اې سروزرو ! اې سپینو زرو ! زما نه علاوه بل چا ته دوکه ورکړئ او خلکو ته یې ویل واخلئ! واخلئ! او هم دا شان یې تقسیمول تر دې چې نه ئې دینار پاتې شو او نه څه درهم. بیا یې ابن نباج ته وفرمایل چې په دې بیت المال کې چړکاو کړ! هغه او به وپاشلې بیا هغوی په دې کې دوه رکعتونه مونځ وکړ.(۱)

حضرت مجمع تیمي رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بیت المال ټول مال تقسیم کړو هغې کې به یې جارو ووهله او په هغې کې به یې مونځ کولو او هلته به یې سجدې ځکه کولې چې دا بیت المال د هغه په حق کې ګواهي وکړي. (۲)

د حضرت علاء پلار وایي چې ما د حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه دا فرمان واورېده چې ما ستاسو د مال غنیمت نه د کجورو د دې لوښي نه پرته بل څه نه دي اخیستي او دا هم ما ته د باندیو یو سردار په هدیه کې را کړی وو بیا حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیت المال ته تشریف یوړو او څومره مال چې په هغې کې وو هغه یې ټول تقسیم کړو او بیا هغوی دا شعر ووایه ،

افلح من كانت له قو صره
يـاكل منها كل يـوم مره

حضرت عنتره شیباني رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د هر صنعت والا د هغه د صنعتکارۍ او د ستکارۍ نه جزیه او خراج اخیستلو تر دې چې د ستنو جوړونکو نه به یې ستنې، تارونه او رسۍ اخیستلې بیا به یې هغه په خلکو باندې تقسیمولو او شپې ته به په هغې کې هیڅ نه وو البته که چېرې په څه ضروري کار کې به مشغول شو او د مال تقسیمولو به په دغه ورځ وخت ملاو نه شو نو بیا به هغه مال په بیت المال کې ټول شپه پروت وو خو بله ورځ به سحر سحر تلو او هغه به یې تقسیمولو او فرمائیل به یې چې اې دنیا ! ما ته دوکه مه راکوه ! لاړه شه ! چېرته بل چا ته دوکه ورکړه ! او دا شعر به یې وایه ،

هذا جناى و خياره فيه
و كل جان يده الى فيه

دا زما راټولې کړی شوې مېوې دي او کومې مېوې چې ښې وې هغه هم په دې کې دې د هر

۱: اخرجه ابونعيم فى الحلية ۱/۸۱

۲: اخرجه ابن عبدالبر فى الاستيعاب ۳/۴۹ عن مجمع التيمي نحوه.

مېره شو کوونکي لاس د هغه خولې طرف ته تلو.

حضرت عنتره رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زه يو ځل د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضرم شو لږ ساعت پس د هغوی غلام قنبر راغی او هغه وويل اې اميرالمؤمنين! تاسو ټول مال تقسموئ! او هيڅ هم باقي نه پرېږدئ! حالانکه په دې مال کې ستاسو د کوروالاوو هم حصه ده په دې وجه ما ستاسو لپاره د پر بنه مال پټ ايښی دی هغوی پوښتنه وکړه هغه څه دي؟ قنبر وويل تاسو خپله لاړ شئ! او وګورئ! چې څه دي؟ نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لاړلو او قنبر هغه يو کمرې ته بوتلو هلته يو لوئ لوښئ ايښودلی شوی وو چې هغې ته د سرو زرو او به ورکړی شوې وې او هغه د سرو او سپينو زرو د لوښو نه ډک وو کله چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه وليدل نو وې فرمايل چې ستا مور دې تاسو ورک کړي ته خو زما کور ته د پر لوي اور داخلول غواړې! بيا يې په ټول د هر قوم سردار ته د هغه د حصې مطابق ورکول شروع کړل او بيا يې دا شعر ولوست چې د هغې ترجمه اوس تېره شوې ده:

هذا جناى و خياره فيه

و كل جان يده الى فيه

او وې فرمايل چې اې دنيا! ما ته دوکه مه راکوه! لاړه شه! چېرته بل چا ته دوکه ورکړه![1]

## د مسلمانانو مال په باره کې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رأيه

حضرت اسلم رَحِمَهُ اللهُ وايي چې ما د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا فرمان واورېدو چې د دې مال په باره کې د مشورې کولو لپاره ټول شئ! او بنه سوچ وکړئ! چې دا مال په کومو خلکو باندې تقسيم کړی شي کله چې غوښتونکی حضرات جمع شو نو وې فرمايل چې ما تاسو دې لپاره راټول کړي يئ! چې د دې مال په باره کې مشوره وکړل شي او غور وکړل شي چې دا مال په کومو خلکو باندې تقسيم کړی شي ما د الله رب العزت د کتاب قرآن خو آيتونه لوستلی دی ما د الله رب العزت دا فرمان اورېدلي دي؛

مَآ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْ اَهْلِ الْقُرٰى فَلِلّٰهِ وَلِلرَّسُوْلِ وَلِذِى الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَابْنِ السَّبِيْلِ كَىْ لَا يَكُوْنَ دُوْلَةً بَيْنَ الْاَغْنِيَآءِ مِنْكُمْ ۚ وَمَآ اٰتٰىكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ ۚ وَمَا نَهٰىكُمْ عَنْهُ

---

۱: اخرجه ابوعبيده كذافى منتخب الكنز ۵/۵۷ واخرجه احمد فى الزهد ومسدد عن مجمع نحو ما تقدم عن ابى نعيم فى كلية كما فى المنتخب ۵/۷۵

فَانْتَهُوْا ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝ لِلْفُقَرَآءِ الْمُهٰجِرِيْنَ الَّذِيْنَ اُخْرِجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ وَاَمْوَالِهِمْ يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا وَّيَنْصُرُوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ۭ اُولٰٓئِكَ هُمُ الصّٰدِقُوْنَ ۝ (۱)

ترجمه: کوم څه چې الله رب العزت په دې طور باندې خپل رسول ﷺ ته د نورو کلو د کافرانو خلکو نه ورکړي لکه فدک او یوه حصه د خیبر نو هغه هم د الله رب العزت حق دی او د رسول الله ﷺ او ستا د خپلوانو او یتیمانو او غریبانو او د مسافرو. د دې لپاره چې د هغه مال فایده ستاسو د مالدارو په قبضه کې رانه شي او رسول الله ﷺ چې تاسو ته کوم څه درکوي هغه اخلئ! او د کوم شی د اخیستلو نه چې تاسو منع کړي او د الفاظو عموم سره یې هم دا معني ده په افعالو او احکامو کې هم تاسو منع کیږئ! او د الله رب العزت نه وېره کوئ! بېشکه الله رب العزت مخالفت کولو باندې سخته سزا ورکوونکی دی او د هغه حاجتمندو مهاجرینو خاص کر حق دی چې د خپلو کورونو او مالونو نه په زور او ظلم سره جُدا کړي شوی دی هغوی د الله پاک د فضل یعني جنت او رضا مندۍ غوښتونکی دي او هغوی د الله رب العزت او د هغه د رسول د دین امداد کوي او هم دا خلک په ایمان کې رښتونی دی. په الله جَلَّ جَلَالُهٗ دا مال صرف د دې خلکو لپاره نه دي بیا الله رب العزت فرمایلي دي: وَالَّذِيْنَ تَبَوَّؤُ الدَّارَ وَالْاِيْمَانَ مِنْ قَبْلِهِمْ يُحِبُّوْنَ مَنْ هَاجَرَ اِلَيْهِمْ وَلَا يَجِدُوْنَ فِيْ صُدُوْرِهِمْ حَاجَةً مِّمَّآ اُوْتُوْا وَيُؤْثِرُوْنَ عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ ۭ وَمَنْ يُّوْقَ شُحَّ نَفْسِهٖ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ۝ (۲)

ترجمه: او دا رنګه د هغه خلکو هم حق دی چې په دار الاسلام (مدینه منوره) کې د دې مهاجرینو د راتلو نه مخکې قراری نیولی دی چې هجرت کوي او دوي طرفته راځي هغوی سره دا خلک محبت کوي او مهاجرینو ته چې څه رسیږي په هغې سره دوي یعني انصار پخپلو زړونو کې څه حسد نه مومي او خپل ځان نه یې مقدم ګڼي که څه هم چې په دوي باندې لوږه وي او واقعي کوم سړی چې د خپل طبیعت د شومتیا نه محفوظ او ساتلی شو هم دا سې خلک کامیابي موندنکي دي. په الله جَلَّ جَلَالُهٗ قسم! دا مال صرف د دې خلکو لپاره نه دي بیا الله رب العزت فرمایلي دي، وَالَّذِيْنَ جَآءُوْ مِنْۢ بَعْدِهِمْ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِاِخْوَانِنَا الَّذِيْنَ سَبَقُوْنَا

---

۱: سورة حشر آیت ۸/۷
۲: سورة حشر آیت ۹

بِالْإِيمَانِ وَلَا تَجْعَلْ فِي قُلُوبِنَا غِلًّا لِّلَّذِينَ آمَنُوا رَبَّنَا إِنَّكَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿١﴾

ترجمه، او د هغه خلکو هم په دې مال کې حق دی چې د دوي نه پس راغلل چې د دې ذکر شوو په حق کې دعا کوي چې اې ربه! مونږوبښې! او زمونږ وررونه هم کومو چې زمونږ نه مخکې ایمان راوړی دی او زمونږ په زړونو کې ایمان والاوو لپاره کینه مه راولې! اې زمونږ ربه! ته ډېر شفیق او رحم والا يې!

بیا يې وفرمايل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! په دې مال کې د هر مسلمان حق معلومېږي که څه هم هغه په عدن کې چېلۍ څروي دا جُدا خبره ده چې هغه ته مال ورکړی شي یا ورنکړل شي.(٢)

حضرت مالک بن اوس بن حدثان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا واقعه بیانوي او فرمايي: دې نه پس حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا آیت شریف تر اخره پورې ولوسته: إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِينِ وَالْعَامِلِينَ عَلَيْهَا وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوبُهُمْ وَفِي الرِّقَابِ وَالْغَارِمِينَ وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ وَابْنِ السَّبِيلِ فَرِيضَةً مِّنَ اللَّهِ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿٣﴾

ترجمه: صدقات خو صرف د غریبانانو حق دی او د محتاجو او کوم کارکوونکي چې په دې صدقاتو مقرر شوي وي او د چا چې زړه ساتل مقصود وي او د غلامانو ازادولو کې او د قرضدارانو په قرضه کې او په جهاد کې او په مسافرو کې دا حکم د الله پاک د طرف نه مقرر دي او الله رب العزت لوي علم والا، لوی حکمت والا دی.

او وې فرمايل چې دا زکات او صدقات خو هم د دې خلکو لپاره دي چې د هغوی ذکر په دې ایت کې دي بیا یې دا آیت تر اخره پورې اولوستلو: وَاعْلَمُوا أَنَّمَا غَنِمْتُم مِّن شَيْءٍ فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُ وَلِلرَّسُولِ وَلِذِي الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينِ وَابْنِ السَّبِيلِ إِن كُنتُمْ آمَنتُم بِاللَّهِ وَمَا أَنزَلْنَا عَلَىٰ عَبْدِنَا يَوْمَ الْفُرْقَانِ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٤﴾

ترجمه: او په دې خبره پوه شئ! چې کوم شی د کفارو نه د غنیمت په توګه تاسو ته حاصل وي نو د هغې حکم دا دی چې د ټول مال پنځمه برخه د الله رب العزت او د هغه د رسول الله ﷺ ده او یوه برخه د مسافرو ده که تاسو په الله رب العزت باندې ایمان لرئ! او په هغه

---

١: سورة حشر آیت ١٠

٢: اخرجه البیهقی ٦/٢٥١

٣: سورة توبة آیت ٦٠

٤: سورة أنفال آیت ٤١

شي باندې چې مونږ په خپل بنده محمد ﷺ باندې د فيصلې په ورځ يعنې کومه ورځ چې د دو جماعتونو د مؤمنانو او کفارو خپلو کې مقابله شوې وه ناز کړې وو او صرف الله رب العزت په هر شی باندې پوره قدرت لرونکی دی.

بيا يې وفرمايل چې دا مال غنيمت هم د دې خلکو لپاره دي چې د هغوی په دې ايت کې ذکر دي بيا يې دا ايت تر اخره پورې اولوستلو : إِنَّمَا الصَّدَقٰتُ لِلْفُقَرَآءِ وَالْمَسٰكِيْنِ وَالْعٰمِلِيْنَ عَلَيْهَا وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوْبُهُمْ وَفِى الرِّقَابِ وَالْغٰرِمِيْنَ وَفِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَابْنِ السَّبِيْلِ ۖ فَرِيْضَةً مِّنَ اللّٰهِ ۗ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۝(۱) چې د هغې ترجمه مخکې تېره شوې ده او وې فرمايل چې دا مهاجرين خلک دي بيا يې دا آيت تر اخره پورې ولوستلو : وَالَّذِيْنَ تَبَوَّؤُ الدَّارَ وَالْاِيْمَانَ مِنْ قَبْلِهِمْ يُحِبُّوْنَ مَنْ هَاجَرَ اِلَيْهِمْ وَلَا يَجِدُوْنَ فِىْ صُدُوْرِهِمْ حَاجَةً مِّمَّآ اُوْتُوْا وَيُؤْثِرُوْنَ عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ ۚ چې د دې ترجمه هم مخکې تېره شوې ده او وې فرمايل چې په دې ايت کې د کومو خلکو ذکر دي هغه انصار دي بيا يې دا آيت تر اخره پورې اولستلو : وَالَّذِيْنَ جَآءُوْ مِنْۢ بَعْدِهِمْ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِاِخْوَانِنَا الَّذِيْنَ سَبَقُوْنَا بِالْاِيْمَانِ وَلَا تَجْعَلْ فِىْ قُلُوْبِنَا غِلًّا لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا رَبَّنَآ اِنَّكَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ۝ چې د هغې ترجمه هم مخکې تېره شوې ده او وې فرمايل چې په دې ايت کې تول خلک راغلل نو هدارنګه په دې مال کې د ټولو مسلمانانو حق دی البته ستاسو د غلامانو په دې مال کې څه حق نشته دی که چېرې زه ژوندی پاتې شوم نو ان شاءالله هر مسلمان ته به د هغه حق ورسېږي تر دې پورې د وادي حمير (چې يمن کې ده) د پاسنۍ حصې شپونکي ته به هم د هغه برخه ورسېږي او د دې مال په حاصلولو کې به د هغه په تندي لږه خوله هم نه راځي يعنې د دې لپاره د هيڅ کوشش ضرورت نه راځي.(۲)

# د طلحه بن عُبيد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مال تقسيمولو طريقه

### دحضرت طلحه او دهغه دبي بي رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا واقعه:

حضرت سُعدی رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي: يوه ورځ زه حضرت طلحه بن عبيد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورغلم نو ما د هغه په طبيعت باندې بوج محسوس کړو ما ورته وويل چې په تا څه وشو؟ ايا زمونږ د طرف نه تاسو ته څه د ناخوښۍ خبره پېښه شوې ده؟ که چېرې داسې وي نو بيا د ناخوښۍ خبره به لرې

---

۱: سورة توبة آيت ٦٠

۲: اخرجه البيهقى ايضاً ٦/٣٥٢ و ابن جرير عن مالك بن اوس نحوه كما فى التفسير لابن كثير ٣٤٠/٤

کړو او تاسو به راضي کړو حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې نه داسې څه خبره نشته ته خو د يو مسلمان د ډېر ښه بي بي يې! زه د له دې وجې نه پرېشانه يم چې زما سره مال جمع شوی دی او زه نه پوهېږم چې په دې باندې څه وکړم؟ ما ورېل په دې کې د پرېشانه کېدو څه خبره ده؟ تاسو خپل قوم را اوغواړئ! او دا مال په هغوی باندې تقسيم کړئ! حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل: اې هلکه! زما قوم ما ته را اوغواړه! نو د هغه قوم والا راغلل نو ټول مال يې په هغوی باندې تقسيم کړو ما د خزانه چي نه پوښتنه وکړه چې هغوی څومره مال تقسيم کړو؟ خزانه چي وويل چې څلور لکه.(۱)

حضرت حسن رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپله يوه زمکه په اووه لکه باندې خرڅه کړه نو دا مال ده سره يوه شپه پاتې شو نو هغوی دغه ټوله شپه د دغه مال د وېرې د وجې په ويښه تېره کړه چې سحر شو نو هغه ټول مال يې تقسيم کړ.(۲)

**فیاض او سخي طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ :**

د حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بي بي حضرت سُعدي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: يوه ورځ حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ما ته راغی هغه ما ته ډېر غمجن په نظر راغی ما وويل چې څه خبره ده؟ ما ته ستا مخ ډېر پرېشانه په نظر راځي آيا زمونږ د طرفه درته څه ناخوښه خبر راغلی دی؟ هغوی وويل چې نه! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ستاسو د طرفه هيڅ ناخوښه خبره نه ده راغلې ته خو ډېره ښه بي بي يې! زه په دې وجه غمگين او پرېشانه يم چې ما سره ډېر زيات مال جمع شوی دی ما وويل چې ته سرې اولېږه! او خپل خپلوان او خپل قوم والا را اوغواړه! او په هغوی دا مال تقسيم کړه! نو هغوی را اوغوښتل او په هغوی باندې يې ټول مال تقسيم کړو هغه وويل چې څلور لکه. د هغوی روزانه امدني يو زر وافي وه (يو وافي يو درهم او څلور دانقه وي نو د زرو وافي نه يو زر شپږ سوه او شپږ شپېته درهمه او څلور دانقه جوړېږي) د دې سخاوت به ورته طلحه فياض ويلې شو يعنې ډېر زيات سخي.(۳)

۱: اخرجه الطبراني باسناد حسن عن طلحة بن يحى عن جدته سعدي رضی الله عنها كذا في الترغيب ۱/۱۷۶ وقال الهيثمي ۹/۱۴۸ رجاله ثقات واخرجه ابن سعد ۳/۱۵۷ وابو نعيم ۱/۸۸.

۲: اخرجه ابونعيم ايضا في الحلية ۱/۸۹ واخرجه ابن سعد ۳/۱۵۷ اطول منه.

۳: اخرجه الحاكم ايضا ۳/۲۷۸

# د زبیر بن عوام رَضِيَ اللهُ عَنهُ د مال تقسیمولو طریقه

**د حضرت زبیر رَضِيَ اللهُ عَنهُ او غلامانو واقعه**

حضرت سعید بن عبد العزیز رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د حضرت زبیر بن عوام رَضِيَ اللهُ عَنهُ به زر غلامان وو کوم به چې مال گټلو او هغوی رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته به یې ورکول هغه رَضِيَ اللهُ عَنهُ به روزانه مابنام د هغوی نه مال اخیسته او هم د شپې به یې تقسیمولو او کله چې به واپس تلو نو په هغې کې به هیڅ نه و پاتې شوي.(۱)

حضرت مغیث بن سمي رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د حضرت زبیر بن عوام رَضِيَ اللهُ عَنهُ یو زر غلامان وو کوم چې به مال گټلو او هغه ته به یې ورکولو هغوی به د دې غلامانو د امدنی نه یو درهم هم کور ته نه راوړلو بلکې ټوله امدني به یې په نورو خلکو باندې تقسیموله. حضرت عبد الله بن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایل چې د جنگ جمل په ورځ زما پلار حضرت زبیر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ودرېدو نو زه یې را او غوښتم زه د هغوی په خوا کې راغلم او ودرېدم نو هغوی ویل اې زما ځویه! نن چې څوک هم قتل کړی شي هغه به مخاف فریق ظالم گڼي او هغه به خپل ځان مظلوم گڼي او ما ته داسې په نظر راځي چې زه به هم ظلماً وژلی کېږم او ما سره د ټولو نه زیات فکر د خپلې قرضې دي ستا څه خیال دی چې د قرضې د اداء کولو نه پس زمونږ مال کې به څه پاتې شي؟ اې زما ځویه! زمونږ مال خرچ کړه! او قرض اداء کړه! بیا حضرت زبیر رَضِيَ اللهُ عَنهُ دا وصیت وکړ چې د قرض اداء کولو نه روستو چې کوم مال پاتې شي د هغې دریمه حصه د وارثانو نه علاوه نورو خلکو ته دې ورکړی شي او د دې دریمې حصې دریمه حصه یعنې د پاتې شوي مال نهمه حصه د حضرت عبد الله بن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنهُ اولاد ته ورکړی شي ځکه چې د عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ بچي لوي وو بلکې د هغوی و دونه هم شوي نه وو نو حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ څه ځامن د حضرت خبیب او حضرت عباد رَضِيَ اللهُ عَنهُ په عمر کې یاد مال په حصه کې د حضرت زبیر د بعضې زامنو سره برابر وو او پخپله حضرت زبیر رَضِيَ اللهُ عَنهُ نهه ځامن او نهه لورگانې وې حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایي: حضرت زبیر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ما ته د خپلې قرضې په باره کې وصیت کولو او وې فرمایل اې زما ځویه! که

---

۱: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۹۰

چېرې زما د قرض په اداء کولو کې څه مشکل راشي نو زما د مولي نه مدد حاصل کړه! حضرت عبدالله وايي په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه پوه نه شوم چې د مولي نه د هغه څوک مراد دی؟ څکه مې تري پوښتنه وکړه! اې پلاره! ستا مولي څوک دی؟ هغوی وفرمايل الله رب العزت. نو حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي کله چې به هم ما ته د هغه قرض په باره کې څه مشکل راتلو نو ما به ويل اې د زبير مولي! د زبير قرضه اداء کړه! الله رب العزت به فوراً د هغې څه انتظام فرمائيلو نو حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دغه ورځ شهيد شو هغوی په ترکه (ميراث) کې هيڅ دينار يا درهم پرېښودل البته څه زمکې، په مدينه منوره کې يوولس کورونه، په بصره کې دوه کورونه، په کوفه کې يو کور او په مصر کې يو کور نی پرېښې وه په دې څو زمکو کې د مدينې منورې نه څو ميله لرې غابه کې د حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې دا دومره قرضه په دې وجه وه چې هغوی ته به کوم کس خپل مال د امانت په طور کېښودلو لپاره راتلو هغه ته به يې فرمايل چې زما سره يې امانت مه ږده! زه وېرېږم چې هسې نه ضايع شي له دې وجې نه يې ماته قرض راکړه! او کله چې دې ضرورت وي نو وايې خله! او د خلکو نه به يې اخيستلي او په نورو باندې به يې خرچ کولې حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه چرته امير جوړ شو او نه يې چرته د خراج او زکات وغيره اخيستو ذمه واري اخيستې وه البته د رسول الله ﷺ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره به په جنگونو کې شريکېدلو او په دې جنگونو کې چې ورته کوم مال غنيمت ملاو شو په هغې سره ورته دومره جائيداد راغلی وو بهر حال ما د خپل پلار د قرض حساب يې اولگولو نو هغه دوه ويشت لکه وو يوه ورځ حضرت حکيم بن حزام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ما سره ملاو شو هغه وويل اې زما وراره! زما په رور حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې څومره قرض دي؟ ما نور قرض پټ کړو او ومې ويل يو لک څومره يې چې اوښودلو نو په دې کې رېښتونی وو حضرت حکيم بن حزام وويل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زما په خيال کې خو ستا ټول مال به دې قرضې اداء کولو لپاره کافي نه وي ما وويل چې که چېرې دوه ويشت لکه قرض وي نو بيا؟ هغوی وويل چې زما په خيال خو ته دا نشې اداء کولی له له دې وجې نه که چېرې تا ته د قرض په اداء کولو کې څه مشکل راشي نو زما نه مدد اخله!

حضرت زبیر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ د غابه زمکه په یو لاک اویا زره باندې اخیستلې وه ما دهغې قیمت اولګولو نو شپاړس لکه راغی ما دهغه زمکې شپاړس حصې جوړې کړې وې د یوې حصې قیمت مې یو لاک اولګولو بیا زه اودرېدم او اعلان مې وکړ چې د چا په حضرت زبیر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ باندې څه حق دی هغه دې راشي ما سره دې په غابه کې ملاو شي د حضرت عبد الله بن جعفر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ د حضرت زبیر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ باندې څلور لاکه درهمه وو هغه راغی ما ته یې وویل چې که چېرې ته وایې نو زه تا ته دا قرضه پرېږدم ما وویل چې نه! ضرورت نشته دی بیا یې وویل چې که ته غواړې! نو زما قرضه په اخره کې اداء کړه! ما وویله نه! تاسو یې اوس واخلئ! هغه وویل چې بنه ده بیا ما ته په دې زمکه کې زما د قرضې په اندازه حصه راکړه! ما وویله چې د دې ځائ نه وخله تر هغه ځائ پورې ستا زمکه ده نو د غابه زمکه او د حضرت زبیر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ کورونه مې خرڅول او قرضه مې اداء کوله تر دې چې ټوله قرضه اداء شوه او د غابه د زمکې په شپاړسو حصو کې څلور نیمې حصې پاتې شوې زه وروسته د حضرت معاویه رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ په زمانه خلافت کې هغه ته ورغلم هغه وخت کې ورسره حضرت عمرو بن عثمان رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ، حضرت منذر بن زبیر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ او حضرت ابن زمعه رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ هم وو حضرت معاویه رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ ما ته وویل چې تا د غابه زمکې څومره قیمت دی؟ ما وویل هغه مې شپاړس حصې کړې وه او هره حصه د یو لاک وه حضرت معاویه رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې اوس څومره حصې پاتې دی؟ ما وویل څلور نیمې حصې. حضرت منذر بن زبیر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ وویل چې یوه حصه ما په یو لاک باندې واخیستله بیا حضرت عمرو بن عثمان رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ وویل چې یوه حصه ما په یو لاک باندې واخیسته بیا حضرت ابن زمعه رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ وویل چې یوه حصه ما په یو لاک باندې واخیستله بیا حضرت معاویه رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې اوس څومره حصې پاتې شوی دی؟ ما وویل یوه نیمه هغوی وویل چې یو نیم لاک باندې هغه ما واخیستله حضرت عبد الله بن جعفر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ خپله حصه په حضرت معاویه رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ باندې په شپږ لاکه باندې خرڅه کړه! کله چې زه د حضرت زبیر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ د قرضې د اداء کولو نه فارغ شوم نو د حضرت زبیر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ اولاد یعنې زما خویندو ورونو وویل چې اوس میراث په مونږ باندې تقسیم کړه! ما وویل چې

نه! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه به میراث په تاسو باندې هغه وخته پورې تقسیم نه کړم چې تر څو چې ما د حج په موسم کې څلور کاله دا اعلان نه وي کړی چې چا په حضرت زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې څه قرضه وي هغه دې مونږ ته راشي مونږ به د هغه قرضه اداء کړو نو ما به هر کال د حج په موسم کې دا اعلان کولو کله چې څلور کاله تېر شو نو ما بیا په هغوی باندې میراث تقسیم کړو د حضرت زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څلور بیبیانې وې حضرت زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دریمې حصې د مال وصیت کړی وو هغه د دریمې حصې مال ورکولو نه پس هرې بي بي ته دولس لکه ملاو شوې لهذا د هغه ټول مال پنځه کروړه دوه لکه شو.(۱)

په البدایه کې علامه ابن کثیر رَحِمَهُ اللهُ فرمایلي دي چې په وارثانو باندې چې کوم مال تقسیم شو هغه درې کروړه دوه نیم لکه وه لهذا دا میراث او دریمه حصه ټول پنځه کروړه شپږ او یا لکه شو او مخکې چې کومه قرضه اداء کړی شوه هغه دوه ویشت لکه وه په دې حساب سره قرض دریمه حصه او میراث ټول مال پنځه کروړه اته نوي لکه شو دا تفصیل مونږ ځکه او ښودلو چې په بخاري کې کوم د مال تفصیل دی په هغې کې اشکال دی له له دې وجې نه د دې تفصیل ښودل ما ته مناسب ښکاره شو.(۲)

## د عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مال تقسیمولو طریقه

**دهغه، بني زهره، فقیرانو مسلمانانو اوامهات المؤمنین قصه:**

حضرت ام بکر بنت مسور رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وایي چې حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپله یوه زمکه په څلوېښت زره دیناره باندې خرڅه کړه! او ټول مال یې په قبیله بنوزهره، غریبو مسلمانانو، مهاجرینو او د رسول الله ﷺ په بیبیانو باندې تقسیم کړو په دې کې څه رقم یې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته اولېږلو هغې پوښتنه وکړه چې دا مال چا را لېږلی دی؟ ما ویل چې حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. بیا مال ورونکي د هغوی ﷺ د ځمکې خرڅولو او د هغې ټول قیمت د تقسیمولو قصه بیان کړه په دې باندې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمایل چې رسول الله ﷺ فرمایلي وو چې زما نه پس تاسو ازاوج مطهراتو سره د شفقت معامله به صرف هم صابر خلک کوي بیا حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دعا وکړ چې الله رب

---

۱: اخرجه البخاري
۲: كذا في البداية ۷/۲۵۰

العزت دې عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې د جنت د سلسبيل د چينې نه وڅښيږ!(۱)

حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دېرش زره كورنۍ ازادې كړې وې.(۲)

يو روايت دادې چې دېرش زره وينزې يې ازادې كړې وې.

## د ابوعبيده بن جراح، معاذ بن جبل او حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُم د مال تقسيمولو طريقه د هغوی او اميرالمؤمنين عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قصه:

حضرت مالک الدار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي، حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څلور سوه ديناره واخيستل او په يوه تيلۍ کې واچولې او غلام ته يې وويل چې دا حضرت ابوعبيده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له يوسه! او هغه ته ورکولو نه پس په کور کې لږ وخت لپاره په څه کار کې مشغول شه! او اوګوره! چې هغه په دې دينارو باندې څه کوي؟ نو هغه غلام دغه تيلۍ هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له يوړه او عرض يې وکړ چې امير المؤمنين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تاسو ته فرمايي، تاسو دا دی نار په خپل ضرورت کې خرچ کړئ! حضرت ابوعبيده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل الله رب العزت دې هغه ته د دې بدله ورکړي او الله رب العزت دې په هغه باندې رحم وکړي بيا يې وفرمايل اې وينزې! دلته راشه! دا اووه ديناره فلانکي له يوسه! دا پنځه ديناره فلانکي له يوسه! دا شان هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ټول دينار ختم کړل هغه غلام راغی او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يې ټوله خبره وکړه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم دومره ديناره د حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لپاره تيار ايښي وو. نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دغه غلام ته وفرمايل چې دا دی نار حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يوسه! او هغه ته ورکولو نه پس په کور کې په څه کار مشغول شه! او اوګوره! چې هغه په دې دينارو باندې څه کوي؟ نو هغه غلام دينار واخيستل د حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شو او هغه ته يې عرض وکړ چې امير المؤمنين فرمايي، تاسو دا دی نار په خپل ضرورت کې خرچ کړئ! حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې الله رب العزت دې په هغوی باندې رحم وکړي او هغوی ته د دې بدله ورکړي بيا يې وفرمايل اې وينزې! دلته راشه! د فلانکي کور ته دومره يوسه! د فلانکي کور ته دومره او د فلانکي کور ته دومره يوسه! په دې کې د هغوی

---

۱: اخرجه الحاكم ۳/۳۱۰ قال الحاكم هذا حديث صحيح الاسناد ولم يخرجاه وقال الذهبي ليس بمتصل وقد اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۹۸ وابن سعد ۳/۹۴ عن المسور بن مخرمة بنحوة الا ان في رواية ابي نعيم لن يحنو عليكم بعدي الا الصالحون.

۲: اخرجه الحاكم ۳/۳۰۸ وابونعيم في الحلية ۱/۹۹

رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بي بي راغله او ويې ويل چې په الله رب العزت قسم! مونږ هم مسكينان يو مونږ
ته هم څه راكړه! په تيلۍ كې صرف دوه ديناره پاتې شوي وو حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ
هغه دوه ديناره د هغې طرف ته ورا وغورځول غلام واپس راغى او د حضرت
معاذ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د مال د تقسيمولو ټوله واقعه يې واوروله په دې حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ډېر
خوشحاله شو او وې فرمايل چې دا ټول خپلو كې وروڼه وروڼه دي او په نورو باندې ټول
مال خرچ كولو كې دوي ټول د يو طبيعت والا دي.(۱)

حضرت اسلم رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې يو ځل حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خپلو ملګرو ته
وفرمايل د خپلې خپلې ارزو اظهار وكړئ! يو صاحب وويل زما د زړه ارزو دا ده چې دا كور
دې د درهمو نه ډک شي او زه دا ټولې د الله رب العزت په لاره كې خرچ كړم حضرت
عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بيا وفرمايل چې د خپلې خپلې ارزو اظهار وكړئ! نو دويم صاحب وويل چې
زما د زړه ارزو دا ده چې كور دې د سرو زرو نه ډک ما ته ملاو شي او زه دا د الله پاک په لاره
كې خرچ كړم حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بيا وفرمايل چې زما د زړه ارزو دا ده چې دا كور د
جوهراتو نه ډک وي او زه دا ټول د الله رب العزت په لاره كې خرچ كړم حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ
بيا وفرمايل چې د خپلې خپلې ارزو اظهار وكړئ! خلكو وويل چې د دومره لويو ارزوګانو
نه پس بله كومه ارزو كېدلې شي؟ حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې زما د زړه ارزو دا ده
چې دا كور د حضرت ابوعبيده بن جراح رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او
حضرت حذيفه ابن يمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په شان سړو نه ډک وي او زه هغوى د الله رب العزت
تابعدارۍ په مختلفو كارونو كې استعمال كړم د كار د سړو زيات ضرورت دى بيا حضرت
عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د دې ټولو خلكو په موجودګۍ كې څه مال حضرت حذيفه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته

---

۱: اخرجه الطبراني ورواته الى مالک الدار ثقات مشهورون ومالک الدار لا اعرفه كذا في الترغيب ۲/۱۷۷ وقال الهيثمي ۳/۱۲۵ رواه الطبراني في الكبير ومالک الدار لم اعرفه وبقية رجاله ثقات انتهى قلت ذكره الحافظ في الاصابة ۱/۴۸۴ وقال مالک بن عياض مولى عمرو هو الذي يقال مالک الدار له ادراک وسمع من ابي بكر الصديق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ روي عن الشيخين ومعاذ وابي عبيده روي عنه ابناه عون وعبدالله وابوصالح السمان وذكره ابن الطبقة الاولى من التابعين في اهل المدينة وقال كان معروفا وقال على بن المديني كان مالک الدار خازنا لعمر انتهى وقال في الاصابة وروينا في فوائد داود بن عمر والضبي جمع البغوي من طريق عبدالرحمن بن سعيد بن يربوع المخزومي عن مالک الدار فذكر القصة اه واخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۲۳۷ عن مالک الدار فذكر مثله واخرجه ابن سعد ۳/۳۰۰ عن معن ابن عيسى قال عرضنا على مالک بن انس فذكره مختصرا.

اولېږلو او ورونکو ته یې وفرمایل چې اوګوره! هغه په دې مال باندې څه کوي؟ کله چې حضرت حذیفه رضي الله عنه ته هغه مال اورسېد و نو هغوی رضي الله عنه ټول مال تقسیم کړو نو بیا یې حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه ته څه مال اولېږلو هغه هم تقسیم کړو بیا یې حضرت ابو عبیده رضي الله عنه ته څه مال اولېږلو او ورونکو ته یې وفرمایل چې اوګوره! هغه په دې مال باندې څه کوي؟ هغوی رضي الله عنه هم ټول تقسیم کړو بیا حضرت عمر رضي الله عنه وفرمایل چې ما تاسو ته مخکې ویلي وو چې دا درې واړه د کار سړي دي او د دوي په خوبي دا ده چې مال په خلکو باندې خرچ کوئ![1]

## د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د مال تقسیم

**د هغه ډېر مال تقسیمول چې حضرت معاویه رضي الله عنه ورته را لیږلي و:**

حضرت میمون بن مهران رحمه الله وایي چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه ته په یو مجلس کې دوه ویشت زره درهم راغلل هغوی رضي الله عنه د دغه مجلس نه پاڅېدلو نه مخکې ټول تقسیم کړل حضرت نافع رحمه الله وایي چې حضرت معاویه رضي الله عنه حضرت ابن عمر رضي الله عنه ته یو لک درهم اولېږل د کال تېرېدلو نه وړاندې هغوی ټول مصرف کړې او په هغې کې څه پاتې نه شو حضرت ایوب بن وائل راسبي رحمه الله وایي چې زه مدینې منورې ته راغلم نو ما ته د حضرت ابن عمر رضي الله عنه یو ګاونډي دا قصه واورولـه چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه ته د حضرت معاویه رضي الله عنه د طرفه څلور زره او د یو بل سړی د طرفه څلور زره او د یو بل سړی د طرفه دوه زره، چې ټولې لس زره او یو جایدار څادر راغی بیا هغه بازار ته لاړو او د خپلې سورلۍ لپاره یې د یو درهم ګیاه قرض واخیستله ما ته پته وه چې دا ته دومره مال راغلی دی په دې وجه زه ډېر حیران شوم چې ده ته دومره مال راغلی او دې د یو درهم ګیاه قرض اخلي. زه د هغه وینزې ته ورغلم او ما هغې ته وویل چې تا نه څه پوښتنه کول غواړم ته ما ته ریښتیا ریښتیا اووایه! آیا حضرت ابو عبدالرحمن (دا د حضرت ابن عمر رضي الله عنه کنیت دی) ته د حضرت معاویه رضي الله عنه د طرفه څلور زره او د یو بل سړی د طرفه څلور زره او د یو بل سړی د طرفه دوه زره او یو څادر نه دي راغلی؟ هغې ووېل

---

۱: اخرجه البخاری فی التاریخ الصغیر ۲۹ عن زید بن اسلم.

چې راغلی دی ما وویل چې ما هغه لیدلی دی چې هغه د یو درهم ګیا قرض واخیستله نو دا څه خبره ده؟ چې سره د دومره مال نه دی قرض اخلي؟ هغې وینزې وویل چې د شپې اوده کېدو نه مخکې هغه د غه لس زره تقسیم کړې وې او بیا یې هغه څادر په ملا واچولو او بهر ته وتلی وو او هغه یې هم چا ته ورکړی دی بیا واپس کور ته راغی نو زه بازار ته لاړم اعلان مې وکړ چې اې د سوداګرو ټولګیه! تاسو چې دا دومره دنیا ګټئ! څه به پرې کوئ؟ د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ په شان په نورو خلکو ټول مال مصرف کړئ! پرون شپه حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته لس زره درهم راغلي وو، هغوی هم ټولې د شپې خرچ کړې وې له دې وچې نه نن خپلې سورلۍ لپاره هغوی رَضِيَ اللهُ عَنهُ د یو درهم ګیا قرض اخیستله.(١)

حضرت نافع رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته په یو مجلس کې د شلو زرو نه زیات درهم راغلل نو هغوی رَضِيَ اللهُ عَنهُ د دغه مجلس نه د پاڅېدو نه مخکې هغه ټول تقسیم کړل او زیاتې چې کومې هغوی سره د مخکې نه وې هغه یې هم ټولې تقسیم کړې او څه چې ورسره وو هغه یې ټول ختم کړل نو یو صاحب راغی چې هغه ته د ورکولو د ده زور عادت وو اوس د خپل طرفه ورکولو لپاره څه باقي پاتې شوي نه وو له دې وجې نه چا ته یې چې ورکړې وې په هغوی کې یې د یو سړي نه قرض واخیستلې او هغه صاحب ته یې ورکړې

حضرت میمون رَحِمَهُ اللهُ وايي چې بعضې خلک دا وايي چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ شوم دی دا خلک غلط وايي په الله رب العزت قسم! چېرته چې د خرچ کولو سره د اخرت فائده وي هلته په خرچ کولو کې هغه بلکل شوم نه دی البته په خپل ځان باندې نه خرچ کوي او خامخا یې نه ورکوي.(٢)

## اشعث بن قیس رَضِيَ اللهُ عَنهُ او مال تقسیمول

حضرت ابو اسحاق رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د قبیله کنده یو سړي باندې زما قرض وو زه به هغه ته د قرض اخیستو لپاره د صبا ختلو نه مخکې په اخره شپه کې تلم یو ورځ زه د حضرت اشعث بن قیس رَضِيَ اللهُ عَنهُ د جماعت سره تېر بېدم چې د سحر د مانځه وخت شو ما هلته مونځ وکړ کله چې امام سلام وګرځولو نو امام د هر سړي مخ ته د جامو یو جوړه، د پیزار یو جوړه او پنځه سوه درهم

---

١: اخرجه ابونعيم في الحلية ١/٢٩٦

٢: اخرجه ابن سعد ٤/١٠٩

کېښودل ما وویل چې زه د ې جماعت والاو نه نه یم لهذا ما ته یې مه راکوئ! بیا ما پوښتنه وکړه چې څه دي؟ دا خلکو ته ولې ورکوئ؟ خلکو وویل حضرت اشعث بن قیس رضي الله عنه د مکې مکرمې نه راغلی دی په دې خوشحالۍ کې یې هر مونځ گذار ته ورکوي.(۱)

## حضرت عائشه رضي الله عنها او د مال تقسیمول

حضرت ام ذره رحمه الله وايي چې حضرت عائشې رضي الله عنها ته یو لک درهم راغلل هغې په هغه وخت هغه ټول تقسیم کړل په دغه ورځ د هغې روژه وه ما هغې ته وویل چې تا د ومره خرچ کړلې نو آیا تاسو د خپل ځان لپاره دومره هم نه شو کولی چې د روژه ماتي لپاره دې د یو درهم غوښه راغوښتې وی؟ هغې وویل چې ما ته خو ادو یاد نه وو چې زما روژه ده که چېرې تا ما ته مخکې یاد کړي وای نو ما به غوښه راغوښتې وه.(۲)

## د ام المؤمنین سوده بنت زمعه رضي الله عنها مال تقسیمول

حضرت محمد بن سیرین رحمه الله وايي چې حضرت عمر رضي الله عنه حضرت سوده رضي الله عنها ته د درهمو د که تیلۍ اولېږله هغې پوښتنه وکړه چې دا څه دي؟ راوړونکو وویل دا درهم دي نو حیرانه شوه او په تعجب سره یې وفرمایل واه! د کجورو په شان تیلۍ کې درهم، یعنې په دومره لویه تیلۍ کې خو کجورې اچولي شي درهم خو لږ وي حضرت عمر رضي الله عنه د ېر زیات درهم را لېږلی دی او بیا یې هغه ټول درهم تقسیم کړل.(۳)

## د ام المؤمنین زینب بنت جحش رضي الله عنها مال تقسیمول

**دهغې رضي الله عنها او حضرت عمر رضي الله عنه قصه:**

خضرا بره بنت رافع رحمه الله وايي کله چې حضرت عمر رضي الله عنه په خلکو باندې عطیې تقسیم کړې نو حضرت زینب بنت جحش رضي الله عنها ته یې د هغې حصه اولېږله کله چې دغه مال هغې ته اورسېدو نو وې فرمائیل چې الله رب العزت دې د حضرت عمر رضي الله عنه مغفرت وکړي زما نورې خویندې دا مال زما نه په ښه طریقه باندې تقسیمولی شي له دې وجې نه هغوی ته یې یوسه! راوړونکو وویل چې دا ټول مال هم ستا دې هغې وفرمایل چې سبحان الله! او په یوه جامه باندې یې پرده وکړه او وې فرمایل ښه ده کېږده! او په دې

---

۱: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ۹/۴۱۵ وفيه ابواسرائيل الملائي وقد اختلف فيه وبقية رجاله رجال الصحيح انتهى.

۲: اخرجه ابن سعد كذا في الاصابة ۴/۳۵۰

۳: اخرجه ابن سعد بسند صحيح كذا في الاصابة ۴/۳۳۹

باندې جامه واچوه! بیا یې ما ته وفرمایل چې په دې جامه کې لاس واچوه! او یو موټي ترې ډک کړه او بنو فلان او بنو فلان ته یې ورکړه بیا راځه! دا ټول د دې رشته دار وو او یتیمان وو د غسې یې تقسمولې تر دې چې د جامې لاندې لږ غوندې درهم پاتې شول ما د هغې په خدمت کې عرض وکړ اې ام المؤمنین رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ! الله رب العزت دې ستاسو مغفرت وکړي په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! په دې مال کې خو زمونږه هم حق دی وې فرمایل بنه ده د جامې د لاندې چې څومره درهم دي هغه ټول ستا شو مونږ ته د جامې لاندې پنځوس درهم ملاو شول، دې نه پس یې اسمان طرفته لاسونه اوچت کړل حضرت زینب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا دا دعا او غوښتله اې الله تعالی دې کال نه پس ما ته دې د حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عطاء (ورکړه) ملاو نه شي نو د هغې دعا قبوله شوه او هغه وفات شوه.(۱)

حضرت محمد بن کعب رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي چې د حضرت زینب بنت جحش رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا د کال دولس زره وظیفه وه او هغه یې هم صرف یو کال واخیستله او د اخیستلو نه پس یې دا دعا وکړله چې اې الله رب العزت! ائینده کال نه مخکې ما اوچته کړې! بیا یې په خپلو رشته دارو او ضرورتمندو باندې ټول تقسیم کړو حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته پته ولګېده چې هغې ټول مال خرچ کړی دی نو هغوی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمایل چې دا د داسې لوړې مرتبې ښځه ده چې دې سره الله رب العزت د ښېګنې اراده فرمایلې ده نو حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ لاړو او د هغې په دروازه کې ودرېدو او دننه یې سلام اولېږلو او وې فرمایل چې ما ته پته لګېدلې ده چې تا ټول مال خرچ کړی دی دا زه یو زر نور درلېږم دا ته خپل ځان سره اوساته! یو دم یې مه خرچ کوه! خو کله چې دا یو زر هغې ته اورسېدل نو هغې دا هم د مخکې په شان تقسیم کړل.(۲)

## دهر نوي پیدا شوي ماشوم لپاره وظیفه مقررول

**د حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او یوې ښځې قصه:**

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي، یوه تجارتي قافله مدینې منورې ته راغله هغوی په عیدګاه کې قیام وکړ حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته وفرمایل چې آیا ته د دې خبرې لپاره تیار یې چې مونږ دواړه د دې قافلې د غلو نه د حفاظت لپاره څوکیدارې وکړو؟ هغه وویل چې صحیح ده. نو دې دواړو حضراتو ټوله شپه

---

۱: اخرجه ابن سعد ۳/۳۰۰

۲: عند ابن سعد ایضا کما في الاصابة ۴/۳۱۴

څوکیداري هم کوله او وار په واريې مونځ هم کولو حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د ماشوم د ژړا اواز واورېدلو نو هغه لاړو او د هغه مور ته يې وفرمايل چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه وېرېږه! او د خپل بچي خيال ساته! او بيا حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خپل ځای ته واپس راغی بيا يې د ماشوم د ژړا اواز واورېدلو نو حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دوباره لاړو د هغه مور ته يې هم هغه خبره وکړه او خپل ځای ته واپس راغی کله چې اخره شپه شوه نو بيا يې د هغه ماشوم اواز واورېدو نو لاړو او د هغه مور ته يې ووېل ته وېښه شه! زما خيال دی چې د بچي په حق کې بده مور يې! څه خبره ده چې ستا ځوی نن ټوله شپه ارام ونکړو؟ هغې ښځې ووېل چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ بنده! نن شپه خو اب بيا راتلو سره تا مونږ تنګ کړو زه په چل ول سره دی د پيو نه خلاصول غواړم خو هغه يې نه مني حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې ته ولې يې د پيو نه منع کوې؟ څکه چې حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ صرف هغه ماشوم لپاره وظيفه مقرر کوي چې پې پرېښې وي حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې د دې ماشوم عمر څومره دی؟ هغې ښځې ووېل چې د دوه مياشتو دی حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ووېل ته به شې! د پيو نه خلاصولو کې په ده باندې جلتي مه کوه! بيا د دغه ځای نه واپس راغی او د سحر مونځ يې ورکړو او په مانځه کې يې د ډېر اوژړل د ډېرې ژړا په وجه د هغوی په قران باندې خلک نه پوهېدل د سلام ګرځولو نه پس هغوی خلکو ته ووېل چې د عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ لپاره تباهي ده! هغه د خلکو څومره بچي مړه کړل چې عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دا اصول جوړ کړی دی چې د پيو پرېښودلو نه پس به ماشوم ته وظيفه ملاوېږي په دې وجه پته نه لګېږي چې د څومره ماشومانو پی به د وخت نه مخکې پرېښودلی شوی وي او ماشومانو ته به تکليف رسېدلی وي بيا يې خپل مُنادي (اواز کوونکي) ته حکم وکړ چې هغه دا اعلان وکړي چې خبردار! تاسو خپل بچي زر د پيو نه مه خلاصوئ! څکه چې مونږ د هر پی ښونکي مسلمان ماشوم هم وظيفه مقرر کوو او د ټولو علاقو ګورنر (والي) انو ته يې هم دا ليکل چې مونږ به د هر پی ښونکي مسلمان ماشوم وظيفه مقرر کوو.(۱)

---

۱: اخرجه ابن سعد ۱/۲۱۷ ابو عبيد وابن عساکر کذا فی الکنز ۲/۳۱۷

# د بيت المال خرچ کولو کې احتياط او گذاره

**د مسلمانانو په مال کې دحضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سيرت او عفت:**

حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې زه د الله جَلَّ جَلَالُهُ مال يعنې د مسلمانانو اجتماعي مال چې په بيت المال کې وي، خپل ځان د يتيم د مال پشان گڼم که زما ضرورت نه وي نو زه د دې د استعمال نه ځان ساتم او که چېرې ما ته ضرورت وي نو د ضرورت مطابق مناسب انداز کې د غو نه اخلم په بل روايت کې دا دی چې زه د الله جَلَّ جَلَالُهُ مال خپل ځان ته د يتيم مال په شان گڼم الله رب العزت د يتيم د مال په باره کې قرآن مجيد فرمايلي دي: وَمَنْ كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ ۖ وَمَنْ كَانَ فَقِيرًا فَلْيَأْكُلْ بِالْمَعْرُوفِ ۚ(۱)

ترجمه: او کوم سړی چې مالداره وي پس هغه خو دې بېخي ځان ساتي او څوک چې ضرورتمند وي نو هغه دې په مناسب اندازې سره او خوري.(۲)

حضرت عُروه رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې د دې اجتماعي مال نه زما لپاره صرف دومره اخيستل جائز دي څومره چې زه خپل ذاتي مال نه خرچ کوم دا نه چې بيت المال کې بې احتياطي او بې ځايه خرچي وکړم.(۳)

**د حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او بيت المال د مسؤل ترمينځ څه پېښ شول:**

حضرت عمران رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي کله چې به حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته ضرورت پېښ شو نو د بيت المال خزانچي ته به راغی او د هغه نه به يې د قرض غوښتلو تقاضا کوله او هغه پسې به کېدو اخر به حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د قرض اداء کولو چېرته نه څه صورت پيدا کولو بعضې وخت به داسې کېدل چې هغه ته به وظيفه ملا وېدله نو په هغې باندې به يې قرض اداء کړو.(٤)

**په دې باره کې دحضرت عمر او حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قصه:**

حضرت ابراهيم رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د خلافت په زمانه کې هم تجارت کولو نو هغوی يو ځل د يو تجارتي قافلې شام ملک ته د لېږلو اراده وکړه نو هغوی څلور زره قرض اخيستلو لپاره حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته سړی

---

۱سورة النساء آيت ٦

۲: اخرجه ابن سعد ۲/۱۹۸

۳: عندابن سعد ايضا کما في منتخب الکنز ۴/۴۱۸

٤: اخرجه ابن سعد ۳/۱۹۸

اولیږلو حضرت عبد الرحمن رضي الله عنه هغه سړی ته وویل چې لاړ شه! او امیر المؤمنین ته
او وایه! چې هغه دې او س د بیت المال نه څلور زره قرض واخلي بیا دې بیت المال ته واپس
کړي کله چې هغه سړی واپس راغی او حضرت عمر رضي الله عنه ته یې د هغه جواب وویلو نو
هغه ته په دې ډېر غم او تکلیف ورسېدو بیا چې کله د حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت
عبد الرحمن رضي الله عنه سره ملاقات وشو نو هغه ته یې وویل چې هم تا ویلي وو چې
عمر رضي الله عنه دې د بیت المال نه څلور زره قرض واخلي که چېرې زه د بیت المال نه قرض
واخلم او تجارتي قافلې سره یې اولېږم او بیا د تجارتي قافلې واپسۍ نه مخکې زه مړ شم
نو تاسو به وایئ چې امیر المؤمنین څلور زره اخیستي وو او س هغه وفات شوی دی له دې
وجې نه هغه ته دا څلور زره پرېږدئ! تاسو خلک خو به یې پرېږدئ! او زه به د قیامت په ورځ
د هغې په بدله کې اونیولی شم. نه! زه یې د بیت المال نه بلکل نه اخلم بلکې زه غواړم چې
ستا پشان لالچي او شوم سړی نه قرض واخلم ځکه کله چې زه وفات شم نو هغه به زما د مال
نه خپل قرض واخلي.(۱)

**د بیت المال نه دحضرت عمر رضي الله عنه د شاتو (گبینو) داخیستو قصه:**

د حضرت براء بن معرور رضي الله عنه یو ځوی وایي چې حضرت عمر رضي الله عنه یو ځل بیا مریض
شو د هغوی رضي الله عنه د علاج لپاره شات اوښودلي شول او هغه وخت په بیت المال کې یو د
شاتو ډبې موجود وو هغه خپل دغه شات وانه خیستل بلکې مسجد ته لاړو او په منبر
باندې کېناستلو او وې فرمایل چې ما ته د علاج لپاره د شاتو ضرورت دی او شات په بیت
المال کې موجود دي که چېرې تاسو اجازت راکړئ! نو زه به هغه واخلم کني هغه زما لپاره
حرام دي نو خلکو ورته په خوشحالۍ سره اجازت ورکړو.(۲)

**د حضرت عمر رضي الله عنه او د هغه د لور حضرت حفصه رضي الله عنها واقعه:**

حضرت حسن رحمه الله وایي چې حضرت عمر رضي الله عنه ته یو ځل د کوم ځای نه مال راغی نو
د هغوی لور ام المؤمنین حضرت حفصې رضي الله عنها ته د دې خبر اورسېدو هغه راغله او
حضرت عمر رضي الله عنه ته یې عرض وکړ اې امیر المؤمنین! الله رب العزت تا ته د خپلوانو

۱: اخرجه ابن سعد ایضا ۳/۱۹۹ واخرجه ایضا ابو عبید في الاموال وابن عساکر عن ابراهیم نحوه کما في المنتخب ۴/۴۱۸

۲: اخرجه ابن عساکر کذا في منتخب الکنز ۴/۴۱۸

سره د بنه رويه كولو حكم كرى دى د ې وجې نه په دې مال كې ستا د خپلوانو هم حق دى حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغې ته وفرمايل اې زما لورې! زما د خپلوانو حق زما په مال كې دى او دا خو د مسلمانانو مال غنيمت دى ته خپل پلار ته دوكه وركول غواړې؟ څه! تشريف يوسه! نو حضرت حفصه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او درېدله او د څادر پيڅكې يې را ښكلې او لاړه! (۱)

**د حضرت عمر او حضرت عبدالله بن ارقم رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا واقعه:**

حضرت اسلم رَحِمَهُ اللهُ وايي چې ما حضرت عبد الله بن ارقم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وليده چې هغه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راغى او عرض يې وكړ اې امير المؤمنين! مونږ سره د جلولا ښار د مال غنيمت څه كالي او څه د سپينو زرو لوښى دى تاسو يې اوګورئ! په كومه ورځ چې تاسو څه اوفرمايئ! مونږ سره به هم هغسې وكړو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې په كومه ورځ تاسو ما فارغ اووينئ! نو ما ته به يې ياد كړئ! نو يوه ورځ حضرت عبد الله بن ارقم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغى عرض يې وكړ چې نن تاسو فارغ په نظر راځئ! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل او زما مخكې د څرمنې دسترخوان خور كړئ! په هغې باندې دغه كالي او سپينو زرو لوښي كېږدو نو حضرت عبد الله بن ارقم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دسترخوان خور كړو او هغه ټول مال يې په هغې باندې واچولو بيا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه مال ته راغى ورسره ودرېدو او وې فرمايل اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! تاسو د دې په تذكره كې فرمايلي دي او دا آيت يې اخره پورې اولوستلو:

زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوٰتِ مِنَ النِّسَآءِ وَالْبَنِيْنَ وَالْقَنَاطِيْرِ الْمُقَنْطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ وَالْاَنْعَامِ وَالْحَرْثِ ۭ ذٰلِكَ مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَاللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الْمَاٰبِ ۝ (۲)

ترجمه: ښائيسته معلومېږي اكثر خلكو ته محبت د مرغوب شيانو مثلاً ښځې شوې، ځامن شو، ډېرې لګېدلې د سرو او سپينو زرو، نښه دار اسونه يا نور څاروي شو، يا فصلونه شول خو دا ټول د دنياوي د ژوند شيان دي دا اخر انجام د كارونو خو د الله جَلَّ جَلَالُهُ سره ده.

او اې الله جَلَّ جَلَالُهُ تا دا هم فرمايلي دي: لِّكَيْلَا تَاْسَوْا عَلٰى مَا فَاتَكُمْ وَلَا تَفْرَحُوْا بِمَآ اٰتٰىكُمْ ۭ (۳)

ترجمه، دې لپاره چې كوم شى درنه فوت شي تاسو په هغې باندې غمژن نه شئ! او كوم شى چې تاسو ته دركړى شوى دى په هغې تاسو مغروره نه شئ!

---

۱: اخرجه احمد فى الكنز كذا فى المنتخب الكنز ۴/۴۱۲

۲: سورة آل عمران آيت ۱۴

۳: سورة حديد آيت ۲۳

اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! د کومو مرغوب شیانو سره محبت چې زمونږ په زړونو کې ښه او ښائیسته کړې شوی دی په هغې خوشحالې پرېښودل زمونږ په وس کې نه دي اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! مونږ د دغه شیانو په ښه ځایونو کې د لګولو والا جوړ کړې او زه د هغې د شر نه په تا سره پناه غوارم په دې کې یو کس د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځوی عبد الرحمن بن بُهیه راخیستي وو راغی بُهیه د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وینزه وه چې ښایي هغه بچي به یې وویل پلاره! ما ته یوه ګوتمه راکړه! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل ځه! خپلې مور له لاړ شه! هغه به په تا باندې ستوان او خوري راوي وایې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل دې ځوی ته هیڅ ور نه کړل.(۱)

**د بحرین نه د را رسیدلو مشکو او عنبرو د تقسیم قصه:**

حضرت اسماعیل بن محمد بن سعد بن ابي وقاص رَحِمَهُ اللهُ وایي یو ځل حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د بحرین نه مشک او عنبر راغلل او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه غوارم چې ما ته څوک داسې زنانه ملاو شي چې هغه په تول ښه پوهېږي او هغه ما ته دا خوشبوئي اوتلي چې زه یې په مسلمانانو باندې تقسیم کړم د هغه بي بي حضرت عاتکه بنت زید بن عمرو بن نفیل رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وویل چې زه په تللو ښه پوهېږم راوړه چې زه یې اوتلم حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل ما ته وړه ده چې دا به ته په خپلو لاسونو کې تله کېږدې! دا شان به څه نا څه خوشبوئي ستا په لاسونو باندې اولګي او د څڼو ځائ او څټ ته یې اشاره وکړه او وې فرمایل چې او د غسې په خپلو څڼو او څټ باندې خپل لاس راکاږې! او دا شان به تا ته د مسلمانانو نه څه زیاته خوشبوئي ملاو شي.(۲)

**د ابن عمر او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قصه یوې جینۍ (نجلۍ) په باره کې:**

حضرت حسن رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یوه نجلۍ (جینۍ) ولیده چې د کمزورۍ په وجه کږه وږه روانه وه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې دا نجلۍ څوک ده؟ نو د هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځوی حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل دا ستاسو لور ده حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه دا زما کومه لور ده؟ حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل دا زما لور ده! هغوی پوښتنه وکړه! دا ولې دومره کمزورې ده؟ حضر عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل

---

۱: اخرجه ابن ابی شیبه و احمد وابن ابی الدنیا وابن ابي حاتم وابن عساکر کذافی منتخب الکنز ۴/۴۱۲

۲: اخرجه احمد في الزهد کذا في المنتخب الکنز ۴/۴۱۳

چې ستاسو د وجې نه! ځکه چې تاسو دې ته هيڅ نه ورکوئ! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل اې سريه! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه تا لره ستا د اولاد په باره کې په دوکه کې ساتل نه غوارم پخپله اوګټه ته په خپل اولاد باندې بنه خرچ وکړه! زه بيت المال نه نه درکوم.(۱)

**په دې باره کې د حضرت عاصم بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قصه:**

حضرت عاصم بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زما واده وکړنو يوې مياشتې پورې د الله رب العزت د مال نه يعنې د بيت المال نه به يې ما ته خرچ راکولو بيا د هغه پس حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دربانچي يرفا زما غوښتلو لپاره يې را اوليږو زه د هغوی په خدمت کې حاضر شوم وې فرمايل چې ما د خليفه جوړېدو نه مخکې هم دا ګڼله چې ما لپاره بيت المال نه د خپل حق نه زيات اخيستل جائز نه دي او اوس د خليفه جوړېدو نه وروسته دا مال نور زيات حرام شو ځکه چې اوس دا ما سره د امانت په طور دی او ما تا ته د الله رب العزت د يوې مياشتې خرچ ورکړی دی اوس تا ته د دې نه زيات نشم درکولی البته زه ستا کومک دا شان کولی شم چې په غابه نومي ځائ کې چې زما کوم باغ دی ته يې ميوه وشوکوه! او خرڅه يې کړه بيا د هغې پيسې واخله! او د خپل قوم يو سوداګر سره لاړ شه! او ودرېږه! او اوګوره کله چې هغه څه شی اخلي نو ته د هغه سره شراکت وکړه! په کې چې کومه ګټه اوشي د هغې نه خرچې واخله! او په خپل کوروالاوو باندې يې خرچ کوه!(۲)

**د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او دهغه د بي بي قصه:**

حضرت مالک بن اوس بن حدثان رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د روم د بادشاه قاصد راغی د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بي بي يو دينار قرض واخيستو او عطريې پرې واخيستل او په شيشو کې يې واچول او دغه عطريې د هغې قاصد په لاس باندې د روم د بادشاه بي بي ته په هديه کې اوليږل کله چې دا قاصد د بادشاه بي بي ته اورسېدو او هغه عطريې ورکړل نو هغې دغه شيشې ... خالي کړې او د جواهراتو نه يې ډکې کړې او قاصد ته يې وويل چې لاړه شه! دا د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بي بي ته ورکړه! او راشه! کله چې دا شيشې د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بي بي ته اورسېدلې نو هغې د شيشو نه دغه جواهرات اوويستل او په يوه درۍ باندې يې کېښودل په دې کې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کورته راغی پوښتنه يې وکړه چې دا څه دي؟ د هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بي بي ورته ټوله قصه بيان

---

۱: اخرجه ابن سعد وابن ابي شيبه وابن عساكر كذا في المنتخب ۴/۴۱۸

۲: اخرجه ابن سعد وابو عبيد في الاموال كذا في المنتخب ۴/۴۱۸

کړه حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنهُ هغه ټول جواهرات واخيستل او خرڅ يې کړل او د هغې د قيمت نه يې صرف يو دينار خپلې بي بي ته ورکړو او باقي ټول رقم يې د مسلمانانو لپاره په بيت المال کې جمع کړل.(۱)

## د حضرت ابن عمر رَضِیَ اللهُ عَنهُمَا د اوښ قيصه:

حضرت ابن عمر رَضِیَ اللهُ عَنهُ فرمايي: يو ځل ما څه اوښان واخيستل او هغه مې د بيت المال د څرن په ځائ کې پرېښودل کله چې هغه څاربه شول نو ما هغه خرڅولو لپاره بازار ته راوستل په دې کې حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنهُ هم بازار ته راغی او هغوی رَضِیَ اللهُ عَنهُ ته غټ غټ اوښان په نظر راغلل نو پوښتنه يې وکړه چې دا اوښان د چا دي؟ خلکو ورته چې دا د حضرت عبدالله بن عمر رَضِیَ اللهُ عَنهُ دي نو وې فرمايل چې اې عبدالله بن عمر! واه! واه! د اميرالمؤمنين د ځوی به څه وايي زه په منډه راغلم او ما عرض وکړ چې اې اميرالمؤمنين! څه خبره ده؟ نو وې فرمايل چې دا اوښان څنګه دی؟ ما عرض وکړ چې دا ما دا اوښان اخيستي وو او د بيت المال د څرن ځائ ته مې لېږلي وو اوس مې بازار ته راوستلی دي چې زه د نورو مسلمانانو پشان دا خرڅ کړم او ګټه وکړم حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنهُ وفرمايل بنه د بيت المال د څرن په ځائ کې خلکو به يو بل ته ويل چې د اميرالمؤمنين ځوی اوښان څروي او د اميرالمؤمنين د ځوی اوښانو ته به اوبه ورکوئ! د زما د ځوی کېدو په وجه به يې ستا د اوښانو زيات خيال ساتلي واي ځکه اې عبدالله بن عمر! دا اوښان خرڅ کړه! او تا چې څومره قيمت اخيستي وو هغه خو ته واخله! او باقي زياتي قيمت مسلمانانو په بيت المال کې جمع کړه! (۲)

## حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنهُ د بيت المال په باره کې خپل زوم سره څه وکړل؟

حضرت محمد بن سيرين رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنهُ د سخرګنی نه يو صاحب راغی او هغه په کنايه او اشارې سره دا خبره وکړه! چې حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنهُ د بيت المال نه هغه ته څه ورکړي نو حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنهُ هغه اورټلو او وې فرمايل چې ته غواړې چې زه د الله رب العزت په مخکې خيانت کونکي بادشاه وربېش کړی شم او دې نه پس يې هغه ته د خپل مال نه لس زره درهم ورکړل.(۳)

---

۱: اخرجه الدينوري في المجالسه كذا في المنتخب الكنز ۴/۴۲۲

۲: اخرجه سعيد بن منصور وابن ابي شيبه والبيهقي كذا في المنتخب ۴/۴۱۹

۳: اخرجه ابن سعد ۳/۲۱۹ كذا في الكنز العمال ۲/۳۱۷

**د امیرالمؤمنین حضرت علي قصه:**

حضرت عُنتره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې زه د كوفې په محله خورنق كې د حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت كې حاضر شوم هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو زوړ څادر اغوستې وو او د يخنۍ د وجې نه رېږدلو ما عرض وكړ اې اميرالمؤمنين! الله رب العزت د بيت المال په دې مال كې ستا او ستا د بال بچ حصه هم اېښې ده بيا هم تاسو سره د يخنۍ نه د بچ كېدو لپاره څه انتظام نشته دی او تاسو د يخنۍ نه رېږئ! نو هغوی وفرمايل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه ستاسو د مال نه هيڅ اخيستل نه غواړم او دا زوړ څادر هم هغه دي چې ما د خپل كور مدينې منورې نه راوړي و.(۱)

# رسول الله ﷺ هغه مال نه قبول چې ورته وړاندې شوي و

**د حضرت جبرئيل عَلَيْهِ السَّلَام او يوبلې ملائكې قصه:**

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: يو ځل الله رب العزت يوه ملائيكه خپل رسول الله ﷺ ته را اولېږله هغه ملائيكې سره حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام هم وو هغه ملائيكې رسول الله ﷺ ته عرض وكړ چې الله رب العزت په دوو خبرو كې تاسو ته اختيار دركوي چې تاسو د بنده گۍ والا نبوت اختياروئ! يا د بادشاهت والا. رسول الله ﷺ حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام طرفته دا شان متوجه شو چې گويا دې د هغه نه مشوره اخلي نو هغوی د عاجزۍ اختيارولو مشوره وركړه په دې باندې رسول الله ﷺ وفرمايل چې زه خو د بنده گۍ والا نبوت خوښوم حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي د دې نه پس رسول الله ﷺ وفاته پورې كله چې هم تكيه لگولو سره طعام او نه خوړلو.(۲)

**د رسول الله ﷺ او حضرت جبرئيل عليه السلام قصه:**

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: يوه ورځ رسول الله ﷺ او حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام د صفا په غره باندې وو رسول الله ﷺ وفرمايل چې اې جبرائيله! په هغه ذات مې دې قسم وي چا چې تا ته حق دركړی دی او رالېږلی يې يې! چې مابنام ته د محمد ﷺ بال بچ سره نه يوه لاس اوړه وو او نه يو موټي ستوان، د رسول الله ﷺ خبره لا ختمه نه وه چې هغوی د

---

۱: اخرجه ابوعبيد كذا في البداية ۳/۸ اخرجه ايضا ابونعيم في الحلية ۱/۸۲ عن هارون بن عُنترة عن ابيه نحوه.

۲: اخرجه يعقوب بن سفيان وهكذا رواه البخاري في التاريخ والنسائي كذا في البداية ۶/۴۸

اسمان د دهمکي داسې زوردار اواز واورېدو چې په هغې سره اوو بېرېدو د حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ نه يې پوښتنه وکړه چې آيا الله رب العزت د قيامت قائمولو حکم کړی دی؟ حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ عرض وکړ چې نه! بلکې الله رب العزت ستاسو خبرې اورېدو سره اسرافيل عَلَيْهِ السَّلَامُ ته حکم وکړ او هغه راکوز شو او تاسو ته راغی نو حضرت اسرافيل عَلَيْهِ السَّلَامُ د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړ چې تاسو کومه خبره حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ ته وکړه هغه الله رب العزت واورېدله او الله رب العزت ما ته د زمکې د خزانو چابياني راکړې او تاسو ته يې رالېږلی يم او ما ته يې حکم کړی دی چې زه دا ستاسو په خدمت کې پيش کوم که چېرې تاسو وايې نو زه به دا تمامې غرونو زمرد، ياقوت، سره زر او سپين زر جوړ کړم او دا غرونه به تاسو سره روان وي او س تاسو اوفرمايئ چې: تاسو د بادشاهۍ نبوت غواړئ! يا د بنده ګۍ والا؟ حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ هغوی ته د عاجزۍ د اختيارولو اشاره وکړه نو هغوی درې ځله وفرمايل چې زه د بنده ګۍ والا نبوت غواړم.(۱)

حضرت ابو امامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله ﷺ وفرمايل چې زما رب ما ته دا خبره وړاندې کړه چې زما رب د مکې کانيژن ميدان د سرو زرو جوړ کړی شي ما عرض وکړ چې نه! اې زما ربه! زه خو دا غواړم چې يوه ورځ په مړه خېټه طعام او خورم او يوه ورځ اوږې اوسېږم هغوی دوه درې ځله دا کلمات ارشاد وفرمايل لپاره د دې کله چې اوږی يم چې تا ته عاجزي وکړم او کله چې په مړه خېټه وخورم نو ستا شکر اداء کړم او ستا تعريف وکړم.(۲)

حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله ﷺ وفرمايل چې ما ته يوه ملائيکه راغله او وې ويل اې محمده! ستاسو رب په تاسو باندې سلام وايي او فرمايي: که چېرې تاسو غواړئ! نو زه به د مکې کانيژن ميدان ستا لپاره د سرو زرو جوړ کړم حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله ﷺ اسمان طرف ته مخ اوچت کړو او عرض يې وکړ چې نه! اې زما ربه! زه دا نه غواړم زه خو دا غواړم چې يوه ورځ په مړه خېټه طعام او خورم لپاره د دې چې ستاسو تعريف وکړم او يوه ورځ

---

۱: عند الطبراني باسناد حسن والبيهقي كذا في الترغيب ۵/۱۵۷ وقال الهيثمي ۱۰/۲۱۵ رواه الطبراني في الاوسط وفيه سعد ابن بن الوليد ولم اعرفهم وبقيه رجال الصحيح انتهى

۲: عند الترمذي وحسنه كذا في الترغيب ۵/۱۵۰

اوږي او سېږم دي لپاره چې تاسو نه وغوارم.(۱)

## د يو مشرک مقتول د ديت قصه

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: په غزوه احزاب يعني په جنګ خندق کې يو مشرک او وژلی شو نو مشرکانو رسول الله ﷺ ته دا پيغام ولېږلو چې د ده جسد مونږ ته راکړي مونږ به تاسو ته د دې په بدله کې دولس زره درهم درکړو رسول الله ﷺ وفرمايل چې نه د دې په لاش کې خير دی او نه د ده په قيمت کې لهذا د ده جسد د څه اخيستلو نه بغير ورکړئ! امام احمد رَحِمَهُ اللهُ په دې روايت کې دا الفاظ نقل کړی دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل چې د ده جسد مشرکانو ته هم داسې ورکړئ! ځکه چې د ده لاش هم پليت دی او د ده قيمت هم پليت دی نو هغوی ﷺ ترې هيڅ وانه خيستل او لاش يې ورته ورکړو.(۲)

حضرت عکرمه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د غزوه خندق په ورځ باندې نوفل يا ابن نوفل په خپل اس باندې سور وو هغه اس را اوغورځېدو چې هغې سره نوفل مړ شو د کافرانو سردار ابوسفيان د رسول الله ﷺ په خدمت کې د هغه د لاش په بدله کې سل اوښان اولېږل رسول الله ﷺ انکار وکړ او وې فرمايل چې د دې لاش يوسئ! د دې د لاش بدله هم ناپاکه ده او هغه پخپله هم ناپاک دی.(۳)

### د ذي يزن جامو قصه:

حضرت عُروه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت حکيم بن حزام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يمن ته لاړو او هغوی هلته د حمير د نواب د ذويزن جوړه واخيستله او هغه يې د رسول الله ﷺ په خدمت کې مدينې ته راوړه او د هديې په توګه يې پېش کړه رسول الله ﷺ د اخيستلو نه انکار وکړ او وې فرمايل چې مونږ د مشرک هديه نه قبلوو د دغه وخته پورې حضرت حکيم مسلمان شوي نه وو نو حضرت حکيم هغه خرڅوله نو رسول الله ﷺ د هغې د اخيستلو حکم وفرمايلو نو هغه جوړه د هغوی ﷺ لپاره واخيستلې شوه چوغه هغه واغوسته او مسجد نبوي ﷺ ته يې تشريف راوړو حضرت حکيم فرمايل چې په دغه جوړه کې رسول الله ﷺ ډېر ښائسته ښکارېدو او ما په دغه جوړه کې د

---

۱: عند العسكري كذا في الكنز ۴/۳۹
۲: اخرجه البيهقي واخرجه الترمذي ايضا وقال غريب كذا في البداية ۴/۱۰۷
۳: عند ابن ابي شيبه كذا في الكنز ۵/۲۸۱

رسول الله ﷺ نه زیات ښائیسته سړی کله هم نه دی لیدلی هغوی ﷺ داسې ښکارېدو لکه ځوارلسمې سپوږمۍ، لیدلو سره مې بې اختیاره دا شعرونه زما په ژبه راغلل،

ما تنظر الحكام بالحكم بعد ما
بدا واضح ذو غرة حجول

کله چې یو روښانه او ځلېدونکې داسې هستي (یعنې رسول الله ﷺ) ښکاره شوې ده چې د هغه مخ، لاسونه او پښې مبارکې ځلیږي نو اوس د هغه نه روستو حاکمان به د حکم ورکولو په ابره کې سوچ وکړي څه به کوي؟ یعنې اوس خو به د رسول الله ﷺ منلې کیږي د دې حاکمانو به نه منلی کیږي،

اذا قايسوه الجد ارى عليهم
كمستطرح ماء الذناب سجيل

کله چې دا حاکمان په بزرگۍ او شرافت کې د هغه مقابله کوي نو هغه به دوي نه مخکې شي ځکه چې په هغه باندې بزرگۍ او شرافت دومره ډېر اچولې شوی دی لکه په چا باندې چې د اوبو نه ډک لوې لوې بوقې اچولې شوې وي. دا یې شعر واورېدل رسول الله ﷺ مسکی شو.(۱)

حضرت حکیم بن حزام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي، د جاهلیت په زمانه کې هم زما د رسول الله ﷺ سره د ټولو نه زیات محبت وو بیا یې کله چې د نبوت دعواې وکړه او مدینې منورې ته تشریف یوړو نو زه د حج په موسم کې یمن ته لاړم هلته ما ته د حمیر نواب ذي یزن یوه جوړه په پنځوس درهمه خرڅېدونکې په نظر راغله ما هغه د رسول الله ﷺ ته په هدیه کولو په نیت اخیستله او ما هغه جوړه واخیستله او مدینې منورې ته د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم او ما ډېر کوشش وکړ چې هغوی ﷺ دا واخلې! لیکن هغوی انکار وکړ او وې فرمایل چې مونږ د مشرکانو نه څه نه اخلو او ته مشرک یې! خو که چېرې ته غواړې نو مونږ به یې په قیمت تاسو نه واخلو نو ما قیمت واخیستلو او هغه جوړه مې رسول الله ﷺ ته ورکړه بیا مې یوه ورځ اولیدو چې په منبر باندې ناست دی او دغه جوړه یې اغوستې ده هغه دومره ښائیسته په نظر راتلو چې ما کله هم څوک دومره ښائیسته نه دی لیدلی بیا

---

۱: اخرجه ابن جرير كذا في الكنز ٣/١١٧ واخرجه الطبراني عن حكيم بن حزام بنحوه في المجمع ٨/٢٧٨ وقال وفيه يعقوب بن محمد الزهري وضعفه الجمهور وقد وثق انتهى.

هغوی ﷺ دغه جوړه اسامه بن زید ته ورکړه ما کله چې اسامه ولیده او دغه جوړه یې اغوستلې وه نو ما وویل چې اې اسامه! تا د ذي یزن (بواب) جوړه اغوستې ده هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل هو ! زه د ذي یزن نه غوره یم او زما پلار د هغه د پلار نه او زما مور د هغه د مور نه غوره ده بیا زه مکې مکرمې ته راغلم او هغوی ته مې د اسامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خبره واوروله چې په هغې سره تول زیات حیران شول چې پخپله د غلام ځوی دي بیا هم خپل ځان او مور او پلار د اسلام په وجه د نورو نه زیات او قیمتي گڼي.(۱)

**یو اوښ او آس هدیه ورکول:**

حضرت عبد الله بن بُریده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې زما تره عامر بن طفیل عامري ما ته دا قصه واوروله چې عامر بن مالک د رسول الله ﷺ په خدمت کې یو اس په هدیه کې اولیږلو او دا یې ولیکل چې زما په خېټه کې یو ه تنکۍ ده خپل طرفنه د هغې دوایي راولېږئ! عامر بن طفیل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې رسول الله ﷺ اس واپس کړو ځکه چې عامر بن مالک مسلمان نه وو او هغه ته یې په هدیه کې د شاتو یو دبې ولېږه او وې فرمایل چې دې سره خپل علاج وکړه!(۲)

حضرت کعب بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي، ملاعب الاسنه د وینزو لوبغاړي دا د عامر بن مالک لقب دي د رسول الله ﷺ په خدمت کې څه هدیې راوړې رسول الله ﷺ هغه ته اسلام پیش کړو لیکن هغه د اسلام قبلولو نه انکار وکړو نو رسول الله ﷺ وفرمایل :زه د مشرک هدیه نشم قبلولي.(۳)

حضرت عیاض بن حمار مجاشعي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي، ما اوښه یا بل څه څاروی د نبي ﷺ په خدمت کې کې د هدیې په طور پیش کړو رسول الله ﷺ وفرمایل آیا ته مسلمان شوي یې؟ هغه وویل نه! رسول الله ﷺ وفرمایل چې زه الله رب العزت د مشرکانو د هدیې اخیستو نه منع کړی یم.(۴)

---

۱: عند الحاكم ۳/۲۸۴ قال الحاكم و هذا حديث صحيح الاسناد ولم يخرجاه وقال الذهبي صحيح.

۲: اخرجه ابن عساكر

۳: عند ابن عساكر ايضا كذا في الكنز العمال ۳/۱۷۷

٤: اخرجه ابوداود الترمذي وصححه ابن جرير والبيهقي كذا في الكنز ۳/۱۷۷

# ابوبکر صدیق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او دبیت المال مال واپس کول

حضرت حسن رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې يو ځل حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خلکو ته بيان وکړ او د الله رب العزت حمد وثناء نه پس يې وفرمايل چې د ټولو نه لويه عقلمندي تقوي غوره کول دي بيا يې مخکې نور حديث بيان کړو چې په هغې کې دا مضمون هم دی چې اينده ورځ سحر حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بازار ته روان شو حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ترې پوښتنه وکړه چې تاسو چېرته ځئ؟ هغوی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې بازار ته! حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ووېل چې اوس په تاسو باندې دومره لويه زمه واري د خلافت په وجه راغلې ده چې له هغې وجې اوس ته بازار ته نه شې تلای! ټول وخت به د خلافت په ذمه واری کې لګوې نو بيا به دا ذمه واري پوره کيږي حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل سبحان الله! دومره مشغولېدل به وي چې د بال بچ د ګټلو وخت به پاتې نه شي نو بيا به په هغوی باندې د کوم ځای نه خورم حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې مونږ ستا لپاره او ستا بال بچ لپاره د بيت المال نه مناسب مقدار کې وظيفه مقرر کوو. حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې عمر دې هلاک شي ما ته وېره ده چې چېرته زما لپاره د بيت المال نه د اخيستلو څه ګنجائش نه وي نو په مشوره سره د هغه لپاره وظيفه مقرره شوه او هغه د دوو کالو مودې نه زيات وخت د خلافت کې اته زره درهم واخيستل کله چې د هغوی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د وفات وخت راغی نو وې فرمايل چې ما حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته ويلي وو زه وېرېږم چې زما لپاره د دې مال نه د اخيستلو ګنجائش بالکل نشته دی خو عمر هغه وخت په ما باندې غالب شو او ما د هغه خبره ومنله او د بيت المال نه مې مال اخيستلو څرنګه کله چې زه وفات شم نو زما د مال نه اته زره واخلئ! او بيت االمال ته يې واپس کړئ! نو کله چې هغه اته زره د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د وفات نه پس حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته راوړلې شوې نو هغه وفرمايل چې الله رب العزت دې په حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ رحم وکړي هغه خپل ځان نه روستو راتلونکو لره په مشکلاتو کې واچول چې سری به ټول خپل ځان او ټول مال په دين باندې لګوي او دنيا نه به څه نه اخلي.(۱)

**د حضرت ابوبکرصديق او ام المؤمنين عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا ترمينځ څه پېښې شول!**

حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بن حفص بن عمر رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا د

۱: اخرجه البيهقي ۶/۳۵۳

حضرت ابوبکر رضي الله عنه په خدمت کې حاضره شوه دغه وخت هغوی ته د ځنکدن تکلیف وو او ساه یې په سینه کې وه دا حالت یې چې اولیدو نو حضرت عائشې رضي الله عنها دا شعر ووایه:

لعمرك مـــا يغنى الثراء عن الفتى

اذا حشرجت يوم وضاق بها الصدر

ستا د روح قسم! چې د مال او د قوم زیاتوالي ځوان ته په هغه ورځ څه فائده نشي ورکولي په کومه ورځ چې ساه له بدن څخه وځي او سینه تنګه شي، حضرت ابوبکر رضي الله عنه حضرت عائشې رضي الله عنها طرفته په غصه وکتل او وې فرمایل اې ام المؤمنین! دا خبره نه ده دا خو هغه حالت دي چې د هغې ذکر الله پاک په قرآن کریم کې کړی دی، وَجَآءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ ۖ ذٰلِكَ مَا كُنتَ مِنْهُ تَحِيدُ⁽¹⁾

ترجمه: او د مرګ سختي نزدې را اورسېدله دا مرګ هغه شی دي چې د هغې نه ته وېرېدلې ما تا ته یو باغ درکړی وو خو زما زړه په هغې سره مطمئن نه دی له له دې وجې نه ته دا زما په میراث کې واپس کړه! ما اویل دېره ښه ده او بیا مې هغه باغ واپس کړو بیا حضرت ابوبکر رضي الله عنه وویل مونږ کله چې نه د مسلمانانو خلیفه جوړ شوي یو مونږ د مسلمانانو نه څه دینار خوړلی دی او نه څه درهم! البته د دوئ لږ دېر خوراک مو ضرور خوړلی دی او هم دارنګ د دوي غټې او زړې جامې مو ضرور اغوستې دي او په دې وخت مونږ سره د مسلمانانو د مال غنیمت نه نور څه نشته دی البته دا درې شیان دي یو حبشي غلام، دویم اوبو والا اوښ او دریم زوړ د وړی څادر. کله چې زه مړ شم نو دا درې واړه شیان حضرت عمر رضي الله عنه ته ولېږئ! او د دې ذمه واری نه ما خلاص کړئ! نو حضرت عائشې رضي الله عنها هم داسې وکړل کله چې قاصد هغه شیان واخیستل حضرت عمر رضي الله عنه ته راغی نو هغه په ژړا شو او دومره یې وژړل چې اوښکې یې په زمکه باندې پرېوتلې او هغه فرمایل چې الله رب العزت دې په ابوبکر رضي الله عنه باندې رحم وکړي هغه خپل ځان نه روستو خلک په مشکلاتو کې اچولي دي الله رب العزت دې په ابوبکر رضي الله عنه صدیق رضي الله عنه باندې رحم وکړي هغه خپل ځان نه روستو خلک په

---

(1): سورة حدید آیت ۱۹

مشکلاتو کې اچولې دي د دنیا د څه نه اخیستلو دومره اوچت معیار یې قائم کړی دی چې روستو راتلونکو لپاره دا غوره کول ډېر مشکل دي اې غلام! دا شیان کېږده! په دې خبره باندې حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سبحان الله! وویل تاسو د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بال بچ نه حبشي غلام اوبوو الا اوبښ، او زوړ د وړی څادر چې د هغې قیمت پنځه درهمه دې اخلې؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې ته څه غواړې؟ ولې ستا څه خیال دی؟ حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې تاسو دا شیان د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بال بچ ته واپس ورکړئ! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل نه! په هغه ذات مې دې قسم وي! چا چې محمد ﷺ ته حق ورکړی دی او رالېږلی یې دی دا به زما د خلافت په زمانه کې نه کېږي حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خو د مرګ په وخت کې د دې شیانو نه ځان خلاص کړو او زه دا شیان د هغه بال بچ ته واپس کړم او مرګ د دې نه هم زیات نږدې دی یعنې که زه دا واپس کړم نو دوي خو به خوشحاله شي خو الله رب العزت به زما نه ناراضه شي له دې وجې نه زه دا کار نه شم کولی زه به هم د دنیا نه ځم نو هلته چې لاړ شم حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره به زه څنګه مخامخ کېږم.(۱)

## بیت المال ته د عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مال واپس کول

**رسول الله ﷺ او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قصه:**

حضرت عطاء بن یسار رَحِمَهُ اللهُ وايي چې رسول الله ﷺ حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یوه هدیه ولېږله هغه هغه بېرته ورکړه رسول الله ﷺ ترې پوښتنه وکړه چې دا دې ولې واپس کړه؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړ چې هم تاسو مونږ ته ښودلي دي چې زمونږ لپاره غوره دا ده چې مونږ د چا نه هیڅ وانه خلو. رسول الله ﷺ وفرمایل چې زما مطلب دا وو چې غوښتلو سره وانه خیستل شي او کوم شی چې پرته له غوښتلو ملاویږي هغه د الله رب العزت د طرفه ورکړی شوی رزق دی هغه اخیستل په کار دی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل په هغه ذات قسم! د چا په قبضه کې چې زما ساه ده نن نه پس به زه د چا نه څه نه غواړم او چې بغیر غوښتلو نه راځي هغه به خامخا اخلم.(۲)

---

۱: اخرجه ابن سعد ۳/۱۹٦

۲: اخرجه مالک هکذا رواه مالک مرسلا ورواه البیهقی عن زید بن اسلم عن ابیه قال سمعت عمر بن الخطاب یقول فذکره بنحوه کذا فی الترغیب ۴/۱۱۸

**د حضرت عمر او حضرت ابوموسی اشعري رضي الله عنهما قصه:**

حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمايي: حضرت ابو موسى اشعري رضي الله عنه د حضرت عمر رضي الله عنه بي بي حضرت عاتكه بنت زيد بن عمرو بن نفيل رضي الله عنها ته يوه درۍ په هديه كې ولېږله زما خيال دا دى چې هغه يو لاس اوږده او يوه لوېشت پلنه وه حضرت عمر رضي الله عنه هغې له راغى او هغه درۍ يې وليده نو پوښتنه يې وكړه چې دا تا ته د كوم ځاى نه ملاو شوې ده هغې ووېل چې دا ماته حضرت ابو موسى اشعري رضي الله عنه هديه كړې ده حضرت عمر رضي الله عنه هغه اوچته كړه او دومره په زوره يې پرې د هغې سر وواهه چې د هغې د سر وېښته ښكاره شو او بيا يې وفرمايل چې ابو موسى سمدستي زر ماله راوله! يعنې دومره تېزيې په منډه راوله چې هغه سرى شي نو هغه ډېر په تېزۍ سره راغى او حضرت عمر رضي الله عنه ته حاضر شو او راتلو سره ووېل اې امير المؤمنين! تاسو زما په باره كې جلتي مه كوئ؟ حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل چې ته زما ښځو ته هديه ولې وركوې؟ بيا يې هغه درۍ اوچته كړه او هغه يې پرې په سر وواهه او وې فرمايل دا يوسه! دې ته زمونږ ضرورت نشته.(۱)

**د مقطم غره لمن كې ځمكه خرڅول:**

حضرت ليث بن سعد رحمه الله وايي د اسكندريه بادشاه مقوقس حضرت عمرو بن عاص رضي الله عنه ته ووېل چې ته مقطم غر لمن په ما باندې په اويا زره ديناره باندې خرڅ كړه دومره ډېر زيات قيمت يې چې واورېدو نو حضرت عمرو ډېر حيران شو او مقوقس ته يې ووېل چې زه به په دې باره كې امير المؤمنين رضي الله عنه ته خط وليكم او پوښتنه به ترې وكړم نو حضرت عمر رضي الله عنه ته يې په دې باره كې خط وليكه حضرت عمر رضي الله عنه په جواب كې دا وليكل چې ته د هغه نه پوښتنه وكړه چې هغه قيمت ولې وركوې؟ په داسې حال كې چې هغه زمكه نه د ده وركړه او نه د هغې نه اوبه راوېستل كېږي او نه د بل څه لپاره په كار راتلى شي؟ حضرت عمرو د مقوقس نه پوښتنه وكړه نو هغه ووېل چې مونږ ته خپلو اسماني كتابونو كې د دې ځاى دا فضيلت ملاو شوى دى چې په دې كې د جنت ونې دي حضرت عمرو رضي الله عنه دا خبره حضرت عمر رضي الله عنه ته وليكله هغه ورته په جواب كې

---

۱: اخرجه ابن سعد وابن عساكر كذا في منتخب الكنز ۴/۳۸۳

ولیکل چې مونږ خو صرف په دې پوهېږو چې د جنت ونې به صرف مؤمنانو ته ملاوېږي همدارنګه ته په دې زمکه کې خپل مسلمانان دفن کوه! او د دې نه مقبره جوړه کړه! او په هیڅ قیمت دا مه خرڅوه!(۱)

# بیت المال ته د ابوعبیده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنهُ مال واپس کول

**په عام الرماد کې دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ سره دهغه قصه:**

حضرت اسلم رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د رماده والا کال یعنې ۱۸ هجري کې په حجاز کې دېر قحط راغلی وو چې نهو میاشتو پورې وو دې کال ته عام الرماده یعنې ایرې والا قحط کال ویل کېږي، د باران نه کېدو په وجه خاوره د ایرې په شان شوې وه رنګ یې هم داسې شوې وو او د ایرې په شان الوتلې د عربو ټوله علاقه قحط ګیره کړې وه هغه وخت حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنهُ حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته خط ولیکه مخکې یې نور حدیث هم شته چې په هغې کې دا مضمون هم دی چې بیا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ حضرت ابوعبیده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنهُ را وغوښته او قحط ځپلو خلکو باندې غله او د نورو شیانو د وېشلو لپاره یې ولېږه کله چې هغه د خپل کار نه او زګار شو او واپس راغی نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ورته زر دیناره ولېږل حضرت ابوعبیده رَضِيَ اللهُ عَنهُ وویل چې اې ابن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنهُ! ما ستاسو لپاره دا کار نه و کړی بلکې صرف د الله رب العزت لپاره مې کړی وو او زه په دغه کار څه نه اخلم حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل رسول الله ﷺ به مونږ دېرو کارونو لپاره لېږو او واپس باندې به یې مونږ ته څه راکول نو زمونږ رونو به اخیستل بلکل نه غوښتل رسول الله ﷺ به مونږ ته فرمایل چې انکار مه کوئ! اې سړیه! دا وخله! او په خپل دیني یا دنیوي کارونو کې خرچ کړه! دا یې چې واورېدل نو حضرت ابوعبیده رَضِيَ اللهُ عَنهُ هغه زر درهم واخیستل.(۲)

# سعید بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنهُ او بیت المال ته مال واپس ورکول

**کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ زر دینار ورکړل:**

حضرت عبدالله بن زیاد رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنهُ حضرت سعید بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته یو زر دیناره ورکول او غوښتل نو حضرت سعید بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وویل چې

---

۱: اخرجه ابن عبدالحکیم کذافی کنز العمال ۳/۱۵۲

۲: اخرجه البیهقی ۶/۳۵۴ واخرجه ایضا ابن خزیمه والحاکم نحوه عن اسلم کذا فی منتخب الکنز ۴/۳۶۶

ما ته د دې ضرورت نشته ځو ک چې زما نه زیات حاجتمند وي هغه ته یې ورکړه! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې لږ صبر خو وکړه! په انکار کې جلتي مه کوه! زه تا ته دې باره کې د رسول الله ﷺ ارشاد مبارک اوروم مخکې دا واوره! بیا که دې زړه او غوښتل نو واخله کنې مه اخله! رسول الله ﷺ یو ځل ما ته څه شی راکړو نو ما انکار کې هم دا خبره وکړه چې ته څه کوې نو رسول الله ﷺ وفرمایل چې چا ته شی بغیر د سوال او د لالچ نه حاصل شي نو دا د الله رب العزت ورکړه ده هغه له پکار دی چې هغه دا واخلي او واپس یې نه کړي حضرت سعید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ووېل چې آیا تا دا خبره په خپله د رسول الله ﷺ نه اورېدلې ده؟ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل هو! نو بیا حضرت سعید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه دینار واخیستل.(۱)

حضرت زید بن اسلم رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت سعید بن عامر حذیم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه چې څۀ خبره ده؟ چې د شام والا تا سره ډېر محبت کوي؟ حضرت سعید په شام کې ګورنر (والي) پاتې شوی وو حضرت سعید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ووېل چې زه د هغوی د حقوقو خیال ساتم او هغوی سره غمخواري کوم دا یې چې واورېدل نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه ته لس زره دینار ورکړل خو هغوی هغه واپس کړل. او دا یې ووېل چې زما سره ډېر غلامان او اسونه دي او زما حالت ښه دی او زه غوارم چې د ګورنر (والي) کوم کار کوم دا ټول په مسلمانانو باندې صدقه وي یعنې د دې کار کولو نه پس د مسلمانانو د بیت المال نه څه وانه خلم. حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل ته داسې مه کوه! ځکه چې رسول الله ﷺ ته یو ځل د لسو زرو نه کم مال راکړی وو نو ما هم رسول الله ﷺ ته داسې خبره وکړه څنګه چې اوس ته ما ته کوې نو رسول الله ﷺ ما ته وفرمایل چې الله رب العزت کله تا ته بغیر د سوال کولو طلب نه درکوي نو هغه اخله! ځکه چې دا د الله جَلَّ جَلَالُهُ د طرف نه ورکړه ده چې هغه تاسو ته درکوي.(۲)

حضرت اسلم رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې یو صاحب د شام والاو ډېر خوښ وو نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې شام والا ستا سره ولې محبت کوي؟ هغه ووېل زه هغوی ځان سره کړم او غزا کوم او هغوی سره غم خواري کوم په دې باندې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه

---

۱: اخرجه الشاشي وابن عساکر کذا فی الکنز ۳/۲۲۵

۲: عند الحاکم ۳/۲۸۶

ته لس زره درهم ورکړل او وې فرمايل چې دا واخله! او دا پخپله غزا کې په تقسیم کړه! هغه وويل ما ته د دې ضرورت نشته او مخکې د تېر شوی حدیث پشان مضون یې ذکر کړو.(۱)

## بيت المال ته د عبدالله بن سعدي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مال واپس کول

حضرت عبدالله بن سعدي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: زه د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په زمانه خلافت کې د هغه په خدمت کې حاضر شوم ما ته حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې ما ته خلکو وويل چې په تا باندې د مسلمانانو ډېر د اجتماعي کارونو ذمه دارياني اچولي شوی دی ته هغه کارونه کوې خو روستو کله چې تا ته په دې کارونو څه درکولی شي نو ته يې بد ګڼې او نه يې اخلې نو وې ويل آيا دا صحيح ده ما وويل او دا صحيح ده حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې د نه اخيستلو ستا څه عرض دی؟ ما وويل چې ما سره ډېر اسونه او غلامان دي او زما د ژوند حالات ښه دي له دې وجې نه زه غواړم چې زما د خدمت بدله په مسلمانانو باندې صدقه وي او زه د هغوی نه هيڅ مال وانه خلم حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل داسې مه کوه! ځکه چې په شروع کې زما هم دا نيت وو چې تا کړی دی او رسول الله ﷺ به ما ته څه راکول نو ما به ورته ويل چې زما نه زيات ضرورتمند ته يې ورکړئ! نو يو ځل رسول الله ﷺ ما ته څه راکول وغوښتل ما د خپل معمول مطابق ورته وويل چې زما نه زيات حاجتمند ته يې ورکړئ! نو هغوی ﷺ وفرمايل اې هلکه! دا واخله! بيا دې خوښه ده که ځان سره يې وساته! يا صدقه يې کړه ځکه چې کوم مال پخپله راشي نه تا هغه غوښتلې واي او نه دی په طبيعت کې د هغې طلب وي نو هغه اخله! او که داسې صورت نه وي نو خپل ځان هغې پسې مه لګوه! يعنې په ژبه يې مه غواړه! او که په زړه کې دې د هغې طلب وي او هغه راشي نو هغه مه اخله!(۲)

حضرت عبدالله بن سعدي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زه په صدقاتو اخيستو باندې مقرر کړم ما صدقات وصول کول حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته مې ورکړل نو هغوی ما ته د دې خدمت مزدوري راکول غوښتل په دې باندې ما وويل چې ما خو دا کار صرف د الله لپاره کړی دی دا او د دې بدله د الله جَلَّ جَلَالُهُ په ذمه ده حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې زه تا ته

---

۱: عند البيهقي وابن عساكر كما في الكنز ۲/۳۲۵

۲: اخرجه احمد والحميدي وابن ابي شيبه والدارمي و مسلم و النسائي

درکوم هغه واخله! ځکه چې ما هم د رسول الله ﷺ په زمکه کې د دې صدقاتو اخیستو کار کړی وو نو هغوی ﷺ ما ته په دې باندې څه راکول وغوښتل ما هم دا شان خبره وکړه چې ته کوې! نو رسول الله ﷺ فرمائیلي وو کله چې زه تا ته یو شی بغیر د غوښتلو نه درکوم نو هغه اخله یا یې پخپله خوره! یا یې نورو باندې صدقه کوه! مه یې جمع کوه!(۱)

## بیت المال ته د حکیم بن حزام رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مال واپس کول

حضرت سعید بن مسیب رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې رسول الله ﷺ د جنګ حنین په ورځ حضرت حکیم بن حزام رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته څه ورکړل هغه دغه کم وګڼل او د رسول الله ﷺ نه یې نور هم وغوښتل رسول الله ﷺ هغه ته نور هم ورکړل هغه عرض وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو ما ته دوه ځل را کړی دی په دې دواړو کې کوم یو غوره دی؟ رسول الله ﷺ وفرمایل اول ځل چې بغیر غوښتلو ملاو شوي وو اې حکیم بن حزام! دا مال تروتازه او خوږ شی دی چې په لیدلو کې ښایسته او په خوړلو کې مزیدار معلومیږي څوک چې دا د زړه په سخاوت سره واخلي یعنې ورکوونکي یې هم د زړه په خوشحالۍ ورکړي او اخیستونکی یې هم واخلي او د جمع کولو طبیعت یې نه وي بلکې نورو ته د ورکولو عادت یې وي او استغفار والا وي او هغه په ښه طریقه باندې استعمال کړي د هغه لپاره به په دې مال کې برکت نه وي او دې به د هغه سړی پشان شي چې مسلسل طعام خوري او د هغه خېټه نه مړیږي پاسني لاس یعنې ورکوونکی لاس د لاندیني لاس یعنې اخیستونکی لاس نه غوره دی حضرت حکیم پوښتنه وکړه چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو نه غوښتلو کې هم دا خبره ده؟ رسول الله ﷺ وفرمایل زمونږ څخه غوښتونکی هم دا خبره ده حضرت حکیم ووئیل، په هغه ذات مې دې قسم وي چا چې تاسو ته حق در کړی دی او را لیږلی یې یئ! اوس تاسو نه پس حضرت حکیم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه مقرره وظیفه قبوله کړه او نه هدیه! تر دې چې هغه وفات شو او کله چې یې نه اخیستلو نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به فرمایل چې اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! زه تا په دې خبره باندې شاهد ګرځوم چې حکیم بن حزام رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راغوارم چې هغه دې مال نه خپله برخه واخلي خو هغه همېشه انکار کوي حضرت حکیم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته هم دا ویل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه نه تا نه څه اخلم او نه تا نه علاوه د بل چا نه.(۲)

---

۱: عند ابن جریر کذا فی الکنز ۳/۳۲۵

۲: اخرجه عبدالرزاق کذا فی الکنز ۳/۳۲۲

**د حکیم بن حزام او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قصه:**

حضرت حکیم بن حزام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي، ما د رسول الله ﷺ نه وغوښتل رسول الله ﷺ راکړ ما بیا وغوښتل هغوی ﷺ بیا راکړل ما دریم ځل وغوښتل رسول الله ﷺ بیا راکړل او وې فرمایل چې اې حکیمه! دا مال تروتازه او خوږ شی دی بیا یې د تېر شوی حدیث پشان مضمون ذکر کړو د ینه پس دا مضمون دی چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به کله حضرت حکیم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د څه ورکولو لپاره وغوښته نو ده به انکار کولو بیا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت حکیم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د څه ورکولو لپاره راوغوښته نو هغه د اخیستلو نه انکار وکړه دې خبره حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې اې د مسلمانانو ډلې! زه تاسو په دې خبره باندې ګواه نیسم! چې الله رب العزت په دې مال غنیمت کې د حضرت حکیم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کومه برخه ټاکلې ده هغه برخه ما هغه ته مخکې کړې ده خو هغه د اخیستلو نه انکار کړی دی نو حضرت حکیم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ نه پس خپل مرګه پورې چېرې هم د چا نه څه وا نه خیستل.(۱)

حضرت عُروه رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت حکیم بن حزام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د هغه تر وفاته پورې څه قبول نه کړل او نه یې د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه څه واخیستل او نه د حضرت مُعاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه، تر دې چې هغه په همدې حال باندې وفات شو.(۲)

## د حضرت عامر بن ربیعه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زمکه واپس کول

حضرت زید بن اسلم رَحِمَهُ اللهُ وایي چې یو عربي سړی د حضرت عامر بن ربیعه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ میلمه شو هغوی د ده ډېره ښه میلمستیا او اکرام وکړ او د هغه په باره کې یې رسول الله ﷺ ته د سفارش خبره هم وکړه دغه سړی د رسول الله ﷺ د طرف نه حضرت عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راغی او وې ویل چې ما د رسول الله ﷺ نه یو داسې یو ځائ د جاګیر په توګه غوښتلې د چې ټولو عربو کې د دینه ښه ځائ نشته رسول الله ﷺ هغه ما ته را کړی دی او س زه غواړم چې د دغه ځائ څه برخه تاسو ته درکړم چې هغه به ستا په ژوند کې ستا وي او ستا نه پس به ستا د بچو وي حضرت عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې ما ته ستا د دې حصې هیڅ ضرورت نشته ځکه چې نن داسې سورت نازل شوی دی چې زمونږ نه یې دنیا هېره کړې ده او هغه سورت

---

۱: عند الشیخین کذا فی الترغیب ۲/۱۰۱ وقال رواه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی باختصار.

۲: عند الحاکم ۳/۴۸۳

دا دی : اِقْتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمْ وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ مُعْرِضُونَ (۱)

ترجمه: دې منکر خلکو ته د دوي د حساب وخت نږدې رارسېدلی دی او دوي تر اوسه پورې په غفلت کې پراته دي او اعراض يې کړی دی.(۲)

## د حضرت ابوذر غفاري رضي الله عنه مال واپس کول

**دحضرت عثمان او حضرت کعب رضي الله عنهما سره دهغه قصه:**

د حضرت ابوذر غفاري رضي الله عنه وراره حضرت عبدالله بن صامت رضي الله عنه فرمايل چې زه خپل تره حضرت ابوذر رضي الله عنه سره د حضرت عثمان خدمت کې حاضر شو زما تره حضرت عثمان رضي الله عنه ته وويل چې ما ته په ربذه کلي کې د اوسېدو اجازت راکړئ! هغوی رضي الله عنه وفرمايل چې صحيح ده اجازت دی او مونږ ستاسو لپاره د صدقې څه اوښان مقرر کوو چې سحر مابنام به تاسو ته راځي تاسو د هغې پۍ استعمالوئ! زما تره وويل چې ما ته د دې ضرورت نشته ابوذر رضي الله عنه ته د هغه د اوښانو وړوکې شان ګله هم کافي ده بيا ودرېدو او دا يې وويل چې ته په خپله دنيا کې بنه لګيا اوسه! او مونږ خپل رب او دين لپاره پرېږده! او دغه وخت کې دې خلکو د حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه ميراث وېشه او حضرت عثمان رضي الله عنه سره حضرت کعب رضي الله عنه هم ناست وو حضرت عثمان رضي الله عنه د حضرت کعب رضي الله عنه نه پوښتنه وکړه چې تاسو د دې سړي په باره کې څه وايئ! چې هغه دومره مال جمع کړو؟ دا حضرت عبدالرحمن رضي الله عنه د دېنه يې زکات هم ورکولو او د نېکۍ په ټولو کارونو کې يې هم خرچ کولی حضرت کعب رضي الله عنه وويل چې زما خو د دې سړي په باره کې هم د خير امېد دی دې اورېدلو سره حضرت ابوذر رضي الله عنه ته غصه راغله او حضرت کعب رضي الله عنه باندې يې امسا اوچته کړه او وې ويل اې د يهودنې بنځې ځويه! تا ته څه پته ده؟ د دې مال والا به د قيامت په ورځ د دې خبرې خامخا ارزو کوي چې ارمان په دنيا کې لړمانو زما د زړه نازکه برخه خوړلې واي او ما دومره مال د مرګ نه روستو نه واي پرېښودلی بلکې ټول مال مې صدقه کړي واي.(۳)

---

۱- سورة الانبياء آيت ۱۱.

۲: اخرجه ابونعيم فى الحلية ۱/۱۷۹

۳: اخرجه ابونعيم فى الحلية ۱/۱٦۰

حضرت ابو شعبه رَحِمَهُ اَللّٰهُ فرمايي، يو سړی حضرت ابو ذر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته راغی او هغوی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته يې څه خرڅې ورکول غوښتل حضرت ابو ذر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې مونږ سره څه چېلۍ دي چې د هغې پۍ لوشو او مونږ يې استعمالوو او د بار وړلو لپاره څه خره دي او يوه ازاده شوې وينځه ده چې زمونږ خدمت کوي او په جامو کې د ضرورت نه زياته يوه چوغه هم ده ما ته وېره ده چې د ضرورت نه زيات ساتلو باندې چېرته زما نه د دې حساب وانه خيستی شي.(۱)

**د ابوذرغفاري او حبيب بن مسلمة رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قصه:**

د شام والي (ګورنر) حضرت حبيب بن مسلمه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د حضرت ابو ذر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په خدمت کې درې سوه ديناره ولېږله او دايې وويل چې دا دې پخپل ضرورت کې ولګوي حضرت ابو ذر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوړونکي ته وويل چې دا هم هغه ته واپس يوسه! آيا هغه ته زما نه علاوه بل څوک ملاو نشو؟ چې د الله رب العزت په باره کې زمونږ نه زيات دوکه کې پرېوتي وي چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ حکمونه يې پرېښي وي او د هغه د عذاب نه بې وېرې وي او د هغه په نافرمانو کې لګېدلی وي حضرت ابو ذر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ به د ضرورت نه زيات مال ساتل هم ناجائز ګڼل مونږ سره په سوري کې ناستې لپاره يو کور دي او د ګډو په رمه ده چې ماښام راځي او يوه ازاده شوې وينځه ده چې په مفتو کې زمونږ خدمت کوي بس دا شيان مونږ سره دي نور هيڅ نشته خو بيا هم ما سره د ضرورت نه د زيات ساتلو وېره وي.(۲)

**د هغه او حارث رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قصه:**

حضرت محمد بن سيرين رَحِمَهُ اَللّٰهُ وايي چې حضرت حارث قُريشي چې په شام کې اوسېدو هغه ته دا خبر ورسېده چې حضرت ابو ذر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ډېر په تنګسيا کې دی نو هغه د حضرت ابو ذر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په خدمت کې درې سوه ديناره اولېږل حضرت ابو ذر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل ده ته د الله رب العزت داسې بنده ملاو نشو چې د هغه په نزد زما نه زيات بې قيمته واي ما د رسول الله ﷺ نه دا فرمان اورېدلی دی چې چا سره څلوېښت درهمه وي او بيا هغه غواړي نو هغه خلکو پورې نښتلو والا سوال کونکی دي او د دېنه الله رب العزت او رسول ﷺ منع

---

۱: اخرجه ابونعيم فى الحلية ۱/۱٦۳

۲: اخرجه ابونعيم فى الحلية ۱/۱٦۱

کړې ده او ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره څلوېښت درهمه او څلوېښت چېلې او دوه خادمان دي.(۱)

## د رسول الله ﷺ غلام ابو رافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مال واپس کول

د رسول الله ﷺ ازاد کړی شوي غلام ابو رافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي، رسول الله ﷺ وفرمايل اې ابورافع! ستا به هغه وخت څه حال وي کله چې ته فقير شې؟ ما ووېل چې زه د اوس نه خپل اخرت لپاره صدقه نه لېږم بيا خو به فقير شم صدقې کولو لپاره به څه نه وي رسول الله ﷺ وفرمايل ضرور! خو نن صبا تا سره څومره مال دي؟ ما ووېل څلوېښت زره! او هغه ټول زه صدقه کول غواړم رسول الله ﷺ وفرمايل :نه څه صدقه کړه! څه ځان سره وساته! او خپل اولاد سره به رويه وکړه! ما ووېل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! آيا د هغوی هم په مونږ باندې داسې حق دی څنګه چې زمونږ په هغوی باندې حق دي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل :هو! په پلار باندې د بچي حق دا دی چې هغه ورته د الله تعالی کتاب يعنې قرآن کريم زده کړي، غشي ويشتل او لامبو ورته هم زده کړي او کله چې د دنيا نه لاړ شي نو د هغوی لپاره حلال او پاک مال پرېږدي ما پوښتنه وکړه چې زه به په کومه زمانه کې فقير کېږم؟ رسول الله ﷺ وفرمايل چې زما نه پس! ابو سُليم راوي وايي چې هغه د رسول الله ﷺ نه پس دومره فقير شو چې هغه به ناست وو ويل به يې چې څوک شته چې نابينا بُودا باندې صدقه وکړي؟ څوک شته چې په هغه سړي باندې صدقه وکړي چا ته چې رسول الله ﷺ فرمايلي وو چې دي به زما نه پس فقير کېږي؟ څوک شته چې صدقه وکړي چې د الله رب العزت لاس د ټولو نه اوچت دي او د ورکوونکي لاس په مېنځ کې دي او د اخيستونکی لاس د ټولو نه ښکته دي او څوک چې د مالدارۍ باوجود بغير د ضرورت نه سوال کوي نو د هغه په بدن باندې به يو بد ښکارېدونکي داغ وي چې په هغې سره به هغه د قيامت په ورځ پېژندلی شي او مالدار له او قوي انسان له چې د هغه د بدن اندامونه صحيح وي صدقه اخيستل جائز ندي راوي وايي چې ما وليدل چې يو سړي هغه ته څلور درهمه ورکړل نو هغه په هغې کې ورته يو درهم واپس کړو نو هغه سړي ووېل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ بنده! زما صدقه مه واپس کوه! هغوی وفرمايل ما ځکه يو درهم واپس کړ چې رسول الله ﷺ زه د ضرورت نه زيات مال اخيستلو نه منع کړی يم او زما

۱: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ۹/۳۲۱ رجاله رجال الصحيح غير عبدالله بن يونس وهو ثقة واخرجه ابونعيم عن ابن سيرين نحوه.

ضرورت د دريو دی ابو سُليم راوي وايي چې ما وليدل چې هغه روستو دومره مالدار شو
چې عُشر وصولوونكي به ده ته هم راتلو خو هغوی رَضِيَ اللهُ عَنهُ به فرمايل
ابو رافع رَضِيَ اللهُ عَنهُ د فقيری په حالت كې مړ شوی وای او دوباره مالداره شوی نه وای او
به يې چې په څومره واخيستل هم په هغه هومره به يې هغه مكاتب جوړولو د غلام مكا
جوړولو صورت دا دی چې مالک خپل غلام ته اووايي چې ته ما ته دومره مال او
نو ته به ازاد شې! (۱)

## د عبدالرحمن بن ابي بكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا مال واپس كړ

### د هغه او عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا قصه:

حضرت عبدالعزيز بن عمر رَحِمَهُ اللهُ بن عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنهُ وايي كله چې حضر
عبدالرحمن بن ابي بكر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د يزيد بن مُعاويه د بيعت نه انكار وكړ نو حضر
مُعاويه رَضِيَ اللهُ عَنهُ هغه ته يو لک درهم ولېږل حضرت عبدالرحمن هغه واپس كړل او
اخيستو نه يې انكار وكړ او ويې فرمايل: زه خپل دين د دنيا په بدله كې خرڅ كړم؟ دا يې
وويل او مكې ته روان شو او هم هلته وفات شو.(۲)

## د حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ لخوا مال واپس كول

### د هغه او عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا قصه:

حضرت ميمون رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت مُعاويه رَضِيَ اللهُ عَنهُ حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ
په پټه دې معلوماتو حاصلولو لپاره وټاكو چې هغه دا معلومه كړي چې د حضرت عبدالله
عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ په زړه كې څه اراده ده؟ آيا هغه د يزيد د بيعت نه كولو او په خپله د خليف
مقررېدو لپاره جنګ كول غواړي يا نه؟ نو حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنهُ حضرت عبدالله
بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته وويل چې اې ابو عبدالرحمن! چې دا د حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ
كنيت دی، ته د رسول الله ﷺ صحابي او د امير المؤمنين! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ځوی
او تاسو د خلافت د ټولو نه زيات مستحق يئ! تاسو د وخت د خليفه خلاف ولې نه را پاڅ
كه تاسې داسې وكړئ! نو مونږ ستاسو نه بيعت كولو لپاره تيار يو حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ

---

۱: اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۱۸۴

۲: اخرجه الحاكم ۳ /۴۷٦ عن ابراهيم بن محمد بن عبدالعزيز بن عمر بن عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنهُ
ابيه عن جده واخرجه الزبير بن بكار عن عبدالعزيز بنحوه كما في الاصابه ۲/۴۰۸

تري پوښتنه وکړه چې آیا ستاسو دې رایې سره د ټولو خلکو اتفاق دی؟ حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل هو! د لږ شان خلکو نه پرته پاتې ټول خلک متفق دي حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې که ټول مسلمانان دې رایې سره متفق شي خو د هجر مقام دري سړی اتفاق او نه کړي نو بیا هم ما ته د دې خلافت ضرورت نشته د دې نه حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوه شو چې د هغه د جنګ کولو اراده نشته بیا حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې تاسو د هغه سړی بیعت کولو لپاره تیار یئ! چې د هغه په بیعت باندې ټول خلک متفق دي؟ او هغه سړی به ستاسو په نوم دومره زمکه او دومره مال ولیکي چې بیا به تاسو ته او ستاسو اولاد ته د بل شی ضرورت نه پیدا کیږي حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل تاسو باندې سخته حیرانتیا او تعجب دې، تاسو زما د خوا نه تشریف یوسئ! او آئینده کله هم دې کار لپاره ما ته مه راځه! الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تا بنه کړي زما دین د دینار او درهم په وجه نه دې زه غوارم چې زه د دې دنیا نه لاړ شم چې زما لاسونه د دنیا د ګندګی نه بلکل پاک او صفا وي.(۱)

حضرت میمون بن مهران رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل یو غلام مکاتب جوړ کړو یعنې هغه ته یې وفرمایل چې دومره رقم راوړی نو ته به ازاد شې او د مال د اداء کولو قسطونه یې مقرر کړل کله چې د اول قسط اداء کولو وخت راغی نو هغه غلام هغه قسط راوړو او راغی هغوی ترې پوښتنه وکړه چې دا مال دې د کوم ځای نه حاصل کړی دی ؟ هغه وویل چې څه مې مزدوری سره ګټلی دی او څه مې د خلکو نه غوښتلی دی حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې ته په ما باندې د خلکو ښیرې میرې خوړول غواړې؟ ځه! ته د الله رب العزت لپاره ازاد یې! او کوم مال چې دې راوړی دی هغه هم ستا شو.(۲)

## د عبدالله بن جعفر بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مال واپس کړو

**د هغه او یو تاجر قصه:**

حضرت محمد بن سیرین رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د عراق د باندو یو نواب حضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه وویل چې ته د یو ضرورت په باره کې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته زما سفارش وکړ حضرت

---

۱: اخرجه ابن سعد ۴/۱۲۱

۲: اخرجه ابو نعيم في الحلية ۱/۳۰۱

علي يې ضرورت پوره کړو به دې باندې هغه نواب حضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته څلويښت زره دينار ولېږل، خلکو ورته وويل چې دا هغه نواب را لېږلي دي نو هغه ته يې واپس کړل او وې فرمايل چې مونږ نېکي نه خرڅوو.(۱)

# د حضرت عبدالله بن ارقم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لخوا مال واپس کول

**د هغه او حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قصه:**

حضرت عمرو بن دينار رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عبدالله بن ارقم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بيت المال ذمه وار او خزانه چي وټاکه او هغه ته يې درې لکه د دې خدمت په بدله کې ورکول وغوښتل نو حضرت عبدالله بن ارقم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د اخيستلو نه انکار وکړ او حضرت امام مالک رَحِمَهُ اللهُ وايي چې ما ته دا خبره رارسېدلې ده چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عبدالله بن ارقم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دېرش زره په طور د مُعاوضې ورکول وغوښتل خو هغه د اخيستلو نه انکار وکړ او وې فرمايل چې ما خو د الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره دا کار کړی وو.(۲)

# د عمرو بن نعمان بن مقرن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لخوا مال واپس کول

حضرت مُعاويه بن قُره وايي چې حضرت عمرو بن نعمان بن مقرن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره زه او سېدلم کله چې د رمضان شريف مياشت راغله نو يو سړی د درهمو تيلۍ راوړه او هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راغی او وې ويل چې امير حضرت مصعب بن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تاسو ته سلام وايي او وايي چې د قرآن هر قاري ته زما لخوا عطيه ضرور رسېدلې ده ځکه مې ستاسو په خدمت کې ولېږلې دا درهم په خپل ضرورت کې ولګوه نو حضرت عمرو بن نعمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ را وړونکي ته وويل چې لاړ شه! هغه ته ووايه! چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! مونږ قرآن د دنيا حاصلولو لپاره نه دی لوستلی او دغه تيلۍ (خلته) يې هغه ته واپس کړه.(۳)

# د حضرت اسماء او عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا مال واپس کول

**د حضرت اسماء او دهغې دمور قتيله بنت عبدالعزی قصه:**

حضرت عبدالله بن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل قتيله بنت عبدالعزي بن عبد اسعد چې د بنو مالک بن حسل قبيلې نه وو هغه تر اوسه مشرکه وه چې هغې سمساره، غوړي او دوډۍ په هديه کې

---

۱: اخرجه ابن ابي الدنيا والخرائطي بسند حسن كذا في الاصابة ۲/۲۹۰
۲: اخرجه البغوي من طريق ابن عيينه كذا في الاصابه ۲/۲۷۴
۳: اخرجه ابن ابي شيبه كذا في الاصابه ۳/۲۱

واخيستل او خپلې لور حضرت اسماء بنت ابي بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهَا له راغله نو حضرت اسماء رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د هغې د هديې د اخيستلو نه انکار وکړ او هغه يې کور ته د راتلو نه منع کړه حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په دې باره کې د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه نو الله رب العزت دا آيت نازل کړو: لَا يَنْهٰكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ وَلَمْ يُخْرِجُوْكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ (۱)

ترجمه: او الله رب العزت تاسو د هغو خلکو سره د احسان او انصاف سلوک نه نه منع کوئ! چې تاسو سره د دين په باره کې نه جنګېږي او تاسو يې د خپلو کورونو نه وېستلي نه يئ!.

رسول الله ﷺ حضرت اسماء رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته وويل چې ته د خپلې مور هديه قبوله کړه او خپل کور ته يې پرېږده!(۲)

**د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او يوې مسکينې ښځې قصه:**

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي: يوه مسکينه ښځه ما ته راغله هغې ما ته لږ شان شی هديه کول غوښتل ما ته د هغې په غريبۍ ترس راغی له دې وجې نه ما ته د هغې نه هديه اخيستل ښه ښکاره نشو رسول الله ﷺ وفرمايل چې تا داسې ولې ونه کړل؟ چې تا د هغې هديه قبوله کړې واې او بيا دې هغې ته د هديې په بدله کې څه ورکړي واې زما خيال دا دی چې تا دغه ښځه سپکه وګڼله اې عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا! عاجزي غوره کړه! ځکه چې الله رب العزت عاجزي کونکی خوښوي او تکبر کونکی نه خوښوي.(۳)

# د سوال کولو نه بچ کېدل

**د رسول الله ﷺ او ابوسعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قصه**

حضرت ابو سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: يو ځل مونږ ډېر زيات محتاج او بدحاله شو نو ما ته زما کوروالاوو وويل چې لاړه شه! او د رسول الله ﷺ نه څه وغواړه! نو زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم هلته چې ما اوله خبره کومه د رسول الله ﷺ نه واورېدله چې هغوی ﷺ وفرمايل چې څوک د الله رب العزت نه غنا غواړي غنا دا ده چې به زړه کې د دنيا طلب او حرص نه وي هغه ته به الله رب العزت غنا ورنصيب کړي او څوک چې پاکلمني غواړي

---

۱: سورة ممتحنه آيت ۸

۲: اخرجه احمد والبزار قال الهيثمى ۷/۱۲۳ وفيه مصعب بن ثابت وثقه ابن حبان وضعفه جماعة وبقية رجاله رجال الصحيح انتهى.

۳: اخرجه ابونعيم فى الحلية ۴/۲۰۴

پاکلمني دا ده چې سړی د الله رب العزت د تولو منع کړی شو و شیانو او غوښتلو نه منع شي او پاکلمن وي الله رب العزت به هغه ته پاکدامني ورکوي او څوک زمونږ نه څه وغواړي او هغه شی زمونږ سره موجود وي نو هغه مونږ ځان لپاره نه ساتو بلکې مونږ دغه شی هغه ته ورکوو دا مې چې واوريدل ما د رسول الله ﷺ نه څه ونه غوښتل او هم دغسې واپس راغلم مونږ لوږې او فقيرۍ او تکليفونو سره د دين محنت وکړ چې د هغې په نتيجه کې وروسته بيا دنيا مونږ باندې راپريوتله.(۱)

حضرت ابوسعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: يوه ورځ ما د سحر د لوږې د سختۍ د وجې نه په خېټه باندې کاڼي تړلي وو نو زما بي بي يا وينزې ما ته وويل چې رسول الله ﷺ ته لاړ شه او د هغوی ﷺ نه څه وغواړه! فلانکی سړی رسول الله ﷺ تللی وو او سوال يې کړی وو رسول الله هغه ته ورکړی دی نو زه رسول الله ﷺ له لاړم نو هغوی ﷺ بيان کولو په خپل بيان کې يې دا هم وفرمايل چې څوک د الله رب العزت نه عفت او پاک لمني غواړي الله رب العزت به هغه ته عفت او پاک لمني ورکړي او څوک چې الله رب العزت نه غناء او غواړي الله رب العزت به هغه غني جوړ کړي او څوک چې مونږ نه وغواړي مونږ به يا خو هغه ته ورکړو يا به هغه سره غمخواري وکړ او څوک چې زمونږ نه نه غواړي او ځان بې پرواه کړي هغه مونږ ته د غوښتونکو نه زيات خوښ دی دا مې چې واوريدل نو زه واپس راغلم او د رسول الله ﷺ نه مې څه او نه غوښتل کله چې ما د رسول الله ﷺ په خبره باندې عمل وکړ ومې نه غوښتل او په لوږه باندې مې صبر وکړ او بيا هم مونږ د دين محنت پوره کولو نو الله رب العزت قربانو سره دين محنت باندې چې د برکت او رحمت وعده فرمايلې ده هغه يې پوره کړله او بيا الله رب العزت مونږ ته راکول تر دې چې اوس زما د علم مطابق په انصارو کې زمونږ نه زيات مالداره کورنۍ نشته.(۲)

**د رسول الله ﷺ سره د عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قصه:**

حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله ﷺ ما سره څه وعده کړې وه کله چې د بني قُريظه د يهودو علاقه فتح شو نو زه د هغوی ﷺ په

---

۱: اخرجه ابن جرير.

۲: عند ابن جرير كذا في الكنز ۳/۳۲۲

خدمت کې حاضر شوم دې لپاره چې هغوی ﷺ خپله وعده پوره کړي او ما ته یې راکړي ما واورېدل چې هغوی ﷺ فرمایل: څوک چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه غناء اوغواړي الله پاک به هغه غني جوړ کړي او څوک چې قناعت اختیار کړي الله جَلَّ جَلَالُهُ به هغه ته قناعت ورکړي قناعت دا دی چې انسان ته لږه لږه دنیا څومره چې ملاو شي په هغې باندې راضي شي کله چې دا واورېدل نو ما په خپل زړه کې وویل چې دا سې خبره ده نو بیا زه د رسول الله ﷺ نه هیڅ نه غواړم.(۱)

**دحضرت ثوبان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قصه:**

حضر ثوبان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: رسول الله ﷺ وفرمایل چې کوم سړی ما ته د دې خبرې ضمانت راکړي چې هغه به د خلکو نه څه نه غواړي زه د هغه لپاره د جنت ضامن جوړېږم ما عرض وکړ زه د دې خبرې ضمانت ورکوم راوي وایي چې حضرت ثوبان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کله هم د چا نه څه نه غوښتل.(۲)

د ابن ماجه په روایت کې دا دی چې رسول الله ﷺ حضرت ثوبان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وفرمایل د خلکو نه هیڅ مه غواړه! نو حضرت ثوبان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به چې په سورلۍ سور وو او د لاس نه به یې چابک پرېوتلو نو چا ته به یې نه ویل چې دا ماته راکړه! بلکې پخپله به د سورلۍ نه راکوز شو او اوچت به یې کړ.(۳)

او د اسلام په عملونو باندې د بیعت کېدلو په باب کې د حضرت ابو امامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په روایت کې تېر شوی دی چې رسول الله ﷺ د حضرت ثوبان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره په دې خبره بیعت وکړ چې ته به د خلکو نه هیڅ نه غواړې! حضرت ابو امامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وایي چې ما حضرت ثوبان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د مکې مکرمې په ډکه مجمع کې ولیده چې هغه به په سورلۍ سورېدو او چابک به ترېنه پرېوتلو او څینې وخت به دغه چابک د چا په اوږه باندې پرېوتلو او هغه سړی به هغه چابک هغه ته ورکول غوښتل نو هغه به ترې چابک نه اخیسته بلکې پخپله به د سورلۍ نه راکوز شو چابک به یې اوچت کړو.(۴)

۱: اخرجه البزار عن ابي سلمه بن عبدالرحمن عوف عن ابيه وابو سلمه لم يسمع من ابيه قاله ابن معين وغيره كذا في الترغيب ۲/۱۰۴

۲: اخرجه احمد والنسائي و ابن ماجة وابوداود باسناد صحيح.

۳: اخرجه الطبراني واخرجه احمد والنسائي عن ثوبان مختصرا.

٤: اخرجه الطبراني واخرجه احمد والنسائي عن ثوبان مختصرا.

**د حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قصه:**

حضرت ابن ابي مُليکه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې بعضې وخت به د حضرت ابو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د لاس نه د اوښ مهار خلاص شو او په زمکه به پرېوتلو نو هغوی به اوښه په مخکې پښه باندې ووهله هغه به یې کېنوله او مُهار به یې پخپله اوچتولو خلکو به ورته ویل تاسو به مونږ ته فرمایلي واي نو مونږ به مُهار درکړی وای نو فرمایل به یې چې ما ته زما محبوب رسول الله ﷺ حکم فرمایلي ؤ چې د خلکو نه به هیڅ هم نه غوارې.(۱)

# د دنیا د زیاتوالي خوف او وېره

**د دنیا له زیاتوالي نه د رسول الله ﷺ خوف:**

حضرت عقبه بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله ﷺ اته کاله پس د احد په شهیدانو باندې د جنازې مونځ داسې وکړ چې ګواکې هغوی ژوندی او مړه خلک رخصتوي یعنې هغوی ته اندازه وه چې د دنیا د تلو وخت نزدې شوی دی له دې وجې نه یې ژوندو خلکو ته د خاص خاص خبرو وصیت او تاکید کولو او مړو لپاره یې ډېر په اهتمام سره دعا او استغفار غوښته چې بیا خو به د دې موقعه نه ملاوېږي بیا یې منبر ته تشریف یوړ او وې فرمایل چې زه تاسو نه مخکې ځم او زه ستاسو په حق کې ګواه جوړېږم او تاسو سره وعده ده چې په حوض کوثر باندې به تاسو سره ملاقات وي او زه د خپل دې ځائ نه حوض کوثر په دې وخت کې وینم ځکه چې الله رب العزت د مینځ تولې پردې لرې کړې دی ما ته ستاسو د دې خبرې وېره نشته چې تاسو به شرک وکړئ! بلکې د دې خبرې وېره ده چې تاسو به د دنیا حاصلولو لپاره د يو بل نه مخکې شئ! حضرت عُقبه وايي چې دا د رسول الله ﷺ د زیارت زما لپاره اخري موقع وه.(۲)

حضرت عقبه بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله ﷺ يو ځل بهر ته تشریف یوړو او د احد والو د جنازې مونځ یې وکړ بیا یې د مخکې حدیث والا مضمون بیان کړو په دې حدیث شریف کې دا مضمون هم دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه په دې وخت کې خپل حوض وینم او ما ته د زمکې د ټولو خزانو چابیانې راکړل شوي دي چې د دې په وجه د رسول الله ﷺ نه پس د قیصر او کسری خزانې صحابه وو ته ملاو شوې او ډېر

۱: عند احمد ايضا كذا في الكنز ٣/٣٢١

۲: اخرجه البخاری ٥٧٨

ملکونه فتح شول او په الله جَلَّجَلَالُهُ قسم! ما ته د دې خبرې وېره نشته دی چې تاسو به زما نه روستو شرک وکړئ! بلکې د دې خبرې وېره ده چې تاسو به د دنیا حاصلولو په شوق کې د یو بل نه مخکې شئ!(۱)

**درسول الله ﷺ قول کله چې ابوعبیده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د بحرین نه ډېر مال راوړو :**

حضرت عمرو بن عوف انصاري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله ﷺ حضرت ابو عبیده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لره د بحرین نه جزیه راوړلو لپاره اولېږلو نو هغه د بحرین نه ډېر مال یعنې یو لک اتیا زره یا دوه لکه درهمه راوړل، انصارو کله چې د حضرت ابو عبیده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د واپس راتلو خبر واورېدو نو هغوی د سحر مونځ د رسول الله ﷺ سره وکړ کله چې رسول الله ﷺ د مانځه نه پس د هغوی طرفته متوجه شو نو دا ټول حضرات د هغوی ﷺ مخې ته راغلل کېناستل رسول الله ﷺ هغوی ولیدل نو مسکی شو او وې فرمايل چې زما خیال دی چې تاسو اورېدلي شئ! چې حضرت ابو عبیده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د بحرین نه څه راوړی دی هغوی وویل هو! اې د الله جَلَّجَلَالُهُ رسوله! خپله خبره یې پته نکړه هغوی ﷺ وفرمایل تاسو ته زېری درکوم او د خوشحالۍ حاصلولو امید ساتئ! یعنې ابو عبیده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چې کوم مال راوړی دی په هغې کې ضرور تاسو ته څه ملاو شي په الله جَلَّجَلَالُهُ جَلَّجَلَالُهُ قسم! ما ته په تاسو کې د فقر وېره نشته بلکې د دې خبرې وېره ده چې په تاسو به دنیا داسې راخوره شي څنګه چې تاسو نه مخکې خلکو باندې راخوره شوې وه او تاسو به هم د هغې په حاصلولو کې د یو بل نه مخکې کېدو کوشش کوئ! څنګه چې مخکېنیو کړی وو بیا به دا دنیا تاسو داسې هلاک کړي څنګه یې چې هغوی هلاک کړی وو.(۲)

حضرت ابوذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: یو ځل رسول الله ﷺ بیان کولو چې په دې کې یو باندیچي ودرېدو چې د هغه په طبیعت کې سختي وه او هغه وویل چې یا رسول الله ﷺ! مونږ خو قحط تباه کړو هغوی ﷺ وفرمایل ما ته په تاسو باندې د قحط دومره وېره نشته څومره چې د دې خبرې ده چې تاسو باندې به دنیا ښه فراخه شي ارمان چې زما امت سره زر نه استعمالولي.(۳)

حضرت ابو سعید خدري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یو حدیث کې فرمايي، رسول الله ﷺ یو ځل په منبر

۱: عند البخاری فی الرقاق

۲: اخرجه الشیخان کذا فی الترغیب ۵/۱۴۱

۳: اخرجه احمد والبزار رواة احمد رواة الصحیح کذا فی الترغیب ۵/۱۴۴

باندې کېښاسته بيا يې وفرمايل چې د کومو خبرو په تاسو باندې ويره ده په هغې کې يوه دا ده چې الله رب العزت به ستاسو لپاره د دنيا زينت او ښايست او تروتازګي پرانيزي او تاسو به دنيا سره محبت شروع کړئ! ځکه چې د دنيا محبت د هرې ګناه بنياد دی.(۱)

حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله ﷺ وفرمايل چې ما ته په تاسو باندې د لوږې، فقيرۍ، او د بدحالۍ د امتحان نه زياته ويره د خوشحالۍ او د پراخۍ د امتحان ده الله رب العزت تاسو د لوږې، فقيرۍ او بدحالۍ سره ازمايلي يئ! په دې کې تاسو د صبر نه کار واخيسته او کامياب شوئ! او دنيا خوږه او تروتازه ده پته نشته چې په دې امتحان کې به کامياب شئ! يا نه!(۲)

حضرت عوف بن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله ﷺ يو ځل خپلو صحابه وو کې ودرېده او وې فرمايل چې تاسو فقيرۍ او لوږې نه وېرېږئ؟ او که تاسو سره د نيا فکر او غم دی؟ الله رب العزت به په فارس او روم باندې تاسو ته فتح درکړي او دنيا به په تاسو باندې ډېره زياته پراخه شي او هم د دې دنيا په وجه به تاسو د صحيح لارې نه واوړئ!(۳)

## د دنيا له فراخېدو د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خوف او ژړا

**د قادسيې د غنيمتونو قصه د مسور بن مخرمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دخولې نه:**

حضرت مسور بن مخرمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د قادسيې نه څه مال غنيمت راغی نو هغوی د هغې جائزه اخيستله او هغه يې کوت او ژړل يې هغوی سره حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هم وو، هغه ورته ووېل چې اې امير المؤمنين! دا خو د خوشحالۍ ورځ ده حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې هو! خو کومو خلکو ته چې دا مال راځي په هغوی کې د دې په وجه خپلو کې کينه او دښمني هم ضرور پيدا کېږي.(۴)

حضرت ابراهيم بن عبدالرحمن بن عوف رَحِمَهُ اللَّهُ وايي کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د کسې خزانې راغلې نو حضرت عبدالله بن ارقم زُهري ورته ووېل چې دا تاسو په بيت المال

۱: اخرجه الشيخان كذا في الترغيب ۵/۱۴۴

۲: اخرجه ابويعلي والبزار وفيه راولم يسم وبقية رواته رواة الصحيح كذا في الترغيب ۵/۱۴۵

۳: اخرجه الطبراني وفي اسناده بقية كذا في الترغيب ۵/۱۴۲

٤: اخرجه البيهقي ٦/۳۵۸ واخرجه الخرائطي ايضا عن المسور مثله كما في الكنز ۲/۳۲۱

کې ولې نه ږدئ؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمايل چې نه! دا مونږ په بيت المال کې نه ږدو بلکې تقسيموو يې! دې ويلو سره حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ژړا شو نو حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل اې اميرالمؤمنين! تاسو ولې ژاړئ؟ په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! دا خو د الله رب العزت د شکر اداء کولو او د خوشحالۍ ورځ ده حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې الله پاک کوم قوم ته هم دا مال ورکړی دی نو دې مال د هغوی په منځ کې کينه او دښمني پيدا کړې ده. (۱)

حضرت ابراهيم بن عبدالرحمن بن عوف رَحِمَهُ اللهُ وايي کله چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د کسری خزانې راغلې نو حضرت عبدالله بن ارقم زهري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل چې دا تاسو په بيت المال کې ولې نه ږدئ؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمايل چې نه! دا مونږ په بيت المال کې نه ږدو بلکې دا په خلکو وېشو! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې خبرې په کولو سره په ژړا شو نو حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل چې اې اميرالمؤمنين! تاسو ولې ژاړئ؟ په الله قسم! دا خو د الله جَلَّ جَلَالُهُ د شکر اداء کولو او د خوشحالۍ ورځ ده! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل: چې الله جَلَّ جَلَالُهُ کوم قوم ته هم دا مال ورکړی دی نو دې مال د هغوی په منځ کې بغض، کينه او دښمني پيدا کړې ده او خپلمنځي بې اتفاقي يې پکې پيدا کړې ده.(۲)

**د کسری د تاج او لاس بندونو راوړلو قصه:**

حضرت حسن رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د کسری تاج حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې راوړل شو او د هغوی مخکې کېښودل شو د تاج سره د کسری د زيب وزينت سامان هم وو په دغه وخت هلته په خلکو کې حضرت سُراقه بن مالک بن جُعشُم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم وو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د کسری بن هُرمُز دواړه بنګړي د هغه مخکې کېښودل حضرت سُراقه دواړه بنګړي خپلو لاسونو کې واچول نو د هغه د اوګو پورې ورسېدل کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دواړه بنګړي د هغه په لاسونو کې وليدل نو وې فرمايل الحمد الله! سُراقه بن هُرمز دواړه بنګړي په دې وخت کې د بنو مُدلج يو بانديچي سُراقه بن مالک بن جُعشُم په

۱: اخرجه البيهقي ٦/٣٥٨ واخرجه الخرائطي ايضا عن المسور مثله كما في الكنز ٢/٣٢١

۲: عندالبيهقي ايضا ٦/٣٥٨ واخرجه ابن المبارک وعبدالرزاق وابن ابی شيبة عن ابراهيم مثله كما في الكنز ٢/٣٢١ واخرجه احمد في الزهد وابن عساكر عن ابراهيم نحوه مختصرا كما في الكنز ٢/١٤٢

دواړو لاسونو کې دي پيا يې وفرمايل چې اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! ما ته معلومه ده چې ستا رسول حضرت محمد ﷺ دا غوښتل چې هغوی ﷺ ته د کوم ځای نه مال ملاو شي او ستا په لاره کې يې ستا په بنده ګانو باندې خرچ کړي خو تاسو په هغوی باندې رحم کول او د هغوی ﷺ لپاره مو زيات خير والا صورت غوره کړ او مال دې ترې لرې کړو او اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! ما ته معلومه ده چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا غوښتل چې هغوی ته د کوم ځای نه مال ملاو شي او هغه ستا په لاره کې ستا په بنده ګانو باندې خرچ کړي خو تاسو په هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې رحم کولو او هغوی لپاره دې زيات غوره صورت اختيار کړ او مال نه دې لرې وساته او اوس زما په زمانه کې دا مال زيات زيات راتلل چېرته ستا د طرف نه د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلاف دا و نه وي يعنې چېرته په دې سره د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دين او اخرت نقصان نه وي بيا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا ايت ولوسته: أَيَحْسَبُونَ أَنَّمَا نُمِدُّهُم بِهِ مِن مَّالٍ وَبَنِينَ ۝ نُسَارِعُ لَهُمْ فِي الْخَيْرَاتِ ۚ بَل لَّا يَشْعُرُونَ ۝(۱)

ترجمه: آيا دا خلکو دا ګمان کوي چې مونږ دوي ته کوم مال او اولاد ورکوو نو مونږ دوي ته زر زر فائده رسوو دا خبره هيڅکه نه ده بلکې دا خلک له دې وجې نه نه پوهېږي.(۲)

**د دنيا په پراخۍ د ابوسنان الدوئلي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ژړل:**

حضرت ابوسنان دوئلي وايي چې زه حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورغلم هغوی سره د مهاجرينو اولنۍ ډله ناسته وه هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خوشبو وغيره اېښودلو تيلۍ يعنې (د جامو اېښودو کڅوړه) راوړلو پرايښې سرې ولېږه هغه تيلۍ د توکرۍ يا بورۍ پشان وه دا تيلۍ د عراق يوې قلعه نه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راوړلي شوې وه په هغې کې يوه ګوتمه هم وه چې هغه د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو ماشوم واخيستله او بيا په ژړا شو هغوی سره ناستو کسانو وويل چې تاسو ولې ژاړئ؟ الله رب العزت خو تاسو ته دومره فتوحات درکړي دی او تاسو ته يې ستاسو په دشمن باندې غلبه درکړې ده او ستاسو سترګې يې په خوشحالو درکولو سره يخې کړې دی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې ما د رسول الله ﷺ نه اورېدلي دی چې په کومو خلکو باندې د دنيا فتوحات کيږي او هغوی ته ډېره

---

۱- سورة المؤمنون آيت۵۵- ۵٦.

۲: عند البيهقى ايضا (٦/٣۵۸) واخرجه عبد بن حميد وابن المنذر وابن عساكر عن الحسن مثله كما فى منتخب الكنز (۴/۴۱۲)

دنیا ملاویږي نو د هغوی په مینځ کې داسې کینه او دښمني پیدا کیږي چې هغه قیامته پورې چلیږي ما ته د دې ویره محسوسیږي ځکه ژاړم.(۱)

**د مال او دنیا په فراخۍ د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا ژړل**

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عادت داوو کله چې به د مانځه نه فارغ شو نو د خلکو د وجې نه به کښناستلو د چا به چې څه ضرورت وو نو هغه به ورسره خبره وکړه او د چا به چې څه ضرورت نه وو نو بيا به پاڅېدل یو ځل هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خلکو ته ډېر مونځونه وکړل خو د یو مونځ نه پس هم کښېنه ناستلو ما د هغوی دربانچي ته وویل اې یرفا! آیا امیرالمؤمنین! ته څه تکلیف یا بیماري ده؟ هغه وویل نه امیرالمؤمنین ته هیڅ تکلیف او مریضي نشته زه هلته کښناستلم په دې کې حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هم تشریف راوړو هغه هم راغی کښناسته لږ وخت پس یو کس بهر ته راغی او وې ویل اې ابن عفان! اې ابن عباس! تاسو دواړه دننه تشریف یوسئ! نو مونږ دواړه حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته دننه ورغلو هلته مونږ ولیدل چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په مخکې د مال ډېر زیات ډېري ایښودل شوي وو او هر ډیري باندې د اوګې هډوکي پروت وو چې په هغې باندې څه لیکل شوي وو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې ما د مدينې په ټولو خلکو نظر واچاوه نو هم تاسو دواړه ما ته په مدينه منوره کې د لوي خاندان والا په نظر راغلئ! دا مال یوسئ! او خپلو کې یې تقسیم کړئ! او چې څه پاتې شي هغه واپس کړئ! حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خو لپه ډکه کړه او شروع یې وکړه خو زه د زنګنونو لګولو سره کښناستم عرض مې وکړ که چېرې کم شو نو تاسو به مونږ ته نور راکړئ؟ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې نه د غریوه ټوټه! یعنې دي د خپل پلار عباس ځوی دی چې هم د هغه پشان زړور، پوه او هوښیار دی آیا دا مال هغه وخت الله جَلَّ جَلَالُهُ سره نه وو؟ کله چې حضرت محمد ﷺ او د هغوی ﷺ صحابه وو د فقیرۍ او لوږې د وجې نه ځرمنې جوړولې؟ ما وویل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! کله چې رسول الله ﷺ ژوندی وُو نو دا ټول به په طریقه تقسیمو ځنګه چې یې تاسو کوئ! دا شان به یې نه کول په دې باندې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ غصه شو او وې فرمایل نه! ځنګه به یې تقسیمولو؟ ما وویل چې پخپله به

---

۱: اخرجه احمد باسناد والبزار وابو یعلی کذا فی الترغیب (۵/۱۴۴)

یې هم خوړلو او په مونږ باندې به یې هم خوړلو دې او ږېدو سره حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ
اوچت او از سره په ژړا شو چې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پښتې په زور سره وخوزېدې بیا یې
وفرمایل چې زه غوارم چې زه د دې خلافت نه سر په سر خلاص شم نه په دې ما ته څه انعام
راکړای شي او نه زه مأخوذ شم.(۱)

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې یو ځل زه حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ
راوغوښتلم زه ورغلم ما وویل چې د هغوی مخې ته د څرمنې په دسترخوان باندې سره زر
خواره واره پراته وو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې راشه! او دا سره زر په خپل قوم
باندې تقسیم کړه! الله رب العزت دا سره او مال د خپل رسول الله ﷺ او ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ
لرې اوساتل او ما له یې راکوي او س هم الله رب العزت ښه پوهېږي چې دا مال ما ته د خیر د
وجې نه راکولی کېږي یا د شر د وجې نه! بیا یې وفرمایل نه! الله رب العزت د خپل رسول
الله ﷺ او د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه دا مال د له دې وجې نه لرې نه وو ساتلی چې د دې
دواړو سره یې د شر اراده وه او ما ته یې د له دې وجې نه راکوي چې ما ته یې د خیر اراده ده
بلکې معامله برعکس معلومېږي.(۲)

حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ
راغوښتلو لپاره ما ته یو سړی راولېږه زه د هغوی په خدمت کې حاضر شوم کله چې زه
دروازې ته ور نیزدې شوم نو ما دننه نه د هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په زوره د ژړا اواز واورېدو زه
ویرېدم او ومې ویل (انا لله وانا الیه راجعون) په الله قسم! امیر المؤمنین ته یوه زبردسته
حادثه پېښه شوې ده چې له هغې وجې دومره په زوره ژاړي زه دننه لاړم د هغوی اوګه مې
ونیوله ومې ویل چې اې امیر المؤمنین له پرېشان کېدو هیڅ خبره نشته هغوی وویل نه!
ډېره لویه پرېشانی ده، زما لاس یې اونیولو دروازې ته یې ورنزدې بوتلم هلته چې لاړو نو
ما ولیدل چې پاس او لاندې ډېرې تیلې پرتې دي هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې اوس د
خطاب اولاد د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد څه قیمت پاتې نشو که چېرې الله جَلَّ جَلَالُهُ غوښتلي نو زما

---

۱: اخرجه الحمیدي وابن سعد (۳/۲۰۷) والبزار وسعید بن منصور و الهیثمی ۶/۳۵۸ وغیرهم کذا فی الکنز ۲/۲۲۰ وقال الهیثمی ۱۱/۳۴۲ رواه البزار واسناده جید.

۲: اخرجه ابوعبید وابن سعد (۳/۲۱۸) وابن راهویه والشاشي و حسن کذا فی الکنز (۲/۳۱۷)

دوارو ملګرو رسول الله ﷺ او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته به يې هم مال ورکړي واي او هغوی دواړو به چې خرچ کولو کې کومه طريقه اختيارولې ما به هم هغه اختيارولې ما ووېل راشه! چې ښه سوچ وکړو دا څنګه خرچ کول په کار دي نو مونږه د رسول الله ﷺ د بيبيانو لپاره څلور څلور زره او باقي خلکو لپاره هريو ته دوه زره درهمه مقرر کړل او دا شان يې ټول مال تقسيم کړو.(١)

**د دنيا له پراخۍ نه د عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوف او ژړل**

حضرت ابراهيم رَحِمَهُ اللهُ فرمايي: عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روژه نيولې وه د روژه ماتي لپاره هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته خوراک راوړل شو چې وې کتل نو وې فرمايل چې حضرت مصعب بن عمير زما نه غوره وو هغه شهيد کړی شو او بيا ورته په داسې څادر کې کفن ورکړی شو چې دومره وړوکی وو که د هغه سر به يې پټولو نو پښې به يې ښکاريدلې او که پښې به يې ټولې نو نو سر به يې ښکاريدو او حضرت حمزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زما نه غوره وو هغه هم شهيد کړی شو بيا په مونږ باندې د دنيا ډېره فراخي وشوه او مونږ ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ د طرف نه دنيا ډېره زياته راکړی شوه اوس مونږ وېرېږو چې چېرته مونږ ته زمونږ د نېکو بدله په دنيا کې خو رانکړي شوه بيا يې ژړا شروع کړه چې له هغې وجې يې خوراک ونه کړ.(٢)

حضرت نوفل بن اياس هُذلي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عبدالرحمن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زمونږ د مجلس ملګري وو او ډېر ښه د مجلس ملګري وو يوه ورځ يې مونږ خپل کور ته بوتلو مونږ يې کور ته داخل شو بيا هغه دننه لاړ او غسل يې وکړ، بيرون راغی او مونږ سره کښناسته بيا دننه يوه پياله راغله چې په هغې کې غوښه او دوډۍ وه کله چې هغه پياله مخې ته کېښودل شوه نو حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ژړا شو مونږ ورته ووېل اې ابومحمده! (دا د حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کنيت دی) تاسو ولې ژاړئ؟ هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې رسول الله ﷺ په داسې حالت کې تشريف يوړو چې هغوی ﷺ کوروالاوو د اوربشو دوډۍ په مړه خېټه ونه خوړه په دې وجه زما په خيال داسې نشي کېدي چې الله رب العزت مونږ کوم په دنيا کې ژوندی ساتلي يو او د دنيا فراخي يې مونږ ته راکړې ده زمونږ

---

١: اخرجه ابوعبيد والعدني كذا في الكنز (٢/٣١٨)

٢: اخرجه البخاري (٥٧٩) واخرجه ابونعيم في الحلية ايضا (١/١٠٠)

دا حالت د رسول الله ﷺ د حالت نه غوره وي او زمونږ لپاره په دې کې خیر ډېر دي.(۱)

**د طعام خوړولو په وخت دعبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ژړل:**

حضرت ام مسلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي: حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ما ته راغی او وې ويل چې اې مورې! ما ته وېره ده چې زما حال به ما هلاک کړي ځکه چې زه په قریشو کې د ټولو نه زيات مالداره يم مور وويل اې زما بچيه! ته خپل مال په نورو باندې مصرف کوه! ځکه چې ما د رسول الله ﷺ نه اورېدلی دی زما بعضې ملګري داسې دي چې د جدا کېدو نه پس به ما ونه ليدلي شي حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغه ځای نه روان شو او د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره يې ملاقات وشو نو هغوی حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته زما والا حديث شريف واورولو حديث يې چې واورېدو نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ما ته راغی او وې فرمايل چې د الله رب العزت واسطه درکوم او پوښتنه کوم چې آيا زه په هغوی کې يم؟ ما وويل نه! تاسو په هغوی کې نه يئ! او ستاسو د دې سوال جواب خو ما درکړو خو آينده به يې له تاسو نه پس چا ته نه بنايم چې هغه په هغوی کې نه وي.(۲)

**د مال د زياتوالي په وخت کې د ام سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا نه دهغه غوښتنه او دهغې جواب:**

حضرت ام سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي: حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راغی او راته وې ويل: اې د مسلمانانو مورې! زه وېرېږم چې زما (ډېر) مال ما هلاک نه کړي، زه د قريشو مالدار ترين شخص يم، ام سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ورته وويل: اي ځويه! نفقه او خرچه کوه يې، ځکه ما د رسول الله ﷺ نه اورېدلي دي چې فرمايلي يې: «زما ځينې ملګري او صحابه به ځينې زما د جدايي پس ما نه ويني» حضرت عبدالرحمن بن عوف بيرون لاړو او د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره مخامخ شو، او د ام سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا خبرې نه يې خبر کړو، بيا حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ام سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ته ورغی او پوښتنه يې وکړه: په خدای قسم آيا زه دهغو خلکو د جملې نه يم؟ هغې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا جواب ورکړو، نه تاسو نه ياستئ خو ستا نه وروسته هيچا ته برائت نه ورکوم.

**د دنيا له پراخی نه د خباب بن ارت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خوف او ژړل**

حضرت يحيى بن جعده رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې د رسول الله ﷺ څو صحابه د حضرت خباب

۱: اخرجه ابو نعيم فى الحلية (۱/۹۹) واخرجه الترمذي والسراج عن نوفل نحوه كما فى الاصابه (۲/۴۱۷)
۲: اخرجه البزار قال الهيثمى (۹/۷۲) رجاله رجال الصحيح

رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیمار پرسی لپاره راغلل هغوی ورته وویل چې اې عبد الله! ستا لپاره دې زېری وي چې رسول الله ﷺ ته به حوض کوثر ته لاړ شې نو هغوی د کور پورتنی او لاندینی حصې طرفته اشاره وکړه او وې فرمایل چې د دې کور په موجودګی کې زه څنګه حوض کوثر ته تلی شم؟ په داسې حال کې چې رسول الله ﷺ فرمایلي وو چې تا لپاره دومره دنیا کافي ده څومره چې په یوه سورلی باندې سور لپاره توښه وي او ما سره د توښې نه ډېر زیات دي.(۱)

**د خباب بن ارت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دوفات قصه:**

حضرت طارق بن شهاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د رسول الله ﷺ څو صحابه د حضرت خباب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیمار پرسی لپاره لاړل نو هغوی ورته وویل اې ابو عبد الله! (دا د حضرت خباب کنیت دی) تاسو ته دې زېری وي صبا له تاسو د وفات نه پس خپلو ورونو ته ور سېږئ! دې او رېدو سره حضرت خباب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ژړا شو او وې ویل چې زه د مرګ نه نه وېرېږم خو تاسو ما ته زما د رونو نومونه واخیستل ما ته مو د دغه خلکو یاد تازه کړو چې هغوی د خپلو نېکو عملونو او دیني محنت ټول اجر وثواب ځان سره واخیستل او مخکې لاړل او په دنیا کې هغوی ته هیڅ ملاو نه شو او ما ته د دې خبرې وېره ده چې د هغوی د تلو نه پس مونږ ته چې الله رب العزت کوم مال او دولت را کړی دی هغه چېرته زمونږ د هغو عملونو بدل نه وي چې د هغې تاسو تذکره کوئ!(۲)

حضرت حارثه بن مضرب رَحِمَهُ اللهُ وايي چې مونږ حضرت خباب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورغلو هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه زماني د رواج مطابق لپاره پخپلې خېټې باندې د اوسپنې اووه داغونه لګولي وو هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل که چېرې د رسول الله ﷺ دا اشاره نه واي چې په تاسو کې دې څوک هیڅ کله هم مرګ غوښتنه نه کوي نو ما به ضرور مرګ غوښتلی وای یو ملګري ورته عرض وکړ چې تاسو داسې ولې وایئ؟ تاسو لږ سوچ وکړئ! چې په دنیا کې تاسو ته د رسول الله ﷺ صحبت حاصل وو او ان شاء الله د مرګ نه پس به تاسو رسول الله ﷺ ته ورسئ! هغوی وویل اوس چې کوم مه ماسره دومره دنیا جمع شوې ده د دې د وجې نه ما ته وېره ده چې کېدی شي زه هغوی ته ونه رسېږم وګوره! دا په کور کې څلوېښت زره درهم پراته دي.(۳)

---

۱: اخرجه ابو يعلي والطبراني باسناد جيد كذا في الترغيب ۵/۸۴

۲: عند ابى نعيم فى الحلية (۱/۱۴۵) واخرجه ابن سعد (۳/۱۱۸) عن طارق بنحوه.

۳: عندا ابى نعيم فى الحلية ۱/۱۴۴

حضرت حارثه رَحِمَهُ اللَّهُ په یوه بل روایت کې وایي چې ماته یو ځل حضرت خباب بن ارت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل چې رسول الله ﷺ زه په داسې حال کې نه یم لیدلی چې ماسره دې یو درهم وي، خو اوس وګوره! چې د څلوېښت زره درهمو یو بنډل راسره دی، بیا کله چې د هغوی لپاره کفن راوړل شو نو هغې ته یې وکتل او په ژړا شو او وې ویل چې ماته خو داسې ښه او مکمل کفن ملاویږي او د حضرت حمزه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کفن خو یو د کرښو والا څادر وو او هغه هم دومره وړوکی وو چې هغه به په سر باندې واچولي شو نو پښې به یې ښکاره کېدې او کله چې به یې پښو باندې واچولو نو سر به یې ښکاره کېدو اخر سر یې ورله پټ کړو او په پښو یې ورته د سرګړي وابنه واچول.(۱)

حضرت ابو وائل شقیق بن سلمه رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې حضرت خباب بن ارت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بیمار وو نو مونږ د هغوی بیمارپرسۍ له لاړو نو هغوی وفرمایل چې په دې صندوق کې اتیا زره درهم اینښودل شوی دی او په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! دا پرانیستلې اینښودل شوی دی ما هغه په څه تیلۍ کې نه وو اچولي او نه مې د هغه خوله تړلې وه یعنې د دې جمع کولو او اینښودلو اراده زما نه وه او نه ما دا د چا غوښتونکی په پټه ساتلې دي څوک غوښتونکی چې راغی نو هغه ته مې ضرور ورکړی دی نو د دې د خرچ کولو مې پوره کوشش کولو خو بیا هم دومره پاتې شوی دی او دېنه پس په ژړا شو مونږ وویل چې تاسو ولې ژاړئ؟ هغوی وویل زه د له دې وجې نه ژاړم چې زما ملګري د دې دنیا نه په داسې حال کې لاړل چې د دین د ژوندی کولو محنت هغوی ښه په قربانو او مجاهدو سره وکړ هغوی ته هیڅ دنیا ملاو نه شوه هم دغسې فقیري او لوږه کې د دې ځائ نه لاړل له دې وجې نه د هغوی د محنت او د اعمالو ټوله بدله به هغوی ته په اخرت کې ملاویږي او مونږ د هغوی نه پس دلته پاتې شوي یو او مونږ ته مال او دولت ښه ملاو شو چې مونږ ټول په خټو او ګټو کې یعنې تعمیراتو کې ولګاوه.(۲)

او حضرت اسامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چې کوم روایت د حضرت ادریس نه کړی دی په هغې کې دا دی چې حضرت خباب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا هم وفرمایل چې زما زړه غواړي چې دا دنیا خو بچي او نور واي.(۳)

حضرت قیس وایي چې بیا حضرت خباب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې زمونږ نه مخکې د پر داسې

---

۱: اخرجه ابونعیم ۱/۱۴۵ من طریق آخر عن حارثة نحوه مختصرا واخرجه ابن سعد ۳/۱۱۷ عن حارثة بنحوه.
۲: عن ابي نعیم في الحلیة (۱/۱۴۵)
۳: قال ابو نعیم

خلک مخکې تللي دي چې هغوی ته هيڅ دنيا ملاو نه شوه او مونږ د هغوی نه پس په دې دنيا کې پاتې شو او مونږ ته ډېره زياته دنيا ملاو شوه چې هغه په تعميراتو د خرچ کولو نه علاوه مونږ ته بل د لګولو ځای په نظر رانغی او مسلمان ته په هر ځای کې په لګولو ثواب ملاوېږي او بغير ضرورت نه په ابادۍ کې د خرچې کولو ثواب نشته دی.(۱)

حضرت خباب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: مونږ رسول الله ﷺ سره د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رضا لپاره هجرت وکړ د هغې اجر او ثواب به الله تعالی مونږ ته راکړي او س زمونږ څه ملګري د دې دنيا نه تللي دي او هغوی د خپل محنت او خپلو اعمالو بدله په دنيا کې هيڅ وانه خيستله په هغوی کې يو حضرت مصعب بن عمير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دی چې د جنګ احد په ورځ شهيد شو هغه صرف يو د کربنو والا څادر پرېښې وو او هغه دومره وړوکی وو کله چې مونږ په هغې سره د هغه سر پټولو نو پښې به يې ښکاره کېدې او کله چې به مونږ په هغې باندې پښې پټولې نو سر به يې ښکاره کېدلو اخر نبي کريم ﷺ مونږ ته وفرمايل چې په دې څادر سره د ده سر پټ کړئ! او په پښو باندې د سرګړي واښه واچوئ! او زمونږ د ځينو ملګرو مېوه پخه شوې ده چې هغوی يې شوکوي يعنې هغوی ته د نيا مال او دولت ښه ملاو شوی دی.(۲)

## د دنيا د زياتوالي نه د سلمان فارسي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خوف او ژړا

د بنو عبس قبيلې يو تن وايي چې زه د حضرت سلمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په صحبت کې پاتې شوم يو ځل هغوی د کسری د خزانو يادونه وکړه چې الله رب العزت مسلمانانو ته په فتوحاتو کې ور کړې دی او تاسو ته يې دا فتوحات در کړی دی هغه د حضرت محمد ﷺ په ژوند کې دا ټولې خزانې بندې ساتلې وې څرنګه چې الله جَلَّ جَلَالُهُ رسول الله ﷺ ته ټول خيرونه او برکات ور کړی وو او صحابه وو په داسې حال کې صبا کولو چې نه به هغوی سره درهم وو او نه دينار او نه يو مُد (۱۴ چټاکۍ) غله اې بنو عبس قبيلې والا! بيا د دې نه پس اوس دا حال دی بيا مونږ په يو څو درمندونو باندې شولو چې هلته دانې الوزولې شوې او بُس ترې جدا کولی شو دا يې چې واورېدل نو وې فرمايل چې کوم الله جَلَّ جَلَالُهُ تاسو ته دا ټول څه در کړی دی او تاسو ته يې دا فتوحات در کړی دی هغه د محمد ﷺ په ژوند کې دا ټولې خزانې بندې ساتلې وې

---

۱: عند ابي نعيم ايضا (۱/۱۴۶)
۲: عند البخاري واخرجه ابن سعد (۳/۸۵) وابن ابي شيبه بمعناه كما في الكنز (۷/۸۶)

او صحابه وو په داسې حال کې صبا کولو چې نه به هغوی سره درهم وو او نه به دينار او نه مُد غله، اې عبسي روره! بيا د دېنه پس اوس د زياتوالي له دا صورت حال دی.(۱)

د قبيله بنو عبس يو صاحب وايي چې زه يو ځل د حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره د دجلې د سيند په غاړه روان شوم نو هغوی وفرمايل اې د بنو عبس قبيلې والا! کوز شه! او به وڅښه! نو زه کوز شوم او به مې اوڅښلې بيا يې پوښتنه وکړه چې آيا ستا په دې څښلو سره په دجله کې څه کمی راغلی دی؟ ما ووېل چې زما په خيال خو څه کمی نه دی راغلی نو وې فرمايل چې علم هم دا شان دی چې څومره ترې واخيستلې شي هغه نه کمېږي بيا يې وفرمايل چې سور شه! نو زه سور شوم بيا د غنمو په اوربشو رشو پاکوونکو باندې زمونږ تېرېدل وشو هغوی يې چې وليدل نو وې فرمايل چې ستا څه خيال دی چې الله رب العزت خو مونږ ته دا فتوحات را کړی دی او الله رب العزت دا هر څه د رسول الله ﷺ د صحابه وو نه بند اوساتل؟ نو دا فتوحات يې مونږ ته ځکه راکړل چې مونږ سره يې د خير اراده ده، او رسول الله ﷺ اخر وخته پورې چېرته درې ورځې مسلسل په مړه خېټه خوراک ونه کړ.(۲)

حضرت سفيان رَحِمَهُ اللهُ د خپلو استاذانو نه نقل کوي چې حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيما وو حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه بيمارپرسی ته لاړ نو حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ژړا شو حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته ووېل تاسو ولې ژاړئ؟ تاسو خو به د مرګ نه پس خپلو ملګرو سره ملاو شئ! او رسول الله ﷺ له به حوض کوثر ته ورشئ! او هغوی په داسې حال کې وفات شو چې تاسو نه راضي وو حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ووېل چې زه خو نه د مرګ نه وېرېږم او نه د دنيا د لالچ په وجه بلکې په دې وجه ژاړم چې رسول الله ﷺ مونږ ته وصيت کړی دی چې د ګذارې لپاره تاسو سره دومره دنيا کېدل په کار دی چې څنګه چې د يو سور سره توښه وي او ما د دې وصيت مطابق عمل ونه کړای شو ځکه چې زما خوا او شا دا ډېر تور ماران دي يعني د دنيا ډېر سامان دی راوي وايي چې هغه سامان څه وو؟ بس يوه لوټه او د جامو وينځلو لوښي او دا شان څه نور شيان وو حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته ووېل تاسو مونږ ته څه وصيت وکړئ! چې په هغې باندې ستاسو نه پس هم مونږ عمل کوو حضرت

۱: اخرجه ابونعيم في الحلية (۱/۱۹۹) عن ابي البختري.

۲: عندالطبراني قال الهيثمي (۱۰/۳۲۴) وفيه راولم يسم وبقيه رجاله و ثقوا.

سعد رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته یې وفرمایل کله چې د یو کار د کولو اراده وکړې او څه فیصله کوې او کله چې پخپل لاس څه شی تقسیموې نو په هغه وخت کې خپل رب یاد کړه! یعني هر یو کار چې کوې نو د الله رب العزت ذکر خامخا کوه!(۱)

او د حاکم په روایت کې دا دی چې په دغه وخت کې د هغه خوا وشا صرف درې لوښي د جامو وینځلو ، یو لګن او یوه لوټه وه.

**حضرت سعد بن ابي وقاص او دسلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا بیمار پرسي:**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایي: حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ بیمار شو حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنهُ د هغه بیمار پرسی ته لاړو نو وې لیدل چې حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ ژاړي حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنهُ ترې پوښتنه وکړه چې اې زما وروره! تاسو ولې ژاړئ؟ آیا تاسو د رسول الله ﷺ په صحبت کې نه یئ پاتې شوي؟ آیا فلانکي فضیلت او فلانکي فضیلت تاسو ته نه دی حاصل؟ حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل زه په دې دوو خبرو کې په یوه هم نه ژاړم نه د دنیا لالچ د وجې نه او نه د اخرت لره بد او ناخوښه ګڼلو د وجې نه بلکې له دې وجې نه ژاړم چې رسول الله ﷺ مونږ ته یو وصیت کړی وو چې زما خیال دا دی چې ما د دغه وصیت پابندي ونکړي شوه حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنهُ پوښتنه وکړه چې رسول الله ﷺ تاسو ته څه وصیت کړی وو ؟ هغه وویل چې رسول الله ﷺ مونږ ته دا وصیت کړی وو چې په تاسو کې هر کس لپاره دومره دنیا کافي ده څومره چې د یو سړی لپاره توښه وي زما خیال دا دی چې زه د رسول الله ﷺ د دغه حد نه تېر شوی یم او د سورو د توښې نه ما سره زیات سامان دی او اې سعده! کله چې ته فیصله کوې او کله چې تقسیم کوې او کله چې ته د یوه کار پخه اراده وکړې په دې درې واړو وختونو کې د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه وویرېږه! حضرت ثابت رَضِيَ اللهُ عَنهُ وایي چې ما ته دا خبره رارسېدلې ده چې حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ په میراث کې د شلو نه څه پورته درهم او لږه شان خرڅې پرېښې وه.(۲)

**د وفات په وخت کې دحضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنهُ دخفګان سبب:**

حضرت عامر بن عبد الله رَحِمَهُ اللهُ وایي کله چې حضرت سلمان الخیر رَضِيَ اللهُ عَنهُ چې، په

---

۱: اخرجه ابو نعيم في الحلية (١/١٩٥) واخرجه الحاكم وصححه كما في الترغيب (٥/١٢٧) وابن سعد (٤/٦٥) عن سفيان عن اشياخه نحوه واخرجه ابن الاعرابي عن ابي سفيان عن اشياخه مختصرا كما في الكنز (٢/١٤٧).
۲: عند ابن ماجه ورواته ثقات كذا في الترغيب (٥/١٢٨)

مدينه منوره کې ابتدايي زمانه کې د اسلام راوړلو په وجه به ده ته سليمان الخير ويل کېده، د مرگ وخت نزدې شو نو خلکو په دوی باندې څه وېره محسوسه کړه نو هغوی وويل چې اې عبدالله! (دا د حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کنيت دی) تاسو ولې وېرېږئ؟ تاسو ته په نورو خلکو باندې اسلام راوړلو کې سبقت حاصل دی او تاسو رسول الله ﷺ سره په ښه ښه غزاگانو او لويو لويو جنگونو کې شريک شوي يئ! هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ووېل له دې وجې نه زه وېرېږم چې زمونږ حبيب رسول الله ﷺ د دنيا نه د تلو په وخت کې مونږ ته دا وصيت کړی وو چې په تاسو کې هر سړی لپاره د يو سور د توښې هومره سامان کافي کېدل په کار دی ما د دې وصيت پابندي ونه کړای شوه په دې وجه زه وېرېږم د حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د وفات نه پس کله چې د هغوی مال جمع کړی شو نو د هغې قيمت پنځلس درهمه وو په ابن عساکر کې دا دی چې پنځلس دينار وو ابونعيم د حضرت علي بن بذيمه نه دا سې روايت کړی دی چې د حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ميراث سامان خرڅ کړی شو نو په څوارلس درهمه خرڅ شو.(۱)

## د دنيا له پراخۍ د ابوهاشم بن عُتبه بن ربيعه خوف

**دهغه او معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قصه:**

حضرت ابو وائل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: حضرت ابو هاشم بن عُتبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيمار وو حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه د مرض پوښتنې لپاره راغی يوې کتل چې هغه ژاړي پوښتنه يې ترې وکړه چې اې ماما جانه! تاسو ولې ژاړئ؟ آيا څه درد ناقراره کړي يئ؟ يا د دنيا په لالچ کې ژاړئ؟ هغوی وويل دا خبره بلکل نه ده بلکې زه د دې وجې ژاړم چې رسول الله ﷺ مونږ ته يو وصيت کړی وو. چې مونږ په هغې باندې عمل ونه کړای شو حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې هغه څه وصيت وو؟ حضرت ابو هاشم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې ما د رسول الله ﷺ نه دا فرمان اورېدلی دی چې که چېرې سړی مال جمع کوي نو دېر

---

۱: كذا في الترغيب ۵/۱۸۴ واخرجه ابن عساكر عن عامر مثله كما في الكنز (۷/۴۵) الا إنه وقع عنده خمسة عشر دينار هكذا ذكر في الكنز عن ابن حبان وهكذا رواه ابونعيم في الحليه (۱/۱۹۷) عن عامر بن عبدالله في هذا الحديث ثم قال كذا قال عامر بن عبدالله بن دينا ر واتفق الباقون على بضعة عشر د رهما ثم اخرج عن على بن بذيمة قال بيع متاع سلمان فبلغ اربعة عشر. درهما وهكذا اخرجه الطبراني عن على قال في الترغيب (۵/۱۸٦) واسناده جيد الا ان عليا لم يدرك سلمان.

خادم او جهاد في سبيل الله لپاره یوه سورلۍ کافي ده او ما نن له دېنه زيات مال جمع کړی دی د ابن ماجه په روايت کې راغلي دي چې د حضرت سُمره بن سهم د قوم يو کس وايي: زه د حضرت ابو هاشم بن عُتبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مېلمه شوم نو هغه ته حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی د ابن حبان په روايت کې دي چې حضرت سمره بن سهم وايي چې زه د حضرت ابو هاشم بن عُتبه سره مېلمه شوم نو هغه د طاعون په مرض کې اخته وو بيا ورته حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی او د رزين په روايت کې دا دی کله چې د حضرت ابو هاشم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفات وشو نو د هغه د ترکې حساب وکړي شو نو د هغې قيمت دېرش درهمه جوړ شوی وو او په هغې کې هغه پياله هم شمار کړی شو چې په هغې کې به يې اوړه اغګل او هم په هغې کې به يې طعام خوړ.(۱)

## د دنيا د پراخۍ نه د ابو عبيده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوف او ژړا

دحضرت عبدالله بن عامر ازاد شوی غلام حضرت ابو حسنه مسلم بن اکيس رَحِمَهُ اللهُ وايي چې يو صاحب حضرت ابوعبيده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورغی نو هغه وليدل چې هغوی ژاړي نو هغه ووېل اې ابو عبيده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ! تاسو ولې ژاړئ؟ هغوی ووېل د له دې وجې نه ژاړم چې يوه ورځ رسول الله ﷺ د هغه فتوحاتو او مال غنيمت يادونه وکړه کوم به چې الله رب العزت مسلمانانو ته ورکوي په هغې کې يې د شام ملک د فتح کېدلو هم ذکر وکړ او وې فرمايل اې ابوعبيده! که چېرې ته دغه فتوحاتو پورې ژوندی پاتې شوې نو ستا لپاره درې خادمان کافي دی يو ستا د روزانه خدمت لپاره، او دويم تاسره د سفر کولو لپاره او دريم ستا د کور والاوو خدمت لپاره چې د هغوی کار کوي او درې سورلۍ ستا لپاره کافي دی يوه سورلۍ ستا د کور والاوو لپاره دويمه سورلۍ ستا د اخوا دېخوا تلو راتلو لپاره او دريمه سورلۍ ستا د غلام لپاره اوس رسول الله ﷺ خو د درېو خادمانو او دريوو سپرليو ساتلو

---

۱: اخرجه الترمذي وقد رواه ابن ماجه عن ابي وائل عن سمرة بن سهم عن رجل من قومه لم يسمه قال نزلت على ابي هاشم بن عتبة فجاءه معاوية فذكر الحديث بنحوه ورواه ابن حبان في صحيحه عن سمرة بن سهم قال نزلت على ابي هاشم بن عتبة و هو مطعون فاتاه معاويه فذكر الحديث وذكره رزين فزاد فيه فلما مات حصر ما خلف فبلغ ثلثين درهما و حسبت فيه القصعة التي كان يعجن فيها وفيها ياكل كذا في الترغيب (۵/۱۸۴) واخرجه البغوي وابن السكن عن ابي وائل عن سمرة بن سهم عن رجل من قومه كما في الاصابه (۴/۲۰۱) وقال: وروى الترمذي وغيره بسند صحيح عن ابي وائل قال جاء معاوية الى ابي هاشم فذكره واخرجه الحديث ايضا الحاكم (۳/٦۸۳) عن ابي وائل ابن عساكر من طريق سمرة كما في الكنز (۲/۱۴۹).

فرمايلي وو او زه خپل كور وينم چې د غلامانو نه ډک دی او خپل د اسونو ځائ ته ګورم نو هغه د اسونو او څاروو نه ډک دی اوس به زه د دېنه پس د رسول الله ﷺ سره په كوم مخ ملاقات كوم هر كله چې هغوی مونږ ته د دې تاكيد كړی وو چې په تاسو كې به ما ته د ټولو نه زيات خوښ او ما ته د ټولو نه زيات نزدې هغه سړی وي چې د قيامت په ورځ ما سره په داسې حال كې مخامخ شي په كوم حال كې چې زما نه جدا شوي وو.(۱)

## له دنيا نه د رسول الله ﷺ او صحابه كرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ بې رغبتي

**د رسول الله ﷺ زُهد او دېوزي اثرات د آنحضرت ﷺ په وجود كې:**

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: ما ته حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپله واقعه واوروله او وې فرمايل چې زه يو ځل د رسول الله ﷺ په خدمت كې حاضر شوم نو هغوی ﷺ په پوزكي باندې تشريف فرما وو زه د ننه لاړم كېناستم نو ما وليدل نو هغوی صرف لنګ تړلی دی او د دېنه علاوه په بدن باندې يې بله څه جامه نشته چې د دې په وجه د هغوی ﷺ په بدن مبارک باندې د پوزكي نښې جوړې شوې وې او يو ډک موټی صاع (درې نيم سېره) اوربشې او د كيكر پاڼې چې د څرمنې رنګ كولو لپاره پكار راځي په يو كونج كې پراته دي او يوه بغير رنګ شوې څرمن زوړنده ده دومره كم سامان ليده سره زما په سترګو كې بې اختياره اوښكې راغلې، رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل ولې ژاړې؟ اې ابن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ! ما عرض وكړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه به ولې نه ژاړم هر كله چې زه وينم چې د پوزكي نښې ستاسو په بدن پرتې دي او د كور ټول سامان دا دی چې ما ته په نظر راځي بل خوا د كسری او قيصر خو په مېوو او نهرونو د دنيا په فراخۍ كې وي او تاسو سره د دې چې د الله رسول ﷺ او خاص بنده يئ! ستاسو دا حالت دی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل اې ابن الخطاب! آيا ته په دې خبره باندې راضي يې؟ چې زمونږ لپاره اخرت وي او د هغوی لپاره دنيا.(۲)

او حاكم دا روايت په دې الفاظو سره بيان كړی دی چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: ما اجازت واخيستلو د رسول الله ﷺ په خدمت كې بالاخانې ته حاضر شوم نو مې كتل چې

---

۱: اخرجه احمد قال الهيثمي (۱۰/۲۵۳) رواه احمد وفيه راولم يسم وبقية رجاله ثقات انتهى واخرجه ابن عساكر نحوه كما في المنتخب (۵/۷۲)

۲: اخرجه ابن ماجه باسناد صحيح واخرجه الحاكم وقال صحيح على شرط مسلم.

هغوی ﷺ په يوه پوزي باندې ملاست دي او د بدن مبارک څه حصه يې په خاورو باندې ده او سر ته يې يو بالښت دی چې په کې د کجورو (خرماوو) پوستکي اچول شوي وو او سر ته يې يوه بغير رنګ شوې څرمنه زوړنده وه او په يوه ګوټ (کونج) کې د کيکر پاڼې پرتې وې ما رسول الله ﷺ ته سلام وکړ کېناستم نو عرض مې وکړ چې تاسو د الله رسول ﷺ او د هغه خاص بنده يئ! او ستاسو دا حال دی او کسری او قيصر د سرو زرو په تختونو باندې او د ريښمو او ديباچو په قالينو باندې وي هغوی ﷺ وفرمايل چې دغه خلکو ته پاک او ښه شيان په دنيا کې زر ورکړي شوی دي او دا دنيا زر ختمېدونکي ده او مونږ ته به روستو په اخرت کې پاک او ښه شيان راکول کېږي.(١)

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رسول الله ﷺ ته لاړ، وې کتل چې رسول الله ﷺ په يو پوزکي باندې ملاست دی چې په هغې سره د هغوی په اړخ باندې نښې لګېدلې دي نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! که چېرې تاسو د دې نه زياته نرمه بستره اخيستې واې نو ښه به وه رسول الله ﷺ وفرمايل زما د دې دنيا سره څه تعلق دی زما او د دنيا مثال د هغه سور پشان دی چې په سخته ګرمه ورځ روان شو بيا يې لږ وخت د ديوې ونې لاندې ارام وکړ بيا هغه ونه يې پرېښوده او روان شو.(٢)

**د رسول الله ﷺ د خوب بستر:**

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي: يوه انصاريه ښځه ما ته راغله هغې د رسول الله ﷺ بستره مبارکه وليدله چې يو څادر دی چې دوه غبرګه خور شوی دی بيا هغه لاړله او هغه ته يې يوه بستره راولېږله چې هغه د وړی نه ډکه شوې وه کله چې هغوی ما ته تشريف راوړو نو هغه يې وليدله او وې فرمايل اې عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا! دا څه دي؟ ما ووېل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! فلانۍ انصاريه ښځه ما ته راغلې وه هغې ستاسو بستره ليدلې وه بيا هغه واپس لاړه او ما ته يې دا بستره راولېږلې ده هغوی ﷺ وفرمايل اې عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا!

---

١: ورواه ابن حبان في صحيحه عن انس ان عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دخل على النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فذكر نحوه كذا في الترغيب (٥/١٦١) واخرج حديث انس ايضا احمد وابو يعلي بنحوه قال الهيثمي (١٠/٣٢٦) رجال احمد رجال الصحيح غير مبارك بن فضالة وقد وثقه جماعة وضعفه جماعة انتهى.

٢: اخرجه احمد وابن حبان في صحيحه والبيهقي كذا في الترغيب (٥/١٦٠) واخرجه الترمذي وصححه وابن ماجه عن ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نحوه والطبراني وابوالشيخ عن ابن مسعود نحوه حديث عمر كما في الترغيب (٥/١٥٩) وابن حبان والطبراني عن عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا كما في الترغيب (٥/١٦٢) والمجمع (١٠/٣٢٧)

دا واپس کړه! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! که چېرې ما غوښتلي نو الله رب العزت به ما سره د سرو او سپينو زرو غرونه روان کړي وای.(۱)

**د رسول الله ﷺ طعام او لباس:**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: چې رسول الله ﷺ د وړی جامه واغوستله او د پيوند والا جامې يې استعمال کړې او زدې د ټاټ جامې يې واغوستلې او طعام يې وخوړ د حضرت حسن رَحِمَهُ اللهُ نه پوښتنه وکړې شوه طعام څه شی وي؟ هغه وويل چې لوارې اوړه شوې وربشې چې هغه به رسول الله ﷺ د اوبو د ګوټ په ذريعه تېراوه.(۲)

**د رسول الله ﷺ او ام ايمن رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د ودودۍ قصه:**

حضرت أم ايمن رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي: ما اوړه چڼ کړل او د رسول الله ﷺ لپاره مې يوه دودۍ پخه کړه او د هغوی په خدمت کې مې پېش کړه رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه چې دا څه دي؟ ما وويل دا د طعام يو قسم دی چې دا مونږ پخپله علاقه يعنې حبشه کې پخوو نو زما زړه وغوښتل چې زه د دې نه تاسو لپاره يوه دودۍ پخه کړم رسول الله ﷺ وفرمايل نه! چڼ شوې بورې (بوړ) په هغو اوړو کې واپس يو ځای کړه او بيا د هغې نه زما لپاره دودۍ پخه کړه.(۳)

**د رسول الله ﷺ طعام قصه د ابورافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بي بي دخولې نه:**

د حضرت ابو رافع بي بي حضرت سلمي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي: حضرت حسن بن علي، حضرت عبد الله بن جعفر او حضرت عبد الله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ماله راغلل او وې ويل چې تاسو زمونږ لپاره هغه خوراک تيار کړئ! چې کوم د رسول الله ﷺ خوښ وي ما وويل اې زما بچو! زه خو به يې خامخا تيار کړم خو نن به ستاسو هغه خوراک خوښ نه شي خير تاسو خامخا وښايئ! نو زه به يې پخوم نو زه پاڅېدم او اوربشې مې واخيستلې اوړه مې کړې او په پوکي مې ترينه غټ غټ بهوس والوزول بيا مې د هغې نه يوه دودۍ پخه کړه بيا مې په هغه دودۍ باندې تېل واچول او په هغې مې تور مرچ او دوړول بيا مې د هغوی مخکې

---

۱: اخرجه البيهقي واخرجه ابوالشيخ اطول منه كما في الترغيب (۵/۱۶۳)

۲: اخرجه ابن ماجة والحاكم وفيه يوسف بن ابي كثير وهو مجهول عن نوح بن ذكوان وهو واه وقال الحاكم صحيح الاسناد (وعنده خشنا موضع بشعا) كذا في الترغيب (۵/۱۶۳)

۳: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ۱۰/۲۲۵ رجاله رجال الصحيح غير فائد مولى ابن ابي رافع وهو ثقة وقال في الترغيب ۵/۱۵۹

کېښودله او ما وویل چې د رسول الله ﷺ دا طعام خوښ وو.(١)

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: یو ځل مونږه د رسول الله ﷺ سره بهر او وتلو هغوی ﷺ د انصارو یو باغ ته تشریف ویوړ او د زمکې نه یې کجورې راغونډې کړې او خوړلې یې او ما ته یې وفرمایل اې ابن عمره! څه وشو چې ته یې نه خورې؟ ما وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! د دې کجورو خوړل زما زړه نه غواړي رسول الله ﷺ وفرمایل چې زما زړه خو یې غواړي او دا څلورم سحر دی چې ما څه نه دي خوړلي که چېرې ما غوښتلي نو ما به د خپل رب نه دعا غوښتلې واي نو هغه به ما ته د کسرى او قیصر پشان ملک را کړی وو اې ابن عمره! ستا به هغه وخت څه حال وي کله چې په داسې خلکو کې پاتې شې چې هغوی به د یو کال روزي جمع کړې ساتي او یقین به یې کمزوری پاتې شي؟ حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! چې مونږ لا دغلته وو چې دا آیت نازل شو:

وَكَأَيِّن مِّن دَابَّةٍ لَّا تَحْمِلُ رِزْقَهَا اللَّهُ يَرْزُقُهَا وَإِيَّاكُمْ ۚ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ۝(٢)

ترجمه: او ډېر څناور داسې دي چې هغوی خپل طعام نه وړدي هم الله جَلَّ جَلَالُهُ هغوی ته مقدر رزق ورکوي او تاسو ته هم او هغه هر څه اورېدونکی او په هر څه پوهېدونکی دی.

بیا یې وفرمایل چې الله رب العزت ما ته نه د دنیا د جمع کولو او نه خواهشاتو پسې د تلو حکم کړی دی نو کوم سړی چې په دې اراده سره دنیا جمع کوي چې باقي ژوند کې به پکار راشي نو هغه له پوهېدل په کار دي چې ژوند خو د الله رب العزت په لاس کې دی معلومه نه ده چې څومره ورځې به باقي وي غور سره واورئ! زه دینار او درهم نه جمع کوم او نه د سبا لپاره څه ساتم.(٣)

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي: د رسول الله ﷺ په خدمت کې یو پیاله راوړی شوه چې په هغې کې پې او شات وو نو رسول الله ﷺ وفرمایل چې د څښلو دوه شیانو نه یې جوړ کړی دی او په یوه پیاله کې یې دوه کتغه جمع کړی دی یعنې پې او شات هر یو د څښلو او د کتغ کار ورکوي ما ته ذ دې ضرورت نشته غور سره واورئ! زه دا نه وایم چې دا حرام شی دی خو زه دا نه خوښوم ځکه چې الله رب العزت زما نه د قیامت په ورځ د ضرورت د زیاتو شیانو په

---

١: اخرجه الطبراني قال الهيثمي (١٠/٣٢٥) رجاله رجال الصحيح غير قناد مولى ابن ابيّ رافع وهو ثقة وقال في الترغيب (٥/١٥٩) ورواه الطبراني واسناده جيد.

٢: سورة العنكبوت آيت ٦٠

٣: اخرجه ابو الشيخ بن حبان في كتاب الثواب كذا في الترغيب (٥/١٤٩) واخرجه ابن ابي حاتم عن ابن عمر مثله وفيه ابو العطوف الجزري وهو ضعيف كما في التفسير لابن كثير (٣/٤٢٠)

باره کې پوښتنه وکړي زه خو د الله جَلَّجَلَالُهُ عاجزي غوره کوم ځکه چې څوک هم د الله جَلَّجَلَالُهُ لپاره عاجزي اختيار کړي الله جَلَّجَلَالُهُ به هغه اوچت کړي او څوک چې تکبر کوي هغه به الله جَلَّجَلَالُهُ او غور ځوي او څوک چې په خرچ کولو کې منځلاري غوره کړي هغه به الله جَلَّجَلَالُهُ غني کړي او څوک چې مرګ ډېر يادوي الله جَلَّجَلَالُهُ به هغه سره محبت کوي.(۱)

**د حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زُهد او بې رغبتي**

حضرت زيد بن ارقم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: مونږ د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره وو هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د څښلو لپاره اوبه وغوښتلې نو هغوی ته د شاتو ګډ کړی شوې اوبه مخکې کړی شوې کله چې يې هغه په لاس کې واخيستلو نو په ژړا شو او په سلګو سلګو يې ژړا شروع کړه مونږ دا خيال وکړ چې په دوي باندې څه شوی دی خو د رعب په وجه مونږ د هغه نه پوښتنه ونه کړای شوه کله چې چُپ شو نو مونږ ورته وويل اې د رسول الله ﷺ خليفه! تاسو دومره زيات ولې ژړل؟ وې فرمايل چې د شاتو ملاو شوې اوبه مې چې وليدلې نو ماته يوه واقعه راياده شوه هغې په وجه مې ژړلي وو او هغه واقعه دا ده چې زه يو ځل د رسول الله ﷺ سره ووم په دې کې ما وليدل چې رسول الله ﷺ څه شی د ځان نه لرې کوي خو ماته هغه شی په نظر نه راتلو نو ما ورته وويل اې د الله جَلَّجَلَالُهُ رسوله! دا څه شی دی چې هغه تاسو لرې کوئ! ما ته خو څه شی په نظر نه راځي؟ هغوی ﷺ وفرمايل چې دنيا ما طرف ته رامخکې کيږي نو ما ورته لرې شه! نو هغې ووېل چې تاسو خو زما اخيستونکی نه يئ! يعنې دا زما يقين دی چې تاسو ما نه اخلئ! او زه هسې زور لګوم حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل دې واقعې يادېدلو سره ما ژړلي وو او د شاتو ملاو شوې اوبه زما لپاره ګران شو او زه اووېرېدم چې د دې په څښلو سره چېرته زه د رسول الله ﷺ د طريقې نه اخوا نشم او دنيا ما پورې اونه نښلي.(۲)

حضرت زيد بن ارقم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: يو ځل حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د څښلو

---

۱: اخرجه الطبراني في الاوسط كذا في الترغيب (٥/١٥٨) وقال الهيثمي (١٠/٣٢٥) وفيه نعيم بن مورع العنبري وقد وثقه ابن حبان وضعفه غير واحد وبقية رجاله ثقات.

۲: اخرجه البزار قال الهيثمي (١٠/٢٥٤) رواه البزار وفيه عبدالواحد بن زيد الزاهد وهو ضعيف عند الجمهور وذكره ابن حبان في الثقات وقال يعتبر حديثه اذا كان فوقه ثقه ودونه ثقة رجاله ثقات انتهى وقال في الترغيب (٥/١٦٨) رواه ابن ابي الدنيا والبزار و رواته ثقات الا عبدالواحد بن زيد وقد قال ابن حبان يعتبر حديثه اذا كان فوقه ثقة ودونه ثقة وهوهنا كذلک انتهى.

لپاره اوبه وغوښتلې نو د هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې يو لوښي راوړل شو چې په هغې کې شات او اوبه وې کله چې يې خولې ته نزدې کړې نو په ژړا شو او دومره يې وژړل چې ورسره ناستو کسانو هم وژړل، اخر هغوی که څه هم چوپ شو خو ورسره ناستو کسانو ژړل بيا يې هغه دوباره خولې ته نزدې کړو نو بيا په ژړا شو او دومره يې زيات وژړل چې د هغوی د ژړا د سبب پوښتنه په چا کې همت نه وو اخر کله چې يې طبيعت سپک شو او خپل مخ يې وچ کړو نو خلکو ترې پوښتنه وکړه چې تاسو دومره زيات ولې وژړل؟ دې نه پس يې مخکې حديث پشان مضمون ذکر کړ او په هغې کې دا هم دي چې د رسول الله ﷺ په لرې کولو سره دنيا يو طرفته شوه او وې ويل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! که چېرې تاسو زما نه بچ شوئ! نو هيڅ خبره نه ده ستاسو نه روستو خلکو به زما دلاسه نه شي بچ کېدي.(۱)

**حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دنيا کې درهم او دينار پرېښودل:**

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي: حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې وفات شو نو څه دينار او درهم يې په ترکه (ميراث) کې نه وو پرېښي بلکې د وفات نه مخکې يې خپل ټول مال په بيت المال کې جمع کړی وو حضرت عُروه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خليفه جوړېدو نه مخکې خپل ټول مال په بيت المال کې جمع کړی وو او وې فرمايل چې ما به په دې مال باندې تجارت کولو او روزي به مې تلاش کوله اوس د مسلمانانو خليفه جوړېدو په وجه د تجارت او د روزۍ د تلاش موقعه پاتې نه شوه.(۲)

**د خلافت په دوهمه ورځ د هغه او عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ترمينځ څه پېښې شول!**

حضرت عطاء بن سائب رَحِمَهُ اللهُ وايي کله چې مسلمانانو د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه بيعت وکړ نو د عادت مطابق يې په لاس باندې څادرونه واچول او بازار ته روان شو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ترې پوښتنه وکړه چې چېرته دې اراده ده؟ وې فرمايل بازار ته ځم حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته عرض وکړ په تاسو باندې د خلافت په وجه د مسلمانانو ذمه واري راغلې ده د هغې به څه کوئ؟ وې فرمايل بيا په بال بچ به د کوم ځای نه خورم؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړ چې حضرت عبيده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورشئ! هغه به ستاسو لپاره د بيت المال نه څه مقرر کړي دواړه حضرات هغه ته ورغلل نو هغوی ورله دومره مقدار مقرر کړل چې کوم به اوسطاً يو مهاجر

---

۱: اخرجه ابو نعيم في الحلية (۱/۳۰) وهكذا اخرجه الحاكم والبيهقي كما في الكنز (۴/۳۷)

۲: اخرجه احمد في الزهد كذافي الكنز (۳/۱۳۲)

ته ملاوېدل نه کم نه زيات. او دا خبره يې ورسره فيصله کړه چې يوه جوړه به د رته په يخنۍ کې ملاوېږي او يوه په ګرمۍ کې ليکن زړه جوړه به واپس کوئ انو نوې به ملاوېږي او روازنه به د رته د نيمې ورځې غوښه ملاوېږي چې په هغې کې به سر، اينه، زړه، او ګوردې هم وي.(١)

**دحضرت ابوبکر او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا بله واقعه:**

حضرت حميد بن هلال رَحِمَهُ اللهُ وايي : کله چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خليفه جوړ شو نو د رسول الله ﷺ صحابه وويل چې د رسول الله ﷺ ه خليفه لپاره دومره وظيفه مقرره کړئ! چې د هغوی لپاره کافي شي نو مقرر کوونکو وويل هو صحيح ده يو خو به ورته د بيت المال نه غوښتلو لپاره دوه څادرې ملاوېږي کله چې هغه زړېږي نو هغه به واپس کوي او دوه نوي څادرونه به اخلي او دويم سفر لپاره ورته سورلۍ ملاوېږي او دريم دا چې د خليفه جوړېدو نه مخکې به چې دوي خپل کورته څومره خرچه ورکوله هغه هومره به دوی ته ورکول کېږي په دې خبره حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې زه په دې خبره باندې راضي يم.(٢)

## د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زُهد

**دمعاش د زيادت درخواست او دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه قبلول:**

حضرت سالم بن عبد الله رَحِمَهُ اللهُ وايي کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خليفه جوړ شو نو هغوی د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ والا وظيفه باندې اکتفاء وکړه چې صحابه وو د هغوی لپاره مقرره کړې وه نو هغوی څه موده هم هغو مره اخيستله خو دغه د هغوی د ضرورت نه کمه وه څکه د هغوی په ګزران کې تنګسيا راغله نو د مهاجرينو يو جماعت راجمع شو چې په هغوی کې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت زُبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم وو حضرت زُبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ووېل چې که چېرې مونږ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ووايو چې مونږ ستاسو په وظيفه کې زياتوالی کول غواړو نو دا خبره به څنګه وي؟ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ووېل چې مونږ خو د مخکې نه د هغوی وظيفه زياتول غواړو، څئ چې څو! حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ووېل چې دا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی مخکې د يو بل نه د هغوی رايې معلومول په کار دی بيا ورسره مخامخ خبره کول په کار دی زما خيال دادی چې مونږ اُم المؤمنين حضرت حفصه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته لاړ شو او د هغې په ذريعه د حضرت

١: عند ابن سعد كذا في الكنز (٢/١٢٩)
٢: عند ابن سعد ايضا كذا في الكنز (٢/١٣٠)

عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رايې معلومه کړو او هغې ته او وايو چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته زمونږ نومونه اونه ښايي نو دا حضرات حضرت حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته لاړل او هغې ته يې وويل چې ته دا خبره د يوې دلې د طرفنه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره وکړه او هغوی ته د هيچا نوم مه اخله! ليکن که چېرې هغوی دا خبره ومني نو بيا په نومونو ښودلو کې څه باک نشته دا خبره يې وکړه او دغه حضرات د حضرت حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا خوا ته لاړل بيا حضرت حفصه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورغله او د نومونو اخيستلو نه پرته يې هغوی ته دا خبره وکړه نو د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مخ باندې د غصې اثرات ښکاره شول او پوښتنه يې وکړه چې تا ته دا خبره کومو خلکو کړې ده؟ هغې عرض وکړ چې اول ستاسو رايې معلومه شي نو بيا به زه تا ته د هغوی نومونه ښودلی شم حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې که ما ته د هغوی نومونه معلوم واي نو ما به هغوی ته سخته سزا ورکړې واى چې د هغوی په مخونو باندې به نښې پاتې واى ته زما او د هغوی په منځ کې واسطه جوړه شوې يې! په دې وجه زه تا ته قسم درکوم! او پوښتنه چې ته دا ووايه! چې ستا په کور کې د رسول الله ﷺ د ټولو نه ښې جامې څه وې؟ هغې وويل چې زېړبخنې دوه جامې چې هغه به يې د وفد راتلو باندې د جمعې خطبې لپاره اغوستلې بيا يې پوښتنه وکړه چې رسول الله ﷺ تا کره د ټولو نه ښه طعام کوم کړی دی؟ هغې وويل چې يو ځل مونږ د اوربشو يوه دوډۍ پخه کړه او بيا په دغه ګرمه دوډۍ باندې د غوړو د ډبې لاندې پاتې شوې شلوم راواړولو او هغه مو پرې ومږل چې په دې سره هغه دوډۍ غوړه او نرمه شوه بيا به رسول الله ﷺ هغه ښه په شوق او مزې سره وخوړله او هغه دوډۍ به يې ډېره خوښوله بيا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې تا کره د رسول الله ﷺ لپاره د ټولو نه نرمه بستره کومه يوه وه؟ هغې وويل زمونږ يوه غټه شان جامه وه په ګرمۍ کې به مو څلور غبرګه خپروله او په يخنۍ کې به مو نيمه خپره کړه او نيمه به مو اغوستله بيا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل اې حفصې! دغو خلکو ته دا خبره ورسوه! چې رسول الله ﷺ خپل طرز عمل سره يوه اندازه مقرر کړې ده او د ضرورت نه زيات شيان يې په خپلو خپلو ځايونو کې ساتلي دي او په هغې کې ونه لګېده او کم نه کم باندې يې ګذاره کړې ده ما هم د هر يو شي اندازه مقرره کړې ده او په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! د ضرورت نه زيات شيان به هم د هغې په ځايونو کې ساتم او زه به هم په کم نه کم باندې ګذاره کوم زما او زما د دوو ملګرو مثال د هغه دريو کسانو په شان دی چې يوه لار باندې لاړل په هغوی کې يو کس

تو بنه واخیستله لار او مقصد ته ورسېده. او دویم کس هم د هغه په اتباع وکړه او دریم کس د اولني تابعداري وکړه که چېرې دې د هغه دواړو د لارې خپل ځان پابند کړي او د هغوی پشان تو بنه وساتي نو هغوی سره به ملاو شي او هغوی سره به اوسېږي او که چېرې دی د هغو دواړو لاره پرېږدي په بله لاره روان شي نو کله به هغوی سره ملاو نه شي.(۱)

**د بصرې په جامع مسجد کې د حضرت عمر رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ د زهد بیان:**

حضرت حسن بصري رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې د بصرې په جامع مسجد کې يو مجلس لګېدلی وو زه هغوی ته نژدې ورسېدم نو ومې لیدل چې د رسول الله ﷺ څو صحابه رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمْ د حضرت ابوبکر رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ د زهد، ښه سیرت، اسلام او د هغوی د دیني فضائلو تذکره کوي چې الله رب العزت هغوی ته ورکړی وو زه هغو خلکو ته بلکل نژدې ورغلم نو ما ولیدل چې حضرت احنف بن قیس تمیمي رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ هم په دغو خلکو کې ناست دی ما واورېدل چې هغه خپله قصه سې بیانوله چې زه حضرت عمر بن خطاب رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ يو جماعت سره عراق ته ولېږلم الله رب العزت مونږ ته د عراق او فارس په مختلفو ښارونو باندې فتح راکړه يعنې دېر ښارونه مو ونیول، په دغو علاقو کې مونږ ته د فارس او خُراسان سپینې جامې ملاو شوې مونږ ځان سره کېښودلې او هغه مو اغوستل شروع کړې مونږ واپس مدینې منورې ته ورسېدلو کله چې مونږ د حضرت عمر رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شو نو هغوی زمونږ نه مخ واړاوه او مونږ سره يې هیڅ خبره ونه کړه د رسول الله ﷺ کوم صحابه رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمْ چې مونږ سره وو نو هغوی د حضرت عمر رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ په دې رویه سخت پرېشانه شول بیا مونږ د حضرت عمر رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ ځوی حضرت عبدالله بن عمر رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شولو او د امیر المؤمنین حضرت عمر رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ د مخ اړولو او د سختې رویې مو هغه ته شکایت وکړ هغه ووېل امیر المؤمنین تاسو نه په دې وجه مخ اړولی دی چې هغوی په تاسو باندې داسې جامې لیدلی دی چې هغوی نه د رسول الله ﷺ په بدن لیدلې وې او نه د هغوی نه روستو د هغوی د خلیفه د حضرت ابوبکر رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ په بدن باندې لیدلې دي دې اورېدو سره مونږ خپلو کورونو ته لاړو او هغه جامې مو ووېستلې او هغه جامې مو واغوستلې چې کومې به مونږ مخکې د حضرت عمر رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ په مخکې واغوستلې او د هغوی په خدمت کې دوباره حاضر شولو دې ځل هغوی زمونږ د استقبال لپاره اودرېدلو او یو یو کس ته یې جُدا جُدا

---

۱: اخرجه الطبراني (۴/۱۶۴) واخرجه ایضا ابن عساکر عن سالم بن عبدالله فذکر نحوه کما في منتخب الکنز (۴/۴۰۸)

سلام وکړ او هر یو له یې غاړه ورکړه او دومره محبت سره ملاو شو چې دوي مونږ مخکې ادو لیدلي نه وو بیا مونږ د هغوی په خدمت کې مال غنیمت مخکې کړو چې هغه یې زمونږ په مینځ کې برابر تقسیم کړو بیا په دې مال غنیمت کې د کجورو او د غوړو د سور او زېړ رنګ د حلوه تو کړې د هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مخکې پېش کړی شو بې دا حلوه حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اوڅکله نو دا په هغوی بنه مزېداره اولګېده بیا مونږ طرف ته متوجه شو وې فرمایل اې دمهاجرینو او انصارو ټولګیه په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه وینم چې د دې طعام په وجه به تاسو کې څوی خپل پلار او رور خپل رور ضرور وژني بیا یې د هغې د تقسیمولو حکم وکړ او د هغو مهاجرینو او انصارو په اولاد باندې یې تقسیم کړو چې درسول الله ﷺ په مخکې شهیدان شوي وو بیا حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ودرېدو او واپس لاړو د رسول الله ﷺ صحابه وو پسې شاته روان شو او وې فرمایل اې د مهاجرینو او انصارو ټولګیه! تاسو د د ې حضرت زهد او ظاهري حالت نه وینئ؟ مونږ خو دوی پورې ډېر شرمنده یو څکه چې الله رب العزت د هغوی په لاسونو د کسری او قیصر ملکونه او د مشرق او مغرب علاقې فتح کړې او د عربو او عجمو وفدونه هغوی ته راځي او د هغوی په بدن داسې جامې وینئ! چې په هغې کې هغوی دولس پیوندونه لګولی دی لهذا اې د محمد ﷺ د صحابه وو ټولګیه! تاسو رسول الله ﷺ په لویو لویو جنګونو او غزاګانو کې شریکېدونکو نه د لویې درجې والا یئ! او شروع زمانې نه په مهاجرینو او انصارو کې یئ! که چېرې تاسو د هغوی نه دا مطالبه وکړئ! چې هغوی دا جُبه اغوستل پرېږدي او د هغې په ځائ د نرمې جامې بنه جُبه جوړه کړي چې د هغې په لیدلو سره خلکو باندې رُعب پرېوځي او سحر مابنام د هغوی مخکې د طعام لوي لوي لوښي راوړلي کېږي چې د هغې نه یې پخپله هم خوري او په مهارینو او انصارو کې چې څوک حاضر وي هغوی باندې یې هم خوروي نو دا به ډېره بنه وي ټولو خلکو وویل چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته دا خبره صرف دوه کسان کولی شي یا خو یې حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کولی شي څکه چې هغه د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په مخکې د ټولو نه زیات جرأت سره خبرې کوي او بیا هغه د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سخر هم دی یا د هغوی لور حضرت حفصه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا یې کولی شي څکه چې هغوی د رسول الله ﷺ محترمه بي بي ده او هم د دې نبوي نسبت په وجه حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغې ډېر قدر او احترام کوي نو دې حضراتو حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره خبره وکړه هغه وویل زه حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره خبره نشم

کولی تاسو د رسول الله ﷺ بیبیانو ته ورشئ! ځکه چې هغه د ټولو مسلمانانو میندې دي هغوی د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مخکې په زړورتیا سره خبره کولی شي نو په یوه موقع باندې حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او حضرت حفصه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا یو ځای ناستې وې دا حضرات لاړل او د هغوی دواړو په خدمت کې یې خپل درخواست پیش کړو چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دا خبره وکړئ! په دې خبره حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وویل چې زه به د هغوی په خدمت کې دامطالبه پیش کړم حضرت حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وویل چې زما په خیال به حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ داسې هیڅکله ونکړي ته ورسره خبره وکړه! اوګوره تاسو ته به معلوم شي نو دواړه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له لاړلې نو هغوی دا دواړه ځان سره نیزدې کښنولې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمایل اې امیرالمؤمنین! که اجازت وي نو زه تاسو سره څه خبره وکړم؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل اې ام المؤمنین! ضرور یې وکړئ! حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وویل چې رسول الله ﷺ په خپله لاره روان وو او اخر د الله رب العزت جنت او رضامندي ورته حاصله شوه نه یې دنیا حاصلول غوښتل او نه ورته دنیا راغله او بیا دغسې د هغوی نه پس حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغوی په لاره روان شو او د رسول الله ﷺ سنت یې ژوندی کړل او دروغ ګڼلو والا یې ختم کړل او د باطل والاوو یې د ټولو دلائلو خوله ماتوونکي جواب ورکړو هغوی په ټولو لاس لاندو کسانو کې انصاف وکړ او مال یې په ټولو کې برابر تقسیم کړو او د مخلوق رب یې راضي کړو بیا الله رب العزت هغوی خپل رحمت او رضامندۍ خواته بوته او په رفیق اعلي نه مراد د حضراتو انبیاء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ دله ده چې په اعلي علیین کې اوسېږي نه هغوی دنیا حاصلول غوښتل او نه دنیا هغوی له راغله خو اوس الله رب العزت ستاسو په لاس د کسری او قیصر خزانې او مُلکونه فتح کړل او د هغې دواړو خزانې یې د هغه ځای نه تاسو ته رارسولی دی او د مشرق او مغرب اخري علاقې هم ستاسو ماتحت شوي شي بلکې زمونږ خو د الله رب العزت نه امید دی چې هغه به دا سلسله نوره هم زیاته کړي او اسلام به نور زیات مضبوط کړي اوس د عجمي بادشاهانو قاصدان او د عربو وفدونه تاسو ته راځي او تاسو دا جُبه اغوستلې ده چې په هغې کې دولس پیوندونه تاسو لګولی دی که تاسو مناسب ګڼي نو دا وباسئ! او د دې په ځای د نرمې جامې نه جُبه واغوندئ! چې د هغې په لیدلو سره به خلکو رُعب پرېوځي او سحر مابنام د تاسو ته لوی لوی د طعام لوښي راوړل شي چې د هغې نه تاسو هم طعام خورئ! او په مهاجرینو او انصارو کې چې څوک حاضر وي

په هغوی باندې يې هم خوروئ! دا يې چې واورېدل نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د پر اوژړل بيا يې وفرمايل چې تاسو په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم دركوم! او پوښتنه كوم آيا تاسو ته معلومه ده چې رسول الله ﷺ د خپل وفاته پورې مسلسل لس ورځې يا پنځه ورځې يا درې ورځې د غنمون دودى په مړه خېټه خوړلې وې يا يې يوه ورځ چېرته د غرمې دودى هم خوړلې وي او د ماښام هم؟ حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وويل نه! بيا هغې طرفته ته حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ متوجه شو او وې فرمايل آيا تا ته معلومه ده چې چېرته رسول الله ﷺ ته د زمكې نه يوه لوېشت اوچت دسترخوان باندې طعام اېښودلى شوى وي؟ بلكې د هغوى به فرمايل، به طعام په زمكه اېښودلي شو او د فارغېدلو نه پس به دسترخوان اوچتولى شو حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او حضرت حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دواړو وويل او هم داسې به كېدل، بيا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دوى دواړو ته وفرمايل، تاسو دواړه د رسول الله ﷺ بيبيانې يئ! او د ټولو مسلمانانو ميندې يئ! ستاسو د دواړو په ټولو عموماً او په ما باندې خاصه توګه حق دى تاسو دواړه ما ته د دنيا ترغيب راكولو له راغلى يئ! په داسې حال كې ما ته ښه معلومه ده چې يو ځل رسول الله ﷺ د ورى جُبه اغوستې وه هغه ډېره زيګه او سخته وه چې د هغې په لګېدو سره د هغوى په بدن باندې خارښ لګېدلى وو آيا تاسو ته دا خبره هم معلومه ده؟ دواړو وويل هو! معلومه ده بيا يې وفرمايل آيا تاسو ته معلومه ده چې رسول الله ﷺ به په يو برغې ځغه باندې اوده كېدو؟ او اې عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا! ستا په كور كې يوه بوجى وه چې هغه به رسول الله ﷺ د ورځې لاندې اچوله او د شپې به يې ترې بستره جوړوله كله چې به مونږ د هغوى په خدمت كې حاضرېدو نو د هغوى په بدن باندې به د هغه بورى نښې مونږ ته په نظر راتلې او اې حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا! اوس ته واوره! هم تا يو ځل ويلي وو چې تا د رسول الله ﷺ لپاره يوه شپه بستره دوه برغه غوړولې وه چې دا هغوى ته نرمه معلومه شوه هغوى پرې ويده شوم او داسې ويده شو چې د حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په اذان باندې يې سترګې اوغړېدلې نو هغوى تا ته فرمايلي وو چې اې حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا! دا تا څه كړى دى ؟ نن شپه تا زما بستره دوه برغه خوره كړې وه چې له هغې وجې زه د صبح صادق پورې ويده شوو زما د دنيا سره څه كار دى؟ تا زه په نرمه بستره كې اولګوم چې له هغې وجې زه تهجدو لپاره پانه څېدم اې حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا! آيا تا ته معلومه نه ده د رسول الله ﷺ ټول مخكې روستني ګناهونه معاف شوي وو خو بيا به هم ټوله ورځ اوږې اوسېدو او د شپې به يې زياته حصه په سجده كې تېروله

او ټول عمر یې دا شان په رکوع او سجده کې په ژړا او زارۍ کې تېر کړو تر دې چې الله رب العزت خپل رحمت او رضامندۍ طرفته اوچت کړو عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به کله هم ښه طعام نه خوړي او کله به نرمې جامې وانه غوندي او دخپلو دوارو ملګرو په نقش قدم به ځي او کله به دوه کتغه په یو وخت اونه خوري البته مالګه او تېل هم دوه کتغه دي خو دا به په یو وخت استعمالوي او په میاشت کې به صرف یوه ورځ غوښه خوي د دې لپاره چې د ده میاشت هم د عامو خلکو پشان تېره شي بیا حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا او حضرت حفصه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا دواړه د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د کور نه ووتلې او د هغوی ټولې خبرې یې د رسول الله ﷺ صحابه وو ته بیان کړې نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د طعام معیار بدل نکړ بلکل هم دغه زاهدانه طرز باندې یې ژوند تېر کړو تر دې چې الله رب العزت سره ملاو شو.(۱)

**په خوراک کې د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زهد:**

حضرت عکرمه بن خالد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وایي چې جضرت حفصې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، حضرت ابن مُطیع رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته دا خبره وکړه چې که چېرې تاسو ښه طعام خورئ! نو په دې سره به تاسو ته په حق باندې چلېدو کې زیات قوت حاصل شي په دې باندې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل: ما ته معلومه ده چې په تاسو کې هر کس زما خیرخواه دی خو خپل دواړه ملګري رسول الله ﷺ او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مې په یوه لاره باندې تلونکي پرېښې دی که چېرې زه د دغو دواړو لاره پرېږدم نو په منزل مقصود کې به هغې سره ملاو نشم یعنې د هغوی منزل ته به ونه رسېږم.(۲)

حضرت ابو أمامه بن سهل بن حُنیف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: څه زماني پورې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د بیت المال نه څه وانه خیستل او د مسلمانانو اجتماعي کارونو کې د مشغولتیا په وجه د تجارت کولو فرصت ورته ملاو هم نه وو له دې وجې نه په هغوی باندې لوږه او فقیري راغله او هغوی د رسول الله ﷺ صحابه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ را اوغوښتل او مشوره یې ترې واخیسته چې زه د خلافت په کارونو کې ډېر مصروف شوی یم د کاروبار فرصت را ته نه ملاوېږي نو زما لپاره د بیت المال نه څومره مال اخیستل مناسب دي؟ حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل چې تاسو د بیت المال نه پخپله هم طعام خورئ! او په نورو باندې یې

---

۱: اخرجه ابن عساكر كذافي منتخب كنز العمال (۴/۴۰۸)

۲: اخرجه عبدالرزاق والبيهقي وابن عساكر كذا في منتخب الكنز (۴/۴۱۱)

هم خوري! دا خبره حضرت سعيد بن عمرو بن نُفيل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم وكړه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه پوښتنه وكړه چې په دې باره كې تاسو څه وايئ؟ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې تاسو د غرمې او د شپې د دواړو وختونو طعام اخلئ! نو حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مشوره باندې عمل وكړ.(١)

حضرت قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: مونږ ته دا وښودل شو چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به فرمايل چې كه چېرې ما غوښتلى نو ستاسو ټولو نه به مې ښه طعام خوړلى او تاسو ټولو نه به مې زياتې نرمې جامې واغوستلى خو زه د خپلو ښكو بدله دلته اخيستل نه غواړم بلكې په اخرت كې يې اخيستل غواړم او مونږ ته دا هم ښودل شوي دي كله چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مُلک شام ته راغى نو د هغوى لپاره داسې ښه طعام تيار كړى شو چې داسې طعام يې د دېنه مخكې كله هم نه وو ليدلى نو هغه يې چې وليدو نو وې فرمايل چې مونږ ته خو دا طعام را رسيدو خو هغه فقيران مُسلمانان چې د هغوى په داسې حال كې وفات شول چې هغوى ته په مړه خېټه د اوربشو ډوډۍ نه ملاوېدله هغوى ته به څه معلومېږي؟ په دې باندې حضرت عمر بن وليد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې هغوى ته جنت ملاوېږي دا يې چې واورېدل نو د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سترګې د اوښكو نه ډكې شوې او وې فرمايل چې كه چېرې زمونږ په حصه كې د دنيا دا مال ومتاع وي او د هغوى جنت نو هغوى زمونږ نه ډېر مخكې لاړل او ډېر غوره والى يې حاصل كړ.(٢)

**د حضرت عمر او د هغه د خوى او دلور رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ قصه:**

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: ما په كور كې خپل دسترخوان باندې طعام خوړلو چې په دې كې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تشريف راووړ ما هغوى لپاره د مجلس په اول سر كې ځاى خالي كړو هغه هلته كېناسته بيا يې بسم الله وويله او خپل لاس يې مخكې كړو او يوه نوړى يې واخيستله او بيا يې دويمه واخيستله بيا يې وفرمايل چې ما ته په دې كټغ كې غوړوالى معلومېږي چې د غوښې خپل نه دى بلكې جدا غوړي پكې اچول شوي دي ما وويل اې امير المؤمنين! په زه نن بازار ته تللى ووم ځان سره مې دوه درهمه وړي وو زما خيال وو چې زه به ښه او د وازګو والا غوښه اخلم خو هغه ګرانه وه ځكه ما د يو درهم د كمزورى څاروې ارزانه

---

١: اخرجه ابن سعد كذا في المنتخب الكنز (٤/٤١١)

٢: اخرجه عبد بن حميد وابن جرير كذا في المنتخب كذا (٤/٤٠٦)

غوښه واخیستله او د یو درهم مې غوړي واخیستل او په دې کې مې واچول ما خپله خرچ نه ده زیاته کړې ما سوچ وکړ چې دا شان به زما بې بې او بچو کې هریوه ته یو یو هډوکی ملاو شي دا یې چې واوریدل حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل کله چې به هم رسول الله ﷺ ته غوښه او غوړي دواړه راتلل نو یو به یې خوړلو او دویم به یې صدقه کولو دواړه به یې نه خوړل په دې وجه زه هم دا کتغ نشم خوړلې په دې کې غوښه هم ده او غوړي هم ما عرض وکړ چې اې امیرالمؤمنین! دا وخت خو تاسو دا کتغ وخورئ! آئنده کله چې هم غوښه او غوړي ماته ملاو شي نوزه به هم داسې کوم چې یو به خورم او بل به صدقه کوم د دواړو نه به یو کتغ نه جوړوم حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل چې زه دې کتغ خوړلو لپاره بلکل تیار نه یم.(۱)

حضرت ابو حازم رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپلې لور حضرت حفصې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا کره لاړو هغې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته یخه ښوروا او ډوډۍ کېښودله او په ښوروا باندې یې تېل واچول نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل چې په یو لوښي کې دوه کتغه یو ښوروا او بل تېل زه تر مرګه پورې داسې کتغ نشم څښلې.(۲)

**دحضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د طعام ذکر:**

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي، ما د خلافت په زمانه کې د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا عادت وکوت چې هغوی ته ته به یو صاع (درې نیم سېره) کجورې کېښودل شوې نو د هغې نه به یې خوړلې تر دې چې په هغې کې به کومې ردې قسم وې هغه به یې هم خوړلې حضرت سائب بن یزید رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې ما څو ځله د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کره د شپې طعام او خوړلو هغوی غوښه او ډوډۍ وخوړله او بیا به یې خپل لاسونه خپلو پښو باندې راښکل او صفا به یې کړل او وبه یې فرمایل چې دا د عمر او د آل عمر د لاس صفا کولو تولیه ده.(۳)

حضرت ثابت رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې حضرت جارود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کره یو ځل طعام وخوړ کله چې حضرت جارود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د طعام نه فارغ شو نو هغه وویل اې وینځې! لېږه تولیه راوړه! هغه په دې سره لاسونه صفا کول غوښتل نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل پخپلو کناتو خپل لاسونه صفا کړه!(۴)

---

۱: اخرجه ابن ماجة كذا في الكنز (۲/۱۴۲)

۲: اخرجه ابن سعد (۳/۲۳۰)

۳: اخرجه ابن سعد (۳/۲۳۰)

٤: عند الدينوري

**حضرت عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ او خلکو ته ددې آیت[اذهبتم طیباتکم في حیاتکم الدنیا] تذکر**

حضرت عبدالرحمن بن ابو لیلي رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې حضرت عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ ته د عراق نه څه خلک راغلل حضرت عمر په هغوی باندې طعام اوخوړلو نو حضرت عمر داسې او ګڼله چې ګنې دوي کمه وخوړله هغه خلک د ښه طعام عادي وو او د حضرت عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ طعام غټ او ساده وو حضرت عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ وویل اې د عراق والاوو! که چیرې ما غوښتلي نو ما لپاره به هم ښه او نرم خوراکونه تیارېږي څنګه چې ستاسو لپاره تیارولې شي خو مونږ د دنیا شیان کم نه کم استعمالول غواړو دې لپاره چې مونږ ته زیات د ښکو بدله په اخرت کې ملاو شي آیا تاسو اورېدلي نه دي چې الله رب العزت په قرآن کې یو د یو قوم په باره کې داسې فرمایلي دي چې هغوی ته به د قیامت په ورځ وویل شي ، اَذْهَبْتُمْ طَیِّبٰتِكُمْ فِیْ حَیَاتِكُمُ الدُّنْیَا وَاسْتَمْتَعْتُمْ بِهَا(۱)

ترجمه؛ تاسو خپل د مزې شیان پخپله دنیوي ژوند کې حاصل کړی وو .(۲)

حضرت حبیب بن ابي ثابت رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ د خپل یو ملګري نه روایت کوي چې د عراق څه خلک حضرت عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ ته راغلل په هغوی کې حضرت جریر بن عبدالله رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ هم وو حضرت عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ د هغه لپاره یوه لویه پیاله راوړه چې په هغې کې دوډۍ او تېل وو او هغه ته یې وفرمایل چې خورئ! نو هغوی لږه شان وخوړله حضرت عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ پوه شو چې د دوي دا ساده طعام خوښ نه شو په دې حضرت عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ هغوی ته وفرمایل چې تاسو څه کوئ؟ هغه زه وینم تاسو څه غواړئ؟ دا غواړئ! چې رنګ رنګ تراوه، خواږه، ګرم، یخ طعامونه وي او دا ټول خېټو نه ښکته کړی شي او زه داسې کولو ته بلکل تیار نه یم.(۳)

حضرت حمید بن هلال رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې حضرت حفص بن ابي العاص رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ د طعام په وخت د حضرت عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ کره حاضر وو خو هغوی طعام ونه خوړ حضرت عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې ته زمونږ خوراک ولې نه خورې؟ هغه وویل ستاسو طعام سخت او غټ دی زه دا نشم خوړلی زما لپاره ښه او نرم طعام پوخ شوی دی زه چې بېرته لاړم نو هغه به اوخورم حضرت عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ وفرمایل آیا ستا دا خیال دی چې دا زما په

---

۱: سورة احقاف آیت ۲۰

۲: اخرجه ابو نعیم في الحلیة (۱/۴۹)

۳: عند ابي نعیم ایضا (۱/۴۹) کذا في منتخب الکنز (۲/۴۰۵)

وس کې نشته چې زه خپلو سرو ته حکم ورکړم نو هغوی به د چېلۍ وینسته صفا کړي او وریته به یې کړي او هغوی به اوړه د جامې نه چڼ کړي او د هغې نه به نرۍ چاپتې پاخه کړي او هغوی به یو صاع مېوه په دولچې کې واچوئ! او په هغې به اوبه واچوئ! چې د هغې نه د هوسۍ د وینې پشان سور شربت تیار شي؟ حضرت حفص وویل ستاسو دې خبرې اورېدلو سره خو پته ولګېده چې تاسو د ژوند طریقې او د طعام او څښاک قسمونه ښه پېژنئ! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل هو! زه یې پېژنم خو په هغه ذات مې دې قسم وي! چې د چا په قبضه کې زما ساه ده که چېرې د قیامت په ورځ د خپلو نېکو بدله کې مې کمی بد نه ګڼلی نو زه به هم تاسو سره د دې ژوند په مزو کې ضرور شریک شوی واي.(١)

حضرت سالم بن عبد الله رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به فرمایل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زموږ د دې دنیا په مزو هیڅ پرواه نشته زمونږ په وینا د لذتونو دا سامان تیارېدلی شي چې د چېلو وېښته صفا کړی شي او هغه وریت کړی شي او د میدې ښې دودی پخې کړی شي او په دولچې کې مېوه کې اوبه واچول شي او دومره وخت کېښودل شي چې د زرک د سترګو د رنګ پشان صفا ستره شربت تیار شي او بیا مونږ دا ټول شیان اوخورو او څښو. مونږ دا ټول څه کولی شو خو په دې وجه یې نه کوو چې مونږ غواړو چې زمونږ د نېکو بدله په اخرت کې ملاو شي دلته ملاو نشي ځکه چې مونږ د الله پاک ارشاد اورېدلی دی چې: أَذْهَبْتُمْ طَيِّبَاتِكُمْ فِي حَيَاتِكُمُ الدُّنْيَا وَاسْتَمْتَعْتُمْ بِهَا

ترجمه: تاسو خپل د مزې شیان پخپله دنیوي ژوند کې حاصل کړی وو .(٢)

**د ابوموسی اشعري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او بصرې د وفد په باره کې د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قصه:**

حضرت ابو موسی اشعري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: زه د بصرې والاوو وفد سره د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خدمت کې راغلم مونږ به د هغوی په خدمت کې حاضرېدلو مونږ ولیدل چې د هغوی لپاره روزانه یو ماته کړې دودۍ راوړل کېږي او هغه یې کله غوړو سره کله تېلو سره او کله پیو سره خوري کله به په لمر وچې شوې د غوښې حصې هم راوړل شوې چې په اوبو کې به جوشېدلې وې کله مونږ تازه غوښه هم د هغوی مخکې ولیدله خو دېر کم هغوی به مونږ

١: اخرجه ابن سعد وعبد بن حميد كذا في المنتخب (٤/٤٠٢)
٢: عند ابي نعيم في الحلية ١/٤٩

باندې هم دا خوراکونه کول نو يوه ورځ حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مونږ ته وفرمايل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه وينم چې تاسو زما طعام كمزورى گڼئ! او ښه درته نه ښكاري په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! كه چيرې ما غوښتي واي نو زه به تاسو ټولو نه د ښه طعام والا او تاسو ټولو نه زيات د نازونعمت والا واي غور سره واورئ! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه د اوښ د سينې او قُب د غوښې چې د دې دوو ځايونو غوښه د ټولو نه ښه شمارل كيږي نه د وريت شويو غوښو د چپاتو او د رايې د چكنۍ نه بې خبره نه يم خو زه دا قصداً نه استعمالوم ځكه چې ما د الله رب العزت فرمان اوريدلى دى چې هغه يو قوم ته د هغوى په يو غلط كار باندې تنگ وركوي او فرمايي: أَذْهَبْتُمْ طَيِّبَاتِكُمْ فِي حَيَاتِكُمُ الدُّنْيَا وَاسْتَمْتَعْتُمْ بِهَا(١)

ترجمه: تاسو خپل د مزې شيان په خپل دنيوي ژوند كې حاصل كړى وو او د هغې نه مو فائده اخيستې وه.

حضرت ابو موسى خپلو ملگرو ته وويل چې كه چيرې امير المؤمنين سره خبرې وكړئ! چې هغوى ستاسو لپاره بيت المال نه څه طعام وټاكي چې هغه تاسو خورئ! نو دا به غوره وي نو دغو خلكو حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سره خبره وكړه هغوى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې آيا تاسو خپل ځان لپاره هغه طعام نه خوښوئ! كوم چې زه د ځان لپاره خوښوم؟ نو هغو خلكو وويل چې اې امير المؤمنين! مدينه منوره داسې ښار دى چې دلته زمونږ لپاره ژوند تيرول ډير مشكل دى او ستاسو طعام دومره ښه او مزيدار نه دى چې د هغې د طعام لپاره څوك راشي مونږ د تروتازه سيمې اوسيدونكي يو زمونږ اميران داسې دي چې خلک په شوق سره هغوى ته راځي او د هغوى خوراک داسې ښه وي چې ښه خوړلي شي دا يې چې واوريدل نو حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ لږ سر ښكته كړو بيا يې سر اوچت كړو وې فرمايل: زه ستاسو لپاره بيت المال نه روزانه دوه چېلۍ او دوه بورۍ مقرروم سحر يوه چېلۍ او يوه بورۍ پخوئ! بيا يې پخپله هم خورئ! او خپلو ملگرو باندې يې هم خورئ! او بيا حلال شربت را وغواړئ! مخكې يې پخپله وڅښئ! او بيا يې خپل ښي طرف والاوو باندې څښئ! بيا ورسره نزدې والاوو باندې بيا د خپل كار لپاره پاڅئ! او دا شان مابنام دويمه چېلۍ او يوه بورۍ هم پخوئ! پخپله يې هم خورئ! او پخپلو ملگرو باندې يې هم خورئ! په غور سره واورئ! تاسو خلک عامو

---

١: سورة الحقاف آيت٢٠

کورونو ته دومره ولېږئ! چې د هغوی خېټه ډکه شي او د هغوی بال بچ باندې وخورئ! ځکه چې که چېرې تاسو د خلکو سره بداخلاقي وکړه نو دې سره به د هغو خلکو اخلاق ښه نشي او د هغوی د اوږو به طعام انتظام ونشي په الله جَلّ جَلَالُهُ قسم! د دې هر څه باوجود زما خيال دا دی چې د کوم کلي نه روزانه دوه چېلۍ او بورۍ اخيستلې شي هغه زر وران شي.(۱)

**د عتبه بن فرقد او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا قصه:**

حضرت عُتبه بن فرقد رَحِمَهُ اللهُ وايي چې ما د کجورو او غوړو د حلوا ټوکرۍ واخيستلې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ په خدمت کې حاضر شوم هغوی پوښتنه وکړه چې دا څه دي؟ ما وويل دا د طعام څه شی دی چې دامې په دې وجه ستاسو په خدمت کې راوړی دی چې تاسو د ورځې په شروع کې د خلکو په ضرورتونو کې مصروف يئ! نو زما زړه اوغوښتل کله چې تاسو د دې نه فارغ شئ! او کور ته ځئ! نو د دې نه به څه خورئ! نو په دې سره به تاسو ته ان شاء الله طاقت حاصلېږي په دې باندې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ يوه ټکرۍ پرانيسته او وې کتل او وې فرمايل اې عُتبه! زه تا نه په قسم سره پوښتنه چې آيا تا هر مسلمان ته داسې يوه ټوکرۍ حلوا ورکړې ده؟ ما وويل اې اميرالمؤمنين! زه که چېرې د قيس قبيلې ټول مال هم خرچ کړم نو هم داسې نشم کولی چې هر مسلمان ته د حلوا يوه ټوکرۍ ورکړم حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمايل بيا خو ما ته ستا د دې حلوا ضرورت نشته بيا يې يوه لويه پياله راوغوښتله چې په هغې کې د سختې ډوډۍ او سختې غوښې ټکړونه جوړ شوي ثريد وو مونږ دواړو د هغې نه د طعام خوړل شروع کړو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ما سره هغه ډېر په شوق سره خوړ ما به د قُب وازګه اوګڼله يوې سپينې حصې ته به مې لاس منګې کړو نو د هغې د اوچتولو نه پس به پته لګېده چې دا خو د پټې ټوټه ده او ما به د غوښې ټوټه باندې ژوند وهلو خو هغه به دومره سخته وه چې ما به تېرولی نشوه اخر کله چې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ توجه به اخوا دېخوا کېدله نو ما به د هغې غوښې ټوټه د خولې نه راوېستله او د پيالې او دسترخوان په مېنځ کې به مې پټوله بيا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د نبيذ شربت په يو غټ لوښي کې راوغوښتل چې سرکه جوړېدونکې وه او خوند يې ښه نه وو، چې نبيذ د کجورو يا مېوې شربت ته وايي، هغوی ما ته وفرمايل چې او څښه! بيا يې

۱: عند ابن المبارک وابن سعد کذا في الکنز (۴/۴۰۲)

وفرمایل اې عتبه! واوره! مونږ روزانه یو اوښ حلالولو او د هغې وازګه او ښه غوښه بهو نه راتلونکو مسلمانانو باندې خورو. او دا باسي شربت څکه څښي چې دا باسي شربت خېټې ته لاړ شي او دا غوښه ذره ذره کړي او هضمه یې کړي او دا سخته غوښه مونږ ته تکلیف رانکړي.(۱)

**د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خوف کله چې اوبه شات (ګبین) مخلوط راوړل شول:**

حضرت حسن رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د یو سړي کور ته لاړو هغوی تږي شوي وو د هغه سړي نه یې اوبه وغوښتلې هغې شات راوړل حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې دا څه دي؟ هغه وویل چې شات دي هغوی وفرمایل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! چې شات څښل د انسان دنیوي ضرورتونه نه دي بلکې دا خو د مزې اخیستو شی دې له دې وجې نه شات به د هغو شیانو نه نه وي چې د هغې زمانه د قیامت په ورځ حساب اخیستل کیږي.(۲)

حضرت زید بن اسلم رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې یو ځل حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د څښلو اوبه اوغوښتلې یو صاحب په اوبو کې شات ګډ کړل راغی رایې وړل نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل دا خو دې ډېر مزېدار خو زه اورم چې الله رب العزت د یو قوم دا بدي بیانوي چې هغوی پخپلو خواهشاتو پوره کولو کې لګیا شول نو الله پاک فرمایي: أَذْهَبْتُمْ طَيِّبَاتِكُمْ فِي حَيَاتِكُمُ الدُّنْيَا وَاسْتَمْتَعْتُمْ بِهَا(۳)

نو ما ته د دې خبرې وېره ده چې چېرته داسې نه وي چې زمونږ د نېکو بدله مونږ ته په دنیا کې راکړی شي او دا اوبه یې ونه څښلې.(۴)

**جامې، نفقه او دحضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سیرت:**

حضرت عُروه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ایله ښار ته تشریف یوړو او مهاجرین او انصار هم ورسره وو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د مدینې نه کافي اوږد سفر کړی وو له دې وجې نه د مسلسل ناستې د وجې نه د هغوی د زړې جامې والا قمیص د شا لخوا نه شکېدلی وو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه قمیص پادري ته ورکړ او وې فرمایل چې دا وینځه او

۱: اخرجه هناد كذا فى منتخب الكنز (۴/۴۰۴)
۲: اخرجه ابن سعد (۳/۲۳۰) واخرجه ابن عساكر عن الحسن مثله كما فى المنتخب (۴/۴۰۴)
۳: سورة الاحقاف آيت ۲۰
٤: ذكره رزين كذا فى الترغيب (۵/۱۲۸)

دې ته پیوند هم ولګوه! او د هغې پشان یو قمیص یې وګنډلو او د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خدمت کې یې راوړل هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ترې پوښتنه وکړه چې دا څه دي؟ هغه وویل چې دا ستا قمیص دی چې ما ووینځه او پیوند مې ورته اچولی دی او دا دویم قمیص زما طرف نه ستاسو په خدمت کې هدیه دی حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه نوی قمیص ته وکتل او په هغې یې لاس رابنکه هغه نرم او باریک وو بیا یې خپل قمیص واغوسته او هغه یې واپس کړو او وې فرمایل چې دا زوړ قمیص د دې نه زیاته خوله راکاږي ځکه چې دا ډبل دی.(۱)

حضرت قتاده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به د خلافت په زمانه کې داسې د وړی جبه اغوستله چې په هغې کې د څرمنې حصې هم لګېدلې وې او په اوګه باندې یې کوړه کېښودله او خلکو ته به یې طریقه او ادب ښودلو لپاره په بازارونو کې چکر واهه او غورزېدلی، شکېدلي تارونه، رسۍ او د کجورو هډوکي به یې د زمکې نه اوچتول او د خلکو کورونو ته به یې غورزول دې لپاره چې خلک دا په خپل کار راولي.(۲)

حسن رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې یو ځل حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خپل خلافت زمانه کې خلکو ته بیان کول او هغوی یو لنګ تړلی وو چې په هغې کې دولس پیوندونه وو.(۳)

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: ما یو ځل د خلافت په زمانه کې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ولیده چې هغوی د خپلو دواړو اوګو په مینځ کې پاس او لاندې درې پیوندونه لګولي وو.(۴)

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به د خپل ځان بال بچ لپاره د ګذارې قابل طعام اخیستلو په ګرمۍ کې به یې یوه جوړه اغوستله ځینې وخت به یې لنګ وشکېده نو هغه ته به یې پیوند لګولو خو د نوې جوړې اخیستلو وخت راتلو نه مخکې به یې د هغې په ځائ د بیت المال نه بل لنګ نه اخیسته په هغې به یې جوړه د مخکې کال نه هم کمزورې وه حضرت حفصې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا دې باره کې خبره وکړه نو وې فرمایل چې زه د مسلمانانو د مال نه اغوستلو جوړې اخلم او دا زما د ضرورت لپاره کافي دی.(۵)

---

۱: اخرجه الطبراني (۴/۲۰۲) واخرجه ابن المبارک عن عروة عن عامل لعمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بنحوه کما في المنتخب (۴/۴۰۲)
۲: اخرجه الدينوري وابن عساکر
۳عند احمد في الزهد وهناد وابن جرير وابي نعيم کذا في المنتخب (۴/۴۰۵)
٤: عند مالک کذا في الترغيب ٣/٣٩٦
۵: اخرجه ابن سعد کذا في المنتخب ۴/۴۱۱

حضرت محمد بن ابراهيم رَحِمَهُ ٱللَّهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ به روزانه د بيت المال نه د خپل ځان او بال بچ لپاره دوه درهمه خرچه اخيستله.(١)

## د دوهم خليفه حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ زُهد

**د حضرت عثمان رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ خوب، خوراک:**

حضرت عبدالمالک بن شداد رَحِمَهُ ٱللَّهُ وايي چې ما د جمعې په ورځ حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ په منبر باندې اوليدو چې د هغوی رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ په بدن باندې د عدن جوړ شوي غټ لنګ وو چې د هغې قيمت څلور يا پنځه درهمه وو او زېړ بخنی يو کوفي څادر وو د حضرت حسن رَحِمَهُ ٱللَّهُ نه د هغه خلکو په باره کې پوښتنه وکړل شوه کومو به چې په جومات کې د غرمې ارام کولو نو هغه ووېل چې ما حضرت عثمان رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ وليده چې د خپل خلافت په زمانه کې يوه ورځ په جومات کې د غرمې ارام کولو کله چې د خوب نه راپاڅېده نو په بدن يې د ګټکو نښې وې په جومات کې ګټکي خواره شوي وو او خلکو به د هغوی رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ دې ساده او بې تکلفه ژوند باندې حيرانتيا سره ويل چې دا امير المؤمنين دي دا امير المؤمنين دي.(٢)

حضرت شرحبيل بن مسلم رَحِمَهُ ٱللَّهُ وايي چې حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ به خلکو ته د خلافت والا ښه طعام ورکولو او پخپله به کور ته لاړو سرکه او تېل يعنې ساده خوراک به يې خوړلو.

## د څلورم خليفه حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ زُهد

**د حضرت علي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ طعام:**

د قبيله ثقيف يو کس وايي: حضرت علي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ زه د عکبرا علاقې حاکم جوړ کړم او د عراق په دغه علاقه کې مسلمانان نه اوسېدل ما ته حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې د ماسپښين په وخت کې ما ته راشه! زه ورغلم ما ته هلته څوک منع کونکی دربانچي ملاو نه شو حضرت علي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ناست وو او ورسره يو پياله وه او د اوبو يوه کوزه پرته وه هغوی يوه وړه خلته راوغوښتله ما پخپل زړه کې وويل چې دي ما امانت دار ګڼي له دې وجې نه به د دې تيلۍ نه يو قيمتي کاڼي راوکاږي او ما ته به يې راکړي ما ته پته

١: اخرجه ابن سعد كذا في المنتخب (٤/٤١١)
٢: اخرجه ابو نعيم في الحلية (١/٦٠) واخرجه احمد كما في صفة الصفوة (١/١١٦)

نه وه چې په دې تیلۍ کې څه دي؟ په دغه تیلۍ باندې مهر لګېدلی وو هغوی هغه مهر مات
کړ او تیلۍ یې پرانیستله نو په هغې کې ستوان وو نو د هغې نه یې ستوان را وېستل او پیاله
کې یې واچول او اوبه یې پکې واچولې بیا یې هم او څښل او په ما باندې یې هم وڅښل
ما چې دومره سادګي ولیده نو ټینګ نه شوم ما ورېل چې ای امیرالمؤمنین! تاسو په
عراق کې اوسېږئ! او دا خورئ! حالانکه په عراق کې خو د ډېر زیات د طعام شیان دي
په عراق کې اوسېدل او بیا صرف ستوان خوړل ډېره د حیرانتیا خبره ده هغوی ورېل په
الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه د بخل په وجې په دې باندې مهر نه لګوم بلکې زه د ضرورت مطابق
ستوان خورم او مدینې نه یې راغوارم که هم داسې پرانیستي یې پرېږدم نو ما ته خطره ده
چې اخوا دېخوا ونه غورزېږي او وانه لوڅي او هم داسې دا ختم نشي نو زه به بیا د عراق
ستوان جوړوم له دې وجې نه زه دا ستوان دومره سنبال ساتم او زه خپلې خېټې ته د خوراک
لپاره پاک شی اچول غوارم حضرت اعمش رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به
خلکو ته د شپې او د غرمې بنه طعام ورکولو او پخپله به یې یوازې هغه شي خوړ چې هغوی
ته مدینې منورې نه راته.(۱)

**کله چې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته فالوده راوړل شوه:**

د حضرت عبدالله بن شریک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نیکه بیان کوي چې حضرت علي بن ابي
طالب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته یو ځل فالوده راوړلې شوه او د هغوی په مخکې کېښودل شوه نو فالودې
ته مخاطب شو وې فرمایل ای فالودې! ستا خوشبوئي ډېره ښه ده او رنګ دې ډېر ښائسته
دی او خوند دې ډېر مزېدار دی خو زما دا خوښه نه ده چې زما د کوم شی عادت نه دی زه
خپل ځان د هغې عادتي جوړ کړم.(۲)

**د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پرتوګ (لنګ):**

حضرت زید بن وهب رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې یوه ورځ حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مونږ ته بهر راغی
و یو څادر یې اغوستي وو او لنګ یې تړلی وو چې هغې ته یې پیوند لګولی وو خلکو
ورته د دومره ساده جامو اغوستلو باره کې څه ورېل نو وې فرمایل زه دا دوه ساده جامې
ځکه اغوندم چې زه د دې په وجه د تکبر نه بچ شم او په دې کې به مونځ هم غوره وي او

: اخرجه ابو نعيم في الحلية (۱/۸۲)
: اخرجه ابونعيم ايضاً (۱/۸۱) واخرجه ايضا الامام عبدالله بن الامام احمد في زوائده عن عبدالله بن شريک مثله
ما في المنتخب (۵/۵۸)



مؤمن بنده لپاره دا سنت هم دی یا دا چې عام مسلـ
شروع کړي.(۱)
یو صاحب بیان کوي چې ما د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ
علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او فرمایل ما دا پنځه درهمه اخیستلي
که راکوي نو زه به دا په هغه باندې خرڅوم.(۲)
حضرت مجمع بن سمعان تیمي رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې حـ
توره واخیستله او وې فرمایل چې زما نه زما د تور
چېرې لنګ اخیستلو لپاره ما سره څلور درهمه وای نو
حضرت صالح بن ابي الاسود رَحِمَهُ اللَّهُ د یو صاحب نـ
ما ولیده چې یو خر باندې سور دی او خپلې دواړه پښـ
فرمایل به یې زه هغه سړی یم چا چې د دنیا سپکاوی
حضرت عبدالله بن زریر رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې زه د لو
طالب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ورغلم هغوی زمونږ مخکې د بورې
الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تاسو صحیح سلامت ساتي که چېرې
نو ډېره به ښه وای ځکه چې اوس خو الله رب الـ
علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې ای ابن زریر! ما د رسوا
وخت لپاره د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه د مال صرف دوه لوښي پیا
ځان او خپل اولاد لپاره او دویمه پیاله د راتلونکو خلـ

**د حضرت ابو عبیده بن جراح رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زُهد**

حضرت عُروه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: حضرت عمر بن خطـ
جراح رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کره لاړو نو هغه د کجاوې په څادر بانـ
ورکولو والا بوجی نه یې بالښت جوړ کړی دی حضر

۱: اخرجه ابن المبارک کذا في المنتخب (۵/۵۸)
۲: اخرجه البيهقي کذا في منتخب الکنز (۵/۵۸)
۳: اخرجه يعقوب بن سفيان کذا في البداية (۸/۳)
٤: اخرجه ابوالقاسم البغوي کذا في البداية (۸/۵)
اخرجه احمد کذا في البداية (۸/۳)

مؤمن بنده لپاره دا سنت هم دی یادا چې عام مسلمانان به هم داسې ساده جامې اغوستل شروع کړي.(١)

یو صاحب بیان کوي چې ما د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په بدن یو غټ لنګ ولیده حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او فرمایل ما دا پنځه درهمه اخیستلي دي ما ته چې څوک په دې کې یو درهم ګټه راکوي نو زه به دا په هغه باندې خرڅوم.(٢)

حضرت مجمع بن سمعان تیمي رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپله توره واخیستله او وې فرمایل چې زما نه زما د تورې د اخیستلو لپاره څوک تیار دي؟ که چیرې لنګ اخیستلو لپاره ماسره څلور درهمه واي نو ما به دا توره نه خرڅولی.(٣)

حضرت صالح بن ابي الاسود رَحِمَهُ اللهُ د یو صاحب نه نقل کوي چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ما ولیده چې یو خر باندې سور دی او خپلې دواړه پښې یې یو طرفته زوړندې کړی دی او فرمایل به یې زه هغه سړی یم چا چې د دنیا سپکاوی کړی دی.(٤)

حضرت عبد الله بن زریر رَحِمَهُ اللهُ وایي چې زه د لوي اختر په ورځ حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورغلم هغوی زمونږ مخکې د بورې او غوښې حریره کېښوده مونږ ووېل الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تاسو صحیح سلامت ساتي که چیرې تاسو په مونږ باندې وابطخ خوړولي نو ډېره به ښه واي ځکه چې اوس خو الله رب العزت ډېر مال در کړی دی حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې اې ابن زریر! ما د رسول الله ﷺ نه اورېدلی دی چې د خلیفه وخت لپاره د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه د مال صرف دوه لوښې پیالې اخیستل حلال دي یوه پیاله خپل ځان او خپل اولاد لپاره او دویمه پیاله د راتلونکو خلکو ایښودو لپاره.(٥)

### د حضرت ابو عبیده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زهد

حضرت عُروه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ابو عُبیده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کره لاړو نو هغه د کجاوې په څادر باندې ملاست وو او اس ته په کې دانه ورکولو والا بوجۍ نه یې بالښت جوړ کړی دی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمایل چې

---

١: اخرجه ابن المبارک کذا فی المنتخب (٥/٥٨)
٢: اخرجه البیهقی کذا فی منتخب الکنز (٥/٥٨)
٣: اخرجه یعقوب بن سفیان کذا فی البدایة (٨/٣)
٤: اخرجه ابوالقاسم البغوي کذا فی البدایة (٨/٥)
اخرجه احمد کذا فی البدایة (٨/٣)

ستا ملګرو کوم کورونه او سامانونه جوړ کړل هغه تا ولې جوړ نکړل هغه وویل اې امیرالمؤمنین! قبر ته رسېدلو لپاره هم دا سامان کافي دی. او د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوي په حدیث کې دا دي کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ملک شام ته لاړو نو خلکو او د هغه ځای سردارانو د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې زما ورور چېرته دی؟ خلکو پوښتنه وکړه چې هغه څوک دی؟ هغوی وفرمایل چې حضرت ابوعبیده! خلکو وویل چې هغه به اوس تاسو ته راشي نو حضرت ابوعبیده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کله چې راغی نو د سورلی نه راکوز شو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورله غاړه ورکړه بیا یې د هغه کور ته تشریف یوړو او هغوی ته په کور کې صرف دا شیان په نظر راغلل یوه توره، یو ډال او یوه کجاوه. بیا یې د تېر شوی حدیث پشان مضمون ذکر کړ.(۱)

## د حضرت مصعب بن عُمیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زهد

**د هغه په باره کې دحضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حدیث او درسول الله ﷺ قول:**

حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: زه د یخنۍ په موسم کې د سحر په وخت کې له خپل کور نه ووتلم وږي شوي هم ووم او د لوږې په وجه مې د بدن حالت هم ډېر خراب و، یخنۍ هم تنګولم، مونږ سره بغیر رنګ څرمنه هم پرته وه چې د هغې نه لږ شان بوي هم راتلو هغه مې پرېکړه، خپله غاړه کې مې واچوله او خپلې سینې سره مې وتړله د دې لپاره چې په دې سره به لږ شان ګرموالي حاصل شي په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! په کور کې زما د طعام څه شی نه وو او که چېرې د رسول الله ﷺ په کور کې د خوراک څه شي هم واي نو هغه به ما ته حاصل شوی وای هلته هم څه نه وو زه د مدینې منورې یو طرفته روان شوم هلته یو یهودي په خپل باغ کې وو ما د دېوال په سوري کې سر ورښکاره کړ هغه وویل چې اې اعرابي! څه خبره ده؟ په مزدورۍ باندې کار کوې؟ یوه بوقه وېستلو باندې یې د کجورې اخیستلو لپاره تیار یې؟ ما وویل او د باغ دروازه بېرته کړه هغه دروازه بېرته کړه زه دننه لاړم او بوقې مې راوېستلې او هغه به ما ته په هره یوه بوقه باندې یوه کجوره راکوله تر دې چې زما لاس د کجورو نه ډک شو او ما وویل چې اوس زما لپاره دومره کجورې کافي دی بیا مې هغه کجورې وخوړلې او بېدونکې اوبو سره مې خوله ولګوله ومې څښلې بیا زه د رسول الله ﷺ په

---

۱: اخرجه ابونعیم فی الحلیة (۱/۱۰۱) واخرجه الامام احمد وایضا نحوه حدیث معمر کما فی صفة الصفوة (۱/۱۴۳) وابن المبارک فی الزهد من طریق معمر نحوه کمافی الاصابة (۲/۲۵۳)

خدمت کې راغلم او په جومات کې ورسره کېناستلم رسول الله ﷺ د خپلو صحابه وو یو جومات سره ناست وو په دې کې حضرت مصعب بن عمیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپل پیوند والا څادر اغوستي راغی کله چې رسول الله ﷺ ولیده نو د هغه د نازو نعمت والا زمانه وریاده شوه او اوس د هغه موجوده حالت د فقیرۍ او لوږې والا حالت هم په نظر راتلو په دې باندې رسول الله ﷺ د سترګو نه اوښکې راغلې او وې ژړل بیا یې وفرمایل چې نن خو د لوږې او فقیرۍ زمانه ده خو ستاسو به هغه وخت څه حال وي کله چې په تاسو کې هر یو سړی یوه جوړه اغوندي او ماښام بله او ستاسو په کورونو داسې پردې راځوړندې شي څنګه چې په کعبه باندې ځوړندولې شي مونږ وویل بیا خو به مونږ په هغه زمانه کې زیات غوره یو د ضرورت په کارونو کې به نور خلک لګیا کوو زمونږ ضرورت به نه وي او مونږ به د عبادت لپاره فارغ شو رسول الله ﷺ وفرمایل نه! نن تاسو د هغه ورځې نه غوره یئ! چې د دین کار تاسو د تکلیفونو او مشقتونو سره کوئ!(١)

**هغه مشکلات چې حضرت مصعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه د اسلام نه وروسته پېښ شول:**

حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: رسول الله ﷺ حضرت مصعب بن عمیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مخامخ راتلونکي ولیده هغه د ګډ څرمن په ملا باندې تړلې وه په دې باندې رسول الله ﷺ وفرمایل چې دې سړي طرفته وګورئ! چې د ده زړه الله رب العزت نوراني جوړ کړی دی ما د ده هغه زمانه هم لیدلې ده چې ده مور پلار به ده باندې د ټولو نه ښه طعام او د ټولو نه ښه څښاک کولو او ما په ده باندې هغه جوړه هم لیدلې ده چې کومه ده په دوه سوه درهمه اخیستې وه اوس د الله رب العزت او د هغه د رسول الله ﷺ محبت د ده د لوږې او فقیرۍ دا حال کړو چې تاسو وینئ!(٢)

حضرت زبیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: یو ځل رسول الله ﷺ په قُباء کې ناست وو او څو صحابه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ هم ورسره وو په دې کې حضرت مُصعب بن عمیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راښکاره شو هغه دومره وړوکي څادر په سر کړی وو چې د هغه ستر یې هم نه پټولو ټولو صحابه وو سرونه ښکته کړل حضرت مصعب بن عمیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نزدې راغی سلام یې وکړ صحابه وو د سلام ځواب ورکړ رسول الله ﷺ د هغه ښه تعریف وکړ او وې فرمایل چې ما په مکه مکرمه کې

١: اخرجه الترمذي وحسنه وابو يعلي وابن راهويه كذا في الكنز (٣/٣٢١) وقال الهيثمي (١٠/٣١٤) رواه ابويعلي وفيه رواه لم يسم وبقية رجاله ثقات.

٢: عند الطبراني والبيهقي كذا في الترغيب (٣/٣٩٥) واخرجه ايضا الحسن بن سفيان وابو عبدالرحمن اسلمي والحاكم كما في الكنز (٧/٨٧) وابونعيم في الحلية (١/١٠٨) عن عمر نحوه.

ليدلي وو چې د ده مور او پلار د ده ښه اکرام کولو او ده ته به يې هر قسمه نعمتونه ورکول او ر
قريشو هيڅ يو ځوان د ده پشان نه ؤو خو بيا د ده د الله جَلَّجَلَالُهُ رضامندۍ د لاسته راوړلو او د
رسول الله ﷺ د کومک کولو لپاره دا هر څه پرېښودل، په غور سره يې واورئ! لږه موده به
تېره شي چې الله رب العزت به تاسو ته روم او فارس فتح شوي درکړي او دنيا به دومره زياته
شي چې په تاسو کې به هر سړی يوه جوړه سحر اغوندي او يوه جوړه ماښام او سحر به هم
لويه پياله د طعام ستاسو مخې ته راوړل شي او د ماښام به هم لويه پياله راوړل شي صحابه وو
عرض وکړ اې د الله جَلَّجَلَالُهُ رسوله! مونږ نن غوره يو که په هغه ورځ به غوره شو؟ هغوی ﷺ
وفرمايل نه! نن تاسو غوره يئ! په غور سره يې واورئ! چې تاسو د دنيا په باره کې هغه څه
وپېژنئ! چې زه پېژنم نو ستاسو طبيعتونه به د دنيا نه بلکل واوړي.(۱)
حضرت خباب رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ فرمايي: حضرت مصعب رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ په خپل شهادت باندې صرف
يوه جامه پرېښې وه چې دومره وړه وه کله چې به يې په هغې سره د هغه سر پټولو نو پښې به
يې ښکارېدلې او کله چې به يې ورله پښې پټولې نو سر به يې ښکارېده اخر رسول الله ﷺ
وفرمايل چې په پښو يې ورته سرګړي واښه واچوئ!(۲)
**د حضرت عثمان بن مظعون رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ زهد او د هغه لباس**
حضرت ابن شهاب رَحِمَهُ ٱللَّهُ وايي چې يو ځل حضرت عثمان بن مظعون رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ جومات ته
داخل شو هغوی يو څادر په سر کړی وو چې څو ځايه شکېدلی ؤو چې په هغې باندې يې د
څرمنې پيوند لګولی و دا يې چې وليده نو د رسول الله ﷺ پرې د پر رحم راغی او زړه يې نرم
شو او د هغوی ﷺ په وجه د صحابه وو زړونه هم نرم شول بيا يې وفرمايل چې په هغه ورځ
به ستاسو څه حال وي چې په کومه ورځ به چې په تاسو کې هر سړی يوه جوړه سحر اغوندي
او يوه جوړه ماښام. او د خوراک يوه لويه پياله به ستاسو مخکې کېښودل شي او بله به
اوچتولی شي او تاسو به په کورونو باندې داسې پردې راز وړوندې کړئ! څنګه چې په
کعبه باندې راځوړندولې شي صحابه وو عرض وکړ مونږ خو غواړو چې داسې وشي او
مونږ ته هم فراخي او اسانتيا حاصله شي رسول الله ﷺ وفرمايل چې داسې به ضرور کېږي

۱: عند الحاكم (۳/۲٦۸)
۲: قال في الاصابة (۳/۴۲۱) وفي الصحيح.

خو تاسو نن د هغې ورځې نه غوره يئ! چې د دين كار په مجاهدو سره كوئ!(١)

**د حضرت عثمان بن مظعون رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفات:**

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: په كومه ورځ چې حضرت عثمان بن مظعون رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفات شو په هغه ورځ رسول الله ﷺ هغه ته تشريف يوړو او په حضرت عثمان باندې داسې ورښكته شو چې ګويا هغه ته وصيت كوي بيا يې سر اوچت كړو نو صحابه وو د هغوى په سترګو كې د ژړا اثر وليده هغوى پرې دوباره ورښكته شو بيا يې سر اوچت كړو نو دې ځل په ژړا په نظر راغى په دريم ځل پرې بيا ورښكته شو بيا يې سر اوچت كړو نو په دې ځل رسول الله ﷺ سلګى وهلې چې په دې سره صحابه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ پوه شول چې هغه وفات شوى دى په دې صحابه كرام رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ هم په ژړا شول نو رسول الله ﷺ وفرمايل صبر وكړئ! دا په آواز سره ژړل د شيطان د طرفنه دى الله جَلَّ جَلَالُهُ نه ببښنه وغواړئ! بيا حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته مخاطب شو وې فرمايل اې ابو السائب! ته غم مكوه! ته د دنيا نه لاړې او تا د دنيا نه هيڅ وانه خيستل.(٢)

په يو روايت كې دا دى چې رسول الله ﷺ د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د وفات نه پس هغه مخاطب كړو او وې فرمايل اې عثمانه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ! الله جَلَّ جَلَالُهُ دې په تا رحم وكړي نه تا د دنيا نه څه فائده واخيسته او نه دنيا تا ته راغله.(٣)

## د حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زُهد

**كله چې حضرت سلمان فارسي دطعام په خوړلو مجبور شو!**

حضرت عطيه بن عامر رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې يو ځل حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وليده چې ډوډى يې خوړله هغه ته د زيات طعام د خوړلو وويل شو نو هغوى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې زما لپاره هم دا بس ده زما لپاره هم دا كافي ده چې ما د رسول الله ﷺ نه دا ارشاد اورېدلى دى چې په دنيا كې زيات په ډكه خېټه خوړونكي به د قيامت په ورځ زيات اوږې وي اې سلمانه! دنيا د مؤمن لپاره جېل خانه ده او د كافر لپاره جنت چې مؤمن د الله رب العزت د

١: اخرجه ابو نعيم في الحلية

٢: اخرجه الطبراني قال الهيثمي (٩/٣٠٣) ورواه الطبراني عن عمر بن عبدالعزيز بن مقلاص عن ابيه ولم اعرفهما وبقية رجاله ثقات الذهبي واخرجه ابو نعيم في الحلية (١/١٠٥) وابن عبدالبر في الاستيعاب (٣/٨٧) عن ابن عباس من غير طريق عمر بن عبدالعزيز عن ابيه نحوه.

٣: اخرجه ابو نعيم ايضا عن عبدربه بن سعيد المدني مختصراً.

احکامو پابند ژوند تېروي او کافر پخپله خوبنه ژوند تېروي.(۱)

**کله چې حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ امیر ؤ:**

حضرت حسن رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي چې حضرت سلمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته به د بیت المال نه پنځه زر وظیفه ملاوېدله او هغه تقریباً د دېرشو زرو مسلمانانو امیر وو د هغوی یوه چُغه وه چې هغې څه حصه به یې لاندې خوروله او څه به یې پورته اغوستله او هم دغه چُغه به یې اغوستله او خلکو ته به یې بیان کولو کله چې به ورته وظیفه ملاوېدله نو هغه به یې هم په هغه وخت کې مخکې خرچ کوله د هغې نه به یې ځان سره څه نه ساتل او پخپل لاس به یې کجورو د پانو نه ټوکرې جوړولې او د هغې په ګټه به یې ګذاره کوله.(۲)

**هغه څه چې د سلمان فارسي او حذیفه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا په مینځ کې پېښ شول:**

حضرت اعمش رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي چې ما د خلکو نه دا قصه واورېدله چې حضرت حُذیفه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حضرت سلمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته دا وفرمایل چې اې ابو عبد الله! (دا د حضرت سلمان کنیت دی) آیا زه ستا لپاره یوه کمره جوړه کړم؟ حضرت سلمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ باندې دا خبره بده ولګېده نو حضرت حُذیفه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وویل لږ صبر خو وکړه! چې زه ستا لپاره څنګه کوټه جوړول غوارم؟ زه ستا لپاره داسې کوټه جوړول غوارم کله چې ته په هغې کې څملې نو ستا سر به یو دېوال ته لګېږي او پښې به دې بل دېوال ته لګېږي او کله چې ودرېږې نو سر به دې چت سره لګېږي حضرت سلمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وویل چې داسې معلومېږي چې ته خو زما په زړه کې اوسېږې یعنې اوس دې زما د زړه خبره وکړه!(۳)

**د حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بله قصه:**

حضرت مالک بن انس رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي چې حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ به د یوې ونې سوري ته کېناسته او د مسلمانانو اجتماعي کارونه به یې پوره کول او سوري به چې چېرته تاوېدو نو خپله به هم بنویېدلو اخوا کېده دې کار کولو لپاره د هغه څه کور نه وو یو سړي ورته وویل چې آیا زه ستا لپاره یوه کمره نه جوړوم؟ چې په ګرمۍ کې د هغې په سوري کې اوسېږې! او په یخنۍ کې په هغې کې ځان د یخنۍ نه بچ کوې؟ حضرت سلمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ

---

۱: اخرج ابونعیم فی الحلیة (۱/۱۹۸) واخرجه العسکري فی الامثال نحوه کما فی الکنز (۷/۴۵)

۲: اخرجه ابونعیم فی الحلیة (۱/۱۹۷) واخرجه ابن سعد (۴/۶۲) عن الحسن بنحوه.

۳: اخرجه ابونعیم فی الحلیة (۱/۲۰۲)

ورته وویل چې هو! جوړه یې کړه! کله چې هغه سړی شا کړه او روان شو نو حضرت سلمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته په زوره اواز وکړ او وې ویل چې څنګه کمره به جوړوې؟ هغه سړي وویل چې داسې کمره به جوړوم چې که چېرې تاسو په هغې کې اودرېږئ! نو ستاسو سر به د هغې د چت سره ولګیږي او که تاسو پکې څملئ! نو ستاسو پښې به دېوال سره ولګیږي حضرت سلمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل بیا صحیح ده. (۱)

# د حضرت ابوذر غفاري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زُهد

**هغه وخت چې په ربذه کې ؤ:**

حضرت ابو اسماء رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې زه حضرت ابوذر غفاري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ورغلم په دغه وخت کې هغه په ربذه علاقه کې وو هغه سره یوه توره ښځه ناسته وه چې وېښته یې خواره واره وو په هغې باندې نه د ښایست څه اثر وو او نه د خوشبویۍ. حضرت ابوذر غفاري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل تاسو نه ګورئ! چې دا توره ښځه ما ته څه وایي؟ ما ته دا وایي چې عراق ته لاړ شه! او هلته اوسېږه! کله چې زه عراق ته لاړ شم نو دهغه ځای خلک په خپله دنیا راواخلي ما ته به راغونډ شي ځکه چې زه د رسول الله ﷺ د لویو صحابه وو نه یم له دې وجې نه به د هغه ځای خلک ما ته ډېرې هدیې راکړي او دا شان به ما سره دنیا زیاته شي او د هغوی کارونه به هم چې له هغې وجې به د عباداتو او عملونو وخت کم شي او زما کلک دوست حضرت محمد ﷺ زما نه دا وعده اخیستې ده چې د پُل صراط نه مخکې یوه ښویېدونکې لاره ده کله چې مونږ په هغې باندې تېرېږو چې زمونږ بوج دومره سپک او کم وي چې مونږ هغه او چت کړی شو دا زمونږ د نجات لپاره زیاته غوره ده په نسبت ددې چې مونږ په هغه لاره باندې تېر شو او زمونږ بوج ډېر زیات وي.(۲)

حضرت عبدالله بن خراش رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې ما حضرت ابوذر غفاري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په ربذه کلي کې اولیدو چې هغه خپل یو تور څپر لاندې ناست دی او دغه څپر د لاندې د هغه توره ښځه ناسته ده او هغه د بورۍ په یوه ټوټه باندې ناست دی هغه ته عرض وکړل شو چې ستاسو اولاد ژوندی نه پاتې کېږي هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ شکر دی چې هغه

---

۱: عند ابن سعد (۴/٦٣) عن معن

۲: اخرجه احمد قال في الترغيب (۵/۱۹۳) رواه احمد ورواته رواة الصحیح اه واخرجه ابونعیم في الحلیة (۱/۱٦۱) عن ابي اسماء وابن سعد (۴/۷۴) نحوه.

دوي په دې فاني کور کې اخلي او تل پاتې کېدونکي کور کې به يې په وخت د ضرورت مونږ ته واپس کوي او هغه بچي به هلته پکار راځي بيا ورته ملګرو عرض وکړ چې که چېرې تاسو د دې ښځې نه پرته بله ښايسته ښځه کړې واي نو ښه به وه وې فرمايل چې زه د داسې ښځې سره واده وکړم چې هغې سره ما کې عاجزي وي او دا ماته د دې نه زياته خوښه ده چې زه داسې ښځې سره واده وکړم چې په هغې سره ما کې لويي پيدا شي بيا ورته ملګرو ووېل چې تاسو د دې نه زياته نرمه بستره اخيستې وې وې فرمايل اې الله جَلَّ جَلَالُهُ مغفرت مې وکړې او کوم څه چې تا زا کړی دی څومره مو چې خوښه وې له هغو نه يې واخلئ!(۱)

**د سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روزي اوطعام:**

د حضرت ابراهيم تيمي رَحِمَهُ اللهُ پلار محترم وايي چې حضرت ابوذر غفاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته چا ووېل چې څنګه فلانو فلانو کسانو جايېداد جوړ کړی دی تاسو هم د هغوی په شان جايداد ولې نه جوړوئ؟ وې فرمايل چې زه مالداره جوړ شم نو څه به وکړم؟ زما لپاره خو روزانه د اوبو ياد پيو يو ګوټ او هره هفته د غنمو يو قفيز (دا دې وې پيمانې نوم دی چې د دې مقدار په هره علاقه کې مختلف وي مصر کې قفيز شپاړس کيلو ګرام دي) کافي دی د ابو نعيم په يو روايت کې دي چې حضرت ابوذر غفاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې زما طعام د رسول الله ﷺ په زمانه کې يو صاع وو زه تر مرګه پورې د دې نه زيات نشم کولی.(۲)

## د حضرت ابوالدرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زُهد

**تجارت پرېښودل او عبادت کول:**

ابوالدرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: زه د رسول الله ﷺ د بعثت نه مخکې سوداګر ووم کله چې رسول الله ﷺ ته نبوت ورکړې شو نو ما د تجارت او عبادت جمع کول اوغوښتل ليکن داسې مې په صحيح طريقه ونکړای شو ځکه مې تجارت پرېښودلو او عبادت طرفته متوجه شوم.(۳)

**د زهد او بې رغبتي سبب:**

د حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د مخکې حديث په شان حديث نقل دی او په هغې کې دا

---

۱: اخرجه ابونعيم فى الحلية ۱/۱٦۰ واخرجه الطبرانى عن عبدالله بن خراش نحوه قال الهيثمى ۹/۳۲۱ وفيه موسى بن عبيدة وهو ضعيف.

۲: اخرجه ابونعيم ۱/۱٦۲

۳: اخرجه الطبرانى قال الهيثمى ۹/۳٦۷

هم زيات دي چې هغوی دا هم وفرمايل چې په هغه ذات مې دې قسم وي چې د هغه په قبضه کې زما ساه ده نن زما دا خبره هم خوښه نه ده چې د جماعت په دروازه باندې زما دوکان وي او د جمعې يو لمونځ هم زما نه فوت نه شي او زما د دغه دوکان روزانه څلوېښت ديناره ګټه وي چې هغه ټوله د الله جَلَّجَلَالُهُ په لار کې صدقه کوم د هغوی نه چا پوښتنه وکړه چې تاسو ته دا ولې ناخوښه ده؟ وې فرمايل د حساب د سختۍ د وجې نه.(١)

حضرت ابو الدرداء رَضِيَٱللَّهُعَنهُ فرمايي: زه په دې خبره نه خوشحاليږم چې زه د جماعت دروازې سره ولاړ يم او اخيستل خرڅول کوم او روزانه ما ته د دې نه درې سوه درهمه ګټه وي او زه ټول مونځونه په مسجد کې جمع سره اداء کوم زه دا نه وايم چې الله رب العزت خرڅول نه دي حلال کړي او سُود يې حرام کړی دی بلکې زه غواړم چې زه په هغو خلکو کې شم چې هغوی تجارت او خرڅول د الله جَلَّجَلَالُهُ د ياد نه نه شي غافل کولی .(٢)

حضرت خالد بن حُدير اسلمي رَحِمَهُٱللَّهُ وايي چې زه حضرت ابو الدرداء رَضِيَٱللَّهُعَنهُ ته ورغلم د هغوی د لاندې د څرمن يا د وړۍ بستره وه او هغې د پاسه د وړۍ څادر وو او څرمنې پنې يې وې او هغه بيمار وو او ډېره خوله پرې راغلې وه ما ورته وويل چې که تاسو غوښتې واې نو ښکُلې بستره باندې به دې دسپينو زرو والا پوښ خپور لی وي او زعفراني څادر به دې اغوستلي کوم به چې امير المؤمنين تاسو ته رالېږل هغوی وفرمايل چې زمونږ يو کور دی چې هلته مونږ روان يو او هم هغه لپاره عمل کوو چې څومره مال راځي ټول خلکو ته ورکوو دې لپاره چې مخکې کور يعنې اخرت کې پکار راشي حضرت حسان بن عطيه رَحِمَهُٱللَّهُ وايي چې حضرت ابو الدرداء رَضِيَٱللَّهُعَنهُ سره څه ملګري مېلمانه شول نو هغه پرې طعام او خوړلو او د هغوی مېلمستيا يې وکړه خو په کور کې يې سامان او بسترې وغيره کمې وې چې د هغې په وجه څو ملګرو يې په هغه څادر باندې شپه تېره کړه چې د زين د لاندې د اس په شا باندې اچولې شي او څه پخپلو جامو باندې چې څنګه وي هغسې ويده شول کله چې حضرت ابو الدرداء رَضِيَٱللَّهُعَنهُ هغوی ته سحر راغی نو هغه معلومه کړه چې زما دا مېلمانه د بسترو د نشتوالي په وجه څه محسوسيږي نو وې فرمايل چې زمونږ يو

---

١: اخرجه ابونعيم في الحلية ١/٢٠٩ وهكذا اخرجه ابن عساكر كما في الكنز ٢/١٤٩

٢: عندابي نعيم ايضا من طريق آخر

کور دی مونږ یې د هغې لپاره جمع کوو او مونږ به واپس هلته ځو له دې وجې نه ځومره مال چې راځي ټول په خلکو باندې خرچ کوو خپل هیڅ نه جوړوو.(۱)
حضرت محمد بن کعب رَحِمَهُ ٱللَّهُ وایي چې څه خلک د سختې یخنۍ په شپه د حضرت ابوالدرداء رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ میلمانه شول حضرت ابوالدرداء رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ خو هغوی ته ګرم طعام ولیږه خو بړستنې یې راونه لیږلې په هغوی کې یو سړي وویل چې هغه خو زمونږ لپاره طعام را اولیږلو خو د یخنۍ ځرې کولو انتظام یې اونه کړو له دې وجې نه دی سخته یخنۍ کې د طعام خوړلو څه مزه رانغله زه خو به دا خبره حضرت ابوالدرداء رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ته خامخا کوم بل ورته وویل چې پرېږده! مه ورته وایه! خو هغه ونه منله او حضرت ابوالدرداء رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ له لاړه کله چې هغه لاړو او دروازې سره ودرېدو نو هغه ولیدل چې حضرت ابوالدرداء رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ناست دی او د هغه بي بي په بدن باندې معمولي شان جامې دي دا یې چې ولیدل نو هغه بېرته د تګ اراده وکړه او حضرت ابوالدرداء رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ته یې وویل زما خیال دی چې دا شپه اسو هم زمونږ پشان بې بړستنې تېره کړې ده حضرت ابوالدرداء رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې زمونږ یو کور دي چې هلته زمونږ تلل دي مونږ خپلې ټولې بسترې او بړستنې د مخکې نه هلته لیږلې دی که د هغې نه څه شی تاسو ته دلته حاصلیدلی نو مونږ به هغه تاسو ته خامخا لیږلي وې زمونږ په مخکې یو دېر سخت کنډو دی چې په هغې باندې ختل دېر مشکل دي د سپک بوج والا په هغې باندې تېرېدونکی د زیات بوج والا نه غوره دی پوه شوې زه تا ته څه وایم؟ هغه وویل هو! پوه شوم.(۲)

**هغه څه چې دده او عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُمَا تر مینځ پېښ شول:**

دامیر د ژوند معیار په لوړولو د انکار کولو په باب کې داسې واقعه تېره شوې ده چې حضرت عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ حضرت ابوالدرداء رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ کره لاړو نو حضرت عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ دروازې ته دیکه ورکړه نو دهغې ګنډه نه وه مونږ دننه لاړو نو په کمره کې تیاره وه حضرت عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ هغه د تیارې په وجه لټولو تر دې چې د هغوی رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ لاس د ابوالدرداء رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ سره ولګېده بیا یې د هغه تکیه لټوله نو هغه د زل کمبل وه بیا یې د هغه توشکه وکتله نو هغه ګټکې وو بیا یې د هغه جامې وکتلې نو هغه نري شان څادر وو

---

۱: اخرجه ابونعيم في الحلية (۱/۲۲۲)
۲: عنداحمد كذا في صفة الصفوة (۱/۲٦۳)

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمايل الله جَلَّ جَلَالُهُ دې په تا باندې رحم وكړي آيا ما په تا باندې فراخي نه ده كړې؟ او آيا تا سره فلانې فلانې احسان نه دې كړې؟ حضرت ابوالدرداء رَضِيَ اللهُ عَنهُ وويل اې عمره! آيا تاسو ته هغه حديث ياد نه دى چې مونږ ته رسول الله ﷺ بيا كړى وو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ پوښتنه وكړه چې كوم حديث؟ هغه وويل چې رسول الله ﷺ وفرمايل چې په تاسو كې د يو كس سره د ژوند تيرولو لپاره دومره سامان په كار دى څومره چې يو سور سره د سفر سامان وي حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمايل او ياد دى حضرت ابوالدرداء رَضِيَ اللهُ عَنهُ وويل اې عمره! د رسول الله ﷺ نه وروسته مونږ څه وكړل؟ بيا دواړو يو بل ته د رسول الله ﷺ خبرې يادولې او ترسهاره يې ژړل.

## د حضرت مُعاذ بن عفراء رَضِيَ اللهُ عَنهُ زُهد

**د جامو په باره كې دهغه او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا واقعه:**

د حضرت ابو ايوب رَضِيَ اللهُ عَنهُ غلام حضرت افلح رَحِمَهُ اللهُ بيان كوي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ حكم وركړ او د اهل بدر لپاره يې په خاصه توګه سره د ډېرې ښې جامې تيارولې بيا به يې د هغې نه جوړې كړې او بدر والاوو ته به يې ليږلې نو هغوى حضرت معاذ بن عفراء رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته د هغې يوه جوړه ولېږله حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنهُ ماته وويل چې اې افلح! دا جوړه خرڅه كړه ما هغه جوړه خرڅه كړه ما هغه جوړه په يو نيم زر درهم خرڅه كه نو هغوى وفرمايل چې لاړ شه! په دې يو نيم زر درهم زما لپاره غلام واخله نو ما پنځه غلامان واخيستل رامې وستل نو هغه يې چې وليدل نو وې فرمايل چې كوم سړى د يو نيم درهم پنځه غلامان واخلي هغه ازادولي شي هغه د دې قيمت دوه جامې لنګ او څادر اغوندي هغه ډېر بېوقوف دي اې غلامانو! ځئ! تاسو ټول ازاد يئ! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته دا خبره ورسېده چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ حضرت معاذ ته كومې جوړې ولېږې هغه يې نه اغوندي نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د هغه لپاره د سلو درهمو يوه غټه جوړه وګنډله او هغه ته يې ولېږله كله چې قاصد هغه جوړه ورله يوړه نو حضرت معاذ وفرمايل چې زما خيال دا دى چې دا جوړه يې ما ته نه ده رالېږلې هغه قاصد وويل نه! هم تاسو ته يې رالېږلې ده هغه دغه جوړه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته يووړه او وې ويل اې امير المؤمنين! آيا تاسو دا جوړه رالېږلې ده هغوى وفرمايل چې هو! ما درلېږلې ده مونږ به مخكې تا ته هغه قيمتي جوړو نه درلېږلې كومې به چې تاسو او ستاسو بدري ورونو لپاره جوړولې شوې خو ما ته پته ولګېده چې ته دغه نه

اغوندې ځکه مې دا ځل معمولي جوړه در اولېږله هغه وويل چې اې امير المؤمنين! زه اګر چې هغه جوړه نه اغوندم خو زه غواړم چې تاسو سره کوم غوره شی دی د هغې نه ما ته ملاو شي نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورله د مخکې پشان بنه جوړه ورکړه.(۱)

## د حضرت لجلاج غطفاني رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زُهد

**د اسلام په ابتداء کې د مړېدلو نه ممانعت کول:**

حضرت لجلاج غطفاني رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: د کله نه زه د رسول الله ﷺ په لاس باندې مسلمان شوی يم کله هم ما په مړه خېټه خوراک نه دی خوړلی بس په قدر د ضرورت خوراک او څښاک کوم امام بيهقي د دې نه پس نور روايت کړی دی چې هغه شپږ شلې کاله ژوندی وو پنځوس کاله په جاهليت کې او اويا کله په اسلام کې.(۲)

## د حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زُهد

حضرت حمزه بن عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به هغه وخت خوارک خوړ کله چې به ورسره د خوراک والا بل څوک هم وو او کله چې به يې خوراک خوړ نو خوراک به چې هر څومره زيات وو نو په مړه خېټه به يې نه خوړو نو يو ځل حضرت ابن مطيع رَحِمَهُ اللهُ د هغه د مريضۍ د پوښتنې لپاره راغی نو هغه وکتل چې بدن ډېر کمزوری شوی دی نو هغوی بي بي حضرت صفيه رحمها الله ته يې وويل آيا ته د ده په بنه شان پالنه کوې؟ که چېرې ته د ده پالنه په بنه شان وکړې نو کېدی شي چې دا کمزوري يې ختمه شي او څه بدن يې جوړ شي له دې وجې نه ده لپاره بنه طعام تياري په خاص طور سره اهتمام کوه! حضرت صفيې رحمها الله وويل چې مونږ خو هم داسې کوو خو دې خپل خوراک ته ټول کور والا او د بهر ټول حاضر خلک راغواړي او ټول طعام په نورو خلکو باندې خوروي او پخپله ډېره کمه خوري لهذا هم ته په دې باره کې ده سره خبره وکړه! نو په دې باندې حضرت مطيع رَحِمَهُ اللهُ وويل چې اې ابوعبدالرحمن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ! (دا د هغه کُنيت دی) که چېرې تاسو بنه طعام خورئ! نو په دې سره به ستاسو بدني کمزوري لرې شي نو هغوی وفرمايل چې اته کاله پرله پسې داسې تېر شوي دي چې ما چېرې هم په مړه خېټه طعام نه دی خوړلی يا به مې

---

۱: اخرجه عمر بن شبة كذا في صفة الصفوة ١/١٨٨

۲: اخرجه الطبراني باسناد لا باس به كذا في الترغيب (٣/٤٢٣) واخرجه ابو العباس السراج في تاريخه والخطيب في المتفق كما في الاصابة (٢/٣٢٨) وابن عساكر كما في الكنز (٧/٨٦)

صرف يو ځل په مړه خېټه خوړلی وي اوس ته غواړې چې زه په مړه خېټه طعام خورم هر کله چې د خر د تندې هومره لږ غوندې عمر پاتې شوی دی.(۱)

حضرت عمر بن حمزه بن عبد الله رَحِمَهُ ٱللَّهُ وايي چې زه خپل پلار سره ناست ووم چې په دې کې يو سړی تېر شو او وې ويل چې تاسو ما ته ووايئ! چې په کومه ورځ ما تاسو لره د حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ سره په جُرف نومي ځائ کې په خبرو کولو ليدلي وئ! تاسو هغه ته څه ويلي وو؟ هغه ويل چې ما ورته ويلي وو چې اې ابو عبدالرحمن! ستاسو بدن ډېر کمزوری شوی دی او عمر دې ډېر زيات شو ستاسو په مجلس کې کېناستونکي نه ستاسو حق پېژني او نه ستاسو مقام! تاسو د دې ځای نه واپس کور ته لاړ شئ! او خپل کور والاو ته ووايئ! چې هغوی ستاسو لپاره په خاص توګه ښه خوراک تيار کړي هغوی وويل چې ته ښه شې! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ما د يوولسو کالو نه بلکې د دولسو کالو نه بلکې د ديارلسو کالو نه بلکې د څوارلسو کالونو نه يو ځل هم په مړه خېټه طعام نه دی خوړلی اوس د خر د تندې هومره لږ شان عمر پاتې شوی دی اوس دا څه رنګ کېدی شي.(۲)

**کله چې جوارش په تحفه او هديه کې ورته راوړل شول:**

حضرت عبدالله بن عدي رَحِمَهُ ٱللَّهُ د حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ غلام ؤ هغه د عراق نه راغی او د حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شو او سلام يې وکړ او ورته يې عرض وکړ چې ما ستاسو لپاره هديه راوړې ده هغوی پوښتنه وکړه چې څه دې راوړی دي؟ هغه وويل جوارش دي حضرت عبدالله رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې جوارش څه شی دی؟ هغه وويل په دې سره طعام هضم کېږي حضرت عبدالله رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې ما د څلوېښتو کالو نه په مړه خېټه طعام نه دی خوړلی زه به په دې جوارشو باندې څه وکړم؟(۳)

حضرت ابن سيرين رَحِمَهُ ٱللَّهُ وايي چې يو سړی حضرت ابن عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ته وويل چې آيا زه ستاسو لپاره جوارش تيار کړم؟ حضرت ابن عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې جوارش څه شی وي؟ هغه وويل که چېرې تاسو يوه ورځ دومره ډېر طعام وخورئ! چې ساه اخيستل هم مشکل شي او بيا دا جوارش استعمال کړئ! نو په دې سره به هغه طعام هضم کېدل اسان شي حضرت

۱: اخرجه ابونعيم في الحلية (۱/۲۹۸)
۲: عند ابي نعيم
۳: اخرجه ابونعيم في الحلية (۱/۳۰۰)

ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې ما خو د څلورو میاشتو نه به مړه خېټه نه ده خوړلې او دا د له دې وجې نه نه چې ما ته طعام نه ملاوېږي طعام خو ډېر دی خو زه د داسې خلکو سره پاتې شوی یم چې یو وخت به یې په مړه خېټه طعام خوړلو او دویم وخت به یې لوږه تېرو له.(۱)

## د رسول الله ﷺ د وفات نه وروسته ددغه زهد:

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: د کله نه چې رسول الله ﷺ وفات شوی دی نو ما نه خټه باندې خښته ایښې ده یعنې هیڅ ابادي مې نه ده کړې او نه مې د کجورو بوټی لګولی دی.(۲)

حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: د حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه علاوه په مونږ چې چا هم دنیا لاسته راوړه دنیا هغه طرفته کږه شوه او هغه دنیا طرفته کوږ شو.(۳)

حضرت سُدي رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې ما د صحابه وو یوه ډله ولیده او هغوی دا ګڼله چې رسول الله ﷺ صحابه وو ته د دنیاوي شیانو په کارولو کې چې په کوم حال باندې پرېښې وو په دغه حال باندې د حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه علاوه بل څوک پاتې نشو.(۴)

## د حضرت حُذیفه بن الیمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زُهد

حضرت سائده بن سعد بن حُذیفه رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې حضرت حُذیفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به فرمایل: د ټولو نه زیات زما د سترګو د یخوالي سبب او زما زړه ته د ټولو نه زیاته خوښه ورځ هغه ده په کومه ورځ چې زه خپل اولاد ته لاړ شم او هغوی سره د خوراک څه شي ما ته ملاو نشي او هغوی دا ووایي چې نن مونږ سره د خوړلو لپاره هیڅ نشته ځکه چې ما له رسول الله ﷺ نه دا فرمان اورېدلی دی چې مریض د هغه کور والا څومره د خوراک نه هغه بچ ساتي د دې نه زیات الله رب العزت مؤمن لره د دنیا نه بچ ساتي او پلار چې د اولاد لپاره څومره د خیر فکر کوي الله رب العزت د دې نه زیات د مؤمن د ازمېښت اهتمام کوي.(۵)

---

۱: عند ابي نعیم ایضا واخرجه ابن سعد (۴/۱۱۰) عن ابن سیرین مختصرا وکذالک عن نافع مختصراً
۲: اخرجه ابونعیم فی الحلیة (۱/۳۰۳) واخرجه ابن سعد (۴/۱۲۵) مثله.
۳: اخرجه ابو سعید بن الاعرابي بسند صحیح
٤: فی تاریخ ابي العباس السراج بسند حسن کذا فی الاصابة (۲/۳۴۷)
۵: اخرجه ابو نعیم فی الحلیة (۱/۲۷۷) واخرجه الطبراني عن ساعده مثله قال الهیثمي (۱۰/۲۸۵) وفیه من لم اعرفهم

# دنیا په لذتو کې مبتلا کېدل

**دوه ځلې طعام خوړل:**

حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي: رسول الله ﷺ یو ځل زه ولیدم چې ما په یوه ورځ کې دوه ځل خوراک کړی دی نو ما ته یې وفرمایل چې اې عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا! آیا ته دا غواړې چې صرف خېټه دِ کول ستا مشغله وي په یوه ورځ کې دوه ځله خوراک اسراف دی او اسراف والا الله جَلَّ جَلَالُهُ نه خوښوي په یو روایت کې دا دی چې هغوی ﷺ وفرمایل چې اې عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا! آیا تاسره په دې دنیا کې یوازې د خېټې د کولو فکر دی؟ د بل شی نشته دی په یوه ورځ کې د یو ځل نه زیات خوراک کول اسراف دی او اسراف والا الله جَلَّ جَلَالُهُ نه خوښوي.(۱)

**ام المؤمنین عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ته د آنحضرت ﷺ وصیت:**

حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي: زه د رسول الله ﷺ سره ناسته ووم او ژړل مې انحضرت ﷺ وفرمایل چې ولې ژاړې؟ که چېرې ما سره په جنت کې ملاوېدل غواړې نو ستا لپاره د دنیا دومره سامان کافي کېدل په کار دي څومره چې د مسافر لپاره توښه وي او مالدارو سره تړاو مه ساته!(۲)

د ترمذي حاکم او د بیهقي په روایت کې دا الفاظ زیات دي او تر څو پورې چې په جامو کې پیوند اونه لګوې هغه زړه مه ګڼه! د رزین په روایت کې دا مضمون زیات دی چې حضرت عُروه وویل چې تر څو پورې به حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا په جامو کې پیوند نه وو لګولي هغه به یې التې کړې نه وې هغه پورې به یې نوې جامه نه اغوستله یوه ورځ هغې ته د حضرت معاویه له خوا نه اتیا زره درهم راغلي نو ماښامه پورې هغې سره په اتیا وزرو کې یو درهم هم پاتې نشو د هغې وینزې وویل چې تاسو زمونږ لپاره د یو درهم غوښه ولې وانه خیستله؟ نو وې فرمایل که چېرې ما ته د مخکې یاد کړې وای نو ما به اخیستې وه ما ته خو غوښه اخیستل بیخي یاد نه وو.(۳)

**حضرت ابوجحیفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د رسول الله ﷺ وصیت:**

حضرت ابو جُحیفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: ما یوه ورځ د وازدې والا د غوښې ثرید وخوړ بیا زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې په داسې حال کې حاضر شوم چې ما ته ارګمې راتلل! رسول الله ﷺ

---

۱: اخرجه البیهقی کذا فی الترغیب (۲/۴۲۳)
۲: عند ابن الاعرابی کذا فی الکنز (۲/۱۵۰)
۳: کذا فی الترغیب (۵/۱۳٦)

وفرمایل چې اې ابو جُحیفه ازمونږ مخکې ارګمې مه کوه! ځکه چې څوک په دنیا کې په مړه ښه خوراک کوي هغه به د قیامت په ورځ لوږه برداشت کوي نو د دې نه پس حضرت جُحیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تر مرګه پورې چېرې په مړه ښته خوراک نه دی کړی کله چې به یې د غرمې خوراک وکړ نو د شپې به یې نه خوړله او کله چې به یې د شپې خوراک وکړ نو د غرمې به یې نه کولو .(۱)

**د رسول الله ﷺ او هغې ښځې سړي واقعه:**

حضرت جعده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: رسول الله ﷺ یو لویې ښځې والا سړی ولیده نو آنحضرت ﷺ د هغه ښځه په ګوته ووهله او وې فرمایل چې که چېرې دا خوراک د دې ښځې نه علاوه د یو بل فقیر یا محتاج په ښځه کې وای نو ستا لپاره به غوره وه په یو روایت کې دا دی چې یو سړی د رسول الله ﷺ په باره کې خوب ولیده رسول الله ﷺ سړی ولیږه او هغه یې راوغوښته نو هغه راغی او ټول خوب یې رسول الله ﷺ ته واوروله د دغه سړي ښځه غټه وه رسول الله ﷺ د هغه ښځه په ګوته ووهله او وې فرمایل چې که چېرې دا خوراک د دې ښځې نه علاوه په بله ښځه کې وای نو ستا لپاره به ډېره غوره وه.(۲)

**د حضرت عمر او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دغوښې اخیستو قیصه:**

حضرت یحي بن سعید وایي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په لاره کې د حضرت جابر بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا سره ملاو شو هغه سره یو سړی غوښه را اخیستې وه یعنې غوښه یې اخیستې وه خپل کور ته یې راوړله حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې آیا په تاسو کې څوک هم دا نه غواړي چې د خپل ګاوندي او د تره زامنو له وجې نه خپل ځان وږی وساتي؟ یعنې په خپله څه او نه خوري او ټول په نورو باندې وخوري دا آیت أَذْهَبْتُمْ طَيِّبَاتِكُمْ فِي حَيَاتِكُمُ الدُّنْيَا وَاسْتَمْتَعْتُمْ بِهَا(۳) تاسو نه چېرته تللی دی؟ (۴)

حضرت جابر بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: ما د یو درهم غوښه واخیستله او ورتلم په لاره کې ما سره حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ملاو شو پوښتنه یې تري وکړه اې جابره! دا څه

---

۱: اخرجه الطبراني قال الهيثمي (۵/۳۱) ورواه الطبراني في الاوسط والكبير باسانيد في احد اسانيدي الكبير محمد بن خالد الكوفي ولم اعرفه وبقية رجاله رجال ثقات انتهى واخرجه ابن عبدالبر في الاستيعاب (۴/۳۷) نحوه واخرجه ابو نعيم في الحلية ۷/۲۵۶ عن ابى جحيفة بمعناه ولم يذكر قوله فما اكل الى آخره .

۲: اخرجه الطبراني قال الهيثمي (۵/۳۱) رواه كله الطبراني ورواه احمد الا انه جعل ان النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هوالذى رالى الرؤيا للرجل ورجال الجمع رجاله الصحيح غير ابي اسرائيل الجشمي وهو ثقة انتهى.

۳: سورة احقاف آيت ۲۰

۴: اخرجه مالك كذا في الترغيب (۲/۴۲۴)

دي؟ما وویل زما د کوروالاوو د غوښې خوړلو ته ډېر زړه کېده له دې وجې نه مې د هغوی لپاره د یو درهم غوښه اخیستې ده حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زما دا جمله بیا بیا ویله چې زما د کوروالاوو د غوښې خوړلو ته ډېر زړه کېدو دومره ځله یې وویله چې زما په زړه کې دا ارزو راغله چې ارمان دا درهم زما نه چېرته غورزېدلی وای! او د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره زما ملاقات نه وای شوی.(۱)

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په لاس کې یو درهم ولیده نو پوښتنه یې ترې وکړه چې دا درهم دې له کومه ځائ کړی دی؟ حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل په دې خپل کوروالاوو ته غوښه اخلم غوښې ته یې ډېر زړه شوی وو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې آیا کوم شی چې ستاسو زړه وغواړي هغه به تاسو ضرور اخلئ؟ د ( أَذْهَبْتُمْ طَيِّبَاتِكُمْ ) آیت تاسو نه چېرته لاړو.(۲)

**د عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په لاس کې غوښه لیدل:**

حضرت حسن رَحِمَهُ اللهُ فرمایي: حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل ځوی حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کره لاړ هغه وخت د حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مخکې غوښه پرته وه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې دا غوښه ستاسو کره له کومه شوې ده؟ هغه وویل چې زما غوښه خوړلو ته زړه شوی وو نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې ستا زړه څه وغواړي نو هغه به ضرور کوې؟ د سړي فضول خرچۍ لپاره دا کافي ده چې د هغه زړه څه وغواړي هغه ضرور وخوري.(۳)

**یزید بن ابي سفیان ته د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا وصیت:**

حضرت سعید بن جبیر رَحِمَهُ اللهُ وایي وایي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دا خبر ورسېده چې حضرت یزید بن ابي سفیان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مختلف قسم خوراکونه کوي نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل غلام یرفا ته وفرمایل کله چې تا ته پته ولګېږي، د شپې د هغې خوراک تیار شوی دی نو ما خبر کړه نو کله چې د حضرت یزید د شپې خوراک تیار شو نو حضرت یرفا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خبر کړو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورغی او حضرت یزید ته له رسېدو سره سم سلام وکړ او دننه د ورتلو اجازت یې وغوښته هغه ورته اجازت ورکړ، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دننه ورغلو نو د حضرت یزید د شپې خوراک راوړل شو او هغه ثرید

---

۱: عند البیهقی کذا فی الترغیب (۳/۲۲۴) واخرجه ابن جریر عن جابر اطول منه کما فی المنتخب الکنز (۴/۴۰۷)
۲: اخرجه سعید بن منصور وعبد بن حمید وابن المنذر والحاکم والبیهقی کذا فی المنتخب (۶/۴۰۶)
۳: اخرجه عبدالرزاق واحمد فی الزهد والعسکری فی المواعظ وابن عساکر کذا فی المنتخب الکنز (۴/۴۰۱)

ما ته کړي دودي. او غوښه دسترخوان ته راوړل شوه حضرت یزید خو د هغې غوښې طرفته لاس مخکې کړو خو حضرت عمر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ د هغه لاس ونیو او وې فرمایل چې اې یزید! هاي الله! آیا د یو خوراک نه پس بل خوراک؟ په هغه ذات مې دې قسم وي د چا په قبضه کې چې زما ساه ده که چېرې ته د رسول الله ﷺ او د هغه د صحابه وو د ژوند د طریقې نه لرې شې نو ته به هم د هغوی د لارې نه لرې کړی شې چې د جنت لوړو... درجو ته تللې ده.(۱)

**حضرت عمر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ دملګرو په وړاندې د دنیا قباحت بیانول:**

حضرت حسن رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ وایي چې یو ځل حضرت عمر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ یو ډېران سره تېر شو نو ملته ودرېده کله چې هغوی محسوسه کړه چې زما ملګرو ته د هغې د ګندګۍ نه کرکه ورځي نو وې فرمایل چې دا ده ستاسو هغه دنیا چې د کومې تاسو لالچ کوئ! یا یې وفرمایل چې په کومه باندې تاسو بروسه کوئ!(۲)

**ابودرداء رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ ته دحضرت عمر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ خط لیږل :**

حضرت سلمه بن ګلثوم رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ وایي: حضرت ابو الدرداء رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ په دمشق کې یو لوړ عمارت جوړ کړ حضرت عمر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ ته په مدینه منوره کې خبر ورسېده نو حضرت ابو الدرداء رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ ته یې دا خط ولیکه چې اې عویمر بن اُم عویمر! آیا ستا لپاره د روم او فارس بلډنګونه کافي نه دي چې ته نور نوي عمارتونه او ماڼۍ جوړوې؟ او اې د حضرت محمد ﷺ صحابه وو! هر کار په سوچ فکر سره کوئ! ځکه چې تاسو د نورو لپاره نمونه یئ! خلک چې په تاسو څنګه په کولو ویني هم هغسې به کوي.(۳)

حضرت راشد بن سعد رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ وایي چې حضرت عمر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ ته خبر ملاو شو چې حضرت ابو الدرداء رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ په حمص کې په دروازه باندې یوه چجه جوړه کړې ده نو حضرت عمر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ ورته خط ولیکه چې اې عویمره! د روم والاوو چې کوم عمارتونه جوړ کړي دي آیا هغه د دنیا زېب وزینت لپاره تاسو له کافي نه دي؟ حالانکه الله رب العزت د دنیا د وارنولو یعنې د سادګۍ حکم کړی دی.(٤)

د ابو نعیم په روایت کې دا زیاتې دي چې روم والاوو چې کومې ابادۍ جوړې کړې دي آیا

۱: اخرجه ابن المبارک کذا فی المنتخب الکنز العمال (۴/۴۰۱)
۲: اخرجه ابو نعیم فی الحلیة (۱/۴۸)
۳: اخرجه ابن عساکر
٤: عند ابن عساکر والبیهقی کذا فی الکنز العمال (۸/٦۸)

هغه د دنیا زیب وزینت او د نوو ابادو جوړولو لپاره کافي نه وو په داسې حال کې چې الله رب العزت خو د دنیا ورانېدل ویلي دي کله چې تا ته زما دا خط دروړسېږي نو فوراً د حمص نه دمشق ته لاړ شه! حضرت سفیان راوي وایي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا حکم هغه ته د سزا په توګه ورکړی وو .(۱)

**عمروبن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د خارجه بن حذافه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بالاخانې ونړولو امر :**

حضرت یزید بن ابي حبیب رَحِمَهُ اللهُ وایي چې په مصر کې د ټولو نه اول حضرت خارجه بن حُذافه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بالاخانه جوړه کړې وه حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته کله چې د دې خبر ملاو شو نو حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یې دا خط ولېږلو :

سلا دې وي اما بعد! ما ته دا خبر ملاو شوی دی چې حضرت خارجه بن حُذافه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بالاخانه جوړه کړې ده حضرت خارجه د خپلو ګاونډیانو د پردې شیانو ته ورښکاره کېدل غواړي لهذا څنګه چې تا ته زما دا خط دروړسېږي نو هغه بالاخانه وغورزوه! فقط والسلام.(۲)

**ام طلق او د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا وصیت :**

حضرت عبدالله رومي رَحِمَهُ اللهُ وایي چې زه حضرت ام طلق رَضِيَ اللهُ عَنْهَا له د هغې کور ته لاړم نو ومې لیدل چې د هغې د کور چت ښکته دی ما وویل اې ام طلق! ستا د کور چت ډېر ښکته دی هغې وویل اې زما بچیه! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپلو ګورنر (والي) انو ته دا خط ولیکه چې تاسو خپلې ابادۍ اوچتې مه جوړوئ! څکه چې ستاسو د ټولو نه بده ورځ به هغه وي په کوم ورځ چې تاسو اوچتې ابادۍ جوړې کړې.(۳)

**سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خط لېږل :**

حضرت سفیان بن عیینه رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د کوفې ګورنر (والي) وو هغه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته خط ولیکلو چې ما ته د اوسېدلو لپاره د کور جوړولو اجازت راکړه! هغه ورته په جواب کې ولیکل چې داسې کور جوړه کړه! چې په هغه سره ستا د لمر او باران نه د بچ کېدو ضرورت پوره شي څکه چې دنیا د ګذارې او درمیانه روۍ کولو ځای دی حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مصر ګورنر (والي) وو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته دا په خط کې ولیکل چې ته خپل ځان سره د خپل امیر څنګه

---

[۱]: اخرجه ابو نعیم فی الحلیة (۷/۳۰۵) عن راشد بن سعد مثله وزاد بعد قوله تزہین الدنیا

[۲]: اخرجه ابن عبدالحکم کذا فی الکنز (۷/٦۳)

[۳]: اخرجه ابن سعد والبخاری فی الادب کذافی الکنز (۸/٦۳)

رویه خوښوي؟ هم هغسې رویه ته هم له خپلو لاس لاندې کسانو سره اختیار کړه! (۱)

**د پخو خښتو کور جوړولو نه دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ انکار:**

حضرت سفیان رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته خبر ملاو شو چې یو سړي د پخو خښتو کور جوړ کړی دی نو وي فرمایل چې زما دا خیال نه وو چې په دې امت کې به هم د فرعون پشان خلک وي راوي وايي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د فرعون دې جملې ته اشاره کوله: فَأَوْقِدْ لِي يَا هَامَانُ عَلَى الطِّينِ فَاجْعَل لِّي صَرْحًا(۲)

ترجمه: اې هامانه! ته زمونږ لپاره د خاورې نه خښتې جوړې کړه هغې ته اور کې تاو ورکړه پخې یې کړه بیا دغه پخو خښتو نه زما لپاره یوه اوچته مانۍ جوړه کړه!(۳)

**په واده کې د دېوالونو دتزیین نه دحضرت ابو ایوب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ انکار:**

حضرت سالم بن عبد الله رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زما دپلار په زمانه کې زما واده وشو زما پلار خلک د خوراک لپاره را وغوښتل او په هغوی کې یې حضرت ابو ایوب انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم را غوښتی وو کور والاوو د کمرې په دېوالونو شنې پردې رازوړندې کړې وې حضرت ابو ایوب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تشریف راورو هغه خپل سر ښکته کړو او غور سره یې وکتل نو په کمره کې پردې رازوړندې شوې وې هغوی زما پلار ته وفرمایل اې عبد الله! تاسو په دېوالونو پردې رازوړندوئ؟ زما پلار شرمنده شو او وې ویل اې ابو ایوب! ښځې په مونږ غالبې شوې دی هغوی وفرمایل چې د نورو خلکو په باره کې خو ما ته وېره وه چې په هغوی به ښځې غالبې شي خو ستا په باره کې ما ته دا وېره بلکل نه وه چې په تا به هم غالبې شي نه به ستاسو کور ته ننوځم او نه به ستا خوراک کوم.(۴)

**د وفات کېدو په وخت کې سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دحضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وصیت:**

حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: زه د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شوم عرض مې وکړ چې ما ته څه نصیحت وکړه! حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل اې سلمانه! د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه وېرېږه! او تا ته دې معلومه وي چې ډېر زر به ډېر زیات فتوحات وشي د هغې نه ستا برخه یوازې دومره پکار ده چې په اندازه د ضرورت خوراک خپله خېټه کې واچوې او په

---

۱: اخرجه ابن ابي الدنيا والدينوري كذا في المنتخب الكنز (۴/۴۰۶)

۲: سورة القصص آيت ۳۸

۳: اخرجه ابونعيم في الحلية (۷/۳۰۴)

۴: اخرجه ابن عساكر كذا في الكنز العمال (۸/٦۳)

اندازه د ضرورت جامې پخپله ملا باندې واچوې پخپل ضرورت کې د کم نه کم لګول باقي نور تول په خلکو باندې خرچ کول او په دې هم ځان پوه کړه! چې څوک پنځه وخت لمونځ کوي هغه سحر او مابنام هر وخت د الله جَلَّ جَلَالُهُ په ذمه واری کې وي نو دا رنګه ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ په بنده ګانو کې هیڅوک مه وژنه! ځکه چې دا شان به ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ ذمه داري ماته کړې او بیا به دې الله جَلَّ جَلَالُهُ پر مخې د جهنم په اور کې واچوي.(۱)

**د وفات په وخت کې عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته دابوبکرصدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وصیت:**

حضرت حسن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وایي چې حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت ابو بکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د هغوی په مرض الوفات کې ورغی او عرض یې وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رسول خلیفه! ما ته څه وصیت وکړئ! هغوی وفرمایل چې الله جَلَّ جَلَالُهُ به تا لپاره تول دنیا فتح کړي او د غنیمت ډېر مال به راشي په تاسو کې دې هر کس په هغو فتوحاتو کې یوازې د ګذارې په اندازه اخلي.(۲)

حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي، زه حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته په داسې حالت کې ورغلم چې دي مبارک د وفات په مرض اخته وُ، سلام مې ورته وکړ، په دې سره هغوی وفرمایل، زه وینم چې دنیا مخکې را روانه ده که څه هم چې تر اوسه پورې نه ده راغلې بس هغه راتلو والا ده او تاسو به د درهمو پردې او د دېباچو تکیه ګانې جوړې کړئ! او د اذربایجان د وړی جوړو شوو بسترو باندې داسې تکلیف محسوسوئ! ګواکې چې تاسو د سعدان بوټي په ازغو باندې یئ! په الله رب العزت قسم! چې تاسو کې څوک بغیر د څه جرم نه د هغه سر قلم شي دا د هغه لپاره د دېنه غوره ده چې هغه د دنیا په ژوروالي کې لامبو وهي.(۳)

حضرت علي بن رباح رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې ما د حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه داسې اوریدلي دي چې تاسو په هغه شي کې رغبت کوئ! چې د هغې نه نبي کریم ﷺ بې رغبتي کوله تاسو په دنیا کې رغبت شروع کړی دی او رسول الله ﷺ د دې نه بې رغبتي کوله په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! د هغوی ﷺ ژوند کومه شپه چې په هغوی ﷺ راغلې ده په هغې کې د

---

۱: اخرجه احمد وفي الزهد (۳/۱۳۷) وغيرهما كذا في الكنز (۸/۲۳۲)

۲: عند الدينوري كذا في الكنز (۲/۱۴۶)

۳: عند ابي نعيم في الحلية (۱/۳۴) واخرجه الطبراني ايضا عن عبدالرحمن نحوه كما في المنتخب (۴/۳۶۲) وقال وله حكم الرفع لانه عن الاخبار عمايأتي اه.

هغـوی ﷺ قرضـه د هغـوی ﷺ د مـال نـه زياتـه وه، دا يـې چـې واورېـدل نـو بعضو صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې مونږ رسول الله ﷺ په قرض اخيستلو باندې ليدلی دی.(۱)
اما احمد د حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه دا روايت نقل کړی دی چې هغوی وفرمايل چې ستاسو طريقه ستاسو د رسول الله ﷺ نه څومره لرې شوې ده؟ رسول الله ﷺ په خلکو کې له دنيا نه تر ټولو زيات بې رغبتي کوونکی وو او په ټولو خلکو کې تاسو د دنيا د ټولو نه زيات رغبت لرونکی يئ!(۲)
حضرت ميمون رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو ځوان ځوی نه لنګ وغوښته او وې ويل چې زما لنګ شکېدلی دی حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې لنګ کوم ځای نه شکېدلی دی هلته نه يې پرېکړه او پاتې يې وګنډه! او وايي غونده! د هغه ځوان دا خبره خوښه نه شوه نو حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل چې ته بـه شې! د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه وېرېږه! او د هغو خلکو په شان هيڅ کله مه کېږه! چې د الله رب العزت په رزق خپلو خېټو کې او خپلو شاګانو باندې اچوي يعنې خپل ټول مال په خوراک او جامو مصرفوي.(۳)
حضرت ثابت رَحِمَهُ اللهُ وايي چې ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت ابوالدرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوا کې تېر شو هغه خپل کور جوړولو حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل تا لوي لوي کاڼي د خلکو په اوګو باندې بار کړی دی هغه وويل زه خو کور جوړوم حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيا هغه خبره وکړه حضرت ابوالدرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل اې زما وروره! شايد چې زما د دې کار په وجه تاسو ما نه خفه شوي يئ! حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې که چېرې زه په تا باندې تېر شوی وای او ته د خپل کور والاوو په لوي او دسماتي کې مشغول وای يعنې هغه دې غورځولي نو دا ما ته د دې کار نه زيات خوښ وو په کوم کې چې ته اوس مصروف يې! (۴)
**حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته د ابوبکرصديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول چې نوې جامې بې واغوستې:**
حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي: ما يو ځل نوې قميص واغوستلو ما چې اوليدو نو ډېره خوشحاله شوم هغه ما تـه ډېر ښـه ښـکارېدو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې څه

۱: اخرجه احمد قال فی الترغيب (۵/۱٦٦) رواه احمد ورواية الصحيح والحاكم لا انه قال ما سره به ثلاث من دهر الا والذی عليه اكثر من الذی له ورواه ابن حبان فی صحيحه مختصرا انتهی.
۲: قال الهيثمی (۱/۳۱۵) رجال احمد رجال الصحيح واخرجه ابن عساكر وابن النجار نحوه كما فی الكنز(۲/۱۴۸)
۳: اخرجه ابونعيم فی الحلية (۱/۳۰۱)
۴: اخرجه ابونعيم فی الحلية(۱/۱٦۳)

گوري؟ په دې وخت کې الله رب العزت تا ته د رحمت په نظر نه گوري ما وويل دا ولې؟ هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې آيا تا ته معلومه نه ده کله چې د دنيا د زينت وجه سره په بنده کې عُجب (ځان ښه گڼل) پيدا شي نو څو پورې چې بنده هغه زينت پرېنهږدي تر هغې پورې دهغه رب د هغه نه خفه وي حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي: ما هغه قميص ووېسته او هم هغه وخت مې صدقه کړو نو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل شايد دا صدقه به ستا د هغه عُجب گناه کفاره شي.(۱)

**حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د وفات په وخت کې خپل ځوی ته څه وويل:**

حضرت حبيب بن حمزه رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د يو ځوی د وفات وخت کله چې نزدې راغی نو هغه ځوان د سترگو د گوتونو سره يو تکيې طرفته کتل کله چې وفات شو خلکو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وويل چې ستاسو ځوی د سترگو په گوتونو دې تکيې ته کتل کله چې خلکو د هغوی ځوی دې تکيې نه لرې کړو نو د هغې د لاندې پنځه يا شپږ ديناره ملاو شو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپل يو لاس په بل لاس باندې اووهلو او بار بار يې (انا لله وانا اليه راجعون) ويل او وې فرمايل چې زما په خيال خو ستا څرمن د دې دينار سزا برداشت نه شي کولی چې تا دا جمع کړل او ودې نه لگول.(۲)

**کله چې حضرت عمار رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نوي کور وليدلو:**

حضرت عبدالله بن ابي هُذيل رَحِمَهُ اللَّهُ وايي کله چې حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپل کور جوړ کړو نو حضرت عمار رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته يې وويل چې راشه! کوم کور چې ما جوړ کړی دی هغه وگوره! نو حضرت عمار رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورسره لاړو کور يې چې وکوت نو وې ويل چې تاسو ډېر مضبوط کور جوړ کړی دی او ډېر اوږده او لرې اُميد و نه دی لگولی دی حالانکه ډېر زر به د دُنيا نه لاړ شې.(۳)

**حضرت ابوسعيد خدري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وينا کله چې وليمې ته دعوت شوی ؤ:**

حضرت عطا رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې ابوسعيد خُدري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د يوې وليمې دعوت ورکړې شو هغوی دغه دعوت ته تشريف يوړو او زه هم ورسره ووم هلته يې چې قسما قسم خوراکونه وليدل نو وې فرمايل آيا تاسو ته معلومه نه ده چې رسول الله ﷺ به کله د غرمې خوراک وکړ نو د شپې به يې نه کولو او کله چې به يې د شپې خوراک وکړ نو د غرمې به يې نه خوړلو.(۴)

---

۱: اخرجه ابو نعيم في الحلية ١/١٦٣
۲: اخرجه ابونعيم في الحلية ١/٣٧
۳: اخرجه ابونعيم في الحلية ١/١٤٢
۴: اخرجه ابونعيم في الحلية (٣/٣٢٣ قال ابونعيم غريب من حديث عطاء لا اعلم عنه راويا الا الوضين بن عطاء

# نهم باب

## صحابه کرام او دنفسي خواهشاتو پرېښودل

*د خپلو زامنو، ورونو، ببیبالو، خاندانونو، مالونو، تجارتونو او کورونو په باره کې څنګه خپل نفساني خواهشات تر پښو لاندې او ذاتي خواهشات ختم کړی وو؟ او څنګه یې د الله تعالی او رسول ﷺ او هر مسلمان د خان نسبت یې الله او رسول ﷺ ته شوي وو؟ او هغوی څنګه د هغه انسان ښه اکرام وکړ چا ته چې محمد ﷺ نسبت حاصل وو؟*

## د اسلام لپاره د جاهلیت د زماني تعلقات ختمول

**حضرت ابوعبیده بن جراح رَضِیَ اللہُ عَنْهُ خپل پلار قتل کړو:**

حضرت ابن شوذب رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي چې د جنګ بدر په ورځ د حضرت ابوعبیده بن جراح رَضِیَ اللہُ عَنْهُ دپلار د هغه مخې ته راتلو دا به د هغه د مخې نه لرې کېدو خو کله چې د هغه پلار بار بار د هغه مخې ته راغی نو هغه هم د هغه د وژلو اراده وکړه او اخریې وواژه، په دې باندې الله رب العزت دا آیت نازل کړو:

لَا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ يُوَادُّونَ مَنْ حَادَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَوْ كَانُوا آبَاءَهُمْ أَوْ أَبْنَاءَهُمْ أَوْ إِخْوَانَهُمْ أَوْ عَشِيرَتَهُمْ ۚ أُولَٰئِكَ كَتَبَ فِي قُلُوبِهِمُ الْإِيمَانَ(۱)

ترجمه: کوم خلک چې الله رب العزت او په ورځ د قیامت پوره پوره ایمان لري تاسو به هغوی ونه وینئ! چې هغوی د داسې کسانو سره دوستي ساتي چې د الله او د هغه د رسول خلاف کې اګر که هغه د دوی پلار، ځوی، ورور یا خاندان وي د دې خلکو په زړونو کې الله رب العزت ایمان ثابت کړی دی.(۲)

**یو صحابي خپل پلار قتل کړو او بل نورو ته پرېښود چې قتل یې کړي:**

حضرت مالک بن عمیر رَضِیَ اللہُ عَنْهُ د جاهلیت زمانه هم لیدلې ده هغه فرمایي، یو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض یې وکړ چې ما د دښمن د لښکر مقابله وکړه په هغه لښکر کې زما پلار هم وو ما د هغه نه ستاسو باره کې ډېره سخته خبره واورېدله زما نه صبر ونه شو او ما په نېزه اووهلو او قتل مې کړو دا یې چې واورېدل نو رسول الله ﷺ چپ

۱: سورة المجادله آیت ۲۲

۲: اخرجه ابو نعیم فی الحلیة (۱/۱۰۱) واخرجه البیهقی (۹/۲۷) والحاکم (۳/۳٦٥) عن عبدالله بن شوذب قال البیهقی هذا منقطع واخرجه الطبراني ایضاً بسند جید عن ابن شوذب نحوه کما فی الاصابة (۲/۲۵۲)

پاتې شو بیا یو بل سړی راغی او عرض یې وکړ چې په جنګ کې زما پلار زما مخې ته راغلی وو خو ما هغه پرېښوده چې بل څوک یې قتل کړي دا یې چې واورېدل نو هم رسول الله ﷺ چُپ پاتې شو.(۱)

**د عبدالله بن ابي د خپل پلار د قتلولو اجازه غوښتل:**

حضرت ابو هریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي، عبدالله بن أبي منافق د یوې قلعه سوري ته ناست وو نبي کريم ﷺ د هغه په خوا کې تېر شو هغه وویل دي ابن ابي کبشه چې، ابو کبشه یا خو د رسول الله ﷺ د مور د طرفه د نیکه کنیت دی او یا د حضرت حلیمه سعدیه کنیت دی له دې وجې نه ابن ابي کبشه نه رسول الله ﷺ مراد دي، په مونږ باندې ګرد وغبار اچولی دی په دې خبره د هغوی ځوی حضرت عبدالله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! په هغه ذات مې دې قسم وي! چې هغه تاسو ته بزرګي درکړې ده که چېرې تاسو غواړئ! نو زه به د ده سر ستاسو په خدمت کې راوړم رسول الله ﷺ وفرمایل نه! بلکې ته د خپل پلار سره د ښه سلوک معامله کوه! او هغه سره په ښه شان پېش راځه!(۲)

حضرت عبدالله بن عبدالله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د نبي اکرم ﷺ نه د خپل پلار د وژلو اجازت وغوښته نبي کريم ﷺ ورته وفرمایل چې خپل پلار مه وژنه!(۳)

حضرت عاصم بن قتاده رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې عبدالله بن عبدالله بن ابي ابن سلول رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د نبي اکرم ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض یې وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ما ته دا خبره رارسېدلې ده چې تاسو ته زما د پلار د طرف نه کومې نامناسبې خبرې رسېدلې دي د هغې په وجه که تاسو غواړئ! چې زما پلار عبدالله بن أبي قتل کړی شی که چېرې تاسو غواړئ! نو تاسو ما ته د دې حکم وکړئ! زه به د هغه سر پرېکړم او تاسو ته به یې راوړم په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! د خزرج قبیلې والا او ټولو خلکو ته معلومه ده چې په دې قبیلې کې هیڅ یو سړی زما نه زیات خپل سره د ښه سلوک کولو والا نه وو په دې وجه اوس ما ته دا وېره ده چې تاسو به بل چاته زما د پلار د قتلولو حکم کوئ! او هغه به زما پلار قتل کړي نو بیا به هغه په خلکو کې تلونکې ما ته په نظر راځي نو چېرته داسې اونشي چې زما نفس په زور

---

۱: اخرجه البیهقي (۹/۲۷) قال البیهقي وهذا مرسل جید
۲: اخرجه البزار قال الهیثمي (۹/۳۱۸) رواه البزار ورجال ثقات.
۳: عند الطبراني

کې راشي او زه هغه قتل کړم او دا شان به زه د کافر په بدله کې مسلمان قتل کړم او داسې به زه د دوزخ په اور کې داخل شم رسول الله ﷺ وفرمايل چې نه! مونږ خو به د هغه سره نرمي کوو او هغه چې تر څو مونږ سره وي موږ به د هغه سره ښه سلوک کوو.(۱)

حضرت اسامه بن زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي کله چې رسول الله ﷺ د غزوه بني مصطلق نه واپس راغی نو حضرت ابن عبد الله بن أبي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل پلار چې د ده پلار د منافقانو سردار وو باندې توره را ووېستله او ودرېدو او هغه ته يې وويل چې زه د الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره په ځان دا لازموم چې دا توره به هغه وخت په تيکي کې اچوم کله چې ته اووايې چې محمد ﷺ ډېر عزت والا دی او زه ډېر زيات ذليله يم اخر د هغه پلار پخپله ژبه وويل چې محمد ﷺ ډېر عزت والا دی او زه ډېر زيات ذليل يم کله چې رسول الله ﷺ ته د دې واقعې خبر ورسېده نو هغوی ﷺ ته دا خبره ډېره خوښه شوه او شاباسي يې ورته ورکړو.(۲)

حضرت عُروه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: حضرت حنظله بن ابي عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عبد الله بن أبي ابن سلول رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل خپل پلار د وژلو د رسول الله ﷺ نه اجازت وغوښته خو رسول الله ﷺ منع کړل.(۳)

حضرت عبد الرحمن بن ابي بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روستو خپل پلار حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل چې د جنګ اُحد په ورځ تاسو ما ليدلي وئ! خو ما به خپل مخ اړولی وو پلار مې وکنلي او پرېښي مې وې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل که چېرې ما ته ليدلی وای نو ما به درنه مخ نه وای اړولی بلکې د الله رب العزت د ښمن به مې کنلي وای وژلی به مې وای دغه وخت پورې حضرت عبد الرحمن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مسلمان شوی نه و.(۴)

**دحضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دهغه د خوي عبدالرحمن د غزوه بدر قصه:**

حضرت واقدي بيان کوي چې حضرت عبد الرحمن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د جنګ بدر په ورځ مقابلې لپاره اواز وکړ په دغه ورځ کافرانو سره وو د هغه د مقابلې لپاره د هغه پلار ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ودرېدو نو رسول الله ﷺ وفرمايل چې ته د مقابلې لپاره مه ورځه! مونږ

---

۱: عند ابن اسحاق کذا في البداية (۴/۱۵۸)

۲: عندا الطبراني قال الهيثمي (۹/۳۱۸) وفيه محمد بن الحسن بن زبالة وهو ضعيف

۳: اخرجه ابن شاهين باسناد حسن کذا في الاصابة (۱/۳۶۱)

٤: اخرجه ابن ابي شيبة کذا في الکنز (۵/۲۷۴) واخرجه الحاکم (۳/۴۷۵) عن ايوب نحوه.

به اوس تا نه دېر کارونه اخلو .(۱)

**حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سعيد بن العاص ته دهغه پلار په باره کې څه وايي!**

حضرت ابو عبيده او د غزاګانو نه بنه خبر نور کسان بيان کوي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت سعيد بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوا ته تېر شو نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل چې زه وينم چې ستا په زړه کې څه شته زما په خيال ته دا ګنې چې ما ستا پلار عاص وژلی دی که چېرې ما هغه وژلی وای نو ما به په دې خبره ستا په مخکې څه معذرت نه واې پيش کړې ما خو خپل ماما عاص بن هشام بن مغيره قتل کړی وو زه ستا پلار سره تېر شوی ووم هغه زخمي په زمکه پروت وو او په زمکه يې داسې سر وهلو لکه غوايي چې په زمکه پروت وي او ښکرونه وهي په هر حال زه هغه نه تېر شوم او مخکې لاړم او هغه د هغه د تره ځوی حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وژلی دی.(۲)

او په استيعاب او اصابه کې له دې وروسته دا هم راغلي دي چې حضرت سعيد بن عاص حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل چې که چېرې تا هغه قتل کړی وای نو صحيح وه ځکه چې ته په حق باندې وې او هغه په باطل باندې وو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د هغه دا خبره ډېره خوښه شوه.

**د حضرت ابوحذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او رسول الله ﷺ خبرې دهغه دپلار په باره کې:**

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي: د جنګ بدر په ورځ د قتل شوو کافرانو باره کې رسول الله ﷺ حکم وکړ چې هغوی دې په راکشولو کوهي ته او غورځولی شي هغوی په هغه کوهي کې او غورځولی شول بيا رسول الله ﷺ د دغه کوهي په غاړه باندې ودرېدو وې فرمايل چې اې د کوهي والاوو! آيا تاسو د خپل رب وعده رښتوني اوموندله؟ ما سره خو چې زما رب کومه وعده کړې وه ما خو هغه رښتوني وموندله صحابه وو عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو مړو خلکو سره خبرې کوئ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل چې اوس دوي ته معلومه شوې ده چې د دوي رب دوي سره کومه وعده کړې وه هغه رښتوني وه کله چې حضرت حذيفه بن عُتبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وکتل چې د هغه پلار راکش کول کېږي کوهي ته غورزول کېږي نو رسول الله ﷺ د هغه په مخ باندې د خفګان اثرات محسوس کړل او وې

۱: اسند الحاكم وهكذا ذكره البيهقي (٨/١٨٦) عن الواقدي
۲: ذكره ابن هشام كذافي البداية (٣/٢٩٠)

فرمایل: اې ابو حذیفه! داسې معلومیږي چې تا د خپل پلار باره کې کوم حالت لیدلی دی په هغې باندې خفه شوی یې؟ هغه ووېل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما پلار سردار وو او زما امېد وو چې الله رب العزت به ضرور هغه ته د اسلام هدایت وکړي خو کله چې د هغه دا انجام شو چې په کفر باندې ذلت سره ووژل شو نو زه په دې باندې خفه یم رسول الله ﷺ د حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لپاره د خیر دعا وکړه![1]

حضرت ابو الزناد رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت ابو حذیفه په جنګ بدر کې شریک شوی وو او هغه خپل پلار عتبه ته په مقابله کې د جنګېدو دعوت ورکړی وو مخکې یې د هغه شعرونو ذکر کړی دی چې د هغه خور هند بنت عُتبه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د هغه په باره کې ویلي وو.[2]

**د مُصْعَب بن عُمَیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د هغه دورو قصه چې د بدر په ورځ اسیر شوي وُ:**

د قبیله بنو عبد الدار حضرت نبیه بن وهب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي کله چې رسول الله ﷺ د جنګ بدر قیدیان راوستل او هغه یې خپلو صحابه وو باندې تقسیم کړل نو وې فرمایل چې زه تاسو ته د ډېر کلک تاکید کوم چې دې بندیانو سره ډېر ښه سوک کوئ! د حضرت مصعب بن عمیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سکهورور ابو عزیز بن عمیر هاشم هم په بندیانو کې وو حضرت ابو عزیز بیان کوي چې یو انصاري سړی زه قید کولم چې په دې کې زما ورور مصعب بن عمیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زما په خوا کې تېر شو نو هغه انصاري ته وویل چې په دواړو لاسونو سره یې کلک ونیسه! ځکه چې د ده مور ډېره مالداره ده هغه به د ده په فدیه کې ډېر څه درته درکړي حضرت ابو عزیز وایي چې صحابه وو زه کله د بدر نه روان کړم نو زه د انصارو په یوه ډله کې ووم کله چې به هغوی د ورځې یا د شپې خوراک خپل مخکې کېښود نو دوډۍ به یې په ما باندې خوړله او پخپله به یې کجورې خوړلې ځکه چې رسول الله ﷺ زمونږ باره کې هغوی ته تاکید کړی وو په هغوی کې به چې چا ته هم د دوډۍ څه ټوټه ملاوېدله هغه به یې ما ته راکوله زه به شرمېدم او هغه ټوټه به مې ورته واپس کوله خو هغو انصارو به هغې ته لاس لګولو نه بغیر ما ته بېرته واپس کوله حضرت ابو الیسر حضرت ابو عزیز لره قید کړی وو کله چې هغه حضرت مصعب هغه خبره وکړه نو حضرت ابو عزیز ورته ویلي وو چې ته مې

1: اخرجه ابن جرير كذا في الكنز (٥/٢٦٩) واخرجه الحاكم (٣/٢٢٤) عن عائشه نحوه وقال صحيح على شرط مسلم ولم يخرجاه ووافقه الذهبي وذكر ابن اسحق نحوه بلا اسناد كما في البداية (٣/٢٩٤)

2: ذكره الحاكم (٣/٢٢٣) وهكذا اسناده البيهقي (٨/١٨٦)

ورور یې او زما په باره کې ته دا تاکید کوې؟ نو حضرت مصعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته ویلي وو چې دا انصاري حضرت ابوالیسر زما رور دی ته نه یې! د حضرت ابوعزیز مور پوښتنه وکړه چې د قریشي بندیانو فدیه د ټولو نه زیاته څه ورکړی شوه؟ نو هغې ته وویل شول چې څلور زره درهمه نو هغې د حضرت ابو عزیز په فدیه کې څلور زره درهمه ولېږل.(۱)

حضرت ایوب بن نعمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وایي چې حضرت مصعب بن عُمیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سکه ورور حضرت ابوعزیز بن عُمیر د جنګ بدر په ورځ قید شوی وو او دی د حضرت محرز بن نضله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په لاس راغی وو نو حضرت مصعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت محرز ته وویل چې دی په دواړو لاسونو مضبوط اونیسه! ځکه چې د ده مور په مکه کې اوسي او هغه ډېره مالداره ده په دې ورته ابوعزیز وویل اې زما وروره! ته زما په باره کې دا تاکید کوې؟ حضرت مصعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل محرز زما ورور دې ته نه یې نو د هغه مور د هغه په فدیه کې څلور زره ولېږل.(۲)

**دحضرت ابوسفیان او دهغه دلور ام المؤمنین ام حبیبه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا واقعه:**

حضرت زهري رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې رسول الله ﷺ د قریشو د وعده خلافۍ په وجه په مکه باندې حمله کول غوښتل په دغو ورځو کې حضرت ابوسفیان بن حرب مدینې منورې ته راغی او د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او د رسول الله ﷺ سره یې صلح حدیبیه د مودې زیاتولو خبره وکړه رسول الله ﷺ هغه طرفته څه توجه اونه کړه حضرت ابوسفیان د هغه ځای نه اوچت شو او د خپلې لور حضرت ام حبیبه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا کور ته لاړ او چې د رسول الله ﷺ په بستره باندې کېناسته نو حضرت اُم حبیبه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا هغه راغونده کړه په دې هغه وویل چې اې لورې! آیا ته ما د دې بسترې قابل نه ګڼې؟ هغې وویل دا د رسول الله ﷺ بستره ده او ته ناپاکه مشرک انسان یې! ته د دې بسترې قابل نه یې حضرت ابوسفیان وویل اې لورې! زما نه پس ستا اخلاق خراب شوي دي.(۳)

دې نه پس ابن اسحاق دا ذکر کړی دی چې ام حبیبه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وویل چې زه دا نه غوارم چې ته د رسول الله ﷺ په بستره کېنې!

---

۱: اخرجه ابن اسحاق کذا فی البدایة (۳/۳۰۷)

۲: عندا الواقدی کذافی نصب الرایة للزیلعي (۳/۴۰۳)

۳: اخرجه ابن سعد (۸/۷۰) وذکره ابن اسحاق نحوه بلا اسناد کما فی البدایة (۴/۲۸۰)

**د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول دده د ځامنو په باره کې:**

حضرت ابو الاحوص رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شو هغه سره د ديناړو پشان ښايسته دري ځامن ناست وو مونږ هغه دري واړو ته کتل نو هغوی پوه شو او وې فرمايل چې تاسو د دې ځامنو په وجه ما ته پسخېږي چې ستاسو هم داسې ځامن وای مونږ عرض وکړ چې داسې ځامن خو د سړی لپاره د پسخېدلو قابل دي په دې باندې هغه د خپلې کمرې چت طرفته سر اوچت کړو چې د ېر ښکته وو په هغې کې خطاف د توته کړو په شان مارغه جاله جوړه کړې وه نو وې فرمايل زه خپلو دې زامنو لره دفن کړم او د دوي د قبرونو خاورو نه خپل لاسونه وڅنډم دا ماته د دې نه زيات خوښ دي چې د دې مارغه هګۍ پرېوزي او ما ته راشي حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې زه به کوفه کې د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مجلس کې کېناستم يوه ورځ هغه په خپله چوتره باندې ناست وو او فلاني فلاني د هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيبيانې وې چې ډېرې د ښه نسب والا او ډېرې ښايسته وې او د هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې دواړو نه ښايسته اولاد وو چې په دې کې د هغه د سر د پاسه يوې مرغۍ اوازونه شروع کړل او د هغوی په سر يې ګندګي وکړل هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پخپل لاس سره وغورځول او وې فرمايل چې د عبد الله ټول بچي مړه شي او د دې نه پس زه مړ شم دا ماته د دې مرغۍ د مرګ نه زيات خوښ دي.(۱)

**د بدر د بنديانو په باره کې دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول:**

د صحابه وو په زړونو کې د الله جَلَّ جَلَالُهُ مخلوق باندې دومره شفقت وو چې هغوی به مارغانو سره هم د خپلو بچو نه زياته مينه کوله. د اهل رايې حضراتو سره د مشورې په عنوان کې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا فرمان تېر شوی دی چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! د بدر د بنديانو په باره کې چې کومه رايې د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رايې ده هغه زمانه ده بلکې زما رايې خو دا ده چې فلانی سړی چې زما نزدې خپل دی هغه ما ته حواله کړئ! چې زه د هغه سر والوزوم او عقيل حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته حواله کړئ! چې هغه د عقيل سر قلم کړي او فلانی سړی چې د حضرت حمزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رور دي يعني حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه حمزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته حواله کړئ! چې سريې والوزوي دې لپاره چې الله رب العزت ته معلوم شي چې زمونږ په زړونو کې د مشرکانو په باره کې څه دول نرمي نشته دی د انصارو حضراتو دا

---

۱: اخرجه ابونعيم فی الحلية (۱/۱۲۲)

قصې په اوله برخه کې د انصارو د اسلام د اړيکو د کلکولو لپاره د جاهليت د اړيکو د قربانولو په باب کې تېر شوي دي.

## د رسول الله ﷺ سره د صحابه کرامو رضي الله عنهم محبت

**د سعد بن معاذ رضي الله عنه محبت:**

حضرت عبدالله بن ابي بکر رضي الله عنه فرمايي: حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه عرض وکړ چې اې د الله جل جلاله رسوله! آيا مونږ تاسو لپاره يو شی جوړ نکړو؟ چې په هغې کې تاسو اوسېږئ! او ستاسو سورلۍ ستاسو لپاره تياري او دروو بيا به مونږ دشمن سره جنګېدلو لپاره لاړ شو که چېرې الله پاک مونږ ته عزت راکړ او مونږ يې په دشمن باندې غالب کړو نو بيا خو به دا هغه خبره وي چې زمونږ خوښه ده او الله دې نکړي که چېرې دويم صورت راشي يعنې مونږ ناکام شو نو تاسو په سورلو سواره شئ! او زمونږ د قوم هغو خلکو ته لاړ شئ! چې په مدينه منوره کې پاتې شوي دي چې زمونږ د هغوی نه زيات تاسو سره محبت نشته دی بلکې زمونږ برابر دي که چېرې هغوی ته لږ شان هم اندازه واي چې تاسو به جنګ کوئ! نو هغوی به هيڅکله په مدينه منوره کې نه واي پاتې شوي الله رب العزت به د هغوی په ذريعه ستاسو حفاظت وکړي هغوی به تاسو سره د خير خواهۍ معامله وکړي او تاسو سره به د الله رب العزت په لاره کې جهاد وکړي دا يې چې واورېدل نو رسول الله ﷺ د حضرت سعد رضي الله عنه ډېر تعريف وکړ او هغه ته يې د خير دعا وکړه بيا د رسول الله ﷺ لپاره يو څپر جوړ کړی شو چې په هغه کې هغه اوسېده.(١)

**د رسول الله ﷺ سره د يو صحابي محبت او په دې باره کې ايت نازلېدل:**

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي: يو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړ چې اې د الله جل جلاله رسوله! زما د خپل ځان او د خپل اولاد نه هم زيات تاسو سره محبت دی زه څينې وخت په کور کې يم او تاسو ما ته رايا د شئ! نو چې تر څو پورې چې ستاسو په خدمت کې حاضر نه شم او زيارت ونکړم نو ما ته ارام نه راځي او س ما ته دا خيال راغلی دی چې زه به هم وفات شم او تاسو به هم د دنيا نه تشريف يوسئ! او تاسو خو به د نبيانو نه د ټولو نه لوړې درجې جنت ته لاړ شئ! او زه به لاندې جنت کې پاتې شم نو ما

(١) اسناده ابن اسحاق كذا في البداية (٣/٢٦٨)

ته وېره ده چې زه به هلته ستاسو ملاقات نشم کولی نو بیا به زما په جنت کې څنګه زړه ولګیږي؟ رسول الله ﷺ لا د دې جواب نه و ورکړی چې جبرائیل عَلَیْهِ السَّلَامُ دا آیت راوړ:

وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَأُولَٰئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ مِنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ (١)

ترجمه: او څوک چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رسول خبره او مني نو داسې کسان به هم هغه حضراتو سره وي چې په هغوی باندې الله رب العزت انعام کړی دی یعنې نبیان، صدیقین، او شهداء او صالحین.(٢)

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: یو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض یې وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما تاسو سره دومره زیات محبت دی کله چې تاسو ما ته را یاد شئ! نو که چېرې زه ستاسو ملاقات ونکړم نو داسې ګنم لکه چې زما ساه له بدنه وځي او س ما ته دا خیال راغی چې که چېرې زه جنت ته هم لاړ شم نو ما ته به ستاسو نه لاندې جنت ملاوېږي او زه به ستاسو زیارت نشم کولی نو زه به په جنت کې تکلیف او چتوم دې لپاره زه غواړم چې د جنت په درجه کې زه تاسو سره یو ځای شم دې لپاره کله چې مې زړه ورنکړو په دې باندې الله رب العزت دا ایت نازل کړ:

وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَأُولَٰئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ مِنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ (٣)

بیا رسول الله ﷺ هغه سړی را وغوښتلو او دا آیت یې ورته واورولو.(٤)

**دهغه صحابي قصه چې د الله تعالی او رسول الله ﷺ محبت قیامت ته تیار کړو:**

بخاري او مسلم د حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روایت کوي چې: یو سړی راغی او د رسول الله ﷺ نه یې پوښتنه وکړه چې قیامت به کله راځي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل چې تا د هغې لپاره څه تیاری کړی دی؟ هغه وویل چې نور خو مې څه نه دي کړي صرف دا دی چې زما الله جَلَّ جَلَالُهُ او دهغه رسول ﷺ سره محبت دی، رسول الله ﷺ وفرمایل چې ته به د هغه چا

١: سورة النساء آیت ٦٩

٢: اخرجه الطبراني قال الهیثمي (٧/٧) رواه الطبراني في الصغير والاوسط ورجاله رجال الصحيح غير عبدالله بن عمران العابدي وهو ثقة انتهى واخرجه ابونعيم في الحلية (٤/٢٤٠) عن عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا بهذا السياق والاسناد وقال هذا حديث غريب من حديث منصور وابراهيم تفرد به فضيل وعنه العابدي.

٣: سورة النساء ٦٩

٤: عند الطبراني قال الهیثمي (٧/٧) رواه الطبراني وفيه عطا بن السائب وقد اختلط اه.

سره يې چا سره چې دې دلته محبت وي حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله ﷺ کوم دا فرمايلي دي چې تاسو به د هغه چا سره يئ! د چا سره چې ستاسو محبت وي په دې خبره چې مونږ څومره خوشحاله شوي وو دومره په بل شي زه نه يم خوشحاله شوی او زما د رسول الله ﷺ او د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره محبت دی او چونکه زما له دې حضراتو سره محبت دی او له دې وجې نه زما پوره امېد دی چې زه به هم دې حضراتو سره يم د بخاري په يو روايت کې دا دی چې يو بانديچي د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او وې ويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! قيامت به کله راځي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل ته بنه شې تا دهغې لپاره څه تياري کړې دی؟ هغه وويل چې نور خو مې څه نه دی کړی خو دومره خبره ضرور ده چې زما الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه رسول ﷺ سره محبت دی رسول الله ﷺ وفرمايل چې ستا د چا سره محبت وي ته به هم هغوی سره يې حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې دا زېرى زمونږ لپاره هم دی؟ يا د دې بانديچي لپاره دی رسول الله ﷺ وفرمايل او ستاسو لپاره هم دی په دې خبره باندې دغه ورځ مونږ ډېر خوشحاله شو د ترمذي په روايت کې د دېنه پس دا دی چې حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې ما د رسول الله ﷺ د صحابه د دېنه زيات خوشحاله په بل څه نه دی ليدلی يو سړی پوښتنه وکړه چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! يو سړی د بل کس سره په دې وجه محبت کوي چې هغه نېک عملونه کوي خو دي پخپله نېک عملونه نه کوي نو آيا دي به هم د محبت د وجې نه هغه سره وي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل چې څوک چا سره محبت ساتي هم هغه سره به وي.

**سړي به د هغه چا سره وي چې محبت ورسره لري:**

حضرت ابوذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: ما عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! يو سړی د يوه قوم سره محبت کوي خو د هغوی پشان عمل نه کوي آيا دي به د هغوی سره وي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل اې ابوذره! ته به د هغه چا سره يې چا سره چې دې محبت دی رسول الله ﷺ وفرمايل چې ته چې چا سره محبت کوې هغه سره به يې ما خپله خبره بيا وکړه نو رسول الله ﷺ بيا هم ارشاد وفرمايلو.(١)

**کله چې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د فقر سره مخ شو:**

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: يو ځل رسول الله ﷺ باندې سخته تبه راغله چې د

---

١: عند ابي داود كذا في الترغيب (٤/٤٢٩،٤٣١،٤٣٢)

هغې خبر حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته په څه طريقه ملاو شو هغه د يو كار په تلاش كې اووتلو چې د طعام څه انتظام وكړى شي او هغه رسول الله ﷺ ته مخكې كړى شي نو هغه د يو يهودي باغ ته لاړو او د اوبو اوولس بوقې يې راوېستلې د هرې بوقې په بدله كې د يوې كجورې خبره شوې وه يهودي خپلې هر قسمه كجورې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته مخكې كړې رسول الله ﷺ پوښتنه وكړه اې ابو الحسنه! تا ته دا كجورې د كوم ځاى نه ملاو شوې؟ هغه ووېل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ما ته ستاسو د سختې لوږې خبر را ورسيد نو زه د څه كار په تلاش كې لاړم چې ستاسو لپاره د طعام څه شى راوړم رسول الله ﷺ وفرمايل آيا تا داسې د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه د رسول ﷺ د محبت د وجې نه كړې دي؟ حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ووېل هو! اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! رسول الله ﷺ وفرمايل چې كوم بنده د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه رسول ﷺ سره محبت كوي نو لوږه او فقيري هغه طرفته د دې نه هم زيات په تېزۍ سره راځي څنګه چې د سېلاب اوبه په تېزۍ سره ښكته راځي همدارنګه څوك چې د الله او د هغه رسول ﷺ سره محبت وكړي هغه له په كار دي چې هغه د مصيبتونو او ازمېښتونو لپاره ډال يعنې صبر، زُهد او قناعت تيار كړي.(۱)

**د حضرت كعب بن عجره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قصه:**

حضرت كعب بن عُجره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: زه د رسول الله ﷺ په خدمت كې حاضر شوم ما وليدل چې د هغوى رنګ بدل شوى دى ما عرض وكړ زما مور پلار دې په تاسو قربان وي څه خبره ده؟ ما ته ستاسو رنګ بدل په نظر راځي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل چې د درېوو ورځو نه زما خېټې ته داسې شى نه دى رسېدلى چې د يو ځاندار خېټې ته ځي دې اورېدو سره زه روان شوم نو ما وكتل چې يو يهودي د كوهي نه اوبه راوباسي خپلو اوښانو باندې يې څښي ما د يوې بوقې بدله كې يوه كجوره د هغه اوښانو ته اوبه وركول شروع كړې اخر څو كجورې جمع شوې چې ما د رسول الله ﷺ په خدمت كې مخكې كړې هغوى ﷺ پوښتنه وكړه چې اې كعب! آيا ستا ما سره محبت دى ما ووېل هو! زما مور پلار دې په تاسو قربان وي هغوى ﷺ وفرمايل چې څوك ما سره محبت كوي نو هغه خوا ته فقيري د دې نه هم زياته په تېزۍ سره راځي څومره تېزۍ سره چې د سېلاب اوبه ښكته راځي او س به په تا باندې د الله جَلَّ جَلَالُهُ د طرفه ازمائش راځي

۱: اخرجه ابن عساكر كذا في الكنز العمال (۲/۳۲۱) وقاله فيه حسن

هغې لپاره دال تیار کړه! دې نه پس زه مریض شوم او د رسول الله ﷺ [illegible]
او نه کړه نو کله چې زه رسول الله ﷺ ته ورځې ونه لیدم نو د صحابه [illegible]
هغه بیمار دې دا یې چې واورېدل نو رسول الله ﷺ پیاده زما کور ته [illegible] فرمایل [illegible]
کعب! تا ته دې زېری وي زما مور وویل ای ام کعب! تا ته دې د جنت [illegible]
الله ﷺ وفرمایل په الله جَلَّ جَلَالُهُ باندې قسم خوړونکې څوک ده؟ ما [illegible] جَلَّ جَلَالُهُ
رسوله! دا زما مور ده رسول الله ﷺ زما مور ته وفرمایل ای کعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ [illegible]
کېدی شي چې کعب څه بې فایدې خبره کړي وي او غوښتونکې ضرورتمند ته [illegible]
نه وي ورکړی چې د هغې پخپله هغه ته ضرورت نه وي.(۱)
د کنز په روایت کې دا الفاظ دي چې شاید کعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بې فایدې خبره کړې وي [illegible]
داسې شی ورکړي وي چې د ده ضرورت به نه وي.

**طلحه بن براء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د رسول الله ﷺ سره محبت:**

حضرت حُصین بن وحوح رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي کله چې حضرت طلحه بن براء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د رسول
الله ﷺ سره ملاوېدو لپاره لاړو نو هغه رسول الله ﷺ ته نزدې شو او د هغوی ﷺ پښې
مبارکې یې ښکلولې او عرض یې وکړ چې ای د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! چې تاسو څه غواړئ!
ما ته حُکم وکړئ! زه به ستاسو د حکم هم نافرماني نه کوم حضرت طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کم عمره
هلک وو ځکه چې رسول الله ﷺ د هغه په دې خبره باندې حیران شو په دې باندې ورته
رسول الله ﷺ وفرمایل چې لاړ شه! خپل پلار قتل کړه! هغه د خپل پلار د وژلو په اراده روان
شو نو رسول الله ﷺ را وغوښته او وې فرمایل دلته راشه! زه د رشتې ختمولو لپاره نه یم
رالېږل شوي د دېنه پس حضرت طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مریض شو رسول الله ﷺ د هغه بیمار پرسۍ
لپاره د هغه کور ته لاړو د یخنۍ زمانه وه ښه یخني وه او وریځې هم وې کله چې هغوی ﷺ
واپس کېده نو د حضرت طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کور والاو ته یې وویل چې ما ته خو د
طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د مرګ اثرات ښکاري کله چې دي وفات شي نو ما خبر کړئ! چې زه یې د
جنازې مونځ وکړم او د ده په کفن دفن کې تیزي وکړئ! رسول الله ﷺ لا قبیله بنو سالم بن

---

۱: اخرجه الطبراني قال الهیثمي (۱۰/۳۱۴) رواه الطبراني في الاوسط واسناده جیداه وکذا قال في الترغیب (۵/۱۵۳) عن شیخه والحافظ ابی الحسن واخرجه ابن عساکر مثله کما في الکنز (۳/۳۲۰)

عوف ته نه وو رسېدلی چې حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفات شو او د شپې وخت شوي وو حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنهُ چې د وفات نه مخکې کومې خبرې وکړې په هغې کې دا وصیت هم وو چې ما زر ښخ کړئ! تر څو خپل رب ته زر ورسېږم! او رسول الله ﷺ مه راغواړئ! ځکه چې ما ته دا وېره ده چې هسې نه رسول الله ﷺ زما د وجې نه د شپې تشریف راوړي او په لاره کې ورته یهود تکلیف ورسوي نو د شپې رسول الله ﷺ ته اطلاع ورکولو نه بغیر د جنازې مونځ یې وکړ د هغه د خاندان خلکو هغه ښخ کړو او سهار کله چې رسول الله ﷺ خبر شو نو د حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنهُ قبر له لاړو او د قبر په خوا کې ودرېده او خلکو هم صف جوړ کړو هغوی سره ودرېدل او هغوی دواړه لاسونه اوچت کړل دا دعا یې وغوښتله اې الله جَلَّ جَلَالُهُ ستا ملاقات دې له حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنهُ سره په داسې حال کې وي چې ته هغه وګوري او خاندې او هغه تا ته ګوري او خاندي! (۱)

حضرت طلحه بن براء رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایي: زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم او عرض مې وکړ چې تاسو لاس رامخکې کړئ! چې زه له تاسو سره بیعت وکړم رسول الله ﷺ وفرمایل چې که چېرې زه تا ته د خپل مور پلار سره د اړیکو پرېښودلو لپاره ووایم نو هم به ته بیعت کولو ته تیار یې؟ ما وویل نه! زه دوباره حاضر شوم او عرض مې وکړ چې تاسو خپل لاس رامخکې کړئ! چې زه له تاسو سره بیعت وکړم، رسول الله ﷺ وفرمایل چې په کومه خبره بیعت کول غواړې؟ ما وویل په اسلام باندې هغوی وفرمایل چې که چېرې زه تا ته د مور پلار سره د اړیکو پرېښودلو لپاره ووایم نو بیا؟ ما وویل نه! زه سبا په درېیم ځل حاضر شوم او د بیعت غوښتنه مې وکړې زما مور ژوندۍ وه او ما د هغې سره د نورو خلکو نه ډېره ښه رویه کوله رسول الله ﷺ وفرمایل اې طلحه! زمونږ په دین کې رشته ختمول نشته خو ما داغوښتل چې ستا په دین کې هیڅ شک پاتې نه شي رواي وایي چې طلحه رَضِيَ اللهُ عَنهُ مسلمان شو او ډېر ښه مسلمان جوړ شو ډېره ورسته بیا دی مریض شو نو رسول الله ﷺ د هغه د مریضۍ د پوښتنې لپاره د هغه کور ته لاړ کله چې رسول الله ﷺ تشریف یوړلو نو دی بې هوشه وو رسول الله ﷺ وفرمایل چې ما ته خو هم دا په نظر راځي چې هم نن شپه دې

---

۱: اخرجه الطبراني كذا في الكنز (۷/۵۰) واخرجه البغوي وابن ابي خيثمة وابن ابي عاصم وابن شاهين وابن السكن كما في الاصابة (۲/۲۲۷) قال الهيثمي (۹/۳۶۵) وقد روي ابو داود بعض هذا الحديث وسكت عليه فهواحسن انشاء الله انتهى.

وفات کېږي خو که چېرې دي بيدار شو نو ما خبر کړئ! نيمه شپه کې هغه چېرته په هوش کې راغی نو پوښتنه يې وکړه چې رسول الله ﷺ زما بيمارپرسی ته نه وو راغلی؟ کوروالاوو ورته وويل چې راغلی وو او دا يې فرمايلي وو کله چې ته په هوش کې راشې نو موږ به هغوی خبر کړو حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې اوس هغوی ته څه خبر مه ليږئ! ځکه چې شپه ده ځناور به يې مات کړي يا به ورته نور څه تکليف ورسېږي کله چې زه وفات شم نو رسول الله ﷺ ته زما سلام کوئ! او هغوی ته عرض وکړئ! چې زما لپاره استغفار اوغواړئ! رسول الله ﷺ کله چې د سحر مانځه نه فارغ شو نو د هغه په باره کې يې پوښتنه وکړه خلکو ورته وويل چې هغه وفات شوی دی او د وفات کېدو نه مخکې هغه ويلي چې رسول الله ﷺ ته مه وايئ! رسول الله ﷺ هم هغه وخت لاسونه اوچت کړل او دا دعا يې وکړه چې اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! ده سره دې ستا ملاقات په داسې حال کې وي چې ته ده ته وګورې، وخاندې او دی تا ته وګوري، وخاندي.(١)

**عبدالله بن حذافه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د رسول الله ﷺ سره محبت:**

حضرت زهري وايي چې د رسول الله ﷺ په خدمت کې د حضرت عبدالله بن حذافه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا شکايت بيان کړی شو چې هغه ټولې ډېرې کوي او بيکاره خبرې کوي رسول الله ﷺ وفرمايل چې هغوی پرېږدئ! په هغه کې يو پټ ښه صفت دی هغه دا دی چې هغه الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه رسول ﷺ سره محبت کوي. (٢)

**درسول الله ﷺ قول کله چې د عبدالله بن ذی البِجَادَين جنازه پورته شوه:**

حضرت ادرع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: يوه شپه زه راغلم د رسول الله ﷺ څوکيداري مې کوله نو هلته يو سړی په اوچت اواز سره قرآن لوستلو رسول الله ﷺ بهر ته تشريف راوړو ما وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! دا په اوچت اواز سره قرآن لوستونکي رياکار دی رسول الله ﷺ وفرمايل نه دا خو عبدالله ذوالبجادين دي بيا د هغه په مدينه کې وفات شو کله چې صحابه وو د هغه جنازه تياره کړه او هغه يې اوچت کړو روان شول نو رسول الله ﷺ وفرمايل چې ده سره نرمي کوئ! الله رب العزت ده سره د نرمۍ معامله کړې ده ده به د الله رب العزت او د هغه

---

١: اخرجه الطبراني ايضا عن طلحه بن مسكين قال الهيثمي (٩/٣٦٥) رواه الطبراني مرسله وعبد ربه بن صالح لم اعرفه وبقية رجاله وثقوا انتهى واخرجه ابن السكن نحوه كما في الاصابة (٢/٢٢٧)

٢: اخرجه ابن عساكر كذا في المنتخب (٥/٢٢٣)

د رسول ﷺ سره محبت کولو کله چې رسول الله ﷺ مقبرې ته اورسېدو نو قبر کېنستلې شو
هغوی ﷺ وفرمايل چې د دې قبر به پراخ او لوې کړې! الله رب العزت د ده سره د پراخۍ
معامله کړې ده یو صحابي عرض وکړ چې اې د الله جَلَّجَلَالُهُ رسوله! تاسو د ده په مرګ باندې
ډېر غمجن يئ! هغوی ﷺ وفرمايل هو! ځکه چې ده د الله جَلَّجَلَالُهُ او د هغه د رسول ﷺ سره
محبت کولو.(۱)

**د آنحضرت ﷺ سره د ابن عمر، زيدبن دثنه او خُبيب بن عدی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ دمحبت قصې:**

حضرت عبدالرحمن بن سعد رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې زه د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره وومه
هغه پښه ويده شوه ما ورته وويل چې اې ابو عبدالرحمن! ستا په پښه څه وشو؟ هغوی وويل چې
د دې ځائ نه د دې پټه يو ځائ شوې ده ما وويل چې ستاسو د ټولو نه زيات محبت د چا سره
وي د هغه نوم واخله، ان شاء الله پښه به دې صحيح شي، هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل اې
محمد ﷺ! او دې ويلو سره د هغوی پښه صحيح شوه او پښه يې خوزه کړه!(۲)

د صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ د الله جَلَّجَلَالُهُ په لاره کې د شهيد کېدو د شوق په باب کې تېر
شوی دی چې د حضرت زيد بن دثنه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د قتلولو په وخت کې ورته ابوسفيان وويل
چې تر دغه وخت يې ايمان نه وو راوړی چې اې زيده! زه تا ته د الله جَلَّجَلَالُهُ قسم درکوم! او
پوښتنه کوم آيا ستا دا خوښه ده چې محمد ﷺ دا وخت که چېرې مونږ سره وای او مونږ ستا
په ځائ د هغه سر قلم کړو او ته خپل اولاد سره اوسېږې؟ حضرت زيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وويل:
په الله قسم زه داهم نه خوښوم چې حضرت محمد ﷺ په دې وخت کې چېرته دی هلته به
هغه کې يو ازغي هم ننوځي او د دغه تکليف په بدله کې زه خپل بال بچ سره ناست يم ځو مرا
محبت چې د محمد ﷺ د صحابه وو د محمد ﷺ سره دې او دا هم تېر شوی دی چې کافرانو
حضرت خُبيب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په سولۍ (دار) وخېژولو او په اوچت آواز سره يې قسم ورکړو او
پوښتنه يې ترې وکړه چې آيا ته دا خوښوې؟ چې حضرت محمد ﷺ ستا په ځائ باندې وای
او هغه په سولۍ کړی شي؟ حضرت خُبيب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل نه! په لوي الله جَلَّجَلَالُهُ قسم!
زما خو داهم نه ده خوښه چې زما په بدله کې دې د هغوی په پښه کې ازغي هم ننوځي.

---

۱: اخرجه ابن ماجه والبغوي وابن منده وابونعيم كذا في المنتخب (۵/۲۲۴) وقال في سنده موسى بن عبيدا الزبدى ضعيف.

۲: اخرجه ابن سعد(۴/۱۵۴)

# د رسول الله ﷺ محبت ته په خپل محبت ترجیح ورکول

حضرت انس رضي الله عنه د حضرت ابو قحافه رضي الله عنه د اسلام راوړلو په قصه کې بیانوي کله چې حضرت قُحافه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه بیعت کولو لپاره خپل لاس مخکې کړو نو حضرت ابوبکر رضي الله عنه په ژړا شو رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه چې ولې ژاړې؟ حضرت ابوبکر رضي الله عنه عرض وکړ ا که چېرته په دې وخت زما د پلار په ځائ ستاسو د تره لاس بیعت کېدو لپاره وی او هغه مسلمان شوی وای او الله رب العزت د هغه په اسلام راوړلو سره ستاسو سترگې یخې کړې وای نو دا زما لپاره زما د پلار د مسلمانېدو نه زیات د خوشحالۍ سبب به وی او زما به زیاته خوښه وه ځکه چې تاسو به د تره په اسلام راوړلو سره زیات خوشحاله وای. (۱)

**هغه څه چې په دې باره کې د حضرت عمر او عباس رضي الله عنهما ترمینځ پېښ شول:**

حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمایي، حضرت ابوبکر رضي الله عنه د خپل پلار حضرت ابو قحافه رضي الله عنه لاس د مکې د فتح په ورځ اونیولو او د رسول الله ﷺ په خدمت کې یې راووست ځکه چې هغه بوډا هم وو او ړوند هم وو رسول الله ﷺ حضرت ابوبکر رضي الله عنه ته وفرمایل چې دا مشر سړی دې کور کې ولې نه پرېښودو؟ مونږ به ورته ورغلي وای هغه وویل ای د الله جل جلاله رسوله اما غوښتل چې الله رب العزت دوي ته پخپله د تلو او خدمت کې د حاضرېدو اجر ورکړي زه چې څومره د خپل پلار په اسلام راوړلو خوشحاله یم ستاسو د تره د ابوطالب په اسلام راوړلو به د دې نه زیات خوشحاله شوی وای ځکه چې په دې سره به ستاسو سترگې یخې شوې وای او ستاسو د سترگو یخېدل هم زما د ژوند مطلب دی، رسول الله ﷺ وفرمایل چې ته صحیح وایې ستا په زړه کې هم دا خبره ده. (۲)

حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمایي، د جنگ بدر په ورځ نورو بندیانو سره حضرت عباس رضي الله عنه هم قید شوی وو هغه یو انصاري قید کړی وو انصارو هغه ته دهمکې ورکړې وه رسول الله ﷺ ته د دې خبر اورسېدو نو وې فرمایل چې نن شپه زه د خپل تره عباس له وجهې ویده نه شوم، ځکه چې انصارو ویلي دي، مونږ به عباس قتل کړو، حضرت

---

۱: اخرجه عمر ابن شیبه وابویعلي وابوالبشر سمویه فی فوائده وسنده صحیح واخرجه الحاکم من هذا الوجه وقال صحیح علی شرط الشیخین کذا فی الاصابة (۲/۱۱٦)

۲: عندالطبراني والبزار قال الهیثمي (٦/۱۷۴) وفیه موسی بن عبیدة و هو ضعیف.

عمر رضي الله عنه وويل آيا زه انصارو ته ورشم؟ او د هغوی نه عباس راولم رسول الله ﷺ وفرمایل هو! لاړ شه! هغه لاړو او انصارو ته یې وویل چې عباس پرېږدئ! هغوی وویل: په الله جل جلاله قسم! مونږ دې نه پرېږدو حضرت عمر رضي الله عنه وویل که چېرې د دې پرېښودلو سره د الله جل جلاله رسول ﷺ رضا کېږي نو بیا؟ انصارو وویل که چېرې د دې پرېښودلو سره د الله جل جلاله رسول ﷺ رضا کېږي نو بیا یې ته بوځه! نو حضرت عمر رضي الله عنه د انصارو نه حضرت عباس خلاص کړو کله چې هغه د حضرت عمر رضي الله عنه لاس ته ورغی نو حضرت عمر رضي الله عنه ورته وویل اې عباسه! مسلمان شه! په الله جل جلاله قسم! ستا مسلمانېدل ما ته د خپل پلار د خطاب د مسلمانېدو نه زیات خوښ دی او د دې وجه دا ده چې ما لیدلی دی چې رسول الله ﷺ ته ستا مسلمانېدل خوښ دي. (۱)

حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمایي: حضرت عمر رضي الله عنه حضرت عباس رضي الله عنه ته وویل چې اسلام راوړه! ستا اسلام راوړل ما ته د خپل پلار د خطاب د مسلمانېدو نه زیات خوښ دی او د دې وجه دا ده چې ما لیدلی دی چې رسول الله ﷺ دا غوښتل چې تا ته په اسلام راوړلو کې مخکې والي په برخه شي.(۲)

حضرت شعبي رحمه الله وایي چې حضرت عباس رضي الله عنه د خپل یو کار کولو لپاره حضرت عمر رضي الله عنه باندې زیات زور راووړ او وې ویل اې امیر المؤمنین! تاسو لږ دا وښایئ! که چېرې تاسو ته د حضرت موسی علیه السلام تره د مسلمانی په حالت کې راغلی وای نو تاسو به د هغه سره څه کول؟ حضرت عمر رضي الله عنه وویل چې په الله جل جلاله قسم! ما به د هغه سره ډېره ښه رویه کړې وای حضرت عباس رضي الله عنه وویل چې زه د رسول الله ﷺ تره یم حضرت عمر رضي الله عنه وویل اې ابو الفضل! (دا د حضرت عباس رضي الله عنه کنیت دی) ستاسو څه خیال دی په الله جل جلاله قسم! ستا پلار ما ته د خپل پلار نه زیات محبوب دی حضرت عباس رضي الله عنه وویل چې واقعي په الله جل جلاله قسم! حضرت عمر رضي الله عنه وویل چې او په الله جل جلاله قسم! ځکه چې ما ته معلومه ده چې ستا پلار رسول الله ﷺ ته زما د پلار نه زیات محبوب دی او زه رسول الله ﷺ ته په خپل محبت باندې غوره والی ورکوم.(۳)

---

۱: اخرجه ابن مردویه والحاکم کذا فی البدایة (۳/۲۹۸)

۲: عند ابن عساکر کذا فی الکنز العمال (۷/۶۹)

۳: عند ابن سعد (۴/۲۰)

حضرت ابو جعفر بن علي رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته راغی او هغه ته یې وویل چې رسول الله ﷺ ما ته د بحرين علاقه د جاګير په طريقه راکړې وه حضرت عمر پوښتنه وکړه چې د دې خبرې بل چا ته علم شته دی حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل چې حضرت معيره بن شعبه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته! نو حضرت مغيره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغه په حق کې شاهدي وکړه خو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په حق کې فيصله ونکړه ګواکې هغوی د حضرت معيره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ شاهدي قبوله نه کړه په دې باندې حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته سختې خبرې وکړې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ځوی حضرت عبدالله ته وویل اې عبدالله! د خپل پلار لاس دې ونيسه! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! اې ابوالفضل! که چېرې زما پلار خطاب ايمان راوړی وای نو د هغه په اسلام راوړلو به چې زه څومره خوشحاله وم ما ته ستا په اسلام راوړلو د هغې نه زيات خوشحالي وه ځکه چې ستا اسلام راوړل د رسول الله ﷺ د خوشحالی سبب وو.(۱)

**د ابوسعيد خدري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حديث: څوک چې په مدينه منوره کې وفات شي:**

حضرت ابو سعدي خدري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي کله چې رسول الله ﷺ مدينې منورې ته تشريف راوړو نو په اول کې زمونږ طريقه دا وه کله چې به په مونږ کې څوک وفات کېدلو نو مونږ به رسول الله ﷺ ته خبر ورکولو رسول الله ﷺ به ورته تشريف راووړ او هغه لپاره به يې استغفار فرمايلو تر دې چې کله چې به هغه وفات شو نو رسول الله ﷺ به خپلو ملګرو سره بېرته راته او کله کله به د دفن کولو پورې هلته ايسار وو دا شان به بعضې وخت هلته ډېر وخت لګېده کله چې مونږ درک کړه چې رسول الله ﷺ ته ډېر تکليف وي نو مونږ په خپلو کې يو بل ته وويل چې مونږ به رسول الله ﷺ د وفات کېدو نه پس خبر وو نو په دې سره به رسول الله ﷺ ته د زيات ايساريدو تکليف نه وي نو بيا مونږ هم دغسې کول او رسول الله ﷺ ته به مونږ د ملګري د وفات نه پس خبر ورکولو هغوی به تشريف راوړو او د جنازې مونځ به يې کولو او د هغه لپاره به يې استغفار کولو کله به چې د جنازې مونځ نه فارغ شو نو واپس به يې تشريف يوړو کله کله به د دفن کولو پورې ايسار وو څه موده پورې زمونږ دا دستور وو بيا مونږ پخپلو کې وويل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! که چېرې مونږه رسول الله ﷺ ته د

---

۱: عند ابن سعد(۴/۲۰) ايضا

راتلو تکلیف نه ورکوو بلکې مونږ به جنازه اخلو او د رسول الله ﷺ کور خواته به یې وړو او بیا به هغوی ته خبر ورکوو او رسول الله ﷺ به هم خپل کور سره د هغه د جنازې مونځ کولو نو په دې کې به رسول الله ﷺ ته د ډېره اسانتیا وي نو مونږ بیا داسې کول شروع کړل حضرت محمد بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي له دې وجې نه دی ځای ته جنازگاه وایي ځکه چې جنازې به دغلته راوړل شوې او بیا د هغې نه پس تر دې ننه پورې هم دغه سلسله راروانه ده چې خلک خپلې جنازې هلته راوړي او هلته پرې د جنازې مونځ کولی شي .(۱)

**د آنحضرت ﷺ محبت دوجهې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ محبت د فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره:**

حضرت اسلم رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ لور بي بي حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته ورغلو او وې فرمایل اې فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ما داسې څوک ونه لیدل چې د رسول الله ﷺ هغه سره ستا نه زیات محبت وي په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ستا د پلار نه پس ستا نه زیات زما هیچا سره محبت نشته.(۲)

## د رسول الله ﷺ عزت او تعظیم کول

**رسول الله ﷺ ته په کتلو کې دصحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ادب:**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي، مهاجرین او انصار صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به ناست وو او په هغوی کې به حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم وو رسول الله ﷺ به تشریف راوړو نو د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه پرته به هیچا هم رسول الله ﷺ طرفته د عظمت د وجې نه سترګې نه اوچتولې دې دواړو حضراتو به هغوی خواته کتل او هغوی به دې دواړو طرف ته کتل دواړو به رسول الله ﷺ ته کتل او مسکی کېدل به او رسول الله ﷺ به دوي ته کتل او مسکی کېدلو به ځکه چې د رسول الله ﷺ دې دواړه حضراتو سره ډېر اړیکې او ډېر زیات مناسبت ؤ .(۳)

**صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د رسول الله ﷺ خواوشا څنګه کېناستل!**

حضرت اسامه بن شریک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي، یو ځل مونږ د رسول الله ﷺ سره داسې سکون ناست وو چې ګویا زمونږ په سرونو باندې مارغان ناست دی یعنې بلکل نه ښوریدو

۱: اخرجه ابن سعد (۱/۲۵۷)
۲: اخرجه الحاکم کذا فی کنز العمال (۷/۱۱۱)
۳: اخرجه الترمذي کذا فی الشفاء للقاضي عیاض (۲/۳۲)

ځکه چې مارغه په معمولي ښوريدلو سره الوزي او مونږ کې به هيڅ خبرې نه کولې چې په دې کې څه خلک د رسول الله ﷺ په خدمت کې راغلل او هغوی پوښتنه وکړه چې د الله په بنده ګانو کې الله ته څوک زيات محبوب دي رسول الله ﷺ وفرمايل په دوي کې د ټولو نه ښه اخلاقو والا.(۱)

حضرت اسامه بن شريک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم نو صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د هغوی نه ګير چاپيره داسې په ارام سره ناست وو لکه چې د هغوی په سرونو باندې مارغان ناست وي.(۲)

**په براء بن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې د رسول الله ﷺ هيبت:**

حضرت براء بن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: ما د څه شي په باره کې د رسول الله ﷺ نه د پوښتنې اراده کوله ليکن دوه کاله به مې د رسول الله ﷺ د هيبت په وجه پرته له پوښتنې کولو نه تيرول.(۳)

**صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ به د رسول الله ﷺ د اودس په اوبو تبرک حاصلولو:**

حضرت زُهري وايي چې ما ته يو قابل اعتماد انصاري دا بيان کړی دی کله چې به رسول الله ﷺ اودس کولو يا به يې غاړه صفا کوله نو صحابه وو به منډه کړه او د اودس اوبه او د غاړې صفا کولو لاړې به يې اخيستلې او هغه به يې په خپلو مخونو او بدن باند مږلې، يو ځل رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه چې تاسو ولې داسې کوئ؟ صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ عرض وکړ چې مونږ په دې سره برکت لاسته راوړل غواړو بيا رسول الله ﷺ وفرمايل چې کوم سړی د الله او د هغه د رسول ﷺ محبوب جوړيدل غواړي هغه له په کار دی چې هغه رښتيا خبره کوي امانت اداء کوي او ګاونډي ته تکليف نه رسوي.(۴)

امام بخاري چې د حضرت مسور بن مخرمه او د مروان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د صلح حديبيه کوم حديث بيان کړی دی هغه په اوله حصه کې تير شوی دی چې بيا حضرت عُروه د رسول الله ﷺ صحابه وو ته ډير په غور سره کتل هغه وايي چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! رسول الله ﷺ به کله

---

۱: اخرجه الطبراني وابن حبان في صحيحه كذا في الترغيب (۴/۱۸۷) وقال ورواة الطبراني محتج بهم في الصحيح
۲: اخرجه الاربعة وصححه الترمذي كذا في ترجمان السنة (۱/۳٦۷)
۳: اخرجه ابو يعلي وكذا في ترجمان السنة (۱/۳۷۰)
۴: اخرجه البيهقي كذا في الكنز (۸/۲۲۸)

چې هم توکل نو هغه به یو نه یو صحابي خپل لاس کې راخیستلې او هغه به یې په خپل مخ او بدن باندې مګلې او رسول الله ﷺ به کله چې هغوی ته د څه کار حکم ورکولو نو صحابه وو به هغه فوراً کولو او کله چې به یې اودس کولو نو د اودس اوبو اخیستلو لپاره به صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په یو بل پرېوتل او جنګ کولو ته به نږدې شو او کله چې به یې خبرې کولې نو صحابه وو به خپل اوازونه ښکته کول او د صحابه وو په زړونو کې به د رسول الله ﷺ دومره عظمت وو چې هغوی به ورته په ډک نظر سره نشو کتلی نو عُروه خپلو ملګرو ته واپس لاړو او ورته یې وویل چې زه د لویو لویو بادشاهانو دربارونو ته تللی یم د قیصر او کسری او نجاشي دربار ته تللی یم په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ما داسې هیڅ یو بادشاه نه دی لیدلی چې د هغه تعظیم د هغه دربار والا دومره کوي څومره چې د محمد ﷺ صحابه د محمد ﷺ کوي.

حضرت ابو قراد سلمي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: مونږ رسول الله ﷺ سره ناست وو هغه د اودس لپاره اوبه راوغوښتلې بیا یې په هغې کې لاس واچولو او دس یې شروع کړو مونږ به د رسول الله ﷺ د اودس اوبه لاسونو کې اخیستلې او څښلې به مو، دا یې چې ولیدل نو وې فرمایل چې تاسو داسې ولې کوئ؟ صحابه وو عرض وکړ چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه د رسول ﷺ د محبت په وجه رسول الله ﷺ وفرمایل که چېرې تاسو دا غواړئ! چې الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه رسول ﷺ هم تاسو سره محبت وکړي نو کله چې تاسو سره امانت کېښودل شي او ایښودونکي یې درنه اوغواړي نو تاسو هغه امانت اداء کوئ! او کله چې خبره کوئ! نو رښتیا وایئ! او څوک چې ستاسو ګاونډی شي هغه سره ښه سلوک کوئ.[1]

**ابن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د رسول الله ﷺ وینه مبارکه څښل:**

حضرت عامر بن عبد الله بن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: زما پلار حضرت عبد الله بن زبیر ما ته دا قصه واوروله چې هغه رسول الله ﷺ ته ورغلو هغوی د ښکر لګولو وخت وخت نو چې فارغ شو نو رسول الله ﷺ وفرمایل اې عبدالله! دا وینه یوسه! او داسې ځای کې یې توي کړه! چې هلته دې څوک اونه ویني د رسول الله ﷺ د کور نه چې بهر شو نو زما پلار هغه وینه اوڅښله کله چې هغوی ﷺ ته واپس لاړو نو پوښتنه یې ترې وکړه اې عبدالله! تا په وینه څه وکړل؟ هغه وویل چې په داسې پټ ځای کې مې واړوله چې زما دا یقین دی چې په خلکو کې به چا نه

[1] اخرجه الطبراني قال الهيثمي (٨/٢٧١) وفيه عبيد بن واقد القيسي وهو ضعيف.

هم پته ونه لګېږي رسول الله ﷺ وفرمايل شايد چې هغه تا څښلې ده؟ هغه وويل هو! رسول الله ﷺ وفرمايل تا وينه ولې اوڅښله؟ خلکو ته ستا نه هلاکت وي او تا ته به د خلکو نه! د مروان او عبدالملک د طرفه چې کومه فتنه راغلې ده د هغې خواته اشاره ده حضرت ابوموسی وايي چې حضرت ابوعاصم وفرمايل: د خلکو دا خيال وو چې حضرت عبدالله بن زبير کې چې کوم دومره زيات طاقت وو هغه د دغې وينې په برکت سره ؤ.(۱)

په يو روايت کې دا دی چې د خلکو دا خيال دی چې په حضرت عبدالله بن زبير کې کوم زيات قوت وو هغه د رسول الله ﷺ د وينې د قوت په وجه وو د رسول الله ﷺ فُضلات او وينه ټول پاک وو.

د حضرت عبدالله بن زبير غلام حضرت کيسان رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو نو وې ليدل چې د حضرت عبدالله بن زبير سره د تانبې لوښي دي چې د هغې نه څه څښي چې هغه يې وڅښل نو حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو رسول الله ﷺ وفرمايل چې د کار نه فارغ شوې؟ هغه وويل هو! حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! څه کار وو؟ رسول الله ﷺ وفرمايل ما د خپل ښکر لګولو وينه ده ته د غورزولو لپاره ورکړې وه حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې په هغه ذات مې دې قسم وي چا چې تاسو ته حق درکړی دی او رالېږلی يې يئ! ده خو هغه څښلې ده رسول الله ﷺ وفرمايل تا هغه څښلې ده؟ حضرت عبدالله وويل هو! رسول الله ﷺ وفرمايل ولې؟ هغه وفرمايل ما دا غوښتل چې د رسول الله ﷺ وينه مبارکه زما خېټې ته لاړه شي رسول الله ﷺ د حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په سر باندې لاس راکش کړو او ارشاد يې وفرمايلو چې د خلکو نه دی تا ته تباهي او ستا نه دی خلکو ته! تا به اور نه مسحه کوي صرف د الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم پوره کولو لپاره به په پول صراط باندې تېرېدل وي.(۲)

---

۱: اخرجه ابويعلي والبيهقى فى الدلائل كذا فى الاصابة (۲/۳۱۰) واخرجه الحاكم (۳/۵۵۴) والطبراني نحوه قال الهيثمى (۸/۲۷۰) رواه الطبراني والبزار باختصار ورجال البزار رجال الصحيح غير هنيد بن القاسم وهو ثقة انتهى واخرجه ايضا ابن عساكر نحوه كما فى الكنز (۷/۵۷) مع ذكر قول ابي عاصم.

۲: عند ابي نعيم فى الحلية (۱/۳۳۰) واخرجه ابن عساكر عن سلمان نحوه مختصرا ورجاله ثقات كذا فى الكنز (۷/۵۶)

**حضرت سفینه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د رسول الله ﷺ وینه مبارکه څښل:**

سفینه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي، یو ځل رسول الله ﷺ ښکر ولګاوه او راته وېې فرمایل: دا وینه یوسه او په داسې ځای کې یې دفن کړه چې د ځناورو، مرغانو او انسانانو نه محفوظ وي ما وینه یووړه او په پټه مې وڅښله بیا راغلم او رسول الله ﷺ ته مې وویل نو هغوی وخندل.(۱)

**د مالک بن سنان او رسول الله ﷺ قصه :**

حضرت ابوسعید خُدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي کله چې د جنګ احد په ورځ د رسول الله ﷺ مخ مبارک زخمي شو نو زما پلار حضرت مالک بن سنان د رسول الله ﷺ وینه راښکله او تېره یې کړه خلکو ورته وویل اې سړیه! ته وینه څښې؟ هغه وویل او زه د رسول الله ﷺ وینه څښم، په دې باندې رسول الله ﷺ وفرمایل د دې وینې سره زما وینه یو ځای شوې ده نو هم دا رنګه دي به د جهنم په اور باندې نه سو ځول کېږي.(۲)

**ام حکیمه بنت اُمَیمه او د رسول الله ﷺ بول څښل:**

حضرت حکیمه بنت امیمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا له خپلې مور نه نقل کوي چې د رسول الله ﷺ د لرګیو یوه پیاله وه چې هغه به نبي کریم ﷺ د خپل تخت لاندې ایښودله او کله به یې د شپې په هغې کې تش او د سماتي کولو یو ځل ودرېده هغه یې کتله هغه پیاله ملاو نشوه پوښتنه یې وکړه چې پیاله چېرته ده؟ کوروالاوو ورته وویل چې د ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا خادمې حضرت سره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا چې هغې سره حبشې نه راغلې ده هغې په دغه پیاله کې تش او د سماتي څښلی دی، رسول الله ﷺ وفرمایل هغې د جهنم د اور نه ډېره مضبوطه پرده جوړه کړېده.(۳)

**حضرت ابو ایوب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د رسول الله ﷺ تعظیم:**

حضرت ابو ایوب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: رسول الله ﷺ کله چې مدینې منورې ته تشریف راوړو نو ما سره به اوسېده رسول الله ﷺ لاندې اوسېده او زه سره د بال بچ پاس چت کې ووم کله چې شپه شوه نو ما ته خیال راغی چې زه د دې کمرې په چت باندې یم او په دې کې لاندې رسول الله ﷺ دي او زه د رسول الله ﷺ او د وحې په مینځ کې حائل جوړېږم له دې وجې نه ما ته ټوله شپه خوب رانغی چې هسې نه د اوده کېدو په حالت کې زمونږ په خوزېدو سره به

۱: اخرجه الطبراني قال الهیثمی (۸/۲۷۰) رجال الطبراني ثقات.
۲: اخرجه الطبراني فی الاوسط قال الهیثمی(۸/۲۷۰) لم ارفی اسناده من اجمع علی ضعفه انتهی.
۳: اخرجه الطبراني قال الهیثمی (۸/۲۷۱) رجاله رجال الصحیح غیر عبدالله بن احمد بن حنبل وحکیمة و کلاهما ثقة.

رسول الله ﷺ باندې دورې پرېوزې چې په هغې سره رسول الله ﷺ ته تکليف وي سحر زه د رسول الله ﷺ خدمت کې حاضر شوم او عرض مې وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! نن ټوله شپه نه ماته خوب راغی او نه زما بي بي ام ايوب ته! رسول الله ﷺ وفرمايل اې ابو ايوب! ولې؟ ما عرض وکړ چې ما ته خيال راغی چې زه د دې کوټې په چت باندې يم چې په هغې کې تاسو زما نه لاندې يئ! زما په خوزېدو سره به تاسو باندې دورې پرېوځي چې په هغې سره به تاسو ته تکليف وي او دويمه خبره دا چې زه ستاسو او د وحې په مينځ کې پرده جوړېږم رسول الله ﷺ وفرمايل اې ابو ايوب! داسې مه کوه! آيا زه تا ته داسې کلمات ونه ښايم کله چې هغه ته سحر او ماښام لس لس ځله ولولې نو تا ته به لس لس نېکۍ ملاوېږي او ستا به لس ګناهونه معاف کېږي او د هغې په وجه به ستا لس درجې اوچتولي شي او د قيامت په ورځ به تا ته د لسو غلامانو ازادولو ثواب حاصلېږي او هغه کلمات دا دي: لا اله الا الله له الملک وله الحمد لا شريک له.(۱)

حضرت ابو ايوب انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي کله چې رسول الله ﷺ زما مېلمه شو نو ما عرض وکړ چې زما مور پلار دې په تاسو قربان وي ما ته دا ښه نه ښکاري چې زه پاس يم او تاسو لاندې يئ! رسول الله ﷺ وفرمايل چې مونږ ته اسانتيا هم په دې کې ده چې مونږ لاندې اوسېږو ځکه چې مونږ ته خلک ځي راځي ما يوه شپه وليدل چې زمونږ منګې مات شو او د هغې اوبه په فرش باندې خپرې ورې شوې ما او ام ايوب دواړو خپله کمبله واخيستله او په هغې مو اوبه اوچولې مونږ ته دا وېره وه چې زمونږ د طرفه څه داسې کار اونشي چې په هغې سره رسول الله ﷺ ته تکليف وي يعنې د چت نه په رسول الله ﷺ باندې اوبه ورونه څاڅي د دې کمبل نه علاوه مونږ سره بله بستره هم نه وه هغه کمبل لمده شوه او مونږ ټوله شپه په وينه تېره کړه مونږ به طعام تيار کړو او رسول الله ﷺ ته به مو لېږلو کله چې به يې پاتې شوې طعام واپس کولو نو مونږ به د هغه ځائ نه په خاصه توګه خوراک خوړلو کوم ځائ باندې به چې د رسول الله ﷺ مبارکې ګوتې لګېدلې وې داسې به مونږ د رسول الله ﷺ برکت حاصلول غوښتل يوه شپه يې طعام واپس کړو مونږ په هغې کې اوږه يا پياز اچولي وو مونږ ته په هغې کې د رسول الله ﷺ د ګوتو هيڅ نښه په نظر رانغله زه لاړم

(۱) اخرجه الطبراني كذا في الكنز (۱/۲۶۲)

رسول الله ﷺ ته مې عرض وکړ چې مونږ ستاسو د ګوتو والا ځائ نه د برکت لپاره طعام خوړلو لیکن تاسو خوراک هم دغسې واپس کړی دی د هغې نه مونږ طعام نه دی خوړلی رسول الله ﷺ وفرمایل چې ما ته د دې طعام نه دی اوږې یا پیاز بوي راغی او زه د الله جَلَّ جَلَالُهُ سره مناجات (راز ونیاز) کوم او فرشتو سره خبرې هم کوم له دې وجې نه زه نه غوارم چې زما د خولې نه د دې بوي ځي خو تاسو دا خوراک وخورئ! (١)

د ابو نعیم او ابن عساکر په روایت کې دا مضمون داسې راغلی دی چې ما عرض وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! دا په هیڅ شان مناسب نه ده چې زه ستاسو نه پورته اوسېږم تاسو پاس چت ته لاړ شئ! دې باندې رسول الله ﷺ وفرمایل چې زما سامان یو سئ! نو د هغوی سامان پورته یوړلې شو او سامان یې د پر لړ شان وو.(٢)

**هغه څه چې د حضرت عمر او عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا ترمینځ د ناوې په سر پېښ شول:**

حضرت عبد الله بن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: د حضرت عباس د کور د ناوې اوبه د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په لاره کې راپرېوتلې یو ځل حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د جمعې په ورځ نوې جامې واغوستلې په دغه ورځ د حضرت عباس لپاره دوه چرګوټې حلال کړی شوي وو کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د ناوې ځائ ته ورسېده نو د دغه چرګوټو وینه د دغه ناوې نه راوغورزېده چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ باندې راپرېوتله حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: دا ناوه وباسئ! او کور ته لاړو او هغه جامې یې ووېستلې او نورې یې واغوستلې بیا مسجد ته راغی خلکو ته یې مونځ وکړ دې نه پس حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خوا ته راغی او وې ویل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! دا هغه ځائ دی چېرته چې رسول الله ﷺ ناوه لګولې وه حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وویل چې زه تا ته قسم درکوم او وایم چې ته زما په شا باندې وخېژه او دا ناوه هم هلته ولګوه! چېرته چې رسول الله ﷺ لګولې وه نو حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هم داسې وکړل. (٣)

**حضرت ابن ابن عمر او نورو صحابه وو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ د رسول الله ﷺ دمنبر تعظیم کولو:**

د ابن سعد په روایت کې دا اضافه هم ده چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت عباس په خپل

---

١: عند الطبراني ايضا كما في الكنز (٨/٥٠) وهكذا اخرجه الحاكم (٣/٤٦١) الا انه لم يذكر فكنا نصنع طعاما الى اخر وقال هذا حديث صحيح على شرط مسلم ولم يخرجاه ووافقه الذهبي

٢: كذا في الكنز (٨/٥٠) وهكذا اخرجه ابن ابي شيبة وابن ابي عاصم عن ابي ايوب كما في الاصابة (١/٤٠٥)

٣: اخرجه ابن سعد (٤/١٢) واحمد بن عساكر كذا في الكنز (٧/١٦٦)

ځې باندې اوچت کړو او حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دواړو اوګو باندې خپلې دواړه پښې کېښودلې او چېرته چې وه هم هلته یې بیا ولګوله.(۱)

حضرت ابراهیم بن عبدالرحمن بن عبدالقاري رَحِمَهُ اللهُ وايي چې ما ولیدل چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خپل لاس د منبر په هغه ځای باندې کېښودلو چېرته به چې رسول الله ﷺ کېناسته بیا یې هغه پخپل مخ باندې کېښوده.(۲)

حضرت یزید بن عبدالله بن قسیط رَحِمَهُ اللهُ وايي چې ما د رسول الله ﷺ ډېر صحابه ولیدل کله چې به مسجد خالي کېدونو د رسول الله ﷺ د پاک قبر خواته د منبر کوم ځلېدونکي او هوار د لاس اېښودلو ځای وو هغه به یې په ښي لاس ونیوه، قبلې خواته به یې مخ کړو او دعا به یې کوله.(۳)

**د رسول الله ﷺ بدن مبارک ښکلول: او د حضرت اسیدبن حضیرقصه:**

حضرت ابولیلي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې حضرت أسید بن حُضیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ډېر نېک خنده رویه او ښایسته سړی وو یو ځل هغه رسول الله ﷺ سره ناست وو خبرې یې کولې او خلک یې خندول چې په دې کې رسول الله ﷺ هغه په اړخ کې په ګوته او وهلو هغه وویل چې ستاسو په وهلو درد من شوم رسول الله ﷺ وفرمایل بدله واخله! هغه وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو خو قمیص اغوستی دی او زما په بدن قمیص نه وو رسول الله ﷺ خپل قمیص اوچت کړو دې بدلې اخیستو په ځای د رسول الله ﷺ په سینې پورې ونښت او د هغوی اړخ ښکلولو یې شروع کړل او بیایې وویل: اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما مور او پلار دې په تاسو قربان وي زما هدف خو دا وو د بدلې اخیستلو تذکره خو ما هسې کړې وه هدف مې تاسو ښکلول وو.(۴)

**سوادبن غُزَیّه او د رسول الله ﷺ خېټه مبارکه ښکلول:**

حضرت حبان بن واسع رَحِمَهُ اللهُ د خپل قوم څو مشرانو خلکو نه روایت کوي چې رسول

---

۱: اخرجه ابن سعد (۴/۱۳) ایضا عن یعقوب بن زید بنحوه وقد ذکره الهیثمی فی المجمع (۴/۲۰٦) عن عبید الله بن عباس ووقع فی نقله میراث بدل المیزاب ولعله تصحیف قال رواه احمد ورجاله ثقاة الا ان هشام بن سعد لم یسمع عن عبیدالله.

۲: اخرجه ابن سعد (۱/۲۵۴)

۳: عند ابن سعد ایضاً

٤: اخرجه الحاکم (۳/۲۸۸) قال الحاکم هذا حدیث صحیح الاسناد ولم یخرجاه و وافقه الذهبي فقال الصحیح واخرجه ابن عساکر عن ابي لیلي مثله کما فی الکنز (۷/۳۰۱) والطبراني عن اسید بن حُضیر نحوه کما فی الکنز (۴/۴۳)

اللهﷺ د جنګ بدر په ورځ د صحابه وو صفونه نېغ کړل د هغه په لاس کې يو غشي وو چې د هغه څوکه او وزر نه وو چې په هغې سره يې خلک برابرول رسول اللهﷺ د حضرت سواد بن غزيه په خوا کې تېر شو دا د بنوعدي بن نجار قبيلې حليف د معاهدې ملګری وو او د صف نه وتلی وو رسول اللهﷺ هغه په خېټه په غشي او وهلو او وې فرمايل اې سواد! نېغ او درېږه! هغه عرض وکړ اې د الله جَلَّجَلَالُهُ رسوله! ستاسو په غشي وهلو سره ما ته درد وشو او الله رب العزت خو تاسو ته حق او په عدل او انصاف سره را لېږلی يئ! نو تاسو ما ته بدله راکړئ! په دې خبره يې د خپلې خېټې مبارکې نه جامه لرې کړه او وې فرمايل چې بدله واخله! هغه رسول اللهﷺ پورې ونښت تر څو يې مبارکه خېټه ښکل کړي او د هغه خېټه مبارکه يې ښکلوله رسول اللهﷺ وفرمايل اې سواد! تا داسې ولې وکړل؟ هغه وويل اې د الله جَلَّجَلَالُهُ رسوله! تاسو وينئ! چې د جنګ وخت راغلی دی، کېدای شي چې زه شهيد شم نو ما وغوښتل چې زما تاسو سره اخري ملاقات داسې وشي چې زما څرمن ستاسو د څرمنې سره يو ځای شئ! په دې سره يې د هغه لپاره د خير دعا وکړه.(١)

حضرت حسن رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي: د رسول اللهﷺ يو کس سره ملاقات وشو چې هغه په جامو باندې زېړ رنګ لګولي وو د رسول اللهﷺ په لاس کې د کجورې يوه څانګه وه رسول اللهﷺ ورته وفرمايل دا د ورس رنګ لرې کړه (ورس په يمن کې د زېړ رنګ د بوټي نوم دی) بيا يې هغه څانګه باندې هغه سرې په خېټه او وهلو او وې فرمايل چې ما ته د دېنه نه وې منع کړی؟ په څانګه وهلو سره د هغه په خېټه نښه جوړه شوه ليکن وينه ترې او نه وتله هغه وويل اې د الله جَلَّجَلَالُهُ رسوله! بدله به راکوې خلکو وويل آيا ته به د الله جَلَّجَلَالُهُ رسولﷺ نه بدله اخلې؟ هغه وويل چې د چا څرمن زما د څرمنې نه ښه ده رسول اللهﷺ د خپلې خېټې نه جامه اوچته کړه او وې فرمايل چې بدله واخله! هغه د رسول اللهﷺ خېټه ښکل کړه او وې ويل چې زه خپله بدله پرېږدم دې لپاره چې د قيامت په ورځ زما سفارش وکړې.(٢)

**سواد بن عمرو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د رسول اللهﷺ خېټه مبارکه ښکلول:**

حسن رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي: رسول اللهﷺ حضرت سواد بن عمرو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په داسې حال کې وليد چې د خلوق په نوم خوشبوئي يې لګولې ده نو رسول اللهﷺ وفرمايل چې دا ورس لرې

١: اخرجه ابن اسحاق كذا في البداية (٣/٢٧١)
٢: اخرجه عبدالرزاق كذا في الكنز (٧/٣٠٢)

کړه بیا یې هغه په خېټه کې په لرګي یا مسواک نېغ وواهه او هغه یې په خېټه باندې لږ وښوراوه چې په دې سره د هغه په خېټه باندې نښه جوړه شوه او مخکې یې د تېر شوی حدیث په شان مضمون ذکر کړو. (۱)

حضرت حسن رَحِمَهُ اَللَّهُ وایي چې یو انصاري سړی به دومره زیاته خلوق خوشبویي لګوله چې هغه به د کجورې د غنچې په شان زېړ په نظر راتلو هغه ته سواد بن عمر رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهُ ویلی شو کله چې به رسول الله ﷺ هغه لیدلو نو خوشبوئي به یې د هغه د جامو نه لرې کوله دا شان یوه ورځ هغه خلوق خوشبویي لګولې وه او راغی د رسول الله ﷺ په لاس کې یوه چوکه وه هغوی پرې هغه معمولي او وهلو چې په هغې سره لږ شان زخمي شو نو رسول الله ﷺ ته یې وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! بدله به راکوې رسول الله ﷺ هغه چوکه هغه ته ورکړه او د رسول الله ﷺ په بدن دوه قمیصونه وو هغه یې او چتول په دې باندې هغه سړی خلکو ورټلو او د بدلې اخیستلو نه یې منع کولو خو کله چې ورته د رسول الله ﷺ د بدن مبارک هغه برخه ښکاره شوه چې زخمي شوی وو نو چوکه یې وغورزوله، رسول الله ﷺ پورې ونښت او د هغوی ښکلول یې شروع کړل او عرض یې وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه خپله بدله پرېږدم دې لپاره چې د قیامت په ورځ تاسو زما سفارش وکړئ! (۲)

**حضرت طلحه بن براء رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهُ او د رسول الله ﷺ پښې مبارکې ښکولول:**

د رسول الله ﷺ سره د صحابه کرامو رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهُمْ د محبت په عنوان کې د حضرت حُصین بن وحوح رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهُ روایت تېر شوی دی چې حضرت طلحه بن براء به کله چې د رسول الله ﷺ سره ملاوېدو نو هغوی پورې به ونښت او د هغوی دواړه پښې ښکلول به یې شروع کړل او د حضرت ابوبکر رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ د وفات نه پس د هغوی د تندې ښکلولو تذکره به نزدې راشي.

## د رسول الله ﷺ د شهادت خبره او د صحابه کرامو رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهُمْ ژړا او د بچ کولو لپاره یې د کارنامو بیان

**د یوې انصاري صحابیې رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهَا قصه جې په احد کې د آنحضرت ﷺ دشهات نه خبره شوه:**

حضرت ابن بن مالک رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهُ فرمایي: د جنګ اُحد په ورځ مدینې والاو ته شکست وشو نو خلکو وویل چې حضرت محمد ﷺ شهید کړی شو دې خبرې اوربدو سره ټولو

---

۱: اخرجه ابن سعد (۳/۷۲)

۲: اخرجه عبدالرزاق ایضا کما فی الکنز (۷/۳۰۲) واخرجه البغوی کما فی الاصابة (۲/۹۶)

سړو او ښځو ژړا شروع کړه او د مدينې د ګټ ګټ نه د ژړېدو نکو ښځو اوازونه راتلل نو يوه انصاريه ښځه په پرده کې د مدينې نه راووتله او ميدان جنګ طرفته روانه شوه د هغې پلار، ځوى خاوند او رور ځلور واړه په دې جنګ کې شهيدان شوو دا د هغوى خواته تېره شوه راوي وايي چې ما ته دا معلومه نه شوه چې په هغوى کې اول تېرېدل يې په چا وشو کله چې به په هغوى کې په يو کس باندې تېرېدله نو پوښتنه به يې کوله چې دا څوک دی؟ خلکو به ورته ويل چې دا ستا پلار دی، وروز دی، خاوند دی او ځوى دی، هغې به په جواب کې هم دا ويل چې د الله جَلَّجَلَالُهُ د رسول ﷺ څه حال دي؟ خلکو به ورته ويل چې رسول الله ﷺ مخکې دي تر دې چې هغوى ته اورسېدله او د رسول الله ﷺ د جامو نه يو طرف يې اونيولو او وې ويل اې د الله جَلَّجَلَالُهُ رسوله! زما مور او پلار دې په تاسو قربان وي کله چې تاسو صحيح سالم يئ! نو ما ته د خپلو خپلوانو په مرګ باندې څه پرواه نشته.(۱)

حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: د جنګ احد په ورځ زه په مدينه منوره کې رسول الله ﷺ سره ووم په دغه ورځ د رسول الله ﷺ په صحابه وو کې هېڅوک په مدينه منوره کې پاتې نه وو ټول په جنګ کې شريک وو جنګ ډېر سخت وو د شهيدانو شمار زياتېده په دې کې يو سړي په تېز اواز سره وويل چې محمد ﷺ شهيد شوى دى دې اورېدو سره ښځې په ژړا شوې يوې ښځې وويل په ژړا کې جلتي مه کوئ! زه يې ګورم راځم نو هغه ښځه پياده روانه شوه او هغې ته يوازې د رسول الله ﷺ غم وو او يوازې د رسول الله ﷺ په باره کې يې پوښتنه کوله. (۲)

حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله ﷺ د بنو دينار د قبيلې يوې ښځې په خوا کې تېر شو د هغې خاوند، رور او پلار رسول الله ﷺ سره په جنګ احد کې شهيدان شوي وو کله چې خلکو دېته د درېواړو د شهادت خبر ورکړو نو هغې سره د رسول الله ﷺ د روغ صحت معلومولو فکر دومره زيات دئ چې د دې خبر په هغې باندې څه اثر ونه شو بلکې هغې وويل چې د رسول الله ﷺ څه حال دی؟ رسول الله ﷺ ما ته په نظر نه راځي خلکو وويل اې د پلانکي مورې! روغ دی او الحمد الله! رسول الله ﷺ هم هغسې دی څنګه چې نه

۱: اخرجه الطبراني قال الهيثمي (٦/١١٥) ورواه الطبراني في الاوسط عن شيخه محمد بن شعيب ولم اعرفه وبقية رجاله ثقات انتهى.

۲: عند البزار قال الهيثمي (٦/١١٥) عمر بن صفوان وهو مجهول انتهى

غواړې هغې وویل چې رسول الله ﷺ ما ته او ښایئ! چې زه یې په خپلو سترګو ووینم خلکو هغې ښځې ته په اشاره رسول الله ﷺ وښوده چې هغه دی! کله چې هغې ولیده نو وې ویل چې ستاسو صحیح سالم لیدلو نه پس اوس هر مصیبت سپک او اسان دی.(۱)

**هغه کارنامه چې د احد په جنګ کې حضرت ابوطلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وکړه:**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: د جنګ احد په ورځ حضرت ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ مخې ته ودرېدو او په دشمنانو یې غشي ویشتل او رسول الله ﷺ یې شاته وو او هغه د رسول الله ﷺ لپاره ډال شوی وو او هغه په غشي ویشتلو کې ډېر ماهر ؤ کله چې به یې هم غشي ویشتلو نو رسول الله ﷺ به پورته شو او وبه یې کتل چې غشي چېرته پرېوتو او حضرت ابوطلحه به خپله سینه اوچته کړه او وبه یې ویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما مور او پلار دې په تاسو قربان وي تاسو هم دغسې ښکته اوسئ! چېرته تاسو په غشي اونه لګئ! زما سینه ستاسو د سینې د ساتنې لپاره تیاره ده حضرت ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په مخکې خپل ځان ډال جوړ کړی وو او د هغوی ﷺ حفاظت په خاطر یې خپل ځان د شهید کېدلو لپاره وړاندې کولو او ویل به یې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه ډېر مضبوط او قوي یم تاسو ما خپلو ټولو ضرورتونو کې استعمال کړئ! او څه چې غواړئ! ما ته حکم وکړئ!(۲)

**د رسول الله ﷺ په دوستۍ کې د حضرت قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بهادري او زړورتیا:**

په اول جلد کې د حضرت قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بهادرۍ په باره کې د طبراني په روایت کې دا حدیث شریف تېر شوی دی چې حضرت قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بن نعمان فرمايي: رسول الله ﷺ ته په هدیه کې یوه لینده لاسته ورغله، هغه لینده یې د احد په ورځ ما ته راکړه ما هغه واخیسته او د رسول الله ﷺ مخې ته ودرېدم او بنه غشي مې وویشتل تر دې چې د هغې سر ماته شو زه هم هغسې د رسول الله ﷺ مخامخ ولاړ ووم او ما غشي په خپل مخ باندې خوړل کله چې به هم غشي د رسول الله ﷺ مخ طرفته راتلو نو ما به خپل سر غشي طرفته ورمخکې کړو او د رسول الله ﷺ مخ به مې بچ کولو څرنګه چې زما لینده ما ته شوې وه له دې وجې نه ما خو غشي ویشتلی نه شو.

---

۱: عند ابن اسحاق كذا في البداية (۴/۴۷)

۲: اخرجه احمد كذا في البداية (۴/۲۷) واخرجه ابن سعد (۳/٦٥) عن انس نحوه.

# د رسول الله ﷺ په جدايي د صحابه کرامو رضي الله عنهم ژړل

## د حضرت ابوبکر رضي الله عنه ژړل:

حضرت ابو سعید فرمايي: رسول الله ﷺ د وفات په مرض کې یوه ورځ مونږ ته بهر ته راغی مونږه په مسجد کې وو رسول الله ﷺ په سر باندې پټۍ تړلې وه او نیغ منبر طرفته یې تشریف یوړو او په منبر باندې کېناستلو مونږ هم هغوی پسې لاړو او ورسره کېناستلو او هغوی ﷺ وفرمایل چې په هغه ذات مې دې قسم وي د چا په قبضه کې چې زما ساه ده زه دا وخت په حوض کوثر باندې ولاړ یم او دا یې هم وفرمایل چې یو بنده ته دنیا او د هغې زینت پیش کړی شو خو هغه اخرت اختیار کړی دی بل خو څوک پوه نه شو چې له دې بنده نه څوک مراد دی؟ البته حضرت ابوبکر رضي الله عنه پوه شو چې د دې نه هدف په خپله رسول الله ﷺ دي او د هغه دواړه سترګې د اوښکو نه ډکې شوې او دا یې وویل چې زما مور پلار دې په تاسو قربان وي مونږ خپل مور او پلار او خپل مال او ځان په تاسو باندې قربانوو دې نه پس رسول الله ﷺ د منبر نه لاندې راکوز شو او بیا تر وفاته پورې یې بیا منبر ته تشریف رانه ووړ.(۱)

## د حضرت فاطمې رضي الله عنها ژړل:

حضرت عباس رضي الله عنه فرمايي کله چې (اذا جاء نصر الله والفتح) سورت نازل شو او په دې کې اوښودلی شو چې ته د کوم کار لپاره راغلی وې هغه پوره شوی دی نو رسول الله ﷺ حضرت فاطمه رضي الله عنها را وغوښتله او ورته یې وفرمایل ما ته په دې صورت کې د خپل وفات خبر راکړي شوی دی دې وریدو سره هغه په ژړا شوه رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چې ژاړه مه! ځکه چې زما په خاندان والاوو کې به ته د ټولو نه مخکې ما سره ملاوېږې دا یې چې واورېدل هغه په خندا شوه د رسول الله ﷺ یوې محترمې بي بي دا منظر وکوت نو هغې بیا روستو د حضرت فاطمې رضي الله عنها نه پوښتنه وکړه چې ما ته اول په ژړا اولیدې او بیا په خندا باندې د دې څه وجه ده؟ هغې ورته وویل چې اول ماته رسول الله ﷺ وفرمایل چې ما ته د خپل وفات خبر راکړل شوی دی دې اورېدو سره زه په ژړا شوم بیا رسول الله ﷺ وفرمایل چې مه ژاړه! ځکه چې زما په خاندان کې به ته د ټولو نه مخکې ما سره ملاوېږې نو ما وخندل.(۲)

---

۱: اخرجه ابن ابي شيبة كذا في الكنز العمال (۴/۵۸) واخرجه ابن سعد (۲/۴۶) عن ابي سعيد نحوه.
۲: اخرجه الطبراني قال الهيثمي (۹/۲۳) رجاله رجال الصحيح غير هلال بن خباب وهو ثقة وفيه ضعف انتهى.

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمايي: رسول الله ﷺ د خپل وفات په مرض کې کې خپله لور حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنهَا راوغوښتله او د هغې په غوږ کې يې څه خبره وکړه په دې هغه په ژړا شوه رسول الله ﷺ بيا را وغوښتله او د هغې په غوږ کې ئې څه خبره وکړه په دې هغه په خندا شوه په دې باره کې ترې ما پوښتنه وکړه نو وې ويل چې رسول الله ﷺ اول ماته وويل چې په دې مريضتيا کې به زه وفات کېږم نو زه په ژړا شوم بيا يې وفرمايل چې ته به زما په خاندان کې د ټولو نه اول ما سره ملاوېږې نو زه په خندا شوم.(۱)

ابن سعد د دې پشان حديث د حضرت ام ابن سلمه رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه هم نقل کړی دی او په هغې کې دا دی چې حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمايي: ما د حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنهَا نه د هغې اول د ژړېدو او بيا د خندېدو پوښتنه وکړه چې څه وجه وه؟ نو هغې وويل چې رسول الله ﷺ اول ما ته وويل چې نزدې زما وفات کېدو والا دی بيا يې دا وويل چې ته به د حضرت مريم بنت عمران نه پس د جنت د ښځو سرداره يې په دې ما خندلي وو.

حضرت علاء رَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمايي کله چې د رسول الله ﷺ د وفات کېدو وخت نزدې راغی نو حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنهَا په ژړا شوه رسول الله ﷺ ورته وفرمايل اې زما لورې! مه ژاړه! کله چې زه وفات شم نو (انا لله وانا اليه راجعون) اووايه! چې انا لله ويلو سره انسان ته د هر مصيبت بدله ملاوېږي حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنهَا وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ستاسو بدل هم ملاوېږي؟ رسول الله ﷺ وويل زما بدل هم ملاوېږي.(۲)

**د حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنهُ ژړل:**

حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي کله چې رسول الله ﷺ زه يمن ته ولېږلم نو هغوی ﷺ ما ته هدايت راکولو لپاره ما سره په خپله هم د ښار نه بهر راووتلو حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنهُ به سورلۍ باندې وو او رسول الله ﷺ د هغه د سورلۍ سره پياده روان ؤو کله چې رسول الله ﷺ د هداياتو نه فارغ شو نو وې فرمايل اې معاذ کېدای شي دې کال نه پس ته زما سره ملاو نشې او کېدای شي چې ته زما دې جماعت او قبر خواته تېر شې دا يې چې واورېدل نو حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنهُ د رسول الله ﷺ د جدايۍ په غم کې په چغو چغو

---

۱: اخرجه ابن سعد (۴/۳۹) واخرجه باسناد اخر عنها باطول منه.

۲: اخرجه ابن سعد (۲/۳۱۲)

وژړل بیا رسول الله ﷺ هغه طرفته متوجه شو او د مدینې منورې طرفته یې مخ کړو او وې فرمایل چې د قیامت په ورځ په خلکو کې به ما ته د ټولو نه زیات نزدې متقیان خلک وي هر څوک چې وي او هر چیرته چې وي دې لپاره په یو خاص قوم کې کېدل یا زما په ښار کې اوسېدل ضروري نه دي.(۱)

امام احمد هم دا حدیث د عاصم بن حمید راوي نه نقل کړی دی په دې کې دا دی چې رسول الله ﷺ دا هم وفرمایل چې اې معاذ! مه ژاړه! ځکه چې په چغو چغو ژړا د شیطان لخوا وي اصل شی د الله جَلَّ جَلَالُهُ فیصلو باندې راضي اوسېدل دي.

## د رسول الله ﷺ د وفات له وېرې د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ژړا

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: یو کس د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض یې وکړ چې د انصارو سړی او ښځې په مسجد کې ناست دی او ژاړي رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه چې ولې ژاړئ؟ هغه وویل د دې وېرې نه ژاړي چې چېرته تاسو وفات نشئ! نو په دې باندې رسول الله ﷺ د خپلې حجرې نه بهر تشریف راووړ او په خپل منبر باندې کېناسته، هغوی ﷺ یوه جامه اغوستې وه چې د هغې دواړه طرفونه یې په خپلو اوګو باندې اچولي وو د حمد وثناء نه پس یې وفرمایل: اما بعد! اې خلکو آئینده به خلک زیاتېږي او انصار به کمېږي تر دې چې انصار به په خلکو کې داسې شي لکه په خوراک کې مالګه. هم دارنګه د انصارو د کار چې څوک ذمه دار شي هغه له په کار دی چې د هغوی سره د ښېګڼو کوونکی ښېګڼه قبوله کړي او د هغوی بدي معاف کړئ!(۲)

### د رسول الله ﷺ دوفات په وخت کې دام فضل رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قول:

حضرت ام فضل بنت حارث رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي: زه د رسول الله ﷺ د وفات په مرض کې د هغوی په خدمت کې حاضره شوم او په ژړا شوم رسول الله ﷺ سر اوچت کړو او وې فرمایل ولې ژاړې؟ ما وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ستاسو د وفات کېدو د وېرې نه او د دې د

---

۱: اخرجه احمد قال الهیثمی (۹/۲۲) رواه احمد باسنادین ورجال الا سنادین رجال الصحیح غیر راشد بن سعد وعاصم بن حمید وهما ثقتان انتهی.

۲: اخرجه البزار قال الهیثمی فی المجمع (۱۰/۳۷۰) رواه البزار عن ابن کرامة عن ابن موسی ولم اعرف الا ان اسمالهما وبقیة انتهی وقال فی هامشه عن ابن حجر ابن کرامة هو محمد بن عثمان بن کرامة وابن موسی وهو عبدالله وهما من رجال الصحیح انتهی واخرجه ابن سعد (۲/۲۵۲) عن ابن عباس نحوه.

وجې نه چې پته نه لګي چې ستاسو نه روستو به مونږ د خلکو د طرف نه څنګه رويه برداشت کول وي رسول الله ﷺ وفرمايل چې زما نه پس به تاسو کمزوری ګنړل کيږئ!(١)

## د رسول الله ﷺ لخوا امت ته الوداع (په مخه ښه) ويل

**مخکې له وفات د خپل تکفين،غسل،په هغه د لمونځ او نورو شيانو د رسول الله ﷺ وصيت:**

حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: زمونږ د محبوب رسول الله ﷺ زما پلار او زما ځان دې په هغوی ﷺ قربان وي د وفات نه شپږ ورځې مخکې مونږ ته د هغوی د وفات خبر شوی وو کله چې د جدايي وخت نزدې شو نو رسول الله ﷺ مونږ د مور بي بي حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا په کور کې جمع کړو په مونږ باندې چې د هغوی ﷺ نظر پرېوتلو نو د سترګو نه يې اوښکې رواني شوې او وې فرمايل مرحبا! په خير راغلئ! الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تاسو ته ډېر عمرونه درکړي الله جَلَّ جَلَالُهُ دې ستاسو حفاظت وکړي الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تاسو ته د استوګنې ځائ درکړي الله جَلَّ جَلَالُهُ دې ستاسو امداد وکړي الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تاسو اوچت کړي الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تاسو ته هدايت وکړي، الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تاسو ته رزق درکړي. الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تاسو ته توفيق درکړي الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تاسو سلامت ساتي، الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تاسو قبول کړي، زه تاسو ته وصيت کوم چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه ووېرېږئ! او الله جَلَّ جَلَالُهُ ته خواست چې الله جَلَّ جَلَالُهُ دې ستاسو خيال وساتي او ستاسو کارونه هم هغه ته سپارم زه تاسو د دې خبرې نه په واضحه طريقه وېروم چې الله رب العزت ما ته او تاسو ته فرمايلي دي:

تِلْكَ الدَّارُ الْاٰخِرَةُ نَجْعَلُهَا لِلَّذِيْنَ لَا يُرِيْدُوْنَ عُلُوًّا فِي الْاَرْضِ وَلَا فَسَادًا ۭ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِيْنَ ۝(٢)

ترجمه: دا کور د اخرت مونږ د هغه خلکو لپاره خاص کوو څوک چې په دنيا کې نه ځان لوي جوړول غواړي او نه فساد کول او ښه انجام متقيانو خلکو ته ملاوېږي او الله رب العزت فرمايلي دي: اَلَيْسَ فِيْ جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْكٰفِرِيْنَ ۝(٣).

ترجمه: آيا د دې متکبرينو د اوسېدو ځائ جهنم نه دی؟

بيا يې وفرمايل چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ مقرر شوی وخت او الله رب العزت د سدرة المنتهي چې

---

١: اخرجه احمد قال الهيثمي (٩/٣٤) وفيه يزيد بن ابي زياد ضعفه جماعة.

٢: سورة القصص آيت٨٣

٣- سورة الزمرات ٣٢.

دا په اووم اسمان باندې د بيرې يوه ونه ده د فرشتو د رسېدلو حد دغه ځاى پورې دى او دا يو مركزي مقام دى د الله جَلَّجَلَالُهٗ د عرش نه احكام دلته راځي، د جنت المأواي يعنې د متقيانو د اوسېدلو والا جنت د ډكو پيالو او د ټولو نه اوچت رفيق يعنې الله جَلَّجَلَالُهٗ طرفته د واپس تلو وخت بلكل نزدې راغلى دى موږ پوښتنه وكړه چې اې د الله جَلَّجَلَالُهٗ رسوله! دا وخت به تاسو ته غسل څوك دركوي؟ هغوى وفرمايل زما د خاندان د ټولو نه زيات رشته دار، بيا هغه پسې درجه په درجه بيا موږ پوښتنه وكړه چې موږ تاسو ته څه كې كفن دركړو؟ وې فرمايل كه چېرې ستاسو خوښه وي نو زما په دې جامو كې ما ته كفن راكړئ! يا په يمني جوړه كې، يا په مصري جامو كې كفن راكړئ! بيا موږ وويل چې په موږ كې څوك د جنازې مونځ اداء كوي دا چې موږ وويل نو موږ هم په ژړا شو او رسول الله ﷺ هم هغوى ته وفرمايل لږ صبر وكړئ! الله جَلَّجَلَالُهٗ دې ستاسو بښنه وكړي او تاسو ته دې ستاسو د رسول الله ﷺ د طرفنه غوره بدله دركړي كله چې تاسو ما ته غسل راكړئ او زما جنازه زما په دې كمره كې د قبر په غاړه كېږدئ! نو بيا تاسو ټول د لږ ساعت لپاره بهر ته لاړ شئ! ځكه چې د ټولو نه اول به زما خليل او دوست حضرت جبرائيل زما د جنازې مونځ كوي بيا حضرت ميكائيل به، بيا حضرت اسرافيل به، بيا ملك الموت به سره د خپل ټول لښكر بيا ټولې ملائيكې به د جنازې مونځ كوي بيا تاسو يو يو جماعت جوړوئ! او دننه راځئ! او په ما باندې درود او اسلام وايئ! او څوك زنانه وير ته مه پرېږدئ! او مه يې شور كولو ته پرېږدئ! او مه يې اوچت اواز سره ژړا ته پرېږدئ! كنې ما ته به تكليف وي اول دې زما د خاندان سرى دننه راشي او سلام دې اووايي بيا تاسو خلك تاسو زما د طرفنه خپل ځان لپاره سلام قبول كړئ! او زما څومره ورونه چې تر دې وخت پورې غائب دي هغوى ته زما سلام ووايئ! او زه تاسو په دې خبره شاهدان جوړوم چې زما نه پس څوك هم ستاسو په دين كې داخل شي زه هم هغه ته هم سلام وايم او د نن نه تر قيامته پورې چې څوك هم زما د دين تابعداري كوي زه هغه ته هم سلام وايم بيا موږ وويل د الله جَلَّجَلَالُهٗ رسوله! په موږ كې به څوك تاسو قبر ته كوزوي؟ وې فرمايل زما د خاندان سرى او هغوى سره به ډېرې زياتې ملائيكې وي هغه ملائيك خو به تاسوويني او تاسو به يې نشئ ليدلى.(١)

(١): اخرجه البزار قال الهيثمي (٩/٢٥) رجاله رجال الصحيح غير محمد بن اسماعيل بن سمرة على خمس وهو ثقة

# د رسول الله ﷺ وفات او رحلت

**درسول الله ﷺ دوفات قصه او هغه څه چې حضرت ابوبكر او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا وويل:**

حضرت يزيد بن بابنوس رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زه خپل يو ملګري سره حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته لاړم مونږ د ننوتلو اجازت وغوښتلو هغوی زمونږ لپاره يوه تكيه كېښوده او په مينځ كې يې يوه پرده راښكله او مونږ ته يې د دننه تلو اجازت راكړو دننه چې ورغلو زما ملګري وويل اې اميرالمؤمنين! تاسو د عراک په باره كې څه فرمايئ! هغې وويل عراک څه شی وي؟ ما د خپل ملګري په اوګه باندې لاس وواهه حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وويل داسې مه كوه! تا خپل ورور ته تكليف ورساوه ښه عراک څه شی دی؟ حيض ته وايي يعنې تاسو د حيض په حالت كې د بي بي بدن ته د لاس او جسم لګولو په باره كې پوښتنه كوئ! الله رب العزت چې د حيض په باره كې څه فرمايلي دي تاسو هغه عمل وكړئ او په دې باره كې يې خپله قصه بيان كړه چې زه به د حيض په حالت كې ووم رسول الله ﷺ به ما سره راترغاړه وتلو او زما سره به يې ښكلولو ليكن زما او د هغوی ﷺ د بدن تر مينځه به يوه جامه وه د رسول الله ﷺ عادت مبارک به دا وو كله چې به هغوی زما د دروازې خواكې تېرېدل نو اكثر به يې څه داسې خبره كوله چې په هغې سره به ماته فائده وه يوه ورځ هغوی ﷺ زما دروازې سره تېر شو خو څه يې ونه فرمايل دې نه پس دوه درې ځله يا تېر شو خو څه يې اونه فرمايل ما خادمې ته وويل اې جينۍ! زما لپاره دروازې سره تكيه كېږده او ما په سر باندې پټۍ اوتړله او د رسول الله ﷺ د متوجه كولو لپاره مې ځان مريض كړ او تكيه ته مې ډډه اووهله په دې كې رسول الله ﷺ زما په خوا كې تېر شو او وې فرمائيل اې عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا! په تا څه شوی دی ؟ ما وويل په سر مې درد دی رسول الله ﷺ وفرمايل هايې زما په سر هم درد دي بيا يې تشريف يوړو لږ شان وخت تېر شوی وو چې هغه په يو كمبل كې راوستل شو هغوی ﷺ ماته تشريف راوړو او خپلو پاكو بيبيانو ته يې دا پيغام ولېږه چې زه بيمار شوی يم په ماكې دومره همت نشته چې زه وار په وار تاسو ته درشم تاسو ما ته اجازت

---

ورواه الطبراني في الاوسط بنحوه الا انه قال قبل موته بشهر ذكر في اسناده ضعفه عنهم إشمث بن طابق قال الازدى لا يصح حديثه الذهبي واخرجه ابونعيم في الحلية (٢/١٦٨) عن ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بنحوه مطولا بفرق يسير ثم قال هذا حديث غريب من حديث مرة عن عبدالله لم يروه متصل الاسناد الا عبدالملك بن عبدالرحمن وهو ابن الاصبهاني واخرجه ابن سعد (٢/٢٥٦) عن ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بنحوه مطولا وفي اسناد الواقدي بمعناه.

راکړئ! چې زه عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا سره پاتې شم نو ماد هغوی ﷺ خدمت شروع کړو دې نه مخکې ما د کوم بیمار خدمت نه وو کړي يو ورځ د هغوی ﷺ سر مبارک زما په اوګه باندې پروت وو چې په دې کې د رسول الله ﷺ سر زما سر طرفته رابنکته شو زه پوه شوم چې رسول الله ﷺ زما د سر بنکلول غواړي چې په دې کې د هغوی ﷺ د خولې مبارکې نه يو يخ څاڅکي راووت او زما د څټ لاندې د هډوکي ژور ځائ باندې پرېووت چې په دې سره زما د ټول بدن وبښته اودرېدل ما دا اوګڼله چې بېهوشه شوی دی ما پرې يو څادر واچولو بيا حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت معيره بن شعبه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راغلل او هغوی دننه راتلو اجازت وغوښت ما دواړو ته اجازت ورکړ او خپل طرفته مې پرده رابنکله حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کله چې رسول الله ﷺ وليدل نو وې ويل هاي بېهوشي! د رسول الله ﷺ بې هوشي څومره زياته ده بيا دواړه پاڅېدل کله چې دروازې ته ورسېدل نو حضرت معيره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې رسول الله ﷺ وفات شوی دی ، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل نه! تا غلطه خبره وکړه ته همېشه د فتنې والا خبره کوې تر څو پورې چې الله رب العزت منافقان ختم کړي نه وي رسول الله ﷺ به نه وفات کېږي بيا حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راغی ما هغه پرده لرې کړه حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چې رسول الله ﷺ وليده نو وې فرمايل (انا لله وانا اليه راجعون) د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسول ﷺ وفات شو بيا يې د رسول الله ﷺ سر طرفته خپل مخ بنکته کړو او د رسول الله ﷺ تندی يې بنکل کړو او وې ويل هاي د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسول الله! بيا يې خپل سر اوچت کړو بيا يې خپل مخ بنکته کړو او د رسول الله ﷺ تندی مبارک يې بنکل کړو او وې ويل هايې زما خاص دوسته! بيا يې سر اوچت کړو او بيا يې مخ کړو او په دريم ځل يې په تندي بنکل کړو او وې ويل اې زما د ځيګر دوسته! رسول الله ﷺ وفات شوی دی بيا هغه مسجد ته لاړ او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خلکو ته بيان وکړ او ويلې يې چې تر څو پورې الله رب العزت منافقان ختم کړي نه وي نو د الله رب العزت د رسول ﷺ به وفات نه کيږي د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د راتلو سره حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چپ شو او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د الله جَلَّ جَلَالُهُ حمد او ثناء نه پس دا بيان وکړ چې الله رب العزت په قرانکريم کې فرمايي : اِنَّكَ مَيِّتٌ وَّاِنَّهُمْ مَّيِّتُوْنَ (۱)

۱: سورة الزمر ۳۰

ترجمه: ته به هم وفات کېږې او دوي به هم مړه کېږي.
او دا ایت یې پوره اولوستلو او الله رب العزت دا هم فرمایي:
وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ ۚ قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهِ الرُّسُلُ ۚ أَفَإِن مَّاتَ أَوْ قُتِلَ انقَلَبْتُمْ عَلَىٰ أَعْقَابِكُمْ ۚ وَمَن يَنقَلِبْ عَلَىٰ عَقِبَيْهِ فَلَن يَضُرَّ اللَّهَ شَيْئًا ۗ (١)
ترجمه: نه دی محمد ﷺ مګر (دالله) رسول دی یقیناً د هغوی ﷺ نه مخکې هم ډېر رسولان تېر شوی دی نو که چېرې هغه وفات شو یا شهید کړی شي نو آیا تاسو به بېرته وګرځئ؟ او څوک چې بېراته وګرځي نو الله جَلّجَلَالُهٔ ته هیڅ نقصان نه شي رسولی.
دا ایت یې هم پوره اولوستلو دې نه پس یې وفرمایل چا چې د الله رب العزت عبادت او بنده ګي کوله نو هغه دې پوه شي چې الله رب العزت ژوندی دی په هغه مرګ نشي راتلی او چا چې د محمد ﷺ عبادت او بنده ګي کوله نو هغه دې واوري چې محمد ﷺ وفات شوی دی په دې خبره حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل بنه ولې دا آیتونه د الله پاک قرآن کې دي؟ ما ته خو دا آیتونه یاد نه وو اوس د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ویلو سره را یاد شو په دې کې د رسول الله ﷺ د وفات کېدو ذکر دی بیا حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل اې خلکو! دا حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دی او هغه په مسلمانانو کې ډېر ښه او دلوړو کارنامو والا دي نو همدا رنګه بیعت وکړئ! نو خلکو ترې بیعت وکړ.(٢)

## د رسول الله ﷺ تکفین او دفن

حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: کله چې مونږ د رسول الله ﷺ د کفن دفن تیاری شروع کړ نو بیرون خلک ډېر وو له دې وجې نه مونږ دروازه د دننه نه بنده کړه په دې خبره انصارو په اوچت اواز وویل چې مونږ د رسول الله ﷺ ماماګان یو د رسول الله ﷺ مور د مدینې وه او مونږ ته په اسلام کې یوه ښکاره درجه حاصله ده او قریشو په اوچت اواز سره وویل چې مونږ د رسول الله ﷺ د پلار د خاندان خلک یو یعنې د انصارو او قریشو ټولو خلکو دننه تلل او په غسل ورکولو کې یې شریکېدل غوښتل په دې خبره حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په اوچت اواز سره وویل اې مسلمانانو! هر خاندان او نزدې خپلوان د

---

١: سورة آل عمران آیت ١٤٤

٢: اخرجه احمد كذا في البداية (٥/٢٤١) قال الهيثمي (٩/٣٣) رجال احمد ثقات ورواه ابويعلى بنحوه مع باسناد ضعيف انتهى واخرجه ابن سعد (٢/٢٢٧) وعن يزيد بن بابنوس نحوه مختصرا.

خپلې جنازې د نورو خلکو نه زيات حقدار وي نو دارنګه د رسول الله ﷺ تره حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د تره ځوی حقدار وي له دې وجې نه مونږ تاسو ته د الله رب العزت واسطه کوو او وايو چې تاسو مه راځئ! ځکه که چېرې تاسو ټول دننه راشئ! نو چې څوک زيات حقدار دي هغوی به روستو پاتې شي په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! دننه به صرف هغه څوک راځي چې را اوغوښتلي شي حضرت علي بن حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: انصارو په چيغه وويل چې د رسول الله ﷺ په تکفين او تجهيز کې زمونږ هم حق دی او هغوی دا غوښتنه حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته مخکې کړه نو هغوی وفرمايل چې نزدې رشته دار او خاندان والا د دې کار زيات حقدار دي نو دارنګه تاسو د دې مطالبه د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته مخکې کړئ! ځکه چې هغوی ته به دننه هغه سړی ورځي چې هغوی څوک راوغواړي.(۱)

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي کله چې د رسول الله ﷺ مريضي زياته شوه نو هغوی ﷺ سره حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او حضرت حفصه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وې په دې کې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شامل شو نو رسول الله ﷺ چې هغه وليده سر يې را اوچت کړو او وې ويل ما ته نزدې راشه! ماته نزدې راشه! حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نزدې ورغلو او رسول الله ﷺ يې ځان ته تکيه کولو سره کېنولو او د رسول الله ﷺ د وفاته پورې هغوی ﷺ سره وو کله چې رسول الله ﷺ وفات شو نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پاڅېدو او دننه نه يې دروازه بنده کړه حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او بنو عبد المطلب يعنې د رسول الله ﷺ د نيکه د خاندان والا راغلل، له دروازې سره ودرېدل حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل زما پلار دې له تاسو قربان وي تاسو په ژوند کې هم پاک وئ! او د وفات نه پس هم پاک يئ! او د رسول الله ﷺ د بدن نه داسې بناسته خوشبوئي تله چې خلکو داسې خوشبوئي چېرته نه وه ليدلې بيا حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل چې د ښځو پشان ژړا مه کوه! او د خپل حضرت تجهيز او تکفين طرفته متوجه شه! په دې باندې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې حضرت فضل بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ماته دننه را ولېږه! انصارو وويل چې مونږ تاسو ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ د هغه د رسول ﷺ سره د خپلو اړيکو واسطه درکوو و وايو چې د رسول الله ﷺ په کفن او غسل کې دې

---

۱: اخرجه ابن سعد (۲/٦١)

زمونږ هم حصه وي په دې باندې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې خپل يو سړی دننه راولېږئ! نو انصارو خپل يو سړی دننه ورولېږه چې د هغه نوم اوس بن خولي وو هغه په يو لاس کې منګي هم نيولي وو دا حضرات لا دننه وو او غسل ورکولو ته يې لا شروع کړې نه وه چې هغوی دا واز واورېدو چې د رسول الله ﷺ نه جامې مه اوباسئ! او هغه چې څنګه دی هم هغسې ورته قميص کې ورته غسل ورکړئ! الله رب العزت د فرشتو په ذريعه د دوئ رهبري وکړه. نو حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ رسول الله ﷺ ته غسل ورکړو هغه به قميص لاندې لاس ورکړو او بدن يې لمباوه او حضرت فضل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د پردې لپاره څادر نيولی وو او هغه انصاري به اوبه راوړلې او حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پخپل لاس باندې جامه تړلې وه.(١)

# په رسول الله ﷺ باندې د جنازې د مونځ کيفيت

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا فرمايي: کله چې رسول الله ﷺ وفات شو نو اول سړی د جماعتونو په شکل کې دننه ولېږل شول او هغوی د امام نه بغير د رسول الله ﷺ د جنازې مونځ وکړ هغوی مونځ وکړ او بهر ته راغلل بيا ښځې دننه او لېږلی شوې او هغوی هم د جنازې مونځ وکړ بيا ماشومان داخل کړی شول او هغوی هم د جنازې مونځ وکړ.(٢)

بيا غُلامان د جماعتونو په شکل کې د ننه ولېږل شول او هغوی د جنازې مونځ وکړ د رسول الله ﷺ د جنازې په مونځ کې د دې حضراتو امام هيڅوک نه ؤو.

حضرت سهل بن سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي کله چې رسول الله ﷺ ته کفن ورکړی شو نو هغوی ﷺ په کټ باندې کېښودل شو او بيا هغه کټ د هغوی ﷺ د قبر غاړې باندې کېښودل شو بيا به خلک خپلو ملګرو سره دننه راتلل او ځانله ځانله به يې بغير د امام نه مونځ کولو حضرت موسی بن محمد بن ابراهيم رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې ما ته د خپل پلار ليکلی شوی دا ليکل ملاو شو کله چې رسول الله ﷺ ته کفن ورکړي شو او هغوی ﷺ په کټ کې کېښودل شو نو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دننه راغلل او دوي سره دومره مهاجرين او انصار هم وو څومره چې په هغه کمره کې راتلی شول دوی دواړو حضراتو وويل: السلام عليک

---

١: اخرجه الطبراني قال الهيثمي (٩/٣٦) فيه يزيد بن ابي زياد وهو حسن الحديث على ضعفه وبقية رجاله ثقات و روى ابن ماجة بعضه انتهى واخرجه ابن سعد (٢/٦٢) عن عبدالله بن الحارث بمعناه.

٢: اخرجه ابن اسحاق

آيهاالنبي ورحمة الله وبركاته! بيا مونږ هم په دې الفاظو سره مهاجرينو او انصارو سلام وکړ بيا دې تولو صفونه جوړ کړل او امام څوک جوړ نه شو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په اول صف کې رسول الله ﷺ ته مخامخ وو. او دې دواړو حضراتو وويل اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! مونږ د دې خبرې شاهدي ورکوو چې په رسول الله ﷺ باندې کوم څه د اسمان نه نازل شوي وو رسول الله ﷺ هغه ورساوه او د خپل امت سره يې پوره خيرخواهي وکړه او د الله رَبّ العزت په لاره کې يې بنه محنت وکړ او جهاد يې وکړ تر دې چې الله پاک خپل دين ته عزت ورکړو او د الله رب العزت کلمه يعني دين اسلام پوره شو او خلکو به الله جَلَّ جَلَالُهُ وحده لا شريک له باندې ايمان راوړو اې زمونږ معبوده! مونږ په هغو خلکو کې داخل کړې چې په هغه خبره عمل کوي چې دوي ته نازله شوې ده او مونږ په اخرت کې د رسول الله ﷺ سره يو ځاې کړې او زمونږ ورسره پېژند ګلوي وکړې ځکه چې رسول الله ﷺ د مؤمنانو لپاره ډېر شفيق او مهربان وو مونږ په رسول الله ﷺ د ايمان راوړلو بدله په دنيا کې نه غواړو او نه به دا ايمان په څه قيمت خرڅ کړو خلکو به د هغوى په دعا امين وويلو دا شان به خلک فارغېدل او بهر ته به راوتل او نور به د ننه راتلل تر دې چې ټولو سړو مونځ وکړ بيا ښځو او ورپسې بيا ماشومانو وکړ.(١)

حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي کله چې رسول الله ﷺ په کټ باندې کېښودل شو نو ما وويل چې د رسول الله ﷺ د جنازې مانځه لپاره به څوک امام جوړېږي ځکه چې رسول الله ﷺ څنګه په ژوند کې امام وو نو دا شان د وفات نه پس هم ستاسو امام دى په دې خبره به خلک د جماعتونو شکل کې د ننه ورتلل او صفونه به يې جوړول او تکبير به يې ويل و او د هغوى به هيڅوک امام نه وو او زه د رسول الله ﷺ مخامخ ولاړ ووم او دا به مې ويل چې: السلام عليک ايها النبي ورحمة الله وبرکاته! اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! مونږ د دې خبرې شاهدي ورکوو چې کوم څه په دوي باندې نازل کړى شوي وو هغه يې ټول راورسول او د خپل امت يې پوره خيرخواهي وکړه او د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې يې پوره محنت وکړ او جهاد يې وکړ تر دې چې الله پاک خپل دين ته عزت ورکړو او د الله جَلَّ جَلَالُهُ کليمه پوره شوه اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! مونږ په هغو خلکو کې شامل

١: اخرجه الواقدى كذا فى البداية (٥/٢٦٥) واخرجه ابن سعد (٢/٦٩) ايضا عن الواقدي عن موسى بن محمد بن ابراهيم بن الحارث التيمى نحوه.

کړې څوک چې د هغه وحې تابعداري کوي چې په آنحضرت ﷺ باندې نازله شوې وه او رسول الله ﷺ نه پس مونږ ثابت قدم اوساتي او په اخرت کې ورسره مونږ يو ځاۍ کړي او خلکو به امين ويلو اول سړيو مونځ وکړ او بيا ښځو، بيا ماشومانو.(۱)

## د رسول الله ﷺ په وفات د صحابه كرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ژړا

### د حضرت ابوبكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ژړل او خطبه:

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: د رسول الله ﷺ وفات وشو نو حضرت ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وليدل چې خلک خپل مينځ کې پټې پټې خبرې کوي حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل غلام ته وويل چې لاړ شه! او واوره چې خلک پټې پټې څه خبرې کوي؟ بيا راشه! ما ته او وايه! هغه واپس راغى وې ويل چې خلک وايي چې رسول الله ﷺ وفات شوى دى حضرت ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې دا واورېدل په تېزۍ سره لاړو او هغه فرمايل چې هايې! زما ملا ماتېږي هغه باندې دومره زيات غم وو چې خلکو دا ګڼله چې دي به جماعت پورې ونه رسېږي بهر حال هغه همت وکړ په څه شان جماعت ته ورسېدو.(۲)

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي کله چې رسول الله ﷺ د دنيا نه رخصت شو نو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ د حجرې نه مسجد ته تشريف راوړو دغه وخت حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په جماعت کې خلکو ته بيان کولو حضرت ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل اې عمره! کېنه! په دې خبره حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کېناستلو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د الله جَلَّ جَلَالُهُ حمد او ثناء او کلمه شهادت نه پس وفرمايل: اما بعد! په تاسو کې چې چا د حضرت محمد ﷺ عبادت کولو نو هغه ته دې معلومه وي چې حضرت محمد ﷺ وفات شوى دى او چا چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ عبادت او بندګي کوله نو هغه ته دا يقين په کار دى چې الله رب العزت به هميشه ژوندى وي هغه باندې مرګ نه شي راتلى. او الله جَلَّ جَلَالُهُ په قرآن مجيد کې فرمايلي دي:

وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ ۚ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ۭ اَفَاۡئِنْ مَّاتَ اَوْ قُتِلَ انْقَلَبْتُمْ عَلٰٓى اَعْقَابِكُمْ ۭ وَمَنْ يَّنْقَلِبْ عَلٰي عَقِبَيْهِ فَلَنْ يَّضُرَّ اللّٰهَ شَـيْـــًٔا ۭ(۳)

ترجمه: نه دى محمد ﷺ مګر (د الله تعالى) رسول دى د هغوى ﷺ نه مخکې هم د ېر

---

۱: اخرجه ابن سعد (۲/۷۰) ايضا عن عبدالله بن محمد بن عمر علي بن ابي طالب عن ابيه عن جده كذا في الكنز (۴/۵۵)

۲: اخرجه ابن خسرو وكذافي الكنز (۴/۴۸)

۳: سورة آل عمران آيت ۱۴۴

رسولان تېر شوی دی نو که چېرې هغه وفات شو يا شهيد کړی شي نو آيا تاسو به واپس وګرځئ؟ حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! داسې معلومېدله چې خلکو ته د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د تلاوت نه مخکې د دې آيت پته نه لګېدله چې دا آيت هم نازل شوی دی ټولو خلکو د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه دا آيت يو ناڅاپه واخيست او هر سړی دا ويل شروع کړو او حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! څنګه چې ما د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه دا آيت واورېده نو زه د وېرې د وجې په رېږدو شوم او زما په پښو کې د اوچتېدو حرکت پاتې نه شو او زه په زمکه باندې راپرېوتم او ما کله چې د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه دا آيت واورېده نو بيا ما ته معلومه شوه چې رسول الله ﷺ وفات شوی دی.(۱)

**د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خفګان:**

حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل: رسول الله ﷺ وفات شو نو د رسول الله ﷺ صحابه وو ته د دې په وجه دومره ډېر غم او پرېشاني شوه چې بعضې صحابه وو ته خو دا وسوسه پيدا شوه چې اوس به اسلام ختم شي زه هم په دغو خلکو کې ووم يو ځل زه د مدينې منورې يوه کوټه کې ناست ووم او د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه بيعت شوې وو په دې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زما خوا کې تېر شو خو د سخت غم د وجې نه زه د هغه په تېرېدو بلکل پوه نه شوم حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نېغ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ورغی او ورته يې ويل چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رسول خليفه! آيا زه تا ته يوه عجيبه خبره نه وايم چې زه حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خوا کې تېر شوم او ما ورته سلام وکړ ليکن هغه زما د سلام جواب رانکړ مخکې نور حديث هم شته لکه د سلام په باب کې به راشي.(۲)

**د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خفګان:**

حضرت عبدالرحمن بن سعيد بن يربوع رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: يوه ورځ حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راغی او هغه په سر باندې جامه اچولې وه او ډېر غمګين وو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه ته وفرمايل چې څه خبره ده؟ ډېر غمژن په نظر راځې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې ما ته هغه درونډ او لوی غم راپېښ شوی دی چې هغه تا ته نه دی پېښ شوی حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ

---

۱: اخرجه عبدالرزاق وابن سعد وابن احمد والبخاري وابن حبان وغيرهم كذا في الكنز (۴/۴۸)

۲: اخرجه ابن سعد ((۴/۱۲۸)

وفرمایل چې واوره! داڅه وایې؟ زه تا ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ واسطه درکوم او پوښتنه کوم چې ستا په خیال کې څوک سړی داسې شته چې هغه ته زما نه زیات د رسول الله ﷺ غم رسېدلی وي.(۱)

حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي: د رسول الله ﷺ انتقال شوي وو او د هغوی ﷺ جنازه زمونږ په کور کې ایښې وه مونږ ټولې پاکې بیبیانې جمع شوې وو او مونږ ژړل او په هغه شپه مونږ بلکل ویدې شوي نه وو مونږ هغوی ﷺ په کټ کې پروت لیده او خپل زړه ته به مو تسلي او داد ورکولو چې په دې کې په اخره شپه کې رسول الله ﷺ دفن کړای شو لو په قبر باندې خاوره اچولو لپاره مونږ د بېلچو چلېدلو اواز وواورېده نو مونږ چغه ووهله او جماعت والاوو هم. او ټوله مدینه په دې چغه وکړنګېدله دې نه پس حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د سهار اذان وکړ نو کله چې هغه په اذان کې د رسول الله ﷺ نوم واخیسته یعني اشهد ان محمد رسول الله یې وویل نو په زوره زوره په ژړا شو او په دې سره زمونږ غم نور هم زیات شو ټولو خلکو د هغوی قبر د ننه د راتلو کوشش شروع کړ، له دې وجې نه د دروازې د ننه د بندولو ضرورت راغی هایې دغه څومره لوي مصیبت وو دې نه پس په مونږ باندې چې کوم مصیبت هم راغی نو د رسول الله ﷺ د تلو د مصیبت یادولو سره هغه مصیبت کم شو.(۲)

## داهل مدینې ژړا او فریاد:

حضرت ابو ذویب هذلي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: زه مدینې منورې ته راغلم نو ما ولیدل چې مدینې والا په اوچت اواز دومره په زوره ژاړي چې ټول حاجیان د احرام په حالت کې په زوره لبیک وایي ما پوښتنه وکړه چې څه وشو؟ نو خلکو وویل چې رسول الله ﷺ وفات شوی دی له وجې ټول خلک ژاړي.(۳)

## په مکه کې د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ حالت کله چې د آنحضرت ﷺ له وفات خبر شول:

حضرت عبید الله بن عمیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله ﷺ وفات شو هغه وخت د مکې معظمې او د خواوشا علاقې امیر حضرت عتاب بن اسید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وو کله چې مکې والاوو ته د رسول الله ﷺ د وفات خبر اورسېدو نو په مسجد حرام کې ناست ټول مسلمانان

---

۱: اخرجه ابن سعد (۲/۸۲)

۲: اخرجه الواقدی کذا فی البدایة (۵/۲۷۱) ابن سعد مختصرا (۴/۱۲۱)

۳: اخرجه ابن منده وابن عساکر کذا فی الکنز (۴/۵۸) ابن اسحاق بطوله کما سنذکر فیما قالت الصحابة علی وفاته ﷺ

په زوره زوره په ژړا شول او د غم د زیاتوالي له وجهې حضرت عتاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خو د مکې نه یو بهر ځای ته لاړو دې لپاره چې ځانته کېني او اوژاړي حضرت سهیل بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی او حضرت عتاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یې وویل چې یوازېوالي پرېږده! او پاڅه! خلکو ته خبره وکړه هغه وویل د رسول الله ﷺ د وفات په وجه په ما کې د خبرې کولو همت نشته حضرت سهیل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې ته ماسره لاړ شه! ستا په ځای به زه خبره وکړم نو هغه دواړه د هغه ځای نه مسجد حرام ته لاړل او حضرت سهیل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ودرېده او بیان یې وکړ د الله جَلَّ جَلَالُهُ د حمد او ثنا نه پس یې خپل بیان کې هغه ټولې خبرې وکړې چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مدینه منوره کې کړې وې په هغې کې یې یوه خبره هم پرېنښوده او الله رب العزت هغه د مکې والاوو د سنبالولو ذریعه اوګرځوله د جنګ بدر په موقعه باندې حضرت سهیل بن عمرو هم په کافرانو بندیانو کې وُو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه مخکې غابونه وېستل غوښتل نو رسول الله ﷺ ورته فرمایلي وو چې اې عمره! ته ولې د ده مخکې غابونه اوباسې؟ دې پرېږده کېدی شي چې الله رب العزت ده ته د خپل دین د خدمت لپاره ودرېدو داسې زبردسته موقعه ورکړي چې په هغې سره تاسو ډېر خوشحاله شئ! نو دا هغه موقعه وه چې د هغې رسول الله ﷺ خبر ورکړی وو او د هغه د دې بیان ډېر اثر وشو او د مکې مکرمې خواوشا ټول مسلمانان به قلاړ شول او د حضرت عتاب امارت کلک او نور هم مستحکم شو.(۱)

**د حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حالت:**

حضرت ابو جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: ما د رسول الله ﷺ د وفات نه پس کله هم حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په خندا ونه لیدله یوازې لږ غونډې به مسکی کېدله چې په هغې سره به یې د مخ یو طرف اوړېدېده.(۲)

## د رسول الله ﷺ په وفات صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ څه وویل؟

حضرت اسحاق رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د رسول الله ﷺ په وفات باندې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې نن مونږ د وحې نه او د الله جَلَّ جَلَالُهُ د طرف راتلونکي کلام نه محروم شو.(۳)

---

۱: اخرجه سیف وابن عساکر کذا فی الکنز (۴/۴۶)

۲: اخرجه ابن سعد (۲/۸۲)

۳: اخرجه ابو اسماعیل الهروي دلائل التوحید عن محمد بن اسحاق عن ابیه کذا فی الکنز (۴/۵۰)

**د فقدان وحي په باره کې د ام ایمن رَضِيَ اللهُ عَنهَا قول:**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي، کوم وخت رسول الله ﷺ وفات شو نو حضرت ام ايمن رَضِيَ اللهُ عَنهَا په ژړا شوه نو چا د هغې نه پوښتنه وکړه چې ته ولې ژاړې؟ نو هغې وفرمایل چې د رسول الله ﷺ په وفات باندې ژاړم ځکه چې زما یقین وو چې رسول الله ﷺ به نزدې وفات کېږي. زه خو په دې ژاړم چې د وحې سلسله بنده شوه.(۱)

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي: د رسول الله ﷺ د وفات نه پس حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته ووېل چې راځه! د حضرت ام ايمن رَضِيَ اللهُ عَنهَا ملاقات ته ځو، زه هم دې دواړو سره لاړم کله چې مونږ هغې ته اورسېدو نو هغه په ژړا شوه دې حضراتو ورته ووېل چې ولې ژاړې؟ الله جَلَّ جَلَالُهُ له ورتلو سره د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسول ﷺ ته چې څه ملاو شوی دی هغه هغوی ﷺ له د دې ځای به زرګونو چنده غوره دی حضرت ام ايمن رَضِيَ اللهُ عَنهَا ووېل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! چې زه د له دې وجې نه ژاړم کنې نو ما ته دا معلومه نه ده چې الله جَلَّ جَلَالُهُ ته ورتلو سره چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسول ته څه حاصل دي هغه د هغوی ﷺ له د دې ځای نه په زرګونو چنده غوره دی بلکې زه خو په دې وجه ژاړم چې اوس خو د اسمان نه وحې راتلو سلسله بنده شوې ده دا خبره دومره اثرناکه وه چې دې اورېدو سره هغه دواړه حضرات هم په ژړا شول.(۲)

حضرت طارق رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي کله چې رسول الله ﷺ وفات شو نو حضرت ام ايمن رَضِيَ اللهُ عَنهَا په ژړا شوه چا ورته ووېل اې ام ايمن! ولې ژاړې؟ هغې ورته ووېل چې په دې ژاړم چې اوس اسماني خبرونه مونږ ته راتلل بند شول.(۳)

په يو روايت کې دا دی چې حضرت ام ايمن رَضِيَ اللهُ عَنهَا وفرمايل چې زه په دې خبره باندې ژاړم چې شپه او ورځ مونږ ته د اسمان نه تازه خبرونه راتلل اوس دا سلسله بنده شوې ده په دې باندې ژاړم د حضرت ام ايمن رَضِيَ اللهُ عَنهَا په دې خبره خلک حيران شول.(۴)

---

۱: اخرجه احمد.

۲: عند البيهقی من حديثه كذا فی البداية (۵/۲۷۴) واخرجه ايضا ابن ابي شيبة ومسلم وابويعلی وابوعوانة عن انس مثله كما فی الكنز (۴/۴۸) وابن سعد (۸/۱٦۴) عن انس نحوه.

۳: عند ابن ابي شيبة كذا فی الكنز (۴/٦۰) واخرجه ايضا ابن سعد (۸/۱٦۴) بسند صحيح عن طارق نحوه.

٤: اخرجه مالک كذا فی البداية(٦/۲۳۹) واخرجه ابن عبدالبر فی الاستيعاب (۳/۴۴٦) من طريق مالک نحوه قال فی الاصابة (۳/۴۵۰) وسعيد بن هاشم ای راوی الحديث عن مالک ضعيف والمحفوظ مرسل عروة النهی وقد اخرجه ابن سعد (۳/۴٦۵) عن عروة نحوه.

**د معن بن عدي رَضِیَ اللهُ عَنهُ قول:**

حضرت ابن عمر رَضِیَ اللهُ عَنهُ فرمایي، رسول الله ﷺ په وفات باندې خلک په ژړا شول او وې ویل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زمونږ داتمنا نه وه چې مونږ د رسول الله ﷺ نه مخکې مړه واي ځکه چې اوس مونږ ته دا ویره ده چې د هغوی ﷺ نه روستو چېرته مونږ په فتنو کې اخته نشو په دې باندې حضرت معن بن عدي رَضِیَ اللهُ عَنهُ وفرمایل لیکن په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زما خو دا تمنا وه چې زه د رسول الله ﷺ نه مخکې وفات شوي واي بلکې زه خو دا غوارم چې څنګه ما رسول الله ﷺ په ژوند کې رسول الله ﷺ رښتوني منلی دی او د هغه ﷺ تصدیق مې کړی دی دا شان به یې د وفات نه پس هم د هغوی ﷺ تصدیق کوم.

**د رسول الله ﷺ د لور حضرت فاطمې رَضِیَ اللهُ عَنهَا قول:**

حضرت انس رَضِیَ اللهُ عَنهُ فرمایي کله چې د رسول الله ﷺ مریضي نوره هم زیاته شوه او ډېر زیات بې ارامه شو نو حضرت فاطمې رَضِیَ اللهُ عَنهَا وویل هاي! زما د پلار بې ارامي! رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چې نن نه وروسته به ستا پلار باندې هیڅکله هم بې ارامي نه راځي بیا کله چې رسول الله ﷺ وفات شو نو حضرت فاطمې رَضِیَ اللهُ عَنهَا وویل هاي! زما پلار د رب دعوت قبول کړو هایې! زما د پلار د اوسېدو ځای جنت الفردوس او ګرځېدو هایې! زما پلار! د هغوی په مرګ باندې به مونږ جبرائیل ته تعزیت کوو بیا کله چې رسول الله ﷺ دفن کړی شو نو حضرت فاطمې رَضِیَ اللهُ عَنهَا وفرمایل اې انسه! ستاسو زړونه په رسول الله ﷺ باندې خاورې اچولو لپاره څنګه تیار شول؟ (۱)

حضرت فاطمې رَضِیَ اللهُ عَنهَا وفرمایل اې انسه! ستاسو زړونه څنګه تیار شول چې تاسو رسول الله ﷺ په خاورو کې دفن کړو او واپس راغلئ؟ حضرت حماد وایي کله چې به حضرت ثابت رَضِیَ اللهُ عَنهُ دا حدیث بیانولو نو دومره به یې ژړل چې پښتی به یې وښورېدلې. (۲)

**د رسول الله ﷺ دعمه (ترور) حضرت صفیه رَضِیَ اللهُ عَنهَا اشعار:**

حضرت عُروه رَضِیَ اللهُ عَنهُ فرمایي، د نبي ﷺ ترور حضرت صفیه بنت عبد المطلب د رسول الله ﷺ په وفات څو شعرونه وویل چې هغې ترجمه دا ده،

---

۱: اخرجه البخاری

۲: عند احمد كذافی البدایة (۵/۲۷۳) واخرجه ایضا ابن عساکر وابو یعلی عن انس نحو حدیث البخاری كما فی الكنز (۴/۵۷) واخرجه ابن سعد (۲/۸۳) نحوه.

۱ـ زما زړه غمجن دي او ما شپه د هغه سرې پشان تېره کړه چې د هغه نه هر څه په زور اخيستل شوي وي او ما په انتظار کې د هغه سرې پشان تولهٔ شپه په ويښه تېره کړه چې لوټلی شوی وي او هيڅ ورسره نه وي پاتې شوي.

۲ـ او دا ټول هر څه د هغو غمونو او پرېشانو په وجه دي چې هغې زما خوب ختم کړی دی ارمانا چې زه هغه وخت مړه شوې وای.

۳ـ هر کله چې خلکو ووېل چې په تقدير کې ليکلي شوي مرګ رسول الله ﷺ ته راغلی دی.
کله چې مونږ د حضرت محمد ﷺ کورو الاوو ته ورغلو نو زمونږ د څټ ويښته د غم د وجې نه سپين شول.

۴ـ کله چې مونږ د هغوی ﷺ کورونه وليدل چې اوس هغه وېرونکي شوی دی او زما د حبيب ﷺ نه پس اوس په هغې کې څوک پاتې نه شول.

۵ـ نو له دې سره په ما باندې د ېر لوی غم خور شو چې د ېر وخته پورې به وي او چې زما په زړه کې داسې پيوست شو چې د غه زړه اوس وېرېدونکی شو. او دا اشعار هم حضرت صفيه رضي الله عنها ووېل:

لَهْفَ نفسي وبِتُّ كالمسلوب
أَرِقُ الليل فعلة المحروب
من هموم و حسرة ارقتني
ليت اني سُقيتها بشعوب
حين قالوا ان الرسول قد امسى
وافقته منية المكتوب
حين جئنا لال بيت محمد
فاشاب القذال اى مشيب
حين رأينا بيوته موحشات
ليس فيهن بعد عيش غريب
فعراني لذاك حزن طويل
خالط القلب فهو كالمرعوب

او دا اشعار يې هم وويل:

الا يا رسول الله كنت رخاء نا
وكنت بنا برا و لم تك جافيا
وكان بنا برا رحيما لبينا
لبيك عليك اليوم من كان باكيا
لعمرى ما ابكى النبي لموته
ولكن لهوجٍ كان بعدك آتيا
كان على قلبي لفقد محمد
و من حبه من بعد ذاك المكاويا
افاطمَ صلى الله رب محمد
على جَدَثٍ امسى بيثرب ثاويا
ارى حسنا ايتمته و تركته
يبكى و يدعوجده اليوم نائيا
فدى لرسول الله امي وخالق
و عمي و نفسي قصره و عياليا
صبرتَ و بلغت الرسالة صادقا
ومُتَّ صليب الدين ابلج صافيا
فلوان رب العرش ابقاك بيننا
سعدنا ولكن امره كان ماضيا
عليك من الله السلام تحية
وادخلت جنات من العدن راضيا(١)

١ـ په غور سره واورئ! اې د الله جل جلاله رسوله! تاسو مونږ سره د اسانتيا معامله کوله او له مونږ سره دې ښه سلوک کول، نه له مونږ سره د سختۍ معامله کونکی نه وې!

٢ـ تاسو مونږ سره ښه رویه کوونکې، د ېر مهربانه او زمونږ رسول الله ﷺ وئ! او هر

---

١ حسن. طبراني (٢٤/ ٣٢٠) وګوره: المجمع (٣٩٢٩).

ژړېدونکي ته په کار دی چې نن ستاسو په وفات کېدو باندې وژاړي.

۳ـ زما په ژوند قسم! زه د رسول الله ﷺ په وفات باندې ژاړم بلکې د هغوی ﷺ له وفات نه وروسته د راتلونکو فتنو او اختلافاتو له وجې ژاړم.

۴ـ د حضرت محمد ﷺ په تشریف راوړلو او د هغوی ﷺ د محبت له وجې نه زما په زړه باندې د ګرمۍ او سپېنې داغونه لګلېدلي دي.

۵ـ اې فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا! د حضرت محمد ﷺ رب دې په هغه قبر باندې رحمت اولېږي چې يثرب کې د هغوی ﷺ د استوګنې لپاره ځائ جوړ شوی دی.

۶ـ زه حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وايم چې هغوی ﷺ يتيم کړو او په داسې حال کې يې پرېښودو چې هغه په ژړا ژړا لرې تلونکي خپل نيکه ته اواز کوي.

۷ـ زما مور، ترور، تره او زما ځان او زما اولاد ټول د الله جَلَّ جَلَالُهُ په رسول الله ﷺ باندې قربان دي.

۸ـ هغوی ﷺ صبر وکړ او په ډېر زيات صداقت او استقامت سره يې د الله جَلَّ جَلَالُهُ پيغام ورسولو او د هغوی ﷺ وفات په داسې حال کې وشو چې هغوی په دين کې مضبوط، ملت يې واضحه او دين يې بلکل صفا ستره دی.

۹ـ کچېرې د عرش مالک ته زمونږ په منځ کې تلپاتې ساتلي واي نو مونږ به ډېر خوش قسمته واي خو ستاسو د وفات کېدو په واسطه د الله جَلَّ جَلَالُهُ فيصله پوره شوه.

۱۰ـ د الله جَلَّ جَلَالُهُ له طرفه دې په تاسو باندې سلام او تحيه وي او تاسو ته دې الله جَلَّ جَلَالُهُ په خوشحالۍ خوشحالۍ د عدن په جنتونو کې داخل کړي.(۱)

حضرت محمد بن علي بن الحسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي کله چې رسول الله ﷺ وفات شو نو حضرت صفيې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د رسول الله ﷺ مخامخ پخپل ځادر اشاره کوله او دا شعر يې ويلو:

قدكــان بعــدك انبــاء و هَنْبَثَــة (۲)

لوكنــت شــاهدها لم تكثرالخطــب

ستاسو نه پس د پرېشانۍ حالات او سخت مصيبتونه راغلي دي که چېرې تاسو په دغه

---

۱: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ۹/۳۹) رواه الطبراني واسناده حسن انتهى.

۲ ضعيف منقطع. طبراني (۲۴/ ۳۲۱) محمد بن علي بن الحسين صفيه نوه لېدلې: هيثمي (۹/ ۳۹).

وخت کې تشریف فرما وئ! نو دا حالت او مصیتونه به دومره زیات نه وو.(۱)

حضرت غنیم بن قیس رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ فرمایي کله چې نبي کریم ﷺ وفات شو نو ما د خپل پلار نه واورېدل چې هغه دا شعرونه ویل؛

الالی الویـــل علـــی محـــمد

قـــدکنت فی حیاتـــه بمقعـــد

ابیـــت لیلـــی آمنـــا الی الغـــد

په هوش سره واورئ! د رسول الله ﷺ د تشریف اوړلو په وجه سره زه تباه شوم د رسول الله ﷺ په ژوند کې زما خاص مقام وو. چېرته چې به ما توله شپه صبا پورې امن وامان سره تېروله.(۲)

## د صحابه کرامو رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُمْ رسول الله ﷺ یادول او ژړل

**دحضرت عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ او یوې بوډۍ قصه:**

حضرت زید بن اسلم رَحِمَهُ اللّٰہُ وایي چې یوه شپه حضرت عمر بن خطاب رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ د حفاظت لپاره اووتلو نو هغوی په یوه کور کې بله ډېوه اولیده هغوی رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ دغه کور ته نزدې ورغلو نو وې لیدل چې یوه بوډۍ تار جوړولو لپاره خپله وړۍ په غشي ریشله او رسول الله ﷺ په دې شعرونو کې یادوي؛

علـــی محـــمد صـــلاة الابـــرار

صـــلی علیـــك المصـــطفون الاخیـــار

قـــدکنتَ قوامـــا بَکِـــیُّ الاسحـــار

یا لیـــت شـــعری والمنـــایا اطـــوار

هـــل تجمعنـــی وحبیـــبی الـــدار

په حضرت محمد ﷺ باندې دې د نېکانو خلکو درود وي اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! په تاسو دې خوښ کړی شوي غوره خلکو درود ولېږي.

تاسو په شپو کې بـه عبادت کونکی او سحر ته نزدې د الله رب العزت په مخکې ډېر زیات

---

۱: عند الطبراني قال الهیثمی (۹/۳۹) رجاله رجال الصحیح الا انه محمد لم یدرک صفیة انتهی.

۲: اخرجه البخاری و البغوی کذا فی الاصابة (۳/۲۶۴) واخرجه البزار نحوه قال الهیثمی (۹/۳۹) رجاله رجال الصحیح غیر بشر بن ادم وهو ثقة واخرجه ابن زیاد (۷/۸۹)

ژړېدونکي وئ! د مرګ د راتلو ډېرې لارې دي.

او ارمان! چې ما ته پته واي چې آیا زه او زما حبیب رسول الله ﷺ به په یوه کور د اخرت کې کله هم یو ځای شو؟

دا د محبت نه ډک شعرونه یې چې واورېدل نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کېناستلو او په ژړا شو او ډېره وخته پورې یې ژړل اخر یې د هغه ښځې دروازه اوټکوله هغې بودۍ وویل څوک یې؟ هغوی وویل عمر! هغه بودۍ وویل زما د عمر سره څه واسطه! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې الله جَلَّ جَلَالُهُ دې په تا باندې رحم وکړي ته دروازه بېرته کړه ستا لپاره څه داسې د خطرې خبره نشته نو هغې بودۍ دروازه بېرته کړه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دننه لاړو او وې فرمايل چې اوس چې تا کوم شعرونه ويل لږ يې ما ته واوروه! نو هغې هغه شعرونه د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مخکې دوباره وويل کله چې هغه اخري شعر ته اورسېدله نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل چې تا په اخري شعر کې د خپل ځان او رسول الله ﷺ تذکره کړې ده په څه طرفه ته ما هم خپل دوارو سره شامل کړه! هغې دا شعر وويل (وعمر فاغفرله يا غفار) يعنې اې غفاره! د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مغفرت وکړې په دې باندې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوشحاله شو او واپس راغی.(۱)

**د رسول الله ﷺ د یاد په وخت کې دحضرت ابن عمر او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا کیفیت:**

حضرت عاصم بن محمد رَحِمَهُ اللهُ د خپل پلار نه نقل کوي کله چې به هم حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ تذکره کوله نو یو دم به یې بې اختیاره د سترګو نه اوښکې په بهېدلو شوې.(۲)

حضرت مثني بن سعید ذراع رَحِمَهُ اللهُ وايي چې ما د حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا فرمان واورېدو چې زه هره شپه خپل حبیب ﷺ په خوب کې وینم او دا یې وفرمایل په ژړا شو.(۳)

## د رسول الله ﷺ ګستاخان وهل

**دغرفه کندي او عمروبن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قصه:**

حضرت کعب بن علقمه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت غرفه بن حارث کندي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول

---

۱: اخرجه ابن المبارک وابن عساکر کذا في المنتخب الکنز (۴/۳۸۱)

۲: اخرجه ابن سعد (۴/۱٦۸)

۳: اخرجه ابن سعد (۷/۲۰)

اللهﷺ صحبت یا فته صحابي وو هغه واورېدل چې يو نصراني رسول اللهﷺ ته بدرد وايي نو هغه يې داسې او وهل چې پوزه يې ورماته کړه دا معامله حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته پېش کړی شوه حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت غرفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل چې مونږ خو دوي سره د امن ورکولو معاهده کړې ده حضرت غرفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل په الله جَلَّ جَلَالُهُ پناه! دا خلک دې رسول اللهﷺ ته بدرد وايي او مونږ به بيا هم د دوی د معاهدې خيال ساتو؟ مونږ خو دوي سره په دې شرطونو باندې معاهده کړې ده چې مونږ به د دوي عبادتخانو ته څه نه وايو دوي چې پخپلو عبادتخانو کې څه غواړي کوي دې مونږ به د دوي د طاقت زيات بوج په دوي باندې نه اچوو او که څوک دشمن په دوي باندې حمله کوي نو مونږ به د دوي د طرفه جنګېږو او د دوي په احکامو کې به څه کار نه لرو البته که چېرې دوي زمونږ په احکامو باندې راضي شي او په مونږ باندې د فيصلې کولو لپاره راشي نو مونږ به د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه د رسول ﷺ د احکامو مطابق د دوي په باره کې فيصله کوو او که چېرې دوي د خپلو معاملاتو په باره کې زمونږ نه جدا اوسېږي نو مونږ به دوي ته هيڅ هم نه وايو په دې خبره حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې تا صحيح وويل.(۱)

حضرت غرفه بن حارث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د رسول اللهﷺ صحبت حاصل وو او د حضرت عکرمه بن ابي جهل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره يې د مرتدينو په خلاف جنګ هم کړی ؤو، هغه د مصر د يو نصراني په څنګ کې تېر شو چې هغه ته منذقون ويل کېده، حضرت غرفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته سلام وکړ نو هغه نصراني د رسول اللهﷺ تذکره په بد انداز کې وکړه، په دې سره حضرت غرفه ته غصه ورغله او هغه نصراني يې ووهلو، بيا دا معامله حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وړاندې کړی شوه، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه را وغوښتلو او ورته يې وويل چې مونږ خو دوي سره د امن ورکولو معاهده کړې ده او بيا يې د تېر حديث پشان مضمون ذکر کړی دی.(۲)

حضرت کعب بن علقمه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت غرفه بن حارث کندي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د

---

۱: اخرجه ابن المبارک عن حرملة بن عمران کذا في الاستيعاب (۳/۱۹۳) واخرجه البخاري في تاريخه عن نعيم بن حماد عن عبدالله ابن المبارک عن حرملة باسناد صحيح کما في الاصابة (۳/۱۹۵)

۲: اخرجه الطبراني قال الهيثمي (۶/۱۳) وفيه عبدالله بن صالح کاتب الليث قال عبدالملک بن شعيب بن ليث ثقة مامون وضعفه جماعة وبقية رجاله ثقات واخرج البيهقي (۹/۲۰۰) نحوه

رسول الله ﷺ صحبت حاصل ؤو، دې د یوه سړي خوا کې په داسې حال کې تېر شو چې هغه سره د امن ورکولو معاهده شوې وه حضرت غرفه ورته د اسلام دعوت ورکړو خو هغه سړي رسول الله ﷺ ته بد رد وویل چې په دې سره حضرت غرفه رسول الله ﷺ ته بد رد ویونکي قتل کړو نو حضرت عمرو بن العاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وویل چې دا خلک د معاهدې د پابندی په وجه له مونږ نه مطمئن وو خو تا قتل کولو سره معاهده ما ته کړه، حضرت غرفه وویل چې مونږ دوي سره په دې خبره د امن معاهده نه ده کړې چې دوي دې د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه د رسول ﷺ په باره کې بد رد ویلو سره مونږ ته تکلیف ورسوي.(۱)

## د رسول الله ﷺ حکم په ځائ کول

**په نخله سریه کې د رسول الله ﷺ حکم منل:**

حضرت عُروه بن زبیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: رسول الله ﷺ حضرت عبد الله بن جحش رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (بطن) نخله مقام ته ولېږه او ورته یې وفرمایل: ته هلته لاړ شه او د قریشو څه خبر راوړه. رسول الله ﷺ ورته د جنګ حکم نه ؤو کړی او دا د اشهُر حُرُم یعنې د هغو میاشتو واقعه ده چې په هغې کې کافرانو خپلو کې جنګ نه کولو ، رسول الله ﷺ ورته دا نه ؤو ویلي چې هغه به چېرته ځي، بلکې هغه ته یې لیکلي لیک ورکړ او ورته یې وفرمایل : ته خپل ملګري ځان سره واخله لاړ شه کله چې په سفر کې دوه ورځې تېرې شي نو دا لیک پرانیزه ویې ګوره او په دې کې چې ما تا ته د کوم شی حکم کړی دی په هغې باندې عمل کوه. تر لیک لوستلو وروسته خپل کوم ملګري په ځان سره په بوتللو مه مجبوروه. دوه ورځې سفر کاوه نه په مخکې هغه هغه لیک پرانیستلو او هغه یې ولوسته نو په هغه کې یې داسې لیکلی و چې د دې ځائ نه مقام نخله ته ځان ورسوه. او د قریشو په باره کې چې څه خبرونه تا ته ورسیږي ، نو ته هغه مونږ ته راوړه.

لیک یې چې ولوسته نو حضرت عبد الله بن جحش رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپلو ملګرو ته یې وویل چې زه خو به د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رسول خبره اورم او منم به یې هم. په تاسو کې چې چاسره د شهادت شوق وي هغه دې ما سره لاړ شي زه خو هلته ځم او د رسول الله ﷺ حکم به پوره کوم او د چا چې شوق نه وي هغوئ دې واپس لاړ شي. ځکه چې رسول الله ﷺ زه د چا له مجبور کېدو نه

۱: عند ابن عساکر

منع کړي یم چې ځان سره یې بوځم خو هغه جمعه صحابه رَضِيَ اللهُ عَنهُم مخکې نو مي ځای ته لاړل په هغوی کې هیڅوک واپس نه شو کله چې دا حضرات بحران ته ورسېدل نو د حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنهُ او د حضرت عُتبه بن غزوان رَضِيَ اللهُ عَنهُ اوښ ورک شو چې په هغه باندې به دا حضرات وار په وار سورېدل. دا حضرات د اوښ تلاش کولو لپاره وروسته پاتې شول او نور خلک لاړل نخله نومي ځای ته ورسېدل. عمرو بن حضرمي، حکم بن کیسان، عثمان بن عبد الله او مغیره بن عبد الله په دوي باندې تېر شول. دې خلکو خپل تجارتي سامان، څرمنې او ممیز له طائف نه راخستي وو او راتلل، کله چې صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنهُم د مکې کافران ولیدل نو د حضرت واقد بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ د سر وېښته خرېیل شوي وو. نو دوي وویل چې عُمره یې کړې ده او را روان دی، له دې وجې نه تاسو ته د دوي نه څه خطره نشته دوي د جنګ لپاره نه دي راغلي، دا د رجب اخري ورځ وه او رجب په اشهر حُرُم کې داخله ده دا هم په هغه څلورو میاشتو کې ده چې په هغې کې د عربو کافران خپل مینځ کې جنګ نه کوي، له دې وجې نه د رسول الله ﷺ صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنهُم پخپلو کې د دې کافرانو په باره کې مشوره وکړه چې که چېرې نن تاسو دا کافران مړه کړئ! نو په شهر حرام یعنې رجب کې به یې مړه کړئ! چې د ټولو عربو د دستور خلاف به وي او که چېرې دوي پرېږدئ نو دوي به نن حرم کې داخل شي او محفوظ به شي چې د حرم په حدودو کې دننه د چا وژل جائز نه دي له دې وجې نه صحابه رَضِيَ اللهُ عَنهُم په دې خبره متفق شول چې دوي دې هم نن قتل کړی شي نو حضرت واقد بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ عمرو بن حضرمي په غشي باندې وویشته او قتل یې کړ، حکم بن کیسان او عثمان بن عبد الله یې ونیوه او مغیره وتښتېده یعنې دې حضراتو هغه ونه نیولی شو. د دغه کافرو په تجارتي قافله باندې هم دې حضراتو قبضه وکړه او دواړه قیدیان او د تجارت سامان یې واخیسته او د رسول الله ﷺ خدمت ته واپس راورسېدل، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل، په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ما خو تاسو ته په شهر حرام کې د جنګ حکم نه وو کړی بیا رسول الله ﷺ دواړه قیدیان او د تجارت سامان وساتل او د هغې نه یې څه شي وانه خیسته. دې حضراتو چې د رسول الله ﷺ دا فرمان واورېده نو ډېر پښېمانه شول او دوي دا وګڼله چې مونږ خو اوس تباه شولو او دوي خپلو مسلمانانو وروڼو ډېر ورټل او کله چې قریشو ته د دې واقعې خبر ورسېد نو

هغوی وویل چې محمد ﷺ په شهر حرام کې وینه بهولې ده او په دې میاشت کې یې په مال باندې قبضه کړې ده او زمونږ سړي یې هم قید کړي دي او د شهر حرام بې حرمتي یې کړې ده او دا یې د نورو میاشتو په شان عامه میاشت گرځولې ده. په دې باندې الله جَلَّ جَلَالُهُ په دې باره کې دا آیت کریمه نازل کړ: يَسْئَلُونَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيهِ ۖ قُلْ قِتَالٌ فِيهِ كَبِيرٌ ۖ وَصَدٌّ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ وَكُفْرٌ بِهِ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَإِخْرَاجُ أَهْلِهِ مِنْهُ أَكْبَرُ عِنْدَ اللَّهِ ۚ وَالْفِتْنَةُ أَكْبَرُ مِنَ الْقَتْلِ ۗ (١)

ترجمه: خلک ستا نه په شهر حرام کې د قتال کولو په باره کې پوښتنه کوي، تاسو ورته ووایئ چې په دې کې خاص توګه باندې قتل کول لوي جرم دی، د الله جَلَّ جَلَالُهُ له د لارې نه منع کول، له الله جَلَّ جَلَالُهُ سره کفر کول او مسجد حرام یعنې کعبې سره. او کوم خلک چې د مسجد حرام اوسېدونکي وو هغوی له دینه وېستل لوی جُرم دی د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد. او فتنه خورول د دې خاص قتل نه څو درجې زیاته ده. الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمایي چې الله جَلَّ جَلَالُهُ نه منل له قتل نه هم لویه ګناه ده. کله چې دا آیت نازل شو نو رسول الله ﷺ تجارتي سامان واخیسته خو له بندیانو نه یې فدیه وانه خیستله او همداسې بې له فدیې یې پرېښودل.منخله نومي ځائ ته تلونکو مسلمانانو وویل: اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله ﷺ آیا ستاسو امید دی چې مونږ ته به په دې جنګ کې ثواب ملاو شي؟ نو الله جَلَّ جَلَالُهُ په دې باره کې دا لاندې آیت کریمه نازل کړ: إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَاجَرُوا وَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أُولَٰئِكَ يَرْجُونَ رَحْمَتَ اللَّهِ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ (٢)

ترجمه: حقیقتاً کومو خلکو چې ایمان راوړی دی او کومو خلکو د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې یې وطن پرېښی وي او جهاد یې کړي وي نو داسې خلکو ته خو به الله جَلَّ جَلَالُهُ هغه غلطي وبښي او په تاسو به رحم وکړي.

په دې غزوه کې تلونکي اته کسان وو او د دوي امیر حضرت عبدالله بن جحش رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نهم سړی وو. (٣)

حضرت جُندب بن عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ یوه ډله ولېږله او د هغوی امیر

---

١: سورة بقرة ايت ٢١٧ ايت

٢: سورة البقرة (٢١٨) ايت

٣: اخرجه البهيقي. (ج ٩ ص ٥٨) من طريق ابن اسحاق عن يزيد بن رومان واخرج ابونعيم هذه القصة من طريق ابى سعيد البقال عن عكرمة عن ابن عباس مطولة وكذا اخرجه الطبرى من طريق اسباط بن نصر عندالسدى كما فى الاصابة ٢/٢٧٨

يې حضرت عبيده بن حارث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جوړ کړ کله چې هغوی روان شول نو د رسول الله ﷺ د محبت غلبه پرې زياته شوه او په ژړا شو، چې په دې سره رسول الله ﷺ د هغه په ځای بل څوک وليږه چې د هغه نوم حضرت عبد الله بن جحش رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وو. هغه ته يې يو ليک ورکړ او حکم يې ورته وکړ چې د مدينې منورې نه فلانکي ځای ته لاړ شه! او هلته له رسېدو سره سم دا ليک پرانيزه! وې ګوره!. او بيا چې په ليک کې درته د تګ لپاره کوم ځای ښودل شوي همالته لاړ شه! خو له رسېدو نه مخکې دا ليک مه لوله! او دا يې هم ورته وفرمايل چې خپل ځان سره مخکې تګ باندې څوک مه مجبوروه!. کله چې حضرت عبد الله بن حجش رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هلته ورسېده نو ليک يې ولوسته (إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ) يې وويل او خپلو ملګرو ته يې وويل چې زه خو د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه د رسول رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خبره اورم او منم به يې. د هغه په ملګرو کې دوه کسان واپس شول او پاتې ټول خلک ورسره مخکې لاړل، دې خلکو سره ابن الحضرمي مخ شو او هغه دوي قتل کړ، خو دا معلومه نشوه چې دا واقعه د رجب ده يا د جمادي الثاني ده. په دې سره مشرکانو وويل چې مسلمانانو په شهر حرام يعنې د رجب په مياشت کې قتل کړی دی په دې باندې لاندې ايت کريمه نازل شو.

يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيْهِ ۭ قُلْ قِتَالٌ فِيْهِ كَبِيْرٌ ۭ وَصَدٌّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَكُفْرٌۢ بِهٖ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۤ وَاِخْرَاجُ اَھْلِهٖ مِنْهُ اَكْبَرُ عِنْدَ اللّٰهِ ۚ وَالْفِتْنَةُ اَكْبَرُ مِنَ الْقَتْلِ ۭ (١)

په دې باندې ځينې مسلمانانو وويل چې دې ډلې که څه هم چې ښه کار خو يې کړی دی خو دوي ته به ثواب نه ملاوېږي. په دې باندې دا لاندې آيت کريمه نازل شو: اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَالَّذِيْنَ ھَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۙ اُولٰۗىِٕكَ يَرْجُوْنَ رَحْمَتَ اللّٰهِ ۭ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ (٢)

**بنو قريظوو ته په تللو کې د رسول الله ﷺ حکم منل:**

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ د خندق د غزا پر وخت باندې وفرمايل چې څوک به هم په لاره کې د مازديګر لمونځ نه کوي، بلکې کله چې ټول بنو قريظه ته ورسېدئ! نو لمونځ به کوي. د رسول الله ﷺ په امر سره کله چې صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ بنو قريظه ته روان شول ځينې صحابه لا په لاره کې وو چې د لمانځه وخت پرې راغی نو په دوي کې ځينو خلکو وويل چې مونږ خو به د مازديګر لمونځ په بنو قريظه کې کوو. او ځينې نورو

١: سورة البقرة (٢١٧)

٢: سورة البقرة (٢١٨)

وويل چې مونږ به همدلته په لاره کې لمونځ کوو، ځکه کله چې رسول الله ﷺ مونږ ته ويل چې لمونځ په بنو قريظه کې وکړئ! نو مقصد يې دا و چې مونږ تېز لاړ شو يعني په تګ کې سستي ونه کړو، او مقصد يې دا نه و چې په لاره کې که وخت راشي نو لمونځ به نه کوو. د دې خبرې يادونه رسول الله ﷺ ته وشوه، رسول الله ﷺ په دې دواړو ډلو کې هيڅ هم ونه ويل يعني سکوت يې غوره کړ. (۱)

حضرت کعب بن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي کله چې رسول الله ﷺ د خندق له غزا نه بېرته راغی نو هغوی ﷺ وسله کوزه کړې وه بيا يې دوباره وسله واچوله او ځان يې صفا سوتره کړ. د دُحيم راوي په حديث کې داسې راغلي دي: کله چې رسول الله ﷺ د خندق له غزا بېرته راغی نو وسله يې لرې کړې وه بيا حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ له اسمان نه د ده مبارک په خدمت کې حاضر شو او وې ويل چې تاسو د جنګېدونکي دښمن بنو قريظه په خلاف خپل مرسته کونکی راټول کړئ! څه خبره ده؟ زه وينم چې تاسو وسله کوزه کړې ده! په داسې حال کې چې مونږ ملائيکو تر اوسه پورې وسله نه ده کوزه کړې. دې اورېدو سره رسول الله ﷺ وویرېده، پاڅېده او خلکو ته يې په ډېر تاکيد سره دا حکم وکړ چې تاسو ټول بنو قريظه ته د مازديګر لمونځ ورسوئ! نو صحابه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وسلې واخيستې او روان شول. او بنو قريظه ته د رسېدلو نه مخکې لمر په پرېوتو شو په دې باندې د صحابه وو د مازديګر لمونځ په باره کې اختلاف راغی. څه خلکو وويل چې لمونځ وکړئ! ځکه چې د رسول الله ﷺ مطلب دا نه و چې تاسو لمونځ په وخت باندې کول پرېږدئ! او څه خلکو وويل چې رسول الله ﷺ مونږ ته په ډېر تاکيد سره دا فرمايلي چې مونږ به بنو قريظه ته لمونځ رسوو. له دې وجې نه مونږ د رسول الله ﷺ حکم منو او لمونځ په لار کې نه کوو، نو همدا رنګه مونږ ته به څه ګناه نه وي، په دې سره يوې ډلې په لاره کې د مازديګر لمونځ ايمان سره د ثواب په امېد وکړ او دويمې ډلې ونه کړ. رسول الله ﷺ معلومولو نه پس دواړو ډلو کې چا ته هم څه ونه ويل.(۲)

**د حنين په غزا کې د آنحضرت ﷺ حکم په ځای راوړل:**

حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي کله چې رسول الله ﷺ د حنين د غزا په ورځ وليدل چې خلک

---

۱: اخرجه البخاری هکذا رواه مسلم

۲: اخرجه الطبرانی قال الهيثمی ۶/۱۴۰ رجاله رجال الصحيح غير ابن ابی الهذيل وهو ثقة واخرجه البيهقی نحوه عن عبيدالله بن كعب بن مالک ومن حديث عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا اطول منه کمافی البداية ۴/۱۱۷

میدان پرېږدي او ځي نو وېې فرمایل: اې عباسه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ! په زوره دا اواز وکړه چې اې د انصارو ټولګیه! اې په حدیبیه کې ترونې لاندې بیعت کوونکو! د رسول الله ﷺ په دې امر سره حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په زوره دا اواز وکړ، چې اې د انصارو ټولګیه! اې په حدیبیه کې ترونې لاندې بیعت کوونکو! په دې سره انصارو په جواب کې زر تر زره وویل چې لبیک! او ځینې صحابه وو خپلې سورلۍ د غبرګوونکې خواته راتاوول غوښتل، خو د ډار او پرېشانی له وجې نه هغه سورلۍ راتاو نه شوې نو هغوی له خپلو سورلیو نه ښکته شول او سورلۍ یې هم دغسې پرېښودې، زغرې یې وواچولې، توره او ډال یې واخیستل، د کېدونکې اواز خواته په تېزۍ سره روان شول، دا شان رسول الله ﷺ سره په دغه ځائ کې له هغوی نه سل کسان ټول شول نو هغوی ﷺ د دښمن د حالاتو له اندازې لګولو پرته ورسره جنګ شروع کړ او ډېر زورور جنګ وشو. اولنې اواز خو د انصارو لپاره وشو. اخر کې د خزرج لپاره اواز وشو، ځکه چې دا خلک کلک جنګ کوونکی وو. بیا رسول الله ﷺ خپلو سورلیو خواته وکتل نو د هغوی ﷺ نظر په هغه ځائ پرېووت چېرته چې ښه په زور شور سره تورې چلېدلې. په دې باندې یې وفرمایل چې اوس تنور ګرم شوی دی یعنې جنګ ښه تېز روان دی.

حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي دې سلو کسانو جنګ ونه کړ او الله پاک سمدستي فتح ورکړه په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! چې تښتېدونکي خلک لا بېرته نه وو راغلی چې کافر بندیان رسول الله ﷺ ته نیولي رسېدلي وو. د دغو بندیانو لاسونه شاته په رسیو باندې تړلي شوي وو، په کافرانو کې زښت ډېر ووژل شول او پاتې ټولو ماتې وخوړه، وتښتېدل او ټول مال، سامان، اهل او عیال الله جَلَّ جَلَالُهُ ورځخه رسول ﷺ ته د غنیمت په توګه پاتې شول. (۱)

حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا حدیث دا شان بیانوي چې رسول الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ما ته وفرمایل اې عباسه! د کیکر ترونې لاندې بیعت کوونکو ته اواز وکړه! او راوې غواړه. د رسول الله ﷺ په دې خبرې سره ما اواز وکړ کله چې هغوی چې زما اواز واورېده نو داسې په تېزۍ سره واپس شو لکه غوا چې خپل بچي پسې راګرځي او هغوی ټولو «يَا لَبَّيْكَاهُ يَا لَبَّيْكَاهُ» ویل. (۲)

---

۱: اخرجه البیهقی

۲: عند ابن وهب و رواه مسلم عن ابن وهب كذا فی البداية ۴/۳۳۱ وقد اخرج ابن سعد ۴/۱۱ حديث العباس بطوله فذكر نحوه.

**د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنهُم عمل کله چې ابوسفیان د حدیبیې صلحه ماته کړه:**

حضرت عکرمة فرمایي کله چې رسول الله ﷺ په حدیبیه کې مکې والو سره صلح وکړه نو خُزاعه قبیلې والا د جاهلیت له زمانې نه د رسول الله ﷺ ملګري وو او د بنوبکر قبیلې والا د قریشو ملګري وو. له دې وجې نه له مسلمانانو سره په صلح کې د خُزاعه قبیلې والا هم داخل شول یعنې ورسره ملګري شول او له قریشو په صلح کې بنوبکر قبیلې والا داخل شول، لکه څنګه چې د خُزاعه او د بنوبکر قبیلو په مینځ کې له مخکې نه جنګونه کېدل، نو په همدې ترتیب د دې صلحې نه پس قریشو له بنوبکر سره د وسلې او غلې امداد وکړ، چې وروسته بنوبکر قبیلې په خُزاعه باندې ناڅاپي حمله وکړه. او په هغوی باندې کامیاب شول، د هغوی څه کسان یې ووژل، په دې باندې قریش ووېرېدل چې مونږ صلح ماته کړې ده له دې وجې نه هغوی ابوسفیان ته ووېل چې محمد ﷺ ته لاړ شه او پوره زور ولګوه! چې دا معاهده پخپل ځائ پاتې شي او صلح هم داسې وي. ابو سفیان له مکې نه روان شو او مدینې ته ورسېده، رسول الله ﷺ وفرمایل چې ابوسُفیان تاسو ته راغلی دی، د هغه کار خو به ونه شي خو دي به خوشاله واپس شي نو ابوسفیان حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته راغی او ورته یې ووېل اې ابابکر! رَضِيَ اللهُ عَنهُ چې تاسو دا معاهده او صلح هم دغسې پاتې وساتئ! هغه ووېل ددې واک له ما سره نشته بلکې د دې واک خو الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه له رسول ﷺ سره دي بیا حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته لاړ او هغه ته یې هم هغه خبره وکړه چې یې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته کړې وه. حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ووېل چې تاسو خپله صلح ماته کړې ده، په دې خبره ابوسفیان ووېل چې ما ستا پشان د خپلې قبیلې دښمن څوک نه دی لیدلی بیا حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنهَا له راغی او ورته یې ووېل اې فاطمې! ته داسې کار کولو لپاره په خوشحالۍ تیاره یې چې هغې سره ته د خپل قوم د ښځو سرداره جوړه شې؟ بیا یې هغوی ته هم هغه خبره وکړه چې یې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته کړې وه، هغې ورته ووېل چې ددې واک له ما سره نشته بلکې د دې واک خو الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه رسول ﷺ سره دی بیا هغه حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته لاړ او هغه ته یې هم هغه خبره وکړه چې یې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته کړې وه هغه ورته ووېل چې ما ستا نه زیات بې لارې سړی چېرته نه دی لیدلی. ته خو پخپله د خپلې قبیلې سردار یې ځکه دا معاهده برقرار وساته او

پاتې یې وساته! او څوک یې ماتولو ته مه پرېږده! په دې خبره ابو سفیان خپل یو لاس په بل لاس باندې ووهه او وې ویل چې ما خلکو ته د یو بل نه پناه ورکړه بیا مکې ته واپس لاړ او د هغه ځائ خلکو ته یې ټول حال بیان کړ هغوی وویل چې ستا پشان د قوم مشر تر ننه پورې مونږ نه دي لیدلی ، په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! چې نه تا د جنګ خبر راوړی دی چې مونږ بیداري سره د هغې تیاري کړی وای او نه دی د صلح خبر راوړی دی چې مونږ د جنګ نه بې غمه شو او په ارام سره کېنو ، دې نه پس یې د مکې له فتحې څخه مخکې واقعه بیان کړه.(۱)

**د بدر د بندیانو (اسیرانو) سره د صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ عملکرد:**

د حضرت مصعب بن عمیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورور حضرت ابو عزیر بن عمیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې زه د جنګ بدر په ورځ کافرانو بندیانو کې وم ، رسول الله ﷺ صحابه وو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ ته وفرمایل چې دې بندیانو سره ښه سلوک کوئ! د دې خبرې زما د طرفه تاسو ته پوره تاکید د ، زه د انصارو په ډله کې وم هغوی به کله چې هم د ورځې یا د شپې خوارک مخکې کېښود نو د رسول الله ﷺ د تاکید له وجې نه په ما باندې به یې د غنمو ډوډی خوروله او پخپله به یې کجورې خوړلې.(۲)

**ابن رواحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د رسول الله ﷺ حکم منلو کې عجله کول:**

حضرت عبد الرحمن بن ابي لیلي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې یو ځل حضرت عبد الله بن رواحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو ، رسول الله ﷺ منبر باندې خطبه ورکوله حضرت عبد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ واورېدل چې رسول الله ﷺ فرمایي چې کېنه! دي هم هلته له جماعت نه بهر هم په هغه ځائ کېناسته او خطبې ختمېدو پورې هلته ناست وو ، کله چې رسول الله ﷺ ته دا معلومه شوه نو هغوی ﷺ ورته وفرمایل چې الله جَلَّ جَلَالُهُ دې خپل او د خپل رسول ﷺ د تابعدارۍ شوق تا ته نور هم زیات نصیب کړي. (۳)

حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمایي چې رسول الله ﷺ د جُمعې مبارکې په ورځ په منبر باندې کېناسته او ویې فرمایل ټول کېنئ! حضرت عبد الله بن رواحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د جماعت نه دا

---

۱: اخرجه ابن ابی شیبة کما فی منتخب کنزالعمال ۴/۱۶۲

۲: اخرجه الطبرانی فی الکبیر والصغیر قال الهیثمی ۶/۱۸۶ اسناده حسن

۳: اخرجه ابن عساکر کذا فی الکنز ۷/۵۷ واخرجه البیهقی ایضاً نحوه عن عبدالرحمن بسند صحیح کما فی الاصابة ۲/۳۰۶

فرمان واورېده چې ټول کېنئ! او هم هلته د بنو غنم قبيلې په محله کې کېناسته. چا عرض وکړ چې اې د الله جَلّ جَلَالُهُ رسوله! حضرت عبد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ستاسو دا فرمان واورېده چې کېنئ! نو هم هلته په خپل ځائ کېناسته .(۱)

**عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا او د رسول الله ﷺ حکم په ځائ راوړل:**

حضرت عطاء فرمايي چې رسول الله ﷺ يو ځل خُطبه ورکوله نو خلکو ته يې وويل چې کېنئ! حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دغه وخت د مسجد دروازې ته رسېدلي وو. دې اورېدو سره هم هلته کېناسته . هغوی ﷺ ورته وفرمايل اې عبد الله! دننه راشه!(۲)

حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ځل د جمعې په ورځ کله چې رسول الله ﷺ په منبر باندې کېناسته نو ويې فرمايل کېنئ! حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ د دې خبرې په اورېدلو سره د مسجد دروازې خواته کېناسته . خو کله چې رسول الله ﷺ وليده چې له دروازې سره ناست دی نو ورته يې وفرمايل اې عبد الله! دننه راشه!(۳)

**د رسول الله ﷺ دکراهيت دوجهې لوړ گنبد نړول:**

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ يو ځل بهر ته راغی مونږ هم ورسره وو، هغوی ﷺ يوه اوچته قبه وليده نو پوښتنه يې وکړه چې دا دچا ده؟ صحابه وو عرض وکړ چې دا د پلاني انصاري ده، رسول الله ﷺ چې واورېدل نو چُپ شو او په زړه کې يې دا خبر وساته! بل وخت چې رته هغه انصاري په خدمت کې حاضر شُو او د خلکو په موجوديت کې هغه سلام وکړ ، رسول الله ﷺ ترې مخ واړاوه او د سلام جواب يې ورنکړ، څو ځله هم داسې وشول چې هغه به سلام کولو نو رسول الله ﷺ به مخ ترې اړاوه، اخر هغه پوه شو چې رسول الله ﷺ خفه شوی دی ځکه مخ اړوي، هغه له صحابه وو نه د دې وجه وپوښتله او دايې وويل په الله قسم! زه نن د الله جَلّ جَلَالُهُ د رسول ﷺ نظر کرځېدونکي وينم خير خو دي؟ صحابه وو ورته وويل چې رسول الله ﷺ بيرون راغلی ؤو نو ستا قبه يې ليدلې وه، دا يې چې واورېدل نو انصاري فوراً لاړ او هغه قبه يې ورانه کړه. او بالکل يې زمکې سره برابره

---

۱: اخرجه ابن عساکر ايضاً کذا فی الکنز وهکذا اخرجه الطبرانی فی الاوسط والبيهقی من حديث عائشه قال هيثمی ۹/۳۱٦ وفيه ابراهيم بن اسماعين بن مجمع وهو ضعيف وقال فی الاصباه ۲/۳۰٦ والمرسل اصح.

۲: اخرجه ابن ابی شيبة کذا فی الکنز ۷/٥٦

۳: اخرجه ابن عساکر کذا فی الکنز ۷/٥٥

کړه چې نوم نښان یې پاتې نه شو بیا یې رسول الله ﷺ ته عرض هم ونه کړ یو ځل رسول الله ﷺ په هغه ځایٔ تېرېده نو هغه قبه په نظر ورنغله نو رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه چې د هغې قبې څه وشو ؟ صحابه وو عرض وکړ د هغه قبې والا انصاري ستاسو د مخ اړولو مونږ ته ذکر کړی وو مونږ هم ورته ویلي وو هغه راغی او دا یې بالکل ورانه کړه. رسول الله ﷺ وفرمایل هره ابادي په سړي باندې وبال دی، خو هغه ابادي چې سخته ضروري او د مجبورۍ له امله وي، دا روایت د ابوداود دی او په ابن ماجه کې روایت لږ مختصر دی او په هغه کې دا دي چې له دې وروسته څه وخت رسول الله ﷺ هلته تېرېدو، رسول الله ﷺ ته هغه قبه په نظر رانغله نو په دې اړه یې پوښتنه وکړه، صحابه وو ورته وویل کله چې هغه انصاري ته پته ولګېده نو هغه قبه یې ورانه کړه. رسول الله ﷺ وفرمایل چې الله جَلَّجَلَالُهُ دې پرې رحم وکړي الله جَلَّجَلَالُهُ دې پرې رحم وکړي .

**د رسول الله ﷺ بد ګڼلو د وجهې نه سور ځادر سوزول:**

حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې زه له رسول الله ﷺ سره عقبه اذاخر نومي ځایٔ ته لاړم چې د مکې او مدینې په مینځ کې پروت دی، زما په بدن باندې د سور رنګ یو ځادر ؤو، رسول الله ﷺ زما خواته متوجه شو ویې فرمایل چې دا څنګه جامه ده؟ زه پوه شوم چې د رسول الله ﷺ دا ځادر خوښ نه شو، زه خپل کورته واپس راغلم کوروالو په تنور کې اور بلاوه. ما هغه ځادر په اور کې واچولو بیا د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم، هغوی پوښتنه وکړه چې په هغه ځادر دې څه وکړل؟ ما وویل هغه مې تنور کې واچولو، هغوی وفرمایل چې خپل کوروالو کې دې چا ته ولې ورنکړ؟ ښځو لپاره دې رنګ جامې اغوستلو کې څه باک نشته.(۱)

**د خُرَیم اسدي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زلفې لنډول او پرتوګ اوچتول:**

حضرت سهل بن حنظلیه عبشي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ ما ته وفرمایل چې خریم اسدي ډېر ښه سړی دی، که دوه خبرې پکې نه وي یو خو د ده د سر وېښته ډېر لوی دي او دویم هغه خپل لنګ د ګیټو نه ښکته تړي، حضرت خریم ته د رسول الله ﷺ دا ارشاد ورسېده نو فوراً یې چاقو راواخیسته او وېښته یې غوږونو د لاندې پرېکړل او لنګ یې د

---

۱: اخرجه الدولابی فی الکنی ۲/۴۴

ورو پنډو نيمايي پورې ترل شروع کړل.(۱)

**د حضرت قيس کناني رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د سرو زرو کرسۍ نه را کوزېدل:**

حضرت جثامه بن مساحق بن ربيع بن قيس کناني د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قاصد د دې لپاره جوړ شوی و چې هرقل ته لاړ شي او کله چې هرقل ته تللی ؤ نو تر هغه وروسته فرمايي چې زه هرقل ته ورغلم کېناستم، ما خيال ونه کړچې زما د لاندې څه دي؟ په څه شی کېنم؟ هغه د سرو زرو کرسۍ وه کله چې ماته پته ولګېده نو زه فوراً پاڅېدم او لاندې کېناستم په دې حالت ليدلو سره هرقل وخندل او له ما نه يې پوښتنه وکړه چې مونږ خو دا کرسۍ ستا د عزت لپاره ايښې وه، ته ترې ولې پاڅېدې؟ ما ورېل چې ما د رسول الله ﷺ نه د داسې شيانو په باره کې منع اورېدلې ده.(۲)

حضرت رافع بن خديج رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يوه ورځ زما ماما ماته راغی او هغه ورېل چې نن مونږ د رسول الله ﷺ د يو کار نه منع کړي يو چې ستاسو د فايدې ؤو خو د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه د رسول ﷺ په خبره منلو کې زمونږ او ستاسو زياته فائده ده بيا يې د زمکې اجاره باندې د ورکولو باره کې حديث شريف بيان کړ.(۳)

**د رسول الله ﷺ په فرمانبرداری کې د محمدبن اسلم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قيصه:**

د بنو حارث بن خزرج د قبيلې حضرت محمد بن اسلم بن بجرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ډېر عمر سړی وو، هغه خپله قصه په خپله بيانوي چې ځينې وخت به زه له کلي نه مدينې ته څه کار لپاره تلم او بازار کې به مې خپل کار پوره کړ او خپل کلي ته به واپس تلم کله چې به مې څادر کوز کړ نو ماته به راياد شو چې ما خو د رسول الله ﷺ په مسجد کې لمونځ نه دی کړی نو دا به مې ويل چې ما د رسول الله ﷺ په مسجد کې دوه رکعتونه لمونځ نه دی کړی. په داسې حال کې رسول الله ﷺ مونږ ته وفرمايل: اې نږدې کلو والاوو په تاسو کې چې څوک دې ځائ يعنې د مدينې منورې مسجد نبوي ته راشي او په دې مسجد کې دوه رکعتونه لمونځ ونه کړي نو هغه ته واپس خپل کلي ته تلل نه دي پکار، يعنې په مسجد نبوي کې به خامخا دوه رکعتونه لمونځ کوي. نو ما به څادر واخيستو او واپس به مدينې ته تلم او د رسول الله ﷺ په مسجد

---

۱: اخرجه احمد والبخاری فی التاریخ وابن عساکر کذا فی الکنز ۸/۵۹

۲: اخرجه ابو نعیم کذا فی الکنز ۷/۱۵ واخرجه ابن منذر نحوه کما فی الاصابة ۱/۲۲۷

۳: اخرجه عبدالرزاق کذا فی الکنز العمال ۸/۷۳

کې به مې دوه رکعتونه لمونځ کولو .(۱)

**انصاري نجلۍ او د رسول الله ﷺ حکم په ځای راوړل:**

حضرت مغيرة بن شعبة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د انصارو له يوې نجلۍ سره کوژدن وکړه او بيا مې رسول الله ﷺ ته د هغې ذکر وکړ نو رسول الله ﷺ وفرمايل: تا هغه ليدلې ده؟ ما ووېل نه! رسول الله ﷺ وفرمايل چې هغه وګوره! دې سره به په تاسو دواړو کې محبت او جوړ زيات شي نو د هغې نجلۍ کورته لاړم او د هغې مور پلار سره مې دا خبره وکړه، هغوی دواړو په حيرانۍ سره يو او بل ته کتل او د نجيلۍ په ښودلو کې يې شرم انګېره، په دې وجه زه پاڅېدم او له کور نه راووتلم، په دې باندې هغې نجلۍ ووېل چې دا سړی ماته راولئ! او په خپله د پردې يو خواته ودرېده، وې ويل چې که چېرې رسول الله ﷺ تا ته د دې خبرې حکم کړی وي چې ته ما ووينې نو ضرور مې ووينه! کنه زما له خوا د کتلو اجازه بالکل نشته نو ما هغه وليده او بيا مې ورسره واده وکړ، ما چې څومره ښځو سره ودونه کړي وو په هغو ټولو کې د ټولو نه زيات زما له همدې سره محبت وو او زما په نظر کې د دې قدر د ټولو نه زيات وو په داسې حال کې چې ما له اويا ښځو سره ودونه کړي وو . څو په يو وخت کې به د څلورو نه زياتې ببيانې نه وې.(۲)

**حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د خدمتګارانو په باره کې د آنحضرت ﷺ حکم منل:**

په ابو داود کې دا روايت دی چې حضرت معرور بن سُوَيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما په ربزه نومي ځای کې حضرت ابوذر غفاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اوليده چې د هغه په بدن باندې يو غټ څادر ؤ او د هغه د غلام په بدن باندې هم هغسې څادر وو، خلکو ووېل اې ابوذره! که چېرې تا د خپل غلام څادر د خپل څادر سره يو ځای کړي وای او خپله دې اغوستي وای نو ستاسو جوړه به پوره شوې وه او خپل غلام ته به دې څه بله جامه اغوستلو لپاره ورکړې وه نو حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ووېل چې يو ځل ما يو سړي ته کنځل وکړل او د هغه مور عجمي وه، ما هغه ته د مور په نوم ننګ ورواچاوه دا دويم کس حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وو نو هغه ته يې ووېل اې د حبشې ځويه! هغه لاړ رسول الله ﷺ ته يې زما شکايت وکړ، رسول الله ﷺ وفرمايل چې اې ابوذره! په تا کې تر اوسه پورې د جاهليت خبرې دي، دا غلام ستا ورور دي، الله جَلَّ جَلَالُهُ تا

---

۱: اخرجه الحسن بن سفيان وابونعيم فى المعرفت عن عبدالله بن ابى بكرى محمد بن عمرو بن حزم كذا فى الكنز ۲/۳۴۶ واخرجه ابن منده وقال غريب والطبرانى الا انه سماه مسلم بن اسلم كما فى الاصابه ۲/۴۱۴

۲: اخرجه سعيد بن منصور وابن النجار كذا فى الكنز ۸/۲۸۸

ته په ده باندې فضیلت ورکړی دی نو په دې وجه کوم غلام سره چې ستا طبیعت جوړ رانشي ته هغه خرڅ کړه! او د الله جَلَّ جَلَالُهُ مخلوق مه تنګوه! او الله جَلَّ جَلَالُهُ چې د چا ورور د هغه ماتحت جوړ کړي نو هغه له په کار دی چې پخپله څه خوري هم د هغې نه خپل ماتحت ورور باندې هم وخوري او څه چې پخپله اغوندي هم هغسې دې خپل ورور ته هم واغوندي او هغه ته دې د داسې کار نه وایي چې د هغه د طاقت نه زیات وي او که چېرې هغه ده داسې کار وایي نو بیا دې د هغه په دغه کار کې مرسته وکړي.(۱)

## د رسول الله ﷺ د حکم په مخالفت کوونکو باندې سختي کول

**د ورېښمو اغوستو په باره کې د حضرت عمر او ابن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قیصه:**

حضرت ابو سلمه بن عبد الرحمن رح فرمایي زما پلار حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو وخت د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض یې وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! په ما کې سپګې ډېرې کیږي له دې وجې نه تاسو ما ته د ورېښمو کمیس د اغوستلو اجازه راکوئ؟ رسول الله ﷺ ورته اجازه ورکړ، کله چې د رسول الله ﷺ او د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفات وشو او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلیفه جوړ شو نو حضرت عبد الرحمن خپل ځوی ابو سلمه سره مخامخ راغی، د هغه ځوي د ورېښمو کمیس اغوستی وو، حضرت عمر ﷺ وفرمایل دا څه دي؟ او خپل لاس یې د هغه د کمیس په ګرېوان کې واچاوه او هغه یې تر ېخه پورې پورې وشکاوه، حضرت عبد الرحمن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل آیا تا ته معلومه نه ده چې رسول الله ﷺ ما ته د ورېښمو کمیس د اغوستلو اجازه راکړې وه؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې رسول الله ﷺ تا ته د دې لپاره اجازه درکړې وه چې رسول الله ﷺ ته تا د سپګو شکایت کړی ؤو، اوس دا اجازه یوازې ستا لپاره ده له تا پرته د بل چا لپاره نشته.(۲)

حضرت ابوسلمه رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت عبد الرحمن حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راغی، هغه سره د هغه ځوي محمد هم وو چې د ورېښمو کمیس یې اغوستی وو، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او درېده، د هغه د کمیس ګرېوان یې ونیوه او هغه یې وشکاوه، په دې سره

---

۱: كذا في الترغيب ۳/۴۹۵ واخرجه البيهقي ۸/۷ عن المعرور نحوه وابن سعد ۴/۲۳۷ عن عون بن عبدالله مختصراً.

۲: اخرجه ابن سعد ۳/۹۲ وابن منيع

حضرت عبدالرحمن وویل الله جَلَّ جَلَالُهُ دې ستا مغفرت وکړي تاسو خو ماشوم ووېراوه او زړه دې ترې ووېسته، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل ته ماشومانو ته وربښم اغوندې؟ حضرت عبدالرحمن وویل ځکه چې زه پخپله وربښم اغوندم، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل آیا په دې ماشوم کې هم ستا په شان سپکې پکې شوي دي؟ (۱)

**د حضرت خالد بن ولید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قمیص او دخالد بن سعید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پالتو جبه شلول:**

ابن عساکر او ابن سیرین رَحِمَهُ اللَّهُ بیان کوي چې یو ځل حضرت خالد بن ولید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ورغی حضرت خالد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د وربښمو کمیس اغوستي وو، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وفرمایل اې خالده! دا دې څه اغوستي دي؟ حضرت خالد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل اې امیرالمؤمنین! په دې کې څه ګناه ده؟ آیا ابن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وربښم نه اغوندي؟ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل آیا ته د ابن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پشان د سپکو په ډېروالي اختهیې؟ او تا ته هم هغه فضائل حاصل دي؟ چې ابن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته حاصل دي؟ په دې وخت کې چې په دې کور کې څومره سړي دي زه ټولو ته قسم ورکوم! او وایم چې د چا مخې ته د دې کمیس هره یوه حصه ده، هغه دې ونیسي او اودې شکوي. نو ټولو سړیو دغه کمیس داسې وشکاوه چې د حضرت خالد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په بدن باندې د هغه یوه ټوټه هم پاتې نشوه. (۲)

د صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ د خلافت په باره کې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د لومړي بللو په عنوان کې د حضرت صخر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حدیث تېر شوی دی چې په هغه کې دا دی چې د رسول الله ﷺ د وفات نه یو میاشت پس حضرت خالد بن سعید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مدینې ته په داسې حال کې راغی چې هغه د اعلی وربښمو جُبه اغوستې وه، د هغه حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره ملاقات وشو. حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خواوشا خلکو ته په اوچت آواز سره وویل چې د ده جُبه وشکوئ! ځکه چې دی وربښم اغوندي او د امن په زمانه کې زمونږ د سړو لپاره د وربښمو استعمال صحیح نه دی نو خلکو د هغه جبه وشکوله.

**حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د وربښمو بټنې (لنې) شلول:**

حضرت عبده بن لبابه رَحِمَهُ اللَّهُ وایي: ماته دا روایت را رسېدلی دی چې یو ځل حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په مسجد نبوي باندې تېرېده، په مسجد کې یو کس په لمانځه ولاړ

---

۱: عنده ابن عیینه في جامع ومسدد ابن جریر كذا في الكنز ۸/۵۷

۲: كذا في الكنز العمال ۸/۵۷

و، يعني لمونځ يې كولو چې هغه د شين رنګ يو څادر اغوستى و، د هغې بتهنې د ورېښمو وې، دى د هغه په خوا كې ودرېده او ورته يې وفرمايل اې سړيه! څومره چې غوارې اوږد لمونځ وكړه! تر څو چې ستا لمونځ ختم شوى نه وي، زه به دد ې ځايه نه ځم. كله چې هغه سړى له لمانځه فارغ شو نو حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ورته وويل چې دا خپله جامه لږ ما ته وښايه! چې زه يې وګورم! او بيا يې جامه ونيوله، د هغې د ورېښم تولې بتهنې يې پرېكړې بيا يې وفرمايل واخله خپله جامه دې واخله! (۱)

**حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او د سعيد ابن سفيان القاري رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه قبا وېستل:**

حضرت سعيد بن سفيان قاري وايي چې زما ورور وفات شو او هغه وصيت وكړ چې سل دينار دې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره كې خرچ كړى شي، زه د حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په خدمت كې حاضر شوم، هغوى سره يو ملګرى ناست وو ما يو چُغه اغوستې وه چې د هغه په ګرېوان او كالر باندې د ورېښم غاړې ګنډلې شوې وې، څنګه چې زه هغه صاحب وليدم نو د شكولو لپاره يې زما نه چُغه راښكله كله چې حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دا حال وليده نو ويې فرمايل چې دا سړى پرېږده په دې باندې هغه زه پرېښودم بيا حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې تاسو چُغه راښكله تيزي مو وكړه يا تاسو په دنيا كې ورېښم استعمال كړل تيزي مو وكړه.

بيا حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته ما عرض وكړ چې اې اميرالمؤمنينه! زما ورور وفات شو او هغه وصيت وكړ چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره كې دې سل ديناره خرچ كړى شي، تاسو وفرمايې چې زه د هغه وصيت څنګه پوره كړم؟ هغوى ﷺ وفرمايل آيا تا زما نه مخكې چا نه دى باره كې پوښتنه كړې ده؟ ما وويل نه! نو ويې فرمايل كه چېرې تا زما نه مخكې د بل چا نه پوښتنه كړې واى او هغه دا جواب نه واى دركړى چې زه يې دركوم نو ما به ستا سر الوزولاى واى چې تا د هغه جاهل نه ولې پوښتنه كوله الله جَلَّ جَلَالُهُ مونږ ته د اسلام حكم راكړى دى نو مونږ ټولو اسلام راوړلو او د الله جَلَّ جَلَالُهُ شكر دى چې مونږ ټول مسلمانان يو بيا مونږ ته الله رب العزت د هجرت حكم وكړ نو مونږ هجرت وكړ او د مدينې والا مهاجر يو بيا الله رب العزت مونږ ته د جهاد كولو حكم راكړ نو په هغه وخت كې تاسو جهاد وكړ نو تاسو شام والا مجاهدين يئ! ته دا سل ديناره پخپل ځان باندې، خپل كوروالو باندې او خواوشا حاجتمندو

(۱) اخرجه ابن جرير كذا في الكنز ۸/۵۷

باندې خرچ کړه! څکه چې که چېرې ته یو درهم واخلې او د کور نه وځې او بیا د هغې غوښه واخلې او بیا هغه ته هم وخورې او ستا کوروالا یې هم وخوري نو ستا لپاره د اوو سوو درهمو ثواب لیکل کېږي د ضرورت په وخت کوروالو باندې خرچ کولو باندې د صدقې ثواب ملاوېږي په اسراف باندې به نیول کېږي بیا زه د حضرت عثمان رَضِیَ اللهُ عَنْهُ نه بهر ته راغلم او خلکو نه مې پوښتنه وکړه چې هغه سړی چا چې زما څخه راښکله هغه څوک وو؟ خلکو ووېل چې هغه حضرت علي بن ابي طالب رَضِیَ اللهُ عَنْهُ و زه د هغه کور ته هغه له ورغلم او عرض مې وکړ چې تاسو په ما کې څه لیدلي وو؟ هغوی رَضِیَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل ما د رسول الله ﷺ نه اورېدلی دی چې نږدې به زما امت د ښځو شرمګاه یعنې زنا او ورېښم حلال وګڼي او دا اول ورېښم دي چې ما د یوه مسلمان په بدن باندې ولیدل بیا زه د هغه د خوا نه بهر راغلم او هغه جُبه مې خرڅه کړه. (۱)

**حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ او دخپلې لور حضرت حفصې رَضِیَ اللهُ عَنْهَا ماماته دُرّې ورکول:**

حضرت عبد الله بن عامر بن ربیعه رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِیَ اللهُ عَنْهُ حضرت قُدامه بن مظعون رَضِیَ اللهُ عَنْهُ د بحرین ګورنر (والي) مقرر کړ، هغه د حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ د لور حضرت حفصې رَضِیَ اللهُ عَنْهَا او د هغوی د څوی حضرت عبد الله رَضِیَ اللهُ عَنْهُ ماما ؤو، د بحرین نه د عبد القیس قبیلې سردار حضرت جارود رَضِیَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ ته راغی او وې ویل: اې امیر المؤمنین! حضرت قُدامه څه وڅښل چې په هغې سره هغه نشه شو، ما داسې کار لیدلی دی چې په هغې باندې دالله جَلَّ جَلَالُهُ حد لازمېږي هغه تاسو ته رارسول زه خپله ذمه واري ګڼم، حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل تاسره بل څوک شاهد شته؟ هغه وویل ابو هریره رَضِیَ اللهُ عَنْهُ! حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ حضرت ابو هریره رَضِیَ اللهُ عَنْهُ را وغوښتلو او ورته یې وویل چې آیا شاهدي ورکوې؟ هغه وویل چې هغه خو ما په څکلو نه دی لیدلی، البته په نشه کې مې ولیده چې قې یې کولو ، حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې تا په شاهدي ورکولو کې ډېرې باریکی نه کار واخیست بیا حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ لیک ولیکه او حضرت قُدامه رَضِیَ اللهُ عَنْهُ یې د بحرین نه مدینې منورې ته راوغوښت، هغه مدینې ته راغی نو حضرت جارود رَضِیَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ ته وویل چې په ده باندې د

---

۱: اخرجه ابن عساکر ۱/۵۲

الله جَلَّ جَلَالُهُ د کتاب قرآن حکم جاري کړه، حضرت عمر جَلَّ جَلَالُهُ وفرمايل چې ته مدعي يې که ګواه؟ حضرت جارود رَضِيَ اللهُ عَنهُ وويل چې زه شاهد يم، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمايل چې تا شاهدي ورکړې ده له دې وجې نه د سزا ورکولو غوښتنه نه شې کولاي په دې خبره حضرت جارود رَضِيَ اللهُ عَنهُ چپ شو خو بله ورځ سهار بيا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته راغی او ورته يې وويل چې په ده باندې د الله جَلَّ جَلَالُهُ حد جاري کړه، هغوی وفرمايل چې ته بار بار د سزا غوښتنه کوې له دې وجې نه زما په خيال ته پخپله مدعي يې، شاهد نه يې او تا سره صرف هم يو ګواه دی يعنې حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ او په ګواه سره ستا دعوې نه ثابتيږي، حضرت جارود رَضِيَ اللهُ عَنهُ وويل چې زه تا ته د الله واسطه درکوم او وايم چې په ده باندې حد قائم کړه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمايل چې ته خپله ژبه پابنده وساته کنه نو په وهلو وهلو سره به ستا حال بد کړم. حضرت جارود رَضِيَ اللهُ عَنهُ وويل اې عمره رَضِيَ اللهُ عَنهُ! دا صحيح نه ده چې شراب دې ستا د تره ځوی څښلي وي او سزا ماته راکوې، حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ وويل اې امير المؤمنين! کچيرې ستا زمونږ په شاهدۍ کې شک وي نو د حضرت قُدامه رَضِيَ اللهُ عَنهُ بي بي حضرت هند بنت وليد رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته ځواب ولېږه او د هغې نه يې پوښتنه وکړه نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ هغې ته سړی ولېږه او قسم يې ورکړ او ورته يې وويل چې ته صحيح حال ووايه نو هغې د خپل خاوند خلاف شاهدي ورکړه، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ حضرت قُدامه رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته وويل چې اوس خو به زه په تا باندې خامخا حد جاري کوم، هغه وويل کچيرې ما څښلي هم وي نو تاسو په ما باندې حد نشی جاري کولی، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمايل ولې؟ حضرت قُدامه رَضِيَ اللهُ عَنهُ وويل ځکه چې الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمايلي دي: لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوا إِذَا مَا اتَّقَوا وَّآمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ ثُمَّ اتَّقَوا وَّآمَنُوا ثُمَّ اتَّقَوا وَّأَحْسَنُوا ۗ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ[1]

ترجمه: په دا سې خلکو باندې چې ايمان لري او نېک کارونه کوي په هغه شی کې څه ګناه نشته چې هغوی خوري او څښي، کله چې دغه خلک پرهېز کوي او ايمان لري او نېک کارونه کوي او الله رب العزت دا سې نېکو کارونو والا سره محبت ساتي.

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وويل تا د دې ايت مطلب غلط کړی دی د دې ايت مطلب خو دا دی چې د شراب حرام کېدلو نه مخکې مسلمانانو چې کوم شراب څښلي دي په هغې کې ګناه

---

[1]: سورة مائده آيت ۹۳

نشته څه چې په هغه زمانه کې شراب حلال وو خو اوس خو شراب حرام شوی دی ، له دې
وجې نه که چېرې ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه وېرېدلی نو د هغه حرام شوي شی یعنې د شرابو نه به
دې ځان ساتلی بیا حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خلکو خواته متوجه شو او پوښتنه یې وکړه چې
قُدامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته کوړې لګولو کې ستاسو څه خیال دی ؟ خلکو وویل چې زمونږ رائیه دا
ده چې تر څو پورې دې بیمار وي نو ده ته دې کوړې ورن کړی شي ، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ
په دې خبره څو ورځې خاموش پاتې شو بیا یوه ورځ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د کوړو لګولو
پخه اراده وکړه نو بیا یې د خلکو نه پوښتنه وکړه چې اوس قُدامه ته د کوړو لګولو باره کې
ستاسو څه خیال دی ؟ خلکو وویل اوس هم زمونږ هم هاغه رائیه ده چې تر څو پورې چې دې
بیمار وي نو ده ته دې کوړې ورنکړی شي حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل که چېرې دې
کوړو لګولو سره دې مړ شي نو دا ماته تر هغه ډېره ښه دی چې ماته په داسې حال کې مرګ
راشي چې دا حد زما په غاړه کې وي، ماته یوه کلکه او مضبوطه کوړه راوړئ! کوړه ورته
راوړل شوه او د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د فرمان مطابق حضرت قُدامه په کوړو ووهل شو په
دې حضرت قُدامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه خفه شو او ورسره یې خبرې اترې
پرېښودې بیا حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حج له لاړ ، حضرت قُدامه هم په دغه حج کې وو او هغه
هم هغسې د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه خفه وو ، دا دواړه حضرات کله چې د حج نه واپس
شول او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په سُقیا منزل کې کوز شو نو هلته یې ارام وکړ کله چې د
خوب نه راپاڅېده نو ویې فرمایل چې قُدامه ماته زر راولئ! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! په خوب
کې مې یو سړی ولیده چې ما ته یې وویل قدامه سره صلح وکړه! ځکه چې هغه ستا ورور
دی، له دې وجې نه هغه زر ماته راولئ! کله چې خلک د هغه راغوښتلو لپاره لاړل نو هغه د
راتلو نه انکار وکړ ، په دې باندې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل هغه چې څنګه هم راځي
هغه راولئ! هغه راغی نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورسره خبرې اترې وکړې ، هغه یې راضي
کړ او د هغه لپاره یې ښښنه وغوښتله .(۱)

**په جنازه کې خندېدونکي باندې د عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ انکار او اعتراض:**

حضرت یزید بن عبید الله د خپلو ځینې ملګرو نه نقل کوي چې حضرت عبد الله بن
مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یو سړی ولیده چې هغه جنازې سره هم روان دی او خاندي هم نو ویې

---

۱: اخرجه عبدالرزاق واخرجها ابوعلی بن السکن کذا فی الاصابه ۹/۲۲

فرمایل چې ته جنازې سره هم روان یې او خاندې هم! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه به تاسره هیڅکله خبرې ونه کړم.(۱)

## د رسول الله ﷺ د حکم مخالف عمل باندې د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ویره

**د هغې کلمې نه ابوحذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ویره چې په بدل کې یې ویلې وه**

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ د جنګ بدر په ورځ خپلو صحابه وو ته وفرمایل چې ما ته دا معلومه شوې ده چې د بنوهاشم او د ځینې نورو قبیلو خلک دلته په زور راوستلی شوي دي هغوی مونږ سره جنګېدل نه غوښتل، لهذا په تاسو کې چې د چا مخکې بنوهاشم سړی راشي نو هغه دې نه قتلوي او د چا مخکې چې ابوالبختري بن هشام بن حارث بن اسد راشي نو هغه دې نه قتلوي او د چا مخکې چې عباس بن عبدالمطلب د رسول الله ﷺ تره راشي نو هغه دې نه قتلوي ځکه چې هغوی هم مجبوراً راغلي دي، په دې باندې حضرت ابوحذیفه بن عُتبه بن ربیعه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې مونږ به خپل پلار، ورونه او ځامن قتلوو او عباس به پرېږدو؟ په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! که چېرې عباس زما مخکې راغی نو زه خو به هغه په توره حصې کوم، رسول الله ﷺ ته کله چې دا خبره اورسېده نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یې وفرمایل اې ابوحفص! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې دا رومبۍ ورځ وه چې رسول الله ﷺ زما کنیت ابوحفص کېښودلو کنیت سره اواز کولو نه پس یې وفرمایل آیا د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رسول د تره په مخ به د تورې ګذار کولی شي؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ما ته اجازه راکړه چې زه په تورې د ابوحذیفه سر والوزوم، په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! هغه خو منافق شوی دی. هغه وخت په جوش کې حضرت خذیفه دا خبره کړې وه خو وروسته بیا حضرت ابوحذیفه وویل چې ما په هغه ورځ کومه غلطه خبر کړې وه زه ترا وسه پورې خپل ځان د الله جَلَّ جَلَالُهُ د عذاب په خطره کې محسوس کوم او په ما باندې ویره سوره ده او زما د دې ګناه کفاره صرف د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې شهادت کېدلای شي. هماغه وو چې بیا خذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د یمامې په غزا کې شهید شو.(۲)

**د رسول الله ﷺ سره دخیانت نه دابولبابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوف او توبه کول:**

حضرت معبد بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ د بنو قریظه یهودانو نه پنځه

۱: اخرجه البیهقی کذا فی الکنز ۸/۱۱۶.
۲: اخرجه ابن اسحاق کذا فی البدایة ۲/۲۸۴

ویشت ورځو پورې محاصره وکړه، تر دې چې د دې محاصرې نه هغوی سخت پرېشان شول او الله جَلَّ جَلَالُهُ د هغوی په زړونو کې رعب واچولو نو د هغوی سردار کعب بن اسد بنو قریظه ته درې خبرې مخکې کړې یا خو ایمان راوړئ! یا خپل بچې او ښځې قتل کړئ! د خپل مرګ په حالت کې د قلعه نه بهر ووځئ! او له مسلمانانو سره په میدان جنګ کې وجنګېږئ! یا د خالي شپه کې په مسلمانانو باندې د شپې حمله وکړئ! بنو قریظه د سردار د درې واړو خبرو نه انکار وکړو ویل چې مونږ ایمان هم نشو راوړلای او د خالي په شپه کې دښمن باندې حمله هم کول زمونږ په شریعت کې حرام دي له دې وجې نه مونږ د خالي په شپه کې جنګ کول حلال نه شو ګرځولای او خپلې ښځې او بچې پخپله قتلولو نه پس به یا زمونږ څه ژوند وي؟ دا یهودي د جاهلیت په زمانه کې د حضرت ابولبابه بن عبد المنذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حلیف ؤو له دې وجې نه ده هغه ته سړې ولېږه او د هغه نه یې د رسول الله ﷺ په فیصله باندې د ټینګ پاتې کېدلو لپاره مشوره وغوښته، هغه خپل حلق خواته اشاره وکړه او ویې فرمایل چې رسول الله ﷺ به ستاسو د ذبح کولو فیصله کوي په هغه وخت کې خو ورته د رسول الله ﷺ خبره وکړه خو وروسته هغه پښېمانه شو چې په دې باندې هغه مسجد نبوي ته لاړ او خپل ځان یې د جماعت ستنې پورې وتاړه، تر دې چې الله رب العزت د هغه توبه قبوله کړه.(۱)

او په بل روایت کې دا دي چې بنو قریظه وویل اې ابولبابه! ستا څه رایې ده چې مونږ څه وکړو؟ ځکه چې رسول الله ﷺ سره د جنګ کولو خو مونږ کې طاقت نشته نو حضرت ابولبابه خپل حلق طرف ته اشاره وکړه او په حلق یې ګوتې رابنکلې او هغوی ته یې اوښودل چې مسلمانان تاسو وژل غواړي په دغه وخت کې خو هغه د رسول الله ﷺ راز ښکاره کړ خو کله چې حضرت ابولبابه د هلته نه واپس شو نو هغه ډېر پښېمانه شو او هغه پوه شو چې زه په لوی امتحان کې راغلم له دې وجې نه یې وویل چې زه به تر هغې پورې د رسول الله ﷺ د مخ مبارک زیارت ونه کړم تر څو پورې چې زه د الله جَلَّ جَلَالُهُ په مخکې داسې رېښتونې توبه ونه باسم چې الله جَلَّ جَلَالُهُ هم وفرمایي چې واقعي دي د زړه نه توبه اوباسي او مدینې ته واپس لاړ، خپل ځان یې په مسجد نبوي کې یوې ستنې پورې وتاړه خلک وایي چې

۱: اخرجه ابن اسحاق عن ابیه کذا فی فتح الباری ۷/۲۹۱

تقریباً شل ورځې ترلی وُو، کله چې حضرت ابولبابه رسول الله ﷺ ته څو ورځې په نظر رانغی نو رسول الله ﷺ وفرمایل چې ابولبابه تر اوسه پورې د خپلو ملګرو د مشورې نه فارغ نه شو؟ په دې خبره خلکو وویل چې هغه خو د سزا په توګه خپل ځان د مسجد نبوي ستنې پورې ترلی دی، رسول الله ﷺ وفرمایل دا خو زما نه پس په امتحان کې راغی که چیرې دې د غلطۍ کولو نه وروسته ما ته راغلی وای نو ما به د ده لپاره د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه ښښنه غوښتې وای خو کله چې هغه خپل ځان د سزا په توګه ستنې ته ترلی دی نو اوس زه هم هغه نشم پرانیستلای، اوس به الله جَلَّ جَلَالُهُ د هغه په باره کې فیصله کوي.(۱)

**د حضرت ثابت بن قیس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ویره او هغه ته د رسول الله ﷺ زیرې:**

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ حضرت ثابت بن قیس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څو ورځې ونه لیده نو د هغه په باره کې یې پوښتنه وکړ چې هغه چیرته دی؟ یو صحابي عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه اوس د هغه معلومات کوم راځم نو هغه حضرت ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورغی نو وې کتل چې هغه پخپل کور کې سر ښکته کړی ناست دی، هغه ترې پوښتنه وکړه چې څه خبره ده؟ هغه وویل چې ډیر بد حال دی ځکه چې زما په اوچت اواز د خبرو کولو عادت دی او زما اواز به د رسول الله ﷺ د اواز نه اوچتیده او اوس په دې باره کې قرآن کې آیتونه نازل شوی دی چې د هغې مطابق زما مخکې ټول عملونه برباد شوی دی او زه جهنمیانو نه شوی یم دا صحابي د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض یې وکړ چې هغه خو داسې وایي، حضرت موسی بن انس راوي وایي چې رسول الله ﷺ دغه صحابي ته وفرمایل چې لاړ شه حضرت ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته او وایه چې ته په دوزخیانو کې نه یې بلکې جنتیانو کې یې نو هغه لاړ، حضرت ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یې دا لوی زیرې واورولو.(۲)

حضرت بنت ثابت بن قیس بن شماس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما د خپل پلار حضرت ثابت نه دا ارشاد اوریدلی دی کله چې په رسول الله ﷺ دا آیت نازل شو: إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ ۝(۳)

ترجمه: بېشکه الله رب العزت هر تکبر کوونکی او فخر کونکی نه خوښوي.

نو د دې آیت مضمون له وجې نه هغه ډیر سخت پریشانه شو او دروازه یې بنده کړه په ژړا شو

---

۱: ذکر فی البدایه ۴/۱۱۹ عن موسی بن عقبة وفی سیاقه قال ابن کثیر وهکذا رواه ابن لهیعة عن ابی الاسود عن عروة وکذا ذ کره محمد بن اسحاق فی مغازیه.

۲: اخرجه البخاری

۳: (سورة لقمان آیت ۱۸)

کله چې رسول الله ﷺ ته د دې معلومات وشو نو رسول الله ﷺ ورته سړی ولېږه، د دې له وجې پوښتنه یې وکړ، هغه وویل چې په دې آیت کې دا ښودلې شوی دی چې تکبر کونکی او فخر کونکی الله جَلَّ جَلَالُهُ نه خوښوي او دا خرابي په ما کې شته ځکه چې زما ښایست او جمال خوښ دی او زه غواړم چې زه د خپل قوم سردار جوړ شم، رسول الله ﷺ وفرمایل نه ته په هغو خلکو کې نه یې چې الله جَلَّ جَلَالُهُ نه خوښوي بلکې ستا ژوند به هم ښه وي او تا ته به مرګ هم په ښه حالت کې راځي او تا به الله رب العزت په جنت کې داخل کړي او کله چې الله جَلَّ جَلَالُهُ په خپل رسول باندې دا آیت نازل کړ: يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَرْفَعُوٓا۟ أَصْوَٰتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ ٱلنَّبِىِّ وَلَا تَجْهَرُوا۟ لَهُۥ بِٱلْقَوْلِ كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ أَن تَحْبَطَ أَعْمَٰلُكُمْ وَأَنتُمْ لَا تَشْعُرُونَ ۝ (۱)

ترجمه: اې ایمان والو! تاسو خپل اوازونه د پیغمبر ﷺ د اوازونو نه مه اوچتوئ! او مه ورسره داسې کولاو خبرې کوئ! چېرته ستاسو اعمال برباد نشي او تاسو ته به پته هم نه وي.

نو بیا دې د مخکې پشان پرېشانه شو، دروازه یې بنده کړه او په ژړا شو کله چې رسول الله ﷺ ته د دې معلومات وشول نو سړی یې ورولېږه او د له دې وجې نه پوښتنه یې وکړه نو هغه وویل چې زما اواز اوچت دی او زه د دې آیت په وجه وېرېږم چې چېرته زما اعمال برباد نشي، رسول الله ﷺ وفرمایل نه ستا ژوند به د تعریف قابل وي او تا ته به د شهادت مرتبه ملاوېږي او الله جَلَّ جَلَالُهُ به دې جنت کې داخلوي.(۲)

حضرت محمد بن ثابت انصاري فرمایي چې حضرت ثابت بن قیس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ماته وېره ده چې چېرته تباه شوي نه یم! رسول الله ﷺ وفرمایل ولې؟ هغه وویل په دې وجه چې الله جَلَّ جَلَالُهُ مونږ د دې د تکبر او د لافو خبرې نه منع کړي یو او زما حال دا دی چې زما ښایست ډېر خوښ دی او الله جَلَّ جَلَالُهُ مونږه ستاسو د اواز نه خپل اوازونه اوچتولو نه منع کړي یو او زما اواز ډېر اوچت دی چې ستاسو د اوازونو نه اوچتېږي. رسول الله ﷺ وفرمایل اې ثابته! آیا ته په دې خبره خوشحاله نه یې؟ چې د تعریف قابل ژوند تېر کړې او تا ته د شهادت مرتبه ملاو شي او الله جَلَّ جَلَالُهُ دې په جنت کې داخل کړي، هغه عرض وکړ ولې نه د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله؟ حضرت محمد بن ثابت وایي چې

---

۱: (سورة الحجرات آيت ۲)

۲: عندالطبرانی عن عطاء الخر سانی قال الهیثمی ۹/۳۲۲ وبنت ثابت بن قیس لم اعرفها وبقیة الرجاله رجال الصحیح والظاهر ابن ابنت ثابت بن قیس صحابیات فانها قالت سمیت ابی انتهی واخرالحاکم ۲/۲۲۵ عن عطاء عن ابنة ثابت بن قیس نحوه مختصرا.

د رسول الله ﷺ فرمان پوره شو او حضرت ثابت واقعي د تعریف قابل ثونده تیر کړلو
مسیلمه کذاب سره په جنګ کې یې شهادت ومونده .(۱)

## صحابه کرام رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ او د رسول الله ﷺ تابعداري کول

حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي چې د رسول الله ﷺ يو ټاټوو چې د شپې به يې د هغې نه يوه خيمه جوړه کړه په هغې کې به يې لمونځ کولو او د ورځې به يې هغه خورولو، په هغې به کېناسته، په مزه مزه به خلک هم راغلل او د هغوی ﷺ په اقتداء کې به يې لمونځ کولو دا د تراويحو لمونځ ؤو کله چې خلک زيات شو نو رسول الله ﷺ خلکو خواته متوجه شو ويې فرمايل اې خلکو! تاسو دومره عملونه غوره کړئ! د څومره عملونو پابندي چې ستاسو په وس کې وي ځکه تر څو پورې تاسو عمل کولو باندې ستړي نه شئ! تر هغې پورې الله رب العزت د ثواب ورکولو سلسله نه بندوي او الله جَلَّ جَلَالُهُ ته د ټولو نه زيات خوښ عمل هغه دی چې همېشه وي که څه هم که هغه لږ وي او په يو روايت کې دا دي چې د حضرت محمد ﷺ د کوروالو او خصوصي اړيکې والو به کله چې څه عمل شروع کولو نو پوره پابندي او اهتمام سره به هغه کولو .(۲)

### د ګوتمې په وېستلو کې د رسول الله ﷺ تابعداري کول:

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په لاس کې يوه ورځ د سپنو زرو ګوتمه وليدله او نورو خلکو هم وليدله نو خلکو ګوتمې جوړې کړې او په لاس يې کړې بيا رسول الله ﷺ هغه ګوتمه ووېستله نو خلکو هم ووېستلې .(۳)

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ د سرو زرو ګوتمه په لاس کوله، يوه ورځ يې هغه ووېستله او ويې فرمايل چې ائينده به زه دا ګوتمه چېرې هم په لاس نه کړم دا يې چې وليدل خلکو هم خپلې ګوتمې ووېستلې.

### په ازار اغوستو او طواف کولو کې د رسول الله ﷺ تابعداري کول:

حضرت سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي د حديبې د صلح پر وخت قريشو خارجه بن ګرز د مسلمانانو د ډېر تعريف وکړ په دې باندې قريشو وويل چې ته باندېچي سړی يې، مسلمانانو خپله وسله

---

۱: قال الحاکم صحیح علی شرط الشیخین ولم یخرجاه لهذا السیاقة واو افقه الذهبی.
۲: اخرجه الشیخان کذا فی الترغیب ۵/۸۹
۳: اخرجه ابوداود واخرجه البخاری بنحوه

ستا په مخکې لړ په زور سره او خوزوله چې په هغې سره ستا زړه والوتلو يعنې مرعوب شوې نو
بيا مسلمانانو تا ته څه وويل؟ او تا هغوی ته څه وويل؟ د دې تولو تا ته ادو پته ونه لګېده بيا
قريشو عُروه بن مسعود ولېږه چې دغه وخته پورې مسلمان شوی نه و هغه راغی او وې ويل اې
محمده ﷺ دا څه خبره ده؟ ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ ذات طرف ته دعوت ورکوې او د مختلفو قبيلو
کمزوري پرېوتې خلکو سره خپل قوم ته راغلی يې او ته په دوي کې ډېر پېژنې! او ډېر پېژنې هم
نه! او ته دې د خلکو په ذريعه د خپل قوم سره قطع رحمي کول غواړې او د هغوی وينه په بې
عزتي سره بهيول غواړې او د هغوی په مالونو باندې قبضه کول غواړې، رسول الله ﷺ
وفرمايل زه خو صرف خپل قوم سره د صله رحمي لپاره راغلی يم دې لپاره چې د هغوی دين به
غوره دی ن او د هغوی ﷺ د ژوند نه غوره ژوند هغوی ته ورکړې نو هغه هم واپس لاړ او د
قريشو په مخکې يې د مسلمانانو ډېر تعريف وکړ نو د مشرکانو په قبضه کې چې کوم
مسلمانان قيديان وو، هغوی ته مشرکانو نور زيات تکليفونه رسول شروع کړل. رسول الله ﷺ
حضرت عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوغوښته ورته يې وفرمايل اې عُمره! آيا ته مکې ته د تلو او د خپلو
مسلمانانو ورونو ته زما پيغام رسولو لپاره تيار يې؟ هغه عرض وکړ نه زما د خاندان څوک
سړی نه دې پاتې شوي! په دې ډله کې نور ملګري هم داسې دي چې د هغوی په مکه کې لوي
خاندان موجود دی او خاندان والا به د خپل سړي حفاظت ملګرتيا کوي نو رسول الله ﷺ
حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوغوښته او مکې مکرمې ته يې ولېږه، حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ
پخپله سورلۍ سور شو او لاړ او د مشرکانو لښکر ته ورسېده مشرکانو هغه سره ټوکې وکړې
او هغه سره يې بد چلند وکړ بيا د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د تره ځوي ابان بن سعيد بن عاص
هغه پخپله پناه کې واخيسته او ځان پسې يې په زين باندې کېناوه، کله چې حضرت
عُثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغوی ته ورسېده نو ابان ورته وويل اې زما د تره ځويه! دا څه خبره ده؟ چې ته
ما ته ډېر د عاجزۍ او تواضع والا شکل وصورت کې په نظر راځې؟ لږ لنګ د ګيټو نه لاندې
زوړنده کړه دې لپاره چې څه متکبرانه شان دې پيدا نه شي. هغه د وروپندۍ تر نيمايي پورې
لنګ تړلي وو، حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وفرمايل زه لنګ نشم ښکته کولای ځکه زمونږ
پيغمبر ﷺ د لنګ تړلو هم دا طريقه ده لنډه دا چې هغه مکې ته لاړ او هر مسلمان قيدي ته يې د
رسول الله ﷺ پيغام ورساوه، دلته مونږ حديبيه کې د غرمې ارام کاوه، چې په دې کې د رسول

الله ﷺ منادي په اوچت اواز اعلان وکړ چې د بیعت کولو لپاره راشئ! د بیعت کولو لپاره راشئ! روح القدس حضرت جبرائیل د اسمان نه تشریف راوړی دی نو مونږ ټول د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو، په دغه وخت هغوی ﷺ د کیکر د ونې لاندې وو او مونږ د هغوی ﷺ نه بیعت وکړ، الله جَلَّ جَلَالُهُ په دې ایت کې دغه واقعې طرف ته اشاره کړې ده: لَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ عَنِ الْمُؤْمِنِيْنَ اِذْ يُبَايِعُوْنَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ(۱)

ترجمه: په تحقیق سره الله جَلَّ جَلَالُهُ هغه مسلمانانو نه خوشحاله شو کله چې دې خلکو ستا نه (د کیکرو) د ونې لاندې بیعت کولو.

څرنګه چې دغه وخت حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په مکه کې وو او دلته موجود نه وو، له دې وجې نه رسول الله ﷺ د هغه د بیعت لپاره خپل یو لاس په بل لاس باندې کېښودلو چې دا د حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بیعت شو، په دې باندې خلکو وویل چې حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ابوعبدالله ته دې مبارکي وي چې د هغه نه بغیر د هغه بیعت وشو او هلته هغه د بیت الله طواف کوي او مونږ دلته یو، رسول الله ﷺ وفرمایل نه هیڅ کله نه! که هر څو مره کلونه تېر شي تر څو پورې چې زه طواف ونه کړم عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ به هیڅ کله طواف نه کوي.(۲)

د ابن سعد په روایت کې دا دی چې ابان حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته وویل اې زما د تره ځویه! تا ډېر د عاجزۍ شکل جوړ کړی دی. لنګ دې لږ د ګیټو نه ښکته زوړند کړه څنګه چې ستا د قوم طریقه ده. هغوی وفرمایل نه زمونږ حضرت محمد ﷺ دا شان د وړو پنډو نیمایي پورې لنګ تړي، ابان وویل اې زما د تره ځویه! د بیت الله طواف وکړه! حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمایل چې تر څو پورې زمونږ پیغمبر ﷺ څه کار نه وي کړي هغې پورې مونږ دغه کار نه کوو، مونږ د هغوی ﷺ په نقش قدم باندې چلېږو، له دې وجې نه زه طواف نه کوم.

**د قرآن جمع کول او د حضرت ابوبکرصدیق، حضرت عمر او حضرت زید رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ قصه:**

حضرت زید بن ثابت رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي چې د یمامې په جنګ کې مسیلمه کذاب ووژل شو او د هغه فتنه او د هغه لښکر ختم شو خو په دغه جنګ کې د صحابه وو ډېر کسان هم شهیدان شول، په خاص ډول د قرآن پاک د حافظانو یوه لویه ډله شهیدان شول نو د دغه

۱:( سورة فتح آیت ۱۸)
۲: اخرجه ابن ابی شیبة عن اياس بن سلمة كذا فی الكنز ۱/۸۴ واخرجه الرویانی وابویعلی وابن عساكر عن اياس بن سلة عن ابيه مختصرا كما فی الكنز ۸/۵٦ واخرجه ابن سعد ۱/۴٦۱ عن اياس بن سلمة عن ابيه مختصراً.

جنګ نه پس حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زه راوغوښتلم، زه د هغوی په خدمت کې حاضر شوم نو هلته د هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره حضرت عُمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم وو، حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې دا حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ما ته راغلی دی او دا يې وويل چې د يمامې په جنګ کې د قرآن حافظان ډېر زيات تعداد کې شهيدان شوی دی، د يو روايت په مطابق په دې جنګ کې څوارلس سوه صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ شهيدان شول چې په هغوی کې اووه سوه صحابه د قرآن کريم حافظان وو ماته دا وېره ده چې که چېرې آئينده جنګونو کې دا شان د قرآن حافظان په ډېر تعداد کې شهيدان شول نو بيا به د قرآن مجيد زيات حصه لاړه شي. له دې وجې نه زما خيال دا دی چې تاسو ټول قرآن يو ځای په چا وليکئ! او محفوظ يې کړئ! د دېنه مخکې ټول قرآن د رسول الله ﷺ په زمانه کې يو ځای نه وُو ليکل شوی بلکې د جدا جدا صحابه وو سره لږ لږ ليکل شوی وُو ما حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل چې موږ د هغه کار جرأت څنګه وکړو د کوم کار چې رسول الله ﷺ نه دې کړې؟ حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې دا کار سراسر خير دې، حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ما ته بار بار ويلو او د ضرورت اظهار يې کولو ، تر دې چې الله رب العزت زما سينه هم د هغه کار لپاره پرانيستله د کوم لپاره چې يې د حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سينه پرانيستې وه او زما رائيه هم د حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ موافق شوه، حضرت زيد وايي چې په دغه وخت کې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت ابوبکر سره چُپ ناست وُ هيڅ خبره يې نه کوله بيا حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې ته ځوان يې! او پوهه يې، په تا باندې زمونږ څه قسم بدګماني هم نشته او تا به د رسول الله ﷺ په فرمايلو وحي ليکله، له دې وجې نه هم ته ټول قرآن را جمعه کړه، حضرت زيد وايي په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! که چېرې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د يو غر د کاڼو يو ځای نه بل ځای ته د وړلو حکم کړی وای نو دا کار زما لپاره د قرآن يو ځای جمع کولو نه زيات درووند او مشکله نه وو ما عرض وکړ چې تاسو حضرات داسې کار څنګه کوئ! چې هغه رسول الله ﷺ نه دې کړې؟ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې دا کار سراسر خير دی او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به ما ته بيا بيا وفرمايل چې تر دې چې الله جَلَّ جَلَالُهُ زما هم د هغې باره کې سينه پرانيستله د کوم باره کې يې چې د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سينه پرانيستلې وه او زما رائيه هم د هغوی دواړو حضراتو موافقه شوه بيا ما د قرآن مجيد تلاش کول شروع کړل او په کاغذونو باندې په سپينو کاڼو باندې، په پلنو هډوکو باندې او د کجورو په ښاخونو

باندې چې کوم قرآن ليکل شوی ؤ او کوم قرآن چې د صحابه وو په سينو کې محفوظ ووهغه مې جمع کړ تر دې چې د : لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُولٌ مِّنْ أَنفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ نه واخله د سورة برأت اخر پورې ايتونه ما ته صرف حضرت حذيمه بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ليکل شوی ملاو شول بل چا سره ملاو نه شول دا آيتونه خو دېر صحابه وو ته زباني ياد و خو ليکل شوی بل چا سره ملاو نه شو او د پاتې قرآن هر آيت د څو څو صحابه وو سره ملاو شو بيا د صحيفې په کوم کې چې قرآن يو ځائ ليکل شوی وو، د حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ژوند کې د هغه سره وو بيا د هغه د وفات نه پس صحيفې د حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره د هغه په ژوند کې وې بيا د هغه د وفات نه پس حضرت حفصه بنت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره وې.(۱)

اول د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا ارشاد تېر شوی دی چې په هغه ذات مې دې قسم وي د چا په قبضه کې چې زما ساه ده، په کوم شي چې رسول الله ﷺ جنګ کړی دی هغه زه پرېږدم د ېنه ما ته دا زيات خوښه ده چې زه د اسمان نه زمکې ته را وغورځم نو په دې ترتيب زه به په هغه شي ضرور جنګ کوم خو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زکوٰة په نورو کولو عربو سره جنګ وکړ تر دې چې هغوی پوره اسلام خواته واپس راغلل.(۲)

په بخاري مسلم او مسند احمد کې د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روايت کې دا شان دي چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! کوم سړی چې په لمونځ او زکات کې فرق کوي يعنې لمونځ کوي او زکات نه ورکوي زه به ضرور له هغه سره جنګېږم ځکه چې زکات د مال حق دی څنګه چې لمونځ د بدن حق دی په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! که چېرې دې خلکو به رسول الله ﷺ ته يو رسۍ ورکوله او اوس يې ما ته رانکړي نو زه به د دغې رسۍ له وجې نه هم ده سره جنګېږم په دين کې د يوې رسۍ برابر کم هم نشم برداشت کولای او د حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا ارشاد هم تېر شوی دی چې په هغه ذات مې دې قسم وي چې د هغه نه سوا بل څوک د عبادت مستحق نشته! که چېرې سپي د رسول الله ﷺ بيبيانې له پښونه ونيسي او رايې کاږي نو هم زه دا لښکر نه واپس کوم، چې رسول الله ﷺ لېږلی وا او زه هغه جهنډا نشم پرانيستلای چې رسول الله ﷺ ترلې دهٔ نو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت أسامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لښکر روان کړ.(۳)

---

۱: اخرجه الطيالسي وابن سعد واحمد والبخاري والترمذي والنسائي وابن حبان وغيره هم كذافي كنزالعمال ۱/۲۷۹

۲: رواه المدني عن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

۳: اخرجه البيهقي عن ابي هريرة.

د حضرت عُروه په روايت کې دا هم تېر شوی دی چې حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل په هغه ذات مې دې قسم وي! چې د هغه په قبضه کې زما ساه ده که چېرې زما دا يقين راشي چې ځناور به ما اوچت کړي او يو به مې سي نو هم زه د رسول الله ﷺ د حکم مطابق به د اُسامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لښکر ضرور لېږم که څه هم چې ابادی کې زما نه سوا څوک هم پاتې نه شي نو هم به زه دا لښکر لېږم او په يو روايت کې ابن عساکر د حضرت عُروه نه نقل کړی دی چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل آيا زه هغه لښکر ايسار کړم چې رسول الله ﷺ لېږلی وو؟ که چېرې زه داسې وکړم نو دا به زما دېره لويه زړورتيا وي، په هغه ذات مې دې قسم وي! چې د هغه په قبضه کې زما ساه ده که چېرې ټول عرب په ما باندې حمله وکړي دا ما ته د دېنه زياته خوښه ده چې زه د غه لښکر د تلو نه منع کړم چې رسول الله ﷺ تشکيل کړی وو اې اُسامه! ته خپل لښکر واخله او هغه ځای ته لاړ شه! د کوم ځای ته د تلو او جنګېدلو چې تا ته حکم شوی وو او د فلسطين کومې علاقې ته د تلو او جنګېدلو چې رسول الله ﷺ تا ته حکم کړی وو، هلته لاړ شه او اهل مُوته سره وجنګېږه ته چې څوک دلته پرېږدې او ځې الله رب العزت د هغوی لپاره کافي دی.

حضرت سيف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کړی دی چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ږيره ونيوله او وې ويل اې ابن خطابه! ستا مور دې تا ورک کړي رسول الله ﷺ خو دې امير جوړ کړی دی او ته ماته وايې چې زه دې لرې کړم دا ټول روايتونه په اوله برخه کې په تفصيل سره تېر شوی دی.

**د طعام اوجامو په باره کې دحضرت عمر او حضرت حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قيصه:**

حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت حفصه بنت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل اې امير المؤمنين! څه به ښه وای که چېرې تا دې خپلو زګو جامو ته زياتې نرمې جامې اغوستلای او دې خپل طعام نه زيات ښه طعام خوړلای ځکه چې الله جَلَّ جَلَالُهُ په رزق کې دېره پراخي درکړې ده او مال يې هم د مخکې نه زيات درکړی دی. حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې ستا دليل هم تا باندې تيار وم چې آيا تا ته د رسول الله ﷺ د مشقت او سختۍ والا ژوند ياد نه دې نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته د رسول الله ﷺ د تنګسيا والا واقعات يادول تر دې چې هغه په ژړا شو بيا يې ورته وويل چې تا

ماته ویلي دي خو زما فیصله دا ده چې څومره زمانه کیدای شي نو زه به د مشقت او تنګسیا والا د رسول الله ﷺ او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پشان ژوند تېروم دې لپاره چې ما ته په اخرت کې د نعمتونو والا راحتونو والا د دې دواړو حضراتو پشان ژوند ملاو شي.(۱)

**دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نوو جامو قصه:**

د حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ژوند او کارنامو په باره کې ډېر مختصر او اوږده روایتونه تېر شوی دی، حضرت ابو أمامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یوه ورځ حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپلو ملګرو سره ناست وُ چې یو زیک کمیس یې اغوسته څنګه چې هغه کمیس د سټ هډوکي نه ښکته نه شو نو هغه فوراً دا دعا وویله: اَلْحَمْدُ للهِ الَّذِي كَسَانِي مَا أُوَارِي بِهِ عَورَتِي وَأَتَجَمَّلُ بِهِ فِي حَيَاتِي.

بیا خلکو طرف ته متوجه شو او ویې فرمایل آیا تاسو ته پته ده چې ما دا دُعا وویله ملګرو ورته وویل نه! تاسو راته ووایئ! نو مونږ ته به معلوم شي هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې یو ځل زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر وم هغوی ﷺ ته نوې جامې راوړلای شوې چې هغه یې واغوستلې بیا یې دا دُعا وویله: اَلْحَمْدُ للهِ الَّذِي كَسَانِي مَا أُوَارِي بِهِ عَورَتِي وَأَتَجَمَّلُ بِهِ فِي حَيَاتِي.

بیا یې وفرمایل چې په هغه ذات مې دې قسم وي! چا چې ماته حق را کړی دی او رالېږلی یې یم چې کوم مسلمان بنده ته الله جَلَّ جَلَالُهُ نوې جامې واغوندي او هغه خپلې زړې جامې چا مسکین مسلمان بنده ته صرف د الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره واغوندي نو تر څو پورې چې د دغه مسکین په بدن باندې د دغو جامو یو تار هم پاتې وي تر هغو پورې دا اغوستلو والا د الله په حفاظت، پناه او ضمانت کې اوسېږي، پرواه نه لري که دغه کس ژوندی وي او که مړ وي.

بیا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل کمیس خور کړ وې کتل چې لستوڼي یې د ګوتو نه اوږده وو نو پاڅېده او حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یې وفرمایل چې اې زما بچیه! لږه پلنه چاړه راوړه! عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم پاڅېده او چاړه یې خپل پلار عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راوړه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لستوڼي په خپله ګوته باندې خواره کړل وې کتل او کوم ځای چې د ګوتو نه تېر وو هغه ځایونه یې په چاړه غوځ کړل. مونږ عرض وکړ چې اې امیرالمؤمنین!

---

۱: اخرجه ابونعيم فى الحلية ۱/۴۸ واخرجه ابن سعد ۳/۱۹۹ عن مصعب بن سعد بنحوه.

آيا مونږ څوک درزي نه را ولو چې دې لستونو غاړې درته وګنډي ؟ حضرت عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل نه! حضرت ابو أمامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې وروسته ما وکتل نو د دغه لستونو تارونه حضرت عُمر په ګوتو باندې خواره شوي وو او هغه دوي نه لرې کول.(۱)

حضرت ابن عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ځل حضرت عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نوي کميس واغوسته بيا يې په ما باندې چاړه را وغوښتله او ويې فرمايل اې زما بچيه! زما د کميس لستوني خواره کړه او زما د ګوتو په غرو باندې دواړه لاسونه کېږده! چې د ګوتو نه زياتي جامه ده هغه پرېکړه! هغه په چاړه باندې نېغ پرې نکړل شول له دې وجې نه د لستونو غاړې لوړې ژورې شوې ما ورته عرض وکړ ! اې پلاره! که چېرې ستاسو اجازه وي نو زه به په قينچې سره برابر کړم هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل اې زما ځويه! هم دغسې يې پرېږده! ما رسول الله ﷺ هم په داسې کولو باندې ليدلی دی نو هغه کميس د هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په بدن باندې هم دغسې وو تر دې چې هغه وشکېده او ما څو ځله د هغې تارونه په خپو باندې پرېوتونکي وليدل.(۲)

**حجر اسود ته د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خطاب:**

حضرت اسلم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې حضرت عُمر بن الخطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حجر اسود مخاطب کړ ويې فرمايل واوره! ما ته پته ده چې ته يو کاڼې يې! نه نقصان رسولی شې او نه ګټه! که چېرې ما ستا په ښکلولو رسول الله ﷺ نه واي ليدلاي نو ما به ته نه وې ښکل کړی، د حجر اسود ښکلولو يا په لاس يا په لرګي سره مسحه کول او هغه ښکلولو ته استلام وايي بيا يې حجر اسود ښکل کړ د هنه پس يې وفرمايل چې مونږ ته په رمل سره څه ملا وېږي؟ رمل د طواف په اولنيو درېيو چکرونو کې پهلواني سره تلو ته وايي مونږ خو رمل مشرکانو ته خپل قوت ښودلو لپاره کړی وو اوس الله جَلَّ جَلَالُهُ هغوی تباه کړل نو اوس په ظاهره ضرورت نشته بيا يې وفرمايل چې رمل يو داسې عمل دی چې دا رسول الله ﷺ کړی دی له دې وجې نه مونږ دا پرېښودل نه غواړو.(۳)

يو صحابي فرمايي چې رسول الله ﷺ د حجر اسود سره ولاړ دي او فرمايي چې ما ته دا معلومه ده چې ته خو يو کاڼې يې! نه نقصان رسولاي شې او نه هم فائده! که چېرې ما رسول

---

۱: اخرجه هناد كذافى الكنز ۸/۵۵

۲: عند ابى نعيم فى الحلية ۱/۴۵

۳: اخرجه البخارى كذا فى الاصابة ۵/۱۵۳

اللهﷺ ستا په ښکلولو نه وای لیدلای نو ما به ته نه وای ښکل کړي.(۱)

حضرت یعلي بن امیه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره طواف وکړ نو مونږ حجر اسود ښکل کړ زه بیت الله سره روان وم کله چې مونږ مغربي رُکن یعنې رکن عراقي ته ورسېدو چې د حجر اسود نه پس راځي نو ما د هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لاس راښکلو چې د رکن عراقي استلام وکړي نو هغوی وفرمایل چې په تا څه شوی دی ؟ زما لاس ولې راکاږې؟ ما ورته وویل آیا تاسو د دې رکن استلام نه کوئ!؟ هغوی وفرمایل آیا تا د رسول اللهﷺ سره طواف نه دی کړي!؟ ما وویل هو! کړي مې وو ویې فرمایل آیا تا هغوی د دې دواړو مغربي رکنونو یعنې رُکن عراقي او رکن شامي په استلام کولو لیدلي وو؟ ما وویل نه! نو بیا یې وفرمایل آیا ته د رسول اللهﷺ اتباع نه کوې!؟ ما وویل کوم یې نو بیا یې وفرمایل چې د دې استلام پرېږده! او مخکې ځه!(۲)

**دنبیذ شربتو په باره کې د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا او یو اعرابي قیصه:**

حضرت بکر بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یوه بانډیچي د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه چې دا څنګه خبره ده؟ چې آل معاویه په اوبو کې شات ګډ کړي او په خلکو یې څکوي او د فلاني آل دله یې څکوي او تاسو په خلکو نبیذ څکوئ! په اوبو کې چې لږ وخت لپاره کجورې یا وسکې (ممیز) پرتې وي نو هغې ته نبیذ وایي ،آیا تاسو شومان( کنجوسان) یئ!؟ الله جَلَّ جَلَالُهُ خو درته ډېر څه درکړی دی خو د شومتوب په وجه په خلکو نبیذ څکوئ! چې ارزان شی دی یا تاسو په رښتیا ضرور تمند او غریبان یئ! حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې مونږ نه شومان یو او نه حاجتمند او غریبان بلکې د نبیذ څکلو وجه دا ده چې یو ځل رسول اللهﷺ مونږ له راغی په سورلۍ ورسره شاته حضرت اُسامه بن زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ناست وو هغوی ﷺ اوبه اوغوښتلې نو مونږ د دې لوښي نبیذ د هغوی ﷺ په خدمت کې وړاندې کړ هغه یې وڅښل او ویې فرمایل د دې چې تاسو ډېر ښه انتظام کړی دی هم داسې کوئ!(۳)

حضرت جعفر بن تمام رَحِمَهُ اللهُ وایي چې یو سړی راغی حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یې

---

۱: اخرجه ابن ابي شيبة والدار قطني في العلل عن عيسى بن صلحة كذا في كنز العمال ۳/۳۲

۲: اخرجه احمد ۱/۷۰

۳: اخرجه احمد

وویل لړ راته دا و وایئ! چې تاسو په خلکو باندې د اوسکو کوم نبیذ څکوئ! آیا دا سنت دي؟ چې د هغې تاسو تابعداري کوئ! یا تاسو ته په دې کې د پیو او شاتو نه زیاته اسانتیا ده؟ هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې رسول الله ﷺ یو ځل زما پلار حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته راغی حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به په خلکو باندې نبیذ څښل، رسول الله ﷺ وفرمایل په ما باندې هم وڅښه! حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ څو پیالې راوغوښتلې او رسول الله ﷺ ته یې پېش کړې رسول الله ﷺ ترې یوه پیاله واخیسته او وې څښله بیا یې وفرمایل چې تاسو بنه انتظام کړی دی هم داسې کوئ! نو اوس د رسول الله ﷺ د هغه فرمان په وجه د نبیذ په ځائ دپیو او شاتو انتظام کول زما لپاره د خوشحالۍ سبب نه دي.(۱)

**د رسول الله ﷺ په تابعدارۍ کې د ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قیصې:**

حضرت ابن سیرین رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې زه د عرفات په میدان کې د حضرت ابن عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره ووم کله چې هغه د خپلې دېرې نه لاړ نو زه هم ورسره لاړم هغه د امام حج ځائ ته ورسېده او هغه سره یې د ماسپښین او ماز دیګر لمونځ وکړ بیا یې په جبل رحمت باندې وقوف وکړ زه او زما ملګري هم ورسره وو، تر دې چې د لمر پرېوتو نه پس کله چې امام د عرفات نه مزدلفې طرف ته روان شو نو مونږ هم د حضرت ابن عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره د هغه ځائ نه روان شو کله چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مازمین مقام نه مخکې یو تنګ ځائ ته ورسېده نو هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کله سورلۍ کېنوله نو مونږ هم سورلۍ کېنولې، زمونږ دا خیال وو چې دي لمونځ کول غواړي نو د حضرت ابن عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ غلام چې د هغوی سورلۍ یې نیولې وه هغه وویل نه! دي لمونځ کول نه غواړي بلکې دوی ته یاد شوی دی چې رسول الله ﷺ کله دلته راوسېدلی وو نو دلته د قضایې حاجت لپاره ایسار شوي وو له دې وجې نه دي هم دلته قضایې حاجت کول غواړي.(۲)

حضرت ابن عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به کله چې د مکې او مدینې په مینځ کې یوې ونې ته ورسېده نو د هغې دلاندې به یې د غرمې خوب کولو او د دې وجه به یې دا بیانوله چې رسول الله ﷺ د غرمې د دې ونې لاندې ارام کړی وو.(۳)

---

۱: عند ابن سعد ۴/۱٦

۲: اخرجه احمد قال فی الترغیب ۱/۴۷

۳: اخرجه البزار باسناد لاباس به کذا فی الترغیب ۱/۴٦ وقال الهیثمی ۱/۱۷۵ ورجاله موثقون.

حضرت نافع رَحِمَهُ اَللَّهُ وايي چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ د اثارو او نښاناتو ډېره زياته اتباع كوله، چېرته چې به رسول الله ﷺ د سفر په دوران كې يو لمونځ كړى وو هلته به حضرت ابن عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ضرور لمونځ كولو ، د رسول الله ﷺ د اثارو به يې دومره اهتمام كولو چې په يو سفر كې رسول الله ﷺ د يوې ونې لاندې ايسار شوي وو نو حضرت ابن عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغې ونې ډېر خيال ساته او د هغې ونې ته به يې اوبه اچولې دې لپاره چې وچه نه شي.(١)

حضرت مجاهد رَحِمَهُ اَللَّهُ وايي چې مونږ په يو سفر كې د حضرت ابن عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره وو په تلو تلو كې كله چې هغه يو ځائ باندې تېرېدو نو لاره يې پرېښودله او يو طرف ته شو ملګرو ترې پوښتنه وكړه چې تاسو داسې ولې وكړل؟ لاره مو ولې پرېښوده؟ ويې فرمايل ما رسول الله ﷺ په داسې كولو دلته ليدلي وو ځكه ما هم داسې وكړل.(٢)

حضرت نافع رَحِمَهُ اَللَّهُ وايي چې حضرت ابن عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به د مكې مكرمې په لاره كې نېغ نه تلو بلكې كله به يې د لارې ښي طرف ته سورلى تاووله او كله ګس طرف ته او فرمايل به يې چې زه داسې ځكه كوم دې لپاره چې زما د سورلى پښې د رسول الله ﷺ د سورلى د پښو په ځاى كېښودلې شى.(٣)

حضرت نافع رَحِمَهُ اَللَّهُ وايي كله چې به حضرت ابن عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ د قدمونو په نښو باندې پښې كېښودلې او تلو به نو تاسو به ويل چې دا خولېوني دي.(٤)

حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي چې رسول الله ﷺ پخپلو سفرونو كې كومو ځايونو كې قيام كړى وو هغه ځايونه چې څنګه تلاش كوئ! دغسې يې بل څوک نه تلاش كوي.(٥)

حضرت عاصم احول رَحِمَهُ اَللَّهُ د خپل استاد نه نقل كوي چې حضرت ابن عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به د سنتو په تابعدارى كې دومره زيات اهتمام كولو كله چې به چا هغه د رسول الله ﷺ د قدمونو په نښو تلاش كونكى وليده نو هغه به داسې ګڼل چې په هغوى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ باندې د لېوتوب څه اثر دى.

---

١: اخرجه ابن عساكر كذافى الترغيب ١/٤٦

٢: اخرجه احمد والبزار باسناد جيد كذا فى الترغيب ١/٤٦

٣: عند ابى نعيم فى الحلية ١/٣١٠

٤: عند ابى نعيم ايضاً واخرجه الحاكم ٣/٥٦١

٥: عند ابى سعد ٤/١٠٧

حضرت اسلم رَحِمَهُ اللَّهُ وايي كه چيرې د يوې اوښې بچي په يو ځنګل کې ورک شي نو هغه خپل بچي د ومره نشي تلاش کولای، څومره زيات چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د قدمونو نشانونه تلاش کول.(١)

حضرت عبد الرحمن بن اُميه رَحِمَهُ اللَّهُ د حضرت ابن عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه چې په قرآن مجيد کې د وېرې او د مقيم د مانځه ذکر خو مونږ ته ملاوېږي خو د مسافر د مانځه ذکر نه ملاوېږي؟ هغوی وفرمايل چې مونږ د عربو په خلکو کې د ټولو نه زيات ضديان او کم علمه وو بيا الله رب العزت خپل پيغمبر راولېږه نو مونږ چې رسول الله ﷺ څنګه په کولو باندې وليده نو مونږ به هم داسې کولو ، رسول الله ﷺ سفرانه لمونځ کړی دی نو مونږ به يې هم کوو مقصد دا دی چې د هر حکم په قرآن کې ذکر کېدل ضروري نه دي. بلکې ډېر احکام د رسول الله ﷺ د حديثو نه ثابتېږي.(٢)

حضرت اميه بن عبد الله بن خالد بن اُسيد رَحِمَهُ اللَّهُ د حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه چې د خوف لمونځ قصر سره د کولو لمونځ خو مونږ ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ په کتاب کې ملاوېږي خو د سفر لمونځ قصر سره د کولو حکم نه ملاوېږي، حضرت عبد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل مونږ خپل رسول الله ﷺ چې په کوم کار باندې ليدلای دی نو مونږ به هغه خامخا کوو په قرآن کې يې ذکر کېدل ضروري نه دي .(٣)

حضرت وارد بن ابي عاصم رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې په منی کې زما ملاقات د حضرت ابن عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره وشو ، ما ترې پوښتنه وکړه چې په سفر کې د مانځه څو رکعتونه وي؟ وې ويل چې دوه رکعتونه ، ما وويل چې په دې وخت کې مونږ په منی کې يو زمونږ تعداد هم زيات او هر قسم امن هم دی نو آيا دلته به هم دوه رکعتونه کولای شي؟ دې باره کې ستاسو څه خيال دی؟ زما په دې سوال سره په هغه باندې ډېر بوج راغی او وېې فرمايل ته هلاک شې! آيا تا د رسول الله ﷺ په باره کې څه اورېدلي دي؟ ما وويل چې هو! اورېدلي مې دي! او ما په هغوی ﷺ باندې ايمان راوړی دی نو وېې فرمايل چې رسول الله به کله په سفر تلو نو دوه رکعتونه لمونځ به يې کولو اوس ستا خوښه ده که دوه رکعتونه لمونځ

---

١: عند ابی نعيم ١/٣٠١

٢: اخرجه عبدالرزاق

٣: عند ابن جرير

کوئ! او که پرېږدې يې! (١)

حضرت ابو منيب جرشي رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې يوه سړي د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه چې الله جَلَّ جَلَالُهُ په قرآن کريم کې و فرمايلي دي: وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَاةِ إِنْ خِفْتُمْ أَنْ يَفْتِنَكُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا

ترجمه: او کله چې تاسو په زمکه کې سفر کوئ! نو په تاسو به په دې کې څه ګناه نه وي چې تاسو لمونځ کم کړئ! که چېرې تاسو ته دا خطره موجوده وي چې کافران به تاسو پرېشان کړي.

اوس الله رب العزت د قصر لمونځ کولو لپاره دا شرط لګولی دی چې د کافرانو د تنګولو خطره وي او دلته مني کې مونږ دا وخت د ډېر په امن سره يو څه قسم وېره او خطره نشته دی نو آيا ستاسو لپاره د تقليد نمونه ده نو کله چې هغوی ﷺ په مني کې دوه رکعتونه لمونځ کړی دی نو تاسو هم دوه رکعتونه کوئ!(٢)

حضرت زيد بن اسلم رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي: ما حضرت ابن عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وليده چې لمونځ يې کولو او د هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تنۍ پرانيستلې وې د مانځه نه پس ما ترې پيا پوښتنه وکړه نو وېې فرمايل چې ما رسول الله ﷺ هم داسې په لمونځ کولو باندې ليدلی دی.(٣)

**د معاوية بن قرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په تابعدارۍ کې تنۍ خلاصول:**

حضرت قره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې زه د مزينه قبيلې له يوې ډلې سره د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم او مونږ د هغوی ﷺ نه بيعت وکړ په دغه وخت کې د هغوی ﷺ تنۍ پرانيستلې وې، ما د هغوی ﷺ کميس په ګرېوان کې لاس واچولو او مهر نبوت مې مسحه کړ، حضرت عروه راوي وايي چې ما وليدل چې د حضرت قره د ځوی د حضرت معاويه او د حضرت معاويه د ځوي تنۍ به د ګرمۍ او يخنۍ دواړو موسمونو کې همېشه پرانيستې وې.(٤)

---

١: عند ابن جرير ايضاً

٢: عند ابن جرير ايضاً كذافي الكنز ٤/٢٤٠

٣: اخرجه ابن خزيمة في صحيحه والبيهقي كذافي الترغيب ١/٤٦

٤: اخرجه ابن ماجه وابن حبان في صحيحه واللفظ عن عروه بن عبدالله بن قشير قال حدثني معاوية بن قرة عن ابيه كذافي الترغيب ١/٤٥ واخرجه ايضاً البغوى وابن السكن كما في لاصابة ٣/٢٢٣ واخرجه ابن سعد ١/٤٢٠ نحوه.

## دهغه نسبت خیال ساتل چې رسول الله ﷺ د خپلو صحابه وو، اهل بیتو او خپل أمت سره لرلو

حضرت کعب بن عجره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يوه ورځ مونږ په مسجد نبوي ﷺ کې د رسول الله ﷺ د حجرې مخامخ په يو ټولګي کې ناست وو، په دغه ټولګي کې څه مونږ انصار، څه مهاجر او څه بني هاشم خلک وو، زمونږ پخپل مينځ کې په دې خبره بحث شروع شو چې په مونږ کې کوم کس رسول الله ﷺ ته زيات نزدې او محبوب دی مونږ وويل چې زمونږ د انصارو جُماعت په رسول الله ﷺ باندې ايمان راوړی دی او مونږ د هغوی ﷺ تابعداري کړې ده او مونږ د هغوی ﷺ په ملګرتيا کې څو ځله د کافرانو سره جنګ کړی دی، مونږ د رسول الله ﷺ د دښمن په مقابله کې د رسول الله ﷺ د لښکر دسته يو نو مونږ رسول الله ﷺ ته زيات نزدې او محبوب يو او زمونږ مهاجرينو وروڼو وويل چې مونږ د الله د رسول ﷺ سره هجرت وکړ او مونږ د خپل خاندان والا، کوروالا او مال دولت هجرت لپاره پرېښودل دا زمونږ امتيازي صفت او خاص قرباني ده چې تاسو انصارو ته حاصل نه ده او مونږ په هغه ټولو ځايونو کې حاضر شوي وو په کومو چې تاسو حاضر وئ! او په هغه ټولو ځايونو کې شريک شوي وو په کومو چې تاسو خلک شريک شوي يئ! نو په دې ترتيب مونږ رسول الله ﷺ ته زيات نزدې او محبوب يو او زمونږ هاشمي وروڼو وويل چې زمونږ امتيازي صفت دا دی چې مونږ د رسول الله ﷺ د خاندان خلک يو او مونږ په هغه ټولو ځايونو کې حاضر وو چېرته چې تاسو حاضر وئ! نو په دې وجه مونږ رسول الله ﷺ ته زيات نزدې او محبوب يو په دې کې رسول الله ﷺ مونږ له بهر ته راغی او مونږ خوا ته متوجه شو، وې ويل چې تاسو پخپل مينځ کې څه خبرې کولې؟ مونږ د رسول الله ﷺ په مخ کې خپله خبره عرض کړه، رسول الله ﷺ مونږ انصارو ته وفرمايل چې تاسو صحيح ويلي دي، ستاسو د دې خبرې څوک انکار کولای شي؟ بيا مونږ رسول الله ﷺ ته د خپلو مهاجرينو وروڼو خبره وکړه رسول الله ﷺ وفرمايل هغوی هم صحيح وايي د دوي د دې خبرې نه څوک انکار کولای شي؟ بيا مونږ د خپلو هاشمي وروڼو خبره وکړه رسول الله ﷺ وفرمايل دوي هم صحيح وايي د دوي د خبرې نه څوک انکار کولای شي؟ بيا يې وفرمايل ايا ستاسو فيصله نه کوم؟ مونږ وويل ضرور يې وکړه! اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زمونږ مور او پلار دې په

تاسو قربان وي بيا رسول الله ﷺ وفرمايل اې د انصارو ټولګيه! زه خو ستاسو ورور يم، په دې خبره انصارو وويل الله اكبر! د كعبې په رب قسم! مونږ رسول الله ﷺ اوګټلو، او تاسو اې د مهاجرينو جمعه ګيه! زه خو ستاسو نه يم! په دې خبره مهاجرينو وويل الله اكبر! د كعبې په رب قسم! مونږ رسول الله ﷺ وګټلو! او تاسو اې بنو هاشم! تاسو زمايئ! او ما ته حواله يئ! په دې خبره مونږ جمعه خوشحاله شو او پاڅېده او په مونږ كې هر يو د رسول الله ﷺ سره د خاص اړيكې په وجه ډېر خوشحالېده.(١)

**خالد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د اهل بدر د ازار او خلک د خالد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د آزار نه منع كول:**

حضرت عبدالله بن ابي اوفي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ رسول الله ﷺ ته د حضرت خالد بن وليد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ شكايت وكړ، رسول الله ﷺ وفرمايل اې خالده! په جنګ بدر كې شريک شوو كسانو كې چا ته تكليف مه رسوه! اودا عبدالرحمن بن عوف هم د بدر په غزا كې شريک شوى دى ځكه چې كه چېرې تاسو د اُحد د غر برابر هم سره زر خرچ كړئ! نو هم د هغوى عمل ته نشئ! رسېدلاي. حضرت خالد بن وليد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې خلک ما ته بد رد وايي نو زه هم هغوى ته هغــې جواب وركوم، رسول الله ﷺ صحابه وو ته وفرمايل چې خالد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته تكليف مه رسوئ! ځكه چې دى د الله جَلَّ جَلَالُهُ له تورو نه يوه توره ده چې دا الله جَلَّ جَلَالُهُ په كافرانو باندې اوچته كړې ده.(٢)

حضرت حسن رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې د حضرت عبدالرحمن بن عوف او حضرت خالد بن وليد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په مينځ كې ترخې خبرې وشوې نو خالد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ابن عوف ته يې وويل اې ابن عوف! ته زما په مخكې د دې خبرې له وجې نه فخر مه كوه! چې ته زمانه يوه ورځ دوه مخكې په اسلام كې شامل شوي يې! كله چې دا خبره رسول الله ﷺ ته ورسېدله نو ويې فرمايل چې زما له وجې نه زما د بدر صحابه وو ته څه مه وايئ! څه تكليف مه رسوئ! ځكه چې په هغه ذات قسم! د چا په قبضه كې چې زما ساه ده په تاسو كې د بدر نه بغير څوک هم چې د احد د غره برابر سره زر خرچ كړي نو د هغوى د نيم مد ثواب ته نشي رسېدلاي! نيم مُد

---

١: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ١٠/١٤ رواه الطبراني وفيه ابومسكين الانصاري ولم اعرفه وبقية رجاله ثقات وفي بعضهم خلاف انتهى

٢: اخرجه الطبراني قال الهيثمي رواه الطبراني في الصغير والكبير باختصار والبزار بنحوه و رجال الطبراني ثقات انتهى واخرجه ايضاً ابن عساكر و ابو ويعلى كما في الكنز و ابن عبدالبر في لاستيعاب ١/٤٠٩

اووه چتهاکی يعنې نيم کلونه کم وي د بنه پس حضرت عبدالرحمن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د حضرت زبير په مينځ کې څه خبرې تېزې شوې نو حضرت خالد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو زه د حضرت عبدالرحمن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره د جنګ نه منع کړي وم او دا حضرت زُبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه ته بدرد وايي رسول الله ﷺ وفرمايل دا دواړه بدري صحابه دي په درجه کې برابر دي ستا درجه کمه وه له دې وجې نه دوي پخپل مينځ کې يو بل ته څه ويلاي شي په دې کې پروا نشته.(١)

حضرت ابوهريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ځل د حضرت خالد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د حضرت عبدالرحمن بن غوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په مينځ کې داسې خبره وشوه څنګه چې د خلکو په مينځ کې کېږي نو رسول الله ﷺ وفرمايل چې زما له وجې نه زما د بدر اصحابو ته څه مه وايئ! ځکه چې که چېرې په تاسو کې ځوک د اُحد د غر برابر سره زر خرچ کړي نو د غه بدري صحابه وو کې د يو کس يو مُد بلکې د نيم مُد ثواب ته نشي رسېدلاي.(٢)

**د صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ فضيلت او برتري:**

حضرت جابر بن عبدالله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل چې الله رب العزت د پېغمبرانو او رسولانو نه علاوه په پاتې ټولو دُنيا والو باندې زما صحابه وو ته فضيلت ورکړی او بيا زما لپاره يې زما په صحابه وو کې څلور کسان حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خوښ کړل او هغوی يې زما خاص صحابه وګرځول هسې خو زما په ټولو صحابه وو کې خير دی او الله جَلَّ جَلَالُهُ زما امت ته په ټولو امتونو باندې فضيلت ورکړی او زما په امت کې يې د څلورو زمانو والا خوښ کړل رومبنی زمانه د رسول الله ﷺ دويمه زمانه د حضراتو صحابه وو دريمه زمانه د تابعينو څلورمه زمانه د تبع تابعينو .(٣)

**د مهاجرينو او انصارو سفارش:**

حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي کله چې د رسول الله ﷺ د دُنيا نه د تلو وخت

---

١: عند ابن عساكر كذا في الكنز ٧/١٣٨ واخرجه احمد عن انس ﷺ نحوه مختصرا قال الهيثمي ١٠/١٥ ورجاله رجال الصحيح انتهى

٢: عند البزار قال الهيثمي ١٠/١٥ رجاله رجال الصحيح غير عاصم بن ابي النجود وقد وثق انتهى.

٣: اخرجه البزار قال الهيثمي ١٠/١٦ ورجاله ثقات وفي بعضهم خلاف

نزدې شو نو صحابه وو عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! مونږ ته څه وصیت وکړئ! رسول الله ﷺ وفرمایل چې په مهاجرینو کې څوک سابقین اولین دي زه تاسو ته د هغوی سره او د هغوی نه پس د هغوی زامنو سره د ښه سلوک وصیت کوم که چېرې تاسو په دې وصیت عمل ونه کړنو نه به ستاسو نفلي عمل قبلېږي او نه فرض.(۱)

**اصحابانو ته د کنځلو نه رسول الله ﷺ منع اوفرمایله:**

د بزار په روایت کې دا دی چې زه د اولینو سره او د هغوی نه پس د هغوی زامنو سره او د هغوی نه پس بیا د هغوی د ځامنو سره تاسو ته د ښه سلوک او نېکې رویې وصیت کوم.(۲)

حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي کله چې الله رب العزت رسول الله ﷺ ته وښودل چې اوس ستا د دُنیا نه د تلو وخت نزدې راغلی دی نو هغوی ﷺ په زړو جامو کې بهر ته تشریف راوړو او په منبر باندې کېناسته ، خلکو او د بازار والاوو د هغوی باره کې واورېدل چې په منبر باندې ناست دی نو هغوی ټول د جُماعت نه راغلل رسول الله ﷺ د الله جَلَّ جَلَالُهُ حمد او ثناء نه پس وفرمایل اې خلکو! د انصارو قبیلې سره چې زما کوم اړیکې دي د هغې همېشه خیال ساتئ! ځکه چې دا خلک زما لپاره د معدې په شان دی چې په هغې کې زه طعام خورم او دوي زما صندوق دی یعنې دوي سره زما خاص اړیکې دي زما د پر رازونه دوي سره دي دا زما خاص اعتماد والا خلک دي لهذا تاسو د دوي د نېک سړی عمل قبول کړئ! او د دوي خطایي معاف کړئ!(۳)

حضر انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو ځل د رسول الله ﷺ په مخکې د حضرت مالک بن دخشن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ذکر وشو نو څه خلکو ورته بد وویل او دایې هم وویل چې دا خو د منافقانو سردار دی، رسول الله ﷺ وفرمایل چې زما صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پرېږدئ! زما صحابه وو ته بد رد مه وایئ!(۴)

**د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ بد یادولونه د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تخویف:**

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل چې څوک زما صحابه وو

---

۱: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ۱۰/۱۷ رواه الطبراني في الاوسط والبزار.
۲: رواه البزار ورجاله ثقات.
۳: اخرجه الطبراني عن زيد بن سعد قال الهيثمي ۱۰/۳٦ و زيد بن سعد الاشهلي كما اعرفه وبقية رجاله ثقات انتهى.
٤: اخرجه البزار قال الهيثمي۱۰/۲۱ رجاله رجال الصحيح اه.

ته بدرد وايي په هغه باندې به دالله جَلَّجَلَالُهُ او د فرشتو او د ټولو خلکو لعنت وي.(۱)

حضرت عائشه رَضِيَاللَّهُعَنْهَا فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل چې زما صحابه وو ته بدرد مه وايه څوک چې زما صحابه وو ته بدرد وايي الله جَلَّجَلَالُهُ دې په هغه لعنت وکړي.(۲)

حضرت سعيد بن زيد بن عمرو بن نفيل رَضِيَاللَّهُعَنْهُ فرمايي چې تاسو ما ته خپلو ملګرو ته د بدرد ويلو حکم کوئ! په داسې حال کې الله جَلَّجَلَالُهُ په هغوی باندې رحمت کړی دی او د هغوی مغفرت يې کړی دی له دې وجې نه زه هغوی ته هيڅ کله بد نه وايم.(۳)

حضرت سعيد بن جبير وايي چې يو سړی د حضرت ابن عباس رَضِيَاللَّهُعَنْهُ په خدمت کې حاضر شو او وې ويل ما ته څه وصيت وکړئ! هغوی وفرمايل زه تا ته د الله جَلَّجَلَالُهُ نه د وېرېدلو وصيت کوم او د رسول الله ﷺ د اصحابو بدي بيانولو نه همېشه ځان ساتئ! ځکه چې تاسو ته معلومه نه ده چې هغوی څه کارنامې کړی دی.(۴)

**د اهل بيتو په باره کې د رسول الله ﷺ وصيت او سفارش:**

حضرت ابن عُمر رَضِيَاللَّهُعَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ اخري خبره دا وفرمايله چې تاسو زما د کوروالاوو په باره کې نيابت کوئ! يعنې زما نه پس زما پشان د هغوی خيال ساتئ!(۵)

حضرت ام سلمه رَضِيَاللَّهُعَنْهَا فرمايي چې د رسول الله ﷺ لور حضرت فاطمې رَضِيَاللَّهُعَنْهَا يو ځل حضرت حسن رَضِيَاللَّهُعَنْهُ او حضرت حسين رَضِيَاللَّهُعَنْهُ په غېږ کې راخيستي وو او د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضره شوه د هغې په يو لاس کې يوه کټوی وه چې په هغې کې د حضرت حسن رَضِيَاللَّهُعَنْهُ لپاره ګرم کړي خوراک ؤ و حضرت فاطمې رَضِيَاللَّهُعَنْهَا به کله چې هغه کټوی د رسول الله ﷺ په مخکې کېښودله نو رسول الله ﷺ وفرمايل چې ابو الحسن يعنې حضرت علي رَضِيَاللَّهُعَنْهُ چېرته دی؟ هغې وويل چې کور کې دی رسول الله ﷺ هغه راوغوښته کله چې هغه راغی نو رسول الله ﷺ حضرت علي رَضِيَاللَّهُعَنْهُ، حضرت فاطمې رَضِيَاللَّهُعَنْهُ، حضرت حسن رَضِيَاللَّهُعَنْهُ او حضرت حسين رَضِيَاللَّهُعَنْهُ پنځو واړو يو ځای

---

۱: عند الطبرانی قال الهيثمی ۱۰/۲۱ وفيه عبدالله بن فراش وهو ضعيف.

۲: عند الطبرانی قال الهيثمی ۱۰/۲۱ رجاله رجال الصحيح غير علی بن سهل وهو ثقة

۳:اخرجه الطبرانی قال الهيثمی ۱۰/۲۱ رواه الطبرانی فی الاوسط رجاله رجال الصحيح انتهی.

٤: اخرجه الطبرانی قال الهيثمی ۱۰/۲۲ وفيه عمر بن عبدالله وهو ضعيف انتهی.

٥:اخرجه الطبرانی فی الاوسط وقال الهيثمی ۹/۱٦۳ وفيه عاصم بن عبدالله وهو ضعيف انتهی.

خوراک شروع کړ او رسول الله ﷺ زه د خوراک لپاره ونه غوښتلم په داسې حال کې دې نه مخکې به کله چې هم رسول الله ﷺ خوراک کولو نو زه به یې ضرور غوښتلم چې د خوراک نه فارغ شول نو هغوی ﷺ په دې تولو څادر واچاوه او ویې فرمایل اې الله جَلَّ جَلَالُهُ څوک چې دوې سره دشمني کوي ته هغوی سره دشمني وکړې او څوک چې دوې سره دوستي کوي ته هغوی سره دوستي وکړې!(۱)

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل اې بنو عبد المطلب! ما د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه ستا لپاره درې شیان غوښتلي دي په تاسو کې چې څوک په دین باندې قائم وي الله جَلَّ جَلَالُهُ دې هغوی ته په دې باندې محکم والی ورکړي او ستاسو جاهلانو ته دې علم ورکړي او ستاسو بې لارې دې په نېغه لاره باندې راولي او ما د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه دا هم غوښتي دي چې الله رب العزت تاسو ښه سخیان او رحم دله جوړ کړي که چېرې څوک د حجر اسود او د رکن یماني په مینځ کې ودرېږي او عبادت وکړي، لمونځ وکړي او روژه ونیسي یعنې ټول ژوند کې دومره غوره عبادات کوي خو د مرګ په وخت کې د هغه په زړه کې د حضرت محمد ﷺ د کوروالوو سره بغض وي نو هغه به د جهنم په اور کې داخلېږي.(۲)

حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل چې چا د عبد المطلب په اولاد کې چا سره احسان وکړ او هغه ورته د دغه احسان بدله په دُنیا کې ورنکړه نو د هغه بدله زما په ذمه ده. صبا د قیامت په ورځ کله چې ما سره ملاو شي نو وادې خلي.(۳)

**د آنحضرت ﷺ سره دنسب په شریکېدو د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خوشحالي:**

حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي کله چې حضرت عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لور سره واده وکړ نو ما واورېدل چې هغوی خلکو ته فرمایې چې تاسو ماته مبارکي ولې نه راکوئ!؟ ما د رسول الله ﷺ نه دا فرمان اورېدلی دی چې د قیامت په ورځ به زما د سخرګنۍ رشته او زما د نسب نه علاوه د سخرګنۍ هره رشته او هر نسب به قطع کړی شي او په دې واده سره ما ته د رسول الله ﷺ سخرګنۍ رشته حاصله شوې ده دې درجې نه ماته

---

۱: ابویعلي قال الهیثمی ۱٦۷ / ۹ واسناده جید.
۲: اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ۹/۱۷۱ رواه الطبرانی عن شیخه محمد بن زکریا الغلابی وهو ضعیف وذکره ابن حبان فی الثقات وقال یعتبر حدیثه اذاروی عن الثقات فان فی روایته عن المجاهیل بعض المناکر قلت روی هذا عن سفیان الثوری وبقیة رجاله رجال الصحیح انتهی.
۳: اخرجه الطبرانی فی الاوسط قال الهیثمی ۹/۱۷۲ عبدالرحمن بن زیاد وهو ضعیف انتهی.

مبارکي راکړئ!.(۱)

# د قريشو فضيلت

حضرت محمد بن ابراهيم تيمي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت قتاده بن نعمان ظفري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو ځل د قريشو بدي بيان کړه او د هغوی خلاف يې د بې عزتۍ او بې ادبۍ خبرې وکړې نو رسول الله ﷺ وفرمايل اې قتاده! قريشو ته بد رد مه وايه! ځکه چې په هغوی کې به داسې سړي هم تا ته په نظر راشي چې د هغوی د عملونو او افعالو په مخکې تاسو ته په خپل فعل او عمل سپک په نظر راشي کله چې تاسو هغوی اووينئ! نو ورته به وپسخېږئ! که چېرې ماته د قريشو د سرکشه کېدو خطره نه واي نو د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد چې د هغوی کوم مقام او کومه رتبه ده نو ما به ورته بنودلای وای.(۲)

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د رسول الله ﷺ کوم ارشادات ما ته معلوم دي په هغې کې يو دا هم دی چې قريش مخکې ساتئ! او د هغوی نه مه مخکې کېږئ! که چېرې ما ته د قريشو د سرکشه کېدو خطره نه واي نو د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد به چې هغوی ته څه ملاوېږي ما به هغه دوي ته بنودلي وای.(۳)

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې يو ځل رسول الله ﷺ ما ته راغی او وې فرمايل که چېرې ماته د قريشو د سرکشه کېدو خطره نه واي نو د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد به چې هغوی ته څه ملاوېږي ما به هغه دوي ته بنودلي واي.(۴)

حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نبي اکرم ﷺ وفرمايل چې امانتداري په قريشو کې لټوئ! ځکه د قريشو امانتداري سړی ته په نورو امانتداريو باندې يو فضيلت حاصل دی او د قريشو يو قوي سړی ته په نورو قويو سړو باندې دوه فضيلتونه حاصل دي.(۵)

---

۱: اخرجه الطبرانى قال الهيثمى ۹/۱۷۳ رواه الطبرانى فى الاوسط والكبير باختصار ورجالهما رجال الصحيح غير الحسن بن سهل وهو ثقة

۲: اخرجه احمد قال الهيثمى ۱۰/۲۳ رواه احمد مرسلا ومسند ورجال لفظ المسند على المرسل والبزار كذلك والطبرانى مسند ورجال البزار فى المسند رجال الصحيح ورجاله فى المسند ورجال الصحيح غير جعفر بن عبدالله بن سليم فى مسند احمد وهو ثقة وفى بعض رجال الطبرانى خلاف.

۳: اخرجه الطبرانى قال الهيثمى ۱۰/۲۵ وفيه ابومعشر وحديثه حسن.

۴: عند احمد ورجاله رجال الصحيح كما فى الهيثمى ۱۰/۲۵

۵: اخرجه الطبرانى قال الهيثمى ۱۰/۲۶ رواه الطبرانى فى الاوسط وابو يعلى واسناده حسن اه.

حضرت رفاعه بن رافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمايل چې خپل قوم را ټول کړئ! زه هغوی ته څه ويل غواړم! حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغوی د رسول الله ﷺ کور خواته راټول کړل او دننه لاړ عرض يې وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه هغوی دننه ستاسو په خدمت کې حاضر کړم يا تاسو هغوی ته بهر ورځئ؟ رسول الله ﷺ اوفرمايل زه بهر هغوی ته ورځم! نو بهر هغوی ته راغی او ورته يې وفرمايل چې آيا ستاسو په دې ډله کې د بل قوم څوک سړی شته؟ هغوی وويل هو! په دې ډله کې زمونږ نه علاوه زمونږ ملګري، زمونږ خورځينه او زمونږ غلامان هم دي، رسول الله ﷺ وفرمايل زمونږ ملګري، زمونږ خورځينه او زمونږ غلامان دا ټول هم زمونږ نه دي تاسو د الله جَلَّ جَلَالُهُ دا ارشاد ولې نه اورئ!؟ چې د دې مسجد حرام متولي جوړيدلو وړيوازې متقيان او پرهيزګاران خلک دي که چيرې تاسو متقيان يئ! يا خو صحيح ده کنې تاسو سوچ وکړئ! غور وکړئ! هسې نه چې صبا د قيامت په ورځ نور خلک علمونه راوړي او تاسو د ګناهونو بار راوړئ! او يا ماته ستاسو د ګناهونو کتلو سره مخ بل خواته د اړولو ضرورت راشي بيا يې دواړه لاسونه اوچت کړل ويې فرمايل اې خلکو! قريش امانتدار خلک دي له دې وجې نه چې څوک د دوي نيمګرتياوې او خطاياني لټوي الله جَلَّ جَلَالُهُ به هغوی پرمخې په جهنم کې واچوي، دا جمله يې درې ځله ويله.(۱)

**د بني هاشمو، انصارو او عربو سره بغض کول:**

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل چې بني هاشم او انصارو سره بُغض او کينه ساتل کفر دی او عربو سره کينه ساتل منافقت دی.(۲)

**قريش به د نورو خلکو نه زر د آنحضرت ﷺ سره وصل شي:**

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې يو ځل رسول الله ﷺ ما ته دننه راغی او وفرمايل يې چې اې عائشې! ستا قوم به زما په امت کې د ټولو نه اول ما سره ملاويږي کله چې هغوی کيناسته نو ما وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! الله جَلَّ جَلَالُهُ دې ما په تاسو قربان کړي تاسو دننه راتللو په وخت کې داسې وفرمايل، چې د هغې په اوريدو سره خو زه وويريدلم، رسول

---

۱: اخرجه البزار قال الهيثمي ۱۰/۳۶ رواه البزار واللفظ له و احمد باختصار وقال كبه الله في النار لوجهه والطبراني بنحو البزار ورجال احمد والبزار واسنادي الطبراني ثقات انتهى.
۲: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ۱۰/۲۷ رواه الطبراني ورجاله ثقات انتهى.

الله ﷺ وفرمایل هغه څه دي؟ ما وویل چې تاسو وفرمایل چې زما قوم به ستا په امت کې د ټولو نه مخکې تاسو سره ملاوېږي هغوی ﷺ وفرمایل او ما دا خبره کړې وه ما وویل چې دا به په کومه وجه وي؟ ویې فرمایل: مرګ به هغوی هلاکوي او د دغې زمانې خلک به هغوی سره کینه او حسد کوي ما وویل چې د هغوی نه پس به د پاتې خلکو څه حال وي وې فرمایل چې د هغه خلک به د وړو ملخانو په شان قوي به کمزوری خوري تر دې چې هم په هغوی به قیامت راشي، په یو روایت کې دا دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: اې عائشې! په خلکو کې به د ټولو نه مخکې ستا قوم تباه کېږي ما عرض وکړ الله جَلَّ جَلَالُهُ دې ما په تاسو قربان کړي آیا هغوی ټول به زهر خوړلو سره هلاک شي؟ وې فرمائل نه! دا مرګ به هغوی تباه کوي او د دغې زمانې خلک به هغوی سره حسد کوي هغوی به په خپلو کې د ټولو نه مخکې تباه کېږي. ما وویل چې د هغوی نه پس به خلک څومره موده په دُنیا کې اوسېږي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل چې دا خلک د ټولو خلکو لپاره د ملا د هډوکي پشان حیثیت لري کله چې دوي تباه شي نو بیا به پاتې ټول هم (زر) تباه شي(۱)

**هغه جماعت د رسول الله ﷺ بشارت چې دهغه نه وروسته راځي:**

حضرت عُمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې زه يوه ورځ د نبي اکرم ﷺ سره ناست وم په دې کې هغوی وفرمایل چې اوښایه په ایمان والاوو کې د ټولو نه غوره ایمان والا څوک دی؟ صحابه وو عرض وکړ چې فرشتې دي! ویې فرمایل چې هغوی خو دي هم داسې او د هغوی هم دغسې کېدل په کار دی او الله جَلَّ جَلَالُهُ چې هغوی ته کومه مرتبه ورکړې ده آیا د هغې په لحاظ سره د هغوی لپاره د دېنه څه مانع شته؟ د فرشتو نه علاوه وښایئ! اصحابه عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! د ملائیکو نه پس انبیاء علیهم السلام دي چې هغوی ته الله رب العزت رسالت او نبوت ورکړی دی رسول الله ﷺ وفرمایل چې هغوی خو دي هم داسې وي او د هغوی هم دغسې کېدل په کار دی او الله جَلَّ جَلَالُهُ چې هغوی ته کومه مرتبه ورکړې ده آیا د هغې په لحاظ سره د هغوی لپاره د دېنه څه ممانعت شته؟ صحابه عرض وکړ! اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! دوي نه وروسته خو شهیدان دي چې هغوی ته د نبیانو د شهادت درجه ملاو شو" رسول الله ﷺ وفرمایل چې هغوی خو دي هم داسې او د هغوی هم دغسې کېدل په کار دی او

۱: اخرجه احمد قال الهيثمي ۱۰/۵۲۸ رواه احمد والبزار احمد والطبراني ببعضه ايضاً واسناد الرواية الاولى عند احمد رجال الصحيح وفي بقية الروايات مقال.

الله رب العزت چې هغوی ته د شهادت کومه مرتبه ورکړې ده آیا د هغې په لحاظ سره د هغوی لپاره د دې نه څه مانع شته؟ د ټولو نه غوره ایمان والا خو د دوي نه علاوه نور خلک دي صحابه وو عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! هغه کوم خلک دي؟ ویې فرمایل دا هغه خلک دي چې په دې کې د خپلو پلارانو ټیکونو په شاګانو کې دي، زما نه پس به دې دُنیا ته راځي او زما د لیدو نه بغیر به په ما باندې ایمان راوړي او زما تصدیق به کوي د قرآن سیپارې به زوړندې بیا مومي او په هغه قرآن به عمل کوي دا خلک په ایمان والاوو کې د ټولو نه غوره ایمان والا دي وروسته راتلونکو ته فضیلت صرف په دې اعتبار سره دی چې دوی د رسول الله ﷺ لیدلو نه بغیر ایمان راوړی دی همدارنګه د دوي ایمان بالغیب دی کنه په دې باندې اجماع ده چې صحابه کرام رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ په امت کې د ټولو نه غوره دی. (۱)

حضرت عمرو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل چې د قیامت په ورځ د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد د ټولو نه لویه مرتبه په مخلوق کې به د چا وي؟ صحابه کرامو عرض وکړ چې د فرښتو! رسول الله ﷺ وفرمایل نه! له دوي نه پرته وبنایئ! عرض یې وکړ چې د پیغمبرانو! رسول الله ﷺ وفرمایل هر کله چې په هغوی باندې وحې نازلېږي نو د هغوی لپاره د دې مرتبې حاصلولو نه کوم شی مانع دی؟ د دوی نه علاوه اوبنایئ! صحابه وو عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! هم تاسو یې مونږ ته اوبنایئ! نو ویې فرمایل چې دا هغه خلک دي چې تاسو نه وروسته به راځي او لیدلو نه بغیر به په ما ایمان راوړی دا دی هغه خلک چې د چا مرتبه به د قیامت په ورځ د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد له ټول مخلوق نه زیاته وي.(۲)

حضرت ابو جمعه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې یوه ورځ مونږ د رسول الله ﷺ سره د غرمې دوډۍ و خوړله مونږ سره حضرت ابوعبیده بن جراح رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هم وو، هغه وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! مونږ ستاسو په لاس مسلمانان شو او مونږ تاسو سره جهاد وکړ آیا زمونږ نه هم څوک افضل کېدای شي؟ هغوی وفرمایل هو! هغه خلک چې زما نه پس وي او زما لیدلو نه بغیر به په ما باندې ایمان راوړي. (۳)

حضرت ابو امامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل چې یو ځل دې زېری وي هغه سړی لپاره چا چې زه ولیدم او بیا یې په ما باندې ایمان راوړو او اووه ځله دې زېری وي هغه

---

۱: اخرجه ابويعلى قال الهيثمي (۱۰/۶۵ رواه ابويعلى ورواه البزار.

۲: رواه البزار قال الهيثمي الصواب انه مرسل عن زيد بن اسلم واحد اسنادى البزار المرفوع حسن انتهى.

۳: عند احمد قال الهيثمي ۱۰/۶۶ رواه احمد وابويعلى والطبراني باسانيد واحد اسانيد احمد رجاله ثقات انتهى.

سړی لپاره چا چې زه نه یم لیدلي او بیا یې په ما باندې ایمان راوړو.(۱)

**د رسول الله ﷺ دا تمنا او توقع چې کاش خپل وروڼه یې لیدلي وو:**

حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل چې زما نه پس به داسې خلک راځي چې په هغوی کې به هر یو دا ارزو کوي چې زما د ملاقات په بدله کې خپل بال بچ، مال دولت په فدیه کې ورکړي.(۲)

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل زما ډېره ارزو ده چې ما خپل وروڼه لیدلي واي چې پرته له لیدلو به په ما باندې ایمان راوړي.(۳)

په یو روایت کې دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل زما به د خپلو ورونو سره ملاقات کله کېږي؟ صحابه وو عرض وکړ آیا مونږ ستاسو وروڼه نه یو!؟ رسول الله ﷺ وفرمایل تاسو خو زما صحابه هم یئ! او وروڼه هم یئ! زما روڼه خو هغه خلک دي چې پرته لیدلو نه په ما باندې ایمان راوړي.(٤)

## د پیغمبر ﷺ د امت فضائل

حضرت عمار بن یاسر فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل چې زما د امت مثال په شان د باران دی چې د هغه پته نه لګېږي چې په اوله حصه کې یې خیر دی یا په اخره برخه کې.(۵)

حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ نه نقل کوي چې د الله رب العزت څه فرشتې داسې دي چې هغوی هر وخت په زمکه ګرځي راګرځي او زما د امت د طرف نه ما ته سلام رارسوي زما ژوند ستاسو لپاره خیر دی تاسو ما سره خبرې کوئ! او د شرعي احکامو ما نه پوښتنه کوئ! زه ستاسو د سوالونو د ځوابولو لپاره تاسو سره خبرې کوم او زما وفات به هم ستاسو لپاره خیر وي او هغه په دا شان چې ستاسو عملونه به ما ته وړاندې کېږي په دغه عملونو کې چې کوم ښه عملونه ما ته په نظر راځي په هغې به د الله جَلَّ جَلَالُهُ حمد وایم چې د هغه په توفیق سره وشو او کوم بد عملونه چې وینم په هغې به ستاسو لپاره

---

۱: عند احمد قال الهیثمی ۱۰/٦٧ رواه احمد والطبرانی باسانید ورجالها رجال الصحیح غیر ایمن بن مالک الاشعري وهو ثقة انتهی.

۲: اخرجه البزار قال الهیثمی ۱۰/٦٦ وفیه عبدالرحمن بن ابی الزناد وحدیثه حسن وفیه ضعف وبقیة رجاله ثقات.

۳: عند احمد قال الهیثمی ۱۰/٦٦ رواه احمد وابویعلی.

٤: رواه ابو یعلی قال الهیثمی وفی رجال ابی یعلی محتسب ابوعائذ وثق ابن حبان وضعفه ابن عدی وبقیة رجال ابی یعلی رجال الصحیح غیر الفضل بن الصباح و هو ثقة وفی اسناد احمد جسر و هو ضعیف ورواه الطبرانی فی الاوسط ورجاله رجال الصحیح غیر محتسب انتهی.

۵: عند احمد والبزار والطبرانی قال الهیثمی ۱۰/٦٨ ورجال البزار رجال الصحیح غیر الحسن بن قزعة وعبید بن سلیمان الاغروهما ثقتان وفی عبید خلاف لایضر الذهبی واخرجه البزار وغیره عن عمران والطبرانی عن ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کما فی المجمع ۱۰/٦٨ وقال ابن حجر فی الفتح وهو حدیث حسن له طرق قد یر تقی بها الی الصحة قاله المناوی ۵/۵۱۷ .

د اللهﷻ نه ببښنه وغواړم.(۱)

**د دې امت عذاب په دنيا کې قتل او وژل دي:**

حضرت ابو برده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې زه د ابن زياد سره ناست وم حضرت عبد الله بن يزيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم ورسره موجود وو، هغه ته د خارجيانو سرونه پرېکړي راوړل شول کله چې به يې يو سر راواخيسته او تېرېده به نو ما ويل چې دا به د دوزخ اُور ته ځي حضرت عبدالله بن يزيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل اې زما وُراره! داسې مه وايه! ځکه چې ما د رسول اللهﷺ نه دا فرمان اورېدلی دی چې ددې امت د ګناهونو عذاب په دُنيا کې وي يعنې کېدای شي چې دا کوم خارجيان قتلولاي شي نو د دې دنياوي سزا نه پس به دوي ته په آخرت کې عذاب نه وي.(۲)

حضرت ابو برده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې زه د عُبيد الله بن زياد د خوا نه بهر ته راووتلم نو ما وليدل چې هغه (خوارجو ته) ډېره سخته سزا ورکوي نو زه د رسول اللهﷺ يو صحابي سره کېناستم هغه وويل چې رسول اللهﷺ و فرمايلي دي چې ددې اُمت سزا به په دنيا کې تورې سره قتل کول يا وژل وي.(۳)

# د مسلمانانو د مال او وينو حرمت

**د مسلمان د قتلولو په باره کې احاديث:**

ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د رسول اللهﷺ په زمانه کې يو سړی قتل شو او د هغه د قتل پته ونه لګېده دا خبره يې چې واورېده نو رسول اللهﷺ په خپل منبر تشريف فرما شو او ويې فرمايل اې خلکو! دا څه خبره ده؟ زه په تاسو کې موجود يم او يو سړی قتل شو او د هغه د قاتل پته نه لګي که چېرې ټول اسمان او زمکې والا يو ځای شي او يو مسلمان قتل کړي نو هم به اللهﷻ هغوی ته بې حده عذاب ورکړي.(۴)

---

۱: اخرجه البزار قال الهيثمي ۹/۲۴ رواه البزار ورجاله رجال الصحيح انتهى.

۲: اخرجه البيهقي كذا في الكنز ۳/۸۵ واخرجه ابو نعيم في الحلية (ج۸ص۳۰۸) عن ابي بردة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بنحوه ولفظه في المرفوع ان الله جعل عذاب هذه الامة في الدنيا القتل واخرجه الطبراني في الكبير والصغير باختصار والاوسط كذلک ورجال الكبير رجال الصحيح كما قال الهيثمي ۷/۲۲۵

۳: عند الطبراني قال الهيثمي (۷/۲۲۵ ورجاله رجال الصحيح

۴: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ۷/۲۹۷ رجاله رجال الصحيح غير عطاء بن ابي مُسلم وثقه ابن حبان وضعفه جماعة انتهى.

حضرت ابو سعید رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې يو سړی قتل شو، رسول الله ﷺ د بيان لپاره په منبر تشريف فرما شو بيا يې درې ځله پوښتنه وکړه چې آيا تاسو ته پته ده چې ستاسو د ټولو په موجودګۍ کې دی چا وژلی دی؟ صحابه وو عرض وکړ نه! ويې فرمايل په هغه ذات مې دې قسم وي چې د هغه په قبضه کې د محمد ﷺ ساه ده که چېرې د ټولو اسمانونو او زمکو والا يو ځای شي او يو مؤمن اووژني نو هم به الله ﷻ دا ټول په جهنم کې داخل کړي او مونږ سره يعنې کورو الاوو سره چې څوک هم بُغض وساتي هغه به الله جَلَّ جَلَالُهُ پرمخې د جهنم اور ته داخل کړي.(١)

**د هغه چا قتلول چې کلمه ووايي:**

حضرت اسامه بن زيد رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ مونږ د جُهينه قبيلې يوې برخې بنو حُرقه طرف ته ولېږلو مونږ په هغوی باندې سهار، سهار حمله وکړه په هغوی کې يو سړی داسې وو کله چې به هغوی زمونږ خواته رامخکې شو نو هغه به د ټولو نه سخته حمله کوله او کله چې به هغوی وروسته کېدل نو ده به د هغوی حفاظت کولو، ما وويل چې لا اله الا الله دې اورېدو سره انصاري خو منع شو خو ما هغه قتل کړ کله چې رسول الله ﷺ ته د دې واقعې پته ولګېده نو ويې فرمايل اې أسامه! آيا تا هغه د لا اله الا الله ويلو نه پس قتل کړ؟ ما عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! هغه خو د قتل نه بچ کېدلو لپاره ويلې وه د مسلمانېدو لپاره يې نه وه ويلې خو رسول الله ﷺ به خپله خبره بار بار کوله تر دې چې زما د دې خبرې ارزو پيدا شوه چې زه هم نن مسلمان شوی وی او زما نه دا ګناه نه وای شوې.(٢)

د ابن اسحاق په روايت کې دا دی کله چې مونږ د رسول الله ﷺ خدمت ته واپس ورغلو نو مونږ ورته دا خبره هم وکړه رسول الله ﷺ وفرمايل اې اسامه! کله چې ستا نه د دې لا اله الا الله په باره کې پوښتنه وکول شي نو هغه وخت به ستا څوک مددګار وي؟ ما عرض وکړ! اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! هغه خو يوازې له قتل نه بچ کېدو لپاره دا کلمه ويلې وه هغوی ﷺ وفرمايل کله چې ستا نه د دې لا اله الا الله باره کې پوښتنه وکول شي نو هغه وخت به ستا څوک مددګار وي؟ په هغه ذات مې دې قسم وي! چا چې رسول الله ﷺ ته حق ورکړی او را لېږلی يې

١: عند البزار قال الهيثمي ٧/٢٩٦ وفيه داود ابن عبدالمجيد وغيره من الضعفاء انتهى.

٢: اخرجه احمد واخرجه البخاري ومسلم ايضاً

دي، رسول الله ﷺ دا جمله دومره ځله وویله چې ما دا ارزو وکړه چې زه د نن نه مخکې مسلمان شوی نه واي بلکې زه نن مسلمان شوی وای او یا ما هغه نه واي قتل کړي!

ما عرض وکړ زه د الله جَلَّ جَلَالُهُ سره وعده کوم چې د لا اله الا الله ویونکی یو مسلمان به کله هم نه قتلوم، رسول الله ﷺ وفرمایل اې اسامه! زما نه وروسته هم؟ ما عرض وکړ چې له تاسو نه وروسته هم! (۱)

حضرت اسامه بن زید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې ما او یو انصاري مرداس بن نهیک ونیو او کله چې مونږه په هغه باندې توره اوچته کړه نو هغه وویل (اشهد ان لا اله الا الله) دا چې مونږ واورېدل نو منع نه شو بلکې هغه مو قتل کړ مخکې یې د ابن اسحاق په شان روایت ذکر کړی دی .(۲)

په یو روایت کې دا دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل هغه (لا اله الا الله) وویله او تاسو هغه قتل کړ؟ ما وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! هغه خو کلمه یوازې د وسلې له وېرې نه ویلې وه هغوی ﷺ وفرمایل چې تاسو د هغه زړه د کتلو لپاره ولې څیرې نه کړ؟ چې په هغې سره تاسو ته پته لګېدلې واې چې هغه د وسلې د وېرې نه کلمه ویلې او که صحیح یې ویلې؟ د قیامت په ورځ کله چې د (لا اله الا الله) باره کې ستاسو نه پوښتنه وشي نو هغه وخت به ستاسو مددګار څوک وي؟ رسول الله ﷺ خپله خبره باز بار کوله چې ما دا آرزو وکړه چې زه نن مسلمان شوی وای!(۳)

**د رسول الله ﷺ او بکر بن حارثه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ واقعه:**

حضرت بکر بن حارثة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ یوه دله ولېږله زه هم ورسره لاړم زمونږ او د مشرکانو جنګ وشو ما په یو مشرک باندې حمله وکړه نو هغه د اسلام د راوړلو اظهار کولو سره ځان بچ کول وغوښتل ما بیا هم هغه قتل کړ کله چې رسول الله ﷺ ته دا خبره ورسېده نو هغوی خفه شو او زه یې د خپل ځان نه لرې کړم بیا الله رب العزت دا آیت په وحې کې راولېږه : وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ أَنْ يَقْتُلَ مُؤْمِنًا إِلَّا خَطَئًا (٤)

---

۱: كذا في البداية ۴/۲۲۲

۲: اخرجه ابن عساكر

۳:اخرجه ابو داود والنسائي والطحاوي وابو عوانة وابن حبان والحاكم وغيرهم كذا في الكنز العمال ۱/۷۸ واخرجه البيهقي ۸/۱۹۲

٤: (سورة النساء آيت ۹۲)

ترجمه: او د هيڅ يو مؤمن دا شان نه دی چې يو مؤمن قتل کړي مګر په خطا سره څرنګه چې ما هغه په خطايي سره قتل کړی وو نو رسول الله ﷺ زما نه راضي شو او زه يې ځان ته نيزدې کړم.(۱)

**د مسلمان د قاتل نه د رسول الله ﷺ مخ مبارک اړول:**

حضرت عقبه بن خالد ليثي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ يوه ډله ولېږله چې هغوی په يو کافر قوم باندې چاپه ووهله يو کافر سړی زورور حمله وکړه نو يو مسلمان راوېستلې توره واخيستله هغه پسې شو کله چې هغه مسلمان دغه کافر وواژه نو هغه کافر وويل چې زه مسلمان يم، زه مسلمان يم! دې مسلمان د هغه په خبره هيڅ سوچ ونه کړ بلکې په توره يې وواهه قتل يې کړ، دا خبره تر رسول الله ﷺ پورې ورسېدله هغوی ﷺ د دغه مسلمان قاتل په باره کې سخته خبره وفرمايله چې هغه قاتل ته اورسېده، يوه ورځ رسول الله ﷺ خطبه ورکوله چې په دې کې هغه مسلمان قاتل وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! هغه خو صرف د قتل نه د بچ کېدو لپاره ويلي وو چې زه مسلمان يم رسول الله ﷺ د دغه قاتل مسلمان نه او د هغه د طرف د ټولو خلکو نه مخ وګرځاوه او خطبه يې ورکوله دې مسلمان دوباره وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! هغه خو صرف د قتل نه د بچ کېدو لپاره ويلي وو چې زه مسلمان يم. رسول الله ﷺ د دغه مسلمان نه او د هغه د طرف د ټولو خلکو نه مخ وګرځاوه او خطبه يې ورکوله خو د دې مسلمان نه صبر ونشو او په دريم ځل يې دغه خبره وکړه نو په دې ځل رسول الله ﷺ هغه خوا ته متوجه شو او په مخ مبارک يې ناخوښي صفا معلومېده. هغوی ﷺ درې ځل وفرمايل چې الله جَلَّ جَلَالُهُ زه د يو مسلمان د قتل نه منع کړي يم.(۲)

**د حضرت مقداد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ واقعه:**

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ يوه ډله ولېږله چې په کې حضرت مقداد بن اسود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم وو کله چې دا خلک کافرانو ته ورسېدل نو وې ليدل چې هغوی ټول اخوا دېخوا خواره شوی دی البته يو سړی هلته ناست دی هغه د خپل ځای نه

۱: اخرجه الدولابی وابن منده وابو نعيم كذا فی الكنز ۷/۳۱۶

۲: اخرجه ابو يعلي قال الهيثمی ۷/۲۹۳ رواه ابو يعلی واحمد باختصار الا انه قال عقبة بن مالک بدل عقبة بن خالد والطبرانی بطوله ورجاله رجال الصحيح غير بشر بن عاصم الليثی وهو ثقة انتهی واخرجه ايضاً النسائی والبغوی وابن حبان وعقبة بن مالک كما فی الاصابة ۲/۲۹۱ والخطيب فی المتفق والمفترق كما فی الكنز ۱/۷۹ عن عقبة بن مالک نحوه والبيهقی ۹/۱۱۶ وابن سعد ۷/۴۸ عن عقبة بن مالک بنحوه

اونه خوزېده او ورسره ډېر مال وو مسلمانان يې چې وليدل نو هغه وويل (اشهد ان لا اله الا الله). حضرت مقداد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورمخکې شو او هغه يې قتل کړيو ملګري ورته وويل آيا تا داسې سړی وواژه چې هغه کلمه شهادت (اشهد ان لا اله الا الله) وويله زه به دا خبره رسول الله ﷺ ته خامخا کوم! کله چې دا خلک د رسول الله ﷺ په خدمت کې واپس ورسېدل نو هغوی وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! يو سړی د شهادت کلمه (اشهد ان لا اله الا الله) وويل خو حضرت مقداد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه قتل کړ، رسول الله ﷺ وفرمايل چې مقداد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوغواړئ! او ما ته يې راولئ! کله چې هغه راغی نو رسول الله ﷺ وفرمايل اې مقداده! آيا تا داسې سړی قتل کړ چې هغه (لا اله الا الله) وويله؟ ته به صبا د (لا اله الا الله) د مطالبې په وخت څه کوې؟ په دې خبره الله جَلَّ جَلَالُهُ دا آيت نازل کړ:

**يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا ضَرَبْتُمْ فِي سَبِيلِ اللهِ فَتَبَيَّنُوا وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ أَلْقَى إِلَيْكُمُ السَّلَمَ لَسْتَ مُؤْمِنًا تَبْتَغُونَ عَرَضَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فَعِنْدَ اللهِ مَغَانِمُ كَثِيرَةٌ كَذَٰلِكَ كُنْتُمْ مِنْ قَبْلُ فَمَنَّ اللهُ عَلَيْكُمْ فَتَبَيَّنُوا إِنَّ اللهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا** (۱)

ترجمه: اې ايمان والو! کله چې تاسو د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې سفر کوئ! نو هر کار د تحقيق نه پس کوئ! او داسې سړی ته دا مه وايئ! چې ته مسلمان نه يې! څوک چې ستا په مخکې تابعداري ښکاره کړي د دنياوي ژوند د سامان په خواهش کې ځکه چې الله جَلَّ جَلَالُهُ سره د غنيمت ډېر مال دی مخکې تاسو هم داسې وئ! بيا الله رب العزت په تاسو باندې احسان وکړ پس غور کوئ! بېشکه الله جَلَّ جَلَالُهُ ستاسو د اعمالو نه ښه خبر دی. بيا رسول الله ﷺ حضرت مقداد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل چې هغه يو مؤمن سړی وو چې خپل ايمان يې پټ ساتلی وو خو هغه کافرانو سره اوسېده هغه ستا په مخکې د خپل ايمان اظهار وکړ تا هغه قتل کړ او تا به هم مخکې په مکه کې خپل ايمان پټ ساته.(۲)

**د حضرت مُحلِّم بن جثّامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د قتل واقعه:**

حضرت عبد الله بن حدرد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ مونږ د مسلمانانو له يوې ډلې سره اضم نومي ځای ته ولېږلو په دغه ډله کې حضرت ابو قتاده حارث بن ربيعي او محلم بن

---

۱: (سورة النساء آیت ۹۴)

۲: اخرجه البزار قال الهیثمی ۸/۹ رواه البزار واسناده جید وقال فی هامشه رواه الطبراني ایضاً فی الکبیر والدار قطنی فی الافراد.

جثامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هم وو نو مونږ د مدینې منورې نه روان شو او د اضم مقام د ننه برخې ته ورسېدو. هلته مونږ سره عامر بن اضبط اشجعي تېر شو هغه په خپل اوښ باندې سور وو هغه سره لږ شان سامان او د پیو یو مشک هم وو هغه مونږ ته د اسلام والا سلام وکړ مونږ خو چې سلام واورېده نو هغه باندې د حملې کولو نه منع شو خو حضرت محلم بن جثامه په هغه باندې حمله وکړه د هغه د دشمنۍ په وجه یې قتل کړ چې د دوې دواړو په مینځ کې د مخکې نه وه. کله چې مونږ رسول الله ﷺ ته واپس ورسېده نو مونږ رسول الله ﷺ ته ټوله کارګذاري واوروله په دې باندې زمونږ باره کې قرآن دا آیت نازل شو:

يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوٓا إِذَا ضَرَبْتُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَتَبَيَّنُوا وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ أَلْقَىٰٓ إِلَيْكُمُ السَّلَٰمَ لَسْتَ مُؤْمِنًا تَبْتَغُونَ عَرَضَ الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا فَعِندَ اللَّهِ مَغَانِمُ كَثِيرَةٌ كَذَٰلِكَ كُنتُم مِّن قَبْلُ فَمَنَّ اللَّهُ عَلَيْكُمْ فَتَبَيَّنُوٓا إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا (۱)

ترجمه یې مخکې تېره شوه.

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ حضرت ملحم بن جثامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په یو جماعت کې ولېږه عامر بن اضبط د دغه خلکو سره ملاو شو او هغه دوي ته د اسلام والا سلام وکړ د عامر او حضرت محلم په مینځ کې د جاهلیت په زمانه کې دشمني وه حضرت محلم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په غشي باندې عامر وویشته او قتل یې کړ. دا خبره رسول الله ﷺ ته ورسېده نو حضرت عیینه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د عامر په حمایت کې او حضرت اقراع رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت محلم په حمایت کې رسول الله ﷺ سره خبره وکړه نو حضرت اقراع رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! نن خو تاسو حضرت محلم معاف کړه! آئنده یې مه معاف کوئ! حضرت عیینه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل نه، نه، په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! بلکل یې مه معاف کوئ! بلکې بدله ترې واخلئ! دې لپاره چې زما په ښځو باندې چې د عامر د قتل په وجه کوم تکلیف او غم راغلی دی هغه د حضرت محلم په ښځو باندې هم راشي په دې کې حضرت محلم دوه څادرونه اغوستي وو راغی او رسول الله ﷺ ته مخامخ کېناسته دې لپاره چې رسول الله ﷺ د هغه لپاره مغفرت وغواړي خو رسول الله ﷺ و فرمایل الله جَلَّ جَلَالُهُ دې ستا مغفرت ونه کړي هغه چې دا

---

۱: (سورت النساء آیت ۹۴) اخرجه ابن اسحاق وکذا رواه احمد من طریق ابن اسحق کذا فی البدایة ۴/۲۲۴ والطبرانی کذالک قال الهیثمی ۷/۸ ورجاله ثقات والبیهقي ۹/۱۱۵ وکذالک ابن سعد ۴/۲۸۲ نحو.

واوریدل نو په ژړا شو او هغه په خپلو څادرونو خپلې اوښکې پاکې کړې او د هغه ځای نه پاڅېده او اووه ورځې لا نه وې تېرې شوې چې هغه وفات شو صحابه کرامو رضي الله عنهم هغه دفن کړ خو زمکې هغه بهر راا وغورځولو صحابه رضي الله عنهم راغلل رسول الله ﷺ ته یې دا واقعه واوروله، رسول الله ﷺ وفرمایل چې زمکه خو د ده نه هم زیات بد قبلوي خو الله ﷺ دا واقعه وښودله دا یې وغوښتل چې د مسلمان د عزت باره کې تاسو ته پوخ نصیحت حاصل شي بیا صحابه وو رضي الله عنهم د هغه لاش د یو غر د دوو غارو په مینځ کې کېښودو او د پټولو لپاره یې په هغه باندې کاڼي کېښودل و دا آیت شریف نازل شو: يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا ضَرَبْتُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَتَبَيَّنُوا وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ أَلْقَى إِلَيْكُمُ السَّلَامَ لَسْتَ مُؤْمِنًا تَبْتَغُونَ عَرَضَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فَعِنْدَ اللَّهِ مَغَانِمُ كَثِيرَةٌ كَذَٰلِكَ كُنْتُمْ مِنْ قَبْلُ فَمَنَّ اللَّهُ عَلَيْكُمْ فَتَبَيَّنُوا إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا(١)

ترجمه یې مخکې تېره شوې ده.

**د مؤمن قاتل زمکې هم را بېرون کړو:**

حضرت قبیصه ابن ذُویب رضي الله عنه فرمایي چې د رسول الله ﷺ یو صحابي د کافرانو په یوه ډله باندې چاپه اووهله، هغه ډلې ته شکست وشو دغه صحابي په تېښته کې یو سړی پسې شو او هغه ته وورور سېدو کله چې یې په هغه باندې د تورې ګوزار کولو نو هغه وویل (لا اله الا الله) خو دا صحابي منع نه شو او قتل یې کړ دغه صحابي خو قتل وکړ خو وروسته بیا دغه صحابي ډېر غمجن شو هغه لاړ او خپله ټوله خبره یې رسول الله ﷺ ته بیان کړه او عرض یې وکړ چې هغه صرف خپل ځان بچ کولو لپاره کلمه ویلې وه. رسول الله ﷺ وفرمایل تا د هغه زړه کتلو لپاره ولې څېرې نه کړ؟ ځکه چې د زړه خبره هم په ژبه باندې کېږي لږه موده پس د دې قاتل د غم او فکر له وجې نه وفات شو کله چې هغه دفن کړی شو نو د سهار په وخت کې په مکه د پاسه پروت بیا موندلای شو زمکې هغه بهر وغورځولو د هغه د کور خلک رسول الله ﷺ ته راغلل او د دې ذکر یې وکړ رسول الله ﷺ وفرمایل چې دوباره یې ښخ کړئ! نو دوباره ښخ کړی شو نو بیا د سهار په وخت کې په زمکه بیا موندلی شو د هغه د کور والاو رسول الله ﷺ ته وویل رسول الله ﷺ وفرمایل چې زمکې د ده قبلولو نه انکار کړی دی نو دې چېرته په غار کې ورواچوئ!(٢)

---

١: (سورة النساء آیت ٩٤) عنده إبن جریر من طریق ابن اسحاق كذافي البداية ٤/٢٢٥

٢: اخرجه عبدالرزاق وابن عساكر كذا في الكنز ٧/٣١٦

**دبني جَذيمه اوخالدبن وليد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ واقعه:**

حضرت ابو جعفر محمد بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي كله چې مكه فتح شوه رسول الله ﷺ حضرت خالد بن وليد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دعوت وركولو لپاره ولېږه او هغه يې د جنګ كولو لپاره ونه لېږه هغه سره سُليم بن منصور قبيله او مذلج بن مره قبيله او نورې دېرې قبيلې وې كله چې دا حضرات د بنو خزيمه بن عامر بن عبدِ منات بن كنانه قبيلې ته ورسېده او هغوی دا حضرات وليدل نو هغوی خپلې وسلې را اوچتې كړې حضرت خالد بن وليد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل: تاسو وسلې كېږدئ! ځكه چې ټول خلک مسلمانان شوي دي تاسو د ټولو مسلمانانو مقابله نه شئ! كولاي كله چې هغوی وسلې كېښودلې نو د حضرت خالد بن وليد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په وينا د هغوی لاسونه اوتړلي شو بيا يې د هغوی نه دېر قتل كړل كله چې دا خبر رسول الله ﷺ ته ورسېده نو دواړه لاسونه يې اسمان خواته اوچت كړل او ويې فرمايل اي الله جَلَّ جَلَالُهُ خالد بن وليد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې څه كړي دي زه د هغې نه بري يم! بيا يې حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ر وغوښتلو او ورته يې وفرمايل اې علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغو خلكو ته ورشه! او د هغوی په معامله كې غور وكړه! او د جاهليت خبرې د خپلو دواړو خپو لاندې كړه حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځان سره دېر سامان واخيسته او هغو خلكو ته ورغی دا مال هغه ته رسول الله ﷺ وركړی وو نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه ټولو قتل شوو خون بها اداء كړه او د هغوی نه چې څومره مال اخيستلاي شوي وو د هغې بدله يې هم وركړه تر دې چې د سپيو، د اوبو څښلو د لوښو بدله يې هم وركړه تر دې چې د دغه قبيلې د طرفه د مرګ څه مطالبه پاتې شوه او نه د څه قسمه د مال.

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره يو څه مال باقي پاتې شو چې فارغ شو نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمايل آيا داسې جاني يا مالي نقصان باقي پاتې شوی دی چې د هغې بدله تاسو ته نه وي ملاو شوې هغه خلكو وويل نه! حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل كېداى شي چې داسې مالي يا جاني نقصان اوس هم پاتې وي چې د هغې تاسو ته پته نه وي او نه د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسول ﷺ ته، له دې وجې نه دا څومره مال چې پاتې شوي دا ټول مال زه تاسو ته احتياطاً دركوم نو هغه پاتې ټول مال يې هم هغوی ته وركړ او واپس ورسېدو. رسول الله ﷺ ته يې ټوله كار ګذاري واوروله. رسول الله ﷺ وفرمايل تا سم او ښه كار وكړ بيا رسول الله ﷺ

ودریده او قبیلې خواته یې مخ کړ او خپل دواړه لاسونه یې دومره اوچت کړل چې ترخونو لاندې حصه یې ښکاره شوه او درې ځل یې وفرمایل اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! خالد بن ولید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چې څه کړي دي زه د هغې نه بري یم.(۱)

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ حضرت خالد بن ولید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د بنو خزیمه قبیلې خواته ولیږه حضرت خالد بن ولید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه خلکو ته د اسلام دعوت ورکړ هغوی خو مسلمانان شول خو اسلمنا مونږ مسلمانان شو یې ونه ویل. صبانا صبانا یعنې مونږ دین بدل کړ، یې وویل حضرت خالد بن ولید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تول ونیوه مونږ کې هریو ته یو یو قیدي راکړیوه ورځ چې صبا شو حضرت خالد بن ولید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حکم وکړ چې په مونږ کې هریو خپل قیدي قتل کړئ! ما وویل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! نه به زه خپل قیدي قتل کړم او نه به زما په ملګرو کې څوک دا کار وکړي ملګري واپس ورسېدل رسول الله ﷺ ته یې د حضرت خالد بن ولید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د دې کار خبر ورکړ رسول الله ﷺ خپل دواړه لاسونه اوچت کړل او دوه ځل یې وفرمایل اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! کوم څه چې خالد بن ولید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کړي دي زه د دې نه بري یم.(۲)

ابن اسحاق وایي کوم روایت چې ما ته را رسېدلی دی په هغې کې دا دي چې د حضرت خالد بن ولید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خپلو کې د دې باره کې تېزې خبرې اترې هم شوې وې نو حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت خالد بن ولید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وویل چې ته په اسلام کې د جاهلیت والا کار کوې! حضرت خالد بن ولید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل چې ما خو ستا د پلار د قتل بدله اخیستې ده حضرت عبدالرحمن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل چې غلط وایې! د خپل پلار قاتل خو ما په خپله قتل کړی وو تا د خپل تره فاکه بن مغیره بدله اخیستې ده! په دې باندې د دواړو حضراتو خبرې زیاتې شوې کله چې رسول الله ﷺ ته د دې خبرې پته ولګېده نو ویې فرمایل اې خالده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په نرمۍ سره خبرې کوه! زما مخکیني صحابه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ پرېږده! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! که چېرې تا سو ته د احد د غره هومره سره زر درکړل شي او بیا هغه د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې

۱: اخرجه ابن سعد

۲: عند احمد ورواه البخاری والنسائي من حدیث عبدالرزاق بنحوه.

خرچ کړئ! بیا هم تاسو زما مخکیني صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ کې د یو کس د یو صبا یا دیو بیګاه اجر ته نه شئ! رسېدلای.(۱)

**د حضرت صَخرِ احمسی او رسول الله ﷺ واقعه:**

حضرت صخر احمسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ د بنوثقیف قبیلې سره جنګ لپاره لاړنو کله چې حضرت صخر دا خبره واورېده نو د رسول الله ﷺ امداد کولو لپاره په اسونو سورو یوه ډله یې ځان سره کړه لاړل کله چې هغه د رسول الله ﷺ خدمت ته ورسېدو نو رسول الله ﷺ واپس مدینې منورې ته تللي وو او د رسول الله ﷺ ثقیف قلعه او محل تر اوسه پورې فتح شوی نه وو حضرت صخر لوظ وکړ چې زه به د هغه وخته پورې دا قلعه او محل نه پرېږدم تر څو پورې چې د دې قبیلې والا د رسول الله ﷺ فیصله ونه مني نو هغه هم هلته ایسار شو او هغه وخت دغه قلعه او محل پرېښودل کله چې هغوی د رسول الله ﷺ فیصله ومنله او د رسول الله ﷺ په خدمت کې یې دا ولیکه: اما بعد! اې د الله رسوله ﷺ! بنوثقیف قبیلې ستاسو فیصله منلې ده زه هغوی ځان سره درولم هغوی زما د اسونو سوارو سره دي رسول الله ﷺ د جمعه کولو لپاره د الصلاة الجامعة اعلان وکړ چې لمونځ ته د ټول راشي څه اهم کار دي بیا رسول الله ﷺ د حضرت صخر قبیلې احمس لپاره لس کرته دا دعا وکړه! اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! د احمس قبیلې سوارو او پیاده خلکو کې برکت واچوې! کله چې دا خلک راغلل نو حضرت مغیره بن شعبه د رسول الله ﷺ سره خبره وکړه او عرض یې وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما ترور حضرت صخر ګرفتاره کړې ده په داسې حال کې چې هغه هم په دې دین کې شامله شوې ده په کوم کې چې باقي ټول مسلمانان داخل دي. رسول الله ﷺ حضرت صخر راغوښتلو او ورته فرمایل اې صخر! کله چې یو قوم مسلمان شي نو اسلام راوړلو په وجه د هغوی مال او ځان ټول محفوظ کېږي له دې وجې نه مغیره ته د هغه ترور حواله کړه هغه حضرت مغیره ته د هغه ترور ورکړه او حضرت صخر د رسول الله ﷺ په خدمت کې عرض وکړ چې بنوسُلیم قبیله په یو اوبو یعنې یوه چینه باندې اوسېدل هغوی اسلام نه دی راوړی او هغوی چینه پرېښوده تښتېدلي دي. اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! هغه اوبه ما ته او زما قوم ته راکړئ! مونږ به هلته اوسېږو! رسول الله ﷺ وفرمایل صحیح ده او هغه اوبه یې هغوی ته ورکړې بیا بنوسُلیم قبیله مسلمانه شوه

---

۱: كذا في البداية ۴/۳۱۳

هغوی راغلل او د حضرت صخر رضی الله عنه نه یې د خپلو اوبو مطالبه وکړه هغه ورته دا اوبو ورکولو نه انکار وکړ هغوی رسول الله ﷺ ته راغلل او عرض یې وکړ چې اې د الله جل جلاله رسوله! مونږ مسلمانان شوي یو بیا مونږ حضرت صخر رضی الله عنه ته ورغلي یو دې لپاره چې هغه مونږ ته خپلې اوبه راکړي هغه انکار کړی دی بیا رسول الله ﷺ وفرمایل اې صخر ﷺ کله چې یو قوم مسلمان شي نو د هغوی ځان او مال تول محفوظ کیږي. همدارنګه د هغوی اوبه هغوی ته واپس ورکړه! حضرت صخر رضی الله عنه وویل د پره ښه اې د الله جل جلاله رسوله! حضرت صخر رضی الله عنه فرمایي مخکې رسول الله ﷺ زمانه د حضرت مغیره ترور بېرته ورکړه او اوس یې د بنو سُلیم او به هغوی ته واپس کولې له دې وجې نه رسول الله ﷺ د پر شرمېده نو ما وکتل چې د شرم له وجې نه د رسول الله ﷺ مخ مبارک په سُور والي کې بدلېده.(۱)

# د مسلمان نه قتلول او د بادشاهي لپاره جګړه نه خوښول

**د هغه چا دقتل نه منع چې د خدای په وحدانیت او پیغمبر په رسالت ګواهي وکړي:**

حضرت اوس بن اوس ثقفي رضی الله عنه فرمایي چې مونږ په مدینه منوره کې په مسجد نبوي کې د ننه په یوه خېمه کې اوسېدلو نو یو ځل رسول الله ﷺ مونږ ته راغی په دې کې یو سړی راغی او رسول الله ﷺ سره یې پټې پټې خبرې شروع کړې مونږ ته پته ونه لګېده چې هغه څه وایي هغوی وفرمایل چې لاړ شه! او هغه ته ووایه! چې هغه قتل کړي بیا رسول الله ﷺ هغه راوغوښته او ورته یې وفرمایل چې کېدای شي هغه د شهادت کلمه (اشهد ان لا اله الا الله و اشهد ان محمد الرسول الله) وایي هغه سړي وویل هو! هغه یې وایي رسول الله ﷺ وفرمایل چې لاړ شه! هغه ته ووایه! چې هغه پرېږدي ځکه چې ما ته د دې خبرې حکم راکړی شوی دی چې د خلکو سره جنګ وکړم تر دې چې هغوی د دې خبرې شاهدي وکړي، چې د الله جل جلاله نه پرته د عبادت مستحق نشته او زه د الله رب العزت رسول یم کله چې هغوی دا کلمه ووایي نو بیا د هغوی مال او ځان ما لپاره حرام دي البته که چېرې په هغوی باندې څه شرعي حق وي نو د هغې اخیستل جائز دي او د هغوی حساب به الله جل جلاله په خپله اخلي.(۲)

---

۱: اخرجه ابوداود تفرد به ابو داود وفی اسناده اختلاف کذا فی البدایة ۴/۳۵۱ واخرجه ایضاً احمد والدارمی وابن راهویه والبزار وابن ابی شیبة والطبرانی فی نصب الرایه ۳/۴۱۲ والفریابی فی سنده والبغوی وابن شاهین کما فی الاصابه ۲/۱۸۰ والبیهقی فی سننه ۹/۱۱۴

۲: اخرجه احمد والدارمی والطحاوی والطیالسی

حضرت عبدالله بن عدي انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ځل رسول الله ﷺ د خلكو په مينځ كې ناست وو چې په دې كې يو سړی د يو منافق د قتلولو باره كې د پټې خبرې د رسول الله ﷺ نه اجازه وغوښته رسول الله ﷺ هغه ته په اوچت اواز وفرمايل آيا هغه د (لا اله الا الله) شاهدي نه وركوي؟ هغه سړي وويل چې شاهدي خو وركوي خو د هغه د شاهدۍ څه اعتماد نشته بيا رسول الله ﷺ وفرمايل چې آيا هغه لمونځ نه كوي؟ هغه وويل چې كوي خو د هغه د لمونځ اعتماد نشته رسول الله ﷺ وفرمايل هم د دې خلكو د قتلولو نه زه منع شوی يم.(۱)

**د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ايساربدل او جنګ نه كول:**

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل چې ما له زما يو صحابي راوغواړه! ما وويل حضرت ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ؟ ويې فرمايل نه! ما وويل حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ؟ ويې فرمايل نه! ما وويل ستا د تره ځوي حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ؟ ويې فرمايل نه! ما وويل حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ؟ ويې فرمايل هو! كله چې هغه راغی نو ما ته يې وفرمايل چې لږ يو خوا ته شه! بيا يې حضرت عثمان سره په غوږ كې خبره شروع كړه او د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رنګ به بدلېده. كله چې به يو مدار راغی په كومه ورځ چې د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د كور نه ګيره واچول شوه او حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په كور كې بند كړی شو نو مونږ وويل اې امير المؤمنينه! آيا تاسو باغيانو سره جنګ نه كوئ!؟ ويې فرمايل نه! رسول الله ﷺ زما نه يوه وعده اخيستې وه زه به په هغه وعده باندې كلک اوسېږم.(۲)

**د مسلمان وينه د درې شيانو نه بغير نه حلالېږي:**

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كوم وخت ګير شو هغه وخت هغوی سر راوچت كړ او د هغه باغيانو نه يې پوښتنه وكړه چې تاسو ما ولې وژنئ؟ ځكه چې ما د رسول الله ﷺ نه اورېدلي دي چې د يو سړي وينه تويول يوازې د درې خبرو په وجه حلالېږي يا خو هغه د واده نه پس زنا وكړي په دې صورت كې به هغه رجم كولی شي يعني په كاڼو ويشتلو به وژل كېږي يا هغه څوک قصداً ووژل شي نو په دې صورت كې به هم هغه په بدله كې وژل كېږي يا د اسلام راوړلو نه پس نعوذا بالله من ذالک مرتد شي كه چېرې پوهولو

---

۱: عند عبدالرزاق والحسن بن سفيان كذافي كنز العمال ۱/۷۸

۲: اخرجه احمد تفردبه احمد كذا في البداية ۷/۱۸۱ واخرجه ابن سعد ۳/۴۶ عن ابي سهلة بمعناه اطول منه وزاد قال ابو سهلة فيرون انه ذالک اليوم.

سره اسلام ته واپس نه شو نو هغه به د ارتداد په سزا کې وژل کېږي، په الله جَلَّجَلَالُهُ قسم! ما نه کله د جاهلیت په زمانه کې زنا کړې ده او نه د اسلام راوړلو نه پس! او نه مې څوک وژلی دي! چې د هغې په بدله کې دې زه قتل کړی شم او نه زه د اسلام راوړلو نه پس مرتد شوی یم زه خو اوس هم مسلمان یم (اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمدا عبده ورسوله).(۱)

حضرت ابو امامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي کله چې حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په کور کې ګیر شوي وو زه هم هغه سره په کور کې وم په کور کې یو ځای داسې وو کله چې به مونږ په هغې کې داخلېدلو نو د هغه ځای نه د بلاط په مقام د ناستو خلکو تولې خبرې به مو اورېدلې یو ورځ حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د څه حاجت په وجه هغه ځای ته لاړ کله چې د هغه ځای نه بهر راغی نو د هغه رنګ بدل شوي وو هغوی وویل چې دغه خلک خو اوس ما ته د مرګ دهمکي راکوي مونږ وویل اې امیرالمؤمنینه! چې الله جَلَّجَلَالُهُ به هغوی ته ستاسو له طرفنه کافي شي بیا یې وفرمایل دا خلک ولې ما وژل غواړي؟ ځکه چې ما د رسول الله ﷺ نه اورېدلی دی چې د مسلمان وینه تویول صرف په درې وجو سره کېدای شي، یا خو چې د مسلمانېدو نه پس کافر شي، یا هم د واده نه پس زنا وکړي او یا هم په ناحقه یو انسان قتل کړي ما په دې درېواړو کې یو کار هم نه دی کړی په الله جَلَّجَلَالُهُ قسم! نه ما چېرې د جاهلیت په زمانه کې زنا کړې ده او نه د اسلام راوړلو نه پس او کله نه چې الله جَلَّجَلَالُهُ ما ته د دین اسلام هدایت کړی دی نو چېرې هم زما په زړه کې د دې دین د پرېښودلو او د یو بل دین اختیارولو ارزو نه ده پیدا شوې او نه ما څوک ناحقه وژلی دي نو اوس دا خلک ما په څه وجه وژل غواړي؟ (۲)

**محاصره کونکو ته د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پیغام:**

حضرت ابولیلي کندي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وایي چې په کومو ورځو کې حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خپل کور کې ګیر کړی شوی وو زه په هغه ورځو کې هلته وم یوه ورځ حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د کور نه سر ورښکاره کړ او باغیانو ته یې) وفرمایل اې خلکو! ما مه وژنئ! (که زما نه څه خطایې شوې وي نو په ما توبه اوباسئ! قسم په الله جَلَّجَلَالُهُ! که تاسو

---

۱: اخرجه احمد ورواه النسائي كذا في البداية ٧/١٧٩

۲: عنده احمد ايضاً وقدرواره اهل السنن الاربعة وقال الترمذي حسن كذا في البداية ٧/١٧٩ واخرجه ابن سعد ٣/۴٦ عن ابي امامه مثله.

ما مړ کړئ! نو بیا به چیرې هم نه تاسو یو ځائ لمونځ وکول شئ! او نه د دښمن سره جهاد وکول شئ! او په تاسو کې به اختلاف راشي او د دوا ړو لاسونو ګوتې یې په یو بل کې ورکړې او ویې فرمایل چې ستاسو حال به هم داسې شي بیا یې دا آیت شریف وفرمایه:

وَيَٰقَوْمِ لَا يَجْرِمَنَّكُمْ شِقَاقِيٓ أَن يُصِيبَكُم مِّثْلُ مَآ أَصَابَ قَوْمَ نُوحٍ أَوْ قَوْمَ هُودٍ أَوْ قَوْمَ صَٰلِحٍ ۚ وَمَا قَوْمُ لُوطٍ مِّنكُم بِبَعِيدٍ (۱)

ترجمه: اې زما قومه! زما ضد دې ستاسو لپاره د دې باعث و نه ګرځي چې په تاسو باندې هم هغسې مصیبتونه راشي څنګه چې په قوم نوح، قوم هود او قوم صالح باندې راغلی وو او قوم لوط خو اوس تاسو نه ډېره لرې زمانه کې نه دی تېر شوی.

حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عبد الله بن سلام ته سړی ولیږه او پوښتنه یې ترې وکړه چې ستا څه رائیه ده هغه جواب ورکړ چې تاسو خپل لاس د دې باغیانو نه بند وساتئ! دې سره به ستاسو دلیل زیات مضبوط وي د قیامت په ورځ.(۲)

**په یوم الدار کې د حضرت مغیرة بن شعبة او حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا واقعه:**

حضرت مغیره بن شعبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې په کومو ورځو کې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په کور کې ګېر شوی وو زه هغه له ورغلم او ورته مې وویل چې ته د ټولو خلکو امام یې او دا مصیبت چې کوم په تا راغلی دی هغه ته وینې! زه تا ته درې رایې درکوم په هغې کې چې ستا کومه خوښه وي اختیار یې کړه یا خو ته د کور نه بهر ته راشه او دې باغیانو سره جګړه وکړه څکه چې تاسره د مسلمانانو ډېر زیات تعداد او ډېر زیات قوت دی او بیا تاسو په حقه یئ! او دا باغیان په باطله دي یا ته د دې خپل کور نه بهر وتلو لپاره شاه خواته یو نوې دروازه پرانیزه څکه چې زړه دروازه باندې خو دا باغیان ناست دی او په دې نوې دروازه کې پټ شان بهر ته وځه! او په خپله سورلۍ باندې سور شه مکې ته لاړ شه! څکه چې دا باغیان په مکه کې ستا وینه تویول حلال نه ګڼي یا د شام ملک ته لاړ شه! هلته شام والا هم دی او حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم دی، حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یوه رائیه هم قبوله نه کړه او ویې فرمایل: زه د کور نه وځم او دې باغیانو سره جګړه وکړم دا نشي کېدلای زه نه غوارم چې د رسول الله ﷺ نه پس د هغوی په امت کې د ټولو نه اول د مسلمانانو د وینو تویولو والا زه جوړ شم باقي دا

---

۱: (سورة هود آیت ۸۹)

۲: اخرجه ابن سعد ۳/۴۹

مشوره چې زه مکې ته لاړ شم او هلته به دا باغیان زما وینه تویول حلال نه ګڼي نو دا هم نه شم اختیارولي ځکه چې ما د رسول الله ﷺ نه دا اورېدلي دي چې د قریشو یو سړی به په مکه کې د بې دینۍ خورولو ذریعه جوړېږي له دې وجې نه په هغه به د ټولې دنیا نیم عذاب وي زه نه غواړم چې زه هغه سړی جوړ شم او دریمه مشوره چې زه د شام ملک ته ولاړ شم هلته د شام والا هم دي او حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم دي نو زه خپل د هجرت کور (مدینه منوره) او د رسول الله ﷺ ګاونډیتوب نه شم پرېښودلی.(۱)

**په یوم الدار کې د بعض صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دجنګ نه منع کېدل:**

حضرت ابو هریرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي کله چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په کور کې ګیر وو زه هغه ته ورغلم او عرض مې وکړ چې اې امیر المؤمنینه ! اوس خو ستا لپاره دې باغیانو سره جګړه کول بالکل حلال شوي دي همدا رنګه تاسو د دوي سره جګړه وکړئ! او دوي وتښتوئ! حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل آیا ته په دې خبره خوشحالېږې! چې ټول خلک مړه کړې او ما هم؟ ما وویل نه! وې فرمایل که چېرې ته یو سړی مړ کړې نو ګواکې تا ټول خلک مړه کړل (ځنګه چې په سورة مائده آیت ۳۲ کې د دې بیان دي) دا مې چې واورېده نو زه واپس راغلم او د جګړې اراده مې پرېښوده.(۲)

حضرت عبد الله بن زُبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې عرض وکړ چې اې امیر المؤمنینه ! تاسو سره په دې کور کې داسې ډله ده چې د خپلو صفاتو په اعتبار سره د الله جَلَّ جَلَالُهُ د امداد هر قسم مستحق ده د دې نه په کم تعداد باندې الله جَلَّ جَلَالُهُ مرسته کوي تاسو ما ته اجازه راکړئ! چې زه دوي سره جګړه وکړم حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې زه تا ته د الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ واسطه درکوم او وایم چې هیڅوک دې زما له وجې نه نه خپله وینه تویئ کړي او نه د بل چا.(۳)

د ابن سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په یو روایت کې دا دي چې حضرت عبد الله بن زُبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې کوم وخت حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پخپل کور کې ګیر وو هغه وخت ورته ما وویل چې ته دې باغیانو سره جګړه وکړه په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! الله رب العزت دوي سره جګړه کول ستا لپاره حلال

---

۱: اخرجه احمد كذافي البداية ۷/۲۱۱ قال الهيثمي ۷/۲۳۰ رواه احمد ورجاله ثقاة الا ان محمد بن عبدالملک بن مروان لم اجدله سماعا من المغيرة اه.

۲: اخرجه ابن سعد ۳/۴۸ كذافي منتخب الكنز ۵/۲۵

۳: اخرجه ابن سعد ۳/۴۹

کړی دی ویې فرمایل نه په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه به دوي سره هیڅکله جګړه ونه کړم مخکې یې
نور حدیث هم بیان کړی دی حضرت عبدالله بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې د محاصرې په زمانه
کې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې په تاسو کې زما د ټولو نه زیات په کار راتلو هغه سړی
دې څوک چې خپل لاس او وسله بند وساتي باغیانو باندې لاس او چت نه کړي.(۱)
حضرت ابن سیرین رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت زید بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت
عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شو او عرض یې وکړ چې دا انصار په دروازه باندې
موجود دي او که چېرې تاسو وایئ! نو زمونږ به دوه ځل د الله جَلَّ جَلَالُهُ انصار جوړ شو وبه بنایو
یو ځل خو کله چې رسول الله ﷺ مدینې ته هجرت کړی وو او دویم ځل نن چې دې باغیانو سره
جګړه وکړو، حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې جنګېدل خو بالکل نشته دي.(۲)
حضرت ابن سیرین رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د محاصرې په زمانه کې د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ
سره د هغه په کوز کې داسې اووه سوه حضرات وو که چېرې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغوی
ته اجازه ورکړي واي نو دغو حضراتو به په وهلو وهلو باغیان د مدینې نه بهر وېستلي واي
په دغو حضراتو کې حضرت ابن عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت
عبدالله بن زُبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم وو.
حضرت عبدالله بن ساعده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: چې حضرت سعد بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت
عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شو او عرض یې وکړ اې امیر المؤمنینه! ته به تر کومې
پورې زمونږ لاسونه بند ساتې؟ مونږ خو دې باغیانو خلکو وخوړو څوک په مونږ باندې غشي
واروي څوک په مونږ باندې کاڼي ولي، چا تورې راوېستلي دي دا رنګه تاسو مونږ ته دوي سره
د جګړې حکم راکړئ! حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زما خو دوي
سره بلکل د جنګېدلو اراده نشته دی که زه دوي سره جګړه وکړم نو زه به یقیناً د دوي نه محفوظ
شم خو زه دوي هم او دوي سره چې زما خلاف کوم خلک راټول کړی دی او راوستي یې دي
هغوی هم الله رب العزت ته حواله کوم! ځکه چې زمونږ د ټولو خلکو رب سره جمعه کېدل دي زه
په هیڅ صورت کې تاسو ته دوي سره د جګړې کولو حکم نشم درکولای حضرت

---

۱: اخرجه ابن سعد ایضاً ۳/۴۸
۲: اخرجه ابن سعدایضاً ۳/۴۹

سعيد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ستا باره کې به چېرته د چا نه پوښتنه نه کوم يعني باغيانو سره به جګړه کوم شهيد به شم ژوندي به نه پاتې کېږم نو حضرت سعيد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بهر ته لاړ او هغوی سره يې جګړه وکړه تر دې چې سر يې زخمي شو.(۱)

**د حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ جنګ نه کول:**

حضرت عُمر بن سعد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې د حضرت سعد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ څوي حضرت عامر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راغی د حضرت سعد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په خدمت کې يې عرض وکړ اې پلاره! خلک خو په دنيا جګړه کوي او ته دلته ناست يې! حضرت سعد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې آيا ته ما ته دا وايې چې زه دې په فتنه کې سردار جوړ شم نه! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! نه زه په دې جګړه کې نشم شريکېدلاي البته په جګړه کې د شريکېدلو صرف يو صورت دی چې ما ته يوه داسې توره ملاو شي چې زه که چېرې په هغه توره يو مؤمن ووهم نو هغه توره ودانګي او هغه زخمي نکړي او که چېرې کافر پرې ووهم نو هغه مړه کړي داسې توره چونکه ما سره نشته دی له دې وجې نه زه پټ ناست يم څکه چې ما د رسول الله ﷺ نه اورېدلی دی چې الله جَلَّ جَلَالُهُ هغه مالدار نه خوښوي چې پټ وي او تقوا والا وي.(۲)

حضرت ابن سيرين رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې يو سړی حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته وويل چې ته په شورٰي والاوو کې يې! او د دې امر خلافت د نورو نه زيات مستحق يې نو ته ولې جګړه نه کوې؟ هغه وفرمايل زه صرف په هغه صورت کې جګړه کولی شم چې خلک ما ته يوه داسې توره راکړئ! چې د هغې دوه سترګې، يوه ژبه او دوه شونډې وي او هغه توره مؤمن او کافر وپېژني او کافر خو وژني خو په مؤمن څه اثر نه کوي ما بنه جهاد کړی دی چې د کافرانو خلاف ؤ او په صحيح طريقه باندې وو نن خو مسلمانانو سره جنګېدل دي او هغه هم د دنيا د طلب لپاره او زه جهاد د ېر بنه شان پېژنم!(۳).

**دحضرت اسامه بن زيد او حضرت سعد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا او يو جنګ کونکي سړی قصه:**

حضرت اسامه بن زيد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ چې د ده خبره غته شوې وه وفرمايل چې زه به د هغه سړی سره

---

۱: اخرجه ابن سعد ايضاً ۵/۲۳

۲: اخرجه احمد كذافى البداية ۷/۲۸۳ واخرجه ابونعيم فى الحلية ۱/۹۴ عن عمر بن سعد عن ابيه انه قال الى يا بنى افى الفتنه تامرنى فذكر نحوه.

۳: عند الطبرانى قال الهيثمى ۷/۲۹۹ رواه الطبرانى ورجاله رجال الصحيح اه واخرجه ابو نعيم فى الحلية ۱/۹۴ عن ابن سيرين مثله وابن سعد ۳/۱۰۱ عن ابن سيرين بنمناه.

هيڅ کله جګړه ونه کړم چې (لا اله الا الله) وايي حضرت سعد بن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې زه به هم چېرې د هغه سړي سره جنګ ونه کړم څوک چې مسلمان وي او (لا اله الا الله) کلمه اووايي په دې خبره يو سړي وويل چې آيا الله رب العزت دا نه دي فرمايلي چې:

وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلَّهِ (۱)

ترجمه: او تاسو دې د عربو کفارو سره هغې پورې جنګېږئ چې په دوي کې د عقيدې فساد يعنې شرک پاتې نشي او دين (خالص) الله رب العزت لپاره شي.

دې دواړو حضراتو وفرمايل (مونږ په دې آيت باندې عمل کړی دی) مونږ جګړه کړې وه تر دې چې د عقيدې فساد شرک او فتنه هيڅ نه وو پاتې شوي او دين خاص د الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره شوی وو يعنې باطل دينونه ټول ختم شوي وو دا ښن جګړه د فساد ختمولو او د الله جَلَّ جَلَالُهُ د دين لپاره نده.(۲)

حضرت نافع رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې د حضرت ابن زُبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د محاصرې په زمانه کې دوه سړي د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شول او وې ويل چې خلک ضائع کېږي او تاسو د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ځوي او د رسول الله ﷺ صحابي يئ! تاسو دلته ناست يئ! ستاسو بهر ته وتلو او جګړه کې د شريکېدلو نه څه شی مانع دی؟ حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل دا خبره مانع ده چې الله جَلَّ جَلَالُهُ زما د مسلمان ورور وينه حرامه ګرځولې ده دې دواړو سړو وويل چې الله جَلَّ جَلَالُهُ دا نه دي فرمايلي؟ وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ (ترجمه يې تېره شوې ده) حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې مونږ جګړه کړې وه تر دې چې فتنه وغيره هيڅ نه وو پاتې شوي او دين يوازې د الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره ګرځېدلی وو او تاسو دې لپاره جنګېږئ! چې فساد خور شي او د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه بغير د نورو دينونه وچلېږي.(۳)

حضرت نافع رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې يو سړی حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته راغی او وې ويل اې ابو عبد الرحمن! څه خبره ده؟ چې تاسو يو کال حج کوئ! او يو کال عمره؟ تاسو جهاد في سبيل الله پرېښې! دې په داسې حال کې تاسو ته پته ده چې الله جَلَّ جَلَالُهُ د جهاد څومره ترغيب ورکړی دی؟ هغوی وفرمايل اې زما وراره! د اسلام بنياد په پنځو خبرو باندې

۱: (سوره انفال آيت ۳۹)

۲: اخرجه ابن سعد ۴/۴۸ واخرجه ابن مردويه عن ابراهيم التيمی عن ابيه نحوه کم افی التفسير لابن کثير ۲/۳۰۹

۳: اخرجه البخاری ۲/۶۴۸

دی الله رب العزت او د هغه رسول الله ﷺ باندې ایمان راوړل، پنځه وخته لمونځ کول، د رمضان روژې نیول، زکات ورکول او د بیت الله شریف زیارت کول په خپل تاکلي وخت کې.
او زه دا ټول کار ونکوم زما دین اسلام پوره قائم دي! هغه سړي وویل اې ابوعبدالرحمن! آیا تا د الله جَلّ جَلَالُهُ دا فرمان نه دی اورېدلی چې قرآن کې دی؟

وَإِنْ طَآئِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا ۖ فَإِنْ بَغَتْ إِحْدَاهُمَا عَلَى الْأُخْرَىٰ فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتَّىٰ تَفِيءَ إِلَىٰ أَمْرِ اللَّهِ ۚ (۱)

ترجمه: او که چېرې د مسلمانانو دوه ډلې په خپلو کې په جګړه شي نو د هغوی په مینځ کې صلح وکړئ! بیا که چېرې په هغوی کې یوه ډله په بله باندې زیاتې وکړي نو هغه ډلې سره وجنګېږئ! چې زیاتي کوي تر دې چې هغه د الله جَلّ جَلَالُهُ حکم ته رجوع وکړي.

بل ځای الله جَلّ جَلَالُهُ فرمايي: وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلَّهِ ۚ (۲)

ترجمه: او تاسو دې د عربو کفارو سره تر هغه وجنګېږئ! چې په دوي کې د عقیدې فساد یعنې شرک پاتې نشي او دین یوازې د الله جَلّ جَلَالُهُ لپاره وګرځي.

هغوی وفرمایل: مونږ د رسول الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په زمانه کې په دې آیت عمل کړی وو اسلام والا لږ وو او هر مسلمان به د دین له وجې نه ډېر زیات مصیبتونه زغمل کافرانو به یا هغوی قتلول یا به یې ورته قسما قسم عذابونه ورکول مونږ به جګړه کوله تر دې چې اسلام والا زیات شو او فتنه او فساد یعنې شرک کفر بلکل ختم شو هغه سړي وویل چې ته د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په باره کې څه وایې! په ظاهره دا سړی خارجي وو هغوی وفرمایل چې د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د غزوه احد په ورځ سره د نورو ملګرو څه خطا شوې وه خو هغه الله جَلّ جَلَالُهُ معاف کړ. څنګه چې د الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ارشاد دي: وَلَقَدْ عَفَا عَنْكُمْ ۗ (۳)

ترجمه: او الله رب العزت چې هغه معاف کړی دی ته هغه بد ګڼې!. حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خو د رسول الله ﷺ د تره ځوي او د هغه زوم دي او بیا یې په لاس سره اشاره وکړه او ویې فرمایل چې دا وګوره! د رسول الله ﷺ د کورونو په مینځ کې د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کور دی یعنې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رسول الله ﷺ ته په رشته کې هم ډېر نږدې وو او کور یې هم

---

۱: سورة الحجرات آیت۹)
۲: سورة انفال آیت۳۹)
۳: (سورة آل عمران آیت ۱۵۲)

د رسول الله ﷺ له کور سره نژدې وو.(۱)

حضرت نافع رحمه الله وايي چې يو سړی حضرت ابن عُمر رضي الله عنه له راغی او وې ويل اې ابو عبد الرحمن! الله جلّ جلاله چې کوم په قرآن مجيد کې فرمايلي دي هغه تاسو نه دي اوريدلي: (وَإِن طَآئِفَتَانِ مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ٱقۡتَتَلُواْ)

نو څنګه چې الله جلّ جلاله فرمايي نو تاسو جګړه ولې نه کوئ! هغوی رضي الله عنه وفرمايل اې زما وراره! چې زه مسلمانانو سره جګړه ونه کړم او دا تېر شوی آيت راته واوروَل شي ماته په قرآن باندې د عمل نه کولو تنګ راکول شي دا ماته د دېنه زياته محبوبه ده چې زه مسلمانانو سره جګړه وکړم او هغوی مړه کړم او ماته په دويم آيت باندې تنګ راکړې شوی دی او هغه دويم آيت شريف دا دی: وَمَن يَقۡتُلۡ مُؤۡمِنٗا مُّتَعَمِّدٗا فَجَزَآؤُهُۥ جَهَنَّمُ خَٰلِدٗا فِيهَا وَغَضِبَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِ وَلَعَنَهُۥ وَأَعَدَّ لَهُۥ عَذَابًا عَظِيمٗا ۝(۲)

ترجمه: او څوک چې يو مسلمان قصداً قتل کړي نو د هغه سزا د جهنم ده چې همېشه به پکې وي او په ده باندې به د الله جلّ جلاله غصه وي او دا به د خپل رحمت نه لرې کړي او د ده لپاره به د لويې سزا سامان برابر کړي.

هغه سړي وويل چې الله رب العزت فرمايي: وَقَٰتِلُوهُمۡ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتۡنَةٞ. حضرت ابن عمر رضي الله عنه وفرمايل چې مونږ په دې آيت باندې عمل کړی دی ييا يې مخکې تېر شوی حديث پشان بيان کړ. (۳)

حضرت سعيد بن جبير رحمه الله وايي چې ييا حضرت ابن عُمر رضي الله عنه وفرمايل آيا ته پېژنې چې فتنه څه ته وايي؟ رسول الله ﷺ به د مشرکانو سره جنګېدل د امتحان د پر سخت شی وو او هغه جګړه ستاسو د دې جګړې پشان د ملک حاصلولو لپاره نه وه.(۴)

**حضرت ابن زبير او ابن صفوان رضي الله عنهما له د ابن عمر رضي الله عنهما خبرې:**

حضرت ابو العاليه رضي الله عنه وايي چې حضرت عبد الله بن زبير رضي الله عنه او حضرت عبد الله بن

---

۱: زاده عثمان بن صالح من طريق بكير بن عبدالله واخرجه البيهقي ٨/١٩٢ من طريق نافع نحوه وهكذا اخرجه ابو نعيم في الحلية ١/٢٩٢ عن نافع.

۲: سورة النساء (آيت ۹۳)

۳: عند البخاري ايضاً

۴: عند البخاري ايضاً كما في لابن كثير ٢/٣٠٨

صفوان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یوه ورځ په حطیم نومي ځای کې ناست وو چې په دې کې حضرت ابن عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بیت الله طواف کولو او دې دواړو حضراتو سره تېر شو په دې دواړو کې یو کس بل ته وویل چې ستا څه خیال دی ؟ آیا د ده نه د زمکې په سر زیات غوره سړی پاتې شوی دی ؟ بیا هغوی یو کس ته وویل کله چې دې خپل طواف ختم کړنو دې مونږ له راوغواړه! کله چې د هغه طواف پوره شو او د طواف دوه رکعتونه نفل یې وکړل نو د دې حضراتو قاصد د هغه په خدمت کې حاضر شو چې دا حضرات عبد الله بن جبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او عبدالله بن صفوان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تاسو غواړي هغه دې دواړو حضراتو ته راغی نو حضرت عبد اله بن صفوان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل اې ابو عبدالرحمن! د امیر المؤمنین حضرت ابن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره بیعت کولو لپاره تاسو څه شي منع کړي یئ!؟ ځکه چې د مکې، مدینې، یمن او عراق والا تولو شام والا اکثرو د هغه نه بیعت کړی دی حضرت ابن عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! تر څو چې تاسو توري په اوږو باندې اینبې وي او ستاسو لاسونه د مسلمانانو په وینو رنګ وي تر هغه پورې زه ستاسو بیعت نشم کولای!. (۱)

**ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دخلکو بیعت نه قبلول:**

حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي کله چې خلک په فساد کې پرشانه شول نو هغوی حضرت عبدالله بن عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له راغلل او وې ویل چې تاسو د خلکو سرداریئ! او د سردار ځوي یې! او ټول خلک په تاسو باندې راضي دي تاسو بهر ته تشریف راوړئ! مونږ تاسو نه بیعت کول غواړو! هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُو فرمایل هیڅ کله نه! قسم په الله جَلَّ جَلَالُهُ تر څو پورې چې زما بدن کې ساه وي تر هغه پورې زه د خپل ځان په وجه لږه وینه به هم توی نه کړم! بیا څه خلک راغلل او حضرت ابن عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یې اوویرولو او دا یې ورته وویل یا خو تاسو بهر ته تشریف یوسئ! کنه نو په دې بستره کې به مړ کړی شې! نو هغوی د دې نه هیڅ اثر وانه خیسته او هم هغه اول جواب یې ورکړ او بهر راتلو نه یې انکار وکړ حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! خلکو د هغه تر وفاته پورې هغه په بیعت کولو باندې اماده نکړای شو. (۲)

**د اتفاق او بې اتفاقی په باره کې د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا خبرې:**

حضرت خالد بن سُمیر رَحِمَهُ اللهُ وایي چې خلکو حضرت ابن عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل څه به بنه

---

۱: عند البیهقی ۸/۱۹۲

۲: عند ابی نعیم فی الحلیة ۱/۲۹۳ واخرجه ابن سعد ۴/۱۱۱ عن الحسن بنحوه.

واي چې تاسو د خلکو د خلافت کار سنبال کړی واي څکه چې ټول خلک ستاسو په خليفه جوړېدو باندې راضي دي حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل لږ راته دا ووايئ! که چېرې په مشرق کې چېرته يو سړی هم زما د خليفه جوړېدو مخالفت وکړ نو؟ هغوی وويل که يو سړي مخالفت وکړ نو هغه به و وژلی شي او د امت د جوړولو لپاره چې د يو سړی د مرګ ضرورت راشي نو دا څه لويه خبره نه ده هغوی وفرمايل چې زه خو دا هم نه خوښوم چې د حضرت محمد ﷺ امت دې د نېزې لاستې اونيسي او زه يې پورتنۍ برخه ونيسم او بيا يو مسلمان مړ کړی شي او د دې په بدله کې ما ته دنيا او څه چې په دنيا کې دي هغه ورکړل شي.(۱)

حضرت قطن رَحِمَهُ اللهُ وايي چې يو سړی د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شو او وې ويل چې د حضرت محمد ﷺ د امت لپاره ستاسو نه زيات څوک بد نشته دی هغوی وفرمايل ولې؟ په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ما خو نه د هغوی وينه تويې کړې ده او نه مې په هغوی کې اختلاف پيدا کړی دی او نه مې د هغوی له ډلې نه جدايي غوره کړې ده هغه سړي وويل که چېرې ته خليفه مقررېدل غواړې نو ستا په باره کې به دوه کسان هم مخالفت نه کوي. هغوی وفرمايل چې زما خو دا هم خوښه نه ده چې ما ته خلافت په داسې حال کې ملاو شي او يو سړی وايي نه! او بل سړی وايي چې هو! يعنې که يو سړی مخالفت وکړي نو ما ته منظور نه ده.(۲)

حضرت قاسم بن عبد الرحمن رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې خلکو د اولنۍ فتنې چې د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مينځ کې واقع شوې وه په هغه زمانه کې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل چې آيا تاسو بهر په جګړه کې حصه نه اخلئ!؟ ويې فرمايل چې ما هغه وخت جګړه کړې ده کله چې بتان د حجر اسود او د بيت الله شريف د دروازې تر مينځه اېښودل شوي وو تر دې چې الله جَلَّ جَلَالُهُ بتان د عربو د زمکې نه ووېستل او س زه دا خبره بده ګڼم چې زه د (لا اله الا الله) ويونکو سره جګړه وکړم هغه خلک وويل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ستا په زړه کې دا رايې نه ده صرف په ژبه ده بلکې ته دا غواړې چې د رسول الله ﷺ صحابه يو بل ختم کړي او بيا کله چې ستا نه علاوه بل څوک پاتې نه شي نو خلک به پخپله ووايي چې د اميرالمؤمنين مقررېدو لپاره د عبدالله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره بيعت وکړئ! هغوی وفرمايل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! دا خبره بلکل زما په

---

۱: عند ابن سعد۱۱۱/۴

۲: عند ابن سعد ۱۱۱/۴

زړه کې نشته! بلکې زما په زړه کې دا دی کله چې تاسو ووایئ! چې راشئ! ما نځه خواته نو زه به ستاسو خبره و منم او کله چې تاسو دا ووایئ! چې راشئ! د کامیابۍ خواته نو زه به ستاسو خبره ومنم او کله چې تاسو جدا جدا راشئ! نو زه به تاسو سره نه یم او کله چې تاسو یو شئ! نو زه به ستاسو نه نه جدا کېږم!(۱)

حضرت نافع رَحِمَهُ اللهُ وایي چې په کومو ورځو کې د حضرت ابن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د طرفه د خلافت د کوشش کېدلو او د خوارجو او شیعه ګانو د خشبیه ډلې زور وو په د غو ورځو کې چا ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل چې تاسو د هغوی سره هم لمونځ کوئ! او د وي سره هم؟ په داسې حال کې د وي خو یو بل وژني د دې څه وجه ده؟ هغوی وفرمایل چې څوک ووایي چې راشئ! لمونځ خواته! نو زه به د هغه خبره ومنم او چې څوک ووایي چې راشئ! د کامیابۍ خواته نو زه به د هغه خبره هم منم! او چې څوک ووایي چې راشئ! د خپل مسلمان ورور قتلولو او د هغه مال اخیستو لپاره نو زه به وایم چې زه نه درځم!(۲)

**حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا او د مسلمانانو قتل نه خوښول او دمعاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره صلح کول:**

حضرت ابو العزیف رَحِمَهُ اللهُ وایي چې مونږ د حضرت حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مقدمة الجیش کې د ولس زره سړي وو د شام والا وو سره د جنګ کولو دومره زیاته جذبه وه داسې معلومېده چې زمونږ د تورو نه به وینې څاځي یا د غصې له وجې نه به زمونږ تورې وغورځیږي زمونږ د لښکر امیر ابو العمرطه وو کله چې مونږ ته خبر ملاو شو چې د حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صلح شوې ده نو د غصې له وجې نه زمونږ ملاګانې ماتې شوې کله چې حضرت حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کوفې ته راغی نو ابو عامر سفیان بن لیلی نومې سړی ودرېده او ورته یې وویل: السلام علیک اې د مسلمانانو ذلیل کوونکیه! حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل! اې ابو عامر! داسې مه وایه ما مسلمانان نه دي ذلیل کړي بلکې زه د مُلک د غوښتلو له وجې مسلمانان وژل نه غواړم!(۳)

حضرت شعبي رَحِمَهُ اللهُ وایي چې کله د حضرت حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صلح وشوه نو حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل

---

۱: عند ابی نعیم فی الحلیة ۱/۲۹۴

۲: اخرجه ابن سعد ۴/۱۲۵.

۳: اخرجه الحاکم ۳/۱۷۵ واخرجه ابن عبدالبر فی الاستیعاب ۱/۳۷۲ نحوه والخطیب البغدادی کذالک کما فی البدایة ۸/۱۹

چې ته خلکو ته ودرېږه! او خپل موقف او دريځ بيان کړه! نو هغه ودرېده بيان يې وکړ او وې فرمايل: ټول تعريفونه هغه الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره دي چې زمونږ د مشرانو په ذريعه يې ستاسو وړاندينيو خلکو ته هدايت نصيب کړ او مونږ په ذريعه يې ستاسو د روستنو د وينو حفاظت وکړ په غور سره واورئ! د ټولو نه زيات عقلمند هغه څوک دی چې تقوا غوره کړي؟ او د ټولو نه عاجز سړی هغه څوک دی چې فِسق او نافرمانيو کې اخته وي د خلافت په باره کې زما او حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اختلاف راغلی ؤ او اوس يا خو حضرت معاويه د خلافت زما نه زيات حقدار دی يا واقعي زما حق وو بهر حال مونږ خپل حق الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره پرېښوده! دې لپاره چې د حضرت محمد ﷺ د امت کار صحيح پاتې شي او د هغوی وينې محفوظ پاتې شي. بيا حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوا ته متوجه شو او وې فرمايل: وَإِنْ أَدْرِي لَعَلَّهُ فِتْنَةٌ لَّكُمْ وَمَتَاعٌ إِلَىٰ حِينٍ۝(١) او د قرآن دا يت يې تلاوت کړ. ترجمه: او ما ته په تعيين سره نه ده معلومه چې څه مصلحت دی؟ کېدای شي چې هغه تاخير د عذاب ستاسو لپاره امتحان وي او يو وخته پورې يعنې تر مرګه پورې په ژوند سره فائده رسول وي. بيا هغه لاندې راکوز شو نو حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل تا هم دا غوښتله چې حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د لاس اخيستو اعلان وکړي او هغوی وکړ.(٢)

**دخلافت په باره کې حضرت جُبَيربن نُفَير ته دحضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خبرې:**

حضرت جبير بن نفير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما حضرت حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل چې خلک دا وايي چې ته خليفه جوړېدل غواړې حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې د عربو لوی سرداران زما په لاس کې وو چا سره چې ما جګړه کوله هغوی هغه سره جګړه کوله او ما چې چا سره صلح کوله هغوی د هغه سره صلح کوله خو ما خلافت پرېښوده تر څو چې الله رب العزت خوشحاله شي او د حضرت محمد ﷺ د امت د وينو حفاظت وشي نو آيا زه د حجاز د بوډاګانو يعنې د کمزورو خلکو په ذريعه خلافت په زور سره د اخيستو اراده کولی شم؟ په داسې حال کې کله چې ما سره لوی او د قوت والا خلک هم وو او اوس خو ما له خلافت نه لاس اخيستی

---

١: (سورة الانبياء آيت ١١١)

٢: اخرجه ابن عبدالبر في الاستيعاب ١/٣٧٤ واخرجه ايضاً الحاكم ٣/١٧٥ والبيهقي ٨/١٧٣ عن الشعبي بنحوه.

دی اوس خو ما سره دا کمزوري خلک دي او س د خلافت اراده څنګه کولی شم؟.(۱)

**د مروان سره د حضرت ایمن بن خُرَیم اسدی رَضِيَ اللهُ عَنهُ جنګ نه کول:**

حضرت عامر شعبي وايي کله چې د مروان د ضحاک بن قیس سره جګړه وشوه نو مروان حضرت ایمن بن خُریم اسدي رَضِيَ اللهُ عَنهُ پسې سړی ولیږه او راوې غوښته او وې ویل چې مونږ غوارو چې تاسو له ځان سره ملګري کړو! او زمونږ پر طرف جګړه وکړه! حضرت ایمن وفرمایل چې زما پلار او تره د بدر په جنګ کې شریک شوي وو دواړو زمانه دا وعده اخیستې وه چې څوک د (لا اله الا الله) شاهدي ورکوي نو زه به د هغه سره جنګ نه کوم که چېرې ته په جنګ کولو باندې د اور نه د خلاصون پروانه راوړې نو زه تا سره یو ځای جنګ کولی شم مروان وویل چې لرې شه! او بد رد یې ورته هم وویل په دې خبره حضرت ایمن دا اشعار وویل:

ولستُ مُقاتِلا رَجُلا يُصَلِي
عَلٰي سُلطانٍ اٰخَرَ مِنْ قُرَيْش

د بل قریشي د حکومت حاصلولو لپاره زه هغه سړی سره جګړه نه شم کولی چې لمونځ کوي.

اُقاتِلُ مُسْلِماً فِي غيْرَ شَيْئ
فَلَيْس بِنَافِعِي مَاعِشْتُ عَيْشِي

زه چې بغیر د څه خبرې نه چې مسلمان سره وجنګېږم په دې سره به ما ته په ټول ژوند کې څه ګټه نه وي.

لَهٗ سُلطَانُ وَعَلٰي اِثْمِي
مَعَاذَالله مِن جهل وطيش

زما په جګړه کولو سره به د هغه بادشاه حکومت محکم شي او په ما باندې به ګناه وي داسې جهالت او غصې نه په الله جَلَّ جَلَالُهُ سره پناه غوارم.(۲)

**حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته د حکم بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنهُ خبرې:**

حضرت ابن حکم بن عمرو غفاري رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زما نیکه ما ته بیان وکړ چې زه د

---

۱: عند الحاكم ۳/۱۷۰ ايضاً قال الحاكم هذا اسناد صحيح على شرط الشيخين ولم يخرجاه واقفه الذهبي.

۲: اخرجه ابو يعلى قال الهيثمي۷/۲۹۷ رواه ابويعلى والطبراني بنحوه الا انه قال ولست اقاتل رجلا يصلى وقال معاذ الله من فشل وطيش و قال اقتل مسلما فى غير جرم ورجال ابى يعلى رجال الصحيح غير زكريا به يحيى احمويه وهو ثقة انتهى واخرجه البيهقى ۸/۱۹۳ عن قيس بن ابى حازم والشعبى بنحوه

حضرت حکم بن عمرو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره ناست وم چې په دې کې هغه ته د حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قاصد راغی او هغه وویل چې د دې خلافت په معامله کې ته زمونږ د مدد کولو د ټولو نه زیات مستحق یې! حضرت حکم وویل چې ما د خپل خاص دوست ستا د تره ځوي رسول الله ﷺ نه اورېدلی دی کله چې حالات داسې شي یعني په خلافت باندې مسلمانان خپل مینځ کې جنګېږي نو هغه وخت کې د لرګي توره جوړه کړه یعني جنګ کې برخه مه اخله! نو ما د لرګي توره جوړه کړې ده. یعني په جنګ کې برخه نه اخلم.(۱)

**عبدالله بن ابی اوفی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د یزید سره جنګ نه کول:**

حضرت ابو الاشعث صنعاني رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې زه یزید بن معاویه حضرت عبدالله بن ابی اوفی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ولېږلم هغه سره د رسول الله ﷺ ډېر صحابه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ ناست وُو ما وویل چې تاسو په دې وخت کې خلکو ته د څه کولو حکم ورکوئ!؟ حضرت ابن ابي اوفي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې که چېرې ته مسلمانانو په خپل مینځ کې د جګړې کولو داسې خالات ویا مومې نو احد غره ته لاړ شه! او خپله توره ماته کړه! او خپل کور کې کېنه! ما عرض وکړ چې که چېرې زما کور ته څوک راشي نو چېرته به ځم؟ هغوی ﷺ وفرمایل چې دننه والا کوټکۍ ته لاړ شه او کېنه! که چېرې هلته هم ستا د وژلو لپاره څوک راته راشي نو بیا په خپلو ګوندو کېنه! او د قتلېدو لپاره تیار شه! او هغه ته وایه! چې ما ووژنه! خپله ګناه او زما ګناه په سر واخله او په دوزخیانو کې داخل شه! ځکه چې د ظالمانو هم دا سزا ده همدارنګه ما خپله توره ماته کړې ده او په کور کې ناست یم څوک چې هلته هم راشي نو زه به په ګوندو کېنم او هم هغه به ورته وایم چې کومه خبره رسول الله ﷺ راته ښودلې وه.(۲)

**د آنحضرت ﷺ دوصیت په وجه د محمدبن مسلمه ددنیاره جنګ نه کول:**

حضرت محمد بن مسلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل کله چې ته ووینې چې خلک په دنیا باندې جنګېږي نو ته خپله توره واخله او کاڼي لرونکې زمکې ته لاړ شه! او هلته د ټولو نه لوي ګټ باندې خپله توره په وهلو وهلو ماته کړه. بیا خپل کور ته راشه! او کېنه تر دې چې یا خو ناحق قتلونکی خطا کار لاس تا مړ کړي یا طبیعي مرګ ستا فیصله

---

۱: اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ۷/۳۰۱ رواه الطبرانی وفیه من لم اعرفه

۲: اخرجه البزار قال الهیثمی ۷/۳۰۰ رواه البزار وفیه من لم اعرفهم انتهی.

وکړي، رسول الله ﷺ چې ما ته د کومې خبرې حکم کړی و ما هغه کړی ده.(۱)

حضرت محمد بن مسلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ ما ته يوه تُوره راکړه او ويې فرمايل چې اې محمد بن مسلمه! دا توره واخله او د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لار کې جهاد کوه او کله چې ووينې! چې د مسلمانانو دوه ډلې خپلو کې جنګېږي نو دا توره په کاڼي اووهه او راشئ! فيصله وکړئ! يا خطا کار لاس تا مړ کړي نو کله چې حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ شهيد شو او د خلکو په خپل مينځ کې جګړه شروع شوه نو حضرت محمد بن مسلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د خپل کور په انګړ کې ايښودلې شوي کاڼي ته ورغلو او په هغې باندې يې هغه توره ووهله او ما ته يې کړه.(۲)

حضرت ربعي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې ما د حضرت حُذيفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په جنازه کې د يو سړی نه دا خبره واورېده چې ما د دې کتې والا نه حضرت حُذيفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه اورېدلي دي چې ويې فرمايل : ما د رسول الله ﷺ نه دا حديث اورېدلی دی او په دې اورېدو کې ما ته څه شک او شبه نشته. اوس که چېرې تاسو خپلو کې جنګېږئ! نو زه به خپل کور ته د ننه لاړ شم بيا که چېرې په کور کې د ننه ما ته څوک راغی نو زه به هغه ته وايم چې ما مړ کړه او زما او خپله ګناه پخپل سر باندې واخله.(۳)

**د حضرت وائل بن حُجر او حضرت معاويه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا واقعه:**

حضرت وائل بن حجر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې مونږ ته د رسول الله ﷺ مدينې ته دهجرت کولو خبر ورسېده نو زه دخپل قوم نمائنده ګي لپاره روان شوم تر دې چې زه مدينې منورې ته ورسېدم او د رسول الله ﷺ د ملاقات نه مخکې مې د هغه صحابه وو سره ملاقات وشو او هغوی ما ته وويل چې ستا د راتلو نه درې ورځې مخکې رسول الله ﷺ مونږ ته ستا د راتګ زيری راکړی وو او فرمايلي يې وو چې تاسو ته وائل بن حجر راراوان دي بيا د هغوی سره ملاقت وشو نو هغوی ﷺ ما ته پخير راغلئ! ووېل او ما ته يې ځان سره نزدې ځای راکړ، خپل څادر يې خور کړ او زه يې پرې کېنولم بيا يې خلک راغوبنتل نو ټول خلک را ټول شول بيا رسول الله ﷺ په منبر باندې کېناست او زه يې له ځان سره منبر ته بوتلم زه په منبر باندې د

---

۱: اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ۷/۳۰۱.

۲: عند ابن سعد ۳/۳۰

۳: اخرجه احمد قال الهیثمی ۷/۳۰۱ رواه احمد ورجاله رجال الصحیح غیر الرجل المبهم.

هغوی ﷺ ته لاندې ووم بیا هغوی ﷺ د الله جَلَّ جَلَالُهُ حمد و ثناء بیان کړه او ویې فرمایل:
«اې خلکو! دا وائل بن حجر دی او د ډېرې لرې سیمې حضرموت نه تاسو ته راغلی دی په خپله خوښه راغلی دی چا نه دی مجبور کړی او د هغه ځای په شهزادګانو کې هم پاتې شوی دی اې وائل بن حجر! الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تا ته او ستا اولاد ته برکت درنصیب کړي»
بیا رسول الله ﷺ د منبر نه راکوز شو او د مدینې منورې نه لرې یو ځای ته یې زه ورسولم او حضرت معاویه بن ابي سفیان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یې وفرمایل چې دا ځان سره بوځه! او هلته یې ایسار کړه! نو زه د مسجد نه لاړم او حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم ما سره لاړ په لاره کې یې ما ته وویل اې وائل! دې ګرمې زمکې زما د پښو تلي وسوزول ما ځان سره وروسته په خپله سورلۍ باندې سپور کړه ما وویل زه تا په دې اوښه باندې کېناوه کې بخل نه کوم خو ته شهزاده نه یې له دې وجې نه ستا په سورولو سره به خلک پېغور راکړي چې څه معمولي سړی یې له ځان سره سپور کړی دی او دا زما نه ده خوښه! بیا حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې بیا ده چې داسې نه کوې نو بیا دې خپلې پڼې ما ته راکړه! د دې په پښو کولو سره به زه د لمر د ګرمۍ نه ځان بچ کړم! ما وویل چې زه په دې په دوو څرمنو باندې هم بخل نه کوم خو ته په هغه خلکو کې نه یې! چې د پاچاهانو جامې اغوندي له دې وجې نه به خلک ما ته پېغور راکوي او دا ما ته خوښه نه ده! مخکې یې نور حدیث هم ذکر کړ دې نه پس دا دی کله چې حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بادشاه جوړ شو نو هغه د قریشو حضرت بُسر بن ارطات رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راولېږه او هغه ته یې وویل چې ما د دې علاقې والا خو خپل ځان سره ملګري کړي دی، دې خلکو خو له ما سره بیعت کړی دی ته خپل لښکر واخله او روان شه! کله چې ته د شام د حدود نه مخکې لاړ شې نو خپله توره دې راوباسه! او څوک چې زما بیعت نه انکار کوي هغه ووژنه! او که چېرې تا ته وائل ابن حجر ژوندی ملاو شي نو هغه ما ته راوله! نو حضرت بُسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم داسې وکړل. او هغه کله چې ما ته ورسېده نو زه یې حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته بوتلم حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زما د شان مطابق د استقبال کولو حکم وکړ، ما ته یې خپل دربار ته د راتلو اجازه راکړه او زه یې ځان سره په خپل تخت کېنولم او ما ته یې وویل چې آیا تخت غوره دی یا ستا د اوښې شاه؟ ما وویل چې اې امیرالمؤمنین! ما خو نوي نوي کفر او جاهلیت پرېښې وُو او په اسلام کې داخل شوی وم

او د جاهلیت طریقې لا ختمې نه وې ما چې په سورلی د سورولو او د پښو درکاوه نه کوم انکار کړی وو دا ټول د جاهلیت اثر وو الله رب العزت مونږ ته کامل دین اسلام را لیږلی دی دغه اسلام په هغو ټولو کارونو باندې پرده اچولې ده چې ما کړی دی حضرت معاویه رضي الله عنه وویل چې زمونږ د مدد کولو نه تا کوم شی منع کوي؟ په داسې حال کې حضرت عثمان رضي الله عنه په تاسو باندې ډېر اعتماد کړی وو او ته یې خپل زوم کړځولي وې ما وویل چې زه د له دې وجې نه ستا کومک نه کوم، ځکه چې تا د هغه سړی سره جګړه کړې ده چې ستا نه زیات د حضرت عثمان رضي الله عنه حقدار دی حضرت معاویه رضي الله عنه وویل چې په نسب کې د حضرت عثمان رضي الله عنه نه زیات نزدې یم نو هغه زمانه زیات د حضرت عثمان رضي الله عنه څنګه حقدار کېدای شي؟ ما وویل رسول الله ﷺ د حضرت علي رضي الله عنه او د حضرت عثمان رضي الله عنه په مینځ کې ورور ولي قائمه کړې وه او ته د هغه د تره ځوي یې! او ورور د تره ځوي نه زیات حقدار وي او دویمه خبره دا هم ده چې زه مهاجرینو سره جنګېدل نه غوارم! حضرت معاویه رضي الله عنه وویل آیا مونږ مهاجرین نه یو؟ ما وویل ضرور یئ! خو آیا مونږ د دوارو ډلو نه جُدا یو؟ او یو بل دلیل یې دا دی چې یو ځل د رسول الله ﷺ په خدمت کې زه حاضر ووم او هلته ډېر خلک هم وو رسول الله ﷺ مشرق خواته سر اوچت کړی وو او نظر یې هم مشرق خواته وو رسول الله ﷺ مونږ ولیدلو بیا یې خپل نظر مشرق خواته وګرځاوه او ویې فرمایل چې د تورې تیارې شپې د ټکړو پشان فتنې به په تاسو باندې راځي بیا یې وښودل چې هغه فتنې به ډېرې سختې وي او هغه زر راتلونکي دي او هغه به ډېرې بدې وي.

په دغو خلکو کې ما د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه اې دالله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! هغه فتنې کومې دي؟ ویې فرمایل اې واثل! کله چې په مسلمانانو کې دوه تورې وجنګېږي، د مسلمانانو دوه ډلې خپلو کې جګړه شروع کړي) نو ته د دغه دوارو نه جدا اوسه! حضرت معاویه رضي الله عنه وفرمایل آیا ته شیعه شوې یې؟ یعني د علي بن ابي طالب رضي الله عنه طرفدار او مددګار شوې یې؟ ما وویل نه! زه خو د ټولو مسلمانانو خیرخواهي غوارم! حضرت معاویه رضي الله عنه وفرمایل که چېرې ما دا خبره مخکې اورېدلې واې او ما ته معلومه واې نو ما به ته دلته نه وې راغوښتی ما وویل ولې تا ته معلومه نه ده چې د حضرت

عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په شهادت باندې حضرت محمد بن مسلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ څه كړي وو ؟ هغه په گټ باندې خپله توره په وهلو وهلو ماته كړې وه حضرت معاويه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې دا انصار خو دې داسې خلک چې د هغوی داسې خبرې وزغمي ما وويل چې د رسول الله ﷺ دې فرمان سره به څه كوو چې چا د انصارو سره محبت وكړ هغه زما د محبت په وجه هغوی سره محبت وكړ او چا چې د انصارو سره بُغض او كينه وكړه هغه زما د بُغض په وجه د هغوی سره بغض وكړ بيا حضرت معاويه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې ته كوم ښار غواړې! ځان لپاره يې خوښ كړه! ځكه چې ته اوس واپس حضرموت ته نشې تلاې ما وويل چې زما قبيله د شام په ملک كې او زما كورنۍ په كوفه كې دي. حضرت معاويه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې ستا د كور والاوو نه يو سړی د قبيلې د لسو كسانو نه به غوره وي له دې وجې نه ته كوفې ته لاړ شه! ما وويل چې زه حضرموت ته واپس تللی ووم خو هلته واپس تلو سره زه خوشحال نه ووم ځكه چې انسان كوم ځاې نه هجرت وكړي او لاړ شي هغه ته د سختې مجبورۍ نه بغير هلته واپس تلل نه دي پكار. حضرت معاويه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې ستا څه مجبوري ده؟ ما وويل چې رسول الله ﷺ د فتنو په باره كې چې څه و فرمايلي وو چې ما اوس بيان كړل له دې وجې نه حضرموت ته تللي ووم دا رنگه كله چې په تاسو كې اختلاف پيدا شي نو مونږ به تاسو نه ځانته والي اختيار كړو. او كله چې تاسو خلک يو ځاې شئ! نو مونږ به تاسو ته راشو! حضرت معاويه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې ما ته د كوفې گورنر (والي) مقرر كړي يې! ته هلته لاړ شه! ما ورته وويل چې د رسول الله ﷺ نه پس د چا د طرفه ولايت نشم قبلولې آيا تا ونه ليدل چې حضرت ابوبكر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زه گورنر (والي) مقررول غوښتم ؟ خو ما انكار كړی وو ، بيا حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هم مقررول غوښتلم؟، خو ما بيا هم انكار وكړ، بيا حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مقررول غوښتلم خو ما انكار وكړ او د دغو حضراتو بيعت هم ما نه وو پرېښې كله چې زمونږ د علاقې خلک مرتدان شوي وو نو د حضرت ابوبكر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ليک ما ته راغلی وو چې له هغې وجې زه محنت كولو ته تيار شوي ووم او په ټوله علاقه كې مې زور ولگولو او د گورنر (والي) نه بغير الله جَلَّ جَلَالُهُ زما په ذريعه ټولې سيمې والا اسلام ته واپس كړی وو بيا حضرت معاويه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت عبدالرحمن بن ام حكم راوغوښته او ورته يې وويل چې ته كوفې ته لاړ شه! ما ته د هغه

ځائ ګورنر(والي) مقرر کړي يې! او حضرت وائل ځان سره بوځه! د عزت او اکرام خيال يې د ېر کوه! او د ده ټول ضرورتونه پوره کوه، په دې خبره حضرت عبد الرحمن وويل چې تا په ما باندې بد ګماني وکړه! ته ما ته د هغه انسان د اکرام حکم راکوې چې د هغه په اکرام کولو باندې ما رسول الله ﷺ، حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او خپله تاسو ليدلي يئ! نو دارنګه که چېرې تاسو د ده تاکيد هم او نه کړئ! نو زه به بيا هم د ده اکرام کوم د هغه په دې خبره حضرت معاويه د ېر خوشحاله شو، زه ورسره کوفې ته راغلم راوي وايي چې کوفې ته راتلو نه لږ څه موده وروسته حضرت وائل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفات شو.(۱)

**د مروان او ابن زبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دجنګ په باره کې د ابوبرزه اسلمي قول:**

حضرت ابو منهال رَحِمَهُ اللَّهُ وايي کله چې ابن زياد د بصرې نه ووېستل شو نو په شام کې مروان د خلافت دعوه وکړه او په مکه مکرمه کې حضرت عبد الله بن زبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د خلافت دعوه شروع کړه او په بصره کې هغه خارجي) خلکو د خلافت دعوه وکړه چې هغوی ته به قاريان ويل کېده په دې خبره زما پلار سره د ېر زيات غم شو هغه ما ته وويل ستا پلار دې پاتې نشي. راځه! د رسول الله ﷺ صحابي حضرت ابو برزه اسلمي ته ورځو نو زه مې د پلار سره لاړم او مونږ د حضرت ابوبرزه په خدمت کې د هغوی کور ته لاړو هغه د بانس نه د جوړې شوې بالاخانې په سيورې کې ناست وو په هغه ورځ سخته ګرمي وه مونږ لاړو ورسره کېناستو، زما پلار هغه سره اخوا دېخوا خبرې شروع کړې د دې لپاره چې هغه هم د خپل زړه خبرې وکړي زما پلار به عرض کولو چې اې ابوبرزه! آيا ته نه ګورې چې خلک داسې کوي؟ آيا تاسو نه ګورئ! چې فلاني سړی داسې کوي؟ حضرت ابوبرزه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د ټولو نه اول دا خبره وکړه چې د نن سهار نه زما د قريش خاندانونو ته غصه کېږي او زما امېد دی چې الله رب العزت به ما ته په دې غصه باندې ثواب راکوي اې د عربو وړوکي ټولګی! تاسو ته پته ده چې د جاهليت په زمانه کې ستاسو څه حال وو. تعداد مو لږ وو د خلکو په نظر کې ستاسو هيڅ عزت نه ؤ او تاسو ګمراه وئ! بيا الله جَلَّ جَلَالُهُ د حضرت محمد ﷺ په ذريعه دين اسلام درکړ او تاسو يې اوچت کړئ! او د دين په واسطه يې تاسو ته عزت درکړ.

(۱) اخرجه الطبراني قال الهيثمي ٩/٣٧٦ رواه الطبراني في الصغير والكبير وفيه محمد بن حجر وهو ضعيف انتهى.

نن په دنيا کې ستاسو د پر عزت دی څنګه چې تاسو وينئ! خو اوس دنيا ستاسو خرابول شروع کړی دی او دا د شام په ملک کې مروان دی دا هم په الله جَلَّجَلَالُهُ قسم! يوازې د دنيا لپاره جنګېږي او چې په مکه مکرمه کې دي يعنې حضرت زبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا هم په الله جَلَّجَلَالُهُ قسم يوازې د دنيا لپاره جنګېږي او دا خلک چې ستاسو شا او خوا دي چې هغوی ته تاسو قاريان وايئ! په الله جَلَّجَلَالُهُ قسم! دوي هم يوازې د دنيا لپاره جنګېږي کله چې هغوی څوک هم پرېنه ښودل نو زما پلار ترې پوښتنه وکړه چې بيا په دې حالاتو کې تاسو مونږ ته د څه کولو حکم را کوئ! وې ويل چې زما په خيال نن د ټولو نه غوره دله هغه ده چې هغوی خپل ځانونه زمکې پورې لګولی دی يعنې ګمنامي او ځانته والي يې اختيار کړی وي دا يې وفرمايل او په لاس سره يې زمکې خواته اشاره کوله د هغوی خېټې د خلکو د مالونو نه بلکل خالي وي او د هغوی په ملا باندې د چا د وينې بوج نه وو.(۱)

**د قتل په باره کې دحضرت حذيفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قول:**

حضرت شِمر بن عطيه رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت حُذيفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يو سړی ته وويل چې آيا ته به په دې خبره خوشحاله شې؟ چې ته د ټولو نه زيات بد عمله سړی قتل کړې هغه وويل چې هو خوشحالېږم به! حضرت حذيفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې د هغه په قتلولو سره به ته هغه نه زيات لوي بد کاره شې.(۲)

## د مسلمان له ضائع کولو نه ځان ساتل

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زما نه پوښتنه وکړه کله چې تاسو د يو ښار محاصره کوئ! نو څه کوئ؟ ما وويل چې مونږ يو سړی ته د څرمنې يو مضبوط ډال ورکوو او هغه ښار ته يې لېږو، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل لږ راته دا ووايه! که چېرې ښار والا هغه په کاڼو باندې ولي نو په هغه به څه وشي؟ ما وويل هغه به مړ شي حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل داسې مه کوئ! په هغه ذات مې دې قسم وي! چې د هغه په قبضه کې زما ساه ده زه په دې خبره بلکل نه خوشحالېږم چې تاسو يو مسلمان ضائع کړئ! او داسې ښار فتح کړئ! چې په هغه کې څلور زره جنګيالي ځوانان وي.(۳)

---

۱: اخرجه البيهقى ٨/١٩٢ واخرجه البخارى والاسماعيلى ويعقوب بن سفيان فى تاريخه عن ابى المنهال بنحوه كما فى فتح البارى ١٣/٥٢

۲: اخرجه ابو نعيم فى الحلية ١/٢٨٠

۳: اخرجه البيهقى ٩/٤٢ واخرجه شافعى مثله كما فى الكنز ٢/١٦٥ على ان عنده ههنا من جلود.

# د کفارو د لاس نه د مسلمان خلاصول

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې زه یو مسلمان د کافرانو د لاس نه خلاص کړم دا ما ته د ټول جزیرة العرب له لاسته راتلو نه زیاته خوښه ده.(۱)

# د مسلمان وېرول او پرېشانه کول

**رسول الله ﷺ د مسلمان وېرول منع کړی دی:**

حضرت ابو الحسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په بیعت عقبه کې هم شریک شوی وو او د بدر په جنګ کې هم، هغه فرمایي چې مونږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو، یو سړی پاڅېده او چېرته لاړ او خپلې پڼې یې هم هلته هېرې کړې نو یو سړی هغه پڼې اوچتې کړې او د ځان نه لاندې یې کېښودې هغه سړی بېرته راغی او وې ویل چې زما پڼې چېرته دي؟ خلکو وویل چې مونږ خو نه دي لیدلې، لږ وخت هغه په پرېشانۍ کې لټولې بیا دې نه پس کوم سړی چې پټې کړې وې هغه وویل چې پڼې دا دي، په دې باندې رسول الله ﷺ وفرمایل چې د مؤمن د پرېشانه کولو به څه ځواب ورکوې؟ هغه سړي وویل چې ما خو په ټوکو کې پټې کړې وې رسول الله ﷺ دوه یا درې ځله هم دا وفرمایل چې د مؤمن د پرېشانه کولو به څه ځواب ورکوې؟(۲)

حضرت عامر بن ربیعه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو سړی له یو بل سړی نه پڼې واخیستلې او په ټوکو کې یې پټې کړې چا دا خبره رسول الله ﷺ ته وکړه رسول الله ﷺ وفرمایل چې یو مسلمان مه پرېشانه کوئ! ځکه چې مسلمان پرېشانه کول ډېر لوی ظلم دی.(۳)

حضرت نعمان بن بشیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو وخت مونږ له د رسول الله ﷺ سره په سفر روان وو یو سړی ته په خپله سورلۍ باندې خوب راغی بل کس د هغه د ترکش نه یو غشی راوېسته چې په دې سره هغه سړی راویده شو او وویرېده په دې باندې رسول الله ﷺ وفرمایل چې د چا لپاره دا جائز نه ده چې هغه یو مسلمان وېروي.(۴)

---

۱: اخرجه ابن ابی شیبة کذافی کنزالعمال ۲/۳۱۲

۲: اخرجه الطبراني کذافی الترغیب ۴/۲۶۳ قال الهیثمی ۶/۲۵۳ رواه الطبرانی وفیه حسین بن عبدالله بن عبید الهاشمی وهو ضعیف الذهبی واخرجه ایضاً ابن السکن مثله کما فی الاصابة ۴/۴۲

۳: عند البزار والطبرانی وابی الشیخ ابن حبان فی کتاب التوبیخ کذا فی الترغیب ۴/۲۶۲ قال الهیثمی ۶/۴۵۲ وفیه عاصم بن عبید الله وهو ضعیف.

۴: اخرجه الطبرانی فی الکبیر ورواته ثقات.

حضرت عبدالرحمن بن ابي ليلي رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې مونږ ته د رسول الله ﷺ څو صحابه وو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ دا قصه واوروله چې يو ځل صحابه كرام رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ له رسول الله ﷺ سره روان وو چې په هغې كې يو كس ته خوب ورغى دويم سړى لاړ او د هغه رسۍ يې راواخيسته، پټه يې كړه، كله چې هغه بيدار شو او هغه ته خپله رسۍ په نظر رانغله نو پرېشانه شو په دې باندې رسول الله ﷺ وفرمايل چې د هيڅ يو مسلمان لپاره دا جائز نه دي چې هغه مسلمان پرېشانه كړي.(١)

حضرت سليمان بن صرد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې يو بانډيچي سړى رسول الله ﷺ سره لمونځ وكړ هغه سره يوه رسۍ هم وه چې هغه چا اخيستله كله چې رسول الله ﷺ سلام وګرځاوه نو هغه بانډيچي وويل چې پته نه لګيږي زما رسۍ چېرته لاړه؟ دا يې چې واورېدل څه خلک په خندا شول په دې باندې رسول الله ﷺ وفرمايل چې كوم سړى په الله جَلَّ جَلَالُهُ او د اخرت په ورځ باندې ايمان لري هغه ته په كار دى چې هغه يو مسلمان هيڅ كله هم پرېشانه نه كړي.(٢)

## مسلمان سپک او حقير ګڼل

**داسامه بن زيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په باره كې د عايشې، عطاء او عروه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ حديث:**

حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي چې حضرت اسماء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا تيندک وخوړ او د دروازې په درشل باندې راپرېوته چې په هغې سره د هغه په تندي زخم جوړ شو چې په دې سره رسول الله ﷺ وفرمايل اې عائشې! د دې وينه صفا كړه! خو ما ته د هغې له زخم نه كركه راغله، بيا وروسته رسول الله ﷺ په خپله مبارک خوله د هغې له زخم نه وينه رابنكله او وې توكله او وېې فرمايل كه چېرې اسامه نجلۍ واى نو ما به داسې جامې اغوستلې واى او داسې كالي به مې ورته اچولي واى بيا به ما دې واده كړې واى.(٣)

حضرت عطاء بن يسار رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت اسامه بن زيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ كله چې په شروع كې مدينې ته راغى نو په هغه باندې دانې را وختلې او هغه په دغه وخت كې دومره وړوكى ؤ چې د هغه پوزه به دهغه په خولې باندې رابهېدله حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ته به له هغه نه كركه

١: عند ابى داود كذافى الترغيب ٤/٢٦٢

٢: اخرجه الطبرانى قال الهيثمى ٦/٢٥٤ رواه الطبرانى من روية ابن عيينة اسماعيل بن مسلم فان كان هوالعبدى فهو من رجال الصحيح وان هو الملكى فهو ضعيف وبقية رجاله ثقات انتهى.

٣: اخرجه ابن سعد ٤/٤٣ واخرجه ابن ابى شيبة نحوه كما فى المنتخب ٥/١٣٥

راتله یو ځل رسول الله ﷺ کور ته راغی او د حضرت اسامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مخ یې ووینځه او ښکل یې کړ، په دې باندې عائشې وفرمایل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! د رسول الله ﷺ د دې رویې له لیدلو نه وروسته به اوس زه دې هیڅکله هم له خپل ځان نه لرې نه کړم!(۱)

حضرت عُروه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ د حضرت اسامه بن زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په انتظار کې د عرفات نه مزدلفې ته تلل وروسته کړل کله چې حضرت اسامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی نو خلکو ولیدل چې ماشوم هلک دې، چیته پوزه یې ده او رنګ یې تور دی، یمن والاوو وویل چې د دې هلک په وجه مونږ دومره ایسار شو، حضرت عُروه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې د همدې په وجه یمن والا په کفر کې اخته شول حضرت ابن سعد راوي وایي چې ما له حضرت یزید بن هارون نه پوښتنه وکړه چې حضرت عُروه چې دا فرمایي هم د دې په وجه یمن والا په کفر کې مبتلا شول څه مطلب دی؟ هغه وویل چې دا دی مقصد دا دی چې د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په زمانه کې یمن والا مرتدین شول هغوی د رسول الله ﷺ د دې رویې سپک ګڼلو په سزا کې داسې شول، د ابن عساکر په روایت کې داسې راغلی دی چې حضرت عُروه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل: د رسول الله ﷺ وفات نه پس یمن والا حضرت اسامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سپک ګڼلو د له دې وجې نه په کفر کې اخته شوي وو.(۲)

**په دې باره کې دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول:**

حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې حضرت ابو موسی ته یو وخت څه خلک راغلل په هغوی کې چې کوم عرب وو هغوی ته خو حضرت ابو موسی ورکړه او چې عجمي غلامان وو هغوی ته یې ورنکړل حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (ته د دې پته او لګېده نو هغه) حضرت ابو موسی ته داسې ولیکل چې تا هغوی ټولو ته یو شان ولې ورنه کړل؟ نو په دې اساس د سړی د بدوالي لپاره دا کافي ده چې هغه خپل ورور مسلمان سپک وګڼي.(۳)

حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې د سړی د بدوالي لپاره دا کافي ده چې هغه خپل ورور سپک وګڼي.(۴)

---

۱: عندالواقدی وابن عساکر کذافی المنتخب ۲/۱۳٦

۲: اخرجه ابن سعد ۴/۴۴ کذافی المنتخب ۵/۱۵۳

۳: اخرجه ابو عبید کذافی الکنز ٦/۳۱۹

٤: عند احمد فی الزهد کذافی الکنز ۲/۱۷۲

# مسلمان غصه کول

**د ابوسفیان په باره کې دحضرت ابوبکر،سلمان، صهیب او بلال رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ واقعه:**

حضرت عائذ بن عمرو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت ابوسفيان مسلمان شوی نه ؤو چې هغه حضرت سلمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، حضرت صهيب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او حضرت بلال رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته په داسې حال کې راغی چې دا دواړه حضرات د صحابه وو په ډله کې ناست وو دې حضراتو وويل چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ تورو د الله جَلَّ جَلَالُهُ په دښمنانو کې تر اوسه پورې خپل ځای جوړ نکړ؟ يعنې تر اوسه پورې ابوسفيان ولې مړ نکړای شو؟ په دې باندې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دغو ناستو حضراتو ته وويل چې تاسو دا خبره د قريشو د مشر او د هغوی د سردار په باره کې کوئ؟ او بيا د رسول الله ﷺ په خدمت کې راغی حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ورته دا خبره وکړه. رسول الله ﷺ وفرمايل اې ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ داسې معلومېږي چې په دې خبرې سره تا هغوی غصه کړی وی که چېرې تا هغوی غصه کړي وي نو بيا داسې وبوله! چې تا خپل رب غصه کړی دی ، حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بېرته دغو حضراتو ته راغی او له هغوی نه يې پوښتنه وکړه چې اې ورونو! آيا ما تاسو غصه کړي يئ!؟ دغه حضراتو وويل چې نه وروره! الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تا ته بښنه وکړي .(۱)

حضرت صهيب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې زه په مسجد کې ناست ووم، حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خپل يو قيدي سره زما خوا کې تېر شو هغه د ده لپاره د رسول الله ﷺ نه پناه اخيستل غوښتل ما حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته وويل چې دا تاسره څوک دی ؟ ويې فرمايل دا زما مشرک قيدي دی، زه د ده لپاره د رسول الله ﷺ نه امان اخيستل غواړم، ما وويل چې د ده په څټ کې خو د تورې د پرېښه ځای دی، په دې خبره حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ غصه شو، رسول الله ﷺ هغه وليده نو ويې فرمايل چې څه خبره ده؟ ته ډېر په غصه په نظر راځې! حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل چې زه خپل قيدي سره د حضرت صهيب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په خوا کې تېر شوم نو هغه وويل چې د ده په څټ کې خو د تورې د پرېښه ځای دی د هغه په دې خبره ما ته غصه راغلې ده رسول الله ﷺ وفرمايل کېدای شي چې تا هغه ته څه تکليف رسولی وي؟ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل نه! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! نه! رسول الله ﷺ وفرمايل که

---

۱: اخرجه مسلم ۲/۳۰۴ و اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۳۴۶ وابن عبدالبر في الاستيعاب ۲/۱۸۱ عن عائذ بن عمرو نحوه.

چېرې تا هغه ته تکلیف رسولی وي نو بیا تا الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه رسول ﷺ ته تکلیف رسولی دی.(۱)

# په مسلمان باندې لعنت ویل

**په شراب خور به لعنت نه وايې:**

حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې يو سړی ؤ چې د هغه نوم عبدالله وو او د هغه لقب حمار ؤ هغه به رسول الله ﷺ خنداوه، رسول الله ﷺ هغه د شرابو څښلو په وجه په درو هم وهلي وو نو هغه يوه ورځ په داسې حال کې راوستل شو چې شراب يې څښلي وو، رسول الله ﷺ حکم وکړ چې ده ته کوړې ورکړئ! يعنې په درو يې ووهئ! نو هغه ته کوړې ورکړې شوې په دې باندې يو سړي وويل اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! په ده باندې لعنت ولېږې، دې د شرابو په جرم کې څومره زيات راوستل کېږي. رسول الله ﷺ وفرمايل په ده باندې لعنت مه وايئ! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! تر کومې پورې چې ما ته معلومه ده، هغه د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه له رسول ﷺ سره محبت کوي.(۲)

حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د يو سړي لقب حمار ؤ هغه به رسول الله ﷺ ته د غوړو او د شاتو ډبې په هديه کې ورکړل کله چې به د غوړو والا او د شاتو والا د هغې قيمت اخيستلو لپاره ورته راته نو هغه به يې د رسول الله ﷺ خدمت کې حاضرولو او عرض به يې کولو چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ده ته د خپل سامان قيمت ورکړه! په دې باندې به رسول الله ﷺ صرف مُسکی کېده او هيڅ به يې ونه فرمايل بيا د هغوی په وينا هغه ته قيمت ورکړل شو، همدا سړی وه ورځ د رسول الله ﷺ په خدمت کې په داسې حال راوستل شو چې شراب يې څښلي وو يو سړي وويل مخکې يې د تېر شوی حديث پشان مضمون ذکر کړی دی.(۳)

حضرت زيد بن أسلم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ابن نعمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (د شرابو د څښلو له وجې نه) د رسول الله ﷺ په خدمت کې راوستل شو هغوی ده ته کوړې ورکړې او څلور پنځه ځله هم داسې وشو هم په دې جُرم کې راوستل شو او رسول الله ﷺ به ورته کوړې ورکولې، اخر يو سړي وويل اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! په ده باندې لعنت ولېږې! هغه څومره شراب څښي. او ده ته

---

۱: اخرجه ابن عساکر کنز العمال۷/۴۹

۲: اخرجه البخاری وابن جرير والبيهقي.

۳: عند ابی یعلی وسعيد بن منصور وغيرهما كذافي الکنز ۳/۱۰۷

څو مره ځله کوړې ورکړي شوې دی رسول الله ﷺ وفرمايل په ده باندې لعنت مه وايئ! ځکه چې هغه له الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه له رسول ﷺ سره محبت کوي.(۱)

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ ته يو سړی په داسې حال کې راوستل شو چې هغه شراب څښلي وو، د رسول الله ﷺ په فرمان باندې صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ هغه وواهه، چا په لاس سره او چا جامې سره يې وواهه، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل چې اوس بس کړئ! بيا د رسول الله ﷺ په فرمان باندې صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ هغه ملامته کړ او هغه ته يې وويل چې تا ته د الله د رسول ﷺ نه حيا نه درځي؟ چې ته دا بد کار کوې؟ بيا رسول الله ﷺ هغه پرېښودو کله چې د هغه شا شوه او روان شو نو خلکو هغه ته خبرې شروع کړې او بدرد يې ويل شروع کړل، چا تر دې پورې وويل چې الله جَلَّ جَلَالُهُ دې رسوا کړي اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! په ده باندې لعنت وکړې، رسول الله ﷺ وفرمايل داسې مه وايئ! او د خپل ورور خلاف د شيطان مددګار مه جوړېږئ! بلکې دا دُعا وکړئ! چې اې الله جَلَّ جَلَالُهُ د ده بخښنه وکړې اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! ده ته هدايت وکړې په يو روايت کې دا دی چې تاسو داسې مه وايئ! د شيطان مدد مه کوئ! بلکې دا وواياست! چې الله جَلَّ جَلَالُهُ دې په تا باندې رحم وکړي.

حضرت سلمه بن اکوع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي کله چې به مونږ وليدل چې څوک په بل باندې لعنت وايي نو مونږ به هم داګڼله چې دې د کبيره ګناهونو د دروازو نه يوې دروازې ته رسېدلی دی يعنې ده کبيره ګناه کړې ده.(۲)

# مسلمان ته کنځل کول

## دهغه سړي واقعه چې خپلو غلامانو ته به يې کنځل کول

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې يو سړی راغی او رسول الله ﷺ ته مخامخ کېناسته بيا يې عرض وکړ چې زما څو غلامان دي چې ما ته دروغ وايي او ما سره خيانت کوي او زما نافرماني کوي په دې زه هغوی ته کنځل کوم او هغوی وهم، نو زما د هغوی سره دا سلوک څنګه دی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل کله چې د قيامت ورځ شي نو هغوی چې کوم خيانت تاسره کړی وي او ستا نافرماني يې کړې وي او تا ته يې دروغ ويلي وي د هغې به حساب وکول شي

---

۱: اخرجه عبدالرزاق كذافى الكنز ٣/١٠٨ وعند ابن سعد ٣/٥٦ عن زيد بن اسلم قال ابى نعمان وابن الى النبي ﷺ فذكره نحوه.

۲: اخرجه الطبرانى باسناد جيد كذافى الترغيب ۴/۲۵۱

او تا چې کومه هغوی ته سزا ورکړې ده د هغې به حساب وکول شي که چېرې ستا سزا د هغوی د جرم برابره شي نو معامله به سر په سر شي نه به تا ته انعام ملاو شي نه سزا.
او که چېرې ستا سزا د هغوی د جرم نه کمه شي نو تا ته به په هغوی باندې غوره وي او که چېرې ستا سزا د هغوی د جرم نه زیاته شي نو د هغې زیاتې سزا به ستا نه بدله اخیستل کېږي، هغه سړی چې دا واورېدل نو یو خوا ته شو او په زوره زوره یې وژړل. رسول الله ﷺ ورته وفرمایل آیا ته دا الله جَلَّ جَلَالُهُ دا ارشاد نه لولې؟

وَنَضَعُ الْمَوَازِيْنَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيٰمَةِ فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْـًٔا ۖ وَاِنْ كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ اَتَيْنَا بِهَا ۖ وَكَفٰى بِنَا حٰسِبِيْنَ ﴿۱﴾

ترجمه: او (هلته) د قیامت په ورځ به مونږ د انصاف تله قائمه کړو او د ټولو د عملونو وزن به کوو پس په چا باندې به بلکل ظلم نه کېږي او که چېرې د چا عمل د وُرې د دانې برابر هم وي نو مونږ به هغه هلته ضرور حاضر کړو او مونږ حساب اخیستونکی بس یو.
نو هغه سړي وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ما ته د خپل ځان لپاره او د هغو غلامانو لپاره د دېنه غوره صورت بل په نظر نه راځي چې زه د هغوی نه جدا شم دې لپاره زه تا شاهد جوړوم چې دا ټول غلامان ازاد دي.

**د کنځلو جواب نه ورکول:**

حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو سړی حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته بدې ردې خبرې وکړې خو ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته ځواب نه ورکاوه، رسول الله ﷺ هم هلته موجود وو د حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جواب نه ورکول د رسول الله ﷺ هم خوښېدل او رسول الله ﷺ مُسکی کېده کله چې هغه سړی ډېرې زیاتې بدې ردې وویل نو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم هغه ته د څه خبرې جواب ورکړی چې په دې باندې رسول الله ﷺ خفه شو او د هغه ځائ نه پاڅېده او لاړ، حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم ورپسې روان شو او رسول الله ﷺ ته یې عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! هغه چې ما ته بد رد ویل نو تاسو ناست وئ! او کله چې ما د هغه د څه خبرې جواب ورکړ نو تاسو غصه شوئ! او پاڅېدئ! رسول الله ﷺ وفرمایل چې اول تاسره یو فرشته وه چې هغې ستا د له خوا جواب ورکولو کله چې تا د هغه د څه خبرې جواب

(۱) (سورة انبیاء ایت ۴۷)

ورکړ نو شیطان په مینځ کې راودانګل او ملائیکه لاړه او زه د شیطان سره نشم کېناستلی. بیا رسول الله ﷺ وفرمایل چې درې خبرې داسې دي چې بلکل حق دی په کوم بنده باندې ظلم وشي او هغه د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رضا لپاره د دغه ظلم د بدلې اخیستلو نه سترګې پټې کړي نو الله جَلَّ جَلَالُهُ د هغه قوي او کلک ملاتړ کوي او کوم سړی چې د جوړ پیدا کولو لپاره هدیې ورکولو دروازه پرانیزي الله جَلَّ جَلَالُهُ د هغه مال نه زیاتوي او څوک چې د مال زیاتولو په نیت د سوال کولو دروازه پرانیزي د هغه مال نور هم کموي.(۱)

**د کنځلو په وجه حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د خپل ځوی د ژبې پرېکولو نذر وکړ:**

حضرت بهي رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې حضرت عبدالله بن عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت مقداد ته بدرد وویل نو حضرت عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل که چېرې ما د عبدالله یعنې د خپل ځوی ژبه پرې نکړه نو په ما دې نظر واجب وي، خلکو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره دې باره کې خبره وکړه او ورنه یې د معافی غوښتنه وکړه خو هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې ما د ده ژبې پرې کولو ته پرېږدئ! دې لپاره چې بیا په راتلونکي وخت کې څوک هم د رسول الله ﷺ یو صحابي ته کنځل ونه کړي. (۲)

حضرت بهي رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې د حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت مقداد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په مینځ کې لږه خبره زیاته شوه او حضرت عبد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت مقداد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته کنځلې وکړلې، حضرت مقداد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغه شکایت د هغه پلار حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وکړ هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نذر او منلو چې زه به د حضرت عبدالله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ژبه پرېکړم کله چې حضرت عبدالله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د خپل پلار نه خطره شوه، نو هغه څه خلک د خپل پلار له سفارش لپاره ولېږل د هغوی خبره یې چې واورېده نو حضرت عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل ما د هغه ژبه پرې کولو ته پرېږدئ! چې دا یو مستقل قانون جوړ شي چې په دې باندې زما نه پس هم عمل کېږي چې څوک د رسول الله ﷺ یو صحابي ته په کنځلو باندې ولیدل شي نو د هغه ژبه دې خامخا غوڅه شي.(۳)

---

۱: اخرجه احمد والطبرانی قال الهیثمی ۸/۱۹۰ رجال احمد رجال الصحیح ورواه ابو داود الا انه لم یذکر ثم قال باابابکر.
۲: اخرجه احمد والالکائي فی السنة وابوالقاسم بن بشر ان فی امالیه وابن عساکر.
۳: عند ابن عساکر کذا فی منتخب الکنز العمال ۴/۴۲۴

# د مسلمان عیبونه بیانول

حضرت انس رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ فرمايي چې يو څل د رسول الله ﷺ په مخکې يو سړی د بل سړی د بدي بيان کړه رسول الله ﷺ ورته وفرمايل د دې ځایُ نه پاسه څه! ستا د کلمه شهادت اعتبار نشته، هغه وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه به آئينده داسې نه کوم رسول الله ﷺ وفرمايل ته په قرآن تو کې کوې څوک چې د قرآن حرام شوي کارونه حلال ګڼي هغه په قرآن ايمان نه دي راوړی قرآن کې يې د مسلمان غيبت حرام کړی دی او ته غيبت کوي.(۱)

**د حضرت خالد او حضرت سعد رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُمَا واقعه:**

حضرت طارق بن شهاب رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ وايي چې د حضرت خالد رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ او سعد رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ په مينځ کې څه خبره تېزه شوه حضرت سعد رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ سره يو سړی کېناسته او حضرت خالد رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ پسې يې د بدی بيانول او ويل شروع کړل، حضرت سعد رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ وويل چُپ شه! زمونږ په مينځ کې چې کومه خبره شوې وه هغه هم هلته ختمه شوې وه هغه مخکې زمونږ دين ته نشي... رسېدلی چې د هغه د جنګ په وجه مونږ يو د بل بدی بيانولو سره د دين نقصان وکړو. (۲)

# د مسلمان غيبت کول

**د سنګسار شوي صحابي د غيبت نه درسول الله ﷺ منع:**

حضرت ابو هريره رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت (ماغز بن مالک) اسلمي رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ د نبي اکرم ﷺ په خدمت کې حاضر شو او څلور ځل يې د خپل ځان باره کې د دې خبرې اقرار وکړ ما د يوې زنانه سره حرام کار کړی دی هر ځل به رسول الله ﷺ بل خوا ته مخ اړولو بيا مخکې د يو حديث مضمون نور هم شته چې په هغې کې دا هم دی چې د رسول الله ﷺ په وينا هغه رجم کړی شو بيا رسول الله ﷺ خپلو دوو صحابو نه واورېدل چې په هغوی کې يو بل ته وويل چې دې سړی ته اوګوره! الله رب العزت د ده په جرم پرده اچولې وه خو دې پخپله ځان پسې شو د دې په وجه دې د سپي پشان په کاڼو وويشتل شو. رسول الله ﷺ چې

---

۱: اخرجه ابونعيم كذافي الكنز ۱/۲۳۱

۲: اخرجه ابو نعيم فى الحليه ۱/۹۴ واخرجه الطبرانى عن طارق مثله قال الهيثمى ۷/۲۲۳ ورجاله رجال الصحيح انتهى.

دا واوریدل نو چُپ شو بیا لږ شان تللو نه پس د هغوی تېرېدل په یو مردار خر باندې چې د هغه پښې د پړسوب نه له وجې نه پورته اوچتې شوې وې رسول الله ﷺ وفرمایل چې فلاني او فلانې چېرته دی؟ هغوی ﷺ وفرمایل دواړه لاندې راکوز شئ! او د دې مُردار خره غوښه وخورئ! دواړو وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! الله جَلَّ جَلَالُهُ دې ستاسو مغفرت وکړي دا څوک خوړلی شي؟ وېې فرمایل اوس تاسو دواړو د خپل وړور پس شا بې عزتي کړې ده یعنې په خپل وړور پسې یې پس شا بد ویل کړي دي، هغه د مردارې د خوړلو نه زیات سخت دی په هغه ذات مې دې قسم وي! چې د هغه په قبضه کې زما ساه ده، هغه دا وخت د جنت په نهرونو کې غوپې وهي.(۱)

حضرت ابن منکدر رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې رسول الله ﷺ یوه ښځه رجم کړه چې د هغې په باره کې یې یو مسلمان اویل چې د دغې ښځې ټول عملونه برباد شول رسول الله ﷺ وفرمایل نه بلکې دی رجم د هغې بد عملونه ختم کړل او تاسو چې کوم د هغې غیبت کولو سره بد عمل یاد کړی دی د هغې به ستاسو نه حساب اخیستل کیږي.(۲)

**د صفیې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا او یوې ښځې باره کې د عائشې او زید بن اسلم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا حدیث:**

حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمایي چې ما رسول الله ﷺ ته وویل چې د حضرت صفیې د خوانه ستا لپاره دومره خبره کافي ده چې هغه داسې او داسې ده یعنې وړوکې قد والا ده، رسول الله ﷺ وفرمایل تا داسې خبره کړې ده که چېرې هغه د سمندر په اوبو کې گډ کړی شي نو دا خبره به د هغه د اوبو خوند خراب کړي حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمایي چې ما د رسول الله ﷺ په مخکې وفرمایل چې ما ته دا خبره بلکل خوښه نه ده چې ما ته دومره او دومره مال ملاو شي او ته زما په مخکې د یو انسان پېښې وکړې!(۳)

حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمایي چې د حضرت صفیې بنت حیي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا اوښ بیمار شو زینب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا سره زیات اوښ وو رسول الله ﷺ زینب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ته وفرمایل چې ته صفیې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ته ورکړه! هغې وویل زه او یهودنې ښځې ته اوښ ورکړم؟ دې اورېدو سره رسول

---

۱: اخرجه عبدالرزاق وابوداود كذافي الكنز ٢/٩٣ واخرجه ابن حبان في صحيحه عن ابي هريره نحوه كما في الترغيب ٤/٢٨٨ واخرجه البخاري في الادب ١٠٨ نحوه مختصرا وصححه ابن حبان كما قال الحافظ في الفتح ١٠/٣٦١.

۲: اخرجه عبدالرزاق كذافي الكنز ٢/٩٣

۳: اخرجه ابوداود والترمذي والبيهقي قال الترمذي حديث حسن صحيح.

الله ﷺ خفه شو او د ذوالحجې، محرم او صفر د میاشتې څو ورځو پورې یې زینب رضي الله عنها پرېښې وه هغې ته به نه ورته، تر دې چې هغه د رسول الله ﷺ نه نا اُمېده شوې وه. (۱)

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې زه یو ځل رسول الله ﷺ سره ناسته وم ما د یوې زنانه په باره کې وویل چې دا خو د اوږدې لمنې والا ده رسول الله ﷺ وفرمایل او توکه توکه څه چې دې په خوله کې دي هغه بهر وتوکه! نو ما او توکل نو د غوښې یوه ټوټه پرېوتله. (۲)

حضرت زید بن اسلم رضي الله عنه فرمايي چې د وفات په مرض کې د رسول الله ﷺ پاکې بیبیانې رسول الله ﷺ ته راټولې شوې، په دې کې حضرت صفیه بنت حیي رضي الله عنها وویل په الله جل جلاله قسم! زما د زړه ارزو ده چې تاسو ته کوم مرض پېښ شوی دی، هغه په ما باندې واې په دې باندې نورو بیبیانو د هغې دا خبره رښتونې وګڼله چې د دې په وجه هغوی په سترګو سره اشاره وکړه چې هغه رسول الله ﷺ ولیده نو ویې فرمایل: تاسو ټولې خولې ووینځئ! هغوی وویل اې د الله جل جلاله رسوله! د څه په وجه خولې ووینځو؟ ویې فرمایل تاسو چې اوس د خپلې بنې حضرت صفیې په باره کې یو بل سره په سترګو سره کومه اشاره وکړه د هغې له وجې تاسو مرداره غوښه وخوړله له دې وجې نه خولې ووینځئ! په الله جل جلاله قسم! دا پخپله خبره کې رښتونې ده. (۳)

**د غیبت په باره کې د رسول الله ﷺ او بعضو صحابه کرامو رضي الله عنهم واقعه:**

حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمايي مونږ رسول الله ﷺ سره ناست وو چې په دې کې یو سړی ودرېدو (اولاړ) صحابه وو رضي الله عنهم وویل دا سړی څومره عاجز دی! او څومره کمزوری دی؟ رسول الله ﷺ وفرمایل تاسو د خپل ملګري غیبت وکړ او د هغه غوښه مو او خوړله د طبراني په روایت کې دا دی چې د رسول الله ﷺ د خوا نه یو کس پاڅېدو خلکو ته د هغه په پاڅېده کې کمزوري په نظر راغله نو هغوی وویل چې فلانی سړی څومره کمزوری دی؟ رسول الله ﷺ وفرمایل تاسو د خپل ورور په غیبت کولو سره د هغه غوښه وخوړله. (۴)

---

۱: عند ابی داود ایضاً کذافی الترغیب ۳/۲۸۴ واخرجه ابن سعد ۸/۱۲۸ نحوه وفی حدیثه فتر کها رسول الله ﷺ ذالحجه والمحرم شهرین وثلاثة لا یأتیها قالت زینب حتی یئست عنه.

۲: عند ابن ابی الدنیا کذا فی الترغیب ۳/۲۸۴

۳: اخرجه ابن سعد ۸/۱۲۸ وسنده حسن کما فی الاصابة ۴/۳۴۸ واخرجه ابن سعد ایضاً ۲/۳۱۳ من طریق عطاء بن یسار بمعناه.

۴: اخرجه ابو یعلی والطبرانی کذافی الترغیب ۳/۲۸۵ قال الهیثمی ۸/۹۴ وفی اسناد هما محمد بن ابی حمید ویقال له حماد وهو ضعیف جدالتهی

حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنهُ د تېر شوی حدیث غوندې حدیث روایت کړی دی او په هغه کې دا مضمون هم زیاتي دي، خلکو عرض وکړ چې مونږ خو هغه خبره کړې ده چې په هغه کې موجوده ده رسول الله ﷺ وفرمایل چې همدا غیبت دی کنه. که چېرې تاسو خبره وکړئ! چې په ده کې موجوده نه وي نو بیا خو تاسو په هغه باندې بهتان ولګولو او تاسو به بیا بهتان لګوونکي جوړ شئ!.(۱)

حضرت عبد الله بن عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې د رسول الله ﷺ په مخکې خلکو د یو سړی په باره کې ذکر وکړ او وې ویل چې بل څوک د ده د خوراک انتظام وکړي نو دي یې وخوري او بل څوک ده لپاره په سورلی باندې کجاوه سمه کړي نو بیا دې په هغې باندې سوریږي دي د بر ـُـت دی خپل کار په خپله نشي کولی، رسول الله ﷺ وفرمایل، تاسو د ده غیبت وکړ، دغه خلکو وویل، اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! مونږ خو هغه خبرې کړی دی، چې په هغه کې موجودې دي رسول الله ﷺ وفرمایل چې د عیب کېدلو لپاره دا کافي ده چې تاسو د خپل ورور هغه غیب بیان کړئ! چې په هغه کې موجود وي.(۲)

حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې مونږ رسول الله ﷺ سره ناست وو یو سړی پاڅېده او لاړ د هغه د تلو نه پس یو سړی غیب بیانول شروع کړل، رسول الله ﷺ وفرمایل توبه وباسه! هغه سړي وویل د څه لپاره توبه وباسم؟ رسول الله ﷺ وفرمایل، په غیب بیانولو سره تا د خپل ورور غوښه خوړلې ده.(۳)

د هیثمي په روایت کې دا دی چې رسول الله ﷺ هغه سړی ته وویل چې ته خلال وکړه! غابښونو کې دکې ووهه! هغه سړي وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه په څه وجه خلال وکړم؟ او د څه په وجه په غابښونو کې دکې ووهم؟ ما خو غوښه نه ده خوړلې! (٤)

## دهغو دوه ښځو واقعه چې د خوراک نه روژه وې خو په غیبت یې ماته کړه:

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ خلکو ته د روژې نیولو حکم وکړ او ویې فرمایل چې زما له اجازې نه پرته به څوک روژه نه ماتوي نو ټولو خلکو روژه ونیوله

---

۱: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ۸/۹۸ وفيه علي بن عاصم وهو ضعيف.

۲: اخرجه الاصبهاني باسناد حسن عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده كذافي الترغيب ۴/۲۸۵

۳: اخرجه ابن ابي شيبه والطبراني واللفظ له و رواته رواة الصحيح كذا في الترغيب ۴/۲۸۵

٤: نقله الهيثمي ۸/۹۴

مابنام خلک راغلل او د روژې ماتولو اجازه یې وغوښتله، هر سړی به راته، اجازه به یې غوښتله او ویل به یې اې د الله جَلَّجَلَالُهُ رسوله! نن مې تول ورځ روژه ونیوه تاسو اوس ما ته اجازه راکړئ! چې روژه ماته کړم! په دې کې یو سړی راغی او وې ویل اې د الله جَلَّجَلَالُهُ رسوله! ستاسو د کور دوو ځوانانو ښځو نن تول ورځ روژه ونیوله او هغوی دواړه شرمیږي چې راشي او تاسو نه اجازه غواړي، تاسو هغوی ته هم اجازه ورکړئ! چې روژه ماته کړي هغوی ﷺ له دغه سړی نه مخ واړاوه، هغه بیا مخې ته راغی او خپله خبره یې بیا وکړه، رسول الله ﷺ ترې بیا مخ واړاوه، هغه سړی دریم ځل هم خپله خبره وکړه او رسول الله ﷺ بیا هم ترې مخ واړاوه، هغه سړی څلورم ځل هم خپله خبره مخکې کړه نو رسول الله ﷺ مخ ورته رواړاوه او ورته ویې فرمایل چې هغوی دواړو روژه نه ده نیولې او د هغه چا روژه چېرته کېدای شي چې هغه تول ورځ د خلکو غوښې خوري، لاړ شه! او هغوی دواړو ته ووایه چې که چېرې د دې دواړو روژه وي نو هغوی دې قې وکړي هغه سړی لاړ او هغه دواړو ښځو ته یې د رسول الله ﷺ خبره وکړه نو هغو دواړو قې وکړ نو په ریښتیا چې د دواړو په قې کې د جمعه شوې وینې حصې راووتلې هغه سړی راغی او رسول الله ﷺ ته یې وویل هغوی ﷺ وفرمایل په هغه ذات مې دې قسم وي چې د هغه په قبضه کې زما ساه ده که چېرې د وینو دا حصې د هغوی په خېټو کې پاتې شوې وي نو دواړه به اور خوړلي واې.(۱)

د امام احمد په روایت کې دادي چې رسول الله ﷺ په هغو دواړو ښځو کې یوې ته وفرمایل چې قې وکړه! هغې قې وکړنو ، وینه، زوې او غوښه یې له خولې نه راووتله چې د هغې نه نیمه پیالۍ ډکه شوه. بیا یې هغې بلې ته وفرمایل چې قې وکړه هغې هم قې وکړنو زوې، وینه، پیپ او تازه غوښه یې له خولې نه راووتله چې د هغې نه هم پوره پیالۍ ډکه شوه، بیا یې وفرمایل چې دې دواړو خو په هغو شیانو باندې روژه نیولې وه چې الله جَلَّجَلَالُهُ حلال کړی وو خو په هغو شیانو باندې یې ماته کړه چې الله جَلَّجَلَالُهُ په دوي حرام کړی وو دواړه یو بل سره کېناستلې او د خلکو غوښې خوړل یې شروع کړی وو .(۲)

۱: اخرجه ابوداود والطیالسی وابن ابی الدنیا فی ذم الغیبة والبیهقی واخرجه احمد و ابن ابی الدنیا ایضا والبیهقی عن روایة رجال لم یسم عن عبید مولی رسول الله ﷺ بنحوه.
۲: کذافی الترغیب ۳/۲۸۶

**د حضرت ابوبکرصدیق او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا او د هغوی دخادم واقعه:**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د عربو خلکو به په سفرونو کې د يو بل خدمت کولو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره به يو سړی وُو چې د دې دواړو خدمت به يې کولو يو ځل دا دواړه ويده شول او د هغه په غاړه خوراک پخول وُو، هغه هم ويده شو کله چې دوي دواړه راپاڅېدل نو وې کتل چې هغه خوراک نه دي تيار کړی بلکې ويده دی نو هغه دواړو وويل چې دي خو خوبي دي دوي هغه راپاڅاوه او ورته يې وويل چې رسول الله ﷺ ته لاړ شه! او ورته ووايه! چې ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ستاسو په خدمت کې سلام عرض کوي او تاسو نه سالن غواړي هغه لاړ او د رسول الله ﷺ په خدمت کې يې عرض وکړ، رسول الله ﷺ وفرمايل چې هغوی دواړو خو کتغ سره دودی خوړلې ده، سړی بېرته واپس دواړو حضراتو (حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) ته ورغی او د رسول الله ﷺ جواب يې ورته ووايه، په دې باندې دا دواړه حضرات راغلل او عرض يې وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! مونږ د کوم سالن سره دودی خوړلې ده؟ رسول الله ﷺ وفرمايل چې د خپل ورور د غوښې سره، په هغه ذات مې دې قسم وي! چې د چا په واک کې زما ساه ده چې د هغه غوښه ستاسو په مخامخ غاښونو کې وينم دې دواړو عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زمونږ لپاره مغفرت وغواړئ! رسول الله ﷺ وفرمايل هغه ته ووايه هغه به ستاسو لپاره مغفرت وکړي. (۱)

# د مسلمان عورت او پټې خبرې لټول

**حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او شرابخواره پرېښودل:**

حضرت مسور بن مخرمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يوه شپه د حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره د مدينې منورې څوکيداري کوله، دا دواړه روان وو چې ورته په يو کور کې د ډيوې رڼا په نظر راغله نو هغه کور خواته روان شول، کله چې ورنږدې شول نو وې کتل چې دروازه بنده ده او دننه څه خلک په زوره خبرې کوي او شور کوي حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت عبد الرحمن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لاس ونيوه او پوښتنه يې ترې وکړه چې تا ته پته ده چې دا د چا کور دی؟ حضرت عبد الرحمن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې نه! حضرت

---

۱: اخرجه الحافظ الضياء المقدسي في كتابه المختاره كذا في التفسير لابن كثير ۴/۲۱۶

عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل دا د حضرت ربيعه بن اميه بن خلف كور دى او دې تولو خلكو په دې وخت كې شراب څښلي دي، ستا څه خيال دى؟ مونږ ته څه كول پكار دى؟ حضرت عبد الرحمن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل زما خيال دا دى چې مونږ هغه كار وكړ چې د هغې نه الله رب العزت مونږ منع كړي يو، الله رب العزت وفرمايل دي: وَلَا تَجَسَّسُوا.(١)

ترجمه: «او لټون مه كوئ!» په داسې حال كې چې مونږ د دې كور والاوو په لټون كې لګيا يو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغوى هم په دغه حال كې پرېښودل او واپس لاړ.(٢)

**د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بله واقعه:**

حضرت شعبي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عُمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل يو ملګري څو ورځو پورې ونه ليده نو حضرت ابن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يې وويل چې راځه د پلانكي كور ته ځو او ګورو چې هغه په څه كار كې لګيا دى نو دا كسان د هغه كور ته لاړل او وې كتل چې د هغه دروازه پرانيستې ده او ناست دى، او د هغه بي بي په لوښي كې څه شي وراچوي او وركوي يې. حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عبد الرحمن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل چې په دې كار كې مصروف كېدو سره ده مونږ ته راتلل پرېښي دى، حضرت ابن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل چې تاسو ته څنګه پته ولګېده؟ چې په دغه لوښي كې څه دي؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل تا ته خطره ده؟ چې مونږ تجسس كوو؟ په داسې حال كې چې د هغه نه الله رب العزت منع كړې ده حضرت عبد الرحمن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې بالكل دا تجسس دى، حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل اوس د دې ګناه نه د توبې څه طريقه ده؟ حضرت عبد الرحمن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل تاسو ته چې د ده كومه خبره معلومه شوې ده هغه ده ته مه وايئ! او تاسو هغه پخپل زړه كې ښه وګنئ! يعنې په زړه كې يې وساته! خو بد يې مه ګڼه! بيا دواړه واپس لاړل.(٣)

حضرت طاوس رَحِمَهُ اللهُ وايي چې څه مسافر راغلل او د مدينې منورې يو خواته يې ډېره واچوله حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يوه شپه د هغوى څوكيدارى لپاره لاړ كله چې د شپې څه برخه تېره شوه نو د حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په كور باندې تېرېدل وشو چې په هغې كې ناستو

١: (سورة حجرات آيت ١٢)
٢: اخرجه عبدالرزاق وعبد بن حميد والخرائطي.
٣: اخرجه ابن المنذر وسعيد بن منصور كذافي الكنز ٢/١٦٧

خلکو څه څنبل حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغوی ته په اوچت اواز سره وويل آيا د الله جَلَّ جَلَالُهُ نافرماني کېږي؟ آيا د الله جَلَّ جَلَالُهُ نافرماني کېږي؟ په هغوی کې يو کس وويل هو! هغوی يو کس وويل آيا د الله جَلَّ جَلَالُهُ نافرماني کېږي؟ آيا د الله جَلَّ جَلَالُهُ نافرماني کېږي؟ خو الله جَلَّ جَلَالُهُ تاسو د داسې کولو نه يعنې د ننه د کورونو حالاتو معلومولو نه منع کړي يئ! دا يې چې واورېدل نو حضرت عُمر هغوی هم په هغه حال پرېښودل او واپس لاړ.(۱)

**حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د سندرې ويونکي کور ته دشپې داخلېدل:**

حضرت ثور کندي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عُمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د شپې په مدينه کې د څوکۍ لپاره ګشت کولو يوه شپه يې د يو سړي اواز واورېده چې په کور کې يې سندره ويله. حضرت عُمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په يو دېوال ورودانګل او د ننه ورغی او دا يې ورته وويل چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ دشمنه! آيا ستا څه خيال دی چې ته به د الله جَلَّ جَلَالُهُ نافرماني کوې او الله جَلَّ جَلَالُهُ به په تا باندې پرده اچوي؟ هغه سړي وويل اې اميرالمؤمنين! تاسو زما باره کې جلتي مه کوئ! که چېرې ما د الله جَلَّ جَلَالُهُ يوه نافرماني کړې وي نو تاسو د الله جَلَّ جَلَالُهُ درې نافرمانيانې کړې دی اوله دا چې الله جَلَّ جَلَالُهُ و فرمايلي (وَلَا تَجَسَّسُوا) او تاسو تجسس مه کوئ! او تاسو تجسس کړی دی. دويم دا چې الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمايي: وَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ أَبْوَابِهَا(۲) او کورونو ته د هغوی په دروازو راځئ!. او تاسو په دېوال راودانګل. دريم دا چې تاسو بغير اجازه نه راغلی يئ! په داسې حال کې الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې باره کې فرمايلي دي: لَا تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّىٰ تَسْتَأْنِسُوا وَتُسَلِّمُوا عَلَىٰ أَهْلِهَا(۳)

ترجمه: تاسو د خپلو خاصو کورونو نه علاوه نورو کورونو ته مه ورځئ! تر څو چې تاسو د هغوی نه اجازه وانه خلئ! او د اجازه غوښتلو نه مخکې د هغوی په اوسېدونکو باندې مو سلام نه وي اچولی.

حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل که چېرې زه تا معاف کړم نو ستا په خپله په خير کې د لګېدلو اراده شته؟ هغه وويل هو! په دې باندې حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته معافي وکړه،

---

۱: اخرجه عبدالرزاق كذافي الكنز ۲/۱۴۱
۲: سورة بقرة آيت ۱۸۹).
۳: (سورة نور آيت ۲۷)

پرې یې بنوده او د کور نه یې بهر اووت.(۱)

**د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ او یو بوډا واقعه:**

حضرت سدي رَحِمَهُ اللهُ فرمایي چې یو ځل حضرت عُمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنهُ بهر ته تشریف یوړو حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُ هم ورسره وو هغوی ته یو ځائ کې د اور رڼا په نظر راغله دوي د هغې رڼا خوا ته روان شول تردې چې یو کور ته داخل شول دا د نیمې شپې وخت وو دننه چې لاړل، ګوري چې په کور کې ډېوه بلېږي هلته یو بوډا سړی ناست دی او د څښلو څه شی ورته مخکې اېښودل شوی دی او یوه وینځه هغه ته سندره وایي هغه بوډا سړی ته هغه وخت پته اونلګېده کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د هغه خوا ته وروړ سېده حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل د نن شپې پشان خراب منظر ما چرې نه دی لیدلی چې بوډا د خپل مرګ انتظار کوي (او هغه داسې بدکار کوي) هغه بوډا سر اوچت کړ او وې ویل چې ستا خبره صحیح ده خو اې امیرالمؤمنین! تاسو چې څه کړی دی هغه دې نه هم زیات بد دي تاسو کور ته رادننه شوي یئ! او تجسس مو کړی دی په داسې حال کې چې د الله رب العزت د تجسس نه منع کړې ده او تاسو له اجازې نه پرته کورته راغلی یئ! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وویل تا صحیح خبره وکړه، په ژړا شو او د کور نه بهر ووت او وې فرمایل چې که چرې عُمر د هغه رب معاف نه کړ نو هغه دې د هغه مور ورک کړي دې سپینږیري دا ګنله چې زه د خپل کور والاوو نه دا کار پټ کوم اوس خو حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ زه په دې کار کولو باندې لیدلی یم نو دا رنګه زه به اوس دا کار بغیر د څه خطرې نه کوم دغه بوډا څه موده پس د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ مجلس ته راتلل پرېښودل، یوه ورځ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ناست وو دغه بوډا لږ په پټه باندې راغی او د خلکو شاته کېناسته، حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ چې هغه ولیده نو وې فرمایل دا بوډا ما ته راولئ! یو سړی لاړ او هغه سپینږیري ته یې وویل چې لاړ شه! امیر المؤمنین دې غواړي هغه بوډا پاڅېده د هغه خیال وو چې حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ په هغه شپه کوم منظر لیدلی وو نن ما ته د هغه سزا راکوي حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل ما ته نزدې راشه! ځان ته یې نزدې کولو تردې چې خپل اړخ ته یې کېناوه بیا یې وفرمایل لږ خپل غوږ ما ته رانزدې کړه! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د هغه غوږ سره خوله اولګوله او وې ویل په غور سره

---

(۱) اخرجه الخرائطي كذافي الكنز ٢/١٦٢

واوره! په هغه ذات مې دې قسم وي! چا چې محمد ﷺ ته حق ورکړی دی او رسول يې جوړ کړی او را ليږلی يې دی ما چې ته په هغه شپه په څه کولو باندې ليدلی وې هغه ما هيڅ ته هم نه دی ويلي تر دې چې حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په هغه شپه ما سره وو خو ما هغه ته هم نه دی ويلي هغه بودا وويل اې اميرالمؤمنين! لږ خپل غوږ ما ته رانږدې کړه! او وې ويل په هغه ذات مې دې قسم وي! چا چې محمد ﷺ ته حق ورکړی دی او رسول يې جوړ کړی او را ليږلی دی ما هم هغه کار تر اوسه پورې دوباره نه دی کړی. دا يې چې واورېدل حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په زوره زوره الله اکبر وويل او خلکو ته پته ولګېده چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په څه وجه الله اکبر وايي.(۱)

**د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او ابومحجن ثقفي واقعه:**

حضرت ابو قلابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته چا وويل چې حضرت محجن ثقفي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل ملګري کور ته بوځي او شراب څښي حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لاړنو دې چې حضرت ابو محجن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له د هغه کور ته ورغی نو هلته د هغه سره صرف يو سړی وو. حضرت ابو محجن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل اې اميرالمؤمنين! دا کور ته د اجازې نه بغير داخلېدل ستاسو لپاره جائز نه دي، الله رب العزت تاسو د تجسس نه منع کړي يئ! حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل دا سړی څه وايي؟ حضرت زيد بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عبدالرحمن بن ارقم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل اې اميرالمؤمنين! دا سړی صحيح خبره کوي ستاسو دغه شان دننه تلل واقعي تجسس دی حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه پرېښودل او بهر راووت.(۲)

## د مسلمان عيب پټول

**د يوې ښځې کورنۍ ته دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هدايت:**

حضرت شعبي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې يو سړی راغی او حضرت عُمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې يې عرض وکړ چې زما يوه لور ده او هغه ما د جاهليت په زمانه کې يو ځل په قبر کې ژوندۍ خښه کړې وه خو د مرګ نه مخکې مې راوېستلې وه بيا هغه مونږ سره د اسلام په زمانه کې مخامخ شوه او مسلمانه شوه بيا د هغې نه داسې ګناه وشوه چې په هغې باندې شرعي حد ملاوېدله چې دهغې په وجه هغې خپل ځان په لويه چاړه باندې د حلالولو کوشش وکړ خو

---

۱: اخرجه ابوالشيخ كذافي الكنز ۲/۱۴۱

۲: اخرجه الطبراني كذافي الكنز ۲/۱۴۱

ښکه مرغه مونږ په وخت وروز سېدو او هغه مو بچ کړه خو د هغې د مرې څه رګونه پرېکړې شوي وو بیا مونږ د هغې علاج وکړ او هغه جوړه شوه دېنه پس هغې توبه ووېستله او د هغې دیني حالات ډېر ښه شو او د یو قوم خلک د هغې د واده پیغام راکوي زه هغوی ته د دې ټولو قصه بیان کړم؟ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې الله رب العزت د هغې عیب پټ کړی وو تاسو هغه ښکاره کول غواړئ! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! که چېرې تاسو چا ته د دې نجلۍ څه خبره وکړه نو زه به تاسو ته داسې سزا درکړم چې ټول ښار والاوو لپاره عبرت اوګرځي بلکې د هغې واده داسې وکړئ! څنګه چې دیوې پاک لمنې مسلمانې ښځې کېږي.(۱)

**د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، یو ماشوم او څلورو ښځو واقعه:**

حضرت شعبي رَحِمَهُ اللَّهُ وایي کله چې له یوې نجلۍ نه بدکار وشو نو ورته شرعي سزا ورکړې شوه بیا د هغې قوم والاوو هجرت وکړ او راغلل، هغې نجلۍ هم توبه ووېستله او دهغې دیني حالت ښه شو د دې جنۍ د واده پیغام د هغه تره ته راغی نو هغه نه پوهېده چې زه څه وکړم؟ د دې حالت ښودلو نه پرته یې که واده کړم نو هم صحیح نه ده د امانتدارۍ خلاف ده او که د دې حال ورته بیان کړم نو دا خبره حضرت عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وکړه هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وفرمایل: بلکل ورته حال مه وایه او هغه داسې واده کړه! څنګه چې تاسو د خپلو ښکانو لونو ودونه کوئ!(۲)

حضرت شعبي رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې یو ښځه راغله او د حضرت عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خدمت کې یې عرض وکړ اې امیرالمؤمنین! ما ته یو ماشوم په داسې حال کې ملاو شو چې هغه یوه سپینه مصرۍ جامه کې تاو شوي وو، او په دغه جامه کې ورسره سل دیناره وو، ما دواړه رااوچت کړل کور ته مې راوړل او هغه ماشوم ته د پیو ورکولو لپاره مې یوه ښځه په مزدورۍ ونیوله، او س ما ته څلور ښځې راځي او څلور واړه هغه ښکلوي ما ته پته نه لګي چې په دې څلورو کې کومه یوه د هغه ماشوم مور ده؟ حضرت عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل کله چې هغه ښځې راشي نو ما خبر کړه!(هغه ښځې چې راغلې نو دغه ښځې حضرت عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خبر کړ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغه کور ته لاړ او ) په هغو ښځو کې یې یوې ته وویل چې په تاسو کې کومه یوه د دې ماشوم مور ده؟ هغې ښځې وویل په الله جَلَّ جَلَالُهُ

---

۱: اخرجه هناد والحارث كذافي الكنز ۲/۱۵۰

۲: عند سعد بن منصور والبیهقي كذافي الكنز ۸/۲۹۲

قسم! چې تا د معلومولو بنه طریقه اختیار نه کړه! الله رب العزت د یوې ښځې په عیب باندې پرده اچولې ده او ته د هغې بې عزتي کول غواړې! حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل تا صحیح خبره وکړه! بیا یې هغه مخکې ښځې ته وویل چې آئینده کله دا ښځې تا ته راشي نو دوي نه هیڅ پوښتنه مه کوه! او د دوي ماشوم سره ښه رویه کوه! او بیا حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ واپس لاړ.(۱)

**حضرت أنس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او په یوه کنیزه (وینزه) د پرې اچولو حکم کول:**

حضرت صالح بن کُرز رَحِمَهُ اللهُ وایي چې زما د یوې وینزې نه زنا وشوه ما هغه ځان سره کړه او حضرت حکیم بن ایوب رَحِمَهُ اللهُ ته لاړو زه هلته ناست ووم چې حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی او کېناسته او ویې فرمایل اې صالح! تاسره دا وینزه ولې ده؟ ما وویل چې زما د دې وینزې نه زنا شوې ده او س زه د دې معامله امام ته وړول غواړم چې هغه ورته شرعي سزا ورکړي حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل داسې مه کوه! خپله وینزه واپس بوځه! او د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه اووېرېږه! او د دې په عیب باندې پرده واچوه! ما وویل نه داسې نه کوم حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل داسې مه کوه! او زما خبره اومنه! هغه بیا بیا ما ته ویل تر دې چې ما وینزه بېرته کور ته بوتله.(۲)

**دحضرت عقبة بن عامر کاتب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او شرابخورو واقعه:**

د حضرت عُقبه بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ منشي د خپن ابو الهیثم رَحِمَهُ اللهُ وایي چې ما حضرت عُقبه بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل چې زمونږ څو گاونډیان شراب څښي زه د هغوی لپاره پولیس راوستل غواړم چې هغوی دوي ونیسي.

حضرت عُقبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل داسې مه کوه! بلکې دوی ته وعظ او نصیحت وکړه! او دوي ووېروه! ما وویل چې ما دوي منع کړی وو خو دوي منع نه شول ځکه اوس پولیس راغواړم چې دوي ونیسي حضرت عُقبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل ته هلاک شې! داسې مه کوه! ځکه چې ما د رسول الله ﷺ نه دا فرمان اورېدلی دی چې چا د مسلمان عیب پټ کړ نو گواکې ده ژوندۍ خښه شوې نجلۍ ژوندۍ کړه!.(۳)

---

۱: اخرجه البیهقی ۷/۳۲۹

۲: اخرجه عبدالرزاق کذافی الکنز ۳/۹۴

۳: اخرجه ابوداود والنسائي کذافی الترغیب ۴/۱۷ وقال رواه ابوداود والنسائي بذکر القصة وبدونها و ابن حبان فی صحیحه واللفظ روالحاکم وقال صحیح الاسناد وقال المنذری رجال اسانید هم ثقات ولکن اختلف فیه علی ابراهیم بن نشیط اختلافاً کثیرا.

**د فاسقانو په باره کې دحضرت ابودرداء رضی الله عنه اودهغه د خوی واقعه:**

حضرت بلال بن سعد اشعري رحمه الله وايي چې حضرت معاويه رضی الله عنه حضرت ابوالدرداء رضی الله عنه ته په ليک کې وليکل چې د دمشق د بدمعاشانو نومونه وليکه! او ما ته يې راوليږه! نو حضرت ابوالدرداء وفرمايل چې زما د دمشق د بدمعاشانو سره څه اړيکې دي؟ او ماته به د هغوی پته د کوم ځای نه لګي په دې باندې د هغه خوی حضرت بلال وويل زه درته د هغوی نومونه ليکم او د هغوی نومونه يې وليکل او ورپې کړل حضرت ابوالدرداء وفرمايل چې تا ته د هغوی پته د کوم ځائ نه اولګيده؟ تا ته د هغوی پته په دې وجه لګيدلې ده چې ته هم د هغوی سره يې! ځکه د هغوی نومونو لستې د خپل نوم نه شروع کړه! او د هغوی نومونه حضرت معاويه رضی الله عنه ته مه ليږه!(۱)

**حضرت عمر رضی الله عنه د حضرت جرير رضی الله عنهما مشوره:**

حضرت شعبي رحمه الله وايي چې حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه په يو کور کې وو حضرت جرير بن عبدالله رضی الله عنه هم ورسره وو په دې کې د چا هوا ووتله چې د هغې بدبويې حضرت عُمر رضی الله عنه محسوسه کړه! نو ويې فرمايل چې زه تاکيد کوم چې د چا هوا وتلې وي هغه دې ودريږي او اودس دې وکړي په دې باندې حضرت جرير رضی الله عنه وفرمايل اې اميرالمؤمنين! آيا ټول خلک دې اودسونه نه کوي؟ په دې سره به مقصد او هدف هم حاصل شي او د چا چې هوا وتلې وي د هغه په عيب باندې به پرده هم پاتې شي، حضرت عُمر رضی الله عنه وفرمايل الله رب العزت دې په تا رحم وکړي، ته په جاهليت کې هم ډېر ښه سردار وې او په اسلام کې هم ډېر ښه سردار يې! د پرده پوښۍ څنګه ښه ترتيب دې وښوده.(۲)

# مسلمان ته عفوه کول

**د حاطب بن ابی بلتعه د ليک واقعه:**

حضرت علي رضی الله عنه فرمايي زه رسول الله ﷺ حضرت زبير رضی الله عنه او حضرت مقداد رضی الله عنه ته ولېږلم او ويې فرمايل چې تاسو د دې ځائ نه لاړ شئ! او روضه، خاخ، چې د مکې مکرمې او مدينې منورې تر مينځه د مدينې نه دولس ميله فاصله باندې يو ځائ دی، ته ځان اورسوئ! هلته به په ګډۍ ناسته يوه ښځه تاسو ته ملاو شي هغې سره يو

---

۱: اخرجه البخاری فی الادب ۱۸۸

۲: اخرجه ابن سعد کذافی الکنز ۲/۱۵۱

لیک دی هغه ترې راوړئ! نو مونږ هلته نه لاړو او زمونږ اسونه د يو بل مقابله کې بنه زغلېدل کله چې مونږ روضه ته ورسېده نو هلته مونږ ته په ګډی ناسته يوه ښځه ملاو شوه مونږ هغې ته وويل ليک راوباسه! او رايې کړه هغې وويل ما سره هيڅ ليک نشته مونږ وويل ليک راوباسه! ګنې ستا نه به تولې جامې وباسو او ستا تالاشي به واخلو ځکه چې د جاسوس نه د مسلمانانو د راز ليک اخيستو لپاره د هغې بې حرمتي کول صحيح دي نو هغې د خپل سر د کمڅو نه هغه ليک راوايستلو او رايې کړ هغه ليک مونږ راواخيسته او د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو نو هغه ليک د حضرت حاطب بن ابي بلتعه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د طرفنه د مکې د څو مشرکانو خلکو په نوم وو چې هغې کې يې د رسول الله ﷺ د راز خبره ليکلې وه رسول الله ﷺ وفرمايل اې حاطب! دا څه دي؟ هغه عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو زما باره کې جلتي مه کوئ! زه د قريشو د قبيلې نه نه يم بلکې د هغوی حليف يم او تاسو سره د مکې چې کوم مهاجر دي د هغوی ټولو د مکې د مشرکانو سره رشته داري ده د دغه رشته دارۍ له وجې نه هغه مشرکان د مسلمانانو د کورونو والا، مال او دولت چې په مکه کې دی د هغو ټولو حفاظت کوي زما هم په مکه کې رشته دار دي ما سوچ وکړ چې د قريشو سره خو زما نسبي رشته نشته له دې وجې نه زه ستاسو راز ښودلو سره په هغوی احسان کوم په دې وجه به هغوی زما د رشته دارو حفاظت کوي ما دا کار په دې وجه نه دی کړی ګنې زه د خپل دين نه مرتد شوی يم يا د اسلام نه پس زما کفر خوښ شوی دی رسول الله ﷺ وفرمايل په غور سره واورئ! رينښتيا خبره کوي حضرت عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل ما ته اجازه راکړئ! چې د دې منافق سر والوزوم! رسول الله ﷺ وفرمايل نه! هغه په جنګ بدر کې شريک شوی وو تا ته څه پته ده؟ چې الله جَلَّ جَلَالُهُ بدر والو ته ښکاره وئيلي دي او فرمايلي يې دي چې تاسو څه غواړئ! کوئ! ما تاسو بښلي يئ! بيا الله رب العزت دا سورت نازل کړ: يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَآءَ تُلْقُونَ إِلَيْهِم بِٱلْمَوَدَّةِ وَقَدْ كَفَرُواْ بِمَا جَآءَكُم مِّنَ ٱلْحَقِّ يُخْرِجُونَ ٱلرَّسُولَ وَإِيَّاكُمْ أَن تُؤْمِنُواْ بِٱللَّهِ رَبِّكُمْ إِن كُنتُمْ خَرَجْتُمْ جِهَٰدًا فِي سَبِيلِي وَٱبْتِغَآءَ مَرْضَاتِي تُسِرُّونَ إِلَيْهِم بِٱلْمَوَدَّةِ وَأَنَا۠ أَعْلَمُ بِمَآ أَخْفَيْتُمْ وَمَآ أَعْلَنتُمْ وَمَن يَفْعَلْهُ مِنكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ ٱلسَّبِيلِ ۝[1]

---

۱: (سورة ممتحنه آيت ۱)

ترجمه: اې ایمان والاوو! تاسو خپل دښمنان او زما دښمنان دوستان مه جوړوئ! چې هغوی ته د دوستۍ اظهار وکړئ! په داسې حال کې تاسو ته چې کوم حق دین راغلی دی هغوی د دې نه منکر دي رسول الله ﷺ لره او تاسو لره په دې بناء چې تاسو په خپل پرور دګار الله رب العزت باندې ایمان راوړی دی د ښار نه یې وېستلي یئ! که چېرې تاسو زما په لار کې جهاد کولو په غرض سره او زما د رضامندۍ د لټون په غرض سره د خپلو کورونو نه وتلي یئ! تاسو د هغوی سره پټې پټې د دوستۍ خبرې کوئ! په داسې حال کې چې ما ته د ټولو شیانو علم دی تاسو چې کوم پټ کوئ! او چې ښکاره کوئ! او مخکې په دې خبره وعید دی چې کوم سړی په تاسو کې داسې وکړي هغه به د نېغې لارې نه واوړي.(۱)

امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ هم دا حدیث د حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه نقل کړی دی په دې کې دا دی چې حضرت حاطب عرض وکړ چې ما دا کار نه رسول الله ﷺ ته د هوکې لپاره ور کړی دی او نه مې د منافق کېدو په وجه کړی دی زما دا یقین وو چې الله رب العزت به خپل رسول الله ﷺ غالب کوي او د رسول الله ﷺ دین به کمال ته رسوي چې زه د رسول الله ﷺ راز د مکې کفارو ته وښایم په دې سره به د رسول الله ﷺ هیڅ نقصان نه کېږي اصل خبره دا وه چې زه په قریشو کې اجنبي او بهرني سړی یم او زما مور د هغوی سره اوسېږي نو ما وغوښتل چې زه په هغوی باندې احسان وکړم حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ رسول الله ﷺ ته عرض وکړ آیا زه د ده سر وانه لوزوم؟ رسول الله ﷺ وفرمایل آیا ته به د بدر والاوو نه یو سړی قتل کړې؟ تا ته څه پته ده؟ چې الله رب العزت بدر والاوو ته ویلی وي او فرمایلي یې دي چې تاسو څه غواړئ! کوئ! یې.(۲)

**د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او یو غل واقعه:**

حضرت ابو مطر رَحِمَهُ اللَّهُ فرمایي ما ولیدل چې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته یو سړی راوستل شو او خلکو وویل چې دې سړی اوښ پټ کړی دی حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل چې زما په خیال کې تا غلا نه ده کړې هغه وویل نه ما غلا کړېده حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل

---

۱: اخرجه البخاری واخرجه بقیة الجماعة الا ابن ماجه وقال الترمذی حسن صحیح کذافی البدایة ۴/۲۸۴

۲: تفرو بهذا الحدیث من هذا الوجه الامام احمد، واسناده علی شرط مسلم کذافی البدایة ۴/۲۸۴ قال البیهقی ۹/۳۰۳ رواه احمد وابو یعلی ورجال احمد رجال الصحیح انتهی واخرجه الحاکم ایضاً کما فی الکنز ۷/۱۲۷ واخرجه ایضا ابویعلی والبزار رواه الطبرانی عن عمر قال الهیثمی ۹/۳۰۴ ورجالهم رجال الصحیح اه واحمد وابویعلی عن ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورجال احمد رجال الصحیح کما قال الهیثمي ۹/۳۰۳

کېدای شي تا ته شک شوی دی چې ستا اوبن دي که د بل چا هغه وویل نه ما غلا کړېده حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل اې قنبره! دي بو ځه! دده ګوته اوتړه! اوربل کړه او جلاد د لاس پرېکولو لپاره راوغواړه! او زما د واپس راتلو انتظار وکړه! کله چې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ واپس راغی نو هغه سړي ته یې وویل آیا تا غلا کړې ده؟ هغه وویل نه! حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه پرېښودلو خلکو وویل اې امیرالمؤمنین! کله چې هغه ستاسو په مخکې یو ځل اقرار کړی دی نو تاسو هغه ولې پرېښودلو؟ هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې ما دی د همده په خبره نیولي وو او د همده په خبره مې پرېښودلو بیا حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې رسول الله ﷺ ته یو سړی راوستل شو چې هغه غلا کړې وه د رسول الله ﷺ په حکم سره د هغه لاس پرېکړی شو نو رسول الله ﷺ په ژړا شو ما عرض وکړ چې تاسو ولې ژاړئ!؟ ویې فرمایل چې زه به ولې نه ژاړم! هر کله چې زما د امتي لاس ستاسو ټولو په مخکې پرې کړی شي صحابه وو عرض وکړ تاسو دي ولې معاف نه کړ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل هغه ډېر بد حاکم دي چې شرعي سزا معاف کړي البته تاسو په خپلو کې دا جرمونه یو بل ته معاف کوئ.(۱)

## په شریعت ثابتېدلو نه پس څوک یې نه شئ معاف کولی

حضرت ابو ماجد حنفي رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې یو سړی حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته خپل وراره راوستلو د هغه وراره په نشه کې وو هغه سړي وویل ما دي په نشه کې بیا موندو حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل دي ښه اوښوروه او د خولې نه یې بوي معلوم کړه! خلکو هغه ښه اوخوزولو او خوله یې ورله بوي کړه، نو د هغه د خولې نه د شرابو بوي ختلو. حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حکم وکړ نو هغه په جېل خانه کې واچول شو په بله ورځ هغه د جېل خانې نه راوستل شو او ویې فرمایل چې د کوړې تسمه تاو کړي چې د چابک په شان شي نو هغه تاو کړی شوه بیا یې جلاد ته وفرمایل چې دي ووهه! خو لاس دومره مه او چتوه! چې ترخ دي ښکاره شي او هر اندام ته د هغه حق ورکړه! حضرت عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه ته دا شان کوړې ورکړې چې زیاتې سختې نه وې او د جلاد لاس به هم زیات نه او چتېدلو او د کوړو ورکولو په وخت کې هغه سړی جبه او پرتوګ اغوستي وو بیا حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې په

---

۱: اخرجه ابویعلی کذافی الکنز ۳/۱۱۷

الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! دا سړی د يتيم ډېر خراب سرپرست دی اې فلانيه! تا ده ته تميز نه دي ښودلی او نه دی په ښه شان ادب او طريقه ورښودلې ده، هغه د رسوايۍ والا کار کړی وو خو تا په ده باندې پرده وانه چوله بيا يې وفرمايل چې الله جَلَّ جَلَالُهُ معاف کونکی دی او معاف کول خوښوي او کله چې د يو حاکم په مخکې د چا جرم شرعاً ثابت شي نو اوس په هغه لازم دي چې مجرم ته سزا ورکړي بيا حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې په مسلمانانو کې د ټولو نه مخکې چې د چا لاس پرېکړی شو هغه يو انصاري وو کله چې هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کې راوستل شو نو د غم له وجې نه يې حالت بدل شو، داسې معلومېده لکه چې د رسول الله ﷺ په مخ مبارک باندې ايره پرېوتې وي صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو ته د دې سړي په راوستلو کې ډېر تکليف دی؟ ويې فرمايل ما ته به تکليف ولې نه وي چې تاسو د خپل ورور خلاف د شيطان مددګار جوړ شوي يئ! تاسو ته پکار وو چې دې مو هم هلته معاف کړی وای الله رب العزت بخښونکي دي او بخښنه کول خوښوي زه يې نشم معاف کولی ځکه کله چې د حاکم په مخکې شرعاً څه جرم ثابت شي نو ضروري ده چې هغه د دې جرم شرعي سزا نافذ او جاري کړي بيا هغه دا آيت ولوسته: وَلْيَعْفُوا وَلْيَصْفَحُوا (١)

ترجمه: او په کار دي چې هغوی معافي وکړي او تېر بدل وکړي. (٢)

حضرت عمرو بن شعيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې په اسلام کې د ټولو نه مخکې شرعي حد چې قائم کړی شو د هغه صورت داسې وو چې يو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر کړی شو او بيا د هغه خلاف شاهدانو شاهدي ورکړه رسول الله ﷺ وفرمايل چې د ده لاس دې پرې کړی شي کله چې د هغه لاس يې پرېکاوه نو خلکو وليدل چې د رسول الله ﷺ مخ مبارک د غم له وجې نه داسې ښکارېده لکه چې په هغه باندې ايرې اچول شوې وي، صحابه کرامو عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو د ده لاس پرېکاوه سره ډېر تکليف کې يئ! رسول الله ﷺ وفرمايل: ما ته به تکليف ولې نه وي؟ هر کله چې تاسو د خپل ورور خلاف د شيطان مدد کوئ!؟ صحابه وو عرض وکړ تاسو به دې پرېښودلی وای او د لاس پرېکاوه حکم به مو نه کولی. رسول الله ﷺ وفرمايل ما ته د راوستلو نه مخکې تاسو دې

---

١: (سورة نور آيت ٢٢).

٢: اخرجه عبدالرزاق وابن ابی دنيا وابن ابی حاتم والطبرانی والحاکم والبيهقی.

ولې نه پرېښودو؟ زه يې نشم پرېښودلی ځکه چې د امام په مخکې کله چې شرعي حد ثابت شي نو هغه نشي منع کولی.(۱)

**شارب الخمر (شرابي) ته دحضرت ابوموسی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د دُرو ورکولو واقعه:**

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې زه په حج يا عمره کې د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره وم مونږ يو کس په سورلۍ سور راروان وليده حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل زما خيال دا دی چې دي مونږ لټوي هغه سړی راغی او ژړا يې شروع کړه، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل څه خبره ده؟ که چېرې ته قرض داري يې! نو مونږ له تا سره مرسته کوو او که چېرې تا ته د چا نه وېره وي نو مونږ به تا ته امن درکړو خو که چېرې تا څوک ناحقه مړ کړي وي نو بيا به ته هم د هغه په بدله کې مړ کېږې! او که چېرې ستا د يو قوم په خوا کې اوسېدل خوښ نه وي نو مونږ به تا د هغه ځای نه چېرته بل ځای ته بوځو، په دې سره هغه ويل چې زه د بنو تيم قبيلې سړی يم ما شراب څښلي وو چې په هغه باندې ما ته حضرت ابو موسی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کوړې هم راکړې او زما د سر وېښته يې هم وخرييل او زما مخ يې تور کړ او په خلکو کې يې چکرې هم راکړې او خلکو ته يې دا اعلان وکړ چې تاسو د ده سره مه کېنئ! او مه ورسره دوډۍ خورئ! په دې باندې زما په زړه کې درې خبرې راغلی دی چې يا خو توره راواخلم او حضرت ابو موسی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مړ کړم يا زه تاسو ته راشم او تاسو زما ځاني بدل واخلئ! او ما د شام ملک ته ولېږئ! ځکه چې د شام ملک والا ما نه پېژني له دې وجې نه هلته اوسېدل به زما لپاره اسانه شي، يا دا چې زه ولاړ شم او د دښمنانو سره يو ځای شم او هغوی سره خورم او څښم! دا يې چې واورېدل نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په ژړا شو او ويې فرمايل چې که چېرته لاړ شې! او دښمنانو سره ملاو هم شې او بې انتها دولت هم پيدا کړی خو بيا به هم ذره خوشحالي ونه مومې! ځکه چې زه خو د جاهليت په زمانه کې د ټولو نه زيات د شرابو څښونکي يم او دا شراب د زنا د جرم په شان نه دی او حضرت ابو موسی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته يې دا ليک وليکه: «سلام عليك. اما بعد: فان فلان بن فلان التيمي اخبرني بكذا و كذا، و ايم الله اني ان عدت لأسودن وجهك و لاطوفن بك في الناس، فإن اردت ان تعلم حق ما اقول لك فعد فأمر الناس ان يجالسوه و يواكلوه، فإن تاب فاقبلو شهادته».

السلام عليکم اما بعد! د بنو تيم قبيلې فلاني د فلاني ځوی ما ته دا سې بيان کړی دی ؎

---

۱: عند عبدالرزاق كذافي الكنز ٨٣/٨٩،٣

الله جَلّ جَلَالُهُ قسم! که چېرې تا بیا داسې وکړل نو زه به ستا مغ درتور کړم او په خلکو کې به دې ګرځوم! کوم څه چې زه تا ته وایم که چېرې ته دا حق ګڼل غوارې نو داسې حرکت د بیا لپاره ونه کړې او ګوره! خلکو ته دا اعلان وکړه! خلک دې د ده سره کېني او ده سره دې خوراک هم کوي او که چېرې هغه اڅینده د شرابو د څښلو نه توبه ووېستله نو ته د هغه شاهدي هم قبلوه! بیا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته سورلۍ هم ورکړه! او دوه سوه درهمه یې هم ورکړل.(۱)

## د مسلمان د نامناسبه کار بنه تاویل کول

حضرت ابو عون وغیره حضرات وایي چې حضرت خالد بن ولید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا دعوي وکړه چې ما ته کومه خبره مالک بن نوه د طرفنه رارسېدلې ده د هغې په بنیاد هغه مرتد شوی دی، حضرت مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې دعوې نه انکار وکړ او وې ویل چې زه په اسلام باندې یم ما خپل دین نه دي بدل کړي حضرت ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت مالک په حق کې شاهدي ورکړه خو حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پخپله فیصله کلک وو او هغه حضرت مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مخکې کړ او حضرت ضرار بن ازور ته یې حکم وکړ چې په هغې باندې حضرت ضرار حضرت مالک مړ کړ د عدت تېرېدلو نه پس حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت مالک بن نویر ښځه په خپل واک کې واخیسته او نکاح یې ورسره وکړه. کله چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دا خبر ورسېده چې حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مالک بن نویره وژلی دی او د هغه ښځه یې هم په خپله قبضه کې په نکاح اخیستې ده نو حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ابو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل چې حضرت خالد بن ولید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زنا کړې ده تاسو هغه رجم یعنې سنګسار کړئ! هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې زه هغه نشم رجم کولی ځکه چې هغوی اجتهاد کړی دی چې په هغې کې د ده نه خطایي شوې ده، حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې هغه ناحقه وژل کړی دی نو په دې وجه تاسو هغه ووژنئ! خو حضرت ابو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل چې زه هغه وژنم هم نه! ځکه چې هغه اجتهاد کړی دی چې په هغې کې د هغه نه خطایي شوې ده بیا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې معزول یعنې د منصب نه یې لرې کړه! حضرت ابو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

---

۱: اخرجه البیهقي کذافي الکنز ۲/۱۰۷

وویل چې کومه توره الله جَلَّ جَلَالُهُ په کافرانو باندې راوېستلې وه زه هغه چېرې هم په قاش یعنې پوښ کې نه شم اچولی.(۱)

# د گناه کونکی پرځاي د گناه نه نفرت کول

**د حضرت ابودرداء او ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا گناهگار ته د کنځلو نه منع کول:**

حضرت ابو قلابه رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت ابوالدرداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د یو سړی خوا کې تېر شو چې د هغه نه څه گناه شوې وه او خلکو هغه ته بد رد ویل حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خلکو ته وویل لږ دا ووایئ! که چېرې تاسو دا سړی په کوهي کې پرېوتی لیدلی وای نو آیا تاسو به دې نه راوېسته؟! خلکو وویل چې ضرور به مو راوېسته! حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل تاسو ده ته څه مه وایئ! او د الله جَلَّ جَلَالُهُ شکر اداء کړئ! چې تاسو یې د دې گناه نه بچ ساتلي یئ! خلکو وویل ولې تا ته د دې سړی نه نفرت نشته؟ هغه وفرمایل زما د ده د بد عمل نه نفرت دی کله چې دی دا پرېږدي نو زما ورور دي.(۲)

حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي کله چې تاسو وگورئ! چې ستاسو د ورور نه گناه شوې ده نو د هغه خلاف د شیطان مرستندوي مه جوړېږئ! چې دا خبرې کوئ! چې الله جَلَّ جَلَالُهُ او رسول الله ﷺ دی رسوا کړي اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! په ده باندې لعنت وکړې! بلکې د الله رب العزت نه د هغه لپاره او د خپل ځان لپاره عافیت وغواړئ! مونږ د رسول الله ﷺ صحابه به تر هغې یو سړی په باره کې څه خبره نه کوله تر څو چې به مونږ ته دا نه وه معلومه شوې چې د هغه مرگ په کوم حالت کې شوی دی که چېرې د هغه خاتمه به په خیر سره وه نو مونږ به یقین کولو چې ده ته ډېر خیر حاصل شوی دی او که چېرې د هغه خاتمه به خرابه وه نو مونږ به د هغه باره کې وېرېدلو!.(۳)

# له حسد او کینې نه سینه پاکه ساتل

**د عبدالله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او هغه سړی قصه چې دجنت زېری ورکړی شوی ؤو:**

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې مونږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو چې په دې کې هغوی ﷺ وفرمایل چې اوس به تاسو ته یو جنتي سړی راځي نو په دې کې یو انصاري

---

۱: اخرجه ابن سعد کذافی الکنز ۳/۱۳۲.

۲:اخرجه ابن عساکر کذافی الکنز ٦/۱۷۴ واخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۲۲۵ عن ابی قلابة مثله.

۳: اخرجه ایضا ابونعیم ۴/۲۰۵.

راغی د هغه د ړیړي نه د اودس د اوبو څاڅکي غورځېدل او په ګس لاس کې یې پڼې زوړندې نیولې وې بله ورځ بیا رسول الله ﷺ هم هغه خبره وفرمایله نو بیا هغه انصاري دغه شان راغی څنګه چې رومبی ورځ راغلی وو په دریم ځل بیا رسول الله ﷺ همغه شان خبره وکړه او هم دغه انصاري په هماغه حال راغی کله چې رسول الله ﷺ د مجلس نه پاڅېده نو حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دغه انصاري پسې لاړ او هغه ته یې وویل چې زما پلار سره جنګ شوی دی له دې وجهې ما قسم خوړلی دی چې زه به درې وورځو پورې د هغه خوا ته نه ورځم که چېرې تاسو دا مناسب ګڼئ! نو تاسو ما ځان سره درې ورځې ایسار کړئ! هغه وویل ضرور! بیا حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیان کوي چې ما د هغه سره درې شپې تېرې کړې خو ما هغه په شپه کې زیات عبادت کونکی ونه لیدو البته د شپې چې به کله د هغه سترګې وغړېدې نو په بستره به یې خپل اړخ بدلولو او لږ شان د الله جَلَّ جَلَالُهُ ذکر یې وکړ او الله اکبر به یې ویلو او د سهار مانځه لپاره به بسترې نه اوچتېدو البته کله چې به یې خبره کوله نو د خیر خبره به یې کوله کله چې درې شپې تېرې شوې او ما ته د هغه ټول اعمال د معمول مطابق په نظر راغلل او زه حیران شوم چې رسول الله ﷺ د ده لپاره بشارت خو دوه مره لوی ورکړی دی خو د ده خو خاص عمل نشته دی نو ما هغه ته وویل چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ بنده! زما د پلار ه سره څه جنګ نه دی شوی او نه څه خفګان راغی دی او نه ما د هغه په پرېښودلو قسم کړی دی بلکې قصه داسې ده چې ما د رسول الله ﷺ نه ستا په باره کې درې ځل اورېدلی دی چې اوس تاسو ته یو جنتي سړی راتلونکی دی او درې واره ځل ته راغلې په دې باندې ما سوچ وکړ چې زه تاسو سره پاتې شم او ستاسو خاص عمل وګورم! او په دغه عمل کې بیا ستا په نقش قدم باندې روان شم ما خو ته چېرته په لوی عمل باندې ونه لیدې! نو اوس راته ووایئ! ستاسو هغه کوم خاص عمل دی چې له هغې وجې تاسو دې درجې ته رسېدلی یې! چې رسول الله ﷺ بښودلې ده؟ هغه وویل چې زما خو څه خاص عمل نشته هغه عملونه دي چې تا لیدلی دی ما چې واورېدل نو روان شوم کله چې زما شا شوه نو هغه زه راوغوښتلم او وې ویل چې زما اعمال خو هغه دي چې تا لیدلی دی! خو البته یو خاص عمل شته چې زما په زړه کې د هیڅ مسلمان لپاره کرکه او بغض

نشته او چا ته چې الله جَلّ جَلَالُهُ څه خاص نعمت ورکړي وي نو زه په هغې باندې د هغه سره حسد او کینه نه کوم ما وویل چې هم دې شی ته دومره لویې درجې ته رسولی یې! (۱)

د بزار په روایت کې د دغه صحابي نوم حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ښودل شوی دی او د روایت په اخر کې دي چې حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل اې زما وراره! زما اعمال خو هغه دي چې تا لیدلی دی البته یو عمل دا دی کله چې زه د شپې ویده کېږم نو زما په زړه کې د هیڅ یو مسلمان په باره کې کینه، بغض او نور څه نه وی یا یې د دې پشان بله خبره وکړه د نسائي، بیهقي او اصبهاني په روایت کې دا دی چې په دې باندې حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې هم دې شی ته دې لویې درجې ته رسولی یې! او دا زمونږ په وس کې نشته.(۲)

د ابن عساکر په روایت کې دا دی چې د دغه صاحب نوم حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وو او د دې په اخر کې دا دی چې حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې زما اعمال خو هم هغه دي چې تا لیدلی دی البته یو عمل دادی چې زما په زړه کې د هیڅ یو مسلمان لپاره د بدی جذبه نشته او نه زه د بدی خبره له ژبې نه وباسم حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې هم دې شی ته دې لویې درجې ته رسولی یې! دا زما په وس کې خو شته دي نه.(۳)

**د وفات په وخت کې دحضرت ابودجانة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مخ نور:**

حضرت زید بن اسلم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې څه خلک د حضرت ابو دجانه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې په داسې حال کې راغلل چې هغه مریض وو خو د هغه مخ ځلېدو نو چا پوښتنه وکړه چې ستاسو مخ ولې ځلېږي؟ هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې زما په خپلو عملونو کې په دوو عملونو ډېره بهروسه ده یو خو دادی چې ما به څه بې فایدې خبرې نه کولې. دویم دا چې زما زړه ټولو مسلمانانو ته بلکل صفا وو.(٤)

---

۱: اخرجه احمد باسناد حسن والنسائي ورواه وابويعلى والبزار بنحوه.

۲: كذا في الترغيب ۴/۳۲۸ قال الهيثمي ۸/۷۹ رجال احمد رجال الصحيح وكذلك احد اسنادي البزار وان سياق الحديث لا بن لهيعة اه وقال ابن كثير في تفسره ۴۵/۳۲۸ لحديث احمد وهذا اسناد صحيح على شرط الشيخين و اخرجه ايضاً بن عساكر ورجاله رجال الصحيح.

۳: كذافي الكنز ۷/۴۲.

٤: اخرجه ابن سعد ۳/۱۰۲.

# د مسلمان په ښه حالت باندې خوشحالېدل

**د مسلمانانو په خوشحالۍ د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا خوشحالېدل:**

حضرت ابن بریده اسلمي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې يو سړي حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته بد رد وويل حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل ته ما ته بد رد وايې په داسې حال کې چې په ما کې درې ښه صفتونه شته دي اول دا کله چې زه د قرآن څه آيت وايمنو زما زړه غواړي چې د دې آيت باره کې چې څه ما ته معلوم دي هغه ټولو خلکو ته معلوم شي دويم دا کله چې زه د مسلمانانو د حاکم باره کې واورم چې هغه د انصاف والا فيصلې کوي نو په دې سره زه خوشحالېږم! په داسې حال کې کېدی شي زما چېرې هم خپله مقدمه هغه ته د فيصلې لپاره داوړلو ضرورت رانشي او دریمه دا کله چې زه دا واورم چې د مسلمانانو په فلانۍ علاقه کې باران شوی دی نو په دې زه خوشحالېږم په داسې حال کې چې په هغه علاقه کې زما هيڅ څرېدونکی نه وي.(۱)

# له خلکو سره مدارا، نرمي او ملاطفت کول

**د يو ناخوښ سړي سره د رسول الله ﷺ ملاطفت:**

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې يو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کې د حاضرېدو اجازت وغوښتلو رسول الله ﷺ وفرمايل چې د خپل خاندان خراب سړی دی ( هغوی ﷺ اجازت ورکړلو) کله چې هغه سړی حاضر شو نو رسول الله ﷺ د ډېرې خوشحالۍ اظهار وکړ بيا هغه سړی لاړ بيا يو بل سړي اجازت وغوښتلو رسول الله ﷺ وفرمايل چې دا د خپل خاندان ښه سړی دی کله چې هغه دننه راغی نو رسول الله ﷺ څه د خوشحالۍ اظهار ونه کړ کله چې هغه لاړ نو ما عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! فلاني اجازت وغوښتلو نو تاسو د هغوی باره کې وفرمايل چې هغه خراب سړی دی خو چې هغه دننه راغی نو تاسو د هغه په مخکې ډېره خوشحالي ښکاره کړه بيا دويم کس اجازت وغوښتلو تاسو د هغه په باره کې ښه الفاظ استعمال کړل خو کله چې هغه دننه راغی نو هغه سره په هغسې رويه ما ونه ليدئ! څنګه رويه چې تاسو اولني سړي سره کړې وه رسول الله ﷺ وفرمايل اې عائشې! په خلکو کې د ټولو نه

---

۱: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ۹/۲۸۴ رواه الطبراني ورجاله رجال الصحيح انتهى واخرجه كما فى الاصابة ۲/۳۳۴ وابو نعيم فى الحلية ۱/۳۲۲ نحوه.

خراب سړی هغه دی چې د هغه د شر په وجه خلک د هغه نه ځان ساتي.(۱)

حضرت صفوان بن عسال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې مونږ د رسول الله ﷺ سره په سفر روان وو مخامخ يو کس راغی کله چې رسول الله ﷺ هغه وليده نو ويې فرمايل چې خپل خاندان کې دا خراب سړی دی کله چې هغه نزدې راغی نو رسول الله ﷺ هغه ځان ته نزدې کېناوه کله چې هغه پاځېده لاړ نو صحابي عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! کله چې تاسو دي وليده نو تاسو وفرمايل چې دا د خپل خاندان خراب سړی دی خو کله چې هغه راغی نو تاسو هغه ځان سره نزدې کېناوه؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل: دا منافق دی ما د ده د نفاق په وجه ده سره نرمي کوله ځکه چې ما ته خطره وه چې دي به نور خلک زما مخالف کړي او هغوی به خراب کړي.(۲)

حضرت بريده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې مونږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو چې په دې کې د قريشو يو سړی مخامخ راغی رسول الله ﷺ هغه ځان سره نيزدې کېناوه کله چې هغه پاځېده او لاړ نو رسول الله ﷺ وفرمايل اې بُريده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ! ته دا پېژنې؟! ما ويل هو! دا د قريشو د اوچت خاندان سړی دی هغوی ﷺ درې ځله پوښتنه وکړه ما ورته درېواړه ځل يې هم دا ځواب ورکړ آخر ما وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ما د خپلو معلوماتو مطابق تاسو ته وويل هسې خو يې تاسو زما نه ښه پېژنئ! ويې فرمايل دا د هغو خلکو نه دی چې د هغوی د نېکو عملونو به الله رب العزت د قيامت په ورځ هيڅ وزن قائم نکړي (ځکه چې د وی سره نېک عملونه نه شته دي.(۳)

**د صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ نرمي کول:**

حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې ځينې ځل مونږ د څه خلکو په مخکې خاندو خو زمونږ زړونه په هغوی باندې لعنت کونکی وي.(۴)

# د مسلمان راضي کول

**د ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بښنه غوښتل او پښېمانه کېدل او د عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په نه منلو پښېمانه کېدل**

حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ځل زه د رسول الله ﷺ سره ناست ووم په دې

۱: اخرجه احمد قال الهيثمي ۸/۱۷ رواه احمد ورجاله رجال الصحيح وفی الصحيح بصنعه انتهی واخرجه البخاری فی الادب ۱۹۰ مختصرا.

۲: اخرجه ابونعيم فی الحلية ۴/۱۹۱. قال ابونعيم هذا حديث غريب.

۳: اخرجه الطبراني فی الاوسط قال الهيثمي ۸/۱۷ وفيه عون بن عماره وهو ضعيف انتهی.

٤: اخرجه ابونعيم فی الحلية ۱/۲۲۲ واخرجه ابن ابي الدنيا وابراهيم الحربي فی غريب الحديث والدينوري فی المجالسة عن ابی الدرداء فذکر مثله وزادو نضحک اليهم کما فی فتح الباری ۱/۴۰۳ وهکذا اخرجه ابن عساکر کما فی الکنز ۲/۱٦۲.

کې حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی چې هغه خپله جامه نیولې وه چې په هغې سره د هغه ګونډې ښکاریدلې او د هغې هغه ته احساس نه وو رسول الله ﷺ چې ورته وکتل نو ویې فرمایل چې ستاسو دا ملګرې په جنګ روان دی حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی او سلام یې وکړ او ویې فرمایل چې زما او د ابن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مینځ کې څه خبره شوې وه په جلتۍ کې ما هغه ته نامناسبه خبره وکړه خو بیا زه پښېمانه شوم چې په هغې باندې ما د هغه نه معافي اوغوښته خو هغه د معاف کولو نه انکار وکړ نو زه ستاسو په خدمت کې حاضر شوی یم اوس چې څنګه فرمایي رسول الله ﷺ وفرمایل اې ابوبکره! الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تا معاف کړي درې ځله. وخت پس حضرت عُمر پښېمانه غونډې شو نو هغه د حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کورته راغی او پوښتنه یې وکړه چې آیا دلته ابوبکر شته؟ کور والاوو ورته وویل چې نه! نو هغه هم د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو هغه یې چې ولیدلو نو د رسول الله ﷺ مخ مبارک د غصې له وجې نه بدل شو چې په دې سره حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ووېریده او هغه په ګونډو کېناسته او دوه ځل یې عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زیات قصور زما دې یا رسول الله ﷺ وفرمایل الله رب العزت زه تاسو ته رسول رالیږلی یم نو تاسو ټولو ویلي وو چې ته غلط وایې خو په هغه وخت کې ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ویلي وو چې ته رسول الله ﷺ یې! او هغه پخپل مال او ځان سره زما غم خواري وکړه بیا یې دوه ځل وفرمایل آیا تاسو به زما دا ملګري زما له وجې نه پرېږدئ؟ نو د رسول الله ﷺ د فرمان نه پس چا هم حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته تکلیف ونه رساوه.(۱)

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته څه بدرد وویل بیا حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل زما نه خطائي وشوه له دې وجې نه اې زما وروره! ته د الله رب العزت نه زما لپاره مغفرت اوغواړه! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ غصه شوي وو ځکه هغه چپ شو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا خبره څو څو ځله وکړه خو د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ غصه یخه نشوه خلک رسول الله ﷺ ته لاړل او هلته کېناستل او ټوله خبره یې رسول الله ﷺ ته وکړه رسول الله ﷺ وفرمایل اې عمره! تا نه ستا ورور د مغفرت مطالبه کوي او ته د هغه مغفرت نه کوې دا څه خبره ده؟ حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته

---

۱: اخرجه البخاری کذا فی صفة الصفوة ۱/۹۲.

وویل چې په هغه ذات مې دې قسم وي! چا چې تاسو ته حق در کړی دی او را لیږلی یې ! ده چې هر څومره ما نه د مغفرت مطالبه کوله هر ځل مې په پټه د ده لپاره مغفرت غوښتلو او تاسو نه پس د الله جَلَّ جَلَالُهُ په مخلوق کې ما ته د ده نه زیات محبوب بل څوک نشته حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم وویل په هغه ذات مې دې قسم وي! چا چې تاسو ته حق در کړی دی او را لیږلی یې یئ! چې تاسو نه پس ما ته هم د ده نه زیات محبوب څوک نشته رسول الله ﷺ وفرمایل زما د ملګري په باره کې ما ته تکلیف مه رسوئ! ځکه چې الله جَلَّ جَلَالُهُ زه د هدایت او دین حق سره را لیږلی وومنو تاسو ټولو ویلي وو چې تاسو غلط وایئ! او ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ویلي وو چې ته صحیح وایې! که چیرې الله جَلَّ جَلَالُهُ په قران مجید کې د ده نوم ملګري نه واي ایښي نو ما به د ده خلیل (خاص دوست) جوړ کړي واي بهر حال هغه زما دیني ورور خو دی او دا ورور ولي د الله جَلَّ جَلَالُهُ په وجه ده په غور سره واورئ! (مسجد نبوي خوا ته پرانیستل شوې کړکۍ ټولې بندې کړئ! خو د ابوبکر صدیق ابن ابي قحافه کړکۍ پرانیستې پرېږدئ! (۱)

**د وفات په وخت کې د ام حبیبه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ښښنه وغوښته:**

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي چې د رسول الله ﷺ بي بي محترمه حضرت ام حبیبه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا زه د وفات په وخت راغلم زه هغې ته ورغلم نو ما ته یې وویل زمونږ په مینځ کې به څه خبره راتله څنګه چې بنو په مینځ کې راځي نو کوم څه چې شوي دي الله رب العزت دې ما هم معاف کړي او تا هم ما وویل چې الله جَلَّ جَلَالُهُ دې ستا داسې ټولې خبرې معاف کړي او د هغې دې درته عفوه وکړي او د دغو خبرو د سزا نه دې تا محفوظه وساتي حضرت ام حبیبه وویل چې تا زه خوشحاله کړم الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تا خوشحاله کړي بیا یې پیغام ولیږه او حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا یې راوغوښتله او هغې ته یې همدا وویل.(۲)

**حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته د ابوبکرصدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راتلل او هغه راضي کول:**

حضرت شعبي رَحِمَهُ اللهُ وایي کله چې حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بیماره شوه نو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغې ته راغی او دننه راتلو اجازه یې وغوښتله حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل اې فاطمې! دا حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تاسو نه د ننه راتلو اجازه غواړي'

---

۱: عند الطبراني قال الهيثمي ۹/۴۵ رواه الطبراني ورجاله رجال الصحيح.

۲: اخرجه ابن سعد ۸/۱۰۰.

هغې وويل تاسو دا خوښوئ! چې زه ده ته اجازه ورکړم؟ حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل هو! حضرت فاطمې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ورته اجازه ورکړه حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دننه راغی حضرت فاطمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا يې راضي كوله او دا يې ويل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زما كور، مال او دولت، اولاد او خاندان يوازې د دې لپاره پرېښي وو چې الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه رسول الله ﷺ راضي شي او د رسول الله ﷺ اهل بيت تاسو خلك راضي شئ! په هر حال حضرت ابوبكر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راضي كوله تر دې چې هغه راضي شوه.(١)

**د هغه ځانه ښځه غوښتل چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دهغه نه نفرت كولو:**

حضرت شعبي رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې زما د فلاني سړی نه نفرت دي چا هغه سړی ته وويل چې څه خبره ده؟ چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ستا نه ولې نفرت كوي؟ كله چې ډېر خلك يې كورته راغلل او هغه سړی ته يې دا خبره وكړه نو هغه سړی راغی او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته يې وويل اې عمره! آيا په مسلمانانو كې اختلاف پيدا كاوه سره اسلام ته څه تاوان رسولي دي؟ هغه وويل نه بيا هغه سړي وويل آيا ما په يو انسان باندې زياتی كړی دی؟ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل نه! بيا هغه سړي وويل آيا ما په اسلام كې څه نوي شی چلولی دی؟ چې دستو خلاف وي، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل نه! هغه سړي بيا وويل چې نو ته زما نه په څه وجه نفرت كوې؟ په داسې حال كې چې الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمايلي دي: وَالَّذِينَ يُؤْذُونَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ بِغَيْرِ مَا اكْتَسَبُوا فَقَدِ احْتَمَلُوا بُهْتَانًا وَإِثْمًا مُّبِينًا (سورة احزاب آيت ٥٨)

ترجمه: او كوم خلك چې ايمان والاوو سړيو او ايمان والاوو ښځو ته بغير د هغې نه چې هغوی څه كړي وي تكليف رسوي نو دغه خلك د بهتان او ښكاره ګناه بار په سر اخلي او تاسو دې جملې ويلو سره تكليف را رسولي دي الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تاسو بلكل معاف نكړي حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې دا سړی صحيح خبره كوي په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ده نه په اسلام كې څه نقصان كړی دی او نه يې څه نور څه كړی دی واقعي زما نه خطايي شوې ده اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! زما دا خطائي معاف كړې! او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغه نه معافي

---

١: اخرجه البيهقي ٦/٣٠١. قال البيهقي هذ مرسل حسن باسناد صحيح اه واخرجه ابن سعد ٨/٢٧. عن عمار (الشعبي) بنحوه مختصراً.

وغوښتله تر دې چې هغه معاف کړ.(۱)

**د حضرت حسن بن علي رضي الله عنهما نه د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه معذرت غوښتل:**

حضرت رجاء بن ربیعه رحمه الله فرمايي چې زه په مدينه منوره کې د رسول الله ﷺ په مسجد کې يوه حلقه کې ناست وم په دغه حلقه کې حضرت ابو سعيد رضي الله عنه او حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه هم وو چې دې کې په دې حلقه باندې د حضرت حسن بن علي رضي الله عنه تېرېدل وشو هغه سلام وکړ ټولو حلقه والو جواب ورکړ خو حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه چپ پاتې شو بلکې لږ وخت پس هغه حضرت حسن رضي الله عنه پسې لاړ او ويې ويل وعليک السلام ورحمت الله بيا حضرت ابو سعيد رضي الله عنه سره وو هغه ته يې وويل چې دا هغه انسان دی چې په ټوله زمکې والاوو کې، اسمان والاوو ته د ټولو نه زيات محبوب دی په الله جل جلاله قسم! د جنګ صفين نه پس تر ننه پورې ما د ده سره خبرې نه دی کړی نو حضرت ابو سعيد رضي الله عنه وويل ته هغه ته ولې نه ورځې؟ چې خپل عذر ورته بيان کړې! هغه وويل چې ډېره ښه ده (زه تيار يم په دې کې حضرت حسن رضي الله عنه خپل کور ته دننه تللي وو) حضرت عبد الله رضي الله عنه هلته ودرېدو او حضرت ابو سعيد رضي الله عنه د دننه ورتللو اجازت وغوښتلو حضرت حسن رضي الله عنه ورته اجازت ورکړ بيا چې دننه لاړ نو حضرت ابو سعيد رضي الله عنه د حضرت عبد الله رضي الله عنه لپاره اجازت وغوښتو هغه ته هم اجازت ملاو شو او هغه دننه لاړ حضرت ابو سعيد رضي الله عنه حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه ته وويل چې د حضرت حسن رضي الله عنه د تېرېدو په وخت کې تا کومه خبره مونږ ته کړې وه هغه اوس لږه بيان کړه حضرت عبد الله رضي الله عنه وويل چې ډېره ښه ده ما دا ويلي وو چې دې په زمکه والاوو کې اسمان والاوو ته د ټولو نه زيات خوښ دی په دې خبره حضرت حسن رضي الله عنه وفرمايل هر کله چې تا ته معلومه ده چې زه په ټولو اوسېدونکو کې اسمان والاوو ته د ټولو نه زيات محبوب يم نو بيا تا د جنګ صفين په ورځ مونږ سره جګړه ولې کوله يا تا زمونږ د مخالفينو په تعداد کې اضافه ولې وکړه؟ حضرت عبد الله رضي الله عنه وويل په الله جل جلاله قسم! نه ما د لښکر په تعداد کې زياتوالی کړی دی او نه مې د هغوی سره يو ځای توره چلولې ده البته زه د خپل پلار سره يو ځای تللی وم حضرت حسن رضي الله عنه

(۱) اخرجه ابن المنذر كذا في الكنز ۲۶۰/۱

وويل آيا تا ته معلومه نه ده چې په کوم کار سره د الله جَلَّجَلَالُهُ نافرماني کېږي په هغه کار کې د مخلوق خبره منل پکار نه ده؟ حضرت عبدالله رَضِيَاللَّهُعَنْهُ وويل هو! معلومه ده خو زه دپلار سره ځکه تللی وم چې ما به د رسول الله ﷺ په زمانه کې مسلسل روژې نیولې زما پلار رسول الله ﷺ ته په دې باره کې شکایت وکړ او دا یې وویل اې د الله جَلَّجَلَالُهُ رسوله! عبدالله بن عمرو ټوله ورځ روژې نیسي او ټوله شپه عبادت کوي رسول الله ﷺ ما ته وفرمایل کله روژه نیسه او کله یې مه نیسه! او د شپې هم کله لمونځ کوه او کله ویده کېږه! ځکه چې زه لمونځ هم کوم او ویده کېږم هم! او روژې هم نیسم او روژه ماتې هم کوم او رسول الله ﷺ دا هم فرمایلي وو چې اې عبدالله رَضِيَاللَّهُعَنْهُ! د خپل پلار خبره منه!

ځکه چې رسول الله ﷺ ما ته دپلار د خبرې منلو ما ته ډېر تاکید کړی وو له دې وجې نه کله چې هغه په صفین کې شریک شو نو زه هغه سره لاړم.(۱)

حضرت رجاء بن ربیعه رَحِمَهُاللَّهُ وایي چې زه د رسول الله ﷺ په جماعت کې وم هلته نور خلک هم ناست وو چې په دې کې حضرت حسین بن علي رَضِيَاللَّهُعَنْهُ هلته تېر شو. هغه سلام وکړ خلکو د سلام جواب ورکړ خو حضرت عبدالله بن عمرو رَضِيَاللَّهُعَنْهُ هم هلته ؤو، چپ پاتې شو کله چې خلک خاموش شو نو بیا حضرت عبدالله رَضِيَاللَّهُعَنْهُ په اوچت اواز وویل وعلیک السلام ورحمت الله وبرکاته بیا خلکو خواته متوجه شو او وې ویل زه تاسو ته هغه سړی ونښایم چې په زمکې والاوو کې اسمان والاوو ته د ټولو نه زیات محبوب دي؟ خلکو وویل ضرور یې ونښایه هغه وویل هم دا حضرت دي چې اوس په دې ځائ تېر شو اولاړ په الله جَلَّجَلَالُهُ قسم! د صفین له جنګ نه وروسته بیا تر اوسه پورې نه ما دده سره خبرې کړې دي او نه ده له ماسره خبرې کړې دی او په الله جَلَّجَلَالُهُ قسم! د ده زمانه راضي کېدل ما ته دأحد د غره هومره مال ملاوېدو نه زیات محبوب دي حضرت ابو سعید رَضِيَاللَّهُعَنْهُ هغه ته وویل چې ته هغه ته ولې نه ورځې؟ هغه وویل چې زه د تللو لپاره تیار یم نو دوارو دا خبره وکړه چې دواړه به صبا سهار هغه ته ورځو اصبا سهار دا دواړه هغه ته ورغلل، زه هم ورسره ولاړم حضرت ابو سعید رَضِيَاللَّهُعَنْهُ د دننه تلو اجازه وغوښتله، حضرت حسین رَضِيَاللَّهُعَنْهُ ورته اجازه ورکړه زه او حضرت ابو سعید رَضِيَاللَّهُعَنْهُ دننه لاړو هغه د حضرت ابن عُمر رَضِيَاللَّهُعَنْهُ

---

۱: اخرجه البزار قال الهيثمي ٩/١٧٧. رواه البزار ورجاله رجال الصحيح غير هاشم بن البريد وهو ثقة انتهى.

لپاره اجازه وغوښته خو حضرت حسین رضي الله عنه ورته اجازه ورنکړه خو حضرت ابو سعید رضي الله عنه هم دغسې اجازه غوښتلو اخر یې اجازه ورکړ حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه دننه راغی هغه چې ولیده نو حضرت ابو سعید رضي الله عنه چې د حضرت حسین رضي الله عنه په خوا کې ناست وو د خپل ځای نه اخوا کېده نو حضرت حسین رضي الله عنه حضرت ابو سعید رضي الله عنه خپل ځان طرف ته رابنکلو حضرت ابن عمر رضي الله عنه ولاړ وو کښېنه ناستلو کله چې حضرت حسین رضي الله عنه دا منظر ولیده نو هغه حضرت ابو سعید رضي الله عنه لږ لرې کړ او د کښناسته ځای یې پرېښودلو حضرت عبدالله رضي الله عنه راغی او هلته د دواړو په مینځ کې کښناسته، بیا ورته حضرت ابو سعید رضي الله عنه تول نقل وکړه نو حضرت حسین رضي الله عنه وویل چې اې ابن عمرو! آیا هم دا سې خبره ده؟ آیا ته دا گڼې چې زه په ټوله زمکې والاوو کې اسمان والاوو ته د ټولو نه زیات محبوب یم حضرت عبد الله رضي الله عنه وویل هو! بلکل د کعبې په رب مې دې قسم وي! چې تاسو ټوله زمکې والاوو کې اسمان والاوو ته د ټولو نه زیات محبوب یئ! حضرت حسین رضي الله عنه وویل چې بیا د صفین د جنگ په ورځ تا ما سره او زما پلار سره جګړه ولې کوله؟ په الله جل جلاله قسم! زما پلار زما نه غوره وو حضرت عبد الله رضي الله عنه وویل بلکل ستاسو پلار ستاسو نه هم غوره دی خو خبره دا ده چې حضرت عمر رضي الله عنه رسول الله ﷺ ته زما دا شکایت کړی وو چې عبدالله ټوله ورځ روژه نیسي او ټوله شپه عبادت کوي رسول الله ﷺ ما ته وفرمایل چې د شپې لمونځ هم کوه! او خوب هم کوه او د ورځې روژه هم نیسه! او روژه ماتي هم کوه او د خپل پلار عمرو خبره منه! د جنگ صفین په ورځ هغه ما ته په قسم سره ویلي وو چې ته دې کې شریک شه! په الله جل جلاله قسم! ما نه په لښکر کې زیاتوالي کړی وو او نه ما توره راوېستلې وه! او نه مې په نېزه څوک وهلي وو او نه مې په غشي څوک ویشتلي وو حضرت حسین رضي الله عنه وویل آیا تا ته معلومه نه ده چې په کوم کار سره د الله جل جلاله نافرماني کېږي په هغې کې د مخلوق منل نه دي پکار؟ حضرت عبد الله رضي الله عنه وویل معلومه ده حضرت عبد الله رضي الله عنه بار بار خپل عذر بیانولو په دې باندې اخر حضرت حسین رضي الله عنه د هغه عذر قبول کړ.(۱)

---

۱: اخرجه الطبراني قال الهیثمي ۹/۱۸۷. رواه الطبراني في الاوسط وفیه علي بن سعید بن بشیر وفیه لین وهو حافظ وبقیة رجاله ثقات انتهی.

# د مسلمان ضرورت پوره کول

حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې ما ته پته نشته چې الله رب العزت د هغو دوو نعمتونو نه کوم يو نعمت را کړی دی او په مايې احسان کړی دی يو دا چې يو سړی ما ته په دې سره په رونړتندي سره راځي چې د هغه ضرورت به زما نه پوره کېږي او دويم دا چې الله رب العزت زما په لاس باندې د هغه ضرورت په اسانتيا سره پوره کوي (اوس د هغه زما نه دا اميد ساتل دا د الله جَلَّ جَلَالُهُ نعمت لوی دی يا زما د هغه ضرورت پوره کول لوي نعمت دي) او زه چې د يو مسلمان ضرورت پوره کړم دا ماته د سرو او سپينو نه ډکې زمکې ملاوېدو نه زيات خوښ دي.(۱)

# د مسلمان ضرورت پوره کولو لپاره ودرېدل

**يو بوډۍ ته دحضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اودرېدل:**

حضرت ابو يزيد رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت خوله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا د خلکو سره روانه وه چې هغې سره د حضرت عُمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ملاقات وشو هغې حضرت عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د ايسارېدلو لپاره وويل هغه ودرېده او هغې ته نژدې راغی او هغه خواته يې سر ټيټ کړ او خپل دواړه لاسونه يې د هغې په اوږو باندې کېښودل او د هغې خبره يې اورېدله ترڅنګه چې ډېره بوډۍ وه له دې وجې نه حضرت عُمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغې د ټينګولو لپاره د هغې په اوږو باندې لاسونه کېښودل او هم دغسې ولاړ وو تر دې چې هغې خپله خبره پوره کړه او واپس لاړه . يو سړی حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وويل اې اميرالمؤمنين ! د دې بوډۍ په وجه تاسو د قريشو لوی لوی سړي ايسار کړل حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل: ته هلاک شې! تا ته پته شته چې دا ښځه څوک ده؟ هغه وويل نه ما ته پته نشته! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل دا هغه ښځه ده چې د دې شکايت الله رب العزت د اوو اسمانونو نه پورته اورېدلی دی دا حضرت خوله بنت ثعلبه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ده په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! که چېرې دا د شپې پورې زما د خوانه تللې نه واي نو زه به هم د دې خبرې اورېدو لپاره هم دغسې ولاړ وم.(۲)

حضرت ثمامه بن حزن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ځل حضرت عمر بن خطاب په خپل خر باندې

---

۱: اخرجه النرسي كذافي الكنز ٢/٢١٧.

۲: اخرجه ابن ابي حاتم والدارمي والبيهقي

سپور روان وو چې هغه سره یوه ښځه مخ شوه هغې ورته وویل :اې عمره! ودرېږه! د ښځې په غږ سره هغه ودرېده، ښځې له حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره ډېره سخته خبره وکړه، په دې باندې یو سړي وویل چې اې امیرالمؤمنین! ما د نن پشان منظر چېرته نه دی لیدلی، حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل چې زه به د دې ښځې خبره ولې نه اورم چې دا هغه ښځه ده چې د دې خبره الله رب العزت اورېدلې ده او هم د دې ښځې په باره کې الله جَلَّ جَلَالُهُ دا آیت نازل کړی دی : قَدْ سَمِعَ اللَّهُ قَوْلَ الَّتِي تُجَادِلُكَ فِي زَوْجِهَا وَتَشْتَكِي إِلَى اللَّهِ.(١)

ترجمه: بیشکه الله رب العزت د هغې ښځې خبره واورېدله چې تا سره یې د خپل خاوند په باره کې جنګ کولو .(٢)

## د مسلمان د حاجت لپاره تلل

### د مسلمان دکار لپاره د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا د اعتکاف نه بهر راوتل

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا یو ځل په مسجد نبوي کې معتکف وو هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته یو سړی راغی او سلام یې وکړ او بلکل غلی او چپ کېناسته، حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا ورته وفرمایل چې زه تا پرېشانه او غمجن وینم چې څه خبره ده؟ هغه وویل اې د رسول الله ﷺ د تره ځویه! زه بېشکه پرېشانه یم چې د فلاني په ما باندې حق دی او د رسول الله ﷺ قبر مبارک ته یې اشاره وکړه او وې ویل چې د دې قبر والا په عزت قسم! چې زه د هغه اداء کولو کې قدرت نه لرم ،حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا ورته وویل: ښه زه به هغه ته ستا سفارش وکړم! هغه عرض وکړ که چېرې تاسو مناسب ګڼئ! حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چې دا واورېدل نو پښې یې په پڼو کړې او له جومات نه بهر ووت. هغه سړي وویل چې تاسو خپل اعتکاف هېر کړ؟ وې فرمائیل چې هېر کړي مې نه دي بلکې ما د دې قبر والا ﷺ نه اورېدلی دی او لا ډېره زمانه یې نه ده تېره شوې دې الفاظو ویلو سره د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د سترګو نه اوښکې روانې شوې چې رسول الله ﷺ وفرمایل چې څوک د خپل مسلمان ورور لپاره روان شي او په هغه کار کې کامیاب شي نو هغه لپاره دا د لسو کالو د اعتکاف نه بهتر او غوره دی او کوم سړی چې د یوې ورځې اعتکاف هم د

---

١: سورة مجادله آیت ١

٢: عندالبخاری فی تاریخه وابن مردویه کذافی الکنز ١/٢٦٨.

الله جَلّ جَلَالُهُ د رضا لپاره وکړي نو الله جَلّ جَلَالُهُ د هغه او د جهنم تر مینځه درې خندقونه پرده کړي چې د هغې فاصله د اسمان او زمکې فاصلې نه هم زیاته ده او کله چې د یوې ورځې د اعتکاف د افضلیت دي نو د لسو کالو د اعتکاف به څه فضیلت وي.(۱)

## له مسلمان سره ملاقات کول

### رسول الله ﷺ او د انصارو زیات ملاقات کول:

حضرت عبدالله بن قیس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ به خصوصي توګه باندې او عمومي توګه باندې هم انصارو سره د ملاقات لپاره ډېر تللو کله چې به یې چا سره خصوصي ملاقات کولو نو د هغه کور ته به یې تشریف وړلو او کله چې به یې چا سره عمومي ملاقات کولو نو د هغوی جمات ته به یې تشریف وړلو هلته به یې د ټولو ملاقات کېده.(۲)

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ د انصارو یوې کورنۍ سره د ملاقات لپاره تشریف یوړو هغوی سره یې ډوډۍ هم اوخوړله کله چې هغوی د دغه ځائ نه بهر راتلو نو په کمره کې یې د لمونځ کولو لپاره د ځائ جوړولو حکم وکړو نو هغه خلکو د هغوی ﷺ لپاره یو پوزکی خور کړ او په هغې باندې یې اوبه چړکاو کړې (چې نرم شي) بیا یې په هغې باندې لمونځ وکړ او هغوی لپاره یې دعا وکړه.(۳)

### صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او یو د بل سره ملاقاتونه کول:

حضر انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې رسول الله ﷺ به د خپلو دوو صحابه وو په مینځ کې ورور ولي قائموله نو د هغوی به په خپلو کې دومره محبت پیدا کېده چې تر څو به په هغوی کې د یو بل سره نه وو ملاو شوي تر هغې پورې به هغه ته دغه شپه ډېره اوږده معلومېدله نو هغه به د خپل ورور سره ډېر په محبت او نرمۍ ملاوېدلو او پوښتنه به یې ترې کوله چې ته زما نه پس څنګه وې؟ او د نورو خلکو چې په هغوی کې به ورور ولي قائمه نه وه به دا حال وو چې په درېوو ورځو کې دننه به یو له بل سره ملاوېدلو او د هغه نه به یې ټول حال معلومولو.(۴)

حضرت عون رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي کله چې د حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ملګري د

---

۱: اخرجه الطبرانی والبیهقی واللفظ له والحاکم مختصرا وقال صحیح کذافی الترغیب ۲/۲۷۲.
۲: اخرجه احمد قال الهیثمی ۸/۱۷۳ رواه احمد وفیه راو لم یسمه و بقیة رجاله رجال الصحیح انتهی.
۳: اخرجه البخاری فی الادب ۵۲
۴: اخرجه ابو یعلی قال الهیثمی ۸/۱۷۴ وفیه عمران بن خالد الخزاعی وهو ضعیف.

کوفې نه مدينې ته هغه ته راغلل نو د هغوی نه حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې آيا تاسو يو بل سره کېنئ؟ دغو کسانو وويل چې هو! دا کار مونږ نشو پرېښودلی بيا يې پوښتنه وکړه چې آيا تاسو يو بل سره ملاوېږئ؟ هغوی وويل هو! اې ابو عبد الرحمن! زمونږ خو دا حال دی چې مونږ کې چا سره د هغه ورور نه ملاوېږي نو هغه يې د کوفې اخرې سره پورې پيادل لټوي او هغه سره ملاقات وکړي بيا واپس راځي حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې تر څو پورې تاسو دا کار کوئ! نو تاسو خلک به په خير باندې يئ! (۱)

حضرت ام الدرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مونږ سره د ملاقات لپاره د مدائن نه پيادل راروان شو او د شام ملک ته راغی هغه وخت هغه د زنګنونو پورې وړوکي پرتوګ اغوستي وو.

# د ملاقات کونکو اکرام او عزت کول

## رسول الله ﷺ او د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا اکرام:

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايي چې زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم رسول الله ﷺ د عزت لپاره ماته يوه تکيه کېښودله چې هغه دکجورو د پاڼو نه ډکه شوې وه خو زه د ادب په وجه په هغې باندې کېنه ناستم! او هغه تکيه هم دغسې زما او د رسول الله ﷺ په مينځ کې پرته وه.(۲)

## حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د ام سعد بن ربيع رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د لور اکرام کول:

حضرت ام سعد بنت سعد بن ربيع رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې زه ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته لاړم هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زما لپاره خپله جامه خوره کړه چې په دغې زه کېناستم په دې کې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم د ننه راغی هغه پوښتنه وکړه چې دا ښځه څوک ده؟ چې د دې دومره عزت کېږي. حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې دا د هغه سړي لور ده چې زما نه غوره وو او ستا نه هم! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رسول خليفه! هغه سړی څوک دی؟ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې دا د هغه سړي لور ده چې د هغه وفات د رسول الله ﷺ په زمانه کې وشو او وروسته ته او زه پاتې شو.(۳)

---

۱: اخرجه الطبراني وهذا منقطع كذا في الترغيب ۴/۱۴۴.

۲: اخرجه احمد قال الهيثمي ۸/۱۷۴ رجاله رجال الصحيح.

۳: اخرجه الطبراني كذا في الاصابة ۴/۲۷ قال الهيثمي ۹/۳۱۰ رواه الطبراني وفيه اسماعيل بن قيس بن سعد بن زيد وهو ضعيف واخرجه الحاكم ۳/۶۰۷ وصححه وقال الذهبي بل اسماعيل ضعفوه.

**د حضرت عمر او حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د يوبل اكرام كول:**

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راغى حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تكيې ته ډډه وهلې وه حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يې چې وليده نو هغه تكيه يې هغه ته كېښودله حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويله چې الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه رسول ﷺ رښتيا ويلي دي حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل اې ابو عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه رسول رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمان لږ مونږ ته هم واوروه هغه وويل چې يو ځل زه د رسول الله ﷺ په خدمت كې حاضر شوم هغوى يو تكيه ته ډډه وهلې وه هغوى ﷺ هغه تكيه زما مسلمان ورور لپاره كېښودله بيا يې ما ته وفرمايل اې سلمان! كوم مسلمان چې خپل مسلمان ورور له ورځي او هغه كوربه د عزت لپاره تكيه ږدي الله جَلَّ جَلَالُهُ به ضرور د هغه مغفرت وكړي.(۱)

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له راغى او هغه يوه تكيه باندې ډډه وهلې وه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه تكيه حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته كېښودله بيا يې ما ته وفرمايل اې سلمان! كوم مسلمان چې خپل مسلمان ورور له ورځي او هغه كوربه د ده عزت او قدر لپاره تكيه ږدي نو الله جَلَّ جَلَالُهُ ضرور د هغه مغفرت كوي.(۲)

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت سلمان فارسي له ورغى حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته يوه تكيه كېښودله حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل اې ابو عبدالله دا څه دي؟ هغه وويل ما د رسول الله ﷺ نه اورېدلي دي چې كوم مسلمان ته د هغه ورور مسلمان راځي او هغه د عزت او قدر لپاره تكيه ږدي نو الله جَلَّ جَلَالُهُ د هغه مغفرت ضرور كوي.(۳)

**حضرت ابراهيم بن نشيط رَحِمَهُ اللهُ او د عبدالله بن حارث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اكرام كول:**

حضرت ابراهيم بن نشيط رَحِمَهُ اللهُ وايي: زه د حضرت عبدالله بن حارث جزء زبيدي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت كې لاړم د هغه لاندې يوه تكيه وه هغوى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه راوچته كړه او زما خواته يې را وغورځوله او ويې فرمايل كوم سړى چې خان سره د ناست سړي اكرام او نه كړي د هغه د

---

(۱) اخرجه الحاكم ۳/۵۹۹.

(۲) اخرجه الطبراني كذا في المجمع ۸/۱۷۲ وفيه عمران بن خالد الخزاعي وهو ضعيف وفي اسناد الحاكم ايضا عمران هذا.

(۳) اخرجه الطبراني في الصغير وفيه عمران بن خالد الخزاعي وهو ضعيف

حضرت احمد ﷺ او د حضرت ابراهیم عَلَیۡهِ السَّلَامُ سره څه اړیکې نشته.(۱)

# د مېلمه اکرام او عزت کول

**ابواسید ساعدي رَضِيَ اللهُ عَنۡهُ او د رسول الله رَضِيَ اللهُ عَنۡهُ اکرام:**

حضرت سهل بن سعد رَضِيَ اللهُ عَنۡهُ فرمايي چې حضرت ابو اسید ساعدي رَضِيَ اللهُ عَنۡهُ رسول الله ﷺ لره د خپل واده په ولیمه راوباله او په دغه ورځ د هغه بي بي د هغه مېلمنو خدمت کولو او هغه ناوې وه د هغه بي بي وويل چې تاسو ته پته شته چې ما د رسول الله ﷺ لپاره څه خوشته کړې وو ما د تانبې یا کاني په لوښي کې د.شپې نه د رسول الله ﷺ لپاره کجورې خوشتې کړې وې دې لپاره چې رسول الله ﷺ شربت وڅښي.(۲)

**د مېلمه د اکرام په باره کې د ابن جزء زبیدي رَضِيَ اللهُ عَنۡهُ قول:**

يو صاحب بيان کوي چې دوه کسان حضرت عبد الله بن حارث بن جزء زبيدي رَضِيَ اللهُ عَنۡهُ ته ورغلل هغه په تکيه باندې ده لګولې وه هغه تکيه رااوچته کړه او دغه دواړو ته يې کېښوده هغه دواړو سرو وويل چې مونږ خو دا نه غواړو مونږ خو څه اوربدلو له راغلي يو چې مونږ ته پرې څه فائده حاصله شي. حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنۡهُ وفرمايل چې کوم سړی د مېلمه اکرام نه کوي د هغه د حضرت محمد ﷺ او د حضرت ابراهيم عَلَیۡهِ السَّلَامُ سره څه اړيکې نشته خوشحالي او ښه انجام د هغه چا لپاره دي چا چې د خپل اس رسۍ د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې نيولې وي او د دودۍ په يوه ټوټه او په يخو اوبو باندې روژه ماتوي او دېره خرابي ده د هغو خلکو لپاره کوم د غوا او غوايي پشان مختلف قسمه خوراکونه خوړلو لپاره خپلې ژبې ښوروي. او خپل خادم ته وايي چې فلاني شی اوچت کړه او فلاني شي کېږده! او په خوراک کې داسې لګيا وي چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ ذکر بلکل نه کوي.(۳)

# د قوم د مشر او عزتمند سړي اکرام کول

**جرير بن عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنۡهُ ته د رسول الله ﷺ څادر خورول:**

حضرت جرير بن عبد الله بجلي رَضِيَ اللهُ عَنۡهُ د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو نبي ﷺ به په يو کور کې وو چې د صحابه وو نه ډک وو حضرت جرير رَضِيَ اللهُ عَنۡهُ په دروازه کې ودرېد

---

۱: اخرجه الطبرانی كذافی الترغيب۴/۱۴۶ وقال رواه الطبرانی موقوفا ورجاله ثقات.

۲: اخرجه البخاری فی الادب ۱۱۰

۳: اخرجه ابن جرير عن ابراهيم بن شعبان كذافی الكنز ۵/۶٦.

هغه يې چې وليده رسول الله ﷺ ښې او كيڼې خواته وكتل هغه ته د ناستې ځاى په نظر رانغى رسول الله ﷺ خپل څادر اوچت كړ او هغه يې راغوند كړ حضرت جرير رضي الله عنه څادر راواخيسته او خپلې سينې سره يې ولګوله او هغه يې ښكل كړ او هغوى ﷺ ته يې واپس وركړ او عرض يې وكړ چې اې د الله جل جلاله رسوله! الله جل جلاله دې ستاسو عزت وكړي څنګه چې تاسو زما عزت وكړ رسول الله ﷺ وفرمايل كله چې تاسو ته د قوم د احترام قابل سړى راشي نو تاسو د هغه اكرام كوئ! (۱)

حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمايي چې حضرت جرير بن عبدالله رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت كې كور ته ورغى كور د صحابه وو نه ډک وو هغه ته د ناستې څه ځاى ملاو نه شو رسول الله ﷺ خپل څادر هغه خواته وراوغورزولو او ويې فرمايل په دې باندې كښېنه! حضرت جرير رضي الله عنه هغه راواخيسته او سينې سره يې ولګوله او ښكل يې كړ او وې ويل اې د الله جل جلاله رسوله! الله جل جلاله دې ستاسو داسې عزت وكړي څنګه چې تاسو زما عزت وكړ رسول الله ﷺ وفرمايل كله چې تاسو ته د يو قوم لوى او عزتمند سړى راشي نو تاسو د هغه عزت كوئ!(۲)

**رسول الله ﷺ او عيينه بن حصن رضي الله عنه تكيه ته كينول:**

حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چې حضرت عيينه بن حصن رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت كې حاضر شو په دغه وخت كې هغوى سره حضرت ابوبكر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه هم وو او دا ټول كسان په زمكه باندې ناست وو رسول الله ﷺ د حضرت عيينه لپاره ګدى راوغوښتله او هغه يې پرې كښناوه او ويې فرمايل: كله چې تاسو ته د يو قوم لوى او عزتمند سړى راشي نو تاسو د هغه عزت كوئ!(۳)

**رسول الله ﷺ او عدي بن حاتم رضي الله عنه ته تكيه ايښودل:**

حضرت عدي بن حاتم رضي الله عنه كله چې د رسول الله ﷺ په خدمت كې حاضر شو نو رسول الله ﷺ هغه ته تكيه كېښودله خو دې هم په زمكه كښناسته او عرض يې وكړ چې زه د دې

---

۱: اخرجه الطبراني في الصغير والاوسط قال الهيثمي ۸/۱۵ وفيه عون بن عمر والقيسي وهو ضعيف.

۲: عند الطبراني في الاوسط قال الهيثمي ۸/۱٦ رواه الطبراني في الاوسط والبزار باختصار كثير و فيه من لم اعرفهم انتهى.

۳: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ۸/۱٦ رواه الطبراني وفيه من لم اعرفهم.

خبرې گواهي ورکوم چې تاسو د زمکې په سر نه خو ځان او چت ساتل غواړئ! او نه فساد جوړول غواړئ! او مسلمان شو صحابه وو وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! نن مونږ د عدي لپاره ستاسو د طرفنه د اکرام کولو منظر وليده داسې مونږ چېرې هم د چا لپاره نه دی ليدلی رسول الله جَلَّ جَلَالُهُ وفرمايل صحيح وايي دا د يو قوم لوي عزتمند سړی دی او کله چې د قوم لوي او عزتمند سړی تاسو ته راشي نو تاسو د هغه عزت کوئ!(۱)

**رسول الله ﷺ او د حضرت ابوراشد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اکرام کول:**

حضرت ابوراشد عبدالرحمن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې زه د خپل قوم سلو کسانو سره يو ځای د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم کله چې مونږ رسول الله ﷺ ته نزدې ورسېدو نو مونږ ودرېدو او زما ملگرو ما ته وويل اې ابو مغويه! ته مخکې شه! او حالات وگوره! که چېرې تا ته حالات ښه په نظر راتلل نو واپس شه! او مونږ ته يې اووايه نو مونږ به هم د هغوی ﷺ په خدمت کې حاضر شو او که چېرې تا ته حالات ښه په نظر راغلل نو واپس راشه! او مونږ ته ووايه! مونږ به خپلې علاقې ته واپس لاړ شو زه په عمر کې د هغوی ټولو نه وړوکي ووم زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم د جاهليت په طريقه مې سلام وکړ او ما وويل اې محمده! نعم صباحا ستا صبا دې ښه وي. رسول الله ﷺ وفرمايل چې مسلمانان يو بل ته داسې سلام نه کوي ما عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! مسلمانان يو بل ته څنگه سلام کوي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل کله چې ته يو مسلمان قوم ته اورسېدې نو داسې وايه! السلام عليکم ورحمت الله وبرکاته! ما وويل: (السلام عليکم ورحمت الله وبرکاته يارسول الله) رسول الله ﷺ وفرمايل: (وعليکم السلام ورحمت الله وبرکاته) بيا يې وفرمايل چې ستا نوم څه دی؟ او ته څوک يې؟ ما وويل زه ابو مغويه عبدالات والعزي يم رسول الله ﷺ وفرمايل چې دا کنيت او نوم صحيح نه دی بلکې ته ابو راشد عبدالرحمن يې! رسول الله ﷺ زما اکرام وکړ او زه يې د ځان سره کېنولم او ما ته يې خپل څادر راکړ او خپلې پڼې او همسا يې ما ته راکړل بيا زه مسلمان شوم ورسره ناستو کسانو وويل چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! مونږ وينو چې تاسو د دې سړی ډېر عزت کوئ! رسول الله ﷺ وفرمايل دا د خپل قوم سردار او عزتمن سړی دی څکه ما دومره اکرام وکړ کله چې تاسو ته د يو قوم

---

(۱) اخرجه العسکری وابن عساکر کذافی الکنز ۵/۵۵.

سردار راشي نو تاسو د هغه عزت کوئ! مخکې نور حديث هم شته دی.(١)

## د قوم مشر تشويقول

حضرت ابوذر رضي الله عنه وفرمايل چې رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل چې ته جُعيل څنګه ګڼې؟ ما وويل هغه خو ما ته د نورو خلکو پشان فقير په نظر راځي بيا يې وفرمايل چې ته فلانکی څنګه ګڼې؟ ما وويل چې هغه خو په سردارانو کې يو سردار دی رسول الله ﷺ وفرمايل که چېرې د هغه پشان خلکو نه زمکه ډکه شي نو يو جُعيل د دې ټولو نه غوره دی ما عرض وکړ اې د الله جل جلاله رسوله! فلانی خو دې داسې خو تاسو د هغه ډېر عزت کوئ! رسول الله ﷺ وفرمايل دا د خپل قوم سردار دی زه د هغه زړه ساتلو لپاره دومره د هغه عزت کوم.(٢)

حضرت محمد بن ابراهيم تيمي وايي چې يو سړي عرض وکړ اې د الله جل جلاله رسوله! تاسو حضرت عيينه بن حصن او حضرت اقرع بن حابس ته سل سل اوښان ورکړي دي او حضرت جُعيل تاسو پرېښودو هغه ته مو څه ورنکړل. رسول الله ﷺ وفرمايل په هغه ذات مې دې قسم وي! چې د هغه په قبضه کې زما ساه ده که چېرې د عُيينه نه ټوله زمکه ډکه شي نو جعيل بن سراق د دې ټولو نه غوره دی خو زه د دې دواړو زړه ساتم او جُعيل د هغه ايمان ته سپارم.(٣)

## د رسول الله ﷺ د اهل بيتو اکرام کول

### داهل بيتو په باره کې د رسول الله ﷺ وصيت:

حضرت يزيد بن حبان رضي الله عنه وايي چې زه او حضرت حصين بن سبره او حضرت عمرو بن مسلم درېواړه حضرت زيد بن ارقم رضي الله عنه ته لاړو کله چې مونږ هغه سره کېناستو نو حضرت حصين عرض وکړ چې اې حضرت زيده! تاسو ډېرې زياتې د خير خبرې ليدلې دي تاسو رسول الله ﷺ ليدلی دی د هغوی ﷺ حديثونه مو اورېدلي دي هغوی سره په

١: اخرجه الدولابي في الكنى ١/٣١ واخرجه ابن منده من هذا الوجه مختصرا وابن السكن كما في الاصابة ٤/٢٠٩ واخرجه ايضا العقيلي كما في منتخب الكنز ٥/٢١٦.

٢: اخرجه ابو نعيم ١/٣٥٣ كذا في الكنز ٢/٣٢٠ واخرجه الروياني في مسنده وابن عبدالحكيم في فتوح مصر. واسناده صحيح واخرجه ابن حبان من وجه آخر عن ابي ذر لكن لم يسم جعيلا واخرجه البخاري من حديث سهل بن سعد فابهم جعيلا واباذر.

٣: رواه ابن اسحاق في المغازي وهذا مرسل حسن كذا في الاصابة ١/٢٣٩ واخرجه ابونعيم في الحلية ١/٣٥٣ عن محمد ابن ابراهيم نحوه.

غزاګانو کې شریک شوي یئ! هغوی پسې مو لمونځونه کړي دي اې حضر زید! تاسو ډېرې زیاتې د خیر خبرې اورېدلی دی اې حضرت زید! د رسول الله ﷺ نه اورېدلي شوي یو حدیث مونږ ته هم واوروه حضرت زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل اې زما وراره! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زما عمر زیات شوی دی او ډېره موده تېره شوې ده چې ما د رسول الله ﷺ کومې خبرې یادې کړې وې او پرې پوه شوی ووم په هغې لږه زمانه هېرې شوی دی لهذا کوم حدیث چې زه تاسو ته اوروم هغه خو تاسو واورئ! او چې وانه ورولي شم په هغې مې مه مجبوروئ! بیا یې وفرمایل چې رسول الله ﷺ د مکې او مدینې په مینځ کې د خم نومې چینې سره مونږ ته په ولاړه باندې بیان وکړ بیا یې وفرمایل:

(اما بعد اې خلکو! په غور سره واورئ! زه هم یو انسان یم ډېر زر به زما د رب قاصد د مرګ ملائیکه زما بللو لپاره راشي چې هغې سره به زه لاړ شم زه تاسو ته دوه درانه شیان پرېږدم او څم یو د الله جَلَّ جَلَالُهُ کتاب (یعنې قران) دی په دې کې هدایت او نور دی نو دا رنګه د الله جَلَّ جَلَالُهُ کتاب واخلئ! او محکم یې ونیسئ! بیا یې د قران په باره کې ښه ترغیب ورکړ بیا یې وفرمایل چې دویم شی زما کوروالا دي زه تاسو ته د خپلو کوروالاوو باره کې د الله نه دوېرې وصیت کوم زه تاسو ته د خپل کوروالاوو باره کې د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه د وېرې وصیت کوم حضرت حصین پوښتنه وکړه چې اې حضرت زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ! د رسول الله ﷺ کوروالا څوک دی؟ آیا د رسول الله ﷺ بیبیانې د رسول الله ﷺ کوروالا نه دي؟ هغوی وویل چې د رسول الله ﷺ بیبیانې د رسول الله ﷺ کوروالا دي خو د رسول الله ﷺ اصل کوروالا هغه دي چې هغوی له د رسول الله ﷺ نه پس صدقه او زکات اخیستل حرام دي حضرت حصین پوښتنه وکړه هغه څوک دی؟ حضرت زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل آل علي، آل عقیل، آل جعفر او آل الیاس دي حضرت حصین پوښتنه وکړه آیا دې ټولو لپاره زکات او صدقه اخیستل حرام دي؟ ویې فرمایل هو! (۱)

حضرت ابن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې د رسول الله ﷺ د کوروالاوو په باره کې د رسول الله ﷺ د نسبت خیال وساتئ!(۲)

---

۱: اخرجه مسلم کذافی ریاض الصالحین واخرجه ایضا ابن جریر کما فی منتخب الکنز ۵/۹۵.
۲: اخرجه البخاری کذافی منتخب الکنز ۵/۹۴

**رسول الله ﷺ او د خپل تره حضرت عباس رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ اکرام کول:**

ام المؤمنين حضرت عائشه رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهَا فرمايي چې رسول الله ﷺ د خپلو صحابه وو سره تشريف فرما وو د رسول الله ﷺ په اړخ کې حضرت ابوبکر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ ناست وو په دې کې حضرت عباس رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ مخامخ راغی هغه یې چې ولیده نو حضرت ابوبکر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ د ناستې ځای جوړ کړ نو هغه د رسول الله ﷺ او د حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ مخامخ کېناسته په دې باندې حضرت ابوبکر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ ته رسول الله ﷺ وفرمایل چې د فضیلت والا فضیلت هم فضیلت والا پېژني بیا حضرت عباس رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ سره خبرې شروع کړې نو رسول الله ﷺ خپل اواز ډېر ښکته کړ په دې باندې حضرت ابوبکر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ حضرت عمر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ ته وویل چې داسې معلومېږي چې رسول الله ﷺ باندې ناڅاپه مریضي راغلې ده چې له هغې وجې رسول الله ﷺ په زوره اواز نشي کولی، زما زړه دې مریضۍ سره سخت پرېشانه او خفه دی، حضرت عباس رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ سره ناست وو او خبرې یې کولې او کله چې کار پوره شو نو هغه واپس لاړ بیا حضرت ابوبکر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! آیا تاسو ته اوس څه مریضي پېښه شوې وه؟ ویې فرمایل نه! حضرت ابوبکر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ وویل ما ولیدل چې تاسو خپل اواز ښکته کړی وو رسول الله ﷺ وفرمایل چې حضرت جبرائیل عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ ما ته حکم کړی دی چې تاسو زما په مخکې خپل اواز ښکته کړئ!(۱)

**حضرت عباس رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ ته د حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ پاڅېدل:**

حضرت ابن عباس رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې د رسول الله ﷺ په مجلس کې د حضرت ابوبکر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ لپاره یو خاص ځای وو دغه ځای نه به صرف د حضرت عباس رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ لپاره پاڅېده د حضرت عباس رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ د دې اکرام سره به رسول الله ﷺ ډېر خوشحالېده یوه ورځ حضرت عباس رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ مخامخ راغی هغه یې چې ولیده نو حضرت ابوبکر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ د خپل ځای نه اخوا شو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل په تا څه وشو؟ هغه وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ستاسو تره مخامخ را روان دی رسول الله ﷺ حضرت عباس رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ خواته وکتل بیا مسکی شو او حضرت ابوبکر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ خواته متوجه شو ویې فرمایل دا عباس رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ

---

۱: اخرجه ابن عساکر کذافي الکنز ۷/۶۸.

مخامخ را روان دی هغه سپینې جامې اغوستې دي خو د ده اولاد به د ده نه پس تورې جامې اغوندي او د ده په اولاد کې به دولس بادشاهان جوړېږي کله چې حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وررسېده نو ویې فرمایل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته څه وفرمایل؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل ما خو هغه ته هم د خیر خبره کړې وه حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل زما مور پلار دې له تاسو قربان وي تاسو صحیح فرمایئ! تاسو همېشه هم د خیر خبرې کړې! خو ما ته لږ دا وواییئ! چې تاسو څه وفرمایل؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: چې زما تر عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ را روان دی سپینې جامې یې اچولې دي او د ده اولاد به د ده نه وروسته تورې جامې اغوندي او په هغوی کې به دولس پاچاهان وي.(١)

د حضرت جعفر بن محمد رَحِمَهُ اللَّهُ نیکه (چې صحابي وو) فرمایي کله چې به رسول الله ﷺ په مجلس کې ناست وو نو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه ښي خوا ته عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ گس خوا ته او حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به د رسول الله ﷺ مخې ته ناست وو او حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به د رسول الله ﷺ د راز خبرې لیکلې کله چې به حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بن عبد المطلب راتلو نو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به د خپل ځائ نه اخوا کېدو او هلته به حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کېناسته.(٢)

**رسول الله ﷺ او د عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د دوستي ترغیب ورکول:**

حضرت مطلب بن ربیعه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي: چې یو ځل حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ رسول الله ﷺ ته راغی حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ غصه شوی وو رسول الله ﷺ وفرمایل چې څه خبره پېښه شوې ده؟ هغه وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زمونږ د بنو هاشم او د قریشو به څه کېږي؟ رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه چې تاسو ته د دوي د طرفه څه راغلې ده؟ حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل کله چې هغوی یو بل سره ملاوېږي نو ډېر په خوشحالۍ او ورین تندي سره ملاوېږي او مونږ سره ملاوېدو په وخت د هغوی داسې حالات نه وي دا یې چې واورېدل نو رسول الله ﷺ دومره غصه شو چې د دواړو سترگو تر مینځ یې رگ اوچت شو کله چې یې غصه کمه شوه نو ویې فرمایل په هغه ذات مې دې قسم وي! چې د هغه په قبضه

١: عند الطبراني قال الهیثمي ٩/٢٧٠ رواه في الاوسط والكبير باختصار وفيه جماعة لم اعرفهم انتهى واخرجه ابن عساكر عن ابن عباس مختصرا كما في الكنز ٥/٢١١ وقال لم ار في سنده من تكلم فيه.
٢: عند ابن عساكر ايضا عن جعفر بن محمد عن ابيه عن جده كذافي منتخب الكنز ٥/٢١٤.

کې د محمد ﷺ روح دی د هیڅ یوه کس په زړه کې ایمان تر هغې وخته پورې نشي داخلیدای تر څو پورې چې هغه تاسو (بني هاشم) سره د الله جَلَّجَلَالُهُ د و جې نه محبت او نه کړي بیا یې وفرمایل چې په دې خلکو باندې څه شوی دی؟ چې ما ته د حضرت عباس رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ په باره کې تکلیف راکوي د سړی تره د هغه پلار پشان وي.(۱)

حضرت عباس بن عبد المطلب رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ فرمایي چې ما عرض وکړ اې د الله جَلَّجَلَالُهُ رسوله! دا قریش په خپل مینځ کې په خندا او په روڼ تندي سره ملاویږي او مونږ سره دا سې د پردو پشان ملاویږي رسول الله ﷺ چې دا واوریدل نو ډیر غصه شو او ویې فرمایل چې په هغه ذات مې دې قسم وي! چې د هغه به قبضه کې د محمد ﷺ ساه ده د سړي په زړه کې ایمان هغه وخت شاملیږي کله چې هغه تاسو بنو هاشم سره د الله جَلَّجَلَالُهُ په وجه محبت کوي.(۲)

حضرت عصمه رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ فرمایي چې یوه ورځ حضرت عباس بن عبد المطلب رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ مسجد ته لاړ نو هغوی د خلکو په مخونو باندې خفګان ولیده هغه کور ته واپس رسول الله ﷺ ته ورغی او عرض یې وکړ اې د الله جَلَّجَلَالُهُ رسوله! ما ته پته نشته چې زما نه څه خطا شوې ده؟ کله هم چې زه مسجد ته لاړ شم نو ما ته د خلکو په مخونو باندې خفګان په نظر راځي رسول الله ﷺ مسجد ته راغی او ویې فرمایل اې خلکو! تر څو پورې چې تاسو د عباس رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ سره محبت ونه کړئ! هغې پورې تاسو مؤمنان نشئ! جوړېدای.(۳)

**حضرت عمر رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ له د عباس رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ د اکرام دوجه نه د آنحضرت ﷺ دعا:**

حضرت ابن مسعود رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ حضرت عمر بن خطاب رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ لره د خلکو نه زکات اخیستو لپاره ولیږه د هغه د ټولو نه اول د حضرت عباس بن عبد المطلب رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ سره ملاقات وشو حضرت عمر رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ ورته وویل اې ابو الفضل! د خپل مال زکات راکړه! حضرت عباس رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ وویل که چیرې ته داسې وی او هغه حضرت عمر رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ ته سختې خبرې وکړې حضرت عمر رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ ورته وویل که ډیرې د الله جَلَّجَلَالُهُ ویره نه وای او ستاسو چې د رسول الله ﷺ په نزد کومه مرتبه ده که چیرې د دې خیال نه وای نو ما به هم ستا د څو خبرو هم د غسې ځواب درکړی وای بیا دا دواړه یو بل نه

---

۱: اخرجه الحاکم
۲: عندالحاکم ۳/۳۳۲
۳: عندالطبرانی قال الهیثمی ۹/۲۶۹ وفیه الفضل بن المختار وهو ضعیف

جدا شول، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ پخپله لار روان شو او حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ پخپله! حضرت عمر تلو تلو کې حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته ورسېده او هغه ته يې ټوله خبره وکړه، حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ د حضرت عمر لاس ونيوه او دواړه روان شول او دواړه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شول بيا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو زه د خلکو د زکات اخيستو لپاره اولېږلم د ټولو نه اول زما ملاقات ستاسو تره حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ سره وشو په دې باندې هغه ماته داسې داسې خبرې وکړې او بنه يې ورټلم! او ما ته يې سختې خبرې وکړې ما ورته وويل که چېرې د الله جَلَّ جَلَالُهُ وېره نه واى او د رسول الله ﷺ په نزد چې ته کومه مرتبه لرې! د دې لحاظ نه واى نو ما به هم ستا د څو خبرو هم دغسې ځواب درکړی وو رسول الله ﷺ وفرمايل تا د هغه عزت کړی دی الله جَلَّ جَلَالُهُ دې ستا عزت وکړي آيا تا ته معلومه نه ده چې د سړی تره د هغه د پلار پشان وي حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ سره د زکات په باره کې خبره مه کوئ! ځکه چې مونږ د هغه نه د دوو کالو زکات مخکې اخيستی دی.(۱)

**د حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ او دده پلار ته دکنځلې کونکي واقعه:**

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې يو سړی د حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ د پلار عبدالمطلب ذکر وکړ او د هغه د پلار يې بې عزتي وکړه په دې خبره حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ هغه سړي په څپېړه او واهه! خلک را جمعه شول او څه کسانو وويل! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ځنګه چې حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ دا په څپېړه وهلی دی دا شان به مونږ حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ خامخا په څپېړه وهو! کله چې رسول الله ﷺ ته د دې قصې پته اولګېده نو هغوی ﷺ خلکو ته بيان وکړ او خلکو نه يې پوښتنه وکړه چې په خلکو کې غوره سړی څوک دی؟ صحابه عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو يئ! رسول الله ﷺ وفرمايل واورئ! عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ زما نه دی او زه د عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه! يعنې زمونږ دواړو په خپلو کې ډېرې زياتې اړيکې دي زمونږ د خاندان چې کوم خلک مړه شوی دی هغوی ته بد رد مه وايئ! په دې سره زمونږ د خاندان ژوندی خلکو ته تکليف رسېږي.(۲)

---

۱- اخرجه ابن عساكر كذافى منتخب الكنز ۵/۱۱۴ واخرجه ابن سعد ۴/۲۷ عن قتاده مختصرا.

۲- اخرجه الحاكم ۳/۳۲۹ قال الحاكم هذا حديث صحيح الاسناد ولم يخرجاه وقال الذهبي صحيح.

ابن عساکر هم دا شان حدیث د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روایت کړی دی په هغې کې دا مضمون هم دی چې صحابه وو عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! مونږ ستاسو د غصې نه د الله جَلَّ جَلَالُهُ پناه غواړو! تاسو زمونږ لپاره د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه د مغفرت دعا او غواړئ! مونږ نه غلطي شوې ده نو رسول الله ﷺ د هغوی لپاره د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه مغفرت وغوښته.(۱)

**د حضرت ابوبکر او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا په خپل خلافت کې دعباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اکرام کول:**

حضرت ابن شهاب رَحِمَهُ اللَّهُ وايئ چې د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پخپل دور خلافت کې دا رواج وو کله چې به دا حضرات په سورلۍ باندې سواره شول او چرته به تلل او په لاره کې به يې د حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره ملاقات کېدو نو دا حضرات به د هغه په عزت کې د سورلۍ نه راکوزېدل او د سورلۍ واګې به يې ونيولې حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره به پياده تلل او هغه به يې د هغوی کور يا حجرې ته ورساوه بيا به د هغه نه جدا کېدل.(۲)

**د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او هغه سړی واقعه چې د عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تحقير يې وکړو:**

حضرت قاسم بن محمد رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چې د ډېر نوي قوانين جوړ کړی وو په هغې کې يو قانون دا هم وو چې يو سړی په جنګ کې د حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره د سپکاوي معامله وکړه په دې حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه او وهلو چا پرې اعتراض وکړ نو هغه ته يې وفرمايل چې آيا داسې کېدای شي چې رسول الله ﷺ خو دې د خپل تره عزت کوي او زه دې د هغه د بې عزتۍ اجازه ورکړم؟ د دې سړی دا بې عزتي چې څوک بنه ګڼي هغه هم د رسول الله ﷺ مخالفت کوي نو د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا نوی قانون ټولو صحابه وو ډېر خوښ کړ چې د رسول الله ﷺ د تره بې عزتي کونکی به وهل کېږي.(۳)

**حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او دحضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اکرام کول اوهغه ته خپل ځائ پرېښودل:**

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ځل رسول الله ﷺ په مسجد کې وو او صحابه کرام رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُم ترې څلور واړه طرف ته ناست وو په دې کې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مخامخ راغی هغه سلام وکړ او ودرېدو د کېناستو ځائ يې کتلو رسول الله ﷺ د خپلو صحابه وو مخونو ته يې کتل چې په دوي کې څوک علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ځائ ورکوي حضرت

---

۱: كذافي منتخب الكنز ٥/٢١١ واخرجه ابن سعد ٤/٢٤ عن ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نحو رواية ابن عساكر.
۲: اخرجه ابن عساكر كذافي الكنز ٧/٦٩.
۳: اخرجه سيف وابن عساكر كذافي منتخب الكنز ٥/٢١٢.

ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ نبي خواته ناست وو هغه د خپل ځائ نه اخوا شو وي ويل اې ابو الحسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ! دلته راشه! په دې باندې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مخکې راغی او په هغه ځائ کې د رسول الله ﷺ او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مينځ کې کېناسته مونږ ناخاپه د رسول الله ﷺ په مخ مبارک باندې د خوشحالي اثرات وليدل بيا رسول الله ﷺ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته متوجه شو او وې فرمائيل چې فضيلت والا مقام هم فضيلت والا پېژني.(۱)

**اې زمونږ مولا!**

حضرت رباح بن حارث رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې د کوفې د محله رحبه يوه ډله د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې راغله او هغوی ووېل السلام عليک يا مولانا اې زمونږ آقا حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ووېل تاسو خو عرب يئ! زه ستاسو آقا څنګه کيداى شم؟ عجمي خلک غلامان وي عرب نه وي. هغوی ووېل چې مونږ د غدير خم په ورځ د رسول الله ﷺ نه دا ارشاد اورېدلی دی چې زه د چا آقا او دوست يم دا حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم د هغه آقا او دوست دی رسول الله ﷺ زمونږ آقا دی نو دا رنګه ته هم زمونږ آقا شوې حضرت رباح رَحِمَهُ اللهُ وايي چې: خلک لاړل نو زه ورپسې لاړم او ما پوښتنه وکړه چې دا خلک څوک دی؟ نو خلکو ووېل چې: د انصارو څه خلک دي؟ چې پکې ابوايوب انصاري هم دی.(۲)

**زه چې دچا دوست يم حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دهغه دوست (ولي) دی:**

حضرت بريده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ مونږ په يو لښکر کې ولېږلو او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يې زمونږ امير جوړ کړ کله چې مونږ د سفر نه واپس راغلو نو رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه چې تاسو خپل امير څنګه بيا ومونده؟ نو ما يا بل چا د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څه شکايت وکړ چې ومې کتل نو د رسول الله ﷺ مخ مبارک د غصې له وجې نه سور شوی دی او رسول الله ﷺ فرمايي چې زه د چا دوست يم علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم د هغه دوست دی ما عرض وکړ چې ايندې به زه تاسو ته د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په باره کې تکليف ونه رسوم!(۳)

**خوک چې علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ضرر رسوي ماته ضرر رسوي:**

عمرو بن شماس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په صلح حديبيه کې شريک شوي وو هغه فرمايي چې رسول

---

۱: اخرجه ابن الاعرابي كذافي البداية ۷/۳۵۹.
۲: اخرجه احمد والطبراني قال الهيثمي ۹/۱۰۴ رجال احمد ثقات.
۳: اخرجه البزار قال الهيثمي ۹/۱۰۸ رواه الطبراني ورجاله رجال الصحيح.

اللهﷺ د اسونو سورو په يو جماعت کې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يمن ته ولېږه زه هم ورسره
ووم حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په سفر کې زما نه څه اعتراض وکړ چې هغې سره زه هغه ته په زړه
کې په غصه شوم کله چې زه مدينې منورې ته واپس راغلم نو د مدينې په مختلفو
مجلسونو کې مې د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شکايت وکړ او څوک چې به ما سره ملاوېدل د
هغه شکايت به مې ورته کولو يوه ورځ مخامخ راغلم رسول اللهﷺ په مسجد کې وو کله
چې يې زه اوليدم چې زه د هغوی ﷺ سترګو ته ګورم نو ما ته يې کتل تر دې چې زه راغلم
ورسره کېناستم بيا يې وفرمايل اې عمرو! غور سره واوره! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! تا ما ته
تکليف رسولي دي ما ويل (انا لله وانا اليه راجعون) زه د دې خبرې نه د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د
اسلام پناه غوارم چې زه د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسول ته تکليف ورسوم هغهﷺ وفرمايل چا چې
حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته تکليف ورساوه هغه ما ته تکليف رسولی دی.(۱)

**د آنحضرت ﷺ د غضب نه د حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پناه غوښتل:**

حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې زه په مسجد کې ناست ووم ما سره دوه
کسان نور هم وو مونږ تولو د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په باره کې نامناسبه خبره وکړه! په دې
کې رسول اللهﷺ مخامخ راغی د هغوی ﷺ په مخ مبارک باندې صفا د غصې اثرات په نظر
راتلل ما د رسول اللهﷺ د غصې نه په الله جَلَّ جَلَالُهُ سره پناه غوښتل شروع کړل رسول اللهﷺ
وفرمايل په تاسو باندې څه شوی دی چې ما ته تکليف رسوئ؟ چا چې علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته
تکليف ورساوه نو ګواکې چې هغوی ما ته تکليف رسولی دی.(۲)

**حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته په بد ويلو د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خفه کېدل:**

حضرت عُروه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو سړی د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په وجود کې د حضرت
علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بدی ذکر وکړ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول اللهﷺ قبر
خوا ته اشاره وکړه، وې ويل چې دا قبر والا پېژنې؟ دا حضرت محمد بن عبد الله بن
عبد المطلب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي او هغه علي ابن ابي طالب بن عبد المطلب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي،
حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول اللهﷺ د تره ځوی دي همېشه د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تذکره

---

۱: اخرجه ابن اسحق وقد رواه الامام احمد عن عمرو بن شماس فذكره كذافي البداية ٧/٣٤٦ قال الهيثمي ٩/١٢٩ رواه احمد والطبراني باختصار والبزار اختصر منه ورجال احمد ثقات انتهى.

۲: اخرجه ابويعلى كذافي البداية ٧/٣٧٤ قال الهيثمي ٩/١٢٩ رواه ابويعلي والبزار باختصار ورجال ابى يعلي رجال الصحيح غير محمود بن خداش وقنان هما ثقتان انتهى.

په خير سره کوه! ځکه چې که چېرې ته هغه ته تکليف ورسوې! نو دې ذات اقدس رسول الله ﷺ ته به تکليف ورسېږي. (۱)

**که اره اره شم هم کنځل نه ورته کووم:**

حضرت ابوبکر بن خالد بن عرفطه رَحِمَهُ ٱللَّهُ وايي چې زه د حضرت سعد بن مالک رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شوم او ما د هغه نه پوښتنه وکړه چې ما ته دا خبر را رسېدلی دی چې تاسو په کوفه کې حضرت علي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ته بدرد ويلو باندې مجبورولي شئ! نو آيا تا هغه ته بدرد ويلي دي؟ حضرت سعد رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ وفرمايل: قسم په هغه چې د هغه په قبضه کې د سعد رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ روح دی ما د رسول الله ﷺ نه د حضرت علي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ د شان په باره کې داسې فضائل اورېدلي دي چې که چېرې زما د سر په مېنځ باندې اره هم کېښودل شي نو هم به زه حضرت علي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ته بدرد ونه وايم. (۲)

**حضرت علي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ته دحضرت معاويه رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ بدل او دحضرت سعد رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ منع کول:**

حضرت عامر بن سعد بن ابي وقاص رَحِمَهُ ٱللَّهُ وايي چې ما ته زما پلار حضرت سعد رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ دا قصه واوروله چې حضرت معاويه بن ابي سفيان رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ما ته حکم وکړ او داسې يې وويل چې ته ابوتراب يعنې حضرت علي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ته بدرد ولې نه وايې؟ ما وويل چې رسول الله ﷺ د حضرت علي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ په باره کې درې داسې خبرې ارشاد فرمايلې دی چې که چېرې ما ته په هغې کې يوه هم ملاو شي نو ما ته به د سرو اوښانو نه زيات محبوب وي او دا درې خبرې چې تر څو ما ته يادې وي زه هغه ته بدرد نشم ويلی په غزوه کې يعنې تبوک غزا ته د تلو په وخت رسول الله ﷺ حضرت علي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ په مدينه منوره کې پخپل ځای باندې وروسته پرېښودل وغوښتل. نو هغه عرض وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! آيا تاسو ما ښځو او ماشومانو سره وروسته پرېږدئ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل آيا ته په دې خبره خوشحاله نه يې چې ته ما لپاره داسې يې ځنګه چې حضرت هارون عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ د حضرت موسي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ لپاره وو؟ البته دومره خبره ده چې زما نه پس به څوک پيغمبر نه وي او د خيبر په غزا کې ما د رسول الله ﷺ نه دا ارشاد مبارک واورېدو

۱: اخرجه ابن عساکر کذافي منتخب الکنز ۵/۴۸.

۲: اخرجه ابويعلي قال الهيثمي ۹/۱۳۰ اسناده حسن.

چې نن به زه جنډه هغه سړي ته ورکوم چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه د رسول ﷺ سره محبت کوي او الله رب العزت او د هغه رسول ﷺ د هغه سره محبت کوي، دا فضيلت مې چې واورېده نو زما ډېر شوق پيدا شو چې دا جنډه ما ته راکړې شي او په دې شوق کې به مې بار بار خپل سر پورته کولو چې ښکاره شي او س رسول الله ﷺ ما وغواړي او جنډه راکړي خو رسول الله ﷺ وفرمايل چې علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ما ته راولئ! حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راغى نو د هغه سترګې خوږېدلې هغوى ﷺ د هغه په سترګو باندې لاړې مبارکې ولګولې او بيا يې جنډه هغه ته ورکړه او الله رب العزت د هغه په لاس باندې مسلمانانو ته فتح ورکړه. او کله چې دا ايت نازل شو: **فَقُلْ تَعَالَوْا نَدْعُ أَبْنَاءَنَا وَأَبْنَاءَكُمْ وَنِسَاءَنَا وَنِسَاءَكُمْ وَأَنْفُسَنَا وَأَنْفُسَكُمْ** (١)

ترجمه: نو تاسو او فرمايئ! چې راشئ موږ او تاسو را غواړو خپل ځامن او ستاسو ځامن او خپلې ښځې او ستاسو ښځې او خپل ځانونه او ستاسو ځانونه.

موږ ټولو يو ځاى ښه د زړه نه دعا وکړه په دې شان باندې چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ لعنت ولېږو په هغوى باندې چې په دې بحث کې په ناحقه وي په دې باندې رسول الله ﷺ حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت فاطمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، حضرت حسن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت حسين رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ را وغوښتل او ويې فرمايل اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! دا زما کوروالا دي! (٢)

حضرت ابو نجيح رَحِمَهُ اللَّهُ وايي کله چې حضرت معاويه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حج ته راغى نو د حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لاس يې ونيوه او وې ويل چې اې ابو اسحاق! د غزواتو د مشغولتيا په وجه موږ ځو کالو نه حج ونه کړ چې د له دې وجې نه موږ د حج ډېر سنت هېر کړي دي نو دا رنګه تاسو طواف کوئ! موږ به هم تاسو سره طواف کوو د طواف نه پس حضرت معاويه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه ځان سره دار الندوه ته بوته او هغه يې د ځان سره يې پخپل تخت باندې کېناوه بيا يې د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تذکره شروع کړه او د هغوى په باره کې يې نامناسبه الفاظ وويل حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې تازه خپل کور ته راوستلم او پخپل تخت باندې دې کېنولم بيا دې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته بد رد شروع کړل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! په حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کې درې داسې خبرې موجودې دي چې

---

١: سورة آل عمران آيت ٦١

٢: اخرجه احمد ومسلم والترمذى.

په هغې کې يوه هم ماته ملاو شي نو دا ماته د ټولې دنيا ملاو ېدو نه هم زيات خوښ دی اولنۍ خبره دا ده چې په غزوه تبوک د تللوپه وخت رسول الله ﷺ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته فرمايلي وو ته زما لپاره داسې يې لکه څنګه چې هارون عَلَيْهِ السَّلَامُ د موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ لپاره وو البته دومره خبره ضرور ي ده چې زما نه وروسته به هيڅوک پيغمبر نه وي که چېرې رسول الله ﷺ ماته دا فرمايلي وای نو دا به ماته د ټولې دنيا د ملاوېدو نه زيات خوښ وای دويمه خبره دا ده چې د جنګ خيبر په ورځ رسول الله ﷺ د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په باره کې وفرمايل چې زه به نن جنډه داسې سړی ته ورکوم چې الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه د رسول ﷺ سره محبت کوي او الله رب العزت او د هغه رسول ﷺ د هغه سره محبت کوي الله جَلَّ جَلَالُهُ به د هغه په لاس فتح نصيب کوي او هغه د ميدان نه تښتېدونکی نه دی که چېرې رسول الله ﷺ دا لفظ زما په باره کې فرمايلي وای نو دا به ماته د ټولې دنيا د حاصلېدو نه ډېر خوښ وای زه له نن نه پس ستا کور ته نه راځم دا يې وفرمايل حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل څادر وڅانډه او بهر ته يې تشريف يووړ.(۱)

**په هغه چا د ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا انکار او اعتراض چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته کنځل کوي:**

حضرت ابوعبدالله جدلي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زه د حضرت ام سلمة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شوم نو ما ته يې وفرمايل آيا ستاسو د ټولو په مينځ کې رسول الله ﷺ ته بدرد ويلي شي؟ ما وويل د الله جَلَّ جَلَالُهُ پناه سبحان الله! يا داسې بله خبره مې وکړه هغې وويل چې ما د رسول الله ﷺ نه اورېدلی دی چې چا علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته بدرد وويل هغه ما ته بدرد وويل.(۲)

حضرت عبدالله جدلي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل آيا ستاسو په مينځ کې رسول الله ﷺ ته بدرد ويلي کېږي؟ ما وويل چې رسول الله ﷺ ته څنګه بدرد ويلي شي؟ هغې وفرمايل چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته او هغه سره محبت کوونکو ته بدرد نه ويلي کېږي په داسې حال کې رسول الله ﷺ هغه سره محبت کولو .(۳)

حضرابو صادق رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې کوم د رسول الله ﷺ

---

۱: عند ابی زرعة الدمشقي عن عبدالله بن ابی نجيح عن ابيه کذافی البداية ۷/۳۴۰،۳۴۱.

۲: اخرجه احمد قال الهيثمی ۹/۱۳۰ رجاله رجال الصحيح غير ابی عبدالله الجدلي وهو ثقة.

۳: عند الطبراني وابی يعلي قال الهيثمی رجال الطبرانی رجال الصحيح غير ابی عبدالله وهو ثقة واخرجه ابن ابی شيبة عن ابی عبدالله نحوه کما فی المنتخب ۵/۴۶.

خاندان وو هغه زما خاندان دی چې کوم د رسول الله ﷺ دین وو هغه زما دین دي لهذا څوک چې زما بې عزتي کوي هغه په حقیقت کې د رسول الله ﷺ بې عزتي کوي.(۱)

**حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دحضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اکرام کول:**

حضرت عبدالرحمن بن اصبهاني رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت ابو بکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یوه ورځ په منبر باندې وو چې په دې کې حضرت حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی دی لا کم عمره ماشوم وو، هغه وویل چې تاسو زما د نیکه د منبر نه راکوز شئ! حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل ته صحیح وایې! دا ستا د نیکه د ناستې ځایٔ دی او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه په غېږ کې ونیوه او به ژړا شو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! دې ماشوم زما په وینا دا خبره نه ده کړې بلکې ده د خپلې خوانه کړې ده. حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل ته صحیح وایې! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زما په تا باندې هیڅ شک نشته.(۲)

حضرت عُروه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یوه ورځ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په منبر باندې خطبه ورکوله چې په دې کې حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی او په منبر باندې اوختلو او وې ویل چې تاسو زما د نیکه د منبر نه راکوز شئ! په دې باندې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې دا خبره زمونږ د مشورې نه بغیر شوې ده.(۳)

**حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دحضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اکرام کول:**

حضرت ابوالبختري رَحِمَهُ اللهُ وایي چې یوه ورځ حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په منبر باندې بیان کولو چې په دې کې حضرت حسین بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورپېده او وېې ویل چې تاسو زما د نیکه د منبر نه لاندې راکوز شئ! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل بې شکه دا ستا د نیکه منبر دی زما د پلار نه دی! خو دا سې کولو لپاره تا ته چا ویلي دي؟ په دې خبره حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ودرېدو او وې ویل چې ده ته هیچا هم نه دی ویلي بیا حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت حسین رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته متوجه شو او وېې فرمایل اې دوکه بازه! زه به تا بنه ووهم، حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل زما وراره ته هیڅ مه وایه! دی صحیح وایي دا د ده د نیکه منبر دی.(٤)

۱: اخرجه الخطيب في المتفق وابن عساكر كذافي المنتخب ٥/٤٦
۲: اخرجه ابونعيم
۳: عند ابن سعد كذا في الكنز ٣/١٣٢
٤: اخرجه ابن عساكر قال ابن كثير سنده ضعيف كذافي الكنز ٧/١٠٥.

حضرت حسين بن علي فرمايي چې زه منبر ته وختلم او حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته ورغلم او ما ورته وويل چې زما د نيكه منبر نه تاسو راكوز شئ! او د خپل پلار منبر ته تشريف يوسئ! حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل چې زما د پلار خو منبر نشته دى دا يې چې وويل او زه يې ځان سره كېنولم بيا د منبر نه راكوز شو او زه يې خپل كور ته بوتلم او ما ته يې وفرمايل اې زما ځويه! تا ته دا چا ښودلي وو ما وويل چې چا هم نه! هغوى وفرمايل كه چېرې ته مونږ له ځې راځې نو ډېر به ښه وي او زه يوه ورځ هغوى ته لاړم نو هغوى حضرت معاويه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سره ځان له خبرې كولې او ما وليدل چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دروازه باندې ولاړ دى هغه ته هم اجازه نه دى حاصل شوى داې چې وكتل واپس راغلم د ښه پس كله چې هغوى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سره ملاقات وشو نو ما ته يې وفرمايل اې زما بچيه! ته مونږ ته ولې نه راځې؟ ما وويل چې زه يوه ورځ راغلى ووم تاسو د حضرت معاويه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سره ځان له خبرې كولې او ستاسو ځوى حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته هم اجازه نوه حاصل شوې نو ما وليدل چې هغه واپس لاړل له دې وجې نه زه هم واپس راغلم حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل نه! ته د عبدالله بن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه زيات د اجازې ملاوېدو مستحق يې! ځكه چې زمونږ په سرونو باندې كوم د شرافت تاج نن په نظر راځي دا هر څه الله رب العزت ستاسو د كورنۍ د بركته راكړى دى او بيا زما په سر باندې حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د شفقت لاس كېښوده. (۱)

حضرت عقبه بن حارث رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې د رسول الله د وفات نه څو ورځې پس ما د مازديگر لمونځ وكړ او د حضرت ابوبكر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سره د مسجد نه د باندې ووتلم حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د حضرت ابوبكر صديق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سره روان وو په دې كې د حضرت ابوبكر صديق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په حضرت حسين بن علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ باندې تېرېدل وشو هغه ماشومانو سره لوبې كولې حضرت ابوبكر صديق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هغه په خپله اوږه باندې كېنولو او دا شعر يې وويلو،

بابي شبيه بالنبي

ليس شبيها بعلي

يعنې په دې ماشوم دې زما پلار قربان وي د ده شكل او صورت د رسول الله ﷺ پشان دى د

---

۱: عند ابن سعد وابن راهويه والخطيب كذافي الكنز ٧/١٠٥ قال في الاصابة ١/٣٣٣ سنده صحيح.

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په شان نه دی حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا شعر واورېده او خندل یې!(۱)

**حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دحضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نوم (خېټه) ښکلول:**

حضرت عُمیر بن اسحاق رَحِمَهُ اللهُ وایي چې ما ولیدل چې د حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ملاقات وشو نو حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل چې ته د خپلې خېټې د هغه ځای نه جامه لرې کړه د کوم ځای چې ما د رسول الله ﷺ د ښکلولو په وخت لیدلې وو نو حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپلې خېټې نه جامه اوچته کړه او حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه خېټه ښکل کړه په یو روایت کې دا دي چې حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه نوم ښکل کړ.(۲)

**یا سیدي!:** حضرت مقبري رَحِمَهُ اللهُ وایي چې مونږ حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ناست وو چې په دې کې حضرت حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هلته نه تېر شو هغه سلام وکړ خلکو د سلام جواب ورکړ حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مونږ سره وو خو هغه ته د حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د تېرېدلو او د سلام کولو پته ونه لګېده چا ورته وویل چې دا سلام حضرت حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کړی وو هغه فوراً ورپسې لاړ او ورته یې وویل اې زما سرداره! (وَعَلَیکَ السلام) چا ترې پوښتنه وکړه تاسو ده ته اې زما سرداره وایئ؟ حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې زه د دې خبرې شاهدي ورکوم چې محمد ﷺ فرمایلي وو چې دا سردار دی.(۳)

**د حضرت حسین اوحسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په باره کې دحضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او مروان واقعه:**

د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مرضُ الوفات کې مروان هغه ته راغی او وې ویل چې د کله نه مونږ تاسو سره یو د هغه وخت نه تر ننه پورې ما ته ستاسو په هیڅ خبره غصه نه ده راغلې بس په دې خبره غصه راغلې ده چې تاسو د حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت حسین رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ډېر محبت کوئ! دې اورېدو سره حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ غونډ کېناسته او ویې فرمایل چې زه د دې خبرې شاهدي ورکوم چې مونږ په یو سفر کې رسول الله ﷺ سره وو په لاره کې یو ځای رسول الله ﷺ د حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت حسین رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ژړا اواز

---

۱: عند ابن سعد وابن راهویه والخطیب کذافی الکنز ۷/۱۰۵ قال فی الاصابة ۱/۳۳۲ سنده صحیح.

۲: قال الهیثمی ۹/۱۷۷ رواه احمد والطبراني الا ان قال فکشف من بطنه و وضع یده علی سرته ورجالهما رجال الصحیح غیر عمیر بن اسحاق وهو ثقة اه واخرجه ابن النجار عن عمیر کما فی الکنز ۷/۱۰۴ وفیه فوضع فمه علی سرته.

۳: قال الهیثمی ۹/۱۷۸ رجاله ثقات واخرجه ایضاً ابو یعلی و ابن عساکر عن سعید المقبري فی الکنز ۷/۱۰۴ واخرجه الحاکم ۳/۱۶۹ وصححه.

واورېده هغوی دواړه د خپلې مور سره وو رسول الله ﷺ په تېزۍ سره لاړ هغوی ته وراورسېده او وې فرمايل چې زما په بچو څه شوی دی؟ حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وویل چې د تندې د وجه نه ژاړي رسول الله ﷺ وروسته مشکېزې خواته لاس مخکې کړ او به يې وکتلې خو په هغې کې او به نه وې په هغه ورځ او به ډېرې کمې وې خلکو ته بله لړې لړې او به رسيدې خلکو هم او به تلاش کولې، رسُول الله ﷺ اعلان وکړ چې چا سره او به شته؟ په دې اعلان باندې هر سړی خپل شاته مشکيزه وکتله چې او به په کې شته او کنه؟ خو چا ته هم يو څاڅکي او به ملاو نه شوې په دې باندې رسول الله ﷺ وفرمايل، اې فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا يو ماشوم ما ته راکړه! هغې د پردې د لاندې رسول الله ﷺ ته يو ماشوم ورکړ ماشوم ورکولو سره د حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د لاسونو سپينوالي ما ته په نظر راغی رسول الله ﷺ ماشوم واخيسته او خپلې سينې سره يې ولګوله هغه ماشوم ژړل نه چې کېدو رسول الله ﷺ خپله ژبه مبارکه را ووېستله نو هغه ماشوم هغه ورودله او رودلو رودلو سره چپ شو او ما ته د هغه د ژړا او ازنه راتله هغه ژړا پرېښې وه، دويم ماشوم هم هغسې ژړل او نه غلي کېده، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل دا دويم هم ماته راکړه! حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دويم ماشوم هم ورکړ رسول الله ﷺ واخيسته هغه سره يې هم داسې وکړ هغه هم چپ شو او ما ته د چا دژړا اوازونه نه راتلل بيا رسول الله ﷺ وفرمايل څئ! نو د زنانه وو له وجې نه مونږ اخوا دېخوا روان شو دې لپاره چې د رسول الله ﷺ زنانه وو سره زمونږ اختلاط نه وي مونږ هلته نه روان شولو او د لارې په مينځ برخه کې رسول الله ﷺ سره دوباره ملاو شو، کله چې ما د رسول الله ﷺ د حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره دا مشفقانه رويه ليدلې ده نو زه به دوې دواړو سره ولې محبت نه کوم؟ (۱)

## د عالمانو، مشرانو او اهل فضيلت خلکو اکرام کول

### دحضرت ابن عباس او زيد بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د يو بل اکرام کول:

حضرت عمار بن ابي عمار رَحِمَهُ اللهُ وايي چې يوه ورځ حضرت زيد بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په سورلۍ باندې سورېده نو حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه پاڼيدان لاس کې ونيوه په دې باندې حضرت زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رسول د تره ځويه! تاسو يو خوانه

۱: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ۹/۱۸۱ رواه الطبراني ورجاله ثقات.

شئ! زما پاثیدان مه نیسه! حضرت ابن عباس رَضِوَالِلّهُعَنهُ عرض وکړ چې مونږ ته هم د دې حکم راکړې شوی دی چې مونږ د خپلو عُلماوو او مشرانو سره هم دا شان عزت معامله وکړو حضرت زید رَضِوَالِلّهُعَنهُ وویل تاسو ما ته لږ خپل لاس ونسایئ! حضرت ابن عباس رَضِوَالِلّهُعَنهُ خپل لاس راووېسته حضرت زید رَضِوَالِلّهُعَنهُ هغه ښکل کړ او ویې فرمایل مونږ ته د رسول الله ﷺ د کوروالاوو سره داسې د عزت کولو حکم راکړل شوی دی.(۱)

حضرت شعبي رَحِمَهُاللّهُ وایي چې حضرت زید بن ثابت رَضِوَالِلّهُعَنهُ په سورلۍ باندې سورېده نو حضرت ابن عباس رَضِوَالِلّهُعَنهُ د هغه پاثیدان ونیوه حضرت زید رَضِوَالِلّهُعَنهُ وفرمایل نه! ای د الله جَلَّجَلَالُهُ د رسول ﷺ د تره ځویه! تاسو یو خواته شئ! حضرت ابن عباس رَضِوَالِلّهُعَنهُ وویل نه! مونږ د علماوو سره او مشرانو سره هم داسې د عزت معامله کوو.(۲)

حضرت ابن عباس رَضِوَالِلّهُعَنهُ د حضرت زید رَضِوَالِلّهُعَنهُ پاثیدان ونیوه او داسې یې وویل چې مونږ ته حکم راکړل شوی دی چې موږ به د خپلو تعلیم ورکوونکو او د خپلو مشرانو پایدان نیسو.(۳)

**رسول الله ﷺ او د حضرت ابوعبیده رَضِوَالِلّهُعَنهُ اکرام کول:**

حضرت ابوأمامه رَضِوَالِلّهُعَنهُ فرمایي چې یو ځل رسول الله ﷺ د حضرت ابوبکر رَضِوَالِلّهُعَنهُ، حضرت عمر رَضِوَالِلّهُعَنهُ، حضرت ابوعبیده بن جراح رَضِوَالِلّهُعَنهُ او د صحابه وو یوې ډلې سره ناست وو رسول الله ﷺ ته یوه پیاله راوړی شوه چې د څښلو څه شی پکې وو رسول الله ﷺ هغه پیاله حضرت ابوعبیده بن جراح رَضِوَالِلّهُعَنهُ ته ورکړه هغه وویل ای د الله جَلَّجَلَالُهُ رسوله! ستاسو د دې پیالې زما نه زیات حق دی رسول الله ﷺ وفرمایل چې نه! ته یې واخله! هغه واخیسته او د څښلو نه مخکې یې بیا عرض وکړ ای د الله جَلَّجَلَالُهُ رسوله! تاسو یې واخلئ! رسول الله ﷺ وفرمایل ته یې وڅښه! ځکه چې برکت زمونږ د مشرانو سره دی څوک چې زمونږ په کشرانو شفقت نه کوي او زمونږ د مشرانو تعظیم نه کوي هغه زمونږ نه نه دی.(٤)

---

۱: اخرجه ابن عساكر كذا في الكنز ٧/٣٧

۲: عند يعقوب بن سفيان باسناد صحيح كذافي الاصابة ١/٥٦١ واخرجه الطبراني عن الشعبي نحوه ورجاله رجال الصحيح غير رزين الرماني وهو ثقة كما قال الهيثمي ٩/٣٤٥ واخرجه ابن سعد ٤/١٧٥ نحوه واخرجه الحاكم ٣/٤٢٣ عن ابي سلمة نحوه وصححه على شرط مسلم ويعقوب بن سفيان عن الشعبي نحو حديث عمار بن ابي عمار كام في الاصابة ٢/٣٣٢.

۳: عند ابن النجار كذافي الكنز ٧/٣٨.

٤: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ٨/١٥ وفيه علي بن زيد الهالي وهو ضعيف.

**تر ټولو مشر دې خبرې وکړي! :**

رافع بن خديج رَضِيَ اللهُ عَنهُ او حضرت سهل بن ابي حثمه رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې حضرت عبدالله بن سهل رَضِيَ اللهُ عَنهُ او حضرت مُحيصه بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُ خيبر ته لاړل او د کجورو په يو باغ کې د يو بل نه جدا شو چا حضرت عبدالله بن سهل رَضِيَ اللهُ عَنهُ قتل کړ نو حضرت عبدالرحمن بن سهل رَضِيَ اللهُ عَنهُ، حضرت حُويصه بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُ او حضرت مُحيصه بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُ رسول الله ﷺ ته راغلل او د خپل قتل شوي ملګري په باره کې يې ورسره خبرې کولې نو حضرت عبدالرحمن رَضِيَ اللهُ عَنهُ خبره شروع کړه دې په ټولو کې کشر وو په دې باندې رسول الله ﷺ وفرمايل د مشرانو د مشرئ خيال اوساته يحيي راوي وايي چې د رسول الله ﷺ مطلب دا وو چې کوم په عمر کې زيات دی هغه دې خبره وکړي نو دغه حضراتو خپل قتل شوي ملګري باره کې خبره وکړه رسول الله ﷺ وفرمايل که چېرې ستاسو د قبيلې پنځوس کسان قسم اوخوري نو تاسو د خپل مقتول د قصاص حقدار جوړېدلی شئ! هغوی عرض وکړ چې دا خو داسې واقعه ده چې مونږ ليدلې نه ده له دې وجې نه مونږ قسمونه نشو خوړلې رسول الله ﷺ وفرمايل نو بيا که چېرې د يهودو پنځوس سړی قسم اوخوري نو په هغوی به قصاص رانشي هغوی عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! دا خو کافران خلک دي دوي به په دروغو قسمونه وخوري په دې باندې رسول الله ﷺ د جنګ د خمولو لپاره د خپل طرف نه هغوی ته ديت يعنې د وينو قيمت ورکړه.(۱)

**رسول الله ﷺ او د حضرت وائل بن حجر رَضِيَ اللهُ عَنهُ اکرام کول:**

حضرت وائل بن حجر رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې په حضر موت کې زمونږ لوي سلطنت وو او هغه ځائ ټولو خلکو زمونږ خبره منله هلته مونږ ته د رسول الله ﷺ د نبوت د اعلان خبر ملاو شو نو ما دا هر څه پرېښودل د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه د رسول الله ﷺ په شوق کې د هلته نه روان شوم زما د رسېدلو نه مخکې رسول الله ﷺ خپلو صحابه وو ته زما د راتلو زېری اورولی وو کله چې زه د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شوم نو ما ورته سلام وکړ آنحضرت ﷺ د سلام جواب راکړ او خپل څادر يې خور کړ او زه يې پرې کېنولم بيا يې خپل منبر ته تشريف يوړلو او زه يې ځان سره په منبر باندې کېنولم! پيغمبر ﷺ دواړه لاسونه

(۱) اخرجه البخاري.

اوچت کړل اول يې د الله جَلَّجَلَالُهُ حمد او ثناء بيان کړه او په ټولو نبيانو يې درود شريف ولېږه په دې کې رسول الله ﷺ ته ټول خلک جمعه شوي وو نبي اکرم ﷺ وفرمايل اې خلکو! دا وائل بن حجر تاسو ته د لرې علاقې حضرموت نه په خپله راغلی دی چا په راتلو باندې دا نه دي مجبور کړي او دي د الله رب العزت او د هغه ذ رسول ﷺ او د هغه د دين په شوق کې راغلی دی ما ورېل اې د الله جَلَّجَلَالُهُ رسوله! تاسو صحيح فرمايئ!(۱)

حضرت وائل بن حُجر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم نو آنحضرت ﷺ صحابه وو ته وفرمايل چې دا وائل بن حجر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه خو ستاسو په شوق کې راغلی دی او نه ستاسو د وېرې په وجه راغلی دی. بلکې دي د الله جَلَّجَلَالُهُ او د رسول الله ﷺ په محبت کې راغلی دی رسول الله ﷺ خپل څادر خور کړ او زه يې په پرې څنګ ته کېنولم او زه يې خپلې سينې سره ولګولم او ځان سره يې په منبر باندې کېنولم او خلکو ته يې بيان وکړ او ويې فرمايل چې ده سره نرمي کوئ! ځکه چې ده اوس خپل سلطنت پرېښی دی او نوي نوي راغلی دی ما عرض وکړ چې زما خاندان والاوو هغه هر څه زما نه اخيستی دی چې زما وو رسول الله ﷺ وفرمايل چې څومره درنه هغوی اخيستی دی هغه به هم تا ته درکړم او د هغې په دوه به هم درکړم مخکې يې نور حديث هم بيان کړی دی.(۲)

**رسول الله ﷺ او وفات په وخت کې دحضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اکرام کول:**

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي کله چې د حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د لاس زخم تازه شو او وينه ترې روانه شوه نو رسول الله ﷺ پاڅېده هغه ته ورغی او هغه له يې غاړه ورکړه او د هغه د وينې څاڅکي د رسول الله ﷺ په مخ او ږيره مبارکه باندې پرېوتل چا به هم چې رسول الله ﷺ د وينې نه د بچ کولو هر څومره کوشش کولو رسول الله ﷺ به هم هغومره حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته نور هم نزدې کېدو تر دې چې هغه وفات شو.(۳)

د انصارو يو صاحب بيان کوي کله چې حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د قريظه قبيلې په باره کې د رسول الله ﷺ فيصله خلکو ته واوروله او واپس راغی نو د هغه زخم وشکېده او د هغې نه

---

۱: اخرجه البزار قال البيهقى ۹/۳۷۳ وفيه محمد بن حجر وهو ضعيف.
۲: عند الطبرانى قال الهيثمى ۹/۳۷۴ رواه الطبرانى من طريق ميمونة بنت حجر بن عبدالجبار عن عمتها ام يحيى بن عبدالجبار ولم اعرفها وبقية رجاله ثقات انتهى.
۳: اخرجه ابن سعد ۳/۴۲۶

وينه روانه شوه رسول الله ﷺ ته کله چې د دې پته ولګېده نو هغه له ورغی او د هغه سرېې ونيوه او په خپله غېږ کې يې کېښودلو د حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بدن په يوه سپينه جامه پټ کړی شو خو هغه جامه دومره وړه وه کله چې هغه په مخ باندې واچول شوه نو دواړه پښې يې ښکاره شوې حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تک تور او دروند سړی وو رسول الله ﷺ وفرمايل اې الله جَلَّ جَلَالُهُ سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ستا په لاره کې جهاد کړی دی او ستا رسول الله ﷺ يې رېښتينی ګڼلی وو او کوم کار چې د هغه په ذمه شوی وو هغه کار يې په ښه طريقه پوره کړی دی د له دې وجې نه ته د هغه روح په خپل دربار کې داسې قبول کړه څنګه چې ته غوره نه غوره روح قبلوې! کله چې حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ دا دعا واورېده نو سترګې يې اوغړولې او وې ويل (السلام عليک يارسول الله! په غور سره واورئ! زه دې خبرې شاهدې ورکوم چې تاسو د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسول يئ! کله چې د حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کوروالاوو وليدل چې رسول الله ﷺ د حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سر په خپله مبارکه غېږه کې اېښی نو هغوی وو پرېدل نو څوک راغی او رسول الله ته يې وويل چې د حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کوروالاوو کله چې دا وليدل چې تاسو د هغه سر په خپله غېږ کې اېښی دی نو هغوی وو پرېدل رسول الله ﷺ وفرمايل چې اوس خو هغه د دنيا نه تلونکی دی او په دې وخت کې تاسو چې پدې کور کې څومره يئ! دومره فرښتو د الله رب العزت نه د حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفات ته د حاضرېدلو اجازه غوښتلې ده راوی وايې چې د حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مور په ژړا ژړا کې دا شعر وويلو؛

وَيْلُ أُمِّكَ سَعْدا

حَزَامَةً وَجِدّا

اې سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ستا د مور لپاره دې تباهي وي ته خو داسې وې چې هر کار به دې په پوره احتياط سره په ښه شان باندې کولو او پوره محنت به دې کولو چا د هغه مور ته وويل آيا ته د حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مرثيه وايې؟ رسول الله ﷺ وفرمايل دا پرېږدئ! دا رېښتيا شعر وايي نور خلک د دروغو شعرونه وايي. حضرت خارجه بن زيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ځل حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د شپې ډوډۍ کېښودل شوه چې هغه د خلکو سره ډوډۍ اوخوري هغه بهر ته راغی او حضرت مُعيقيب بن ابي فاطمه دوسي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د رسول الله ﷺ صحبت حاصل دی

هغه حبشې ته هجرت کړی وو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمايل نزدې راشه! دلته کېنه! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! که چېرې ستا نه علاوه بل چا ته دا د کورجزام بيماري وای نو هغه به زما نه ديوې نېزې په مقدار لرې کېناسته د دې نه به نزدې نه کېناسته.(۱)

**حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د رسول الله ﷺ د صحابي حضرت معيقيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اکرام کول:**

حضرت خارجه بن زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلک د غرمې ډوډۍ لپاره را اوبلل خلک وو پرېدل په خلکو کې حضرت مُعيقيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم وو هغه ته د کوره جزام بيماري وه هغه هم خلکو سره طعام خوړل شروع کړ نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمايل چې د خپلې مخې ته نزدې نه طعام خوره که چېرې ستا نه علاوه بل څوک واي نو هغه به ما سره د دې پيالې نه طعام نه خوړلی او د هغه په مينځ کې به د يوې نېزې فاصله واي. (۲)

**حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د عمرو بن طفيل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اکرام کول:**

حضرت عبدالواحد بن ابي عون دوسي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت طفيل بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بني دوس قبيلې نه واپس د رسول الله ﷺ په خدمت کې لاړ او بيا تر وفاته پورې په مدينه منوره کې رسول الله ﷺ سره وو د رسول الله وفات سره کله چې عرب خلک مرتد شول نو هغه د مسلمانانو سره لاړ او مرتدينو سره يې بنه جهاد وکړ طليحه او د نجد ټولې منطقې د مرتدينو نه چې فارغ شول نو دا حضرات يمامه ته لاړل هغه سره د هغه ځوی حضرت عمرو بن طفيل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم وو پخپله طفيل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په جنګ يمامه کې شهيد شو او د هغه ځوی حضرت عمرو زخمي شو او د هغه يو لاس پرېکړي شو يو ځل دا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ناست وو چې په دې کې ډوډۍ راوړل شوه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو خواته شو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمايل چې څه خبره ده؟ کېدای شي چې ته د خپل پرېکړي شوي (زخمي) لاس له وجې نه يو خواته شوي هغه ووېل هو! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل نه! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه به تر هغې دا ډوډۍ اونه څکم! تر څو پورې چې ته په خپل لاس سره ډوډۍ په خپلو کې يو ځای نه کړې! ځکه چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! په دې وخت کې چې دلته څومره خلک دي په دوي کې يو هم ستا نه علاوه داسې نشته چې د هغه د بدن څه حصه په جنت کې وي داسې خو صرف هم ته يې! بيا حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مسلمانانو سره جنګ

---

۱: اخرجه ابن سعد ۴/۸۷.

۲: عنده ايضاً من وجه آخر.

یرموک ته لاړ او هلته شهید شو.(۱)

**حضرت ابوموسی اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د اهل فضل د مخکې کولو امر:**

حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ابو موسی اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته په لیک کې دا اولیکل چې ما ته پته لګېدلې ده چې ته د خلکو تولې دلې ته په یو ځل اجازه ورکوې داسې مه کوه بلکې کله چې تا ته زما دا لیک ملاو شي نو بیا ته داسې ترتیب جوړ کړه چې اول د فضیلت او شرافت والو خاص خاص خلکو ته اجازه ورکړه کله چې دا خلک کېني بیا عامو خلکو ته اجازه ورکړه.(۲)

# مشران د قوم سردارانو په حیث ټاکل

**خپلو زامنو ته د قیس بن عاصم رَحِمَهُ اللهُ وصیت:**

حضرت حکیم بن قیس بن عاصم رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زما پلار حضرت قیس بن عاصم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مرګ په وخت کې خپلو زامنو ته دا وصیت وکړ: د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه وېرېږئ! او خپل مشران سرداران جوړوئ! ځکه کله چې یو قوم خپل مشر سردار جوړوي نو هغوی د خپل پلار نیکه په صحیح طریقه جانشین جوړېږي او کله چې هغې خپل د ټولو نه کشر سردار جوړوي نو دې سره د هغه درجه د برابرو په نظر کې کمېږي ځان سره مال ساتئ! او هغه حاصلوئ! ځکه چې مال سره کریم او سخي سړی ته عزت ملاوېږي او هم د دې په ذریعه انسان د کمینه او کنجوس سړی محتاج نه وي او د خلکو نه هیڅ مه غواړئ! ځکه چې دا د انسان لپاره د ګټلو د ټولو نه ادني او بېکاره ذریعه ده چې د سختې مجبورۍ په حالت کې اختیارولې کار وي کله چې زه مړ شم نو په ما باندې ویر مه کوئ! ځکه چې رسول الله ﷺ باندې چا ویر نه وو کړي او کله چې زه مړ شم نو ما په یوه داسې ځای کې خښ کړئ! چې د هغې پته بنوبکر بن وائل قبیلې والاو ته و نه لګي چې هغوی زما په قبر سره نامناسبه حرکت و نه کړل شي ځکه چې ما به د جاهلیت په زمانه کې ناخبره لیدل او په هغوی به مې چاپې وهلې.(۳)

حضرت علي بن حسین رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې زه مروان بن حکم ته لاړم نو هغه وویل چې ما ستا د پلار نه زیات بنه طریقه باندې غلبه حاصلونکي څوک نه دی لیدلی! د جنګ جمل

۱: اخرجه ابن سعد وابن عساکر کذافي الکنز ۷/۷۸.

۲: اخرجه الدینوری کذافي الکنز ۵/۵۵.

۳: اخرجه البخاری فی الادب ۵۴ واخرجه احمد ایضاً نحوه کما فی الاصابة ۳/۲۵۳ واخرجه ابن سعد ۷/۳٦ ایضاً نحوه.

په ورځ کله چې مونږ خلکو شکست وخوړلو او وتښتېدو نو د دوي سړي په زوره اعلان وکړ چې څوک تښتېدونکي مه وژنئ! او څوک زخمي مه وژنئ!(١)

حضرت عبدِ خیر رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې چا حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه د جمل والاوو یعنې چې په جنګ جمل کې د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خلاف وو د هغوی په باره کې پوښتنه وکړه نو حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل دا زمونږه ورونه دي چې زمونږ په خلاف یې بغاوت کړی وو له دې وجې نه مونږ دوي سره جګړه کړې وه اوس دوي د بغاوت نه توبه وېستې ده چې هغه مونږ قبوله کړې ده.(٢)

• حضرت محمد بن عمر بن علي بن ابي طالب رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت علي د جنګ جمل په ورځ وفرمایل چې مونږ به دې مخالفینو باندې د کلمه شهادت له وجې نه احسان کوو (یعنې دوي به نه وژنو) او څوک وووژل شي د هغوی د سامان او وسلې وارثان به د هغوی ځامن ګرځوو! مونږ یې نه اخلو. حضرت ابو البختري وايي چې د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه د جنګ جمل په باره کې پوښتنه وشوه چې آیا دوي مشرکان دي؟ نو ویې فرمایل چې د شرک نه خو دوي په تېښته راغلي دي بیا ترې پوښتنه وشوه چې آیا دوي منافقان دي؟ نو ویې فرمایل چې منافقان خو د الله جَلَّ جَلَالُهُ ذکر ډېر کم کوي او دا خلک خو د الله جَلَّ جَلَالُهُ ذکر ډېر کوي له دې وجې نه منافقان هم نه دي بیا ترې پوښتنه وشوه نو بیا دوي څوک دي؟ ویې فرمایل چې دا زمونږه ورونه دي دوي زمونږ په خلاف بغاوت کړی وي.(٣)

## د عمل او رايې د اختلاف باوجود هم د يو بل اکرام کول

**د جنګ جمل په ورځ خلکو ته د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وصیت:**

حضرت یحیي بن سعید رَحِمَهُ اللَّهُ د خپل تره نه نقل کوي چې زما تره فرمايي کله چې مونږ په جنګ جمل کې ودرېده او حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زمونږ صفونو ته ترتیب ورکړ نو هغوی په خلکو کې دا اعلان وکړ چې څرنګه چې زمونږ په مقابله کې هم د مسلمانانو یوه ډله ده له دې وجې نه څوک به غشي نه اولي او نه به په نېزه وهل کوي او نه به توره چلوي او د غه خلکو سره به خپله جګړه مه شروع کوئ! او ډېره نرمه خبره ورسره کوئ! ځکه چې دا داسې

---

١: عند البیهقي ٨/١٨١.

٢: عندالبیهقي ٨/١٨٢.

٣: اخرجه البیهقي ٨/١٧٣

موقع ده چې څوک په دې کې کامياب شو هغه به د قيامت په ورځ هم کامياب وي نو مونږ هم د غسې ولاړ وو تر دې چې ورځ ښه روښانه شوه نو د مقابل لښکر تولو خلکو په اوچته اواز وويل: اې د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د وينې د بدلې مطالبه کوونکو! حملې لپاره تيار شئ! حضرت محمد بن حنفيه رَحِمَهُ اللَّهُ زمونږ نه سخکې جنډه نيولې ولاړ وو نو د هغه نه حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په چغه پوښتنه وکړه چې اې ابن حنفيه! دا خلک څه وايي؟ هغه زمونږ خواته متوجه شو او وې ويل اې امير المؤمنين! هغوی وويل اې د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د وينې د بدلې مطالبه کوونکو! په دې باندې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لاس اوچت کړل او دا دعا يې وغوښتله اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قاتلان پرمخې راوغورځوي.(۱)

حضرت محمد بن عمر بن علي بن ابي طالب رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت علي اول اهل جمل ته درې ورځې دعوت ورکړ بيا يې هغوی سره جګړه وکړه کله چې دريمه ورځ شوه نو حضرت حسن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت حسين رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت عبد الله بن جعفر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته راغلل او وې ويل چې هغوی مونږ ډېر زيات زخميان کړه حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل اې زما وراره! ما ته د خلکو ټول حالات معلوم دي زه د هغوی نه ناخبره نه يم بيا يې وفرمايل اوبه راوړه نو اوبه راغلې په هغې يې اودس وکړ او حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دوه رکعتونه لمونځ وکړ لمونځ نه چې فارغ شو نو لاسونه يې اوچت کړل الله جَلَّ جَلَالُهُ نه يې دعا وغوښتله بيا يې وفرمايل که چېرې تاسو په دې خلکو باندې غالب شوئ! نو تښتېدونکي پسې مه کېږئ! او زخميان مه وژنئ!.(۲)

د حضرت طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ غلام حضرت ابو حبيبه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي کله چې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د جمل والو نه فارغ شو (او په دې جګړه کې حضرت طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په مخالفه ډله کې وو او هغه شهيد شوی وو) نو زه د حضرت طلحه څوی حضرت عمران رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته لاړم نو هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عمران رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ښه هرکلي ووېلو او هغه يې ځان سره نزدې کېناوه او وې ويل زما يقين دی

۱: اخرجه البيهقي ۸/۱۸۰.
۲: عند البيهقي ۸/۱۸۱

چې الله جَلَّ جَلَالُهُ به ما او ستاسو پلار په هغه خلکو کې داخل کړي چې د هغوی په باره کې الله رب العزت فرمایلي دي: وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِم مِّنْ غِلٍّ إِخْوَانًا عَلَىٰ سُرُرٍ مُّتَقَابِلِينَ (١)

ترجمه: او د هغوی په زړونو کې چې کومه کینه وه مونږ به هغه ټول لرې کړو چې ټول به لکه د وورونو اوسیږئ! په تختونو باندې به مخامخ کیني!

بیا یې وفرمایل چې اې زما وراره! د فلانی ښځې څه حال دی؟ او د فلانی ښځې څه حال دی؟ د هغه پلار حضرت طلحه د اولاد د میندو یعنې د هغه د بیبیانو په باره کې یې پوښتنه وکړه بیا یې وفرمایل چې مونږ په دې کلونو کې ستاسو په زمکه باندې ځکه قبضه کړې ده چې خلک یې درنه په زور وانه خلي بیا یې وفرمایل چې اې فلانیه! دې ځان سره کړه! او ابن قرظه ته ورشئ! او د دوي زمکه هم دوي ته ورکړه! په یوه کونج کې دوه سړي ناست وو په هغوی کې یو حارث اعور وو دوي دواړو وویل چې الله رب العزت د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه زیات غوره فیصله کونکی دی مونږ دې هغه اووژنو او هغوی دې په جنت کې زمونږ رونه جوړیږي دا څنګه کیدی شي په دې باندې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خفه شو او ویې فرمایل چې تاسو دواړه دې ځائ نه پاڅئ! او د الله جَلَّ جَلَالُهُ په زمکه د ټولو نه لرې علاقې ته ولاړ شئ! که چیرې زه او حضرت طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د دې ایت مصداق نه یو نو بیا به څوک وي؟ اې زما وراره! کله چې ستا څه ضرورت وي نو ته مونږ ته راځه!(٢)

ابن سعد د حضرت ربعي بن حراش رَحِمَهُ اللَّهُ نه د تیر شوی حدیث پشان نقل کړی دی د دې په اخر کې دا دی چې د هغوی دواړو خبره یې چې واوریده نو حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په زوره یوه چیغه اووهله چې په هغې سره ټول محل وخوزیدو او بیا یې وفرمایل کله چې مونږ د دې آیت مصداق نه یو نو څوک به وي؟ حضرت ابراهیم رَحِمَهُ اللَّهُ وایي کله چې ابن جرموز راغی او د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه یې دننه د راتلو اجازه وغوښتله ابن جرموز په جنګ جمل کې حضرت زبیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ شهید کړی وو حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د یر وخت پس اجازه ورکړ نو هغه دننه راغی او وې ویل چې کومو خلکو به په زور سره جګړه کړې وه تاسو د هغوی سره داسې رویه کوئ؟ حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې ستا په خوله کې

١: سورة الحجر ایت ٤٧.

٢: اخرجه البیهقی ایضا ٨/١٧٣ واخرجه ابن سعد ٣/٢٢٤ عن ابی حبیبة نحوه وعن ربعی بن حراش بمعناه.

دې خاورې وي زما یقین دی چې زه او حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به په هغو خلکو کې یو چې د چا په باره کې الله رب العزت دا ایت فرمایلی دی:

وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِم مِّنْ غِلٍّ إِخْوَانًا عَلَىٰ سُرُرٍ مُّتَقَابِلِينَ (۱)

حضرت جعفر بن محمد د خپل پلار محمد رَحِمَهُ اللهُ نه نقل کوي چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې زما یقین دی چې زه، حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به په هغو خلکو کې یو چې د هغوی په باره کې الله رب العزت فرمایلي دي او بیا یې تېر شوی ایت تلاوت کړ. حضرت عمرو بن غالب رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت عمار بن یاسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ واورېدل چې یو سړی د ام المؤمنین حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په باره کې نامناسب الفاظ وویل نو هغه یې ورټلو او ورته یې فرمایل چې خبره بنده کړه! چپ شه! الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تا د خیر نه لرې کړي! او کنځل کونکی دې په تا باندې مسلط کړي زه د دې خبرې شاهدي ورکوم چې هغه به په جنت کې هم د رسول الله ﷺ بي بي وي.(۲)

د ترمذي په حدیث شریف کې دا دی چې حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل لرې شه الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تا د خیر نه لرې کړي آیا ته د رسول الله ﷺ محبوبې بي بي ته تکلیف رسوې؟ (۳)

**د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په باره کې دحضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول:**

حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې زمونږ مور حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا خپل یو موقف اختیار کړی دی چې د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلاف دی او مونږ ته معلومه ده چې هغه په دنیا او اخرت کې د رسول الله ﷺ بي بي ده خو الله رب العزت د هغې په ذریعه زمونږ امتحان اخیستل غواړي چې مونږ د الله رب العزت خبره منو یا د هغې.(٤)

حضرت ابو وائل فرمایي کله چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمار بن یاسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کوفې ته ولېږل دې لپاره چې هغوی کوفې والاو لره د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مدد لپاره تیار کړي او رایې ولي نو حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا بیان وکړ چې زه پوهېږم چې هغه حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د رسول الله ﷺ په دنیا او اخرت کې بي

---

۱: ( سورة الحجر آیت ۴۷.) عند ابن سعد ایضاً ۳/۱۱۲.

۲: اخرجه ابن عساکر کذافی الکنز ۷/۱۱٦ واخرجه ابن سعد ۸/٦٥ نحوه والترمذي.

۳: کذافی الاصابة ۴/۳٦۰.

٤: عند ابن عساکر ابو یعلی کذافی الکنز ۷/۱۱٦

بې ده خو الله جَلَّ جَلَالُهُ د هغې په ذریعه ستاسو امتحان اخیستل غواړي او کتل غواړي چې تاسو خلک الله جَلَّ جَلَالُهُ پسې ځئ! یا هغې پسې.(۱)

## د رایې د خلاف باوجود هم د مشرانو پسې د تلو حکم

حضرت زید بن وهب رَحِمَهُ اللَّهُ فرمایي چې زه د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خدمت کې د قرآن د یوه ایت د تلاوت کولو لپاره لاړم نو هغوی ما ته هغه آیت ولوسته ما عرض وکړ چې تاسو ما ته دا ایت چې ځنګه ولوسته حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خو ما ته ددې خلاف بل شان لوستلی ؤو په دې باندې هغه په ژړا شو او دومره یې اوژړل چې ما ته د هغه اوښکې په ګټلو کې پرېوتونکې په نظر راتلې بیا یې وفرمایل چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تا ته ځنګه لوستلی دی ته یې هم داسې لوله! ځکه چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! د هغه قرأت د سیلحین ښار دا د بغداد سره نزدې مشهور ښار ؤو، د لارې نه هم زیات واضحه دې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د اسلام یوه محکمه قلعه وه چې په هغې کې به اسلام داخلېدلو د هغې نه به وتونکې نه وو او کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ شهید شو نو په دغه قلعه کې درز راغلی دی او اسلام د هغې قلعه نه د باندې راځي د ننه نه ورځي.(۲)

## مشرانو ته د بد ویل له وجې نه غصه کېدل

**هغه چا ته د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ غصه کېدل چې ابودرداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته یې بد وویل**

حضرت شُریح بن عُبید رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې یو سړی حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وویل چې اې قاریانو! اې د علماوو ډلې! په تاسو څه وشو؟ تاسو زمونږ نه زیات بزدله شوئ! او کله چې تاسو نه څه وغوښتلې شي نو ډېر زیات کنجوس جوړ شئ! او کله چې تاسو طعام خورئ! نو د ټولو نه غټې نوړۍ اخلئ! حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغه نه مخ واړولو او هیڅ جواب یې ورنه کړ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د دې واقعې پته ولګېده نو هغوی د حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه دی باره کې پوښتنه وکړه نو حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل چې الله جَلَّ جَلَالُهُ دې هغه معاف کړي آیا دا ضروري ده چې مونږ د هغه کومه خبره هم واورو په هره خبره دې هغه اونیسو کوم سړی چې ابو الدرداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته دا خبرې کړې وې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه ته ورغی او د هغه ګرېوان یې ونیوه او مړی یې ورله خفه کړه او

---

۱: اخرجه البیهقی ۸/۱۷۴ قال البیهقی رواه البخاري فی الصحیح.
۲: اخرجه ابن سعد ۳/۲۷۱.

هغه يې په رابـكلو د رسول الله ﷺ په خدمت کې راوستلو هغه سړي وويل چې مونږ خو صرف مشغولتيا او خوش طبعي کوله په دې خبـه الله رب العزت خپل رسول الله ﷺ باندې د دې آيت وحي راولېږله، وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ لَيَقُولُنَّ إِنَّمَا كُنَّا نَخُوضُ وَنَلْعَبُ ط(١)

ترجمه: او که چېرې ته د دوي نه پوښتنه وکړې نو وايي به چې مونږ خو صرف مشغولتيا او خوش طبعي کوله.(٢)

## حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته يې په حضرت ابوبكر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فضيلت ورکول

جبير بن نفير رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې څه خلکو حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وويل چې اې امير المؤمنين! مونږ ستاسو نه زيات د انصاف فيصلې کولو والا او حقه خبره کونکی او په منافقانو باندې ستاسو نه زيات سخت سړی څوک نه دی ليدلی دا رنګه د رسول الله ﷺ نه پس تاسو د ټولو خلکو نه زيات غوره ياست! حضرت عوف بن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل تاسو غلطه خبره کوئ! مونږ هغه سړی ليدلی دی چې د رسول الله ﷺ نه پس د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هم غوره دی! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې اې عوف! هغه څوک دی؟ هغه وويل چې هغه حضرت ابوبكر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دی. حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې حضرت عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ صحيح خبره کوي تاسو ټول خطاء يئ! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! حضرت ابوبكر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د مشکو نه زيات پاکيزه او خوشبويي والا وو او زه خو د خپل کور والاد اوښانو نه زيات منځني يم.(٣)

حضرت حسن رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خلکو کې جاسوس ساتلی وو يو ځل هغوی راغلل حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته يې وويل چې څه خلک فلاني ځائ کې جمعه شوی دی او هغوی تاسو لره د حضرت ابوبكر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه افضل ګڼي! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ډېر غصه شو نو ورته يې وفرمايل چې اې بدترينو خلکو! اې د قبيلې شريرانو! اې د پاکدامنې ښځې خرابوونکو! هغوی وويل اې امير المؤمنين! تاسو داسې مونږ ته ولې وايئ؟ مونږ نه څه غلطي شوې ده؟ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ درې ځل هم دا شان سخت الفاظ وويل بيا يې وفرمايل تاسو په ما کې او په حضرت ابوبكر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کې ولې

---

١: سورة توبه آيت ٦٥

٢: اخرجه ابونعيم فی الحلية ١/٢١٠.

٣: اخرجه ابونعيم فی فضائل الصحابة قال ابن كثير اسناده صحيح كذافی منتخب الكنز ٤/٣٥٠

فرق پيدا اکړ؟ او زه مو د هغه نه غوره وبللم په هغه ذات مې دې قسم وي! چې د هغه په قبضه کې زما ساه ده! زما د زړه ارمان دی چې ما ته په جنت کې داسې ځای ملاو شي چې د هغه ځای نه ما ته حضرت ابوبکر د نظر اخري حده پورې په نظر راځي.(۱)

حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې د دې امت د پيغمبر ﷺ نه پس په دوي کې د ټولو نه افضل حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دی لهذا چې څوک هم زما د دې خبرې نه پس څه بله خبره وکړي هغه به تهمت لګوونکو کې شمارل کېږي او هغه ته به د تهمت لګولو سزا ملاوېږي.(۲)

حضرت زياد بن علاقه رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وکتل چې يو سړی وايي دا حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زمونږ د رسول الله ﷺ نه پس په دې امت کې د ټولو نه غوره سړی دی دايي چې واورېدل نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه په کوړه ووهلو او ويې فرمايل: دا سپېره خطاء خبره کوي حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زما نه، زما د پلار نه، ستا نه او ستا د پلار نه غوره دی.(۳)

**په هغه چا دحضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ايراد چې هغه ته يې په ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فضيلت ورکولو:**

حضرت ابوزناد رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې يو سړی حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وويل چې اې اميرالمؤمنين! څه خبره ده؟ چې مهاجرينو او انصارو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مخکې کړ په داسې حال کې تاسو د هغه نه د زياتو فضائلو والا او د هغه نه مخکې اسلام راوړونکي يئ! او تاسو ته د پر مخکې والی هم دی! حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې که چېرې ته د قريشو د قبيلې يې! نو زما په خيال خو د قريشو د قبيلې د عائذه خاندان يې! هغه وويل چې هو! حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل که چېرې مؤمن د الله جَلَّ جَلَالُهُ په پناه کې نه واي نو ما به ته ضرور قتل کړي واي او که چېرې ته ژوندی پاتې شوې نو په تا داسې وېروم چې تا ته به د هغې نه د بچ کېدو لاره نه ملاوېږي هلاک شې! حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته په څلورو صفاتو کې زما نه مخکې والی حاصل دی يو دا چې هغه د رسول الله ﷺ په ژوند کې امام جوړ کړی شو ، دويم دا چې هغه زما نه مخکې اسلام ښکاره کړ، دريم دا چې د هجرت په موقع باندې هغه د رسول الله ﷺ سره په غار کې وو او څلورم دا چې هغه زمانه مخکې اسلام ښکاره کړ ته هلاک شې! الله جَلَّ جَلَالُهُ په قران مجيد کې د ټولو خلکو بدي بيان کړې دي او د حضرت

۱: عند اسد بن موسى

۲:عند الالكائي

۳: في فضائل الصحابة كذافي منتخب الكنز ۴/۳۵۰

ابو بکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یې صفت کړی دی الله رب العزت فرمایلي دي: إِلَّا تَنصُرُوهُ فَقَدْ نَصَرَهُ اللَّهُ إِذْ أَخْرَجَهُ الَّذِينَ كَفَرُوا ثَانِيَ اثْنَيْنِ إِذْ هُمَا فِي الْغَارِ إِذْ يَقُولُ لِصَاحِبِهِ لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا (۱)

ترجمه: که چیرې تاسو د رسول الله ﷺ مدد اونه کړئ! نو الله جَلَّ جَلَالُهُ د هغه مدد هغه وخت کړی دی کله چې کافرانو هغه د ملک نه وېستلی وو کله چې په دوو سړیو کې یو هغه وو کوم وخت چې دواړه په یو غار کې وو کله چې هغه خپل ملګري ته ویل چې ته څه غم مه کوه یقیناً الله جَلَّ جَلَالُهُ مونږ سره دي.(۲)

**د حضرت ابوبکر او حضرت مغیرةبن شعبة واقعه:**

حضرت مُغیره بن شُعبه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې زه حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره ناست ووم چې په دې کې د هغوی په خدمت کې یو اس وراندې کړل شو یو سړي وویل چې دا اس ما ته د سورلۍ لپاره راکړئ! حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې زه دا اس داسې هلک ته د سورلۍ لپاره ورکړم چې هغه د ناتجربه کارۍ باوجود په اسونو باندې سور کړی شوی وي دا زما تا ته د ورکولو نه زیاته خوښه ده هغه سړی غصه شو او وې ویل چې ستا نه هم او ستا د پلار نه هم زیات په اس ښه سورېدونکي یم چې دې سړی د رسول الله ﷺ د خلیفه په شان کې د بې ادبۍ الفاظ وویل نو ما ته غصه راغله او زه ودرېدم او ذ هغه سر مې ونیوه او پرمخ مې راښکلو چې په دې سره د هغه د پوزې نه داسې وینه روانه شوه لکه چې د یولوي مشک خوله پرانیستلې شوې وي څرنګه چې هغه انصار وو له دې وجې نه انصارو زما نه د هغې بدله اخیستل غوښتل حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته کله چې د دې پته اولګېده نو ویې فرمایل چې دا خلک دا ګڼي چې زه به دوي لپاره د حضرت مغیره نه بدله واخلم زه دوي د کورونو نه وباسم دا ما ته د دې نه غوره معلومېږي چې د دوي لپاره زه د داسې خلکو نه بدله واخلم چې دالله جَلَّ جَلَالُهُ بنده ګان د بدو نه منع کوي.(۳)

**حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د ابن مسعود له وجې له دوه سړی وهل:**

حضرت ابو وائل رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یو سړی ولیده چې هغه

---

۱: سورة توبه آیت ۴۰

۲: اخرجه خیثمه وابن عساکر کذا فی منتخب الکنز ۴/۲۵۵ واخرجه البخاری عن ابن عمر بمعناه کما فی المنتخب ۴/۲۴۷.

۳: اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ۹/۳۶۱ رواه الطبرانی ورجاله رجال الصحیح انتهی.

لنګ د ګیټو نه ښکته زوړند کړی دی نو هغه ته یې وفرمایل چې خپل لنګ اوچت کړه! د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لنګ هم ښکته ؤو هغه سړي وویل اې ابن مسعوده! تاسو هم خپل لنګ اوچت کړئ! هغه ورته وفرمایل چې زه ستا پشان نه یم زما پنډۍ نرۍ دي او زه خلکو ته امامتي کوم زه لنګ ښکته ساتم او د خلکو نه خپلې پنډۍ پټوم! دې لپاره چې د هغوی په زړونو کې زما نه نفرت پیدا نه شي په څه طریقه دا خبره حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورسېده نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه سړی وواهه او ویې فرمایل آیا ته د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خبرې جواب ورکوې؟ (۱)

حضرت علاء د خپلو استادانو نه دا قصه نقل کوي چې یو ځل حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مدینه منوره کې د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په کور باندې ودرېدو او د هغې کور عمارت ته یې کتل یو قریشي سړي ووېل اې امیرالمؤمنین! دا کار به ستاسو نه علاوه بل څوک وکړي؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خښته راواخیستله او هغه یې پرې اووهلو او ویې فرمایل آیا ته ما د حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه متنفره کول غواړې؟ (۲)

**حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د وجې یو سړی وهل:**

حضرت ابو وائل رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د یو سړي حضرت ام سلمة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې څه حق وو هغه د حضرت ام سلمة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مخالفت باندې قسم وخوړ نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته داسې دېرش کوړې ورکړې چې د هغه څرمن وشکېده او وېړسېده.(۳)

**حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د ابن سبأ د قتل اراده:**

حضرت ام موسی رَحِمَهُ اللهُ فرمایي چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دا خبر ملاو شو چې ابن سبا دوي لره د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه افضل ګرځوي نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه د وژلو اراده وکړه نو خلکو ورته وویل چې آیا تاسو داسې سړی وژل غواړئ! چې ستاسو تعظیم کوي او تاسو د نورو نه غوره ګڼي؟ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې ښه دومره سزا خو ضروري ده چې زه په کوم ښار کې اوسېږم هغه به په دې کې نشي اوسېدلې.(۴)

---

۱: اخرجه ابن عساکر کذا في الکنز ۷/۵۵

۲: اخرجه يعقوب بن سفيان وابن عساكر كذافي الكنز ۷/۵۵.

۳: اخرجه ابوعبيده في الغريب وسفيان بن عيينة والا لكلائي كذافي المنتخب ۵/۱۲۰.

۴: اخرجه ابونعيم في الحلية ۸/۲۵۳

حضرت ابراهيم رَحِمَهُ ٱللَّهُ وايي چې حضرت علي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ته پته اولګېده چې حضرت عبدالله بن اسود د حضرت ابوبکر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ درجه کمه ښايي نو هغوی توره را وغوښتله او د هغه د مرګ اراده يې وکړه خلکو حضرت علي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ته د هغه سفارش وکړ نو ويې فرمايل چې په کوم ښار کې زه اوسېږم نو هغه به هلته نه اوسېږي نو هغه يې د ملک نه وشړلو او د شام ملک ته يې ولېږه.(۱)

**دهغه چا سره دحضرت علي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ معامله چې په شيخينو يې هغه ته ترجيح ورکوله:**

حضرت کثير رَحِمَهُ ٱللَّهُ وايي چې يو سړی حضرت علي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ته راغی او ورته ويل چې تاسو د ټولو نه غوره يئ! حضرت علي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې آيا تا رسول الله ﷺ ليدلی دی؟ هغه وويل نه! بيا يې پوښتنه وکړه چې تا حضرت ابوبکر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ نه وو ليدلي؟ هغه وويل نه! حضرت علي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ وفرمايل که چېرې تا دا ويلي وای چې ما رسول الله ﷺ ليدلی دی نو بيا خو ما ته قتلولې! او که چېرې تا دا ويلي واي چې ما حضرت ابوبکر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ليدلی دی او حضرت عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ مې ليدلی دی نو ما به په تا باندې شرعي حد جاري کړي واي ځکه چې تا څه ويلي دي دا بهتان دي نو د تهمت لګولو سزا به مې درکړې واي.(۲)

حضرت علقمه رَحِمَهُ ٱللَّهُ وايي چې يو ځل حضرت علي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ مونږ ته بيان وکړ اول يې د الله جَلَّ جَلَالُهُ حمد او ثناء بيان کړه او بيا يې وفرمايل چې ما ته دا خبر ملاو شو چې څه خلک ما د حضرت ابوبکر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ نه غوره ګڼي که چېرې ما د دې کار نه وړاندې صفا منع کړي وي نو نن به ما په دې باندې دوي ته ضرور سزا ورکولی ځکه چې زه دا نه خوښوم چې ما يو کار نه لا منع نه وي کړې په هغې باندې چا ته سزا ورکړم لهذا زما د نن دې اعلان نه پس که چېرې چا داسې خبره وکړه نو هغه تهمت لګوونکي شمارل کېږي او هغه ته به د تهمت لګولو سزا ملاوېږي د رسول الله ﷺ نه وروسته په خلکو کې د ټولو نه غوره حضرت ابوبکر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ او بيا حضرت عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ دی د دوی نه پس خو مونږ داسې نور کارونه شروع کړي چې د هغې په باره کې به هم الله رب العزت فيصله کوي چې هغه يا صحيح يې يا غلط.(۳)

---

۱: اخرجه المشاري والالكائي كذافي المنتخب ۴/۴۴۷

۲: اخرجه المشاري عن الحسن بن كثير.

۳: اخرجه ابن ابي عاصم وابن شاهين والالكائي والاصبهاني وابن عساكر.

**دشیخینو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د فضیلت په باره کې دحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اورډ بیان:**

حضرت سوید بن غفله رَحِمَهُ اللهُ وایي چې زه په څو کسانو باندې تېر شوم کومو چې د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تذکره کوله او د دې دواړو درجه یې کموله زه د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شوم دا ټولې خبره مې ورته وکړه هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې الله جَلَّ جَلَالُهُ دې په هغه لعنت وکړي څوک چې پخپل زړه کې د دې دواړو حضراتو په باره کې د ښه او ښکو جذباتو نه علاوه بل څه ساتي دا دواړه د رسول الله ﷺ رونه او وزیران وو او بیا یې منبر ته تشریف یوور او زبردست بیان یې وکړ او په هغې کې یې دا وفرمایل: «په خلکو باندې څه شوي دي چې هغوی د قریشو د دوو سردارانو او د مسلمانانو د دوو عزتمندو او محترمو پلارانو په باره کې داسې خبرې کوي چې زه د هغې نه بېزاره او بري یم بلکې هغوی چې کومه خطا خبره کړې ده په هغې به سزا ورکوم په هغه ذات مې دې قسم وي! چا چې دانه وچوله او روح یې پیدا کړ دې دواړو سره صرف هغه څوک محبت کوي څوک چې مؤمن او متقي وي او دې دواړو سره به هغه څوک بُغض ساتي چې بدکار او خراب وي دا دواړه حضراتو په صداقت او وفاداري سره د رسول الله ﷺ په صحبت کې پاتې شوي دي دواړو به د رسول الله ﷺ په زمانه کې د ښکې حکم کولو او د بدۍ نه به یې منع کوله او سزا به یې ورکوله کوم څه چې به یې کول په هغې کې به یې د رسول الله ﷺ د رایې مبارکې نه هیڅ خلاف نه کولو او رسول الله ﷺ به هم د چا رایې د دې دواړو حضراتو د رایې پشان وزنې نه ګڼلې او د رسول الله ﷺ چې دې دواړو سره څومره محبت وو هغه هومره بل چا سره نه وو رسول الله ﷺ د دنیا نه تشریف یوړلو او هغوی ﷺ دې دواړو نه بلکل راضي وو بیا د رسول الله ﷺ په اخري ژوند کې ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د لمونځ ذمه واري ورکړې شوه بیا چې الله رب العزت خپل رسول الله ﷺ د دنیا نه اوچت کړ نو مسلمانانو په هغه باندې د لمونځ ذمه واري هم هغسې برقرار وساتله بلکې په هغه باندې یې د زکات ذمه واري هم واچوله ځکه چې په قران مجید کې د لمونځ نه پس د زکات ذکر همېشه یو ځای راځي په بنو عبدالمطلب کې زه د ټولو نه اول د هغه نوم د خلافت لپاره وړاندې کولو والا ووم هغه ته خو خلیفه جوړېدل د ټولو نه زیات ناخوښه وو بلکې هغه خو غوښتل چې په مونږ کې بل څوک د هغه په ځای خلیفه جوړ شي په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! د رسول الله ﷺ نه پس چې څومره کسان پاتې شوي وو هغه په دغه ټولو کې غوره وو د ټولو نه زیات مهربان. د ټولو نه زیات رحم دله او د ټولو لوي

عقلمند او متقي انسان او د ټولو نه اول اسلام راوړونکی وو رسول الله ﷺ د هغه په مهرباني او رحمدلۍ کې د حضرت میکائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ سره او معافي کولو کې او وقار سره تللو کې د حضرت ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ سره تشبیه ورکړې وه هغه چې خلیفه مقرر شو بلکل د رسول الله ﷺ په سیرت باندې چلېده تر دې چې هغه وفات شو الله جَلَّ جَلَالُهُ دې په هغه باندې رحم وکړي حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خلکو سره مشوره وکړه او خپل ځان نه وروسته یې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ امیر جوړ کړ څه خلک د هغه په خلافت باندې راضي وو او څه راضي نه وو زه په هغه خلکو کې ووم چې د هغه په خلافت باندې راضي وو خو په الله جَلَّ جَلَالُهُ باندې قسم! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په داسې ښه طریقه د خلافت کار سمبال کړ چې د هغه د دنیا د تګ نه مخکې هغه ټول خلک هم د هغه په خلافت راضي شوي وو چې په شروع کې راضي نه وو او هغه د خلافت کار بلکل د رسول الله ﷺ او د هغوی د ملګري یعنې ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په طریقه باندې او چلولو او د هغې دواړو حضراتو په نقش قدم باندې داسې او چلېدو څنګه چې د اوښ بچې د خپلې مور په نقش قدم باندې ځي او هغه په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه پس پاتې کېدونکو کې د ټولو نه غوره وو او ډېر مهربان او رحمدله وو د ظالم خلاف به یې د مظلوم مدد کولو بیا الله رب العزت د هغه په ژبه باندې حق داسې جاري کړی وو چې مونږ ته به په نظر راتلل چې فرښته به د هغه په ژبه باندې وینا کوي د هغه د اسلام د راوړلو په ذریعه الله رب العزت اسلام ته عزت او قوت ورکړ او د هغه هجرت یې د دین د قائمولو ذریعه جوړه کړه او الله رب العزت د مؤمنانو په زړونو کې د هغه محبت او د منافقانو په زړونو کې د هغه رعب اچولی وو او رسول الله ﷺ هغه لره د دشمنانو په باره کې سخت زړه والا او سخت کلام کولو کې د حضرت جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ سره او په کافرانو باندې غالبونه چیچونکی او سخت خفه کېدلو کې د حضرت نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ سره تشبیه ورکړې وه اوس اوښایئ! چې تاسو ته څوک د دې دواړو پشان بل څوک راوستلی شي؟ د دې دواړو درجې ته هغه څوک رسېدلی شي چې د دوي سره محبت کوي او د دوي تابعداري کوي څوک چې دې دواړو سره محبت کوي هغه ما سره محبت کونکی دی او څوک چې د دوي سره بغض کوي هغه ما سره بغض کونکی دی او زه د هغه نه بري یم که چېرې د دې دواړو حضراتو په باره کې ما دا خبرې مخکې کړې وای نو ما به نن د دوي خلاف ویونکو له سخته نه سخته سزا ورکړې وای لهذا زما دې نن بیان نه پس څوک چې په دې جرم کې ونیول شو او ما ته راوستل شو هغه ته به سزا

ورکړي کېږي کومه سزا چې د تهمت کونکی وي په غور سره واورئ! د دې امت د رسول الله ﷺ نه پس په دې امت کې د ټولو نه غوره ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی یا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی یا الله جَلَّ جَلَالُهُ ښه پوهېږي چې خیر او غوره کوم ځای دي زه خپله دا خبره کوم الله جَلَّ جَلَالُهُ دې زما او ستاسو د ټولو مغفرت وکړي.(۱)

حضرت ابو اسحاق رَحِمَهُ اللهُ وايي چې یو سړی حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل نعوذ بالله من ذلک چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په اور کې دی حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې تا ته څه پته ولګېده؟ هغه سړي وویل ځکه چې هغه ډېر نوي کارونه کړي دی حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې ستا څه خیال دی؟ که چېرې ستا یوه لور واي نو ته د هغې واده بغیر د مشورې نه وکړې؟ هغه وویل نه! حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې د رسول الله ﷺ د خپلو دوو لوڼو د واده په باره کې چې کومه رایې وه د هغې نه غوره بله رایې کېدی شوه؟ لږ را ته ووایئ! چې رسول الله ﷺ به کله د څه کار اراده وفرمایله د هغې په باره کې به یې د الله جَلَّ جَلَالُهُ سره استخاره کوله یا نه؟ هغه وویل ولې نه! رسول الله ﷺ به استخاره کوله! حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې رسول الله ﷺ استخاره کولو سره د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسول لپاره د ښه او غوره صورت انتخاب کولو یا نه؟ هغه وویل کولو به یې! حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل ښه دا راته ووایه! چې رسول الله ﷺ د خپلو کومو دوو لوڼو نکاح چې د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره کړې وه په هغې کې هم الله جَلَّ جَلَالُهُ د هغه لپاره د خیر انتخاب کړی وو یا نه؟ ما ستا د سر پرې کولو باره کې سوچ کړی وو خو اوس الله جَلَّ جَلَالُهُ ته دا منظور نه وو په غور سره واوره! که چېرې ته د دې نه علاوه نور څه ووایئ! نو زه به ستا سر قلم کړم! (۲)

**حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته بد ویونکي ته د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قول:**

د حضرت سالم پلار وايي چې ما سره رسول الله ﷺ ملاو شو چې د هغه په ژبه کې څه کمزوري وه چې د هغې په وجه به د هغه خبرې صفا نه معلومېدلې هغه د شکایت په انداز کې د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یاد ونه وکړه په دې باندې حضرت عبد الرحمن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه خو هیڅ پوي نه شوم چې تاسو څه وایئ! اې د حضرت

---

۱: عند خیثمة والالکائي وابي الحسن والشیرازي وابن منده وابن عساکر کذا في منتخب کنز العمال ۴/۴۴۶.
۲: اخرجه ابن عساکر کذافی المنتخب ۵/۱۸

محمد ﷺ د صحابه وو ډلې! دا خو تاسو ټولو ته معلومه ده چې مونږ به د رسول الله ﷺ په ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عمر او عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا ویل یعنې د درې واړو نومونه به مونږ یو ځای اخیستل ځکه چې ټولو صحابه کرامو د درېواړو عزت کولو اوس خو یوازې مال مطلب کرځېدلی دی چې که چېرې حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه ته مال ورکړي یا خو حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغه خوښ دی.

**هغه چاته د سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دعا قبلېدل چې علي، طلحه او زبیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ ته یې کنځل کول:**

حضرت عامر بن سعد رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې يو ځل حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پیادل روان وو چې د هغه تېرېدل په یو سړی باندې وشو چې هغه د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت زبیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پشان کې نامناسبه الفاظ ویل، حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل چې ته داسې خلکو ته بد وایې چې هغوی ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ د طرفنه ډېر فضائل او انعامات ملاو شوي دي په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! یا خو ته هغوی ته بد ویل پرېږده! کنې زه به تا ته بد دعا (ښېرې) وکړم هغه په جواب کې وویل چې دا خو ما داسې وېروي لکه چې دا رسول الله ﷺ وي حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا بد دعا وکړه چې اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! که چېرې دا هغه خلکو ته بد وايي چې هغوی ته ستا د طرفنه ډېر فضائل او انعامات ملاو شوي دي نو ته ده ته عبرتناکه سزا ورکړې! نو یوه بختي اوښه په تېزۍ سره راغله خلکو چې هغه اولیده نو یو خوا بل خوا لرې شول هغه اوښې دغه سړی د خپلو پښو لاندې کړ او هغه یې اووژلو ما ولیدل چې خلک حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پسې وروسته تلل او ویل یې چې اې ابو اسحاق! الله رب العزت ستا دعا قبوله کړه![1]

حضرت مصعب بن سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې يو سړی حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په حق کې نا مناسبه خبرې ویلې دې نو حضرت سعد بن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه ته ښېرې وکړې، يو اوښ یا اوښه راغله او هغه یې مړ کړو. نو حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يو غلام ازاد کړ او دا قسم یې وخوړ چې آئینده به چا ته ښېرې نه کوم![2]

حضرت قیس بن ابي حازم رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې زه د مدینې يو بازار کې روان ووم کله چې زه د احجار الزیت مقام ته ورسېدم نو ما ولیدل چې ډېر خلک جمعه شوي دي او يو سړی په

---

(۱) اخرجه الطبراني قال الهيثمي ۹/۱۵۴ رجاله رجال الصحيح.

(۲) عند الحاكم ۳/۴۹۹

سورلی باندې ناست دی حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته بد رد وايي خلک د هغه څلور واړو طرفونو ته ته ولاړ دي په دې کې حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنهُ راغی هلته ودرېده او پوښتنه يې وکړه چې دا څه دي؟ خلکو ووېل چې يو سړی حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته بد رد وايي حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنهُ مخکې شو خلکو هغه ته لاره ورکړه هغه د هغه سړی سره ودرېدو او وې ويل اې فلانيه! ته د څه له وجې نه حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته بد وايې؟ آيا هغه د ټولو نه اول نوه مسلمان شوی؟ آيا هغه د ټولو نه اول د رسول الله ﷺ لمونځ نه وو کړي؟ آيا هغه په خلکو کې د ټولو نه زيات زاهد او د ټولو نه لوي عالم نه وو؟ د هغه يې نور ډېر فضائل بيان کړل او دا يې هم وويل آيا هغه د رسول الله ﷺ زوم نه وو؟ آيا په غزاګانو کې به د رسول الله ﷺ جنډه د هغه سره نه وه؟ بيا يې قبلې خوا ته مخ کړ او دواړه لاسونه يې اوچت کړل او دا دعايئ وکړه اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! که چېرې دا سړی ستا يو دوست ته بد وايي نو زمونږ د خوربدو نه مخکې د خپل قدرت ښکاره کړه نو دخلکو د خوريدو نه مخکې د الله جَلَّ جَلَالُهُ قدرت ښکاره شو د هغه د سورلی پښې خښې شوې چې د هغه سر ښکته هغه کاڼو باندې په زور سره راپرېووت چې په هغې سره د هغه سر مات شو او د هغه ماغزه بهر راووتل او هغه هم هلته مړ شو.(۱)

**هغه چاته د سعيدبن زيد رَضِيَ اللهُ عَنهُ غصه کېدل چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته يې کنځل کول:**

حضرت رباح بن حارث رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت مغيره رَضِيَ اللهُ عَنهُ په لوي جامع مسجد کې وو او د کوفې والا د هغه ښي او کيڼ خواته ناست وو حضرت سعيد بن زيد نومي يو صحابي راغی او حضرت مغير رَضِيَ اللهُ عَنهُ ورته سلام وکړ او په تخت باندې يې خپلو پښو سره نزدې کېناوه د کوفې يو سړی راغی او بدرد ويل يې شروع کړل حضرت سعيد رَضِيَ اللهُ عَنهُ پوښتنه وکړه اې مغيره! دا چا ته بدرد وايي؟ هغه ووېل چې حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته! حضرت سعيد رَضِيَ اللهُ عَنهُ ووېل چې اې مغيرة بن شعبه! آيا زه نه اورم چې د رسول الله ﷺ صحابه وو ته ستاسو په مخکې بدرد ويل کېږي او تاسو نه په هغه باندې انکار کوئ! او نه د هغه د بدلولو کوشش کوئ؟ زه شاهدي ورکوم چې دا خبره زما غوږونو د رسول الله ﷺ نه اورېدلې ده او زما زړه هغه محفوظ کړې ده او زه د رسول الله ﷺ نه غلطه خبره نشم نقل کولی

---

(۱) عند الحاكم ايضا قال الحاكم ٣/٥٠٠ و وافقه الذهبي هذا الحديث صحيح على شرط الشيخين ولم يخرجا اه واخرجه ابو نعيم في الدلائل ٢٠٦ عن المسيب نحو السياق الاول.

ځکه چې که چېرې زه خطاء خبره نقل کړم نو صبا د قیامت په ورځ به کله چې زما د هغوی ﷺ سره ملاقات کېږي نو رسول الله ﷺ به د دې خطایي خبرې په باره کې زما نه پوښتنه کوي رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به جنت ته ځي، عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به جنت ته ځي، عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به جنت ته ځي، حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به جنت ته ځي، طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به جنت ته ځي، زبیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته به جنت ته ځي، عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ځي، سعد بن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به جنت ته ځي او په نهم نمبر باندې اسلام راوړونکي به جنت ته ځي که چېرې ما د هغه نوم اخیستل غوښتلي نو اخیستلي مې شو په دې خبره د جماعت والاوو شور جوړ کړ او قسم یې ورکړ او پوښتنه یې وکړه چې اې د رسول الله ﷺ صحابي! نهم سړی څوک دی؟ هغه ووېل تاسو ما ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم راکاوه سره پوښتنه کوئ! او الله جَلَّ جَلَالُهُ دېر لوی دی نهم مسلمان زه یم او رسول الله ﷺ لسم دی بیا یې یو بل قسم وخوړ او وې ویل چې یو سړی په یوه موقعه باندې د رسول الله ﷺ سره وي چې دې کې د هغه په مخ باندې لړ ګرد پرېوتی وي او تاسو ته د حضرت نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ عمر دړ کړی شي نو هم دهغه دا عمل به ستاسو د ژوند د ټولو نه زیات غوره وي. (۱)

حضرت عبدالله بن ظالم مازني رَحِمَهُ اللَّهُ وايي کله چې حضرت معاویه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د کوفې نه لاړ نو حضرت مغیره بن شعبه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یې د کوفې ګورنر (والي) جوړ کړ، حضرت مغیره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خطیبانو کسانو لره حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته په بدرد ویلو کې لګیا کړل زه د حضرت سعید بن زید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خوا کې ناست ووم دا یې چې ولیدل نو حضرت سعید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په غصه شو او هغه ودرېده زما لاس یې ونیوه زه هغه پسې روان شوم هغه وفرمایل آیا ته دغه سړی نه وینې! چې په خپل ځان ظلم کوي او یو جنتي سړی ته د بدو ویلو حکم کوي؟ زه د نهو کسانو باره کې ګواهي ورکوم چې هغوی به جنت ته ځي په هغوی کې یو حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دی که چېرې زه د لسم په باره کې هم شاهدي ورکړم نو ګناهګار به نشم. (۲)

---

۱: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۹۵

۲: عند ابی نعیم ایضاً ۱/۹۶ واخرجه احمد وابونعیم فی المعرفة وابن عساکر عن رباح نحو ما تقدم کما فی منتخب الکنز.

# د مشرانو په وفات باندې ژړل

**دحضرت عمر رضي الله عنه د زخمي کېدو په وخت کې دحضرت صهيب رضي الله عنه ژړل**

حضرت ابن سيرين رحمه الله وايي کله چې حضرت عمر رضي الله عنه په نېزه ووهل شو نو د هغوی په خدمت کې د څښلو څه شي راوړل شو هغه يې وڅښلو نو هغه د زخم په لاره بهر راووتل او ټولو ته پته ولګېده چې اوس د بچ کېدو امېد نشته حضرت صُهيب رضي الله عنه وفرمايل چې هاي عمر رضي الله عنه هاي زما وروره! تاسې نه وروستو به زمونږ څوک وي؟ حضرت عمر رضي الله عنه هغه ته وويل اې زما وروره! داسې مه وايه! آيا تا ته نده معلومه چې د چا مرګ باندې په اوچت اواز ژړا وکړل شي هغه ته به عذاب ورکول کېږي په دې شرط چې هغه د مرګ په وخت د دې وصيت کړي وي. (۱)

**د حضرت عمر رضي الله عنه په وفات د سعيد بن زيد او ابن مسعود رضي الله عنهما ژړل:**

د حضرت ابو بُرده پلار وايي کله چې حضرت عمر رضي الله عنه په نېزه ووهل شو نو حضرت صهيب رضي الله عنه راغی او په اوچت اواز يې ژړل حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل چې آيا په ما باندې؟ حضرت صهيب وفرمايل هو! حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل چې آيا تا ته معلومه نه ده چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې د کوم سړي په مرګ باندې ژړا وکول شي هغه ته به عذاب ورکول کېږي ؟

**د حضرت نعمان بن مقرن رضي الله عنه په وفات دحضرت عمر رضي الله عنه ژړل:**

حضرت مقداد بن معديکرب رضي الله عنه وفرمايل کله چې حضرت عمر رضي الله عنه زخمي شو نو حضرت حفصه بنت عمر رضي الله عنها هغه ته راغله او وې ويل اې د رسول الله ﷺ صحابي! اې د رسول الله ﷺ سخره! او اې امير المؤمنين! حضرت عمر رضي الله عنه حضرت ابن عمر رضي الله عنه ته وفرمايل اې عبد الله! ما کېنوه! ما چې دا ټول څه واورېدل اوس صبر نشم کولی نو حضرت ابن عمر رضي الله عنه هغه خپلې سينې سره ولګوله او کې يې نولو! نو حضرت حفصې رضي الله عنها ته يې وويل چې زما په تا باندې کوم حقونه دي د هغې واسطه درکوم او تا د دې خبرې نه منع کوم چې ته په ما باندې وير وکړې! ستا په سترګو باندې خو زه څه پابندي نشم لګولی ځکه چې او ښکو سره په ژړا څه ګناه نشته خو دا ياد ساته! چې په کوم مړي باندې ژړا وکول شي او

---

(۱) اخرجه ابن سعد ۳/۳۶۲

کوم صفات چې په کې نه وي هغه بيان کړی شي نو ملائيکې هغه ليکي.
حضرت زيد رَحِمَهُ اللهُ فرمايي: چې حضرت سعيد بن زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ژړل چاترې پوښتنه وکړه چې اې ابو الاعور! تاسو ولې ژاړئ؟ هغوی وويل زه د اسلام په نقصان باندې ژاړم د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په وفات سره په اسلام کې داسې درز راغلی دی چې به تر قيامته پورې ډک نکړای شي حضرت ابو وائل رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مونږ ته يې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د وفات خبر راکړ په هغه ورځ چې ما خلک څومره غمژن او ژړېدوني وليدل دومره مې په بله ورځ نه دي ليدلي بيا حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! که چېرې ما ته پته لګېدلې واې چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فلاني سپي سره محبت کړی دی نو ما به هم د هغه سپي سره محبت کړي واې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زما يقين دی چې د ازغو او بوټو ته هم د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د وفات غم محسوس شوی دی.(۱)
حضرت ابو عثمان رَحِمَهُ اللهُ وايي چې ما حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وليده کله چې هغه ته د حضرت نعمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د وفات خبر ملاو شو نو هغه په خپل سر باندې لاس کېښودو او په ژړا شو.(۲)

**دحضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په شهادت د ثمامه،زيد،ابوهريرة او ابوحميد رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ژړل:**

حضرت ابو اشعث صنعاني رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د صنعاء ګورنر(والي) چې د هغه نوم حضرت ثمامه بن عدي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وو هغه ته د رسول الله ﷺ د وفات خبر ملاو شو نو په ژړا شو او ويې فرمايل چې اوس زمونږ د نبوت په طرز چلېدونکي خلافت واخيستل شو او د بادشاهي او په زبردستۍ سره د اخيستلو زمانه راغله او څوک چې په زبردستۍ په کوم شي غلبه بيا مومي هغه به هغه وخوري.(۳)
حضرت زيد بن علي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې په کومه ورځ د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د کور په محاصره کې هغه شهيد کړی شو په هغه ورځ حضرت زيد بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه په شهادت باندې ژړل حضرت ابو صالح رَحِمَهُ اللهُ وايي کله چې حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه ظلمونه ذکر کول چې په حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې شوي وو نو په ژړا به شو او د

۱: اخرجه ابن سعد ۳/۳۷۲ عن عبد المالک بن زيد.
۲: اخرجه ابن ابی الدنيا کذا فی الکنز ۸/۱۱۷.
۳: اخرجه ابونعيم کذافی الکنز ۵/۲۷ واخرجه ابن سعد ۲/۸۰ نحوه.

هغه هاي هاي کول او په زوره زوره ژړل ما ته داسې ياد دي لکه چې زه يې اوس اورم
حضرت يحيي بن سعيد رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت ابو حُميد دا نذر او منلو چې الله جَلَّ جَلَالُهُ
زه نذر منم! چې اوس را تلونکي کې به فلاني او فلاني کار نه کوم او ستا ملاقات پورې به
يعنې مرګه پورې به چېرې هم نه خاندم! (۱)

# د مشرانو په مړينه د زړونو حالت بدل شوی محسوسول

**د آنحضرت ﷺ په وفات د ابوسعيد، ابي اونس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ خفګان او حالت خرابدل:**

حضرت ابو سعيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې مونږ ايله رسول الله ﷺ دفن کړ او په خاورو کې مو
پټ کړ چې مونږ خپل زړونه بدل شوي محسوس کړی وو .(۲)

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي کله چې هغه ورځ راغله په کومه ورځ چې رسول الله ﷺ
لره الله جَلَّ جَلَالُهُ د دنيا نه اوچت کړ نو په هغه ورځ د مدينې هر شی تياره شوی وو او لا اوس مونږ
د رسول الله ﷺ د دفن کولو نه فارغ شوي وو لاسونه مو نه وو څنډلي چې مونږ ته خپل زړونه بدل
محسوس شول. (۳)

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هجرت قصه بيانوي فرمايي چې زه په هغه ورځ هم موجود ووم په
کومه ورځ چې رسول الله ﷺ مونږ له مدينې ته راغی او د هغه ورځ نه زياته روښانه ورځ ما
چېرته نه وه ليدلې او زه په هغه ورځ هم موجود ووم چې په کومه ورځ رسول الله ﷺ وفات
شو او ما د دغې ورځې زياته بده ورځ او زياته د تيارې والا ورځ چېرته نه وه ليدلې!(٤)

**د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د شهادت په باره کې دحضرت طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قول:**

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي کله چې د شورى حضرات د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د
شهادت نه پس يو ځای ټول شول او حضرت ابو طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغوی رويه وليدله چې هر يو
دا غواړي چې بل څوک خليفه جوړ شي نو ويې فرمايل چې اوس د امت حالات داسې دي چې
که چېرې تاسو جمعه د امارت طلبګار جوړ شئ! نو ما ته په دې کې کمه خطره محسوسېږي او
که چېرې امارت په يو بل وراچوئ! نو ما ته په دې کې زياته خطره په نظر راځي په الله جَلَّ جَلَالُهُ

---

۱: اخرجه ابن سعد ۳/۸۱.
۲: اخرجه البزاری قال الهيثمی ۹/۳۸ رجاله رجال الصحيح.
۳: عند ابن سعد ۲/۲۷۴
٤: عن ابن سعد ايضاً ۱/۲۳۴

قسم! د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د وفات په وجه سره د هر مسلمان کورنۍ په دين او دنيا کې کمۍ راغلې دي. (۱)

# د فقيرانو او کمزورو مسلمانانو اکرام کول

**رسول الله ﷺ او د فقيرانو مسلمانانو اکرام:**

حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې مونږ شپږ کسان رسول الله ﷺ سره وو زه، حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، د هذيل قبيلې يو ملګرى، حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دوه نور کسان هم وو راوي وايي چې زمانه د هغو دواړو نومونه هېر شول نو مشرکانو رسول الله ﷺ ته وويل چې شپږ کسان د خپل مجلس نه د باندې ولېږه! دا داسې او داسې کمزوري او فقير خلک دي او مونږ ډېر مالداره او سرداران خلک يو دې غريبانو سره مونږ نشو کېناستلى په دې باندې د رسول الله ﷺ په زړه کې د داسې کار کولو خيال راغى نو په دې وجه باندې الله رب العزت دا آيت شريف نازل کړ: وَلَا تَطْرُدِ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُم بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيدُونَ وَجْهَهُ (۲)

ترجمه: او هغه خلک مه اوباسئ! چې سهار ماښام د خپل رب جَلَّ جَلَالُهُ عبادت کوي چې په هغه سره صرف د هغه د رضا اراده لري. (۳)

حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د قريشو څه سرداران رسول الله ﷺ سره تېر شول هغه وخت کې رسول الله ﷺ سره حضرت صهيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت خباب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د دوي په شان څه نور کمزوري او بدحاله مسلمانان ناست وو هغه سردارانو وويل يا رسول الله ﷺ! د تو کو په توګه يې رسول الله ﷺ ته د يا رسول الله ﷺ آواز وکړ آيا ستا په خپل قوم کې دا خلک خوښ شول؟ آيا مونږ به د دې خلکو په تابعدارۍ کې چلېږو؟ آيا دا هغه خلک دي چې هغوى باندې الله رب العزت احسان کړى دى؟ دا خلک ته د خپلې خوا نه لرې کړه! نو بيا کېدى شي چې مونږ ستاسو اتباع وکړو نو الله جَلَّ جَلَالُهُ دا آيت نازل کړ: وَأَنذِرْ بِهِ الَّذِينَ يَخَافُونَ أَن يُحْشَرُوا إِلَىٰ رَبِّهِمْ لَيْسَ لَهُم مِّن دُونِهِ وَلِيٌّ وَلَا شَفِيعٌ لَّعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ۝ وَلَا تَطْرُدِ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُم بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ

۱: اخرجه ابن سعد ۳/۲۷۴

۲: سورة انعام آيت ۵۲

۳: اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۳۴۶ واخرجه الحاكم ۳/۳۱۹ عن سعد مختصرا وقال صحيح على شرط الشيخين ولم يخرجاه.

يُرِيدُونَ وَجْهَهُ ۖ مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِم مِّن شَيْءٍ وَمَا مِنْ حِسَابِكَ عَلَيْهِم مِّن شَيْءٍ فَتَطْرُدَهُمْ فَتَكُونَ مِنَ الظَّالِمِينَ ﴿١﴾

ترجمه: او د دې قرآن کريم په ذريعه هغه خلک ووېروه! چې د دې خبرې نه وېرېږي چې د خپل رب سره به په داسې حال کې جمع کړی شي چې څومره غيرُالله دي نه به د دوي څوک مددګار وي او نه څوک سفارشي وي په دې اميد باندې چې هغوی به ووېرېږي او هغه خلک مه وباسه! چې سهار او ماښام د خپل رب عبادت کوي چې په هغې سره صرف د هغه د رضا اراده لري د هغوی حساب ذره هم په تا نشته دی او ستا حساب ذره هم هغوی نشه دی چې ته هغوی وباسې! کنې ته به د نامناسبه کار کوونکو نه وګرځې! (٢)

**رسول الله ﷺ او ابن ام مكتوم رضي الله عنه عزت كول:**

حضرت انس رضي الله عنه د الله رب العزت د فرمان عَبَسَ وَتَوَلَّىٰ په باره کې فرمايي چې حضرت ابن ام مکتوم رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو په دغه وخت کې رسول الله ﷺ د مکې سردار ابي بن خلف سره د دعوت خبره کوله له دې وجې نه رسول الله ﷺ هغه خواته متوجه نه شو په دې باندې الله رب العزت دا آيت نازل کړ: عَبَسَ وَتَوَلَّىٰ ﴿١﴾ أَن جَاءَهُ الْأَعْمَىٰ ﴿٢﴾

ترجمه: پيغمبر ﷺ تندي تريو کړ او متوجه نه شو په دې خبره باندې چې هغه ته ړوند راغی دې نه پس رسول الله ﷺ به هميشه د هغه عزت کولو . (٣)

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې عَبَسَ وَتَوَلَّىٰ د حضرت ابن ام مکتوم رضي الله عنه نابينا په باره کې نازل شوی دی د دې قصه داسې وه چې دا د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او وې ويل چې تاسو ما ته نېغه لاره وښايئ! دغه وخت رسول الله ﷺ سره د مشرکانو يو لوي سړی ناست وو رسول الله ﷺ د ده خواته توجه ونه کړه بلکې هم هغه خواته متوجه وو او رسول الله ﷺ هغه مشرک ته وفرمايل چې تا ته خو زما په خبره تکليف نه راځي؟ هغه وويل نه! په دې باندې عَبَسَ وَتَوَلَّىٰ نازل شو .(٤)

---

١: سورة انعام آيت ٥١ او ٥٢

٢: اخرج ابو نعيم فی الحلية ١/٣٤٦ واخرجه احمد والطبرانی نحوه قال الهيثمی ٧/٢١ رجال احمد رجال الصحيح غير كردوس وهو ثقة انتهى.

٣: اخرجه ابويعلي

٤: عند ابي يعلي وابن جرير و روى الترمذی هذالحديث مثله كذا فی التفسير لا بن كثير ٤/٤٧٠.

**رسول الله ﷺ ته امر شوی ؤو چې د فقیرانو مسلمانانو سره به وي:**

حضرت خباب بن ارت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې اقرع بن حابس تميمي او عُيينه بن حِصن فزاري راغی نو هغوی رسول الله ﷺ حضرت عمار رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حضرت خباب بن ارت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او نورو کمزورو او فقيرانو مسلمانانو سره ناست اوليده دې دواړو ته دا خلک سپک په نظر راغلل له دې وجې نه دواړو رسول الله ﷺ جدا کړ او په تنهايۍ کې يې ورته دا وويل چې تاسو ته د عربو وفدونه راځي خو مونږ په دې خبره باندې شرمېږو ! چې مونږ لوي خلک يو مونږ کله د عربو خلک دې غلامانو سره ناست ووينې نو څه به وايي ؟ له دې وجې نه کله چې مونږ تاسو له راځو نو تاسو دوي پاڅوئ! او لېږئ يې! هغوی ﷺ وفرمايل صحيح ده بيا دې دواړو وويل چې تاسو مونږ ته دا خبره ليکلې راکړئ! رسول الله ﷺ يو کاغذ راوغوښته او د ليکلو لپاره يې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ را وغوښته مونږ په يو گټ ناست وو چې په دې کې حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ دا آيتونه نازل کړل:

**وَلَا تَطْرُدِ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُم بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيدُونَ وَجْهَهُ ۖ مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِم مِّن شَيْءٍ وَمَا مِنْ حِسَابِكَ عَلَيْهِم مِّن شَيْءٍ فَتَطْرُدَهُمْ فَتَكُونَ مِنَ الظَّالِمِينَ ۝ وَكَذَٰلِكَ فَتَنَّا بَعْضَهُم بِبَعْضٍ لِّيَقُولُوا أَهَٰؤُلَاءِ مَنَّ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّن بَيْنِنَا ۗ أَلَيْسَ اللَّهُ بِأَعْلَمَ بِالشَّاكِرِينَ ۝ وَإِذَا جَاءَكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِآيَاتِنَا فَقُلْ سَلَامٌ**(١)

د اولني آيت ترجمه تېره شوې ده او د دويم آيت ترجمه:

او دغه شان مونږ د يو بل په واسطه سره په امتحان کې اچولي دي دې لپاره چې دا خلک اووايي چې آيا دا خلک دي چې په مونږ کې دوي باندې الله جَلَّ جَلَالُهُ فضل کړی دی ولې دا خبره نه ده چې الله جَلَّ جَلَالُهُ حق پېژندونکي ښه پېژني او دا خلک کله چې ستاسو خواته راځي چې زمونږ په آيتونو باندې ايمان لري نو دا ووايئ! چې په تاسو باندې سلامتيا ده.

په دې باندې رسول الله ﷺ هغه کاغذ وغورځولو او مونږ يې راوغوښته مونږ د رسول الله ﷺ خواته ورغلو آنحضرت ﷺ وفرمايل (السلام عليكم) مونږ رسول الله ﷺ ته دومره نزدې شو چې زمونږ زنگنونه د رسول الله ﷺ له زنگنونو سره ولگېدل او بيا نبي کريم ﷺ دا عادت وو کله چې به مونږ سره ناست وو او پاڅېدل به يې غوښتل نو مونږ به يې هم دغسې ناست پرېښودو ! او پا به څېده ! الله رب العزت په دې باندې دا ايت شريف نازل کړ :

---

١: سورة انعام آيت ٥٥.

وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهٗ وَلَا تَعْدُ عَيْنٰكَ عَنْهُمْ (١)

ترجمه: او ته خپل ځان هغه خلکو سره مقید او ساته! چې سهار ماښام یعني همېشه د خپل رب عبادت صرف د هغه د رضامندۍ لپاره کوي او د دنیوي ژوند د رونق په خیال سره ستا سترګې دې یعني د هغوی نه اخوا نه شي!

دې نه پس مونږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو او کله چې به د رسول الله ﷺ د پاڅېدو او د تلو وخت راغی نو مونږ به رسول الله ﷺ ناست پرېښودو او پابه څېدو! او تر څو پورې چې به مونږ نه پاڅېده هغوی ﷺ به هم ناست وو. (٢)

حضرت سلمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې عيينه بن حصن او اقرع بن حابس او د دوي پشان نور (مؤلفة القلوب) خلک یعنې هغه نوي مسلمانان چې د هغوی به رسول الله ﷺ زړه ساتلو د رسول الله ﷺ په خدمت کې راغلل او وې ویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهٗ رسوله! که چېرې تاسو د جماعت په وړاندېنۍ برخه کې کښېنئ! او حضرت ابوذر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او حضرت سلمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او نور فقیران مسلمانان او د هغوی د جُبّو بد بویې زمونږ نه لرې کړئ! نو مونږ به ستاسو خوا کې کېنو! د خلوص او دوستانې خبرې به وکړو او تاسو نه به (قرآن او حدیث) زده کړو دې فقیرانو حضراتو د ورۍ چغې به اغوستلې نورې د سپنسو جامې به هغوی سره نه وې ا د دې چغو نه به د وړیو بوي راتلو، په دې باندې الله رب العزت دا آیتونه نازل کړل:

وَاتْلُ مَآ اُوْحِيَ اِلَيْكَ مِنْ كِتَابِ رَبِّكَ لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِهٖ وَلَنْ تَجِدَ مِنْ دُوْنِهٖ مُلْتَحَدًا ﴿﴾ وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهٗ وَلَا تَعْدُ عَيْنٰكَ عَنْهُمْ تُرِيْدُ زِيْنَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَلَا تُطِعْ مَنْ اَغْفَلْنَا قَلْبَهٗ عَنْ ذِكْرِنَا وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ وَكَانَ اَمْرُهٗ فُرُطًا ﴿﴾ وَقُلِ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكُمْ فَمَنْ شَآءَ فَلْيُؤْمِنْ وَّمَنْ شَآءَ فَلْيَكْفُرْ اِنَّآ اَعْتَدْنَا لِلظّٰلِمِيْنَ نَارًا اَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا (٣)

ترجمه: او تا ته چې ستا د رب کتاب د وحې په ذریعه راغلی دی خلکو ته یې اولوله! د هغه خبرې یعني وعدې څوک نشي بدلولي او ته به د الله رب العزت نه سېوا بل د پناه ځای بیا نه مومې! او ته خپل ځان هغو خلکو سره مقید ساته چې سهار ماښام یعني همېشه د خپل رب د

---

١: سورة کهف آیت ٢٨.
٢: اخرجه ابو نعيم في الحلية ١/١٤٦ واخرجه ابن ماجة عن خباب بنحوه كما في البداية ٦/٥٦ واخرجه ابن ابي شيبة عن الاقرع بن حابس وعيينة بن حصن نحوه الى اخر الاية ولم يذكر ما بعده كما في كنز العمال ١/٢٤٥
٣: سورة کهف ٢٧ او ٢٨ او ٢٩ آیتونه

عبادت صرف د هغه د رضامندۍ لپاره کوي او د دنیاوي ژوند د ښایست په خیال ته ستر ګې یعني توجه د هغوی نه مه اړوه! او د داسې سړي خبره مه منه! چې د هغه زړه مونږ د خپل یاد نه غافله کړی دی او هغه د خپل نفس په خواهشاتو باندې چلیږي او د هغه دا حال د حد نه تیر شوی دی او تاسو ووایئ! چې دا دین حق ستاسو د رب د طرفه راغلی دی پس د چا زړه چې غواړي ایمان دې راوړي او د چا زړه چې غواړي کافر دې اوسي بیشکه مونږ د داسې ظالمانو لپاره اور تیار کړی دی چې د دغه اور لمبو به دوي لره ګیر کړي وي.

په دې باندې رسول الله ﷺ پاڅیده او دغه فقیران مسلمانان یې لټولو نو رسول الله ﷺ ته د جماعت په اخري حصه کې ناست د الله جَلَّ جَلَالُهُ ذکر کوونکی ملاو شول بیا یې وفرمایل چې ټول تعریفونه هغه الله جَلَّ جَلَالُهُ لره دي چې هغه ما ته د وفات نه مخکې پخپله د دې خبرې حکم راکړ چې زه د خپل امت دې کسانو سره اوسیږم! بیا یې وفرمایل چې زما مرګ او ژوند ټول به تاسو سره وي.(۱)

**د حضرت ابن مطاطیه او حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا واقعه او د رسول الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خطبه:**

حضرت ابوسلمه بن عبدالرحمن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې قیس بن مطاطیه یوې حلقې ته راغی په هغه حلقه کې حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت صهیب رومي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت بلال حبشي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تشریف فرما وو قیس وویل چې دا (اوس او خزرج) عرب دي او غټ خلک دي د هغه سړي د مدد لپاره راپاڅیدلي دي په دې خبره خو پوهیږو! خو په دې عجمي غریبانانو او فقیرانو بې حیثیته خلکو څه شوی دی؟ چې دوي هم د مدد لپاره او دریدل د دوي د مدد څه فائده؟

حضرت مُعاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ودریدو او د قیس ګریوان یې اونیوو او رسول الله ﷺ ته یې بوته او رسول الله ﷺ ته یې د هغه خبره وکړه په دې باندې رسول الله ﷺ په غصه کې د جلتۍ له وجې نه څادر رانښکلو ودریده او جماعت ته یې تشریف یوړو او اعلان لپاره یې سړی ولیږه چې هغه (الصلواة جامعه) ویلو او خلکو ته یې اعلان وکړ خلک راجمعه شو بیا رسول الله ﷺ بیان وکړ او د الله رب العزت حمد وثناء نه پس یې وفرمایل اې خلکو! بیشکه رب یو دې یعنې الله جَلَّ جَلَالُهُ او پلار هم یو دې یعنې ادم علیه السلام یې مراد دی، دین هم یو دی (یعنې اسلام)

---

۱: عند ابی نعیم ایضاً ۱/۳۴۵

په غور سره واورئ! چې دا عربیت نه ستاسو مور ده او نه ستاسو پلار دي، دا خو یوه ژبه ده لهذا څوک چې هم په عربي کې خبرې کوي هغه پخپله عربي شمارل شي حضرت معاذ د قیس ګریوان نیولي وو او عرض یې وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو د دې منافق په باره کې څه فرمایئ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل دې پرېږده! دې به دوزخ ته ځي نو د رسول الله ﷺ د وفات نه پس دا قیس مرتد شو او هم دغه حال کې و وژلی شو.(۱)

# د مور او پلار عزت او اکرام کول

**د رسول الله ﷺ نه پوښتنه کول چې ما دمور حق ادا کړی دی کنه؟**

حضرت بریده فرمایي چې یو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض یې وکړ چې ما خپله مور په سخته ګرمه او کاڼي لرونکې زمکه کې پخپلو اوګو باندې دوه فرسخه یعنې شپږ میله یوړله هغه ځکه دومره ګرمه وه که چېرې ما په هغې باندې د غوښې یوه ټوټه اچولې وای نو هغه به پخه شوې وای نو آیا ما د هغې د احساناتو بدله اداء کړه؟ رسول الله ﷺ وفرمایل کېدی شي چې د بچي د پیدا کېدو د درد د یوې چیچې بدله ګرځېدلې وي خو د هغې احسانات خو د دې نه علاوه نور هم زیات دي.(۲)

**د پلار په باره کې یو سړی ته د رسول الله ﷺ وصیت:**

حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فرمایي چې د رسول الله ﷺ په خدمت کې یو سړی راغی هغه سره یو مشر سړی هم وو رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل اې فلانیه! دا تا سره څوک دی؟ هغه وویل دا زما پلار دی! رسول الله ﷺ وفرمایل د ده نه مخکې مه ځه! او د ده نه مخکې مه کېنه! او ده ته په نوم اخیستلو اواز مه کوه! او ده ته د کنځلو ذریعه مه جوړېږه! چې ته د چا پلار ته کنځل وکړې! او هغه په جواب کې ستا پلار ته کنځل وکړي.(۳)

**د پلار په باره کې حضرت ابوغسان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته دحضرت ابوهریره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نصیحت:**

حضرت ابو غسان ضبي وایي چې زه د خپل پلار سره د مدینې منورې په کاڼیز میدان کې روان وم چې په دې کې زمونږ ملاقات د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سره وشو هغه زما نه پوښتنه وکړه چې دا څوک دی؟ ما وویل دا زما پلار دی هغوی وفرمایل له ده نه مخکې

---

۱: اخرجه ابن عساکر عن مالک عن الزهری کذافی الکنز ۷/۴۶.

۲: اخرجه الطبرانی فی الصغیر قال الهیثمی ۸/۱۳۷ وفیه الحسن بن ابی جعفر من غیر کذب ولیث بن ابی سلیم مدلس انتهی.

۳: اخرجه الطبرانی فی الاوسط قال الهیثمی ۸/۱۳۷ وفیه علي بن سعید بن بشیر الشیخ الطبرانی وهو لین وقد نقل ابن دقیق العیدانه وثق ومحمد بن عروه بن البرند لم اعرفه وبقیة رجاله رجال الصحیح انتهی.

مه ځه! بلکې د هغه نه وروسته یا دده په اړخ کې ځه! او څوک د خپل ځان او د ده ترمینځ مه پرېږده! او د خپل پلار د کور په داسې چت مه ځه! چې په هغې باندې د پردې دېوال نه وي ځکه چې به دې سره به د هغه په زړه کې د چت نه لاندې ستا د پرېووت خطره پیدا شي او هغه به په دې سره پرېشانه شي او چې د غوښې والا هډوکي باندې ستا د پلار نظر پرېوتي وي ته هغه مه خوره! کېدی شي هغه د هغې خوړل غواړي.(۱)

**هغه چاته د رسول الله ﷺ دوالدینو په نېکۍ امر کول چې جهاد ته دتلو لپاره راغلی وو:**

حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو سړی د رسول الله ﷺ نه په جهاد کې د تلو اجازه وغوښته رسول الله ﷺ وفرمایل آیا ستا مور پلار ژوندی دي؟ هغه وویل هو! رسول الله ﷺ وفرمایل چې ته د هغوی دواړو خدمت وکړه! د هغوی د خدمت محتاجه کېدو په وجه ستا جهاد هم دا دی.(۲)

د مسلم په روایت کې دا دی چې یو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض یې وکړ چې زه تاسو ته په هجرت او جهاد باندې بیعت کېدل غواړم آیا ستا مور پلار کې څوک ژوندی شته؟ هغه وویل هو! دواړه ژوندی دی رسول الله ﷺ وفرمایل چې ته د الله ﷻ نه اجر غواړې؟ هغه وویل هو! رسول الله ﷺ وفرمایل چې واپس مور او پلار له لاړ شه! او خدمت یې په ښه طریقه وکړه! او د ابوداود په یو روایت کې دادي چې هغه سړي وویل چې زه په هجرت باندې بیعت کېدو لپاره ستاسو خدمت ته راغلی یم خو ما خپل مور پلار په ژړا پرېښې دي او راغلی یم رسول الله ﷺ وفرمایل چې هغوی دواړو له واپس لاړ شه! او هغوی خوشحاله کړه داسې یې او خندوه څنګه چې تا هغوی پرېشانه کړي او ژړولي دي او راغلی یې! د ابوداود په یو روایت کې حضرت ابوسعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د یمن یو سړی هجرت وکړ او د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو نو رسول الله ﷺ ترې پوښتنه وکړه چې په یمن کې ستا څوک شته؟ هغه وویل زما مور او پلار دي رسول الله ﷺ وفرمایل آیا هغوی دواړو تا ته د لته د راتلو اجازه درکړې وه؟ هغه وویل نه! رسول الله ﷺ وفرمایل ته هغوی دواړو ته واپس لاړ شه! او د هغوی نه اجازه وغواړه! که چېرې هغوی تا ته اجازه درکړي نو ته جهاد ته لاړ شه! کنې هم د هغوی خدمت کوه! ابویعلی او طبراني د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

---

۱: اخرجه الطبراني في الاوسط قال الهيثمي ۱۳۷/۸ وابوغسان وابو غنم الراوي عنه لم اعرفهما وبقية رجاله ثقات.

۲: اخرجه الستة لا ابن ماجه.

نه روایت کوي چې یو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او وې ویل چې زه جهاد ته تلل غوارم! خو په ما کې د جهاد د تلو قوت نشته رسول الله ﷺ وفرمایل آیا ستا مور پلار کې څوک ژوندی شته؟ هغه وویل زما مور ژوندی ده رسول الله ﷺ وفرمایل چې د خپلې مور خدمت کولو کې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په مخکې حاضر شه! یعنې تر مرګه پورې ته د هغې خدمت کوه! کله چې ته داسې کوې! نو ګواکې تا حج، عمره او جهاد ټول هر څه وکړ.(۱)

**رسول الله ﷺ حضرت ابوهریرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د مور لپاره دجنګ خیبر نه منع کړو:**

حضرت ابو امامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ اعلان وکړ چې تاسو هغه کلی ته د تلو تیاري وکړئ! چې د هغې او سېدونکي د بر ظالمان دي ان شاء الله رب العزت به د غه کلی فتح کړي او تاسو ته به یې درکړي د رسول الله ﷺ مطلب خیبر ته تلل وو او هغه دا هم وفرمایل چې ما سره دې کمزورې سورلی. والا بلکل نه ځي دا یې چې واورېدل نو حضرت ابو هریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لاړ او خپلې مور ته یې وویل چې زما د سفر سامان تیار کړه! ځکه چې رسول الله ﷺ د غزا د تیاری حکم کړی دی د هغه مور وویل ته ځې! په داسې حال کې تا ته معلومه ده چې زه ستا نه بغیر د تنه نه تلي راتلی نشم حضرت ابو هریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل چې زه د رسول الله ﷺ نه وروسته نشم پاتې کېدی د هغه مور خپلې سینې را وېستلې او د خپلو پیو واسطه یې ورکړه خو هغه ونه منله! نو د هغه مور په پټه رسول الله ﷺ ته راغله او ټوله خبره یې ورته بیان کړه! رسول الله ﷺ وفرمایل ته لاړ شه! ستا کار به ستا نه بغیر هم وشي د بنه پس حضرت ابو هریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په خدمت کې راغی نو هغوی ﷺ تري مخ بل خواته واړولو حضرت ابو هریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه وینم چې تاسو زما نه مخ بل خواته اړوئ! زما د طرفه تاسو ته څه خبره را رسېدلې ده؟ چې له هغې وجې تاسو داسې کوئ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل چې ستا مور خپلې سینې را وېستلې او تا ته یې د خپلو پیو واسطه درکړه! خو تا بیا هم د هغې خبره او نه منله آیا ته دا ګڼې چې ته د خپل مور پلار سره او سېږې نو ته به د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې نه یې؟ سړی کله چې مور پلار سره او سي او د هغوی خدمت په بنه شان سره کوي او هغه سره بنه رویه کوي او د هغوی حق وراداء کوي نو هغه هم د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې وي حضرت ابو هریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وایي چې د دې نه دوه کاله وروسته زما مور وفات شوه نو زه د هغې

---

۱: عند ابی یعلی والطبرانی باسناد جید کذافی الترغیب ۴/۹۲

وفات کېدو پورې یوې غزا ته هم لاړ نه شوم مخکې نور حدیث هم شته.(۱)

**بعض صحابه کرامو رضي الله عنهم ته د مور اوپلار سره دنېکی د وجې د جهاد ترک کولو امر:**

طبراني د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روایت کړی دی چې یو ځل رسول الله ﷺ د اوبو څښلو په ځای ولاړ وو چې چېرته به قریشو په حاجیانو باندې اوبه څښلې چې په دې کې یوې ښځې خپل ځوی راوستو او رسول الله ﷺ ته راغله او عرض یې وکړ چې زما دا ځوی غزا ته تلل غواړي خو زه دې منع کوم رسول الله ﷺ د هغې ځوی ته وفرمایل چې تر څو پورې ستا مور تا ته اجازه درنکړي یا هغه وفات نشي تر هغې پورې ته د دې په خدمت کې اوسېږه! په دې کې تا ته ثواب زیات ملاوېږي د طبراني په دویم روایت کې دا دی چې یو سړی او د هغه مور دواړه رسول الله ﷺ ته راغلل هغه سړی جهاد ته تلل غوښتلی او د هغه مور هغه منع کولو رسول الله ﷺ وفرمایل خپلې مور سره ایسار شه! تا ته به د دې په خدمت کې اوسېدو باندې هغومره اجر ملاوېږي څومره چې په جهاد کې تلو سره ملاوېږي.(۲)

حضرت طلحه بن معاویه سلمي رضي الله عنه فرمایي چې زه رسول الله ﷺ ته ورغلم او عرض مې وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې جهاد لپاره تلل غواړم رسول الله ﷺ وفرمایل آیا ستا مور ژوندۍ ده؟ ما وویل هو! رسول الله ﷺ وفرمایل چې د مور د پښو پورې ونښله! ستا جنت هم دغلته دی.(۳)

حضرت جاهمه رضي الله عنه فرمایي چې زه جهاد ته د تلو په باره کې مشورې لپاره رسول الله ﷺ ته لاړم رسول الله ﷺ وفرمایل آیا ستاسو مور پلار شته؟ ما وویل هو! رسول الله ﷺ وفرمایل د دواړو په خدمت کې لګیا اوسه! ځکه چې ستا جنت د هغې د قدمونو لاندې دی حضرت جاهمه رضي الله عنه په دویم دریم ځل مختلفو مجلسونو ته راغی او د رسول الله ﷺ نه یې دا پوښتنه کوله هغوی ﷺ به هم دا جواب ورکاوه.(٤)

د حضرت ام سلمه رضي الله عنها ازاد شوی غلام حضرت نعیم رحمه الله وایي چې ابن عمر رضي الله عنه حج لپاره لاړ په تلو تلو کې هغه د مکې او مدینې په مینځ کې د یوې ونې خواته ورسېدو نو هغه یې

---

۱: اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ٥/٣٢٣

۲: اخرجه الطبرانی وفی الاسنادین رشدین بن کریب وهو ضعیف کما قال الهیثمی ٥/٣٢٢

۳: اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ٨/١٣٨ رواه الطبرانی عن ابن اسحاق وهو مدلس عن محمد بن طلحة ولم اعرفه وبقیة رجاله رجال الصحیح انتهی.

٤: عند الطبرانی ایضا قال الهیثمی ٨/١٣٨ رجاله ثقات اه.

اوپېژندله او د هغې د لاندې کېناسته بیا یې وفرمایل ما رسول الله ﷺ لیدلی وو چې د دې ونې لاندې ناست وو چې په دې کې د هغه کندو نه یو سړی راغی او د رسول الله ﷺ په خوا کې ودرېده بیا هغه وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه دې لپاره راغلی یم چې زه ستاسو سره د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې جهاد وکړم او زما نیت د الله جَلَّ جَلَالُهُ د راضي کېدلو او د اخرت د بنه جوړولو دی رسول الله ﷺ وفرمایل آیا ستاسو مور پلار ژوندي دي؟ هغه وویل هو! رسول الله ﷺ ورته وفرمایل واپس لاړ شه! او د هغوی خدمت کوه! او هغوی سره بنه رویه کوه! دغه سړی چې دا واورېدل نو د کوم ځائ نه چې راغلی وو هم هلته واپس لاړ.(۱)

**حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د ام کلثوم بنت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا سره د نکاح کولو پیغام لېږل:**

حضرت حسن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت ام کلثوم سره د واده کولو پیغام د هغې پلار حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ورکړ حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وفرمایل چې اوس خو هغه ماشومه ده حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې ما رسول الله ﷺ نه دا فرمان اورېدلی دی چې زما د اړیکې او رشتې نه علاوه به هره اړیکه او رشته د قیامت په ورځ ختمه کړی شي اوس زه غواړم چې د دې نکاح په ذریعه زما د رسول الله ﷺ سره اړیکې او رشته قائمه شي حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت حسن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت حسین رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وفرمایل تاسو د خپل تره واده د خپلې خور سره وکړئ! دې حضراتو وویل چې هغه هم په زنانو کې مستقله یوه زنانه ده د هغې خپل اختیار دی حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په غصه کې د هغه ځائ نه پاڅېده نو حضرت حسن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ جامه ونیوله عرض یې وکړ اې پلاره! زه ستاسو خفګان نشم برداشت کولی حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل نو بیا دواړه د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ واده د هغې سره وکړئ! (۲)

**حضرت اسامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او خپلې مور ته تولو قیمتي د کجورو مغز ورکول:**

حضرت محمد ابن سیرین رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې د حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په زمانه کې د کجورو د یوې ونې قیمت زر درهمو ته ورسېده حضرت اسامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د ونې خرخولو په ځائ دننه د کجورې اونه ووه کړه او د هغې مغز یې راووېستلو او پخپله مور یې

۱: اخرجه ابو یعلی قال الهیثمي ٨/١٣٨ وفیه ابن اسحاق وهو مدلس ثقة وبقیة رجاله رجال الصحیح ان کان مولی ام سلمة ناعم وهو الصحیح وان کان نبهان فلم اعرفه انتهی.
۲: اخرجه البیهقي عن حسن بن حسن ابیه کذافي الکنز ٨/٢٩٦

وخوور خلکو ورته وویل چې تا داسې ولې وکړل په داسې حال کې ته ګوري چې د یوې کجورې قیمت زر درهمو ته رسېدلی دی؟ هغه وویل زما مور زما د کجورې مغز غوښتی وو او زما عادت دا وو کله چې زما مور زما نه څه اوغواړي او د هغې ورکول زما په وس کې وي نو زه هغه شی ضرور هغې ته ورکوم.(۱)

## په ماشومانو شفقت کول او د هغوی په منځ کې مساوات کول

**د حضرت حسین رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ لپاره منبر نه د رسول الله ﷺ را کوزېدل:**

حضرت عبد الله بن عمرو رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي چې ما ولیدل چې رسول الله ﷺ په منبر باندې ناست دی او خلکو ته بیان کوي په دې کې حضرت حسین بن علي رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ د کور نه را اووتلو د هغه په غاړه کې د جامې یوه ټوټه وه چې زوړنده وه او په زمکه باندې را ښکلې شوه چې په هغې کې د هغه پښه ونښتله او په زمکه باندې پرمخې راپرېووت رسول الله ﷺ د هغه د راوچتولو په اراده د منبر نه لاندې راکوز شو صحابه وو کله چې حضرت حسین رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ پرېوتلي ولیده نو هغه یې راوچت کړ او رسول الله ﷺ ته یې راوست رسول الله ﷺ هغه اوچت کړ او ویې فرمایل شیطان دې الله جَلَّ جَلَالُهُ مړ کړي اولاد بس هم امتحان او ازمائش دي په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ما ته خو پته ونه لګېده چې زه کله د منبر نه لاندې راکوز شوم ما ته خو بس هغه وخت پته ولګېده کله چې خلکو دا ماشوم ما ته راووست.(۲)

**د رسول الله ﷺ په شاه مبارکه د حسینینو رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمَا ناسته او د هغه سجده اوږدول:**

حضرت ابو سعید رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي چې یو ځل رسول الله ﷺ مبارک د سجدې په حالت کې و چې حسن بن علي رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ یې په مبارکه شا سپور شو، نو رسول الله ﷺ هغه له خپلې شاه څخه کوز کړ بیا رکوع ته لاړ. (۳)

حضرت زبیر رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي چې ما یو ځل ولیدل چې رسول الله ﷺ په سجده کې دې چې په دې کې حضرت حسن بن علي رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ راغی او د رسول الله ﷺ په ملا مبارکه باندې سور شو رسول الله ﷺ هغه لاندې کوز نه کړ بلکې هم د غسې هغه په سجده کې وو تر دې

---

۱: اخرجه ابن سعد ۸/۴۹

۲: اخرجه الطبراني قال الهیثمي ۸/۱۵۵ رواه الطبراني عن شیخه حسن ولم ینسبه عن عبدالله بن علي الجارودي ولم اعرفها وبقية رجاله ثقات انتهى.

۳: اخرجه البزار قال الهیثمي ۹/۱۷۵

چې هغه پخپله کوز شو او کله به هغوی ﷺ د هغه لپاره دواړه پښې پرانیستلې او هغه به د یو طرفنه راتلو او د رسول الله ﷺ د لاندې به تېرېده او بل خواته به ووت. (۱)

حضرت بهي وايي چې ما د حضرت عبدالله بن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه چې تاسو ما ته وښایئ! چې په خلکو کې د چا شکل د رسول الله ﷺ سره زیات مشابهت لاره؟ هغه ووېل چې د حضرت حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شکله د رسول الله ﷺ سره زیات مشابهت لاره او د هغه سره یې د ټولو نه زیاته مینه وه ځینې وخت به رسول الله ﷺ په سجده کې وو دی به راغی د نبي اکرم ﷺ په ملا مبارکه به وربره ووت او تر څو پورې چې دې اخوا شوي نه وو نو رسول الله ﷺ به د سجدې نه نه اوچتېدو ځینې وخت به دې د رسول الله ﷺ د ښپې لاندې ورننوتلو نو رسول الله ﷺ به د ده لپاره خپلې پښې پرانیستلې نو دې به د هغې په مینځ کې ووت. (۲)

حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ځینې وخت به رسول الله ﷺ لمونځ کولو کله به چې آنحضرت ﷺ سجدې ته تلل نو حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت حسین رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به ورمنډې کړې او د نبي کریم ﷺ په شا باندې به کېناستل کله به چې خلکو دا دواړه منع کول غوښتل نو رسول الله ﷺ به هغوی ته اشاره کوله چې دوي پرېږدئ! څه چې کوي هغې ته یې پرېږدئ! او چې لمونځ به یې پوره کړ هغوی به یې سینې سره لګول او بیا به یې په غېږ کې کېنول او ارشاد به یې وفرمایه چې د چا زما سره محبت دی هغوی ته په کار دی چې دې دواړو سره هم محبت وساتي.(۳)

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ځینې وخت به رسول الله ﷺ په سجده کې وو د حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت حسین رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به یو راغی او د رسول الله ﷺ په ملا مبارکه باندې به سورېدو رسول الله ﷺ به د هغوی له وجې نه سجده اوږدوله بیا به ورته خلکو ویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو ډېره لویه سجده وکړه هغوی ﷺ به وفرمایل چې زما بچي زمانه سورلې جوړه کړې وه له دې وجې نه ماته زر پاڅېدل ښه نه معلومېدل.(۴)

---

۱: عندالطبراني قال الهيثمي ۹/۱۷۵ وفيه علي بن عابس وهو ضعيف

۲: عند البزار قال الهيثمي ۹/۱۷۶ وفيه علي بن عابس وهو ضعيف انتهى.

۳: عند ابن يعلى قال الهيثمي ۹/۱۷۹ رواه ابو يعلى والبزار وقال الهيثمي فاذا قضى الصلواة ضمهما اليه والطبراني باختصار ورجال ابي يعلى ثقات وفي بعضهم خلاف انتهى.

۴: عند ابي يعلى قال الهيثمي ۹/۱۸۱ وفيه محمد بن ذكوان وثقه ابن حبان وضعفه غيره وبقية رجاله رجال الصحيح انتهى.

**په مانځه کې د رسول الله ﷺ په اوږو د امامه بنت ابي العاص رضي الله عنها ناسته:**

ابو قتاده رضي الله عنه فرمايي چې يو ځل رسول الله ﷺ مونږ له بهر ته راغی د هغوی ﷺ په اوګه باندې د هغوی ﷺ نوسي حضرت امامة بنت ابي العاص رضي الله عنه ناسته وه هغوی هم دغه شان لمونځ کول شروع کړل کله به چې رکوع ته تلو نو هغه به يې لاندې کوزوله او کله چې به يې د سجدې نه سر اوچتولو نو هغه به يې بيا اوچته کړه او کيبه يې نوله.(۱)

**رسول الله ﷺ او حسنين رضي الله عنهما په اوږو کېنول او د هغوی په باره کې يې بيان:**

حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې يو ځل رسول الله ﷺ مونږ ته بيرون ته تشريف راوړو د هغه په اوګه باندې حضرت حسن رضي الله عنه ناست وو او په دويمه باندې حضرت حسين رضي الله عنه ناست وو هغوی ﷺ به کله هغه ښکلولو او کله دې. هغوی هم دغسې راروان وو او مونږ ته را ورسېده نو يو سړي ووېل اې د الله جل جلاله رسوله! ستاسو دې دواړو سره محبت دی رسول الله ﷺ وفرمايل چا چې دې دواړو سره محبت وکړ هغه زما سره محبت وکړ او چا چې دې دواړو سره کينه وساته هغه زما سره بغض وساته.(۲)

**دحضرت حسن رضي الله عنه ژبه ښکلول:**

حضرت معاويه رضي الله عنه فرمايي چې ما وليدل چې رسول الله ﷺ د حضرت حسن بن علي ژبه او شونډې چوپلې او کومه ژبه چې رسول الله ﷺ چوپلې وي هغې ته کله هم عذاب نشي ورکول کيدی.(۳)

**د رسول الله ﷺ او حضرت اقرع بن حاطب رضي الله عنه واقعه:**

حضرت سائب بن يزيد رضي الله عنه فرمايي چې يو ځل رسول الله ﷺ حضرت حسن رضي الله عنه ښکل کړنو حضرت اقرع بن حابس رضي الله عنه رسول الله ﷺ ته عرض وکړ چې زما خو لس بچي پيدا شوی دی ما خو هغې کې يو هم کله نه دی ښکل کړی رسول الله ﷺ وفرمايل چې څوک په خلکو باندې رحم نه کوي الله جل جلاله په هغه باندې هم رحم نه کوي.(٤)

---

۱: اخرجه البخاری ۲/۸۸۷ واخرجه ابن سعد ۸/۳۹ عن ابن قتاده نحوه.

۲: اخرجه احمد قال الهيثمی ۹/۱۷۹ رواه احمد رجاله ثقات وفی بعضهم خلاف و رواه ابن ماجة باختصار انتهی.

۳: اخرجه احمد قال الهيثمی ۹/۱۷۷ رجاله رجال الصحيح غيرعبدالرحمن بن ابی عوف وهو ثقة انتهی.

٤: اخرجه الطبرانی قال الهيثمی ۸/۱۵٦ ورجاله ثقات انتهی واخرجه البخاری ۲/۸۸۷ عن ابی هريرة رضي الله عنه نحوه.

**د اولاد باره کې د رسول الله ﷺ قول او دخپل ځوی ابراهیم زیارت کول:**

حضرت اسود بن خلف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو ځل رسول الله ﷺ حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ونیوه او ښکل یې کړ بیا خلکو طرف ته متوجه شو او ویې فرمایل چې سړی د اولاد له وجې نه شومتوب کوي او د ناپوهۍ کارونه کوي د بچو په وجه جنګونه کوي او د بچو په وجه بزدلي اختیاروي چې زه مړ شم نو زمانه پس به د بچو څه حال وي.(۱)

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ د خپل بال بچ سره د ټولو نه زیات شفقت کونکی وو د رسول الله ﷺ یو ځوی وو چې د مدینې خواته محله کې به یې د یوې زنانه پی. ښنلې د هغې ښځې خاوند لوهار وو مونږ به هغې سره د ملاوېدو لپاره ورتلو نو د هغه لوهار کور به په بتۍ کې د سرګړي واخو بلاوه، په وجه د لوګي نه ډک وو رسول الله ﷺ به خپل دغه ځوی ښکلولو او پوزه به یې پرې ولګوله او بویوله به یې.(۲)

**په اولاد رحم کونکي ته درسول الله ﷺ زیری او په اولاد کې دمساوات حکم:**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یوې زنانه خپلې دوه لونړه ځان سره کړې او حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته راغله هغې ورته درې کجورې ورکړې هغې زنانه هرې یوې لور ته یوه کجوره ورکړه او یوه کجوره یې خپلې خولې ته اچوله هغه دواړو لونړو دا ولیدله په دې باندې هغه کجوره اونه خوړله بلکې هغه یې دوه حصې کړه او هرې یوې ته یې یوه یوه ټوټه ورکړه او لاړه بیا رسول الله ﷺ راغی نو د هغې د دغه ښځې دا قصه هغوی ﷺ ته واوروله رسول الله ﷺ وفرمایل چې هغې د دې خپلې مشفقانه رویې په وجه جنت ته داخله شوې ده.(۳)

حضرت حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یوه ښځه رسول الله ﷺ ته راغله هغې سره د هغې دوه ځامن وو هغې د رسول الله ﷺ نه څه او غوښتل هغوی ﷺ ورته درې کجورې ورکړې د هر یو لپاره یوه کجوره، هغې ښځې هر یوه ته یوه کجوره ورکړه هغه ماشومانو خپله برخه کجورې وخوړلې او مور ته یې کتل په دې باندې هغه زنانه دریمه کجوره خپله حصه دوه حصې کړه او هر یو ته یې نیمه کجوره ورکړه په دې باندې رسول الله ﷺ وفرمایل چې دې ښځې په خپلو زامنو

---

۱: عندالبزار ورجاله ثقات کما قال الهیثمی ٨/١٥٥.

۲: اخرجه البخاری فی الادب ٥٦ واخرجه ابن سعد ١/٨٧ عن انس بمعناه.

۳: عندالطبرانی فی الصغیر والکبیر قال الهیثمی ٨/١٥٨ وفیه خدیج بن معاویة الجعفی وهو ضعیف

باندې رحم کړی دی په دې وجه الله رب العزت په دې باندې رحم فرمایلي دي.(۱)

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو سړی رسول الله ﷺ سره ناست وو د هغه يو ځوی راغی هغه ده ښکل کړ او پخپله پنډی يې کېناوه بيا د هغه يوه لور راغله هغه يې ځان ته مخامخ کېنوله رسول الله ﷺ وفرمايل چې تا دواړو سره يو شان رويه ولې ونه کړه؟ لور دې ښکل نه کړه او نه دی هغه په پنډی کېنوله او ځوی دې ښکل هم کړ او په پنډی دې هم کېنوله!(۲)

# د ګاونډي اکرام او عزت کول

**د ګاونډي هغه حقوق چې په حديث شريف کې راغلي دي:**

حضرت معاويه بن حيده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما د ګاونډي څه حق دي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل که چېرې هغه بيمار شي نو ته د هغه بيمار پُرسي وکړه او که هغه وفات شي نو ته د هغه جنازې ته ځه! او که هغه ستا نه قرض او غواړي نو ته ورته قرض ورکوه! او که هغه محتاج او بدحاله شي نو ته په هغه باندې پرده اچوه چې داسې په پټه د هغه مدد کوه! چې چا ته د هغې پته ونه لګي او که هغه ته څه ښه شی ملاو شي نو ته هغه ته مبارکي ورکوه او خپله ابادي د هغه د ابادی نه اوچته مه جوړوه! ځکه چې په دې سره به په هغه باندې هوا بنده شي او کله چې ته په کټوی کې څه ترکاري پخوې نو د که څمڅی ترې هغه ته هم ورکوه کنې ستا د ترکاري د خوشبويي سره هغه ته ناقلاره او په تکليف کې وي ځکه چې د هغه په کور کې هيڅ نشته او ستا په کور کې شته.(۳)

بيهقي په شعب الايمان کې هم داسې روايت د حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نقل کړی دی په هغې کې دا هم دی چې که چېرې هغه بربنډ وي نو ته هغه ته جامې واغونده!(٤)

**حضرت عبدالله بن سلام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د هغه ګاونډي واقعه چې ده ته يې ضرر رسولو:**

حضرت محمد بن عبدالله بن سلام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم او عرض مې وکړ چې زما ګاونډي زه پرېشانه کړی يم رسول الله ﷺ وفرمايل چې صبر کوه! څه موده پس زه بيا ورغلم او عرض مې وکړ چې زما ګاونډي ما ته ډېر

---

۱: اخرجه البزار قال الهيثمي ٨/١٥٦ رواه البزار فقال حدثنا بعض اصحابنا ولم يسمه وبقية رجاله ثقات.
۲: اخرجه البزار قال الهيثمي ٨/١٥٦ رواه البزار فقال حدثنا بعض اصحابنا ولم يسمه وبقية رجاله ثقات.
۳: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ٨/١٦٥ وفيه ابوبكر الهذلي وهو ضعيف.
٤: كما في الكنز ٥/٤٤

تکلیف رارسولي دي رسول اللهﷺ وفرمایل صبر کوه! ما دریم ځل عرض وکړ چې زما گاونډي خو زه تنګ کړم رسول اللهﷺ وفرمایل چې د خپل کور ټول سامان واخله او په کوڅه کې یې واچوه! او تا له چې څوک راځي هغه ته وایه چې زما گاونډي زه ډېر پرېشانه کړی یم دا شان به ټول په هغه باندې لعنت وایي بیا یې وفرمایل چې څوک چې په الله جَلَّجَلَالُهُ او د اخرت په ورځ باندې ایمان ساتي هغه له په کار دی چې د خپل گاونډي عزت کوي او څوک چې په الله جَلَّجَلَالُهُ او د اخرت په ورځ ایمان لري هغه ته د خپل مېلمه عزت کول په کار دی او څوک چې په الله جَلَّجَلَالُهُ او په ورځ د اخرت باندې ایمان لري هغه له په کار دی چې یا دې هغه د خیر خبره کوي یا دې چپ اوسي.(۱)

**رسول اللهﷺ او هغه سړی له غزا نه منع کول چې گاونډي ته یې ضرر رسولو:**

حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول اللهﷺ یوې غزا ته تلو نو ویې فرمایل چې نن دې زمونږ سره هغه څوک نه ځي چا چې خپل گاونډي ته تکلیف رسولي وي په دې باندې یو سړي ووېل چې ما د خپل گاونډي د دېوال بېخ ته تشې متیازې کړې دی رسول اللهﷺ وفرمایل چې ته نن مونږ سره مه ځه!(۲)

**د گاونډي له ښځې سره د زنا ډېر قباحت او هغه نه غلا کول:**

حضرت مقداد بن اسود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول اللهﷺ خپلو صحابه وو ته وفرمایل چې د زنا په باره کې تاسو څه وایئ! صحابه وو عرض وکړ چې زنا خو حرامه ده او رسول اللهﷺ دا حرامه گرځولې ده دا به تر قیامته پورې حرامه وي هغوی ﷺ وفرمایل چې سړی د لسو ښځو زنا وکړي د هغې گناه د گاونډي ښځې سره د زنا کولو نه کمه ده بیا یې وفرمایل چې تاسو د غلا په باره کې څه وایئ؟ صحابه وو عرض وکړ چې الله جَلَّجَلَالُهُ او رسولﷺ دا حرامه گرځولې ده له دې وجې نه دا حرامه ده هغوی ﷺ وفرمایل چې سړی د لسو کورونو غلا وکړي د هغې گناه د گاونډي د کور نه غلا کولو نه کمه ده.(۳)

**الله تعالی درې کسان خوښوي او درې کسان نه خوښوي:**

حضرت مطرف بن عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما ته د خلکو په ذریعه د حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو حدیث رارسېدلی وو ما غوښتل چې پخپله زما د هغه سره ملاقات اوشي دې

---

۱: اخرجه ابونعیم کذافی الکنز ۵/۴۴
۲: اخرجه الطبرانی فی الاوسط قال الهیثمی ۸/۱۷۰ وفیه یحی بن عبدالحمید الحمانی وهو ضعیف.
۳: اخرجه احمد والطبرانی قال الهیثمی ۸/۱۶۸ رواه احمد والطبرانی فی الکبیر والاوسط ورجاله ثقات.

لپاره چې دغه حديث د هغه نه ضرور واورم نو يو ځل د هغه سره زما ملاقات وشو نو هغه ما ته وويل اې ابوذره! ما ته ستا د طرفه يو حديث را رسېدلى دى ما دا حديث تاسو ته مخامخ اورېدو لپاره تاسو سره ملاقات غوښتل هغه وفرمايل الله جَلَّ جَلَالُهُ دې ستا پلار سره ښه وکړي اوس خو ستا زما سره ملاقات شوى دى وايه! هغه كوم حديث دې؟ ما وويل چې ما ته دا حديث را رسېدلى دى چې رسول الله ﷺ تا ته فرمايلي وو چې الله جَلَّ جَلَالُهُ درې كسان خوښوي؟ او درې كسانو سره بغض ساتي حضرت ابوذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل زما خيال كې دا خبره نشي راتلى چې زه د رسول الله ﷺ د طرفه دروغو بيان وكړم ما وويل هغه درې كسان څوك دى ؟ چې هغوى لره الله جَلَّ جَلَالُهُ خوښوي، هغه وويل يو خو هغه سړى دى چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره كې كلک شي او د ثواب په اميد غزا وكړي او زورداره جګړه وكړي اخر هغه شهيد شي او د دې سړى بيان به تاسو سره خپل د الله جَلَّ جَلَالُهُ كتاب قرآن كې ملاو شي يا هغه دا آيت شريف تلاوت كړ: إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِهِ صَفًّا كَأَنَّهُمْ بُنْيَانٌ مَرْصُوصٌ۝

ترجمه: الله رب العزت خو هغه خلک په خاص توګه خوښوي چې د هغه په لاره كې داسې يو ځائ جنګېږي ګواكې چې هغوى يو قصر دى چې په هغې كې سيكه اړول شوې ده ما وويل دويم څوك دى ؟ هغه وفرمايل چې دويم سړى هغه دى چې د هغه ګاونډى بد سړى وى چې هغه ته تكليف رسوي او دى د هغه په تكليفونو هر وخت صبر كوي تر دې چې الله رب العزت د هغه ګاونډي اصلاح كړي او د هغه ژوند بدل كړي يا هغه د دنيا نه واخلي مخكې يې نور حديث هم بيان كړى دى .(١)

حضرت قاسم رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت ابوبكر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپل يو ځوى عبدالرحمن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ باندې تېر شو نو هغه خپل ګاونډي سره په جنګ وو حضرت ابوبكر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې خپل ګاونډي سره جنګ مه كوه! ځكه چې ګاونډي خو به هم دلته پاتې شي او جنګوونكي پاتې خلک به لاړ شي. (٢)

# په سفر كې د ښه ملګري اكرام او عزت كول

**دوه صحابه كرامو ته د حضرت رباح بن ربيع په باره كې د رسول الله ﷺ وصيت:**

حضرت رباح بن ربيع رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې مونږ په يوه غزا كې د رسول الله ﷺ سره وو رسول

١: اخرجه احمد والطبرانى و اللفظ له قال الهيثمى ٨/١٧١ اسناده الطبرانى واحد اسنادى احمد رجاله رجال الصحيح وقد رواه النسائي وغيره غير ذكره الجار.

٢: اخرجه ابن المبارک وابو عبيد فى الغريب واخرائطي وعبدالرزاق عن عبدالرحمن بن القاسم كذافى الكنز ٥/٤٢.

الله ﷺ په مونږ کې هر درېوو کسانو ته يو اوښ د سورلۍ لپاره راکړ په صحرا او ځنګل کې خو به مونږ دوه کسان سورېدلو او يوو به دروستونه اوښ شړلو او په غرونو کې به مونږ ټول کوزېدو رسول الله ﷺ زما خوا ته تېر شو زه هغه وخت پياده روان ووم رسول الله ﷺ وفرمايل اې رباح! زه وينم چې ته پيادل روان يې؟ څه خبره ده؟ ما ووېل زه خو اوس راکوز شوی يم! دې وخت کې زما دواړه ملګري سواره دي دپنه وروسته رسول الله مخکې او هغوی ﷺ زما دواړو ملګرو باندې تېر شو چې هغوی خپل اوښ کېناوه او دواړه د هغې نه راکوز شول کله چې زه هغوی دواړو ته اورسېدم نو داړو ووېل چې ته په دې اوښ باندې مخکې کېنه! او مدينې ته واپسې پورې ته هم دغسې ناست اوسه! مونږ دواړه به وار په وار سورېږو ته اوس پياده تګ مه کوه ما ووېل چې ولې؟ هغوی دواړو ووېل رسول الله ﷺ اوس مونږ ته فرمايلي وو چې ستاسو ملګري ډېر نېک سړی دی تاسو هغه سره په ښه شان اوسېږئ![1]

## د مراتبو رعايت کول

**په دې باره کې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عمل:**

حضرت عمرو بن مخراق رَحِمَهُ اللهُ وايي چې يو ځل حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د ودۍ خوړله چې د هغې خوا سره يو عزتمند سړی تېر شو هغه يې را وغوښتلو او ځان سره يې طعام ته کېناوه په دې کې يو بل سړی د هغوی په خوا کې تېر شو هغه يې را ونه غوښتلو بلکې هغه ته يې د ډوډۍ يوه ټوټه ورکړه چا ترې پوښتنه وکړه چې دواړو سړو سره دې يو شان رويه ولې اونه کړه؟ حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمايل چې مونږ ته رسول الله ﷺ د دې خبرې حکم راکړی دی چې مونږ د خلکو سره د هغوی د مرتبې مطابق رويه وکړه او هر يو د هغه پخپله درجه کې وساتو.[2]

حضرت ميمون بن ابي شبيب رَحِمَهُ اللهُ وايي چې يو غوښتونکی حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته راغی او هغه څه وغوښتل حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمايل ده ته يوه ټوټه ډوډۍ ورکړه بيا يو عزتمند سړی راغی نو هغه يې ځان سره دسترخوان ته کېناوه چا د هغې نه پوښتنه وکړه چې تاسو داسې جدا جدا رويه ولې وکړه؟ حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمايل چې مونږ ته

---

[1] اخرجه الطبراني كذا في الكنز ٥/٤٢.

[2] اخرجه الخطيب في المتفق كذافي الكنز ٢/١٤٢

رسول الله ﷺ هم داسې حکم را کړی دی مخکې یې تېر شوی حدیث بیان کړ.(۱)

ابو نعیم دا شان روایت کړی دی چې حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په سفر کې وه نو هغې د قریشو څه کسانو لپاره د غرمې د خوراک تیارولو حکم وکړ کله چې هغه طعام تیار شو نو یو مالدار او عزتمند سړی راغی ، هغې وفرمایل دا راوغواړئ! هغه راوغوښتل شو نو هغه د سوړلنې د لاندې راکوز شو او کښناسته ډوډی یې وخوړله هغه لاړ د هغه پس یو غوښتونکی راغی نو ویې فرمایل چې ده ته د ډوډۍ ټوټه ورکړئ! بیا یې وفرمایل چې د هغه مالدار د عزت دا معامله کول زمونږ لپاره مناسب وو او دا فقیر راغی وې غوښتل نو ما ورته هغو مره ورکولو وویل چې په دې سره دې خوشحاله شي رسول الله ﷺ مونږ ته هم دا حکم کړی دی مخکې یې د مخکې حدیث پشان مضمون ذکر کړی دی .(۲)

مخکې دا قصه تېره شوې ده چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو سړی ته یوه جوړه او سل دیناره ورکړل چا د هغه نه پوښتنه وکړه نو ویې فرمایل چې ما د رسول الله ﷺ نه دا ارشاد اورېدلی دی چې خلکو سره د هغوی درجې مطابق رویه کوئ! د دې سړی زما په نزد هم دا درجه ده.

## مسلمان ته سلام کول

**په دې باره کې د حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قصه:**

د مزینه قبیلې حضرت اغر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ ما ته د یو جریب یوه پیمانه وه چې په هغې کې څلور قفیز غله راتله کجورو راکاوه حکم وکړ کجورې د یو انصاري سره وې هغه انصاري په راکاوه کې ټال ټول کولو ما په دې باره کې رسول الله ﷺ سره خبره وکړه رسول الله ﷺ وفرمایل اې ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ! ته سهار ته لاړ شه! او د هغه انصاري نه کجورې واخله! دوی ته یې ورکړه حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې د سهار لمونځ وکړه او فلاني ځای ته راشه! ما لمونځ وکړ هلته لاړم نو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هلته موجود وو مونږ دواړه هغه انصاري ته لاړو په لاره کې چې کوم سړی هم ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د لرې نه لیدو نو هغه به فوراً هغوی ته سلام کولو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل آیا ته نه وینې چې دا خلک اول سلام کوي په فضیلت کې ستا نه مخکې شوی دی ؟ اوس آئینده دې

---

۱: اخرجه ایضا ابوداود فی السنن وابن خزیمة فی صحیحه والبزار و ابو یعلي وابو نعیم فی المستخرج والبیهقی فی الادب والعسکري فی الامثال.

۲: لفظ ابی نعیم فی الحلیة ۴/۳۷۹ وقد صحح هذا الحدیث الحاکم فی معرفت الحدیث وکذا غیره وتعقب بالانقطاع و االا ختلاف علی راویه فی رفعة قال السخاوی وبالجملة فحدیث عائشه حسن کذافی شرح لاحیاء للزبیدی ۶/۲۶۵

په سلام کې څوک ستا نه مخکې نه شي د هغه پس چې کوم سړی مونږ ته د لرې نه په نظر راتلو مونږ د هغه د سلام کولو نه مخکې فوراً هغه ته سلام کولو .(۱)

حضرت زهره بن حمیضه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې زه حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پسې سورلی باندې سور ووم کله به چې مونږ په خلکو باندې تېرېدو نو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به هغه ته سلام کولو خلکو په جواب کې دا الفاظو نه زیات الفاظ په سلام کې وویل په دې باندې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې نن خو خلک په اجر او ثواب کې په مونږ باندې غالب شو په روایت کې دا دی چې نن خو خلک زمونږ نه په خیر کې ډېر مخکې شو .(۲)

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې زه په سورلی باندې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پسې سور ووم کله چې به مونږ په خلکو باندې تېرېدو نو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به السلام علیکم ویل خلکو به په جواب کې وعلیکم السلام ورحمت الله وبرکاته ویل په دې باندې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې نن خو خلک زمونږ نه ډېر مخکې لاړل.(۳)

**په دې باره کې دحضرت ابوامامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیان او نصیحت:**

حضرت ابوامامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو ځل وعظ او نصیحت وفرمایلو نو په هغې کې یې دا وفرمایل چې هر کار کې صبر لازم اونیسه! خواه که هغه کار ستاسو د خوښې وي یا نه وي ځکه چې صبر ډېر ښه خوي دي اوس ستاسو دنیا خوښه شوې ده او هغې خپله لمن تاسو ته خوره کړې ده او هغې خپلې د ښایست جامې اغوستې دي د حضرت محمد ﷺ صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خو د اعمالو شوقیان وو دې لپاره هغوی به د خپل کور په انګړ کې کېناستل او دا به یې ویل چې مونږ دې لپاره دلته ناست یو چې مونږ خلکو ته سلام وکړو یا هغه خلک هم مونږ ته سلام وکړي .(٤)

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي کله چې به مونږ رسول الله ﷺ سره تلو او په لاره کې به چېرته اونه راتله چې له هغې وجې به مونږ د یو بل نه جدا کېدو یا چې به کله مونږ یو ځای کېدو نو یو بل ته به مو سلام کولو .(۵)

---

۱: اخرجه الطبراني في الكبير والاوسط واحد اسنادي الكبير رواته محتج بهم في الصحيح كذافي الترغيب ۲/۲۰٦ واخرجه ايضاً البخاري في الادب ۱۴۵ وابن جرير و ابونعيم والخرائطي كما في الكنز ۵/۵۲

۲: عند ابن ابی شیبة

۳: عند ابن ابی شیبة

٤: اخرجه ابن عساكر كذافي الكنز ۲/۱۵٦

۵: اخرجه الطبراني باسناد حسن كذا في الترغيب ۲/۲۰۷ واخرجه البخاري في الادب ص ۱۴۸ بنحوه

**د حضرت طفیل او ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ واقعه:**

حضرت طفیل بن ابی ابن کعب رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زه به د حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا له راتلم هغه به زما سره بازار ته تلو کله به چې مونږ بازار ته تلو نو حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ به چې په کوم کباړي باندې، خرڅوونکي باندې او په کوم محتاج باندې عرض دا چې په کوم مسلمان باندې به تېرېدو نو هغه ته به یې سلام کولو یوه ورځ زه د هغوی په خدمت کې ورغلم زه یې ځان سره بازار ته بوتلم ما وویل تاسو بازار ته څه لپاره ځئ! نه خو تاسو د کوم خرڅوونکي سره ودرېږئ! او نه د څه باره کې پوښتنه کوئ! او نه قیمت معلوموئ! او نه د بازار په یو مجلس کې کېنئ! راځه! دلته مونږ کېنو څه وخته پورې خبرې کوو حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل اې خېټو! زما خېټه غټه وه مونږ خو د سلام له وجې نه بازار ته راځو! لهذا څوک چې در سره ملاوېږي هغه ته سلام کوه! په یو روایت کې دا دي چې مونږ خو د سلام له وجې نه بازار ته راغلی یو چې څوک مونږ سره ملاوېږي مونږ به ورته سلام کوو.(۱)

**په دې باره کې دحضرت امامه باهلي رَضِيَ اللهُ عَنهُ عملکرد:**

د حضرت ابو امامه باهلي رَضِيَ اللهُ عَنهُ چې چا سره ملاقات کېدو هغه ته به یې فوراً سلام کولو راوي وايي چې زما په علم کې څوک داسې سړی نشته چې هغه ده ته مخکې سلام کړی وي البته یو یهودي قصداً د یوې ستنې شاته پټ شو او کله چې حضرت ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنهُ ورورسېده نو یو دم بهر شو او هغه ته یې د هغه نه مخکې سلام وکړ حضرت ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنهُ ورته وفرمایل اې یهودي! ته هلاک شې! تا داسې ولې وکړل؟ هغه وویل ما دا کتل چې ته ډېر سلام کوې او په سلام کې مخکې کېږې! دېنه ما ته پته ولګېده چې دا څه فضیلت والا عمل دی ځکه ما اوغوښتل چې دا فضیلت ما ته هم ملاو شي هغوی وفرمایل ته هلاک شې! ما د رسول الله ﷺ نه دا فرمان واورېده چې الله رب العزت السلام علیکم زما د امت مسلمه لپاره په خپلو کې سلام ګرځولی دی او مونږ سره یو ځای اوسېدونکو ذمي کافرانو یې دا د امن نښه ګرځولې ده. (۲)

---

۱: اخرجه ابونعیم فی الحلیه ۱/۳۱۰ واخرجه مالک عن الطفیل بن ابی بن کعب بنحوه وفی روایة انما نغدو عن اهل السلام نسلم علی من لقینا کما فی جمع الفوائد ۲/۱۴۱ واخرجه البخاری فی الادب ۱۴۸/ عن الطفیل بن ابي بنحوه.

۲: اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ۸/۳۲ رواه الطبرانی عن شیخه بکر بن سهل الدمیاطی ضعفه النسائي قال غیره مقارب الحدیث انتهی.

حضرت محمد بن زياد رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت ابو امامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپل كور ته واپس تلو ما د هغه لاس نيولى وو يو ځائ ورسره روان ووم په لاره كې به چې هغه په كوم سړى باندې تېرېدو خواه كه به مسلمان وو يا نصراني وركوچى به وو يا لوى، حضرت ابو امامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به ورته ضرور سلام عليكم ويلو كله چې د كور دروازې ته ورسېده نو هغه زما ته متوجه شو او ويې ويل چې مونږ په خپل مينځ كې سلام خور كړ. (۱)

حضرت بشير بن يسار رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې يو سړى به هم حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د هغه نه مخكې سلام نه شو كولى. (۲)

## د سلام جواب وركول

**د رسول الله ﷺ او بعض صحابه كرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ قصه:**

حضرت سلمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې يو سړى رسول الله ﷺ ته راغى او ويې ويل السلام عليك يا رسول الله ﷺ! هغوى ﷺ په جواب كې وفرمايل وعليك السلام ورحمة الله وبركاته بيا بل كس راغى وې ويل السلام عليك يا رسول الله ﷺ! هغوى ﷺ وفرمايل وعليك السلام ورحمه الله وبركاته بيا دريم كس راغى او وې ويل السلام عليك يا رسول الله ورحمه الله وبركاته رسول الله ﷺ د هغه په جواب كې وفرمايل وعليك په دې باندې هغه سړي وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! چې فلانى فلانى راغى او تاسو ته يې سلام وكړ او ما هم تاسو ته سلام وكړ تاسو زما نه ښه جواب وركړ رسول الله ﷺ وفرمايل چې تا په سلام كې څه شى پرېنه ښودلو ځكه چې تا السلام عليكم ورحمت الله وبركاته وويل او الله رب العزت و فرمايلي دي: وَإِذَا حُيِّيتُم بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوا بِأَحْسَنَ مِنْهَا أَوْ رُدُّوهَا

ترجمه: او كله چې تاسو ته څوك په شرعي طريقه باندې سلام وكړي نو د هغه سلام نه په ښه الفاظو سره سلام وكړه! يا هم داسې الفاظ ورته ووايه.

څرنګه چې تا په سلام كې ټول الفاظ وويل له دې وجې نه ما ستا د سلام جواب هم ستا په الفاظو دركړ. (۳)

---

۱: عند ابى نعيم فى الحلية ٦/١١٢

۲: عند البخارى فى الادب ١٤٥

۳: اخرجه الطبرانى قال الهيثمى ٨/٣٣ وفيه هشام بن لاحق رواه النسائي وترك احمد حديثه وبقية رجاله رجال الصحيح انتهى.

**د رسول الله او حضرت جبرئيل عليهما السلام سره د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قصه:**

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل چې دا جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ تا ته سلام وايي ما وويل وعليک السلام ورحمت الله وبركاته او ما څه نور الفاظ هم استعمال كړل نو رسول الله ﷺ وفرمايل چې سلام په دې الفاظو سره پوره كېږي حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ وويل ورحمت الله وبركاته عليكم اهل البيت.(۱) حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او نور حضرات رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ د حضرت سعد بن عُباده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د ننه د تلو اجازه اخيستلو لپاره وفرمايل السلام عليک ورحمت الله وبركاته! په جواب كې حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روغوندې وويل وعليک السلام ورحمت الله وبركاته چې رسول الله ﷺ وانهورېدو او دومره رو جواب يې وركړ چې رسول الله ﷺ وانه ورېدو درې ځل هم داسې وشو چې رسول الله ﷺ به سلام كولو او حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به رو غوندې جواب وركولو په دې باندې رسول الله ﷺ واپس لاړ نو حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رسول الله ﷺ پسې لاړ او عرض يې وكړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما مور او پلار دې له تا قربان شي ستاسو هر سلام زما غوږونو ته رارسېدلى وو او ما ستاسو د هر سلام جواب دركړ خو قصدا مې ورو ويلو! دې لپاره چې تاسو يې وانه ورئ! ما وويل چې ستاسو د سلام بركت زيات نه زيات حاصل كړم بيا هغوى رسول الله ﷺ كور ته بوتلو او د هغوى ﷺ مخكې يې تېل مخكې كړل رسول الله ﷺ هغه تېل او څښل د خوراک نه پس رسول الله ﷺ دا دعا وفرمايله (اكل طعامكم الابرار وصلت عليكم الملئكة وفطر عندكم الصائمون). (۲)

**د حضرت سعدبن عباده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره د رسول الله ﷺ قصه:**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ به د انصارو سره ملاوېدو لپاره تللو كله چې به هغوى ﷺ د انصارو كورونو ته تشريف راوړو نو د انصارو ماشومان به راتلل او د هغوى ﷺ نه به ګيرچاپېره جمعه كېدل رسول الله ﷺ به هغوى لپاره دعا كوله او د هغوى په سرونو باندې به يې لاس رابنكلو او هغوى ته به يې سلام كولو دا شان يو ځل رسول الله ﷺ

---

۱: اخرجه الطبراني في الاوسط قال الهيثمي ۸/۳۲ رواه الطبراني ورجاله رجال الصحيح وهو في الصحيح باختصار انتهى.
۲: اخرجه احمد عن ثابت البناني وروى ابوداود بعضه.

د حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنهُ دروازې ته راغی حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنهُ جواب خو ورکړ خو روغوندې یې ورکړ دې لپاره چې رسول الله ﷺ یې وانه وري رسول الله ﷺ درې کرته سلام وکړ او د هغوی ﷺ عادت دا وو چې د درېوو ځلو نه به یې زیات سلام نه کولو که چېرې په درېوو ځلو کې به ورته د کور والاوو د دننه راتلو اجازه ورکړ نو صحیح به وه کنې واپس به تلو بیا یې د تېر شوی حدیث پشان حدیث ذکر کړ. (۱)

**د حضرت عمر او حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا قصه:**

حضرت محمد بن جبیر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وایي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ یو ځل د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ په خوا کې تېر شو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ورته سلام وکړ هغه د سلام جواب ورنکړ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته ورغی او هغه ته یې د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ شکایت وکړ دا دواړه حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته راغلل حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ، حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته وویل تاسو د خپل ورور د سلام جواب ولې ورنکړ؟ حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ وویل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ما د هغه سلام نه دی اورېدلي زه په څه ژور سوچ کې ووم حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ پوښتنه وکړه چې تا څه سوچ کولو ؟ هغه وویل ما د شیطان خلاف سوچ کولو چې هغه داسې خراب خیالات زما په زړه کې اچول چې په زمکه باندې چې څه دي هغه ټول ما ته هم ملاو شي نو هم زه هغه بد خیالات په ژبه نشم ویلي کله چې شیطان زما په زړه کې دا بد خیالات اچول شروع کړل نو ما په زړه کې وویل چې ارمان! ما د رسول الله ﷺ نه پوښتنه کړې وای! چې د دې شیطاني خیالاتو نه به نجات څنګه حاصلولی شي؟ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل چې ما رسول الله ﷺ ته د دې شکایت کړی وو او ما ترې پوښتنه کړې وه چې شیطان کوم خراب خیالات زمونږ په زړونو کې اچوي د هغې نه به نجات څنګه حاصل شي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل د هغې نه به نجات تاسو ته دا شان حاصلېږي چې تاسو هغه کلیمه وایئ! چې ما د مرګ په وخت کې خپل تره ته پېش کړې وه خو هغه هغه کلیمه نه وه ویلې!(۲)

هم دا واقعه حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه د ښه زیات په تفصیل سره ابن سعد رَضِيَ اللهُ عَنهُ نقل کړې ده او په هغې کې دا دی چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ لاړ ! او د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ په خدمت کې حاضر شو او وې ویل اې د رسول الله ﷺ خلیفه! آیا زه تاسو ته د حیراتیا

---

۱: رواه البزار ورجاله رجال الصحیح کما قال الهیثمی ۸/۳۸

۲: اخرجه ابو یعلی کذافی الکنز ۱/۷۴ وقال قال البوصیری فی زوائد العشرة سنده حسن.

خبره اونه بنايم؟ چې زه د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خوا کې تېر شوم ما ورته سلام وکړ خو
هغه زما د سلام جواب رانکړ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پاڅېدو ! او د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ
لاس يې ونيوه او دواړه حضرات روان شول او ما ته راغلل نو ما ته حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ
وويل اې عثمانه! ستا ورور حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې هغه ستا په خوا کې تېر
شوی وو او هغه تا ته سلام کړی وو خو تا د هغه سلام جواب ورنکړ نو تا داسې ولې وکړ
ل؟ ما وويل اې د رسول الله ﷺ خليفه! ما خو داسې نه دی کړی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ
وويل بلکل داسې دې کړی دی او په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! دا تکبر ستاسو د بني اميه د زړونو
عادت دی ما وويل اې عمره! ما ته خو نه ستا د تېرېدو پته لګېدلې او نه ستا د سلام کولو !
حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل تاسو صحيح خبره کوئ! زما خيال دا دی چې په څه سوچ
کې وې چې له هغې وجې تا ته پته او نه لګېده ما وويل هو ! حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل
تا څه سوچ کولو ؟ ما وويل چې دا سوچ مې کولو چې د رسول الله ﷺ انتقال وشو خو ما
ترې دا پوښتنه ونه کړی شوه چې د دې امت نجات به په څه شی کې دی؟ ما دا سوچ کولو
او پخپله کوتاهي مې حيرانتيا هم کوله حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل ما د رسول الله ﷺ
نه د دې خبرې پوښتنه کړې وه او هغوی ﷺ ما ته ښودلې وه ما وويل هغه څه شی دی؟
حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل ما د رسول الله ﷺ نه دا پوښتنه کړې وه اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ
رسونه! د دې امت نجات په څه شی کې دي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل چې څوک زما نه هغه
کليمه قبوله کړي چې ما خپل تره ته پيش کړې وه خو هغه قبوله کړې نه وه نو دا کليمه به د
هغه لپاره د نجات ذريعه وي رسول الله ﷺ خپل تره ته دا کليمه پيش کړې وه: (أَشْهَدُ أَن لا
اله الا الله واشهد ان محمد رسول الله).(۱)

**د حضرت سعد بن ابي وقاص او حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قصه:**

حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې زه په جُمات کې د حضرت عثمان بن
عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوا کې تېر شوم ما ورته سلام وکړ هغه ما ته ښه په دک نظر هم وکتل خو زما د
سلام جواب يې رانکړ زه اميرالمؤمنين حضرت عُمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته لاړم او ما دوه ځل
دا وويل چې اې اميرالمؤمنين! آيا په اسلام کې څه نوي شی پيدا شوی دی ؟ حضرت
عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې څه وشو ؟ ما وويل چې بله خو څه خبره نشته البته دا خبره ده
چې زه اوس په جُمات کې د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوا کې تېر شوم ما ورته سلام وکړ هغه ما

---

۱: اخرجه ابن سعد ۲/۳۱۲

ته په دک نظر هم وکتل خو زما د سلام جواب يې رانکړ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سرې ولېږه او حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يې را وغوښتلو او کله چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی نو هغه ته يې وويل چې تا د خپل ورور سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د سلام جواب ولې ورنه کړ؟ هغه وويل چې ما خو داسې نه دی کړی ما وويل چې تاسو داسې کړی دی او خبره دومره زياته شوه چې هغه پخپله خبره باندې قسم وخوړ او ما هم پخپله خبره باندې قسم وخوړ! لږ ساعت پس حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته را ياد شو نو هغوی وفرمايل (استغفر الله واتوب اليه) ته اوس زما خوا کې تېر شوی وې هغه وخت ما د دې خبرې سوچ کولو چې ما رسول الله ﷺ نه اورېدلې وه او هغه خبره دا ده کله چې هم ما ته را يادېږي نو زما په زړه باندې يوه پرده او چولې کېږي چې له هغې وجې زما نه څه په نظر راځي او نه په څه پوهېږم! ما هغه ته وويل چې زه درته هغه خبره اونه ښايم چې يو ځل رسول الله ﷺ د دعا د ابتدائي حصې يادونه وکړه چې د دعا په شروع کې هغه ويل په کار دی په دې کې يو بانډيچي راغی او رسول الله ﷺ هغه سره په خبرو کې مشغول شو بيا رسول الله ﷺ پاڅېده او لاړ زه هم ورپسې روان شوم بيا ما سره وېره پيدا شوه چې زما د رسېدلو نه مخکې چېرته رسول الله ﷺ کور ته دننه لاړ نشي له دې وجې نما په زمکه باندې پښې په زوره ووهلې! په دې باندې رسول الله ﷺ زما خواته متوجه شو او ويې فرمايل دا څوک دی؟ ابو اسحاق دی؟ ما وويل هو! رسول الله ﷺ وفرمايل څه خبره ده؟ ما وويل بله خو څه خبره نشته بس دا خبره ده چې تاسو د دعا د ابتدائي برخې تذکره کړې وه بيا دا بانډيچي راغلی وو او تاسو د ده سره په خبرو کې مشغول شوي وئ! رسول الله ﷺ وفرمايل او هغه مهي والا د حضرت يونس عَلَيْهِ السَّلَامُ دعا ده چې هغه د مهي په خېټه کې غوښتلې وه (لا اله الا انت سبحانک انی کنت من الظلمين) دې کلماتو سره چې کوم مسلمان هم دعا کوله الله جَلَّ جَلَالُهُ به د هغه دعا ضرور قبلوي.(۱)

## د سلام لېږل

**د سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قصه دحضرت اشعث بن قيس او جرير بن عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ سره**

حضرت ابو البختري رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت اشعث بن قيس او حضرت جرير بن عبد الله بجلي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ملا وېدو له راغلل او د مدائن ښار يو طرف ته د هغه جونګړې ته دننه ورغلل او هغه ته يې سلام وکړ او دا د دعا الفاظ يې وويل

۱: اخرجه احمد قال الهيثمي ۷/۶۸ رواه احمد ورجاله رجال الصحيح غير ابراهيم بن محمد بن سعد بن ابي وقاص وهو ثقة وراوى الترمذي طرفا من اخره واخرجه ايضاً ابويعلى والطبراني في الدعاء صحح عن سعد بن ابي وقاص نحوه كما في الكنز ۱/۲۹۸

(حیاک الله، الله جَلّ جَلَالُہٗ دې تاسو ژوندی لري) بیا دې دواړو پوښتنه وکړه آیا ته هم سلمان فارسي یې! هغه وویل هو! دې دواړو پوښتنه وکړه آیا ته د رسول الله ﷺ ملګری یې!؟ هغه وویل پته نشته په دې باندې چې مونږ ملاوېدل غواړو! حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل هم زه ستاسو هغه لټونکی سړی یم چا سره چې تاسو ملاوېدل غواړئ! ما رسول الله ﷺ لیدلی دی او د هغه په مجلس کې ناست یم! خو د رسول الله ﷺ ملګری هغه څوک دی چې د رسول الله ﷺ سره جنت ته لاړ شي یعنې د هغه خاتمه په ایمان اوشي او ما ته د خپلې خاتمې پته نشته! تاسو د څه ضرورت لپاره ما ته راغلي یې؟ دې دواړو وویل چې په شام ملک ستاسو یو ورور دي مونږ د هغه خوا نه تاسو ته راغلي یو! حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه هغه څوک دی؟ هغه دواړو وویل هغه حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رویل چې هغه کومه تحفه تاسو سره رالېږلې ده هغه چېرته ده؟ هغه وویل چې هغه خو مونږ سره څه تحفه نه ده رالېږلې! حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل د الله جَلّ جَلَالُہٗ نه او وېرېږئ! او کوم امانت مو چې راوړی دی هغه ما ته راکړئ! تر ننه پورې چې څوک هم د هغه خوا نه ما ته راغلي دی هغه ځان سره د هغه د طرفنه تحفه ضرور راوړې ده هغوی دواړو وویل چې تاسو په مونږ باندې څه مقدمه مه جوړوئ! مونږ سره هر قسمه مال او سامان دی په دې کې چې تاسو څه غواړئ! واخلئ! حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل زه ستاسو مال او سامان اخیستل نه غواړم زه خو هغه تحفه غواړم چې هغه تاسو سره رالېږلې ده هغوی وویل چې په الله جَلّ جَلَالُہٗ قسم! هغه مونږ سره هیڅ نه دي رالېږلي بس مونږ ته یې صرف دا ویلي وو چې په تاسو کې یو صاحب داسې قابل احترام اوسېږي کله چې به رسول الله ﷺ د هغه سره په یوازې والي کې خبرې کولې نو بل څوک به یې د هغه سره نه راغوښتلو کله چې تاسو دواړه هغه ته ورشئ! نو هغه ته زما د طرفنه سلام ووایئ! حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې ما د دې نه علاوه بله کومه تحفه تاسو نه غوښتله؟ او کومه تحفه د سلام نه غوره کېدی شي؟ دا د الله جَلّ جَلَالُہٗ د طرفنه یو د برکت والا او پاکیزه کلام دي.(۱)

## روغبړ او معانقه یعنې د غاړې ورکول

### درسو الله ﷺ د روغبړ طریقه:

حضرت جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ به کله د خپلو صحابو و سره ملاوېدو نو تر

---

۱: اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ۸/۴۰ رواه الطبرانی ورجاله رجال الصحیح غیر یحی بن ابراهیم المسعودي وهو ثقة انتهی. واخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۲۰۱ عن ابی البختری مثله.

ځو پورې به یې چې هغوی ته سلام نه وو کړی نو هغوی سره به یې لاس نه ملاوولو.(۱)

یو سړی حضرت ابوذر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته وویل چې تاسو نه د رسول الله ﷺ د حدیث په باره کې پوښتنه کول غواړم! هغوی وویل که چېرې په هغې کې څه د راز خبره نه وي نو زه به ضرور هغه حدیث تا ته واوروم! هغه سړي وویل کله چې به تاسو د رسول الله ﷺ سره ملاوېدئ! نو آیا هغوی ﷺ به تاسو سره مصافحه کوله؟ حضرت ابوذر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمایل کله چې هم زما د رسول الله ﷺ سره ملاقات شوی دی نو رسول الله ﷺ ما سره ضرور مصافحه کړې ده.(۲)

حضرت ابو هریره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي چې یو ځل د رسول الله ﷺ د حضرت حذیفه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سره ملاقات وشو رسول الله ﷺ هغه سره مصافحه کول غوښتل حضرت حذیفه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ یو خوا ته شو او عرض یې وکړ چې زه دا وخت په جنابت کې یم رسول الله ﷺ وفرمایل کله چې یو مسلمان د بل مسلمان ورور سره مصافحه کوي نو د هغوی دواړو ګناهونه داسې رژېږي څنګه چې د خزان په موسم کې د ونې پاڼې رژېږي.(۳)

حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي چې مونږ عرض وکړ چې ای د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! آیا مونږ د ملاقات په وخت کې یو بل ته ښکته کېږو؟ ویې فرمایل نه! مونږ وویل نو آیا مونږ یو بل له غاړه ورکړ؟ ویې فرمایل نه! مونږ وویل نو آیا مونږ یو بل سره مصافحه کوو؟ ویې فرمایل هو! یعنې مصافحه خو هر وخت کول په کار دی او غاړه ورکول د سفر نه په راتلو سره په کار دی هم داسې نه!(٤)

**د روغبړ په وخت کې کوږېدل یا سر ګښته کول منع دي:**

حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي چې یو سړي وویل چې ای د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! کله چې یو سړی د خپل ورور یا دوست سره ملاوېږي نو آیا هغه دې ورښکته شي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل نه! نو هغه سړي وویل نو آیا هغه دې ورتر غاړې اوځي؟ او هغه دې ښکل کړي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل نه! بیا هغه سړي وویل چې آیا د هغه لاس دې اونیسي او د هغه سره دې مصافحه وکړي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل هو!(۵)

---

۱: اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ۸/۳٦ رواه الطبرانی وفیه من لم اعرفهم انتهی.
۲: اخرجه احمد والطبرانی کذافی الکنز ۵/۵۴
۳: اخرجه البزار قال الهیثمی ۷/۳۷ وفیه مصعب بن ثابت وثقه ابن حبان وضعفه الجمهور.
٤: اخرجه الدار قطنی وابن ابی شیبة کذافی الکنز ۵/۵۴.
۵: عند الترمذی ۲/۹۷ قال الترمذی هذا حدیث حسن.

د زرين په روايت کې دا دی چې د ورتر غاړې وتلو او د ښکلولو په جواب کې رسول اللهﷺ وفرمايل نه! البته که چېرې د سفر نه راغلی وي نو دا سې کولی شي.(۱)

حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي کله چې حضرت زيد بن حارثه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مدينې منورې ته راغی نو هغه وخت رسول اللهﷺ زما په کور کې وو هغه راغی او دروازه يې وټکوله رسول اللهﷺ د ډېرې خوشحالۍ له وجې نه پورته شو بدن يې په بربنډه خپله جامه را ښکلو سره پاڅېده او هغه خواته روان شو په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ما نه د دېنه مخکې رسول اللهﷺ پرته کميس نه په استقبال کولو باندې ليدلی دی او نه د دې نه وروسته رسول اللهﷺ لاړ هغه سره يې غاړه ملاو کړه او هغه يې ښکل کړ.(۲)

**د صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ د روغبړ او معانقې طريقه:**

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې د رسول اللهﷺ صحابه به کله چې خپلو کې ملاوېدل نو يو بل سره به يې مصافحه کوله او کله چې به د سفر نه راتلل نو پخپلو کې به يې معانقه کوله.(۳)

حضرت حسن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته به کله چې د شپې په څه برخه کې خپل کوم ورور وريادېدلو نو شپه تېرېدل به ورته مشکل کېدل او فرمايل به يې! چې هاي دا شپه څومره اوږده ده! د سهار فرض کولو سره به زر هغه ورور خواته ورتلو او کله چې به هغه سره ملاوېدو نو هغه سره به يې معانقه کوله او هغه ته به ورتر غاړې وتلو.(٤)

حضرت عروه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ملک شام ته راغی نو عام خلک او د هغه ځای لوي خلک ټول د هغه استقبال له راغلل نو حضرت عمر بن الخطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې زما ورور چېرته دی؟ خلکو وويل چې هغه څوک دی؟ هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې حضرت ابو عبيده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ! خلکو وويل اوس تاسو ته راځي کله چې حضرت ابو عبيده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راغی نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د سورلۍ نه لاندې را کوز شو او هغه سره يې غاړه ملاو کړه بيا يې نور حديث ذکر کړل څنګه وراندې به راشي.(٥)

---

۱: کما في حمع الفوائد ۲/۱۴۲

۲: اخرجه الترمذي ۲/۹۷ قال الترمذي هذا حديث حسن غريب.

۳: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ٨/٣٦ رواه الطبراني في الاوسط ورجاله رجال الصحيح انتهى.

٤: اخرجه المحاملي كذافي الكنز ۵/۴۲

۵: اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۱۰۱

# د مسلمان سر، لاسونه او پښې ښکلول

**رسول الله ﷺ او دحضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ښکولول:**

حضرت شعبي رَحِمَهُ اللهُ وايي کله چې رسول الله ﷺ د خيبر نه واپس راغى نو حضرت جعفر بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ هر کلي وکړ رسول الله ﷺ هغه ځان سره پيوست کړ او د هغه د سترګو د مينځ ځائ يې ښکل کړ او ويې فرمايل چې ما ته پته نشته چې ما ته د جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په راتلو سره زياته خوشحالي ده يا د خيبر په فتح کېدو؟ په بل روايت کې دا دي چې رسول الله ﷺ هغه د ځان سره پيوست کړ نو هغه سره يې معانقه وکړه. (۱)

**صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او د رسول الله ﷺ لاس اوپښې مبارکې ښکولول:**

حضرت عبد الرحمن بن رزين رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت سلمه بن اکوع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې ما په دې خپل لاس باندې رسول الله ﷺ سره بيعت کړې دى حضرت عبد الرحمن رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د بيعت نه پس مونږ د حضرت سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لاس ښکل کړ او هغه د دې نه منع ونکړه.(۲) حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ لاس ښکل کړ.(۳)

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رسول الله ﷺ لره ښکل کړى دى.(٤)

حضرت کعب بن مالک رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې د غزوه تبوک نه زما په پاتې کېدو باندې کله چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ د طرفه زما د توبې د قبلېدو آيت نازل شونو زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم او ما د رسول الله ﷺ لاس راوخيستو او ښکل مې کړ.(۵)

**حضرت عمر د ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا سر او ابوعبيده دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا لاس ښکولول:**

حضرت ابو رجاء عطاردي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زه مدينې منورې ته راغلم نو ما وکتل چې خلک يو ځائ کې راټول شوى او د هغوى په مينځ کې يو سړى دى چې د بل سړى سر ښکلوي او وايي چې زه په تاسو قربان شم! که تاسو نه وئ! نو مونږ به تباه شوي واي ما پوښتنه وکړه چې دا د ښکلولو والا څوک دى؟ او څوک ښکلوي؟ چا ما ته وويل چې دا

---

۱: اخرجه ابن سعد ۴/۳۴

۲: اخرجه الطبرانی فی الاوسط قال الهیثمی ۸/۴۴ رجاله ثقات وفی الصحیح منه البیعة اه.

۳: اخرجه ابویعلی قال الهیثمی ۸/۴۲ وفیه یزید بن ابي زیاد وهو لین الحدیث وبقیة رجاله رجال الصحیح انتهی.

٤: ذکر فی جمع الفوائد ۲/۱۴۳ وقال الموصلی بلین واخرجه ابو داود عن ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بسند حسن کما قال العراقی ۲/۱۸۱.

۵: اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ۸/۸۲ وفیه یحیی بن عبدالحمید الحمانی وهو ضعیف اه واخرجه ابوبکر بن المقری فی کتاب الرخصة فی تقبیل الید بسند ضعیف قاله العراقی ۲/۱۸۱

حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی چې د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره د لـه دې وجې نه بنـكلوي چې د ټولو رايې دا وه چې كومو مرتدينو د زكات وركولو نه انكار كړى دى هغوى سره دې جنګ ونه كړى شي او يوازې د حضرت ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رايې دا وه چې هغوى سره دې جنګ وكول شي او اخر د ټولو د رايې خلاف د حضرت ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په رايې باندې عمل وشو او په دې كې اسلام ته ډېره فائده وشوه.(۱)

حضرت زارع بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې مونږ مدينې منورې ته راغلو نو مونږ ته وښودلی شو چې دا رسول الله ﷺ دي نو مونږه د هغوى دواړه لاسونه او پښې ښكل كړل.(۲)

حضرت مزيده عبدي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت اشج رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راروان وو راغى او د رسول الله ﷺ لاس يې ونيوه او ښكل يې كړ رسول الله ﷺ هغه ته وفرمايل په غور سره واوره! په تا كې دوه عادتونه داسې دي چې هغه الله رب العزت او د هغه رسول الله ﷺ خوښوي حضرت اشج رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وكړ آيا دا عادتونه فطري په ما كې موجود وو يا وروسته په ما كې پيدا شول؟ رسول الله ﷺ وفرمايل نه! بلكې دا عادتونه په تا كې فطري توګه باندې موجود وو هغه وويل ټول تعريفونه هغه الله ﷺ لره دي چا چې زما په فطرت كې داسې عادتونه كېښودل چې هغه الله رب العزت او د هغه رسول ﷺ خوښوي.(۳)

حضرت تميم بن سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي كله چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د شام ملک ته ورسېده نو حضرت ابوعبيده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغوى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ استقبال وكړ او هغه سره يې مصافحه وكړه او د هغه لاس يې ښكل كړل بيا دواړه ځانته كېناستل د رسول الله ﷺ زمانه يې يادوله او ژړل يې حضرت تميم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به وفرمايل چې د مشرانو لاس ښكلول سنت دي.(۴)

**دهغه چا لاس تبركا ښكلول چې په خپلو لاسو يې د آنحضرت ﷺ سره بيعت كړي وي:**

حضرت يحيى بن حارث ذماري رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زما ملاقات د حضرت واثله بن اسقع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره وشو ما عرض وكړ چې آيا تاسو په دې خپل لاس باندې رسول الله ﷺ سره بيعت كړى دى؟ هغه وويل هو! ما وويل لږ خپل لاس ما ته راكړه چې زه يې ښكل كړم

---

۱: اخرجه ابن عساكر كذافي المنتخب ۴/۳۵۰

۲: اخرجه البخاري في الادب ۱۴۴

۳: عنده ايضاً في الادب ۸٦

٤: اخرجه عبدالرزاق والخرائطي في مكارم الاخلاق والبيهقي وابن عساكر كذافي الكنز ۴/۵۴

نو هغه ما ته خپل لاس راکړ او ما هغه ښکل کړ.(۱)

حضرت یونس بن میسره رَحِمَهُ اَللَّهُ وایي چې مونږ د حضرت یزید بن اسود د بیما پرسی لپاره لاړه په دې کې حضرت واثله بن اسقع رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هم هلته راغی حضرت یزید کله چې هغه ولیده نو خپل لاس یې وړاندې کړ او د هغه لاس یې اونیوه او بیا یې هغه په خپل مخ او سینه باندې رابنکلو ځکه چې حضرت واثله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په دې لاسونو سره د رسول الله ﷺ نه بیعت کړی وو حضرت واثله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت یزید ته وویل اې یزید! ستا د خپل رب په باره کې څنګه ګمان دی؟ هغه وویل ډېر ښه دی حضرت واثله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل تا ته دې زېری وي ځکه چې ما د رسول الله ﷺ نه اورېدلی دی چې الله رب العزت فرمایي زما بنده چې په ما باندې څنګه ګمان کوي زه د هغه سره هم هغسې معامله کوم که چېرې ښه ګمان وکړي نو ښه معامله به ورسره کوم او که بد ګمان وکړي نو بده معامله به ورسره کوم.(۲)

**د حضرت سلمه بن اکوع، حضرت انس او حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ لاسونه ښکلول:**

حضرت عبدالرحمن بن رزین رَحِمَهُ اَللَّهُ وایي چې مونږ په ربده نومي ځای تېرېدلو نو مونږ ته خلکو وویل چې دلته حضرت سلمه بن اکوع رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دی نو مونږ هغه له ورغلو چې لاړ مونږ ورته سلام وکړ هغه خپل دواړه لاسونه بهر راوویستل او ویې فرمایل چې ما په دې دواړو لاسونو سره د رسول الله ﷺ سره بیعت کړی وو او هغه خپل لاس بیرون راوویستلو د هغه لاس ښه اوږد وو لکه د اوښ پښه نو مونږ ودرېدو او د هغه لاس مو ښکل کړ.(۳)

حضرت ابن جدعان رَحِمَهُ اَللَّهُ وایي چې حضرت ثابت رَحِمَهُ اَللَّهُ د حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه چې آیا تاسو خپل لاس سره رسول الله ﷺ مسح کړی دی؟ حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې هو! په دې باندې حضرت ثابت رَحِمَهُ اَللَّهُ د هغه لاس ښکل کړ.(۴)

حضرت صهیب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي ما ولیدل چې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لاس او پښې ښکولې.(۵)

---

۱: اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ۸/۴۲ وفیه عبدالمالک القاری ولم اعرفه وبقیة رجاله ثقات انتهی.

۲: عند ابی نعیم فی الحلیة ۹/۳۰٦

۳: اخرجه البخاری فی الادب المفرد ۱۴۴ واخرجه ابن سعد ۴/۳۹ عن عبدالرحمن بن زید العراقی نحوه.

٤: اخرجه البخاری ایضاً فی الادب ۱۴۴

۵: اخرجه البخاری ایضا فی الادب۱۴۴

# د مسلمان د احترام اعزاز لپاره اودرېدل

**د رسول الله ﷺ او حضرت فاطمې رضي الله عنها يوبل ته پاڅېدل اود يوبل استقبال كول:**

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې ما څوک سړی داسې نه دی ليدلی چې په خبرو اترو کې په ناسته او ولاړه کې د حضرت فاطمې رضي الله عنها نه زيات د رسول الله ﷺ مشابه وي رسول الله ﷺ به کله چې حضرت فاطمه رضي الله عنها راتلونکې ليدله نو هغې ته به يې مرحبا ويل بيا به پاڅېده او هغه به يې ښکل کړه بيا به يې د هغې لاس اونيوه او په خپل ځای به يې کېنوله او کله چې به رسول الله ﷺ هغې له ورتلو نو هغې به مرحبا ويل بيا به پاڅېده او رسول الله ﷺ به يې ښكل کړ د وفات په مرض کې هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضره شوه نو رسول الله ﷺ ورته مرحبا وويلو او هغه يې ښكل کړه ورو غوندې د هغې سره څه خبره وکړه چې په هغې سره هغه په ژړا شوه رسول الله ﷺ دوباره روغوندې د هغې سره څه خبره وکړه چې په هغې سره هغې اوخندل ما ښځو ته وويل چې ما دا ګڼله چې هغې ته يعنې فاطمې رضي الله عنها ته د عامو ښځو نه زيات فضيلت حاصل دی خو دا هم يو عامه ښځه معلومه شوه اول يې وژړل او بيا يو دم په خندا شوه بيا ما د حضرت فاطمې رضي الله عنها نه پوښتنه وکړه چې رسول الله ﷺ تا ته څه ويل ي وو؟ هغې وويل چې دا د راز خبره ده که چېرې زه يې تا ته اووايم نو بيا خو به راز ښکاره کوونکې اوګرځم! کله چې رسول الله ﷺ وفات شو نو بيا وروسته حضرت فاطمې رضي الله عنها وويل چې رسول الله ﷺ اول ما ته روغوندې وويل چې زما وفات کېدونکی دی په دې باندې زه په ژړا شوم! دهنه پس يې رو غوندې دا سې وفرمايل چې ته به زما په خاندان کې د ټولو نه اول راځې! او ما سره به ملاوېږې! په دې باندې زه ډېره خوشحاله شوم او دا خبره په ما باندې ډېره ښه ولګېده په دې باندې ما خندلي وو.(۱)

**رسول الله ﷺ ته د صحابه كرامو رضي الله عنهم پاڅېدل:**

هلال رحمه الله وايي کله چې به رسول الله ﷺ بهر ته تشريف يوړو نو مونږ به هغوی ﷺ ته ودرېدو تر دې چې هغوی ﷺ به دوباره خپل کور ته تشريف يوړو.(۲)

---

۱: اخرجه البخاری فی الادب۱۲۸

۲: اخرجه البزار عن محمد بن هلال قال الهيثمی ۸/۴۰ هكذا وجدته فيما جمعته ولعله عن محمد بن هلال عن ابيه عن ابي هريرة رضي الله عنه وهو الظاهر فان هلال تابعی ثقة او عن محمد بن هلال ابن ابی هلال عن ابيه عن جده وهو بعيد ورجال البزار ثقات انتهى.

**رسول الله ﷺ او صحابه کرام رضي الله عنهم هغه ته د پاځېدو نه منع کول:**

حضرت ابو امامه رضي الله عنه فرمايي چې يو ځل رسول الله ﷺ خپله امسا لګوله مونږ ته بهر راغی مونږ هغوی ﷺ ته پاځېدو رسول الله ﷺ وفرمايل څنګه چې عجمي خلک د يو بل د تعظيم لپاره لاس په نامه اودرېږي تاسو داسې مه ويدرېږئ[1](۱)

حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه فرمايي چې يو ځل رسول الله ﷺ مونږ له بهر ته راغی الله رب العزت دې په حضرت ابوبکر رضي الله عنه رحم وکړي هغوی وويل چې ودرېږئ! مونږ به د هغه منافق خلاف مقدمه رسول الله ﷺ ته وړاندې کوو رسول الله ﷺ وفرمايل چې ودرېدل خو صرف د الله رب العزت لپاره په کار دی د بل چا لپاره نه دي د راتلونکي کس په زړه کې هم داسې جذبه په کار ده چې خلک دې ما ته نه ودرېږي.(۲)

**په دې باره کې دصحابه کرامو رضي الله عنهم حال:**

حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې صحابه کرامو ته چې د رسول الله ﷺ ملاقات څومره خوښ وو دومره د بل چا نه وو خو کله به يې چې رسول الله ﷺ راتلونکی ليده نه به ودرېدل ځکه چې هغوی ته معلومه وه چې اودرېدل رسول الله ﷺ نه خوښوي رسول الله ﷺ غوښتل چې صحابه کرامو سره بې تکلفي او سادګی سره واوسېږي او تکلفات نه وي.(۳)

حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ ددې نه منع فرمايلې ده چې سړی دی څوک د هغه ځای نه پاڅوي او پخپله دې د هغه په ځای کېني! او د حضرت ابن عمر رضي الله عنه عادت داوو کله چې به څوک د هغه لپاره پاځېده نو په هغه ځای به نه کېناسته.(۴)

حضرت ابو خالد البي وايي چې مونږ ودرېدو او د حضرت علي بن ابي طالب انتظار مو کولو چې هغه مخکې راشي چې په دې هغه بهر ته راغی او ويې فرمايل چې څه خبره ده؟ تاسو سينه را ايستې ده د فوجيانو پشان ولاړ په نظر راځئ!(۵)

حضرت ابو مجلز رحمه الله وايي چې يو ځل حضرت ابن زبير رضي الله عنه ناست وو او په دې

---

۱: اخرجه ابن جرير كذافي الكنز ٥/٥٥ واخرجه ابوداود مثله كما في جمع الفوائد ٢/١٤٣

۲: اخرجه احمد قال الهيثمي ٨/٤٠ وفيه راو لم يسم و ابن لهيعة اه.

۳: اخرجه البخاري في الادب ١٣٨ واخرجه الترمذي وصححه كما قال العراقي في تخريج الاحياء والامام احمد وابوداود كما في البدايه ٦/٥٧

٤: اخرجه البخاري في الادب ١٦٩ص واخرجه ابن سعد ٤/١٢٠ عن نافع عن ابن عمر مقتصرا على فعله.

٥: اخرجه ابن سعد ٦/٢٨

دوارو کې د حضرت ابن زبیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مرتبه اوچته او وزني وه حضرت معاويه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې رسول الله ﷺ و فرمايلي دي چې څوک په دې خبره خوشحاليږي چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ بنده ګان د هغه لپاره ودريږي هغه له په کار دی چې د دوزخ په اور کې ځان ته ځای جوړ کړي. (۱)

# د مسلمان لپاره د خپل ځائ نه لږ خوزېدل

**په مسجد کې ديو مسلمان سړی لپاره د رسول الله ﷺ دخپل ځائ نه خوزېدل:**

حضرت واثله بن خطاب قريشي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي يو سړی جمات ته راغی رسول الله ﷺ ځان له ناست وو هغوی ﷺ د هغه له وجې نه د خپل ځای نه لږا وخوزېدو چا عرض وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ځائ خو ډېر دی بيا تاسو د خپل ځائ نه ولې اخوا شوئ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې دا هم د مؤمن حق دی کله چې د هغه ورور هغه ووينې نو د هغه د خاطره دې د خپل ځائ نه لږ وخوزيږي.(۲)

حضرت واثله بن اسقع رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې يو سړی جمات ته راغی دغه وخت رسول الله ﷺ په جمات کې يوازې ناست وو رسول الله ﷺ د دغه سړی له وجې نه د خپل ځائ نه لږ وخوځېده هغه سړي وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ځائ خو ډېر دي هغوی ﷺ وفرمايل چې دا هم د مسلمان ورور حق دي.(۳)

# په مجلس کې د ناست مسلمان اکرام کول

حضرت کثير مره رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې زه د جمعې په ورځ جماعت ته لاړم نو ما وليدل چې حضرت عوف بن مالک اشجعي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په يوه حلقه کې پښې خورې کړی دی او ناست دی کله چې هغه زه اوليدم نو خپلې پښې يې راغونډې کړې او ويې فرمايل چې تاسو ته پته شته چې ما د څه له وجې نه خپلې پښې خورې کړې وې؟ ځکه مې خورې کړې وې چې څوک نېک سړی راشي دلته کېني حضرت محمد بن عباده بن جعفر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې

---

۱: اخرجه البخاری فی الادب ۱۴۴

۲: اخرجه البيهقی وابن عساكر كذافي الكنز ۵/۵۵

۳: عند الطبرانی قال الهيثمی ۸/۴۰ رجاله ثقات الاان ابا عمير عيسی بن محمد بن النحاس لم اجدله سماعا بن ابی الاسود والله اعلم انتهی.

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې زما په نزد په خلکو کې د ټولو نه زيات د عزت قابل ما سره خوا کې ناست سړی دی حضرت ابن ابي مليکه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل زما په نزد په خلکو کې د ټولو نه زيات قابل د عزت ماسره خوا کې ناست سړی دی هغه له په کار دی چې هغه د خلکو په څټونو باندې پښې واړوي او ماسره خوا کې کښني.(۱)

# د مسلمان اکرام قبلول

**په دې باره کې د دوه سړيو سره دحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قصه:**

حضرت ابو جعفر رَحِمَهُ اللهُ وايي چې دوه سړی حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راغلل حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغوی لپاره يوه ګدۍ خوره کړه په هغوی کې يو خو په ګدۍ باندې کښناسته او دويم په زمکه باندې. چې په زمکه باندې کښناسته هغه ته حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل پاڅه! او په ګدۍ باندې کښنه! ځکه چې د داسې اکرام نه خو يوازې ناپوهه سړی انکار کوي .(۲)

# د مسلمان راز ساتنه

**حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او درسول الله ﷺ راز ساتل:**

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې زما لور حضرت حفصه ګنده شوه د هغې خاوند حضرت خنيس بن حذافه سهمي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په صحابه وو کې وو او په جنګ بدر کې شريک شوي وو هغه په مدينه منوره کې وفات شو زما د حضرت ابوبکر سره ملاقات شوي وو ما هغه ته وويل چې که چېرې ته غواړې نو زه به د حضرت حفصه بنت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تاسو سره واده وکړم هغه ما ته هيڅ ځواب رانکړ څو ورځې پس رسول الله ﷺ حضرت حفصې رَحِمَهُ اللهُ سره د هغه واده وکړ بيا حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ما سره ملاو شو او ويې فرمايل چې تا حفصه ما ته وراندې کړې وه ما د هغې تا ته څه ځواب نه وو درکړی کېدای شي چې ته په هغې باندې ما ته غصه شوي يې؟ ما وويل هو غصه خو راغلې وه! حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل ما هغه وخت تا ته جواب ځکه نه وو درکړی چې ما د رسول

---

۱: اخرجه البخاری فی الادب ۱٦۷

۲: اخرجه ابن ابی شيبة عبدالرزاق قال عبدالرزاق هذا منقطع کذافی الکنز ٥/٥٥

اللهﷺ نه اوريدلي وو چې د حفصې ذکر يې کړی وو چې د هغې نه زه پوه شوم چې رسول اللهﷺ هغې سره واده کول غواړي او ما د رسول اللهﷺ راز ښکاره کول نه غوښتل که چېرې رسول اللهﷺ هغې سره واده نه کولی نو ما به ورسره ضرور کړی وای.(۱)

**حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او درسول اللهﷺ راز ساتل:**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې ما يوه ورځ د رسول اللهﷺ خدمت وکړ ما چې وکتل چې زه د هغوی ﷺ د خدمت نه فارغ شوی يم نو ما په خپل زړه کې وويل چې رسول اللهﷺ به اوس د غرمې ارام کوي نو زه د هغوی ﷺ د خوا نه لاړم بهر ماشومانو لوبې کولې زه ودريدم او د هغوی د لوبو تماشه مې کوله په دې کې رسول اللهﷺ راغی او ماشومانو ته چې ورور سېده په هغوی يې سلام وکړ بيا يې زه راوغوښتلم او د څه کار لپاره يې ولېږلم او ګواکې هغه کار زما په خوله کې دي ما د هغه کار وکړو او د رسول اللهﷺ ته د اطلاع ورکولو لپاره ورغلم او دا شان زه د پر وخت پس مور له لاړم نو هغې پوښتنه وکړه چې نن ته ولې ناوخته راغلې؟ ما وويل چې رسول اللهﷺ څه کار لپاره لېږلی ووم زما مور پوښتنه وکړه چې څه کار و؟ ما وويل چې هغه رسول اللهﷺ د راز خبره ده ما وويل: صحيح ده د رسول اللهﷺ راز پټ او ساته! نو زما تر ننه پورې هغه راز چا ته نه دی ښودلی ای زما شاګرده! که چېرې ما چا ته ښودلی وای نو تا ته به مې ضرور ښودلی وو.(۲)

# د يتيم اعزاز او اکرام کول

**د زړونو د سختۍ لرې کولو لپاره صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ سره د آنحضرتﷺ مشوره:**

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو سړی رسول اللهﷺ ته د خپل زړه د سختوالي شکايت وکړ نو رسول اللهﷺ ورته وفرمايل چې د يتيم په سر لاس راکاږه او په مسکينانو باندې خوراک کوه! (۳)

حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو سړی د رسول اللهﷺ په خدمت کې حاضر شو او د خپل زړه د سختۍ شکايت يې وکړ هغوی ﷺ وفرمايل آيا ته غواړې! چې ستا زړه نرم شي؟ او

۱: اخرجه ابو نعيم فی الحلية ۱/۳٦۱ واخرجه ايضاً وابن سعد والبخاری والنسائي والبيهقي وابويعلی وابن حبان مع زيادة کما فی المنتخب ۵/۱۲۰

۲: اخرجه البخاری فی الادب ۱٦۹ واخرجه البخاری ايضاً فی صحيحه ومسلم عن انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بنحوه کما فی جمع الفوائد ۲/۱۴۸

۳: اخرجه احمد قال الهيثمی ۸/۱٦۰ رجاله رجال الصحيح اه.

ستا دا ضرورت پوره شي؟ ته په یتیم باندې شفقت کوه! او د هغه په سر لاس راکاږه! او د خپل طعام نه په هغه طعام خوره! دې سره به ستا زړه نرم شي او ستا ضرورت به پوره شي. (۱)

**د بشیر بن عقربه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او رسول الله ﷺ قصه:**

حضرت بشیر بن عقربه جهني رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د جنګ احد په ورځ زما د رسول الله ﷺ سره ملاقات وشو ما پوښتنه وکړه چې زما د پلار څه وشو؟ رسول الله ﷺ وفرمایل چې هغه خو شهید شو الله جَلَّ جَلَالُهُ دې په هغه باندې رحم وکړي ما چې دا ودرېدل نو په ژړا شوم. رسول الله ﷺ زه ونیوم زما په سر باندې یې لاس رابکلو او زه یې ځان سره پخپله سورلۍ باندې سور کړم او ویې فرمایل چې ته په دې باندې راضي نه یې! چې زه ستا پلار او عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ستا مور شي؟ (۲)

# د پلار د دوست عزت او اکرام کول

**حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا او د خپل پلار یو بانډیچي دوست اکرام کول:**

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به کله چې مدینې منورې ته تلو نو ځان سره به یې یو خر هم ساتلو کله چې به په اوښه باندې سفر کولو سره ستړd شو نو د ارام کولو لپاره به په هغه خره سورېدو او ځان سره به یې یو پټکی ورلو چې د ضرورت په وخت کې به یې پر سر کولو، یوه ورځ هغه په دغه خره باندې سور روان وو چې یو بانډیچي ورله مخې ته راغی حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تري پوښتنه وکړه چې آیا ته فلاني د فلاني ځوی نه یې؟ هغه وویل هو زه هغه یم! حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته خپل هغه خر ورکړ او وې ویل چې په دې باندې سور شه! او پټکی یې هم هغه ته ورکړ او ورته ویې فرمایل چې دا په سر وتړه! د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ملګري ده ته وویل چې تاسو په کوم خره باندې ارام کولو هغه دې هم هغه ته ورکو او پټکي به دې په سر تړلو هغه دې هم هغه ته ورکړ الله جَلَّ جَلَالُهُ دې ستاسو مغفرت وکړي تاسو داسې ولې وکړل؟ حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې ما د رسول الله ﷺ نه دا فرمان اورېدلی دی چې په نېکیو کې تر ټولو لویه نېکي دا ده چې سړی د خپل پلار د وفات نه پس د هغه محبت او اړیکې والاوو خلکو سره ښه رویه او چلند وکړي د دې

---

۱: عند الطبرانی وفی اسناده من لم اعرفهم وبقیة مدلس کما قال الهیثمی ۸/۱۶۰.

۲: اخرجه البزار قال الهیثمی ۸/۱۶۱ وفیه من لا یعرف اه واخرجه فی تاریخه عن بشیر بن عقربه نحوه کما فی لاصابة ۱/۱۵۳ وابن منده وابن عساکر اطول منه کما فی المنتخب ۵/۱۴۶

باندېچې پلار زما د پلار حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د پر خوبښ دوست وو. (۱)

د ادب المفرد په روایت کې دا شان دي چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې د خپل پلار د دوستانو سره ښه رویه (سلوک) کوئ! او هغوی سره اړیکې مه ختموئ! کنې نو الله رب العزت به ستاسو نور ختم کړي. (۲)

**د والدینو دمرګ نه پس دهغوئ اکرام کول:**

حضرت ابو اسید ساعدي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو سړي وویل چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! آیا زما مور پلار د وفات کېدو نه پس څه داسې کار شته چې په کولو یې زه د مور او پلار نیکي کونکې شمار شم؟ نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چې هو اد هغوی دواړو د پاره دعا وغواړه!، استغفار کوه! او د هغوی د تلو نه پس د هغوی وعدې پوره کړه! او د مور او پلار په ذریعه چې کوم خپل خپلوان دي د هغوی خاص خیال ساته! او د هغوی د دوستانو عزت کوه! (۳)

## د مسلمان دعوت قبلول

**د حضرت ابو ایوب او دریاب کې د جنګي لښکر قصه:**

حضرت زیاد بن انعم افریقي رَحِمَهُ اللهُ فرمایي چې مونږ د حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خلافت په زمانه کې یوه غزا کې د سمندر سفر کولو چې زمونږ کشتۍ د حضرت ابو ایوب انصاري کشتۍ سره ملاو شوه کله چې زمونږ د غرمې طعام راغی نو مونږ هغوی د طعام لپاره را اوغوښتل په دې باندې حضرت ابو ایوب انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مونږ ته راغی او ویې فرمایل تاسو زه را غوښتی یم خو زما روژه ده! بیا به هم زه ستاسو دعوت ضرور قبلوم! ځکه چې ما د رسول الله ﷺ نه اورېدلی دی چې په مسلمان باندې د خپل ورور مسلمان شپږ حقونه واجب دي که چېرې په دې کې یو کار هم پرېږدي نو هغه به د خپل ورور واجب حق پرېږدي کله چې هغه سره ملاو شي نو په هغه دې سلام اچوي او کله چې هغه ته دعوت ورکړي نو هغه دې قبلوي او هغه چې پرنجې وکړي نو هغه ته دې جواب ورکوي او کله چې هغه بیمار شي نو د هغه مریض پوښتنه دې وکړي او کله چې هغه وفات شي نو د هغه په جنازه کې دې شریکېږي او کله چې هغه د ده نه د نصیحت کولو مطالبه وکړي نو هغه ته دې نصیحت وکړي

---

۱: اخرجه ابوداود والترمذی ومسلم کذا فی جمع الفوائد ۲/۱۶۹

۲: اخرجه البخاری فی الادب ۹ بنحوه مختصراً.

۳: عند ابي داود

مخکې يې پوره حديث ذکر کړی دی.(۱)

حضرت حميد بن نعيم رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عمربن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته چا دعوت ورکړ هغه دې حضراتو قبول کړ د هغه کورته د خوراک لپاره لاړل کله چې دې حضراتو طعام وخوړ او د هغه ځای نه بهر راووتل نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وويل چې زه خو په دې طعام کې شريک شوم خو اوس زما زړه غواړي چې زه په مدينه منوره کې شريک شوي نه واي! نو ښه به واي! حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وويل چې ولې؟ ويې فرمايل چې ما ته د دې خبرې وېره ده چې دا د خپل شان د ښودلو لپاره په مونږ باندې دا طعام خوړلی دی.(۲)

حضرت مغيره بن شعبه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ واده وکړ حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ امير المؤمنين وو حضرت مغيره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغوی د واده د طعام د پاره را وغوښتلو کله چې حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د طعام لپاره راغی نو ويې فرمايل چې زما خو روژه ده خو ما وغوښتل چې ستا دعوت قبول کړم او ستا لپاره د برکت دعا وکړم يعنې راتلل ضروري دي خوراک ضروري نه دی.(۳)

حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي کله چې ستا کوم دوست، رشته دار يا ګاونډي سرکاري ملازم وي او هغه تا ته څه هديه درکړي يا تا ته د طعام دعوت درکړي نو تاسو هغه قبلوئ! که چېرې د هغه په ګټه کې څه شک وي نو تاسو ته خودغه شی بغير د کوشش نه ملاوېږي او د حرامې ګټې ګناه به د هغه په ذمه وي.(۴)

## د مسلمان د لارې نه تکليف رسوونکي شيان لرې کول

**د حضرت معاويه بن قره رَحِمَهُ اللَّهُ او حضرت معقل مزنی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قصه:**

حضرت معاويه بن قره رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې زه د حضرت معقل مزني رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره وم هغه د لارې نه څه تکليف رسوونکي شی لرې کړ مخکې چې لاړ نو ما ته هم يو تکليف ورکوونکي شی په لاره کې په نظر راغی زه په جلتۍ سره د هغې خواته ورمخکې شوم نو هغوی

---

۱: اخرجه البخاری فی الادب ۱۳۴.

۲: اخرجه ابن المبارک و احمد فی الزهد کذافی الکنز ۵/٦٦

۳: اخرجه احمد فی الزهد کذافی الکنز ۵/٦٦

٤: اخرجه عبدالرزاق کذافی الکنز ۵/٦٦

وفرمايل اې زما وراره! ته داسې كار ولې كوې؟ ما ووېل تاسو ما په داسې كار كولو ليدلي يئ! څكه زه دا كار كول غوارم! هغوى ووېل اې زما وراره! تا دېر ښه وكړل ما د رسول الله ﷺ نه دا فرمان اورېدلى دى چې څوک د مسلمانانو د لارې نه تكليف وركوونكي څه شى لرې كړي هغه لپاره يوه نيكي ليكل كېږي او د چا چې يوه نيكي هم د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد قبوله شي هغه به جنت ته داخلېږي.(۱)

# د عطسه (پرنجي) جواب وركول

**په دې باره كې درسول الله ﷺ عمل:**

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې مونږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو چې په دې كې هغوى ﷺ پرنجى وكړ په دې باندې صحابه وو ووېل (يرحمک الله) رسول الله ﷺ وفرمايل (يهديكم الله ويصلح بالكم). (۲)

حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي چې رسول الله ﷺ سره يو سړى پرنجى وكړ هغه پوښتنه وكړه اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه په دې پرنجى كولو باندې څه وايم؟ رسول الله ﷺ وفرمايل الحمدلله وايه! اصحابو ترې پوښتنه وكړه اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! مونږ ده ته په جواب كې څه اووايو؟ ويې فرمايل يرحمک الله ووايئ! هغه سړى ووېل چې زه دې خلكو ته په جواب كې څه اووايم؟ هغوى ﷺ وفرمايل چې ته دا اووايه! يهديكم الله ويصلح بالكم .(۳)

حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ مونږ ته دا ښودل كله چې په مونږ كې څوک پرنجى وكړي نو مونږ به د هغه د پرنجي جواب وركوو.(۴)

حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ به دا ښودل كله چې په تاسو كې څوک پرنجى وكړي نو هغه له (الحمد لله رب العلمين) ويل په كار دى او كله چې هغه دا اووايي نو ورسره خوا كې كسانو له (يرحمک الله) ويل په كار دى او كله چې ورسره خوا كې كسان دا اووايي نو ده له (يغفرالله لي ولكم) ويل پكار دي. (۵)

---

۱: اخرجه البخارى فى الادب ۱۸۷

۲: اخرجه الطبرانى قال الهيثمى ۸/۵۷ وفيه اسباط بن عزاة ولم اعرفه وبقية رجاله رجال الصحيح..

۳: اخرجه احمد و ابويعلى قال الهيثمى ۷/۸۵ وفيه ابو معشر يحى وهولين الحديث وبقية رجاله ثقات واخرجه جرير والبيهقي عن عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا نحوه كما فى الكنز العمال ۵/۵٦

٤: اخرجه الطبرانى واسناده جيد كما قال الهيثمى ۸/۵٦

۵: عند الطبرانى ايضاً قال الهيثمى وفيه ابن السائب وقد اختلط.

حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمايي چې د رسول الله ﷺ د كور په يو طرف كې يو سړی پرنجې وكړ نو هغه الحمدلله وويل په دې باندې رسول الله ﷺ يرحمك الله وفرمايل بيا د كور په يو طرف كې بل سړی پرنجی وكړ او هغه وويل (الحمدالله رب العلمين حمدا كثيرا طيبا مباركاً فيه) رسول الله ﷺ وفرمايل دا سړی په ثواب كې د هغه بل نه نولس درجې زيات شو. (۱)

**هغه چاته د رسول الله ﷺ جواب نه وركول چې دالله تعالى حمد يې ونه ويل:**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ په خوا كې دوو كسانو پرنجی وكړ رسول الله ﷺ خو د يو د پرنجې جواب وركړ خو بل ته يې جواب ورنكړ رسول الله ﷺ نه چا د دې په وجې پوښتنه وكړ هغوی ﷺ وفرمايل چې هغه خو د پرنجې نه پس الحمدلله ويلي وو او هغه بل سړی نه وو ويلي ځكه مې اولني ته جواب وركړ بل ته مې ورنكړ.(۲)

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ په خوا كې دوو كسانو پرنجې وكړ په هغوی كې يو د بل نه دنياوي لحاظ سره زياتې مرتبې والا وو د اوچتې مرتبې والا پرنجې وكړ هغه الحمد لله ونه ويل نو رسول الله ﷺ د هغه د پرنجې جواب ورنه كړ او هغه بل سړي پرنجی وكړ او الحمدلله يې وويل، رسول الله د هغه جواب وركړ، په دې باندې هغه د اوچتې درجې والا وويل چې ما ته ستا خوا كې پرنجی راغی خو تاسو ما ته د پرنجې جواب رانكړ او هغه پرنجې وكړ د هغه د پرنجې ځواب مو وركړ رسول الله ﷺ وفرمايل چې هغه د پرنجې نه پس د الله جَلَّ جَلَالُهُ نوم اخيستې وو ځكه مې د الله جَلَّ جَلَالُهُ نوم اخيستلو سره جواب وركړ او تا الله جَلَّ جَلَالُهُ هېر كړ نو ما هم ته هېر كړې.(۳)

**د حضرت ابوموسى قصه دخپلې بي بي او ځوی سره:**

حضرت ابو برده رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې زه حضرت ابو موسى رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته لاړم هغه دغه وخت د حضرت ام فضل بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ په كور كې وو ما پرنجی وكړ نو حضرت ابوموسى

---

۱: اخرجه ابن جرير كذافي الكنز ۵/۵٦ وقال لا بأس بسنده.
۲: اخرجه الشيخان وابوداود والترمذي كذافي جمع الفوائد ۲/۱۴۵
۳: اخرجه احمد والطبراني قال الهيثمي ۸/۵۸ راجل احمد رجالا لصحيح غير ربعي بن ابراهيم وهو ثقة ما مون اه واخرجه البخاري في الادب ۱۳٦ والبيهقي وابن النجار وابن شاهين كما في الكنز ۵/۵۷

رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ د هغه جواب ورکړ زه لاړم خپلې مور ته مې تول خبره وکړه کله چې حضرت ابوموسی زما مور له راغی نو زما مور د هغه نه خبر واخیستو او یې وفرمایل چې زما ځوی پرنجی وکړ نو تا د هغې څه جواب ورنکړ او حضرت ام فضل چې پرنجي وکړ نو تا هغې ته جواب ورکړ نو حضرت ابوموسی رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ زما مور ته وویل چې ما د رسول الله ﷺ نه دا فرمان اوریدلی دی چې په تاسو کې څوک پرنجی وکړي او هغه الحمد الله ووايي نو تاسو هغه ته د پرنجي جواب ورکړئ! او که چېرې هغه الحمد لله او نه وايي نو تاسو هغه ته د پرنجي جواب مه ورکوئ! له دې وجې نه ما د هغه د اتهوشکي جواب ورنکړ او حضرت ام فضل پرنجي وکړ او هغه الحمد لله وویل له دې وجې نه ما د هغه د پرنجي جواب ورکړ په دې باندې زما مور وویل چې تا ښه کړی دی.(۱)

**په دې باره کې د حضرت ابن عمر او حضرت ابن عباس رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُمْ عملکرد:**

حضرت مکحول ازدي رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې زه د حضرت ابن عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ په خوا کې ناست ووم په دې کې د جمات په یو طرف کې یو سړی پرنجی وکړ نو حضرت ابن عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ وفرمایل که چېرې تا الحمد لله ویلي وای نو بیا یرحمک الله.(۲)

حضرت نافع رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې حضرت ابن عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ به پرنجی وکړ او چا به ورته یرحمک الله ویل نو ده به ورته په جواب کې ویل چې (یرحمنا الله وایاکم واغفرلنا ولکم).(۳)

حضرت نافع رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې یو سړی د حضرت ابن عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ په خوا کې پرنجي وکړ هغه سړی الحمد لله وویل نو حضرت ابن عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ ورته وویل چې تا د شومتوب نه کار واخیسته کله چې تا د الله جَلَّ جَلَالُهُ تعریف خو دې وویلو په رسول الله ﷺ به دې درود هم لیږلی وای حضرت ضحاک بن قیس یشکري رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې یو سړی د حضرت ابن عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ په خوا کې پرنجي وکړ نو هغه وویل الحمد لله رب اللعلمین حضرت عبدالله بن عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ وویل که چېرې تا دې سره والسلام علي رسول الله یو ځای کړي وای او پوره کړي دې وای نو ډېره به ښه وای.(۴)

---

۱: اخرجه البخاری فی الادب ۱۱۷

۲: اخرجه البخاری فی الادب ۱۳٦

۳: اخرجه البیهقی کذافی الکنز ۵/۵۷ واخرجه البخاری فی الادب ۱۳٦ نحوه.

٤: اخرجه البیهقی کذافی الکنز ۵/۵۷

حضرت ابو جمره رَحِمَهُ اَللَّهُ وايي چې ما د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه واورېدل چې هغه به چاته د پرنجي جواب کولو نو ويل به يې چې (عافانا الله واياکم من النار يرحمکم الله).(۱)

## د مريض پوښتنه کول او هغه ته چې هغه ويل پکار دي

**رسول الله ﷺ او دحضرت زيد بن ارقم او سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا بيمار پرسي:**

حضرت زيد بن ارقم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې زما سترګې خوږېدلې چې له هغې وجې رسول الله ﷺ زما بيمارپرسي وکړه.(۲)

حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې د حجة الوداع په کال کې زه ډېر زيات بيمار شوی ووم کله چې رسول الله ﷺ زما بيمارپرسی له راغی نو ما وويل چې زما بيماري زياته شوې ده او زه مالدار سړی يم او زما څوک وارث نشته يوه لور مې ده! نو آيا زه د خپل مال دوه حصې صدقه کړم؟ رسول الله ﷺ وفرمايل نه! البته درېيمه برخه مال صدقه کړه! او درېيمه برخه هم ډېر دي ته خپل وارثان مالداره پرېږده! او لاړ شه! د اد دې نه غوره ده چې ته هغوی فقيران پرېږدې او لاړ شې! او هغوی خلکو ته لاسونه نيولي ګرځي او ته چې کومه خرچې د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رضا لپاره وکړې په هغې به خامخا د الله جَلَّ جَلَالُهُ له طرفه اجر درته ملاوېږي تر دې چې نور مهاجرين خو به تاسو سره مکې ته واپس لاړ شي ترې دې چې ته کومه نوړۍ د خپلې بي بي په خوله کې ورکوې په هغې به هم اجر درته ملاوېږي! ما وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ما ته خو داسې معلومېږي چې نور مهاجرين خو به تاسو سره مکې نه واپس لاړ شي زه به هم دلته په مکه کې پاتې شم! او زما وفات به هم دلته په مکه کې وشي او چونکه زه د مکې نه په هجرت تللي ووم نو زه دا نه غواړم چې زه دلته وفات شم! رسول الله ﷺ وفرمايل نه ستا عمر به زيات وي او ستا به په بد مرض کې دلته وفات نه وي او ته چې کوم د خير عمل کوې هغې سره به ستا درجه هم اوچتېږي! او ستا په عزت به زيات شي او ستا په ذريعه به د اسلام او مسلمانانو ته به ډېره فايده ورسيږي، او د نورو به ډېر نقصان وشي (نو هغه د عراق د فتحه کېدو ذريعه جوړ شو) اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! زما د صحابه وو هجرت اخر ته ورسوې! په مينځ کې په مکه کې فوت کېدو سره يې مات مه کړې! او په مدينه منوره کې مرګ سره، دوی واپس په پوندو ونه ګرځې! البته

۱: اخرجه البخاري في الادب ۱۳۵

۲: اخرجه ابوداود کذافي جمع الفوائد ۱/۱۲۴

رحم قابل سعد په خپله دي. چې هغه د مکې نه په هجرت تللی وو او اوس دلته وفات شوی دی د هغه په مکه کې د فوت کېدو په وجه سره رسول الله ﷺ ته په هغه باندې ترس راتلو.(۱)

**رسو الله ﷺ او د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیمار پرسي:**

حضرت جابر بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې زه يو ځل بيمار شوم نو رسول الله ﷺ او حضرت ابو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پيادل زما بيمار پرسی له راغلل زه په هغه وخت کې بې هوشه ووم رسول الله ﷺ اودس وکړ او به يې په ما باندې چړکاو کړې چې په هغې سره ما ته ګذاره وشو ه زه په هوش کې راغلم نو او مې کتل چې رسول الله ﷺ ناست دی ما ورېل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه په خپل مال کې څه وکړم؟ زه د ټول مال په باره کې څه فيصله وکړم؟ نو هغوی ﷺ د دې هيڅ جواب رانکړ تر دې چې د ميراث والا آيت نازل شو.(۲)

**رسول الله ﷺ او د حضرت سعد بن عباده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیمار پرسي:**

حضرت اسامه بن زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ يو ځل په يو خر باندې سور شو د دغه خره په کته باندې د فدک جوړ شوي څادر پروت وو او زه يې ځان پسې شاته کېنولم! او د حضرت سعد بن عباده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيمار پرسی لپاره لاړ دا واقعه د جنګ بدر نه مخکې ده په تلو تلو کې د رسول الله ﷺ تېرېدل په يو مجلس باندې وشو چې په هغې کې عبد الله بن ابي ابن سلول هم وو تر دغې پورې عبد الله اسلام اظهار نه وو کړی په دې مجلس کې مسلمانان، مشرکان، بت پرست او يهودان ټول يو ځائ ناست وو او په دغه مجلس کې حضرت عبد الله بن ابي خپله پوزه په څادر پټه کړه او وې ويل چې په مونږ باندې دوړې مه اچوه! رسول الله ﷺ سلام وکړ او هلته ودرېدو او د سورلۍ نه کوز شو او هغوی ته يې قرآن هم واورولو عبد الله بن ابي وويل اې سړيه! کوم څه چې تاسو وايئ! که چېرې دا حق وي نو د دې نه بله خبره نه شي کېدای خو تاسو زمونږ په مجلسونو کې خپله خبره اورولو سره تاسو خپل ځائ ته واپس لاړ شئ! او په مونږ کې چې څوک تاسو ته راشي هغه ته تاسو خپله خبره واوروئ! حضرت ابن رواحه وويل نه! اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو زمونږ مجلسونو ته تشريف راوړئ! او مونږ ته خپله خبره اوروئ! زمونږ دا ډېره خوښه ده په دې باندې مسلمانانو مشرکانو او يهوديانو يو بل

---

۱: اخرجه البخاری ۱/۱۷۳ واللفظ له ومسلم ۲/۳۹ و الاربعة.

۲: اخرجه البخاری فی صحيحه ۲/۸۴۲ واخرجه فی الادب ۷۵ مثله.

ته بدرد ویل شروع کړل او خبره دومره زیاته شوه چې په یو بل باندې حمله کونکی وو رسول الله ﷺ هغوی ټولو غصه سړوله تر دې چې ټول خاموش شول بیا رسول الله ﷺ پخپله سورلۍ باندې سور شو او لاړ تر دې چې حضرت سعد بن عباده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورسېده رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل اې سعده! ابوحباب یعنې عبد الله بن ابي چې څه وویل آیا تا هغه وانه ورېدل؟ حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو هغه معاف کړئ! او عفوه ورته وکړئ! الله رب العزت تاسو ته هر څه درکړل په داسې حال کې ستاسو د راتلو نه مخکې د مدینې منورې دې کلي والاوو به په دې خبره باندې اتفاق کړی وو چې ده ته تاج په سر کړی وو خپل سرداریې جوړ کړي خو په دې کې تاسو د الله رب العزت له طرفه حق راوړو او راغلئ! چې د دې په وجه داسې ونه شو د له دې وجې نه د هغه تاسو سره حسد دی. او ستاسو سرداری دي د هغه د مرې نه نه ښکته کېږي نن چې تاسو هغه به څه کولو باندې لیدلی دی هغه ټول د دغه غصې او حسد به وجه سره دي.(۱)

**رسول الله ﷺ او دیو باندیچي سرې بیمار پرسي:**

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ د یو باندیچي بیمار پرسۍ لپاره لاړ او د هغوی ﷺ عادت دا وو کله چې به هغوی ﷺ د یو بیمار پرسۍ پوښتنې لپاره لاړل نو فرمایل به یې چې (لا بأس طهور ان شاء الله تعالی) ترجمه: هیڅ د وېرې خبره نه ده ان شاء الله دا بیماري د ګناهونو نه د پاکۍ ذریعه ده نو هغه ته یې دا کلمات وویل نو هغه په جواب کې وویل چې تاسو دې ته د پاکۍ ذریعه وایئ! خبره داسې نه ده بلکې دا خو ډېره تېزه تبه ده چې په بوډا باندې جوش وهي او دا تبه خو به ده ته قبرستان ښایي نو پرېږدئ! به یې! رسول الله ﷺ وفرمایل نه ده بیا هم داسې صحیح ده نو هغه د دغه بیمارۍ کې مړ شو.(۲)

**مدینې منورې ته په راتلو دحضرت ابوبکر صدیق او حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا بیماربدل:**

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي کله چې رسول الله ﷺ مدینې منورې ته راغی نو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې ډېره تېزه تبه راغله نو دې حضراتو له زه لاړم او ما وویل اې پلاره! تاسو څنګه یئ! اې بلاله! ته څنګه یې؟ د حضرت

---

۱: اخرجه البخاری ۲/۸۴۵

۲: اخرجه البخاری ۲/۸۴۴

ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به کله چې تبه تېزه شوه نو هغه به دا شعر ویلو :

کل امــــریء مُصَبَّـــــح فی أهلـــــه
والمـــوتُ أدنی مــــن شِراك نعلـــــه

«هر سړی چې خپل کور والاوو کې اوسېږي نو هغه ته ویلي کېږي چې الله جَلَّ جَلَالُهُ دې ستا سهار د خیر او عافیت والا اوګرځوي په داسې حال کې مرګ د پښې د تسمې نه هم زیات نږدې دي» او کله چې به د حضرت بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تبه لاړه نو هغه به مکه یادوله او دا شعر به یې ویلو:

ألا لیــت شِــعْری هــل أبیــتَن لیلـةً
بــوادٍ و حــولی إذخــــــرُ و جلیـــلُ

«په غور سره واورئ! ارمان چې ما ته معلومه واي چې آیا زه به یوه شپه د مکې په وادۍ کې تېره کړم اذخر او زما چاپېره به د مکې وابنه او جلیل واي»

و هــل أرِدَنْ یومـــاً میـــــــاه مَجَنَّـــة
و هــل یَبْـدُوَنْ لي شــامةٌ و طفیـــلُ

«او آیا زه به هم یوه ورځ د مجنه چینو ته کوز شم او آیا شامه او طفیل نومي د مکې غرونه ما ته په نظر راځي»

زه لاړم او رسـول الله ﷺ تـه مـې دا ټولـه خبره وکـړه نـو رسـول الله ﷺ دعـا وکړه چې اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! زمونږ کله چې د مکې سـره څومره محبت دی هغـه هومره ته د هغې نه زیات د مدینې منورې محبت زمونږ په زړونو کې پیدا کړی دی اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! مدینه صحت افزا ځای وګرځوې! او زمونږ لپاره د دې په مُد او صاع (دوو پیمانو) کې برکت واچوې! او د دې تبې جُحفه مقام ته منتقل کړې!(۱)

**د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په وجود کې د خیر اوبرکت خصوصیتونه:**

حضرت ابوهریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل چې په تاسو کې نن چا روژه نیولې ده؟ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل ما! بیا یې پوښتنه وکړه چې په تاسو کې څوک به جنازه کې شریک شوی دی حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل زه! بیا یې پوښتنه وکړه چې نن په مسکین باندې طعام خوړلی دی حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل چې ما! رسول الله ﷺ

۱: اخرجه البخاری ۲/۸۴۴

وفرمايل چې کوم سړی په يوه ورځ کې دا ټول کارونه وکړي هغه به ضرور جنت ته ځي.(۱)

**حضرت ابوموسى رضي الله عنه او دحضرت حسن بن علي رضي الله عنهما بيمارپرسي:**

حضرت عبدالله بن نافع رضي الله عنه وايي چې حضرت ابو موسى رضي الله عنه د حضرت حسن بن علي رضي الله عنه د مريضۍ د پوښتنې لپاره راغی نو حضر علي رضي الله عنه وفرمايل چې کوم مسلمان د يو مريض پوښتنه کوي نو که چېرې هغه د سخر په وخت کوي نو د هغه سره اويازره پرښتې ځي چې د مابنامه پورې د هغه لپاره مغفرت غواړي او هغه ته د دغه د مريضۍ د پوښتنې بدله کې جنت کې يو باغ ورکړي کېږي او که چېرې هغه د مابنام په وخت کې وي نو د هغه سره اويازره ملائکې ځي چې د هغه لپاره مغفرت اوغواړي او هغه ته په جنت کې يو باغ ملاوېږي.(۲)

**عمروبن حريث رضي الله عنه او دحضرت حسن بن علي رضي الله عنهما بيمار پرسي:**

حضرت عبدالله بن نافع رضي الله عنه وايي چې حضرت وابوموسى اشعري رضي الله عنه د حضرت حسن بن علي بن ابي طالب رضي الله عنه د بيمارپرسۍ لپاره راغی نو د هغه نه حضرت علي رضي الله عنه پوښتنه وکړه چې آيا ته د بيمارپرسۍ په نيت راغلی يې؟ ياصرف ملاوېدو لپاره راغلی يې؟ حضرت ابوموسى رضي الله عنه وويل نه! زه خو د مريضۍ پوښتنې په نيت راغلی يم په دې باندې حضرت علي رضي الله عنه د تېر شوي حديث پشان مضمون ذکر بيان کړ.(۳)

حضرت ابو فاخته رحمه الله وايي چې حضرت ابوموسى اشعري رضي الله عنه د حضرت حسن بن علي رضي الله عنه بيمارپرسۍ لپاره راغی نو حضرت علي رضي الله عنه د نه راغی او پوښتنه يې وکړه چې اې ابوموسى رضي الله عنه! ته بيمارپرسۍ لپاره راغلی يې؟ او که د ملاقات لپاره؟ هغه وويل اې اميرالمؤمنين! نه! زه خو د بيمارپرسۍ لپاره راغلی يم! حضرت علي رضي الله عنه وفرمايل ما د رسول الله ﷺ نه اورېدلي دي چې کوم مسلمان د يو مسلمان بيمارپرسي کوي نو د سهار نه تر مابنامه پورې چې اويازره ملائکې د هغه لپاره دعا کوي او الله رب العزت هغه ته په جنت کې يو حريف يعنې باغ ورکوي، راوي وايي چې مونږ پوښتنه وکړه چې اې اميرالمؤمنين خريف څه شی ته وايي؟ حضرت علي رضي الله عنه وفرمايل: حريف

۱: اخرجه البخارى فى الادب المفرد ۷۵

۲: اخرجه ابن جرير والبيهقى كذافى الكنز ۵/۵۰ وقال فقال اى البيهقى هكذا رواه اكثر اصحاب شعبة موقوفا وقد روى من غير وجه عن على مرفوعا انتهى وهكذا اخرجه ابوداود عن عبدالله بن نافع نحوه موقوفا وقال اسند هذا عن علي عن النبي صلى الله عليه وسلم من غير وجه صحيح.

۳: وهكذا اخرجه احمد ۱/۱۲۱

د اوبو هغه نالي ده چې په هغې سره د كجورو باغ اوبه كولی شي .(۱)

حضرت عبد الله بن يسار رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عمرو بن حريث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بيمار پرسی لپاره راغی نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته وفرمايل چې ته د حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيمار پرسی له راغلی يې په داسې حال کې ستا په زړه کې زما په باره کې ډېر څه دي! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل چې ته زما رب خو نه يې! چې چېرته اوغواړې! هغه خوا زما زړه وګرځوي؟ بس هم الله رب العزت زما زړه کې داسې رايې اچولې ده چې ستا د رايې خلاف ده د دې تولو د رايې د اختلاف باوجود به مونږ ستا د فايدې خبره ضرور ښايو ما د رسول الله ﷺ نه دا فرمان اورېدلی دی چې کوم مسلمان د خپل ورور بيمارپرسي کوي د هغه لپاره الله رب العزت اويا زره ملائکې لېږي په ورځ کې چې څه وخت هغه بيمار پرسي کوي د هغه وخت نه تر مابنامه پورې هغه ملائکې د هغه لپاره دعا کوي او د شپې چې څه وخت کې بيمارپرسي کوي د هغه وخت نه تر سهاره پورې هغه ملائکې د هغه لپاره دعا کوي.(۲)

## په کنده[۳] مقام کې يو بيمار ته دحضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خبره:

حضرت سعيد رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زه د حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ووم هغه د کوفې په محله کنده کې د چا بيمارپرسی لپاره لاړ هغه ته چې ورغلو نو حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې تا ته دې زېرې وي الله رب العزت د مؤمن بيمارې د هغه د ګناهونو نه د لرې کولو او د هغه نه د الله جَلَّ جَلَالُهُ راضي کېدو ذريعه جوړوي او د نافرمانه او بدکاره مريضي خو داسې ده لکه د اوښ. د هغه کور والاوو وتړو بيا يې پرانيستو اوښ ته څه پته نشته چې هغه يې ولې وتړلو او ولې يې پرانيستلو .(۴)

حضرت سعيد بن زوهب رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زه د حضرت سلمان سره د هغه د يو دوست د مريضی د پوښتنې له لاړم چې د کنده قبيلې وو هغه ته حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې الله رب العزت خپل مؤمن بنده په څه بيمارۍ او يا ازمېښت کې اخته کوي او بيا هغه نه عافيت ورکوي په هغې سره د هغه د تېرې شوې زمانې ګناهونه معاف کېږي او په آئينده کې

---

۱: اخرجه احمد ۱/۹۱.

۲: اخرجه احمد ايضاً ۱/۹۷ واخرجه البزار قال الهيثمي ۳/۳۱ ورجال احمد ثقات.

۳ په کوفه کې ديوې محلې نوم دی چې هلته قبيله کنده کوزه شوې وه (مترجم).

٤: اخرجه البخاري في الادب ۷۲

هغه د الله رب العزت د رضا طلبګار جوړيږي او الله رب العزت خپل نافرمانه بنده هم په څه بیمارۍ کې او ازمېښت کې مبتلا کوي. بیا هغه ته عافیت ورکوي خو هغه د اوښ پشان وي چې د هغه کورو الاوو اول ترلي وو بیا یې پرانیستو هغه اوښ ته څه پته نه لګي چې کورو الاوو هغه ولې ترلي وو او بیا یې ولې پرانیستلو.(۱)

## بیمار ته د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما او ابن مسعود رضي الله عنه خبره:

حضرت نافع رحمه الله وایي چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه به کله چې د چا بیمارپرسۍ له تلو نو د هغه نه یې پوښتنه کوله چې څه حال دی؟ او کله چې به د هغه د خوا نه راپاڅېده نو فرمایل به یې (خار الله لک) الله رب العزت دې تا ته خیر درکړي او زیاتي به یې څه نه ویل.(۲)

حضرت عبد الله بن ابي هُذیل رحمه الله وایي چې یو ځل حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه د یو کس بیمارپرسۍ لپاره لاړ هغه سره نور خلک هم ملګري وو په کور کې یوه ښځه وه چې هغې ته د هغوی رضي الله عنه یو ملګري کتل نو هغه ته حضرت عبد الله رضي الله عنه وویل که چیرې ستا سترګه وتلې وای نو هغه ته دا ستا لپاره د نامحرمې ته کتلو نه زیاته غوره وه.(۳)

## هغه څه چې رسول الله ﷺ به مریض ته ویل:

حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله ﷺ به کله د چا بیمارپرسۍ له تلو نو د هغه سر خواته به کېناسته بیا به یې اووه ځله دا دعا لوستله: (اسئالُ اللهُ الْعَظِيْم رَبَّ العَرْشِ العَظِيم أَنْ يَّشْفِيَكَ) که چیرې د هغه په مرګ کې به څه وخت وو نو هغه سړی به ضرور صحیح کېده.(۴)

حضرت علي رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله ﷺ به کله یو بیمار له تلو نو دا دعا به یې ویله: (اَذْهِبِ الْبأْسَ رَبَّ النَّاسِ وَشفِ اَنتَ الشَّافِي لاَ شَافِيَ اِلَّا اَنْتَ)(۵)

د ابن جریر رضي الله عنه په روایت کې دا الفاظ دي: (لاَ شِفَاءَ اِلا شِفَاءَ لا يُغادِرُ سَقْمًا)(۶)

حضرت علي رضي الله عنه فرمایي چې رسول الله ﷺ به کله د چا بیمارپرسي کوله نو خپل ښي لاس به یې د هغه په مخ باندې کېښوده او دا دعا به یې لوستله: (اَذْهَبِ البأسَ رَبَّ النَّاسِ

---

۱: عند ابی نعیم فی الحلیة ۱/۲۰٦
۲: اخرجه البخاری فی الادب ۷۸
۳: اخرجه البخاری ایضاً ۷۸
٤: اخرجه البخاری فی الادب ۷۹
٥: اخرجه ابن ابي شيبة ورواه احمد والترمذی وقال حسن غریب والدورقی وابن جریر وصححه.
٦: کذافی الکنز ٥/٥٠

اِشْفِ اَنْتَ الشَّافِي لا يَكْشِفُ الضُّرَّ اِلا اَنْتَ)(۱)

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ به کله يو بيمار له تلو نو دا دعا به يې لوستله:
(اَذْهِبِ البأسَ رَبَ الناسِ وَاشْفِ اَنْتَ الشَّافِي لاَ شَافِي اِلاَّ اَنْتَ شِفَاءً لا يُغَادِرُ سقمًا)(۲)

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې رسول الله ﷺ به کله د چا بيمار پرسي کوله نو خپل لاس به يې د بدن په هغه حصه باندې کېښوده چېرته به چې تکليف وو او دا دعا به يې لوستله: بِسم الله لا بأسَ. (۳)

حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ځل رسول الله ﷺ زما د مريضی د پوښتنې لپاره راغی کله چې هغوی د باندې روانېدل نو ويې فرمايل اې سلمانه! الله جَلَّ جَلَالُهُ دې ستا بيماري لرې کړي او ستا ګناهو نه دی معاف کړي او تا ته دې په دين کې او په بدن کې تر مرګه پورې عافيت درنصيب کړي.(۴)

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې رسول الله ﷺ به کله يو بيمار له تلو يا کوم بيمار به هغوی ﷺ ته راوستل شو نو رسول الله ﷺ به دا دعا کوله: (اَذهِبِ البأسَ رَبَ النَّاس اِشفِ وَاَنتَ الشَّافِي لا شِفَاَءَ اِلا شِفَاءُک شِفَاءً لَايُغَادِرُ سَقَمًا)(۵)

د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په بل روايت کې دا دی چې رسول الله ﷺ په دې کلماتو سره د حفاظت دا دعا کوله او د تېر شوی حديث والا الفاظ يې ذکر کړل او مخکې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمايل چې په مرض الوفات کې کله چې د رسول الله ﷺ بيماري زياته شوه نو ما به د رسول الله ﷺ لاس اونيوو او د هغوی ﷺ په بدن به مې رانښکلو او هم دا الفاظ به مې وويل رسول الله ﷺ خپل لاس زما نه رانښکلو ويې فرمايل اې زما ربه! ما معاف کړې! او ما رفيق اعلي يعنې خپل ځان سره ملاو کړې! دا د رسول الله ﷺ اخري خبره ده چې ما هغوی ﷺ نه واورېدله!(۶)

---

۱: عند ابن مردويه وابى على الحداد فى معجمه.
۲: عند ابن ابى شيبه كذا فى الكنز ۵/۵۱
۳: اخرجه ابو يعلى قال الهيثمى ۲/۲۹۹ رجاله موثقون.
٤: اخرجه الطبرانى فى الكبير وفيه عمرو بن خالد القرشي وهو ضعيف كما قال الهيثمى ۲/۲۹۹
۵: اخرجه البخارى فى صحيحه ۲/۸۴۷
٦: اخرجه ابن سعد ۲/۱۴.

# داخلېدو لپاره اجازه غوښتل

**رسول الله ﷺ به درې ځلې سلام کولو:**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ به کله سلام کولو نو درې ځله به يې کولو يعنې د اجازې غوښتلو لپاره به يې د کور نه بهر درې ځله او چت اواز سره سلام کولو که چېرې اجازه به ورته ملاوېدو نو صحيح به وه کنې بهر نه به واپس تلو يا مقصد دا دی کله چې به د خلکو ګڼه ګوڼه زياته وه نو ټولو خلکو ته اورولو لپاره به رسول الله ﷺ درې ځل سلام کولو ښي خواته او ګس خواته او مخامخ يا مقصد دا دی کله چې به رسول الله ﷺ د چا کور ته د هغه د ملاقات لپاره تلو نو درې ځل به يې سلام کولو يو د اجازه غوښتلو لپاره دويم د ننه داخلېدو په وخت کې او دريم واپسی په وخت کې او کله به يې چې څه اهمه خبره کوله نو درې ځل به يې کوله دې لپاره چې کم نه کم پوهې والا هم په خبره پوهه شي.(۱)

**د رسول الله ﷺ او قيس بن سعد رَضِيَ اللهُ عَنهُ قصه:**

حضرت قيس بن سعد رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ زمونږ د ملاقات لپاره زمونږ کور ته راغی نو رسول الله ﷺ د اجازه لپاره د بهر نه وفرمايل السلام عليکم ورحمت الله! زما پلار د رسول الله ﷺ د سلام جواب روغوندې ورکړ ما ورېل آيا تاسو د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسول ته اجازه ورکول نه غواړې؟ هغوی وفرمايل چې لږ رسول الله ﷺ بار بار مونږ ته سلام کولو لپاره پرېږده! رسول الله ﷺ بيا وفرمايل السلام عليکم ورحمت الله وبرکاته! زما پلار حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنهُ بيا په ورو غوندې جواب ورکړ رسول الله ﷺ بيا وفرمايل السلام عليکم ورحمت الله! او د دېنه پس رسول الله ﷺ واپس روان شو حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنهُ رسول الله ﷺ پسې لاړ او عرض يې وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ما ستاسو هر سلام اورېدلی دی او د هر سلام مې روغوندې جواب درکړی دی نو روغوندې جواب مې ځکه درکړ چې تاسو مونږ ته بار بار سلام وکړئ! نو رسول الله ﷺ د هغه سره واپس راغی حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنهُ د هغوی ﷺ لپاره د لمبلو اوبه تيارې کړې چې په هغې رسول الله ﷺ غسل وکړ بيا حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنهُ رسول الله ﷺ ته په زعفرانو يا ورس (خوشبويه

(۱) اخرجه البخاری فی صحيحه ۲/۹۲۳

وابنو) کې رنګ کړی شوي څادر ورکړ چې هغه رسول الله ﷺ پسر کړ بیا یې لاسونه اوچت کړل او دا دعا یې وغوښتله اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! ته خپل رحمتونه او مهرباني د سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خاندان باندې نازلې کړې! بیا رسول الله ﷺ څه طعام اوخوړلو بیا کله چې هغوی ﷺ د واپس کېدو اراده وکړه نو حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رسول الله ﷺ ته یو خرپیش کړ چې په هغه باندې یو قېمتي څادر تیار کړی وو اچولو حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل اې قیس! د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رسول ﷺ سره لاړ شه! زه ورسره یو ځای روان شوم! ما ته یې وفرمایل چې ما سره سور شه! ما انکار وکړ رسول الله ﷺ وفرمایل چې یا خو ته سپور شه! یا واپس لاړ شه! په دې باندې زه واپس لاړم!(۱)

**هغه سړی چې اجازه یې واخیسته خو سلام یې ونه کړو:**

حضرت ربعي بن حراش رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما ته د بنوعامر قبیلې یو سړی دا قصه واوروله چې زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم او عرض مې وکړ چې آیا زه دننه درشم؟ رسول الله ﷺ وینزې ته وفرمایل چې بهر ته لاړه شه! او دې سړی ته اووایه چې داسې ووایه! السلام علیکم، آیا زه دننه درشم؟ ده په دننه راتلو کې ښه طریقه غوره نکړه! ما د رسول الله ﷺ دا خبره له د باندې نه واورېدله او د وینزې بهر راتلو نه مخکې ما وویل السلام علیکم! آیا زه دننه درشم؟ رسول الله ﷺ وفرمایل وعلیک، دننه راشه! مخکې یې نور حدیث هم ذکر کړی. (۲)

**رسول الله ﷺ ته د ورتلو لپاره د حضرت عمر، ابوهریرة او علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ اجازه غوښتل:**

ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ په خپله بالاخانه کې وو چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی او ویې ویل السلام علیک یارسول الله! السلام علیکم! آیا عمر دننه درشي؟ (۳)

خطیب دا واقعه په دې الفاظو سره ذکر کړې ده چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل السلام علیک أیها النبي ورحمة الله وبرکاته) السلام علیکم آیا عمر دننه درشي؟ (۴)

۱: عند ابی داود کذافی جمع الفوائد ۲/۱۴۳

۲: اخرجه البخاری فی الادب ۱۵۸ واخرجه ابوداود کذافی جمع الفوائد ۲/۱۴۳

۳: اخرجه احمد قال الهیثمی ۸/۴۴ رجاله رجال الصحیح اه.

٤: اخرجه ابوداود والنسائی عن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نحوه والخطیب واللفظ له والترمذی کذافی الکنز ۵/۵۱

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې ما د رسول الله ﷺ نه درې ځل دننه راتلو لپاره اجازه وغوښته بيا رسول الله ﷺ ما ته اجازه راکړ.(۱)

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ يو سړي ولېږه او مونږ يې راوغوښتو مونږ خلک راغلو او مونږ اجازه وغوښته.(۲)

حضرت سفينه رَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمايي چې زه رسول الله ﷺ سره ووم چې په دې کې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ راغی او هغه د اجازې اخيستو لپاره روغوندې دروازه وټکوله رسول الله ﷺ وفرمايل چې د ده لپاره دروازه پرانيزئ! (۳)

**د اجازه غوښتو په وخت کې به دروازې ته مخامخ نه ودرېږي:**

سعد بن عباده رَضِيَ اللهُ عَنهُ دروازې ته مخامخ ودرېدو او د دننه تلو اجازه يې وغوښتله رسول الله ﷺ وفرمايل چې اجازه غواړې نو دروازې ته مخامخ مه ودرېږه! په بل روايت کې دا دی چې حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ په کور کې وو زه راغلم او دروازې ته مخامخ ودرېدم! او ما اجازه وغوښتله رسول الله ﷺ اشاره وکړه چې لږ اخوا شه! زه يو خوا ته شوم او بيا راغلم اجازه مې وغوښتله رسول الله ﷺ وفرمايل چې د اجازې وغوښتو ضرورت خو صرف د نظر له وجې نه وي. (۴)

**مخکې د اجازې نه کورته دکتلو ممانعت:**

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې يو سړی د رسول الله ﷺ يوې کمرې ته سر ورښکاره شو رسول الله ﷺ وليده رسول الله ﷺ د يو غشي يا د څو غشو څوکې راواخيستلې او د هغه خواته ودرېدو ما هغوی ته کتل چې هغوی د هغه د اچانک وهلو دپاره ګواکې موقعه ګوري. (۵)

حضرت سهل بن سعد ساعدي رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي چې يو سړی د رسول الله ﷺ د دروازې په سوري کې وکتل هغه وخت د رسول الله ﷺ په لاس کې يوه ږومنزه وه چې په هغې سره يې سر ږومنزولو کله چې رسول الله ﷺ هغه په کتلو وليده نو ويې فرمايل چې که چېرې ما ته پته واي

---

۱: اخرجه البیهقی قال البیهقی حسن غریب کذافی الکنز ۵/۵۱

۲: اخرجه ابویعلی قال الهیثمی ۸/۴۸ رجاله رجال الصحیح غیر اسحق بن اسرائیل وهو ثقة

۳: اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ۸/۴۵ وفیه ضرار بن صرد وهو ضعیف.

۴: اخرجه الطبرانی ورجال الروایة الثانیة الصحیح کما قال الهیثمی ۸/۴۴

۵: اخرجه البخاری ۲/۹۲۲

چې ته ما ته ګورې! نو ما په دې ږومنز باندې ستا سترګه وهلې وای صرف د نظر کولو له وجې نه د اجازې اخیستو حکم ورکړی شوی دی.(۱)

**ابوموسی اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د درې ځلي اجازې غوښتو باوجود اجازت ونکړو**

حضرت ابوسعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې زه د انصارو په یو مجلس کې ناست وم چې په دې کې حضرت ابوموسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په وېره کې راغی او وې ویل چې ما د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه درې ځل اجازت وغوښتو خو ما ته اجازه ملاو نشو اخر زه واپس راغلم حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ابوموسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ را وغوښتلو او ورته یې وفرمایل چې تاسو دننه ولې رانغلئ؟ حضرت ابوموسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې ما درې ځل اجازه اوغوښتو خو ما ته اجازه ملاو نشو نو زه واپس راغلم او رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې په تاسو کې څوک درې ځل اجازه اوغواړي او هغه ته اجازه ملاو نشي نو هغه له په کار دی چې واپس لاړ شي حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې ته به په دې باندې شاهدان پېش کوې! آیا په تاسو کې چا د رسول الله ﷺ نه دا خبره اورېدلې ده؟ حضرت اُبي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل مونږ ټولو د رسول الله ﷺ نه دا حدیث اورېدلی دی ځکه چې تاسو ته د دې حدیث اورولو لپاره په مونږ کې د ټولو نه کم عمره سړی به ودرېږي زه د ټولو نه وړوکی وم زه اودرېدلم! او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته مې اوښودل چې رسول الله ﷺ دا خبره ارشاد فرمایلې وه.(۲)

حضرت عبید بن عمیر راوي د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا جمله نقل کړې ده چې د رسول الله ﷺ دا خبره زما نه واقعي پټه پاتې شوې وه بس په بازارونو کې اخیستلو او خرڅولو کې مشغول اوسېدم!(۳)

حضرت ابوموسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې د حاضرېدو لپاره درې ځله اجازه وغوښتله ما ته اجازه ملاو نه شوه زه واپس روان شوم! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سړی راولېږه او زه یې را وغوښتم زه راغلم نو ما ته یې وفرمایل چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ بنده! تا ته زما په دروازه باندې انتظار کول ډېر مشکل شو تا ته معلوم ول پکار دي چې خلکو ته ستا په دروازه باندې کول هم داسې مشکل معلومېږي ما وویل نه زه د له دې وجې

۱: عنده ایضاً ۲/۱۰۲
۲: اخرجه البخاری ۲/۹۲۳
۳: عند د ایضاً ۲/۱۰۹۲

نه يم واپس شوي بلكې ما تاسو نه درې ځل اجازه وغوښته كله چې ملاو نه شوه نو زه واپس لاړم حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې تا دا خبره د چا نه اوريدلې ده؟ چې دريو ځلو كې اجازه ملاو نشي نو سړى دې واپس ځي ما وويل چې ما دا خبره د رسول الله ﷺ نه اوريدلې ده حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې دا څنګه كيداى شي چې كومه خبره مونږ د رسول الله ﷺ نه نه وي اوريدلې هغه دې تا اوريدلې وي كه چيرې ته پدې باندې شاهدان رانه وړلې نو زه به تا ته عبرتناكه سزا دركړم! زه د هغه ځاى نه بهر ته راغلم او څو انصار په مسجد كې ناست وو زه هغوى ته ورغلم ما د هغوى نه دې باره كې پوښتنه وكړه نو هغوى وويل چې آيا په دې كې د چا شك شته؟ ما ورته د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خبره بيان كړه نو هغوى وويل چې تا سره به زمونږ د ټولو نه كم عمره سړى لاړ شي په دې باندې زما سره حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يا حضرت ابو مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ودريدو او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له لاړ او هلته چې لاړ نو هغه دا واقعه واوروله چې رسول الله ﷺ يو ځل د حضرت سعد بن عباده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ملاويدو د پاهر لاړ او مونږ هم ورسره وو هلته چې ورسيده نو رسول الله ﷺ سلام واچولو خو هغوى ﷺ ته د ننه د تلو اجازه ملاو نه شو بيا رسول الله ﷺ ورته دوباره سلام وكړ بيا په دريم كرت هم سلام وكړ خو رسول الله ﷺ ته اجازه ملاو نشو نو رسول الله ﷺ وفرمايل چې كوم څه زمونږ په ذمه وو هغه مو وكړل د دې نه پس هغوى ﷺ واپس راغلل د دروسته نه حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په خدمت كې را ورسيده او عرض يې وكړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! په هغه ذات مې دې قسم وي! چا چې تاسو ته حق دركړى دى او را ليږلى يې يې! تاسو چې څومره ځل سلام وكړ هر ځل مې ستاسو سلام واوريده او ما هر ځل جواب دركړ خو ما غوښتل چې تاسو په ما باندې او زما په كوروالوو باندې بار بار سلامونه واچوئ! له دې وجې نه ما ورو غوندې جواب دركاوه نو حضرت ابو موسى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه د رسول الله ﷺ د حديث په باره كې پوره د امانتدارى نه كار اخيستونكى يم حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل او زه تا هم داسې ګڼم! خو ما او غوښتل چې د زيات اطمنان لپاره په ښه شان د دې تحقيق وشي.(۱)

**د اجازې غوښتو باره كې د بعض صحابه كرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ قصې:**

حضرت عامر بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې زما يوې وينزې د حضرت زُبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لور

(۱) عند البخاري ايضاً في الادب المفرد.

ځان سره کړه او حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورغله او هغې دروازې ته رسېدلو بانـدې وویــل آیـا زه دننـه ورشـم؟ هغـوی وفرمایــل نـه! هغـه واپـس لاړه نـو حضـرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې دا راوغواړئ! او ورته ووایئ! چې هغه دې د اجازې اخیستلو لپاره داسې وایي چې السلام علیکم آیا زه دننه درشم؟(۱)

حضرت اسلم رَحِمَهُ اللهُ وایي چې ما ته حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل: اې اسلم! زما په دروازه باندې څوکۍ کوه! او د چا نه څه شي بلکل مه اخله! یوه ورځ هغوی زما په بدن باندې نوې جامې ولیدې نو پوښتنه یې وکړه چې تا ته دا جامې د کوم ځای نه ملاو شوې؟ ما وویـل چې حضرت عبید الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ما ته را کړی دی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې د حضرت عبید الله نه خو یې اخله او د بل چا نه یې هېڅېږ مه اخله! بیا یوه ورځ زه په دروازه باندې ولاړ ووم څوکۍ مې کوله چې حضرت زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی زما نه یې پوښتنه وکړه چې زه دننه لاړ شم؟ ما وویل چې امیر المؤمنین څه وخت لپاره مصروف دی حضرت زبیر لاس اوچت کړ او دومره په زوره یې د غوږ په شا باندې ووهلم چې زما د خلې نه چیغه اووتله زه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د ننه ورغلم هغوی پوښتنه وکړه په تا څه وشو ؟ ما وویل چې حضرت زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ووهلم او د هغه ټوله خبره مې ورتـه وکـړ لـه پـه دې بانـدې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه به زبیر سره ګورم! بیا یې وفرمایل چې هغه دننه راولېږه! ما هغه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له دننه ولېږه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې دا غلام دې ولې ووهلو؟ حضرت زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل ده ویل چې زه تا دننه نه پرېږدم! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل آیا د دې نه مخکې ده چېرې ته زما د دروازې نه واپـس کړی یې؟ هغه وویل نه! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل نو که چېرې ده تا ته ویلي وو چې لږ شان انتظار وکړه ځکه امیر المؤمنین لږ شان مصروف دی نو تا به لږ شان انتظار کړی وای او زه به دې معذور ګڼلی ووم په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! کله چې یو ځناور زخمي کړی شي نو نور ځناور هغه خوري .(۲)

حضرت زید بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یوه ورځ حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ما ته راغی او دننه راتلو اجازه یې وغوښتله ما ورته اجازه ورکړه زما وینزې زما سر ګومنز کوي

---

۱: اخرجه البیهقي کذافي الکنز ۵/۵۱

۲: اخرجه ابن سعد کذافي الکنز ۵/۵۱

ما وویل اې امیرالمؤمنینه! که چېرې تاسو ما ته پیغام را لیږلی وای نو زه به پخپله ستاسو په خدمت کې حاضر شوی وای حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل نه! ضرورت زما دی له دې وجې نه راتلل ما ته پکار وو.(۱)

یو صاحب وایي چې یو ځل د سهار مانځه نه پس مونږ د حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه د دننه راتلو اجازت وغوښتو هغوی مونږ ته اجازه راکړه او په خپله یې بې بي باندې یې یو ټادر وچاوه او ویې فرمایل چې ما خو خوښه نکړه چې په تاسو انتظار وکړم.(۲)

حضر موسی بن طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې زه د خپل پلار صاحب سره خپلې مور له لاړم نو پلار کمرې ته دننه داخل شو زه هم ورپسې وروسته دننه لاړم نو هغه ما خواته راتاو شو او زه یې دومره په زوره په سینه ووهلم چې زه وروسته په شا طرف پرېوتم بیا یې وفرمایل آیا ته د اجازې غوښتلو نه بغیر دننه راځې؟ (۳)

حضرت مسلم بن نذیر رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې یو سړی د حضرت خذیفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه اجازه وغوښتله او دننه یې سر ورښکاره کړ او وې ویل زه دننه راشم؟ حضرت خذیفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې سترګې خو دننه راغلی دی البته ستا کناټي لا دننه نه دي راغلی او یو سړي وویل آیا زه به د خپلې مور نه هم د تلو اجازه غواړم؟ حضرت خذیفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل که چېرې د مور نه اجازه اونه غواړې! نو کله به ته خپله مور په داسې حالت کې وویني چې ته به یې بلکل نه خوښوې! (۴)

حضرت ابو سوید عبدي وایي چې مونږ حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته لاړو او مونږ د هغوی دروازې سره کېناستو دې لپاره چې مونږ ته د دننه تلو اجازه ملاو شي کله چې په اجازه ملاوېدو کې وخت تېر شو نو زه ودرېدم او د دروازې په سورو کې مې کتل حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د دې پته اولګېده کله چې یې مونږ ته اجازه راکړه نو مونږ دننه لاړو او کېناستو هغوی وفرمایل چې اوس په تاسو کې چا کور ته دننه کتل؟ ما وویل چې ما، ویې فرمایل تا زما کور ته دننه کتل په څه وجه جائز ګڼل؟ ما وویل چې په اجازه ملاوېدو کې

---

۱: اخرجه البخاری فی الادب المفرد ۱۸۹

۲: اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ۸/۴۶ والرجل لم اعرفه وبقیة رجاله رجال الصحیح

۳: اخرجه البخاری فی الادب ۱۵۵ وصحح سنده الحافظ فی الفتح ۱۱/۲۰

۴: اخرجه البخاری ایضا ۱۵۹

وخت لګېدلی وو له دې وجې نه مې وکتل د مستقل کتلو اراده مې نه وه بیا ملګرو د هغوی نه د څو خبرو پوښتنه وکړه ما وویل اې ابو عبدالرحمن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ! تاسو د جهاد په باره کې څه فرمایئ! هغوی وفرمایل چې څوک جهاد کوي هغه به یې ځان لپاره کوي.(۱)

## د الله رب العزت لپاره له مسلمان سره محبت کول

حضرت براء بن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې مونږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو چې په دې کې رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه چې د اسلام د ټولو نه زیات محکم کړئ! کومه یوه ده؟ صحابه وو وویل لمونځ. رسول الله ﷺ وفرمایل چې لمونځ ډېر ښه شی دي خو زه چې د کوم شی پوښتنه کوم هغه دا نه دی صحابه وو وویل چې د رمضان روژې رسول الله ﷺ ووئیل روژه هم ډېر غوره کار دی خو زما مطلب دا نه دی، صحابه وو وویل جهاد، رسول الله ﷺ وفرمایل چې جهاد هم ښه شی دی، خو دا هغه نه دی. بیا یې وفرمایل چې د ایمان د ټولو نه مضبوطه کړئ دا ده چې تاسو د الله رب العزت لپاره محبت وکړئ! او د الله رب العزت لپاره کینه وساتئ!(۲)

حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو ځل رسول الله ﷺ مونږ ته تشریف راوړو او ویې فرمایل چې آیا تاسو ته معلومه ده چې کوم عمل د الله رب العزت د ټولو نه زیات خوښ دي؟ چا وویل چې لمونځ او زکات چا وویل چې جهاد، رسول الله ﷺ وفرمایل چې الله رب العزت ته د ټولو نه زیات خوښ عمل الله رب العزت لپاره محبت کول دي او الله رب العزت لپاره بغض ساتل دي.(۳)

## د متقیانو سره د رسول الله ﷺ محبت

### د حضرت عمار او حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا سره د رسول الله دوستي

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي چې رسول الله ﷺ به صرف متقي سړی سره محبت کولو.(٤)

حضرت عثمان بن ابي العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې دوه سړی داسې دي کله چې رسول الله ﷺ وفات شو نو د رسول الله ﷺ هغه دواړو سره محبت وو یو حضرت عبدالله بن

---

۱: اخرجه احمد قال الهیثمی ۸/۴۴ وابو الاسود وبرکة بن یعلي التمیمي لم اعرفهما
۲: اخرجه احمد وفیه لیث بن ابی سلیم ضعفه الاکثر.
۳: عند احمد ایضاً وفیه رجل لم یسم و عند ابی داود طرف منه کذافي مجمع الزوائد ۱/۹۰
٤: اخرجه ابویعلی واسناده من کما قال الهیثمی ۱۰/۲۷۴

مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُ دویم حضرت عمار بن یاسر رَضِيَ اللهُ عَنهُ. (۱)

حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ به حضرت عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنهُ د لښکر امیر جوړولو ولېږه به یې! او په هغه لښکر کې به د رسول الله ﷺ عام صحابه رَضِيَ اللهُ عَنهُم وو خو چا حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته وویل چې رسول الله ﷺ به ته امیر جوړولې او ځان ته به یې نزدې کولې او تا سره به یې محبت کولو حضرت عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنهُ وویل چې رسول الله ﷺ به واقعي زه امیر جوړولم خو ما ته معلومه نه ده چې رسول الله ﷺ به داسې زما د زړه لګولو لپاره کول یا واقعي د رسول الله ﷺ زما سره محبت وو خو زه تاسو ته دوه سړي داسې ښایم کله چې رسول الله ﷺ وفات شو په هغه وخت کې د رسول الله ﷺ د هغوی سره محبت وو یو حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُ او دویم حضرت عمار بن یاسر رَضِيَ اللهُ عَنهُ. (۲)

د ابن سعد په روایت کې دې نه پس دا مضمون دی چې خلکو وویل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! دا عمار بن یاسر جَلَّ جَلَالُهُ د جنګ صفین په ورځ ستاسو خلکو د لاسونو نه وژل شوي وو حضرت عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنهُ وویل چې تاسو خلک صحیح وایي واقعي هغه زمونږ د لاسونو نه وژل شوی وو.(۳)

**د حضرت علي او حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا پوښتنه او درسول الله جواب:**

حضرت أسامه بن زید رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایي چې زه د رسول الله ﷺ دروازې سره ناست ووم چې په دې کې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ او حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ د دننه تللو اجازې اخیستلو لپاره راغلل او دا یې وویل اې أسامه رَضِيَ اللهُ عَنهُ! دننه لاړ شه! د رسول الله ﷺ نه زمونږ لپاره اجازه وغواړه! زه دننه لاړم او مې ویل چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ او حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ د دننه راتلو اجازه غواړي رسول الله ﷺ وفرمایل تا ته پته ده چې هغوی دواړه ولې راغلي دي؟ ما وویل نه! رسول الله ﷺ وفرمایل ما ته معلومه ده هغوی دننه راولېږه! هغوی دواړه دننه راغلل او عرض یې وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! مونږ تاسو ته دې پوښتنې لپاره راغلي یو چې تاسو ته په خپلو رشته دارانو کې د ټولو نه

---

۱: اخرجه ابن عساکر

۲: عند ابن عساکر ایضاً کذافي المنتخب ۵/۲۲۸

۳: اخرجه ابن سعد ۳/۱۸۸

زیات محبوب څوک دی ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل فاطمه بنت محمد ﷺ هغوی وویل مونږ ستاسو د کور والاوو باره کې پوښتنه نه کوو رسول الله ﷺ وفرمایل چې ما ته په ټولو خلکو کې زیات محبوب هغه څوک دی چې په چا باندې الله رب العزت انعام کړی دی او ما هم په هغه باندې انعام کړی دی او هغه دې اسامه بن زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. دې دواړو حضراتو وویل چې د دې نه پس څوک؟ رسول الله ﷺ بیا علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، په دې باندې حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو خو خپل تره د ټولو نه اخر کې کړ رسول الله ﷺ وفرمایل چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تاسو نه مخکې هجرت کړی دی او زمونږ په نزد درجه د دین د محنت مطابق جوړیږي. (۱)

**دحضرت عائشې او حضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا سره درسول الله ﷺ محبت:**

حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې چا پوښتنه وکړه چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! په خلکو کې تاسو ته د ټولو نه زیات محبوب څوک دی ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل چې عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا! هغه سړي پوښتنه وکړه او په سړو کې څوک؟ رسول الله ﷺ وفرمایل ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. هغه سړي پوښتنه وکړه بیا څوک؟ ویې فرمایل چې ابو عبیده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ!(۲)

حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما پوښتنه وکړه چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو ته په خلکو کې د ټولو نه زیات محبوب څوک دی ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل چې عائشه! ما وویل چې زه په سړو کې پوښتنه کوم رسول الله ﷺ وفرمایل چې د هغې پلار. (۳)

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو سړی رسول الله ﷺ سره ناست وو چې په دې کې یو سړی تېر شو ورسره خوا کې ناست هغه سړي وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما د دغه سړي سره محبت دی رسول الله ﷺ وفرمایل تا هغه ته دا خبره کړې ده؟ هغه وویل نه! رسول الله ﷺ وفرمایل هغه ته اووایه! نو دغه صاحب هغه پسې لاړ او ورته یې وویل چې زه تاسره د الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره محبت ساتم! هغه ورته په جواب کې دا دعا وکړه: (احبک الذي احببتني له) د کوم ذات له وجې نه چې ته ما سره محبت کوې هغه دې تاسره محبت وکړي. (۴)

---

۱: اخرجه الطیالسی والترمذی وصححه والرویانی والبغوی والطبرانی والحاکم کذافی المنتخب ٥/١٣٦

۲: عند ابن عساکر کذافی المنتخب ٤/٣٥١

۳: عند ابن سعد ٨/٦٧

٤: اخرجه ابوداود کذافی جمع الفوائد ٢/١٤٧ واخرجه ابن عساکر وابن النجار عن انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وابونعیم عن الحارث بنحوه کما فی الکنز ٥/٤١

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ځل زه رسول الله ﷺ سره ناست ووم چې په دې کې يو سړی د رسول الله ﷺ خواته راغی سلام يې وکړاو بيا واپس لاړ ما وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما دې سړی سره محبت دی رسول الله ﷺ وفرمايل آيا تا ده ته دا خبره کړې ده؟ ما وويل نه! رسول الله ﷺ وفرمايل چې دا خبره خپل ورور ته وکړه نو زه هم هغه وخت د هلته نه روان شوم او لاړم هغه ته مې سلام وکړ بيا مې د هغه اوګه ونيوه او ومې ويل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه تا سره د الله رب العزت لپاره محبت کوم! هغه وويل زه هم تا سره د الله رب العزت لپاره محبت کوم! او ما وويل که چېرې ما ته رسول الله ﷺ د دې حکم نه واى کړى نو ما به دا تا ته د ويلو کار نه واى کړى!(١)

**د الله تعالى سره د صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ قصې:**

حضرت عبدالله بن سرجس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د رسول الله ﷺ په خدمت کې عرض وکړ چې زما د حضرت ابوذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره محبت دی رسول الله ﷺ وفرمايل آيا تا هغه ته دا خبره کړې ده؟ ما وويل نه! رسول الله ﷺ وفرمايل هغه ته او وايه! بيا کله چې زما ابوذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره ملاقات وشو نو ما وويل زما تا سره د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رضا لپاره محبت دی هغه ما ته په جواب کې دا دعا وکړه: (احبک الذي احببتني له) بيا زه واپس راغلم رسول الله ﷺ ته مې وويل رسول الله ﷺ وفرمايل چې د خپل محبت په ښودلو کې هم اجر او ثواب ملاوېږي. (٢)

حضرت مجاهد رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې يو سړی د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خوا کې تېر شو نو حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې دا سړی زما سره محبت ساتي خلکو پوښتنه وکړه تاسو ته څنګه پته ولګېده؟ هغه وويل ځکه چې زه ده سره محبت ساتم! ځکه چې د زړه نه زړه ته لار وي که چېرې ستاسو د چا سره محبت وي نو پوه شئ! چې د هغه هم تاسو سره محبت دی .(٣)

حضرت مجاهد رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې د رسول الله ﷺ يو صحابي ما سره ملاو شو او د

---

١: عند الطبراني ١٠/٢٨٢ رواه الطبراني فى الكبير والاوسط ورجالهما رجال الصحيح غير الارزق بن علي وحسن بن ابراهيم و كلاهما ثقة.

٢: عند الطبراني قال الهيثمي ١٠/٢٨٢ وفيه من لم اعرفهم

٣: اخرجه ابويعلي وفيه محمد بن قدامه شيخ ابى يعلى ضعفه الجمهورو وثقه ابن حبان وغيره وبقية رجاله ثقات كما قال الهيثمي ١٠/٢٧٥

وروسته نه يې زما او که ونيوه او ويې فرمايل چې په غور سره واوره! زما تا سره محبت دی ما ورته په جواب کې دا دعا وکړه: (احبک الذي احببتني له) بيا يې وويل چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي کله چې د يو سړي د چا سره محبت وي نو هغه له په کار دی چې هغه ورته خبر ورکړي که چېرې رسول الله ﷺ دا نه واي و فرمايلي نو ما به تا ته نه واي ويلي بيا يې ما ته د واده پيغام راکړ او د ايې وويل چې گوره مونږ کره يوه نجلۍ ده! نور خو په هغې کې ډېرې خوبيانې دي صرف يو يو عيب پکې دی چې هغه کاڼه ده يعنې د هغې عيب يې هم وښوده د دې لپاره چې معامله صفا وي.(۱)

## د مسلمان سره قطع رابطه او جدا کېدل

**د حضرت عائشې او حضرت ابن زبير رضي الله عنهما قصه:**

د رسول الله ﷺ د بي بي محترمې حضرت عائشې رضي الله عنها د مور له طرفه ورور د حضرت طفيل ځوی حضرت عوف رضي الله عنه فرمايي چې حضرت عائشې رضي الله عنها څه واخيستل بيا يې څه په هديه کې ورکړل نو هغې ته پته اولگېده چې زما خوريي حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه په دې باندې ويلي دي چې په الله جل جلاله قسم! داسې زيات خرچ کولو نه يا خو به حضرت عائشه رضي الله عنها پخپله منع شي کنې زه به پرې پابندي ولگوم او هغه به منع کړم حضرت عائشې رضي الله عنها پوښتنه وکړه چې آيا حضرت عبد الله رضي الله عنه دا خبره کړې ده؟ خلکو وويل هو! حضرت عائشې رضي الله عنها وويل چې زه د الله جل جلاله لپاره نذر منم! چې زه به د ابن زبير سره هيڅ کله خبرې نه کووم! کله چې د خبرو اترو کافي ورځې وشوې نو حضرت ابن زبير رضي الله عنه څوک خپل سفارشي جوړ کړ حضرت عائشې رضي الله عنها ته يې ولېږه هغې وفرمايل په الله جل جلاله قسم! زه به د ابن زبير په باره کې نه خو د چا سفارش قبول کړم او نه به خپل نذر مات کړم کله چې حضرت ابن زبير رضي الله عنه وکتل چې ډېره زياته موده تېره شوه نو هغه د قبيله بني زهره حضرت مسور بن مخرمه او حضرت عبد الرحمن بن اسود بن عبد يغوث رضي الله عنه سره خبره وکړه او ورته يې وويل چې زه تاسو دواړو ته د الله جل جلاله واسطه درکوم او وايم چې تاسو ما حضرت عائشې رضي الله عنها له ضرور بوځئ! ځکه چې زما سره د قطع اړيکې نذر منل د هغې لپاره جائز نه دي نو دې دواړو حضراتو په

(۱) اخرجه الطبراني وفيه ليث بن ابي سليم والا كثر على ضعفه كما قال الهيثمي ۱/۹۰

خپلو څادرونو کې پټ حضرت ابن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوستلو او حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه يې اجازه وغوښته او دا يې وويل (السلام عليک ورحمة الله وبركاته) آيا مونږ دننه درشو؟ هغې وويل راشئ! هغې ته پته نه وه چې دې دواړو سره ابن زبير هم دی کله چې دا حضرات دننه راغلل نو د حضرت ابن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د پردې دننه ورغی او حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته ورترغاړه وتلو او هغې ته يې د الله جَلَّ جَلَالُهُ واسطه هم ورکړه او په ژړا شو او حضرت مسور رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عبدالرحمن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم هغې ته واسطه ورکوله چې ته ابن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره خامخا خبرې وکړه! او د هغه عذر قبول کړه او دا يې وويل چې تاسو ته معلومه ده چې رسول الله ﷺ د يو مسلمان سره د قطع اړيکې نه منع فرمايلې ده او د هيڅ يو مسلمان لپاره جائز نه دي چې هغه خپل مسلمان ورور سره د درېوو ورځو نه زيات خبرې اترې پرېږدي. کله چې دې حضراتو د صله رحمۍ او معاف کولو فضائل بار بار بيان کړل نو حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دا دواړه وپوهول او په ژړا شوه او وې ويل چې ما نذر منلې دی او نذر ماتول ډېر سخت دي خو دې دواړو اصرار کولو تر دې پورې چې عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حضرت ابن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره خبرې وکړې او د خپل قسم د ماتولو په كفاره کې يې څلوېښت غلامان ازاد کړل او کله چې به ورته خپل دا قسم رايادېدلو نو دومره به يې ژړل چې لوپټه به يې په اوښکو لنده کېده.(۱)

حضرت عروه بن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د رسول الله ﷺ او د حضرت ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه پس د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د ټولو نه زيات محبت د حضرت عبدالله بن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره وو ځکه چې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د دې خپل خوريي تربيت پخپله کړی وو او هغه به هم د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره د ټولو نه زيات ښه رويه کوله د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عادت دا وو چې هرڅه به يې لاس ته ورتلل خيرات کول به يې، نو حضرت ابن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا لاسونه د دومره زياتې خرچې نه منع کول په کار دی حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمايل چې آيا زما لاسونه به بندولې شي؟ زه هم قسم خورم چې زه به د هغه سره چېرې هم خبرې ونه کړم حضرت ابن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ډېر پرېشانه شو او هغه د قريشو ډېر کسان او خاص توګه باندې د رسول الله ﷺ د مور د طرفه د نيکه خاندان والا خپل

---

(۱) اخرجه البخاری ۸۹۷/۱ اخرجه البخاری فی الادب المفرد ۵۹ عن عوف بن الحارث بن الطفيل نحوه.

سفارشيان جوړ کړل او د حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا په خدمت کې يې اولېږل خو هغې د چا سفارش قبول نه کړ اخر د رسول الله ﷺ د مور د طرفه د نيکه خاندان والاوو نه د قبيله بنو زهره حضرت عبدالرحمن بن اسود بن عبديغوث رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت مسور بن مخرمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت ابن زبير ته وويل کله چې مونږ اجازه اوغواړو او دننه څو نو ته پردې ته دننه ورشه! نو هغه هم داسې وکړل اخر حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا د هغه نه راضي شوه او هغې خپل قسمات کړ بيا حضرت ابن زبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا په خدمت کې لس غلامان ازاد کړل او بيا ورسته يې نور غلامان هم ازادول تر دې چې څلوېښت غلامان يې ازاد کړل او وې فرمايل چې څلوېښت غلامان ازادولو سره مې تسلي نه کېږي ځکه چې ښه خو دا وه چې ما په نذر کې څه عمل پخپل ځان باندې مقرر کړې دی د دې لپاره چې اوس د هغې کولو سره زه مطمئنه شوې واې مثلاً داسې مې ويلي واې که چېرې ما د ابن زبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره خبرې وکړې نو دوه غلامان به ازادوم نو اوس به مې دوه ازاد کړي واې او تسلي به مې شوې واې ما خو صرف وويل چې زه نذر منم چې ابن زبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره به خبرې نه کوم او په دې کې مې د عمل څه مقدر مقرر نه کړ.(۱)

# د خلکو په منځ کې صلح (روغه) کول

## د اهل قباء خصومت او د رسول الله ﷺ اصلاح کول:

حضرت سهل بن سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې د قباوالاوو پخپل مينځ کې جګړه وکړه تر دې چې هغوی په يو بل باندې کاڼي اورول رسول الله ﷺ ته د دې پته اولګېده نو وې فرمايل راځئ! چې ورشو! د هغوی صلح وکړو. (۲)

د حضرت سهل په يو روايت کې دا دی چې د بنو عمرو بن عوف پخپل مينځ کې څه جګړه وشوه نو رسول الله ﷺ خپل څه اصحابه ځان سره کړل او د هغوی د صلح کولو لپاره يې تشريف يوړو نو مخکې نور مضمون هم دی.(۳)

## د دوه متخاصمينو ترمنځ د رسول الله ﷺ اصلاح کول:

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې د رسول الله ﷺ په خدمت کې عرض وکړ اې شو چې که

---

۱: اخرجه البخاري ايضا في الصحيح ۱/۴۹۷
۲: اخرجه البخاري ۱/۳۷۱
۳: عند البخاري ايضاً ۳۷۰

چېرې تاسو عبدالله بن أبي ته ورشئ! نو دا به دېره مناسبه وي نو رسول الله ﷺ په خره باندې سور شو او تشریف یې یوړو او مسلمانان هغوی ﷺ سره پیاده روان وو د لارې زمکه شوره وه کله چې رسول الله ﷺ هغه ته ورسېده نو هغه بدبخت وویل ته زما نه لرې اوسه! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم د رسول الله ﷺ د خره د بدبویی نه ما ته تکلیف رارسي په دې باندې یو انصاري وویل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! د رسول الله ﷺ خرستا نه زیات خوشبویه دی دې او رېدو سره د عبدالله د قوم یو سړی په غصه شو او دواړو یو بل ته بدرد ویل شروع کړل په دې باندې د دې دواړو نه د هر یوه ملګرو ته غصه ورغله تر دې چې هغوی په لرګیو لاسونو او پڼو باندې یو بل ووهي حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې مونږ ته بیا دا خبر ملاو شو چې په دې باندې دا آیت نازل شو: وَإِنْ طَآئِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا (۱)

ترجمه: او که چېرې په مسلمانانو کې دوه ډلې په خپل مینځ کې جنګ وکړي نو د هغوی دواړو په مینځ کې په انصاف سره صلح وکړئ!(۲)

او د بیمارپُرسی په عنوان کې د حضرت امام بخاري دا حدیث د حضرت اسامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په یو روایت سره تېر شوی دی چې په دې باندې مسلمانان، مشرکین او یهودانو یو بل ته بدرد ویل شروع کړل او خبره دومره زیاته شوه چې په یو بل باندې حمله کېدو والا وو له دې وجې نه رسول الله ﷺ هغوی تر هغه په نرمی دعوت کړل چې غلي شول.

**رسول الله ﷺ او د اوس او خزرج قبیلو ترمنځ اصلاح کول:**

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې د انصارو د اوس او خزرج دوه قبیلې وې او د جاهلیت په زمانه کې د هغوی خپل مینځ کې لویه دشمني وه، کله چې رسول الله ﷺ دوي ته تشریف راوړو نو دا جمعهه دشمني ختمه شوه او الله جَلَّ جَلَالُهُ د هغوی په زړونو کې محبت پیدا کړیو ځل دا حضرات خپل یوه مجلس کې ناست وو چې د اوس یو سړی داسې شعر وویلو چې په هغې کې د خزرج د بدی بیان وو نو په جواب کې د خزرج یو سړی د اوس د بدی والا شعر وویلو هغوی دواړو وار په وار داسې شعرونه ویل تر دې چې هغوی یو بل سره جنګ لپاره راپاڅېدل او خپلې وسلې یې راواخیستلې او جنګ لپاره روان شول دا خبر

---

۱: سورة حجرات آیت ۹

۲: اخرجه البخاری ۱/۳۷۰

رسول الله ﷺ ته ورسېده او په دې باره کې وحي هم نازله شوه هغوی ﷺ په جلتۍ سره راغلل او د هغوی ﷺ لاندې پندی ېښکاره وې دې لپاره چې په اسانتیا سره تېزلاړ شي چې رسول الله ﷺ کله هغوی ولیدل نو په اوچت اواز سره یې دا آیت ولوسته: يَآأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنتُم مُّسْلِمُونَ (۱)

ترجمه: اې ایمان والاوو! د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه اووېرېږئ! څنګه چې د وېرې حق دی او بغیر د اسلام نه په بل څه حالت کې ځان مه وژنئ! هغوی ﷺ نور ایتونه هم ولوستل دې آیتونو اورېدو سره دغه حضراتو خپلې وسلې وغورځولې او یو بل ته ورتر غاړې وتل او په ژړا شول.(۲)

## د مسلمان سره وعده پوره کول

### د وفات په وخت کې دحضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وصيت:

حضرت هارون بن رباب رَحِمَهُ اللَّهُ وايي کله چې د حضرت عبد الله بن عمرو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د وفات وخت نزدې شو نو وېې فرمایل چې فلانی سړی اوګورئ! څکه چې ما هغه سره د خپلې لور د واده کولو یو قسم وعده کړې وه زه نه غوارم چې الله جَلَّ جَلَالُهُ سره زما ملاقات په هغه حال کې اوشي چې د نفاق د درېوو نښو نه یوه نښه یعنې وعده خلافي زما نه شوې وي دې لپاره تاسو زه د دې خبرې شاهد جوړوم چې ما د خپلې لور واده کړی دی.(۳)

## په مسلمان د بدګمانی نه ځان ساتل

### د دوه صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قصه:

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې یو سړی په یو مجلس باندې تېر شو هغه سړی سلام وکړ چې د هغې هغه مجلس والاوو جواب ورکړ کله چې هغه د هغې خلکو نه مخکې لاړ نو د مجلس یو سړي وویل چې زما خو دا سړی بلکل خوښ نه دی د مجلس نورو خلکو وویل چُپ شه! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! مونږ به ستا دا خبره دغه سړی ته ضرور وایو اې فلانیه! لاړ شه! او ده چې څه وویل دا هغه سړی ته اووایه نو هغه لاړ او هغه سړی ته یې تو له خبره وکړه په دې باندې هغه سړی لاړ او رسول الله ﷺ ته یې ټوله خبره وکړه

---

۱: سورة آل عمران آیت ۱۰۲

۲: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ۸/۸۰ رواه الطبراني في الصغير وفيه غسان بن الربيع وهو ضعيف.

۳: رواه الطبراني في الصغير وفيه غسان بن الربيع وهو ضعيف

او هغه سړی چې څه ویلي وو هغه یې هم ورته وویل او دا یې وویل چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو هغه پسې سړی اولېږئ! او راوې غواړئ! او پوښتنه ترې وکړئ! چې هغه ما سره ولې کینه کوي نو هغه سړی چې راغی رسول الله ﷺ ترې پوښتنه وکړه چې ته دې سړي سره ولې کینه ساتې؟ هغه وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه د ده ګاونډي یم او زه دا ښه پېژنم! ما دا کله په نقل کولو نه دی لیدلی دا خو بس صرف هم دا فرض لمونځ کوي چې نېک او بد هر یو یې کوي بل سړي وویل لږ د ده نه پوښتنه وکړئ! چې آیا چېرته دا سې شوی دی چې ما د مانځه لپاره اودس نه وي کړی یا لمونځ مې بې وخته کړی وي؟ هغه سړي وویل نه! بیا هغه سړي وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه د ده ګاونډي یم او دا ډېر ښه پېژنم ما دي چېرې یو فقیر ته په طعام ورکولو نه دی لیدلی یعنې په نفلي صدقه ورکولو باندې، بس دا خو صرف زکات ورکوي چې نېک او بد هر یو یې اداء کوي هغه بل سړي وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو د ده نه پوښتنه وکړئ! چې آیا ده زه یو سوالګري لره منع کولو باندې لیدلی یم؟ رسول الله ﷺ ترې پوښتنه وکړه نو هغه وویل نه! بیا هغه سړي وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه د ده ګاونډي یم او زه دا ښه پېژنم ما دي کله هم په نفلي روژو نیولو نه دی لیدلی دا خو بس د رمضان د میاشتې روژې نیسي چې نېک او بد هر یو یې نیسي هغه بل سړي وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو د ده نه پوښتنه وکړئ! چې آیا ده چېرته دا لیدلی دي چې زه مریض هم نه یم او په سفر کې هم نه یم او بیا ما په هغه ورځ روژه نه وي نیولې؟ رسول الله ﷺ ترې دې باره کې پوښتنه وکړه نو هغه وویل نه! په دې باندې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسول هغه ته وفرمایل چې زما په خیال کې خو دا سړی ستا نه غوره دی ځکه چې تاکې کینه ده او په ده کې نشته. (۱)

# د مسلمان مدح او صفت کول او هغه مدح چې مکروه ده

### د رسول الله ﷺ او بني لیث قبیلې یو سړي قصه:

حضرت عباده بن الصامت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې د بنو لیث قبیلې یو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کې راغی او درې ځله یې عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه تاسو ته شعر اورول غواړم اخر کې څلورم ځل باندې رسول الله ﷺ ورته اجازه ورکړه نو هغه هغه شعرونه

---

(۱) اخرجه ابن عساکر کذا فی کنز العمال ۲/۱۵۹

واورول چې په هغې کې د رسول الله ﷺ تعريف شوی وو رسول الله ﷺ چې دا واورېده نو وې فرمايل که چېرې يو شاعر ښه شعر وايي نو تا هم ښه شعرونه ويلي دي.(١)

**حضرت اسامه بن زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت خلاد بن سائب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مدح كول:**

حضرت خلاد بن سائب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې زه حضرت اسامه بن زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته لاړم هغه زما په مخکې زما تعريف وکړ او دا يې وويل چې ما ستا په مخکې ستا تعريف دې لپاره وکړ چې ما د رسول الله نه اورېدلی دی کله چې د مؤمن په مخکې د هغه تعريف کېږي نو د هغه ايمان زياتېږي ځکه چې په تعريف هغه مغروره کېږي نه بلکې د هغه به په اعمالو باندې يقين زياتېږي چې د نېکو اعمالو په وجه خلک تعريف کوي.(٢)

**د هغه چا په باره کې د رسول الله ﷺ قول چې هغه په مدح کې مبالغه وکړه:**

حضرت مطرف رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې زما پلار ما ته دا قصه بيان کړه چې د بنوعامر وفد سره زه رسول الله ﷺ ته ورغلم مونږ عرض وکړ چې تاسو زمونږ سردار يئ! رسول الله ﷺ وفرمايل چې حقيقي سردار خو الله رب العزت دی بيا مونږ عرض وکړ چې تاسو په فضيلت کې زمونږ نه زيات يئ! او مونږ د ټولو نه زيات سخيان يو رسول الله ﷺ وفرمايل البته تاسو دا ويلي شئ! بلکې په دې هم څه کمی وکړئ! نو ښه ده چې شيطان په تا باندې غلبه حاصلولو سره خپل وکيل دې جوړ نکړي د دغه خلکو په مبالغه باندې رسول الله ﷺ د خوښې اظهار وفرمايلو رزين د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه هم داسې روايت نقل کړی دی په هغې کې دا مضمون هم دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل چې زه دا نه غواړم چې الله رب العزت چې کومه درجه ما ته راکړې ده د هغې نه ما زيات کړئ! زه محمد بن عبدالله، د الله جَلَّ جَلَالُهُ بنده او د هغه رسول يم! (٣)

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کې عرض وکړ اې په مونږ کې د ټولو نه غوره! او د ټولو نه د غوره ځويه! او اې زمونږ سرداره! او زمونږ د سردار ځويه! په دې باندې هغوی ﷺ وفرمايل تاسو زما په باره کې هغه څه وايئ! چې ما ته الله رب العزت راکړی دی زه د الله جَلَّ جَلَالُهُ بنده او د هغه رسول يم!(٤)

---

١: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ٨/١١٩ وفيه راو لم يسم وعطاء بن السائب اختلط.
٢: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ٨/١١٩ وفيه ابن لهيعه وبقية رجاله وثقوا.
٣: اخرجه ابوداود كذافي جمع الفوائد ٢/١٥٠
٤: عند ابن النجار كذافي الكنز ٢/١٨٢ واخرجه احمد عن انس نحوه كما في البداية ٦/٢٤٤

**رسول الله ﷺ او د خپل ملګري يا دوست دمدح کولو طريقه:**

حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې يو سړی د رسول الله ﷺ په خوا کې د بل سړی تعريف وکړ نو رسول الله ﷺ هغه ته درې ځل وفرمايل چې تا د خپل ملګري څټ مات کړ په تاسو کې چې څوک د چا صفت مخامخ کوي او هغه ته د هغه صفات واقعي معلوم يودي نو داسې ويل په کار دی چې زما د فلاني په باره کې دا ګمان دی او الله جَلَّ جَلَالُهُ هغه ښه پيژني، داسې دې نه کوي چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په مخکې هغه څوک پاک اوګڼي او پيش يې کړي بلکې داسې دې وايي چې زما ګمان داسې دي او زما خيال داسې دی.(۱)

حضرت اوبو موسي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ واوريدل چې يو سړی دی د بل چا صفت کوي او په صفت کې د حد نه مخکې ځي نو ويې فرمايل چې تا په زيات تعريف کولو سره د هغه سړی ملا ماته کړه.(۲)

**په دې باره کې دحضرت محجن اسلمی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قصه:**

حضرت رجاء بن ابي رجاء رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې زه يوه ورځ د حضرت محجن اسلمي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره روان شوم تر دې پورې چې د بصرې والاوو مسجد ته ورسېدو هلته د مسجد په دروازو کې يوې دروازې سره حضرت بريده اسلمي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ناست وو په جُمات کې سکبه نومي سړی ډېر اوږد لمونځ کولو حضرت بريده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يو څادر اغوستی وو او د هغه په طبيعت کې تو کې ډېرې وې له دې وجې نه يې وويل چې اې محجن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ! آيا تاسو هم هغسې لمونځ کوئ! لکه څنګه چې يې سکبه کوي؟ حضرت محجن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د دې خبرې څه جواب ورنکړ او واپس راغی او حضرت محجن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې يو ځل رسول الله ﷺ زما لاس ونيوه بيا مونږ روان شو او تلو تلو چې مونږ په احد غر باندې اوختلو رسول الله ﷺ مدينې منورې خواته مخ کړ او وې فرمائيل هي افسوس! يوه ورځ به د دې کلي والا خپل کلي پرېږدي په داسې حال کې چې په هغه ورځ دا کلي ډېر اباد شوي وي دجال به مدينې ته راځي خو هغه ته به د مدينې په هره دروازه باندې ملائکې ملاوېږي له دې وجې نه هغه به مدينې منورې ته نه شي داخلېدای بيا رسول الله ﷺ د احد غر نه لاندې راکوز شو کله چې مونږ مسجد ته ورسېدو نو رسول الله ﷺ يو سړی وليده چې رکوع سجده کوي او لمونځ

---

۱: اخرجه الشيخان وابوداود كذافى جمع الفوائد ۲/۱۵۰

۲: عند البخاری ايضاً كذافى الكنز ۲/۱۸۲

کوي رسول الله ﷺ زما نه پوښتنه وکړه چې دا څوک دی؟ ما وویل چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! فلانی دی او د هغه مې ډېر زیات صفت وکړ رسول الله ﷺ وفرمایل بس کړه! د ده صفت ده ته مه اوروه! دي به تباه شي بیا رسول الله ﷺ پخپلو دواړو لاسونو روان شو او کله چې خپلو کمرو ته ورسېده نو هغوی ﷺ پخپلو دواړو لاسونو سره اشاره وکړه او درې ځل یې وفرمایل چې ستا د دین د ټولو نه غوره عمل هغه دی چې د ټولو نه زیات اسان دي.(۱)

هم دا روایت امام احمد رَحِمَهُ اللهُ هم لږ په تفصیل سره نقل کړی دی د هغه په روایت کې دا دي چې حضرت محجن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې ما د رسول الله ﷺ په مخکې د هغه لمونځ گذار صفت مبالغې سره کولو او ما وویل چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! دا فلانی سړی دی او په ده کې دا او دا خوبیانې دي رسول الله ﷺ وفرمایل چُپ شه! ده ته دا خبرې مه اوروه! کنې ته به دی تباه کړې بیا رسول الله ﷺ روان شو کله چې مونږ حجرې ته ورسېده نو رسول الله ﷺ زما لاس پرېښودو بیا یې وفرمایل چې ستا د دین د ټولو نه غوره عمل هغه دی چې د ټولو نه زیات اسان وي ستا د دین د ټولو نه غوره عمل هغه دي چې د ټولو نه زیات اسان وي ستا د دین د ټولو نه غوره عمل هغه دي چې د ټولو نه زیات اسان وي.(۲)

د امام احمد په یو روایت کې دا دی چې حضرت محجن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! دا فلانی سړی دی او دا په مدینې والاو کې د ټولو نه ښه دی او په مدینې والاو کې د ټولو نه زیات لمونځ گذار دی رسول الله ﷺ دوه یا درې ځل وفرمایل ده ته یې مه اوروه! کنې ته به دی تباه کړې بیا یې وفرمایل چې تاسو داسې امت یئ! چا سره چې الله رب العزت د اسانتیا اراده و فرمایلې ده. (۳)

**په مخامخ مدح کولو د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ غصه کېدل:**

د حضرت ابراهیم تیمي پلار بیان کوي چې مونږ د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ناست وو چې په دې کې یو سړی هغوی ﷺ ته راغی او سلام یې وکړ په خلکو کې یو سړی د هغه مخامخ د هغه صفت کول شوروع کړل حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې تا خو دا سړی حلال کړ الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تا حلال کړي ته د ده د دین په باره کې د ده صفت کوې!(۴)

---

۱: اخرجه البخاری فی الادب المفرد۵۱ ۰

۲: اخرجه امام احمد ۵/۳۲ عن رجاء بطوله نحوه.

۳: اخرجه ابن ابي شيخه والبخاری فی الادب عن ابراهيم التيمي عن ابيه كذافی الكنز ۲/۸۲

٤: اخرجه ابن ابي شيبة والبخاری فی الادب عن ابراهيم التيمي عن ابيه كذافی الكنز ۲/۱۸۲

**د حضرت عمر او حضرت جارود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قصه:**

حضرت حسن رَحِمَهُ اللهُ وايي چې يو ځل حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ناست وو هغوى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره کوره هم پرته وه او خلک هم د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه گير چاپېره ناست وو چې مخامخ حضرت جارود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغى نو يو سړي وويل چې دا د ربيعه قبيلې سردار دي د هغه دا خبره حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او هغه سره ناستو خلکو او پخپله جارود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم واورېدله نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه په کوره وواهه نو حضرت جارود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اويل چې اې اميرالمؤمنين! ما ستاسو څه قصور کړى دى ؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل تا زما څه قصور کړى دى ؟ آيا تا د هغه خبره نه ده اورېدلې؟ حضرت جارود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل ورېدلې مې ده! نو بيا څه وشو ؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل ما ته د دې خبرې وېره وشه چې د هغه تعريفي الفاظو سره چېرته ستا په زړه کې د عُجب او لويي. او د کبر وغيره بد اثر ونه شي له دې وجې نه ما وغوښتل چې دا بتول اثر لرې کړم.(١)

**حضرت مقداد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دمداحانو په مخ خاورې اوشکلې ور اچول:**

حضرت همام بن حارث رَحِمَهُ اللهُ وايي چې يو سړي د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صفت کولو نو حضرت مقداد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې د بدن نه دروند وو هغه د هغه سړي خواته راغلو او په زنگونو باندې کېناسته او د کنکو نه يې لپې ډکولې او د هغه په مخ يې اچولې او حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې په تا باندې څه وشو ؟ حضرت مقداد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل رسول الله ﷺ فرمايلي دي کله چې تاسو د دنيا فائدو حاصلولو لپاره د نورو خلکو د خرابولو لپاره تعريف کونکي اووينئ! نو د هغوى مخونو باندې خاورې واچوئ! حضرت مقداد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې ظاهري مطلب مراد اخيستى دى خو په ظاهره د رسول الله ﷺ مطلب دا دى چې هغه ته څه مه ورکوئ! (٢)

حضرت ابو معمر رَحِمَهُ اللهُ وايي چې يو سړى ودرېده او د يو امير تعريف يې کولو نو حضرت مقداد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په هغه باندې خاورې اچولې او ويې فرمايل چې رسول الله ﷺ مونږ ته د دې خبرې حکم را کړى دى چې د غلط مطلب لپاره تعريف کوونکو په مخونو باندې مونږ خاورې واچوو.(٣)

---

١: اخرجه ابن ابى الدنيا كذافى الكنز ٢/١٦٧

٢: اخرجه مسلم ٢/٣١٤ واللفظ له وابوداود ٥/٢٣١

٣: اخرجه مسلم ايضاً والترمذى ٢/٦٢ والبخارى فى الادب ٥٠

**په دې باره کې دحضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا بيان او عمل:**

حضرت عطاء بن ابي رباح رَحِمَهُ اللهُ وايي چې يو سړي د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خوا کې د بل سړي تعريف کولو نو حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه په مخ باندې خاورې اچولې او ويې فرمايل چې ما د رسول الله ﷺ نه دا فرمان اورېدلی دی کله چې تاسو تعريف کونکي ووينئ! نو د هغوی په مخونو باندې خاورې اچوئ! (١)

حضرت عطاء بن ابي رباح رَحِمَهُ اللهُ وايي چې يو سړی د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تعريف کولو لږ وخت پس حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه په مخ باندې خاورې واچولې او ويې فرمايل چې ما د رسول الله ﷺ نه دا اورېدلي دي کله چې تاسو تعريف کونکي ووينئ! نو د هغوی په مخونو باندې خاورې واچوئ!(٢)

حضرت نافع رَحِمَهُ اللهُ او نور حضرات بيان کوي چې يو سړی ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل چې اې په خلکو کې د ټولو نه غوره! يا يې داسې ووېل چې اې په خلکو کې د ټولو نه د زيات غوره څويه! نو حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې نه زه په خلکو کې د ټولو نه غوره يم او نه د ټولو نه د غوره سړی څوی يم! بلکې د الله رب العزت بندګانو کې يو بنده يم! د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رحمت نه اميد ساتم! او د هغه د عذاب نه وېرېږم! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! بغير د څه وجې نه تعريفونو کولو سره تاسو سړی پسې کېږئ! او بيا يې تباه کړې پرېږدئ! چې د هغه په زړه کې عجب او تکبر پيدا کېږي.(٣)

حضرت طارق بن شهاب رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې څينې وخت سړی د خپل کور نه بهر اوځي او د هغه سره د هغه دين وي خو کله چې هغه واپس راځي نو په دغه صورت کې هغه سره هيڅ نه وي پاتې د دې صورت دا دی چې هغه سړی بهر ته لاړشي او داسې سړي ته ورشي چې نه د خپل نفع نقصان مالک وي او نه د هغه نفع نقصان. او دا په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسمونه خوري او وايي چې تاسو داسې يئ! او داسې يئ! او د هغه نه څه اخيستلو لپاره د هغه تعريفونه کوي خو هغه ورته هيڅ ورنکړي او هغه په داسې حالت کې واپس راځي چې د هغه هيڅ حاجت پوره شوي نه وي او هغه په غلط تعريف کولو

١: اخرجه البخاري في الادب ٥١

٢: عند احمد والطبراني قال الهيثمي ٨/١١٧ رواه احمد والطبراني في الكبير والاوسط ورجاله رجال الصحيح.

٣: عند ابي نعيم في الحلية ١/٣٠٧

سره د الله تعالی هم د خپل ځان نه ناراضه کړی وي.(۱)

# صله رحمي او قطع کول یې

## (خپلولي پالل او د هغې ختمول)

**د پېغمبر ﷺ او ابوطالب قصه:**

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې یو ځل د نبوت نه مخکې په قريشو سخته قحط سالي راغله تر دې چې د هغوی زاړه هډوکو خوراک ته ضرورت راغی او په هغه وخت کې د رسول الله ﷺ او د حضرت ابن عباس بن عبد المطلب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه زيات د ښه حال والا په قريشو کې بل څوک نه وُو نبي کريم ﷺ حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمايل: اې کاکا جانه ته پوهېږې چې ستا د ورور ابو طالب بچي باندې ډېر زيات سخت قحط راغلی دی راځه چې هغوی ته ورشو او د هغوی څه بچي مونږ سمبال کړو نو دا دواړه حضرات لاړل او ابوطالب ته یې وويل چې اې ابو طالبه! تاسو د خپل قوم بد حال ښه وينئ! او مونږ ته معلومه ده چې تاسو هم د قريشو نه يو کس يئ! په قحط سره ستاسو حال هم خرابېږي مونږ تاسو ته ځکه راغلي يو چې ستاسو د څه بچو انتظام وکړو ابو طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې زما مشر ځوی عقيل ما ته پرېږدئ! او پاتې بچو سره چې تاسو څه غواړئ! وکړئ! نو رسول الله ﷺ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځان سره کړل دا دواړه دې حضراتو سره تر هغې پورې وو تر څو چې دوي مالداره شوي نه وو او خپل کټه وته یې نه وه حضرت سليمان بن داود راوي وايي چې حضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره اوسېدو تر دې چې هغه هجرت وکړ او حبشې ته لاړ.(۲)

**له حضرت جويريه او حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره د رسول الله ﷺ قصه:**

حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې یو ځل حضرت جويريه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا رسول الله ﷺ ته عرض وکړ چې زه دا غلام ازادول غواړم! رسول الله ﷺ وفرمايل چې ته دا غلام هغه ماما ته ورکړه چې په بانډه کې اوسېږي دا به د هغه څاروي څروي په دې کې به تا ته ثواب زيات ملاوېږي.(۳)

حضرت ابو سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي کله چې دا يت نازل شو: **وَآتِ ذَا الْقُرْبَىٰ حَقَّهُ**(۴)

---

۱: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ۸/۱۱۸ رواه الطبراني باسانيد ورجال احدها رجال الصحيح.

۲: اخرجه البزار ۸/۱۵۳ وفيه من لم اعرفهم.

۳: اخرجه البزار ورجاله رجال الصحيح کما قال الهيثمي ۸/۱۵۳

۴: سورة بني اسرائيل آيت۲٦

ترجمه: او خپلوانو ته د هغوی حق مالي او غير مالي ورکوئ!
رسول الله ﷺ وفرمايل اې فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا! د فدک علاقې امدني ستا ده د فدک علاقه په حجاز کې د مدينې نه د دوه درې ورځو په فاصله باندې وه چې رسول الله ﷺ ته په مال غنيمت کې ملاو شوې وه.(۱)

**هغه چاته د آنحضرت ﷺ قول چې هغه ته يې دخپلو رشته دارانو شکايت وکړو:**

حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو سړي ووېل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما څه خپلوان دي چې هغوی سره زه خپلولي پالم خو هغوی ما سره خپلولي پرېږدي زه هغوی سره ښه سلوک کوم او هغوی ما سره د جهالت معامله کوي بغير د څه وجې نه زمانه خفه کېږي او ما سره سختي کوي رسول الله ﷺ وفرمايل چې که چېرې ته داسې يې څنګه چې ته وايې! نو ګواکې ته د هغوی په خوله کې د ګرمې ايرې تکې وراچوې! ستا د ښه رويې په بدله کې بد رويه چې کوي نو هغوی د خپل ځان نقصان کوي او تر څو پورې چې ته په دې صفاتو باندې اوسېږې! نو تر هغې پورې به تا سره د الله جَلَّ جَلَالُهُ د طرفنه مددګار اوسيږي.(۲)

حضرت عبدالله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو سړی د نبي اکرم ﷺ په خدمت کې حاضر شو او وې ويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما څه خپلوان داسې دي چې هغوی سره زه خپلوي پالم او هغوی خپلولي ختموي زه د هغوی سره ښه رويه کوم او هغوی ما سره بده رويه کوي او زه هغوی معاف کوم او هغوی بيا هم په ما باندې ظلم کوي نو آيا زه د هغوی د بدی بدله په بدی سره ونه کړم؟ رسول الله ﷺ وفرمايل دا شان کولو سره خو به تاسو ټول په ظلم کې شريک شئ! بلکې ته د فضيلت والا صورت اختيار کړه! او هغوی سره صله رحمي کوه! تر څو پورې چې ته داسې کوې تر هغې پورې به ستا سره يوه ملائيکه امداد کوونکې اوسيږي.(۳)

**د حضرت ابوهريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او هغه چا قصه چې خپلولي قطع کړې وه:**

۱: اخرجه الحاكم فى تاريخه وابن النجار قال الحاكم تفرد به ابراهيم بن محمد بن ميمون عن علي بن عابس كذافي الكنز ۲/۱۵۸

۲: اخرجه مسلم ۲/۳۱۵ اخرجه البخارى فى الادب ۱۱ عن ابى هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مثله.

۳: عند احمد وفيه حجاج بن ارطاة وهو مدلس وبقية رجاله ثقات كما قال الهيثمي ۸/۱۵۴

د حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ازاد شوی غلام حضرت ابو ایوب سلیمان رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې يو ځل حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د جمعې په شپه د زيارت په مابنام مونږ له راغی او ويې فرمايل چې زمونږ په دې مجلس کې چې څوک هم قطع رحمي کونکی ناست وي زه هغه ته په پوره تاکيد سره وايم چې هغه دې زمونږ د خوا نه لاړ شي په دې باندې څوک پانه څېدو هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا خبره درې ځل وکړه نو په دې باندې يو ځوان خپلې تورور له لاړ چې هغې سره ده د دوو کالو نه اړيکې ختمې کړې وو او هغه يې پرېښې وه کله چې هغه خپلې ترور ته ورغی نو تورور ترې پوښتنه وکړه چې ته څنګه راغلی يې؟ هغه ورويل چې ما اوس د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه داسې او داسې فرمان واورېده له دې وجې نه راغلی يم ترور ورته وويل چې هغه ته واپس لاړ شه! او پوښتنه ترې وکړه چې هغه داسې ولې فرمايلي دي هغه ځوان واپس لاړ او پوښتنه يې ترې وکړه نو حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې ما د رسول الله ﷺ نه داسې اورېدلی دی چې د جمعې په هره شپه د زيارت په مابنام باندې د ټولو بنيادمو عملونه الله رب العزت ته وړاندې کولی شي او د انسانانو عملونه خو قبلېږي خو د خپلولی پرېښودونکي هيڅ عمل نه قبلېږي.(۱)

**ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د دعا په وخت کې دخپلولي قطع کونکي ته وويل چې پاڅېږي:**

حضرت اعمش رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې يوه ورځ د سهار مانځه نه پس حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په يوه حلقه کې ناست وو هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې زه خپلولی پرېښودونکي ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم ورکوم! او ورته وايم چې هغه دې زمونږ د خوا نه لاړ شي ځکه چې مونږ د خپل رب نه دعا غواړو او د اسمان دروازې د خپلولی پرېښودونکي لپاره بندې دي نو په دې جرم به زمونږ دعا هم نه قبلېږي.(۲)

---

۱: اخرجه البخاری فی الادب

۲: اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ۸/۱۵۱ ورجاله رجال الصحیح الا ان الا عمش لم یدرک ابن مسعود انتهی.

# لسم باب

## د آنحضرت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ صفات او اخلاق

*د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو اخلاق او صفات، او دا چې هغوئ څنګه له یو بل سره ژوند کولو.*

**د رسول الله ﷺ اخلاقو په باره کې دحضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا اقوال:**

حضرت سعد بن هشام رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې ما د حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا په خدمت کې عرض وکړ چې تاسو ما ته ووایئ! چې د رسول الله ﷺ اخلاق څنګه وو؟ هغې وفرمایل آیا ته قرآن مجید نه لولې!؟ ما وویل چې لولم یې! هغې وفرمایل د رسول الله ﷺ اخلاق قرآن مجید دی یعني د هغه اخلاق په قرآن کې بیان شوي دي یا چې کوم اخلاق په قرآن کې بیان شوي دي هغه ټول په رسول الله ﷺ کې وو.(۱)

د ابن سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په روایت کې د دې نه پس دا مضمون دی چې حضرت قتاده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې قرآن د ټولو خلکو نه ښه اخلاق راوړي دي.(۲)

حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې ما د حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا نه د رسول الله ﷺ د اخلاقو په باره کې پوښتنه وکړه نو هغې ارشاد وفرمایلو چې د رسول الله ﷺ اخلاق قرآن دي چېرته چې قرآن راضي وي هلته رسول الله ﷺ راضي وي او چېرته چې قرآن ناراضه وي هلته به رسول الله ﷺ ناراضه کېده.(۳)

حضرت زید بن بابنوس رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې ما د حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا په خدمت کې عرض وکړ چې اې ام المؤمنین! د رسول الله ﷺ اخلاق څنګه وو؟ مخکې یې د تېر شوي حدیث پشان مضمون ذکر کړی دی د هغه پس دا دي چې حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وفرمایل چې آیا تا سوره مؤمنون لوستلې دی؟ (قد افلح المؤمنون) نه پس لس آیتونه اولوله! ما لس ایتونه ولوستل نو ویې فرمایل بس چې دې آیتونو کې څه بیان شو دا ټول د رسول الله ﷺ اخلاق وو (۴)

---

۱: اخرجه مسلم واخرجه احمد عن جبیر بن نفیر والحسن عن عائشه نحوه کما فی البدایة ۶/۳۵

۲: اخرجه ابن سعد ۱/۹۰ عن سعد بن هشام عن عائشة نحوه کما فی البدایة ص ۵۶ عن جبیر بن نفیر عن عائشة نحوه وابن سعد ۱/۹۰ عن مسروق عنها نحوه.

۳: عند یعقوب بن سفیان

٤: اخرجه البیهقی ورواه النسائي کما فی البدایة ۶/۳۵

حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي چې هيڅوک د رسول الله ﷺ نه د ښو اخلاقو والا نه وو کله چې به هم يو صحابي آنحضرت ﷺ ته اواز کولو يا د کور کوم کس به اواز کولو نو نبي کريم ﷺ به د هغه په جواب کې لبيک وايه له دې وجې نه الله رب العزت دا آيت نازل کړ:

**وَإِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ**۞(۱)

ترجمه: بېشکه ته د ښو اخلاقو په اعلى پيمانه باندې يې!

د بنو سره قبيلې يو سړی وايي چې ما حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ته وويل چې تاسو ما ته د رسول الله ﷺ د اخلاقو په باره کې څه ووايئ! هغې وفرمايل آيا ته د قرآن مجيد دا آيت **وَإِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ** نه لولې؟ او د رسول الله ﷺ د اخلاقو قصه واوره! يو ځل رسول الله ﷺ د خپلو صحابه وو سره ناست وو ما د هغوی ﷺ لپاره طعام تيارولو او حضرت حفصې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا هم تيارولو خو هغې زما نه مخکې تيار طعام تيار کړ او د رسول الله ﷺ په خدمت کې يې ولېږه ما ته پته اولګېدله چې هغه خوراک لېږي نو ما وينځې ته وويل چې لاړه شه! او د حفصې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا نه پياله واړوه! نو حضرت حفصې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا رسول الله ﷺ ته مخکې طعام کېښودلو نو وينځې هغه پياله واړوله چې هغې سره طعام اخوا دېخوا شو او پياله ماته شوه رسول الله ﷺ د پيالې ټکړې راجمعه کړې او کوم طعام چې په زمکه باندې خور شوي وو هغه يې هم راغونډ کړ او هغه طعام رسول الله ﷺ او صحابه وو اوخوړلو بيا ما خپله پياله ورولېږله رسول الله ﷺ هغه ټوله پياله حفصې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ته ولېږله او ويې فرمايل چې د خپلې پيالې په ځائ دا پياله واخله! او په دې کې چې کوم خوراک دی دا وخوره! ما د رسول الله ﷺ په مخ باندې د دې واقعې ناراضيتي څه اثر هم ونه ليده.(۲)

**په دې باره کې د زيدبن ثابت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قول:**

حضرت خارجه بن زيد رَحِمَهُ ٱللَّهُ وايي چې څه خلک زما پلار حضرت زيد بن ثابت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته راغلل او وې ويل چې ته مونږ ته د رسول الله ﷺ اخلاق بيان کړه حضرت زيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې زه د رسول الله ﷺ ګاونډي ووم کله چې به په هغوی ﷺ باندې وحې نازلېدله نو ما ته به يې پيغام رالېږلو زه به ورتلم او وحې به مې ليکله کله چې به مونږ د دنيا ذکر کولو نو هغوی ﷺ به هم د هغې ذکر کولو او کله چې به مونږ د اخرت ذکر کولو نو هغوی ﷺ به هم

---

۱: سورة نون آيت ۴

۲: عند ابن شيبة عن قيس بن وهب كذافي الكنز ۴/۴۴

مونږ سره د اخرت ذکر کولو او کله چې به مونږ د طعام او څښاک خبره کوله نو هغوی ﷺ به هم کوله یعنې هغوی ﷺ به مونږ سره یو ځای بې تکلفې سره اوسېدلو او په جائز خبرو کې به مونږ سره شریکېدلو دا ټول څه زه د رسول الله ﷺ د طرفه بیانوم.(۱)

**په دې باره کې دحضرت صفیه بن حیي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قول:**

حضرت صفیه بنت حیي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما د رسول الله ﷺ نه زیات د ښو اخلاقو والا څوک نه دی لیدلی د رسول الله ﷺ د ښو اخلاقو قصه تا ته اوروم رسول الله ﷺ د خیبر نه په واپسۍ باندې زه پخپله اوښه باندې وروسته کېنولي ووم د شنبې ورځ وه ما د خوب غلبې په وجه جټکه اوو هله نو زما سر د چاوې روستني لرګي سره اولګېدو رسول الله ﷺ زه پخپل لاس سره وخوزولم! او ویې فرمایل اې صبر وکړه! اې بنت حیي صبر وکړه! دا څه د خوب وخت دي؟ کله چې رسول الله ﷺ صحبا مقام ته ورسېده نو ویې فرمایل اې صفیه! ما چې ستا قوم د خیبر یهودو سره څه معامله وکړه زه د هغې ستا نه معذرت غوارم! اصل کې هغوی زما په باره کې دا ویلي وو یعنې د دغه یهودو د غلطو حرکتونو او د اسلام خلاف د سازشونو بیان یې کولو.(۲)

**په دې باره کې دحضرت أنس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیان:**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ د ټولو خلکو نه زیات مهربان وو په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! د سخت یخنۍ په سهار کې به چې کوم یو غلام یا وینزې یا ماشوم د پیغمبر ﷺ لپاره اوبه راوړې دې لپاره چې رسول الله ﷺ هغه استعمال کړي او بیا یې هغه د برکت دپاهر واپس یوسي نو رسول الله ﷺ به انکار کولو بلکې د سختې یخنۍ باوجود به نبي کریم ﷺ په دغو اوبو سره مخ لاس وینځل او کله چې به هم د آنحضرت ﷺ نه چا د څه خبرې پوښتنه کولو نو رسول اکرم ﷺ به پوره توجه سره د هغه خبره اورېدله او خپل غوږ به یې ورنږدې کولو او رسول الله ﷺ صرف هغه خواته متوجه اوسېده او هغه به هغوی لره که چېرې پرېښودلو او تلو به نو تلو به، او کله چې به یې د نبي کریم ﷺ لاس نیول غوښتل نو

۱: اخرجه ابونعیم فی الدلائل ۵۷ واخرجه الترمذی ۲۵ نحوه وکذلک البیهقی کما فی الاصابة ۶/۴۲ و الطبرانی کما فی المجمع ۹/۱۷ وقال واسناده حسن وابن ابی داود فی المصاحف وابویعلی والرویانی وابن عساکر کما فی المنتخب ۵/۱۸۵ واخرجه ابن سعد ۱/۱۹۰ ایضاً نحوه.

۲: اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ۹/۱۵ رواه الطبرانی فی الاوسط باختصار ورجالهما ثقات الا ان الربیع ابن اخی صفیه بنت حیی لم اعرفه.

رسول الله ﷺ به ورته د نیولو لپاره لاس ورکولو او هغه به که چیرې د رسول الله ﷺ لاس پرېښودو نو پرېښودو به یې آنحضرت ﷺ به نه پرېښودو.(۱)

حضرت انس بن مالک رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي کله چې به رسول الله ﷺ د سهار لمونځ کولو نو د مدینې منورې خادمان یعنې غلامان او وینځو به خپلو لوښو کې اوبه راوړې هغوی ﷺ ته به چې کوم یو لوښی راوړی شو هغوی ﷺ به د برکت لپاره خپل لاس په هغې کې کېښودلو ځینې وخت به د غه خلکو د ژمي په سهار کې یخې اوبه راوړې نو رسول الله ﷺ به په هغې کې هم لاس کېښودو.(۲)

حضرن انس رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي کله چې به رسول الله ﷺ چا سره مصافحه کوله یا به هغوی ﷺ سره چا مصافحه کوله نو آنحضرت ﷺ به ترې خپل لاس نه خلاصولو بلکې هغه سړی به خپل لس د رسول الله ﷺ د لاس نه جدا کولو او که چېرې چا به رسول الله ﷺ خواته مخ کړ او خبره به یې کوله نو هغوی ﷺ به هم د هغه خواته متوجه اوسېدو تر دې چې فارغ به شو هم هغه سړی به ترې مخ واړولو او کله هم چا داسې نه دی لیدلی چې رسول الله ﷺ خپله خوا کې ناستو کسانو خواته پښې خورې کړې وې یعنې داسې چېرته نه دې شوي.(۳)

حضرت انس رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي چې ما چېرې دا اونه لیدل چې یو سړی د رسول الله ﷺ په غوږ کې خبره کوي او هغوی ﷺ دې د هغه نه خپل سر لرې کوي بلکې هم هغه سړی به خپل سر لرې کولو او دا مې هم نه دی لیدلي چې د رسول الله ﷺ لاس یو سړي نیولی وي او رسول الله ﷺ د هغه نه خپل لاس خلاص کړی وي بلکې هم هغه سړی به د رسول الله ﷺ لاس پرېښودو.(۴)

**د صحابه کرامو رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمْ سره د رسول الله ﷺ مصافحه:**

حضرت ابو هریره رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي کله چې به هم چا د رسول الله ﷺ لاس پرېښودو نو پرېښودلو به یې او کله به د آنحضرت ﷺ زنګنونه د ناستو خلکو مخکې خواره کړی شوي چا لیدلي نوي او کله چې به هم د هغوی ﷺ سره چا مصافحه کوله نو هغوی ﷺ به پوره توګه باندې د هغه خواته متوجه کېدو او تر هغې به بل طرفته نه متوجه کېدو تر څو چې به

---

۱: اخرجه ابونعیم فی الدلائل ۵۷

۲: عند مسلم ۲/۲۵٦

۳: عند یعقوب بن سفیان ورواه الترمذی وابن ماجة کما فی البدایة ٦/۳۹ وابن سعد ۱/۹۹ نحوه.

۴: عند ابی داود تفرد به ابو داود کذافی البدایه ٦/۳۹

هغه د خپلې خبرې نه فارغ شوی نه وو.(١)

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې د مدينې والاوو خو ماشومان به راغلل او د رسول الله ﷺ لاس به يې ونيوه نو رسول الله ﷺ به د هغه دلاس نه خپل لاس نه خلاصولو او بيا به يې چې هغه چېرته غوښتل رسول الله ﷺ به يې بوتل.(٢)

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې د يوې ښځې په عقل کې څه فرق وو هغې وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما تاسو سره څه کار دي، رسول الله ﷺ وفرمايل اې ام فلان! ته چې کومه کوڅه غواړې وګوره! زه به هلته ستا کار وکړم کوڅه يې مقرره کړه چې د هغې کارهم وکړي او پردې ښځې سره يو ځائ والي هم رانشي کوڅه خو عام د تلو راتلو ځائ وي نو هغې يوه کوڅه اوښودله رسول الله ﷺ هغې کوڅې ته لاړ يو خواته شو او ځان له يې د هغې خبره واورېدله تر دې چې هغې د خپل ضرورت ټوله خبره وکړه.(٣)

**د آسانه کار غوره کول او انتقام(بدله) الله تعالى ته سپارل:**

حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي کله چې به هم رسول الله ﷺ ته په دوو کارونو کې اختيار ورکړی شو نو په دواړو کې به چې کوم زيات اسان ؤ هغه به يې اختيارولو خو په دې شرط چې هغه کار به د ګناه نه وو او که چېرې هغه کار به د ګناه وو نو هغوی ﷺ به د هغې نه ټولو نه زيات لرې اوسېده او رسول الله ﷺ به کله هم د خپل ځان لپاره د چانه بدله نه اخيستله البته چې څوک به يې د الله رب العزت په حرام کړی شوي کار کولو باندې ليدو نو د هغه نه به يې ضرور بدله اخيستله خو دا بدله اخيستل به د الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره وو.(٤)

حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي چې رسول الله ﷺ په خپل لاس کله هم د خپل خادم ښځه يا بل څه شی نه دی وهلی د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې جهاد کولو کې يې که چېرې څوک وژلی وي نو جدا خبره ده او کله چې به هم رسول الله ﷺ ته په دوو دنياوي کارونو کې اختيار ورکړي کېدو نو دواړو کې به چې کوم اسان وو هغه به يې زيات خوښاوه. خو په دې شرط

---

١: عند البزار رواه الطبراني واسناد الطبراني حسن كما قال الهيثمي ٩/١٥

٢: عند احمد ورواه ابن ماجه

٣: رواه مسلم في صحيحه ٢/٢٥٦ واخرجه ابونعيم في دلائل النبوة ص ٥٧ عن انس مثله

٤: اخرجه مالك واخرجه البخاري ومسلم كما في البداية ٦/٣٦ واخرجه ابوداود والنسائي احمد كما في الكنز ٤/٣٧ وابونعيم في الدلائل ٥٧.

چې هغه کار به د ګناه نه وو او که چېرې هغه کار به ګناه وو نو آنحضرت ﷺ به د هغې نه د ټولو نه زيات لرې اوسېدلو او هغوی سره چې هر څومره زياتي کېدو هغوی ﷺ به د خپل ذات له وجې نه کله هم د چا نه بدله نه اخيستله البته که چېرې چا به د الله جَلَّجَلَالُهُ حکم ماتولو نو د هغه نه به يې د الله جَلَّجَلَالُهُ لپاره بدله اخيستله.(۱)

حضرت عائشه رَضِیَاللّٰهُعَنْهَا فرمايي چې ما کله هم نه دی ليدلي چې رسول الله ﷺ د خپل ذات لپاره چېرې د چا د ظلم بدله اخيستې وي البته کله چې به د الله جَلَّجَلَالُهُ حکم ماتېدلو نو رسول الله ﷺ به په هغې باندې د ټولو نه زيات خفه کېدلو او کله چې به هم ورته په دوو کارونو کې اختيار ورکړې شو نو په دواړو کې به چې کوم ډېر اسان وو هغه به يې اختيارولو خو په دې شرط چې هغه به د ګناه نه وو.(۲)

**آنحضرت ﷺ بدګو نه و ،آواز يې نه اوچتولو،کنځايې نه کوله او لعنت يې نه ويل:**

حضرت ابو عبد الله جدلي رَحِمَهُاللّٰهُ وايي چې ما د حضرت عائشې رَضِیَاللّٰهُعَنْهَا نه د رسول الله ﷺ د اخلاقو په باره کې پوښتنه وکړه نو هغې وفرمايل چې رسول الله ﷺ نه خو طبعاً د بې حيايۍ خبرې کونکی وو او نه به يې په تکلف سره د بې حيايۍ خبرې کولې او نه به يې په بازاونو کې چغې وهلې او نه به يې شور کولو او د بدۍ بدله به يې په بدۍ سره نه ورکوله بلکې معاف کولو به يې او عفوه به يې کوله.(۳)

د حضرت توامه غلام حضرت صالح رَحِمَهُاللّٰهُ وايي چې حضرت ابو هريره رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ به د رسول الله ﷺ صفتونه بيانول او کله چې به يې د چا نه توجه اړوله نو د هغه نه به يې ټول بدن اړولو زما مور پلار دې په هغوی ﷺ قربان وي نه هغوی ﷺ طبعاً د بې حيايۍ خبرې کونکی وو او نه به يې په تکلف سره د بې حيايۍ خبرې کولې او نه هغوی په بازارونو کې شور کونکی وو.(٤)

او نه ما د رسول اکرم ﷺ نه وړاندې د رسول الله ﷺ په شان څوک ليدلی دی او نه د نبي ﷺ نه وروسته.حضرت انس رَضِیَاللّٰهُعَنْهُ فرمايي چې د رسول الله ﷺ نه د کنځلو عادت وو او نه په چا

---

۱: عند احمد كذافي البداية ٦/٣٦ واخرجه مسلم ٢/٢٥٦ وابو نعيم في الدلائل مختصرا وعبدالرزاق وعبد بن حميد والحاكم نحو حديث احمد كما في الكنز ۴/۴۷.

۲: عند الترمذي في الشمائل ٢٥ واخرجه ابو يعلى والحاكم كما في الكنز ۴/۴۷

۳: اخرجه ابوداود والطيالسي وفي آخر الحديث اوقال يعفو ويغفر شك ابو داود رواه الترمذي وقال حسن صحيح كذافي البداية ٦/٣٦ واخرجه ابن سعد ١/٩٠ عن عبدالله عن عائشة نحوه واحمد والحاكم كما في الكنز ۷/۴۷

٤: عند يعقوب بن سفيان

باندې د لعنت کولو او نه رسول کریم ﷺ طبعاً د بې حیایۍ خبرې کونکی وو او کله چې به د چا نه خفه شو نو داسې به یې وفرمایل چې په فلاني باندې څه شوی دی ؟ د هغه تندی دې په خاورو خړ شي.(۱)

حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ نه طبعاً د بې حیایۍ خبرې کونکی وو او نه په تکلف سره او نبي اکرم ﷺ به فرمایل چې په تاسو کې د ټولو نه غوره هغه خلک دي چې د هغوی اخلاق د ټولو نه ښه وي.(۲)

**د خادمانو سره د رسول الله ﷺ اخلاق:**

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي کله چې رسول الله ﷺ مدینې منورې ته تشریف راوړو نو حضرت طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زما لاس ونیوه او زه یې رسول الله ﷺ ته بوتلم او عرض یې وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هوښیار دی دا به ستاسو خدمت کوي حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې ما د رسول الله ﷺ په سفر او حضر کې خدمت وکړ په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ما چې کوم کار کړی دی په هغې باندې رسول الله ﷺ چېرې دا نه دي فرمایلي چې دا کار دې ولې ونه کړ؟ (۳)

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ د ټولو نه زیات با اخلاقه وو یو ځل یې زه څه کار پسې ولیږلم ما د پورته نه هم داسې وویل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه به لاړ نشم، او په زړه کې مې دا وو چې د کوم کار رسول الله ﷺ حکم راکوي زه به د هغې لپاره ضرور ځم! نو زه د هغه ځائ بهر را وتلم نو زما تېرېدل په یو څو ماشومانو باندې وشو کومو چې په بازار کې لوبې کولې زه هلته او درېدم ناڅاپه رسول الله ﷺ راغی او د شا خوا نه یې زما څټ ونیو ما چې رسول الله ﷺ ته وکتل نو خندل یې او ویې فرمایل اې وړوکی شان انسه! کوم ځائ ته د تلو چې ما تا ته ویلي وو ته هلته تللی یې؟ ما وویل چې هو! اوس ځم! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ما د رسول الله ﷺ نهه کاله خدمت کړی دی ما ته نه دي یاد چې ما څه غلط کار کړي وي او رسول الله ﷺ فرمایلي وي کار دې ولې وکړ؟ یا یو کار مې پرېښي وي او دا یې فرمایلي وي چې تا دا کار ولې ونه کړ؟ (۴)

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې ما د رسول الله ﷺ لس کاله خدمت وکړ په الله جَلَّ جَلَالُهُ

---

۱: عند احمد ورواه البخاری

۲: عند البخاری ایضاً ورواه مسلم کذافی البدایة ٦/٣٦

۳: اخرجه مسلم ٢/٢٥٣

٤: عند مسلم ایضاً

قسم! په دې ټوله موده کې هغوی ﷺ نه څو چېرې ما ته اف قدرې هم کړی دی او نه یې د څه کار لپاره دا فرمایلي دي چې دا دې ولې ونه کړ؟ (۱)

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما لس کاله د رسول الله ﷺ خدمت وکړ کله هم داسې نه دي شوي چې رسول الله ﷺ ما ته یو کار ښودلی وي او ما په هغې کې سستي کړې وي یا مې هغه خراب کړی وي او رسول الله ﷺ پرې زه ملامته کولم نو رسول الله ﷺ به ورته وفرمایل چې دا پرېږدئ! که چېرې دا کار په تقدیر کې کېدونکی وي نو شوی به وای.(۲)

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې ما د رسول الله ﷺ څو کاله خدمت کړی دی رسول الله ﷺ نه کله ما ته کنځل کړی دي او نه یې کله زه وهلی یم او نه یې کله رټلی یم او نه یې چېرې تندي وران کړی دی او که چېرې آنحضرت ﷺ ما ته څه کار ښودلی وای او په هغې کې زما نه سستي شوې وي نو نبي کریم ﷺ پرې زما نه نه دي خفه شوي بلکې که چېرې د رسول الله ﷺ په کوروالاو کې به څوک خفه کېدلو نو ورته به یې وفرمایل چې دي پرېږده! که چېرې دا کار په تقدیر کې کېدونکی وي نو دا به ضرور شوی وای.(۳)

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي کله چې رسول الله ﷺ مدینې منورې ته راغی نو زما عمر اته کاله وو نو زما مور زه ځان سره کړم او د رسول الله ﷺ په خدمت کې لاړه او عرض یې وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما نه علاوه د انصارو ټولو سړو او ښځو تاسو ته څه نا څه تحفه درکړې ده او ما سره د تحفه درکولو لپاره د دې ځوی نه علاوه بل څه نشته له دې وجې نه دا تاسو زما طرفنه قبول کړئ! تر څو پورې چې تاسو غواړئ! دا به ستاسو خدمت کوي نو ما د هغوی ﷺ لس کاله خدمت وکړ په دې موده کې یې نه چېرې وهلی یم، نه یې کنځل کړی دي او نه یې هم چېرې تندي وران کړی دی.(۴)

## د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ اخلاق

**د حضرت ابوبکر، حضرت عثمان او ابوعبیده رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ په باره کې د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیان:**

حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې د قریشو درې سړي داسې دي چې د هغوی

---

۱: عند مسلم ایضاً وزاد ابوالربیع بشيء لیس مما مما یصنعه الخادم ولم یذکر قوله والله واخرجه البخاری عن انس بنحوه.

۲: عند احمد کذافی البدایة ٦/٣٧ واخرجه ابن سعد ٧/١١ عن انس مثله.

۳: عند ابی نعیم فی الدلائل ص٥٧

٤: عند ابن عساکر کذافی الکنز ٧/٩

مخونه د ټولو خلکو نه زیات ښایسته او د هغې اخلاق د ټولو نه زیات ښه دي او په هغوی کې حیا د ټولو نه زیاته وه که چېرې هغه حضرات تاسو سره خبرې وکړي نو کله به غلطه خبره ونه کړي او که چېرې هغه حضرات تاسو سره خبرې وکړي نو کله به غلطه خبره او نه کړي او که چېرې تاسو هغوی سره څه خبره وکړي نو هغه به تاسو دروغجن ونه ګڼي! هغه حضرات دا دي حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت ابوعبیده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. (۱)

**د حضرت ابوعبیده دنېکو اخلاقو په باره کې درسول الله ﷺ ګواهي:**

حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل چې زه پخپلو صحابه وو کې د هر یو په اخلاقو ګرفت لاندې کول و غوارم نو کولی شم بس یو! ابوعبیده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ داسې دي چې د هغه ګرفت لاندې کول نشم کولی .(۲)

**حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په اخلاقو کې درسول الله ﷺ په شان ؤ:**

عبدالرحمن بن عثمان قریشي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو ځل رسول الله ﷺ خپلې لور ته لاړ هغې د خپل خاوند حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سر وینځلو رسول الله ﷺ وفرمایل اې لورې! ابوعبدالله یعنې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ښه رویه کوه! چې زما په صحابه وو کې د ټولو نه زیات د ده اخلاق زما سره مشابه دي.(۳)

حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو کرت د رسول الله ﷺ لور د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ محترمې بي بي رقیې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته ورغلم د هغې په لاس کې ګومنزه وه هغې وویل چې اوس رسول الله ﷺ زما د خوانه بهرته لاړ مایې د سر وېښتو ګومنزولو رسول الله ﷺ وفرمایل چې ته ابوعبدالله یعنې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څنګه بیا موندو؟ ما وویل ډېر ښه! رسول الله ﷺ وفرمایل د هغه عزت کوه! ځکه چې هغه په اخلاقو کې زما په صحابه وو کې د ټولو نه زیات زما مشابه دي.(۴)

---

۱: اخرجه ابونعیم في الحلیة

۲: اخرجه یعقوب بن سفیان کذافي الاصابة وقال هذ مرسل ورجاله ثقات اه واخرجه الحاکم عن الحسن نحوه هذا مرسل غریب ورواه ثقات.

۳: اخرجه الطبراني قال الهیثمي رجاله ثقات.

٤: عند الطبراني ایضاً قال الهیثمي ۹/۸۱ وفیه محمد بن عبدالله یروي عن المطلب ولم اعرفه وبقیة رجاله ثقات اه واخرجه الحاکم وابن عساکر کما في المنتخب ۵/۴

**د حضرت جعفر، حضرت زيد، حضرت على ود جعفر د خوى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ اخلاق:**

د رسول الله ﷺ ازاد كرى شوي غلام د حضرت اسلم رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خوى حضرت عبد الله رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ حضرت جعفر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته وفرمايل چې ته په شكل او اخلاقو كې زما پشان يې!(۱)

حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې زه جعفر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او حضرت زيد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دري واړه د رسول الله ﷺ په خدمت كې حاضر شو رسول الله ﷺ حضرت زيد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته وفرمايل چې ته زمونږ ورور او محبت كونكى ملګرى يې! دا يې چې واوريدل نو حضرت زيد د خوشحالى نه په جذبه كې راغى او په ټوپونو شو بيا رسول الله ﷺ حضرت جعفر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته وفرمايل چې ته په صورت او سيرت كې زما پشان يې! په دې باندې حضرت جعفر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د حضرت زيد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه زيات په ټوپونو شو بيا يې ما ته وفرمايل چې ته زما يې! او زه ستا يم! چې دا مې واوريدل نو ما د حضرت جعفر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه هم زيات ټوپ ووهلو.(۲)

حضرت اسامه بن زيد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ حضرت جعفر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته وفرمايل چې ستا اخلاق زما د اخلاقو په شان دى او ستا شكل او صورت زما سره ملاوېږي نو دارنګه ته زما نه يې او اې علي! ته زما نه يې! او زما د بچو يعنې د نوسو پلار يې!(۳)

حضرت عبد الله بن جعفر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي چې ما د رسول الله ﷺ نه داسې خبره اوريدلې ده چې ما ته بلكل خوښه نه ده چې د دې په بدله كې ما ته سره اوښان ملاو شي چې په عربو كې د ټولو نه قيمتي مال ګڼلى شو ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلى دى چې د حضرت جعفر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ صورت او سيرت زما سره ډېر مشابه دي او عبد الله رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د الله جَلَّ جَلَالُهُ په ټول مخلوق كې ته د خپل پلار سره د ټولو نه زيات مشابه يې! زه د پلار مشابه شوم او پلار مې د رسول الله ﷺ مشابه دى نو زه هم د رسول الله ﷺ سره مشابه شوم.(۴)

**د حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حُسن اخلاق:**

حضرت بحريه رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې زما تره حضرت خداش رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ رسول الله ﷺ په يوه پياله

---

۱: اخرجه احمد واسناده حسن كما قال الهيثمى ۹/۲۷۲
۲: عند ابن ابى شيبة كذافى المنتخب ۵/۱۳۰
۳: عند الطبرانى قال الهيثمى ۹/۲۷۲ رواه الطبرانى عن شيخه عن عبدالرحمن بن الفعال وهو ضعيف انتهى،
۴: اخرجه العقيلي وابن عساكر كذافى المنتخب ۵/۲۲۲

هغه پیاله د هدیې په توګه وغوښتله رسول الله ﷺ هغه د رسول کې په خوراک کولو ولیده نو هغه پیاله ورکړه نو هغه پیاله بیا مونږ کره پرته وه حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مونږ ته الله ﷺ ورته هغه پیاله ورکړه نو هغه پیاله بیا مونږ کره پرته وه حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مونږ ته وفرمایل چې هغه پیاله ما ته راوړئ! مونږ به د زمزم د اوبو نه هغه پیاله ډکه کړه حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته به مو راوړله حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به د هغې نه څه څکلې او څه به یې د برکت لپاره پخپل سر او مخ باندې اچولې بیا یو غل په مونږ باندې لوي ظلم وکړ چې هغه زمونږ نه نور سامان سره هغه پیاله هم پټه کړه د پیالې د غلا نه پس حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مونږ ته راغی او د عادت مطابق یې د هغه پیالې مطالبه وکړه مونږ ورېل اې امیرالمؤمنین! هغه خو زمونږ سامان سره غلا کړی شوې ده حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې هغه غل خو ډېر پوهه وو چې د رسول الله ﷺ پیاله یې په غلا یوووړه راوي وایي په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه خو غل ته بدرد وویل او نه یې پرې لعنت وویلو.(۱)

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې حضرت عیینه بن خصن بن حذیفه بن بدر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مدینې منورې ته راغی او هغه د خپل وراره حضرت حر بن قیس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره ایسار شو حضرت حر په هغه خلکو کې وو چې کوم حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ځان سره نزدې ساتل او د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مجلس شورې کې به صرف عبادت ګذار علماؤ خوا که هغه په ځوانانو کې وُ یا د ډېر عمر حضرت عیینه خپل وراره ته وویل اې زما وراره! تا ته د امیرالمؤمنین په نزد لویه درجه حاصله ده ته د هغه نه زما لپاره د ورتلو اجازه حاصل کړه هغه لاړ او د خپل تره لپاره یې د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه اجازه وغوښتلو هغه ورته اجازت ورکړو کله چې هغه حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له لاړ ورته یې وویل اې عمر بن خطاب! ... په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! تاسو مونږ ته زیات څه نه راکوئ! او زمونږ په مینځ کې د انصاف فیصله نه کوئ! په دې باندې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ غصه شو او حضرت عیینه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د سزا ورکولو اراده یې وکړه حضرت حر وویل اې امیرالمؤمنین! الله رب العزت خپل رسول الله ﷺ ته فرمایلي دي، خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجَاهِلِينَ۝(۲)

ترجمه، عفوه باندې عمل کوه! او د نېک کار تعلیم ورکوه! او د جاهلانو نه یو خوا ته کېږه

---

۱: اخرجه ابن سعد ۷/۵ واخرجه ایضاً ابن بشران فی امالیه کما فی المنتخب ۴/۴۰۰

۲: سورة اعراف آیت ۱۹۹

او دا هم د هغه د جاهلانو نه دي له دې وجې نه تاسو د ده د دې خبرې نه يو خواته شئ!
کله چې حضرت حر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا آيت ولوسته نو په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هم هلته منع شو او د سزا ورکوله اراده يې پرېښودله او د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا ډېر لوی صفت وو چې هغه به د څه کار اراده کوله او بيا ورېلي شو چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ کتاب قرآن کريم د دې نه منع کوي نو فوراً به يې هغه اراده پرېښودله او يو دم به منع کېدلو.(١)

حضرت اسلم رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې اې اسلمه! تاسو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ څنګه بيا موندو؟ ما ورېل ډېر ښه مو اوموندو! خو کله چې هغه ته غصه راشي نو بيا مسئله ډېره مشکله شي حضرت بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورېل که چېرې آئينده ستاسو په موجودګۍ کې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ غصه شو نو تاسو د هغه په مخکې قرآن لوستل شروع کړئ! ان شاء الله د هغه غصه به ختمه شي حضرت مالک دار رَحِمَهُ اللَّهُ د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ غلام وايي چې يوه ورځ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زه ورټلم او د وهلو لپاره يې کوړه را اوچته کړه ما ورېل زه د الله جَلَّ جَلَالُهُ واسطه درکوم په دې باندې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کوړه کېښوده او ويې فرمايل چې تا ماته د لوی ذات واسطه راکړې ده.(٢)

**د حضرت مصعب او حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا حُسن اخلاق:**

حضرت عامر بن ربيعه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت مصعب بن عمير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د شروع نه زما دوست وو او په کومه ورځ چې هغه اسلام راوړو د هغې ورځې نه تر جنګ احد کې شهيد کېدو پورې هغه ما سره وو. هغه د حبشې په دواړو هجرتونو کې مونږ سره تلی وو او په ټوله قافله کې هغه زما د سفر ملګرې وو ما څوک د هغه نه زيات ښه اخلاقو والا او مخالفت نه کونکی نه دی ليدلی.(٣)

حضرت حبه بن جوين رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې مونږ د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره ناست وو مونږ د حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د څو خبرو يادونه وکړه او خلکو د هغه تعريف وکړ او داسې يې ورېل اې اميرالمؤمنين! مونږ څوک سړی د حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه زيات ډېر ښه اخلاقو والا او د هغه نه زيات نرمۍ سره تعليم ورکولو والا او خپلو ناستو

١: اخرجه البخاري وابن المنذر وابن ابي حاتم وابن مردويه والبيهقي كذا في المنتخب ٤/٤١٦

٢: كذا في المنتخب ٤/٤١٣

٣: اخرجه ابن سعد ٣/٨٢

خلکو سره زيات ښه رويه کوله والا او د هغه نه زيات تقوي او احتياط والا نه دی ليدلی حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې زه تاسو ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم درکوم او پوښتنه کوم! چې تاسو دا ټولې خبرې په رښتيا زړه سره وايئ؟ خلکو وويل هو! حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! زه تا په دې خبره باندې شاهد جوړوم چې زه هم د هغه په باره کې هغه ټولې خبرې وايم چې دا خلک وايي بلکې زه يې د دوي نه زيات وايم په يو روايت کې دا دی چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا هم وفرمايل چې حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قرآن ولوسته او د هغې حلال يې حلال او حرام يې حرام او ګڼل يعنې حلال يې اختيار کړل او حرام يې پرېښودل هغه د دين لوي فقيه او د سنت نبوي ﷺ زبردست عالم وو.(۱)

**دحضرت ابن عمر او معاذبن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ حسن اخلاق:**

حضرت سالم رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کله هم په يوه خادم لعنت نه دي ويلي صرف يو ځل يې په يوه خادم باندې لعنت ويلي نو هغه يې ازاد کړی وو حضرت زهري رَحِمَهُ اللهُ وايي چې يو ځل حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دومره ويلي وو (اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! په ده باندې لع) له دې سره منع شو او لفظ يې پوره نه کړ او ويې فرمايل چې زه دا لفظ په خپله ژبه ويل نه غوارم!(۲)

او د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د مال خرچ کولو د شوق په عنوان کې دا حديث تېر شوی دی چې حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خلکو کې د ټولو نه زيات د ښايسته مخ والا د ټولو نه زيات د ښو اخلاقو والا او د ټولو نه زيات د فراخه لاس والا يعنې سخي وو.(۳)

# برداري او يو بل ته ښښنه کول

**د آنحضرت ﷺ برداري دهغه چا په مقابل کې چې دحنين په مال کې طعن ولګولو:**

امام بخاري په خپل کتاب کې دا روايت کوي چې حضرت عبدالله فرمايي چې په غزوه حنين کې د فتح حاصلولو نه پس رسول الله ﷺ د زره ساتلو له وجې نه په مال ورکولو کې د بعرو نورو خلکو ته ترجيح ورکړ نو حضرت اقرع بن حابس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او عيينه بن حصن ته يې سل سل اوښان ورکړل نو ريې هم خلکو ته ورکړل په دې باندې يو سړي وويل چې د مال غنيمت په دې

---

۱: اخرجه ابن سعد ۳/۸۲

۲: اخرجه ابن سعد ۳/۱۱۰

۳: ابو نعيم في الحلية ۱/۳۰۷.

تقسیم کې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رضا مقصود نه وو ما وویل زه به دا خبره ضرور رسول الله ﷺ ته کوم انو ما رسول الله ﷺ ته وکړه رسول الله ﷺ وفرمایل الله جَلَّ جَلَالُهُ دې په حضرت موسي عَلَيْهِ السَّلَامُ باندې رحم وکړي هغه خو د دېنه هم زیات تنګ کړی شوي وو خو هغوی صبر کړی وو نو زه به هم صبر کوم د بخاري په بل روایت کې دا دی چې په دې باندې یو سړي وویل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! په دې تقسیم کې د عدل او انصاف نه کار وانخیستلي شو او نه پکې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رضا مقصد ده ما وویل دا خبره رسول الله ﷺ ته ضرور کوم نو لاړم او رسول الله ﷺ ته مې وکړه رسول الله ﷺ وفرمایل کله چې الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه رسول الله ﷺ عدل نه کوي نو بیا یې بل څوک کولی شي الله جَلَّ جَلَالُهُ دې په موسي عَلَيْهِ السَّلَامُ باندې رحم وکړي هغه خو د دې نه هم زیات تنګ شوي وو خو هغه صبر کړی وو.

**د ذی الخویصره په مقابل کې د رسول الله ﷺ بردباري:**

په بخاري او مسلم کې دا روایت دی چې حضرت ابوسعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو ځل مونږ رسول الله ﷺ سره موجود وو هغوی ﷺ په خلکو باندې څه شی تقسیمولو چې په دې کې د بنوتمیم یو سړی ذوالخویصره راغی او وې ویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! انصاف سره تقسیم کړئ! رسول الله ﷺ وفرمایل ته تباه شې! که چېرې زه انصاف ونه کړم نو څوک به انصاف کوي که چېرې زه انصاف ونه کړم نو زه به ناکام او برباد شم! هر کله زه انصاف ونه کړم نو بیا به بل څوک انصاف کوي؟ حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ما ته اجازه راکړئ! چې زه د ده سر والوزوم! رسول الله ﷺ وفرمایل نه دې پرېږده! د ده داسې ملګري دي چې د هغوی د لمونځ، روژې په مقابله کې به ته خپل لمونځ او روژه کم ګڼې! دا خلک به قرآن لولي خو قرآن به د دوي د ځټ له هډوکي نه مخکې پورته د الله جَلَّ جَلَالُهُ خواته نه ځي. او دا خلک به د اسلام نه داسې اوځي او مخکې یې لکه څنګه چې غشي په ښکار پسې اولګي او د هغه نه پروې اوځي او مخکې ځي د غشي د اوسپنې والا حصې ته که وکتل شي نو په هغې کې به څه شی په نظر رانشي بیا د هغې د ترلو مزي ته که وکتل ی شي چې په هغې کې سر د اوسپنې والا حصه په لرګي ترلی شي نو په هغې کې به هم څه شی په نظر رانشي بیا د هغې لرګي ته وکتل شي نو په هغې به هم څه په نظر رانشي بیا د هغې وزر ته وکتل ی شي نو په هغې به هم څه په نظر رانشي په داسې حال

کې دا غشي د دغه ښکار په لرې او وینه کې تېر شوی دی خو د دې لرې او وینې په مغې کې څه نښه په نظر نه راځي د دوې نښه دا ده چې په دوې کې به یو تور سړی وي چې د هغه یو مټ غوښه به د ښځې د یوې سینې په شان یا د غوښې د بوټي پشان خوزېږي دا خلک به هغه وخت رابښکاره کېږي کله چې په خلکو کې د اختلاف او انتشار زور وي حضرت ابو سعید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې زه ګواهي ورکوم! چې ما دا حدیث د رسول الله ﷺ نه اورېدلی دی او زه ګواهي ورچې دې خلکو سره حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ جنګ کړی وو زه هم د هغه سره ووم حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغه سړی د راوستلو حکم وکړ خلکو تلاش وکړ او حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته یې را وستو او رسول الله ﷺ چې د هغه کومه نښه ښودلې وه هغه ما په هغه کې پوره طریقې سره وکتله.(۱)

**د عبدالله بن ابی د مرګ په وخت کې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د آنحضرت ﷺ بردباري او زغم.**

د بخاري او مسلم په روایتونو کې داسې راغلي دي چې حضرت عبدا لله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي کله چې د منافقانو سردار عبدالله بن ابي مړشو نو د هغه ځوی حضرت عبدالله بن عبدالله بن ابي د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض یې وکړ چې تاسو ما ته خپل کمیس راکړئ! په دې کې به زه خپل پلار ته کفن ورکړم او تاسو د هغه د جنازې لمونځ وکړئ! او د هغه لپاره بخښنه اوغواړئ! نو رسول الله ﷺ هغه ته خپل کمیس ورکړ او ورته فرمایل کله چې یې جنازه تیاره شي نو ما خبر کړه نو زه به یې د جنازې لمونځ وکړم کله چې رسول الله ﷺ د هغه جنازې لمونځ شوروع کولو نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغوی ﷺ لره ورسوته نه رابښکلو او وې ویل چې آیا الله رب العزت تاسو د منافقانو د جنازې کولو نه منع کړي نه وئ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل چې الله رب العزت ما ته په استغفار غوښتلو او نه غوښتلو د دواړو کې خبرو اختیار راکړی دی ځکه چې الله رب العزت فرمایلي دي!

اِسْتَغْفِرْ لَهُمْ اَوْ لَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ ط (۲)

ترجمه: برابره خبره ده که ته بخښنه غواړې او که نه یې غواړې.

کله چې نبي کریم ﷺ مونځ وکړو نو دا آیت نازل شو: وَلَا تُصَلِّ عَلٰی اَحَدٍ مِّنْهُمْ مَّاتَ اَبَدًا

ترجمه: او چې په دوې منافقانو کې څوک مړ شي نو د هغه په جنازه چېرې هم لمونځ مه کوه!

---

۱: کذافي البدایة ۴/۳۶۲

۲: سروة توبه آیت ۸۰

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي کله چې عبدالله بن ابي مړ شو نو رسول الله ﷺ د هغه د جنازې لپاره را اوغوښتلی شو نو رسول الله ﷺ تشريف يوړو کله چې هغوی ﷺ لمونځ کولو لپاره ودرېده نو زه ورتاو شوم او د هغوی ﷺ مخامخ اودرېدم او عرض مې وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! آيا تاسو د الله جَلَّ جَلَالُهُ د دښمن عبدالله بن ابي د جنازې لمونځ کوئ! چې ده په فلانی او فلانی ورځ دا او دا ويلي وو او ما د هغه ورځې او شمېرلې! رسول الله ﷺ مسکی کېدو کله چې ما ډېر څه وويل نو هغوی ﷺ وفرمايل اې عمره! وروسته شه! الله رب العزت ما ته د منافقانو لپاره د استغفار کولو او نه کولو اختيار راکړی دی ما ته د دوي لپاره اويا ځلې هم استغفار اوغواړې بيا هم الله جَلَّ جَلَالُهُ دوي لره نه بخښي اختيار راکړ شوی که چېرې ما ته دا معلومه واي چې اويا وو ځلو نه زيات استغفار کولو سره د ده مغفرت کېږي نو ما به ضرور ورغوښتلي واي بيا رسول الله ﷺ د هغه د جنازې لمونځ وکړ او جنازې سره مقبرې ته لاړ او د هغه د دفن کولو پورې هغوی ﷺ د هغه په قبر ولاړ وو بهر حال د رسول الله ﷺ په مقابله کولو کې چې د کوم جرأت نه ما کار واخيسته په هغې باندې زه حيران ووم الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه رسول ﷺ ښه پوهېږي چې په دې کې څه مصلحت وو؟ په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! اوس د دې خبرې لږ وخت تېر شوی وو چې دا دوه ايتونه نازل شول: وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰ أَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ أَبَدًا

ترجمه: او د دوي له جملې چې څوک هم مړ شي نو ته يې په جنازه کې گډون مه کوه!

دېنه پس رسول الله ﷺ د يو منافق په جنازه هم لمونځ ونه کړاو نه د هغه په قبر ودرېده او د دې دنيا نه تشريف اوړلو پورې د هغوی ﷺ دا عمل وو.(۱)

جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي کله چې عبدالله بن ابي مړ شو نو د هغوی ځوی راغی او د رسول الله ﷺ په خدمت کې يې عرض وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! که چېرې تاسو په دې جنازه کې شرکت ونه کړنو خلک به مونږ ته همېشه پېغور راکوي نو هغوی ﷺ وفرمايل په قبر کې اېښودلو نه مخکې مو ولې ونه ويل نو هغه قبر نه راووېستل شو او رسول الله ﷺ په هغه باندې د سر نه پښو پورې دم واچولو هغوی ﷺ ورته خپل کميس واغوسته ځکه چې هغه د جنګ بدر په موقعه باندې د رسول الله ﷺ تره حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته خپل کميس اغوستی وو رسول الله ﷺ د ده د هغه احسان بدله ورکول غوښتل او د هغه د ځوی زړه

---

۱: عند احمد وهكذا رواه الترمذي وقال حسن صحيح.

خوشحالول هم غوښتل.(۱)

حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي کله چې عبدالله بن ابي په قبر کې کېښودل شو نو بيا رسول الله ﷺ هغه ته ورور سېده نو د رسول الله ﷺ په وينا باندې هغه بهر ته راوېستل شو رسول الله ﷺ هغه پخپلو زنګنونو باندې کېښودلو او په هغه باندې يې دم واچولو او هغه ته يې خپل کميس واغوسته.(۲)

**هغه يهودي ته صبر کول چې په آنحضرت ﷺ يې جادو کړي ؤ:**

حضرت زيد بن ارقم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو يهودي په رسول الله ﷺ باندې جادو وکړ چې له هغې وجې هغوی ﷺ څو ورځې مريض وو حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ حاضر شو او عرض يې وکړ چې يو يهودي په تاسو باندې جادو کړی دی هغه غوټې اچولي دي او په فلاني کوهي کې يې ورغورزولي دي تاسو سړی اولېږئ! او هغه را اوغواړئ! هغوی ﷺ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ولېږه هغه يې راو وېستل او د رسول الله ﷺ په خدمت کې يې راوړل شو او داسې ودرېده لکه چې قيد نه وتلي وي د معلومېدو باوجود رسول الله ﷺ نه خو دا خبره اخري وخته پورې هغه يهودي ته وکړه او نه هغه بد اثر د رسول الله ﷺ په مخ مبارک باندې کله وليده.(۳)

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې په رسول الله ﷺ باندې جادو شوی وو چې د هغې د اثر په وجه به هغوی ﷺ ته دا محسوسېدله چې هغه خپلو بيبيانو له ورغلی دی خو په حقيقت کې به هغه نه وو ورغلي حضرت سفيان راوي وايي چې دا اثر د ټولو نه سخت جادو وي رسول الله ﷺ وفرمايل اې عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا! آيا تا ته معلومه ده چې ما د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه دعا غوښتلې وه هغه الله جَلَّ جَلَالُهُ قبوله کړه ما ته دوه فرښتې راغلې يوه زما سر ته کېناسته او بله پښو ته! سر والا ملائيکې هغې بلې ته وويل چې په دې حضرت څه شوی دی؟ دويمې وويل په ده باندې جادو شوی دی. اولنۍ پوښتنه وکړه چې جادو چا کړی دی؟ دويمې وويل لبيد بن اعصم! چې د بنوزريق د قبيلې دی او د يهوديانو حليف او منافق دی اولنۍ پوښتنه وکړه چې هغه جادو په څه شی کې کړی دی؟ دويمې وويل چې

---

۱: عند احمد ورواه النسائي

۲: عند البخاري كذافي التفسير لابن كثير ۲/۲۷۸

۳: اخرجه احمد ورواه النسائي

په گومنزاو د گومنزو نه په پرېوتو وېښتو باندې يې کړې دی اولنې پوښتنه وکړه چې دا شيان چېرته دی؟ دويمې ووېل چې د نرې کجورې د غونچې غلاف زروان نومي کوهي کې چې کوم کاڼي پروت دې د هغې د لاندې ايښې دی حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي چې رسول الله ﷺ هغه کوهي ته تشريف يوړو او دغه شيان يې د هغې نه راو وېستل او ويې فرمايل چې دا هغه کوهي دی چې ما ته په خوب کې ښودل شوی دی د دغه کوهي اوبه داسې سرې وې لکه څنګه چې د نکريزو لوښې د وينځلو نه پس د اوبو رنګ سور کوي او د دغه کوهي د کجورو ونې داسې وحشتناکې وې چې دغه شان څنګه چې د شيطانانو سرونه وي ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړ چې دغه شيان تاسو خلکو ته ولې ونښودل؟ هغه مو ولې ښخ کړل؟ رسول الله ﷺ وفرمايل چې الله رب العزت خو ما ته د جادو نه شفاء راکړې ده او زه د چا خلاف فساد او فتنه نه غواړم.(۱)

د امام احمد په روايت کې دا دی چې حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي چې د رسول الله ﷺ د شپږو مياشتو پورې دا حال وو چې هغوی ﷺ ته به داسې معلومېده چې هغه خپلې بي بي ته ورغلې دې او په داسې حال کې چه حقيقت کې به نه وو ورغلې بيا هغوی ﷺ ته دوه ملائيکې راغلې مخکې يې نور حديث بيان کړ.(۲)

**زهر ورکونکې يهودې ښځې ته دآنحضرت ﷺ صبر او بردبارې**

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې يوې يهودې ښځې د چيلې په غوښه کې زهر ملاو کړل او رسول الله ﷺ ته يې راوړه رسول الله ﷺ ترې څه اوخوړله نو هغوی ﷺ ته پته اولګېده هغه ښځه د رسول الله ﷺ خدمت کې راوستلی شوه رسول الله ﷺ ترې د دې زهرو ملاوولو په باره کې پوښتنه وکړه نو هغې ښځې صفا ووېل چې ما تاسو لره قتلول غوښتل رسول الله ﷺ وفرمايل چې الله جَلَّ جَلَالُهُ زما خلاف ستا دا منصوبه هيڅکله کامیابو ونکې نه وه صحابه وو عرض وکړ ايا تاسو به دا ښځه نه وژنئ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل نه! حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې ما تول عمر د رسول الله ﷺ په مرې باندې د دې زهرو اثر وليده.(۳)

حضرت ابوهريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې يوې يهودنې ښځې د چيلې په غوښه کې زهر ملاو کړل

---

۱: عند البخاری ورواه احمد ومسلم.
۲: کذافی التفسير لابن کثير ۴/۵۷۴
۳: اخرجه الشيخان.

او رسول الله ﷺ په خدمت کې یې د دعوت په توګه اولېږله د هغې خوړلو نه پس رسول الله ﷺ خپلو صحابه وو ته وفرمایل مه خورئ! په دې غوښه کې زهر ملاو شوی دی رسول الله ﷺ د هغې یهودنې ښځې نه پوښتنه وکړه چې تا داسې ولې وکړل؟ نو هغې وویل چې ما دا معلومول کل چېرې ته صحیح پیغمبر یې نو الله رب العزت به تا ته اوښایي چې په دې کې زهر دي نو هم داسې وشو او که چېرې ته دروغژن یې نو ته به په دې زهرو سره تباه شې! او خلک به در نه خلاص شي (نعوذ بالله من ذلک) دا یې چې واورېدل نو رسول الله ﷺ ورته هیڅ ونه ویل.(۱)

امام احمد د حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ والا د دې حدیث پشان مضمون د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کوي په هغې کې دا مضمون هم دی کله چې به هم رسول الله ﷺ د دې زهرو له وجې نه په بدن کې تکلیف محسوسولو نو هغوی ﷺ به ښکر لګولو څنګه چې په یو سفر کې تشریف یوړو او احرام یې اوتړلو او هغوی ﷺ ته د دغې زهرو اثر محسوس شو نو ښکر یې ولګاوه.(۲)

حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې د خیبر یوې یهودنې ښځې یو چېلۍ وریت کړ او بیا یې پکې زهر ملاو کړل او بیا یې د رسول الله ﷺ په خدمت کې ولېږه رسول الله ﷺ د هغې پنډۍ راواخیسته او د هغې نه یې طعام شروع کړ او هغوی ﷺ سره څو صحابه وو هم د هغې غوښه اوخوړله بیا رسول الله ﷺ هغوی ته وفرمایل چې لاسونه د خوړلو نه منع کړئ! رسول الله سړی ولېږه او هغه ښځه یې راوغوښته او ورته یې وفرمایل چې آیا تا په دې چیلي کې زهر ملاو کړی دی؟ هغې یهودنې ښځې وویل چې تا ته دا خبره چا وکړه؟ رسول الله ﷺ وفرمایل چې دا د پنډۍ توته چې زما په لاس کې ده دې ما ته وویل هغې وویل هو! ما پکې اچولي دي رسول الله ﷺ وفرمایل زهر ملاوولو سره تا څه حاصلول غوښتل؟ هغې وویل چې ما سوچ وکړ که چېرې ته صحیح پیغمبر یې! نو دا چېلۍ چې په کې زهر ګډ شوی دی تا ته به څه نقصان اونه رسوي او که چېرې ته نبي نه یې! نو مونږ به ستا سو نه خلاص شو. رسول الله ﷺ هغه ښځه معاف کړه او هغې ته یې سزا ورنکړه او کومو صحابه وو چې دا دغه چېلۍ غوښه خوړلې وه په هغې کې ځینې صحابه وفات شول او د دغه زهریلا چېلۍ

---

: عند البیهقی ورواه ابوداود نحوه واحمد والبخاری عن ابی هریره مطولا.

: عند احمد تفرد به احمد واسناده حسن.

ومه غوښه چې رسول الله ﷺ خوړلې وه د هغې له وجې نه هغوی ﷺ په خوله او اوګه
ندې ښکر ولګوله حضرت ابو هند رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د انصارو بیاضه قبلې ازاد شوی غلام وو په
روایت کې دي چې وفات شوي صحابي حضرت بشر بن براء بن معروز رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د
سول الله په فرمان سره هغه ښځه قتل کړای شوه.(١)

ضرت مروان بن عثمان بن ابي سعید بن معلي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې په مرض الوفات کې
سول الله ﷺ ته د حضرت بشر بن براء بن معروز رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خور راغله نو رسول الله ﷺ ورته
فرمایل چې اې ام بشر! ما چې ستا وررور سره د چېلۍ کومه غوښه په خیبر کې خوړلې وه د
غې وجې نه ما ته په دې وخت کې د خپل زړه رګ پرېکړې شویي معلومېږي او ټولو
سلمانانو دا ګڼله چې څنګه الله رب العزت رسول الله ﷺ ته نبوت ورکړی دی دغسې الله
پاک رسول الله ﷺ ته د شهادت مرتبه هم ورکړې ده. (٢)

**هغه سړي سره د عفوې او بردبارۍ معامله کول چې غوښتل یې رسول الله ﷺ قتل کړي:**

حضرت جعده بن خالد بن صمه جبشي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ یو غټ سړی
لیده نو په لاس سره یې د هغه خېټې خوا ته اشاره وکړه او ویې فرمایل چې که چېرې دا مال
دې ځای نه علاوه بل ځای کې وای نو ستا لپاره غوره وه بیا رسول الله ﷺ ته یو سړی
راوستلی شو او صحابه وو ویل چې دې سړي تاسو لره (نعوذ بالله من ذلک) قتلول
غوښتل رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل چې مه وېرېږه! که چېرې ستا دا اراده وه نو الله رب
العزت ته په دې کې کامیاب نکړي.(٣)

**په حدیبیه کې د وکه کونکو سره د رسول الله ﷺ د صبر او بردبارۍ معامله کې**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د صلح حدیبیه په موقعه باندې د مکې اتیا کسانو
وسلې را واخیستلې او په رسول الله ﷺ او صحابه وو باندې حمله کړې وه د غه خلکو په بې
خبرۍ کې نبي ﷺ لره قتلول غوښتل رسول الله ﷺ هغوی ته دعا وکړه نو هغوی ټول ونیول
شول حضرت عفان راوي وايي چې رسول الله ﷺ هغوی لره معاف کړل او دا آیت نازل شو:

﴿وَهُوَ الَّذِي كَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ عَنْهُم بِبَطْنِ مَكَّةَ مِن بَعْدِ أَنْ أَظْفَرَكُمْ عَلَيْهِمْ﴾ (٤)

---

١: عند ابی داود اخرجه ابوداود عن ابی سلمة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نحو حدیث جابر.
٢: عند ابن اسحاق وهکذا ذکر موسی بن عقبة عن الزهری عن جابر انتهی عن البدایة ٤/٢٠٨ مختصرا.
٣: اخرجه احمد قال الخفاجی ٢/٢٥ اخرجه احمد والطبرانی بسند صحیح.
٤: سورة فتح آیت ٢٤

ترجمه: او هغه الله داسې دي چې هغه د هغوی لاسونه تاسو نه يعنې ستاسو د قتل نه او ستاسو لاسونه د هغوی د قتل نه عين د مکې په قرب کې بند کړل پس د هغې نه چې تاسو ته ما په هغوی باندې قابو درکړې وه.(۱)

هم دا قصه حضرت عبدالله بن مغفل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نور زيات تفصيل سره بيانوي په هغې کې دا دي چې مونږ په حديبيه کې هم دا شان ايسار وو چې ناڅاپه دېرش ځوانان وسله لرونکي رابنکاره شول هغوی په مونږ باندې حمله کول غوښتل رسول الله ﷺ د هغوی لپاره بددعا وکړه نو الله رب العزت د هغوی د اوريدو طاقت ختم کړ ځکه هغوی نه پوښتنه وکړه آيا تاسو د چا په ذمه وارۍ باندې راغلي يئ؟ يا چا تاسو ته امن درکړی دی؟ هغوی وويل نه! رسول الله ﷺ هغوی پرېښودل په دې باندې الله رب العزت دا آيت نازل کړ: ﴿وَهُوَ الَّذِي كَفَّ﴾(۲)

**د دوس قبيلې سره د آنحضرت ﷺ د صبر او بردبارۍ معامله کول:**

حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت طفيل بن عمرو دوسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړ چې زما قبيلې دوس زما دعوت اونه منلو او د اسلام قبلولو نه يې انکار وکړ چې له دې وجې نه تاسو هغوی ته بددعا وکړئ! رسول الله ﷺ قبلې خوا ته مخ کړ او لاسونه يې اوچت کړل خلکو وويل چې اوس خو دوس قبيلې والا هلاک شول ځکه چې رسول الله ﷺ هغوی لپاره بددعا شروع کړه خو رسول الله ﷺ دا دعا وکړه اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! دوس قبيلې ته هدايت نصيب کړې او هغوی دلته راولې! اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! دوس قبيلې ته هدايت نصيب کړې او هغوی دلته راولې! اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! دوس قبيلې ته هدايت نصيب کړې! او هغوی دلته راولې! نو حضرت طفيل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ واپس لاړ او د خيبر په موقعه باندې دوس قبيلې اويا اتيا کورنۍ يې مسلمانان کړل او راېې وستل. (۳)

## د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ صبر او حوصله

حضرت ابو زعراء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به فرمايل چې زما پاکيزه بيبيانې او زما نېک اولاد په وړوکوالي کې د ټولو نه زيات صبر کونکي وو او چې لوی شول نو د ټولو نه زيات علم والا جوړ شول زمونږ په ذريعه الله رب العزت دروغ او غلطه

---

۱: اخرجه احمد ورواه مسلم وابوداؤد والترمذی والنسائی

۲: اخرجه احمد ايضاً والنسائی کذا فی تفسير لابن کثير ۴/۱۹۲

۳: اخرجه الشيخان

خبره لري كوي او زمونږ په ذريعه د لېوني شرمغ غابنونه ماتوي او كوم شيان چې تاسو نه په زبردستۍ سره اخيستي شي هغه الله رب العزت زمونږ په ذريعه واپس كوي او ستاسو د څټونو د غلامۍ رسۍ پرانيزئ! او زمونږ په ذريعه الله جَلَّ جَلَالُهُ شروع كوي او اخرته يې رسوي.(۱)

او د حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا فرمان تېر شوى دى چې ما د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه زيات حاضر دماغ، زيات عقلمند، زيات علم لرونكي او زيات صبركوونكي څوك نه دى ليدلى.(۲)

## مهرباني او شفقت

**د رسول الله ﷺ شفقت:**

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل چې زه څينې وخت لمونځ شروع كړم او زما خيال دا وي چې زه به لمونځ لږ اوږد كوم خو زه په مانځه كې د يو ماشوم د ژړا اواز واورم نو لمونځ مختصر كړم ځكه چې ما ته پته ده چې د ماشوم په ژړا سره د هغه مور پرېشانه وي.(۳)

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې يو سړي د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وكړه چې زما پلار چېرته دى ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل په دوزخ كې، كله چې رسول الله ﷺ په دې جواب سره د هغه په مخ باندې د خفگان اثر وليده نو ويې فرمايل چې زما پلار او ستا پلار دواړه په دوزخ كې دي غوره دا ده چې د رسول الله ﷺ مور پلار د جنتي يا دوزخي په باره كې خاموشي اختيار كړى شي ځكه چې څينې روايتونو كې د هغوى د جنتي كېدو ذكر دى او په څينې روايتونو كې دا دى چې د قيامت په ورځ به د هغوى امتحان اخيستى شي بس الله رب العزت بنه پوهېږي.(۴)

**د رسول الله ﷺ او هغه بانديچې قصه چې سختې او نامناسب خبرې ورته وكړې:**

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې يو بانديچې د رسول الله ﷺ په خدمت كې په ديت ادا، كولو كې د مدد اخيستلو لپاره راغى رسول الله ﷺ هغه ته څه وركړل بيا رسول الله ﷺ

---

۱: اخرجه عبدالغني بن سعيد في ايضاح الاشكال كذافي المنتخب الكنز ۵/۵۰

۲: اخرجه ابن سعد في مشورة اهل الراى ۱/۴۰۰

۳: اخرجه الشيخان كذا في صفة الصفة ٦٦

٤: اخرجه مسلم انفرد باخراجه مسلم كذافي صفوة الصفوة ١/٦٦

د هغه نه پوښتنه وکړه آیا ما په تا باندې احسان وکړ هغه باندیچي وویل چې نه تا احسان وکړ او نه تا ښه رویه وکړه مسلمانانو ته په دې خبره باندې غصه راغله او هغوی اودرېدل هغه یې وهل غوښتل نو رسول الله ﷺ هغوی ته په اشارې سره وفرمایل چې منع شئ! کله چې رسول الله ﷺ د هغه ځای نه پاڅېده او کور ته لاړ نو هغه باندیچي یې کور ته را وغوښتلو او ورته یې وفرمایل چې مونږ ته د څه اخیستلو لپاره راغلی وې؟ مونږ تا ته هلته د صحابه وو په مخکې درکړل؟ چې په هغې باندې تا څه نامناسبه الفاظ وویل دېنه پس رسول الله ﷺ هغه باندیچي ته څه نور ورکړل او ویې فرمایل چې اوس خو ما په تا باندې احسان وکړ هغه وویل هو! الله رب العزت دې تاسو ته زما د کور والاوو او زما د خاندان له طرفه جزایې خیر درکړي رسول الله ﷺ وفرمایل چې ته مونږ ته راغلی وې تا اوغوښتل مونږ درته څه درکړل خو تا په هغې باندې نامناسبه خبر وکړه چې له هغې وجې زما د صحابه وو په زړه کې تا ته غصه پیدا شوه نو دا رنګه ته اوس هغوی ته ورشه! او د هغوی په مخکې دا خبره وکړه چې اوس زما په مخکې تا وکړه دې لپاره چې د هغوی غصه ختمه شي هغه وویل دېره ښه ده نو کله چې هغه باندیچي صحابه وو له واپس ورورسېده نو رسول الله ﷺ وفرمایل ستاسو دا ملګري مونږ ته راغلی وو او ده څه غوښتلي وو په دې باندې مونږ دته څه ورکړی وو خو په هغې باندې ده نامناسبه خبره کړې وه اوس دې مونږ کور ته راغوښتی وو او څه مو نور ورکړی دی چې په هغې باندې ده وویل چې اوس زه خوشحاله شوی یم اې باندیچي! آیا خبره هم داسې ده؟ هغه وویل هو! الله رب العزت دې تاسو ته زما د کور والاوو او زما د خاندان له طرفه جزایې خیر درکړي بیا رسول الله ﷺ وفرمایل چې زما او د دې باندیچي مثال د هغه سړي په شان دی چې د هغه یوه اوښه وه چې هغه وېرېده خلک هغې پسې شو چې هغې سره هغې نوره هم زیاته تېښته شروع کړه د اوښې والا خلکو ته وویل چې تاسو دې پسې مه ځئ! زه به دا په نرمۍ سره اونیسم زه د دې په عادت او طبیعت ښه پوهېږم! زه به یې په نرمۍ سره اونیسم نو هغه اوښې پسې روان شو نو په زمکه باندې پرتې د کجورو بېکاره غنچې یې راواخیستله او اوازونه یې ورته کولو تر دې چې هغه راغله او راضي شوه اخر هغه پرې کجاوه کېښوده او پرې سور شو ده چې مخکې کومه خبره کړې وه که چېرې په هغې باندې ما ستاسو خبره منلې وای او ده ته مې

سزا ورکړي واي نو دا به په جهنم کې داخل شوی وای.(۱)

## د صحابه کرامو رضی الله عنهم شفقت

حضرت اصمعي رحمه الله وايي چې خلکو حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه ته وويل چې تاسو حضرت عمربن خطاب رضی الله عنه سره خبره وکړئ! چې هغه د خلکو سره نرمي اختيار کړي دا وخت خو د هغه د رعب دا حال دي چې پېغلې جينکۍ هم پخپله پرده کې د هغه نه وېرېږي، حضرت عبدالرحمن رضی الله عنه لاړ او حضرت عمر رضی الله عنه سره يې دا خبره وکړه نو هغوی وفرمايل چې زه خو به دوي سره هم داسې کوم ځکه چې که چېرې دوي ته پته اولګي چې زما په زړه کې د دې خلکو لپاره څومره مهرباني، شفقت او نرمي ده نو دوي به زما د اوګونه جامې لرې کړي.(۲)

## حياء او شرم

### د رسول الله ﷺ حياء

**درسول الله ﷺ دحياء په باره کې دحضرت ابوسعيدخدري بيان:**

حضرت ابو سعيد رضی الله عنه فرمايي چې پېغله نجلۍ چې څومره په خپله پرده کې شرم او حياء والا وي رسول الله ﷺ د دې نه زيات حياء والا وو. او کله چې به د رسول الله ﷺ څه خبره ناخوښه شوه نو د رسول الله ﷺ د مخ مبارک نه به د هغه ناخوښي صفا پته لګېده.(۳)

د حضرت انس رضی الله عنه نه هم دا شان حديث نقل شوی دی او په هغې کې دا هم دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل چې حياء خو ټول په ټوله خير دی.(۴)

**د صحابه کرامو رضی الله عنهم سره د رسول الله ﷺ دحياء معامله کول:**

حضرت انس بن مالک رضی الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ په سړی باندې زېړ رنګ وليده چې هغوی ته به محسوس شو کله چې هغه سړی پاڅېده او لاړ نو رسول الله ﷺ او فرمايي:

---

۱: اخرجه البزار قال البزار لانعلمه يروى الامن هذا الوجه قلت وهو ضعيف بحال ابراهيم بن الحكم بن ابان كذافى التفسير لابن كثير ۲/۴۰۴ واخرجه ايضاً ابن حبان فى صحيحه وابو الشيخ وابن الجوزي فى الوفاء كما قال الخفاجى ۲/۱۷۸

۲: اخرجه الدينوری كذافى منتخب الكنز ۴/۴۱۶

۳: اخرجه البخاری ورواه مسلم كذافى البداية ۶/۳۶ والترمذی فى الشمائل ۲۶ وابن سعد ۱/۹۲ واخرجه الطبرانى عن عمران بن حصين نحوه قال الهيثمى ۹/۱۷ رواه الطبرانى باسنادين ورجال احدهما الصحيح.

۴: اخرجه البزار قال الهيثمى ۹/۱۷ رجاله رجال الصحيح غير محمد بن عمر المقدمى وهو ثقة.

که چيري تاسو ده ته دا وو ايئ! چې دا زېړ رنګ وو ينځئ! نو ډېره به ښه وي د هغوی ژبات تر عادت مبارک دا وو کله چې به يې د چا څه شی ناخوښه وو نو هغوی به د هغه سړی په مخامخ څه نه ويل. (۱)

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي کله چې به رسول الله ﷺ ته د يو ه سړی د څه عيب خبر رسېدلو نو د هغه سړی نوم اخيستلو سره به يې داسې نه وفرمايل چې په فلانې سړی څه شوی دی چې هغه داسې وايي بلکې داسې به يې وفرمايل چې په خلکو څه شوی دی چې هغوی داسې او داسې وايي .(۲)

**د خپل اهل سره د رسول الله ﷺ د حياء معامله کول:**

د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ازاد کړی شوي يو غلام وايي چې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمايل چې ما د حياء له وجې نه د رسول الله ﷺ د شرم ځان کله هم نه دی ليدلي.(۳)

## د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ حياء

**حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دحياء په باره کې د رسول الله ﷺ بيان:**

حضرت سعيد بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې د رسول الله ﷺ محترمه بي بي حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دواړو د هغوی ﷺ نه دا واقعه بيان کړه چې رسول الله ﷺ د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څادر اغوستی وو او پخپله بستره باندې پروت وو چې په دې کې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اجازه وغوښتلو رسول الله ﷺ ورته اجازت ورکړ او هغوی هم داسې ملاست وو او هغه د خپل ضرورت خبره وکړه او لاړ حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې بيا ما اجازت وغوښتلو نو هغوی ﷺ راوچت شو او کېناسته او حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته يې وفرمايل چې ته هم خپلې جامې صحيح کړه بيا يې ما ته اجازه راکړ ما هم د خپل ضرورت خبره وکړه او لاړ بيا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی اجازه يې وغوښته رسول الله ﷺ ورته اجازه ورکړه هغوی همداسې ملامست ؤ او هغه د خپل ضرورت خبره وکړه او لاړم نو حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! څه خبره ده چې تاسو د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په راتلو چې څومره اهتمام وکړ هغه هومره دې د حضرت

---

۱: اخرجه احمد ورواه ابوداود والترمذی فی الشمائل والنسائی فی اليوم والليلة.

۲: عند ابي داود کذافی البداية ۲۸/٦

۳: اخرجه الترمذی فی الشمائل ۲٦ عن موسی بن عبدالله بن يزيد الحطمی

ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په راتلو باندې اونه کړ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل چې عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ډېر زیاد د حیاء والا سړی دی نو ما ته وېره پیدا شوه چې که چېرې زه هغه نه په داسې حالت کې اجازه ورکړم نو هغه به د خپل ضرورت خبره اونه کړی شي د دې حدیث ډېر راویان دا هم روایت کوي چې رسول الله ﷺ حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته وفرمایل چې آیا زه به د هغه نه حیاء نه کوم چا نه چې ملائیکې حیاء کوي.(۱)

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو ځل رسول الله ﷺ په کور کې ناست وو او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د هغوی نه وروسته ناسته وه چې په دې کې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اجازت وغوښتلو او دننه راغی بیا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اجازت وغوښتلو او دننه راغی بیا حضرت سعد بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اجازت وغوښتلو او دننه راغی بیا حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اجازت وغوښتلو او دننه راغی رسول الله ﷺ خبرې کولې او د هغوی ﷺ زنګنونه ښکاره وو د نورو حضراتو په راتلو سره خو رسول الله ﷺ هم داسې وو خو د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په راتلو سره رسول الله ﷺ په خپلو زنګنونو باندې جامه واچوله او خپلې محترمې بي بي حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته یې وفرمایل چې لږه وروسته کېنه! دې حضراتو څه وخته پورې رسول الله ﷺ سره خبرې وکړې او لاړل نو حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما پلار او نور صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ دننه راغلل نو تاسو نه په زنګنونو باندې جامه واچوله او نه دې ما ته د وروسته کېدو وویل خو چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ را ننوت تا خپل زنګنونه هم پټ کړل او زه دې هم شاته کړم داولې؟ رسول الله ﷺ وفرمایل آیا زه به د هغه سړی نه حیاء نه چې د هغه نه ملائیکې حیاء کوي په هغه ذات مې دې قسم وي چې د هغه په قبضه کې زما ساه ده فرښتې د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه داسې حیاء کوي څنګه چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د رسول الله ﷺ نه کوي که چېرې هغه دننه راغلی واي او ته ما سره خوا کې ناسته واې نو هغه به نه خبره کړې واې او نه به یې واپس تلو پورې سر اوچت کړی وای.(۲)

---

۱: اخرجه احمد ورواه مسلم وابویعلی ورواه احمد من وجه آخر عن عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بنحوه واحمد والحسن بن عرفة عن حفصة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا مثل حدیث عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا

۲: عند الطبراني هذاحدیث غریب من هذا الوجه وفیه زیادة علی ما قبله وفی سنده ضعف كذاف البداية ۷/۲۰۲،۲۰۴ وحدیث حفصه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا اخرجه ایضا الطبراني في الکبیر والاوسط مطولا وابویعلی باختصار کثیر واسناده حسن کما قال الهیثمی ۹/۸۲ وحدیث ابن عمر اخرج ایضا ابویعلی بنحوه وفیه ابراهیم بن عمر بن ابان وهو ضعیف کما قال الهیثمی ۹/۸۲

**د حضرت عثمان اوحضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا دحیاء په باره کښې دحسن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بیان:**

حضرت حسن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د ډېر حیاء دار کېدو تذکره کوله چې بعض وخت به حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په کور کښې وو او دروازه به هم بنده وه خو بیا به یې هم د غسل لپاره خپلې جامې نه وېستلې دومره به شرمېدلو چې د غسل نه پس به کله هغه په جامه ستر نه وو پټ کړې نو ملا به یې نشوه نېغولی یعنې نېغ به نشو ودرېدلی.(۱)

حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمایي چې حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې تاسو د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه حیاء کوئ! ځکه چې زه بیت الخلاء ته ځم نو د الله رب العزت نه شرمېږم! او خپل سر پټوم.(۲)

**د حضرت عثمان بن مظعون رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حیاء:**

حضرت سعد بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت عُماره بن غُراب یحصُبي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې حضرت عُثمان بن مظعون رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض یې وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما دا خبره بلکل خوښه نه ده چې زما بي بي زما ستر اووینې رسول الله ﷺ وفرمایل ولې؟ وې ویل د دې نه شرم راځي او دا خبره ما ته ډېره بده لګي رسول الله ﷺ وفرمایل چې الله رب العزت ښځه ستا جامه او ته یې د هغې لپاره جامه ګرځولي یې! او بعض وخت زما کور والا زما ستر او زه د هغې وینم! حضرت عُثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو داسې کوئ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل هو! حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل بیا تاسو نه پس څوک کېدلی شي؟ چې د هغه په هر کار کښې تابعداري وکول شي داسې خو صرف هم تاسو یئ! کله چې حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لاړ نو رسول الله ﷺ وفرمایل چې ابن مظعون خو ډېر حیاناک، پاک لمنې او ستر پټ ساتونکی دی.(۳)

**د حضرت ابوموسی اشعري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حیاء:**

حضرت ابو مُجلز رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وایي چې حضرت ابو موسی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې زه په تیاره کښې غسل کوم نو زه د الله رب العزت نه د شرم له وجې نه ملا نېغولو سره نشم درېدلی تر څو پورې چې خپلې جامې وانه غوندم!(۴)

---

۱: اخرجه احمد ۱/۴۳ قال الهیثمی ۹/۸۲ رواه احمد ورجاله ثقات اه ورواه ابونعیم فی الحلیة ۱/۵٦ مثله.

۲: اخرجه سفیان کذافی اکنز ۲/۱۴۴

۳: اخرجه ابن سعد ۳/۲۸۷

٤: اخرجه ابو نعیم فی الحلیة ۱/۲٦۰ اخرجه ابن سعد ۴/۸۴ عن ابن مجلز نحوه وعن ابن سیرین مثله.

حضرت قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت ابو موسى به كله چې په تياره كمره كې غسل كولو نو نيغ به نه او دريده بلكې په بنكته ملا به تيټ تلو او جامې به يې چې واغوستلې بيا به نيغ شو.(۱)

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت ابو موسى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به كله چې ويده كېدلو نو د دې وېرې نه به يې جامې اغوستې وې چې چېرته په اودو مې ستر ښكاره نه شي.(۲)

حضرت عُباده بن نُسي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت ابو موسى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څه خلک وليدل چې د لنګ ترلو نه بغير په اوبو كې ولاړ دي نو ويې فرمايل چې زه مړ شم بيا ژوندى شم! بيا مړ شم بيا ژوندى كړى شم بيا مړ شم بيا ژوندى كړى شم دا ما ته د دېنه خوښه ده چې زه د دوي په شان وكړم.(۳)

**د حضرت اشج بن عبدالقيس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حياء:**

حضرت اشج عبد القيس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل چې په تا كې دوه خويونه داسې دي چې د الله رب العزت خوښه دي ما پوښتنه وكړه چې هغه دوه خويونه كوم دي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل چې صبر او حياء. ما پوښتنه وكړ چې دا د مخكې نه په ما كې دي يا اوس پيدا شوي دي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل نه! د مخكې نه وو ما وويل ټول تعريفونه هغه الله رب العزت لره دي چې هغه زه داسې د دوو خويونو سره پيدا كړم چې هغه ته خوښ دي.(۴)

# عاجزي او تواضع

## (د رسول الله ﷺ تواضُع)

**دحضرت جبرئيل عَلَيْهِ السَّلَامُ او يوې بلې فرشتې سره د آنحضرت قصه:**

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ځل حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ د رسول الله ﷺ سره ناست وو هغوى اسمان خواته وكتل چې د اسمان نه يوه ملائيكه راكوزېږي نو هغوى وويل كله چې نه دا فرشته پيدا شوېده د هغه وخت نه تر اوسه پورې دا زمكې ته كله هم نه ده راكوزه شوې كله چې هغه فرشته زمكې ته راښكته شوه نو هغې وويل اې محمده ﷺ ستاسو رب ما ته دا پيغام را كړى دى او رالېږلې يې يم! چې تاسو بادشاه يا نبي جوړ كړم يا بنده او رسول؟

۱: عند ابى نعيم
۲: عند ابى نعيم ۲/۸۲
۳: اخرجه ايضاً ابونعيم ۲/۸۴
۴: اخرجه ابن ابى شيبة وابونعيم عن الشبح كذا فى منتخب الكنز ۵/۱۴۰

حضرت جبرائیل عَلَیهِ السَّلَامُ وویل اې محمده! تاسو د خپل رب په مخکې خضوع او عاجزي اختیار کړئ! نو رسول الله ﷺ وفرمایل چې زه بنده او رسول جوړېدل غواړم!(۱)

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا دا حدیث بیانوي او په اخر کې یې فرمایي چې د دېنه پس رسول الله ﷺ کله هم تکیه لګولو سره طعام نه دی خوړلی بلکې فرمایل به یې چې زه داسې طعام خورم لکه څنګه چې غلام طعام خوري او داسې کېنم لکه څنګه چې غلام کېني.(۲)

د مال واپس کولو په باب کې د طبراني وغیره په روایت سره د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ د دې هم معنی حدیث تېر شوی دی.

**درسول الله ﷺ دحیاء په باره کې د ابوامامه باهلی رَضِيَ اللهُ عَنهُ بیان:**

حضرت ابوغالب رَحِمَهُ اللهُ وایي چې ما د حضرت ابو أمامه رَضِيَ اللهُ عَنهُ په خدمت کې عرض وکړ چې تاسو مونږ ته داسې حدیث واوروئ! چې تاسو رسول الله ﷺ نه اورېدلی وي ویې فرمایل د رسول الله ﷺ تولې خبرې اترې به د قرآن مطابق وې هغوی ﷺ به د الله رب العزت ذکر ډېر کولو او بیان به یې مختصر کولو لمونځ به یې اوږد کولو هغوی ﷺ به نه غصه کېدلو او په دې سره به یې تکبر نه محسوسولو چې مسکین او کمزوری سړی سره لاړ شي او د هغه حاجت پوره کړي او راشي.(۳)

**د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنهُ بیان:**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ به د الله رب العزت ذکر ډېر کولو او لغو او بده خبره به یې بلکل نه کوله په خرباندې به یې سورلی کوله او د وړی جامې به یې اغوستلې او د غلام دعوت به یې قبلولو او که چېرې تاسو د غزوه خیبر په ورځ رسول الله ﷺ لیدلی وای چې په خرباندې سور دي چې د هغه واګې د کجورو د پاڼو نه جوړې شوې وې نو عجیبه منظر به مو لیدلی وی په ترمذي کې د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنهُ په روایت کې دا هم دی چې رسول الله ﷺ به د مریض پوښتنه کوله او په جنازه کې به یې شرکت کولو .(۴)

---

۱: اخرجه احمد قال الهیثمی ۹/۱۹ رواه احمد والبزار وابویعلی ورجال الاولین رجال الصحیح ورواه ابویعلی باسناد حسن.

۲: کما قال الهیثمی عن عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا بمعناه مع زیاده فی اوله.

۳: اخرجه الطبرانی واسناده حسن کما قال الهیثمی ۹/۲۰ واخرجه البیهقی والنسائی عن عبدالله بن ابی اوفی رَضِيَ اللهُ عَنهُ نحوه کما فی البدایة ۶/۴۵

۴: اخرجه الطیالسی وفی الترمذي وابن ماجه عن انس بعض ذالک کذافی البدایة واخرجه ابن سعد ۱/۹۵ عن انس بطوله.

**دحضرت ابوموسی ،ابن عباس او انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ بیان:**

حضرت ابوموسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ به په خره باندې سورلی کوله او وری نه جوړې جامې به یې اغوستلې او د چیلی ښنې به یې ونیولې او د هغې نه به یې پی لوشلې او د مېلمه خدمت به یې په خپله کولو.(۱)

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ به په زمکه باندې کېناسته په زمکه به یې طعام خوړلو او د چیلی ښنې به یې وتړلې او پی به یې ترې لوشلې او چې یو غلام به ورته د اوربشو د ډوډی دعوت ورکولو نو هغه به یې هم قبلولو.(۲)

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې د مدینې منورې نه بهر اباد ی والا یو سړی به رسول الله ﷺ ته د نیمې شپې په وخت کې د اوربشو د ډوډی دعوت ورکولو نو هغه به یې هم قبلولو.(۳)

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ ته به یو سړی به د اوربشو د ډوډی او د خراب خوند والا وازګې دعوت ورکولو نو هغوی ﷺ به هغه قبلولو او خپل هر څه په خلکو باندې د خرج کولو یې دا حال وو چې هغوی ﷺ یوه زغره د یو یهودي سره ګانه ایښې وه او تر وفاته پورې ورسره دومره مال تول نه شو چې هغه یې ورکړې وای او هغه زغره یې د یهودي نه راخلاصه کړې وای.(۴)

**په دې باره کې دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیان:**

حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو سړی درې ځل رسول الله ﷺ ته اواز وکړ رسول الله ﷺ به هر ځل په جواب کې (لبیک لبیک) وفرمایل.(۵)

**درسول الله ﷺ او یوې ښځې قصه:**

حضرت ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یوې ښځې به سړو سره د بې حیایۍ خبرې کولې او ډېره بې باکه او بدکلامه وه یو کرت هغه د رسول الله ﷺ په خوا کې تېره شوه رسول الله ﷺ

---

۱: اخرجه البیهقي وهذا غریب من هذاالوجه ولم یخرجوه اسناده جید کذا في البدایة ٦/۴۵ واخرجه الطبراني عن ابي موسی ایضاً ورجاله ثقات کما قال الهیثمي ۹/۲۰

۲: عند الطبراني واسناده حسن کما قال الهیثمي ۹/۲۰

۳: عند الطبراني ایضاً ورجاله ثقات کما قال الهیثمي

۴: عند الترمذي في الشمائل ۲۳

۵: اخرجه ابویعلی قال الهیثمي ۹/۲۰ رواه ابو یعلی في الکبیر عن شیخه جبارة بن المغلس وهو ثقة ابن نمیر وضعفه الجمهور وبقیة رجاله ثقات رجال الصحیح انتهی واخرجه ایضا ابو نعیم في الحلیة وتمام والخطیب کما في الکنز ۴/۴۵

په یو او چت ځای باندې ناست وو ثرید یې خوړلو په دې باندې هغه ښځې وویل دا ته وګورئ! داسې ناست دی لکه غلام چې کښېني داسې طعام خوري لکه غلام چې طعام خوري دا یې چې واورېدل رسول الله ﷺ وفرمایل کوم بنده به زما نه زیات بندګي اختیار وونکي وي؟ بیا هغې ښځې وویل چې دې طعام خوري او په ما باندې یې نه خوري رسول الله ﷺ وفرمایل چې ته هم وخوره! هغې وویل په ما باندې یې په خپل لاس او خوره رسول الله ﷺ هغې ته ورکړه نو هغې وویل چې کومه ستا په خوله کې دی د هغې نه یې په ما او خوره! رسول الله ﷺ ورته د هغې نه ورکړه چې هغه یې او خوړله د دې طعام په برکت سره په هغې باندې حیا او شرم غالب شول او د هغې نه پس هغې تر خپل وفاته پورې چا سره د بې حیایی او شرم څه خبره هم ونه کړه! او خپله حیا یې ښه کلکه وساتله.(۱)

**هغه چاته درسول الله ﷺ تسلي ورکول چې د مرعوب شو او رېږده:**

حضرت جریر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو سړی مخامخ د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو نو هغه باندې رېږدل راغلل رسول الله ﷺ وفرمایل چې تسلي ساته! زه بادشاه نه یم زه خو د قریشو د یو داسې ښځې ځوی یم چې هغې به وچه کړی شوې غوښه هم خوړله.(۲)

حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو سړی د مکې د فتحې په ورځ د رسول الله ﷺ سره خبرې کولې نو په هغه باندې رېږدل راغلل مخکې د تېر شوی حدیث پشان مضمون دی.(۳)

حضرت عامر بن ربیعة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې زه رسول الله ﷺ سره جماعت خواته او وتلم د هغوی ﷺ د پښې تسمه وشکېدله ما د صحیح کولو لپاره د هغوی ﷺ نه پښه واخیسته رسول الله ﷺ زما د لاس نه پښه واخیستله او ویې فرمایل چې تسمه خو زما او شلېده او جوړوې یې ته دې سره او چتوالي په نظر راځي او زه په نورو باندې او چتوالي نه خوښوم بلکې زه خو د ټولو برابر اوسېدل غواړم.(۴)

**رسول الله ﷺ به دخپلو اصحابانو نه د امتیازي کېدل نه خوښول:**

حضرت عبدالله بن جُبیر خُزاعي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې یو ځل رسول الله ﷺ د خپلو څو صحابه

---

۱: اخرجه الطبرانی واسناده ضعیف کما قال الهیثمی ۹/۲۱

۲: اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ۹/۲۰ وفیه من لم اعرفهم.

۳: اخرجه البیهقی کما فی البدایة ۴/۲۹۳

٤: اخرجه البزار قال الهیثمی ۹/۲۱ وفیه من لم اعرفه اه.

وو سره روان وو چا په هغوی باندې د جامې سوري وکړ کله چې هغوی ﷺ ته په زمکه بادې سوري په نظر راغی نو سر یې اوچت کړ او وې کتل چې یو صاحب په څادر سره په هغه باندې سوري کوي رسول الله ﷺ وفرمایل پرېږده! او څادر یې د هغه نه واخیسته او کېښودو یې! او ویې فرمایل چې زه هم ستاسو پشان سړی یم ځان لپاره امیازي سلوک نه غوارم.(۱)

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې ما په زړه کې وویل معلومه نه ده چې رسول الله ﷺ به نور څومره پورې په مونږ کې وي د دې معلومولو لپاره ما د رسول الله ﷺ په خدمت کې عرض وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! که چېرې تاسو د سوري یو څپر جوړ کړئ! نو ډېر به ښه وي رسول الله ﷺ وفرمایل وفرمایل چې زه خو په خلکو کې داسې یو ځائ اوسېدل غوارم چې دا خلک زما پوندې د پښو لاندې کوي او زما څادر راکاږي تر دې چې الله رب العزت مې د دنیا نه اوچت کړي او ما به د دې خلکو نه راحت کړي زه خپل ځان لپاره جدا ځائ جوړول نه غوارم. (۲)

حضرت عکرمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې زه به پته لګوم چې رسول الله ﷺ به په مونږ کې نور څوز پورې وي ما عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه وینم چې عامو خلکو سره په اوسېدو کې تاسو ته تکلیف وي د هغوی جمعه ګرد وغبار په تاسو باندې راځي له دې وجې نه که چېرې تاسو خپل ځان لپاره یو تخت جوړ کړئ! چې په هغې باندې تاسو کېنئ! او خلکو سره خبرې کوئ! نو دا به غوره وي رسول الله ﷺ هم هغه جواب ورکړ چې په مخکې حدیث کې تېر شو حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وایي چې د هغوی ﷺ په دې جواب سره زه پوي شوم چې هغوی ﷺ به اوس په مونږ کې لږه موده اوسېږي.(۳)

**په کور کې د رسول الله ﷺ د کار په باره کې دعائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا بیان:**

اسود رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې ما د حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا نه پوښتنه وکړه کله چې به رسول الله ﷺ کور ته تشریف راوړلو نو څه څه به یې کول، هغې وفرمایل چې د کور والاوو په کار کې به لګیا کېدو او چې که به د لمونځ وخت راتلو نو بهر ته به تلو او لمونځ به یې ورکولو .(۴)

---

۱: اخرجه الطبرانی ورجاله رجال الصحیح کما قال الهیثمی ۹/۲۱

۲: اخرجه البزار رجاله رجال الصحیح کما قال الهیثمی ۹/۲۱

۳: اخرجه الدارمی کذافی جمع الفوائد ۲/۱۸۰ واخرجه ابن سعد ۲/۱۹۳ عن عکرمه نحوه.

۴: اخرجه احمد ورواه البخاری وابن سعد ۱/۹۱ نحوه.

حضرت عُروه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو سړی د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه پوښتنه وکړه چې آيا رسول الله ﷺ به په کور کې څه کولو ؟ هغې وفرمايل هو! رسول الله ﷺ به خپلې پڼې په خپله ګنډلې او خپلې جامې به يې ګنډلې آنحضرت ﷺ به په کور کې دا شان کار کولو څنګه چې تاسو يې کوئ! حضرت عمره رَحِمَهُ اللهُ وايي چې ما د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه پوښتنه وکړه چې رسول الله ﷺ په خپل کور کې څه څه کول؟ هغې وفرمايل چې رسول الله ﷺ هم انسان وو نو د نورو انسانانو پشان نبي کريم ﷺ به د خپلو جامو نه د شک په وجه سره سپږې راوېستلې او د خپلې چېلۍ نه به يې پۍ لوشلې او خپل کار به يې پخپله کولو .(۱)

**د رسول الله ﷺ د تواضع بعض حالتونه:**

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله ﷺ به په کور کې د اودس اوبو تيارولو لپاره چاته امر نه کولو.(۲)

حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې يو ځل رسول الله ﷺ زما مريضتيا د پوښتنه لپاره تشريف راووړ هغوی ﷺ نه په کچر باندې سور وو او نه په ترکي اس باندې بلکې پياده يې تشريف راووړ.(۳)

**دفتح په کال مکې مکرمې نه دآنحضرت ﷺ دتواضع په حال کې داخلېدل:**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې رسول الله ﷺ په داسې حال کې حج وکړ چې په زړه کجاوه باندې په داسې حال کې سپور وچې په کجاوه باندې يې د پروت څادر قيمت له څلورو درهمو هم کم و د دې باوجود هغوی ﷺ دا دعا غوښتله چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ! ما ته د داسې حج توفيق راکړې چې په هغې کې رياء او شهرت نه وي. (۴)

**حضرت ابوهريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د سامان دوړلو او دوکاندار د لاس د ښکولو نه منع کول:**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي؛ کله رسول الله ﷺ مکې ته د فاتح په انداز کې داخل شو او مکه شريفه يې فتحه کړه نو خلک په اوچتو ځايونو باندې وختل او رسول الله ﷺ ته يې کتل خو

۱: عند البيهقي ورواه الترمذی فی شمائل کذافی البداية ۶/۴۴
۲: عند القزوينی بضعف کذافی جمع الفوائد ۲/۱۸۰
۳: اخرجه البخاری کذا فی صفة الصفوة ۱/۱۶۵/۶۵
۴: اخرجه الترمذی فی الشمائل ص ۲۴

د خشوع او عاجزۍ له وجې نه د هغوی ﷺ سر مبارک په کجاوه باندې لګېدلی وو.(۱)

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې د مکې د فتحې په ورځ چې کله رسول الله ﷺ مکې ته داخل شوې و نو د هغوی ﷺ زنه مبارکه د عاجزۍ له کبله نه په کجاوه باندې وه.(۲)

حضرت عبدالله بن ابي بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې کله رسول الله ﷺ د ذي طوٰی مقام ته ورسېده نو په خپله سورلۍ باندې ودرېده دغه وخت هغوی ﷺ سور یمني کرښې لرونکي څادر په سر باندې ترلې و او د هغې یو طرف یې په خوله کې نیولی ؤ و چې کله رسول الله ﷺ وکتل چې الله پاک ورته د مکې فتح ورکړې ده نو د الله جَلَّجَلَالُهُ په مخکې یې د خشوع او عاجزۍ ښکاره کولو لپاره خپل سر ښکته کړ تر دې چې د هغوی ﷺ ږیره مبارکه د کجاوې منځنۍ برخې ته لګېدله.(۳)

حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې یو ځل زه له رسول الله ﷺ سره بازار ته لاړم رسول الله ﷺ جامه خرڅوونکي سره کېناسته او په څلور درهمه یې یو پرتوګ ورځخه واخیسته بازاروالو یو د سرو او سپینو زرو تللو والا ساتلې وو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چې تول کوه! خو درونډ تول کوه! رسول الله ﷺ هغه پرتوګ واخیست، ما د رسول الله ﷺ نه پرتوګ اخیستل وغوښتله هغوی ﷺ وفرمایل چې د شي مالک پخپله د هغې د اوچتولو حقدار وي البته که چېرې هغه مالک دومره کمزوری وي چې خپل شی نه شي اوچتولی نو بیا دې د هغه بل مسلمان ورور له هغه سره مرسته وکړي ما پوښتنه وکړه چې اې د الله جَلَّجَلَالُهُ رسوله! تاسو به دا پرتوګ واغوندئ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل چې هو! ورځ، شپه او سفر، کې به یې اغوندم! ځکه چې ما ته د ستر پټولو حکم راکړی شوی دی او ما ته د دې نه زیات د ستر پټولو والا وو څه شي ملاو نه شو.(۴)

په بل روایت کې حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې رسول الله ﷺ تللو والا ته وفرمایل چې تول کوه! او درونډ تول کوه! هغه تول کونکی وویل چې ما دا خبره د بل چا نه نه وه

---

۱: اخرجه ابویعلی قال الهیثمی ۶/۱۶۹ وفیه عبدالله بن ابی بکر المقدمی وهو ضعیف.

۲: اخرجه البیهقی

۳: رواه ابن اسحاق کذافی البدایة ۴/۲۹۲

٤: اخرجه الطبرانی فی الاوسط وابویعلی اخرجه من طریق ابن زیاد الواسطي واخرجه احمد فی سنده ابن زیاده وهو وشیخه ضعیفان کذافی نسیم الریاض ۲/۱۰۵ وقال انجیر ضعفه بمتابعته ومنه یعلم ان تخطئة ابن القیم لا وجه لها انتهی.

اورېدلې ما ورته وويل چې ستا د تباه کېدو او ستا د دين د خرابېدلو لپاره دا کافي ده چې ته خپل رسول الله ﷺ نه پېژنې! دې اورېدو سره يې تله هم هلته وغورځوله او اوچت يې ټوپ کړ او د رسول الله ﷺ لاس يې ونيوه هغه يې ښکلولو رسول الله ﷺ ترې خپل لاس راښکلو او وې فرمايل چې دا څه دي؟ داسې خو عجم خلک خپلو بادشاهانو سره کوي او زه خو بادشاه نه يم زه خو هم له خلکو ستاسو په شان يو سړی يم نو هغه درونډ تول وکړ او د خپلو تللو مزدوري يې واخيستله.(۱)

# د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ تواضع او عاجزي

**د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تواضع:**

حضرت اسلم رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په اوښ باندې کېناسته او د شام مُلک ته يې تشريف راوړ نو خلکو په دې باره کې په خپل مينځ خبرې شروع کړې چې امير المؤمنين ته په اس باندې سفر کول پکار وو په اوښ باندې نه، په دې باندې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې د دې خلکو نظر د داسې انسانانو د سورلۍ خواته ځي چې د هغوی په اخرت کې څه برخه نشته د دې نه مُراد د شام کافران دي يعنې دوي فکر کوي چې عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته هم داسې سورلۍ پکار ده لکه څنګه چې له يوه پاچا سره ښايي. (۲)

**حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اوښځو ته د عصيده (لېټي) پخولو تعليم ورکول:**

حضرت هشام رَحِمَهُ اللهُ وايي چې ما وليدل چې يو ځل حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د يوې ښځې تر څنګه په داسې حال کې تېر شو چې هغې ښځې عصيده لړله، عصيده هغه اوره وې چې په هغې کې غوړي اچول کېږي او بيا پخېږي، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغې ته وويل چې عصيده داسې نه لړل کېږي له دې ويلو سره سم يې له ښځې نه څمڅۍ واخيسته او وې فرمايل چې عصيده داسې لړل کېږي او هغه يې ولړله ورته يې وښودله.(۳)

حضرت هشام بن خالد رَحِمَهُ اللهُ وايي چې ما حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه واورېدل چې ښځو ته يې دا ويل چې تر څو پورې اوبه ګرمې شوې نه وې په تاسو کې دې څوک ښځه

---

۱: ذكره الهيثمي في المجمع ۵/۲۱ عن ابي هريره مثل الحديث الذي قبله قال الهيثمي رواه ابويعلى والطبراني في الاوسط وفيه يوسف بن زياد وهو ضعيف.

۲: اخرجه ابن عساكر واخرجه ابن المبارك كذافي المنتخب ۴/۴۱۷

۳: اخرجه ابن سعد عن خرام بن هشام.

اوږه نه وراچوي او چې کله او به ګرمې شي نو لږ لږ دې وراچوي او په څمڅۍ دې هغه لړی دا شان به په ښه طریقه ملاو شي او حصې حصې به نه جوړیږي.(۱)

**د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پښې ابلې مسجد ته تلل او په بیان کې ځان کم یادول:**

حضرت مروزي رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې ما ولیدل چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عید ګاه ته پښې ابله روان دی .(۲) حضرت عمر مخزومي وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اعلان وکړ چې (الصلاة جامعة) ټول خلک دې لمونځ ته راجمع شي ضروري خبره کول دي، چې کله خلک ډېر راټول شول نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ منبر ته وخوت او د الله جَلَّ جَلَالُهُ حمد ، ثناء، درود او سلام نه وروسته يې وفرمایل اې خلکو ! زما څو ترور ګانې وې چې د محزوم قبیلې وې ما د هغوی څاروي څرول او هغوی به ما ته یو مُوټي کشمش (ممیز) او کجورې راکولې ما به په دې باندې ټوله ورځ ګذاره کوله او هغه به ډېره ښه ورځ وه بیا حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له منبر نه راکوز شو حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه ته وویل چې اې امیرالمؤمنین! تاسو خو بله څه خاص خبره ونکړه؟ بس خپل عیب دې بیان کړ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې اې ابن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ! ته ښه يې ! زه یوازې ناست ووم زما نفس ما ته وویل چې ته امیرالمؤمنین يې ! ستا نه غوره څوک کېدی شي ؟ نو ما وغوښتله چې زه خپل نفس ته د ده حیثیت وښایم! (۳)

په یو روایت کې دي چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې اې خلکو ! ما خپل حال لیدلی دی چې ما سره به د طعام څه شی نه وو ما د بنو مخزوم قبیلې خپلو ترورګانو ته به مې اوبه راوړلې هغوی به ما ته څو موټي مېوه راکوله یوازې دا مېوه د طعام شي وو په اخر کې يې دا هم وفرمایل چې ما پخپل نفس کې څه لويي محسوس کړی نو ما دا وغوښتله چې دا لږ شان لاندې ښکته کړم.(۴)

**دحضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د یو هلک شانه په خر باندې کښناستل:**

حضرت حسن رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په یوه سخته ګرمه ورځ کې

---

۱: کذافی المنتخب الکنز ۴/۴۱۷

۲: اخرجه المروزی فی العید بن کذافی المنتخب ۴/۴۱۸

۳: اخرجه الدیبوری عن محمد بن عمر المخزومی کذافی المنتخب ۲/۴۱۷

٤: اخرجه ابن سعد ۳/۲۹۳ عن ابی عمیر الحارث بن عمیر عن رجل سماه.

په سر باندې څادر اینبې وو او بهر ته ووت د هغوی ﷺ په خوا کې یو ځوان په داسې حالت کې تېر شو چې په خره باندې سپور ؤو نو حضرت عمر رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمایل اې ځوانه! ما ځان سره کېنوه! هغه ځوان راټوپ کړ، خره نه راکوز شو او عرض یې وکړ اې امیرالمؤمنین! تاسو سواره شئ! حضرت عمر رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمایل نه! اول ته سور شه! زه به ستا شاته کېنم! ته ما په نرم ځای کېنول غواړې او پخپله په سخت ځای کېناستل غواړې نو هغه ځوان په خر باندې مخکې کېناسته او حضرت عمر رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ شاته، هغوی چې کله مدینې منورې ته ورسېدل نو حضرت عمر رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ وروسته ناست وو او ټولو خلکو ورته کتل.(۱)

**حضرت عمر رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ دیوهلک سره تلل ترڅو یې په لاره کې نور هلکانو نه وساتي:**

حضرت سنان بن سلمه هذلي رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمایل چې یو ځل زه څو هلکانو سره ووتلم موږ په مدینه منوره کې راپرېوتلې نیمې پخې کجورې راټولې کړې چې په دې کې حضرت عمر بن خطاب رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ کوره راخیستې وه راغی چې کله هلکانو هغه ولیده نو هغوی ټول د کجورو په باغ کې اخوا دېخوا خواره واره شول خو زه هم هلته ولاړ وم او زما په لنګ کې څو کجورې وې چې ما هغه ځان ته راټولې کړې وې ما وویل اې امیرالمؤمنین! دا هغه کجورې دي چې هوا سره لاندې راپرېوتې دي یعنې ما د ونې نه راشوکولې نه دي حضرت عمر رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ زما په لنګ کې دغه اینبودلې شوې کجورې ولیدلې او زه یې ونه وهلم ما وویل اې امیرالمؤمنین! اوس زه کور ته تلل غواړم! په لاره کې مخکې هلکان ولاړ دي چې زما نه به دا ټولې کجورې واخلي حضرت عمر رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمایل نه بلکل مه ځه! زه تا سره ځم! نو حضرت عمر رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ ما سره زما کوره پورې راغی .(۲)

**حضرت عمر او حضرت عثمان رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمَا او په سورلۍ دځان شاته بل کس سورول:**

د حضرت مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ نیکه بیان کوي چې ما څو ځله ولیدل چې حضرت عمر رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ او حضرت عثمان رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ به کله د مکې نه مدینې منورې ته واپس راتلل نو د مدینې نه لږ مخکې په معرس جمات کې ذوالحلیفه کې به یې قیام کولو او چې کله به مدینې منورې ته د داخلېدو لپاره سپرېده نو په سورلۍ باندې به یې وروسته ضرور څوک کېنولو او چې څوک به نه پیدا کېدل نو کوم هلک به یې کېنوه او په داسې حالت کې به مدینې منورې ته

---

۱: اخرجه الدینوری کذافی المنتخب ۴/۴۱۷

۲: اخرجه ابن سعد ۷/۹۰

داخلېدل. راوي وايي چې ما وويل: حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به ځان نه وروسته د عاجزۍ په خیال سره کېنول؟ نو هغه وویل هو! د عاجزۍ په خیال یې هم کېنول او دا یې هم غوښتل چې پیاده سرۍ ته سورلۍ ملاو شي او د هغه هم فائده او شي او دا یې هم غوښتله چې هغوی د نورو بادشاهانو پشان نه وي چې څوک عام سړی ځان پسې نه کېنوي بیا یې وویل چې اوس خو خلکو پرې نوې طریقه ایجاد کړې ده پخپله سور شي او غلامان او هلکان یې ځان پسې پیاده روان کړی دي او دا ډېره زیاته د عیب خبره ده.(۱)

**د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تواضع:**

حضرت میمون بن مهران رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې ما ته همداني وویل چې ما حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په داسې حال کې ولیده چې په کچر سور وو او د هغه غلام نائل هغه پسې ناست وو په داسې حال کې چې هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په دغه وخت کې خلیفه وو.(۲)

حضرت عبدالله رومي رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به د شپې لپاره د اودس انتظام پخپله کاوه، چا ورته وویل چې که چېرې تاسو خپل یو غلام ته ووایئ! نو هغه به دا انتظام کوي هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وفرمایل چې شپه د هغه خپله ده چې په هغې کې ارام وکړي.(۳)

حضرت زبیر بن عبدالله رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې زما نیا د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خادمه وه هغې ما ته وویل چې د تهجدو په وخت کې به حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پخپل کور والاوو کې څوک نه پاڅول البته که چېرې څوک به پخپله راپاڅېدلي وو نو هغه به یې وغوښته نو هغه به د هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لپاره د اودس لپاره اوبه راوړلې او هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به همېشه روژه ساتله.(۴)

حسن رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې ما یو ځل ولیدل چې حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په یو څادر کې مسجد کې اوده دي او هیڅوک ورسره نشته په داسې حال کې چې په دغه وخت کې هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ امیر المؤمنین وو.(۵)

**د حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تواضع:**

حضرت انیسه رَحِمَهَا اللَّهُ وایي چې د محلې جینکو به خپلې چېلۍ د لوشلو لپاره حضرت

---

۱: اخرجه البیهقي عن مالک عن عمه عن ابیه کذافی الکنز ۲/۱۴۲
۲: اخرجه ابو نعیم في الحلیة ۱/۶۰
۳: اخرجه ابن سعد واحمد في الزهد وابن عساکر کذافی الکنز ۵/۴۸
۴: عند ابن المبارک في الزهد کذافی الاصابة ۲/۴۶۳
۵: اخرجه ابونعیم في الحلیة ۱/۶۰

ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته راوستلې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د هغوی د خوشحالولو لپاره فرمایل چې آیا تاسو غواړئ! چې زه د ابن عفراء پشان تاسو ته چیلی ولوشم؟(۱)

د خلفاؤ حضراتو او امراؤ د طرز زندګی په عنوان کې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا، حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ او حضرت ابن مسیب رَضِيَ اللهُ عَنهُ او نورو حضراتو دا روایت تېر شوی دی چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ سوداګر سړی وو، روزانه سهار به ته او اخیستل او خرڅول به یې کول، د هغوی رَضِيَ اللهُ عَنهُ د چېلو یوه رمه وه چې د مابنام په وخت کې به هغه ته واپس راتله، کله کله به یې پخپله څرولو ته تلو او کله به بل څوک څرولو لپاره تلو د خپلې محلې والاوو چیلی به یې لوشلې چې کله به دې خلیفه جوړ شو نو د محلې والا یوې نجلۍ وویل چې اوس خو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ خلیفه جوړ شو نو دا رنګه زمونږ د کور د چیلی پی به اوس خو څوک نه لوشي حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ چې دا واورېدل نو وې فرمایل چې نه! زما دې په عمر قسم وي چې زه به تاسو ته ضرور پی لوشم او ما ته امید دی چې د خلافت ذمه واري چې ما قبوله کړې ده دا به ما د دې کریمانه اخلاقو نه نه اړوي چې د مخکې نه په ما کې وو نو د خلافت نه پس هم د محلې والاوو پی به یې لوشل او کله کله به د توکو په طور د محلې نجلۍ ته ویل چې اې نجلۍ! ته څنګه پی لوشل غواړې؟ د زګ والا ولوشم! یا پرته له زګ نه، کله به هغې ویل چې زګ والا او کله به یې ویل چې پرته له زګ نه. کله به هغې ویل چې زګ والا او کله به یې ویل چې پرته له زګ نه، په هر حال چې هغې به څنګه ویل هغسې به یې کول.

**د امیرالمؤمنین حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ د تواضع څو صورتونه:**

حضرت صالح کمبل فروش رَحِمَهُ اللهُ وایي چې زما نیا دا بیان وکړ چې ما یو ځل ولیدل چې د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ د یو درهم کجورې واخیستلې او هغه یې پخپل څادر کې واچولې او اوچتولې یې! نو ما ورته وویل یا یو سړی ورته وویل چې اې امیرالمؤمنین! ستاسو په ځای یې زه اوچتوم حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل نه! ما دا کجورې د بچو لپاره اخیستې دی ځکه د بچو پلار د دې د اوچتولو زیات مستحق دی.(۲)

حضرت زاذان رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ به یوازې بازار ته تلو په داسې حال

۱: اخرجه ابن سعد کذافي منتخب الکنز ۴/۳۶۱

۲: اخرجه البخاری فی الادب ص ۵/۵۶ واخرجه ابن عساکر کما فی المنتخب ۵/۵۶ وابوالقاسم البغوی کما فی البدایة ۸/۵ عن صالح بنحوه

کې هغه امیر المؤمنین وو چا ته به چې لاره! معلومه نه وه هغه ته به یې لاره ښودله د ورک شوي شي اعلان به یې کاوه، د کمزورو امداد به یې کولو او چې دکاندارا او سبزي خرڅونکي سره به تیریدلو نو هغوی ته به یې دا آیت اورولو : تِلْكَ الدَّارُ الْآخِرَةُ نَجْعَلُهَا لِلَّذِينَ لَا يُرِيدُونَ عُلُوًّا فِي الْأَرْضِ وَلَا فَسَادًا (۱)

ترجمه: دا عالم اخرت مونږ هم هغه خلکو لپاره خاص کوو چې په دنیا کې نه لویي غواړي او نه فساد کول. او فرمایل به یې چې دا آیت د هغه خلکو په باره کې نازل شوی دی چې حاکمان دي او د هغوی تولو خلکو سره واسطه راځي او هغوی عدل وانصاف او تواضع والا دي.(۲)

حضرت جرموز رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې ما وليدل چې حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د کور نه بهر را روان دی او هغوی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قطر جوړ شوي دوه سوزبخن څادرونه اغوستي وو يو لنګ چې د وروپندو نيمايي پورې وو او دويم هم دومره لوي څادر يې له ځان نه تاو کړی دی، په لاس کې يې کوره هم ده چې هغه به يې ځان سره بازار ته وړه او بازار والاوو ته به يې د الله جَلَّ جَلَالُهُ د وېرې او په ښه طريقه باندې د خرڅولو حکم ورکولو او دا به يې فرمايل چې پوره تول کوئ! پوره ناپ کوئ! او دا به يې هم فرمايل چې په غوښه کې هوا مه پو کئ! داسې کولو سره به غوښه غته په نظر راځي او خلک به پرې دوکه شي.(۳)

حضرت ابو مطر رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې يوه ورځ زه د مسجد نه دباندې ته ووتلم نو يو سړی ما ته د وروسته نه اواز وکړ او وې ويل چې خپل لنګ اوچت کړه ځکه چې لنګ اوچتولو سره به پته لګي چې ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه زيات وېريدونکي يې ! او په دې سره به ستا لنګ زيات صفا وي او د خپل سر وېښته صفا کړه! که چېرې ته مسلمان يې ! زه چې راتاو شوم او ومې کتل نو هغه حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او د هغه به لاس کې کوره هم وه.

بيا حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په تګ تګ کې د اوښانو بازار ته ورسيده نو وې فرمايل چې خرڅول ضرور کوئ! خو قسمونه مه خورئ! ځکه چې قسم خوړلو سره شي خرڅيږي، خو برکت يې ورسره ختميږي بيا د کجورو والاته ورغی نو وې کتل چې يوه خادمه ژاړي حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د هغې نه پوښتنه وکړه چې څه خبره ده؟ هغې خادمې وويل چې ده ما ته يو

---

۱: سورة قصص آيت ۸۳

۲: اخرجه ابن عساكر كذافي المنتخب ۵/۵۶ واخرجه ابوالقاسم البغوي نحوه كما في البدايه ۸/۵

۳: اخرجه ابن سعد ۳/۱۸ واخرجه ابن عبدالبر في الاستيعاب ۳/۴۸

درهم کجورې راکړې خو زما مالک د دې اخيستلو نه انکار کړی دی، حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کجورو والا ته وويل چې ته د دې نه کجورې واپس واخله او دې ته درهم ورکړه ځکه چې دا خو بلکل بې واکه ده د خپل مالک د خوښې نه پرته څه نشي کولی هغه د اخيستلو نه انکار وکړ ما ورته وويل چې آيا ته دا پېژنې؟ دا څوک دی؟ هغه سړي وويل نه! ما وويل دا حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ امير المؤمنين دی هغه فوراً کجورې واخيستلې اوپخپلو کجورو کې يې واچولې او هغې ته يې يو درهم ورکړ او وې ويل امير المؤمنين! زه غوارم چې ته له ما نه راضي يې! حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې کله ته خلکو ته پوره ورکوې نو زه به تا نه ډېر راضي يم بيا د کجورو والا خوا نه لاړ او وې فرمايل چې په مسکين باندې خوراک خورئ! دې سره به ستاسو ګټه زياتېږي بيا کبانو والا له ورغلو نو وې فرمايل چې زمونږ په بازار کې هغه کبان نه دي خرڅول پکار چې په اوبو کې مړه شوی دی او د اوبو په سر روان وي، بيا هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د جامو بازار ته ورسېدل دا د غټو او زړو جامو بازار وو، يو دکاندار ته يې وويل اې مشره! ما ته د درېوو درهمو يو کميس راکړه هغه دکاندار حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورغی چې کله هغه هم وپېژانده نو د هغه نه يې هم کميس وانه خيستلو هغ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ و نه پېژانده او هغه يې واخيسته او د هغې لستوڼي يې تر مړوندو پورې اوږده وو، خپل کميس تر ګټو پورې وو بيا اصل دکاندار د جامو مالک راغی نو هغه ته خلکو وويل چې ستا ځوی په امير المؤمنين باندې په درې درهمه کميس خرڅ کړی دی نو هغه خپل ځوی ته وويل چې تا ده نه ولې دوه درهمه نه اخيستل؟ نو هغه دکاندار يو درهم حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راوړ او عرض يې وکړ چې دا درهم واخله هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې څه خبره ده؟ هغه وويل چې د دې کميس قيمت دوه درهمه وو زما ځوی ستاسو نه درې درهمه اخيستی دی حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې هغه پخپله رضامندی سره په درې درهمه خرڅ کړ او ما پخپله خوښه په درې درهمه باندې واخيستل.(۱)

۱: اخرجه ابن راهويه واحمد في الزهد وعبد بن حميد وابويعلى والبيهقي وابن عساكر وضعف كذافي ۵/۵۷

**د حضرت فاطمې او حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا تواضع:**

حضرت عطاء رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د رسول الله ﷺ لور حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا به اوړه اغګل او د هغې د سر وېښته به له لګن سره لګېدل.(۱)

حضرت مطلب بن عبد الله رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د عربو ګنده ښځه يعنې ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا مابنام د ټولو مسلمانانو د سردار حضرت محمد ﷺ کور ته ناوې جوړه شوې راغله او د شپې په اخري برخه کې يې وړه مېچن کړل.(۲)

**د حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د تواضع خو نمونې:**

حضرت سلامه عجلي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زما يو خورېي د کلي نه راغی هغه به په قدامه سره بللې شو هغه ما ته وويل چې زه حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ملاوېدل او هغه ته سلام کول غواړم نو هغه مونږ ملاولو لپاره بوتلو هغه مونږ سره د مدائن په ښار کې مخ شو هغه په دغه ورځو کې د شل زره لښکر امير وو هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په تخت باندې ناست وو د کجورو د پاڼو نه يې ټوکرۍ جوړولې مونږ لاړو سلام مو ورته وکړ بيا ما عرض وکړ اې عبد الله! دا زما د کلي نه ما ته راغی دی تاسو ته سلام کول غواړي حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل وعليکم السلام ورحمت الله. ما ووېل چې دی وايي چې زما دوی سره محبت دی هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل الله جَلَّ جَلَالُهُ دې دی خپل محبوب جوړ کړي.(۳)

حضرت حارث بن عمير رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زه په مدائن کې د حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شوم ما وليدل چې هغوی خپل د څرمنو رنګ کولو په ځای کې په دواړو لاسونو يوه څرمن لګوي چې کله ما هغوی ته سلام وکړ نو وې ويل لږ پخپل ځای ودرېږه! اوس بهر ته درځم! ما وويل چې زما خيال دی چې تاسو زه ونه پېژندلم هغوی وويل نه! ما ته ونه پېژندې! بلکې زما روح ستا روح لره اول وپېژندو ما وروسته ته وپېژندلې ځکه چې ټول روحونه جمع شوي لښکر دی نو د کومو روحونو چې خپلو کې هلته پېژند ګلو د الله جَلَّ جَلَالُهُ په خاطر شوې ده هغوی يو بل سره محبت ساتي او د چا تعلق چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه پرته په بله وجه شوی دی هغوی بل سره محبت نه ساتي.

---

۱: اخرجه ابونعيم فی الحلية ۲/۲۱۲

۲: اخرجه ابن سعد ۸/۶۴

۳: اخرجه ابو نعيم فی الحلية ۱/۱۹۷

یو سړی حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راغی حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اوړه اغږل هغه سړي وویل چې دا څه دي؟ چې تاسو پخپله اوړه اغږئ؟ هغوی وفرمایل اوړه اغږلو والا خادم مونږ څه کار پسې لیږلی دی ځکه مونږ مناسب ونه ګڼله چې د هغه په ذمه دوه کارونه ولګوو بیا هغه سړي وویل چې فلاني سړی تاسو ته سلام وایه، هغوی پوښتنه وکړه چې ته کله ورغلي وې؟ هغه سړي وویل چې زه د دومره وخت نه راغلی یم! حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل که چیرې تا د هغه سلام نه واي رارسولي نو بیا به دا د هغه امانت شمارلي شو چې تا اداء نه کړ یعني ستا په ذمه به پاتې وو.(۱)

حضرت عمرو بن ابو قره کندي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه د پلار د حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې دا خبره مخکې کړه خو حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ انکار وکړ بلکې زما د پلار ازاده شوې بقیره نومې وینځې سره یې واده وکړ بیا زما پلار حضرت ابو قره ته پته ولګېده چې د حضرت حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مینځ کې څه خبره راغلي ده نو زما پلار حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورغی هلته چې لاړو هغه د حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په باره کې پوښتنه وکړه نو کوروالاوو ورته وویل چې هغه د خپل سبزی په پټي کې دي زما پلار هلته لاړ نو هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره یو ټوکری وه چې په هغې کې سبزي وه هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپله امسا د ټوکری په لاسکي کې اچولې وه او پخپله اوګه باندې یې ایښې وه بیا هغه خلک د هغه ځای نه لاړل کله چې د حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کور ته ورسېده او هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل کور ته داخلېدل نو هغه وویل (السلام علیکم) بیا هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زما پلار حضرت قره ته د دننه د تللو اجازه ورکړه زما پلار چې دننه لاړو نو وې کتل چې یو فرش غوړېدلی دی او د هغې سر خواته څو خامې خښتې وې او لږ شان څه نور هم ورسره ایښودل شوي وو هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زما پلار ته وویل چې ته د خپلې ازادې شوې وینځې په بستره باندې کښېنه! چې دا هغه ځان لپاره خوروي.(۲)

د قبیله بنو عبد قیس یو صاحب وايي چې ما حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خر باندې سور یو لښکر کې ولیده چې د هغې امیر وو هغوی پرتوګ اغوستی وو چې د هغې پایڅې د هوا له وجې نه خوزېدلې. لښکر والاوو وویل چې امیر صاحب را روان دی حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

---

۱: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۲۰۱ واخرجه ابن سعد ۴/۶۴ واحمد کما فی صفة الصفوة ۱/۲۱۸ عن ابی قلابه بنحوه.
۲: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۱۹۸

وفرمايل چې د ښه او بد پته خو به نن يعنې د دنيا د تلو نه پس د قيامت په ورځ لګي.(۱)
د بنو قيس يو صاحب وايي چې حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د يو لښکر امير وو زه هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ووم هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د لښکر په ځو ځوانانو باندې تېرېدل وشو د دوي په ليدلو يې وخندل او وې ويل چې دا دی ستاسو امير! ما حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل اې عبدالله! تاسو نه ګورئ! دوي څه وايي؟ هغوی وفرمايل چې دوي پرېږده! صبا د قيامت په ورځ به پته لګي که چېرې ستا نه کېدی شي نو خاورې وخوره! او د مجبور کس له ښېرو نه ځان ساته! ځکه چې د هغه دعا ځوک هم نشي بندولي او نېغه عرش ته ځي.(۲)
حضرت ثابت رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مدائن ګورنر(والي) وو هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به زنګنونو پورې چوغه اغوستله او بهر به خلکو ته راوتو نو خلکو به چې وليده نو ويل به يې (کرک آمد کرک آمد) حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به پوښتنه کوله چې دا خلک څه وايي؟ خلکو به ورته ويل چې دوي ستاسو تشبيه يو د لوبو شي سره کوي حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به فرمايل چې هيڅ خبره نه ده په دنيا کې د ښه يا بد کېدلو سره څه فرق نه راځي په اصل کې ښه هغه ځوک دی چې صبا د قيامت په ورځ ښه وشمارل شي.(۳)
حضرت هريم رَحِمَهُ اللهُ وايي چې ما وليدل چې حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په يو خر باندې سور دی چې د هغه خر ملا بربنډه وه او هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د سنبلان نومي ځائ جوړ شوي يو وروکي شان کميس اغوستی وو چې د لاندې نه تنګ وو د هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پښې اوږدې وې او وېښته پرې هم ډېر وو کميس يې اوچت وو چې زنګنونو پورې رسېدلي وو ما وليدل چې ماشومان د ورستو نه د هغوی خر زغلوي ما ماشومانو ته وويل آيا تاسو د امير نه لرې کېږئ! حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې دوي پرېږده! د ښه او بد خو به صبا په قيامت کې پته لګېږي.(۴)
حضرت ثابت رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مدائن ګورنر(والي) وو يو ځل د بنوتيم الله قبيلې يو شامي سړی راغی هغه سره د بوسو يو پنډ وو هغه ته به لاره کې

۱: اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۱۹۹
۲: عند ابن سعد ۴/۶۳
۳: عند ابن سعد ايضاً
۴: عند ابن سعد ايضاً

حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ملا و شو هغوی زنگنونو پوري پرتوک او چوغه اغوستې وه هغه سړي ورته وویل راشه! زما دا پنډ اوچت کړه هغه سړي دی نه پېژندو حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه پنډ اوچت کړ چې کله نورو خلکو حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ولیده نو دا یې نه پېژندلو نو هغه سړي ته یې وویل چې دا خو زمونږ گورنر (والي) دی هغه سړي حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل چې ما ته نه وې پېژندلی حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې زه به دا ستا کور ته رسوم د بل سند په روایت کې دا دی چې حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې ما ستا د خدمت په نیت کړی دی له دې وجې نه تر څو پوري چې زه دا ستا کور ته ونه رسوم! دا به د سر نه لاندې نه ږدم!(۱)

حضرت عبدالله بن بُریده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پخپلو لاسونو سره کار وکړ او څه شي به یې تیارولو چې کله به هغوی ته په دغه کار سره پیسې ملاوېدې نو غوښه یا کبان به یې واخیستل هغه به یې پخول بیا به یې د کوړه (برص) مریضان راغوښتل او هغوی سره به یې خوړل.(۲)

**د حضرت حذیفه بن یمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تواضع:**

حضرت محمد بن سیرین رَحِمَهُ اللهُ وایي چې کله به حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څوک والي (گورنر) مقررولو او لیږلو به یې نو د هغه په معاهده نامه کې به یې خلکو ته دا لیکل چې تر څو پوري دي تاسو سره د عدل او انصاف معامله کوي تاسو د ده خبره اورئ! او منئ یې! نو چې کله حضرت حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مدائن گورنر (والي) جوړ کړ او لیږلو یې نو د هغه په معاهده نامه کې به یې خلکو ته دا لیکل چې د ده خبره اورئ! او منئ یې! او څه چې تاسو نه غواړئ! ورکوئ یې! هغه چې کله د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روان شو نو هغه په خر باندې سور وو په خر باندې کاجوه پرته وه او په هغې باندې د هغه د لارې خرچه هم وه چې کله دې مدائن ته ورسېدو نو د هغه ځای اوسېدونکو ذمي خلکو او د کلو سردارانو د هغه هرکلی وکړ دغه وخت د ده په لاس کې ډوډۍ او د غوښې والا هډوکي وو او په خر باندې په کجاوه باندې ناست وو ده خپله معاهده نامه دغه خلکو ته واورولـه نو هغوی وویل چې تاسو څه غواړئ! مونږ ته ووایئ! ده ورته وفرمایل چې تر څو پوري زه تاسو سره اوسېږم! ما ته طعام او زما دې

---

۱: اخرجه ابن سعد ۴/۶۳

۲: اخرجه ابونعیم في الحلیة ۱/۲۰۰

خره ته ګیاه ورکوئ ! یا هغه د بړې مودې پورې اوسېدو یا حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته ولیکل چې مدینې ته راشه! کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته پته ولګېده چې حضرت حذیفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مدینې منورې ته رارسېدونکی دی نو هغوی ورته په لاره کې یو ځائ پټ کېناستل چې حضرت حذیفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مې هلته اونه وینې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ولیده چې هغه هم په هغه حالت کې واپس را روان دی په کوم حالت کې چې تلل وو نو بهر ته راووتلو او هغه ته ورترغاړې وتو او وې فرمایل چې ته زما وروریې ! او زه ستا وروریم.(۱)

حضرت ابن سیرین رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې کله حضرت حذیفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مدائن ته ورسېده نو هغه به خرباندې سور وو چې په هغې باندې کجاوه پرته وه او د هغه په لاس کې د ودی او د غوښې والا هډوکی وو چې هغه ئې د خره د پاسه خوړل.(۲) حضرت سلیم ابو هذیل رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې ما به د حضرت جریر بن عبد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په دروازه باندې د مرمت کار کولو حضرت جریر به د کور نه بهر راتلو او په کچر باندې په سورېدلو او ځان پسې به یې خپل غلام کېنولو.(۳)

**د حضرت جریر بن عبدالله او حضرت عبدالله بن سلام رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا تواضع:**

حضرت عبدالله بن سلام رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په بازار کې تېرېدو او هغه په سر باندې د لرګیو یو ګېډۍ پروت وو چا ورته وویل چې تاسو داسې ولې کوئ؟ په داسې حال کې الله جَلَّ جَلَالُهُ تاسو ته دومره څه درکړی دی چې تاسو ته پخپله د اوچتولو ضرورت نشته تاسو خو یې په بل باندې ورلی شئ! وې فرمایل زه د خپل زړه تکبر وېستل غواړم ځکه چې ما د رسول الله ﷺ نه اورېدلی دی چې هغه سړه به جنت ته لاړ نه شي چې د چا په زړه کې د اورې د دانې برابر هم تکبر وي.(۴)

**حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وایي د تواضع اصل درې شیان دي:**

حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایل چې د عاجزۍ کولو بنیاد درې شیان دي سړي ته چې څوک هم ملاو شي هغه ته دې په سلام کې مخکې والي کوي او په مجلس کې دې ادنی ځائ کې ناسته باندې راضي شي او بنودنه او شهرت بد ګني.(۵)

---

۱: اخرجه ابن سعد كذافي الكنز ٧/٦٦
۲: عند ابي نعيم في الحلية ١/٢٧٧
۳: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ٩/٣٧٢ وسلمة ومحمد بن منصور الكلبي لم اعرفهما وبقية رجاله ثقات انتهى.
۴: اخرجه الطبراني باسناد حسن ورواه الاصبهاني الا انه قال مثقال ذرة من كبر كذافي الترغيب ٤/٣٤٥
۵: اخرجه العسكري كذافي الكنز ٢/١٤٣

# خوش طبعي او مزاح

## د رسول الله ﷺ توکې

### د ازواج مطهرات سره دآنحضرت ﷺ مزاح او خوش طبعي:

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ عرض وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو مونږه سره هم توکې کوئ؟ رسول اکرم ﷺ وفرمايل هو! خو زه کله هم بده خبره نه کوم.(۱)

يو سړي د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه چې آيا رسول الله ﷺ به توکې کولې؟ حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې هو! هغه سړي ووېل چې د هغوی ﷺ توکې به څنګه وې؟ حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د توکو دا واقعه واوروله چې رسول الله ﷺ خپلې يوې بي بي ته پرانيستې جامه اغوستلو لپاره ورکړه او وې فرمايل چې دا واغونده! او د الله جَلَّ جَلَالُهُ شکر اداء کړه او د نوې ناوې په شان دې لمن په راښکلو څه!(۲)

### د ابوعمير سره دآنحضرت ﷺ مزاح:

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې د رسول الله ﷺ اخلاق د ټولو خلکو نه ښه وو زما يو ورور وو چې ابو عُمير نوم يې وو چې يې څښل يې پرېښي وو چې کله به رسول الله ﷺ مونږ ته راتلو او هغه به يې ليدلو نو فرمايل به يې چې اې ابو عميره! ستا د نغير مرغۍ يا بلبله باندې څه وشو؟ نغير مارغه سره به عمير لوبې کولې څينې وخت به د مانځه وخت راغی او هغوی به زمونږ په کور کې وو نو ارشاد به يې فرمايلو چې زما د لاندې کومه يوه بستره دې داوڅندئ! او اوبه پرې چې وپاشئ! مونږ به همداسې وکړل بيا به رسول الله ﷺ مخکې ودرېدو او مونږ به ورپسې اودرېدلو هغوی ﷺ به مونږ ته نفل لمونځ راکولو هغه بستره د کجورو د پاڼو نه جوړه شوې وه.(۳)

په بل روايت کې دا دی چې رسول الله ﷺ به مونږ سره يو ځای اوسېدلو تر دې چې هغوی ﷺ به زما وړوکي ورور ته فرمايل چې اې ابو عمير! د نغير مارغه څه شو؟ (٤)

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې رسول الله ﷺ د حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کره

---

۱: اخرجه الترمذی فی الشمائل ۱۷ واخرجه البخاری فی الادب ۴۱ عن ابی هريره مثله.

۲: اخرجه ابن عساکر وضعفه هکذافی الکنز ۴۱

۳: اخرجه احمد وقد رواه الجماعة الا اباداود من طرق عن انس بنحوه کذافی البداية ٦/٣٨

٤: اخرجه البخاری فی الادب ٤٢ وهکذا لفظ الترمذی

لاړو نو د هغه يو ځوی يې د ېر غمجن وليده چې د هغه کنيت ابوعمير وو د رسول الله ﷺ عادت داوو چې هغوی ﷺ به هم ابوعمير ليدلو نو هغه سره به يې ټوکې کولې نو رسول الله ﷺ وفرمايل چې څه خبره ده؟ ابوعمير غمجن په نظر راغی کوروالاوو ورته وويل چې د ده نغير مارغه مړ شوی دی چې هغې سره به ده لوبې کولې په دې باندې رسول الله ﷺ هغه ته د ټوکو په طور وفرمايل چې اې ابوعميره! په نغير مارغه باندې څه وشو ؟(۱)

**د يو سړی سره خوش طبعي او مزاح:**

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې يو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کې راغی او هغه د ځان لپاره د رسول الله ﷺ نه سورلۍ وغوښتله نو رسول الله ﷺ وفرمايل مونږ به تا ته د اوښې بچي درکړ هغه عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه به د اوښې په بچي څه وکړم؟ ما ته خو د سورلۍ لپاره څاروی په کار دی هغه بچي خو د سورلۍ لپاره پکار نه راځي رسول الله ﷺ وفرمايل چې هر اوښ هم د اوښې بچي وي.(۲)

**د حضرت انس سره مزاح اوټوکې:**

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله ﷺ ما ته يو کرت په ټوکو کې وفرمايل چې اې د دوو غوږونو والا!(۳)

**د زاهر سره د رسول الله ﷺ خوش طبعي او مزاح:**

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې د باندې اوسېدونکو د يو سړی نوم زاهر وو هغه به د کلي نه رسول الله ﷺ لپاره سبزي، ترکاري وغيره په هديه کې راوړله او چې کله به دی واپس تلو نو رسول الله ﷺ به هغه ته د ښار شيان ورکول او رسول الله ﷺ به فرمايل زاهر زمونږ لپاره باندېه ده او مونږ د هغه ښار، د رسول الله ﷺ هغه سره ډېره مينه وه خو د هغه بد شکل وو يو ځل حضرت زاهر خپل سامان خرڅولو رسول الله ﷺ د وروسته نه ورغی او د هغه سترګې يې په داسې طريقه بندي کړي چې هغه رسول الله ﷺ نه ليدلو يعنې د هغه ملايې خپلې سينې سره ولګوله او د هغه ترخونو د لاندې يې دواړه لاسونه اووېستل او د

---

۱: عند ابن سعد ۳/۵۰٦

۲: اخرجه احمد ورواه ابوداود و اترمذی وقال صحيح غريب كذافي البداية ٦/٤٦ واخرجه البخاری فی الادب المفرد ٤١ عن انس نحوه واخرجه ابن سعد ٨/٢٢٤ عن محمد بن قيس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بمعناه الا انه جعل السائله ام ايمن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا.

۳: اخرجه ابوداود كذافي البداية ٦/٤٦ واخرجه الترمذی فی الشمائل ١٦ وقال قال اسامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يعنی بمازحه واخرجه ابونعيم وابن عساكر كما فی المنتخب ٥/١٤٢

هغه ستر گو باندې يې کېښودل حضرت زاهر وويل ما پرېږده! دا څوک دی ؟ بيا يې سر وروسته راتاو کړ چې وې کتل نو رسول الله ﷺ يې وليده بيا يې خپله ملا يې سينې سره ښه ولګوله او رسول الله ﷺ په ټوکو کې وفرمايل چې دا غلام څوک اخلي؟ حضرت زاهر وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! که چېرې ته ما خرڅ کړې نو ما به ارزانه او کم قيمته ومومې! رسول الله ﷺ وفرمايل خو ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد کم قيمته او ارزانه نه يې ! بلکې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد ستا لوې قيمت دی.(۱)

**د حضرت عائشې او نورو ازواج مطهرات سره د آنحضرت ﷺ خوش طبعي:**

حضرت نعمان بن بشير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايلي دي چې يو ځل حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رسول الله ﷺ نه د ننه راتلو اجازه وغوښتله و حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ واورېدل چې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا اواز د رسول الله ﷺ نه اوچتېدلو هغه د ننه لاړو عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا يې په څپېړه د وهلو لپاره ونيوله او وې فرمايل چې ته خپل اواز د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسول نه اوچتوې؟ رسول الله ﷺ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ منع کړ هغه هم په دغه غصه کې واپس لاړ نو رسول الله ﷺ وفرمايل ودې کتل ما ته څنګه د سړی نه خلاصه کړې! څو ورځې پس بيا يې نبي اکرم ﷺ نه د ننه تلو اجازه وغوښتله اجازې ملاوېدو سره د ننه راغی نو وې کتل چې په دواړو کې يعنې رسول الله ﷺ او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا تر مينځ صلح شوې ده په دې باندې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړ چې څنګه تاسو دواړو په جنګ کې شريک کړی ووم دغسې پخپله صلح کې هم ما شريک کړئ! رسول الله ﷺ وفرمايل مونږ ته شريک کړې مونږ ته شريک کړې! (۲)

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايلي دي چې يو کرت رسول الله ﷺ سره زه په سفر باندې لاړم زه هغه وخت کم عمره نجلۍ ووم زما په بدن باندې غوښه هم کمه وه او زما بدن دروند نه وو رسول الله ﷺ خلکو ته وفرمايل تاسو مخکې لاړ شئ! نو ټول خلک لاړل نو ما ته يې

---

۱: اخرجه احمد اسناد رجاله کلهم علی شرط الصحيحين ولم يروه الا الترمذی فی الشمائل رواه ابن حبان فی صحيحه كذافی البداية ٦/۴٦ واخرجه ايضاً ابويعلي والبزار قال الهيثمی ورجال احمد رجال الصحيح واخرجه البزار والطبرانی عن سالم ابن ابی الجعد عن رجل من اشجع يقال له زاهر بن حرام الاشجعی رجل بدوي وكان لا يزال يأتی نبی ﷺ بطرفة او هدية فذكر بمعناه قال الهيثمی ۹/۳۱۹ رواه البزار والطبرانی ورجاله موثقون.

۲: اخرجه ابوداود كذافی البداية ٦/۴٦

وفرمایل چې ما او تا په منده کې مقابله کوو نو زمونږ په منځ کې مقابله وشوه نو زه په مقابله کې د رسول الله ﷺ نه مخکې شوم! او رسول الله ﷺ چپ پاتې شو بیا زما په بدن باندې غوښه زیاته شوه او زما بدن دروند شو او زما نه مخکې قصه هېره شوه نو بیا زه هغوی ﷺ سره په سفر لاړم هغوی خلکو ته وفرمایل چې مخکې لاړ شئ! خلک مخکې لاړل بیا یې ما ته وفرمایل راځه! چې زه تا سره په منده کې مقابله وکړم نو مونږ دواړو مقابله وکړه او رسول الله ﷺ زما نه مخکې شو رسول الله ﷺ په خندا شو او وې فرمایل چې دا د هغه ړومبۍ منډې په بدله کې دې اوس معامله برابره شوه.(۱)

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایلي دي چې یو ځل رسول الله ﷺ په سفر روان وو یو حُدي خوان (حُدي هغه شعرونو ته ویلي شي چې د هغې په ویلو سره اوښ تېزېږي) د رسول الله ﷺ پاکو بیبیانو اوښانو ته حدي لوستل او مخکې روان وو او دا پاکې بیبیانې له رسول الله ﷺ نه مخکې روانې وې رسول الله ﷺ حدي خوان ته وفرمایل اې انجشه! الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تا ښه کړي دې باریکو شیشو سره نرمي کوه! یعنې اوښان تېز مه چلوه!(۲)

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې رسول الله ﷺ خپلو ځینو بیبیانو ته راغی دغه بیبیانو سره ام سلیم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا هم وه رسول الله ﷺ وفرمایل اې انجشه! دا شیشې په ارام بوځه! که اوښان ډېر حدي اورېدو سره په مستۍ کې راغلل نو دا زنانه به او غورځېږي یا دې حدي اورېدو سره به د دوي زړونه حصې حصې شي حضرت ابوقلابه وایي چې رسول الله ﷺ داسې خبره ارشاد فرمایلي دي چې که چېرې په تاسو کې چا دا خبره کړې وې نو تاسو به دا د عیب خبره ګڼلې وې او هغه خبره دا ده چې رسول الله ﷺ وفرمایل چې دا شیشې په ارام بوځه!(۳)

**د یوې بوډۍ سره د آنحضرت ﷺ خوش طبعي:**

حضرت حسن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې یوه ورځ یوه بوډۍ ښځه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضره شوه او عرض یې وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو دعا اوغواړئ! چې الله جَلَّ جَلَالُهُ ما جنت ته بوځي! هغوی ﷺ وفرمایل اې د فلانې مورې! جنت ته به یوه بوډۍ ښځه هم نه ځي. هغه ښځه په ژړا واپس روانه شوه نو هغوی ﷺ وفرمایل چې دې ته

(۱): اخرجه احمد كذافي الصفوة ۱/٦٨

(۲): اخرجه احمد في الصحيحين نحوه عن انس كما في البداية ٦/٤٧

(۳): عند البخاري في الادب ٤١

ووايئ! چې دا به جنت ته د بوډۍ والي په حالت کې نه ځي بلکې ځوانه پېغله به جنت ته ځي ځکه چې الله رب العزت فرمايي : إِنَّآ أَنشَأْنَٰهُنَّ إِنشَآءً ۝ فَجَعَلْنَٰهُنَّ أَبْكَارًا ۝(۱)

ترجمه: مونږ د هغه ځائ هغه ښځې خاص طور باندې جوړې کړې دي يعنې مونږ هغوی داسې جوړې کړې دي چې هغوی پېغلې دي.

# د صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خوش طبعي او ټوکې

**د آنحضرت ﷺ د عوف بن مالک اشجعي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خوش طبعي او مزاح:**

حضرت عوف بن مالک اشجعي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې زه د تبوک په غزا کې د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم هغوی د څرمنې په يوه وړوکې خېمه کې وو ما ورته سلام وکړ هغوی د سلام جواب راکړ او وې فرمايل چې دننه راځه! ما عرض وکړ آيا ټول راشم؟ رسول الله ﷺ وفرمايل هم ټول راشه! زه دننه لاړم حضرت وَليد بن عثمان بن ابو العاليه فرمايل چې حضرت عوف چې کوم دا وويل چې آيا زه ټول راشم؟ دا يې د خېمې د وړوکوالي په وجه ويلي وو.(۲)

**د رسول الله ﷺ سره د حضرت عائشې او ابوسفيان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا خوش طبعي:**

حضرت ابن مليکه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا رسول الله ﷺ سره څه د ټوکې خبره وکړه نو د عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا مور بي بي وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! د دې قبيلې د ټوکو ځينې خبرې د کنانه قبيلې نه دي رسول الله ﷺ وفرمايل دا خاندان زمونږ د ټوکو يوه حصه ده.(۳)

حضرت ابو الهيثم رَحِمَهُ اللَّهُ ته يو صاحب وايي چې ما پخپله واورېدل چې حضرت ابوسفيان بن حرب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د خپلې لور حضرت ام حبيبه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا په کور کې رسول الله ﷺ ته په ټوکو کې ويل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! د کله نه چې ما تاسو سره جنګ پرېښود نو ټولو عربو هم پرېښود و کنې ستاسو د وجې نه ښکر والا او بې ښکر والا يو بل سره جنګېدل رسول الله ﷺ چې دا واورېدل نو مُسکی شو او آنحضرت ﷺ وفرمايل چې اې ابو حنظله! ته هم داسې خبرې کوې!(۴)

---

۱- سورة واقعه ايت ۳۵، ۳٦.
۲: اخرجه ابوداود في البداية ٦/۴٦
۳: اخرجه البخاري في الادب ۴۱
۴: اخرجه [illegible] بن بكار وابن عساكر كذافى الكنز ۴/۴۳

**صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنهُم او یو بل په اوندوانو (هندوانو) ویشتل:**

حضرت بکر بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایل چې د رسول الله ﷺ صحابه وو به په ټوکو کې یو بل باندې ختکي غوررزول خو چې کله به د حقیقت او د کاروبار وخت وو نو هغه وخت به هغوی مرد میدان وو یعني په هغه وخت کې به یې ټوکې نه کولې چې کله به کار نه وو نو کله کله به یې کولې.(۱)

حضرت قره رَحِمَهُ اللهُ وایي چې ما د حضرت ابن سیرین رَحِمَهُ اللهُ نه پوښتنه وکړه چې آیا د رسول الله ﷺ صحابه وو پخپل مینځ کې خندا ټوکې کولې؟ حضرت ابن سیرین رَحِمَهُ اللهُ وویل او هغوی هم د عامو خلکو پشان وو څنګه چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ به په ټوکو کې دا شعر ویلو.

يحب الخمر من مالِ النّدامى

ويكره أن تفارقه الفلوس

هغه بخیل دي څکه چې د خپلو ملګرو د مال نه شراب څښکل غواړي او د مال په جدایۍ سره خفه کېږي.(۲)

**د حضرت سويبط رَضِيَ اللهُ عَنهُ سره دحضرت نعیمان خوش طبعي:**

حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایل چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د تجارت په عرض بصري (چې په شام کې یو ښار دي) تـه لاړو او حضرت نعیمان او حضرت سويبط بن حرمله رَضِيَ اللهُ عَنهُ چې بدري صحابه رَضِيَ اللهُ عَنهُم وو هم ورسره لاړل حضرت سويبط د طعام د سامان ذمه دار وو حضرت نعیمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ ورته وویل چې په ما باندې څه طعام وخوره! حضرت سويبط رَضِيَ اللهُ عَنهُ وویل چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ تللی دی چې کله هغه راشي نو طعام به درباندې او خورم د حضرت نعیمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ په طبیعت کې ټوکې او خندا ډېر زیات وو هلته نزدې څه خلکو خپل څاروي راوستي وو راغلی وو حضرت نعیمان هغوی له لاړو او ورته یې وویل چې زما یو ښه چست او قوي عربي غلام دی تاسو هغه واخلئ! هغوی وویل ډېره ښه ده! حضرت نعیمان وویل چې یو ازې دومره خبره ده چې هغه لږ خبرې ډېرې کوي او شاید چې هغه دا هم ووایئ! چې زه ازاد یم! که چېرې تاسو د هغه دې وینا له وجې نه هغه پرېښودلو نو بیا یې پرېږدې تاسو دا مه کوئ! او زما غلام مه خرابوئ!

(۱): اخرجه البخاری فی الادب ۴۱

(۲): ذکره الهیثمی ۸/۸۹ هکذا ذکره الهیثمی بلا اسناد وسقط ذکر مخرجه

هغوی وویل نه مونږ خو هغه اخلو او هغه نه پرېږدو! نو هغوی د لسو څوانو او ښو په بدله کې هغه واخیستلو حضرت نعمان لس اوښې شړلې او راغی او هغه خلک یې هم څان سره راوستل او چې راغلل نو هغه خلکو ته یې وویل چې دا ستاسو هغه غلام دي دا واخلئ! چې کله هغوی حضرت سوبیط رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رانیولو نو هغه وویل چې حضرت نعیمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صحیح نه وایي زه خو زاد سړی یم! هغه خلکو وویل چې ده ستا دا خبره مونږ ته د مخکې نه کړې ده نو هغوی د حضرت سوبیط رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په غاړه کې رسۍ واچوله او بوېې تلو دېنه پس حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی نو هغه ته د دې قصې پته ولګېده هغه او د هغه ملګري هغه اخیستونکو خلکو ته ورغلل او ټوله خبره یې ورته وکړه د هغوی او ښې یې هغوی ته واپس کړې او حضرت سوبیط رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یې واپس راوستلو بیا مدینې ته واپس راغلل دې حضراتو رسول الله ﷺ ته دا ټوله واقعه واوروله نو رسول الله ﷺ او د هغوی صحابه وو به دا واقعه یادوله او ټول کال به یې خندل.(۱)

د دې حضراتو زړونه بلکل صفا ستره وو او حضرت سوبیط ته معلومه وه چې د حضرت نعیمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په طبیعت کې ټوکې ډېرې دي څکه یې بده او نه ګڼله، حضرت ربیعه بن عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې یو باندیچي سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کې راغی او خپله اوښه یې د جمات نه په هر کېنوله او مسجد ته دننه لاړو حضرت نعیمان بن عمرو انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې هغه ته النعیمان ویلې شي هغه ته د رسول الله ﷺ څینې صحابه وویل چې زمونږ غوښې خوړلو ته ډېر زړه شوی دی که چېرې ته د اوښه غوښه حلاله کړې او مونږ د دغې غوښه ملاو شي ډېره مزه به وکړي وروسته رسول الله ﷺ د اوښې قیمت مالک ته ورکړي نو هغه اوښه حضرت النعیمان حلاله کړه په دې باندې رسول الله ﷺ د مسجد نه بهر راووتلو او پوښتنه یې وکړه چې دا چا کړې دی؟ صحابه وو عرض وکړ چې نعیمان، رسول الله ﷺ نعیمان پسې روان شو او د هغه معلومات یې کول کول اخر د حضرت ضباعه بنت زبیر بن عبدالمطلب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کور ته ورسېده حضرت نعیمان د هغې په کور کې په یوه کنده کې پټ شوي وو او هغه په خپل څان باندې د کجورو خانښونه او پاڼې وغیره

---

۱: اخرجه احمد واخرجه ابوداود والطیالسي والروبانی وقد اخرجه ابن ماجة فقلبه جعل المازع سویبط و المبتاع نعیمان و روری الزبیر بن بکار فی کتاب الفکاهة هذاقصة من طریق اخری عن ام سلمة الا انه سماه سلط بن حرطة واظنه تصحیفا وقد تعقبه ابن عبدالبر وغیره کذافی الاصابة ۲/۹۸ وقد اخرجه ابن عبدالبر فی الاستیعاب ۲/۳۶، ۲/۵۷۳ حدیث ام سلمة من طرق.

اچولي وو نو یو سړی په اوچت اواز سره داسې وویل چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ما هغه نه دی لیدلی خو په ګوته یې هغه ځای ته اشاره وکړه چېرته چې نعیمان پټ شوي وو رسول الله ﷺ ورغی او هغه یې بهر راوویستلو نو د پاڼو وغیره په وجه د هغه مخ بدل شوی وو رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل تا داسې ولې وکړل؟ هغه وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! کومو کسانو چې اوس تاسو ته زما پته درکړه هم دوي ما ته ویلي وو چې دا اوښه حلاله کړه رسول الله جَلَّ جَلَالُهُ مسکی شو او د هغه مخ یې صفا کړ هغه باندېچي ته یې د اوښې قیمت اداء کړ.(۱)

**د حضرت مخرمه بن نوفل ﷺ سره دحضرت مصعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خوش طبعي:**

حضرت عبد الله بن مصعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وایي چې حضرت مجرمه بن نوفل بن اهیب زهري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په مدینه منوره کې یو نابینا سړی وو چې د هغه عمر یو سل پنځلس (۱۱۵) کاله وو یوه ورځ هغه په جمات کې تشو متیازو لپاره ودرېدو نو خلکو شور جوړ کړ حضرت نعیمان بن عمرو بن رفاعه بن حارث بن سواد نجاري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه ته ورغی او هغه یې د مسجد خواته بوتلو او هغه ته یې وویل چې دلته کښېنه! متیازې وکړه او هغه یې هلته کېنولو او پخپله د هغه ځای نه لاړو نو خلکو شور جوړ کړ د متیازو کولو نه پس هغه وویل تاسو بنه شئ! زه دلته چا راوستلی ووم؟ خلکو وویل چې نعیمان بن عمرو هغه وویل چې الله جَلَّ جَلَالُهُ دې هغه داسې او داسې کړي یعنې هغه ته یې ښېرې وکړې او زه هم منښته کوم که چېرته هغه ما ته پلاس راغی نو زه به یې په خپله همسا بنه سخت ووهم! خواه که په هغه هر شي کېږي، د دې واقعې کافي ورځې تېرې شوې تر دې چې د حضرت مخرمه نه هم هېر شول یوه ورځ حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د مسجد په یو طرف کې ولاړ وو او لمونځ یې کولو یو خوا بل خوا به یې توجه نه کوله حضرت نعیمان حضرت مخرمه ته ورغی او هغه ته یې وویل آیا ته نعیمان وهل غواړې؟ هغه وویل هو! هغه چېرته دی؟ ما ته یې اوښایه! حضرت نعیمان راوستلو او د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خوا کې یې اودرولو او ورته یې وویل چې دا دی ویې وهه! حضرت مخرمه په همسا دواړو لاسونو سره دومره په زوره اووهلو چې د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سر زخمي شو خلکو هغه ته وویل چې تا خو امیر المؤمنین حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او وهلو د حضرت مخرمه بنو زهره قبیلې والا و چې

(۱): اخرجه ابن عبدالبر في الاستيعاب ۳/۵۷۵ وهكذا ذكره في الاصابة ۴/۵۷۰ عن الزبير بن بكار عن ربيعة بن عثمان.

کله دا واورېدل نو هغوی ټول راجمع شول حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل الله جَلَّ جَلَالُهُ دې په نعیمان باندې لعنت وکړي تاسو نعیمان پرېږدئ! ځکه چې هغه په جنګ بدر کې شریک شوي وو له دې وجې نه د هغه رعایت کول پکار دي.(۱)

# سخاوت او کرم

## د رسول الله ﷺ سخاوت

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایل چې کله رسول الله ﷺ د نېکۍ په کارونو کې د ټولو خلکو نه زیات سخي وو او د هغوی ﷺ د سخاوت د ټولو نه اظهار به په رمضان شریف کې وو چې کله به د هغوی ﷺ ملاقات د حضرت جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ سره کېده او حضرت جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ به د رمضان المبارک په هره شپه کې رسول الله ﷺ سره ملاوېده او هغوی ﷺ سره به یې د قرآن دور کولو بیا خو به هغوی د خیر او د نېکۍ په کارونو کې عامو خلکو ته فائده رسوونکي هوا نه هم زیات سخي کېدلو.(۲)

حضرت جابر بن عبد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایل چې کله هم داسې نه دي شوي چې د رسول الله ﷺ نه څه شی غوښتلی وي او رسول الله ﷺ فرمایلي وي چې نه!(۳)

حضرت ابو اُسید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به فرمایل چې د رسول الله ﷺ نه به څه شی هم غوښته کېدو نو آنحضرت ﷺ به هغه نه منع کولو بلکې ورکولو به یې!(۴)

حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې کله د رسول الله ﷺ نه څه شي غوښتلي شو او د نبي کریم ﷺ به د ورکولو اراده وه نو او به یې فرمایله او چې د نه موجودګۍ په وجه به یې د نه ورکولو اراده فرمایله نو چُپ به شو او د دغه شي په باره کې به یې نه نویل.(۵)

**رسول الله ﷺ او د ربیّع بنت معوّذ او ام سنبله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا عزت کول:**

حضرت ربیع بنت معوذ بن عفراء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمایل چې ما ته خپل پلار حضرت معوذ بن

---

۱: اخرجه البزار عن عمه مصعب بن عبدالله عن جده کذافی الاستیعاب ۲/۵۷۷ وهکذا ذکره فی الاصابة ۲/۵۷۰ زبیر بن بکار.
۲: اخرجه الشیخان کذافی الصفوة ۱/۶۹ واخرجه ابن سعد ۲/۱۹۵ عنه بنحوه.
۳: اخرجه الشیخان کذافی البدایة ۶/۴۲
٤: عند احمد فی حدیث طویل عن عبدالله بن ابي بکر قال الهیثمی ۹/۱۳ ورجاله ثقات الا ان عبدالله بن ابی بکر لم یسمع بن ابی سید.
۵: عند الطبرانی فی الاوسط فی حدیث طویل قال الهیثمی ۹/۱۳ وفیه محمد بن کثیر الکوني وهو ضعیف اه.

عفرا، يو صاع تازه كجورې چې په هغې باندې يې واړه واړه پشمدار كدوان اينبي وو رايې كړل او د رسول الله ﷺ په خدمت كې يې اوليږل م د رسول الله ﷺ كدو ډېر خوښ وو په دغه وخت كې د بحرين نه څه كالي رسول الله ﷺ ته راغلي وو د رسول الله ﷺ لاس ډك وو او هغه كالي يې ما ته راكړل په يو روايت كې دا دي چې رسول الله ﷺ ما ته دومره كالي يا سره زر راكړل چې زما دواړه لاسونه ډك شول.(۱)

د امام احمد په روايت كې دا هم دي چې رسول الله ﷺ دا هم وفرمايل چې دا كالي وا چوه! او خپل ځان پرې ښائيسته كړه!

حضرت ام سنبله رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د رسول الله ﷺ ته څه هديه راوړه او لاړله د آنحضرت ﷺ د هغې تبلولو نه انكار وكړ او وې ويل چې مونږ يې نه اخلو رسول الله ﷺ ازواج مطهراتو ته وفرمايل نو هغوى واخيستله بيا وروسته حضرت عبد الله بن جحش رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه په بيعه واخيستله.(۲) د مال خرچ كولو په عنوان كې د رسول الله ﷺ د سخاوت قصې تېرې شوې دي.

## د صحابه كرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سخاوت

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې يوه ښځه د رسول الله ﷺ په خدمت كې حاضره شوه او عرض يې وكړ چې ما دا نيت كړى دى چې زه به دا جامه په عربو كې د ټولو نه زيات سخي ته وركوم، ورسره حضرت سعيد بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ولاړ وو رسول الله ﷺ هغه خوا ته اشاره وكړه او وې فرمايل چې دې ځوان ته يې وركړه هم د دغه وجې نه هغه جامو ته سعيدي جامې ويلې شي.(۳) د مال خرچ كولو په عنوان كې د رسول الله ﷺ د سخاوت قصې تېرې شوى دى.

## ايثار، همدردي او قرباني

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې په مونږ باندې يوه داسې زمانه هم راغلې ده چې په مونږ كې به چا هم خپل ځان د دينار او درهم خپل مسلمان ورور نه زيات مستحق نه گڼلو او اوس داسې زمانه راغلې ده چې زمونږ دينار او درهم سره د خپل مسلمان ورور نه زيات

---

۱: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ۹/۱۳ واسنادهما حسن و اخرجه الترمذي عن الربيع مختصرا كما في البداية ۶/۵۶
۲: اخرجه الطبراني في الاوسط قال الهيثمي ۹/۱۴ وفيه عمرو بن قيظي ولم اعرفه رجاله ثقات اه.
۳: اخرجه الزبير بن بكار وابن عساكر كذافي المنتخب ۵/۱۸۹

محبت دی مخکې نور حدیث هم دی.(۱)

د قربانۍ نورې قصې د سختۍ تندې، د جامو کمۍ، د انصارو په قصو کې او د ضرورت باوجود د خرچ کولو په عنوان کې تېر شوی دی.

## په مرضونو او ناروغیو صبر کول

### په سخته تبه د رسول الله ﷺ صبر:

حضرت ابو سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې زه رسول الله ﷺ ته ورغلم رسول الله ﷺ تبې نیولی وو هغوی یو څادر اغوستی وو ما پرې د څادر دپاسه لاس کېښودو او عرض مې وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! پر تاسو څومره تېزه تبه راغلې ده رسول الله ﷺ وفرمایل چې په مونږ (پیغمبرانو) دا سې سخت تکلیفونه او ازمېښتونه راځي او زمونږ اجر او ثواب هم دوچند وي ما وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! په خلکو کې د ټولو نه زیات ازمېښت په چا باندې راغلی دی؟ هغوی ﷺ وفرمایل په نبیانو باندې، ما وویل بیا په چا باندې؟ وې فرمایل په علماء کرامو باندې، ما وویل بیا په چا باندې؟ وې فرمایل بیا په نېکو بنده ګانو باندې، د ځینې نېکو بنده ګانو په بدن کې به داسې سپګې پیدا کېدلې چې هم په دې کې به هغه وفات کېدو او په ځینو باندې دومره فقیري راغلې ده چې هغوی ته به د چُغې نه علاوه څه بل شي د اغوستلو لپاره نه ملاوېدو خو تاسو ته چې دنیا ملاوېدو سره څومره خوشحالي حاصلېږي هغوی ته به ازمایښت او تکلیف سره د دېنه زیاته خوشحالي حاصلېدله.(۲)

حضرت ابو عبیده بن حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې زما ترور حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته وفرمایل چې مونږ زنانه د رسول الله ﷺ بیمارپُرسۍ لپاره لاړو رسول الله ﷺ باندې تبه راغلې وه د هغوی ﷺ په فرمایلو باندې د اوبو یوه مشکیزه په اونه کې زوړنده کړی شوه بیا هغوی ﷺ د هغې ونې لاندې سملاستو او د هغه مشکیزې د اوبو څاڅکي د هغوی ﷺ په سر باندې راپرېوتل چونکه د هغوی ﷺ تبه ډېره زیاته وه د هغې تېزۍ د کمولو لپاره هغوی داسې کړی وو ما وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! که چېرې تاسو د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه دا

---

۱: اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ۱۰/۲۸۵ رواه الطبرانی باسانید وبعضهما حسن.

۲: اخرجه ابن ماجه وابن ابی الدنیا و الحاکم و اللفظ له وقال صحیح علی شرط مسلم وله شواهد کثیرة کذافی الترغیب ۵/۲۴۳ واخرجه البیهقی کما فی الکنز ۲/۱۵۴ وابو نعیم فی الحلیة ۱/۳۷۰ نحوه.

دعا غوښتې واي چې هغه ستاسو بيماري لرې کړي نو دېره به ښه وي رسول الله ﷺ وفرمايل چې په ټولو انسانانو کې د ټولو نه زيات تکليف او ازمېښت په انبياء عليهم السلام باندې راځي بيا په هغوی باندې چې هغوی ته نزدې وي بيا په هغوی باندې چې هغوی ته نزدې وي بيا په هغوی باندې چې هغوی ته نزدې وي بيا په هغوی باندې چې هغوی ته نزدې وي.(۱)

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمايل چې يو ځل د شپې رسول الله ﷺ بيمار شو بيا د هغوی ﷺ بيماري زياته شوه او پخپله بستره باندې يې اړخونه بدلول ما وويل که په مونږ کې چا داسې کولی نو تاسو به پرې خفه شوي واي رسول الله ﷺ وفرمايل چې په مؤمنانو بنده ګانو باندې تکليف زيات راځي او مؤمن بنده ته چې هر قسم تکليف رسېږي خواه که بيماري وي يا يې ازغي مات شي نو الله رب العزت د هغې په وجه د هغه ګناهونه معاف کوي او د هغه درجې اوچتوي.(۲)

## په مرضونو د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنهُم صبر

### د اهل قبا او انصارو صبر په تبه باندې:

حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايل چې تبې د رسول الله ﷺ په خدمت کې د راتلو اجازه وغوښته رسول الله ﷺ ترې پوښتنه وکړه چې دا څوک دی؟ تبې وويل زه اُم ملدم يم (دا د تبې کنيت دی) رسول الله ﷺ تبې ته حکم وکړ چې قبا والاوو ته لاړه نو تبه هلته لاړه او په هغوی تبه شروع شوه او الله جَلَّ جَلَالُهُ پوهېږي چې په هغوی څومره تبه راغلې وه هغوی د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شول او د تبې شکايت يې وکړ رسول الله ﷺ وفرمايل تاسو څه غواړئ؟ که چېرې تاسو غواړئ! چې زه د الله رب العزت نه دعا اوغواړم او الله رب العزت ستاسو تبه لرې کړي او که چېرې تاسو غواړئ! نو ستاسو تبه به وي او دا تبه به ستاسو لپاره د ګناهونو نه د پاکۍ ذريعه جوړه شي دغه قبا والاوو وويل آيا تاسو داسې کولی شئ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل چې هو! نو هغوی وويل چې بيا خو تبه پرېږدئ!(۳)

---

۱: اخرجه البيهقي كذافي الكنز ۲/۱۵۴ واخرجه احمد والطبراني في الكبير بنحوه قال الهيثمي ۲/۲۹۲ واسناد احمد حسن.
۲: اخرجه ابن سعد والحاكم والبيهقي كذافي الكنز ۲/۱۵۴ واخرجه احمد نحوه قال الهيثمي ۲/۲۹۲ ورجاله ثقات.
۳: اخرجه احمد قال في الترغيب ۲/۲۰٦ رواه احمد ورواته رواة الصحيح وابن حبان في صحيحه.

حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې تبې د رسول الله ﷺ نه د حاضرېدو اجازه وغوښتله رسول الله ﷺ د هغې نه پوښتنه وکړه ته څوک یې ؟ هغې وویل زه تبه یم! غوښه ختموم او وینه څښم! رسول الله ﷺ وفرمایل څه! قبا ته لاړه شه انو تبه قبا ته لاړه او د قبا والاوو مخونه زېړ شول نو هغوی راغلل او رسول الله ﷺ ته یې د تبې شکایت وکړ رسول الله ﷺ وفرمایل تاسو څه غواړئ؟ که چېرې تاسو غواړئ! چې زه د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه دعا اوغواړم او ستاسو تبه لرې کړې او که چېرې تاسو غواړئ! نو تبه پرېږدئ! او ستاسو باقي ګناهونه به اوبښلي شي هغوی وویل چې ضرور اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو تبه پرېږدئ! (۱)

حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي چې تبه د رسول الله ﷺ په خدمت کې راغله او وې ویل چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو ما خپلو هغه صحابه وو ته اولېږئ! چې تاسو ته د ټولو نه زیات محبوب وي رسول الله ﷺ وفرمایل انصارو ته لاړه شه! نو تبه هغوی ته ورغله او ټول تبې ونیول چې د هغې د وجې نه هغوی ټول پرېوتل انصار راغلل او د رسول الله ﷺ په خدمت کې یې عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! مونږ باندې تبه راغلې ده تاسو زمونږ لپاره د صحت او شفاء دعا اوغواړئ! رسول الله ﷺ دعا وکړه او تبه لاړه یوه زنانه رسول الله ﷺ پسې وروسته راغله او عرض یې وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما لپاره دعا اوغواړئ! زه هم په انصارو کې یم له دې وجې نه ما لپاره هم دعا اوغواړئ! څنګه چې تاسو د انصارو لپاره وغوښتله رسول الله ﷺ وفرمایل ستا په دې دوو خبرو کې کومه یوه زیاته خوښه ده؟ یوه دا چې زه ستا لپاره دعا اوغواړم او ستا تبه لاړه شي او دویمه دا چې ته صبر وکړې او ستا لپاره جنت واجب شي؟ هغې درې ځل وویل نه په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه به صبر کوم او بیا یې وویل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه د الله جَلَّ جَلَالُهُ جنت په خطره کې نشم اچولې.(۲)

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایل چې یو ځوان به د رسول الله ﷺ په مجلس کې حاضرېدلو هغه څو ورځې رانه غې نو رسول الله ﷺ وفرمایل چې څه خبره ده چې فلاني په نظر نه راځي صحابه وو عرض وکړ چې په هغه باندې تبه راغلې ده رسول الله ﷺ وفرمایل پاڅئ! چې د

---

۱: عند الطبراني قال الهیثمي ۶/۱۶۰ وفیه هشام بن لاحق ولقه النسائي وضعفه احمد وابن حبان اه واخرجه البیهقي عن سلمان نحوه کما في البدایة ۶/۱۶۰.

۲: اخرجه البیهقي کذافي البدایة ۶/۱۶۰ واخرجه البخاري في الادب ۷۳ عن ابي هریرة بمعناه.

هغه بيمار پرسى له لاړ شو چې كله رسول الله ﷺ هغه ځوان كور كې د هغه خواته ورغى نو هغه په ژړا شو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې مه ژاړه! چې حضرت جبرائيل عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ ما ته خبر را كړى دى چې تبه زما د امت لپاره د جهنم په بدله كې ده.(۱)

**د حضرت ابوبكرصديق او حضرت ابودرداء رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُمَا صبر:**

حضرت ابو سفر رَحِمَهُ ٱللَّهُ وايي چې يو ځل حضرت ابوبكر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ بيمار شو نو څه خلك د هغه د مريضتيا پوښتنې لپاره راغلل او هغوى عرض وكړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رسول ﷺ خليفه! آيا مونږ ستاسو لپاره څوك طبيب نه راغواړو؟ چې تاسو اوګوري! حضرت ابوبكر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې طبيب (يعنې الله رب العزت زه كتلې يم) هغه خلكو پوښتنه وكړه نو بيا هغه طبيب تاسو ته څه ويلي وو؟ حضرت ابوبكر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې هغه ويلي دي چې زه څه كول او غواړم هغه كوم.(۲)

حضرت مُعاويه بن قره رَحِمَهُ ٱللَّهُ وايي چې حضرت ابوالدرداء رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ يو ځل بيمار شو نو هغه ته د هغه ملګري راغلل او هغوى وويل اې ابوالدرداء رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ تاسو ته څه تكليف دي؟ هغه وويل چې ما ته د خپلو ګناهونو نه تكليف دي هغوى وويل ته څه غواړې؟ هغه وويل زه جنت غواړم هغوى وويل آيا مونږ ستا لپاره يو طبيب نه راغواړو؟ هغه وفرمايل چې هم طبيب زه مريض كړى يم او بستره باندې څملولى يم يعنې الله رب العزت.(۳)

**په طاعون باندې دحضرت معاذ او دده دكورنۍ صبر:**

حضرت عبدالرحمن بن غنم رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهَا وايي چې د شام په ملك كې د طاعون وبا خوره شوه نو حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې دا طاعون خو عذاب دى نو دارنګه تاسو د دېنه وتښتئ! او ځنګلونو ته اورسېدلئ نو هغه غصه شو او وې فرمايل چې حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ غلط وايي زه خو د شروع زمانې نه مُسلمان شوى يم او د رسول الله ﷺ ملګرتيا مې اختيار كړې وه او په هغو ورځو كې حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ خو د خپل كور والاوو د اوښانو نه زيات ګمراه وو يعنې هغه كافر وو دا طاعون خو ستاسو د رسول الله ﷺ دعا ده ځكه چې رسول الله ﷺ دعا غوښتلې ده چې اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! زما اُمت ته د نېزو په ذريعه

---

۱: اخرجه الطبرانى فى الصغير والاوسط و فيه عمر بن راشد ضعفه احمد ووثقه العجلى كما فى المجمع ۲/۳۰۲

۲: اخرجه ابن سعد ۳/۱۴۱ وابن ابى شيبة واحمد فى الزهد وابونعيم فى الحلية ۱/۳۴ وهنا وكذا فى الكنز ۲/۱۵۳

۳: اخرجه ابو نعيم فى الحلية ۱/۲۱۸ واخرجه ابن سعد ۷/۱۱۸ عن معاوية مثله.

هم په خپله لاره کې شهادت ورنصیب کړی او د طاعون په ذریعه هم! او دا ستاسو د رب رحمت دی چې په طاعون سره څوک مړ شي هغه به د الله رب العزت په نزد شهید شمارلی شي او تاسو نه مخکې چې کوم نېکان خلک وو دا د هغوی د وفات کېدو ذریعه ده دا خبره حضرت مُعاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته اورسېدله نو هغه وفرمایل اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! د دې طاعون مرض نه د مُعاذ اولاد ته ډېره حصه ورنصیب کړی نو د هغه دوه لونړه هم په دې مرض کې وفات شوې او د هغه څوی حضرت عبد الرحمن ته هم طاعون ولګېده نو حضرت عبد الرحمن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې دا کار واقعي ستاسو د رب د طرف نه ښودل شوی دی نو دارنګه تاسو د شک کوونکو نه هر ګز اونه ګرځئ! نو حضرت مُعاذ وفرمایل چې ته به ما ان شاء الله د صبر کوونکو نه بیا مومې! او د حضرت مُعاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د لاس د تلي په شا باندې د طاعون دانه را اوختله نو وې فرمایل چې دا دانه ما ته د سرو اوښانو نه زیاته خوښه ده هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اولیده چې ورسره خوا کې ناست یو سړی ژاړي وې فرمایل چې ته ولې ژاړې؟ هغه سړي وویل چې زه د هغه علم د وجې نه ژاړم چې ما ستاسو نه حاصلولو ورته یې وفرمایل مه ژاړه! څکه چې حضرت ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ په داسې علاقه کې اوسېده چې هلته څوک عالم نه وو نو الله رب العزت ورته علم ورکړ نو دارنګه چې کله زه مړ شم! نو د دې څلورو سړو نه علم حاصلوه! حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت عبد الله بن سلام، حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. (۱)

د ابو نعیم په روایت کې دا دی چې حضرت مُعاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت عُبیده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت شُرحبیل بن حسنه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، او حضرت ابو مالک اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته په یوه ورځ طاعون اولګېدو نو حضرت مُعاذ وویل چې دا طاعون ستاسو د رب د طرفنه رحمت دی چې په دې باندې د شهادت درجه ملاوېږي او ستاسو د رسول الله ﷺ دعا ده او ستاسو نه مخکې نېکو خلکو د روح قبض کولو ذریعه وه اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! د مُعاذ اولاد ته د دې طاعون نه ډېره حصه ورکړې ما ښام لا نه وو راغلی چې د هغه څوی حضرت عبد الرحمن په طاعون کې مُبتلا شو دا د هغه د ټولو نه اول څوی وو او هم د ده په نوم د هغه کنیت ابو عبد الرحمن وو. او د حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورسره د ټولو نه زیات مُحبت وو حضرت

۱: اخرجه ابن خزیمة وابن عساکر کذافی الکنز ۲۲۵/ ۲ واخرجه احمد عن عبدالرحمن بن غنم مختصرا والبزار عنه مطولا کما ذکر البیهقی ۲/۳۱۲ وقال اسانید احمد حسان صحاح اه واخرجه الحاکم ۱/۲۷٦ وابونعیم فی الحلیة ۱/۲۴۰ عن عبدالرحمن مختصرا.

مُعاذ رَضِيَ اللهُ عَنهُ مسجد ته راغی نو وې کتل چې د هغه ځوی ډېر بېقراره دی نو وې فرمايل چې اې عبدالرحمن! ته څنګه یې؟ عبدالرحمن ورته په جواب کې وويل پلاره! دا امر واقعي ستاسو د رب د طرف نه دي تاسو د شک کوونکو نه مه کېږئ! حضرت مُعاذ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمايل ان شاء الله ته به ما د صبر کوونکو نه بیا مومې! اخر هم په دغه شپه حضرت عبدالرحمن وفات شو او په صبا له هغه حضرت مُعاذ دفن کړ بیا حضرت مُعاذ ته هم د طاعون بیماري ولګېده او د زنکدن داسې سخت حالت پرې راغی چې داسې به په چا هم نه وي راغلی چې کله به د مرګ د سختی نه لږ بنه شو نو سترګې به یې اوغړولې او به یې ویل اې زما ربه! تا ته پته ده چې څومره زما مری خفه کول غواړې خفه یې کړه ستا په عزت مې دې قسم وي تا ته پته ده چې زما زړه تاسو سره ډېر محبت کوي.(۱)

**په طاعون باندې د حضرت ابوعبیده او نورو مسلمانانو صبر:**

حضرت شهر بن حوشب رَحِمَهُ اللهُ د خپل قوم یو سړی حضرت رابه نه روایت کوي چې کله د طاعون وبا خوره شوه نو حضرت ابوعبیده به خلکو ته بیان لپاره اودرېده او وې فرمايل اې خلکو! دا بیماري خو ستاسو د رب د طرفنه رحمت دی او ستاسو د رسول الله ﷺ دعا ده او تاسو نه مخکې د نېکو خلکو د مرګ ذریعه وه او ابوعبیده رَضِيَ اللهُ عَنهُ الله رب العزت ته درخواست کوي چې الله رب العزت ابوعبیده ته د دې مرض نه د هغه حصه ورکړي نو هغه هم په طاعون بیماری کې اخته شو چې په هغې کې د هغه وفات وشو بیا د هغه نه پس حضرت مُعاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنهُ د خلکو امیر جوړ شو نو هغه هم اودرېده او بیان یې وکړ او وې فرمايل اې خلکو! دا مریضي ستاسو د رب رحمت دي او ستاسو د رسول الله ﷺ دعا ده او تاسو نه مخکې د نېکو بنده ګانو د مرګ ذریعه وه مُعاذ رَضِيَ اللهُ عَنهُ الله رب العزت ته درخواست کوي چې د مُعاذ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اولاد ته د دې مریضتیا نه د هغوی حصه ورکړي نو د هغه ځوی حضرت عبدالرحمن ته د طاعون بیماري ولګېده او په هغې کې د هغه وفات وشو بیا حضرت مُعاذ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اودرېده او خپل ځان لپاره یې د مرض دعا وغوښتله نو د هغه په تلي کې د طاعون دانه راوختله ما وویل چې حضرت مُعاذ رَضِيَ اللهُ عَنهُ به هغه کتلو او خپل تلي به یې واړولو او فرمايل به یې اې تلیه زما دا بلکل خوښه نه ده چې په تا کې کومه دا د طاعون مرض دی د دې په بدله کې چې ما ته د دنیا څه شي ملاو شي چې کله حضرت مُعاذ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفات

(۱) اخرجه احمد عن ابي منيب مختصرا ورجاله ثقات وسنده متصل كما قال الهيثمي ۲/۳۱۱

شو نو حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خلکو امیر جوړ کړی شو نو هغه او دریده او بیان یې وکړ چې اې خلکو! دا بیماري چې کله چا ته اولګي نو د اور په شان زیاتیږي نو دا رنګه تاسو غرونو ته لاړ شئ! د هغې نه ځانونه بچ کړئ! په دې باندې حضرت واثله هُذلي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل ته غلطه خبره کوې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه په هغه وخت کې د رسول الله ﷺ په صُحبت کې پاتې شوی یم کوم وخت چې ته زما د دې خر نه زیات ګمراه وې یعنې کافر وې حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې ته څه وایې زه د دې جواب خو نه درکوم خو په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! اوس به مونږ دلته نه اوسیږو نو حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دغه ځائ نه لاړو او خلک هم لاړل او اخوا دیخوا خواره شول او الله رب العزت د طاعون مرض د هغوی نه لرې کړه چې کله حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې رایې خبر ملاو شو نو په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا خوښه نه کړه.(۱)

**د طاعون عمواس په باره کې د حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیان:**

حضرت ابو قلابه رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د شام په مُلک کې د طاعون مرض خور شو نو حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې دا ناپاکه بیماري خوره شوې ده نو دا رنګه تاسو د دې ځائ نه لاړ شئ! او ځنګلونو او درو کې یو خوا بل خوا خواره شئ! حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته چې کله د دې پته ولګیده نو هغه د ده د دې خبرې تصدیق اونه کړ بلکې وې فرمایل نه! دا طاعون خو د شهادت درجه ورکوي او د دې په وجه د الله رب العزت رحمت نازلیږي او دا ستاسو د رسول الله ﷺ دعا ده اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته او د ده کور والاو ته د خپل رحمت نه حصه ورکړې حضرت ابو قلابه رَحِمَهُ اللهُ وایي په دې خو زه پوه شوم چې په طاعون د شهادت درجه ملاویږي او رحمت نازلیږي خو د دې خبرې په مطلب پوه نه شوم چې طاعون ستاسو د رسول الله ﷺ دعا ده تر دې چې ما ته چا وویل چې رسول الله ﷺ یوه شپه لمونځ کولو بیا یې دا دعا درې ځله وغوښتله چې اې الله جَلَّ جَلَالُهُ بیا خو دې یا تبه وي یا طاعون وي سهار د رسول الله ﷺ په کور کې چا رسول الله ﷺ ته وویل چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! نن شپه ما تاسو نه واوریدل چې تاسو یوه خاص دعا غوښتله رسول الله ﷺ وفرمایل نبه تا هغه دعا واوریده؟ هغه وویل هو! رسول الله ﷺ وفرمایل ما د خپل رب نه دا دعا وکړه چې زما امت په قحط سالۍ سره تباه نشي الله رب العزت دا دعا قبوله

---

(۱) اخرجه ابن اسحق کذافی البدایة ۷/۷۸

کړه او ما دا دعا وغوښتله چې په دې باندې داسې دشمن مسلط نشي چې دوي بیخي ختم کړي د دوي مختلفې ډلې جوړې نه شي او د دوي پخپل مینځ کې جګړه نه وي خو دا اخري دعا قبوله نه شوه او د دې ما ته انکار وشو په دې باندې ما درې ځله عرض وکړ چې بیا دې زما امت لپاره تبه یا طاعون وي.(۱)

**طاعون بیماري ته دحضرت ابوعبیده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوشحالي:**

حضرت عروه بن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې د طاعون عمواس (دا د شام په ملک کې د یو ځائ نوم دی) نه حضرت ابوعبیده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د هغه کور والا بچ شوي وو نو هغه دا دعا وغوښتله اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! ابو عبیده کور والاو ته د دې مرض نه حصه ورکړې نو د هغه په وړه ګوته کې د طاعون دانه راښکاره شوه نو هغه ورته کتل چا ورته وویل چې دا خو وړه شان ده هیڅ هم نه ده نو وې فرمایل چې زما د الله جَلَّ جَلَالُهُ د ذات نه امید دی چې هغه به په دې دانه کې برکت رانصیب کړي او چې کله الله رب العزت په لږ شي کې برکت اچوي نو هغه زیاتیږي(۲)

حضرت حارث بن عمیره حارثي رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت ابوعبیده بن جراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د طاعون مرض ولګیده نو حضرت مُعاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت حارث لره د مرض پوښتنې لپاره د حضرت ابو عسده یه خدمت کې اولیږلو حضرت ابو عبیده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت حارث ته د طاعون دانه وښودله چې د هغه په تلي کې راوتلې وه حضرت حارث چې کله دا دانه اولیده نو هغه اوویریدو ځکه چې هغه ته دا دانه غټه ښکاره شوه په دې باندې حضرت ابوعبیده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم اوخوړو او وې ویل چې زما دا بلکل خوښه نه ده چې ما ته د دې دانې په ځائ سره اوښان ملاو شي.(۳)

# د نظر په تلو (نابینا کیدو) باندې صبر

## د نظر تلو باندې د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ صبر کول

**په نابینا کیدو د زید بن ارقم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صبر:**

حضرت زید بن ارقم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې زما په سترګو کې درد پیدا شو رسول الله ﷺ زما د مرض پوښتنې له راغی نو هغوی ﷺ وفرمایل اې زیده! که چېرې ستا سترګې هم دغسې

---

۱: اخرجه احمد قال الهیثمی ۲/۳۱۱ رواه احمد وابو قلابه لم یدرک معاذبن جبل انتهی.

۲: اخرجه ابن عساکر.

۳: عنده ایضا کذافی المنتخب ۵/۷۴

خوږېدې او صحيح نه شوې نو څه به کوې؟ ما وويل صبر به کوم! او د الله جَلَّجَلَالُهُ نه به د ثواب امېد ساتم رسول الله ﷺ وفرمايل که چېرې ستا سترګې هم د غسې خوږېدې او تا صبر وکړ او د ثواب امېد دې او ساتلو نو تا ته به د دې په بدله کې جنت ملاوېږي.(۱)

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايل چې د حضرت زيد بن ارقم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په سترګو کې درد پيدا شو زه د رسول الله ﷺ سره د هغه د مريضي پوښتنې ته لاړم رسول الله ﷺ ورته وفرمايل اې زيده! ستا په سترګو کې چې کوم تکليف دی که چېرې ته په دې باندې صبر وکړې او په دې باندې د الله جَلَّجَلَالُهُ نه د ثواب امېد اولرې نو ته به د الله جَلَّجَلَالُهُ سره په داسې حال کې ملاو شې چې په تا باندې به هيڅ ګناه نه وي.(۲)

حضرت زيد بن ارقم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايل چې زه بيمار ووم په دې وجه رسول الله ﷺ زما د مريضتيا پوښتنې له راغي رسول الله ﷺ وفرمايل تا ته خو د دې مرض نه څه خطر نشته خو ستا به هغه وخت څه حال وي چې کله ته زما نه وروسته ژوندی پاتې شې او نابينا يې؟ ما وويل صبر به کوم او الله رب العزت نه به د ثواب امېد ساتم! رسول الله ﷺ وفرمايل بيا خو به ته پرته د حساب نه جنت ته داخل شې نو حضرت زيد د رسول الله ﷺ د وفات نه پس واقعي نابينا شو.(۳)

د طبراني په روايت کې دا مضمون دی چې د رسول الله ﷺ وفات نه پس حضرت زيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نابينا شو بيا الله رب العزت د هغه د سترګو رڼا بېرته ورکړه بيا حضرت زيد وفات شو الله جَلَّجَلَالُهُ دې په هغه باندې رحمت نازل کړي.(۴)

**د نظر په تلو د يو صحابي صبر:**

قاسم بن محمد رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې د حضرت محمد ﷺ يو صحابي نظر ختم شو خلک يې د مرض پوښتنې ته راغلل نو هغه وفرمايل چې ما ته د سترګو څکه ضرورت وو چې زه په دې سره د رسول الله ﷺ زيارت وکړم چې کله رسول الله ﷺ تشريف يوړلو نو اوس په الله جَلَّجَلَالُهُ قسم! زه به په دې باندې بلکل خوشحاله نه شم چې زما د سترګو دا تکليف دې د يمن بنار د تباله يوې هوسۍ ته ولګېږي.(۵)

---

۱: اخرجه البخاری فی الادب ۷۸

۲: عند احمد قال الهيثمی ۲/۳۰۸ وفيه الجعفی وفيه كلام كثير وقد وثقه الثوری وشعبة انتهى.

۳: عند ابي يعلى وابن عساكر واخرجه البيهقی عن زيد بمعناه كما فی الكنز ۲/۱۵۷ اخرجه الطبرانی فی الكبير عن زيد نحوه.

۴: قال الهيثمی ۲/۳۰۹ ونهاته بنت بربر بن حما د لم اجد من ذكرها.

۵: اخرجه البخاری فی الادب ۷۸ واخرجه ابن سعد ۲/۷۵ عن القاسم نحوه.

# د اولاد، خپلوانو او دوستانو په مرګ باندې صبر

**د اولاد په مرګ د رسول الله ﷺ صبر:**

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې ما د رسول الله ﷺ ځوی حضرت ابراهيم رَحِمَهُ اللهُ وليده چې د رسول الله ﷺ په مخکې د هغه د زنکدن حالت وو دې ليدو سره د رسول الله ﷺ په سترګو کې اوښکې راغلې او وې فرمايل چې د سترګو نه اوښکې بهيږي او زړه غمجن کيږي خو مونږ به په ژبه هغه څه وايو چې په هغې سره زمونږ رب راضي وي اې ابراهيم! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! مونږ ستا د تلو د وجې نه غمجن يو.(۱)

حضرت مکحول رَحِمَهُ اللهُ وايي چې رسول الله ﷺ د حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په تکيه دننه تشريف راوړو دننه په حضرت ابراهيم باندې د زنکدن حالت وو چې کله هغه وفات شو نو د رسول الله ﷺ د دواړو سترګو نه اوښکې بهيدلې نو حضرت عبد الرحمن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! د دېنه خو تاسو خلک منع کوئ! چې کله مسلمانان تاسو په ژړا اووينئ! نو هغوی به هم په ژړا شي چې کله د هغوی اوښکې او چې شوې نو وې فرمايل چې دا ژړا خو د رحم يعنې د زړه د نرمۍ د وجې نه ده ځوک چې په نورو باندې رحم نکوي په هغه باندې رحم نه شي کيدلي مونږ خو خلک په مړو باندې په چيغو سره د ژړا نه منع کوو او د دې خبرې به يې منع کوو چې د مړي هغه صفات بيان کړی شي چې په هغه کې نه وو که چيرې د الله رب العزت د ټولو جمع کولو وعده او د مرګ روانه لار نه وي او په مونږ کې د وروسته تلونکو د مخکې تلونکو سره ملاويدل نه واې نو مونږ سره به د دې نه زيات غم وو او مونږ د ده په تلو باندې غمجن يو د سترګو نه اوښکې بهيږي زړه مو غمجن دی خو مونږ په ژبه داسې خبره به کوو چې په هغې سره زمونږ رب خفه شي او د ده د پيو ځښلو باقي موده به په جنت کې پوره کيږي.(۲)

**د يوې لور د اولاد په مرګ د رسول الله ﷺ صبر:**

حضرت اسامه بن زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې مونږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو چې په دې کې د هغوی ﷺ يوې لور د هغوی ﷺ د راغوښتلو لپاره يو سړی ته دا پيغام ورکولو او

۱: اخرجه ابن سعد ۹۰/۱
۲: عن ابن سعد ۱/۸۸ واخرجه ايضا ۱/۸۹ عن عبدالرحمن بن عوف اطول منه بمعناه.

راوي لېږلو چې د هغوی ځوی وفات کېدونکی دي رسول الله ﷺ راتلونکي قاصد ته وفرمایل چې واپس لاړ شه! او زما لور ته ووایه چې الله جَلَّ جَلَالُهُ کوم شي زمونږ نه واخیسته هغه هم د هغه دي او کوم یې چې مونږ ته را کړی دی هغه هم د هغه دي او د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد د هر شي وخت مقرر دی او ورته اووایه! چې ته صبر وکړه او الله رب العزت نه د ثواب امید ساته! هغه قاصد یې لور ته جواب یوړلو او لاړو خو لور هغه قاصد بیا دوباره راولېږلو هغه قاصد بیا راغی او وې ویل چې هغه تاسو ته قسم درکوي او وایي چې تاسو هغې له ضرور لاړ شئ! په دې باندې رسول الله ﷺ اودرېده او ورسره سعد بن عُباده رَضِیَ اللهُ عَنْهُ، حضرت مُعاذ بن جبل رَضِیَ اللهُ عَنْهُ، حضرت ابي بن کعب رَضِیَ اللهُ عَنْهُ او حضرت زید بن ثابت رَضِیَ اللهُ عَنْهُ او څو صحابه هم پاڅېدل زه هم دغه حضراتو سره لاړم چې کله هلته اورسېدلو نو هغه ماشوم ساه تنګه وه داسې اوازېې راتلو لکه په زړه او او چې مشکیزه کې وي د رسول الله ﷺ د دواړو سترګو نه اوښکې رواني شوې حضرت سعد رَضِیَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړ اې د الله رب العزت رسوله دا څه دي؟ هغوی ﷺ وفرمایل دا د رحم او شفقت ماده ده چې دا الله رب العزت د خپلو خاصو بنده ګانو په زړونو کې ایښې ده الله رب العزت په په خپلو بنده ګانو کې په هغو بنده ګانو باندې رحم کوي چې په نورو باندې رحم کونکی وي.(۱)

**د خپل تره حمزه په شهادت د رسول الله ﷺ صبر:**

حضرت ابو هریره رَضِیَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې کله حضرت حمزه بن عبد المطلب رَضِیَ اللهُ عَنْهُ شهید شو نو آنحضرت ﷺ داسې دردناک منظر اولیده چې د دېنه زیات درد ناک منظر یې چېرته نه وو لیدلی رسول الله ﷺ ولیدل چې د هغه غوږونه، پوزه وغیره اندامونه پرېکړی شوی دی هغوی ﷺ وفرمایل د الله جَلَّ جَلَالُهُ رحمت دې په تا باندې وي څومره پورې چې ماته معلومه ده ته خپلولي پالونکي وې او ډېر زیات نېکي کونکی وې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! که چېرې ستا نه ورور ستو د رشته دارو د غم او مصیبت زیاتېدلو خطره نه وای نو زما خوشحالي په دې کې وه چې ماته دلته هم دغسې پرېښې وې او دفن کولې مې نه ته ځناورو خوړلې وای داسې به ستا قرباني نوره هم زیاته شوې وای دې لپاره چې الله جَلَّ جَلَالُهُ ته د ځناورو د خېټو نه را جمع کړی وای او اوچت کړی یې وای په غور سره واوره! دې کافرانو

---

۱: عن ابی یعلی وابن عساکر واخرجه البیهقی عن زید بمعناه کما فی الکنز ۲/۸۵۷ واخرجه الطبرانی فی الکبیر عن زید نحوه.

چې څنګه ستا پوزه، غوږونه وغیره پرې کړی دی په دوي کې به زه د اویا کافرانو دا شان پوزه، غوږونه وغیره اندامونه پرېکوم په دې خبره حضرت جبرائیل عَلَیْهِ السَّلَامُ دا سورت راووړ او نازل شو: وَإِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوا بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُم بِهِ ۖ وَلَئِن صَبَرْتُمْ لَهُوَ خَيْرٌ لِّلصَّابِرِينَ ۝ وَاصْبِرْ وَمَا صَبْرُكَ إِلَّا بِاللَّهِ ۚ وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَلَا تَكُ فِي ضَيْقٍ مِّمَّا يَمْكُرُونَ ۝(۱)

ترجمه او که چېرې بدله اخلې نو دومره بدله واخله څومره چې تاسو سره رویه وکړې شوه او که چېرې صبر وکړې نو هغه د صبر کونکی په حق کې ډېره غوره ده او ته صبر وکړه او ستاسو صبر کول هم د الله جَلَّ جَلَالُهُ په توفیق سره دي او په دې باندې غم مه کوه! او کوم تدبیرونه چې دوي کوي په دې باندې زړه مه تنګوه! په دې باندې رسول الله ﷺ خپل قسم پوره نکړ بلکې د هغې کفاره یې اداء کړه.(۲)

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایل چې کله رسول الله ﷺ د حضرت حمزه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د شهادت نه پس د هغه په خوا کې ودرېدو نو هغوی ډېر زیات غمجن کولو حالت ولیده په دې باندې رسول الله ﷺ وفرمایل که چېرې ما سره د خپلو رشته دارو زنانه وو د غم او مصیبت زیاتېدلو خطره نه وای نو ما به دې دفن کړی نه وای او دلته به مې داسې پرېښې وای چې دې د ځناورو خېټو او د مارغانو ججورو ته ورغلې وای او هلته نه الله پاک په میدان حشر کې را اوچت کړی وای د هغه دردناک حالت یې چې اولیده نو رسول الله ﷺ په زیات غم کې وفرمایل چې که چېرې دغه کافران زما په قابو کې راغلل نو زه به په هغوی کې د دېرشو سړیو پوزې، غوږونه وغیره اندامونه پرېکوم په دې خبره الله رب العزت دا ایت شریف نازل کړ: وَإِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوا بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُم بِهِ ۖ وَلَئِن صَبَرْتُمْ لَهُوَ خَيْرٌ لِّلصَّابِرِينَ ۝ وَاصْبِرْ وَمَا صَبْرُكَ إِلَّا بِاللَّهِ ۚ وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَلَا تَكُ فِي ضَيْقٍ مِّمَّا يَمْكُرُونَ ۝

ترجمه یې مخکې تېره شوې ده بیا د آنحضرت ﷺ په فرمایلو باندې حضرت حمزه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مخ په قبله باندې څملولی شو او رسول الله ﷺ نهه تکبیرونه وویل او د هغه د جنازې لمونځ یې وکړ بیا یې د هغه جنازه هم هلته ایساره کړه بیا د نبي کریم ﷺ خوا ته شهیدان راوړلي شو چې کله به یو شهید راوړلي شو نو هغه به یې د حضرت حمزه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خوا کې

---

۱: سورة النحل آیت ۱۲۶،۱۲۷

۲: اخرجه البزار والطبرانی وفیه صالح بن بشیر المزنی وهو ضعیف کما قال الهیثمی ۶/۱۱۹ واخرجه الحاکم ۳/۱۹۷ بهذا الاسناد نحوه.

کېښـو دو ځرنګـه چـې شـهیدان دوه اویـا وو لـه دې وجـې نـه هغـوی ﷺ د حضـرت حمزه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د نورو شهیدانو دوه اویا ځله د جنازې لمونځ وکړ بیا هغوی ﷺ پاڅېدل او هغه شهیدان یې دفن کړل چې کله د قرآن پوتنې آیت نازل شو نو هغوی ﷺ کافران معاف کړل او هغوی ته یې عفوه وکړه او د هغوی د پوزو، غوږونو او نورو اندامونو د پرېکولو اراده یې پرېښو دله.(۱)

**د حضرت زید بن حارثه په شهادت درسول الله ﷺ خفګان:**

حضرت اسامه بن زید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایل چې زما پلار شهید شو نو زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم چې کله زه هغوی ﷺ اولیدم نو په سترګو کې یې اوښکې راغلې بله ورځ زه بیا د هغوی ﷺ په خدمت کې حاضر شوم نو وې فرمایل چې نن مې هم ته ولیدلې نو هغه خفګان او غم راته یادېږي چې پرون وو.(۲)

حضرت خالد بن شمیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایل چې کله حضرت زید بن حارثه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ شهید شو نو رسول الله ﷺ د هغه کور ته تشریف یوړلو هلته د رسول الله ﷺ په مخکې د حضرت زید لور په سلګو سلګو اوژړل په دې باندې رسول الله ﷺ هم په ژړا شو او دومره یې وژړل چې د هغوی ﷺ د ژړا اواز بهر را اووتلو حضرت سعید بن عباده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په خدمت کې عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! دا څه دي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل دا د یو دوست د یو محبوب دوست په شوق کې ژړل دي.(۳)

**د حضرت عثمان بن مظعون رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په وفات د رسول الله ﷺ خفګان:**

حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمایل چې حضرت عثمان بن مظعون رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفات شوی وو د هغه پس رسول الله ﷺ هغه ښکل کړ د غه وخت هغوی ﷺ ژړل عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمایل ما ولیدل چې د رسول الله ﷺ اوښکې بهېدلې او د حضرت عثمان بن مظعون رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په مخ باندې پرېوتلې.(۴)

---

۱: عند الطبراني وفيه احمد بن ايوب بن راشد وهو ضعيف قال الهيثمي ٦/١٢

۲: اخرجه ابن ابی شيبة وابن منيع والبزار والبادردی والدار قطنی فی الافراد وسعيد بن منصور كذافی المنتخب ٥/١٣٦

۳: عند ابن سعد ۳/۳۲

٤: اخرجه الترمذی كذا فی الاصابة ۲/۴۶۴ .

دابن سعد په روایت کې داسې راغلي دي چې حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمايي: ماوليدل چې د پیغمبر ﷺ له سترګو مبارکو نه اوښکې را رواني وې او د حضرت عثمان بن مظعون رَضِيَ اللهُ عَنهُ په مخ څڅېدلې (۱)

## په مرګ باندې د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنهُم صبر

### د خپل ځوی په شهادت د حضرت ام حارثه رَضِيَ اللهُ عَنهَا صبر:

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایل چې حضرت حارثه بن سراقه رَضِيَ اللهُ عَنهُ د بدر د غزا په ورځ شهيد شوی وو او دا په هغه ډله کې وو چې د لښکر حفاظت کوونکې وه هغه ناڅاپه يو نامعلومه غشي باندې اولګېدو چې هغې سره دی شهيد شو د هغه مور د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضره شوه او عرض يې وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو ما ته اوښايئ! چې حارثه چېرته دی؟ که چېرې هغه په جنت کې وي نو زه به صبر وکړم ګنې الله رب العزت به هم اووینې چې زه څه کوم يعنې څومره په چيغو ژاړم دغه وخته پورې په چيغو ژړا حرامه نه وه رسول الله ﷺ ورته وفرمايل آيا ته بې وقوفه شوې يې؟ چې يوازې يو جنت ګڼې! جنتونه خو اته داني دي او ستا ځوی ته فردوس اعلي جنت ملاو شوی دی.(۲)

په يو روايت کې دي چې که چېرې حارثه رَضِيَ اللهُ عَنهُ په جنت کې وي نو زه به صبر کوم او که چېرې په بل ځان کې وي نو زه به د دې په وجه په ژړا کې تول زور اولګوم رسول الله ﷺ وفرمايل اې ام حارثه! هلته خو ډېر جنتونه دي او ستا ځوی فردوس اعلي ته تللی دی.(۳)

د طبراني په روايت کې دا دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل اې ام حارثه! هلته خو يو جنت نه دی بلکې ډېر جنتونه دي او هغه په فردوس اعلي جنت کې دی حضرت ام حارثه وويل چې بيا خو به زه صبر کوم د ابن نجار په روايت کې دا دي چې حضرت ام حارثه وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! که چېرې زما ځوی په جنت کې وي نو زه به نه ژاړم او که چېرې په جهنم کې وي نو تر څو پورې چې په دنيا کې ژوندی يم نو ژاړم به رسول الله ﷺ وفرمايل اې ام حارثه! هلته يو جنت نه دی بلکې ډېر جنتونه دي او ستا ځوی حارث د محبت د وجې نه يې د

---

۱: اخرجه ابن سعد ۳/۲۸۸ عن عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا نحوه

۲: اخرجه الشيخان كذافي البداية ۳/۲۷۴ واخرجه البيهقي ۹/۱٦۷ عن انس نحوه

۳: اخرجه ابن ابي شيبة كما في الكنز ۵/۲۷۳ والحاكم ۳/۲۰۸ وابن سعد ۳/٦۸ عن انس بمعناه والطبراني كما في الكنز ۵/۲۷۵ عن حصين بن عوف الخثعمي رضي الله عنه بمعناه.

حارثه په ځای حارث وویل و ځو په فردوس اعلی جنت کې دی هغه په خندا واپس لاړه او وې ویل واه واه! ای حارثه ستا به څه وایم! (۱)

**د ځوی په شهادت د ام خلاد رَضِيَ اللهُ عَنْهَا صبر:**

حضرت محمد بن ثابت بن قیس بن شماس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې د بنو قریظه قبیلې په جګړه کې انصارو یو صاحب شهید شو چې هغه ته خلاد ویلای شو څوک راغی د هغه مور ته یې وویل ای ام خلاد! خلاد شهید شو نو هغه په پرده کې بهر راغله چا وویل چې ستا ځوی شهید شوی دی او ته په پرده کې راغلی یې! تا له په کار دی چې د غم د اظهار لپاره پرده لرې کړې هغې وویل که چېرې زما ځوی تللي وي نو د دې مطلب خو دا نه دی چې شرم او حیا د لاس نه لرې کړم رسول الله ﷺ ته چې کله دا خبر ورسېده نو وې فرمایل چې غور سره واورئ! خلاد ته د دوو شهیدانو اجر ملاو شوی دی چا عرض وکړ ای د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! داسې ولې وشو ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل ځکه چې اهل کتابو دا وژل دی.(۲)

**د اولاد په مرګ د حضرت ابوطلحه او ام سلیم رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا صبر :**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې زما مور حضرت ام سلیم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل خاوند ابو انس ته راغله او وې ویل نن ما داسې خبر راوړی دی چې ستا به خوښ نه شي حضرت ابو انس وویل چې ته د دغه باندیچي د خوا نه دغسې خبرونه راوړې چې هغه زما نه خوښېږي حضرت ام سلیم وویل خو هغه باندیچي خو الله جَلَّ جَلَالُهُ هغه منتخب کړ او خوښ یې کړ او نبي یې جوړ کړی دی ابو انس وویل بنه ده څه خبر دې راوړی دی؟ حضرت ام سلیم وویل چې شراب حرام کړی شو ، ابو انس او وویل چې د نن نه زما او ستا په منځ کې جدایي وشوه یعنې ما تا ته طلاق درکړ او ابو انس هم د شرک په حالت کې مړ شو او حضرت ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې تر دغه وخته پورې کافر وو حضرت ام سلیم ته د واده کولو په اراده راغی نو هغې وویل چې تر څو پورې ته مشرک یې ! نو زه تا سره واده نشم کولی حضرت ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل نه په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم کوم! چې ته چې څه غواړې هغه نه غواړې!

---

۱: اخرجه ابن نجار عن انس مطولا كما في الكنز ۷/۱۲۶

۲: اخرجه ابن سعد ۲/۸۳ واخرجه ابونعيم عن عبدالخبير عن قيس بن شماس عن ابيه عن جده كما في الكنز ۲/۱۵۷ وخرجه ايضا ابويعلي من طريق عبدالخبير بن قريس بن ثابت بن قيس بن شماس عن ابيه عن جده نحوه كما في الاصابة ۱/۴۵۴ وقال قال ابن منده غريب لا نعرفه الامن هذا الوجه.

حضرت ام سلیم وویل زه څه غوارم؟ حضرت ابو طلحه رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ وویل ته سره او سپین زر اخیستل غواړې د مشرک کېدو بهانه ته هسې کوې! حضرت ام سلیم وویل چې زه تا د رسول الله ﷺ په دې خبره شاهدي کوم چې که چېرې ته اسلام راوړې نو زه به تا سره په واده وکړم او د مهر مطالبه به درنه نه کوم هم دا اسلام راوړل به زما مهر وي حضرت ابوطلحه رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ وویل چې زما دا کار به څوک وکړي؟ حضرت ام سلیم وویل انسه! پاڅه او د خپل تره سره لاړ شه نو زه پاڅېدم! ابو طلحه هم پاڅېدو او هغه خپل لاس زما په اوګه باندې کېښودو او بیا مونږ دواړه روان وو تر دې چې کله مونږ رسول الله ﷺ ته نږدې ورسېدو نو رسول الله ﷺ زمونږ خبرې اترې واورېدلې رسول الله ﷺ وفرمایل دا ابو طلحه دی د ده په مخ باندې د اسلام رونق دی نو حضرت ابو طلحه رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ لاړو رسول الله ﷺ ته یې سلام وکړ او کلمه شهادت (اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمدا عبده ورسوله) یې وویله دې سره رسول الله ﷺ هم د هغه واده د حضرت ام سلیم سره وکړ د حضرت ام سلیم نه د هغه څوی پیدا شو چې کله هغه اوګرځېدلو او د پلار ورسره مینه ډېره شوه نو الله پاک د هغه روح قبض کړ بیا چې کله ابو طلحه کور ته راغی نو پوښتنه یې وکړه چې اې ام سلیم! زما څوی څنګه شو؟ حضرت ام سلیم وویل چې د مخکې نه غوره دی (دا یې غلطه خبره نه کړه څکه چې د مؤمن حالت د مرګ نه پس د دنیا نه غوره دی) بیا حضرت ام سلیم وویل تاسو د غرمې په طعام کې رستو والي وکړ نو آیا تاسو به د غرمې ډوډۍ خورئ؟ فرمایل چې ما طعام هغه ته مخې ته کېښودلو او ما ورته وویل چې خلکو د یو سړی نه څه شي د امانت په طور سره واخیستلو بیا هغه شي هغوی سره څه موده پورې وو او ورکوونکي مالک سړي اولېږلو او هغه شي یې واپس خپله قبضه کې واخیستلو او خپل امانت یې واپس کړ نو آیا دغه خلکو له په دې باندې پرېشانه کېدل پکار دي؟ حضرت ابو طلحه رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ وویل نه! حضرت ام سلیم وویل نو بیا ستا څوی د دې دنیا نه تللی دی تا ته الله رب العزت درکړی وو او اوس یې واپس واخیستلو. حضرت ابو طلحه پوښتنه وکړه چې اوس هغه چېرته دی؟ هغې وویل چې هغه دننه په کوټه کې دی نو هغه دننه لاړو او د هغه ماشوم د مخ نه یې جامه اوچته کړه او انا لله یې وویل او لاړو رسول الله ﷺ ته یې د ام سلیم ټوله قصه وکړه رسول الله ﷺ وفرمایل په هغه ذات مې دې قسم وي چا چې زه په حق

سره را لېږلی یم! چونکه ام سلیم د خپل بچي په مرګ باندې صبر کړی دی له دې وجې نه الله پاک د هغې په رحم کې د یو بل بچي حمل شروع کړی دی نو چې کله د حضرت ام سلیم هغه ماشوم پیدا شو نو رسول الله ﷺ وفرمایل اې انسه! لاړ شه! او خپلې مور ته اووایه! چې کله ته د خپل ځوی نوم پرېکړې نو هغه ته څه څښلو نه مخکې ما ته یې راولېږه! نو هغې هغه ماشوم زما په لاسونو باندې کېښودلو او زه راغلم هغه ماشوم مې رسول الله ﷺ ته راوړلو رسول الله ﷺ وفرمایل ما ته درې عجوه کجورې راوړه! نو ما درې کجورې راوړې رسول الله ﷺ د هغو نه هډوکي ووېستل او وې غورزول بیا یې پخپله خوله کې واچولې او وې جوولې او بیا یې د هغه ماشوم خوله پرانیستله او کجورې پکې ورکېښودلې هغه په ژبه سره اوجوولې رسول الله ﷺ وفرمایل دا انصاري دی ځکه یې کجورې خوښې دي بیا یې وفرمایل لاړ شه! او خپلې مور ته اووایه! چې الله جَلَّ جَلَالُهُ دې ستا لپاره په دې ځوی کې برکت واچوي او دا دې نېک او متقي جوړ کړي.(١)

د بزار په روایت کې دا دي چې حضرت ام سلیم د واده د پیغام په جواب کې وویل چې آیا زه تا سره واده وکړم په داسې حال کې ته د داسې لرګي عبادت کوې چې هغه زما فلاني غلام ځان پسې راکاږي او ګرځي.

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې د حضرت ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو ځوی بیمار وو حضرت ابو طلحه د کور نه بهر تللی وو نو وروسته هغه وفات شو حضرت ابو طلحه چې واپس راغی نو پوښتنه یې وکړه چې زما ځوی څنګه شو؟ حضرت ام سلیم ورته وویل چې مخکې نه زیات په ارام کې دی بیا حضرت ام سلیم ورته د شپې طعام کېښودلو حضرت ابو طلحه ډوډۍ اوخوړه او بیا یې د هغې سره کور والي هم وکړ چې کله فارغ شو نو حضرت ام سلیم وویل چې ماشوم دفن کړه سهار راغی حضرت ابو طلحه ټوله واقعه رسول الله ﷺ ته بیان کړه رسول الله ﷺ وفرمایل آیا تا نن شپه کور والي کړی دی؟ هغه وویل هو! رسول الله ﷺ وفرمایل اې الله جَلَّ جَلَالُهُ د دې دواړو په کوروالي کې برکت واچوه! نو هغوی ځوی پیدا شو حضرت ابو طلحه ما ته وویل چې دا په حفاظت سره رسول الله ﷺ ته یوسه! حضرت ا،

---

١:اخرجه البزار قال الهيثمى ٩/٢٦١ رواه البزار ورجاله رجال الصحيح غير احمد بن منصور الرمادى وهو ثقة وفى رواية البزار ايضاً قالت له انز وجک وانت تعبد خشبة يجرها عبدي فلان فذكر الحديث ورجال رجال الصحيح الذهبي واخرجه ابن سعد ٨/٣١٦ عن انس بدون ذكر قصة اسلام ابي طلحة.

سليم د ماشوم سره ما له كجورې هم راكړې ما هغه يوړلو او د رسول الله ﷺ په خدمت كې حاضر شوم رسول الله ﷺ ماشوم واخيستلو او وې فرمايل چې آيا دې ماشوم سره څه شي هم شته؟ ما وويل هو! كجورې دي رسول الله ﷺ هغه كجورې واخيستلې او وې جوولې او هغه يې د خپلې خولې څخه راوويستلې او د هغه ماشوم په خلو كې تالو پسې اولګولې او د هغه نوم يې عبدالله كېښودو.(١)

د بخاري شريف په بل روايت كې دا دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل چې امېد دى چې الله جَلَّ جَلَالُهُ به د دې دواړو په دې شپه كې بركت واچوي نو حضرت سفيان وايي چې يو انصاري سړي وويل چې ما د دغه ماشوم نهه ځامن وليدل چې ټولو قرآن لوستلى وو.(٢)

**د ځوى په مرګ د حضرت ابوبكر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ صبر:**

حضرت قاسم بن محمد رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې د حضرت ابوبكر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ځوى حضرت عبدالله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د طائف په غزا كې په يو غشي باندې لګېدلى وو چې د هغې زخم يو ځل جوړ شوي وو خو د رسول الله ﷺ د وفات نه څلوېښت ورځې پس بيا تازه شو او د دې په وجه هغه وفات شو حضرت ابوبكر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ته راغى او وې فرمايل بچيه! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ما ته خو داسې معلومېږي لكه څنګه چې ديوې چېلۍ غوږ نيول شوى او هغه زمونږ د كوره وېستل شوى وي حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وويل ټول تعريفونه الله جَلَّ جَلَالُهُ لره دي چا چې ستاسو زړه مضبوط كړ او د دې موقعې په هدايت باندې يې تاسو كلك كړئ! يعنې په دغه وخت كې يې د صبر او همت نه د كار اخيستلو توفيق دركړ بيا حضرت ابوبكر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بهر راغى بيا دننه راغى او وې فرمايل بچيه! آيا تا ته د دې خبرې وېره شته چې تاسو به حضرت عبدالله ژوندى دفن كړى وى؟ حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وفرمايل اې پلاره! (انا الله وانا اليه راجعون) حضرت ابوبكر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل زه د شيطان مردود نه په هغه الله جَلَّ جَلَالُهُ سره پناه غواړم چې اورېدونكى او پوه دى اې بچيه! د هر سړي په زړه كې دوه قسمه خيالات راځي يو بنه چې د ملائيكې د طرفه راځي بل بد چې د شيطان د طرفنه راځي، بيا د ثقيف د قبيلې وفد حضرت ابوبكر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته

---

١: عند البخاري ٢/٨٢٢

٢: عند البخاري ١/١٧٤

راغي نو هغه غشي په کوم باندې چې د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ځوی حضرت عبد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لګېدلی وو هغه ورسره وو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه غشي را ووېستلو هغه ته یې اوښودلو او پوښتنه یې وکړه چې په تاسو کې څوک دا غشي پېژني؟ نو د بنو عجلان قبیلې حضرت سعد بن عبید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل چې دا غشي ما جوړ کړی وو او ما ورته وزر لګولی وو او ورته مې پټه لګولې وه او ما هم دا غشی ویشتلی وو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل زما ځوی عبد الله بن ابي بکر هم په دې سره شهید شوی دی نو دا رنګه ټول تعریفونه هغه الله جَلَّ جَلَالُهُ لره دي چې هغه ده ته ستا د لاسه شهادت ورنصیب کړ او ته یې د ده د لاسه قتل کولو سره رسوا نه کړې کنې ته به دوزخ ته تللی وې بېشکه الله جَلَّ جَلَالُهُ فراخه مدد او حفاظت کونکی دی.(۱)

د بیهقي په روایت کې دا دی چې الله رب العزت ته د ده لاس سره ذلیل نه کړې بېشکه الله پاک تاسو دواړو لپاره فائده کې فراخي پیدا کړې ده. (۲)

**په دې باره کې دحضرت عثمان او حضرت ابوذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا صبر:**

حضرت عمرو بن سعید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایل چې کله به د حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ماشوم پیدا کېدو نو حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به هغه راغوښتلو هغه به د جامو په ټکړ کې نغښتي روړلي شو بیا به حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه سره خپله پوزه ولګوله او بوي کولو به یې چا ترې پوښتنه وکړه چې تاسو داسې ولې کوئ؟ وې فرمایل چې دې لپاره یې چې زما په زړه کې د ده څه محبت پیدا شي بیا که چېرې په ده باندې څه اوشي یعنې مریض شي یا مړ شي نو د ده د محبت د وجې نه زړه نه مې خفګان او غم وي نو د هغه بیماری یا مرګ سره خفګان هم وي او د صبر کولو ضرورت به وي.(۳)

حضرت ابوذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه چا پوښتنه وکړه چې څه خبره ده چې ستا ماشوم ژوندی نه پاتې کېږي؟ وې فرمایل چې ټول تعریفونه هغه الله جَلَّ جَلَالُهُ لره دي چې زما بچي د دې فاني کور نه اخلي او همېشه پاتې کېدونکي کور یعنې جنت ته یې جمع کوي. (۴)

---

۱: اخرجه الحاکم ۳/۴۷۷

۲: اخرجه البیهقی ۹/۹۸ نحوه.

۳: اخرجه ابن سعد کذافی الکنز ۲/۱۵۷

٤: اخرجه ابونعیم کذافی الکنز ۲/۱۵۷

**خپل وروړ زید په شهادت د حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ صبر:**

حضرت عمر بن عبد الرحمن بن زید بن الخطاب رَضِیَ اللهُ عَنْهُ وایي چې کله به حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ ته څه خفګان او تکلیف رسېدلو نو ځان ته د تسلي ورکولو لپاره به یې وفرمایل: ما ته د خپل وروړ حضرت زید بن خطاب رَضِیَ اللهُ عَنْهُ د شهادت زبردست غم رسېدلی وو خو ما په هغې باندې صبر کړی وو نو دا خو د هغه نه وروکي دي په دې خو صبر کول ضرور په کار دي چې حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ د خپل وروړ حضرت زید رَضِیَ اللهُ عَنْهُ قاتل ولیده نو وې فرمایل ته بنه شې! تا زما داسې وروړ وژلی دی چې کله هم هوا چلیږي نو ما ته هغه وروړ رایادیږي یعنې زما د هغه سره ډېر زیات محبت دی.(۱)

**خپل وروړ حضرت حمزه رَضِیَ اللهُ عَنْهُ په شهادت د حضرت صفیه رَضِیَ اللهُ عَنْهَا صبر:**

حضرت ابن عباس رَضِیَ اللهُ عَنْهُمَا فرمایل چې کله حضرت حمزه رَضِیَ اللهُ عَنْهُ شهید شو نو د هغه خور حضرت صفیه رَضِیَ اللهُ عَنْهَا د هغه په تلاش کې راغله هغې ته پته نه وه چې د حضرت حمزه رَضِیَ اللهُ عَنْهُ سره څه شوی دی؟ په لاره کې د حضرت علي رَضِیَ اللهُ عَنْهُ او حضرت زبیر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ سره د هغې ملاقات وشو حضرت علي رَضِیَ اللهُ عَنْهُ حضرت زبیر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمایل چې ته خپلې مور ته او وایه چې حضرت حمزه رَضِیَ اللهُ عَنْهُ شهید شوی دی حضرت زبیر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ حضرت علي رَضِیَ اللهُ عَنْهُ ته وویل نه بلکې ته خپلې ترور ورته ووایه! حضرت صفیې رَضِیَ اللهُ عَنْهَا د دې دواړو نه پوښتنه وکړه چې په حضرت حمزه رَضِیَ اللهُ عَنْهُ څه وشو؟ د دې دواړو داسې ظاهره کړه چې مونږ ته پته نشته هغه تله تله رسول الله ﷺ ته اورسېده رسول الله ﷺ چې هغه ولیدله نو وې فرمایل چې ما ته د دې خبرې وېره ده چې د زیات غم د وجې د دې په دماغو غلط اثر او نشي ځکه رسول الله ﷺ د هغې په سینه لاس کېښودو او دعا یې وکړه او بیا یې ورته وویل چې په دې خبره حضرت صفیه انا لله وویل او په ژړا شوه بیا رسول الله ﷺ لاړو او د حضرت حمزه رَضِیَ اللهُ عَنْهُ خوا ته لاړو ودرېدو د هغه پوزه غوږونه وغیره اندامونه پرېکړی شوي وو نو آنحضرت ﷺ وفرمایل چې که چېرې د خپلوانو زنانه و د پرېشانۍ وېره نه وای نو ما به دفن کولی نه بلکې دلته به مې پرېښی وای لپاره د دې چې صبا د قیامت په ورځ د ده حشر د مارغانو د ججورو او د لېوانو خېټو نه شوي وای بیا د

---

(۱) اخرجه الحاکم ۳/۲۲۷ واخرجه البیهقي ۹/۶۸ عن عبدالرحمن بن زید مثله.

رسول اکرم ﷺ په وینا باندې د شهیدانو جنازې راوړلې شوې او نبي کریم ﷺ یې جنازه وکړه او د هغې صورت داسې وشو چې د حضرت حمزه رضي الله عنه سره به یې نهه جنازې نورې ایښودلې هغې ﷺ به اووه تکبیرونو سره د هغه جنازه کوله بیا هغه نهه جنازې خو اوچتېدلې خو د حضرت حمزه رضي الله عنه جنازه به یې هم هلته پرېښودله بیا به نهه جنازې نورې رووړلې شوې آنحضرت ﷺ به په اووه تکبیرونو سره د هغوی جنازه کوله دا شان سلسله روانه وه تر دې چې رسول الله ﷺ د هغوی جنازو نه فارغ شو.(۱)

حضرت زبیر بن عوام رضي الله عنه فرمایل چې د جنګ احد په ورځ یوه زنانه مخامخ په تېزۍ سره روانه په نظر راغله داسې معلومېده چې هغه قتل شوي شهیدان کتل غواړي رسول الله ﷺ دا خبره خوښه نکړه چې دا ښځه هغوی لره اووینې له دې وجې نه رسول الله ﷺ وفرمایل ښځه! یعني دا منع کړئ! ما ته په کتلو سره اندازه ولګېده چې دا زما مور حضرت صفیه رضي الله عنها ده نو زه په منډه منډه باندې هغې ته ورغلم او د هغو شهیدانو ته رسېدلو نه مخکې زه هغې ته ورا ورسېدلم هغې زه په سینه کې په لاس سره په زوره اووهلم هغه ډېره قوي وه او هغې وویل چې لرې شه! زمکه ستا نه ده ما وویل رسول الله ﷺ ډېر تاکید سره ته دې خوا تلو نه منع کړې یې! دا یې چې واورېدل هغه هم هلته اودرېده او هغې سره دوه څادرونه وو هغه یې راووېستل او وې ویل چې ما دا دوه څادرونه د خپل ورور حمزه لپاره راوړی دی ما ته د هغه شهید کېدو خبر ملاو شوی دی نو دا رنګه هغه ته په دې کې کفن ورکړئ! نو مونږ هغه څادرونه واخیستل د کفن ورکولو لپاره حضرت حمزه رضي الله عنه ته ورغلو هلته مونږ وکتل چې یو انصاري شهید هم پروت دی چې د هغه سره هم کافرانو هغه سلوک کړی دی کوم یې چې د حضرت حمزه رضي الله عنه سره کړی وو نو مونږ ته په دې کې ډېر ذلت او شرم محسوس شو چې حضرت حمزه رضي الله عنه ته دې په دوو څادرونو کې کفن ورکړی شي او دا انصاري دې یو هم نه وي نو مونږ وویل چې یو څادر د حضرت حمزه رضي الله عنه شو او یو د انصاري. دا دواړه څادرونه مونږ ناپ کړل نو یو لوي او بل ورو کې وو نو مونږ د دواړو حضراتو لپاره قرعه اندازي وکړه او د چا په حصه کې چې کوم

---

۱: اخرجه الحاكم ٣/١٩٧ واخرجه ايضا ابن ابي شيبة والطبراني نحوه عن ابن عباس كما في المنتخب ٥/١٧٠ والبزار كما في المجمع ٦/١١٨ وقال اسناده والبزار والطبراني يزيد بن ابي زياد وهو ضعيف.

ټادر راغی هغه ته به پکي مونږ کفن ورکړ .(۱)

حضرت زهري، حضرت عاصم بن عمر بن قتاده او حضرت محمد بن یحیی او نور حضراتو د حضرت حمزه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د شهادت باره کښي نقل کوي چي حضرت صفیه بنت عبدالمطلب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا د خپل ورور د لیدلو لپاره راغله نو هغې سره په لاره کښي د هغې ځوی حضرت زبیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ملاو شو هغه وفرمایل چي اې موري! رسول الله ﷺ فرمایل چي ته واپس لاړه شه! هغې وویل ولې ما ته دا خبر ملاو شوی دی چي زما د ورور پوزه، غوږونه اندامونه پرېکړی شوی دی او هغه سره دا هرڅه د الله جَلَّ جَلَالُهُ په وجه شوی دی او کوم څه چي شوی دی مونږ په هغې باندې بلکل راضي یو ان شاء الله زه به هر قسمه صبر کوم او الله جَلَّ جَلَالُهُ نه به د ثواب امید ساتم حضرت زبیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لاړو او رسول الله ﷺ ته یې وویل رسول الله ﷺ وفرمایل ښه هغه پرېږدئ! مه یې منع کوئ! نو هغه حضرت حمزه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ورغله او د هغه لپاره یې د مغفرت دعا وکړه بیا د رسول الله ﷺ په وینا حضرت حمزه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دفن کړی شو .(۲)

**د خپل خاوند په وفات دحضرت ام سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا صبر:**

حضرت ام سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایل چي یوه ورځ زما خاوند ابو سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ خوا نه ما ته راغی او وې ویل چي ما د رسول الله ﷺ نه یوه خبره اورېدلې ده چي په هغې سره زه ډېر زیات خوشحاله شوی یم رسول الله ﷺ وفرمایل چي کله په یو مسلمان باندې مصیبت راشي او هغه پرې انا لله او وایي او دا دعا اولولي (اللّٰهُمَّ اجرني في مصيبتي واخلف لي خيرا منها)

ترجمه: اې الله جَلَّ جَلَالُهُ ما ته په دې مصیبت کښې اجر راکړې او کوم شي چي تللي دي د هغې نه غوره ما ته راکړې.

نو الله جَلَّ جَلَالُهُ به ورته د هغې نه غوره ضرور ورکوي حضرت ام سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وایي چي ما د هغې دا خبره یاده او ساتله نو چي کله د حضرت ابو سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفات وشو نو ما انا لله وویل او دا دعا مې هم وویله خو په زړه کښې مې دا خیال راتلو چي د ابو سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه ما ته غوره څوک ملاوېدې شي؟ کله چي زما عدت ختم شو نو رسول الله ﷺ ما ته د

(۱): عند البزار واحمد وابي يعلى قال الهيثمي ۲/۱۱۴ وفيه عبدالرحمن بن ابي الزناد وهو ضعيف وقد انتهى.

(۲): عند ابن اسحق في السيرة كذافي الاصابة ۴/۳۴۹

راتلو اجازه وغوښتله وپه دغه وخت کې ما څرمن رنګ کوله ما د کیکرو د پاڼو والا لاس اووینځلو د څرمن په رنګولو کې د کیکر پاڼې استعمالېدې بیا مې ورته اجازه ورکړ او د څرمنې ګدی مې ورته کېښوده چې هغه د کجورو د پاڼو نه ډکه شوې وه رسول الله ﷺ پرې کېناسته او ما ته یې د خپل ځان سره د واده کولو پیغام راکړ چې کله هغوی خبره پوره کړه نو ما وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! دا خو کېدې نه شي چې زما تاسو سره د واده کولو رغبت نه وي خو دا یوه خبره ده چې زما په طبیعت کې غیرت ډېر دی نو ما ته د دې خبرې وېره ده چې د دې غیرت د وجې نه تاسو زما د طرفه څه داسې خبره اونه وینئ! چې په هغې باندې الله پاک ما ته عذاب راکړي دویمه خبره دا ده چې زما عمر هم زیات شوی دی او درېیمه خبره دا ده چې زه د بال بچ والا ښځه یم رسول الله ﷺ وفرمایل چې تا کوم د غیرت ذکر وکړ دا به الله پاک لرې کړي او تا چې د زیات عمر خبره وکړه نو ستا په شان زما عمر هم زیات دی او تا د بچو ذکر وکړ نو ستا بچي زما بچي دي په دې باندې ما د رسول الله ﷺ خبره اومنله او بیا واقعي الله جَلَّ جَلَالُهُ ما ته د حضرت ابو سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه غوره خاوند راکړ یعنې رسول الله ﷺ.(۱)

**د بي بي په وفات د اسید بن حضیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صبر:**

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایل چې مونږ د حج یا عمرې نه واپس راغلو نو په ذوالحلیفه باندې زمونږ هرکلي وشو او انصاري هلکانو د خپل کورو والاوو هرکلي کولو نو خلک د حضرت اسید بن حضیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ملاو شو او هغه ته یې وویل چې ستا بي بي وفات شوې ده دا یې چې واورېدل نو هغه په خپل مخ باندې جامه واچوله او په ژړا شو ما ورته وویل الله جَلَّ جَلَالُهُ دې ستا بخښنه وکړي ته خو د رسول الله ﷺ صحابي یې اتا ته په اسلام کې سبقت حاصل دی او ته پخوانی مسلمان یې !په تا څه وشو ؟ چې ته د یوې ښځې د وجې نه ژاړې؟ په دې خبره هغه د سر نه جامه اوچته کړه او وې ویل چې ته رښتیا وایې ! زما دې په ژوند قسم وي د حضرت سعد بن معاذ د وفات نه پس ما ته په چا باندې د ژړا حق نه حاصلیږي ځکه چې رسول الله ﷺ د هغوی په باره کې لوي فضیلت والا خبره فرمایلي وه ما پوښتنه وکړه چې رسول الله ﷺ د هغه په باره کې څه فرمایلي وو؟ هغه وویل چې رسول الله ﷺ فرمایلي وو چې د

۱: اخرجه احمد ورواه النسائي وابن ماجه والترمذی وقال حسن غریب کذا فی البدایة ۴/۹۱ واخرجه ابن سعد ۸/۶۲،۶۴

حضرت سعد بن معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په وفات باندې عرش هم اوخوزېدو حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايل چې دغه وخت حضرت اسيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زما او د رسول الله ﷺ په مينځ کې روان وو.(۱)

**د خپل ورور حضرت عتبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په وفات دحضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صبر:**

حضرت عون رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې کله حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د هغه د ورور حضرت عتبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د وفات خبر ملاو شو نو هغه په ژړا شو چا ورته وويل آيا ته ژاړې وې فرمايل چې هغه په نسب کې زما ورور وو او مونږ دواړه د رسول الله ﷺ سره يو ځائ اوسېدلي يو خو د دې باوجود زما دا خوښه نه ده چې د هغه نه زه مخکې مړ شوی وای بلکې د هغه مخکې وفات وشي او زه صبر وکړم او الله رب العزت نه د ثواب امېد اوساتم دا ماته د دې نه زياته خوښه ده چې زه مخکې مړ شم او زما ورور صبر وکړي او د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه د ثواب امېد اوساتي.(۲)

حضرت خيثمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې کله حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د خپل ورور حضرت عتبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفات خبر ملاو شو نو د هغه د دواړو سترګو نه اوښکې رواني شوې او وې فرمايل چې دا ژړا د رحمت او شفقت په وجه ده چې الله رب العزت په زړونو کې اچوي. بني آدم ته په دې اوښکو باندې څه اختيار نشته.(۳)

**د خپلې خور زينب په وفات د ابواحمد بن جحش رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صبر:**

حضرت عبدالله بن ابي سليط رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل ما وليدل چې حضرت ابو احمد بن جحش رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپلې خور حضرت زينب بنت حجش جنازه اخيستې روان دی په داسې حال کې هغه نابينا وو او هغه ژړل بيا ما واورېدل چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې اې ابو احمده! د جنازې نه يو خواته شه! د خلکو د وجې نه به تا ته تکليف نه وي د هغه د جنازې اخيستلو لپاره د پره ګڼه وه حضرت ابو احمد وويل اې عمره! مونږ ته د دې خور د وجې نه هر خير

---

۱: اخرجه ابن شيبة و احم والشاشي وابن عساكر كذافى الكنز ۷/۴۲ واخرجه ابن سعد ۳/۱۲ والحاكم ۳/۲۸۹ عن عائشه نحوه قال الحاكم صحيح على الشرط مسلم ولم يخرجاه وقال الذهبى صحيح واخرجه ابو نعيم ايضا عن عائشه نحوه كما فى الكنز ۸/۱۱۸ الا انه وقع عنده قال فيحق لى ان لا ابكى وقد سمعت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يقول اهتز العرش اعواده لموت سعد بن معاذ وعند الطبرانى كما فى الجمع ۹/۳۰۹ فقالو مالى لا ابكى وقد سمعت فذكره وقال اسانيدها كلها حسنة.

۲: اخرجه ابونعيم فى الحلية ۴/۲۵۳

۳: عند ابن سعد ۴/۸۴

ملاو شوی دی او د دې په تلو باندې چې کوم غم او خفګان ما ته دی هغه په جنازې ورلو سره کمیږي حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ و فرمایل بنه ده بیا ته ورپورې نښتی اوسه!(۱)

**د امیرالمؤمنین حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ په وفات د مسلمانانو صبر:**

حضرت احنف بن قیس رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایل چې ما د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه واوریدل چې قریش د خلکو سرداران دي په دوي کې چې هر څوک د چا په دروازه داخل شي هغه سره د خلکو یوه لویه ډله هم ضرور داخلیږي زه د غه د دې خبرې په مطلب پوي شوم تر دې چې هغه په نېزه باندې زخمي شو چې کله د هغه وفات وخت نزدې شو نو هغه حضرت صهیب رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته حکم وکړ چې ته درې ورځې خلکو ته لمونځ ورکړه او هغه د دې خبرې هم حکم وکړ چې د دوي خلیفه مقررولو پورې په خلکو باندې طعام خورئ! چې کله خلک د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د جنازې نه پس راغلل نو دسترخوانونه خواره شوي وو او طعام کېښودل شوخو د ډېر غم او خفګان له وجې خلکو طعام نه خوړلو نو حضرت عباس بن عبد المطلب رَضِيَ اللهُ عَنهُ و فرمایل اې خلکو ! د رسول الله ﷺ وفات وشو مونږ د هغې نه پس طعام او څښاک وکړ بیا د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفات وشو مونږ د هغې نه پس هم طعام او خوړلو له دې وجې نه طعام خوړل ضرور ي دي نو دارنګه تاسو ټول دا طعام او خورئ! بیا حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ لاس مخکې کړ او طعام خوړل یې شروع کړ نو هغه وخت کې زه د حضر عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ په هغه خبره باندې پوي شوم چې قریش د خلکو سرداران دي.(۲)

**خلکو ته دخپلوانو په مرګ د حضرت ابوبکرصدیق اوحضرت علي د صبر کولو امر:**

حضرت ابو عیینه رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایل چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ به کله یو سړی ته په یو مصیبت باندې تسلي ورکوله نو فرمایل به یې اچې که چېرې سړی د صبر او حوصلې نه کار واخلي نو هیڅ مصیبت نشته او په وېرېدلو او پریشانه کېدلو کې څه فائده نشته د مرګ نه مخکې معامله ډېره اسانه ده او د هغې نه پس معامله ډېره ګرانه ده د رسول الله ﷺ د وفات کېدو تکلیف رایادوئ! دې سره به ستاسو هر مصیبت سپکېږي الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تا ته اجر عظیم درکړي.

حضرت سفیان الثوري رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت علي بن ابي طالب حضرت اشعث بن

---

۱: اخرجه ابن سعد ۸/۸۰

۲: اخرجه ابن سعد ۴/۱۸ كذافي الكنز ۷/۶۴ واخرجه الطبراني نحوه قال الهيثمي ۵/۱۸۶ وفيه علي بن زيد وحديثه حسن وبقية رجاله رجال الصحيح.

قیس رَحِمَهُ اللَّهُ ته د هغه د ځوی په وفات باندې تسلي ورکړه نو وې فرمایل که چېرې د ځوی په تلو باندې تا ته غم او خفگان دي نو دا د خپلولۍ تقاضا ده او س که چېرې ته صبر وکړې نو الله پاک به تا ته د ځوی بدله درکړي که چېرې صبر وکړې نو هم به د تقدیر لیکل پوره کېږي خو تا ته به اجر او ثواب ملاویږي او که چېرې ګیله او شکایت وکړې نو هم به د تقدیر لیکل پوره کېږي خو ته به ګناهګار شې!(١)

# په مصیبتونو صبر کول

## په صرع ٢ بیمارۍ د یوې انصارې ښځې صبر:

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایل چې رسول الله ﷺ په مکه مکرمه کې وو هغوی ﷺ ته د یو انصاري ښځه راغله او وې ویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! دا خبیث شیطان په ما غالب شوی دی رسول الله ﷺ هغې ته وفرمایل تا ته چې کوم تکلیف دی که چېرې ته په دې صبر وکړې نو د قیامت په ورځ به ته په داسې حال کې راشې! چې نه به په تا باندې څه ګناه وي او نه به ستا نه حساب غوښتلي شي هغې ښځې وویل چې په هغه ذات قسم چا چې تاسو ته حق در کړی دی او رالیږلی یې! زه به تر مرګه پورې ان شاء الله صبر کوم البته ما ته دا وېره وي چې په دې حالت کې به شیطان ما بربنډه کړي هغوی د دې لپاره په دې باره کې دعا وکړه نو چې کله به هغې محسوسوله چې شیطاني اثرات شروع کېدونکي دي نو هغه به راغی او د کعبې پردو پورې به ونښتله او شیطان ته به یې ویل چې لرې شه نو شیطان به لرې کېدلو.(٣)

حضرت عطاء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایل چې ما ته حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې آیا زه تا ته جنتي ښځه اوښایم؟ ما عرض وکړ ولې نه ضرور یې اوښایئ! نو وې فرمایل دا توره ښځه د رسول الله ﷺ په خدمت کې راغله او وې ویل چې په ما باندې د مرګو دوره راځي چې په هغې کې مې ستر ښکاره کېږي تاسو ما لپاره د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه دعا اوغواړئ! رسول

---

١: اخرجه ابن عساکر کذافی الکنز ٨/١٢٢

٢ صرع یا Epilepsie. عصبی بیماري ده چې غالباً اختلاج او تشنج ، درد محسوسولو، ،خفگان او په اعضاو کې سستي سره شروع کېږي، مریض ناڅاپه په زمکه پرېوځي او غانبونه چیچي، ، رنګ یې زېړ او کله ناکله یې بدن لکه لرګی سخت شي، چې دڅو دقیقو(منټو) دپاره داسې حالت پرې راځي، بیا به ساه اخیستو شروع کوي، دخېرې په عضلاتو کې یې انقباضات را پیدا شي، بیا دستي په حالت کې په خوب ویده شي، دا بیماري ډېر علتونه لري لکه مغزي سکته یاحمله، البته دا بیماري د علاج وړ ده. د فرهنګ عمید نه رانقل شوی دی. مترجم هدایت الله صافی

٣: اخرجه البزار

الله ﷺ وفرمايل كه چېرې ته غوارې نو صبر وكړه او تا ته به جنت ملاو شي او كه ته غوارې چې نو زه به ستا لپاره د الله جَلَّجَلَالُهُ نه دعا اوغوارم! چې هغه تا ته سلامتيا دركړي دې ښځې وويل نه! دا دعا اوغواړه! چې ستر مې نه ښكاريږي.(۱)

دا واقعه په بخاري او مسلم كې هم شته په بخاري كې دا هم دي چې حضرت عطاء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ام زفر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وليدله چې رنګ يې تور او قد يې اوچت دى او د كعبې په پرده باندې يې ډېره وهلې ناسته ده.(۲)

**د هغه سړي قصه چې په جهالت كې يې د يوې ښځې سره زنا كړې وه:**

حضرت عبدالله بن مغفل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايل چې د جاهليت په زمانه كې يو بدكاره ښځه وه هغه مسلمانه شوه نو يو سړى د هغې په خوا كې تېر شو بيا هغه د يو سړي په خوا كې تېره شوه نو هغه سړي دى ته لاس وروا چولو هغې ښځې ويل چې منع شه! الله پاک شرک ختم كړى دى او اسلام يې راوستى دى نو هغه سړي هغه پرېښودله او واپس لاړو خو شاته به يې هغې ته كتل تر دې چې د هغه مخ يو دېوال سره ولګېدو هغه سړي راغى او رسول الله ﷺ ته يې ټوله قصه بيان كړه رسول الله ﷺ وفرمايل ته د الله جَلَّجَلَالُهُ داسې بنده يې چې هغه سړي ته د الله رب العزت د خير اراده فرمايلې ده ځكه چې الله رب العزت كله بنده سره د خير اراده فرمايل نو هغه ته د هغو نه سزا زر وركوي يعنې په دنيا كې يې ورته وركوي او چې كله يو بنده ته د شر اراده وكړي نو د هغه د ګناه سزا بندوي يعنې په دنيا كې يې نه وركوي بلكې د هغې پوره سزا به هغه ته د قيامت په ورځ وركوي.(۳)

**هغه شى چې مسلمان ته ورسيږي او هغه پرې خفه شي مصيبت دي:**

عبدالله بن خليفه رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې زه د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره په يوه جنازه كې ووم چې په دې كې د هغه د پنې تسمه اوشلېده په دې باندې هغه انا لله وويل او وې فرمايل چې هر هغه شى چې په هغه سره تاسو ته تكليف وي هغه مصيبت دى او د مصيبت په راتلو انا لله ويلو حكم دى ځكه ما انا لله وويل.(۴)

---

۱: عند احمد

۲: كذافي البدرية ٦/١٦٠

۳: اخرجه البيهقي كذافي الكنز ٢/١٥٥

٤: اخرجه ابن سعد وابن ابي عبد ـ وعبد وابن منذر البيهقي

ن سعد بن مسيب رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې د حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د پښې مخکښې تسمه
نو هغه (انا لله وانا اليه راجعون) وويل خلکو وويل اې امير المؤمنين! آيا تاسو د پښې د
سمې په وجه انا لله وايئ! حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې هر هغه شی چې د مؤمن
نو به وي هغه د ده په حق کې مصيبت دی او په هر مصيبت کې انا لله ويل پکار دي.(۱)

**ن دحضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ صبر تر دې چې شهيد شو:**

اسلم رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې حضرت ابو عبيده رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته خط
، چې د روميانو لښکر جمع کيږي او د هغه نه لويه خطره ده حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ
، جواب کې وليکل چې اما بعد! چې کله هم په مؤمن باندې څه سختي راځي نو الله
غي نه پس فراخي ضرور راولي او دا کېدی نشي چې يو تنګي په دوو اسانو باندې
اشي دا د قرآن ايت (اِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا) خواته اشاره ده چې د يوې سختی نه پس
انی ملاويږي او الله رب العزت پخپل کتاب کې فرمايل: **يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اصْبِرُوْا
وَرَابِطُوْا وَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ** (۲)

: اې ايما والاوو پخپله هم صبر وکړئ! او په مقابله کې هم صبر کوئ! او د مقابلې
يار اوسئ! او د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه ويره کوئ! چې تاسو پوره کامياب شئ! (۳)

ت عبد الرحمن بن مهدي رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته دوه داسې
ونه حاصل دی چې نه حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته ملاو شوی دی او نه هم حضرت
رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته! يو خو هغه د خلافت په معامله کې د خپل ځان په باره کې صبر وکړ تر دې چې
شو او شهيد شو، دويم دا چې ټول خلک يې په مصحف عثماني رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راجمع کړل.(۴)

# شکر وېستل

## د سيدنا رسول الله ﷺ شکر

**الله ﷺ او دشکر اوږده سجده کول:**

ت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايل چې رسول الله ﷺ يوه ورځ د جمات نه بهر

---

المروزي كذافي الكنز ۲/۱۵۴
ة آل عمران آيت ۲۰۰
جه مالک وابن ابي شيبة وابن ابي الدنيا وابن جرير والحاكم والبيهقي كذافي الكنز ۲/۱۵۴
جه ابو نعيم في الحلية ۱/۵۸

ووتلو او خپلې بالاخانې خواته لاړو بيا دننه لاړو او قبلې خواته يې مخ کړ په سجده پرېوتلو او دومره اوږده سجده يې وکړه چې زما دا خيال راغی چې الله رب العزت هم په سجده کې د هغوی ﷺ روح قبض کړ زه ورسره نژدې کېناستلم بيا يې د سجدې نه سر اوچت کړ هغوی ﷺ پوښتنه وکړه دا څوک دی؟ ما ورته ووېل عبدالرحمن! وې فرمايل چې زما دا خيال راغی چې الله رب العزت هم په سجده کې ستاسو روح قبض کړی دی وې فرمايل چې حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ مونږ ته راغلی وو او ما ته يې دا زېری راکړ چې الله رب العزت فرمايل چې څوک چې په تا درود اووايي زه به په هغه باندې رحمت لېږم او څوک چې په تا باندې سلام اوليږي زه به په هغه باندې سلام اوليږم! له دې وجې نه زه د شکريې اداء کولو لپاره د الله جَلَّ جَلَالُهُ په مخکې په سجده پرېوتم!(۱)

حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايل چې زه يوه شپه د رسول الله ﷺ په خدمت کې راغلم نو هغوی ﷺ ولاړ وو لمونځ يې کولو او تر سهاره پورې ولاړ وو بيا يې مره سجده وکړه زما خيال راغی چې په سجده کې د آنحضرت ﷺ روح قبض کړې شوی دی چې د لمونځ او سجدې نه فارغ شو رسول الله ﷺ وفرمايل چې تاسو ته پته ده چې ما داسې ولې وکړل؟ ما ووېل الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه رسول ښه پوهېږي هغوی ﷺ څلور پنځه ځله هم داسې پوښتنه وکړه بيا يې وفرمايل چې زما رب ما لپاره څومره وخت مقرر کړی وو ما هغومره لمونځ وکړ بيا زما رب په ما باندې خاص تجلي وفرمايله او څه خبرې يې وفرمايلې او د دې نه اخر کې يې زما نه پوښتنه وکړه چې زه ستا د امت سره څه وکړم؟ ما ووېل اې زما ربه! هم تاسو ښه پوهېږئ! بيا زما رب څلور پنځه ځله همدا پوښتنه وکړه بيا يې په اخر کې ما ته وفرمايل چې زه به ستا د امت سره څه کوم؟ ما ووېل اې زما ربه! تاسو ښه پوهېږئ! زما رب وفرمايل چې زه به تا لره ستا د امت په باره کې نه غمژن کوم په دې وجه ما د خپل رب په مخکې سجده وکړه او زما رب په لږ شان عمل باندې زيات اجر ورکوونکی دی او شکر کوونکی خوښوي.(۲)

حضرت عبدالرحمن بن ابي بکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايل چې زه د رسول الله ﷺ د ملاقات لپاره

---

۱: اخرجه احمد قال الهيثمي ۲/۲۸۷ رواه احمد ورجاله ثقات.

۲: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ۲/۲۸۸ رواه الطبراني في الكبير عن حجاج بن عثمان السکسکي عن معاذ ولم يدرک معاذ افقد ذکره ابن حبان في اتباع التابعين وهو من طريق بقية وقد عنعنه.

حاضر شوم نو اومې لیدل چې په هغوی ﷺ باندې وحې نازلیږي چې کله د وحې سلسله
ختمه شوه نو هغوی ﷺ حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا ته وفرمایل: زما څلور څادرې ما ته
راکړه څادرې یې واخیستو بیرون لاړو چې کله مسجد ته د ننه ورسیده نو هلته څه خلک
ناست وو د هغوی نه علاوه په مسجد کې نور څوک نه وو هغوی ﷺ د هغه خلکو سره یو
خوا ته کیناسته ځکه چې یو کس په هغوی کې بیان کولو چې کله د بیان کونکی بیان ختم شو
نو هغوی ﷺ سوره آلم سجده اولوستلو بیا یې دومره اوږده سجده وکړه چې خلکو د هغوی
د سجدې خبر وا اورېدو نو مسجد ته راغلل تر دې چې د دوو سوو میلو نه هم خلک لرې را
اورسېدل او دومره خلک راغلل چې مسجد کې نه ځایېدل او حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا
خپلو کورو والاوو ته پیغام اولیږلو چې د رسول الله ﷺ په خدمت کې دې ځان را ورسوي
ځکه چې ما رسول الله ﷺ په داسې حال کې لیدلی دی چې د دې نه مخکې مې نه دی لیدلی
بیا هغوی ﷺ خپل سر اوچت کړ نو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ عرض اوکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ
رسوله! تاسو ډېره اوږده سجده وکړه رسول الله ﷺ وفرمایل چې زما رب ما ته دا عطیه
راکړې ده چې زما په امت کې به اویا زره کسان جنت ته بغیرله حساب نه داخلیږي ما په دې
شکریه کې د خپل رب په مخکې دومره لویه سجده وکړه حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ عرض
وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ستاسو امت خو ډېر زیات پاکیزه دی تاسو به د الله پاک نه
نوره دعا هم غوښتلې وای نو رسول الله ﷺ دوه درې ځله نوره دعا وغوښتله په دې باندې
حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما مور پلار دې په تاسو قربان
وي تاسو خو خپل ټول امت د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه واخیستو.(۱)

### د مصیبت وهلي سړي په لیدلو د رسول الله ﷺ شکر:

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایل چې د رسول الله ﷺ په خوا کې یو سړی تېر شو چې په
زوړ مرض کې اخته وو رسول الله ﷺ د سورلی نه کوز شو او د شکر سجده یې وکړه چې الله
پاک زه د دې بیماری نه محفوظ کړی یم بیا حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ هغه سړی په خوا کې
تېر شو او هغه هم لاندې کوز شو او د شکر سجده یې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په وړاندې ولګوله.(۲)

---

(۱) اخرجه الطبراني وفيه موسى بن عبيده وهو ضعيف كما في المجمع ۲/۲۸۹

(۲) اخرجه الطبراني وفيه عبد العزيز بن عبيد الله وهو ضعيف كما في المجمع ۲/۲۸۹

**درسول اللهﷺ به دې شكر كول داهل بيتو جماعت دسريې نه واپس شو:**

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې يو كرت رسول اللهﷺ د خپل كور والاوو جماعت اوليږلو او د هغوى لپاره يې دا دعا وكړه چې اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! كه چېرې تا دا خلك صحيح سالم واپس راوستل نو زما په ذمه به ستا دا حق وي چې زه به ستا شكريه په هغه طريقه اداء كوم څنگه چې د اداء كولو حق دى څو ورځې پس هغه خلك صحيح سلامت راغلل نو هغوى ﷺ وفرمايل ټول چې په كامل نعمتونو باندې هم هغه لپاره ټول تعريفونه دي ما وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! آيا تاسو داسې نه وو فرمايلي چې كه چېرې الله جَلَّ جَلَالُهُ دوي واپس راوستل نو زه به د الله جَلَّ جَلَالُهُ د شكر حق اداء كوم؟ رسول اللهﷺ وفرمايل چې دې الفاظو ويلو سره آيا ما داسې اونه كړل؟ (۱)

# د صحابه كرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ شكر وېستل

**دهغه سړي شكر وېستل چې رسول اللهﷺ خرما(كجورې) وركړې:**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې يو سوالگر رسول اللهﷺ ته راغى د رسول اللهﷺ په وينا هغه ته يوه كجوره وركړې شوه هغه هغه كجوره وغور ځوله بيا يو بل سوالگر راغى نو هغوى ﷺ وفرمايل چې ده ته هم يو كجوره وركړئ! هغه كجوره واخيستله او وې ويل سبحان الله! د رسول اللهﷺ طرفنه يوه كجوره! دا خو ډېر لوي نعمت دى او د ده په حالت باندې خوشحاله شو رسول اللهﷺ وينزې ته وفرمايل چې ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورشه! او هغې ته اووايه چې هغې سره كوم څلوېښت درهمه دي هغه دې دې سوالگري ته وركړي.(۲)

حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې يو سوالگر رسول اللهﷺ ته راغى رسول اللهﷺ هغه ته يوه كجوره وركړه هغه سړي وويل چې سبحان الله! په نبيانو كې دومره لوي نبي او هغه يوه كجوره په صدقه كې وركوي رسول اللهﷺ ورته وفرمايل آيا تا ته معلومه نه ده چې په دې كجورې كې څومره ذرې دي بيا رسول اللهﷺ ته بل سوالگر راغى رسول اللهﷺ هغه ته هم يوه كجوره وركړه هغه خوشحاله شو او وې ويل چې دا كجوره ما ته په نبيانو كې د يو نبي نه ملاو شوه تر څو پورې چې زه ژوندى يم دا كجوره به زما سره وي او زما دا امېد دى

---

۱: اخرجه البيهقى كذافى الكنز ۲/۱۵۱

۲: اخرجه البيهقى

چې د دې برکت به همېشه حاصلېږي بيا رسول الله ﷺ خلکو ته هغه سره د ښېګنې کولو حکم وکړ او څه لږه موده پس هغه مالداره شو.(۱)

**د شکر او صبر په باره کې دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان:**

حضرت سلېمان بن يسار رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مکې او مدينې په مينځ کې ضجنان مقام باندې تېر شو نو وې فرمايل ما خپل ځان ليدلي وو چې ما په ماشوموالي کې د خپل پلار خطاب څاروي په دې ځائ کې څرول خو په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زما د معلوماتو مطابق هغه د سخت خوي والا او ترخو خبرو والا وو بيا زه د حضرت محمد ﷺ د امت والي (امير) جوړ شوم.(۲) بيايې او فرمايل:

لاشيء فيمـاترى الا بشاشته
يبقى الإله و يودى المال والولد

ترجمه: څه چې وينې بغير د خوشحالي نه يې نور څه نه ښکاري، الله تعالى باقي پاتې دى مال او اولاد هلاک کېږي.

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل: چې که چېرې ما ته دوه سورلۍ راوستلى شي يوه د شکر او بله د صبر نو ما ته د دې پرواه نشته چې زه په کومه باندې سور شوم.(۳)

حضرت عکرمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو داسې مصيبت زده سړي باندې تېر شو چې جُذامي، ړوند، کوڼ او ګونګا وو هغه د خپلو ملګرو نه پوښتنه وکړه چې آيا تاسو ته په ده کې د الله پاک څه نعمت په نظر راځي؟ ملګرو ورته وويل نه! هغوى وفرمايل په ده کې هم د الله جَلَّ جَلَالُهُ نعمت شته آيا تاسو نه ګورئ! چې دا متيازې کوي متيازې څاڅکي څاڅکي نه کوي او نه په مشکله سره اوځي بلکې په اسانتيا سره را اوځي دا هم د الله جَلَّ جَلَالُهُ لوي نعمت دى.(۴)

حضرت ابراهيم رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د يو سړي نه واورېدل چې هغه ويل اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! زه خپل ټول مال او ځان ستا په لاره کې خرچ کول غواړم حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل تاسو ولې نه چُپ کېږئ؟ که چېرې څه مصيبت راشي نو صبر کوه او که

۱: عند البيهقى كذا فى الكنز ۴/۴۲
۲: اخرجه ابن سعد وابن عساكر كذافى المنتخب الكنز ۴/۴۱۷
۳: اخرجه ابن عساكر كذافى المنتخب ۴/۴۱۷
٤: اخرجه عبد بن حميد كذافى الكنز ۲/۱۵۴

عافيت ملاو شي نو شكر كوه.(۱)

**د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دپوښتنې جواب، او ابوموسى ته داهل شکر په باره کې خط لیږل:**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې دا خبره ما پخپله واوریدله چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يو سړي سلام وکړ هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته د سلام جواب ورکړ او پوښتنه يې تري وکړه چې ته څنګه يې؟ هغه وويل زه ستا په مخکې د الله رب العزت حمد او ثناء بيانوم حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل هم داسې جواب ما ستا نه اوریدل غوښتل.(۲)

حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ابو موسى اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دا وليکل چې څومره دنيا درته ملاو شي په هغې باندې صبر کوه څکه چې الله رب العزت څيني بنده ګانو ته رزق زيات ورکوي او څينو ته کم. هغه دا شان په هريو باندې امتحان غواړي چې هغه د الله جَلَّ جَلَالُهُ شکر څنګه اداء کوي الله پاک چې خپل بنده ته کوم څه ورکړی دی د هغې په بدله کې د الله رب العزت چې کوم حق په بنده باندې جوړيږي د هغې اداء کول دا دی چې بنده د هغې شکر اداء کوي.(۳)

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې د شکر کوونکو لپاره د الله پاک د طرفنه هميشه نعمتونه زياتيږي نو دارنګه تاسو د نعمتونو د زياتوالي طلب کوئ! څکه چې الله رب العزت فرمايلي دي: لَئِنْ شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ(۴)

ترجمه: که چيرې تاسو شکر وکړئ! نو تاسو ته به زيات نعمتونه درکړم.

**دحضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شکر په دې چې د ګناه کونکو خلکو سره مخامخ نشو:**

حضرت سليمان بن موسي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته چا وويل چې څه خلک په ګناهونو کې مشغول دي تاسو هغوی ته ورشئ! حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هلته لاړو وې کتل چې هغه خلک تول خواره شوی دی البته د ګناه اثرات موجود دي نو هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې خبره باندې شکر اداء کړ چې ما دغه خلک په ګناه باندې اونه ليدل او يو غلام يې ازاد کړ.(۵)

---

۱: اخرجه ابو نعيم فى الحلية كذافى الكنز ۲/۱۵۱

۲: اخرجه مالک وابن المبارک والبيهقى كذافى الكنز ۲/۱۵۱

۳: اخرجه ابن حاتم كذافى الكنز ۲/۱۵۱

٤: سورة ابراهيم آيت ۷

٥: اخرجه ابو نعيم فى الحلية ۱/۶۰

**دنعمت اوشكر په باره كې دحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ بيان:**

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايل چې نعمت ملاوېدو باندې فورا د الله جَلَّ جَلَالُهُ شكر اداء كول په كار دى او په شكر اداء كولو سره نعمت نور هم زياتېږي د شكر او نعمت زياتېدل په يو رسۍ كې ترل شوى دى كله چې بنده شكر اداء كول پرېږدي نو بيا د الله رب العزت د طرفه نعمت زياتېدل بنديږي.(۱)

حضرت محمد بن كعب قرظي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمايل چې داسې نه شي كېدلي چې الله رب العزت د چا لپاره د شكر دروازه پرانيزي او نعمت زياتولو دروازه دې بنده اوساتي او د دعا دروازه دې پرانيزي او د مغفرت دروازه دې بنده اوساتي او د توبې دروازه د چا لپاره پرانيزي او د مغفرت دروازه دې بنده اوساتي تاسو ته زه د دې په تائيد كې د الله جَلَّ جَلَالُهُ كتاب يعنې قرآن نه اوروم الله پاك فرمايلي دي: ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ (۲)

ترجمه: ما ته اواز كوئ! زه ستاسو درخواست قبولم او الله تعالى فرمايل : لَئِنْ شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ. او همدارنګه الله تعالى بل ځائ فرمايلي : فَاذْكُرُونِي أَذْكُرْكُمْ(۳)

ترجمه: په دې نعمتونو باندې ما ياد كړئ! زه به تاسو ته په مهربانۍ كولو سره ياد كړم او فرمايلي يې دي: وَمَنْ يَعْمَلْ سُوءًا أَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهُ ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ اللَّهَ يَجِدِ اللَّهَ غَفُورًا رَحِيمًا (۴)

ترجمه: او كوم سړى چې ګناه وكړي يا پخپل ځان باندې ظلم وكړي بيا الله جَلَّ جَلَالُهُ نه معافي اوغواړي نو هغه به الله جَلَّ جَلَالُهُ لره ډېر مغفرت والا او لوي رحمت والا بيا مومي.(۵)

**د شكر په باره كې دحضرت ابودرداء، حضرت عائشې او حضرت اسماء رَضِيَ اللهُ عَنهُمْ بيان:**

حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايل چې زه په داسې حال كې سهار او ماښام كړم چې خلك په ما باندې څه مصيبت اونه ويني نو زه به د مصيبت نه محفوظ كېدل خپل ځان باندې د الله جَلَّ جَلَالُهُ د طرفنه ډېر لوي نعمت اوګنم!(۶)

حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايل كوم سړى چې دا ګڼي چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ نعمت يوازې

۱: اخرجه البيهقي
۲-سورة المؤمن آيت ۶۰.
۳-سورة البقرة آيت ۱۵۲.
۴: سورة النساء آيت ۱۱۰
۵: عند ابن ماجة والعسكري كذافي الكنز ۲/۱۵۱
۶: اخرجه ابن عساكر

طعام او څښاک دی نو د هغه پوهه کمه ده او د غه ته عذاب نیزدې راغلی دی.(۱)

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمایل چې کوم سړی او به څښي او هغه او به بغیر د څه تکلیف نه دننه لاړې شي او بیا بغیر د څه تکلیف نه د متیازو په ذریعه بیرون ته راشي نو په ده باندې شکر اداء کول واجب شو.(۲)

چې کله ابن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنهُ شهید کړی شو نو د هغه محترمه مور حضرت اسماء بنت ابي بکر رَضِيَ اللهُ عَنهَا نه هغه شي ورک شو چې رسول الله ﷺ هغې ته ورکړی وو او په یوه تهیلۍ (بوجۍ) کې به یې ایښي وو هغې هغه کتلو چې کله هغه شی پیدا شو نو په سجده کې پرېوتله.(۳)

# اجر او ثواب

**د رسول الله ﷺ د اجر او ثواب حاصلولو شوق:**

حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایل چې په غزوه بدر کې درېیو کسانو ته یو اوښ ورکړی شوی وو چې په هغې باندې به هغوی وار په وار سورېدل نو حضرت ابولبابه او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ به هغوی وار په وار سورېدل نو حضرت ابولبابه او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ په اوښ کې رسول الله ﷺ سره شریک وو چې کله د رسول الله ﷺ د پیدل تلو وار راغی نو دواړو حضراتو عرض وکړ چې تاسو په اوښ باندې سواره شئ! مونږ به ستاسو په ځائې پیدل ځو رسول الله ﷺ وفرمایل تاسو دواړه زما نه زیات قوي هم نه یئ! او نه زه ستاسو نه زیات د اجر او ثواب نه مستغني یم بلکې ما ته هم د ثواب ضرورت دی ځکه زه به هم پیاده ځم!(۴)

# د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنهُم د اجر او ثواب حاصلول

**داجر او ثواب حاصولو په نیت په مونځ کې د ودرېدلو تکلیف برداشت کول:**

حضرت مطلب بن ابي وداعه رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایل چې یو ځل رسول الله ﷺ یو سړی ولیده چې په ناسته یې لمونځ کولو رسول الله ﷺ وفرمایل چې په ناسته لمونځ کونکی ته د ولاړې

---

۱: عند ابن عساکر ایضا کذافی الکنز ۲/۱۵۲ واخرجه ابو نعیم فی الحلیة ۱/۲۱۰ عنه نحوه بالوجهین

۲: اخرجه ابن ابی الدنیا وابن عساکر کذافی الکنز ۲/۱۵۲

۳: اخرجه الطبرانی فی الکبیر قال الهیثمی ۲/۲۹۰ اسناده حسن وفی بعض رجاله کلام

٤: اخرجه احمد ورواه النسائي کذافی البدایة ۳/۲٦۱ واخرجه البزار وقال فاذا کانت عقبة رسول الله ﷺ قال ارکب حتی نمشی عنک والباقی بنحوه کما فی الجمع ٦/٦۹ وقال وفیه عاصم بن بهدله وحدیثه حسن وبقیة رجال احمد رجال الصحیح اه.

لمونځ کونکی نه نیم ثواب ملاوېږي دا يې چې واورېدل نو خلکو د مشقت او تکلیف باوجود په ولاړه لمونځ شروع کړ.(١)

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايل چې رسول الله ﷺ مديني منورې ته تشريف راوړو نو په هغه ورځو کې په مدينه کې د تبې زور ډېر وو نو په خلکو تبه راغله يوه ورځ رسول الله ﷺ مسجد ته راغی نو خلکو په ناسته لمونځ کولو رسول الله ﷺ وفرمايل چې په ناسته د لمونځ گذارد لمونځ ثواب د ولاړې د لمونځ گذار نه نيم وي.(٢)

**د حضرت ربيعه بن کعب د اجر او ثواب حرص:**

حضرت ربيعه بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايل چې ما به ټوله ورځ د رسول الله ﷺ خدمت کولو او چې کله به رسول الله ﷺ د ماسخوتن لمونځ وکړ او کور ته به يې تشريف يوړلو نو زه به د آنحضرت ﷺ په دروازه کې کېناستلم ما به ويل کېدی شي چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسول ته څه ضرورت پېښ شي زه به ډېر وخت پورې اودرېدلم چې رسول الله ﷺ به (سبحان الله وبحمده) ويل زه به هم دغسې ناست ووم تردې چې ستړي به شوم نو واپس به تلم يا به خوب راغی نو هم هلته به اوده کېدم چې کله رسول الله ﷺ وکتل چې زه يې په اخلاص خدمت کوم او د نبي کريم ﷺ خيال شو چې زما په رسول الله ﷺ باندې حق جوړېږي نو وې فرمايل اې ربيعه بن کعب! زما نه اوغواړه څه چې غواړې! ضرور به يې درکوم ما عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه به لږ سوچ وکړم بيا به درته اووايم ما په زړه کې سوچ وکړ چې زما په زړه کې دا خبره راغله چې دنيا خو په هر حال کې ختمېدونکې او تلونکې شي دې او په قدر د ضرورت خو راته رزق ملاوېږي په دې وجه به د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رسول نه د اخرت لپاره اوغواړم ځکه چې د هغوی ﷺ د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد باندې لوې خاص مقام دې نو دا سوچ مې وکړ او د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم رسول الله ﷺ وفرمايل اې ربيعه! تا څه سوچ کړی دی؟ ما عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه غواړم چې تاسو خپل رب ته زما سفارش وکړئ! چې هغه ما د دوزخ د اور نه ازاد کړي رسول الله ﷺ وفرمايل چې ته په دې خبره باندې چا پوه کړي يې؟ ما وويل د الله جَلَّ جَلَالُهُ په ذات قسم! چا چې تاسو ته حق

---

١: اخرجه الطبراني في الكبير قال الهيثمي ٢/١٥٠ وفيه صالح بن ابي الاخضر وقد ضعفه الجمهور وقال احمد يعتبر بحديثه.

٢: عند احمد عن ابن شهاب ورجاله ثقات كما قال الحافظ في الفتح ٢/٣٩٥ وقال زياد عن ابن اسحق.

در کړی دی او را لیږلی یې یې ! چې زه په دې خبره هیڅا هم نه یم پوي کړي بلکې کله چې تاسو وفرمایل چې ما نه او غواړه چې څه غواړې هغه به زه تا ته ضرور درکوم او الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد تاسو ته لوي خاص مقام حاصل دی نو ما په دې معامله کې سوچ وکړ نو ما ته په نظر راغلل چې دنیا ختمېدونکې او تلونکې ده او د ضرورت په اندازه خو ما ته رزق ملاوېږي په دې وجه ما سوچ وکړ چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسول نه به زه هم د خپل اخرت لپاره غواړم دا یې چې وا وربدل رسول الله ﷺ ډېر وخت خاموش وو بیا یې وفرمایل چې زه به ستا سفارش ضرور کوم خو ته به په دې باره کې په ډېرو سجدو سره زما امداد کوې.(۱)

**عبدالجبار بن حارث او د رسول الله ﷺ د صحبت نه د ثواب طلب:**

حضرت عبد الجبار بن حارث بن مالک حدسي مناوي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې ما د سراه علاقې نه وفد راوستلو او د رسول الله ﷺ په خدمت کې راغلم چې راغلم نو ما د عربو په طریقه داسې سلام وکړ چې ستاسو سهار دې ښه وي رسول الله ﷺ وفرمایل چې الله رب العزت حضرت محمد ﷺ ته او د هغه امت ته د دې نه علاوه بل سلام ورکړی دی چې هغوی یو بل ته کوي ما وویل السلام علیک یا رسول الله! رسول الله ﷺ وفرمایل وعلیک السلام! بیا یې پوښتنه وکړه چې ستا څه نوم دي؟ ما وویل جبار بن حارث، رسول الله ﷺ وفرمایل نه! د نن نه پس ته عبد الجبار بن حارث یې ! ما وویل ډېره ښه ده د نن نه پس زه عبد الجبار بن حارث یم نو زه په اسلام کې شامل شوم او د رسول الله ﷺ سره مې بیعت وشو چې کله زه بیعت شوم نو خلکو رسول الله ﷺ ته وویل چې دا مناوي د خپل غوره شهسوار دي نو رسول الله ﷺ ما ته یو اس د سورلۍ لپاره راکړ بیا زه هغوی سره ایسار شوم او په جګړو کې ورسره شریک شوم کافرانو سره ښه او جنګېدم یو ځل رسول الله ﷺ زما د اس اواز وانه وربدو نو وې فرمایل چې څه خبره ده؟ د حدسې د اس اواز نه راځي ما عرض وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ما ته دا خبر ملاو شو چې تاسو ته زما د اس د اواز په وجه تکلیف وي له دې وجې نه ما هغه خصي کړ په دې وجه رسول الله ﷺ د اسونو د خصي کولو نه منع وفرمایله، ما ته خلکو وویل چې ډېر ښه به واي چې تا هم د رسول الله ﷺ نه ځان لپاره خط اخیستي واي څنګه چې ستا د تره خوی حضرت تیمیم داري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ نه اخیستي وو ما وویل چې هغه د رسول الله ﷺ نه د دنیا څه شي غوښتلي دي یا د اخرت؟ خلکو

---

(۱) کذا في الترغیب ۱/۲۱۲

وویل چې د دنیا ما وویل چې دنیا خو ما پرېښې ده او راغلی یم زه خو رسول الله ﷺ نه دا غوارم چې صبا د قیامت په ورځ د الله رب العزت په مخکې زما امداد وکړي .(۱)

**د حضرت عمروبن تغلب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په باره کې د رسول الله ﷺ قول:**

حضرت عمرو بن تغلب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې رسول الله ﷺ څه خلکو ته مال ورکړ او څه خلکو ته یې ورنکړ چا ته یې چې ورنکړ هغوی د رسول الله ﷺ نه لږ خفه شو نو رسول الله ﷺ وفرمایل چې زه خلکو ته د دې لپاره ور چې که چېرې ورېې نکړم نو ما ته خطره ده چې بې صبرۍ به وکړي او اوبه وېرېږي او د چا په زړونو کې چې الله رب العزت د خیر او استغناء جذبات اچولي دي هغوی هم هغه خیر او استغناء ته حواله کوم او حضرت عمرو بن تغلب هم دغه خلکو کې دي حضرت عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې زما دا بلکل خوښه نه ده چې د رسول الله ﷺ د دې فرمان په بدله کې ما ته سره اوښان ملاو شي.(۲)

**د حضرت علي او عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قصه دهغه سړی سره چې خپلې مور ته یې طواف ورکولو:**

حضرت عمرو بن حماد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې یو صاحب مونږ ته دا واقعه واوروله چې یو کرت حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ طواف کولو او په هر ته راغلل نو دوي ولیدل چې یو باندیچي سړی خپله مور په شا کړې ړده او دا اشعار وایي :(انا مطیتها لانفر* و إذا الرکاب ذعرت لاأذعر* و ما حملتنی و ارضعتنی اکثر* لبیك اللّٰهُمَّ لبیك).

ترجمه: زه د خپلې مور داسې سورلی یم چې تینډک نه وهي او کله چې سورلۍ وېرېږي نو زه نه وېرېږم او زما مور چې په خپله خېټه کې ګرځولي یم او کومې پی یې چې ما ته را کړی دی هغه زما د دې خدمت نه ډېر زیات دي لبیک اللهم لبیک!

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل: اې ابو حفص! راځه چې مونږ هم طواف وکړ ځکه چې د دې باندیچي د دې اعلي کیفیت د وجې نه رحمت نازلېږي نو هغه به مونږ ته ملاو شي بیا هغه باندیچي مطاف ته داخل شو طواف یې شروع کړ او دا اشعار یې ویل:

انـــا مطیتهـــا لانفـــر

و إذا الـرکاب ذعـرت لاأذعـر

۱: اخرجه ابن منده وابن عساکر وقال حدیث غریب کذا فی المنتخب ٥/۲۱٥

۲: اخرجه البخاری فی البدایة ۴/۳٦۱ واخرجه ابن عبدالبر فی الاستیعاب ۲/٥۱۸ من طرق عن عمرو بن تغلب نحوه.

و ما حملتنی و ارضعتنی اکثر
لبیـــــك اللّٰهمّ لبیـــــك

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا شعر وویل و:

إن تبرهـــا فـــالله أشـــكر
يجزيــك بالقليــل الاكــثر(۱)

ترجمه: که چېرې ته د خپلې مور سره ښه رويه کوې نو الله رب العزت هم ډېر زيات قدردان دي هغه به تا ته د دې لږ خدمت په بدله کې ډېر زيات ثواب درکړي.(۲)

**ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا او دثواب لپاره د اوښانو نه لاس اخيستل:**

حضرت ميمون بن مهران رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د نجده حوروري (دا يو خارجي وو) ملګري د حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د اوښانو خوا کې تېر شو او هغه يې اوشړل او ځان سره يې بوتلل د دې اوښانو شپونکي راغی او وې ويل اې عبدالرحمن! تاسو د خپلو اوښانو په باره کې د ثواب نيت وکړئ! حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې په اوښانو څه وشو ؟ هغه شپونکي وويل چې په نجده خارجي ملګري په هغه تېر شو هغه يې بوتلل حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې دا څه خبره ده؟ چې هغه اوښان بوتلل او ته يې پرېښودلې؟ هغه وويل چې زه يې هم د اوښانو سره بوتلي ووم خو زه ترې په څه طريقه راخلاص شوم او راغلم هغه وويل چې زما تاسو سره د هغه نه زيات محبت دی حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل آيا ته د هغه ذات قسم خوړلو سره داسې ويلې شې؟ چې د هغه نه سوا بل څوک د عبادت نشته. چې ستا زما سره د هغه نه زيات محبت دی هغه په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم اوخوړلو او دا خبره يې وکړه حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې د دغه اوښانو په باره کې خو ما د ثواب نيت کړی وو اوس د اوښانو سره ستا باره کې هم کوم نو هغه دغه غلام ازاد کړ څه لږه موده پس څوک راغی او حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يې وويل چې ستاسو د خپلې فلانی نومې اوښې اخيستلو څه خيال شته؟ هغه په بازار کې خرڅيږي او هغه د اوښې نوم هم واخيستلو حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل زما څادر ما ته راکړه چې کله يې په اوګه باندې څادر کېښود او اوږېدو نو بيا کېناسته او څادر يې لاندې کېښودلو او وې

۱. بيهقي په الشعب (۷۹۲۵).
۲: اخرجه البيهقي كذافي الكنز ۸/۳۱۰

فرمایل چې ما د دغې اوښې په باره کې د ثواب نیت کړی وو نو اوس زه د هغې اخیستلو لپاره څنګه لاړ شم؟(۱)

حضرت عمرو بن دینار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې اراده وکړه چې زه به واده نه کوم نو هغه ته د هغه خور حضرت حفصه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وویل چې ته واده وکړه ځکه چې که چېرې ماشومان دې پیدا شول او مړه شول نو تا ته به صبر کولو د وجې ثواب ملاو شي او که چېرې ژوندی پاتې شول نو هغوی به ستا لپاره دعا کوي.(۲)

**صفین ته د تلو په حال کې د حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول:**

حضرت عبدالرحمن بن ابزي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې حضرت عمار بن یاسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د فرات دریاب په غاړه صفین ته روان وو نو هغه دا دعا وکړه اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! که چېرې ما ته دا معلومه شي چې ته په دې خبره ما نه زیات راضي کیږې چې زه خپل ځان د دې غر د لاندې راوغورزوم او په ارغړېدو لاندې راشم او دا شان ځان تباه کړم نو زه دغسې کولو ته بلکل تیار یم او که چېرې ما ته دا معلومه شي چې ته په دې خبره مانه زیات راضي کیږې چې زه ډېر اور بل کړم او هغې ته ورټوپ کړم نو زه دې ته بلکل تیار یم اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! که چېرې ما ته دا معلومه شي چې ته په دې خبره مانه زیات راضي شې! چې زه اوبو ته ورټوپ کړم او ډوب شم! نو زه دېته بلکل تیار یم او زه دا جګړه یوازې ستا د وجې نه کوم او زما یقین دی چې کله زما مطلب هم ستا راضي کول دي نو ته به هم ما نامراده او محروم کوې نه!(۳)

**د رسول الله نه بعد دخپل عمل په باره کې د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قول:**

حضرت عبدالرحمن بن عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې زه نن څو مره د خیر کار کوم دا ما ته د رسول الله ﷺ د دې نه دوچند کار کولو نه زیات خوښ دی ځکه چې رسول الله ﷺ سره به زمونږ هم د اخرت فکر وو د دنیا به زمونږ نه وو او نن خو د دنیا زمونږ طرف ته فکر دی.

# په عبادت کې سعي او کوشش کول

**د سیدنا رسول الله ﷺ محنت او کوشش:**

حضرت علقمه رَحِمَهُ اللهُ وایي چې ما د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه پوښتنه وکړه چې آیا رسول

---

۱: اخرجه ابو نعیم في الحلیة ۱/۳۰۰ قال في الصابة ۸/۱۳۴ اخرجه السراج في تاریخه وابونعیم من طریقه بسند صحیح عن میمون فذکره.

۲: اخرجه ابن سعد ۴/۱۲۵

۳: اخرجه ابن سعد ۳/۲۵۸ واخرجه ابونعیم في الحلیة ۱/۱۴۲ عن عبدالرحمن بن ابزي عن عمار بنحوه مختصرا.

الله ﷺ به د عبادت لپاره څه ورځ خاص کوله؟ حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وفرمايل نه! د هغوی ﷺ ټول کارونه به همېشه کېدل او د عبادت کولو چې څومره به رسول الله ﷺ کې قوت وو دومره به په تاسو کې د چا نه وي.(۱)

حضرت مغيره بن شعبه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايل چې رسول الله ﷺ به نفلو کې دومره اوږد قيام وکړ چې پښې مبارکې يې اوړسېدلې چا عرض وکړ آيا الله رب العزت ستاسو مخکنې روستني ټول ګناهونه نه دي بخښلي؟ په دې وجه تاسو ولې دومره زيات عبادت کوئ! رسول الله ﷺ وفرمايل نو آيا بيا زه شکر ګذاره بنده جوړ نشم؟(۲)

په دې باره کې به نور واقعات د مانځه په باب کې راشي.

## د صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ کوشش او محنت

**په عبادت کې دحضرت عثمان او حضرت عبدالله بن زبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا کوشش:**

حضرت زبير بن عبد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د خپلې نيا نه نقل کوي چې به ورته رهيمه ويلې شوه چې حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به همېشه روژه نيوله او ټوله شپه به يې عبادت کولو بس د شپې په شروع کې به يې څه وخت ارام کولو.(۳)

حضرت مجاهد رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت ابن زبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په عبادت کې هغه درجې ته رسېدلي وو چې هغه درجې ته هيڅوک اونه رسېدل يو ځل دومره زبردست سېلاب راغی چې له هغې وجې خلکو طواف نشو کولی خو حضرت ابن زبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په لامبو وهلو اووه چکرې پوره کړې.(٤)

حضرت قطن بن عبد الله رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت ابن زبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اووه ورځې پرله پسې د څه طعام نه روژې اونيولې چې له هغې وجې به يې کولمې وچېدلې او حضرت هشام بن عروه رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عبد الله بن زبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به اووه ورځې پرله پسې روژې به يې نيولې.(۵) د دې دواړو حضراتو او نورو صحابه کرامو واقعات به د مانځه په باب کې راشي.

---

۱: اخرجه ابونعيم فی الحلية ۱/۲۸۷ واخرجه الطبرانی عن عبدالله نحوه قال الهيثمی ۹/۳۵۴ ورجاله رجال الصحيح
۲: اخرجه الشيخان كذافی البداية ٦/٥٨ واخرجه ابن سعد عن المغيره ۱/۳۸۴ نحوه.
۳: اخرجه ابونعيم فی الحلية ۱/٥٦ واخرجه ابن ابي شيبة نحوه كما فی المنتخب ۵/۱۰
٤: اخرجه ابن عساكر كذافی المنتخب ۵/۲۲٦
۵: اخرجه ابن جرير كذافی المنتخب ۵/۲۲٦

# زړورتیا او بهادري

## د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامو رضي الله عنهم بهادري

### د انحضرت ﷺ د بهادري په باره کې دحضرت علي او حضرت انس رضي الله عنهما بیان

حضرت انس رضي الله عنه فرمایل چې رسول الله ﷺ په خلکو کې د ټولو نه زیات ښایسته او د ټولو نه زیات سخي او د ټولو نه زیات بهادر وو یوه شپه مدینې والاوو د څه اواز واوریدلو او اوریدلو نو خلک هغه اواز طرف ته روان شو رسول الله ﷺ د هغوی نه مخکې اواز خواته تللي وو رسول الله ﷺ د حضرت طلحه رضي الله عنه داس په بربنډه ملا باندې سور وو په غاړه کې یې توره زوړنده وه او فرمایل یې چې د وېرې څه خبره نشته او مونږ دا اس د سمندر پشان تلونکي بیا موندلو په داسې حال کې مشهوره دا وه چې دا اس سست او کمزوری دی د رسول الله ﷺ په برکت په برکت سره تېزه شوه په مسلم کې د حضرت انس رضي الله عنه په روایت کې دا شان دي چې په مدینه منوره کې د وېرې څه خبره راغله رسول الله ﷺ د حضرت ابوطلحه رضي الله عنه نه مندوب نومې اس واخستلو او په هغې باندې سور شو او لاړو او واپس راغی او وې فرمایل چې مونږ ته د وېرې څه شي په نظر رانغی او مونږ خو دا اس د سمندر پشان بیا موندو او چې کله به جګړه په زور کې راتله نو مونږ به رسول الله ﷺ مخکې کولو او ځان به مو بچ کولو.(۱)

حضرت علي بن ابي طالب رضي الله عنه فرمایل چې د بدر د غزا په ورځ د مشرکانو د حملې نه مونږ د رسول الله ﷺ په خوا کې اودریدلو او خپل ځان بچ کړ رسول الله ﷺ په خلکو کې د ټولو نه زیات نه وېریدونکي وو ډېر په بهادرۍ سره به یې جنګ کولو.(۲)

### د غزوه حنین په ورز د رسول الله شجاعت او بهادري:

حضرت ابواسحق رحمه الله وایي چې دا خبره ما خپله اوریدلې ده چې د قیس قبیلې سړی د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه نه پوښتنه وکړه چې آیا د غزوه حنین په ورځ تاسو رسول الله ﷺ پرېښي وو او تښتېدلي وئ! حضرت براء رضي الله عنه وفرمایل هو! خو رسول الله ﷺ نه وو تښتېدلي د هوازن قبیلې والا ډېر غشي ویشتونکي وو چې کله مونږ په هغوی باندې

---

(۱): اخرجه الشیخان واللفظ لمسلم.

(۲): عند احمد والبیهقی کذافی البدایة ٦/۳۷

حمله وکړه نو هغوی ته شکست وشو نو مونږ په مال غنیمت راغوندولو باندې پرېوتو دغه وخت هغوی په مونږ باندې د غشو باران جوړ وکړ ما ولیدل چې رسول الله ﷺ په خپل سپین کچر باندې سور دي او د هغې واګې حضرت ابوسفیان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نیولي دي او رسول الله ﷺ فرمایل چې انا النبي لا کذب. ترجمه: زه حق یم او دا خبره دروغ نه ده زه د عبد المطلب نوسی یم! د بخاري په روایت کې دي: انا النبي لا کذب ان ابن عبد المطلب. ترجمه: زه حق نبي یم او دا خبره دروغ نه ده زه د عبد المطلب نوسی یم خلکو په همت پیدا کولو لپاره هغوی د خپل خاندان ذکر وکړ د بخاري په یو روایت کې دا دي چې بیا رسول الله ﷺ د کچر نه لاندې راکوز شو.(۱)

حضرت براء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې بیا رسول الله ﷺ لاندې راکوز شو او د الله پاک نه یې امداد وغوښتله او دا یې وفرمایل: انا النبي لا کذب انا ابن عبد المطلب. اللهم نزل نصرك. په دې کې دا اضافه ده چې اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! خپل نصرت نازل کړې او چې کله به جګړه په زور کې راتلو نو مونږ به رسول الله ﷺ په پناه کې ځان بچ کولو او په هغه وخت کې به چې څوک د رسول الله ﷺ سره اوګه په اوګه جنګ کولو هغه به د ټولو نه زیات بهادر شمارلي شو.(۲)

د جهاد په باب کې د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د بهادری په باره کې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت معاذ بن عفراء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت معاذ بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت سلمه بن اکوع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت ابودجانه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت خالد بن ولید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت براء بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت ابو المحجن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت عمار بن یاسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت عمرو بن معدیکرب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عبدالله بن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قصې تېرې شوی دی.

---

۱: اخرجه البخاري ورواه مسلم والنسائي

۲: عند مسلم كذافي البداية ۴/۳۲۸

# تقواي او پرهېزګاري

**دسيدنا رسول الله ﷺ پرهېزګاري:**

د حضرت شعيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نيکه حضرت عبد الله بن عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې رسول الله ﷺ ته د شپې په وخت کې خپل اړخ کې پرته کجوره ملاو شوه هغه يې اوخوړله خو بيا ورته خوب رانغی په ازواجو مطهراتو کې چا د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه چې نن تاسو ته خوب رانغی رسول الله ﷺ وفرمايل چې ما ته پخپل اړخ کې پرته کجوره ملاو شوه ما هغه اوخوړله خو بيا ماته وروسته خيال راغی چې مونږ سره خو د صدقې کجورې هم وې چېرته دا کجوره د هغې نه نه واې د دې خيال په وجه ما ته خوب رانغی.(١)

# د صحابه کرامو رَحِمَهُ اللهُ تقوي او پارسايي

**د ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پرهېزګاري:**

حضرت محمد بن سيرين رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زما په علم کې د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه علاوه څوک سړی داسې نشته چې هغه طعام خوړلي وي بيا يې قې کړي وي د هغه واقعه داده چې هغه ته طعام روړلي شو چې هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه اوخوړلو بيا ورته چا ووېل چې دا طعام خو حضرت ابن نعمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روړلي و حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې تاسو په ما باندې د بن نعيمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د منتر د اجرت نه طعام اوخوړلو؟ بيا يې قې اوکړ.(٢)

حضرت عبد الرحمن بن ابي ليلي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت ابن نعمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ د صحابه وو نه وو او ډېر ښايسته وو څه خلک ورته راغلل وې ويل چې آيا تا سره د داسې ښځې څه علاج شته چې د کومې ښځې حمل نه ايسارېږي؟ هغه ووېل چې هو! شته. خلکو پوښتنه وکړه چې هغه څه علاج دي؟ حضرت ابن نعيمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ووېل: چې دا منتر دي:(يا أيتها الرحم العقوق. صه لدنيا لداها و فقو، و تحرم من العروق. ياليتها في الرحم العقوق. لعلها تَغلق أو تُفيق) (٣)

اې نافرمان رحمه! بند شه او د وينې تويولو کار پرېږده! دا ښځه د ډېرو بچو راوړلو نه محرومولې شي ارمان! چې دا زيات بچي پيدا کېدل په دې نافرمان رحم کې واي، دا ښځه دې حامله شي يا د

---

[١]: نحوه احمد عن عمرو بن شعيب عن ابيه جده تفرد احمد واسامة بن زيد هو البيهقي من رجال مسلم كذافي البداية ٦/١٥٩
[٢]: اخرجه احمد في الزهد.
[٣] دا غامض او نامفهوم كلمات دي. مترجم

دي ته افاقه ملاو شي.

د دې د منتر په بدله کې هغه خلکو دې ته چېلې او غوړي هديه کې ورکړل دا قصه د هغه جاهليت په زمانه کې پېښه شوې ده حضرت ابن نعمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغې نه څه راواخيستل او د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چې د طعام نه فارغ شو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پاڅېدو او چې څه يې خوړلي وو هغه ټول يې قي کړل او بيا يې وفرمايل چې تاسو ما ته د طعام شي راوړئ! او مونږ ته نه وايئ! چې دا شي د کوم ځائ نه راغلی دی.(۱)

حضرت زيد بن ارقم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايل چې د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يو غلام وو چې هغه به په مقرر انداز کې ګټله او هغوی ته به يې ورکوله يو شپه هغه د طعام څه شی راوړلو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغې نه يوه نوړی اوخوړله غلام عرض وکړ چې تاسو به هره شپه پوښتنه کوله چې د کوم ځای نه دی ګټلي راوړې ده؟ خو نن شپه تاسو زما نه پوښتنه ونکړه وې فرمايل د زياتې لوږې د وجې نه مې پوښتنه ونه کړای شو ه اوس اووايه چې دا طعام دې د کوم ځای نه راوړی دي؟ هغه ووېل چې زه د جاهليت په زمانه کې په يو قوم تېر شوی ووم او ما د هغوی په يو مريض باندې دم اچولي وو هغوی ما ته د څه راکولو وعده کړې وه نن زما تېرېدل په هغه طرف وشو نو په هغوی کې د چا واده وو هغوی ما ته دا طعام راکړ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې تا خو زه تباه کړی ووم دې نه پس يې په حلق کې ګوته ورکړه او د قي کولو کوشش يې وکړ خو يوه نوړی وه او هغه يې هم د سختې لوږې په حالت کې خوړلې وه قي نه شوه چا ورته عرض وکړ چې اوبو څښلې و سره قي کېدلی شي هغه د اوبو لوي لوښي روغوښتله او اوبه به يې څښلې او قي به يې کولو تر دې چې په دېر مشکل سره يې هغه نوړی راووېستله. چا عرض وکړ چې الله جَلَّ جَلَالُهُ دې په تاسو رحم وکړي دا ټول تکليف تاسو د دې يوې نوړی له وجې نه برداشت کړ هغوی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې که چېرې زما ساه وتلو سره هم دا نوړی وتلې نو هم به ما وېستلې واي ما د رسول الله ﷺ نه اورېدلي وو چې د کوم بدن په حرام مال سره پالنه اوشي او د هغې لپاره بهتره دي نو ما ته دا وېره پيدا شوه چې زما د بدن د څه حصې په دې نوړی سره پالنه اونه کړی شي.(۲)

---

۱: عند البغوی قال ابن کثير اسناده جيد حسن کذافی المنتخب ۴/۳۶۰

۲: اخرجه ابو نعيم فی الحلية ۱/۳۱ قال ابونعيم ورواه عبدالرحمن بن القاسم عن ابيه عن عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا نحوه والمنکدر بن محمد بن المنکدر عن ابيه عن جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نحوه انتهی وقال ابن الجوزی فی صفة الصفوة ۱/۹۵ وقد اخرجه البخاری من افراده من حديث عائشه طرفا من هذا الحديث انتهی واخرجه الحسن بن سفيان الدينوري فی المجالسة عن زيد بن ارقم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نحوه کما فی المنتخب ۴/۳۶۰

**د حضرت عمر او حضرت علي رضي الله عنهما پرهيزګاري:**

حضرت زيد بن اسلم رحمه الله وايي چې حضرت عمر رضي الله عنه يو ځلي پي. وڅښلې چې د هغه ډېر خوښ شول چا چې پرې څښلې وې د هغه نه يې پوښتنه وکړه چې تاسو دا پي. د کوم ځاى نه حاصلي کړې وو ؟ هغه وويل چې زه د فلاني ځائ اوبو ته ورغلم هلته د صدقې څاروي اوبو څښلو لپاره راغلي وو هغه خلکو د هغه څاروو نه پي. اولوشل او مونږ ته يې راکړل ما په دې خبره باندې خپله مشکيزه کې هغه پي. واچولې دا يې چې واورېدل حضرت عمر رضي الله عنه پخپله خوله کې ګوته ورکړه او هغه ټول يې قې کړل.(۱)

يحيي بن سعيد فرمايي چې حضرت معاذ بن جبل ﷺ دوه بي بياني لرلې، کله به چې ديوې نمبر و نودهغې په کور کې به يې اودس نه کولو، يا دواړه بي بياني په هغه بيماري کې وفات شوې چې شام کې ورپېښه شوه، خلک هغه وخت مشغول وو، لهذا دواړه په يو قبر کې دفن کړاى شوې، حضرت معاذبن جبل رضي الله عنه د دواړو ترمينځ قرعه اندازي وکړه چې کومه يوه مخکې ور کوز کړي.

حضرت مسور بن مخرمه رضي الله عنه به فرمايل چې د تقوي او احتياط زده کولو لپاره به مونږ هر وخت د حضرت عمر رضي الله عنه سره اوسېدو.(۲)

حضرت شعبي رحمه الله وايي چې حضرت علي بن ابي طالب رضي الله عنه يوه ورځ د کوفې نه بهر اوتلو او يوې دروازې ره ودرېدو او اوبه يې اوغوښتلې نو د دننه نه يوې نجلۍ لوټه او رومال راخيستي وو را ووتله هغوى رضي الله عنه پوښتنه وکړه چې اې نجلۍ ! دا کور د چا دى؟ هغې وويل چې د فلاني د درهمو معلوموونکي، نو هغوى رضي الله عنه وفرمايل چې ما د رسول الله ﷺ نه دا ارشاد اورېدلى دى چې د دهمو معلوموونکي د کوهي نه اوبه مه څښئ! او تېکس وصولوونکو په سيوري کې هيڅکله مه کېنئ!(۳)

# په الله تعالى باندې توکل

## په الله تعالى باندې د رسول الله ﷺ توکل

**دهغه سړي سره د رسول الله ﷺ قصه چې غوښتل يې په خوب کې بې قتل کړي:**

حضرت جابر رضي الله عنه فرمايل چې زه د رسول الله ﷺ سره په غزوه احد کې لاړم چې کله رسول

---

۱: اخرجه المالک والبيقی کذافی المنتخب ۴/۴۱۸

۲: اخرجه ابن سعد ۳/۲۹۰

۳: اخرجه ابن سعد کذا فی المنتخب ۵/۲۲۹

اللهﷺ د هغه ځای نه واپس شو نو د ماسپښین په وخت کې یوه داسې ځای ته اورسېدل چې په هغې کې ازغیدارې ونې ډېرې وې هلته رسول اللهﷺ او صحابه وو ارام وکړ او صحابه د اونو په سیورو کې اخوا دېخوا خواره واره شول رسول اللهﷺ هم د یوې ونې په سیوري کې ارام کولو او خپله توره یې په هغه اونه کې زوړنده کړې وه مونږ تول اوده شو چې ناڅاپه رسول اللهﷺ مونږ روغو ښتله و مونږه یې په خدمت کې حاضر شولو نو مونږ ولیدل چې یو بانډیچې ورسره ناست دی رسول اللهﷺ وفرمایل چې زه اوده ووم او دا راغی او زما توره یې د ونې نه راکوزه کړه او هغه یې د قاش نه اوویستله زه راپاڅېدم نو ده په لاس کې کولاو توره اوچته کړه نیولې وه ده ما ته وویل چې تا به څوک زما نه بچ کوي؟ ما وویل اللہ جَلَّ جَلَالُهٗ! ده بیا وویل چې تا به زما نه څوک بچ کوي؟ ما وویل اللہ جَلَّ جَلَالُهٗ! بیا ده توره په قاش کې کېښودله او کېناستو په داسې حال کې ده رسول اللهﷺ د مرګ اراده کړې وه خو رسول اللهﷺ ده ته څه سزا ورنکړه.(۱)

حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې رسول اللهﷺ محارب قبیلې او غطفان سره نخله نومي ځای کې جنګېده چې کله هغه خلکو مسلمانان په غفلت کې ولیدل نو په هغوی کې یو چې د هغه نوم غورث بن حارث وو راغی او توره یې را واخیستله د رسول اللهﷺ سر ته ودرېدو او وې ویل چې تا به زما نه څوک بچ کوي؟ رسول اللهﷺ وفرمایل اللہ جَلَّ جَلَالُهٗ دې او رېدو سره د هغه د لاس نه توره او غورزېدله رسول اللهﷺ توره را اوچته کړه او د هغه نه یې پوښتنه وکړه چې تاسو به اوس زما نه څوک بچ کوي؟ هغه سړي وویل تاسو د توري غوره اخیستونکی جوړ شئ! یعنې ما وبښئ! رسول اللهﷺ وفرمایل آیا ته د دې خبرې شاهدي ورکوې چې اللہ جَلَّ جَلَالُهٗ نه سوا بل څوک د عبادت مستحق نشته؟ هغه وویل نه! البته زه تاسو سره دا وعده چې زه به تاسو سره هیڅبنلې ء هم جنګ اونه کړم! او کوم خلک چې تاسو سره جنګ کوي زه به د هغو خلکو سره ملګرتیا هم نه کوم! نو رسول اللهﷺ هغه پرېښودلو او هغه خپلو ملګرو ته لاړو او وې ویل چې زه تاسو ته د یو داسې سړي د خوا نه راغلی یم چې هغه په ټولو کې غوره دی بیا حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د وېرې د لمونځ ذکر وکړ.(۲)

۱: اخرجه الشیخان

۲: عند البیهقی کذافي البدایة ۴/۸۴

# د صحابه کرامو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ توکل

**د امیر المؤمنین علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ توکل:**

حضرت یعلي بن مره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایل چې یوه شپه حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ جمات ته تشریف یوړو او هلته یې نفل لمونځ شروع کړ مونږ هلته لاړو څوکیداري مو شروع کړه چې کله حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د لمونځ نه فارغ شو نو زمونږ خوا ته یې تشریف راوړلو او وې فرمایل چې تاسو دلته ولې ناست یئ؟ مونږ وویل چې ستاسو څوکی کوو! هغوی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وویل چې د اسمان والوو نه څوکی کوئ! یا د زمکې والوو نه؟ هغوی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمایل په ځمکه باندې تر هغه وخت پورې څه شی کېدلي نشي تر څو پورې چې د هغې د کېدلو فیصله په اسمان کې اونشي او په هر انسان باندې دوه ملائیکې مقررې دي چې هر مصیبت د هغه نه لرې کوي او د هغه حفاظت کوي تر دې چې د هغه د قدیر لیکل شوي راشي او چې کله د تقدیر څه فیصله راځي نو دا دواړه ملائیکې د هغه او د تقدیر د مینځ نه لرې کېږي او د الله جَلَّ جَلَالُهُ د طرفه زما د حفاظت ډېر انتظام دي چې کله زما د مرګ وخت راشي نو دا انتظام به زما نه لرې شي او سړی ته د ایمان خوږوالي تر هغه وخت نشي معلومېداي تر څو پورې چې د هغه دا یقین رانشي چې کوم خیر یا شر ده ته رسېدلی دی هغه د ده نه خطا کېدونکي نه دي او کوم څه چې د ده نه خطا لاړل هغه ده ته رسېدونکي نه وو.(۱)

حضرت قتاده رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایل چې کله د حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د ژوند اخري شپه راغله نو هغه ته ارام نه راتلو کله به دننه تلو او کله به په هر، کور والاوو ته یې خطره محسوسه شوه چې د ده سره څه اونشي نو هغوی پخپلو کې پټه مشوره وکړه او دا فیصله یې وکړه چې حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ له په هر ته تلل نه دي پکار او هغوی د الله جَلَّ جَلَالُهُ واسطه ورکړه او د هغه په خدمت کې یې دا خبره مخکې کړه هغوی وفرمایل چې هر بنده سره دوه ملائیکې مقررې دي تر څو پورې چې د تقدیر لیکل شوي وخت نه وي راغلی تر هغې پورې هغوی هر مصیبت د بنده نه لرې کوي او چې کله د تقدیر وخت راځي نو بیا هغه دواړه ملائیکې د هغه او د هغه د تقدیر د مینځ نه لرې کېږي بیا حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مسجد ته لاړو چې هلته هغه شهید کړی شو.(۲)

---

۱: اخرجه ابوداود وابن عساکر

۲: اخرجه ابی داود وابن عساکر ایضا.

حضرت ابو مجلز رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې د مراد قبيلې يو سړی حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته راغی هغوی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ لمونځ كولو د لمونځ نه پس هغه حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته عرض وكړ چې د مارد قبيلې څه خلک تاسو قتلول غواړي په دې وجه تاسو د خپل حفاظت انتظام وكړئ! حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې هر بنده سره دوه ملائيكې وي چې د هر هغه مصيبت نه د هغه حفاظت كوي چې د هغه په تقدير كې نه وي ليكلي شوي او چې كله د تقدير وخت راشي نو دا ملائيكې د هغه او د هغه د تقدير د مينځ نه لرې كيږي بېشكه مقرر وخت يو محكم ډهال دې.(۱)

حضرت يحيي بن ابي كثير رَحِمَهُ اللّٰهُ او نور حضرات وايي چې د حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په خدمت كې عرض وكړې شو چې آيا مونږ ستاسو څوكيداري اونه كړ؟ حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې د هر سړي مرګ د هغه څوكيداري كوي.(۲)

حضرت جعفر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې دوه سړی د خپلې جګړې فيصله كولو لپاره حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته راغلل، حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دواړه ځان سره كړل او د يو دېوال لاندې كېناستل نو يو سړي ووېل اې اميرالمؤمنين! دا دېوال راپرېوتونكي دې هغوی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل خپل كار كوه الله جَلَّ جَلَالُهُ زمونږ د حفاظت لپاره كافي دی بيا يې د هغوی دواړو خبره واورېدله او فيصله يې وكړه د هغه ځائ نه پاڅېدل بيا هغه دېوال راپرېوتلو.(۳)

**د حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ توكل:**

حضرت ابوظبيه رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې حضرت عبدالله رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په مرض الوفات كې مبتلا و شو نو حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د هغه د مرض د پوښتنې لپاره راغی او وې ويل چې ستا څه شكايت دی؟ حضرت عبدالله رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل د خپلو ګناهونو شكايت دې حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې تاسو څه غواړئ؟ حضرت عبدالله رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل چې زه د خپل رب رحمت غواړم حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل چې آيا زه ستا لپاره طبيب راونه غواړم؟ حضرت عبدالله رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل هم طبيب (يعني الله رب العزت) خو زه مريض كړي يم حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې زه ستا لپاره د بيت المال نه څه وضيفه مقرره نكړم؟

---

۱: عند ابن سعد وابن عساكر كذافي الكنز ۱/۸۸

۲: عند ابي نعيم في الحلية ۱/۷۵

۳: اخرجه ابونعيم في الدلائل ۲۱۱ جعفر بن محمد

حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ وویل چې ما ته د هغې ضرورت نشته حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل چې هغه وظیفه به ستا نه روسته ستا لونړو ته ملاویږي حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ وویل آیا تا ته زما په لونړو باندې د فقیرۍ ویره ده؟ ما خپلو لونړو ته ویلي دي چې څوک هره شپه سوره واقعه لولي په هغه باندې به چېرې هم لوږه نه راځي نو دا رنګه د وظیفې ضرورت نشته.(۱)

په مرضونو باندې صبر کولو په عنوان کې د حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنهُ او د حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللهُ عَنهُ هم د غسې واقعه تېره شوې ده البته په هغې کې د سوره واقعې ذکر نشته دي.

# د الله تعالی په فیصلو او تقدیر باندې راضي کېدل

**د حضرت عمر، حضرت ابوذر، حضرت علی او ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُم بیانونه:**

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایل چې ما ته د دې خبرې هیڅ پرواه نشته چې زما صبا په څه حالت باندې کېږي زما د خوښې په حالت باندې کیږي یا زما د ناخوښۍ په حالت باندې کیږي ځکه چې ما ته معلومه نه ده چې کوم زه خوښوم په هغې کې خیر دی یا چې زه نه خوښوم په هغې کې خیر دي.(۲)

حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایل چې چا حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته وویل چې حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وایي چې ما ته فقیري د مالدارۍ او د مرضونو د صحت ډېر خوښ دی حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل چې الله جَلَّ جَلَالُهُ دې په ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنهُ باندې رحم وکړي زه خو دا وایم چې څوک هم په ما باندې توکل وکړي او دا اوګني چې الله پاک کوم حالت هم د هغه لپاره خوښ کړي وي هغه هم خیر وي نو هغه به د الله پاک د طرفنه د راغلي شوي حالت نه علاوه کله هم د بل حال تمنا اونه کړي او دا کیفیت په تقدیر باندې راضي کېدو مقام اخري درجه ده.(۳)

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایل چې څوک د الله جَلَّ جَلَالُهُ په فیصله باندې راضي وي نو الله رب العزت چې کومه فیصله کړې وي هغه خو به هم داسې کیږي خو هغه ته به د دې راضي کېدو د وجې نه اجر ملاویږي او څوک چې په هغې باندې راضي نه وي نو بیا به هم هغسې کیږي چې د الله رب العزت فیصله وي خو د هغه نیک عمل به ضایع شي.(۴)

---

۱: اخرجه ابن عساکر کذافی التفسیر ابن کثیر ۴/۲۸۱
۲: اخرجه ابن المبارک وابن ابی الدنیا فی الفرج والعسکری فی المواعظ کذافی الکنز ۲/۱۴۵
۳: اخرجه ابن عساکر کذافی الکنز ۲/۱۴۵
۴: اخرجه ابن عساکر کذافی الکنز ۲/۱۴۵

حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې د قيامت په ورځ به هر سړی د دغې خبرې تمنا کوي چې ارمان! ما په دنيا کې د گذارې قابل طعام خوړلي واي او په دنيا کې صبا ماښام راپيښېدونکي حالتونو کې د انسان تاوان هله وي چې کله په دغو حالاتو باندې په زړه کې غصه او خفگان وي او په تاسو کې چې يو سړی خپله خوله کې سکروټه دومره وخت اونيسي چې هغه مړه شي دا د هغه د پې نه غوره ده چې د کوم کار د کېدلو الله پاک فيصله کړې وي د هغې په باره کې هغه داسې ووايي چې ارمان! دا نه واي شوي.(۱)

# تقوي

## د اهل قبورو سره دحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خبرې او دتقوي په باره کې د هغه بيان:

حضرت کميل بن زياد رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زه د حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره په هر ته اووتلم چې کله هغه مقبرې ته ورسېده نو قبرونو خواته متوجه شو او وې فرمايل چې اې قبرونو والا! اې زړېدونکو! اې وېرې والا! ستاسو څه حالات دي؟ زمونږ حالات خو دا دي چې ستاسو نه وروسته ستاسو مالونه تقسيم کړی شول او بچي مو يتيمان شول او ستاسو بيبيانو نور خاوندان وکړل نو دا دي زمونږ حالات، ستاسو څه حالات دي؟ بيا زما خواته متوجه شو او وې فرمايل اې کميله! که چېرې دوي ته د جواب ورکولو اجازه شوي واي نو دوي به په جواب کې ويل چې غوره توښه تقوي ده بيا حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ژړا شو او وې فرمايل چې اې کميله! قبر د عمل صندوق دي او د مرگ په وخت به تاسو ته د دې معلوم شي.(۲)

حضرت قيس بن ابي حازم رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې تاسو په تقوي سره د عمل د قبلېدلو زيات اهتمام کوئ! ځکه چې د تقوي سره شوي عمل لږ نه وي او کوم عمل چې قبول شي هغه لږ څنگه شمار کېدی شي ؟ (۳)

حضرت عبد خير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې د تقوي سره شوي عمل لږ نه شمارېږي او کوم عمل چې قبول شي هغه لږ څنگه شمار کېدی شي ؟ (۴)

---

۱: اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۱۳۷

۲: اخرجه الدينوري وابن عساکر کذافي الکنز ۲/۱۴۲

۳: اخرجه ابونعيم في الحلية وابن عساکر ۱/۲۱۱

۴: عند ابي نعيم في الحلية وابن ابي الدنيا کذافي الکنز ۲/۱۴۲

**د تقوي په باره کې د حضرت ابن مسعود، حضرت ابودرداء او حضرت ابی بن کعب بیان:**

حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې ما ته دا معلومه شي چې الله جَلَّ جَلَالُهُ زما یو عمل قبول کړي دا ما ته د ډېر زیاته خوښه ده چې ما ته دومره سره زر ملاو شي چې په هغې تول له زمکه ډکه شي.(۱)

حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې د اخرت تیاري کوونکو د عقلمندو خلکو اوده کېدل او د هغوی روژه نه ساتل څومره ښه معلومېږي او هغه خلکو د اخرت تیاري نه کونکی د بې وقوفو خلکو شپه روڼول او روژه ساتل څنګه عیب لګوي؟ د تقوي او یقین والا سړی د نیکی ذره په دوکه کې د پرېوتلو خلکو د غرونو برابر عبادت نه زیات لوي او فضیلت والا او په تللو کې زیات وزندار دي.(۲)

حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې که چېرې زما دا یقین وشي چې الله رب العزت زما یو لمونځ قبول کړی دی نو دا ما ته د دنیا نه او څه چې په دنیا کې دي د دې نه زیات خوښ دی ځکه الله رب العزت فرمایلي دي: ﴿قَالَ إِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللَّهُ مِنَ الْمُتَّقِينَ﴾(۳)

ترجمه: الله رب العزت د پرهېزګارانو عمل قبولي.

حضرت أبي بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې په تاسو کې کوم کس د الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لپاره څه شي پرېږدي! الله رب العزت به هغه ته د هغې نه غوره شي هغه ځان نه ورکړي د کوم ځای نه چې د هغه د ملاوېدو ګمان نه وي او څوک چې په دې باره کې سستي وکړي او بل شي داسې اخلي چې بل چا ته معلوم نشي نو الله پاک په هغه باندې د ډېر زیات مصیبت هغه ځای نه راولي د کوم ځای نه چې د مصیبت راتلو د هغه ګمان هم نه وي.(۴)

# د الله تعالی نه خوف او وېره

**د سیدنا محمد رسول الله ﷺ وېره:**

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې حضرت ابو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه وینم چې تاسو بوډا شوي یئ! څه د کمزورۍ اثرات په نظر راغلی

---

۱: اخرجه یعقوب بن سفیان وابن عساکر کذافی الکنز ۲/۱۴۲

۲: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۲۱۱

۳: سورة المائدة آیت ۲۷

٤: اخرجه ابن عساکر کذافی الکنز ۲/۱۴۲

دی رسول الله ﷺ وفرمایل چې زه سورة هود، سورة واقعه، سورة مرسلات، سورة عم یتساءلون او سورة اذاالشمس کورت بوډا کړم.(۱)

په بیهقي کې دا روایت دی چې حضرت ابوسعید رضي الله عنه فرمایل چې حضرت عُمر بن خطاب رضي الله عنه عرض وکړ چې اې د الله جل جلاله رسوله! په تاسو باندې د بوډاوالي اثرات ډېر زر ښکاره شول رسول الله ﷺ وفرمایل چې زه سورة هود او د دې پشان نورو سورتونو یعني واقعه، عم یتساءلون او اذالشمس کورت بوډا کړم!(۲)

حضرت ابوسعید رضي الله عنه فرمایي: چې رسول الله ﷺ وفرمایل: زه څنګه خوشحاله ژوند والا کېدی شم؟ هر کله چې شپېلۍ وهونکی شپېلۍ خوله کې نیولې ده او خپل تندی یې ښکته کړی دی او غوږ یې نیولی انتظار کوي چې کله هم هغه ته د شپېلۍ وهلو حکم کېږي مسلمانانو عرض وکړ اې د الله جل جلاله رسوله! اوس مونږ څه و وایو؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: حسبنا الله ونعم الوکیل علی الله توکلنا. وایئ!(۳)

حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمایل چې رسول الله ﷺ د یو قاري نه دا آیت واورېدو:

إِنَّ لَدَيْنَا أَنكَالًا وَجَحِيمًا ۝(٤) ترجمه: مونږ سره بېړی دي او جهنم دی. دا یې چې واورېدل نو رسول الله ﷺ بېهوشه شو.(۵)

## د صحابه کرامو رضي الله عنهم وېره

**د یو انصاري ځوان د خوف قصه:**

حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه فرمایل چې د یو انصاري ځوان په زړه کې د الله جل جلاله وېره دومره زیاته پیدا شوه چې کله به د هغه په مخکې د جهنم ذکر کېدو نو هغه به په ژړا شو او د هغه په کیفیت دومره زیاته غلبه وشوه چې هغه به هر وخت په کور کې اوسېدو بهر ته وتل یې پرېښودل رسول الله ﷺ ته چا د هغه ذکر وکړ نو د هغه کور ته یې تشریف یوړو هلته چې ورسېده نو رسول الله ﷺ ورسره غاړه ملاو کړه په دې کې د هغه روح والوتلو او هغه

---

۱: اخرجه البیهقی
۲: کذافی البدایة ٦/٥٩
۳: اخرجه احمد ورواه الترمذی وقال حسن کذافی البدایة ٦/٥٦
٤: سورة المزمل آیت ۱۲
٥: اخرجه ابن النجار کذافی الکنز ۴/۴۳

لاندې راپرېوتلو رسول اللهﷺ وفرمايل چې تاسو د دې خپل ملګري کفن دفن وکړئ! د الله جَلَّ جَلَالُهُ وېرې د ده زړه چاويده کړ.(۱)

د حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه هم داسې حديث نقل دی په هغې کې دا دی چې رسول اللهﷺ هغه ځوان له ورغی چې کله د هغه ځوان په رسول اللهﷺ باندې نظر پرېوتلو نو هغه ودرېدو او رسول اللهﷺ ته ورترغاړه وتلو او هم په دې حالت کې د هغه روح والوتلو او هغه وفات شو لاندې پرېوتلو رسول اللهﷺ وفرمايل چې تاسو د دې خپل ملګري کفن دفن وکړئ! د جهنم وېرې د ده زړه وچاوېده په هغه ذات مې دې قسم وي چې د هغه په قبضه کې زما ساه ده الله رب العزت ده ته د جهنم نه پناه ورکړه کوم سړی چې د يو شي امېد کوي هغې لره هغه لټوي او څوک چې د يو شي نه وېره کوي هغه د هغې نه تېښته کوي.(۲)

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې کله الله رب العزت په خپل رسول اللهﷺ باندې دا آيت نازل کړ: يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ(۳)

ترجمه: اې د ايمان خاوندانو! تاسو خپل ځانونه او خپل کور والاوو لره د دوزخ د اور نه بچ کړئ! چې د هغې خشاک سړي او کاڼي دي نو رسول اللهﷺ يوه ورځ دا آيت خپلو صحابه وو ته واورولو دې اورېدو سره يو ځوان بې هوشه راپرېوتلو رسول اللهﷺ د هغه په زړه باندې لاس کېښودو نو هغې حرکت کولو وې فرمايل چې ځوانه! لا اله الا الله او وايه! نو هغه کلمه وويله چې په دې باندې رسول اللهﷺ هغه ته د جنت زېرى ورکړ صحابوو وفرمايل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! آيا دا زېرى په مونږ کې يوازې د ده لپاره دی؟ رسول اللهﷺ وفرمايل آيا تاسو د الله جَلَّ جَلَالُهُ دا ارشاد نه دی اورېدلی؟ ذَٰلِكَ لِمَنْ خَافَ مَقَامِي وَخَافَ وَعِيدِ(۴)

ترجمه: او دا د هر هغه کس لپاره عام دی چې زما مخکې ودرېدو نه ووېرېږي او زما د وعيد نه اووېرېږي.

**د خوف او رجا په باره کې دحضرت عمر او حضرت ابوبکرصديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا بيان:**

حضرت سعيد بن مسيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې يو ځل حضرت عُمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

۱: اخرجه الحاكم وقال صحيح الاسناد والبيهقي من طريقه كذافي الكنز ۵/۲۲۳
۲: اخرجه ابن ابي الدنيا و ابن قدامة كذافي الكنز ۲/۱۴۴
۳: سورة تحريم آيت ٦
۴: سورة ابراهيم آيت ۱۴

بیمار شو رسول الله ﷺ د مریضتیا د پوښتنې لپاره ورغی رسول الله ﷺ وفرمایل اې عمره! خپل ځان په څه حال وینې؟ هغه وویل چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ فضل او کرم امید هم ساتم او د خپلو اعمالو د وجې نه ویریږم هم رسول الله ﷺ وفرمایل چې د کوم سړي په زړه کې امید او ویره جمع کیږي نو الله رب العزت د هغه امید پوره کوي او د کوم شي نه چې ویره کوي د هغې نه هغه بچ کوي.(۱)

حضرت حسن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایل چې ابوبکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل آیا تاسو او نه لیدل چې الله رب العزت چیرته د سختۍ او تنگۍ آیت ذکر کوي هلته د هغې سره نزدې د نرمۍ او فراخۍ آیت هم ذکر کوي دې لپاره چې د مؤمن زړه کې رغبت او خوف دواړه وي او بې خوفه کیدو سره الله رب العزت نه ناحقه امیدونه ونکړي او نا امیده کیدو سره ځان په تباهۍ کې وانه چوي.(۲)

او د خلفاوو د ویرې په باب کې د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ واقعې تیرې شوې دي.

**دخوف په باره کې د حضرت عثمان، ابوعبیده او عمران بن حصین رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ بیانونه:**

حضرت عبدالله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل؛ چې حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او فرمایل: که چیرې ما د جنت او جهنم په مینځ کې اودرولې شي او ما ته معلومه نه وي چې په دواړو کې به کوم خواته حکم ملاویږي نو په دې خبره باندې پوهیدو نه مخکې ما ته خپل ځان ایره کیدل خوښ دي چې زما تلل په دواړه کې کوم یو ته دي.(۳)

حضرت ابوعبیده بن جراح رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایل ارمان! چې زه یو گډ وای چې زما کوروالاوو زه حلال کړی وای او بیا زما غوښه خوړلې وای او زما ښوروا یې څښلې وای حضرت عمران بن حصین رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایل چې ارمان! چې زه په یوه غونډۍ باندې پرته ایره وای چې هغه د سیلۍ والا ورځې په هوا سره وړلې وای.(۴)

حضرت قتاده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایل چې ما ته دا خبره رارسیدلې ده چې حضرت عمران بن

---

۱: اخرجه البیهقی کذافی الکنز ۲/۱۴٦

۲: اخرجه ابوشیخ کذافی الکنز ۲/۱۴۴

۳: ایضا احمد فی الزهد عن عثمان مثله کما فی المنتخب ۵/۱۰

٤: اخرجه عساکر کذافی المنتخب ۵/۷۴ واخرجه ابن سعد ۲/۴۱۳ عن قتاده عن ابی عبیدة نحوه.

حصين رَضِيَ اللهُ عَنهُ و فرمایل چې ارمان! زه ایره وای چې هغه هوا الوزولې وای.(۱)

**د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُ خوف:**

حضرت عامر بن مسروق رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ په مخکې یو سړي وویل چې زما یو ازې دومره خبره خوښه نه ده چې زه د خلکو نه شم او هغوی ته به په ښي لاس عملنامه ورکړی کېږي بلکې زما زیاته خوښه ده چې زه د مقربینو نه شم حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ و فرمایل چې دلته خو یو سړی دی چې هغه دا غواړي چې د مرګ نه پس په هغه دوباره ژوندی نه کړی شي بلکې هغه ختم کړی شي د دېنه د هغه خپل ځان مراد وو خپل ځائې یې تواضعاً د جنت حقدار نه ګاڼه.(۲)

حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنهُ وایي چې حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُ و فرمایل چې که چېرې زه د جنت او جهنم په مینځ کې ودرولی شم او دا راته وویلی شي چې ته خوښ کړه چې جنت یا جهنم ته کوم یو ته ځې! یا که غواړې چې ایره شې! نو زه به ایره کېدل خوښ کړم!(۳)

**د حضرت ابوذر، حضرت ابودرداء او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُم خوف:**

حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنهُ و فرمایل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! چې کوم څه ما ته معلوم دي که چېرې تاسو ته هغه معلوم شي نو تاسو به خپلو بیبیانو سره بې تکلفه نه شئ! او تاسو ته به په بسترو باندې ارام ملاو نه شي په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زما دا ارزو ده چې ارمان! الله جَلَّ جَلَالُهُ زه اونه جوړه کړې وای چې هغه پرېکړی شوې وای او د هغې ونې مېوه خوړلی شوې وای.(۴)

حضرت حزام بن حکیم رَحِمَهُ اللهُ وایي چې ابودرداء رَضِيَ اللهُ عَنهُ و فرمایل چې تاسو به د مرګ نه پس کوم څه وینئ! که چېرې تاسو ته اوس د هغې یقین راشي نو نه به په خوند سره طعام وخورئ! او نه په خوند سره څښاک وکړئ! او نه به په کورونو کې کېنئ! بلکې میدانونو خواته به او ځئ! او خپلې سینې به په وهلو وهلو سره خپلو ځانونو باندې اوژاړئ! او زما ارزو دا ده چې ارمان! زه اونه وې چې هغه پرېکړې شوې وای او د هغې مېوه خوړلې شوې وای.(۵)

حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایل چې زما دا ارزو ده چې ارمان! زه د خپل کور والاو ګډ

---

۱: عند ابن سعد ۴/۳۶

۲: اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۱۳۳

۳: عند ابی نعیم ایضاً

٤: اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۱٦۴

۵: اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۲۱٦

واي او د هغوی څوک مېلمه راغلی واي او هغوی زما په رګونو باندې چاړه راښکلې واي او زه يې حلال کړې واي پخپله يې هم زما غوښه خوړلې واي او په مېلمه يې هم خوړلې واي.(۱)

**د حضرت معاذ او ابن عمر رضي الله عنهم خوف:**

حضرت طاووس رحمه الله وايي چې حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه زمونږ علاقې ته راغی نو زمونږ مشرانو هغه ته وویل چې که چېرې تاسو ووایئ! نو دا کاڼي او لرګي به را جمع کړو او تاسو لپاره به یو جمات جوړ کړو هغوی رضي الله عنه وفرمایل چې ما ته د دې خبرې وېره ده چې چېرته د قیامت په ورځ دا جمات په خپله شا باندې او چتولو په ما باندې بار وانه چولی شي.(۲)

حضرن نافع رحمه الله وايي چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه کعبې ته دننه لاړو نو ما واورېدل چې هغه په سجده کې پروت وو او دا يې وويل اې الله جل جلاله تا ته پته ده چې صرف ستا د وېرې د وجې نه ما د قریشو سره د دې دنیا په باره کې مزاحمت نه دی کړی.(۳)

حضرت ابو حازم رضي الله عنه فرمایل چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه په یو عراقي سړي باندې تېر شو چې په زمکه باندې بې هوشه پروت وو هغه پوښتنه وکړه چې په ده باندې څه شوی دی؟ خلکو وویل چې کله د ده په مخکې قرآن لوستلی شي نو د ده دا حالت کیږي هغوی رضي الله عنه وفرمایل چې مونږ هم د الله جل جلاله نه وېرېږو خو مونږ خو نه بې هوشه کېږو چې په زمکه باندې راپرېوځو.(۴)

**د حضرت شداد بن اوس انصاري رضي الله عنه خوف:**

حضرت شداد بن اوس انصاري رضي الله عنه به چې کله په بستره باندې څملاستو نو اړخونه به يې بدلول او خوب به ورته نه راتلو او دا به يې فرمایل چې اې الله جل جلاله! دوزخ زما خوب او تښتولو بیا به ودرېدو او لمونځ به يې شروع کړ او تر سهاره پورې به پکې مشغول وو.(۵)

**د ام المؤمنین عایشه رضي الله عنها خوف:**

حضرت عمرو بن سلمه رضي الله عنه فرمايي چې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې په الله جل جلاله قسم! زما دا ارزو ده چې کاش زه يوه ونه واي! په الله جل جلاله قسم! زما دا ارزو ده

---

۱: عند ابن عساکر کما فی الکنز ۲/۱۴۵
۲: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۲۳٦
۳: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۲۹۲
٤: اخرجه ابونعبم فی الحلیة ۱/۲۹۲
۵: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۲٦۴

چې کاش زه يو ه لوته واى، په الله جَلّ جَلَالُهُ قسم زما داارزو ده چې کاش زه پيدا شوى نه واى! (۱)

حضرت ابن ابي مليكه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنها د وفات نه مخکې هغې ته حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ راغى او د هغې تعريف يې شروع کړ چې اې د الله جَلّ جَلَالُهُ د رسول الله ﷺ محترمې بي بي! تا ته دې زېرى وي چې رسول الله ﷺ ت نه پرته له بلې يوې پېغلې سره واده نه دى کړى او له زنا څخه ستا پاکي له اسمان نه نازل شوې وه ،مخامخ حضرت ابن زبير رَضِيَ اللهُ عَنهُ راغى نو حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنها وفرمايل چې دا عبدالله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ زما تعريف کوي او زما دا بلکل نه ده خوښه چې نن زه د چا نه خپل تعريف واورم! زما ارزو خو دا ده چې ارمان! زه ايره کړى شوې واى.(۲)

# د الله تعالى له وېرې ژړل

**د سيدنا حضرت رسول الله ﷺ ژړا:**

حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايل چې رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل چې ما ته قرآن واوروه ما عرض وکړ آيا تاسو ته قرآن واوروم په داسې حال کې چې قرآن په تاسو باندې نازل شوى دى رسول الله ﷺ وفرمايل چې زما زړه غواړي چې زه د بل نه قرآن واوروم نو ما سوره نساء لوستل شروع کړل او چې کله زه **فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِن كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَى هَٰؤُلَاءِ شَهِيدًا** ۞ (۳) ته ورسېدم نو رسول الله ﷺ وفرمايل بس کړه ما ورته وکتل نو د هغوى ﷺ د سترګو نه اوښکې بهېدلې. (۴) د رسول الله ﷺ د ژړا ځينې واقعات به د مانځه په باب کې راشي.

# د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنهُم ژړا

**د قرآن د نزول په وخت داهل صفه رَضِيَ اللهُ عَنهُم ژړا:**

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايل چې کله دا آيت نازل شو: **أَفَمِنْ هَٰذَا الْحَدِيثِ تَعْجَبُونَ ۞ وَتَضْحَكُونَ وَلَا تَبْكُونَ** ۞(۵)

ترجمه: نو آيا داسې د خوف خبرې چې واورئ! هم تاسو د دې کلام الهي نه تعجب کوئ!

---

۱: اخرجه ابن سعد ۸/۷۴

۲: عند ابن سعد ايضا .

۳: سورة نساء آيت ۴۱

٤: اخرجه البخاري كذافي البداية ٦/٥٩

۵: سورة النجم آيت ٦٠/٥٩

اوخاندئ! او د عذاب د وېرې نه نه ژاړي.
نو اصحاب صفو دومره اوژړل چې د هغوی په مخونو باندې اوښکې بهېدلې رسول الله ﷺ چې کله د هغوی د ژړا اواز لږ لږ واورېدو نو هغوی ﷺ هم ورسره په ژړا شول بیا رسول الله ﷺ وفرمایل چې څوک د الله جَلَّ جَلَالُهُ د وېرې نه اوژاړي هغه به په اور کې نه داخلېږي او څوک چې په ګناه همېشوالی کوي هغه به جنت ته نه داخلیږي او که چېرې تاسو ګناه نه کوئ! او استغفار کول پرېږدئ! نو الله جَلَّ جَلَالُهُ به داسې خلک راولي چې ګناه به کوي او استغفار به کوي او الله جَلَّ جَلَالُهُ به د هغوی مغفرت کوي.(۱)

**د قرآن په نزول د حبشي ژړا:**

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایل چې رسول الله ﷺ دا آیت تلاوت کړ : **وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ**(۲)

ترجمه: چې د هغې خوراک خشاک سړی او کاڼي دي.

بیا یې وفرمایل چې په جهنم کې یو زر کاله اوربل کړی شو تر دې چې هغه سور شو بیا یو زر کاله پورې اوربل کړی شو تر دې چې هغه سپین شو یو زر کاله پورې نور اوربل کړی شو تر دې چې هغه تور شو اوس دا اور تور او تیاره ده د دې شغلې چېرې هم نه مړي د رسول الله ﷺ مخې ته یو تور رنګ سړی ناست وو هغه چې دا واورېدل نو په زوره زوره په ژړا شو په دې کې حضرت جبریل عَلَيْهِ السَّلَامُ د اسمان نه راکوز شو راغی او پوښتنه یې وکړه چې دا ستا مخې ته اوږېدونکي څوک دئ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل چې دا د حبشې دی او رسول الله ﷺ د هغه تعریف وکړ حضرت جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ وویل چې الله رب العزت وفرمایل: زما دې په خپل عزت او جلال قسم وي په عرش باندې زما د اوچتېدو قسم! چې د چا سترګې په دنیا کې زما د وېرې نه وژاړي زه به هغه په جنت کې خندوم! (۳)

**د حضرت ابوبکر صدیق او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا ژړا:**

حضرت قیس بن ابي حازم رَحِمَهُ اللَّهُ فرمایل چې زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې د حاضرېدو لپاره راغلم نو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په ځای خلیفه مقرر شوی وو اول خو

۱: اخرجه البیهقی کذافی الترغیب ۵/۱۹۰
۲: سورة بقرة آیت ۲۴
۳: اخرجه البیهقی و الاصبهانی کذافی الترغیب ۵/۱۹۴

يې د الله جَلَّ جَلَالُهُ ښه ستاينه وكړه او بيا يې ښه وژړل.(١)

حضرت محمد بن حسن بن محمد بن علي بن ابي طالب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د جمعې په خطبه کې إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ ويلو چې کله عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّآ أَحْضَرَتْ. ته ورسېده نو د ژړا د غلبې په وجه د هغه اواز بند شو.(٢)

حضرت حسن رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا ایاتونه ولوستل:

إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ ۝ مَّا لَهُ مِن دَافِعٍ ۝ (٣)

ترجمه: بېشکه ستا د رب عذاب به ضرور وي څوک هغه نشي منع کولی.

نو د هغه ساه بنده شوه او هغه مریض شو او شلو ورځو پورې داسې بیمار وو چې خلکو د هغه د بیمارۍ پوښتنه وکړه.(۴)

حضرت عبید بن عمیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایل چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مونږ ته د سهار لمونځ وکړ چې په هغې کې یې سورة یوسف شروع کړ لوستلو یې چې کله (وَابْيَضَّتْ عَيْنَاهُ مِنَ الْحُزْنِ فَهُوَ كَظِيمٌ ۝) ته ورسېده نو دومره یې اوژړل چې مخکې یې نور نه شو لوستلی او رکوع یې وکړه.(٥)

حضرت عبدالله بن شداد بن هاد رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د سهار په مانځه کې سوره یوسف ویلو زه په اخري صف کې ووم چې کله لوستلو لوستلو سره (انما اشکوابثي وحزني الي الله) ته ورسېده نو ما د اخري صف نه د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سلګو اواز واورېده.

حضرت هشام بن حسن رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عمر به کله قرآن لوستلو کې د عذاب یو آیت باندې تېرېده نو مرۍ به یې بنده شوه او دومره به یې ژړل چې لاندې به پرېوتلو او بیا د کمزور کېدو دو جې نه څو ورځې په کور کې وو او خلکو هغه بیمار اوګڼلو او د بیمارۍ پوښتنه به یې کوله.(٦)

١: اخرجه عبدالرزاق كذا في المنتخب ٥/٢٦٠
٢: اخرجه الشافعي كذافي المنتخب ٤/٣٨٧
٣: سورة طور آيت ٨،٧
٤: عند ابي عبيد
٥: عند ابي عبيد كذافي منتخب الكنز ٤/٤٠١
٦: اخرجه ابونعيم في الحلية ١/٥١

**د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ژړا:**

د حضرت عثمان بن عفان ازاد کړی شوي غلام حضرت هاني رَحِمَهُ اللهُ وايي چې کله به حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو قبر ته او درېده نو دومره به یې ژړل چې ږیره به یې لونده شوه د هغه نه چا پوښتنه وکړه چې تاسو د جنت او جهنم تذکره کوئ! او ژاړئ نه! خو قبر یادولو سره ژاړئ! وې فرمایل چې ما د رسول الله ﷺ نه دا ارشاد واورېدو چې قبر اخرت د منزلونو نه اولنی منزل دی څوک چې د دېنه په اسانۍ سره خلاص شو هغه لپاره وروسته منزلونه ټول اسان دي او څوک چې په دې کې اونښتلو نو د هغه لپاره روستني منزلونه ټول سخت دي او ما د رسول الله ﷺ نه دا هم اورېدلی دی چې ما هیڅ یو منظر داسې نه دی لیدلی چې د قبر والا منزل نه زیات د وېرې والا نه وئ.(۱)

د زرین په روایت کې دا هم دی چې حضرت هاني رَحِمَهُ اللهُ وايي چې ما حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه په یو قبر باندې دا شعرونه اورېدلي دي:

فان تنج منها تنج من ذی عظیمة

و الا فـــانی لا اخالـــك ناجیـــا

ترجمه: اې قبروالا! که چېرې ته په اسانتیا سره د دې کنډو نه خلاص شوې نو ته د یو زبردست کنډو نه خلاص شوې کني زما په خیال ته د اینده کنډو نه خلاصی نه شې موندلی.(۲)

**د حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ژړا:**

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خوا کې تېر شو هغه ژړل حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ترې پوښتنه وکړه چې ته ولې ژاړې؟ حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل چې د یو حدیث د وجې نه ژاړم چې ما د رسول الله ﷺ نه اورېدلی دی چې د ریا ادنی درجه هم شرک دی او الله رب العزت ته په بندګانو کې د ټولو نه زیات محبوب هغه خلک دي چې متقیان دي او د هغوی حالات د خلکو نه پټ وي دا خلک که چېرې رانه شي نو څوک هغوی لره نه لټوي او که چېرې راشي نو دوي څوک نه پېژني هم دا خلک د هدایت امامان او د علم چراغان دي.(۳)

---

۱: اخرجه الترمذی وحسنه

۲: کذافی الترغیب ۵/۳۲۲ واخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۶۱ عن هانی مختصرا.

۳: اخرجه الحاکم ۳/۲۷۰ واللفظ له وابونعیم فی الحلیة ۱/۵۱ قال الحاکم صحیح الاسناد ولم یخرجاه قال الذهبی ابومخدم قال ابو حاتم لا یکتب حدیثه وقال النسائی لیس ثقة.

**د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا ژړا:**

حضرت قاسم بن ابي بزه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې يو صاحب دا واقعه ما ته بيان کړه چې هغه د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه واورېدل چې سورة (وَيْلٌ لِّلْمُطَفِّفِينَ) يې لوستلو چې کله هغه (يَوْمَ يَقُومُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ) ترجمه: چې په کومه ورځ به ټول انسانان د رب العلمين په مخکې اودرېږي) ته ورسېده نو په ژړا شو او دومره يې اوژړل چې بې اختياره شو او په زمکه راپرېوتو او د دې نه مخکې يې اونه ويلې شو.(۱)

حضرت نافع رَحِمَهُ اللهُ وايي چې کله به حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د سورة بقرة اخري دوه آيتونه لوستل نو په ژړا به شو : وَاِنْ تُبْدُوْا مَا فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ اَوْ تُخْفُوْهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللّٰهُ (۲)

ترجمه: کومې خبرې چې ستاسو په زړونو کې دي هغه که چېرې تاسو ښکاره کوئ! يا يې پټې ساتئ! الله پاک به تاسو سره حساب کوئ! وفرمايل چې دا حساب خو ډېر سخت دی.(۳)

حضرت نافع رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ به کله: اَلَمْ يَاْنِ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْ تَخْشَعَ قُلُوْبُهُمْ لِذِكْرِ اللّٰهِ (٤)

ترجمه: آيا ايمان والاوو لپاره د دې خبرې وخت نه دی راغلی چې هغوی زړونه او چې کوم دين حق د الله جَلَّ جَلَالُهُ ل[illegible] فه نازلي شوی دی د هغې نه د مخکې ښکته شي، لوستلو نو په ژړا شو او دومره به يې وژړل چې چې کېدل به يې په اختيار کې نه وو.(۵)

حضرت يوسف بن مالک رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زه د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ سره حضرت عبيد بن عمير رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته لاړم هغه خپلو ملګرو ته بيان کولو حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ بيان اورېدو لږ ساعت پس ما وليدل نو د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د سترګو نه اوښکې بهېدلې.(٦)

حضرت عبيد بن عمير رَضِيَ اللهُ عَنهُ دا آيت: فَكَيْفَ اِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ اُمَّةٍ بِشَهِيْدٍ (۷)

ترجمه: پس په هغه وخت کې به څه حال وي چې مونږ د هر امت نه يو ګواه حاضر کړ، تر اخره

---

۱: اخرجه ابونعيم فى الحلية ۱/۳۰۵ واخرجه احمد نحوه كما فى صفة الصفوة ۱/۲۳۴
۲: سورة البقرة آيت ۲۸۴
۳: عند ابى نعيم واحمد ايضا
٤: سورة حديد آيت ١٦
۵: عند ابى نعيم ايضا فى الحلية ۱/۳۰۵ واخرجه ابوالعباس فى تاريخه بسند جيد كما فى الاصابة ۲/۳۴۹
٦: اخرجه ابن سعد ۴/١٦٢ واخرجه ابونعيم فى الحلية ۱/۳۰۵ عن يوسف بن مالک مختصرا.
۷: سورة النساء آيت۴۱

پوري اولوستلو نو حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ژړا شو او دومره يې اوژړل چې د هغه ږيره او گريوان په اوښکو باندې لوانده شول حضرت عبدالله وايي چې د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خوا کې کوم سړى ناست وو هغه ما ته وويل چې کله ما حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دومره زيات ژړيدونکى اوليده نو زما زړه کې راغلل چې زه پاڅم حضرت عمير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته اووايم چې اوس ته بيان ختم کړه ځکه چې تا دې حضرت ته ډېر تکليف اورسولو .(۱)

**د حضرت ابن عباس او عباده بن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ژړا:**

حضرت عبدالله بن ابي مليکه رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زه د مکې مکرمې نه مدينې منورې پورې د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ووم هغوى به چې کله هم قيام کولو هلته به نيمه شپه د الله جَلَّ جَلَالُهُ په عبادت کې ولاړ وو حضرت ايوب د راوي نه پوښتنه وکړه چې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به قرآن څنګه لوستلو ؟ هغه وويل چې يو ځل حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ:

**وَجَآءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ ۖ ذٰلِكَ مَا كُنْتَ مِنْهُ تَحِيْدُ** ﴿۲﴾

ترجمه: او د مرګ سختى حق سره نزدې را ورسېدلې دا مرګ هغه شى دى چې د دې نه تا وېره کوله، اولوستلو نو ښه په قلاره قلاره يې لوستلو او د درد نه ډک اواز سره يې ښه اوژړل. (۳)

حضرت ابورجاء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مخ باندې د اوښکو بهېدلو ځاىٔ د ډېرې ژړا په وجه د زړې تسمې پشان وو. (۴)

حضرت عثمان بن ابي سوده رَحِمَهُ اللهُ وايي چې ما وليدل چې حضرت عباده بن صامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه مسجد په ډېوال باندې چې نبي کريم ﷺ پر جهنم ليدلى ؤ و سينه يې ايښې وه ژړل يې ما عرض وکړ چې اې ابوالوليد ! ته ولې ژاړې؟ هغوى وفرمايل چې دا هغه ځاىٔ دى د کوم باره کې چې مونږ ته رسول الله ﷺ ښودلي وو چې هغوى ﷺ دلته دوزخ ليدلى وو .(۵)

حضرت يعلي بن عطاء رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زما مور به د حضرت عبدالله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

---

۱: عند ابن اسعد ۴/۱٦۲

۲: سورة ق آيت ۱۹

۳: اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۳۲۷

٤: عند ابي نعيم ايضاً ۱/۳۲۹

۵: اخرجه ابونعيم في الحلية ٦/۱۱۰

لپاره رانجه تیارول هغه به دېر ژړل هغه به خپله دروازه بنده کړه او ژړل به يې ! تر دې چې د هغه سترګې به خوږې شوې د دې لپاره زما مور د هغه لپاره رانجه تیارول.(۱)

حضرت مسلم بن بشر رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې يو ځل حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پخپله بيمارۍ کې ژړل چا ورته وويل اې ابو هريره! ته ولې ژاړې؟ وې فرمايل چې ښه په غور سره واوره! زه ستاسو په دې دنيا باندې نه ژاړم بلکې د له دې وجې نه ژاړم چې سفر ډېر اوږد دى او زما توښه کمه ده او زه هغې کندو ته وختلي يم چې د هغې نه پس جنت او جهنم دواړو ته لاره ځي او ما ته معلومه نه ده چې دې دواړو لارو کې به په کومه يوه زه بوتلى شم!(۲)

## سوچ او فکر کول او عبرت حاصلول

### د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو سوچ او فکر کول او عبرت حاصلول

د حضرت ابو ريحانه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ازاد شوى غلام حضرت حمزه بن حبيب رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت ابو ريحانه د يوې غزا نه واپس راغى د شپې يې دوډى او خوړله بيا يې اودس وکړ او په مصلې باندې ودرېدو او لمونځ يې شروع کړ او يو سورت لوستل يې شروع کړه او په مانځه کې داسې مشغول شو چې د سهار اذان يې پرې وکړ بي بي يې وويل چې اې ابو ريحانه! تاسو غزا ته ولې تللي وئ! چې په هغې کې تاسو ډېر ستړي شوي وئ! بيا تاسو واپس راغلئ! نو آيا په تاسو باندې زمونږ هيڅ حق نشته او ستاسو په وختونو کې زمونږ هيڅ حصه نشته؟ هغوى وفرمايل شته خو په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! که چېرې ته ما ته ياده شوې واې نو ستا به په ما حق واى بي بي يې پوښتنه وکړه نو تاسو په څه شي کې مشغول وئ؟ چې زما خيال را نغى ؟ وې فرمايل چې الله رب العزت جنت او د هغې لذتونه چې څومره بيان کړى دى ما په هغې سوچ کولو بس هم په دې کې مې د سهار اذان په غوږونو کې پرېوتلو.(۳)

حضرت محمد بن واسع رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې د حضرت ابو ذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د وفات نه پس يو سړى د بصرې نه سفر وکړ او حضرت ام ذر د حضرت ابو ذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بي بي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا له د حضرت ابو ذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د عبادت په باره کې پوښتنې لپاره لاړو نو دغه سړى د حضرت ام ذر ته وويل ستا په خدمت کې د دې لپاره راغلى يم چې تاسو ما ته د حضرت ابو ذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د عبادت په باره کې

---

۱: اخرجه ابونعيم فى الحلية ۱/۲۹۰

۲: اخرجه ابن سعد ۴/٦۲ و اخرجه ابونعيم فى الحلية ۱/۳۸۲

۳: اخرجه ابن المبارک کذافى الاصابة ۲/۱۵۷

اوبنايئ! هغې وويل چې هغوى به ټوله ورځ ځان له ناست وو او سوچ او فکر به يې کولو.(۱)
حضرت عون بن عبد الله بن عتبه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې ما د حضرت ام درداء رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا نه پوښتنه وکړه چې د حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د ټولو نه افضل او غوره عمل څه وو؟ هغې وويل چې سوچ او فکر کول او عبرت حاصلول.(۲)
ابو نعيم د حضرت عون رَحِمَهُ اللّٰهُ نه دا حديث نقل کړی دی چې د حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ به د ټولو نه زيات کوم عمل کولو؟ هغې وويل چې عبرت حاصلول په بل روايت کې دي چې سوچ او فکر کول.(۳)
حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايل چې يو ساعت سوچ او فکر کول د ټولې شپې د عبادت کولو نه بهتره دي(۴)
حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايل چې ډېر خلک د خير د دروازو پرانيستلو او د شر د دروازو بندولو دروازه جوړېږي او په دې به ورته ډېر ثواب ملاوېږي ډېر خلک د شر دروازو پرانيستلو او د خير د دروازو د بندولو دروازه جوړېږي او هغوى ته به د دې په وجه ډېره ګناه وي او د يو ساعت سوچ او فکر د ټولې شپې د عبادت نه بهتره دي.(۵)
حضرت حبيب بن عبد الله رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې يو سړی د حضرت ابو الدرداء په خدمت کې راغی هغه غزا ته تلل غوښتل هغه عرض وکړ اې ابو الدرداء رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ! ما ته څه وصيت وکړئ! هغوى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې ته الله جَلَّ جَلَالُهُ په خوشحالۍ او په راحت کې ياد ساته! الله رب العزت به په مصيبت کې تا ياد ساتي او چې کله ته پخپل زړه کې د دنيا د څه شي عضمت او شوق بيا مومې نو فکر وکړه چې د دې شي به څه انجام وي چې د خاورې نه جوړ دی او يوه ورځ به خاورې شي.(۶)
سالم بن ابي الجعد رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې دوه غويان د حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په خوا کې

---

۱: اخرجه ابونعيم فی الحلية ۱/۱٦۴
۲: اخرجه ابونعيم فی الحلية ۱/۲۰۸
۳: عند ابی نعيم ايضاً عن عون وعن سالم بن ابی الجد نحوه الا انه قال فقالت التفكر واخرجه احمد نحوه الحديث الاول عن عون كما فی صفة الصفوة ۱/۲۵۸
۴: عند ابی نعيم واحمد ايضا واخرجه ابن سعد ۷/۳۹۲
۵: عند ابن عساكر كذافی الكنز ۲/۱۴۲
٦: اخرجه ابونعيم فی الحلية ۱/۲۰۹

تېرشول کومو چې کار کولو په هغوی کې يو کار کولو او بل ودرېدو نو حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې په دې کې هم عبرت دي چې کوم غويي کار پرېښودو او ودرېدو هغه به مالک په ډنډه وهي.(۱)

## له خپل نفس سره محاسبه کول

د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ازاد کړی شوی غلام وايي چې څوک د الله رب العزت د رضا لپاره نفس سره بغض ساتي او د هغه نه مني بلکې د هغه خوښې خلاف او د الله جَلَّ جَلَالُهُ والا کارونه په نفس باندې کوي نو هغه به الله پاک د خپلې غصې نه محفوظ ساتي.(۲)

حضرت ثابت به حجاج رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل تاسو د خپلو نفسونو د هغې نه مخکې جائزه واخلئ! چې الله جَلَّ جَلَالُهُ ستاسو جائزه واخلئ! او تاسو د خپلو نفسونو د هغې نه مخکې حساب واخلئ! چې الله رب العزت ستاسو نه حساب واخلي که تاسو نن خپلو نفسونو سره حساب وکړئ! نو دې سره به صبا ته په حساب کې اساني وي او د قيامت ورځې او د لوي پيشۍ لپاره نېک عملونه اختيارولو سره ځان ښايسته کړئ! ﴿يَوْمَئِذٍ تُعْرَضُونَ لَا تَخْفَىٰ مِنكُمْ خَافِيَةٌ﴾(۳) ترجمه: په کومه ورځ چې د الله رب العزت په مخکې حساب لپاره تاسو پيش کړی شئ! او ستاسو هيڅ خبره به د الله رب العزت نه پټه نه وي(۴)

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايل چې يوه ورځ زه د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سره د باندې ووتلم او په روانه روانه کې حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يو باغ ته ورننوت او زه له باغ څخه د باندې پاتې شوم، هغه په باغ کې دننه وو او زما او د هغه تر مينځه هم يو دېوال وو ما واورېدل چې هغه خپل ځان ته خطاب کولو کې ويل اې اميرالمؤمنين! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ته به د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه ضرور وېره کوې کنې الله رب العزت به تا ته عذاب درکوي.(۵)

---

۱: عند ابی نعیم ایضا واخرجه احمد ایضا الحدیث الاول عن حبیب نحوه کما فی صفة الصفوة ۲۵۸

۲: اخرجه ابن ابی الدنیا فی محاسبة النفس کذافی الکنز ۲/٦۲

۳: سورة الحاقه آیت ۱۸

٤: اخرجه ابن ابی الدنیا فی محاسبة النفس کذا فی الکنز ۲/٦۳

٥: اخرجه مالک وابن سعد وابن ابی الدنیا فی محاسبة النفس وابونعیم فی المعرفة وابن عساکر کذافی المنتخب ۴/۴۰۰

# د ژبې حفاظت او چُپ والي

سماک رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې ما د حضرت جابر بن سمره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه چې آيا تاسو به د رسول الله ﷺ په مجلس کې حاضرېدئ؟ وې فرمايل هو! او رسول الله ﷺ به اکثر وخت کې چُپ وو.(۱)

حضرت ابومالک اشجعي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د خپل پلار نه نقل کوي چې مونږ به د رسول الله ﷺ په مجلس کې حاضرېدو او په هغه وخت کې مونږ ځوانان هلکان وو ما د رسول الله ﷺ نه زيات خاموش بل څوک نه دي ليدلی چې کله به د آنحضرت ﷺ صحابه وو پخپل مينځ کې خبرې اترې کولې او ډېرې زياتې خبرې به يې کولې نو رسول الله ﷺ به اورېدلې او مسکی کېدلو به.(۲)

حضرت عباده بن صامت رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايلي دي چې يو ځل رسول الله ﷺ بيرون را ووت او پخپله سورلۍ باندې سور شو او روان شو د هغوی ﷺ صحابه وو هم د هغوی سره وو په هغوی کې هيڅوک هم د رسول الله ﷺ نه مخکې نه تلو حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه د الله رب العزت نه دعا کوم چې هغه زمونږ د مرګ وخت ستاسو د وفات د ورځې نه مخکې کړي الله رب العزت دې مونږ ته ستاسو د وفات هغه ورځ اونه ښائي خو که چېرې هغه ورځ مونږ اوليده نو بيا به مونږ تاسو نه پس کوم عملونه کوو؟ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما مور پلار دې په تاسو قربان وي مونږ به جهاد في سبيل الله کوو رسول الله ﷺ وفرمايل چې جهاد في سبيل الله خو ډېر ښه دی او د خلکو د دې عادت هم دی خو د دې نه هم زيات نفس لره په قابو کې راوستونکی عمل شته حضرت معاذ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ووېل چې رژوه او صدقه دي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل چې روژه او صدقه خو ډېر ښه عملونه دي او د خلکو د دې هم عادت دی خو د دې نه هم زيات د نفس لره په قابو کې روا وستونکی عمل شته نو حضرت معاذ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته چې څومره د خير عملونه معلوم وو په هغې کې يې د هر يو نوم واخيستلو رسول الله ﷺ به د هر يو په جواب کې دا فرمايلو چې د دې د خلکو عادت شته خو د دې نه هم زيات نفس لره قابو کونکی هم شته اخر معاذ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عرض وکړ اې د

---

۱: اخرجه احمد والطبراني قال الهيثمي ۱۰/۲۹۷ ورجال احمد رجال الصحيح غير شريک وهو ثقة واخرجه ابن سعد ۱/۳۷۲ عن سماک نحوه

۲: عن سماک نحوه.

الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله اد تولو خلکو د قابو کې راوستونکی عمل کوم یو دی؟ رسول الله ﷺ خپلې خولې خواته اشاره وکړه او وې فرمایل چې چپ اوسېدل او یوازې د خیر خبره کول، معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عرض وکړ چې کوم څه مونږ په ژبه وایو آیا په دې به مونږ نیول کېږو؟ رسول الله ﷺ د حضرت معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په پندی باندې لاس او وهلو او وې فرمایل چې ستا مور دې تا ورک کړي داسې یوه دوه جملې یې نورې هم و فرمایلې او وې فرمایل چې خلک به پر مخې په دوزخ کې د دوي د ژبو خبرې غورزوي څوک چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ او د قیامت په ورځ ایمان لري هغه له په کار دی چې د خیر خبرې کوي او د شر د خبرو نه چُپ اوسئ! تاسو د خیر خبرې کوئ! نو اجر او ثواب به په غنیمت کې بیا مومئ! او د شر نه چُپ اوسئ! د دواړو جهانونو افتونو نه به بچ شئ!.(۱)

## د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ چُپ والی

حضرت ابو هریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایل چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې یو سړی و وژلی شو نو یوې ښځې پرې په ژړا کې وویل های شهید کېدونکیه! رسول الله ﷺ وفرمایل چُپ شه! تا ته څنګه پته ولګېده چې هغه شهید دی؟ کېدی شي چې هغه بې فایدې خبرې کولې یا یې د داسې شیانو په خرچ کولو کې د کنجوسی نه کار اخیستو چې د هغې په خرچ کولو سره هغه ته د څه قسمه کمی نه راتلو.(۲)

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایل چې مونږ کې یو سړی د احد په غزا کې شهید شو او د لوږې د وجې نه د هغه په خېټه پورې یو کاڼي تړل شوی وو نو د هغه مور د هغه د مخ نه خاورې لرې کولې او وې ویل اې زما ځویه! تا ته دې جنت مبارک وي رسول الله ﷺ وفرمایل چې تا ته څنګه پته ولګېده چې دا جنتي دی کېدی شي چې دہ بې فایدې خبرې کړي وي یا یې داسې څه شي منع کړی وي چې د هغې په خرچ کولو کې تاوان نه وي.(۳)

حضرت خالد بن نُمیر رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې حضرت عمار بن یاسر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به ډېر خاموش، غمجن او بې قراره اوسېدو او عام طور باندې به یې فرمایل چې زه د الله رب العزت

---

۱: عند الطبرانی قال الهیثمی ۱۰/۲۹۸ وفیه ابراهیم بن زکریا العجلی وهو ضعیف انتهی

۲: اخرجه ابویعلی وفیه عصام بن طلیق وهو ضعیف کما قال الهیثمی ۱۰/۳۰۲

۳: عند ابی یعلی ایضا وفیه یحی بن یعلی الاسلمی وهو ضعیف کما قال الهیثمی واخرجه الترمذی عن انس مختصرا کما فی المشکاة

ازمېښت نه هم په هغه سره پناه غوارم.(۱)

حضرت ابو ادريس خولاني رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې زه د دمشق مسجد ته ننوتلم نو ما هلته يو حضرت وليده چې د هغه مخامخ غابنونه ډېر پرقېدل او هغه ډېر زيات چُپ اوسېدونکی وو او هغه سره چې کوم خلک وو د هغوی دا کيفيت وو چې د هغوی به پخپلو کې څه معامله باندې اختلاف راغی نو دوی به هغه ته مخکې کوله او بيا به چې ده په دغه معامله کې کومه فيصله وکړه نو ټول به په هغې باندې مطمئن کېدل ما پوښتنه وکړه چې دا حضرت څوک دی؟ خلکو وويل چې دا حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دی.(۲)

اسلم رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې يو کرت حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خواته ورښکاره شو او وې کتل نو هغوی خپله ژبه راښکله حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې اې د رسول الله ﷺ خليفه! تاسو څه کوئ؟ حضر ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې هم دې ژبې خو زه د تباهۍ په ځايونو باندې ودولی يم! رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې د بدن هر اندام د ژبې د تېزۍ شکايت کوي.(۳)

حضرت ابو وائل رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عبدالله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يو ځل د صفا په غر باندې او ختلو او ژبه يې ونيوله او وې ويل چې اې ژبې! د خير خبره کوه! غنيمت به حاصل کړې بده خبره مه کوه بلکې چُپ اوسه! نو د پښېماتتيا نه به بچ شې! او په سلامتيا کې به پاتې شې! ما د رسول الله ﷺ نه اورېدلي دي چې د بنيادم اکثر خطاګانې د هغه د ژبې نه کېږي.(۴)

حضرت سعيد جريري رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې يو سړی دا قصه وا وروله چې ما حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وليده چې هغه د خپلې ژبې سر نيولی وو او ويل يې ته تباه شې! د خير خبره کوه غنيمت به حاصل کړې! بده خبره مه کوه بلکې چُپ اوسه! او په سلامتيا کې به اوسې! يو سړي پوښتنه ترې وکړه چې اې ابن عباسه! څه خبره ده؟ زه وينم چې تا د خپلې ژبې سر نيولی دی او داسې خبرې کوې وې فرمايل چې ما ته دا خبره رارسېدلې ده چې بنده ته به

---

۱: اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۱۴۲

۲: اخرجه الحاكم ۳/۲٦۹

۳: اخرجه ابويعلي قال الهيثمي ۱۰/۳۰۲ رجاله رجال الصحيح غير موسى بن محمد بن حسان وقدوثقة ابن حبان اه واخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۳۳ عن اسلم مختصرا.

٤: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ۱۰/۳۰۰ رجاله رجال الصحيح

په قيامت کې خپلې ژبې ته څومره غصه راځي دومره به په بل شي باندې نه راځي.(۱)

حضرت ثابت بناني رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت شداد بن اوس رَحِمَهُ اللهُ يوه ورځ خپل يو ملګري ته وويل دسترخوان راوړه دې لپاره چې مونږ په هغې کې مشغول شو نو د هغه يو بل ملګري وويل چې د کله نه ما ستاسو صحبت اختيار کړی دی ما تاسو نه داسې خبرې چېرته نه دي اورېدلي هغوی وويل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! بس دا يوه خبره زما د ژبې نه اچانک اووتله کنې زه چې د کله نه د رسول الله ﷺ نه جدا شوی يم همېشه زما د ژبې نه د پوهې والا خبره وتلې ده يعنې همېشه سوچ فکره سره خبره کوم بس هم نن خطا شوم ائينده به داسې نه وي.(۲)

حضرت سليمان بن موسی رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت شداد بن اوس يوه ورځ وويل چې دسترخوان راوړی دې لپاره چې مونږ هم د هغې سره لوبې وکړو نو ملګرو په هغه باندې اعتراض وکړ او داسې يې وويل چې حضرت ابويعلی (دا د حضرت شدا کنيت دی) ته اوګورئ! نن د هغه د ژبې نه څنګه خبره اووتله هغه وفرمايل اې زما ورېرونو! د کله نه چې ما د رسول الله ﷺ نه بيعت کړی دی همېشه ما سوچ فکر سره د پوهې خبره کړې ده بس هم دا يوه خبره مې ناڅاپه وکړه يعنې زه خطا شوی يم دا خبره پرېږدئ! او تاسو د دېنه بنه خبره واخلئ! او هغه دا دعا ده اې الله جَلَّ جَلَالُهُ مونږ ستا نه په هر کار کې جلتي نه کول او ثابت قدمي غواړو او رشد وهدايت باندې پوخ والی غواړو او ستا د نعمتونو شکر اداء کولو او په بنه شان عبادت کولو توفيق غواړو او ستا نه قلب سليم او رېښتونې ژبه غواړو او د هغه له شرونو نه پناه غواړم چې تا ته معلوم دي دا دعا زما نه واخلئ! او هغه خبره چې ناڅاپه وتلې ده هغه پرېږدئ! (۳)

بيا ابونعيم په بل سند سره د دې په څېر روايت کړی دی چې په هغې کې دا دی چې کومه خبره چې زما د ژبې نه وتلې ده تاسو هغه ياده مه ساتئ! بلکې اوس چې زه تاسو ته کومه خبره کوم هغه ياده کړئ! او هغه دا ده چې ما د رسول الله ﷺ نه دا فرمان اورېدلی دی چې کله خلک د سرو او سپينو زور خزانو جمع کول شروع کړي نو تاسو دا کلمات خزانه جوړه کړي يعنې دا په کثرت سره وايئ! چې اې الله! زه ستا نه په هر کار کې استقامت او رشد او

---

۱: اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۳۲۸

۲: اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۲۶۵

۳: عند ابی نعيم كذا رواه سليمان بن موسی موقوفا رواه احسان بن عطية عن شداد بن اوس مرفوعا.

هدايت باندې پوخوالی غوارم بيا يې د تېر شوي حديث پشان الفاظ ذکر کړل او دا دعا يې هم زيات ذکر کړه او تا ته چې زما څومره ګناهونه معلوم دي زه ستا نه د هغې ټولو ګناهونو بخښنه غوارم بېشکه هم ته د غيب په ټولو خبرو باندې پوهېدونکی يې ! (١)

حضرت عيسى بن عقبه رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې په هغه ذات مې دې قسم وي چې د هغه نه سوا بل څوک د عبادت مستحق نشته د زمکې په سر هيڅ داسې څه شی نشته چې د هغه د ژبې نه زيات د عمري قيد ضرورت لري.(٢)

حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې زه تاسو د بې کاره خبرو کولو نه وېرېږم! او د ضرورت په اندازه کې خبرې کول ستاسو لپاره کافي دی.(٣)

حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايلي دي چې د قيامت په ورځ به د ټولو نه زيات ګناهونه د هغه خلکو وي چې په دنيا کې به ې ځايه بحث مباحثه کوي.(٤)

حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايل چې ژبه د ټول بدن د اصلاح بنياد دی کله چې ژبه صحيح شي نو ټول اندامونه صحيح کېږي او چې کله ژبه بې قابو شي نو ټول اندامونه بې قابو کېږي.(٥)

د ابن ابي الدنيا په يو روايت کې دا دی چې خپل شخصيت پټ وساته! بيا ستا ذکر نشي کېدی او ته به د ورانېدو نه بچ نه شي او خاموشي اختيا کړه ته به سلامتيا کې اوسې!

په يو روايت کې دا دی چې خاموشي جنت خواته رابلونکې ده په يو روايت کې د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا شعرونه نقل کوي:

لا تفش سرک الا اليک

فان لکل نصيح نصيحا

ترجمه: خپل راز خپل ځان سره محفوظ اوساته بل ته يې مه ښکاره کوه! ځکه چې د هر خير خواه لپاره څوک نه څوک خير خواه وي.

---

١: واخرجه ابونعيم ايضا ١/٢٦٦ من طريق ابی الاشعث الضعانی وغيره مرفوعا نحوه واخرجه احمد من طريق حسان بن عطية عن شداد نحوه کما فی التفسير لابن کثير ٢/٣٥١

٢: اخرجه ابونعيم فی الحلية ١/١٣٤ واخرجه الطبراني نحوه باسانيد ورجالها ثقات کما قال الهيثمی ١٠/٣٠٢

٣: عند الطبرانی ايضا وفيه المسعردي وقد اختلط کما قال الهيثمی

٤: عند الطبرانی ايضا ورجاله ثقات کما قال الهيثمی

٥: اخرجه ابن ابی الدنيا

فاني رايت غُراة الرجال

لايدعون اديما صحيحا

ځکه چې ما ګمراه انسانان ليدلي دي چې هغوی هيڅ يو کس بې داغه صحيح نه پرېږدي.(۱)

حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايل چې څرنګه تاسو خلک خبرې کول زده کوئ! هم دغسې خاموش اوسېدل هم ايزده کړئ! ځکه چې خاموشه اوسېدل ډېر لوي صبر دي او تاسو ته د خبرو نه زيات د اورېدو شوق په کار دی او کله هم بې فايدې خبرې مه کوئ! د خندا د خبرې نه پرته خواه مخواه مه خاندئ! او بې ضرورته يو ځائ ته مه ځئ! (۲)

حضرت ابو الدراء رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايل چې د مؤمن په بدن کې هيڅ يو اندام الله رب العزت ته د هغه ژبې نه زيات خوښ نه دی د دې په وجه به هغه په جنت کې داخلوي او د کافرانو په بدن کې هيڅ يو اندام الله رب العزت ته د هغه ژبې نه زيات ناخوښه نه دی هم د دې په وجه به الله پاک هغه دوزخ ته داخلوي.(۳)

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايل چې بنده به د ټولو نه زيات چې د کوم اندام د پاکولو ضرورت دي هغه د هغه ژبه ده.(۴)

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايل چې هيڅ يو بنده تر هغه وخت پورې پرهېزګار نشي جوړېدی تر څو پورې چې هغه د خپلې ژبې حفاظت ونکړي.(۵)

# خبرې اترې

## د رسول الله ﷺ خبرې اترې

په بخاري شريف کې د حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا روايت دی چې د رسول الله ﷺ خبرې اترې به داسې واضح اطمينان سره وې چې که چېرې چا د هغه الفاظ شمېرل غوښتل نو شمېرلی يې شول په بخاري کې د حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا په بل روايت کې دا دی چې زه

---

۱: كذا في كنز العمال ۲/۱۵۸

۲: اخرجه ابن العساكر كذا في الكنز ۲/۱۵۹

۳: عند ابي نعيم في الحلية ۱/۲۲۰

٤: ابن سعد ۷/۲۲

٥: ابن سعد ۷/۲۲

تاسو ته د حیراتتیا خبره او نه ښایم! چې ابو فلان راغی او زما د کمرې سره نزدې کښناسته او د رسول الله ﷺ احادیث یې دومره په اوچت آواز سره بیانول شروع کړل چې ما هم اوریدل ما نفل لمونځ کولو او هغه زما د لمونځ ختمېدو نه مخکې پاڅېدو او لاړو که چېرې هغه ما ته ملاو شوی وای نو ما به د هغه تردید کړی وای او هغه ته به مې ښودلی وای چې رسول الله ﷺ پرله پسې خبرې اترې نه کولې دا روایت د امام احمد، مسلم او ابوداود هم ذکر کړی دی او د هغې په شروع کې دا دي چې حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وفرمایل آیا زه تاسو ته د ابوهریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عجیبه خبره او نه ښایم؟ بیا یې مخکې د تېر شوی حدیث پشان مضمون ذکر کړی دی امام احمد او ابوداود د عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا دا روایت ذکر کوي چې د رسول الله ﷺ د خبرو اترو هر مضمون به د بل نه جدا وو او هر یو کس به د رسول الله ﷺ په خبرو پوهېدل پرله پسې زر زر خبره به یې نه فرمایله حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یا حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې د رسول الله ﷺ خبرې اترې به واضحه حروفونو سره وې یا هر الفاظ به جدا جدا وو او په هغې کې به جلتي نه وه امام احمد او بخاري د حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روایت کوي چې رسول الله ﷺ به کله څه اهمه خبره فرمایله نو هغه به یې درې ځله کوله کله به چې یو قوم ته ورغلو او سلام به یې کولو نو درې ځله به یې کولو امام احمد د حضرت ثمامه بن انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روایت کوي چې کله به حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ څه خبره کوله نو هغه به یې درې ځله کوله او هغه به دا ویل چې رسول الله ﷺ به هم کله څه اهمه خبره فرمایله نو هغه به یې درې ځله کوله او اجازت به یې هم درې ځل غوښتلو ترمذي کې حضرت ثمامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایل چې کله به رسول الله ﷺ څه اهمه خبره فرمایله نو هغه به یې درې ځله فرمایله دې لپاره چې په ښه شان په پوه کې راشي.(۱)

امام احمد او بخاري د حضرت ابوهریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه دا روایت کوي چې ما د رسول الله ﷺ نه دا فرمان واورېدو چې زه جامع کلماتو سره رالیږلی شوی یم چې د هغې الفاظ لږ او معني زیاتې دي او د رُعب په ذریعه زما امداد کړی شوی دی یو ځل زه اوده ووم نو د زمکو خزانو کنجیانې ما ته راکړی شوې او زما په لاس کې کېښودل شوې حضرت عبدالله بن سلام رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایل چې کله به رسول الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په ناسته خبره کوله نو د الله رب العزت په محبت او د وحې په

---

۱: ثم قال الترمذی حسن صحیح غریب

انتظار کې به یې بار بار نظر اسمان ته او چتولو.(۱)

حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې رسول الله ﷺ به په قوم کې بدترین سړی خواته هم د زړه ساتلو خیال سره پوره متوجه کېدو او خبره به یې ورسره کوله چې له هغې وجې به هغه ته د خپل خصوصیت خیال راتلو لکه پخپله زما خواته هم د رسول الله ﷺ لوی توجهات او د کلام رخ ډېر زیات وو تردې چې زما دا خیال راغی چې زه په قوم کې غوره سړی یم په دې وجه رسول الله ﷺ د ټولو نه زیاته توجه فرمایل ما هم په دې خیال سره یوه ورځ پوښتنه وکړه اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه غوره یم! یا ابوبکر؟ رسول الله ﷺ وفرمایل ابوبکر! بیا ما پوښتنه وکړه چې زه غوره یم یا عمر؟ رسول الله ﷺ وفرمایل عمر! بیا ما پوښتنه وکړه چې زه غوره یم! یا عثمان؟ رسول الله ﷺ وفرمایل چې عثمان! چې کله ما د رسول الله ﷺ نه صفا صفا پوښتنې وکړلې نو رسول الله ﷺ پرته د رعایت نه صحیح اوښودل زما په رعایت کې یې ما ته غوره اونه ویلو زه په دې حرکت باندې بیا وروسته پښېمانه شوم او ډېره ارزو مې وکړه چې ارمان! ما د رسول الله ﷺ نه دا پوښتنه نه وای کړې!(۲)

# خندل او مسکی کېدل

## د رسول الله ﷺ خندل او مسکی کېدل:

په بخاري شریف او مسلم کې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا روایت دی چې ما کله هم رسول الله ﷺ دومره په زوره خندېدونکی نه دی لیدلی چې د هغوی جامې او حلقې ژبه په نظر راشي هغوی ﷺ خو به یوازې مسکی کېدو ترمذي کې د حضرت عبدالله بن حارث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دی چې ما څوک د رسول الله ﷺ نه زیات مسکی کېدونکی نه دی لیدلی په ترمذي کې هم د دغه حضرت عبدالله بن حارث دویم روایت دی چې د رسول الله ﷺ خندا هم مسکی کېدل وو د اخرت په معاملاتو کې خو به هغوی ﷺ نه خندل د دنیا په خبرو کې به یوازې مسکی کېدلو.(۳)

په مسلم کې دا روایت دی چې حضرت سماک بن حرب رَحِمَهُ اللهُ وایي چې ما د حضرت جابر

---

۱: عندابن اسحق وهکذا رواه ابوداود فی کتاب الادب من حدیث ابن اسحاق کذافی البدایة ۶/۴۰،۴۱

۲: اخرجه الترمذی فی الشمائل ۲۵ واخرجه الطبرانی عنه نحوه واسناده حسن کما قال الهیثمی ۹/۱۵ وقال فی الصحیح بعضه بغیر سیاقه.

۳: وقال الترمذی صحیح

بن سمره رَضِوَاللهُ عَنهُ نه پوښتنه وکړه چې آیا ته به د رسول اللهﷺ په مجلس کې کېناستلې؟ حضرت جابر رَضِوَاللهُ عَنهُ وویل ډېر! رسول اللهﷺ چې به د سهار لمونځ وکړ نو نمر ختلو پورې به په خپل ځای ناست وو چې کله به نمر راوختلو نو بیا به د هغه ځای نه پاڅېدو دغه وخت کې به صحابه وو خبرې کولې او کله به یې د جاهلیت زمانې څه خبره وکړه او خندل به یې! خو رسول اللهﷺ به مسکی کېدو په طیالسي کې د حضرت سماک دا روایت دی چې ما د حضرت جابر بن سمره رَضِوَاللهُ عَنهُ نه پوښتنه وکړه چې آیا تاسو به د رسول اللهﷺ په مجلس کې کېناستلئ؟ وې فرمایل هو! خو د رسول اللهﷺ خاموشي به ډېره زیاته وه او د هغوی ﷺ خندا به ډېره کمه وه د هغوی ﷺ صحابه وو به کله کله په خپل مینځ کې یو بل ته شعرونه اورول رسول اللهﷺ به هم کله کله څه جمله د هغوی د امورو په باره کې وفرمایل صحابه وو خو به خندل خو رسول اللهﷺ به اکثر مسکی کېدو.(۱)

حضرت حصین بن یزید کلبي رَضِوَاللهُ عَنهُ فرمایل چې ما رسول اللهﷺ کله هم په خندا نه دی لیدلی هغه به یوازې مسکی کېدو او کله به د زیاتې لوړې د وجې خېته پورې کانې هم وتړلو.(۲)

حضرت عمره رَحِمَهُ اللهُ وایي چې ما د حضرت عائشې رَضِوَاللهُ عَنهَا نه پوښتنه وکړه چې رسول اللهﷺ به کله په یوازېوالي کې د خپلو بیبیانو سره وو نو د رسول اللهﷺ به څه معمول وو؟ وې فرمایل چې ستاسو د سړو پشان د آنحضرتﷺ معمول وو خو دومره خبره ضروري ده چې په تاسو کې د ټولو نه زیات شریف، د ټولو نه زیات نرم، ډېر خندېدونکی او مسکی کېدونکی وو.(۳)

حضرت جابر رَضِوَاللهُ عَنهُ فرمایل چې کله به رسول اللهﷺ ته وحې راتله یا به یې بیان کولو نو ما به داسې محسوسوله چې رسول اللهﷺ یو داسې قوم وېروي چې په هغوی باندې د الله جَلَّ جَلَالُهُ عذاب راغلی دی او چې کله به دا حالت ختم شو نو ما به لیدل چې د رسول اللهﷺ مخ مبارک به د ټولو نه زیات تروتازه او د ټولو نه زیات مسکی کېدونکی او بدن یې

---

۱: کذافی البدایة ٦/٤٢،٤١ واخرجه ابن سعد ١/٣٧٢ عن سماک نحوه.

۲: اخرجه ابونعیم وابن عساکر کذافی الکنز ٤/٤٢ واخرجه ابن قانع عن الحصین نحوه ولم یذکر وربمنا شد الی اخر کمافی البدایة ٦/٤٠

۳: اخرجه الخرائطي و الحاکم کذافی الکنز ٤/٤٧ واخرجه ابن عساکر عن عمرة نحوه کما فی البدایة ٦/٤٤ واخرجه ابن سعد ١/٩١ بمعناه

د ټولو نه زیات ښکلي دی.(۱)

حضرت ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایل چې رسول الله ﷺ د ټولو نه زیات خندېدونکی او د ټولو نه زیات د ښه طبیعت والا وو.(۲)

حضرت عامر بن سعد رَحِمَهُ اللهُ وایي چې زما پلار حضرت سعد وفرمایل چې رسول الله ﷺ د غزوه خندق په ورځ دومره اوخندل چې په څه خبره یې خندل؟ حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنهُ وویل چې یو کافر ډال نیولی وو او زه ډېر ماهر غشي ویشتونکی ووم هغه به خپل ډال اخوا دېخوا کولو چې په هغې سره به یې خپل سر بچ کولو ګویا مقابله کې یې د حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنهُ غشي لګېدو ته نه پرېښودلو په داسې حال کې دا ډېر مشهور غشي ویشتونکی هم وو ما یو ځل غشي راوویستلو او هغه مې په لینده کې راښکلو او انتظار مې کولو څه وخت چې هغه د ډال نه سر اوچت کړنو فوراً مې داسې اوویشتلو چې د تندي نه یې اخوا دېخوا نه شو او فوراً راپرېوتلو او د هغه پښه هم را اوچته شوه په دې باندې رسول الله ﷺ دومره اوخندل چې غاښونه مبارکان یې ښکاره شول راوي وایي چې ما پوښتنه وکړه چې په دې کې په کومه خبره باندې رسول الله ﷺ دومره اوخندل؟ وې ویل چې سعد رَضِيَ اللهُ عَنهُ د هوښیارۍ کومه معامله دغه سړي سره وکړه په هغې باندې.(۳)

حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایل چې یو صاحب د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض یې وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه خو هلاک شوم ځکه چې ما د الله رب العزت حکم مات کړ ما په رمضان کې د خپلې بي بي سره کوروالي وکړ رسول الله ﷺ وفرمایل چې په کفاره کې یو غلام ازاد کړه هغه وویل چې ما سره خو غلام نشته دی رسول الله ﷺ وفرمایل چې دوه میاشتې مسلسل روژې اونیسه! هغه عرض وکړ چې دا زما په وس کې نشته رسول الله ﷺ وفرمایل چې شپیتو مسکینانو ته خوراک ورکړه هغه عرض وکړ ما سره د طعام ورکولو لپاره څه نشته لږ ساعت پس د رسول الله ﷺ په خدمت کې د کجورو د پاڼو نه جوړه شوې ټوکرۍ کې کجورې راغلې رسول الله ﷺ وفرمایل چې د هغې مسئلې پوښتنه کونکی چېرته دی؟ هغه راغی نو رسول الله ﷺ وفرمایل واخله دا کجورې

۱: اخرجه البزار قال الهیثمی ۹/۱۷ اسناده حسن

۲: عند الطبرانی وفیه علی بن یزیدالالهانی وهو ضعیف کما قال الهیثمی ۹/۱۷

۳: اخرجه الترمذی فی الشمائل ۱٦

صدقه کړه هغه وويل چې د ځان نه هم زيات فقير باندې صدقه کړم؟ په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! د مدينې دواړو طرفونو ته چې کوم کاڼيزن ميدانونه دي په هغې کې يو کور هم زمونږنه زيات فقير نه دي په دې باندې رسول الله ﷺ دومره اوخندل چې غاښونه مبارک يې ښکاره شول او ويې فرمايل ښه ده! چې کله ته دومره ضرور تمند يې! نو بيا هم ته دا په خپل کور والاوو باندې خرچ کړه بيا وروسته کفاره ورکړه.(۱)

حضرت ابوذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايل چې رسول الله ﷺ وفرمايل چې زه هغه سړی ښه پيژنم چې به اول د ټولو نه جنت ته داخل شي او د هغه نه هم خبريم چې به د ټولو نه اخر کې د جهنم نه راوېستلی شي د قيامت په ورځ به يو سړی د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې حاضر کړی شي د هغه لپاره به دا حکم وکړی شي چې ده ته دې د ده واړه ګناهونه مخکې کړی شي او لوی ګناهو نه دې پټ کړی شي چې کله ورته واړه واړه ګناهونه مخکې کړی شي چې په فلانی ورځ دې فلاني ګناهونه کړی وو نو هغه به اقرار کوي ځکه چې د انکار کولو به څه ګنجائش نه وي او هغه به د خپلو لويو ګناهونو په وېره کې وي بيا به دا حکم اوشي چې دلته په نظر نه راځي حضرت ابوذر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايل چې رسول الله ﷺ د هغه دا خبره نقل کړه نو دومره يې اوخندل چې د هغوی ﷺ غاښونه مبارک ښکاره شول.(۲)

حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايل چې رسول الله ﷺ ارشاد وفرمايلو چې زه هغه سړی پيژنم چې به د ټولو نه وروسته د جهنم نه راوځي د جهنم د عذاب د سختۍ د وجې نه به هغه نبغ نښي تلی، هغه ته به حکم وشي چې ځه! جنت ته داخل شه! هغه به هلته او ګوري چې خلکو په ټولو ځايونو باندې قبضه کړې ده ټول ځايونه ډک شوی دي نو واپس به راشي او عرض به وکړي چې اې زما ربه! خلکو خو ټول ځايونه نيولی دی ما لپاره خو اوس څه ځائ نه دی پاتې د هلته نه به ورته ارشاد وشي چې د دنيا هغه زمانه تا ته ياده ده چې په کومه کې ته وې؟ هغه به اووايي چې ښه راته ياده ده ارشاد به اوشي ښه ده څه ارزوګانې کوې؟ نو هغه به د ډېرو ارزوګانو اظهار وکړي د هلته نه به ورته ارشاد اوشي چې تا ته مې ستا ارزوګانې هم درکړې او د دنيا نه مې درته لس چنده زيات درکړل هغه به عرض وکړي چې ته خو د بادشاهانو بادشاه يې! او ماسره ټوکې کوې! حضرت عبدالله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايل

---

۱: اخرجه البخاری في صحيحه ۲/۸۹۹
۲: اخرجه الترمذی في الشمائل ۱۶

چې ما ولیدل چې رسول الله ﷺ دومره او خندل چې غاښونه مبارک یې ښکاره شول.(١)

# سنجیده ګي او وقار

**درسول الله ﷺ وقار:**

حضرت خارجه بن زید رَضِيَاللَّهُعَنْهُ فرمایل چې رسول الله ﷺ به په خپل مجلس کې د ټولو نه زیات وقار سره کېناسته د رسول الله ﷺ د بدن مبارک به څه حصه به بهر خلکو خواته خوره شوې نه وه.(٢)

**دحضرت معاذ بن جبل رَضِيَاللَّهُعَنْهُ وقار:**

حضرت شهر بن حوشب رَضِيَاللَّهُعَنْهُ فرمایل چې د رسول اله ﷺ صحابه وو به چې کله پخپلو کې خبرې اترې کولې او په هغوی کې به حضرت معاذ بن جبل رَضِيَاللَّهُعَنْهُ هم وو نو ټولو به ورته د رعب او هیبت په نظر سره کتل.(٣)

حضرت ابو مسلم خولاني رَحِمَهُاللَّهُ وايي چې زه د حمص یو مسجد ته لاړم نو ومې لیدل چې په هغې کې د رسول الله رَضِيَاللَّهُعَنْهُ د دېرشوتو کلونو عمر ته نزدې صحابه ناست دی هغوی کې یو ځوان د تورو سترګو والا وو او ځلېدونکو غاښونو والا هم ناست دی چې هغه بلکل خبرې نه کولې بلکې خاموش ناست وو چې کله به دغه خلکو په څه شي کې شک شو نو هغوی به دغه ځوان خواته متوجه شول او د هغه نه به یې پوښتنه کوله او د هغه په جواب کې به ټول مطمئن کېدل ما خپل نزدې ناست یوه ملګري نه پوښتنه وکړه چې دا څوک دی ؟ هغه وویل چې دا حضرت معاذ بن جبل رَضِيَاللَّهُعَنْهُ دی په دې سره د هغه محبت نور زما په زړه کې ننوتلو زه د دغه حضراتو سره ووم تر دې چې دغه حضرات اخوا دېخوا لاړل.(۴)

ابو مسلم خولاني رَحِمَهُاللَّهُ وايي چې د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَاللَّهُعَنْهُ د خلافت په شروع کې زه یوه ورځ د رسول الله ﷺ صحابه وو سره جمات ته لاړم په دغه ورځ صحابه د ټولو نه زیات تعداد کې هلته جمع شوي وو زه د ننه لاړم په یو مجلس کې کېناستم چې په هغې کې د دېرشو نه زیات صحابه رَضِيَاللَّهُعَنْهُمْ وو هغوی ټولو د رسول الله ﷺ نه حدیثونه بیانول په دغو

---

١: عند الترمذی ایضا

٢: اخرجه القاضی عیاض فی الشفاء واخرجه ابوداود فی المراسیل کما فی شرح الشفاء للخفاجی ٢/١١٧

٣: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ١/٢٣١

۴: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ١/٢٣١

خلکو کې يو قوي ، غنم رنګې، خوږو خبرو والا، ډېر زيات ښکلي ښايسته ځوان هم وو او په هغو ټولو کې د هغه عمر د ټولو نه کم وو چې کله به د دغو حضراتو په کوم حديث کې شک راغی نو هغه به يې دغه ځوان ته مخکې کولو بيا به هغه دغه حضراتو ته هغه حديث صحيح صحيح واورولو خو تر څو پورې چې به دغه حضراتو د هغه نه پوښتنه نه وه کړې نو هغه به دوي ته هيڅ حديث نه اورولو ما دهغه په خدمت کې عرض وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ بنده ! ته څوک يې ؟ نو وې فرمايل چې زه معاذ بن جبل يم !(۱)

## غصه خوړل (حوصله کول)

حضرت ابو برزه اسلمي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايل چې يو سړی د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره سختې خبرې وکړې نو ما عرض وکړ آيا زه د ده سټ نه الوزوم؟ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ما ته ديکه راکړه او وې فرمايل چې د رسول الله ﷺ نه پس په دې کار باندې د څټ الوزولو اختيار هيچا ته هم نشته.(۲)

حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې هيڅ يو بنده د غصې د ګوټ نه زيات غوره ګوټ د پيو يا د شاتو چېرې نه دي څښلي .(۳)

## غيرت او همت

**د حضرت ابي بن کعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ غيرت:**

حضرت ابي بن کعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايل چې يو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړ چې فلاني سړی د هغه د پلار بي بي ته ورځي چې د هغه مور نه ده ما ويل چې که چېرې ستا په ځای زه وای نو څټ به مې ورځخه الوزولی وای دا يې چې واورېدل نو رسول الله ﷺ اوخندل او وې فرمايل اې ابي! ته څومره غيرتمند يې ! خو زه تا نه زيات غيرت والا يم! او الله رب العزت زما نه هم زيات غيرتي دی.(۴)

**د حضرت سعد بن عباده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ غيرت:**

په بخاري او مسلم کې د حضرت مغيره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روايت دی چې حضرت سعد بن

---

۱: عند ابی نعيم ايضاً

۲: اخرجه الطيالسی واحمد الحميدی و ابوداود والترمذی وابويعلی وسعيد بن منصور وغيرهم کذافی الکنز ۲/۱٦۱

۳: اخرجه احمد فی الزهد کذافی الکنز

٤: اخرجه ابن عساکر فی المنتخب ۵/۱۳۲

عباده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل که چېرې ما څوک د خپلې بي بي سره لیدلی وای نو په توره به مې وژلی وای چې کله رسول الله ﷺ ته دا خبره اورسېدله نو آنحضرت ﷺ وفرمایل چې آیا تاسو د سعد په غیرت باندې حیرانتیا کوئ؟ په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه د سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه زیات غیرت والا یم! او الله جَلَّ جَلَالُهُ زما نه زیات غیرت والا دي. او هم د غیرت په وجه الله جَلَّ جَلَالُهُ ظاهري او باطني د بې حیایۍ کارونه حرام ګرځولي دي او عذر قبلول د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه زیات چاته محبوب نه دي له دې وجې نه الله جَلَّ جَلَالُهُ وېروونکي او زېرې ورکوونکي انبیاء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ را ولېږل! او خپل تعریف د الله رب العزت نه زیات د بل چا خوښ نه دی او د دې په وجه الله رب العزت دجنت وعده کړې ده چې په مسلم کې د حضرت ابوهریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا روایت دی چې حضرت سعد بن عباده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې که چېرې ما خپلې بي بي سره څوک سړی بیا موندو نو تر څو پورې چې زه څلور شاهدان پېش نکړم تر هغې به زه هغه ته څه نه وایم! رسول الله ﷺ وفرمایل او حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عرض وکړ چې هیڅ کله نه! په هغه ذات مې دې قسم وي چا چې تا ته حق درکړی دی او را لېږلی یې! زه خو به د دې نه مخکې مخکې د هغه کار ختموم! رسول الله ﷺ وفرمایل واورئ! ستاسو سردار څه وایي؟ دا ډېر غیرت والا دی خو زه د دې نه زیات غیرت والا یم او الله جَلَّ جَلَالُهُ زما نه زیات غیرت والا دی.(۱)

د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه یو اوږد حدیث په دې باره کې نقل دی په هغې کې دا دی چې صحابه وو عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو سعد ته هیڅ مه وایئ! دا ډېر غیرت والا دی هم د دغه غیرت په وجه دي همېشه د ځوانې ښځې سره واده کوي او کومې ښځې ته چې طلاق ورکوي په مونږ کې د هغې سره د واده کولو د چا همت نه وي حضرت سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زما یقین دی چې دا د څلورو ګواهانو راوستلو حکم حق دی او دا د الله جَلَّ جَلَالُهُ د طرفه دی خو زه په دې خبره حیرانېږم چې د یوې کمینه ښځې په پنډو باندې دې یو سړی خپلې پنډې اېښې وي او بدکاري به کوي او زه به د څلورو ګواهانو راوستلو پورې هغه ته څه نشم ویلای هغه به نشم لرې کولی په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! چې تر څو زه ګواهان را ولم دومره وخت کې به هغه خپل شهوت پوره کړې وي زه خو به

---

۱: کذافی المشکوة ۲۷۸

هغه هم هلته ختمو م!(۱)

**د حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنهَا غیرت او همت:**

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمایل چي رسول الله ﷺ یوه شپه زما د خوا نه پاڅېدو او بهر ته لاړو نو ما ته په دې ډېر غیرت راغی رسول الله ﷺ واپس راغی او زه چي په کومه پرېشانۍ کې ووم دغه حالت چي یې ولیده نو وې فرمایل اې عائشي رَضِيَ اللهُ عَنهَا په تا څه شوي دي؟ آیا تا له هم غیرت راغلی دی؟ ما عرض وکړ چي زما په شان محبوبه بي بي ته به ستاسو پشان عظیم خاوند باندې غیرت ولې نه راځي! رسول الله ﷺ وفرمایل په حقیقت کې دا خبره ده چي ستا شیطان تا ته راغی وو ما عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ما سره شیطان شته؟ وې فرمایل هو! ما پوښتنه وکړه اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو سره هم شیطان شته؟ رسول الله ﷺ وفرمایل خو د هغه په مقابله کې الله رب العزت زما امداد کړی دی چي له هغې وجې هغه مسلمان شوی دی یا دا چي زه د هغه د مکر او دوکې نه محفوظ اوسېږم! (۲)

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایل چي کله رسول الله ﷺ د حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنهَا واده وکړ نو زه ډېره پرېشانه شوم ځکه چي خلکو مونږ ته ویلي وو چي هغه ښایسته ده ما په څه بهانه سره پټه هغه ولیدله نو یقیناً په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! چي د هغې کوم ښایست او ښکلا ما ته ویلي شوي وو د هغې نه څو چنده ما ته په هغې کې په نظر راغلل بیا ما د هغې ذکر حضرت حفصې رَضِيَ اللهُ عَنهَا ته وکړ. د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا او حضرت حفصې رَضِيَ اللهُ عَنهَا په خپلو کې ډېر جوړ وو هغې وویل چي د غیرت په وجه هغه تا ته ډېره ښایسته ښکاره شوې ده کني دومره ښایسته نه ده څومره چي خلک وایي نو حضرت حفصه رَضِيَ اللهُ عَنهَا په پټه څه بهانه باندې لاړله او هغه یې ولیدله او ما له راغله او وې ویل چي په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ته چي څومره ښکلې یې ! هغه دومره ښایسته نه ده بلکې هغې ته نږدې هم نه ده البته ښایسته ضرور ده نو زه حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنهُ له بیا ورغلم او اومې کتله نو اوس هغه ما ته داسې په نظر راغله څنګه حضرت حفصې رَضِيَ اللهُ عَنهَا ویلي وو زما دې په ژوند قسم وې زه چونکه غیرت والا ووم په دې وجه ما ته په اول کرت کې هغه ډېره

۱: عند مسلم قال الهیثمی ۵/۱۲ رواه ابویعلی والسیاق له واحمد باختصار عنه ومدار علی بن منصور وهو ضعیف.
۲: اخرجه مسلم کذافی المشکوة ۲۸۰

ښایسته په نظر راغلې وه.(۱)

**د بې غیرته خلکو نه د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ انکار:**

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: آیا ماته ستاسو د ښځو خبر نه دی را رسیدلی چې، په بازارانو کې عجم کافران تنګوي آیا تاسو په غیرت کې نه راځئ؟ څوک چې په غیرت کې را نشي په هغه کې هیڅ خیر نشته(۲)

# امر بالمعروف او نهي عن المنكر

## د نیکۍ حکم کول او د بدۍ نه منع کول:

حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې یوه ورځ رسول الله ﷺ د ننه تشریف راوړو او دري ځله یې وفرمایل اې ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ! ما هم په جواب کې دري ځله عرض وکړ چې لبیک یارسول الله! بیا رسول الله ﷺ وفرمایل آیا تا ته پته شته؟ چې په خلکو کې د ټولو نه غوره څوک دی؟ ما عرض وکړ چې الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه رسول ښه پوهیږي رسول الله ﷺ وفرمایل چې په خلکو کې د ټولو نه غوره هغه دی چې د هغه عمل د ټولو نه ښه وي خو په شرط د دې چې هغه ته د دین پوهه حاصله وي بیا یې وفرمایل: اې ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ! ما عرض وکړ لبیک یا رسول الله! رسول الله ﷺ وفرمایل تا ته پته شته چې په خلکو کې د ټولو نه لوي عالم څوک دی؟ ما عرض وکړ چې الله او د هغه رسول ﷺ ښه پوهیږي رسول الله ﷺ وفرمایل په خلکو کې د ټولو نه لوي عالم هغه دي چې کله په خلکو کې اختلاف راشي نو هغه د حالاتو نه متاثر نه شي بلکې په دغه موقعه باندې د ټولو نه زیات نظر د هغه په حق باندې وي اګر چې هغه په عمل کې څه کم وي او اګر چې هغه په کناتو رابنکلي ګرځي زما نه مخکې چې کوم خلک وو د هغوی دوه اویا فرقې جوړې شوې وې په هغوی کې یوازې دریو فرقو ته نجات ملاو شو او باقي ټولې هلاکې شوې یوه خو هغه فرقه چې هغوی د بادشاهانو مقابله وکړه او د حضرت عیسی بن مریم د دین له وجې نه او د خپل دین د وجې نه یې هغه بادشاهانو سره جګړه وکړه بادشاهانو هغوی اونیول او مړه یې کړل په اړو سره یې اوڅیرل او دوه حصې یې کړل دویمه فرقه هغه وه چې په هغوی کې د

---

۱: اخرجه ابن سعد ۸/۹۴

۲: اخرجه السنة كذا فى الكنز ۲/۱٦۱

بادشاهانو سره د جګړې قوت نه وو او هغوی سره اوسېدل هغوی کې د الله تعالی او د حضرت عیسی بن مریم عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ د دین د دعوت ورکولو هم نه وو دا خلک مختلفو علاقو خواته او وتل او رهبانیت یې اختیار کړ هم د هغوی په باره کې الله رب العزت فرمایلي دي:

وَرَهْبَانِيَّةً ابْتَدَعُوهَا مَا كَتَبْنَاهَا عَلَيْهِمْ إِلَّا ابْتِغَاءَ رِضْوَانِ اللَّهِ(۱)

ترجمه: او هغوی رهبانیت په خپله اختیار کړ مونږ هغه په دوي باندې واجب کړی نه وو خو هغوی هغه د الله رب العزت د رضا لپاره اختیار کړی وو نو هغوی د هغې رهبانیت پوره رعایت ونکړ.

بیا رسول الله ﷺ وفرمایل چې څوک په ما باندې ایمان راوړی او زما تصدیق وکړي او زما تابعداري وکړي هغه به د دې رهبانیت پوره رعایت کونکی شمارلی شي او چې څوک تابعداري ونکړي دغه خلک تباه کېدونکي دي او په یو روایت کې دا دی چې یوه فرقه خو د ظالم بادشاهانو سره پاتې شوه او حضرت عیسی عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ دعوت به یې ورته کولو چې له هغې وجې هغوی اونیولی شول او مړه کړی شول او ورسره اوسیزلي شول په اور کې ژوندی وسوزولی شول هغوی ځان قرباني کړ خو د صبر لمن یې پرېنښودله مخکې د تېر شوی حدیث پشان مضمون دی (۲)

**څوک چې امر بالمعروف او نهي عن المنکر نه کوي:**

حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ فرمایل چې رسول الله ﷺ وفرمایل تاسو به د خپل د طرفه په یوه واضحه لاره باندې یئ! ترڅو چې په تاسو کې دوه نیشې پیدا نشي یوه د جهالت نشه او دویمه د ژوند د محبت نشه او تاسو به امر بالمعروف او نهي عن المنکر کوئ! او د الله په لاره کې به جهاد کوئ! خو چې کله د دنیا محبت په تاسو کې ښکاره شي نو بیا به تاسو امر بالمعروف او نهي عن المنکر نه شئ! کولی او د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لاره کې جهاد نه شئ کولی په دغه زمانه کې به د قرآن او حدیث بیانوونکي د هغه مهاجرینو او انصارو په شان وي کوم چې اول اسلام رواړی وو.(۳)

**په قیامت کې دهغه چا مقام چې په دنیا کې امربالمعروف اونهي عن المنکر کوي:**

حضرت انس رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ فرمایل چې آیا زه تاسو ته داسې خلک اونه ښایم چې کوم به نه

---

۱: سورة حدید آیت ۲۷

۲: اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ۷/۲۶۰ رواه الطبرانی باسنادین ورجال احد هما رجال الصحیح غیر بکیر بن معروف وثقه احمد وغیره وفیه ضعف انتهی

۳: اخرجه البزار قال الهیثمی ۷/۲۷۱ وفیه الحسن بن بشر وثقه ابو حاتم وغیره وفیه ضعف انتهی

نبیان وي او شهیدان خو هغوی ته به د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد دومره لوي مقام حاصل شي چې د قیامت په ورځ نبیان او شهیدان هغوی اووینې نو خوشحاله به شي او هغوی به د نور په خاص منبرونو باندې وي او پېژندلی به شي صحابه وو پوښتنه وکړه چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! هغه کوم خلک دي؟ وې فرمایل دا هغه خلک دي چې د الله بنده ګانو لره د الله جَلَّ جَلَالُهُ محبوب جوړوي او الله تعالی لره د هغه د بنده ګانو محبوب جوړوي او د خلکو خیرخواه جوړ شي په زمکه ګرځي ما عرض وکړ چې دا خبره خو په ذهن کې راځي چې هغوی به الله جَلَّ جَلَالُهُ لره د هغه د بنده ګانو محبوب جوړ کړي خو دا مې په ذهن کې نه راځي چې هغوی به د الله جَلَّ جَلَالُهُ بنده ګان د الله جَلَّ جَلَالُهُ محبوب څنګه جوړوي وې فرمایل چې دغه خلک به د الله جَلَّ جَلَالُهُ بنده ګانو ته د هغو کارونو حکمورکوي کوم کارونه چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ محبوب او خوښ دي دغه بنده ګان چې کله د هغوی خبره او مني نو د الله جَلَّ جَلَالُهُ د خوښې کارونه کول به شروع کړي نو دا بنده ګان به د الله رب العزت محبوب جوړ شي.(۱)

**څه وخت به دا امت امر بالمعروف اونهي عن المنکر ترک کوي:**

حضرت حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې ما د رسول الله ﷺ په خدمت کې عرض وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! امر بالمعروف او نهي عن المنکر د نېکو خلکو د عملونو سرداران دي دا دواړه به کله پرېښودلی شي؟ وې فرمایل چې کله تاسو کې هغه خرابیانې پیدا شي چې په بني اسرائیلو کې پیدا شوې وې وې فرمایل چې کله ستاسو نېکان خلک د دنیا د وجې نه د فاجرانو خلکو په مخکې دیني معاملاتو کې نرمي شروع کړي او دیني علم په بدترینو خلکو کې راشي او بادشاهي د کشرانو لاس ته راشي نو بیا به تاسو په دغه وخت کې زبردست فتنه کې اخته شئ! تاسو به فتنو خواته روان شئ! او فتنې به بار بار ستاسو خواته راځي.(۲)

حضرت قیس بن ابي حازم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې کله حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلیفه جوړ شو نو هغه په منبر کېناسته او د الله پاک د حمد او ثناء نه پس یې وفرمایل اې خلکو! تاسو

---

۱: اخرجه البیهقی والنقاش فی معجمه وابن النجار عن والد بن سلامة عن یزید الرقاشي وابوداود ویزید ضعیفان فان کذافی الکنز ۲/۱۳۹

۲: اخرجه الطبرانی فی الاوسط وفیه عمار بن سیف وثقه العجلي وغیره وضعفه جماعة وبقیة رجاله ثقات وفی بعضهم خلاف کما قال الهیثمی ۷/۲۷۶ واخرجه ایضا ابن عساکر وابن النجار عن انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وابن ابی الدنیا عن عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بمعناه کما فی الکنز ۲/۱۳۹

دا آيت لولئ!: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا عَلَيْكُمْ أَنفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُم مَّن ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ (۱)

ترجمه: اې ايمان والاوو! خپل فکر کوئ! چې کله تاسو صحيح لاره باندې روان يى! نو کوم کس چې گمراه شي نو دهغه د وجې نه تاسو ته څه نقصان نشته.

او د دې غلط مطلب اخلئ! ما د رسول الله ﷺ نه دا فرمان اورېدلى دى چې خلک يوه بدي اوويني او هغې کې تغير رانه ولي نو الله رب العزت به د بدى کوونکو او نه کوونکو ټولو ته سزا ورکړي کوونکو ته د کولو د وجې نه او نه کوونکو ته د نه بندولو د وجې نه.(۲)

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايل چې په کومه ورځ د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نوم خليفه د رسول الله ﷺ کېښودل شو يعنې هغه خليفه جوړ شو په هغه ورځ باندې هغوى په منبر باندې کېناسته او د الله جَلَّ جَلَالُهُ حمد او ثناء يې بيان کړه او په رسول الله ﷺ باندې يې درود وويل او بيا رسول الله ﷺ به چې په کوم ځائ کېناسته په منبر باندې دواړه لاسونه يې اوږده کړل او هلته يې کېښودل بيا يې وفرمايل چې رسول الله ﷺ دلته ناست وو ما ترې دا واورېدل چې هغه دا آيت کريمه (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا عَلَيْكُمْ أَنفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُم مَّن ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ) مطلب بيانولو هغوى ﷺ وفرمايل البته په کوم قوم کې چې بدکارونه کېږي او د بدو کارونو په ذريعه فساد خوروي او نه هغوى هغې لره بدل کړي او نه هغه بدې اوګڼي نو الله رب العزت هغې ټولو ته ضرور سزا ورکوي او د هغوى دعاګانې به نه قبلېږي بيا يې پخپلو دواړو غوږونو کې ګوتې ورکړې او وې فرمايل چې که چېرې زما دواړو غوږونو دا خبرې د حبيب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه نه واى اورېدلى نو زما دواړه غوږونه دې کاڼه شوي.(۳)

حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې کله څينې خلک د داسې خلکو په مخکې د ګناه کار کوي چې د هغوى نه زيات قوت وا با اثر وي او هغوى دغه کسان د دغې کارونو نه منع نه کړي نو هغوى ټولو باندې به الله رب العزت داسې عذاب نازل کړي چې به د هغوئ نه نه شي لرې کولى .(۴)

---

۱: سورة مائده آيت ۱۰۵

۲: اخرجه ابن ابى شيبة واحمد وعبد بن حميد والعدنى وابن منيع والحميدي و ابو بوداود والترمذى وقال حسن صحيح وابن ماجة ابويعلى وابونعيم فى المعرفه والدار قطنى فى العلل وقال جميع رواة ثقات والبيهقى و سعيد بن منصور وغيرهم.

۳: عند ابن مردويه كذافى الكنز العمال ۲/۱۲۸

٤: اخرجه ابن ابى شيبة وابوعبيد فى الغريب وابن ابى الدنيا فى الصمت كذافى الكنز ۲/۱۳۹

**مسلمانانو ته د امر بالمعروف په باره کې دحضرت عمر اوحضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا حکم:**

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې کله تاسو یو بې وقوف ووینئ! چې هغه د خلکو بې عزتي کوي نو تاسو په هغې باندې انکار ولې نه کوئ! خلکو وویل چې مونږ د هغه د بدګویي نه وېرېږو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل دا شان خو به تاسو د قیامت په ورځ د پیغمبرانو شاهدان جوړ نشئ!(١)

حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې امر بالمعروف او نهي عن المنکر کوئ! هسې نه چې وخت راشي او ستاسو بد خلک په تاسو باندې مقررشي او هغه بدو کسانو خلاف نېکان خلک بددعا کوي او هغه نه قبلیږي.(٢)

**د امربالمعروف اونهي عن المنکر په باره کې دحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ترغيب او تخويف:**

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې تاسو خلک د امر بالمعروف او نهي عن المنکر اهتمام کوئ! او الله رب العزت د دین لپاره کوشش کوئ! کني داسې خلک به په تاسو باندې مسلط کړی شي چې هغوی به تاسو ته دردناک عذاب درکړي او الله رب العزت به هغوی ته عذاب ورکوي.(٣)

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې تاسو خلک امر بالمعروف او نهي عن المنکر ضرور کوئ! کنې په تاسو باندې به ستاسو بد خلک مسلط کړی شي بیا که چېرې ستاسو نېکان خلک هم دعا غواړي نو قبلیږي به نه!.(٤)

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په یو بیان کې ارشاد وفرمایل چې اې خلکو !تاسو نه مخکې خلک د له دې وجې نه تباه شول چې هغوی به د ګناه کارونه کول او د هغوی رباني (الله والا علماء) علماوو او دیني پېشوایانو هغوی لره د دغه ګناه نه نه منع کول چې کله هغوی په ګناهونو کې د حد نه تېر شول او رباني علماوو او دیني پېشوایانو هغوی لره منع نه کړل نو اسماني سزاګانو هغوی لره اونیول له دې وجې نه تاسو خلک امر بالمعروف او نهي عن المنکر کوئ! کني تاسو باندې به هم سزاګانې نازلې شي چې په هغوی باندې نازلې شوې

١: اخرجه ابن ابی شیبة وابوعبید فی الغریب وابن ابی الدنیا فی الصمت کذافی االکنز ٢/١٣٩
٢: اخرجه ابن ابی شیبة کذافی الکنز ٢/١٣٩
٣: اخرجه ابن ابي شيبة
٤: عند الحارث

وي او د دې خبرې يقين اوساتئ! چې امر بالمعروف او نهي عن المنكر سره روزي نه ختمېږي او د مرګ وخت نزدې نه راځي.(۱)

حضرت علي رضي الله عنه فرمايل چې د جهاد درې قسمونه دي يو په لاس سره جهاد کول دويم په ژبه سره جهاد کول او دريم په زړه سره جهاد کول د ټولو نه اول به په لاس سره جهاد ختمېږي بيا به د ژبې والا جهاد ختمېږي بيا به د زړه والا کله چې د زړه والا حالت داسې شي چې هغه نېکي لره نيکي اونه ګڼي او بدي لره بدي اونه ګڼي نو هغه به پړمخې کولی شي يعنې د هغه پورتنی حصه لاندې کولی شي بيا د خير او نېکۍ جذبه به په هغه کې نه پاتې کېږي.(۲)

حضرت علي رضي الله عنه فرمايل چې د ټولو نه اول تاسو په لاس سره د جهاد په مخکې بې بسه او مغلوب شوئ! بيا د زړه والا جهاد په مخکې نو دارنګه د کوم زړه چې دا حالت شي چې هغه نېکۍ لره نيکي اونه ګڼي او بدۍ لره بدي اونه ګڼي نو د هغه پورتنۍ حصه به لاندې کولی شي څنګه چې تهيلۍ الټه کولی شي او بيا په تهيلۍ کې چې څه وي هغه ټول اوغورزېږي.(۳)

**د امر بالمعروف اونهي عن المنكر په باره کې د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اقوال:**

حضرت طارق بن شهاب رحمه الله وايي چې حضرت عتريس بن عرقوب شيباني د حضرت عبد الله رضي الله عنه په خدمت کې حاضر شو او وې ويل چې کوم سړی د نېکۍ حکم نه کوي او د بدو نه منع کول نه کوي هغه تباه شو حضرت عبد الله رضي الله عنه وفرمايل دا خو مخکې خبره ده هغه سړی هم تباه شو چې د چا زړه نېکۍ لره نېکي اونه ګڼي او بدۍ لره بدي اونه ګڼي(۴)

حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمايل چې درې قسمه انسانانو کې خو خير دي د دوي نه سوا په چا کې هم خير نشته يو هغه سړی چې هغه وګټل چې يو جمات د الله جل جلاله په لاره کې د دشمن سره جنګ کوي ده خپل مال او ځان واخيستل او هغوی سره په جګړه کې شريک شو دويم هغه سړی چې چا په ژبه سره جهاد وکړ او د نېکۍ حکم يې وکړ او د بدۍ

---

۱: عند ابن ابى حاتم عنه كذافى الكنز ۲/۱۳۹

۲: اخرجه مسدد والبيهقى وصححه

۳: عند ابن ابى شيبة وابى نعيم ونصر فى الحجة كذافى الكنز ۲/۱۳۹

٤: اخرجه الطبرانى قال الهيثمى ۷/۲۷۵ رجاله رجال الصحيح واخرجه ايضا ابونعيم فى الحلية ۱/۳۵ عن طارق مثله وابن ابى شيبة ونعيم فى الفتن عن ابن مسعود رضي الله عنه نحوه كما فى الكنز ۲/۱٤۰

نه يې منع وکړه دريم هغه سړی دی چې هغه په زړه سره حق اوپېژندو.(۱)

حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې منافقانو سره پخپل لاس سره جهاد وکړئ! خو که چېرې د هغې قوت نه وي او د هغوی په مخکې تندي ګنجې کولو سره د خپلې ناخوښی اظهار کولی شئ! نو بيا هم دا وکړئ!(۲)

حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې کله تاسو څوک په بدی کولوووينئ! او د هغې د بندولو او منع کولو په تاسو کې قوت نه وي نو ستاسو د نجات لپاره دومره کافي ده چې الله رب العزت ته معلومه شي چې تاسو دا بدي په زړه سره بدي ګڼئ! (۳)

حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې يو ځائ کې د الله رب العزت نافرماني کېږي او څوک سړی په دغه موقعه موجود وي خو هغه په زړه سره هغې لره بد ګڼي نو هغه به د هغه خلکو په شان ګڼلي شي چې د دغه نافرمانۍ په موقعه باندې موجود دارنګه که څوک د دې بدو کارونو په موقع موجود نۀو خو هغه په دغه نافرمانۍ باندې په زړه سره راضي وي نو هغه به د هغه خلکو په شان ګڼلی شي چې د دغه نافرمانۍ په موقعه باندې موجود وي.(۴)

حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې نزدې ده چې د هر بد کارونه به اوشي څوک چې د دغو کارونو په موقع باندې موجود نه وي خو په زړه سره په هغې خوشحاله وي نو هغه به د هغه خلکو په شان ګڼلي شي په کومه موقعه باندې چې هغه موجود وو خو په زړه سره يې هغه بد ګڼل نو هغه به د هغه سړی په شان شمارلي شي چې په موقعه باندې موجود نه وو.(۵)

حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې نېکان خلک به د دې دنيا نه اول ځي بيا به د شک والا باقي پاتې شي چې نه به نېکي نېکي ګڼي او نه به ګناه ګناه ګڼي.(٦)

**د امربالمعروف اونهي عن المنكر په باره كې دحضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان:**

حضرت ابو رقاد رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زه کم عمره هلک ووم چې يو ځل زه د خپل مالک سره د

---

۱: اخرجه الطبراني عنه بمعناقال الهيثمي ٧/٢٧٦ رواه الطبراني باسناد في احدهما شريک و هو حسن الحديث وبقية رجال الصحيح انتهى.

۲: اخرجه ابن عساكر كذافي الكنز ٢/١٤٠ واخرجه الطبراني عنه بمعناه قال الهيثمي ٧/٢٧٦ رواه الطبراني باسناد في احدهما شريک وهو حسن الحديث وبقية رجاله رجال الصحيح انتهى.

۳: اخرجه ابن ابي شيبة ونعيم كذافي الكنز ٢/١٤٠

٤: عند ابن ابي شيبة ونعيم ايضاً

٥: عند نعيم وابن النجار كذافي الكنز ٢/١٤٠

٦: اخرجه ابونعيم في الحلية ١/١٣٥ واخرجه الطبراني نحوه ورجاله رجال الصحيح كما قال الهيثمي ٧/٢٨٠

کور نه اووتلم او تلو تلو چې حضرت حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورسېدو هغوی وفرمایل چې یو سړی به د رسول الله ﷺ په زمانه کې یوه خبره کوله چې د هغې په وجه به هغه منافق کېدو او اوس زه اورم چې تاسو خلک هغه خبره په یو یو مجلس کې څلور څلور ځله وایې ګورئ! تاسو خلک امر بالمعروف او نهي عن المنکر ضرور کوئ! او د خیر د کارونو ضرور ترغیب ورکوئ! کنې الله جَلَّ جَلَالُهُ به تاسو ټول په عذاب کې تباه کړي بیا به په تاسو باندې ستاسو بد خلک امیران جوړ کړی شي او ستاسو نېکان خلک به دعا کوي خو هغه به ستاسو لپاره نه قبلیږي.(۱)

حضرت حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې الله رب العزت دې په هغه چا لعنت وکړي چې زمونږ نه دي په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! تاسو امر بالمعروف او نهي عن المنکر ضرور کوئ! کنې تاسو به په خپلو کې جګړې شروع کړئ! او ستاسو بد خلک به ستاسو په نېکانو خلکو باندې غالب شي او مړه به یې کړئ! بیا چې څوک امر بالمعروف او نهي عن المنکر کولو والا باقي پاتې نه شي بیا به الله پاک تاسو نه داسې ناراضه شي چې تاسو به د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه دعا غواړئ! خو هغه به ستاسو هیڅ دعا نه قبلوي.(۲)

حضرت حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې په تاسو باندې به یوه زمانه داسې راشي چې په هغې کې به ستاسو د ټولو نه بدترین سړی هغه ګڼلي شي چې امر بالمعروف او نهي عن المنکر نه کوي یعنې د خپلې اصلاح فکر به کوي د نورو خلکو اصلاح به نه کوي خو اوس لا هغه زمانه نه ده راغلې.(۳)

**په دې باره کې دحضرت عدي او حضرت ابودرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا بیان:**

حضرت عدي بن حاتم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې د هر کار نه داسې دي چې هغه به په مخکې زمانه کې بد ګڼلی شو خو هغه نن د نېکۍ کار ګڼلی شي او تاسو خلک به تر هغې پورې په خیر باندې یئ! څو پورې چې تاسو هغه کار نېکي او نه ګڼې چې تاسو بد ګڼله هغه کار بد او نه ګڼې چې تاسو نېکي ګڼله او تر څو پورې چې ستاسو عالم تاسو ته حق خبره کوي او دا سپکه نه ګڼي.(۴)

---

۱: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۲۷۹ واخرجه ابن ابی شیبة نحوه کما فی الکنز ۲/۱۴۰

۲: عند ابی نعیم فی الحلیة ۱/۲۷۹

۳: عند ابی نعیم ایضا ۱/۲۸۰ واخرجه ابن ابی شیبة عنه نحوه کما فی الکنز ۲/۱۴۰ واخرجه ابن ابی الدنیا فی کتاب الامر بالمعروف والنهی عن المنکر عن ابی سعید الخدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کما فی الکنز ۲/۱۴۰

٤: اخرجه ابن عساکر کذافی الکنز ۲/۱۴۱

حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل اګر چې زه په یوه نېکۍ عمل نه کوم خو چې زه نورو ته د دغه نېکۍ حکم کوم او ما ته په هغې باندې د اجر ملاوېدو امېد دی.(۱)

**حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او خپل اهل له منکراتو نه منع کول:**

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې کله به حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلکو لره د څه کار نه د منع کولو اراده کوله نو د خپل کور والاوو نه به یې شروع کوله او فرمایل به یې چې په تاسو کې د چا په باره کې ما ته پته ولګېده چې هغه هغه کار کړی دی چې د کوم نه ما منع کړی دی نو زه به هغه ته دوچنده سزا ورکوم.(۲)

حضرت ابن شهاب رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت هشام بن حکیم بن حزام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل ځان سره د خپلو خلکو جمات جوړ کړ او امر بالمعروف به یې کولو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته به چې کله د څه ګناه خبر ملاوېدو نو فرمایل به یې چې تر څو پورې زه او هشام ژوندي یو دا ګناه به نه کېږي.(۳)

**خپل خوی ته د حضرت عمیر بن حبیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وصیت:**

حضرت ابو جعفر خطمي رَحِمَهُ اللهُ وایي چې زما نیکه حضرت عمیر بن حبیب بن خماشه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د بالغ کېدو نه د رسول الله ﷺ صحبت حاصل شوی وو هغوی خپل ځوی ته دا وصیت وکړ اې ځویه! د بې وقوفانو د ناستې نه ځان اوساته! ځکه چې هغوی سره کېناستل بیماري ده څوک چې د بې وقوفه خبره برداشت کوي هغه خوشحالیږي او څوک چې د هغو د بدو خبرو جواب ورکوي هغه په اخر کې پښېمانه کیږي او څوک چې د بې وقوفانو لږ شان تکلیف نه برداشت کوي نو هغه بیا وروسته ډېر تکلیف برداشت کوي څوک چې امر بالمعروف او نهي عن المنکر کول غواړي نو هغه له په کار دي چې هغه خپل نفس لره په تکلیفونو باندې صبر کولو عادتي جوړ کړي او الله رب العزت نه ثواب حاصلیدو یقین ولري ځکه چې د چا د الله رب العزت نه د ثواب ملاوېدو یقین وي نو ده ته به تکلیفونو راتلو سره څه پرېشاني نه وي.(۴)

۱: اخرجه ابن عساکر کذافی الکنز ۲/۱۴۰ واخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۲۱۲
۲: اخرجه ابن سعد وابن عساکر کذافی الکنز ۲/۱۴۱
۳: اخرجه مالک وابن سعد کذافی الکنز ۲/۱۴۱
۴: اخرجه الطبرانی فی الاوسط ورجاله ثقات کما قال الهیثمی ۷/۲۶۶ واخرجه ایضا ابونعیم و احمد فی کتاب الزهد کما فی الاصابة ۳/۳۰

**د امر بالمعروف اونهي عن المنكر دترک نه دحضرت ابوبکرصدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوف:**

حضرت عبد العزیز بن ابي بکر رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت ابو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بنو غدانه قبيلې د يوې ښځې سره واده وکړ بيا هغه ښځه وفات شوه هغه د هغې ښځې جنازه وکړه او مقبرې ته يې يوړله د هغې ښځې رونړو وويل چې مونږ د دې د جنازې لمونځ کوو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل داسې مه کوئ! ځکه چې زه د دې د جنازې د لمونځ کولو تاسو نه زيات مستحق يم هغه رونړو يې وويل چې د رسول الله ﷺ صحابي صحيح خبره کوي نو هغه د جنازې لمونځ وکړ بيا هغه قبر ته ورکوزېدو نو خلکو ورله دومره په زوره ديکه ورکړه چې هغه په زمکه باندې راپرېوتلو او بې هوشه شو بيا هغه را اوچت کړی شو ي او کور ته راوستلی شو هلته د هغې شل زامنو او لونړو چغې جوړې کړې زه په هغه شلو کې د ټولو نه کشر ووم چې کله هغه په هوش کې راغی نو وې فرمايل چې تاسو په ما باندې په زوره مه ژاړئ! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ما ته د ابوبکر د ساه نه زيات د بل چا ساه وتل محبوبه نه دي دا چې مونږ واورېدل نو ټول اووېرېدلو او مونږ ووېل اې پلاره! ولې؟ تاسو د دنيا نه ولې تلل غواړئ؟ وې فرمايل چې ما ته د دې خبرې وېره ده چې چېرته زما په ژوند کې داسې زمانه رانشي چې په هغې کې امر بالمعروف او نهي عن المنکر ونکړی شم او په هغه زمانه کې څه خير نه وي.(۱)

حضرت علي بن زيد رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زه د حجاج سره په محل کې ووم هغه د ابن الشعث د وجې نه خلکو جائزه اخيستله چې په دې کې حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی چې کله هغه نزدې راغی نو حجاج وويل نعوذ بالله من ذالک اې خبيثه! اې په فتنو کې چکر لګوونکيه! ته کله د حضرت علي بن طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره يې کله د ابن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره او کله د اشعث سره. غور سره واوره! چې زه به تا داسې د بېخه اوباسم څنګه چې کوند وېستلي کېږي او زه به ستا څرمن داسې اوباسم چې د سمسارې څرمن اېستلي کېږي حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل الله دې د امير اصلاح وکړي چې هغه به دې کلام سره چا ته خطاب کوي حجاج وويل زه تا ته خطاب کوم الله دې ستا غوږونه کانړه کړي په دې باندې حضرت انس انا لله ووېل او د هغه ځائ نه بهر ته راغی او وې فرمايل که چېرې ما ته خپل بچي نه وي راياد

---

۱: اخرجه الطبراني ورجاله ثقات کما قال الهيثمي ۷/۲۸۰

شوي چې د هغوب په باره کې به ما ته د حجاج د طرفه خطره ده نو نن ما په ولاړه ولاړه هم دې ځای کې داسې صفا صفا خبرې اورولې واي چې ده به ما ته بلکل جواب نه وای راکړی.(۱)

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایل چې یو کرت ما د حجاج نه په خطبه کې واورېدل هغه داسې خبره وکړه چې ما ته بیخي بده په نظر راغله ما د هغه ټکول غوښتل خو ما ته بیا د رسول الله ﷺ ارشاد رایاد شو چې د یو مؤمن لپاره خپل ځان ذلیله کول مناسب نه دي ما عرض وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! مؤمن به خپل ځان څنګه ذلیل کوي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل چې هغه خپل ځان داسې امتحان لپاره مخکې کړي چې د هغې په هغه کې قوت نه وي.(۲)

## ګوشه نشیني او یوازېوالی

**په دې باره کې دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ قول:**

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل چې یوازې اوسېدو سره د خرابو ملګرو نه راحت ملاوېږي.(۳)

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل چې په خپلو وختونو کې خلوت او یوازې والي کې د ناستې لپاره هم حصه ساتئ!(۴)

حضرت معاذ بن عمران رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنهُ په څه داسې ملکو باندې تېر شو چې یو داسې سړی پسې روان وو چې هغه ته د الله جَلَّ جَلَالُهُ په څه معامله کې سزا ورکړل شوې وه نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل چې د هغه مخونو لپاره ښځ بخیر راغلې نشته چې یوازې د شر په موقعه په نظر راځي.(۵)

**ګوشه نشیني په باره کې دابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُ قول او په دې باره کې نوروته وصیت:**

حضرت عدسه طائي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زه په سرف نومي ځای کې ووم چې حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنهُ مونږ ته راغی زمونږ کورو الاوو څه شیان ما ته راکړل او هغه ته یې ولېږل مونږ د اوښانو د خدمت لپاره چې کوم غلام وو هغه د څلورو ورځو په مزل باندې لرې نه دا

---

(۱) اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ۷/۲۷۴ وعلی بن زید ضعیف وقد وثق.

(۲) اخرجه البزار قال الهیثمی ۷/۲۷۴ رواه البزار والطبرانی فی الاوسط والکبیر باختصار واسناد الطبرانی فی الکبیر جید رجاله رجال الصحیح غیر زکریا ابن یحی بن ایوب الضریر ذکره الخطیب وروی عنه جماعة ولم یتکلم فیه احد.

(۳) اخرجه ابن ابی شیبة واحمد فی الزهد وابن ابی الدنیا فی العزلة

(۴) عند احمد فی الزهد وابن حبان والعسکری فی المواعظ کذافی الکنز ۲/۱۴۹ واخرجه ابن المبارک فی کتاب الرقائق عن عمر نحوه کما فی فتح الباری ۱۱/۲٦۲

(۵) اخرجه الدینوری کذافی الکنز ۳/۱۵۹

مارغه راوړی دی حضرت عبدالله رَضِیَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې زما د زړه دا ارزو ده چې دا مارغه کوم ځای نه بنکار شوي روړلی شوی دی چې هلته یو ځایٔ او سېږم زه نه په څه معامله کې د چا سره څه خبره کوم او نه څوک ما سره خبره وکړي تر دې چې الله رب العزت سره ملاو شم.(۱)

حضرت قاسم رَحِمَهُ اللهُ وایي چې یو سړی د حضرت عبدالله بن مسعود رَضِیَ اللهُ عَنْهُ خپل ځوي ته حضرت عبیده ته درې وصیتونه وکړل وې فرمایل چې زه تا ته د الله رب العزت د وېرې وصیت کوم او ته هم خپل کور کې اوسه! او خپلو گناهونو باندې ژاړه.(۲)

**گوشه نشینی ته د حضرت حذیفه، حضرت ابن عباس، ابوالجهم او ابودرداء ترغیب:**

حضرت حذیفه رَضِیَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې زما د زړه ارزو دا ده چې ما ته یو داسې سړی ملاو شي چې زما کاروبار سنبال کړي او زه دروازه بنده کړم په کور کې اوسېږم نه څوک زما خوا له راځي او نه زه چا له ورځم تر دې چې زه هم په دغه حال کې الله رب العزت سره ملاو شم.(۳)

حضرت ابن عباس رَضِیَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې که چېرې د وسواس د شیطان وېره نه وای نو زه به داسې علاقې ته تللی وای چې هلته څوک پېژند گلو والا او زړه لگېدو والا نه وی او یوازې والی مې اختیار کړی وی ځکه چې انسان لره خراب انسان ورانوي.(۴)

حضرت مالک رَحِمَهُ اللهُ وایي چې ما د حضرت یحیي بن سعدي رَضِیَ اللهُ عَنْهُ نه دا فرمان واورېدو چې حضرت ابو الجهم بن حارث بن صمه رَضِیَ اللهُ عَنْهُ به د انصارو سره کېناسته چې کله به هغه ته د ځانله اوسېدو په باره کې چا تذکره کوله چې تاسو ځانله ولې اوسېږئ؟ نو فرمایل به یې چې د خلکو شر د ځان له اوسېدو نه زیات دی.(۵)

حضرت ابوالدرداء رَضِیَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې د مسلمان لپاره غوره عبادت گاه د هغه کور دی چې په هغې کې اوسېدو سره هغه خپل نفس، نظر او شرمگاه د بدو کارونو نه بند ساتي او په بازار کې د ناستې نه بچ اوسېږي ځکه چې په دې سره انسان په غفلت کې پرېوځي او په بې هوده کارونو کې مشغولېږي.(٦)

---

۱: اخرجه الطبرانی قال الهیثمی رجاله رجال الصحیح غیرعدسة الاطائي وهو ثقة واخرجه ابن عساكر بمعناه مختصرا عن ابن مسعود رَضِیَ اللهُ عَنْهُ كما في الكنز ۲/۱۵۹

۲: عند ابی نعیم فی الحلیة ۱/۱۳۵

۳: عندالطبرانی قال الهیثمی ۱/۲۹۹ رواه الطبرانی باسنادین ورجال احدهما رجال الصحیح انتهی.

٤: اخرجه الحاكم كذا فی الكنز ۲/۱۵۹ واخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۲۷۸ عنه نحوه.

٥: اخرجه ابن ابی الدنیا فی العزلة عن مالک عن رجل كذا فی الكنز ۲/۱۵۹

٦: اخرجه ابن عساكر كذافی الكنز ۲/۱۵۹

**حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او گوشه نشيني:**

حضرت عبدالله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې يو ځل زه د حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خوا کې تېر شوم نو هغه پخپله دروازه کې ولاړ وو او په لاس سره يې داسې اشارې کولې چې ګويا خپل ځان سره خبرې کوي ما عرض وکړ چې اې ابو عبدالرحمن! څه خبره ده؟ د الله دشمن يعنې شيطان ما هغه د کارونو نه منع کول غواړي چې د رسول الله ﷺ نه اورېدلې دي شيطان وايي چې ته به هم داشان په کور کې ناست يې! تول عمر به په کور کې تکليفونه تېروي او برداشت کوې! ته بېرون ته ولې نه راځې؟ چې خلکو سره کېنې! ما د رسول الله ﷺ نه اورېدلي دي چې کوم سړی د الله رب العزت په لاره کې او ځي هغه هم د الله پاک په ذمه وارۍ کې وي او څوک چې مدد کولو لپاره امام ته ورځي هغه هم د الله رب العزت ذمه دارۍ کې وي او څوک چې د مريض بيمار پرسۍ له ورځي هغه هم د الله رب العزت په ذمه دارۍ کې وي او څوک چې سهار او ماښام لپاره امام ته ورځي هغه هم الله تعالی په ذمه وارۍ کې وي د الله دشمن دا غواړي چې زه د کور نه بيرون ته او ځم او د خلکو په مجلس کې کېنم!(۱)

# قناعت او صبر

**قناعت ته د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ترغيب:**

حضرت عبدالله بن عبيد رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت احنف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وليده چې يو کميس يې اغوستی دی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ترې پوښتنه وکړه چې اې احنف! دا قميس دې په څو درهمه اخيستی دی؟ حضرت احنف ويل په دولس درهمه! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويل څو مره به ښه واي چې تا د شپږو درهمو کميس اخيستی وای او باقي شپږ درهمه دې چېرته د يو خير په کار کې لګولي واي چې کوم تا ته معلوم واي.(۲)

حضرت حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ابو موسی اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دا خط وليکلو چې په دنيا کې څومره روزي ملاوېږي ته په هغې باندې راضي اوسه او په هغې باندې صبر کوه ځکه چې رحمان خپلو بنده ګانو ته کمه زياته روزي ورکړې ده او دا شان الله پاک هر يو باندې ازمېښت کول غواړي چا ته يې چې روزي زياته

---

۱: اخرجه الطبرانى قال الهيثمى ۱۰/۳۰۴ رواه الطبرانى فى الاوسط والكبير نحوه باختصار والبزار ورجال الاحمد رجال الصحيح غير ابن لهيعة وحديثه حسن علي ضعفه.

۲: اخرجه ابن المبارک کذافى الكنز ۲/۱٦۱

ورکړي ده الله رب العزت کتل غواړي چې دا څنګه شکر اداء کوي او د الله جَلَّجَلَالُهُ اصل شکریه دا ده چې الله پاک کوم څه ورکړی دی هغه په هغه ځائ کې ولګوي چېرته چې الله رب العزت غواړي.(۱)

### د قناعت په باره کې دحضرت علي او سعدرَضِيَاللَّهُعَنْهُمَا وصیت او د علي قناعت:

حضرت ابو جعفر رَحِمَهُاللَّهُ وایي چې حضرت علي رَضِيَاللَّهُعَنْهُ یو کرت خرابې او اوچې کجوري اوخوړلې او اوبه یې ورپسې اوڅښلې بیا یې خپله خېټه باندې لاس راښکلو او ویې فرمایل چې څوک د هغه خېټه جهنم ته داخل کړي الله رب العزت د خپل رحمت نه لرې اوساتي. بیا یې دا شعر وویل:

فـإنك مهمـا تعط بطنــك سـؤله
و فرجـك نالا منتهـى الـذّم اجمعـا

ترجمه: ته چې د خپلې خېټې او شرمګاه څومره خواهش پوره کوې هغومره به دې دواړو ته د انتهایي درجې مذمت حاصلیږي.(۲)

حضرت شعبي رَحِمَهُاللَّهُ وایي چې حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَاللَّهُعَنْهُ وفرمایل چې اې د ادم ځویه! ته د نن ورځ فکر کوه او د صبا فکر مه کوه د جلتی. کولو ضرورت نشته ځکه چې که چېرې صبا ستا مرګ نه راځي نو د صبا روزي به تا ته خپله راځي او په دې نبه پوهه شه چې ته د خپل ضرورت نه زیات څومره مال ګټې هغه خو د نورو لپاره جمع کوې.(۳)

حضرت سعد رَضِيَاللَّهُعَنْهُ خپل ځوی ته وفرمایل چې اې ځویه! کله چې ته غنا یا مالداري حاصلول غواړې نو هغه به تا ته په قناعت سره ځواب ملاوېږي. ځکه چې په چا کې قناعت نه وي هغه ته چې څومره مال ملاو شي هغه غنا نه حاصلیږي!(۴)

## د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو رَضِيَاللَّهُعَنْهُمْ دنکاح طریقه

### د حضرت خدیجې رَضِيَاللَّهُعَنْهَا سره د آنحضرت ﷺ نکاح:

حضرت جابر بن سمره رَضِيَاللَّهُعَنْهُ یا یو بل صحابي رَضِيَاللَّهُعَنْهُ فرمایل چې رسول الله ﷺ به

---

۱: اخرجه ابن ابی الحاتم كذافی الكنز ۲/۱٦۱
۲: اخرجه العسکری كذافی الكنز ۲/۱٦۱
۳: عند الدینوری كذافی الكنز ۲/۱٦۱
٤: اخرجه ابن عساكر كذافی الكنز ۲/۱٦۱

چېلې څرولې بيا يې هغه پرېښودلې او اوښان به يې څرول رسول الله ﷺ او د هغوى شريكوال به اوښان په كرايه باندې وركول هغوى د حضرت خديجې رضي الله عنها خور ته اوښان په كرايه باندې وركړل كله چې هغوى سفر پوره كړ نو د دغه اوښانو څه كرايه د حضرت خديجې رضي الله عنها خور ته پاتې شوه د رسول الله ﷺ شريكوال به چې كله د حضرت خديجې رضي الله عنها خور ته كرايه غوښتلو لپاره تلو نو رسول الله ﷺ ته به يې ويل چې تاسو هم ما سره لاړ شئ! رسول الله ﷺ به فرمايل چې ته لاړه شه! ما ته خو حيا راځي يو ځل د رسول الله ﷺ شريكوال د غوښتلو لپاره لاړو نو د حضرت خديجې رضي الله عنها خور ترې پوښتنه وكړه چې ته يوازې قرض غوښتلو لپاره راغلى يې! محمد ﷺ چېرته دى؟ د رسول الله ﷺ شريكوال وويل چې ما خو ورته وويل چې راځه لاړ شو خو هغوى ﷺ وويل چې ما ته حيا راځي د حضرت خديجې رضي الله عنه خور وويل چې ما د رسول الله ﷺ نه زيات حيا والا او زيات پاكې لمنې والا او داسې او داسې سړى نه دى ليدلى. دا يې چې واورېدل د هغې خور د حضرت خديجې رضي الله عنها په زړه كې د رسول الله ﷺ محبت پيدا كړ نو حضرت خديجې رضي الله عنها رسول الله ﷺ ته پيغام ولېږلو او راوې غوښتلو او وې ويل چې تاسو زما پلار ته لاړ شئ! او هغه ته زما د نكاح پيغام وركړئ! رسول الله ﷺ وفرمايل چې ستا پلار مالداره سړى دى هغه به داسې ونكړي حضرت خديجې رضي الله عنها وويل چې تاسو لاړ شئ! او هغه سره ملاو شي او ورسره خبرې وكړئ! مخكې به خبره بيا زه برابره كړم چې كله هغه په نشه كې وي هغه وخت ورله ورشئ! نو رسول الله ﷺ هم دغسې وكړل هغه رسول الله ﷺ سره د خديجې رضي الله عنها واده وكړ صبا له چې هغه پخپل مجلس كې كېناسته نو چا ورته وويل چې تا ښه وكړل چې د خپلې لور خديجې رضي الله عنها سره دې د محمد ﷺ واده وكړ هغه وويل ولې هغه ته مال لور وركړې ده؟ خلكو ورته وويل: هو! د هغه ځاى نه پاڅېدو او حضرت خديجې رضي الله عنها ته ورغى او دا يې وويل چې خلک دا وايي چې ما ستا واده محمد ﷺ سره كړى دى حضرت خديجې رضي الله عنها وويل هو! صحيح ده او س تاسو خپله رايې غلطه مه ګڼئ! ځكه چې حضرت محمد ﷺ داسې او داسې د ہر ښه صفتونو والا دى حضرت خديجې رضي الله عنها زور لګولو اخر د هغوى پلار راضي شو بيا حضرت خديجې رضي الله عنها دوه اوقيې سپين زر يا سره زر رسول الله ﷺ ته اولېږل او عرض يې وكړ

چې يوه جوړه واخله او ما ته يې راولېږه او يو ګډ او فلانۍ فلانۍ شي واخله نو رسول الله ﷺ هم داسې وکړل.(۱)

په يو روايت کې دا دي چې حضرت خديجې رضي الله عنها ورته وويل چې جوړه واخله او زما پلار ته يې هديه کړه.(۲)

حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايل چې رسول الله ﷺ د حضرت خديجې رضي الله عنها سره د واده تذکره وکړه او د حضرت خديجې رضي الله عنها پلار د رسول الله ﷺ سره خديجې رضي الله عنها په واده باندې راضي نه وو. حضرت خديجې رضي الله عنها د طعام او څښاک انتظام وکړ او خپل او د قريشو څه کسان يې راوغوښتل نو هغه کسان راغلل طعام يې اوخوړلو او شراب يې اوڅښل تر دې چې ټول په شپه کې مست شول نو حضرت خديجې رضي الله عنها وويل چې حضرت محمد بن عبدالله ما ته د نکاح پيغام راکوي تاسو د هغه سره زما واده وکړئ! هغوی رسول الله ﷺ سره د خديجې رضي الله عنها واده وکړ په دې باندې حضرت خديجې رضي الله عنها خپل پلار ته د خلوق خوشبويي ولګوله او جوړه يې ورته واغوستله په هغه زمانه کې د واده په موقعه باندې پلار سره د داسې کولو رواج وو چې کله د هغه نه نشه لاړه نو هغه وکتل چې خلوق خوشبوئي يې لګولې وه او جوړه يې اغوستې وه نو وې ويل چې په ما څه شوي دي؟ دا څه دي؟ هغې وويل تاسو د حضرت محمد بن عبدالله سره زما واده کړی دی؟ هغه وويل ما د ابوطالب يتيم سره واده کړی دی؟ نه نه! زما دې په ژوند قسم وي نه! حضرت خديجې رضي الله عنها وويل چې تاسو له شرم کول په کار دي چې تاسو پخپله ځان د قريشو په نظر کې بې وقوف ثابتول غواړئ! خلکو ته بنودل غواړئ! چې تاسو په نشه کې وئ؟ نو هغې خپل پلار پوهولو تر دې چې هغه راضي شو.

حضرت نفيسه رضي الله عنه فرمايل چې حضرت خديجه رضي الله عنها بنت خويلد رضي الله عنه ډېره پوهه لرله نظر ساتونکې، قوي او شريفه ښځه وه الله جل جلاله هم د هغې سره د اکرام او د خير اراده وکړه هغه په هغه وخت کې په قريشو کې د ټولو نه غوره خاندان والا او د ټولو نه.

---

۱: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ۹/۲۲۲ رواه الطبراني والبزار ورجال الطبراني رجال الصحيح غير ابي خالد الوالبي وهو ثقة ورجال البزار ايضا الا ان شيخ احمد بن يحيى الصوفي ثقة الكنه ليس من رجال الصحيح وقال فيه قالت وانه غير مكره بدل سكره انتهى.

۲: عند احمد والطبراني ورجالها رجال الصحيح كما قال الهيثمي ۹/۲۲۰

زيات شرافت والا او د ټولو نه زياته مالداره وه د هغې د قوم هر سړی د هغې سره واده کولو، د هغې سره واده کولو لپاره د پر مال خرچ کولو لپاره تيار وو چې کله حضرت محمد د حضرت خديجې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا تجارتي قافله د ملک شام نه راوستله او واپس راغی نو حضرت خديجې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا زه د اندازې لګولو لپاره د رسول الله ﷺ خدمت کې اولیږلم! زه لاړم ما وويل اې محمده ﷺ تاسو واده ولې نه کوئ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل چې د واده کولو لپاره ما سره څه نشته. ما وويل که چیرې د واده د خرچې انتظام وکړی شي او تاسو ته بنايسته مالداره، شريفه او د جوړوالا ښځې سره د واده دعوت درکړی شي نو آيا تاسو به يې قبول نکړئ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل چې ښه ښځه څوک ده؟ ما وويل چې حضرت خديجه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا! رسول الله ﷺ وفرمايل چې زما به د هغې سره څنګه اراده اوشي؟ ما وويل چې د هغې زه ذمه واره يم! رسول الله ﷺ وفرمايل بيا زه تيار يم زه لاړم او حضرت خديجې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته مې وويل نو هغې رسول الله ﷺ ته پيغام اوليږلو چې په فلاني وخت کې راشئ! او خپل تره عمرو بن اسد ته يې پيغام اوليږلو چې هغه د دې واده وکړي نو هغه راغی او رسول الله ﷺ هم د خپلو ترونو سره راغی او يو تره يې د رسول الله ﷺ واده وکړ عمرو بن اسد وويل چې د داسې د جوړ خاوند دي چې د هغه نه انکار نشي کېدلی د دې واده په وخت کې د رسول الله ﷺ عمر پنځويشت کاله وو او د حضرت خديجې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عمر څلويښت کاله وو هغه د اصحاب فيل د واقعې نه پنځلس کاله مخکې پيدا شوې وه.

**له حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او حضرت سوده رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره د رسول الله ﷺ نکاح**

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايل چې کله حضرت خديجه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفات شوه نو هم په مکه کې د حضرت عثمان بن مظعون رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بي بي حضرت خوله بنت حکيم بن اوقص رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! آيا تاسو واده نه کوئ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل چا سره؟ هغې وويل چې که چیرې تاسو غواړئ! نو د پيغلې سره! او که غواړئ نو کونډې سره! رسول الله ﷺ وفرمايل چې پيغله څوک ده؟ هغې وويل چې د الله رب العزت په مخلوق کې تاسو ته چې څوک د ټولو نه زيات محبوب دی د هغه لور حضرت عائشه بنت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. رسول الله ﷺ وفرمايل چې کونډه څوک ده؟ هغې وويل چې حضرت سوده بنت زمعه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا. چې په تاسو يې ايمان راوړی دی او ستاسو د دين تابعداري

يې کړې ده رسول اللهﷺ وفرمايل چې بيـه ده لاړه شه! دواړو ته زما خبره وکړه حضرت خوله رَضِيَ اللهُ عَنهَا د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ کور ته لاړله! هلته زما مور حضرت ام رومان رَضِيَ اللهُ عَنهَا هغې سره ملاو شوه حضرت خوله رَضِيَ اللهُ عَنهَا وويل اې ام رومان! الله رب العزت څومره لوي خير او برکت تاسو ته درکول غواړي رسول الله زه د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا سره د واده پيغام ورکولو لپاره رالېږلې يم! حضرت ام رومان رَضِيَ اللهُ عَنهَا وويل چې زما خو خوښه ده خو ته د حضرت ابوبرک رَضِيَ اللهُ عَنهُ انتظار وکړه هغه اوس راځي نو چې کله حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ راغی نو حضرت خوله رَضِيَ اللهُ عَنهَا وويل اې ابوبکر! الله رب العزت څومره لوي خير او برکت تاسو ته درکول غواړي زه رسول اللهﷺ د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا سره د واده پيغام ورکولو لپاره رالېږلې يم! حضر ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وويل آيا عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا سره د رسول اللهﷺ واده کېداى شي؟ دا خو د هغوى ﷺ وريره ده حضرت خوله رَضِيَ اللهُ عَنهَا واپس لاړه او رسول اللهﷺ ته يې د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ دا خبره وکړه رسول اللهﷺ وفرمايل واپس لاړه شه! او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته دا خبره ته اووايه! چې ته خو په اسلام کې زما ورور يې او زه ستا ورور يم! دا دويني رشته نه ده له دې وجې نه ستا د لور ما سره واده کېداى شي حضرت خوله لاړه او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته يې وويل حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وويل چې رسول اللهﷺ راوغواړه رايې وله رسول اللهﷺ راغی نو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ور سره زما واده وکړ.(۱)

حضرت ابوسلمه رَحِمَهُ اللهُ او حضرت يحيي بن عبدالرحمن بن خاطب رَحِمَهُ اللهُ وايي چې رسول اللهﷺ حضرت خوله ته وفرمايل چې واپس لاړه شه! او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته اووايه چې زه ستا او ته زما اسلامي ورور يې او ستا د لور واده ما سره کېدى شي حضرت خوله رَضِيَ اللهُ عَنهَا وايي چې زه لاړم حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته مې د رسول اللهﷺ خبره وکړه هغه وويل چې لږ انتظار وکړه دا يې وويل او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ بهر ته لاړو حضرت ام رومان وويل چې مطعم بن عدي حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته د خپل ځوى جبير عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا لپاره پيغام ور کړى وو او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د مطعم سره وعده کړې وه او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ

---

۱: عند احمد فيما يحسب حماد اخرج الطبراني قال الهيثمي ٩/٢٢٥ رجاله رجال الصحيح غير محمد بن عمرو بن علقمه وهو حسن الحديث.

چېرې د خپلې وعدې خلاف نه کوي له دې وجې نه هغه مطعم سره خبرې کولو لپاره تللې وو نو هر کله چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مطعم ته ورسېده نو هغه سره د هغه ښځه ناسته وه چې د هغوی د ځوی جبیر مور وه د مطعم ښځې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته داسې خبره وکړه چې د هغې د وجې نه هغه وعده پوره کول د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ذمه پاتې نه شول چې یې مطعم سره کړې وه د هغې صورت داسې شو چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مطعم ته وویل چې ته د دې نجلۍ (حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا) معامله کې څه وایې ؟ مطعم خپلې بي بي خواته وکتل او وې ویل اې فلانۍ! تاسو څه وایئ؟ هغه حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خواته متوجه شوه او وې ویل که چېرې مونږ د دې ځوان واده ستا د لور سره وکړو نو شاید چې ته زور ولګوی او زما ځوی به ته پخپل دین کې داخل کړې! حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مطعم ته وویل چې ته څه وایې؟ هغه وویل چې دا څه وایې تاسو هغه اورئ! یعنې زما خبره هم دا ده ګویا دواړو انکار وکړ دا شان د دواړو په انکار کولو سره هغه وعده ختمه شوه چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مطعم سره کړې وه د هغه ځائ نه واپس راغی حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت خوله رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته وویل چې رسول الله ﷺ را اوغواړه! نو هغې رسول الله ﷺ راوغوښتلو او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رسول الله ﷺ سره د عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا واده وکړ هغه وخت د هغې عمر شپږ کاله وو بیا حضرت خوله حضرت سوده بنت زمعه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته ورغله او ورته یې وویل چې الله رب العزت څومره د خیر او برکت تا ته د درکولو اراده کړې ده حضرت سوده رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وویل هغه څنګه؟ حضرت خوله رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وویل چې رسول الله ﷺ زه رالېږلې یم! او تاسره د واده کولو پیغام یې را کړی دی حضرت سوده رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وویل چې زه خو غواړم زما پلار زمعه ته ورشه! او هغه سره خبره وکړه هغه ډېر بوډا او عمر یې زیات وو حج ته هم نشو تللې حضرت خوله رَضِيَ اللهُ عَنْهَا لاړه او هغه ته یې د جاهلیت په طریقه سلام وکړ زمعه پوښتنه وکړه چې دا ښځه څوک ده؟ حضرت خوله رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وویل خولة بنت حکیم! زمعه پوښتنه وکړه چې څه خبره ده؟ ته څنګه راغلې یې ؟ حضرت خوله رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وویل چې زه محمد بن عبدالله ﷺ رالېږلې یم! هغه د سوده سره واده کول غواړي زمعه وویل چې هغه خو ډېر ښه دی او د جوړ خاوند دي خو ستا ملګرې یعنې سوده څه وایي ؟ حضرت خوله رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وویل چې هغه هم غواړي زمعه وویل چې ښه ده حضرت محمد ﷺ ما ته را اغواړه! او ما ته یې راوله! نو رسول الله ﷺ زمعه ته

ورغی او زمعه رسول اللهﷺ سره د حضرت سودهرَضِيَ اللهُ عَنهَا واده وکړ د حضرت سودهرَضِيَ اللهُ عَنهَا ورور عبد بن زمعهرَضِيَ اللهُ عَنهُ چې د حج نه فارغ شو او کله مکې ته راغی نو هغه چې د دې واده خبر واورېدو نو په خپل سر باندې يې خاورې واچولې خو مسلمانېدو نه پس به يې ويل چې زه دېر بې وقوف ووم!

ما د نه دې وجې نه په سر باندې خاورې اچولې چې رسول اللهﷺ زما خور سوده بنت زمعه سره واده کړی وو حضرت عائشهرَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمايل چې بيا مونږ مدينې ته راغلو او د بنو حارث بن خزرج سُنح محله کې ايسار شو يوه ورځ رسول اللهﷺ زمونږ کور ته راغی د کجورو د دوو اونو په مينځ کې مونږ يو ټال اچولی وو زه په هغې باندې ځنګېدم زما مور زه د ټال نه راکوزه کړم زما د سر وېښته دېر واړه وو هغه يې صحيح کړل او په اوبو يې زما مخ اووينځلو بيا يې زه روانه کړم او په دروازه کې يې زه اودرولم! زه وارخطا شوي وم زه هلته ولاړه ووم تر دې چې زما ساه صورت صحيح شو بيا يې زه کمرې ته بوتلم ما وليدل چې رسول اللهﷺ زمونږ په کور کې په تخت باندې ناست دی او هغه سره د انصارو دېر سړی او ښځې ناستې دي زما مور زه په هغه کمره کې کېنولم بيا زما مور وويل چې دا ستا بي بي ده الله رب العزت دې ستا لپاره په دې کې او د دې لپاره په تاسو کې برکت نصيب کړی دی اوربېدو سره ټول سړي او ښځې اودرېدل او لاړل دا شان زما رخصتي وشوه او رسول اللهﷺ ما سره هم زمونږ په کور کې کوروالی وکړ او زما په واده باندې نه اوښ حلال کړی شو او نه څه چېلی! البته سعد بن عبادهرَضِيَ اللهُ عَنهُ د رسول اللهﷺ ته هغه لوښی را ولېږلو کوم چې د رسول اللهﷺ په خدمت کې د هغه بي بي کور ته لېږلو چې د کومې نمبر وو هغه وخت زما اووه کاله وو خو صحيح روايت دا دی چې هغه وخت کې د حضرت عائشهرَضِيَ اللهُ عَنهَا عمر نهه کاله وو.(۱)

**له حضرت حفصه بنت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ سره د رسول اللهﷺ نکاح**

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايل چې د حضرت حفصې رَضِيَ اللهُ عَنهَا واده اول د حضرت خنيس بن حذافه سهمي رَضِيَ اللهُ عَنهُ سره شوی وو هغه د بدر په غزا کې هم شريک شوی وو هغه په مدينه منوره کې وفات شو د هغه د وفات نه پس د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ، حضرت

---

(۱: اخرجه احمد قال الهيثمي ۹/۲۲۷ رواه احمد بعضه صرح فيه بالا تصال عن عائشه واكثره مرسل وفيه محمد بن عمرو بن علقمة وثقه غير واحد وبقية رجاله رجال الصحيح وفي الصحيح طرف منه انتهى.

عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ملاقات وشو نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل چې که چېرې ته غواړې نو زه به تا سره د حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا واده وکړم حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل چې زه به په دې باره کې لږ فکر وکړم څو ورځې پس حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې زما خو دا رایې ده چې زه واده ونکړم بیا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل که چېرې ته غواړې نو زه به تا سره د حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا واده وکړم حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چپ پاتې شو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د انکار نه زياته غصه ما ته د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خاموشۍ باندې راغله بيا څو ورځې پس رسول الله ﷺ حضرت حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره د نکاح کولو پيغام راکړ او ما د حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا واده د رسول الله ﷺ سره وکړ بيا حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ما سره ملاو شو او ما ته يې وويل چې څه وخت تا ما ته د حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره د واده کولو ويلي وو او ما تا ته د هغې څه جواب نه وو درکړی شايد چې ته به ما ته غصه شوی وې ما ورويل هو! حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل ما تا ته يوازې په دې وجه جواب نه وو درکړی چې ما ته معلوم وو چې رسول الله ﷺ حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره د واده کولو ذکر کړی دی او ما د رسول الله ﷺ راز ښکاره کول نه غوښتل که چېرې رسول الله ﷺ هغې سره واده نه کولی نو ما به ورسره کړی وای.(۱)

د ابن حبان په روايت کې زياته خبره دا ده چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې ما رسول الله ﷺ ته د عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شکايت وکړ چې زه هغه سره د حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا واده کول غواړم او هغه انکار کوي رسول الله ﷺ وفرمايل چې د حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا به د عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه غوره سړي سره واده اوشي او د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ واده به د حضرت حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه غوره ښځې سره اوشي نو رسول الله ﷺ د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ واده د خپلې لور سره وکړ او حضرت حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره يې پخپله واده وکړ.(۲)

**د حضرت ام سلمه بنت ابي اميه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره د پېغمبر ﷺ نکاح**

حضرت ام سلمة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايل چې کله زما عدت پوره شو نو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

(۱) اخرجه البخاري والنسائي كذافي جمع الفوائد ۱/۲۱۴
(۲) اخرجه ايضا احمد والبيهقي و ابو يعلى و ابن حبان كذافي المنتخب الكنز ۵/۱۲۰

ما ته د واده پیغام را اولیږلو ما ورته انکار وکړ بیا رسول الله ﷺ یو سړی د واده پیغام لپاره را اولیږلو ما هغه ته وویل چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسول ته اووایه! چې په ما کې غیرت زیات دی او زما بچي هم شته او دلته زما څوک سرپرست هم نشته هغه سړی لاړو او دا خبرې یې رسول الله ﷺ ته وکړې رسول الله ﷺ وفرمایل چې لاړ شه! ام سلمه ته اووایه! چې تا څه ویلي دي چې په ما کې غیرت ډېر زیات دی نو زه به د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه دعا اوغواړم دا د غیرت زیاتوالي به دې لاړ شي او تا چې کوم ویلي دي چې زما هم بچي دي نو ستا د بچو به هم انتظام اوشي او تا چې کوم ویلي وو چې زما سرپرست دلته نشته نو ستا څوک موجود یا غیر موجود به ما سره واده کولو باندې نه خفه کېږي هغه سړی لاړو او حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته یې دا ټولې خبرې وکړې په دې باندې حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا خپل ځوی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل چې پاڅه! او زما واده د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رسول سره وکړه! نو هغه زما واده د رسول الله ﷺ سره وکړ.(۱)

حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې کله زه مدینې منورې ته راغلم نو ما د مدینې والا وو ته وویل چې زه د ابو امیه بن مغیره لور یم خو هغوی زما دا خبره اونه منله بیا په هغوی کې څه خلک حج ته تلل نو هغوی وویل ایا ته خپل خاندان والا وو ته څه لیکې؟ نو ما هغوی ته خط لیکلی ورکړ چې کله هغوی حج وکړ او واپس مدینې منورې ته راغلل نو هغوی وویل چې دا صحیح وایي دې سره د مدینې والا وو په نظر کې زما عزت نور زیات شو چې کله زما زینب لور پیدا شوه او زما عدت پوره شو نو رسول الله ﷺ ما ته راغی او ما ته یې د واده پیغام راکړ نو ما وویل چې زما پشان د ښځې نکاح هم کېدی شي؟ زما عمر دومره زیات شوی دی چې اوس به زما څه اولاد نه کېږي او په ما کې غیرت ډېر دی او زما بچي هم دی رسول الله ﷺ وفرمایل زه ستا نه په عمر کې زیات یم او الله رب العزت به ستا غیرت لرې کړي او ستا بچي د الله رب العزت او د هغه رسول ﷺ ته حواله دي بیا زه راضي شوم او رسول الله ﷺ سره زما واده وشو بیا رسول الله ﷺ ما ته راغی او د شفقت په طریقه یې وفرمایل چې زینب چېرته ده؟ زینب را وله! د محبت د وجې نه یې زناب وفرمایل. یوه ورځ حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی او زینب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا یې په زور واخیستله او دا یې وویل چې د

---

۱: اخرجه النسائي بسند صحیح کذافي الاصابة ۴/۴۵۹ وجمع الفوائد ۱/۲۱۴

دې په وجه رسول الله ﷺ ته خپل ضرورت پوره کولو کې تکليف پېښيږي هغې ته يې ورکول، بيا رسول الله ﷺ راغی او وې فرمايل چې زناب چېرته ده؟ په دغه وخت کې زما خور حضرت قريبه بنت ابي اميه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا هم دغلته وه هغې وويل چې عمار ابن يـاسـر بوتله رسول الله ﷺ وفرمايل چې نن شپه به زه تاله راځم! ما د ځرمني يوه حصه را ووېستـه چې هغه به د مېچنې د لاندې کېښودل شوه چې اوره په هغې باندې پرېوځي او د منګي نه مې د اوربشو دانې راووېستلې او څه غوړي مې راووېستل او بيا مې په غوړو کې ملاو کړې رسول الله ﷺ لپاره مې حلوا يعني شيره تياره کړه نو هغه شپه رسول الله ﷺ ما سره تېره کړه او سهار يې وفرمايل چې ته پخپل خاندان کې د عزت والا يې ! که چېرې ته غواړې نو زه به د نمبر اووه شپې تا لپاره مقرر کړم خو دا خيال ساته چې ستا لپاره اووه شپې مقرر کړم نو نورو بيبيانو لپاره به هم اووه شپې مقرروم.(۱)

**له حضرت ام حبيبه بنت ابي سفيان رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره د آنحضرت ﷺ نکاح**

حضرت اسماعيل بن عمرو رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت ام حبيبه بنت ابي سفيان رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمايل چې زه به حبشه کې ووم ما ته هغه وخت پته ولګېده چې کله د حبشې بادشاه نجاشي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ابرهه نومې وينځه د هغه طرفه د قاصد په شکل کې راغله او د اد بادشاه د جامو او تېلو په خدمت کې مقرره وه هغې زما نه اجازه غوښتله او ما ورته اجازه ورکړ هغې وويل چې نجاشي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا وايي چې رسول الله ﷺ ما ته خط ليکلی چې زه ستا واده هغوی ﷺ سره وکړم ما وويل چې الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تا ته هم د خير زېرى درکړي يعني زه راضي يم بيا هغې وويل چې بادشاه تا ته دا وايي چې ته څوک خپل وکيل مقرر کړه چې هغه ستا نکاح وکړي په دې باندې ما حضرت خالد بن سعيد بن عاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې زما تره ځوى وو راوغوښتلو و او خپل وکيل مې جوړ کړ او ما حضرت ابرهه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته د سپينو زرو هغه تولې ګتمې چې زما د پښو په هره ګوته کې وې تولې مې اووېستلې او د دې زېرى په خوشخبرۍ کې مې ورکړې مابنام د حضرت نجاشي د حضرت جعفر بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او څو مره مسلمانان چې هلته وو هغه تول يې راوغوښتل او دا خطبه يې وويله چې تول تعريفونه الله جَلَّ جَلَالُهُ لره دي چې بادشاه دی د تولو عيبونو نه پاک دی، امن

---

(۱) عند ابن عساکر کذافي الکنز ۷/۱۱۷ واخرجه النسائي بسند صحيح عن ام سلمه نحوه کما في الاصابة ۲/۴۵۹ و اخرجه ابن سعد ۸/۹۲عن ام سلمه نحوه.

ورکوونکی دی، غالب دی، د خرابی درست کوونکی دی او زه د دې خبرې گواهي ورکوم چې الله رب العزت نه علاوه بل څوک د بندګۍ لائق نشته او حضرت محمد ﷺ د هغه رسول او بنده دی او دا هغه رسول دی چې د ده بشارت حضرت عیسی بن مریم ورکړی وو.

اما بعد! رسول الله ﷺ دا حکم فرمایلی دی چې د هغوی ﷺ نکاح د ام حبیبه بنت ابي سفیان سره وکړم نو زه د هغوی ﷺ حکم پوره کوم او د رسول الله ﷺ طرف نه دی ته څلور دیناره په مهر کې ورکوم! دا یې وویل حضرت نجاشي څلورسوه دیناره د دغه خلکو په مخکې کېښودل د دینه پس حضرت خالد بن سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خبره شروع کړه او وې فرمایل چې ټول صفتونه د خدائیتوب الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره دي زه د هغه ستاینه کوم او د هغه نه بخښنه غوارم! او د دې خبرې گواهي ورکوم چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه بسوا بل څوک د عبادت مستحق نشته او حضرت محمد ﷺ د هغه بنده او رسول دی الله پاک هغه ته هدایت او حق دین ورکړی دی او را لیږلی یې دی د دې لپاره چې دا دین حق په ټولو دینونو باندې غالب کړي اگر چې په مشرکانو دا خبره بده لګېږي.

اما بعد! رسول الله ﷺ چې کوم حکم فرمایلی دی زه هغه قبلوم! او ما د رسول الله ﷺ سره د ام حبیبه بنت ابی سفیان رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نکاح وکړه الله رب العزت دې خپل پیغمبر ته په دې واده کې برکت نصیب کړي بیا حضرت نجاشي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه دینار حضرت خالد بن سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورکړل چې حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ واخیستل بیا مسلمانان د هغه ځائ نه پاڅېدل نو حضرت نجاشي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې تاسو کېنئ! ځکه چې انبیاء علیهم السلام سنت دا دی چې کله هغوی واده کوي نو د هغوی په واده باندې طعام ورکولی شي! بیا حضرت نجاشي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ طعام را وغوښتلو و چې هغوی ټولو اخوړلو او بیا ټول لاړل.(۱)

حضرت اسماعیل بن عمرو بن عاص رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت ام حبیبه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمایل چې ما په حبشه کې خوب ولیده چې زما د خاوند عبیدالله بن جحش شکل وصورت ډېر خراب شوی دی زه ووېرېدم ما وویل چې د ده حالت بدل شوی دی نو هغه سهار وویل چې ام حبیبه! ما د دین په باره کې ډېر سوچ کړی دی ما نه خو هیڅ یو دین د نصرانیت نه غوره په نظر نه راځي زه خو اول نصراني ووم بیا د محمد ﷺ په دین کې داخل شوم او س زه بیا نصرانیت ته راغلی یم!

---

(۱) اخرجه البزار بن بکار کذافی البدایة ۴/۱۴۳

ما وویل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! تا له دا سې کولو کې بلکل خیر نشته او کوم خوب چې ما لیدلی وو هغه مې ورته بیان کړ خو هغه د هغې هیڅ پرواه ونکړه اخر هغه په شرابو څښلو کې داسې لګیا شو چې هم په هغه کې مړ شو بیا ما خوب ولیده چې یو راتلونکي ما ته وویل چې اې ام المؤمنین! دا مې چې واورېدل نو زه وېرېدم او ما د هغې د تعبیر راوېستلو چې رسول الله ﷺ به ما سره واده کوي او س زما عدت ایله ختم شوی وو چې د حضرت نجاشي رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قاصد ما ته راغی بیا یې مخکې د تېر شوی حدیث پشان مضمون ذکر کړ د هغې نه پس دا مضمون دی چې کله هغه مال څلور سوه دیناره ما ته راغلل نو ما حضرت ابرهه رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهَا ته چې هغې ما ته زېرې را کړې وو پیغام مې ورکړ او را مې غوښتله او ما هغې ته وویل چې په هغه ورځ ما تا ته څه درکړي وو هغه خو لږ وو ځکه چې ما سره مال نه وو او س ما ته مال راغلی دی دا څلور مثقاله (پاو کم نولس تولې) سره زر واخله او دا خپل کار کې اولګوه هغې یو یو ډبې راووېستو چې په هغې کې هغه ټول شیان وو چې ما ورکړی وو او هغې هغه ما ته واپس کړل او وې ویل چې بادشاه ما ته قسم را کړی دی او ویلي یې دي چې زه به تا نه هیڅ نه اخلم او هم زه د بادشاه جامې او خوشبویي سنبالوم او ما د رسول الله ﷺ دین اختیار کړی دی او مسلمانه شوې یم او بادشاه خپلو ټولو بیبیانو ته حکم کړی دی چې هغوی سره څومره عطر دي هغه ټول دې تا سو ته راولېږي نو په بله ورځ یې د عود، درس عنبر او زباد او وغیره ډېرې خوشبویانې را اخیستې وې او ما ته راغله او دا ټولې خوشبویانې مې ځان سره واخیستلې او رسول الله ﷺ ته راغلم او هغوی ﷺ به کتل چې دا ټولې خوشبویانې ما سره وې او ما لګولې دي خو هغوی پرې انکار ونکړ بیا حضرت ابرهه رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهَا وویل چې زما تا سره یو کار دی چې ته د رسول الله ﷺ په خدمت کې زما سلام وکړه او ورته او وایه چې ما د هغوی ﷺ دین اختیار کړی دی د هغه پس حضرت ابرهه رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهَا په ما باندې نوره مهربانه شوه او هم دې زما سامان تیار کړی وو هغه به چې کله هم ما ته راتله نو دا به یې ویلې چې کوم کار ما تا ته حواله کړی دی هغه هېر نه کړې کله چې مونږ رسول الله ﷺ ته راغلو نو ما رسول الله ﷺ ته ټوله خبره وکړه چې کوږدن واده وغیره څنګه وشو او حضرت ابرهه رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهَا ما سره څنګه ښه رویه وکړه رسول الله ﷺ چې دا واورېدل نو مسکی شو بیا ما رسول الله ﷺ ته د حضرت ابرهه رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهَا سلام او رسولو رسول

اللهﷺ په جواب کې وفرمایل وعلیها السلام ورحمة الله وبرکاته. (۱)

**له حضرت زینب بنت جحش رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره د پیغمبر ﷺ نکاح**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې کله د حضرت زینب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عدت پوره شو نو رسول اللهﷺ حضرت زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمایل چې لاړ شه! او زینب سره زما د نکاح خبره وکړه حضرت زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لاړو چې کله ور ورسېده نو هغې په اوړو کې خمیره اچوله حضرت زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې کله ما هغه اولیده نو ما ته په خپل زړه کې د هغې عظمت محسوس شو چې رسول اللهﷺ دې سره واده کول غواړي ځکه چې دا ډېره د لویې مرتبې والا ښځه ده او د دې عظمت د وجې نه ما دې ته د کتلو همت ونکړې شو له دې وجې نه زه په پوندو تاو شوم او هغې خواته مې شاه کړه ما وویل اې زینب! تا ته دې زېرې وي زه رسول اللهﷺ را لیږلی یم هغوی ﷺ تا سره واده کول غواړي حضرت زینب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وویل چې تر څو زه خپل رب سره مشوره ونکړم تر هغې پورې زه هیڅ کار نه کوم دا یې وویل هغه پاڅېده او د خپل لمونځ کولو ځائې ته لاړه او اخوا په رسول اللهﷺ باندې قرآن نازل شو چې په هغې کې الله رب العزت وفرمایل زوجنکها چې مونږ ستا واده د زینب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره کړی دی چې الله رب العزت په واده کولو سره حضرت زینب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د رسول اللهﷺ بي بي جوړه کړې وه له دې وجې نه رسول اللهﷺ ورغی او حضرت زینب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته پرته د اجازې د ننه ورغی حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې ما ولیدل چې کله رسول اللهﷺ د هغې سره خلوت وکړ نو رسول اللهﷺ په مونږ باندې په ولیمه کې غوښه او ډوډی اوخوړله اکثرو خلکو طعام اوخوړلو او بهر ته لاړل خو څه خلک د خوراک نه پس هم هلته کور کې کښناستل خبرې اترې یې کولې هغوی ﷺ د کور نه بهر ته را اووتلو زه هم ورپسې وروسته روان شوم هغوی ﷺ د خپلو بیبیانو کورونو ته لاړو او د ننه به چې لاړو نو هرې یوې ته به یې سلام کولو هغې به پوښتنه کوله چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو خپل کور والا څنګه بیا موندل؟ اوس ما ته یاد نه دي چې ما رسول اللهﷺ یا بل چا ورته وویل چې خلک تللي دي نو هغوی ﷺ لاړل او د حضرت زینب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا کور ته ورغی زه هم ورسره د ننه ورغلم نو رسول اللهﷺ د خپل ځان او زما په مینځ کې پرده واچوله او د پردې حکم نازل شو او په دې

---

۱: اخرجه الحاکم ۴/۲۰ واخرجه ابن سعد ۸/۹۷ عن اسماعیل بن عمرو بن سعید الاموی بمعناه

موقع باندې چې الله رب العزت کوم اداب مسلمانانو ته اوښودل هغه رسول الله ﷺ صحابه وو ته بیان کړل: يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَنْ يُؤْذَنَ لَكُمْ

ترجمه: اې ایمان والاوو! د رسول الله ﷺ کور ته پرته د بللو مه ورځئ! خو چې کله کوم وخت تاسو ته د طعام خوړلو اجازه درکړی شي په داسې طریقه باندې چې د هغې د تیارې انتظار کونکي نه یئ!

خو چې کله تاسو را اوبللئ چې طعام تیار دی نو بیا ځئ! بیا چې کله طعام اوخورئ! نو پاځئ! او ځئ! او خبرو کې لګیدو سره مه کېنئ! په دې خبرې سره رسول الله ﷺ ته تکلیف رسي هغه خو ستاسو خیال ساتي او الله رب العزت صفا خبره کولو کې د چا هم لحاظ نه ساتي او چې کله تاسو د هغوی ﷺ نه څه غواړئ! نو د پردې نه بیرون نه یې ترې وغواړئ! دا خبره همېشه لپاره ستاسو د زړونو او د هغوی ﷺ د زړونو د پاک اوسېدو ډېره ښه ذریعه ده او تاسو له جائز نه دي چې رسول الله ﷺ ته خفګان اورسوئ! او نه دا جائز ده چې تاسو د هغوی ﷺ نه وروسته د هغوی ﷺ له بیبیانو سره چرې هم نکاح وکړئ! دا د الله پاک په نزد ډېره لویه د ګناه خبره ده.(۱)

په بخاري کې د حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روایت دی چې رسول الله ﷺ د حضرت زینب بنت حجش رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا سره خلوت وکړ او په ولیمه کې یې ډوډۍ او غوښه ورکړه رسول الله ﷺ طعام ته خلک راغوښتلو لپاره زه ولیږلم خلک به راتلل او ډوډۍ به یې خوړله او تلل بیا به راغوښتل او لیږل به مې تردې چې کله ما ته د رابللو لپاره څوک ملاو نه شو نو ما عرض وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ما ته څوک داسې نه ملاوېږي چې هغه زه طعام ته را اوغواړم رسول الله ﷺ وفرمایل چې طعام را اوچت کړه باقي خلک خو لاړل خو درې کسان داسې پاتې شول چې په کور کې ناست وو او خبرې یې کولې رسول الله ﷺ په بیرون تشریف یوړلو او د حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا کور ته داخل شو او وې فرمائیل اې کوروالاوو! السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته! حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وویل وعلیکم السلام ورحمت الله وبرکاته! الله رب العزت دې تاسو ته په دې واده کې برکت نصیب کړي او ټولو ته به یې هم دا فرمایل کوم یې چې حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ته فرمایلي وو او

---

۱: اخرجه احمد وکذا رواه مسلم والنسائي

هغوي رَضِيَ اللَّهُ عَنهُنَّ ټولو به رسول الله ﷺ ته په جواب کې هم دا ويل چې حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنهَا ويل وو بيا رسول الله ﷺ واپس راغی چې وې کتل نو هغې دړواړه سړي ناست وو او خبرې يې کولې آنحضرت ﷺ ډېر د شرم او حياء والا وو په دې وجه يې هغه دړواړو ته هيڅ اونه ويل او بيا د حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنهَا کور ته روان شو اوس ما ته ياد نه دي چې ما رسول الله ﷺ ته وويل يا بل چا ورته وويل چې هغه خلک تللي دي نو پيغمبر ﷺ واپس راغلل او چې کله يې يو قدم د چوکاټ دننه کېښود او بل قدم يې لا بيرون وو نو نبي کريم ﷺ د خپل ځان او زما په مينځ کې پرده واچوله او د پردې آيت نازل شو حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنهُ فرمايل چې رسول الله ﷺ يوې بي بي سره اولنی شپه تېره کړه نو زما مور حضرت ام سليم رَضِيَ اللَّهُ عَنهَا کجورې، غوړي او اوړه يو ځائ کړل او حلوه يې تياره کړه او په يو لوښي کې يې واچوله ما ته يې وويل چې رسول الله ﷺ ته يې يوسه! او ورته اووايه چې دا لږ شان طعام زمونږ د طرفنه ستاسو په خدمت کې پېش دی په هغه زمانه کې خلک ډېر په مشقت او تنګستيا کې وو نو هغه ما واخيسته او د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم او عرض مې وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! حضرت ام سليم رَضِيَ اللَّهُ عَنهَا ستاسو په خدمت کې دا طعام را لېږلی دی او هغه تاسو ته سلام کوي او عرض يې کړی دی چې دا لږ شان طعام زمونږ د طرفنه هديه دی بيا يې وفرمايل: لاړ شه! فلانی را وغواړه! او د ډېرو مسلمانانو نومونه رسول الله ﷺ واخيستل هغه مې هم را وغوښتلو او چې کوم مسلمان ما ملاو شو هغه مې راوغوښتلو زه چې واپس راغلم نو کور چوتره او انګړ يا غولی د خلکو نه ډک وو راوي وايي چې ما پوښتنه وکړه چې اې ابو عثمان! دا د حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنهُ کنيت دی خلکو څومره وو؟ حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنهُ وويل تقريباً درې سوه بيا رسول الله ﷺ وفرمايل هغه طعام راوړه نو ما هغه راوړو او رسول الله ﷺ هغې باندې لاس کېښودو او دعا يې وکړه او څه يې لوستل بيا يې وفرمايل چې د لسو لسو کسانو حلقه جوړه کړئ! او بسم الله ووايئ! هر کس دې د خپلې مخې نه طعام خوري نو صحابه وو بسم الله وويل او د طعام خوړل يې شروع کړل تر دې چې ټولو طعام اوخوړلو بيا رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل چې دا طعام اوچت کړه هغه وخت طعام زيات وو يا اوس دا اوچتولو په وخت کې زيات دی باقي خلک لاړل خو څه خلک ناست وو د رسول الله ﷺ په کور کې يې خبرې کولې او د

رسول الله ﷺ هغه بي بي محترمې چې د هغې واده او س شوی وو هغې د يوال ته مخ کړی وو ناسته وه دې خلکو ډېر وخته پورې خبرې کولې چې په دې سره رسول الله ﷺ ته ډېر تکليف ورسېده خو رسول الله ﷺ د ټولو نه زيات شرم او حياء والا وو دغه ناستو کسانو ته که چېرې د دې اندازه لګېدلې واي نو دا ناسته به په دوئ باندې ګرانه وای خو هغوی ته د دې معلومه نشوه چې رسول الله ﷺ د هغه ځائ نه پاڅېدو او لاړو او خپلو ټولو بيبيانو باندې يې سلام واچولو کله چې هغوئ ناستو خلکو وليدل چې زمونږ په خبرو رسول الله ﷺ ته تکليف رسېدلی دی نو په دې باندې هغوی په جلتۍ سره دروازې خواته په منډه لاړل بيا رسول الله ﷺ راغی او پرده يې واچوله او دننه يې تشريف يوړلو او زه په انګړ کې پاتې شوم د هغوی په کور کې به لږ شان وخت تېر شوی وو چې الله رب العزت په هغوی باندې قرآن مجيد نازل کړ هغوی دا آيتونه ولوستل او بهر ته يې تشريف راوړو: يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ اِلَّآ اَنْ يُّؤْذَنَ لَكُمْ اِلٰى طَعَامٍ غَيْرَ نٰظِرِيْنَ اِنٰىهُ وَلٰكِنْ اِذَا دُعِيْتُمْ فَادْخُلُوْا فَاِذَا طَعِمْتُمْ فَانْتَشِرُوْا وَلَا مُسْتَاْنِسِيْنَ لِحَدِيْثٍ اِنَّ ذٰلِكُمْ كَانَ يُؤْذِي النَّبِيَّ فَيَسْتَحْيٖ مِنْكُمْ وَاللّٰهُ لَا يَسْتَحْيٖ مِنَ الْحَقِّ وَاِذَا سَاَلْتُمُوْهُنَّ مَتَاعًا فَسْـَٔلُوْهُنَّ مِنْ وَّرَآءِ حِجَابٍ ذٰلِكُمْ اَطْهَرُ لِقُلُوْبِكُمْ وَقُلُوْبِهِنَّ وَمَا كَانَ لَكُمْ اَنْ تُؤْذُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَلَآ اَنْ تَنْكِحُوْٓا اَزْوَاجَهٗ مِنْ بَعْدِهٖٓ اَبَدًا اِنَّ ذٰلِكُمْ كَانَ عِنْدَ اللّٰهِ عَظِيْمًا۝ اِنْ تُبْدُوْا شَيْئًا اَوْ تُخْفُوْهُ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا۝

د دې ايتونو په اورېدو سره د ټولو نه مخکې سعادت ما ته نصيب شو.(۱)

**د حضرت صفيه بنت حُيي بن اخطب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره د رسول الله ﷺ نکاح**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې کله په خيبر کې قيديان جمع کړل شول نو حضرت دحيه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی او عرض يې وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! په دې بنديانو کې يوه وينزه ما ته راکړئ! رسول الله ﷺ وفرمايل لاړ شه! واخله! نو هغه حضرت صفيه بنت حيي واخيستله نو يو سړی راغی رسول الله ﷺ ته يې عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو د قريظه او نضير سرداره صفيه بنت حيي ورکړه هغه خو هم تاسو سره مناسب ده رسول الله ﷺ وفرمايل هغه يعنې صفيه دلته راوله! چې کله رسول الله ﷺ هغه اوليده نو وې فرمايل اې دحيه! ته د دې پځاي په بنديانو کې بله وينزه واخله بيا يې هغه ازاده کړه او

(۱) عند ابن ابی حاتم ورواه مسلم والنسائي والترمذی وقال حسن صحيح والبخاری وابن جرير كذافی البداية ۴/۱۴۶ واخرجه ابن سعد ۸/۱۰۴ من طرق عن انس.

رسول الله ﷺ ورسره واده وکړ.(۱).

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې مونږ خلک خيبر ته لاړو چې کله د خيبر قلعه الله پاک فتحه کړه او رسول الله ﷺ ته يې ورکړه نو د هغوی ﷺ په مخکې چا حضرت صفيه بنت حيي بن اخطب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حسن او ښائست تذکره وکړه د هغې خاوند مړ شوی وو او هغه نوې واده شوې وه او هغه لا ناوې وه نو رسول الله ﷺ هغه د ځان لپاره خاص کړه رسول الله ﷺ هغه د هلته نه بوتله او لاړه چې کله هغوی د صبيهاء مقام نومي غره ته نيزدې ورسيده نو حضرت صفيه د حيض نه پاکه شوه نو رسول الله ﷺ د هغې سره کوروالي وکړ بيا رسول الله ﷺ د کجورو، غوړو او اوړو حلوه تياره کړه او د څرمنې په يو وړوکي سترخوان باندې يې کېښودو بيا يې ما ته وفرمايل چې خپل خواوشاه خلکو ته خبر ورکړه چې وليمه تياره ده د حضرت صفيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا واده د رسول الله ﷺ د طرفه هم دا وليمه وه بيا مونږ د هغه ځائ نه مدينې ته روان شو نو ما وليدل چې د رسول الله ﷺ د اوبن په قب باندې د څادر نه حضرت صفيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا لپاره د پردې انتظام کوي بيا د اوبن سره کېناسته خپل زنګون يې اودرولو چې په هغې باندې به حضرت صفيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا خپله پښه کېښودله او سوريدله به.(۲)

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې رسول الله ﷺ د خيبر او مدينې په مينځ کې د حضرت صفيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره درې شپې تيرې کړې او ما د هغوی د وليمې لپاره خلک روغوبنتلو په دغه وليمه کې نه دو ډی وه نه غوښه بلکې د هغوی وليمه داسې وه چې رسول الله ﷺ په فرمان باندې حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د څرمنې دسترخوان خپور کړ او په هغې باندې د کجورې، پنير او غوړي کېښودل خلکو د يو بل نه پوښتنه وکړه چې حضرت صفيه ام المؤمنين ده يا وينزه؟ نو خلکو وويل چې که چيرې رسول الله ﷺ په هغې باندې پرده وکړه نو بيا خو ام المؤمنين ده او که چيرې پرده يې پرې اونه کړه نو بيا د رسول الله ﷺ وينزه ده کله چې هغوی د هلته نه روان شو نو د حضرت صفيې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا لپاره يې ځان پسې څه خواره کړل او نرم ځائ يې جوړ کړ او پرده يې را زوړنده کړه.(۳)

حضرت جابر بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې کله حضرت صفيه بنت حيي بن اخطب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا

---

۱: اخرجه ابوداود واخرجه البخاری ومسلم.

۲: عند البخاری

۳: عند البخاری ايضا کذافی البداية ۴/۱۹٦

د رسول الله ﷺ په خيمه کې داخله شوه نو خلک هلته جمع شول او زه هم هلته او رسېدم دې لپاره چې ما ته هم په وليمه کې څه ملاو شي رسول الله ﷺ په بيرون راغلی او وې فرمايل چې تاسو د خپلې مور د خوانه پاڅئ! او لاړ شئ! يعني ما حضرت صفيې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره واده کړی دی له دې وجې نه هغه اوس ستاسو مور ګرځېدلې ده چې کله ماسخوتن وخت شو نو مونږ دوباره حاضر شو بيا رسول الله ﷺ مونږ له بيرون راغی د آنحضرت ﷺ څادر په يو ګټ کې بنې کجورې وې او وې فرمايل چې د خپلې مور وليمه او خورئ! (١)

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې د حضرت صفيې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په سترګو کې شين نشان وو رسول الله ﷺ د هغې نه پوښتنه وکړه چې ستا په سترګو کې دا شين نشان څنګه دی ؟ حضرت صفيې وويل چې ما خپل خاوند ته وويل چې ما خوب کې وليدل چې سپوږمۍ زما غېږ ته راغلې ده نو هغه ما له څپېړه راکړه او وې ويل چې ته د يثرب بادشاه غواړې؟ حضرت صفيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې د رسول الله ﷺ نه زيات زما چا سره بغض نه وو ځکه چې هغوی زما پلار خاوند وژلی وود واده نه پس رسول الله ﷺ زما د پلار او خاوند د وژلو وجې بيانولې او دا يې هم وفرمايل چې اې صفيې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا! ستا پلار زما خلاف د عربو خلک جمع کول او داسې يې وکړل او داسې يې وکړل عرض دا چې دومره وجوهات يې بيان کړل چې اخر زما د زړه نه د رسول الله ﷺ بغض بيخي او وتلو.(٢)

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې کله رسول الله ﷺ حضرت صفيې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته خيمه کې ورغی نو حضرت ابو ايوب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په دروازه باندې تو له شپه تېره کړه چې کله سهار هغه رسول الله ﷺ وليده الله اکبر يې وويل په هغه وخت کې حضرت ابو ايوب سره توره هم وه هغه عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! د دې نجلۍ نوی واده شوی وو او تاسو د دې پلار، ورور او خاوند وژل نو ما ته د دې د طرفه اطمنان نه وو له دې وجې نه ما شپه دلته تېره کړه رسول الله ﷺ مسکی شو او حضرت ابو ايوب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په باره کې يې د خير کلمات وفرمايل.(٣)

---

١: اخرجه احمد قال الهيثمي ٩/٢٥١ رواه احمد ورجاله رجال الصحيح اخرجه ابن سعد ٨/١٢۴ نحوه.
٢: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ٩/٢٥١ رجاله رجال الصحيح
٣: اخرجه الحاكم ۴/٢٨ قال الحاكم هذ الحديث صحيح الاسناد ولم يخرجاه وقال الذهبي واخرجه ابن عساكر عن عروة بمعناه اطول منه كما في الكنز ٧/١١٩ واخرجه ابن سعد ٢/١١٦ عن ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اطول منه.

په یو روایت کې دا دی چې حضرت ابو ایوب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عرض وکړ چې ما دا سوچ وکړ چې که چېرې د شپې په څه حصه کې حضرت صفیې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا هغوی ته تکلیف رسولو لپاره څه حرکت کوي نو چې زه هغوی ته نزدې یم!

حضرت عطاء بن یسار رَحِمَهُ اللهُ وایي چې کله حضرت صفیه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د خیبر نه مدینې ته راغله نو دا یې د حضرت حارثه بن نعمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په کور کې ایساره کړه د انصارو ښځو چې واوریدل نو د حضرت صفیې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د ښائیست کتلو لپاره راغلې حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا هم په پرده کې راغله کله چې هلته نه عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بیرون اووتله نو رسول الله ﷺ هم ورپسې راغی او پوښتنه یې وکړه چې اې عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا! تا څه ولیدل ؟ هغې وویل چې ما یوه یهودي ښځه اولیده رسول الله ﷺ وفرمایل چې داسې مه وایه! ځکه چې هغه مسلمانه شوې ده او ډېره ښه مسلمانه شوې ده.(۱)

د حضرت سعید بن مسیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه په صحیح سند سره روایت دی چې کله حضرت صفیه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا راغله نو د هغې په غوږ کې د سرو زرو نه جوړه شوې د کجورې یوه پاڼه وه نو هغې د دغې ونې نه څه حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته او هغې سره راتلونکو ښځو ته هدیه کړل.(۲)

**د حضرت جویریه بنت الحارث خزاعیه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره د رسول الله ﷺ نکاح**

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایل چې کله رسول الله ﷺ د بنو مصطلق قبیلې قیدیانې ښځې تقسیم کړې نو حضرت جویریه بنت حارث رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حضرت ثابت بن قیس بن سماس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یا دهغه د تره څوی په حصه کې راغله نو هغې د خپل ځان کتابت وکړ یعنې دا یې وویل چې زه به تا ته دومره رقم درکړم ته ما ازاده کړه او دا ډېره ښائیسته وه چې چا به هم دا اولیده نو دې به د هغه زړه راښکلو دا په دغه خپلو پیسو اداء کولو کې د امداد اخیستلو لپاره رسول الله ﷺ ته راغله په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! څنګه چې ما هغه د خپلې کمرې په دروازه کې اولیده نو په ما ښه اونه لګېده زه پوه شوم چې ما د دې کوم ښایست ولیده رسول الله ﷺ به یې هم اوویني هغې وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه د حارث بن ضرار لور جویریه یم چې د خپل قوم سردار وو او اوس چې کوم مصیبت په ما باندې راغلی دی

۱: اخرجه ابن سعد
۲: کما فی الاصابة ۴/۲۴

هغه تاسو ته پته نه دی چې اوس وینزه جوړه شوی یم زه د حضرت ثابت بن قیس بن سماس یا د هغه د تره ځوی په حصه کې راغلې یم او ما د پیسو یو مقرر مقدار ورکولو باندې د هغه نه د ازادېدو وعده اخیستې ده او اوس زه د دغه پیسو باره کې تاسو نه د امداد لپاره راغلې یم رسول الله ﷺ وفرمایل آیا تـه ددې نـه غـوره شـي لپاره تیاره یې ؟ هغې وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! څه دي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل زه ستا د طرف نه ټولې پیسې اداء کوم او تاسو سره واده کوم هغې وویل هو ! اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه بلکل تیاره یم بیا په خلکو کې دا خبر مشهور شو چې رسول الله ﷺ د جویریة بنت حارث رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره واده کړی دی خلکو وویل چې د رسول الله ﷺ واده کولو نه پس خو د دې جویریه قبیلې والا د رسول الله ﷺ سخرګنۍ جوړه شوه له دې وجې نه د دې قبیلې چې څومره سړی د مسلمانانو په قید کې وو مسلمانانو هغه ټول پرېښودل نو د رسول الله ﷺ د دې واده وجه د بنو مصطلق سل کورنۍ ازادې شوې حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایل چې زما په علم کې څوک داسې ښځه نشته چې د حضرت جویریة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه زیاته د خپل قوم لپاره د برکت والا ثابته شوې وي.(۱)

د واقدي په یو روایت کې دا دی چې د هغې د اولني خاوند نوم صفوان بن مالک وو حضرت عروه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې حضرت جویریه بنت حارث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې ما د رسول الله ﷺ زمونږ علاقې ته راتلو نه مخکې خوب ولیده چې ګویا سپوږمۍ د یثرب نه روانه شوه او زما غېږ ته راغله ماهیچا ته دا خوب بیانول نه غوښتل تر دې چې رسول الله ﷺ راغی چې کله مونږ قید شو نو زما د خپل خوب پوره کېدو امید پیدا شو رسول الله ﷺ زه ازاده کړم او ما سره یې واده وکړ په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ما رسول الله ﷺ سره د خپل قوم باره کې څه خبره ونکړه بلکې چې کله مسلمانانو ته پته ولګېده چې رسول الله ﷺ ما سره واده کړی دی او زما قوم والا د رسول الله ﷺ سخرګنۍ جوړه شوه نو د دې نسبت په احترام کې مسلمانانو پخپله زما د قوم ټول قیدیان ازاد کړل او د دې پته ما ته هغه وخت ولګېده چې کله زما یوه تره لور راغله او ما ته یې وویل چې هغه ازاده شوه په دې باندې ما د الله جَلَّ جَلَالُهُ شکر اداء کړ (۲)

---

۱: اخرجه ابن اسحق کذافی البدایة ۵/۱۹۵ واخرجه ابن سعد ۸/۱۶۱ عن الواقدی بسند له عن عائشة نحوه ولکن سمی زوجها صفوان بن مالک و هکذا اخرجه الحاکم ۲۶ /۴ من طریق الواقدی.

۲: اخرجه الواقدی کذافی البدایة ۴/۱۵۹ واخرجه الحاکم ۴/۲۷ من طریق الواقدی بن هشام عن ابیه نحوه.

**د حضرت میمونه بنت حارث هلالي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د رسول الله ﷺ سره نکاح**

حضرت ابن شهاب رَحِمَهُ اللهُ وايي چې رسول الله ﷺ د صلح حديبيه په مخکې کال د ذيقعده په مياشت ۷ هجري کې د عمرې لپاره لاړو ذالقعده هغه مياشت ده چې په هغې کې يو کال مخکې مشرکانو د مسجد حرام تلو نه منع کړی وو چې کله رسول اکرم ﷺ يا حج مقام ته اورسېدل نو حضرت جعفر بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يې مخکې حضرت ميمونه بنت حارث بن حزن عامريه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته ور اولېږلو حضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ميمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته د رسول الله ﷺ د طرفه د واده پيغام ورکړ نو حضرت ميمونې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا خپله معامله حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته حواله کړه د حضرت ميمونې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا خور حضرت ام فضل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بي بي وه نو حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت ميمونې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا واده رسول الله ﷺ سره وکړ د بنه پس رسول الله ﷺ سرف نومي يو ځاۍ ته راغی او ايسار شو او د مکې مکرمې نه حضرت ميمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا هلته راغله او هلته د هغې رخصتي وشوه او د الله رب العزت عجيبه شان وو چې رته چې د هغې رخصتي شوې وه بيا وروسته هم هلته د هغې وفات وشو .(۱)

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې رسول الله ﷺ حضرت ميمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بنت حارث سره واده وکړ او په مکه مکرمه کې درې ورځې ايسار شو په دريمه ورځ حويطب بن عبدالعزي د قريشو يوې ډلې سره رسول الله ﷺ ته راغلل او هغه خلکو رسول الله ﷺ ته وويل چې ستا د ايسارېدو وخت پوره شوی دی نو دا رنګه ته دلته زمونږ د خوا نه لاړ شه! رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې په دې کې ستاسو څه تاوان دي؟ چې تاسو ما دلته پرېږدئ! او رخصتي وکړم بيا زه د وليمې طعام تيار کړم چې په هغې کې به تاسو هم شريک شئ! دغه خلکو وويل چې مونږ ته ستا د طعام هيڅ ضرورت نشته تاسو بس دې ځاۍ نه لاړ شئ! اخر رسول الله ﷺ حضرت ميمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ځان سره کړه او روان شو او سرف مقام کې يې هغې سره رخصتي وکړه.(۲)

**د حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره د حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نکاح کول**

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل، رسول الله ﷺ ته د حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د واده پيغام

---

۱: اخرجه الحاكم ۴/۳۰

۲: عند الحاكم ووافقه الذهبي هذا حديث صحيح على شرط مسلم ولم يخرجاه.

راغی نو زما یوې وینځې ما ته وویل چې آیا تا ته پته ده؟ چې رسول الله ﷺ ته د حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنهَا د واده پیغام راغلی دی؟ ما وویل نه! هغې وویل چې د هغې د واده پیغام راغلی دی تاسو رسول الله ﷺ ته ولې نه ورځئ؟ چې رسول الله ﷺ یې تاسو سره واده وکړ ي! ما وویل آیا ما سره داسې څه شی شته چې په هغې زه واده وکړم؟ هغې وینځې وویل که چیرې تاسو رسول الله ﷺ ته ورشئ! نو رسول الله ﷺ به یې ضرور تاسو سره واده وکړي په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! هغې ما ته امید راکولو تر دې چې زه رسول الله ﷺ ته ورغلم چې کله زه رسول الله ﷺ ته مخامخ کېناستم نو ما نه خبره ونه شوه او د رسول الله ﷺ رعب او دبدبې په وجه ما خبره ونکړی شوه رسول الله ﷺ وفرمایل چې ته څنګه راغلی یې؟ آیا ستا څه ضرورت دی؟ زه چُپ وُوم بیا رسول الله ﷺ وفرمایل چې شاید ته د فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنهَا سره د واده کولو پیغام لپاره راغلی یې؟ ما وویل هو! رسول الله ﷺ وفرمایل چې د مهر ورکولو لپاره تا سره څه شته؟ ما ورته وویل چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! هیڅ نشته رسول الله ﷺ وفرمایل ما چې کومه زغره د وسلې په طور درکړې وه هغه دې څه کړه؟ هغه زغره خطمه بن محارب قبیلې والاوو جوړه کړی شوی وه او په هغه ذات مې دې قسم وي چې د هغه په قبضه کې د علي ساه ده د هغې قیمت څلور درهمه نه وو بلکې څلور سوه اتیا درهمه وو لکه څنګه چې مخکې د ابن عساکر په روایت کې را روان دی ما وویل هغه ما سره ده رسول الله ﷺ وفرمایل چې ما فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنهَا سره ستا واده وکړ ته هغه زغره فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنهَا ته اولېږه! او دغه فاطمې مهر او ګڼلو بس دا وو د رسول الله ﷺ د لور حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنهَا مهر.(۱)

حضرت برید رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایل چې د انصارو څه خلکو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته وویل چې ته د حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنهَا د واده پیغام ورکړه نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو رسول الله ﷺ وفرمایل چې د ابو طالب د ځوی علي څه کار پېښ شوی دی؟ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ وویل چې زه د رسول الله ﷺ لور فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنهَا سره واده کول غواړم! رسول الله ﷺ وفرمایل مرحبا واهلا نور یې څه اونه فرمایل حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ بیرون راغی نو د انصارو هغه خلکو د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ انتظار کولو،

۱: اخرجه البیهقی فی الدلائل کذافی البدایة ۳/۳۴۶ واخرجه ایضا الدولابی فی الذریة الطاهرة کما فی الکنز العمال ۳/۱۱۳

هغه خلکو پوښتنه وکړه چې څه وشو ؟ هغه وویل نور خو زه په څه پوه نه شوم بس دومره یې وفرمایل چې مرحبا واهلا دغه خلکو وویل چې رسول الله ﷺ دا جمله وفرمایله تا ته یې اهل هم درکړ او مرحبا هم یعني فراخه ځائ هم د رسول الله ﷺ د طرفه خوپه دې دواړو کې یو شي هم کافي وو چې کله رسول الله ﷺ د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ واده وکړ نو هغه ته یې وفرمایل اې علي! د ناوې کور ته راتلو باندې ولیمه کېدل ضروري دي حضرت سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې ماسره یو ګډ دی زه هغه درکوم او انصارو د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لپاره څو صاع جوار جمع کړل چې کله د واده شپه راغله نو رسول الله ﷺ وفرمایل چې ماسره د ملاوېدو نه مخکې څه مه کوه نو رسول الله ﷺ اوبه را وغوښتلې په هغې یې اودس وکړ او هغه اوبه یې په حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې واچولې او دا دعا یې وکړه اې الله! په دې دواړو کې برکت واچوې او دواړو ته په دې واده کې برکت نصیب کړې.(۱)

د طبراني په یو روایت کې دا دي چې د انصارو یوې ډلې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل چې که چېرې ته فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره واده کولو پیغام ورکړې نو ډېره به ښه وي او په اخر کې د رسول الله ﷺ دعا داده چې اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! په دې دواړو کې بزکت واچوې او د دوي زمرو پشان دوو بچو کې برکت واچوې رویاني او ابن عساکر په روایت کې دا دي چې اې الله! په دې دواړو کې برکت واچوې او په دې دواړو باندې برکت واچوې او د دې دواړو په واده کې برکت واچوې او دې دواړو ته په نسل کې برکت واچوې او په یو روایت کې دي چې د دې دواړو په جمع کېدو کې برکت واچوې. حضرت اسماء بنت عمیس رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایل چې کله حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا واده شوه او د حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کور ته راغله نو مونږ ته د هغې په کور کې دا څو شیان ملاو شول یو پوزکی خور شوی وو یو بالښت وو، چې په هغې کې د کجورو پاڼې اچولې شوې وې او یو منګی او یو خاورینه کوزه وه رسول الله ﷺ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته پیغام اولېږلو چې تر څو پورې زه رانشم تر هغه وخته پورې خپل کورو الا وو ته مه ورځه ا نو چې کله رسول الله ﷺ

---

۱: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ۹/۲۰۹ رواه الطبراني نحوه ورجالهما رجال الصحيح غير عبدالكريم بن سليط ووثقه ابن حبان الذهبي واخرجه الروياني وابن عساكر نحوه كما في الكنز ۷/۱۱۳ واخرجه النسائي نحوه كما في البداية ۷/۳۴۱ واخرجه سعد ۸/۲۱ عن بريدة نحوه.

راغی نو وې فرمایل چې آیا زما ورور دلته دی؟ حضرت ام ایمن رَضِيَ اللهُ عَنهَا چې د اسامه بن یزید رَضِيَ اللهُ عَنهُ مور وه او هغه یو حبشي او نېکه ښځه وه هغې وویل چې اې د الله رسوله! کله چې تاسو د خپلې لور واده د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ سره وکړ نو اوس دا ستاسو ورور څنګه شو؟ رسول الله ﷺ د نورو صحابه وو په خپل مینځ کې ورور ولي قائمه کړې وه او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ ورور ولي یې خپل ځان سره مقرر کړې وه رسول الله ﷺ وفرمایل دې ورور ولۍ سره دا واده کېدی شي بیا رسول الله ﷺ په یو لوښي کې اوبه را وغوښتلې بیا یې څه ولوستل او د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ په سینه او په مخ یې لاس رابنکلو بیا یې حضرت فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنهَا را وغوښتله نو هغه پاڅېده او د رسول الله ﷺ خوا ته راغله او هغې د شرم او حیا د وجې نه پخپل څادر کې په تند کونو تله رسول الله ﷺ د هغه اوبو نه په حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنهَا باندې وپاشلې او هغې ته یې څه وویل او دا یې وفرمایل چې په ټول خاندان کې دې ما ته د ټولو نه زیات محبوب وو هغه سره ما ستا واده کولو کې څه کمی اونه کړ بیا رسول الله ﷺ د پردې یا دروازې نه وروسته د چا سورې ولیده نو رسول الله ﷺ وفرمایل دا څوک دی؟ ما وویل اسماء! رسول الله ﷺ وفرمایل ایا اسماء بنت عمیس؟ ما وویل هو! اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! رسول الله ﷺ وفرمایل چې ته د الله رب العزت د رسول ﷺ اکرام او عزت د وجې نه راغلې یې؟ ما وویل هو! چې کله د یو ځوانې نجلۍ و[illegible] اوشي نو په هغه شپه دغه نجلۍ سره څوک رشته داره ښځه کېدل ضروري دي د دې لپا[illegible] چې که چېرې دې نجلۍ ته څه ضرورت پېښ شي نو دغه ښځه به د هغې ضرورت پو[illegible] کوي. په دې باندې رسول الله ﷺ ما ته داسې زبردست دعا وکړه چې زما په نزد هغه د [illegible] نه قابل اعتماد عمل دی بیا یې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته وفرمایل واخله! خپله بي بي [illegible] سنبال کړه بیا رسول الله ﷺ بیرون لاړو او خپل کور ته داخلېدلو پورې یې حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنهَا او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته دعاګانې کولې.(۱)

په یو روایت کې حضرت اسماء بنت عمیس رَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمایل چې رسول الله ﷺ د لور حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنهَا د واده په شپه زه هم هلته ووم کله چې سهار شو نو رسول الله ﷺ راغی او دروازه یې او ټکوله حضرت ام ایمن رَضِيَ اللهُ عَنهَا پاڅېده او دروازه یې پرانیستله

(۱) اخرجه الطبراني

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل اې ام ايمن! زما ورور را وغواړه! هغې ورته وويل چې آيا هغه ستا ورور دی؟ هغه سره تاسو د خپلې لور واده کړی دی رسول الله ﷺ وفرمايل اې ام ايمن! ما ته يې راوغواړه! ښځو چې د رسول الله ﷺ اواز واورېدو نو يو خوا بل خوا شوې بيا رسول الله ﷺ يو طرف ته کېناسته بيا حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی نو رسول الله ﷺ د هغه لپاره دعا وکړه او لږې اوبه يې پرې چړکاو کړې بيا يې وفرمايل چې ما ته فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا راوغواړئ! چې کله هغه راغله نو د هغه شرم او حيا د وجې نه خولې خولې وه او واړه واړه قدمونه يې اخيستل رسول الله ﷺ وفرمايل چُپ شه! ما ستا واده داسې سړي سره کړی دی چې ما ته په خپل خاندان کې د ټولو نه زيات محبوب دی مخکې د تېر شوی حديث پشان مضمون دی.(۱)

حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې کله رسول الله ﷺ د حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ما سره واده وکړ نو هغوی ﷺ اوبه را وغوښتلې او په هغې باندې يې خوله اووينځله بيا يې زه د ننه بوتلم او هغه اوبه يې زما په ګرېوان او زما د دواړو اوګو تر مينځه چړکاو کړې: او (قل هو الله احد، قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس. يې اولوستل او په ما باندې يې دم کړل.(۲)

حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې ما رسول الله ﷺ ته د هغوی ﷺ د لور حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره د واده کولو پيغام اولېږلو بيا ما خپله يوه زغره او څه سامان په څلور سوه اتيا درهمه خرڅ کړل رسول الله ﷺ وفرمايل چې د دې په دوو حصو باندې خوشبوئي واخله او دريمه حصه باندې جامې واخله او د اوبو په يو منګي کې خوله وينځله او وې فرمايل چې په دې باندې غسل وکړه او حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته يې وفرمايل چې کله ستا ماشوم اوشي نو ما ته يې د راوستلو نه مخکې خپلې پې مه ورکوه! خو حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته پې ورکړلې البته حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يې ورنه کړل بلکې رسول الله ﷺ په خوله کې څه واچول چې د هغې پته اونه لګېده په دې وجه باندې په دواړو رونو کې حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ډېر علم والا وو.(۳)

حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايل چې د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د

---

۱: اخرجه الطبرانی قال الهیثمی ۹/۲۱۰ رواه کله الطبرانی ورجال الروایة الاول رجال الصحیح اه.

۲: اخرجه ابن العساکر کذافی الکنز ۷/۱۱۳

۳: اخرجه ابویعلي وسعید بن منصور عن علباء بن احمد کذافی الکنز ۷/۱۱۳ واخرجه ابن سعد ۸/۲۱ عن علباء قصة الطیب والشهاب.

واده په موقعه باندې مونږ هم حاضر وو د دې نه بنه واده بل نه دی لیدلی په بستره کې مونږ د کجورو پاڼې واچولې او کجورې او کشمش (میوه) مونږ ته رورلي شوه چې هغه مونږ اوخوړل او د واده په شپه کې د حضرت فاطمې رضي الله عنها بستره د ګډ یوه څرمن وه.(۱)

حضرت علي رضي الله عنه فرمایل چې رسول الله ﷺ حضرت فاطمې رضي الله عنها ته په جهیز کې یو چادر جالي والا څادر یوه مشکیزه او یو د څرمنې بالښت ورکړل چې په هغې کې اذخر واښه اچولي وو.(۲)

حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه فرمایل چې کله رسول الله ﷺ حضرت فاطمه رضي الله عنها د حضرت علي رضي الله عنه کور ته اولیږله نو هغې سره یو د جالي څادر او د څرمنې بالښت چې پکې د کجورو پاڼې او د اذخر واښه اچول شوي وو او یوه مشکیزه یې هم ولیږله هغوی دواړو به نیم څادر لاندې خورولو او نیم به اغوستلو.(۳)

**د حضرت ربیعه اسلمي رضي الله عنه نکاح**

حضرت ربیعه اسلمي رضي الله عنه فرمایل چې ما به د رسول الله ﷺ خدمت کولو یو ځل ما ته رسول الله ﷺ وفرمایل آیا ته واده نه کوې؟ ما وویل نه! اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه نه واده کول غواړم! او نه بي بي ته د ورکولو لپاره ما سره څه شته! او نه زما څه داسې شی خوښ دی چې په هغې کې اولګوم او تاسو رانه پاتې شئ! دا یې چې واوریدل نو رسول الله ﷺ ما ته مخ کړلو بیا یې دوباره وفرمایل چې اې ربیعه! ته واده نه کوې؟ ما وویل نه زه نه واده کول غواړم! او نه بي بي ته د ورکولو لپاره ما سره څه شته! او نه زما څه داسې شی خوښ دی چې په هغې سره اولګم! او تاسو رانه پاتې شئ! نو بیا رسول الله ﷺ زما نه مخ واړولو بیا ما په زړه کې سوچ وکړ چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! رسول الله ﷺ زما د دنیا او اخرت په مصلحت باندې ما نه بنه پوهیږي په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! که چیرې دا ځل رسول الله ﷺ وفرمایل چې آیا ته واده نه کوې؟ نو زه به ووایم هو! کوم یې! اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو چې څه فرمایل نو رسول الله ﷺ ما ته وفرمایل اې ربیعه! آیا ته واده نه کوې؟ ما وویل هو! ضرور اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو چې څه فرمایئ! وې

۱: اخرجه البزار قال الهيثمي ۹/۲۰۹ وفيه عبدالله بن ميمون القدح وهو ضعيف.

۲: اخرجه البيهقي في الدلائل كذافي الكنز ۷/۱۱۳

۳: عند الطبراني قال الهيثمي ۹/۲۱۰ وفيه عطا بن السائب وقد اختلط.

فرمايل چې د فلاني آل ته ورشه! او د انصارو د يوې قبيلې نوم يې واخيستلو کوم به چې کله کله د رسول الله ﷺ په خدمت کې راتلل او وې فرمايل چې لاړ شه! او هغوی ته او وايه! چې رسول الله ﷺ زه تاسو ته را لېږلی يم! رسول الله ﷺ فرمايل چې تاسو زما واده فلانی ښځې سره وکړئ! هغوی وويل چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسول ته او د هغوی قاصد ته دې په خير راغلې وي په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رسول ﷺ قاصد به خپل ضرورت پوره کولو سره واپس کېږي نو هغوی زما واده وکړ او ما سره يې ډېرې شفقت او مهربانۍ معامله وکړه او زما نه يې څه شاهد او نه غوښتلو د هلته نه د رسول الله ﷺ په خدمت کې ډېر پرېشانه واپس راغلم او عرض مې وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه داسې خلکو ته ورغلم چې ډېر سخيان او اخلاقو والا دي هغوی زما واده وکړ او ما سره يې ډېر د شفقت او مهربانۍ معامله وکړه او زما نه يې ګواه هم اونه غوښتلو خو اوس ما سره د مهر ورکولو لپاره څه نشته! رسول الله ﷺ وفرمايل اې بريده اسلمي! د ه لپاره کجورې نشته د هډوکي برابر سره زر جمع کړه نو هغه د هډوکي برابر سره زر جمع کړه کړل هغه مې واخيستل د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم رسول الله ﷺ وفرمايل چې دا سره زر هغوی ته يوسه! او ورته اووايه! چې دا د هغه ښځې مهر دي هغوی هغه قبول کړ او ډېر خوشحاله شول او وې ويل چې دا خو ډېر زيات دی دا ډېر پاکيزه دي زه بيا پرېشانه شوم او د رسول الله ﷺ په خدمت کې واپس راغلم رسول الله ﷺ وفرمايل اې ربيعه! څه خبره ده؟ ما وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! دغه خلکو نه زيات ښه اخلاقو والا قوم ما بل نه دی ليدلی ما چې هغوی ته کوم مهر ورکړ هغوی ډېر خوشحاله شول او ماسره يې ډېره ښه رويه وکړه او وې ويل چې دا خو ډېر پاک دي او دا خو ډېر پاکيزه دي خو اوس ما سره د وليمې لپاره څه نشته رسول الله ﷺ وفرمايل اې بريده! د ه لپاره د چېلۍ انتظام وکړه نو دغه خلکو يو څورب ګډ ما لپاره راوستلو او رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل چې ته عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا ته ورشه! او ورته اووايه! چې په کومه تکرۍ کې غله ده هغه راولېږه! نو رسول الله ﷺ چې څه فرمايلي وو زه لاړم هغه مې حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا ته وويل هغې وويل چې په دې تکرۍ کې اووه صاع اوربشې دي په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! مونږ کره دې نه علاوه بل څه د طعام نشته دا واخله ما هغه اوربشې راواخيستې او رسول الله ﷺ ته راغلم او حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا چې څه

فرمايلي وو هغه مې ورته وويل رسول الله ﷺ وفرمايل چې دا اوربشې او که هغوی ته يوسه! او ورته او وايه چې دا اوربشو دوډۍ او که انيګولي تيار کړئ! هغه خلکو وويل دوډۍ خو به مونږ پخه کړو خو که تاسو پوخ کړئ! نو زه او د قبيله اسلم څو کسان يو ځائ شو او هغه مونږ حلال کړ او د هغه څرمن مو اووېسته او هغه مو پوخ کړ دا شان د دوډۍ او غوښې انتظام وشو چې هغه مونږ په وليمه کې په خلکو اوخوړل او طعام لپاره ما رسول الله ﷺ راوغوښتلو بيا د هغه پس رسول الله ﷺ ما ته يوه زمکه راکړه او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يې هم ورکړه او دنيا راغله او زما او د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د يوې کجورې د ونې باره کې اختلاف راغی ما وويل چې دا زما په حد کې ده هغوی وويل نه دا زما په حد کې ده په دې باندې زما او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مينځ کې څه خبره زياته شوه او ما ته يې سخت لفظ وويل و چې په ما باندې بد اولګېدو خو هغه فورا پښيمانه شو او ما ته يې وويل نه زه يې نه وايم! هغه وويل ته يې هم اووايه کني زه به لاړ شم او رسول الله ﷺ ته به اووايم ما وويل نه بلکل يې نه وايم په دې باندې هغه د زمکې جګړه هم هلته پرېښوده او رسول الله ﷺ له روان شو په دې کې زما د قبيله اسلم څه کسان راغلل او وې ويل چې الله رب العزت دې په ابوبکر باندې رحم وکړی دی په کومه خبره باندې رسول الله ﷺ ته شکايت لپاره ځې؟ پخپله خو يې تا ته سخته خبره کړې ده ما وويل چې تاسو پيژنئ! چې دا څوک دی ؟ دا ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي. دا د رسول الله ﷺ د غار ثور ملګری دی او دا په مسلمانانو کې د ډېر عمر والا دی تاسو لاړ شئ! که چېرې هغه وکتل او تاسو وينئ! چې تاسو زما مدد لپاره راغلی يئ! نو هغه به خفه شي او لاړ به شي رسول الله ﷺ ته به اووايي نو د ده خفګان په وجه به رسول الله ﷺ خفه شي او د دې دواړو خفګان سره به الله رب العزت خفه شي نو ربيعه خو به تباه شي هغه خلکو وويل چې اوس مونږ څه وکړ ؟ ما وويل تاسو واپس لاړ شئ! حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله ﷺ په خدمت کې لاړو او زه يوازې هغه پسې روان ووم هغه لاړو چې څنګه واقعه شوې وه هم داسې يې بيان کړه رسول الله ﷺ ما خواته سره اوچت کړ او وې فرمايل اې ربيعه! ستا او د صديق څه معامله ده؟ ما عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! داسې داسې خبره شوې وه ده ما ته سخت اسې لفظ اووايه چې په ما بد اولګېدو بيا يې ما ته وويل چې ته هم ما ته داسې لفظ

او وايه چې بدله ختمه شي خو ما انکار وکړ رسول الله ﷺ وفرمايل تا بنه وکړل ده ته په بدله کې سخت لفظ مه وايه بلکې دا او وايه چې اې ابوبکر! الله دې تا ته مغفرت وکړي حضرت حسن راوي وايي چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ الله دې په هغه رحم وکړي په ژړا واپس لاړو چې ربيعه زمانه مخکې شو.(۱)

**د حضرت جليبيب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نکاح**

حضرت ابوبرزه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايل چې حضرت جليبيب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ داسې سړی وو چې به زنانه وو ته ورتلو په هغوی به تېرېدو او هغوی سره به يې خندا ټوکې کولې ما خپلې بي بي ته وويل چې حضرت جليبيب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کله هم خپلې خوا ته راتلو ته مه پرېږده! که چېرې هغه ستا خوا ته راغی نو زه به دا وکړم او داسې به وکړم او د انصارو دستور دا وو چې کله به يوه زنانه کونډه شوه نو هغه وخته پورې به يې د هغې بل واده نه کولو تر څو پورې چې دا پته نه لګېدلې چې رسول الله ﷺ ته د دې ضرورت شته يا نشته. نو رسول الله ﷺ يو انصاري ته وفرمايل چې د خپلې لور واده ما سره وکړه هغه اويل ضرور اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! په سر سترګو دا خو زما لپاره لويه د عزت خبره ده او د سترګو د يخوالي سبب دی رسول الله ﷺ وفرمايل خو زه يې خپله واده کول نه غواړم هغه انصاري پوښتنه وکړه چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! چا سره يې واده کول غواړې؟ وې فرمايل جليبيب سره هغه انصاري وويل چې زه خو د هغې مور سره لږه خبره وکړم نو لاړو او خپلې بي بي ته يې وويل چې رسول الله ﷺ ستا د لور لپاره د واده پيغام راکوي هغه بي بي وويل ضرور په سترګو! انصاري وويل چې رسول الله ﷺ ځان لپاره پيغام نه راکوي بلکې د جليبيب لپاره يې راکوي بي بي ورته وويل چې جُليبيب لپاره بلکل نه په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! هغه ته يې مونږ نه واده کوو چې کله رسول الله ﷺ ته هغه انصاري راتلو او د خپلې بي بي د مشورې بيانولو لپاره پاڅېدو نو هغې نجلۍ وويل چې زما د واده پيغام تاسو ته چا درکړي؟ د هغې مور وويل چې رسول الله ﷺ راکړی دی نو هغې نجلۍ وويل آيا تاسو به د رسول الله ﷺ خبرې نه انکار کوئ؟ ما رسول الله ﷺ ته حواله کړئ! هغه به ما هيڅ کله ضايع کولو ته پرې نه ږدي

---

۱: اخرجه احمد والطبرانى قال الهيثمى ۴/۲۵۷ رواه احمد والطبرانى وفيه مبارک بن فضالة وحديثه حسن وبقية رجال احمد رجال الصحيح اه و اخرجه ابويعلي عن ربيعه نحوه كما فى البداية ۵/۳۳۶ والحاكم وغيره قصة النكاح كما فى الكنز ۷/۳۶ وابن سعد ۳/۴۴ قصته مع ابي بكر.

نو دهغې پلار لاړو او رسول الله ﷺ ته یې عرض وکړ چې زما لور ستاسو په اختیار کې ده چا سره چې غواړئ! واده یې وکړئ! نو رسول الله ﷺ د جلیبیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره د هغې واده وکړه! بیا رسول الله ﷺ یوې غزا ته لاړو کله چې رسول الله ﷺ ته الله رب العزت فتح ورکړه نو هغوی ﷺ وفرمایل چې کوم ملګري تاسو ته په نظر نه راځي صحابه وو عرض وکړ چې داسې څوک نشته رسول الله ﷺ وفرمایل خو ما ته جلیبیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په نظر نه راځي. رسول الله ﷺ وفرمایل چې هغه اولټوئ! صحابه وو تلاش کړ نو هغه د اوو کافرانو سره شهید کړئ شوی ملاو شو چې هغه دغه اووه مړي کړی وو بیا یې هغه شهید کړ صحابه وو عرض وکړ چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! دا جلیبیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د اوو کافرانو په خوا کې پروت دی اول یې هغوی مړه کړی دی بیا هغوی هغه شهید کړی دی نو رسول الله ﷺ پخپله هغه ته ورغی او دوه یا درې ځل یې وفرمایل چې ده اووه مړه کړل بیا هغوی دې شهید کړی دی دا زما دی او زه د ده یم بیا رسول الله ﷺ د هغه بدن پخپلو متو کېښودو بیا هغه لپاره قبر وکنستی شو د هغه لپاره بل خو څه تخت نه وو بس د رسول الله ﷺ متې یې تخت وو بیا رسول الله ﷺ هغه پخپله قبر کې کېښودو په دې حدیث کې د دې خبرې ذکر نشته چې رسول الله ﷺ هغه ته غسل ورکړ حضرت ثابت وایي چې په انصارو کې هیڅوک کونده ښځه د دې نجلۍ نه زیاته خرچ کوونکې نه وه حضرت اسحاق بن عبد الله بن ابي طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل چې آیا تاسو ته معلومه ده چې رسول الله ﷺ دغه نجلۍ ته څه دعا کړې وه؟ دا دعا یې کړې وه چې اې الله جَلَّ جَلَالُهُ! ته په دې باندې خیرونه ښه رااوبهوې او د دې ژوند د مشقت والا مه جوړوې! نو په انصارو کې هیڅ یوه کونده ښځه د دې نه زیاته خرچ کوونکې نه وه.(۱)

**د حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نکاح**

حضرت ابو عبد الرحمن سلمي رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د کنده قبیلې یوې ښځې سره واده وکړ او هم د هغې په کور کې د هغه واده وشو چې کله یې د واده شپه راغله نو د هغه ملګري هم د هغه سره روان شو او هغه د بي بي کوره پورې راغلل هلته

(۱) اخرجه احمد قال الهیثمي ۹/۳٦۸ رواه احمد ورجاله رجال الصحیح وهو في الصحیح خالیا عن الخطبه والتزویج انتهی.

چې اورسېدل نو حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل چې اوس تاسو واپس لاړ شئ! الله رب العزت دې تاسو ته ډېر اجر درکړي او دغه کسان یې دننه د خپلې بي بي خواته بو نه تلل څنګه چې د ناپوه خلکو رواج دی هغه کور ډېر ښائسته کړی شوی وو په دېوالونو باندې پردې لګېدلې وې دایې چې ولیدل نو وې فرمایل آیا ستا کور تبې نیولې دي؟ چې دومره پردې مو لګولې دی یا کعبه کنده قبیلې راغلې ده او تا دا کور دومره ښائسته کړی دی کور والاوو وویل چې نه خو زمونږ کور تبې نیولی دی او نه کنده ته کعبه راغلې ده چې کله دغه خلکو د دروازې د پردې نه علاوه ټولې پردې لرې کړې نو هله حضرت سلمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ کور ته دننه ورغی کله چې دننه ورغی نو ډېر سامان ورته په نظر راغی نو وې فرمایل چې دا سامان د چا دی؟ هغوی وویل چې دا سامان ستا او ستا د بي بي دی هغه وویل چې دومره سامان خو ما ته زما خلیل ﷺ وصیت نه وو کړی ما ته یې دا وصیت کړی وو چې د دنیا نه دی زما سامان دومره وي څومره چې د سور سره د سفر سامان وي بیا یې ډېرې وینزې ولیدلې او وې فرمایل چې زما خلیل ﷺ خو ما ته د دومره وینزو د ساتلو وصیت نه دی کړی ما ته خو یې د دې وصیت کړی وو چې زه دومره اوساتم! چې هغوی سره زه پخپله نکاح کولی شم یا د هغوی نورو سره نکاح کولی شم که چېرې زه دومره ډېرې وینزې اوساتم نو دوي به زنا کولو ته مجبوره شي (د مالک کېدو دېچې نه) د هغوی برابر زه هم ګناهګار یم او په دې سره به د دوي په ګناه کې څه کمی هم نه راځي بیا کومې ښځې چې د هغه بي بي سره ناستې وې هغوی ته یې وفرمایل آیا اوس به تاسو زمونږ د خوا نه لاړې شئ! او ما ته د خپلې بي بي سره د ځانله والي موقعه راکړئ؟ هغوی وویل هو! نو هغوی لاړلې حضرت سلمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ لاړو او دروازه یې بنده کړه او پرده یې زوړنده کړه او راغی د خپلې بي بي په خوا کې کېناسته او د هغې په تندي باندې یې لاس راښکلو او د برکت دعا یې وکړه او هغې ته یې وویل چې د کوم کار زه تا ته حکم کوم آیا ته به په هغې کې زما خبره او منې؟ هغې وویل چې ستا داسې مقام دی چې ستاسو خبره ومنلی شي هغه وفرمایل چې زما خلیل ﷺ ما ته وصیت کړی وو چې کله د خپلې بي بي سره یو ځای کېږم نو د الله جَلَّ جَلَالُهُ په تابعداری دې یو ځای شم نو حضرت سلمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او د هغه بي بي پاڅېدل او د لمونځ کولو ځای ته لاړل او څه وخت یې لمونځ وکړ او بیا دواړه واپس خپل ځای ته راغلل او بیا

یې خپلې بي بي سره خپل هغه ضرورت پوره کړ چې انسان خپلې بي بي نه پوره کوي سهار د هغه ملګري هغه ته راغلل او پوښتنه يې ترې وکړه چې حضرت تاسو خپل کوروالا څنګه بيا موندل؟ هغه ترې مخ واړولو هغوی دوباره پوښتنه وکړه نو هغه ترې بيا مخ واړولو هغوی بيا دريم ځل پوښتنه وکړه نو اول خو يې ترې مخ واړولو او بيا يې وفرمايل چې الله رب العزت دروازې او پرې دې لپاره جوړې کړی دی چې د هغې دننه شيان پټ وي سرې لپاره يو ازې دومره کافي ده چې هغه د ظاهري حالاتو په باره کې پوښتنه وکړي دننه پټ حالاتو پوښتنه هيڅ کله ونکړي ما د رسول الله ﷺ نه اورېدلی دی چې د ښځې سره دننه والا حالات بيانوونکي د هغه خر او خرې په شان دی چې په لاره کې جماع کوي.(۱)

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايل چې حضرت سلمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د يو سفر نه واپس شو نو هغه سره د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ملاقات وشو نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه ته وويل چې ته د الله رب العزت خوښ بنده يې ! حضرت سلمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل نو بيا تاسو په خپل خاندان کې زما واده وکړئ! حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په دې باندې چُپ شو حضرت سلمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې ته خو ما د الله رب العزت خوښ بنده ګڼې! خو ما خپل زوم جوړول ستاسو خوښ نه دي سهار د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د قوم خلک حضرت سلمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته ورغلل حضرت سلمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه آيا څه کار مو دی؟ ان شاء الله ستاسو کار به وشي هغه خلکو وويل چې تا د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته د واده پيغام ورکړی وو هغه واپس واخله حضرت سلمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل ما دا پيغام د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د امارت او بادشاهی د وجې نه نه وو کړي بلکې ما د له دې وجې نوه کړی وو چې هغه نېک سړی دی شايد الله رب العزت زما او د ده دې رشتې سره نېک اولاد پيدا کړي نو بيا يې په کنده قبيله کې واده وکړ او د دېنه پس يې د تېر شوی حديث پشان مضمون ذکر کړ (۲)

**د حضرت ابوالدرداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نکاح**

حضرت ثابت بناني رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت سلمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره د بنوليث قبيلې يوې ښځې سره د حضرت سلمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د واده پيغام لپاره لاړل او کور

۱: اخرجه ابونعيم فی الحلية ۱/۱۸۵

۲: عند ابي نعيم واخرجه الطبراني عن ابن عباس مختصراً وفي اسنادهما الحجاج بن فرح وهو ضعيف كما قال الهيثمي ۴/۲۹۱

ته دننه ورغلل او د حضرت سلمان رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ فضائل او د هغه په شروع کې د مسلمانېدو او د هغه د اسلام راوړلو واقعات یې تفصیل سره بیان کړل او هغوی ته یې وویل چې حضرت سلمان رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ د هغوی فلانۍ ځوانې نجلۍ سره واده کول غواړي هغه خلکو وویل چې حضرت سلمان رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ سره د واده کولو لپاره خو مونږ تیار نه یو البته تاسره کولو لپاره تیار یو نو هغه د غه نجلۍ سره واده وکړ او بیرون راغی او حضرت سلمان رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ ته یې وویل چې دننه څه خبره وشوه خو د هغې بیانولو سره ما ته شرم راځي په هر حال حضرت ابوالدرداء رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ هغه ته ټوله خبره وکړه دا چې وا ورېدل حضرت سلمان رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ وویل چې ته زما نه ولې شرمېږې؟ اول خو ماله ستا نه شرمېدل په کار دي ځکه ما د هغه نجلۍ واده کولو پیغام ورکولو چې الله رب العزت ستا په تقدیر کې لیکلې وه.(۱)

**ابودرداء رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ او د یو غریب مسلمان سره د خپلې لور درداء نکاح کول**

حضرت ثابت بناني رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي چې یزید بن معاویه حضرت ابوالدرداء رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ ته د هغه لور حضرت درداء سره د واده پیغام ورکړ نو هغه ورته انکار وکړ د یزید په ملګرو کې یو سړي یزید ته وویل چې الله رب العزت دې ستا اصلاح وکړي ته ما ته اجازه راکړه یزید وویل بنه ده نو هغه سړي حضرت درداء سره د واده پیغام وکړ نو حضرت ابوالدرداء رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ هغه سړي سره د خپلې لور واده وکړ په دې باندې خلکو کې دا خبره مشهوره شوه چې یزید حضرت ابوالدرداء رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ ته د لور د واده پیغام ورکړ نو د هغه نه خو یې انکار وکړ او یو عام غریب مسلمان چې د غه لور سره یې د واده پیغام ورکړ نو هغه سره یې واده وکړ په دې باندې حضرت ابوالدرداء رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمایل چې ما داسې د خپلې لور د فایدې د وجې نه وکړ ستاسو څه خیال دی؟ چې که چېرې ما د درداء واده د یزید سره کړی وای نو هر وخت به د هغې په سر باندې خواجه سرا یعنې خصي غلام د خدمت لپاره ولاړ وو او په کورونو به یې نظر پرېوتلو نو د سرو او سپنو زرو د کثرت د وجې نه به د هغې سترګې برېښېدې خو بیا به د هغې دین څنګه باقي پاتې کېدلی بس هر وخت به په دنیا کې لګیا وای.(۲)

---

۱: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۲۰۰ اخرجه الطبراني مثله قال الهیثمي ۴/۲۷۵ ورجاله ثقات الا ان ثابتا لم یسمع من سلمان وال من ابی الدرداء انتهی.

۲: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۲۵۱ واخرجه ایضا الامام احمد کما فی صفة الصفوة ۱/۲۶۰

**حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لور أم كلثوم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نكاح كول**

حضرت ابو جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایل چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د هغه د لور سره د واده کولو پیغام ورکړ، حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې هغه خو وړه ده چا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل چې هغه وړه نه ده بلکې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې ویلو سره انکار کول غواړي په دې باندې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه سره دوباره خبره وکړه نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راضي شو او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره يې د خپلې لور نکاح وکړه او هغه وویل چې هغه زه تا ته رالیږم که چیرې ستاسو خوښه شوه نو هم هغه ستاسو بي بي ده نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت ام کلثوم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا لره حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغې د لاندې پنډۍ جامه او چتول غوښتل نو هغې وویل چې جامه هم دغسې لاندې پریږده که چیرې ته امیر المؤمنین نه واي نو ما به ته په سترګو باندې په څپیړه وهلی وای واپس چې کله لاړه نو حضرت ام کلثوم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ټوله خبره وکړه نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې هغه داسې کولی شي ځکه چې هغه ستا خاوند دی.(۱)

حضرت محمد (بن علي رَحِمَهُ اللهُ) وایي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د هغه لور حضرت ام کلثوم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره د واده کولو پیغام ورکړ نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې ما خو دا فیصله کړې ده چې د خپلو ټولو لونو واده به یوازې د خپل ورور حضرت جعفر بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ځامنو سره کوم حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل نه! ته د هغې واده ما سره وکړه په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! د ځمکې په مخ څوک داسې سړی نشته چې د هغې د عزت به دومره اهتمام وکړي څومره به یې چې زه کوم حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل ښه ما د دغه لور نکاح تاسره وکړه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی او مهاجرینو ته یې وویل چې ما ته د واده مبارکي راکړئ! هغوی ورته مبارکي ورکړه او پوښتنه یې وکړه چې تاسو د چا سره واده وکړ؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د لور سره. ځکه رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې زما د رشتې او تعلق نه علاوه هره رشته او تعلق به د قیامت په ورځ ختم شي ما خو د خپلې لور واده رسول الله ﷺ سره کړی وو اوس ما غوښتل چې د رسول الله ﷺ د نوسې سره زما واده او شي نو د رشتې به زیات تعلق حاصل شي حضرت عطاء

(۱) اخرجه عبدالرزاق وسعيد بن منصور كذافي الكنز ۸/۲۹۱ واخرجه ابن عمر المقدسي عن محمد بن علي نحوه كما في الاصابة ۴/۲۹۲

خراساني په روايت کې دا دي چې حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حضرت ام کلثوم رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا ته په مهر کې څلوېښت درهمه ورکړل.(۱)

## عدي بن حاتم او د عمرو بن حريث رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ سره خپلې لور نکاح کول

حضرت شعبي رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې حضرت عمرو بن حريث رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حضرت عدي بن حاتم رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته د هغه لور سره د واده پيغام ورکړ نو حضرت عدي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل چې د مهر په باره کې که چېرې زما فيصله منې نو زه د خپلې لور واده تا سره کوم حضرت عمرو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې ستاسو څه فيصله ده؟ حضرت عدي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل چې ستاسو خلکو لپاره د رسول الله ﷺ يوه ښايسته نمونه موجوده ده ستا باره کې زما فيصله دا ده چې د حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا والا مهر څلور سوه اتيا زره درهمه به ورکړې.(۲)

حضرت حميد بن هلال رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې حضرت عمرو بن حريث حضرت عدي بن حاتم رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته د واده پيغام ورکړ نو حضرت عدي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل چې زه به د هغې واده وکړم خو د مهر په باره کې به زما فيصله منې حضرت عمرو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل چې زما په باره کې ستا څه فيصله وي هغه ما ته او وايه بيا وروسته حضرت عدي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هغه ته دا پيغام اولېږلو چې ما د څلور سوه اتيا زره درهمه د مهر فيصله کړې ده چې د رسول الله ﷺ سنت دي.(۳)

## د حضرت بلال او د هغه د ورور رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا نکاح

حضرت شعبي رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې حضرت بلال رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او د هغه ورور په يمن کې يوې کورنۍ ته د خپل واده پيغام ورکړ نو حضرت بلال رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ داسې وفرمايل چې زه بلال يم او دا زما ورور دی مونږ دواړه د حبشې غلامان يو مونږ ګمراهان وو الله رب العزت مونږ ته هدايت وکړ او مونږ دواړه غلامان وو مونږ الله رب العزت ازاد کړو که چېرې تاسو زمونږ د دواړو واده وکړئ! نو الحمد لله يعنې مونږ به د الله رب العزت شکر اداء کړو که چېرې اونه کړئ! نو الله اکبر يعنې الله جَلَّ جَلَالُهُ ډېر لوی دی هغه به څه بل انتظام وکړي تاسو نه به هيڅ ګيله نه وي هغوی د دې دواړو واده وکړ حضرت عمرو بن ميمون رَحِمَهُ اللّٰهُ د خپل پلار

---

۱: عند ابن سعد كذافى الاصابة

۲: اخرجه ابن عساكر

۳: عند ابن عساكر ايضا كذافى الكنز ٨/٢٣٩

حضرت میمون رحمه الله نه نقل کوي چې د حضرت بلال رضي الله عنه یو ورور په نسب کې خپل نسبت عربو ته کولو او ویل به یې چې زه عرب یم! هغه د عربو یوې ښځې ته د واده پیغام ورکړ د دې ښځې رشته دارو وویل چې که چېرې حضرت بلال رضي الله عنه راشي نو مونږ به تاسره واده وکړو نو حضرت بلال رضي الله عنه راغی او مسنون خطبه یې اولوستله او وې فرمایل چې زه بلال بن رباح یم او دا زما رور دې خو دا په اخلاقو او دین کې خراب سړی دی که چېرې تاسو غواړئ! نو ده سره واده وکړئ! او که غواړئ! نو مه کوئ! هغوی وویل د چا چې تاسو وروریئ! مونږ به هغه سره ضرور واده کوو.(۱)

**په نکاح کې د کافرانو سره په مشابهت اختیارولو انکار**

حضرت عبد الله بن قرط ثمالي رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په صحابه وو کې وو هغه د حضرت عمر رضي الله عنه د طرفه د حمص ګورنر (والي) وو یوه شپه هغه په حمص کې د څوکیدارۍ لپاره ګشت کولو چې د هغه په خوا کې یو جنج ناوې اخیستې وه او تېر شول او دې خلکو د ناوې نه مخکې څو ځایه وربل کړی وو هغه په کوړه باندې جینجیان داسې وهل چې هغوی ټولو ناوې پرېښوده او وتښتېدل سهار حضرت عبد الله رضي الله عنه په منبر باندې کېناسته او د الله رب العزت حمد او ثناء نه پس یې وفرمایل چې حضرت ابو جندله رضي الله عنه حضرت امامه رضي الله عنها سره واده وکړ نو په ولیمه کې یې د حضرت امامه لپاره څو موټې طعام تیار کړ الله رب العزت دې په حضرت ابو جندله رضي الله عنه باندې رحم وکړي او الله رب العزت دې په امامه باندې رحمت نازل کړي او الله رب العزت دې ستاسو د بېګاه شپې والا ناوې او جنجیانو باندې لعنت وکړي دې خلکو څو ځایه اوربل کړی وو او کافرانو سره یې مشابهت کړی وو او الله رب العزت د کافرانو اور مړ کونکی دی.(۲)

## د مهر بیان

**درسول الله ﷺ مهر:**

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایل چې د رسول الله ﷺ مهر د لس اوقیې او یو اونس وو چې د هغې نه پنځه سوه درهمه جوړېږي ځه چې په یو اوقیه کې څلوېښت درهمه او یو اونس کې

۱: اخرجه ابن سعد ۳/۲۷

۲: اخرجه ابوالشیخ فی کتاب النکاح عن عروة بن رویم کذافی الاصابة

شل درهمه وي.(۱)

**دمهر دزیادت دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نهي اوپه دې کار د يوې ښځې اعتراض:**

حضرت مسروق رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زما په علم کې هيڅ يو داسې سړی نشته چې هغه د څلورو سوو نه زيات مهر مقرر کړی وي ځکه چې د رسول الله ﷺ او د هغوی ﷺ د صحابه وو مهر څلور سوه درهمه يا د دېنه کم وو کړی زيات مهر مقررول د تقوی او عزت خبره واي تاسو د دغو مبارکو حضراتو نه په مهر کې نه شوئ مخکې کېداي. بيا د منبر نه لاندې راکوز شو بيا يوه قريشي ښځه د هغوی مخې ته راغله او وې ويل چې ايا تاسو خلک د څلور سوو نه زيات مهر ساتلو نه منع کړی دی ؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې هو ! هغې ښځې وفرمايل چې آيا تا په قرآن کې د الله رب العزت نه دا ارشاد اورېدلی دی؟

وَّاٰتَيْتُمْ اِحْدٰىهُنَّ قِنْطَارًا فَلَا تَاْخُذُوْا مِنْهُ شَيْئًا ۭ (۲)

ترجمه: او تاسو هغه يوې ښځې ته انبار انبار مال ورکړی وای نو د هغې نه هيڅ هم مه اخلئ! يعني دې آيت کې الله رب العزت مهر کې د ډېر مال ورکولو بيان کړی دی دېنه معلومه شوه چې زيات مهر ورکول هم جائز دي دا يې چې واورېدل نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل اې الله! زه ستا نه معافي غواړم ټول خلک د عمر نه زيات په دين پوهيږي بيا واپس راغی منبر ته اوختلو او وې فرمايل اې خلکو ! ما تاسو د څلور سوو مهر نه زيات ورکولو نه منع کړي وئ! خو اوس تاسو ته اجازه ده چې څومره تاسو غواړئ! يا څومره چې ستاسو زړه غواړي تاسو هغومره مهر ورکولی شئ!(۳)

حضرت شعبي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې يوه ورځ حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان وکړ د الله رب العزت حمد او ثناء نه پس يې وفرمايل چې ښه په غور سره واورئ! د ښځو مهر زيات مه مقرروئ! که چېرې ما ته د چا په باره کې پته ولګېده چې هغه د دېنه زيات مهر ورکړی دی څومره چې رسول الله ﷺ پخپله ورکړی دی يا د هغه لوڼو ته ورکړل شوی دی نو زه به زياتي مهر اخلم او په بيت المال کې به يې جمع کوم بيا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د منبر نه

۱: اخرجه ابن سعد ۸/۱٦۱

۲: سورة نساء ايت ۲۰

۳: اخرجه سعيد بن منصور وابويعلى والمحاملي كذافي الكنز ۸/۲۹۸ قال الهيثمي ۴/۲۸۴ رواه ابويعلي في الكبير وفيه مجالد بن سعيد وفيه ضعف وقد وثق انتهى واخرجه ابن سعد ۸/۱٦۱ من طريق عطاء الخراساني اخصر منه.

راکوز شو او راغی نو د قریشو یوه ښځه د هغه مخې ته راغله او وې ویل اې امیرالمؤمنین! آیا د الله رب العزت کتاب د تابعداری کولو زیات مستحق دي یا ستاسو خبره؟ حضرت عمر رضی الله عنه وویل چې د الله رب العزت کتاب! څه خبره ده؟ هغې وویل چې تاسو خلک ښځو ته د زیات مهر ورکولو نه منع کړل په داسې حال کې الله رب العزت په خپل کتاب کې فرمایل: ﴿وَآتَيْتُمْ إِحْدَاهُنَّ قِنطَارًا فَلَا تَأْخُذُوا مِنْهُ شَيْئًا﴾(۱)

ترجمه یې مخکې تېره شوې ده دا یې چې واورېدل حضرت عمر رضی الله عنه دوه درې ځله وفرمایل چې هر یو د عمر رضی الله عنه نه د دین پوهه زیاته لري بیا واپس منبر ته راغی او خلکو ته یې وفرمایل چې ما تاسو ته اختیار درکړی دی هر سړی چې د خپل مال نه څه غواړي او دې کړي.(۲)

حضرت عمر رضی الله عنه وفرمایل چې که چېرې زیات مهر په اخرت کې د درجو او مرتبو اوچتېدو ذریعه واي نو د رسول الله ﷺ لونړه او بیبیانې د دې زیاتې حقدارې وې.(۳)

**د حضرت عمر، حضرت عثمان، حضرت ابن عمر او حسن بن علی رضی الله عنهم عمل**

حضرت ابن سیرین رحمه الله وایي چې حضرت عمر رضی الله عنه ښځې ته د وو زرو مهر ورکولو اجازه ورکړه او حضرت عثمان رضی الله عنه د څلورو زرو اجازه ورکړه.(۴)

حضرت نافع رحمه الله وایي چې حضرت ابن عمر رضی الله عنه د حضرت صفیې رضی الله عنها په څلور سوو درهمو باندې واده وکړ نو حضرت صفیې رضی الله عنها حضرت ابن عمر رضی الله عنه ته دا پیغام ولېږلو چې دا څلور سوه خو به ما لپاره کافي نشي په دې باندې حضرت ابن عمر رضی الله عنه د حضرت عمر رضی الله عنه نه په پټه دوه سوه درهمه زیات کړل.(۵)

حضرت ابن سیرین رحمه الله وایي چې حضرت حسن بن علي رضی الله عنه د یوې ښځې سره واده وکړ او هغې ته یې سل وینځې اولېږلې او هرې وینځې سره اوه زره درهم ولېږل.(٦)

۱: سورة نساء ۲۰
۲: اخرجه سعید بن منصور والبیهقي
۳: عند ابی عمر بن فضالة فی اماليه كذافی كنز العمال ۸/۲۹۸
٤: اخرجه ابن ابي شيبة كذافی الكنز ۸/۲۹۸
٥: اخرجه ابن ابي شيبة كذافی الكنز ۸/۲۹۸
٦: اخرجه الطبرانی قال الهيثمی ۴/۲۸۴ رجاله رجال الصحيح انتهى

# د سړیو، ښځو او ماشومانو خپلمنځي معاشرت او ژوند تېرول

**د حضرت عائشې او حضرت سوده رضي الله عنهما د یو بل سره معاشرت:**

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایل چې ما اوړه، پې او غوړي یو ځائ کړل د رسول الله ﷺ لپاره مې شیره پخه کړه او د هغوی ﷺ په خدمت کې مې پېش کړه رسول الله ﷺ زما او د حضرت سوده رضي الله عنها په مینځ کې ناست وو ما حضرت سوده رضي الله عنها ته وویل چې ته یې هم وخوره! هغې انکار وکړ ما وویل یا خو یې ته وخوره! کنې زه به یې ستا په مخ اومږم! هغې بیا هم انکار وکړ نو ما په لاس کې شېره راواخیسته او د هغې په مخ مې اومږله په دې رسول الله ﷺ اوخندل بیا رسول الله ﷺ د هغې لاس په شیره کې ورښکته کړ او وې ویل چې ته یې د عائشې رضي الله عنها په مخ باندې اومګه! نو هغې زما په مخ باندې اومګله نو رسول الله ﷺ په دې باندې هم اوخندل په دې حضرت عمر رضي الله عنه هلته تېر شو هغه چاته اواز کولو اې عبدالله! اې عبدالله! یې وویل رسول الله ﷺ پوه شو چې حضرت عمر رضي الله عنه راځي په دې باندې رسول الله ﷺ وفرمایل چې عمر رضي الله عنه دننه راځي تاسو دواړه پاځئ! او مخونه وو ینځئ! نو رسول الله ﷺ د حضرت عمر رضي الله عنه دومره خیال اوساتلو له دې وجې نه زه همېشه د عمر رضي الله عنه نه وېرېدم.(۱)

او په یو روایت کې دا دی چې رسول الله ﷺ د حضرت سودة د خاطره خپل زنګون ښکته کړ چې هغه زمانه بدله واخلي نو هغې د لوښي نه څه شیره واخیستله او زما په مخ باندې یې اومګله او رسول الله ﷺ خندل.

**د حضرت سوده یمامه رضي الله عنها سره د حضرت عایشې او حضرت حفصې رضي الله عنهما معاشرت:**

د رسول الله ﷺ آزاده کړې شوې وینزه حضرت رزینه رضي الله عنها فرمایل چې حضرت سوده یمانیه رضي الله عنها حضرت عائشې رضي الله عنها سره ملاوېدو لپاره راغله حضرت عائشې رضي الله عنها سره حضرت حفصه بنت عمر رضي الله عنها هم وه هغې یمنې څادر او یمنې لوپټه په سر کړې وه هغې د سترګو طرفونو ته نزدې د ایلوې او زعفرانو دوه لویې نښې لګولې وې. راوي وایي چې ما ښځې ولیدلې چې هغوی ایلوې او زعفران وغیره د ښایست لپاره استعمالول حضرت حفصې رضي الله عنها حضرت عائشې رضي الله عنها ته وویل اې

---

۱: اخرجه ابویعلي قال الهیثمي ۴/۳۱۶ رجاله رجال الصحیح خلا محمد بن عمرو بن علقمة وحدیثه حسن اه واخرجه ابن عساکر مثله کما في المنتخب ۴/۲۹۳ وابن النجار کما في الکنز ۷/۳۰۲

ام المؤمنین! رسول الله ﷺ به راشي او دا به زمونږ په مینځ کې ګلیږي ام المؤمنین حضرت عائشې رضي الله عنها ورته وویل اې حفصه! د الله جَلَّ جَلَالُهٗ نه اووېرېږه! حضرت حفصې رضي الله عنها ورته وویل نه زه به د دې ډول سنګهار خرابوم حضرت سوده رضي الله عنها په غوږونو درنه وه هغې پوښتنه وکړه چې تاسو دواړه څه خبرې کوئ؟

حضرت حفصې رضي الله عنها ورته وویل اې سوده! دجال راوتی دی هغې وویل بنه دا یې چې واورېدل هغه ډېره زیاته وېرېده او په رپېدو شوه او دا یې وویل چې زه به چېرته پټه شم؟ حضرت حفصې رضي الله عنها وویل چې هغه خېمه کې پټه شه! په هغې کې خاورې، دوړې او د جولاګانو جالې ډېرې وې په دې کې رسول الله ﷺ راغی او وې کتل چې دا دواړه خاندي او د خندا د وجې نه خبرې نشي کولی رسول الله ﷺ درې ځله پوښتنه وکړه چې دومره ولې خاندئ؟ نو دواړو په لاس سره خېمې طرف ته اشاره وکړه رسول الله ﷺ هلته ورغی او وې کتل چې حضرت سوده رضي الله عنها د وېرې نه رپیږي رسول الله ﷺ ترې پوښتنه وکړه اې سوده! په تا څه وشو؟ هغې وویل اې رسول الله ﷺ دجال راوتی دی رسول الله ﷺ وفرمایل چې هغه لا اوس نه دی راوتلی خو ضرور به راوځي هغه لا اوس نه دی راوتلی خو ضرور به راوځي بیا رسول الله ﷺ هغه بیرون راوویستله او د هغې د جامو او بدن نه یې دوړې خورې او د جولاګانو جالې صفا کړې.(۱)

د طبراني په روایت کې مضمون داسې دی چې حضرت حفصې رضي الله عنها حضرت عائشې رضي الله عنها ته وویل چې رسول الله ﷺ زمونږ خوا ته راشي مونږ به خیرنې بنکارو او دا به زمونږ په مینځ کې ګلیږي.

**د حضرت عائشې رضي الله عنها سره د رسول الله ﷺ معاشرت:**

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایل چې یو ځل رسول الله ﷺ ناست وو رسول الله ﷺ د خلکو او ماشومانو د شور اواز واورېدو او وې لیدل چې یوه حبشې وینزه ګډیږي او خلک ترې ګیر چاپېره جمع شوي دي رسول الله ﷺ وفرمایل اې عائشې! دلته راشه! او لږ اوګوره! ما د رسول الله ﷺ په اوګه باندې خپل مخ کېښودو او د اوګې او د سر په مینځ کې مې وکتل هغوی ﷺ به ویل اې عائشې اترا اوسه پورې دې زړه موړ شوې نه دې ما به ویل نه! ما کتل غوښتل چې د رسول الله ﷺ په نزد زما درجه څومره ده؟ زه دومره وخت دا شان ولاړه ووم او

---

(۱) اخرجه ابویعلي قال الهیثمی ۴/۳۱۶ رواه ابویعلي والطبراني و فیه من لم اعرفهم

کتل مې چې رسول الله ﷺ سترې شو او کله به يې په يوه پښه دمه کوله او کله په بله په دې کې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی نو ټول خلک او ماشومان يو خوا بل خوا لاړل په دې باندې رسول الله ﷺ وفرمايل چې ما وليدل چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په راتلو سره د انسانانو او د جناتو شيطانان ټول اوتښتېدل.(۱)

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايل چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ما وليدل چې رسول الله ﷺ به زما د کمرې په دروازه کې ولاړ وو او د جمات په انګړ کې حبشيانو خلکو په نېزو سره لوبې کولې او ما ته به رسول الله ﷺ په خپل څادر پرده جوړوله دې لپاره چې زه د رسول الله ﷺ د غوږ او د اوګې تر مينځه د هغوی لوبې کول اووينم بيا به هغوی ﷺ زما د وجې نه ولاړ وو تر دې چې ما به کتل بس کړل تاسو پخپله اندازه اولګوئ! چې د يوې کم عمره د لوبو موبو شوقينې نجلۍ د کتلو به څومره مقدار وي.(۲)

**د ازواج مطهرات خپلمنځي او د رسول الله ﷺ سره معاشرت:**

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او فرمايل چې رسول الله ﷺ به زينب بن جحش رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته ورتلو او هغې کره به يې شات څښل په دې ما ته غيرت راغی ما او حضرت حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په خپلو کې دا خبره وکړه چې مونږ دواړو کې چا ته رسول الله ﷺ تشريف راوړی هغه به ورته دا وايي چې ما ته ستا د مغافيرو بوي راځي تاسو مغافير خوړلی دی (مغافير يو بوي والا څيز دي يعني تاسو چې کوم شات څښلي دي په هغې کې به موچې مغافير ونې نه رس رابنکلي وي او بوي والا شي به د رسول الله ﷺ د فرشتو د وجې نه نه استعمالول) نو مونږ دواړو کې يوې ته رسول الله ﷺ راغی او دا خبره يې وکړه رسول الله ﷺ وفرمايل نه ما مغافير نه دی خوړلی البته ما د زينب بن جحش کره شات څښلي دي هغه به هم آئينده لپاره نه څښم بيا دا آيت نازل شو۔

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكَ ۖ تَبْتَغِي مَرْضَاتَ أَزْوَاجِكَ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ۝ قَدْ فَرَضَ اللَّهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ أَيْمَانِكُمْ ۚ وَاللَّهُ مَوْلَاكُمْ ۖ وَهُوَ الْعَلِيمُ الْحَكِيمُ ۝

ترجمه: اې رسول الله ﷺ کوم شي چې الله رب العزت ستا لپاره حلال کړي دي ته قسم خوړلو سره هغه پخپل ځان باندې ولې حراموې بيا هغه هم د خپلو بيبيانو د خوشحالولو

---

۱: اخرجه ابن عدي وابن عساکر کما في المنتخب ۴/۳۹۳

۲: عند الشيخين کما في المشکوة۲۷۲

لپاره او الله جَلَّ جَلَالُهُ بښونکي او مهربانه دي الله جَلَّ جَلَالُهُ ستاسو لپاره ستاسو د قسمونو ماتولو نه پس د هغې کفارې طريقه مقرر کړې ده الله رب العزت ستاسو کارساز کړی دی او هغه ډېر پوه او لوي حکمت والا دي.

او کله چې پيغمبر ﷺ خپلې بي بي سره يوه خبره پټه وکړه بيا هغه بي بي ته وکړه او پيغمبر ﷺ ته د الله د وحې په ذريعه د دې خبر ورکړنو رسول الله ﷺ هغه ظاهروونکې بي بي ته لږه شان خبره وکړه او لږ شان خبره يې ټال کړه نو کله چې پيغمبر دغه بي بي ته دغه خبره وکړه هغې وويل چې تاسو ته د دې خبر چا درکړ؟ هغوی ﷺ وفرمايل چې ما ته ډېر پوه خبردار يعنې الله رب العزت خبر راکړ اې د رسول الله ﷺ دواړو بيبيانو! تاسو الله جَلَّ جَلَالُهُ ته توبه وباسئ! نو ستاسو زړونه مائليږي.(١)

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي: د رسول الله ﷺ حلوه او شات خوښ و او کله به چې د مازيګر له مانځه نه راغی نو خپلو بيبيانو کره به ته او اول به په بيبيانو کې يوې بي بي ته ورتلو نو يوه ورځ حضرت حفصه بنت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهَا کره لاړ او هره ورځ به چې څومره هغې سره ايساريده تر هغه به زيات ايسار شو په دې باندې ما ته غيرت راغی ما د ده مبارک د دې ايساريدو وجه معلومه کړه نو ما ته چا وويل چې د حضرت حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د قوم يوې ښځې هغې ته د شاتو يو کبين په هديه کې ورکړی وه نو حضرت حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د هغې نه څه شات په رسول الله ﷺ باندې څښلي دي څکه د رسول الله ﷺ هلته زيات وخت تېر شو ما وويل په غور سره واوره! مونږ به ضرور د الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره څه چل کوو دې لپاره چې رسول الله ﷺ ائينده کې له حضرت حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره زيات وخت نه تېروي ما حضرت سوده بنت زمعه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته وويل چې رسول الله ﷺ به تا ته راځي چې کله راشي نو ته ورته ووايه چې دا بوي څنګه دی؟ رسول الله ﷺ به فرمايل: ما باندې حضرت حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا شات څښلي دي نو ته به ورته ووايې! چې د دې شاتو مچو به د غرفط ونې نه رس رابنکلي وي چې د هغې په وجه نه به په شاتو کې د مغافيرو بوی راغلی وي زه به هم ورته داسې خبره وکړم اې صفيې! ته هم رسول الله ﷺ ته دغه خبره وکړه حضرت سوده رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! اې عائشې! ستا خبره ايله ختمه شوې وه

---

١: اخرجه البخاري واخرجه مسلم مثله.

چې په دې کې رسول الله ﷺ زما دروازې ته راغی نو ستا د وېرې د وجې نه ما رسول الله ﷺ ته ستا خبره په اوچت اواز سره هم هلته دروازې سره شروع کړې وه خو زه منع شوم چې کله رسول الله ﷺ ما ته را ورسېدو نو ما ووېل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! آیا تاسو مغافیر خوړلي دي رسول الله ﷺ وفرمايل نه! ما ووېل چې دا بوي څنګه دي؟ چې زه يې محسوسوم! رسول الله ﷺ وفرمايل حفصې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا په ما باندې شات څښلي دي ما ووېل شايد چې د شاتو مچيو به د عرفط ونې نه شربت رابنکلي وي حضرت عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فرمايي: کله چې رسول الله ﷺ ما ته راغی نو ما ورته هم دغسې ووېل چې رسول الله ﷺ حضرت حفصې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ته ورغی نو هغې رسول الله ﷺ ته ووېل چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! آیا زه په تاسو باندې هغه شات وڅښم؟ رسول الله ﷺ وفرمايل نه! ما ته د دې شاتو ضرورت نشته حضرت سوده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ووېل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! مونږ رسول الله ﷺ د شاتو نه منع کړی دی ما هغې ته ووېل ته چُپ اوسېږه!(۱)

**د رسول الله ﷺ قصه چې کله يې د بيبيانو د طلاق اراده وکړه:**

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: زما په زړه کې لويه ارزو وه چې زه د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه د رسول الله ﷺ په بيبيانو کې د هغه دوو ښځو په باره کې پوښتنه وکړم د کومو باره کې چې الله رب العزت فرمايي: (إِنْ تَتُوبَآ إِلَى اللهِ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوبُكُمَا) که دواړه الله تعالى ته توبه وکړئ (ستاسو به فائده به وي) ځکه ستاسو زړونه کاږه شوي دي.

دېرې مودې پورې ما ته د پوښتنې موقعه ملاو نه شوه اخريو ځل حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حج ته لاړ زه هم ورسره حج ته لاړم مونږ سفر کولو چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د ضرورت لپاره د لارې نه يو طرفته روان شو ما هم د اوبو لوښی واخيست او ورسره روان شوم چې د ضرورت نه فارغ شو نو ما ته واپس راغی ما يې لاسونو ته اوبه واچولې اودس يې وکړ ما ووېل اې امير المؤمنين! د رسول الله ﷺ په بيبيانو کې هغه دوه ښځې کومې دي؟ چې د هغوی په باره کې الله رب العزت (إِنْ تَتُوبَآ إِلَى اللهِ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوبُكُمَا) فرمايلي دي حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ووېل اې ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ! په تا باندې حيرانتيا ده چې په علم کې دومره

---

۱: عند البخاری ايضا واخرجه مسلم کذافی التفسير لابن کثير ۴/۳۸۷ وابوداود کما فی جمع الفوائد ۱/۲۲۹ وابن سعد ۸/۸۵

مشهور يې او بيا تا ته معلوم نه ده چې دا ښځې څوک دي؟ حضرت زهري رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وايي چې حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خو په دې پوښتنه باندې حيران شو خو بيا يې ټوله قصه وا ورو له څه يې پټ نه كړل او وې فرمايل چې هغه دواړه حضرت حفصه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا او حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا دي، بيا يې په تفصيل سره ټوله قصه شروع كړه او وې فرمايل چې مونږ د قريشو د قبيلو والاوو ښځو باندې غالب وو چې كله مونږ مدينې ته راغلو نو مونږ وليدل چې د دې ځائ په سړو باندې ښځې غالبې دي نو زمونږ ښځو هغوی نه زده كړه وكړه زما كور په عوالي كې د بنو اميه بن زيد په قبيله كې وو زه يوه ورځ خپلې بي بي نه لږ خفه شوم نو هغې مخكې جواب راكړ زه د هغې دا شان جواب راكولو سره حيران شوم زما لپاره بلكل نوې خبره وه هغې وويل چې ته زما جواب وركولو سره ولې حيرانېږې؟ هغه په الله رب العزت قسم! د رسول الله ﷺ بيبياني هم هغوی ﷺ ته جواب وركوي بلكې ځينې چې خفه شي نو رسول الله ﷺ ټوله ورځ او شپې پورې پرېږدئ، ما چې دا واورېدل نو خپلې لور حضرت حفصې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا ته ورغلم او دهغې نه مې پوښتنه وكړه چې تاسو رسو لالله ﷺ ته جواب وركوئ؟ هغې وويل هو! ما وويل چې په تاسو كې څوک هم داسې كوي هغه خو د خپل ځان تاوان كوي او كه چېرې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسول د خفه كېدو په وجه الله رب العزت خفه شو نو بيا خو به هغه هلاک او برباده شي په دې وجه راتلونكې وخت لپاره رسول الله ﷺ ته مخامخ جواب مه وركوه! او څه ترې مه غواړه! او زما نه چې څه غواړې نو وغواړه! او ته خپلې گاونډۍ يعنې حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا نه دهوكه ونه خورې! يعنې چې هغه رسول الله ﷺ ته مخامخ جواب وركوي او د رسول الله ﷺ نه خفه كيږي هغه داسې كولى شي. ځكه چې هغه ستا نه ښايسته ده او رسول الله ﷺ هغې سره ستا نه زيات محبت كوي ته داسې مه كوه! حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې زما يو انصاري گاونډې وو مونږ دواړه به واړ په وار رسول الله ﷺ ته ورتللو يوه ورځ به هغه تلو او ټوله ورځ كې به چې كوم وحې نازلېدله بيا به څه خبره راپېښېدله هغه به ماښام راته او ما ته به يې بيانول او يوه ورځ به زه تلم او ماښام نه به واپس راتلم هر څه به مې هغه ته بيانول په دغو ورځو كې په مونږ كې دا خبره ډېره مشهوره وه چې غسان قبيلې والا په مونږ باندې د حملې كولو تياري كوي نو يوه ورځ زما دا گاونډي رسول الله ﷺ ته لاړ او ماسخوتن واپس راغى زمونږ دروازه يې

وټکوله او ما ته يې اواز وکړ زه بهر راغلم هغه وويل چې يوه ډېره لويه واقعه پيښه شوې ده ما وويل څه وشو ؟ آيا غسان حمله کړې ده؟ هغه وويل نه! بلکې د دې نه هم زيات د پريشانۍ والا کار شوی دی رسول الله ﷺ خپلو بيبيانو ته طلاق ورکړی دی ما وويل چې حفصه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نامراده شوه او په تاوان کې واقع شوه ځکه او ما ته خو د مخکې نه خطره وه چې داسې به کيږي د سحر مونځ چې مې وکړ او جامې مې واغوستلې او مدينې ته لاړم هلته نيغ حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته ورغلم هغې ژړل ما پوښتنه وکړه آيا رسول الله ﷺ تاسو ټولو ته طلاق درکړی دی ؟ هغې وويل چې دا خو ما ته پته نشته البته رسول الله ﷺ مونږ نه جدا شوی دی او دغه بالاخانه کې دي بيا زه د هغوی تور غلام ته راغلم او ورته مې وويل چې عمر لپاره د دننه د تلو اجازه وغواړه ! هغه غلام دننه لاړ او بيا بيرون راغلو بيا يې وويل چې ما رسول الله ﷺ ته ستا ذکر وکړ خو رسول الله ﷺ چُپ وو بيا زه مسجد ته لاړم چې کله زه منبر ته ورسېدم نو ومې ليدل چې ډېر خلک ناست دی په هغوی کې څه خلک ژاړي زه څه وخته پورې ناستووم بيا چې کله زما بې قراري شوه نو زه لاړم هغه غلام ته مې وويل چې عمر لپاره اجازه واخله هغه غلام دننه لاړ بيا بيرون راغی بيا يې وويل چې ما رسول الله ﷺ ته ستا ذکر وکړ خو هغه چپ وو بيا د منبر خوا ته لاړم کيناستل رانه ونه شول زه بيا لاړم غلام ته مې وويل چې عمر لپاره اجازت وغواړه ! هغه غلام دننه لاړ او بيا بهر ته راغی بيا يې وويل چې رسول الله ﷺ ته ما ستاسو ذکر وکړ خو هغه چُپ وو زه واپس کېدم نو غلام راوغوښتلم نو وې ويل چې تاسو دننه لاړ شئ! رسول الله ﷺ اجازت درکړی دی زه دننه لاړم رسول الله ﷺ ته مې سلام وکړ هغوی ﷺ په يوه خالي بوجۍ باندې ناست وو ددې يې وهلې وه او د بوجۍ نښې د هغوی ﷺ په بدن مبارک باندې پرتې وې ما عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو خپلو بيبيانو ته طلاق ورکړی دی رسول الله ﷺ زما طرفته سر اوچت کړ او وې فرمايل چې نه! ما د خوشحالۍ د وجې نه وويل الله اکبر اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو به مونږ ليدلي يو چې مونږ قريش خلک په خپلو ښځو باندې غالب وو چې کله مونږ مدينې منورې ته راغلو نو مونږ دلته داسې خلک وليدل چې په هغوی باندې خپلې ښځې غالبې وې نو زمونږ ښځو د هغوی ښځو نه زده کړه وکړه يوه ورځ زه د خپلې بي بي نه خفه شوم نو هغې ما ته مخامخ جواب راکړ زه د هغې په جواب باندې ډېر حيران شوم هغې

وویل چې ته زما جواب سره ولې حیرانېږې؟ د رسول الله ﷺ بیبیانې رسول الله ﷺ ته جواب ورکوي بلکې تول ورځ او شپه یې پرېږدي ما وویل چې په هغوی کې کومه یوه هم داسې کوي هغه به نامراده وي او په تاوان کې به وي که چېرې د الله جَلَّجَلَالُهُ د رسول د خفګان د وجې نه الله جَلَّجَلَالُهُ خفه شو نو تباه او برباده به شي په دې باندې رسول الله ﷺ مسکی شو ما وویل اې د الله جَلَّجَلَالُهُ رسوله! بیا زه حفصې رَضِيَ اللهُ عَنهَا ته ورغلم او ما ورته وویل چې ته خپلې ګاونډۍ حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا نه دوکه ونه خورې هغه ستا نه زیاته ښایسته ده او د رسول الله ﷺ هغې سره ستا نه زیات محبت دی رسول الله ﷺ بیا مسکی شو ما وویل اې د الله جَلَّجَلَالُهُ رسوله! د زړه لګېدو بله خبره وکړم؟ وې فرمایل وکړه! بیا زه کېناستم او سر مې اوچت کړ د رسول الله ﷺ په کور مې نظر واچولو نو په الله جَلَّجَلَالُهُ قسم! ما ته صرف درې څرمنې بغیر رنګ شوې په نظر راغلې ما وویل اې د الله جَلَّجَلَالُهُ رسوله! تاسو دعا وکړئ! چې ستاسو په اُمت باندې فراخي راولي چونکه الله پاک په روم او فارس باندې فراخي راوستې ده حالانکه هغوی تول د الله پاک عبادت نه کوي په دې خبره رسول الله ﷺ نېغ کېناسته او وې فرمایل اې د خطاب ځویه! آیا تر اوسه پورې ته په شک کې یې؟ هغه خلکو ته د هغوی د نېکو بدله په دنیا کې ورکړې شوې ده خپلو پاکو بیبیانو ته د ډېر غصه شوې وو له دې وجې نه یې قسم خوړلی وو چې هغوی ته به یوه میاشت نه ورځم اخر رسول الله ﷺ ته الله جَلَّجَلَالُهُ خبرداري ورکړ.(۱)

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایي: حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنهُ ما ته وویل چې کله رسول الله ﷺ د خپلو بیبیانو نه جدا اولي اختیار کړ نو زه جمات ته لاړم او ومې لیدل چې صحابه کرام په فکر کې پراته دي او ګټکې اړوي را اړوي او وایي چې رسول الله ﷺ خپلو بیبیانو ته طلاق ورکړی دی او دا واقعه دا د پردې د حکم د نازلېدو نه مخکې و ما وویل: د دې معلومات به خامخا کوم چې رسول الله ﷺ طلاق ورکړی او کنه. بیا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا او حضرت حفصې رَضِيَ اللهُ عَنهَا ته د ورتلو او د نصیحت کولو تفصیل بیان کړو بیا یې وفرمایل چې زه رسول الله ﷺ ته ورغلم نو د هغوی غلام حضرت رباح رَضِيَ اللهُ عَنهُ د بالاخانې په درشل باندې موجود وو ما ورته اواز وکړ او

۱: اخرجه احمد وقد رواه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی

ومې ویل اې رباحه! ما لپاره د رسول اللهﷺ ته د دننه تللو اجازت واخله بیا یې د تېر شوی حدیث بیان وکړ بیا یې وفرمایل چې ما عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! د ښځو معامله ستاسو لپاره څه مشکله نه ده که چېرې تاسو خپلو بیبیانو ته طلاق ورکړي وي نو څه د فکر او پرېشانی خبره نه ده ځکه چې الله رب العزت تاسو سره دی او د الله رب العزت ملائیکې حضرت جبرائیل، حضرت میکائیل، زه، حضرت ابوبکر او ټول مسلمانان تاسو سره دی او زه په دې خبره باندې د الله جَلَّ جَلَالُهُ ستاینه کوم چې کله به ما څه خبره کوله نو زما په امید وو چې الله رب العزت به ضرور زما تصدیق کوي نو دا ځل هم داسې وشول او دا آیت نازل شو (عَسٰى رَبُّهٗۤ اِنْ طَلَّقَكُنَّ اَنْ يُّبْدِلَهٗۤ اَزْوَاجًا خَيْرًا مِّنْكُنَّ) او دا ایت شریف نازل شو: وَاِنْ تَظٰهَرَا عَلَيْهِ فَاِنَّ اللّٰهَ هُوَ مَوْلٰىهُ وَجِبْرِيْلُ وَصَالِحُ الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ وَالْمَلٰٓئِكَةُ بَعْدَ ذٰلِكَ ظَهِيْرٌ(۱)

ترجمه: که چېرې پیغمبرﷺ تاسو ښځو ته طلاق درکړي نو د هغه پروردگار به ډېر زر ستاسو بدله کې هغه ته تاسو نه ښې بیبیانې ورکړي او دا شان که چېرې د پیغمبرﷺ په باره کې تاسو دواړه کاروایئ کوئ! نو یاد ساتئ! چې الله رب العزت ملګر دی د پیغمبرﷺ او جبرائیل دی او نېک مسلمانان دي او د دېنه علاوه فرشتې د رسول اللهﷺ مدد کونکې دی.

ما پوښتنه وکړه چې آیا تاسو هغوی ته طلاق ور کړی دی؟ نبي علیه السلام وفرمایل نه! بیا زه د مسجد په دروازه کې ودرېدم او په اوچت اواز سره مې اعلان وکړ چې رسول اللهﷺ بیبیانو ته طلاق نه دی ورکړی نو دا آیت نازل شو: وَاِذَا جَآءَهُمْ اَمْرٌ مِّنَ الْاَمْنِ اَوِ الْخَوْفِ اَذَاعُوْا بِهٖ ؕ وَلَوْ رَدُّوْهُ اِلَى الرَّسُوْلِ وَاِلٰٓى اُولِى الْاَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِيْنَ يَسْتَنْۢبِطُوْنَهٗ مِنْهُمْ ؕ

ترجمه: او چې کله دې خلکو ته د څه امر خبر رسیږي خوا که د امن وي یا د خوف وي نو هغه مشهور وي او که چېرې دغه رسول ته او هغه کسانو ته چې په داسې خبرو پوهېږي هغوی ته حواله کوي نو هغه به دغه حضراتو پېژندلی چې په دوي کې د هغې تحقیق کوي.

حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي: د دغه طلاقو په باره کې ما تحقیق کړی وو .(۲)

حضرت جابر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي: رسول اللهﷺ په خپل کور کې ناست وو او خلک د رسول

---

۱: سورة تحریم آیت ٤،٥

۲: عند مسلم ایضا کذافی التفسیر لابن کثیر ٤/۳۸۹ واخرجه الحدیث ایضا عبدالرزاق وابن سعد وابن حبان والبیهقی وابن جریر وابن المنذر وابن مردویه وغیرهم کما فی الکنز ۱/۲٦۹

الله ﷺ په دروازه کې ناست وو چې په دې کې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی او اجازت یې وغوښته خو اجازت ورته ملاو نه شو خو لږ ساعت پس دواړو حضراتو ته اجازت ملاو شو دواړه دننه لاړل نو رسول الله ﷺ ناست وو او ګیر چاپیره ترې ازواج مطهرات ناستې وې رسول الله ﷺ بلکل چُپ وو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! که چیرې تاسو لیدلی وای چې زما بي بي بنت زید اوس زمانه خرچه غوښتې وه نو ما هغه په څټ وهلې وه دا یې چې واورېدل رسول الله ﷺ په خندا شو او دومره یې وخندل چې د هغوی غاښونه مبارک ښکاره شول بیا رسول الله ﷺ وفرمایل چې دوي هم زما نه څلور واړو طرفته ناستې دي زما نه خرچې غواړي دا یې چې واورېدل نو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وهلو لپاره هغې طرفته پاڅېده او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت حفصې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته پاڅېده او دواړو وویل چې تاسو دواړه د رسول الله ﷺ نه هغه څه غواړې چې رسول الله ﷺ سره نشته رسول الله ﷺ دغه دواړه د وهلو نه منع کړل نو ازواجو مطهراتو وویل چې په الله رب العزت قسم! دې مجلس نه پس به مونږ کله هم د رسول الله ﷺ نه داسې شی نه غواړو چې رسول الله ﷺ سره نه وي بیا الله رب العزت د اختیار ورکولو والا آیت نازل کړو چې په هغې کې ازواجو مطهراتو ته د رسول الله ﷺ د ټولو نه مخکې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته ورغی او ورته یې وویل چې زه تا ته یوه خبره مخکې کووم خو غواړم چې ته په دې کې د جلتۍ نه کار مه اخله! بلکې خپل مور او پلار سره مشوره وکړه او فیصله یې وکړه په دې کې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا پوښتنه وکړه چې هغه څه خبره ده؟ دا آیت تلاوت کړ: يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ قُل لِّأَزۡوَٰجِكَ إِن كُنتُنَّ تُرِدۡنَ ٱلۡحَيَوٰةَ ٱلدُّنۡيَا وَزِينَتَهَا فَتَعَالَيۡنَ أُمَتِّعۡكُنَّ وَأُسَرِّحۡكُنَّ سَرَاحٗا جَمِيلٗا ۝ وَإِن كُنتُنَّ تُرِدۡنَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَٱلدَّارَ ٱلۡأٓخِرَةَ فَإِنَّ ٱللَّهَ أَعَدَّ لِلۡمُحۡسِنَٰتِ مِنكُنَّ أَجۡرًا عَظِيمٗا ۝(۱)

ترجمه: اې نبي! ته خپلو بیبیانو ته ووایه! چې که چیرې تاسو د دنیوي ژوند عیش او د هغې سامان غواړئ! نو راشئ! زه به تاسو ته څه مال اسباب دنیوي درکړم او تاسو به خوشحالۍ سره رخصت کړم او که چیرې تاسو الله غواړئ! او د هغه رسول الله ﷺ او عالم اخرت لره نو په تاسو کې د نیک کردارو لپاره اجر عظیم تیار کړی دی.

۱: سورة احزاب ۲۸،۲۹

حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنهَا وویل چې آیا زه ستاسو باره کې مور پلار سره مشوره وکړم؟ هیڅ کله نه! بلکې زه به الله رب العزت او د هغه رسول ﷺ اختیاروم او زه تاسو ته خواست کوم چې ته خپلو بیبیانو کې هیڅ یوې بي بي ته مه وایه چې ما څه اختیار کړی دی رسول الله ﷺ وفرمایل چې الله جَلَّ جَلَالُهُ زه سختي کونکی نه یم جوړ کړي بلکې ښودونکي او اساني کونکی یې جوړ کړي را لیږلی یم ستا د اختیار په باره کې چې کومه ښځه هم پوښتنه وکړي زه به یې هغې ته وایم.(۱)

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنهُ فرمايي: حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنهَا وفرمایل چې کله اختیار والا آیت نازل شو نو رسول الله ﷺ خپلو بیبیانو کې د ټولو نه اول زما نه پوښتنه وکړه او وې فرمایل چې زه به تا ته یوه خبره مخکې کوم ته په دې کې جلتي سره فیصله مه کوه بلکې خپل مور او پلار سره مشوره وکړه او فیصله وکړه رسول الله ﷺ پوه وو چې زما مور او پلار به ما ته د رسول الله ﷺ د پرېښودلو هیڅ کله مشوره نه راکوي بیا رسول الله ﷺ وفرمایل چې الله رب العزت پورتنی ایت نازل کړو او په همدغو دوو ایتونو کې یې وویل چې آیا زه په دې باره کې خپل مور او پلار سره مشوره وکړم هیڅ کله نه زه خو الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه رسول او اخرت غواړم بیا رسول الله ﷺ خپلو بیبیانو ته اختیار ورکړ خو هغوی ټولو جواب ورکړ چې حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنهَا ورکړی وو .(۲)

حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنهَا فرمايي: رسول الله ﷺ مونږ ازواجو مطهراتو ته ځان سره د اوسېدو او نه اوسېدو کې اختیار را کړی وو او مونږ ورسره اوسېدل اختیار کړی وو او رسول الله ﷺ په مونږ باندې څه طلاق وغیره شمار نکړل.

**د حضرت عائشې او حضرت میمونې رَضِيَ اللّٰهُ عَنهُمَا سره د آنحضرت ﷺ معاشرت(ژوند):**

حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنهَا فرمايي: رسول الله ﷺ ما ته وفرمایل چې کله ته زما نه راضي کېږې او کله چې ته زما نه ناراضه کېږې! نو که څه هم چې ما ته دواړه حالتونه پتېږي خو ما ته پته لګي ما وویل چې د دې تاسو ته څنګه پته لګي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل چې کله ته زما نه راضي یې نو وایې چې نه! د محمد ﷺ په رب قسم! او چې کله ته زما نه ناراضه یې

---

۱: عند ابن ابی حاتم واخرجه البخاری ومسلم عن عائشه مثله.

۲: عند البخاری ومسلم ایضا واحمد واللفظ له کذافی التفسیر ابن کثیر ۳/۴۸۱

نو وايي چې نه! د ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ په رب قسم! ما وويل هو! په الله قسم! اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! زه صرف ستاسو نوم نه اخلم نور په زړه کې مې ستاسو محبت کې څه کمی نشته.(۱) حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي: زه په يو سفر کې رسول الله ﷺ سره وم ما رسول الله ﷺ سره په منډه کې مقابله وکړه نو زه د رسول الله ﷺ نه مخکې شوم او دا مقابله په پيدل منډه کې شوې وه بيا چې کله زما بدن درونډ شو نو بيا يې ما سره په منډه کې مقابله وکړه خو په دې ځل رسول الله ﷺ زما نه مخکې شو او وې فرمايل چې زما دا مخکې کېدل ستا د هغه مخکې کېدو په بدله کې شو.(۲)

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: زه د حضرت ميمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا (ترور) مېلمه شوم او په هغه شپه حضرت ميمونې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حيضې د وجې نه مونځ نه کولو د ملاستې په وخت کې هغې يو څادر راوړلو بيا يې بل څادر راوړ چې هغه يې د بسترې سر ته کېښودلو بيا هغه څملاستلو او خپل ځان باندې يې څادر واچولو او په خوا کې يې زما دپاره يوه بستره خوره کړه ما په بالښت سر کېښوده او څملاستم بيا رسول الله ﷺ راغی او آنحضرت ﷺ د ماسخوتن مونځ کړی وو بسترې ته راغی او د سر طرفته هغه څادر يې اوچت کړو او هغه يې د لنګ په طور باندې اوتړلو او خپل دواړه جامې يې ووېستلې او زوړندې يې کړې بيا يې د حضرت ميمونې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره د هغې په څادر کې څملاستلو د شپې په آخر کې پاڅېدو او زوړندې مشکيزې ته ورغی پرايې نيستله او د هغې نه يې اودس شروع کړ ما اراده وکړه چې زه ورپاڅم او اوبه وروا چوم خو بيا ما فکر وکړ چې دا شان نه رسول الله ﷺ ته معلومه شي چې زه ويښ يم او شايد چې دا پرې ښه ونه لګي بيا بسترې ته راغی او هغه لنګ يې پرانيسته او دواړه جامې يې واغوستلې بيا د مونځ کولو ځائ ته لاړ او په ولاړه يې مونځ شروع کړو بيا زه هم پاڅېدم اودس مې وکړ او د هغوی ګس طرفته راغلم ودرېدم رسول الله ﷺ د روستو نه زه د لاسه ونيولم او خپل ښي طرف ته يې اودرولم هغوی ديارلس رکعتونه وکړل ما هم ورسره ديارلس رکعتونه وکړل بيا کېناستلو زه هم ورسره کېناستلم بيا ورته پرکالي راغله چې له هغې وجې د هغوی مخ مبارک زما د مخ سره نزدې شو او ما د

۱: اخرجه الشيخان كذافي المشكوة ٢٧٢

۲: اخرجه ابوداود في المشكوة ٢٧٣.

هغوی ﷺ د ساه اخیستلو اواز داسې اورېدو څنګه چې د اوده کېدونکي وي بیا حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی او وې ویل مونځ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! رسول الله ﷺ پاڅېده او مسجد ته یې تشریف یوړو هلته یې دوه رکعتونه مونځ وکړ حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مانځه لپاره اقامت وکړ.(۱)

**د یوې بوډۍ ښځې سره د رسول الله حسن معاشرت:**

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي: یوه بوډۍ ښځه رسول الله ﷺ ته راغله رسول الله ﷺ ترې پوښتنه وکړه چې ته څوک یې؟ هغې وویل چې جثامه مزنیه! رسول الله ﷺ وفرمایل نه! د نن نه ستا نوم حسانه مزنیه دي ته څنګه یې؟ ستا څه حال دی؟ زمونږ نه پس تاسو څنګه وئ؟ هغې وویل چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! خیریت دی زما مور پلار دې په تاسو قربان وي چې کله هغه بهر ته لاړه نو ما وویل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو دې بوډۍ ته ډېره توجه وکړه؟ نبي ﷺ وفرمایل اې عائشې! دا به د خدیجې رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په زمانه کې مونږ ته راتله او د پخوانو اړیکو او خپلوۍ خیال ساتل ایمان کې داخل دي.(۲)

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي: یوه بوډۍ ښځه به رسول الله ﷺ ته راتله رسول الله ﷺ به د هغې په راتلو ډېر خوشحاله کېدو او د هغې عزت به یې کولو ما وویل زما مور او پلار دې په تاسو قربان وي تاسو چې د دې بوډۍ څومره خیال ساتئ! هغه هومره د بل چا نه ساتئ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل دا به خدیجې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته راتله او ولې تا ته پته نشته چې د تعلق او محبت والاوو عزت کول په ایمان کې شامل دي.(۳)

حضرت ابو الطفیل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: ما ولیدل چې رسول الله ﷺ په شکرانه کې غوښه تقسیموله زه په هغه وخت کې کم عمره هلک ووم او د اوښ یو اندام مې اوچتولی شو نو یوه ښځه رسول الله ﷺ ته راغله رسول الله ﷺ د هغې لپاره خپل څادر خپور کړ ما پوښتنه وکړه چې دا څوک ده؟ رسول الله ﷺ وفرمایل چې دا د هغوی ﷺ هغه مور ده چا چې هغوی ﷺ ته په ماشوم والي کې پې ورکړې وې.(۴)

---

۱: اخرجه ابن النجار كذافي الكنز ۵/۱۱۹
۲: اخرجه البيهقي وابن النجار
۳: عند البيهقي ايضا كذافي الكنز ۷/۱۱۵
٤: اخرجه البخاري في الادب ۱۸۸

**دیو حبشي غلام او حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا سره د رسول الله ﷺ حسن معاشرت:**

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: زه رسول الله ﷺ ته ورغلم نو ما وليدل چې يو وړوكي شان حبشي هلک د رسول الله ﷺ په ملا باندې زور كوي ما پوښتنه وكړه چې اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! آيا تاسو ته څه تكليف دى؟ رسول الله ﷺ وفرمايل چې نن شپه زه او بنې غورزولي ووم.(١)

حضرت قاسم بن عبد الرحمن وايي چې حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به رسول الله ﷺ ته پيزار په پښو كولو بيا به يې همسا واخيستله او د رسول الله ﷺ نه به مخكې تلو چې كله به رسول الله ﷺ خپل مجلس ته ورسېدو نو هغه به د رسول الله ﷺ دواړه پڼې وويستلې او خپلو لاسونو كې به يې واچولې او رسول الله ﷺ ته به يې همسا وركوله بيا به چې كله هغوى ﷺ د مجلس نه پاڅېدلو نو حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به رسول الله ﷺ ته پڼې په پښو كولې بيا به يې همسا واخيستله او رسول الله ﷺ نه به مخكې تلو تر دې چې هغه به د رسول الله ﷺ نه مخكې كمرې ته داخلېدو.(٢)

حضرت ابو مليح رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې كله به رسول الله ﷺ غسل كولو نو حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د هغوى ﷺ لپاره پرده كوله او چې كله به اوده كېدو نو حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به پاڅولو او رسول الله ﷺ سره به يو ازې تلو.(٣)

**د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره دآنحضرت ﷺ حسن معاشرت:**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: كله چې رسول الله ﷺ مدينې ته راغى هغه وخت زما عمر لس كاله وو او چې كله رسول الله ﷺ وفات شو هغه وخت زما عمر شل كاله وو او زما مور او ترورګانو وغيره به ما ته د رسول الله ﷺ د خدمت ترغيب راكاوه.(٤)

حضرت ثمامه رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې يو سړي حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل آيا ته په غزوه بدر كې شريک شوي واې؟ حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل ستا مور دې پاتې نشي زه د بدر له غزا نه چېرته غائب پاتې كېدې شوم حضرت محمد بن عبد الله انصاري رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې كله رسول الله ﷺ بدر ته تشريف يوړلو نو حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم د رسول الله ﷺ سره

---

١: اخرجه الطبراني والبزار وابن السني وابو نعيم وسعيد بن منصور كذافي الكنز ۴/۴۴

٢: اخرجه ابن سعد ٣/١٥٣

٣: عند ابن سعد ايضا

٤: اخرجه ابن ابي شيبة وابونعيم

ولاړو وو په هغه وخت کې هغه کم عمره هلک وو او د رسول الله ﷺ خدمت يې کولو .(١)

**د انصارو ځوانانو او بعض صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ خدمت:**

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: شل انصاري ځوانان د مختلفو ضرورتونو لپاره به هر وخت رسول الله ﷺ سره اوسېدل چې کله به د رسول الله ﷺ څه کار پېښېده نو هغې لپاره به يې هغوی لېږل.(٢)

حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: څلور يا پنځه صحابه به د رسول الله ﷺ نه يا د هغوی ﷺ د دروازې نه چېرې نه جدا کېدل بلکې هر وخت به پراته وو.(٣)

حضرت ابو سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: مونږ به نمبر په نمبر د څه کار لپاره لېږلی شو دا شان د اخرت او ثواب په طمعه کې په نمبر نمبر خدمت کونکی ډېر شو نو يوه ورځ رسول الله ﷺ مونږ ته بيرون راغی دغه وخت مونږ خپلو کې د دجال خبرې اترې کولې رسول الله ﷺ وفرمايل چې دا څه پټې پټې خبرې کېږي؟ آيا ما تاسو پټو خبرو نه منع کړي نه يئ؟(٤)

حضرت عاصم بن صفيان رَحِمَهُ اللهُ وايي چې ما د حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يا د حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه دا فرمان اورېدلی دی چې ما د رسول الله ﷺ نه د دې خبرې اجازت وغوښته چې زه به د هغوی په دروازه باندې شپه تېره کړم دې لپاره چې کله هغوی ﷺ ته د شپې څه ضرورت پېښ شي نو ما به راپاڅوي رسول الله ﷺ اجازت ورکړو او ما هغه شپه هلته تېره کړه.(٥)

حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: ما د روژې په مياشت کې رسول الله ﷺ سره مونځ وکړ بيا رسول الله ﷺ پاڅېدل او لامبل يې نو ما د هغوی لپاره پرده وکړه رسول الله ﷺ وفرمايل چې که چېرې ته غواړې نو ته په دې اوبو باندې غسل وکړه او که غواړې نو دې کې نورې اوبه واچوه! ما ووېل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! تاسو نه دا پاتې شوې اوبه ما ته د نورو اوبو نه زياتې خوښې دي نو ما په هغې باندې غسل وکړ او رسول الله ﷺ زما لپاره پرده کوله نو ما

١: عند ابن سعد وابن عساكر كذافي المنتخب ٥/١٤١

٢: اخرجه البزار وفيه من لم اعرفهم قاله الهيثمي ٩/٢٢

٣: عند البزار وفيه موسى بن عبيدة الترمذي وهو ضعيف كما قال الهيثمي.

٤: عند البزار ايضا ورجاله ثقات وفي بعضهم خلاف كما قال الهيثمي

٥: عند البزار ايضا ورجاله ثقات كما قال الهيثمي ٩/٢٢

وويل چې تاسو ما لپاره پرده مه کوئ! رسول الله ﷺ وفرمايل نه څنګه چې تا زما لپاره پرده وکړه دا شان به زه هم ستا لپاره ضرور پرده کوم.(١)

**دخپل ځوي ابراهيم او داهل بيتو دماشومانو سره د رسول الله ﷺ حسن معاشرت:**

حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: ما د رسول الله ﷺ نه زيات په ماشومانو باندې شفقت کونکی او مهربان څوک نه دی ليدلی د مديني خوا اوشا کلو کې د آنحضرت ﷺ د ځوی حضرت ابراهيم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ واخيست او ښکل يې کړو بيا به يې ورته واپس کړو چې کله حضرت ابراهيم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفات شو نو رسول الله ﷺ وفرمايل چې ابراهيم زما ځوی دي دپيو څښلو په زمانه کې دا وفات شوی دی ده لپاره پې. ورکوونکې دوه حورې مقررې شوی دی چې په جنت کې د هغه دپيو څښلو باقي موده پوره کوي.(٢)

حضرت عبد الله بن حارث رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله ﷺ به حضرت عبد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت عبيد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او کثير بن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په يو صف کې اودرول او فرمايل به يې چې په تاسو کې څوک ما ته مخکې راشي هغه ته به دا انعام ملاويږي نو هغوی ټولو به رسول الله ﷺ ته اول رسېدو لپاره د يو بل نه د مخکې کېدلو کوشش کولو او د رسول الله ﷺ په ملا او سينه باندې به يې ځان غورزولو رسول الله ﷺ به هغوی ښکلول او ځان ته به يې راجوختول.(٣)

حضرت عبد الله بن جعفر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: چې کله به رسول الله ﷺ د سفر نه واپس راغی نو د آنحضرت ﷺ خاندان ماشومان به د رسول الله ﷺ استقبال لپاره مديني منورې ته بهر تلل نو يو ځل رسول الله ﷺ يو سفر نه واپس راغی نو زه کورو الاوو د مخکې نه بهر ته بوتلم نو رسول الله ﷺ زه مخکې ځان نه کېنولم بيا خلکو د حضرت فاطمې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا په دوو زامنو (حضرت حسن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت حسين رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) کې يو راوستلو هغه رسول الله ﷺ ځان سره روستو کېنولو دا شان مونږ درې کسان په سورلۍ باندې سواره مديني ته داخل شو.(٤)

حضرت عبد الله بن جعفر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي، ما د ماشومانو سره لوبې کولې چې په دې کې

---

١: اخرجه ابن عساكر كذافي المنتخب ٥/١٦٤
٢: اخرجه مسلم ٢/٢٥٤ واخرجه احمد كما في البداية ٦/٤٥
٣: اخرجه احمد قال الهيثمي ٩/١٧ رواه احمد واسناده حسن.
٤: رواه احمد واسناده حسن.

رسول الله ﷺ زما په خوا کې په سورلۍ باندې تېر شو رسول الله ﷺ زه او حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو د کم عمر ځوی په سورلۍ باندې کېنولو دا شان مونږ په سورلۍ باندې درې کسان شو.(۱)

حضرت عبد الله بن جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: دا واقعه د کتلو قابله وه چې زه او حضرت عبيد الله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت قثم بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ماشومان وو او مونږ لوبې کولې چې په دې کې رسول الله ﷺ په سورلۍ باندې مونږ سره تېر شو او وې فرمايل اې خلکو دا ماشوم را او چت کړئ! او ما ته يې را کړئ! نو رسول الله ﷺ زه ځان نه مخکې کېنولم او بيا يې وفرمايل چې قثم هم را او چت کړئ! او ما ته يې را کړئ! خلکو را او چت کړو او وريې کړو او هغه يې د ځان نه روستو په سورلۍ باندې کېنولو د حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت عبيد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره محبت د حضرت قثم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه زيات وو هغوی حضرت عبيد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پرېښودو او حضرت قثم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يې کېنولو نو په دې کې د خپل تره د محبت خيال ونکړو او د هغه نه يې څه شرم محسوس نکړو بيا يې زما په سر باندې درې ځل لاس راښکلو چې کله به يې په سر باندې لاس راښکلو نو فرمايل به يې اې الله جَلَّ جَلَالُهُ ته د جعفر په اولاد کې د جعفر خليفه جوړ شې يعنې هغه خو شهيد شو او دنيا نه تللی دی او س هم ته د هغه بچې سنبال کړې.(۲)

حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: ما حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي اکرم ﷺ په اوګو باندې وليدل نو ما وويل چې ستاسو دواړو د لاندې څومره ښه اس دی رسول الله ﷺ وفرمايل چې دا دواړه په اس سواره هم څومره ښه دی.(۳)

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: يوه ورځ رسول الله ﷺ حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په اوګه وو او بيرون راغی نو يو سړي وويل اې هلکه! ته د ېر ښه سورلۍ باندې سور يې! رسول الله ﷺ وفرمايل چې دا سور هم د ېر ښه دی.(۴)

---

۱: اخرجه ابن عساكر

۲: عند ابن عساكر ايضا كذافي المنتخب ٥/٢٢٢

۳: اخرجه ابويعلي كذافي الكنز ٧/١٠٦ والمجمع ٩/١٨٢ ورجاله رجال الصحيح كما في المجمع قال ورواه باسناد ضعيف واخرجه ابن شاهين كما في الكنز.

٤: عند ابن عساكر كذافي الكنز ٧/١٠٤

حضرت براء بن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: يو ځل رسول الله ﷺ مونځ كولو چې دې كې حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دواړه يا په دواړو كې يو راغى رسول الله ﷺ په سجده كې وو هغه د رسول الله ﷺ په شا باندې سور شو رسول الله ﷺ چې كله د سجدې نه سر اوچت كړو نو هغه يې په لاس سره ونيوه او د مونځ نه پس يې وفرمايل چې ستا سورلۍ ځومره ښه ده.(۱)

حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: يو كرت زه د رسول الله ﷺ په خدمت كې حاضر شوم نو ما وليدل چې رسول الله ﷺ پخپلو دواړو لاسونو او ګنګنونو روان دى او حضرت حسن او حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د پيغمبر ﷺ په شا باندې ناست دى او فرمايي: تاسو د دواړو اوښ ډېر ښه دى او تاسو دواړه ډېر ښه بار (سواره) يئ!(۲)

**د حضرت حسن او حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا سره د آنحضرت قصه كله چې دواړه نادركه شوي وو:**

حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: مونږ د رسول الله ﷺ نه ګير چاپېره ناست وو چې په دې كې حضرت ام ايمن رَضِيَ اللهُ عَنْهَا راغله او وې ويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورك شوي دي هغه وخت نمر را اوچت شوى وو رسول الله ﷺ صحابه وو ته وفرمايل چې پاځئ! زما دواړه بچي اوګورئ! نو هر يو سړى په يوه لاره روان شو او زه د رسول الله ﷺ په لاره روان شوم رسول الله ﷺ روان وو تر دې چې د غره لمنې ته ورسېدو نو مونږ كتل چې حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دواړه يو بل پورې نښتي ولاړ دي او خوا كې ورسره يو تور مار پخپله لكۍ ولاړ دى چې د هغه د خولې نه داور بخري راوځي غالباً الله تعالى مار را ولېږه چې ماشومان د مخكې تلو نه منع كړي رسول الله ﷺ په جلتۍ سره هغه مار ته ورمخكې شو او رسول الله ﷺ ته يې اوكتل او په سوري ننوتلو بيا رسول الله ﷺ دواړو ته ورغى او دواړه يې د يو بل نه بېل كړل او د دواړو په مخ يې لاس رابنكه او وې فرمايل چې زما مور او پلار دې په تاسو قربان وي تاسو دواړه د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد څومره د عزت قابل يئ! بيا يې يو په ښۍ اوګه باندې او بل يې په ګسه اوګه باندې كښنول ما وويل تاسو دواړو ته دې زيرى وي چې ستاسو سورلۍ ډېره ښه ده رسول الله ﷺ وفرمايل چې

۱: عندالطبراني قال الهيثمي ٩/١٨٢

۲: عندالطبراني ايضا قال الهيثمي ٩/١٨٢ وفيه مسروح ابوشاب وهو ضعيف اه.

دا دواړه د ړ بنه سواره دي او د دوي پلار د دوی نه غوره دی .(١)

حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: مونږ د رسول الله ﷺ سره وو مونږ چا د خوراک لپاره اوبللو مونږ رسول الله ﷺ سره طعام خوړلو لپاره لاړو نو په لاره کې حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ملاو شو چې ماشومانو سره يې لوبې کولې رسول الله ﷺ په جلتۍ سره د خلکو نه مخکې شو او خپل لاسونه يې د هغه د نيولو لپاره مخکې کړل حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو خوا بل خوا تښتېده رسول الله ﷺ او حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خپلو کې په خندا شول اخر رسول الله ﷺ هغه ونيوه او يو لاس يې د هغه په زنه باندې او بل لاس يې د هغه د سر او غوږونو تر منځ کېښودو او ځان سره جخت کړو او ښکل يې کړو بيا يې وفرمايل چې حسين ما نه دی او زه د حسين نه يم څوک چې ده سره محبت وکړي الله رب العزت دې د هغه سره محبت وکړي حسن او حسين مې دواړه د لمسيانو نه دي.(٢)

# د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ معاشرت او زنده ګي

**عثمان بن مظعون رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه دخپلې بي بي سره د حسن معاشرت وصيت:**

حضرت ابو اسحاق سبيعي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د حضرت عثمان بن مظعون رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بي بي په خيرنو او زړو جامو کې د رسول الله ﷺ بيبيانو ته راغله هغوی ترې پوښتنه وکړه چې په تا څه شوی دی ؟ چې داسې شکل او صورت دې جوړ کړی دی د هغه بي بي وويل چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ټوله شپه عبادت کوي او ټوله ورځ روژه ساتي چا دا خبره رسول الله ﷺ ته وکړه چې کله د رسول الله ﷺ حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ملاقات وشو نو هغوی ترې ناراضه شول او وې فرمايل آيا ته زما په طريقه نه چلېږې؟ هغه وويل ولې نه! الله رب العزت دې ما په تاسو قربان کړي د ېنه پس د هغه بي بي شکل او صورت کې ښه خوشبويي لګولې وه راغله او چې کله د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفات شو نو هغې دا شعرونه وويل

يـا عـينُ جـودى بـدمع غـير ممنـون

على رَزيــة عثمـــان بـــن مظعــونِ

اې سترګو ! د حضرت عثمان بن مظعون رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د وفات مصيبت باندې داسې اوښکې

---

١: اخرجه الطبراني قال الهيثمي ٩/١٨٢ وفيه احمد بن راشد الهلالي وهو ضعيف اه واخرجه عن يعلى بن مرة مثله كما فى الكنز ٧/١٠٧

٢: اخرجه الطبراني كذافى الكنز ٧/١٠٧

وبهوه ! چې هيڅکله هم ونه دريږي.

علی امـرىء بـات في رضـوان خالقـه
طوبى له من فقيـد الشـخص مـدفونِ

داسې سړی باندې اوښکې وبهوه چا به چې دخپل خالق په رضا کې تېرولې شپه تېروله هغه دفن شو فنا شو هغه لپاره جنت طوبه ونه ده.

طـاب البقيـع له سـكنى و غرقـده
و أشرقـت أرضـه مـن بعـد تفتـين

بقيع او د هغې د غرقدونو کې د هغه ځائ ډېر ښه جوړ دی او د بقيع ځمکه د کافرانو دفن کېدو په وجه فتنو والا ده اوس د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دفن کېدو هغه روښانه شوه.

و اورث القلـبَ حزنـاً لاانقطـاع له
حـتى الممـات فمـا تـرقى له شـوني

او د هغه په مرګ سره په زړه کې داسې غم پيدا شوی دی چې تر مرګه پورې به ختم نه شي او هغه لپاره به د اوښکو رګونه چېرته وچ نشي.(۱)

د حضرت عروه په روايت کې دا دی چې د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بي بي نوم خوله بنت حکيم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بنودل شوی دی او دا چې هغه حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته ورغلې وه او د هغه په روايت کې دا هم دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل چې اې عثمانه! رهبانيت زمونږ لپاره د اجر قابل عبادت نه دی ګرځولی شوی آيا زه ستاسو لپاره ښه نمونه نه يم؟ په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! په تاسو کې د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه وېرېدونکي او د هغه د حدودو د تولو نه زيات حفاظت کونکی زه يم.

**حضرت عبدالله عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ته د خپلې بي بي سره دحسن معاشرت حکم:**

حضرت عبدالله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: زما پلار د قريشو يوې ښځې سره زما واده وکړ کله چې هغه ما ته راغله نو ما د هغې څه پرواه ونکړه ځکه چې زه د مونځ روژې عبادت ډېر شوقي وومه يو ځل زما پلار حضرت عمرو بن عاص خپلې اينګور يعنې زما ښځې ته ورغی

۱: اخرجه ابونعيم فی الحلية ۱/۱۰٦ واخرجه ابن سعد ۳/۳۹۴ عن ابی بردة بمعناه وعبدالرزاق عن عروة بنحوه كما فی الكنز ۸/۳۰۵ الا انهما لم يذكر الاشعار

او یو بنسته یې تري وکړه چې تا خپل خاوند څنګه بیا موندو؟ هغې وویل چې هغه سړی دی یایې وویل چې ښه خاوند دی خو اوسه پورې هغه زما یو اړخ اوسه پورې پرانیستی نه دی او زما بسترې ته هم نزدې نه دی راغلی حضرت عمرو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ما ته متوجه شو او ما ته یې ډېرې بدې ردې وویل او ویې ویل چې ما د قریشو خانداني ښځې سره ستا واده وکړ او تا هغه په مینځ کې زوړنده ساتلې ده ته د هغې خوا ته هم نه ځې بیا هغه لاړ رسول اللهﷺ ته یې زما شکایت وکړ رسول اللهﷺ سړی راولیږه او زه یې راوغوښتلم او ویې فرمایل آیا ته توله ورځ روژه نیسې؟ ما وویل هو! رسول اللهﷺ وفرمایل چې آیا ته توله شپه عبادت کوې؟ ما وویل هو! رسول اللهﷺ وفرمایل خو زه خو کله روژه نیسم او کله کوژه کوم او د شپې کله مونځ کوم او کله اوده کیږم او بیبیانو ته هم ورځم دا زما سنت دی او څوک چې زما د سنتو نه مخ اړوي هغه زما نه نه دی د هغه زما سره څه تعلق نشته بیا رسول اللهﷺ وفرمایل چې په یوه میاشت کې یو کرت قرآن ختموه! ما وویل چې په ما کې د دې نه زیات طاقت دی وې فرمایل چې په لسو ورځو کې یو ختم کوه! ما وویل چې په ما کې د دېنه زیات طاقت دی رسول اللهﷺ وفرمایل ښه ده په درېوو ورځو کې یې ختموه! بیا یې وفرمایل چې په هره میاشت کې درې روژې نیسه! ما وویل چې په ما کې د دېنه زیات طاقت دی هغوی ﷺ به ورځې زیاتولې تر دې چې وې فرمایل چې یوه ورځ روژه نیسه! او یوه ورځ کوژه کوه! ځکه چې دا غوره روژې دي دا زما د ورور حضرت ابوداود عَلَيْهِ السَّلَامُ روژې دي د حضرت حصین په حدیث کې راغلي دي چې بیا رسول اللهﷺ وفرمایل چې د عبادت هر شوقین باندې څه وخت داسې راځي چې په هغه کې د عبادت ډېر جوش او جذبه وي او جوش او جذبه څه وخته پورې اوچلیږي بیا په هغې کې کمی راځي چې کله کمی راشي نو څوک په هغه وخت کې سنت طریقه غوره کوي او څوک بدعت طریقه.

چا چې د جوش او جذبې د کمي په زمانه کې سنت طریقه غوره کړه هغه هدایت وموندو او څوک چې څه بل طرفته روان شو نو هغه هلاک او برباد شو حضرت مجاهد رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي چې حضرت عبدالله بن عمرو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ چې کله بوډا شو او کمزوری شو نو هغه به څو څو ورځې پرله پسې روژې نیولې بیا به یې د هغې نه روستو نه نیولې دې لپاره چې څه طاقت راشي او داشان هغه به د قرآن یو منزل لوستلو کله به یې زیات لوستلو او کله کم. خو اووه یا درېوو

ورځو کې به یې مقدار پوره کولو یا د دېنه پس د کمزورۍ زیاتېدو په زمانه کې به یې ویل چې که چېرې ما د رسول الله ﷺ رخصت قبول کړی وای نو هغه زما د دې عبادت نه زیات خوښ وو چې ما اختیار کړی دی خو ما یوه طریقه اختیار کړه او رسول الله ﷺ نه جدا شوی یم اوس ما ته ښه نه معلومیږي چې زه دا پرېږدم او بله طریقه اختیار کړم یعني د رسول الله ﷺ په ژوند کې د هغوی ﷺ د وفاته پورې چې ما کوم معمول د تلاوت لپاره روزانه جوړ کړی وو اوس زه په هغې کې کمی کول ښه نه ګڼم خواه که ما ته هر څو مره د سختۍ زغملو ضرورت راشي زه به یې کوم.(۱)

**د حضرت سلمان او حضرت ابودرداء رضي الله عنهما واقعه:**

ابو جحیفه رضي الله عنه فرمايي: رسول الله ﷺ د حضرت سلمان رضي الله عنه او حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه په مینځ کې ورورولي قائمه کړه یوه ورځ حضرت سلمان رضي الله عنه د حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه سره د ملاوېدو لپاره راغی نو وې لیدل چې حضرت ام درداء رضي الله عنها زړې ساده کپړې اغوستې وې نو ده ورته وویل: په تا څه شوي دي ؟تا ولې داسې جامې اغوستي دي؟ وې ویل چې ستا د ورور حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه دنیا ته بلکل رغبت نشته په دې کې حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه راغی او د حضرت سلمان رضي الله عنه لپاره یې طعام تیار کړو او هغه ته یې وویل چې ته خوره زما روژه ده. حضرت سلمان رضي الله عنه وویل چې تر څو پورې یې ته ونه خورې زه به یې ونه خورم نو حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه او خوړه کله چې شپه شوه نو حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه د عبادت لپاره ودرېدو حضرت سلمان رضي الله عنه وویل: اوس ویده شه، نو هغه ویده شو، کله چې د شپې آخري حصه شوه حضرت سلمان وویل: چې اوس پاڅه! بیا دواړو مونځ وکړ بیا هغه ته حضرت سلمان رضي الله عنه وویل چې ستا د رب هم په تا حق دی خو ستا د نفس هم په تا حق دی او ستا د کور والاو هم په تا باندې حق دی هر یو حقدار ته د هغه حق اداء کوه! بیا حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه لاړ او رسول الله ﷺ ته یې دا ټوله قصه وکړه نو رسول الله ﷺ وفرمایل سلمان رضي الله عنه صحیح خبره کړې ده.(۲)

---

۱: اخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۲۸۵ واخرجه ایضا البخاری وانفرد به کما فی صفة الصفوة ۱/۲۷۱ نحوه مطولا.

۲: اخرجه البخاری ۱/۲٦٤ واخرجه ابونعیم فی الحلیة ۱/۱۸۸ عن ابی جحیفة نحوه مع زیادات وابویعلی کما فی الکنز ۱/۱۲۷ والترمذی وابن خزیمة والدار قطنی وابن حبان کما فی فتح الباری ۴/۱۵۱ واخرجه ابن سعد ۴/۱۵ بالفاظ مختلف.

**د حضرت زبیر بن عوام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شدت غیرت:**

حضرت اسماء بنت ابي بكر رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي: حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ما سره واده وكړ نو د هغه سره زمكه وه او يو اس وو د ينه سوا هغه سره نه څه مال وو نه غلام او نه څه بل شى. د اس د خدمت ټول كار د حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ځائ ما كولو د هغه حفاظت به مې كولو او وابنه وغيره به مې ورته راوړل او د كوهي نه اوبه راوېستې والا اوبو لپاره به مې د كجورو هډوكي ميده كول هغه لپاره به مې وابنه او نور هر څه راوړل او اوبه به مې پرې څښلې او د كوهي نه اوبه راووېستې لويه بوقه به مې پخپله ګنډله او د كور لپاره به مې اوړه هم اغګل خو ما ته ډوډۍ پخول ښه نه راتلل له دې وجې نه زما انصاري ګاونډيانو ښځو ما له ډوډۍ پخولې هغوى ډېرې رېښتونې او مخلصې ښځې وې او رسول الله ﷺ چې حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته كومه زمكه وركړې وه هغه د مدينې منورې نه دوه ميله لرې وه ما به د هغه ځائ نه پخپل سر باندې پنډ راوړلو نو يوه ورځ مې په سر باندې پنډ ايښى وو چې په لاره كې رسول الله ﷺ په اوښ باندې سور ما سره ملاو شو د صحابه وو يوه ډله هم ورسره وه رسول الله ﷺ زه راوغوښتلم او د اوښ كېنولو لپاره يې اخ اخ وفرمايل دې لپاره چې ما ځان سره سوره كړي خلكو سره يو ځائ تلو باندې ما ته شرم راغى او د حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ غيرت راياد شو ځكه چې هغه په خلكو كې د ټولو نه د زيات غيرتي وو رسول الله ﷺ پوه شو چې ما ته شرم راځي هغوى ﷺ تشريف يوړو زه ورسره سهره نه شوم بيا زه لاړم حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته مې وويل چې ما په سر باندې پنډ اخيستى وو راتلم په لاره كې ما ته نبي ﷺ ملاو شو هغه سره د صحابه وو يوه ډله هم وه رسول الله ﷺ اوښ كېنولو دې لپاره چې زه ورسره سوره شم خو ما ته شرم راغى او ستا د غيرت خيال راته راغى حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! چې ته رسول الله ﷺ سره سوره شوې واى ما ته دومره تكليف نه وو څومره چې ستا په سر باندې پنډ راوړلو سره دى د ينه پس حضرت ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ما ته يوه وينزه راولېږله چې هغې د اس ساتنه او د خدمت ټول كارونه كول نو ما ته داسې معلومه شوه لكه چې هغه زه د قيد نه ازاده كړم.(۱)

حضرت عكرمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې حضرت اسماء بنت ابي بكر رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حضرت زبير بن

۱: اخرجه ابن سعد ۸/۲۵۰

عوام رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په نکاح کې وه حضرت زبیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به په هغې باندې سختي کوله حضرت اسماء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا لاړه او خپل پلار ته یې د هغه شکایت وکړ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل اې زما لورې! صبر کوه! چې کله د یوې ښځې نېک خاوند وي بیا هغه خاوند مړ شي او بیا هغه ښځه بل واده ونه کړي نو هغوی دواړه به په جنت کې جمع کولی شي.(۱)

**د هغې ښځې قصه چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته یې د خپل خاوند شکایت وکړو:**

حضرت کهمس هلالي رَحِمَهُ اللَّهُ وایي چې زه د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره ناست ووم او خلک هم ناست وو چې په دې کې یوه ښځه راغله حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره کېناستله او وې ویل اې امیرالمؤمنین! زما د خاوند شر زیات شوی دی او د هغه خیر کم شوی دی حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه چې ستا خاوند څوک دی؟ هغې وویل چې حضرت ابوسلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ. حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې هغه ته خو د رسول الله ﷺ صحبت حاصل دی او هغه ریښتونی دی د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره یو سړی ناست وو هغه ته یې وفرمایل ایا هغه سړی داسې نه دی؟ هغه سړي وویل اې امیرالمؤمنین! تاسو چې د هغه په باره کې څه ویلي دي مونږ ته هم دغه معلوم دي بیا حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یو سړی ته وویل لاړ شه! حضرت ابوسلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ما ته را وغواړه! کله چې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغې ښځې خاوند پسې سړی ولېږه تو هغه ښځه پاڅېده او د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ شا ته کېناستله لږ ساعت پس هغه سړی د دغې ښځې خاوند حضرت ابوسلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راوستلو او هغه راغی حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته مخامخ کېناستلو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل چې دا زما نه روستو ناسته ښځه څه وایي؟ حضرت ابوسلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پوښتنه وکړه اې امیرالمؤمنین! دا ښځه څوک ده؟ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمایل استا بي بي ده، حضرت ابوسلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل: دا څه وایي؟ نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وفرمایل: دا وایي چې ستا خیر کم او شر زیات شوی دی حضرت ابوسلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل اې امیرالمؤمنین! دې ډېره بده خبره کړې ده دا د خپلې قبیلې په نېکو ښځو کې ده خو د دې جامې د هغه ټولو ښځو نه زیاتې دي او په کور کې د سهولت او راحت سامان هم د ټولو نه زیات دی خو دومره خبره ده چې د دې خاوند بوډا شوی دی حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه ښځې ته وویل

---

۱: عند ابن سعد ایضا ۸/۲۵۱

چې اوس ته څه غواړې؟ هغې ورېل دا صحیح خبره کوي حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کوره واخیستله او هغې ښځې طرفته روان شو او په کوره یې د هغې خبر واخیست بیا یې وفرمایل اې د خپل ځان دښمنې! تا د ده ټول مال وخوړ او د ده ځواني دې ختمه کړه او اوس د ده نه هغه شکایت کوې چې په ده کې نشته.

هغې ښځې وویل اې امیرالمؤمنین! جلتي مه کوئ! په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! ائینده لپاره به زه چیرې هم د شکایت په دې مجلس کې نه کېنم! یعنې چیرې به هم شکایت نه کوم بیا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې دې ښځې ته درې جامې ورکړئ! او هغې ښځې ته یې وویل ما چې کوم ته وهلې یې دا جامې د هغې په بدله کې واخله! راوي وایي چې هغه قصه ما ته داسې یاده چې ګویا زه اوس هم هغه ښځه وینم چې جامې یې اخیستې دي بیا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغې ښځې خاوند طرفته متوجه شو وې فرمایل چې تا زه کوم لیدلې یم چې دې ته مې سزا ورکوله د له دې وجې نه ته دې سره بده رویه شروع نه کړې هغه وویل چې زه به داسې نه کوم نو هغه ښځه او خاوند بېرته لاړل بیا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې ما د رسول الله ﷺ نه دا فرمان اورېدلی دی چې زما د امت غوره زمانه هغه ده چې په کومه کې زه یم بیا دویمه زمانه بیا دریمه زمانه بیا د دې نه پس داسې خلک پیدا شي چې د ګواهۍ ورکولو نه مخکې قسمونه خوړل به شروع کړي او په بازارونو کې به ګرځي شور به کوي.(١)

**د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د ښځې اوخاوند قصه:**

حضرت شعبي رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې يوه ښځه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راغله او وې ویل چې ما تا ته د داسې سړی شکایت راوړی دی او راغلی یم چې د ټولې دنیا والاوو نه زیات بهتر دی له هغه څخه غوره هغه سړی کېدی شي چې د هغه نه زیات عمل وکړي یا د هغه برابر عمل وکړي هغه د شپې نه صبا پورې عبادت کوي او د سحر نه تر مابنامه پورې روژه ساتي دومره ویلو نه پس هغه ښځې ته شرم راغی هغې وویل اې امیرالمؤمنین! ما معاف کړئ! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل الله جَلَّ جَلَالُهُ دې تا ته جزایې خیر درکړي تا د هغه سړی ډېر ښه تعریف وکړ ما ته ښکلی یې چې کله هغه ښځه لاړه نو حضرت کعب بن سور رَحِمَهُ اللَّهُ وویل اې امیرالمؤمنین! دې ښځې تاسو ته په شکایت کولو کې کمال وکړ

(١) اخرجه الطيالسي والبخاري في تاريخه والحاكم في الكنى قال ابن حجر اسناده قوي كذافي الكنز ٥/٣٠٢ واخرجه ايضا ابوبكر بن ابي عاصم كما في الاصابة ٤/٩٢

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وویل چې هغې څه شکایت وکړ؟ حضرت کعب رَحِمَهُ اللهُ وویل چې هغې د خپل خاوند شکایت وکړ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وویل چې دغه ښځه ما ته راولئ! او دا شان سړی یې ولېږه او د هغې خاوند یې هم را وغوښته چې کله هغوی دواړه راغلل نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ حضرت کعب رَحِمَهُ اللهُ ته وویل چې ته د دې دواړو مینځ کې فیصله وکړه حضرت کعب رَحِمَهُ اللهُ وویل ستاسو په حضور کې زه فیصله وکړم؟ دا څنګه کېدی شي؟ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل چې ته د دې په شکایت باندې پوه شوې یې او زه پرې نه یم پوه شوی له دې وجې نه هم ته فیصله وکړه حضرت کعب رَحِمَهُ اللهُ وویل چې الله رب العزت فرمایي: فَانكِحُوا مَا طَابَ لَكُم مِّنَ النِّسَاءِ مَثْنَىٰ وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ

ترجمه: او په ښځو کې چې کومې ستاسو خوښې وي نکاح وکړئ! دوو ښځو سره او دریو دریو سره او څلور څلور سره.د هغې خاوند ته یې وویل چې ته درې ورځې روژه ونیسه او یوه ورځ کوژه کوه! او دې سره اوسېږه! او درې شپې نفلي عبادت کوه او یوه شپه دې سره تېروه! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل چې ستا دا فیصله خو زما ستا د مخکېنۍ خبرې نه هم زیات ه خوښه شوه بیا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ حضرت کعب رَحِمَهُ اللهُ د بصرې والاوو لپاره قاضي جوړ کړو او وې لېږلو.(۱)

یشکري د حضرت شعبي رَحِمَهُ اللهُ نه دا واقعه د دېنه زیاته اوږده نقل کړې ده او په هغې کې دا هم دی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ هغه ښځې ته وویل چې ته ما ته رښتیا خبره وکړه او په حق خبره ښکاره کولو کې څه وېره کول پکار نه دي هغې وویل اې امیر المؤمنین! زه یوه ښځه یم په ما کې هم هغه خواهش شته دی چې په ښځو کې وي عبدالرزاق د حضرت قتاده رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه نقل کوي چې یوه ښځه راغله حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته یې وویل چې زما خاوند ټوله شپه عبادت کوي او ټوله ورځ روژه ساتي حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل آیا ته ما ته دا ویل غواړې چې هغه د شپې د عبادت نه او د ورځې د روژې نه زه منع کړم؟ هغه ښځه لاړه دوباره راغله او هغه خبره یې بیا وکړه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ بیا هغه جواب ورکړو په دې باندې حضرت کعب بن سور رَحِمَهُ اللهُ وویل اې امیر المؤمنین! د دې ښځې هم حق دی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمایل چې څه حق دي؟ حضرت کعب رَحِمَهُ اللهُ وویل چې الله رب العزت د دې د خاوند لپاره څلور بیبیانې حلالې

---

۱: اخرجه ابن سعد.

کرځولې دي نو تاسو دا ښځه د څلورو بيبيانو نه يوه او شمارئ! د دې نه د هرو څلورو شپو نه يوه شپه او د هرو څلورو ورځو نه يوه ورځ ملاوېدل په کار دي نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغې خاوند را وغوښته او وې فرمايل چې په هر څلورو شپو کې يوه شپه خپلې ښځې سره تېره وه او هر څلورو ورځو نه يوه ورځ د دې د وجې نه روژه مه نيسه!(١)

**د حضرت عمر، حضرت ابوغرزه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا او دهغه دبي بي قصه:**

حضرت ابو غرزه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حضرت ابن ارقم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لاس ونيوه او خپلې بي بي ته يې بوتلو او هغې ته يې وويل آيا ته ما سره بُغض ساتې؟ هغې وويل هو! حضرت ابن ارقم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې تا داسې ولې وکړل؟ حضرت ابو غرزه رَحِمَهُ اللَّهُ وويل ځکه چې خلکو زما باره کې ډېرې خبرې کولې حضرت ابن ارقم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لاړ او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته يې دا خبره وکړه حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت ابوغرزه رَحِمَهُ اللَّهُ را وغوښته ورته يې وويل چې تا داسې ولې وکړل؟ حضرت ابوغرزه رَحِمَهُ اللَّهُ وويل ځکه چې خلکو زما باره کې ډېرې خبرې شروع کړې وې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت ابوغرزه رَحِمَهُ اللَّهُ ښځه را وغوښتله هغه هم راغله او هغې سره يوه ترور هم راغله چې هغه چا نه پيژندله ترور هغې ته وويل چې که چېرې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ستا نه پوښتنه وکړي چې تا داسې صفا جواب ولې ورکړو؟ نو ته ووايه چې هغه ما ته قسم را کړی وو او پوښتنه يې کړې وه چې ايا ته ماسره بُغض ساتې؟ له دې وجې نه دروغ ويل ما ته بدښکاره شو نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغې نه پوښتنه وکړه چې دا خبره دې ولې وکړه؟ د حضرت ابوغرزه رَحِمَهُ اللَّهُ بي بي وويل چې ده ما ته قسم را کړی وو او پوښتنه يې کړې وه له دې وجې نه دروغ ما مناسب ونه ګڼل حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل نه! تاله دروغ ويل پکار وو او ښه خبره کول درته پکار وو د ښځې خاوند سره تعلقاتو ساتلو لپاره يو بل ته د دروغو د محبت اظهار کولی شي ځکه چې په ټولو کورونو کې د ښه ژوند بنياد د ښځې خاوند محبت نه وي بلکې په ځينې کورونو کې د ښځې او خاوند په مينځ کې محبت يې نه وي خو د ښه ژوند تېرولو بنياد خانداني شرافت او اسلام وي.(٢)

---

١: كذافى الكنز ٨/٣٠٨،٣٠٧ واخرجه ابن ابى شيبة من طريق ابن سيرين الزبير بن بكار فى الموفقيات من طريق محمد و ابن دريد فى الاخبار المشورة من ابى حاتم السجستانى من ابى عبيدة وله طرق كذا فى الاصابة ٣/٢١٥

٢: اخرجه ابن جرير كذافى الكنز ٨/٣٠٣

**د حضرت عاتکه قصه:**

حضرت ابو سلمه بن عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې حضرت عاتکه بن زيد بن عمرو بن طفيل رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حضرت عبد الله بن ابي بکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په نکاح کې وه د حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغې سره ډېر زيات محبت وو حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغې ته يو باغ په دې شرط باندې ورکړو چې هغه به د ده د مرګ نه پس چا سره واده نه کوي په غزوه طائف کې حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په يو غشي لګېدلی وو چې زخم خو په هغه وخت کې صحيح شو خو د رسول الله ﷺ د وفات نه څلوېښت ورځې روستو هغه زخم بيا تازه شو چې د هغې د وجې نه حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفات شو د هغه بي بي حضرت عاتکې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د هغه په غم کې دا شعر وويل:

و آليت لاتنفك عيــــنى سخينة
عليك و لاينفك جـــلدى أغبرا
مدى الدهر ماغنت حمامة أيكةٍ
و ما طردالليل ذ الصبــــاح المنوَّرا

او ما قسم کړې دی چې تول عمر به تر هغې پورې زما سترګې په تا باندې ګرمې اوښکې بهيوي څکه چې د غمر اوښکې ګرمې وي او زما بدن به د دورو نه ډک وي يعنې زه به دول سنګار نه کوم تر څو پورې چې د ګڼ ځنګل کوتره سندرې وايي او د شپې نه پس روښانه صبا راځي يعنې هميشه به ژاړم.

بيا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بن خطاب هغې ته د واده پيغام ورکړو نو هغې په جواب کې ووېل چې حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ما ته په دې شرط باندې يو باغ را کړی وو چې زه به د هغه نه پس واده نه کوم نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته ووېل چې د يو عالم نه د واده په باره کې د مسئلې پوښتنه وکړه انو هغې د حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې د حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وارثانو ته باغ بېرته ورکړه او واده وکړه نو هغې واپس کړو او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغې سره واده وکړ او د رسول الله ﷺ څو صحابه وو ته يې سرې ولېږلې او د وليمې لپاره يې را وغوښتل په هغه صحابه وو کې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت عبد الله بن ابي بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، سره د ورور ولۍ تعلق وو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ووېل چې تاسو ما ته اجازت راکړئ انو زه به حضرت عاتکې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره څو

خبري وكرم حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې وكړه ! حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل اې عاتكې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا! دا شعرونه تا ويلي وو اوس دې د هغې خلاف وكړل.

و آليت لاتنفك عيـــنى سخينة

عليك و لاينفك جـــلدى أغبرا

ما قسم خوړلی دی چې زما سترګې به په تا باندې ګرمې اوښکې بهيوي او زما بدن به د دوړو وي. دا يې چې واورېدل حضرت عاتکه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په زوره په ژړا شوه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل الله رب العزت دې تاسو ته ښه وکړي زما د بي بي ذهن دې خراب کړو.(۱)

**د حضرت ابن عباس او دهغه بي بي قصه او د هغه دخاله حضرت ميمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قول:**

د حضرت ميموني رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ازاده کړی شوې وينزه حضرت عُدبه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي: حضرت ميموني رَضِيَ اللهُ عَنْهَا زه خپل خوريي حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ولېږلم زه هغه ته ورغلم نو ما وليدل چې د هغه په کور کې دوه بسترې خورې دي يوه د هغه او يو د د هغه د بي بي زه واپس لاړم حضرت ميموني رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته مې وويل چې زما په خيال خو حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپله بي بي پرېښې ده حضرت ميموني رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حضرت ابن عباس ښځه بنت سرج کندي ته پيغام ولېږه او راويې غوښتله او پوښتنه يې ترې وکړه آيا ته حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پرېښې يې ؟ هغې وويل نه زما او د هغه په مينځ کې څه جدايي نشته خو نن صبا ما ته حيض راځي ځکه مو بسترې جدا جدا کړی دی په دې باندې حضرت ميموني رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دا پيغام ولېږه چې ته د رسول الله ﷺ د ستو نه مخ اړوې رسول الله ﷺ به حيض په وخت کې هم خپلو بيبيانو سره څملاستو البته د هغوی ﷺ به زنګونو پورې جامه اغوستله.(۲)

**د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا او دلړه د خوی قصه يې:**

حضرت عکرمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې دا پته خو ما ته ونه لګېده چې خوراک چا د بل لپاره تيار کړی وو حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يا د هغه د تره خوی بهر حال دې حضراتو طعام خوړلو او يوې وينزې د هغوی په مخکې کار کولو طعام وغيره يې راوړلو چې په هغوی کې چا

---

۱: اخرجه وكيع كذافى الكنز ۸/۳۰۲ واخرجه ابن سعد بسند حسن عن يحيى بن عبدالرحمن بن حاطب مختصرا كما فى الاصابة ۳/۳۵٦

۲: اخرجه عبدالرزاق كذافى الكنز ۵/۱۳۸

دغه ویىنزي ته وويل اې زناكارې! په تا باندې په دنيا كې شرعي حد ونه لګېدو په اخرت كې به ضرور لګي هغه سړي وويل چې كه خبره واقعي هم دا شان وي څنګه چې ما وويل نو بيا؟ حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل كه چېرې خبره داسې صحيح هم وي نو په ډك مجلس كې ويل نه دي پكار ځكه چې الله جَلَّ جَلَالُهُ د بې حيايۍ او قصداً بد كلامۍ خبره كونكى نه خوښوي او د بې حيايۍ او بد كلامۍ والا د الله جَلَّ جَلَالُهُ د نه خوښوولو خبره حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پخپله كړې وه.(١)

حضرت ابوعمران فلسطيني رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې د حضرت عمرو بن عاص رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بي بي د هغه سر نه سپكې راوېستلې د هغه بي بي خپلې وينزې ته اواز وكړ وينزې په راتګ كې وخت تېر كړو نو دهغه بي بي وويل اې زناكارې! حضرت عمرو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل آيا تا دا په زنا كولو ليدلې ده؟ د هغه بي بي وويل نه! حضرت عمرو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! تا ته به د دې وينزې د وجې د قيامت په ورځ اتيا كوړې وهلى شي د هغه بي بي د هغه وينزې نه معافي وغوښتله وينزې معاف كړه حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل دا عاجزه به تا ولې نه معاف كوي چې دا ستا ما تحت ده دا ازاده كړه د هغه بي بي وويل ايا د دې ازادول به كافي شي؟ بيا ما ته په اخرت كې سزا خو نه ملاوېږي؟ حضرت عمرو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل هو! اميد دى.(٢)

**دمعاشرې په باره كې د بعض صحابه كرامو قصې:**

حضرت ابوالمتوكل رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې د حضرت ابوهريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يوه حبشي وينزه وه چې دهغې څه حركت په وجه تول كوروالا غمژن او پرېشانه وو يوه ورځ حضرت ابوهريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د هغې وهلو لپاره كوړه راواخيستله خو بيا يې وفرمايل كه چېرې ما ته د قيامت په ورځ د بدلې وېره نه واي نو ما به ته په دې كوړه باندې په وهلو وهلو بې هوشه كړې واې خو اوس زه تا په هغه چا باندې خرڅوم څوك چې ستا قيمت پوره وركوي يعنې څه ته د الله رب العزت لپاره ازاده يې!(٣)

حضرت عبدالله بن قيس يا ابن ابي قيس رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې كله حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ملك شام ته راغلى وو نو زه هم په هغه خلكو كې ووم كومو كې چې د حضرت ابو عبيده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ

---

١: اخرجه البخاري في الادب ٤٩
٢: اخرجه ابن عساكر كذافي الكنز ٥/٤٨
٣: اخرجه ابونعيم في الحلية ١/٢٨٤

سره د هغوی هر کلي کړی وو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روان وو چې د ازرعات ښار کرتب ښودونکي خلک تورو او نېزو سره هغوی سره ملاو شول حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل ایسار شئ! دوي ودروئ ! او واپس یې کړئ! حضرت ابو عبیده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل اې امیرالمؤمنین! دا د دې عجمي خلکو رواج دی چې د امیر په راتلو د خوشحالۍ ښکاره کولو لپاره خپل کرتب هنر ښائي که چېرې تاسو دوی منع کړئ! نو دا خلک به په دې شي چې تاسو د دوي د امن معاهده ماتول غواړئ! په دې معاهده کې دوي ته پخپل رواج د چلېدو اجازت دی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل ښه نو بیا دوي پرېږده! ځکه چې په دې وخت کې به عمر او آل عمر ټول د حضرت ابو عبیده تابعداري کوي.(۱)

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي، یو ځل حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره په منډه کې مقابله راغله نو حضرت زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ترې مخکې شو او وې ویل د کعبې په رب مې دې قسم وي زه ستاسو نه مخکې شوم بیا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه سره دوباره مقابله وکړه دا کرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مخکې شو نو ویې ویل چې د کعبې په رب قسم! چې زه ستا نه مخکې شوم.(۲)

حضرت سلیم بن حنظله رَحِمَهُ اللهُ وايي چې مونږ د حدیثونو اورېدو لپاره حضرت محمد ﷺ ابي بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورغلو چې کله یې احادیث واورول حضرت أبی ودرېدو نو مونږ هم ورسره پاڅېدو او روان شو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه سره ملاو شو او آنحضرت ﷺ وفرمایل چې آیا تاسو ته د دې خیال نشته چې دا شان خلکو سره تلل پخپله ستا پاره فتنه او د خرابېدو سبب دی او دوی لپاره د ذلت ذریعه ده.(۳)

حضرت ابو البختري وايي چې یو سړی حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راغی او وې ویل چې نن د خلکو معامله څومره ښه ده زه د سفر نه راتلم په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! زه چې د چا سره هم ایسار شوم نو ما ته داسې محسوسه شوه لکه چې زه د خپل رور سره ایسار شوم هر یو ما سره ښه سلوک وکړ او ډېره مهرباني یې را سره وکړه حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل اې زما وراره! دا د ایمان د تازه کېدو او ښه کېدو نښه ده آیا ته نه ګورې چې کله په څاروي

۱: اخرجه ابوعبید وابن عساکر کذافی الکنز ۷/۳۳۴

۲: اخرجه المحاملی کذافی الکنز ۷/۳۳۴

۳: اخرجه ابن ابی شیبة والخطیب فی الجامع کذافی الکنز ۸/۶۱

باندې سامان بار کړی شي او سفر نږدې وي ځاروي هم تازه دم وي نو بيا ځاروي سره د سامانه ښه تېز روان وي او چې کله سفر اوږد وي او ځاروي ستړي شوي وي نو بيا په قلار قلار ځي او شاته پاتې کېږي له دې وجې نه ايمان تازه کوه! او هغه ښه جوړوه!(١)

حضرت حيه بنت ابي حيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې يوه ورځ خاص د غرمې په وخت کې يو سړی ما ته دننه راغی ما ورېل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ بنده! تا ته څه ضرورت پېښ شوی دی؟ هغه وويل چې زه او زما ملګري د اوښ راوېستو لپاره تللی دی او زه دلته سوري له راغلی يم دې لپاره چې څه وخت په سوري کې کېنم! او څه وڅښم! زه پاڅېدم په هغه مې لږه شان لسي اوڅښله او د هغه د پېژندلو لپاره مې کوشش وکړ ما وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ بنده! ته څوک يې؟ هغه وويل ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ! ما وويل هغه ابوبکر چې د رسول الله ﷺ صحابي دی؟ چې د هغه نه ما اورېدلي هم دي؟ هغه وويل هو! بيا ورته ما وويل چې د جاهليت په زمانه کې به زمونږ د خثعم قبيلې سره جګړه وه او مونږ به په خپلو کې هم جنګېدو خو اوس الله رب العزت مونږ ته په خپلو کې محبت او الفت رانصيب کړو دا ټول د اسلام برکت دي ما وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ بنده! په خلکو کې به دا مينه او محبت تر کومه پورې وي؟ هغوی وويل چې تر څو پورې چې امام سيد وي ما پوښتنه وکړه چې امام څوک دی؟ وې ويل آيا تا ليدلي نه دي؟ چې په هره قبيله کې يو سردار وي چې هغه پسې خلک روان وي او د هغه خبره مني او هم دا هغه خلک دي څو پورې چې دوي صحيح چلېږي په خلکو کې به ټول کارونه صحيح وي.(٢)

حضرت حارث بن معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې زه د شام ملک نه د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې حاضر شوم نو زما نه يې پوښتنه وکړه چې تا د شام والا په څه حال کې پرېښودل؟ ما ورته د شام والاوو حال بيان کړو نو هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د الله جَلَّ جَلَالُهُ شکر اداء کړو او د هغه تعريف يې وکړ بيا يې وفرمايل چې شايد تاسو خلک به د مشرکانو سره کېنئ! ما وويل نه! اې اميرالمؤمنين! حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې که چېرې تاسو د مشرکانو سره کېناستئ! نو تاسو به د هغوی سره خوراک څښاک شروع کړئ! او تاسو به تر هغې پورې په خير باندې يئ! تر څو چې تاسو دا (د هغوی سره د خوراک څښاک

---

١: اخرجه ابونعيم فى الحلية ١/٢٠٣

٢: اخرجه مسدد وابن منيع والدارمي قال ابن كثير اسناده حسن جيد كذافي الكنز ٢/١٦٢

والا) کار نه کوئ!(۱)

حضرت عیاض رحمه الله وايي چې حضرت عمر رضي الله عنه حضرت ابوموسى اشعري رضي الله عنه ته د دې خبرې حکم وکړ چې هغه خپل ټول لين دين د څرمنې په يوه ټوټه باندې وليکي او حضرت عمر رضي الله عنه ته يې پيش کړي د حضرت ابوموسى رضي الله عنه يو نصراني عيسايي منشي وو هغه ټول حساب وليکه او حضرت عمر رضي الله عنه ته يې پيش کړو چې د حضرت عمر رضي الله عنه ډېر خوښ وو او وې فرمايل چې د ده حافظه تېزه ده بيا يې هغه منشي ته وويل چې مونږ ته د شام ملک نه يو خط راغلى دى آيا ته به لاړ شې چې په جمات کې هغه خط مونږ ته ولولې ؟ حضرت ابوموسى رضي الله عنه په جنابت کې دى حضرت ابوموسى رضي الله عنه وويل نه دا خو نصراني دى، راوي وايي دا يې چې واورېدل حضرت عمر رضي الله عنه زه ورټلم او زه يې په پنډى ووهلم او ويې ويل چې دى له دې څايه وباسه ! بيا يې دا آيت کريمه ولوستو : يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الْيَهُودَ وَالنَّصَارَىٰ أَوْلِيَاءَ (۲)

ترجمه: اې ايمان والاوو! تاسو يهود او نصارى دوستان مه نيسئ !(۳)

# د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو رضي الله عنهم خوراک او څښاک طريقه

## د رسول الله ﷺ د خوراک او څښاک طريقه:

حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمايي: رسول الله ﷺ به کله هم په طعام کې عيب نه راويسته که طبيعت به يې غوښتلو نو وبه يې خوړله کنه پرې به يې ښودله.(۴)

حضرت علي رضي الله عنه فرمايي: رسول الله ﷺ ته د چېلۍ په غوښه کې د ټولو نه زيات خوښ د مخکېنيو پښو غوښه وه.(۵)

حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي: د رسول الله ﷺ د پښو غوښه ډېره خوښه وه او هم د پښو په غوښه کې رسول الله ﷺ ته زهر اچول شوي وو او د ټولو خيال دا وو چې هم يهوديانو آنحضرت ﷺ ته زهر ورکړى وو .(۶)

---

۱: اخرجه يعقوب ابن سفيان والبيهقي وابن عساكر كذا في الكنز ۲/۳۰۰.

۲: سورة مائدة آيت ۵۱

۳: اخرجه ابن جرير كذافي الكنز ۴/۳۷

٤: اخرجه ابن ابي حاتم كذافي التفسير لا بن كثير ۲/٦۸

۵: اخرجه الشيخان كذافي البداية ٦/۴۰

٦: اخرجه ابن عساكر كذافي الكنز ۴/۳۷

حضرت جابر بن عبد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله ﷺ مونږ له كور ته راغى مونږ ورته يوه چېلۍ حلاله كړه رسول الله ﷺ د زړه ساتنې لپاره د خوشحالۍ ظاهرولو په طور باندې وفرمايل چې په ظاهر دې خلكو ته دا معلومه ده چې زمونږ غوښه ډېره خوښه ده په مخكې حديث كې مشهوره قصه ده.(١)

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: د رسول الله ﷺ كدو خوښوو چې نبي كريم ﷺ ته طعام راوړل شو يا به پيغمبر ﷺ طعام لپاره اوغوښتل شو ځرنګه چې ما ته پته وه چې د هغوى ﷺ كدو خوښ دى له دې وجې نه ما كدو تلاش كولو او د نبي كريم ﷺ مخكې به مې كېښوده.(٢)

انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله ﷺ به كله طعام وخوړنو خپلې درې ګوتې به يې څټلې.(٣)

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله ﷺ به په زمكه باندې كېناستلو او طعام به يې خوړلو او پې لوشلو لپاره به يې د چېلۍ پښې اوتړلې او د اوربشو ډوډۍ باندې يې هم د غلام دعوت قبولو يعني رسول الله ﷺ ډېر عاجزه طبيعت والا وو.(٤)

حضرت يحي بن ابي كثير رَحِمَهُ اللَّهُ وايي چې حضرت سعد بن عباده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به هره ورځ د ماته كړې ډوډۍ يوه پياله د رسول الله ﷺ په خدمت كې لېږله او رسول الله ﷺ به چې كومې يوې بي بي سره وو هغه به يې هم هلته لېږله.(٥)

حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: د رسول الله ﷺ لپاره يوه چېلۍ ولوشل شوه د هغې نه يې څه پې وڅښلې او بيا يې اوبه راواخيستلې او خوله يې وينځله او وې فرمايل چې په پيو كې غوړوالي وي.(٦)

حضرت ابوبكر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله ﷺ په سفر كې يو ځاى قيام وكړ هلته يوې ښځې خپل ځوى سره يوه چېلۍ رسول الله ﷺ ته اولېږله آنحضرت ﷺ هغه چېلۍ ولوشله بيا يې هغه هلك ته ووېل چې دا خپلې مور له يوسه هغه خپلې مور ته يوړل د هغه

---

١: عند الترمذي في الشمائل ١٢
٢: عندالترمذى ايضا فى الشمائل
٣: عندالترمذي ايضا
٤: اخرجه ابن النجار كذافى الكنز ٤/٤٤
٥: اخرجه ابن عساكر كذافى الكنز ٤/٣٧
٦: اخرجه ابن جرير كذافى الكنز ٤/٣٧

مور بنه په مره خېټه یې وخښلې هغه هلک بله چپلی راوستله رسول الله ﷺ ولوشله او یې یې پخپله وخوړلې.(۱)

حضرت ابراهیم رضی الله عنه فرمایي: رسول الله ﷺ په خپل ښي لاس د خوراک څښاک او دس او د دې پشان کارونو فارغ ساتلو او خپل کس لاس به یې استنجا پوزې صفا کولو او دا شان د نورو کارونو لپاره ساتلو.(۲)

حضرت جعفر بن عبدالله بن حکم بن رافع رحمه الله وایي چې زه ماشوم ووم او کله به مې د دلته نه طعام خوړلو او کله د هلته نه حضرت حکم ما ته کتل وې فرمایل اې هلکه! داسې مه خوره! څنګه چې شیطان طعام خوري رسول الله ﷺ به چې کله طعام خوړلو نو د هغوی ﷺ ګوتې به د هغوی ﷺ د مخکې خپلې مخې ته وې اخوا دېخوا به نه تلې.(۳)

**صحابه کرامو ته د طعام آداب ور زده کول او د طعام په شروع کې بسم الله ویل:**

حضرت عمر بن ابي سلمه رضی الله عنه فرمایي: ما یوه ورځ رسول الله ﷺ سره طعام خوړلو نو ما د لوښي هر طرف ته غوښه اخیستل شروع کړل رسول الله ﷺ وفرمایل چې د خپلې مخې نه خوره!(۴)

حضرت امیه بن مخشي رضی الله عنه فرمایي، رسول الله ﷺ ولیدل چې یو سړی خوراک کوي او هغه بسم الله نه ده ویلې طعام یې خوړلو بس یوه نوړی ورته پاتې شوه چې کله یې هغه خلې ته اوچته کړه نو هغه بسم الله وویل په دې باندې رسول الله ﷺ وخندل او وې فرمایل په الله جل جلاله قسم! شیطان تا سره طعام خوړلو بیا چې کله تا بسم الله وویله نو څه چې د هغه په خېټه کې وو هغه ټول یې قي کړل او په یو روایت کې دا دي چې کله تا د الله جل جلاله نوم واخیست نو د هغه په خېټه کې چې څه وو هغه یې قي کړل.(۵)

حضرت حذیفه رضی الله عنه فرمایي، یو ځل مونږ رسول الله ﷺ سره ناست وو چې په دې کې د طعام یوه پیاله راوړی شوه رسول الله ﷺ د طعام خوړلو نه لاس بند کړل نو مونږ خپل

---

۱: عند ابی یعلی کذافی الکنز ۴/۴۴

۲: اخرجه سعید بن منصور کذافی الکنز ۸/۴۵

۳: اخرجه ابونعیم کذافی الکنز ۸/۴۶ وقال فی الاصابة ۱/۳۴۴ سنده ضعیف اه.

٤: اخرجه ابن النجار کذافی الکنز ۸/۴۶

۵: اخرجه احمد وابوداود والنسائی وابن قانع والطبرانی والحاکم وغیرهم کذافی الکنز ۸/۴۵

لاسونه بند کړل ځکه چې رسول الله ﷺ به تر څو پورې طعام ته لاس نه مخکې کولو نو مونږ به هم نه مخکې کولو په دې کې یو بانډیچې راغی داسې معلومېده لکه چې څوک ورته دیکې ورکوي او راولي يې ! هغه د طعام لپاره پیالې ته لاس وروړ نو رسول الله ﷺ د هغه لاس ونیوه بیا یوه نجلۍ راغله داسې معلومېده لکه څوک یې چې په دیکو راولي هغې هم طعام ته لاس بنکته کړو نو رسول الله د هغې لاس هم ونیوه او وې فرمایل چې په کوم طعام د الله جَلَّ جَلَالُهُ نوم وانه خیستل شي هغه خوراک د شیطان لپاره حلالیږي کله چې شیطان وکتل نو موږ خپل لاسونه بند کړي دي نو هغه دواړه لاسونه راوستل او راغلل دې لپاره چې دوي بسم الله نه بغیر طعام خوړل شروع کړي او خوراک د ده لپاره حلال شي په هغه الله مې دې قسم وي چې د هغه نه علاوه څوک د عبادت مستحق نشته د شیطان لاس د دوي دواړو د لاسونو سره زما په لاس کې دی.(۱)

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي: یو ځل رسول الله ﷺ شپږو کسانو سره طعام وخوړ چې په دې کې یو بانډیچي راغی او هغوی د مخ نه یې ټول طعام په دوو نوړو سره وخوړ په دې باندې رسول الله ﷺ وفرمایل چې که چېرې ده بسم الله ویلې وی نو دا طعام به د ټولو لپاره کافي شوی وای چې کله په تاسو کې څوک طعام خوري نو هغه له بسم الله ویل په کار دی که چېرې بسم الله ویل ترې په اول کې هېر شي نو چې کله ورته بسم الله رایاده شي نو بسم الله واوله واخره دې ووایي.(۲)

**د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ سره د آنحضرت ﷺ میلمستیا:**

حضرت عبد الله بن بسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: رسول الله ﷺ راغی او زما پلار ایسار شو زما پلار رسول الله ﷺ ته د ستوانو، کجورو او غوړو نه جوړه شوې حلوه راوړه رسول الله ﷺ هغه اوخوړه بیا زما پلار د څښلو څه شی راوړو چې هغه رسول الله ﷺ او څښل بیا یې په پیاله خپل ښي طرفته یو سړی ته ورکړه او چې کله به هغوی ﷺ کجورې خوړلې نو هډوکي به یې دا شان غورزولو حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پخپلې ګوتې سره د هغې شا طرفته اشاره وکړه او وې ښودل چې کله رسول الله ﷺ سورېده نو زما پلار پاڅېده او د رسول الله ﷺ د

۱: اخرجه النسائي کذافی الکنز ۸/۴۶
۲: اخرجه ابن النجار کذافی الکنز ۸/۴۷

تچر واګي يې ونيولې او عرض يې وکړ رسول الله ﷺ دعا وکړه اې الله جَلَّجَلَالُهُ! دوي ته چې تا کوم رزق ور کړی دی په دې کې برکت نصيب کړی دی د دوي مغفرت وکړې په دوي باندې رحم وکړې!(۱)

حضرت عبدالله بن بسر رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي: زما پلار زما مور ته وويل چې که چېرې ته د رسول الله ﷺ لپاره څه طعام پوخ کړي نو ډېره زياته به ښه وي نو زما مور ما ته کړې دوډۍ تياره کړه بيا زما پلار لاړ او رسول الله ﷺ يې روغوښته راييې وستلو رسول الله ﷺ د ما ته کړې دوډۍ په مېنځ کې د ټولو نه اوچت ځای باندې لاس کېښودلو او وې فرمايل چې د الله جَلَّجَلَالُهُ نوم واخلئ! او خورئ! نو مونږ د پيالې د غاړې نه طعام خوړل شروع کړو چې کله ټولو طعام وخوړ نو رسول الله ﷺ وفرمايل اې الله جَلَّجَلَالُهُ! د دوي مغفرت وکړې په دوي باندې رحم وکړې او د دوي په رزق کې برکت نصيب کړې.(۲)

**د حضرت او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا د طعام او څښاک طريقه:**

حضرت ابن اغيد رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمايل اې ابن عبد! آيا تا ته پته شته چې د طعام حق څه دي؟ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمايل چې ته داسې ووايه! بسم الله! اې الله! کوم رزق چې تاسو مونږ ته راکړی دی په هغې کې برکت واچوې بيا يې وفرمايل آيا تا ته پته شته چې کله تاسو طعام خورئ! نو د هغې شکر څه دي؟ ما وويل د طعام شکر څه دي؟ وې فرمايل چې د طعام شکر دا دی چې تاسو د طعام نه پس دا دعا ووايئ! الحمد الله الذي اطعمنا وسقانا)(۳)

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمايل چې د ډېر زيات طعام خوړلو او څښاک نه ځان ساتئ! ځکه چې ډېر طعام او څښاک بدن خرابوي او دې سره ډېرې بيمارۍ پيدا کيږي او په مونځ کې سستي راځي نو هم دا رنګه په خوراک او څښاک کې ميانه روي غوره کړئ! ځکه چې ميانه روي سره بدن ډېر ښه وي او د اسراف نه انسان ډېر لرې وي الله رب العزت چاق عالم نه خوښوي چا ته چې د خپل بدن په ډېر خوړلو څښلو سره غټولو فکر وي او سړی هغه وخت هلاک کيږي چې کله خپل خواهشات په دين باندې مقدم کوي.(۴)

---

۱: اخرجه ابن ابي شيبة وابونعيم

۲: اخرجه ابن ابي شيبة وابن ابي الدنيا في الدعاء وابونعيم في الحلية والبيهقي كذافي الكنز ۸/۴۶

۳: اخرجه ابن أبي شيبة و ابن ابي الدنيا في في الدعاء و اخرجه ابونعيم في الحلية والبيهقي كذافي الكنز ۸/۴۶

٤: اخرجه ابونعيم كذافي الكنز ۸/۴۷

حضرت ابو محذوره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: زه د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ناست ووم چې په دې کې حضرت صفوان بن اميه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو پياله راوړه او د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مخکې يې کېښودله حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مسکينان او د خوا او شا خلک او غلامان را وغوښتل او دې ټولو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره دا طعام وخوړ او بيا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې الله رب العزت دې په هغه خلکو لعنت وکړي چې د دې خبرې اعراض کوي چې د هغوی غلامان د هغوی سره خوراک وکړي.

حضرت صفوان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې زمونږ هغوی سره د طعام خوړلو نه انکار نه دی خو مونږ ته ښه طعام دومره نه ملاويږي چې مونږ پخپله هم وخورو او په هغوی باندې يې هم وخورو له دې وجې نه مونږ جدا کېنو او طعام خورو .(۱)

**د حضرت ابن عمر او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د خوراک او ښناک طريقه:**

امام مالک بن انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: ما ته دا وښودل شو چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو ځل په جحفه مقام کې دېره شو نو عامر ابن کريز رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل نانبائي ته وويل چې ته خپل طعام حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يوسه! هغه پياله واخيستله او لاړ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې کېږده هغه نانبائي دويمه پياله واخيستله لاړ او هغه رومبۍ پياله يې اوچتوله حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې څه کوې؟ هغه وويل چې دا پياله اوچتوم حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل نه! په دې دويمه پياله کې څه دي هغه په رومبۍ پياله کې واچوه! نو هغه نانبائي به چې څه راوړل هغه به په اولنۍ پياله کې وراچول هغه نانبائي چې کله ابن عامر ته راغی نو هغه ته يې وويل چې دا ستاسو سردار دی دا حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی.(۲)

حضرت جعفر رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د انارو يوه دانه اخيستله او هغه به يې خوړله چا ورته وويل اې ابن عباس! تاسو داسې ولې کوئ؟ حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې ما ته دا خبره رارسېدلې ده چې به زمکه کې کوم انار هم راټوکېږي په هغې کې د جنت يوه دانه ضرور وي نو زه يوه يوه دانه په دې خيال سره خورم چې کېدی شي د جنت والا دانه وي.

---

۱: اخرجه ابن عساکر کذافی الکنز ۵/۴۸

۲: اخرجه ابونعيم فی الحلية ۱/۳۲۲ عن عبدالحميد بن جعفر عن ابيه

**د حضرت سلمان، حضرت ابوهريرة او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُم د خوراک اوڅښاک طريقه:**

د حضرت زيد بن صوحان رَضِيَ اللهُ عَنهُ غلام حضرت سالم رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنهُ زمونږ خوا کې تېر شو هغه يو وسق شپېته صاع يعنې پاو باندې پنځه منه غله اخيستې وه حضرت زيد رَضِيَ اللهُ عَنهُ هغه ته وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ بنده! ته د رسول الله ﷺ صحابي يې! او داسې کوې! يعنې دومره غله جمع کوې حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ وويل چې انسان کله خپله روزي جمع کوي نو د هغه نفس مطمئن شي او عبادت لپاره فارغ شي او وسوسه اچوونکي شيطان د هغه نه نا اميده کيږي.(۱)

حضرت ابو عثمان نهدي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمايل چې زه دا خوښوم چې بخپل لاس باندې يې وګټم او هغه وخورم.(۲)

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي: ما سره پنځلس کجورې وې پنځه کجورې ما به روژه ماتي کې وخورم او پنځه په پېشمنې کې او پنځه کجورې ما د ماښام لپاره اوساتلې.(۳)

د حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنهُ غلام حضرت مسلم رَحِمَهُ اللهُ وايي چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ د څښلو څه شی وغوښته ما ورته د اوبو يوه پياله راوړله هم په هغه پياله کې پو کي اووهلو نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ هغه بېرته ورکړه او د څښلو نه يې انکار وکړ او وې فرمايل چې دا هم ته وڅښه! تا له پکار نه وو چې پو کي دې ورکړی دی.(٤)

## د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو د جامو اغوستو طريقه

**په لباس کې د آنحضرت ﷺ طريقه:**

عبدالرحمن بن ابي ليلي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې زه د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنهُ سره ووم هغوی وفرمايل چې ما حضرت ابوالقاسم وليده چې هغوی يوه شامي چوغه اغوستې وه چې د هغې لستوني تنګ وو.(٥)

حضرت جندب بن مکيث رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمايي؛ کله به چې وفد راته نو رسول الله ﷺ به خپلې ښې جامې اغوستلې او خپلو لويو او اوچتو مرتبو والا اصحابو ته به يې هم د دې خبرې

---

۱: اخرجه ابونعيم فی الحلية ۱/۲۰۷

۲: عند ابی نعيم ايضا ۱/۲۰۰

۳: اخرجه ابونعيم فی الحلية ٦/۳۸۴ عن القاسم بن مسلم عن ابيه.

٤: اخرجه ابن سعد ۲/۲۳۷ عن القاسم بن مسلم عن ابيه.

٥: اخرجه ابن سعد كذافي الكنز ۷/۳۷

حکم کولو نو ما ولیدل چې په کومه ورځ د کنده قبیلې وفد راغی په هغه ورځ رسول الله ﷺ یمني جوړه اغوستې وه او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم داسې جامې اغوستې وې.(۱)

حضرت سلمه بن اکوع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د نیمو پنډو پورې لنګ تړلو او فرمایل به یې چې زما د محبوب ﷺ لنګ به همداسې وو.(۲)

حضرت اشعب بن سلیم رَحِمَهُ اللهُ وایي چې ما د خپل ترور نه واورېدل چې په دې کې یو سړی ما ته دا شان وویل چې خپل لنګ اوچت کړه چې په دې کې پرهېزګاري هم زیاته ده او په دې سره لنګ هم زیات وخت چلېږي ما چې شاته او کتل نو هغه رسول الله ﷺ وو ما عرض وکړ اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! دا خو د تورو او سپینو کرښو والا یو معمولي څادر دی رسول الله ﷺ وفرمایل آیا تا ته زما په سنتو د چلېدو شوق نشته؟ ما وکتل چې د رسول الله ﷺ لنګ نیمې پنډۍ پورې وو.(۳)

**صحابه کرام او ذرسول الله ﷺ د جامو وصف:**

حضرت ابوبرده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا یو د پیوند والا څادر او یو غټ لنګ راوېسته او وې ښودو او وې فرمایل چې رسول الله ﷺ په دې دوو جامو کې وفات شوی دی.(۴) حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي: رسول الله ﷺ په جامو کې قمیص د ټولو نه زیات خوښ وو.(۵)

حضرت اسماء بنت یزید رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي: رسول الله ﷺ د قمیص لستوڼو مړوندونو پورې وو. حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: کله رسول الله ﷺ د فتح مکه په ورځ مکه کې داخل شو نو رسول الله ﷺ تور پټکی تړلی وو حضرت عمرو بن حریث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: یوه ورځ رسول الله ﷺ تور پټکی په سر کړو او خلکو ته یې بیان وکړ. حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: یو ځل رسول الله ﷺ خلکو ته بیان وکړ او د آنحضرت ﷺ په سر تور پټکی وُو.

---

۱: اخرجه ابن سعد ۴/۳۴۶
۲: اخرجه ابن ابي شيبة والترمذى في الشمائل كذافي الكنز ۸/۵۵
۳: عند الترمذى فى الشمائل ۹
٤: عند الترمذي ايضا.
۵: عند الترمذي ايضا ۵

حضرت نافع رَحِمَهُ اَللَّهُ وايي چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهُ وفرمايل رسول الله ﷺ به کله پټکي تړلو نو د هغې شمله به يې د دواړو اوګو په مينځ کې زوړند ولو حضرت نافع رَحِمَهُ اَللَّهُ وايي چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهُ به هم داسې کول حضرت عبد الله وايي چې ما حضرت قاسم بن محمد او حضرت سالم دواړه ليدلي دي چې داسې يې کول.(۱)

**د رسول الله ﷺ بستره اودخوب ځاي:**

چا د حضرت عائشې رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهَا نه د رسول الله ﷺ د بسترې په باره کې پوښتنه وکړه نو هغې وفرمايل چې د څرمنې بستره وه چې پکې د کجورو پاڼې اچول شوې وي.(۲)

حضرت عائشه رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهَا فرمايي: يوه انصاري ښځه ما ته د ننه راغله او هغې وکتل چې د رسول الله ﷺ بستره يوه چوغه ده چې هغه دوه برغه خوره شوي ده هغه لاړه يوه بستره يې ما ته راولېږله چې په هغې کې وړۍ اچوي شوې ده بيا رسول الله ﷺ ما ته راغی او وې فرمايل اې عائشې رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهَا دا څه دي؟ ما ووېل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! فلانۍ انصاري ښځه ما ته راغلې وه هغې ستاسو بستره وليدله بيا هغه لاړه او دا بستره يې ما ته راولېږله رسول الله ﷺ ووېل دا واپس کړه! تر دې چې رسول الله ﷺ د واپس کولو درې ځله حکم وکړ او په اخر کې يې وفرمايل اې عائشې رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهَا دا بستره بېرته ورکړه په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! که چېرې ما غوښتلي نو الله جَلَّ جَلَالُهُ به ما سره د سرو او سپينو زرو غرونه چلولي.(۳)

حضرت محمد رَحِمَهُ اَللَّهُ وايي چې چا د حضرت عائشې رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهَا نه پوښتنه وکړه چې ستا په کور کې د رسول الله ﷺ بستره څنګه ده؟ هغې وفرمايل چې د څرمنې وه چې هغه د کجورو د پاڼو نه ډله شوې وه او چا د حضرت حفصه رَضِيَ اَللَّهُ عَنْهَا نه پوښتنه وکړه چې ستا په کور کې د رسول الله ﷺ بستره څنګه وه؟ هغې وفرمايل چې د رسول الله ﷺ بستره يو ټاټ وو چې هغه به مونږ دوه برغه خورولو په دې باندې رسول الله ﷺ ارام کولو يو شپه ما په خپل زړه کې ووېل که چېرې زه دا څلور برغه کړم نو زياته به نرمه شي نو په دغه شپه مونږ هغه څلور برغه کړه سحر رسول الله ﷺ وفرمايل چې نن شپه تا زما لپاره څه شی جوړ کړی

۱: كذافى الشمائل ۹

۲: اخرجه الشيخان واخرجه ابن سعد ۱/۴۶۴ نحوه.

۳: عند الحسن بن عرفه واخرجه ابن سعد ۱/۶۵ عن عائشه نحوه.

وو ؟ مونږ وويل چې ستاسو هم هغه بستره وه بس نن مونږ هغه څلور برغه کړې وه دا خيال مې وو چې دا شان به ستاسو بستره تا ته نرمه شي رسول الله ﷺ وفرمايل چې هغه به اول حالت کړه ځکه چې د دې نرم والي نن شپه زه د مونځ نه منع کړی وو م يا خو ادو پانه ځېدم يا خو ناوخته پاځېدم . (١)

**د جامو اغوستو په وخت کې د رسول الله ﷺ قول:**

حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: ما يو کرت وليدل چې رسول الله ﷺ نوې جامې راوغوښتلې او وايې غوستلې چې کله يې قميص ګروي ته اوسېدو نو هغه دا دعا ولوستله (الحمد الله الذي کساني ما اواري به عورتي و اتجمل به في حياتي) بيا يې ووېل چې په هغه ذات مې دې قسم وي چې د هغه په قبضه کې زما ساه ده کوم مسلمان بنده چې نوې جامې واغوندي بيا دا دعا ولولي چې اوس ما ولوستله بيا يې چې کومې جامې وېستلې دي هغه يو فقير ته ورکړي نو څو ورځو پورې چې په هغه فقير باندې د دې جامو يو تار هم وي نو دا بنده به د الله جَلَّ جَلَالُهُ په حفاظت کې، د الله جَلَّ جَلَالُهُ په ذمه داری کې او د الله جَلَّ جَلَالُهُ په پناه کې وي هغه اغوستونکی که ژوندی وي يا مړ شي ، خواه که ژوندی وي يا مړ شي.(٢)

**رسول الله ﷺ او دپرتوګ صفت کول:**

حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي: يوه ورځ باران شوي وو زه د جنت بقيع سره نزدې رسول الله ﷺ سره ناست وم چې په دې کې يوه ښځه په خره باندې سوره تېره شوه په هغه خره باندې کرايه باندې ورکولو والا يعنې د خره مالک هم وو هغه د زمکې په ښکته حصه باندې تېرېدو نو هغه اوغورزېدو رسول الله ﷺ بل طرفته مخ اوګرزولو خلکو ووېل اې رسول الله ﷺ! دې خو پرتوګ اغوستی دی لهذا د هغې ستر ښکاره نه شو هغوی ﷺ وفرمايل اې خلکو پرتوګ اغوندئ! ځکه چې پرتوګ سره د تولو نه ښه ستر پټيږي او چې کله ستاسو ښځې بهر ته راوځي نو پرتوګ ورته اغوندئ! او د هغوی حفاظت کوئ!(٣)

---

١: عند الترمذی فی الشمائل عن جعفر بن محمد عن ابيه کذافی البداية ٦/٥٣ واخرجه ابن سعد ١/٤٦٥ عن عائشه

٢: اخرجه ابن المبارک والطبراني والحاکم والبيهقی وغيرهم قال البيهقی اسناده غير قوي وحسنه ابن حجر فی اماليه کذافی الکنز ٨/٥٥

٣: اخرجه البزار والعقيلي وابن عدی وغير هم واورده ابن الجوزي فی الموضوعات فلم يصب والحديث له عدة طرق کذافی الکنز ٨/٥٥

**د رسول الله ﷺ، حضرت دحيه او حضرت اسامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د جامو قصه:**

حضرت دحيه بن خليفه كلبي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: رسول الله ﷺ زه هرقل يعني د روم پاچا ته وليږلم چې كله زه د هلته نه واپس راغلم نو رسول الله ﷺ ما ته د مصر جوړه شوې يوه باريكه سپينه جامه راكړه او وې فرمايل چې نيمې نه ته خپل قميص جوړ كړه او نيمه ته خپلې بي بي ته وركړه هغه به د دې نه څادر جوړ كړي چې كله زه واپس راتلم نو زه يې راوغوښتلم او وې فرمايل چې خپلې بي بي ته ووايه ! چې هغه د دې د لاندې يوه بله جامه هم اغوندي دې لپاره چې لاندې بدن يې ترې نه ښكاري.(١)

حضرت اسامه بن زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: حضرت دحيه كلبي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كومې هديې راوړې وې په هغې كې يوه سپينه زګه باريكه مصري جامه رسول الله ﷺ ما ته اغوستلو لپاره راكړه نو هغه ما خپلې بي بي ته وكړه بيا يوه ورځ رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل چې څه خبره ده چې ته هغه مصري باريكه جامه ولې نه اغوندې؟ ما وويل اې د الله جَلَّ جَلَالُهُ رسوله! ما خپلې بي بي ته وركړې ده رسول الله ﷺ وفرمايل چې خپلې بي بي ته دې ووايه چې د هغې د لاندې دې بنين وغيره اغوندي ځكه چې ما ته خطره ده چې په هغې جامه كې د هغې بدن ښكاري.(٢)

**د حضرت عائشې او حضرت ابوبكرصديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د نوو جامو قصه:**

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي: ما يوه ورځ جامې واغوستلې او په كور كې ګرځېدم او خپلو لمنو او جامو ته مې كتل او خوشحالېدم چې په دې كې حضرت ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ما ته دننه تشريف راووړ او وې فرمايل چې اې عائشې! په دې وخت كې الله رب العزت تا ته د رحمت په نظر نه ګوري. (٣)

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي: ما يوه ځل نوى قميص واغوسته ما چې وليده نو ډېره خوشحاله شوم هغه ما ته ډېر ښه ښكارېده حضرت ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې څه ګورې؟ دا وخت الله رب العزت تا ته نه ګوري ما وويل ولې؟ نو وې فرمايل چې كله د دنيا د بنائست د وجې نه د بنده په زړه كې د عجب حالت پيدا شي نو تر څو پورې چې هغه دغه زينت د ځان نه لرې نه كړي الله پاك د هغه نه خفه وي حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي: ما

١: اخرجه ابن منده وابن عساكر كذافي الكنز ٨/٦١
٢: اخرجه ابن ابي شيبة و ابن سعد واحمد والروياني والباردوي والطبراني والبيهقي وسعيد بن منصور كذافي الكنز ٨/٦٢
٣: اخرجه ابن المبارك وابونعيم في الحلية

هغه قمیص او وېستلو نو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې کېدی شي دا صدقه کول د دغه عجب کفاره وګرځي.(۱)

**د حضرت عمر او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا لباس اغوستو طریقه:**

حضرت عبدالعزیزبن ابی جمیله انصاری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي: د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لستوني به د لاسو نه اوږده نه وو.

حضرت بدیل بن میسره رَحِمَهُ اللهُ وایي چې یو ځل حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د جمعې لپاره روان وو هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د سنبلان مقام جوړ شوي لوي قمیص اغوستي وو او د خپل روستو راته عذر یې پېش کړو او وې فرمایل چې د دې قمیص په وجه په ما باندې ناوخت شو هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به خپل لستوني رابنکل چې کله به یې پرېښودل نو هغه به د ګوتو سرورنو پورې واپس تلل حضرت هشام بن خالد رَحِمَهُ اللهُ وایي چې ما ولیدل چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د نامه نه پرتوګ لنډ تړلو حضرت عامر بن عبیده باهلي رَحِمَهُ اللهُ وایي چې ما د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د ریښمو ملاو شوي د وړی جامو باره کې پوښتنه وکړه چې حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې زما زړه غواړي چې الله رب العزت دا جامه او پیدا کړې نه وي او د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه سوا د رسول الله ﷺ هر صحابي دا جامه اغوستې ده یعنې دا جامه حلاله ده خو دا به د عجمو مالداره خلکو اغوستله ځکه حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا خوښه نه کړه.(۲)

حضرت مسروق رَحِمَهُ اللهُ وایي چې یوه ورځ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بهرته په داسې حال کې راغی او د خام تار نه جوړه شوې جوړه یې اغوستې وه خلکو ورته په تېز نظر سره وکتل نو دا شعر یې وویلو:

لاشيء فيما ترى تبقى بشاشته
يبقى الاله و يودي المال والولد

د دنیا چې څومره شیان تاسو وینئ! په هغې کې د هیڅ شی زیب او زینت باقي نه پاتې کیږي الله به باقي پاتې کیږي او مال او اولاد به ټول ختمیږي.

۱: اخرجه ابن سعد

۲: كذافي منتخب الكنز ۲/۹۶

بیا یې وفرمایل چې د اخرت په مقابله کې خو دنیا د سورې د یو توپ پشان ده.(۱)

**د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د جامو اغوستو طریقه:**

د حضرت شداد بن هاد ازاد شوی غلام حضرت ابوعبدالله رَحِمَهُ اللهُ وایي چې ما یوه جمعه حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په منبر باندې ولیده هغه د عدن جوړ شوی یو غټ لنګ تړلی وو چې د هغې قیمت څلور یا پنځه درهمه وو او یو د سور رنګ کوفي څادر یې په سر کړی وو د هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په بدن باندې غوښه کمه وه ږیره یې اوږده او مخ یې ښایسته وو.(۲)

حضرت موسی بن طلحه رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د جمعې په ورځ په همه الګولو تلو هغه په خلکو کې د ټولو نه زیات ښایسته او ښکلی وو هغه یو زیړ رنګ لنګ وهلی وو او دویم زیړ څادر یې پسر کړی وو هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به تلل تر دې چې رابه غی او په منبر باندې به کیناسته.(۳)

حضرت سلیم ابوعامر رَحِمَهُ اللهُ وایي چې ما په حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې یماني څادر اولیدو چې د هغې قیمت سل درهمه وو.(۴)

حضرت محمد بن ربیعه بن حارث رَحِمَهُ اللهُ وایي چې د رسول الله ﷺ صحابه وو به خپلو بنځو ته په جامو کې دومره فراخي ورکوله چې په هغې سره د ګرمۍ یخنۍ نه بچ شي او د عزت حفاظت یې اوشي او ښائست پرې حاصل شي دا شان ما د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په بدن د ریښمو د ورۍ جامې یو څادر اولیدو چې د هغې قیمت دوه سوه درهمه وو چې د هغې دواړو طرفونو ته غاړې ملاو شوی وې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې دا څادر زما د بي بي حضرت نائلې دی ما هغې ته پسرولو لپاره ورکړی وو اوس یې زه د هغې د خوشحالۍ لپاره پخپله پسروم.(۵)

**د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د جامو اغوستل:**

حضرت زید بن وهب رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د بصرې والاوو یو وفد راغی په هغوی کې یو خارجي وو چې هغه ته جعد بن نعجه ویلی شو هغه د حضرت

---

۱: اخرجه هناد وابن ابي الدنیا في قصر الامل كذافي منتخب الكنز ۴/۴۰۵

۲: اخرجه الحاكم ۳/۹۶ واخرجه الطبراني عن عبدالله بن شداد بن الهاد مثله واسناده حسن كما قال الهيثمي ۹/۸۰

۳: عندالحاكم ایضا قال الهیثمی ۹/۸۰ رواه الطبراني عن شیخه المقدام بن داود وهو ضعیف اه.

۴: اخرجه ابن سعد ۳/۵۸

۵: عند ابن سعد ایضا ۳/۵۸

علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په قميص باندې ناراضګي ښکاره کړه حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې ستا زما د قميص سره څه کار دی؟ زما قميص د تکبر نه ډېر لرې او د دې لايق دی چې مسلمانان زما اقتداء يعنې پيروي وکړی شي.(۱)

حضرت عمرو بن قيس رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې چا د حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه چې اې اميرالمؤمنين! ته خپل قميص ته پيوند ولې لګوې؟ حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې په دې سره زړه کې عاجزي پيدا کېږي او مومن د هغې اقتداء کوي.(۲)

حضرت عطاء ابومحمد رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې ما د حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په بدن باندې ناوينځلي غټ زيګ قميص وليده.(۳)

حضرت عبدالله بن ابوهزيل رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې ما د حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په بدن باندې دری مقام جوړ شوی قميص وليده چې کله به حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ لاس غزولو نو لستوني به يې د ګوتو سرونو پورې رسېدل او چې کله به يې لاس راغونډ پرېښودو نو نيمائي لاس ته به نزدې رسېدل.(۴)

حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ به چې کله قميص اغوست نو لستوني به ئې اوږدول او څومره چې به د ګوتو نه اوږده وو هغه به يې پرېکول او فرمايل به يې چې لستوني د لاسونو نه اوږدول نه دي پکار.(۵)

حضرت ابوسعيد ازدي رَحِمَهُ اللّٰهُ د ازد قبيلې په امامانو کې وو هغه وايي چې ما حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اوليدو چې بازار ته يې تشريف يوړو او وې فرمايل چې چا سره داسې قميص شته چې د هغې قيمت درې درهمه وي؟ يو سړي وويل چې ما سره شته هغه سړی هغه قميص حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته راوړو د حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هغه قميص خوښ شو او وې فرمايل چې شايد دا درې درهمو نه ګران وي يعنې د دې قيمت د دريو درهمو نه زيات وي هغه سړي وويل چې نه د دې قيمت هم دا دی بيا ما وليدل چې حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د خپلې جامې نه د درهمو غوټه پرانيستله بيا يې د هغې نه درې درهمه

---

۱: اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۸۲

۲: اخرجه هناد عن عمرو بن قيس مثله كما في المنتخب ۵/۵۷ واخرجه ابن سعد ۳/۲۸ عن عمرو نحوه.

۳: اخرجه ابن ابي شيبة وهناد.

۴: عند هناد وابن عساكر كذافي المنتخب ۵/۵۷

۵: اخرجه ابن عيينة في جامعه و العسكري في المواعظ و سعيد بن منصور والبيهقي وابن عساكر كذافي الكنز ۸/۵۵

ورکړل او هغه قمیص یې واغوستلو نو د هغوی لستوڼي د ګوتو د سرونو نه اوږده وو د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په وینا باندې د ګوتو نه زیاته حصه پرېکړی شوه.(۱)

د حضرت ابو غصین یو ازاد کړی شوي غلام وایي چې ما حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ولیده چې هغه بهر ته راغی او دیسي جامو خرڅوونکي ته ورغی او هغه ته ئې وفرمایل چې آیا تاسره د سنبلان ښار جوړ شوي اوږد قمیص شته؟ دیسي جامو خرڅوونکي یو قمیص را ووېستلو چې هغه حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ واغوستلو نو هغه یې لاندې نیمو پنډو پورې وو بیا یې ښي او ګس طرفته اوکتل وې فرمایل چې ما ته خو دا صحیح ښکاري دا د څو درهمو دی؟ هغه وویل اې امیر المؤمنین! دا د څلورو درهمو دی حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د لنګ نه څلور درهمه پرانیستل او هغه ته یې ورکړل او بیا د هغه ځایْ نه لاړ.(۲)

**د عبدالرحمن بن عوف، ابن عمر او ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د جامو اغوستلو طريقه:**

حضرت سعد بن ابي ابراهیم رَحِمَهُ اللهُ وایي چې حضرت عبد الرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د څلورو پنځو سوو څادرونه یا جوړه اغوستله.(۳)

حضرت قرعه رَحِمَهُ اللهُ وایي چې ما د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په بدن زګې جامې اولیدلې ما د هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خدمت کې عرض وکړ چې اې ابو عبد الرحمن! چونکه تاسو زګې جامې اغوستې دی په دې وجه ما ستاسو لپاره د خراسان جوړه شوې نرمه جامه راوړې ده دا چې ستاسو په بدن وینم نو زما سترګې به پرې یخیږي هغوی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې ما ته یې اوښایه چې زه یې هم لږه اوګورم نو هغه یې په لاس سره اوکتله او وې فرمایل آیا دا ریښم دې؟ ما وویل نه دا د مالوچو ده وې فرمایل چې ما ته دا وېره ده چې چېرته د دې اغوستلو سره زه تکبر کونکی او فخر کونکی نشم او الله پاک ته تکبر کونکی او فخر کونکی ناخوښه دی.(۴)

حضرت عبد الله بن حنش رَحِمَهُ اللهُ وایي چې ما د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په بدن باندې د معافر ښار جوړ شوې دوه جامې ولیدلې نو د هغه جامه تر نیمې پنډۍ پورې وه.(۵)

---

۱: عند ابي نعيم في الحلية ١/٨٣

۲: اخرجه احمد في الزهد كذافي البداية ٨/٣

۳: اخرجه ابن سعد ٢/١٣١

٤: اخرجه ابونعيم في الحلية ١/٣٠٢

٥: عند ابي نعيم واخرجه ابن سعد ٤/١٧٤ عن عبدالله بن حنش نحوه.

حضرت وقدان رَحِمَهُ اَللّٰهُ وايي چې يو سړی د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه چې زه کومې جامې واغوندم؟ حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې داسې جامې اغونده چې په هغې کې به وقوف تاسو خلک سپک ونه گڼي او عقلمند او صبرناک خلک ستا نه ناراضه نه شي هغه سړی پوښتنه وکړه چې داسې جامې به د څومره قيمت وي؟ هغوی ﷺ وفرمايل چې پنځوو درهمو نه واخله تر شلو درهمو پورې.(۱)

حضرت ابو اسحاق رَحِمَهُ اَللّٰهُ وايي چې ما حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اوليدو چې د نيمې پندۍ پورې يې لنگ ترلی وو په بل روايت کې حضرت ابو اسحق وايي چې ما د رسول الله ﷺ څو صحابه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وليدل مثلاً حضرت اسامه بن زيد بن ارقم، حضرت براء بن عازب او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ چې لنگ يې د لاندې نيمو پندو پورې ترلی وو.(۲)

حضرت عثمان بن ابي سليمان رَحِمَهُ اَللّٰهُ وايي چې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د زرو درهمو جامه واخيستله او وايي غوستله.(۳)

**د حضرت عائشې او حضرت اسماء رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا د جامو اغوستو طريقه:**

حضرت کثير بن عبيد رَحِمَهُ اَللّٰهُ وايي چې زه اميرالمؤمنين حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا ته ورغلم نو هغې وفرمايل چې لږ ايسار شه! زه خپلې شلېدلې جامې وگنډم ما وويل اې ام المؤمنين! چې که چېرې زه بهر ته لاړ شم او خلکو ته ووايم چې ام المؤمنين حضرت عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا خو خپلې شلېدلې جامې گنډي نو هغوی ټول به ستا دا گنډل کنجوسي وگڼي چې ته د پېره شو مه يې له دې وجې نه شلېدلې جامې گنډې حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وفرمايل چې ته خپل کار کوه! څوک چې زړې جامې نه اغوندي هغه ته د نوې جامې اغوستلو هيڅ حق نشته يا دا چې څوک په دنيا کې زړې جامې نه اغوندي هغه ته به په اخرت کې نوې جامې نه ملاويږي.(۴)

حضرت ابوسعيد رَحِمَهُ اَللّٰهُ وايي چې يو سړی حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا ته دننه ورغی هغې په دغه وخت کې خپل پړونی گنډلو هغه سړي وويل چې اې ام المؤمنين! ايا الله رب العزت

---

۱: عند ابي نعيم ۱/۳۰۲
۲: اخرجه ابونعيم في الحلية ۴/۳۴۱
۳: اخرجه ابونعيم في الحلية ۱/۳۲۱
۴: اخرجه البخاري في الادب ۶۸

په مال کې فراخي نه ده راوستې؟ هغې وفرمايل چې اې سريه! مونږ هم د غسې پرېږده! چا چې زړې جامې وانه غوستلې هغه ته د نوو جامو د اغوستلو هيڅ حق نشته.(۱)

حضرت هشام بن عروه رَحِمَهُ اَللّٰه وايي چې حضرت منذر بن زبير رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي د عراق نه راغى نو هغه د خپلې مور حضرت اسماء بنت ابي بكر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا په خدمت كې د مرو او قوه جوړې شوې بارېكې او ښې جوړې اولېږلې دا واقعه د هغې د نظر تلو نه پس ده هغې په هغه جوړو باندې لاس وواهه بيا يې وفرمايل چې اوهو! د هغه منذر جوړې هم داسې واپس كړئ! دا خبره حضرت منذر باندې ډېره ګرانه تمامه شوه هغه وويل اې مورې! دا جامه دومره بارېكې نه دي چې په دې كې بدن ښكاره شي حضرت اسماء رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وفرمايل چې كه چېرې بدن په نظر رانشي نو د بدن جسامت په دې جامو كې معلومېږي بيا حضرت منذر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د هغې دوباره د مرو او قوه عامې او ساده جامې واخيستلې نو هغه حضرت اسماء رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قبولې كړې او وې فرمايل چې په ما باندې داسې جامې اغونده.(۲)

**د لباس په باره كې د حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عملكرد:**

حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي: يوه ښځه راغله او د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په خدمت كې يې عرض وكړ اې اميرالمؤمنين! زما قميص شكېدلى دى حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل ايا تا ته ما د دې مخكې د اغوستلو جامه نه وه دركړې؟ هغې ښځې وويل چې راكړې خو دې وه خو هغه اوس شكېدلې ده حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د هغه ښځې لپاره يوه ښه جوړه او تار راوغوښته او هغې ته يې وفرمايل چې كله دوډۍ يا تركاري پخوې نو دا زړه جوړه اغونده ځكه چې څوك زړې جامې نه اغوندي هغه ته د نوو جامو اغوستلو حق نشته.(۳)

حضرت حرشه بن حر رَحِمَهُ اَللّٰه وايي چې ما وليدل چې د حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سره يو ځوان تېر شو چې د هغه لنګ د ګيټو نه ښكته وو بلكې هغه يې په زمكه راښكلو روان وو حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هغه ر وغوښته ورته يې وفرمايل چې آيا تا ته حيض راځي؟ هغه

---

۱: اخرجه ابن سعد ۸/۷۲

۲: اخرجه ابن سعد ۸/۲۵۲

۳: اخرجه البيهقي كذافي الكنز ۸/۵۵

وويل ولې سرې ته هم حيض راځي؟ حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې نو بيا په تا څه شوي دي چې د پښو نه لاندې دې لنګ زوړند کړی دی؟ بيا حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يوه چاړه راوغوښته او د هغه د لنګ غاړه يې ونيوله او د ګيټو نه لاندې حصه يې پرېکړه حضرت خرشه وايي چې اوس هم هغه منظر زما د سترګو د مخکې دی او ما ته د هغه په ګيټو باندې د لنګ تارونه په نظر راځي.(١)

حضرت ابو عثمان نهدي رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې مونږ خلک په اذربايجان کې وو هلته مونږ له د حضرت عتبه بن فرقد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ پواسطه باندې د حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بن خطاب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خط [illegible] مون وو: اما بعد! لنګ تړئ! او څادر اغوندئ! او بو[illegible] يا څپلی په پښو کوئ! او موزې لرې کړئ! او پرتوګونه لرې کړئ! د هغې په ځای لنګ تړئ! او د خپل پلار اسماعيل جامه اختيار کړئ! او د نازو نعمت ژوند او عجمي خلکو جامې مه غوره کوئ! او په لمر کې کېنئ! ځکه چې دا د عربو حمام دی او د معد بن عدنان په شان ساده او محنت والا ژوند اختيار کړئ! او د سختې زکې او زړې جامې اغوندئ! په غشو ښنې اوولئ! د اسونو نه رکابونه پرېکړئ! او په ټوپ سره په اسونو باندې سورېږئ! رسول الله ﷺ د يوې ګوتې نه زيات ريښم اغوستل منع کړی دی حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په منځنۍ ګوته اشاره وکړه.(٢)

## د ازواج مطهراتو کورونه

حضرت معاذ بن محمد انصاري رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي چې په يو مجلس کې حضرت عمران بن [illegible]ـعن رَحِمَهُ اللّٰهُ هم وو په دغه مجلس کې حضرت عطاء خراساني د قبر اطهر او د منبر په مينځ کې ناست وو ما د هغه نه دا وينا واورېده چې ما وليدل چې د رسول الله ﷺ د ازواج مطهراتو کورونه د کجورو د څانګو نه جوړ شوي وو او د هغوی په دروازو باندې د تورو وېښتو پردې وې بيا زه هغه وخت موجود ووم چې کله د وليد بن عبد الملک بادشاه خط لوستل کېدو چې په هغې کې يې حکم کړی وو چې د رسول الله ﷺ د بيبيانو کورونه دې په مسجد نبوي ﷺ کې داخل کړی شي د هغه ورځې نه زيات د ژړا والا ما کله هم نه ده ليدلې نو ما د حضرت

---

١: اخرجه سفيان بن عيينة جامعه كذافى الكنز ٨/٥٩

٢: اخرجه ابوذر البردى فى الجامع والبيهقى كذافى الكنز ٨/٥٨

سعيد بن مسيب رَحِمَهُ اللّٰهُ نه په هغه ورځ دا فرمان واورېده چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ قسم! افسوس! چې دې خلکو دا کورونه په خپل حال باندې پرېښي واي دې لپاره چې په مدينه کې پيدا کېدونکي نسلونو او د دنيا د هر طرفه راتلونکو خلکو کتلي واى چې رسول الله ﷺ په خپل ژوند کې په څه شي بسوالى وکړ په دې سره به د خلکو په زړونو کې د دنيا د زياتولو او په دې کې د فخر کولو نه بې رغبتي پيدا کېدله حضرت معاذ وايي چې کله حضرت عطاء خراساني خپله خبره پوره کړه نو حضرت عمران بن ابي انس ووېل چې په هغې کې څلور کورونه د کچو خښتو وو او د هغې صحن (انګړ) د کجورو د څانګو نه جوړ شوى وو او پنځه کورونه د کجورو د ښاخونو نه جوړ وو چې په هغې باندې د وېښتو پردې وې ما د پردې پيمائش وکړ نو هغه درې لاسه اوږده او د يو لاس نه زياته پلنه وه او تاسو په هغه ورځ د خلکو د ژړا ذکر وکړ نو ما ته هم ياد دي زه هم په يو داسې مجلس کې ناست ووم چې په هغې کې د رسول الله ﷺ د څو صحابه وو ځامن ناست وو چې په هغوى کې حضرت ابو سلمه بن عبد الرحمن او حضرت ابو امامه بن سهل بن حنيف او حضرت خارجه بن زيد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هم وو او دوي تولو دومره زيات وژړل چې د هغه ږيرې لوندې شوې وې او په هغه ورځ حضرت ابو امامه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دا هم ويلي وو چې ارمان! دا کورونه يې هم داسې پرېښي واي او دا يې نه واي غورزولي دې لپاره چې خلکو دې کورونو ته کتلاي او اوچت او لوي کورونه يې جوړولي او کتلي به يې چې الله رب العزت خپل رسول الله ﷺ لپاره څه خوښ کړى وو په داې حال کې چې د دنيا د خزانو چابيانې (کلياني) د هغه په لاس کې وې.(۱)

تمت بعون الملک الوهاب

(۱): اخرجه ابن سعد ۸/۱۶۷ عن الواقدي

